محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ④

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمہ اللہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعه اسلامیه چارسده

خصوصیات مع تسهیلات و اضافات

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ ټکی په ټکی او رواںه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د ځیر تفسیر شوه آیاتونو تفسیر ⑥ د عربي او فارسي د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پېښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتي محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتي اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګي

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روحانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمي کتب خانه ګردیز
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- دیني کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاري هرات
- مکتبه نعمانیه هرات
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

### پاره نمبر [۷]

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۸]

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## پاره نمبر [۹]

وَإِذَا سَمِعُوا مَآ أُنْزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰٓ أَعْيُنَهُمْ

او کله چی | واوری هغوئ | هغه کلام | چی نازل شوي دي | رسول ته | ته وینې | سترګې دهغوئ

اوچې کله هغه کلام واوری چې پیغمبر ته نازل شوې دي | ............نو ته وینې چه ددوئ سترګې

تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُولُونَ رَبَّنَآ

چی بهیږی | داوښکو نه | په وجه ددې | چی پیژندلې دي هغوئ | حق | وايئ هغوئ | اې ربه زمونږه

داوښکو نه ډکې شی | ځکه چې حق خبره ئې پیژندلې ده | چه قرآن دی | ......وائی چې ائې ربه! زمونږه

اٰمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِينَ ﴿٨٣﴾ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ

ایمان راوړې دې مونږه | نواولیکه مونږه | دګواهي کونکوسره | اوڅه شوی دی په مونږ | چی ایمان به نه راوړومونږ

مونږ ایمان راوړې دې | نومونږ په ګواهي کونکو کښې شمیر کړه | او آخر مونږ ولې ایمان نه راوړو

بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ ۙ وَنَطْمَعُ أَنْ يُّدْخِلَنَا

په الله باندې | اوپه هغې څه | چی راغلې دې مونږ ته | چه حق دې | اوحال دا چی طمع لرو | چی داخل به کړی مونږ

په الله ﷻ باندې او چې کوم حق مونږ ته راغلې دې هغه ولې نه منو! هرکله چې دا طمع ساتو

رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِينَ ﴿٨٤﴾ فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوا

رب زمونږ | دنیکانو خلقو سره | نوورکړه بدله هغوئ ته | الله | په سبب دهغه | چی وئیلی وو هغوئ

چې الله ﷻ به مونږ دنیکانو په ډله کښې شامل کړی | ............ ددې وینا په وجه به ورته الله ﷻ

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَذٰلِكَ جَزَآءُ

جنتونه | چی بهیږی | لاندې د هغې نه | نهرونه | چی همیشه به وسیږی | په هغې کښې | او دا | بدله ده

داسې باغونه ورکړی | چې دهغې لاندې به ولې بهیږی | او تل ترتله به په هغې کښې اوسیږی | او بیشکه هم دغه

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ أُولٰٓئِكَ

دنیکانو خلقو | اوهغه کسان | چی انکار ئې اوکړو | اودروغ ئې اوګڼړل | آیتونه زمونږه | دغه کسان

دنیکانو بدله ده | اوچا چې انکار اوکړو | اوزمونږ آیتونه ئې دروغ اوګڼړل | ............نوهم دغه خلق

أَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿٨٦﴾

خاوندان دی | د دوزخ |

دوزخیان دی

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه دا خلق هغه کلام واوري چه په پیغمبر نازل شوي دي نو چونکه دوی حق لره پیژندلي وي، ددې وجې نه ته به ددوی سترګې وینې چه هغه به د اوښکو نه بهیږی. (او) دوی وائي چه" اې ځمونږ پروردګاره ! مونږ ایمان راوړي دي پس ګواهي کوونکو سره (ځمونږ نوم هم) اولیکه او مونږ په الله باندې او کوم حق چه مونږ ته راغلي دي په هغې باندې آخر ولې ایمان نه راوړو او بیا دا امید ولې نه ساتو چه ځمونږ رب به مونږ په نیکو خلقو کښې شمار کړي؟ نو د دوی ددې وینا د وجې نه به الله دوی ته

داسې باغونه ورکړي چه د هغې د لاندې به نهرونه بهيږي ، هغې کښې به دوی هميشه اوسيږي دا د نيکو کوونکو بدله ده او کومو خلقو چه کفر کړې دې او زمونږ آيتونه ئې دروغژن گنړلي دي ، هغه خلق دوزخيان دي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ ﴾ او [بعضې پدوی کښې چه په آخرکښې مسلمانان شوی وو داسې دی چه] هرکله چه هغې [کلام] لره آوری چه رسول ﷺ ته ليږلے شوې دے [يعنی قرآن لره] ﴿ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ ﴾ نوتاسو ددوی سترگے د اوښکو نه بهيدونکے وينئ په دې وجه چه هغوی [دين] حق [يعنی اسلام] لره اوپيژندلو [مطلب دا چه دحق په اوريدو سره اثر قبلوی او] ﴿ يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاكْتُبْنَا ﴾ داسې وائی چه ای زمونږ پروردگاره مونږ مسلمانان شو نو مونږ لره هم هغه خلقو سره اوليکئ [يعنی په هغې کښې مو شمار کړئ] ﴿ مَعَ الشَّاهِدِينَ ۝ ﴾ چه تصديق کوی [ددې چه محمد ﷺ او قرآن کريم په حقه دې] ﴿ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا جَاءَنَا مِنَ الْحَقِّ ﴾ او زمونږ څه عذر کيدشی چه مونږ په الله ﷻ باندې [د محمد ﷺ دشريعت په جوړ] او په حق [دين] باندې چه [اوس] مونږ ته رارسيدلے دے ايمان رانه وړو ﴿ وَنَطْمَعُ أَن يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ ۝ ﴾ او [بيا] ددې خبرے اميد [هم] لرو چه زمونږ رب به مونږ لره دنيکانو [مقبولو] خلقو په ملگرتيا کښې داخل کړی [بلکه دا اميد موقوف دے په اسلام باندې خکه مسلمانيدل ضروری دی. ﴿ فَأَثَابَهُمُ اللَّهُ بِمَا قَالُوا جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ﴾ نو دوی ته به الله ﷻ ددوی [ددغې] وينا [سره داعتقاد] په بدله کښې داسې باغونه [دجنت] ورکړی چه دهغې [دمحلونو] لاندے به نهرونه جاری وی [او] دوی به په کښې تل ترتله پاتې کيږی ﴿ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ ۝ ﴾ او دنيکوکارو [خلقو] هم دغه بدله ده او [په خلاف ددې] ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ﴾ خوک چه کافران پاتې شول اوزمونږ آيتونو [او احکامو] ته ئې دروغ اووئيل ﴿ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ۝ ﴾ دغه خلق ددوزخ خاوندان دی [يعنی هلته به پاتې کيږی]

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | لَا تُحَرِّمُوا | طَيِّبَاتِ | مَا

اې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | مه حراموئ تاسو | پاک څيزونه | هغه

|..........انې دايمان خاوندانو الله ﷻ چې ستاسو دپاره کوم پاکيزه څيزونه حلال کړی دی |

أَحَلَّ اللَّهُ | لَكُمْ | وَلَا تَعْتَدُوا | إِنَّ اللَّهَ | لَا يُحِبُّ | الْمُعْتَدِينَ ۝

چې حلال کړی دی الله | ستاسو دپاره | او مه اوړئ دحد نه | بيشکه چې الله | نه خوښوی | دحد نه اوړيدونکی

هغه په خان مه حراموئ او د حد نه بهر مه اوځئ بيشکه زياتی خور خلق د الله ﷻ نه دی خوښ

وَكُلُوا | مِمَّا | رَزَقَكُمُ اللَّهُ | حَلَالًا طَيِّبًا | وَاتَّقُوا | اللَّهَ | الَّذِي

اوخورئ | دهغې رزق نه | چې درکړې دې تاسو ته الله | حلال پاک | او خان ساتئ دنافرمانئ | د الله نه | هغه

او الله ﷻ چې تاسو ته کوم پاک څيزونه درکړې دی هغې نه خورئ | او د هغه الله ﷻ نه ويريږئ په کوم چه

| |
|---|
| أَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ |
| چې تاسو \| په هغه \| ایمان لرونکي یئ: \| |
| تاسو ایمان راوړي دي \| |

## آسان ترجمه قرآن

اې د ایمان څاوندانو ! الله تعالیٰ چه تاسو لره کوم پاک څیزونه حلال کړي دي هغه مه حراموئ او د حد نه تیرې مه کوئ یقین وکړئ چه الله د حد نه تیرې کوونکو لره نه خوښوي. او الله چه تاسو ته کوم رزق درکړي دي د هغې نه حلال او پاک څیزونه خورئ . او په کوم الله چه تاسو ایمان لرئ د هغه نه وویرېږئ.

**د آیتونو ربط:** پورته آیتونو کښې د یهودیانو د مشرکانو سره د دوستئ ذکر وو. وړسې د مشرکانو مسلمانانو سره د دښمنئ ذکر دې . اودا ددې دوستئ اصلي سبب وو. او چونکه په هره معامله کښې قرآن پاک د ټولو څخه لوئې داعی دې ، په دې وجه یې یهودیانو او نصاراؤ ته یوه ورنکړه ، چا کښې چې یو ښه خوئې وو هغه ئې ښکاره کړو. مثلا د نصاراؤ په یو خاص ډله کښې دیهودو په نسبت تعصب ډیر کیدل ، اوپه نصاراؤ کښې چې چا حق قبول کړې وو د هغوئ متعلق دا وینا چې دا تعریف قابل دی او دا دسزا قابل دی . اودا خاص ډله د حبشې د نصاراؤ وو. [او دا هغه خلق وو] چې کله مسلمانانو د مدینې منورې د هجرت څخه مخکښې خپل وطن پریښودلو او حبشې ته یې هجرت اوکړو نو دې خلقو ورته هیڅ تکلیف نه وو ورکړې او دوی څخه علاوه چې نورکوم نصرانیان ددوئ په شان وو هغوی هم حکماً په دوئ کښې داخل دي. او په دوئ کښې چې چا حق قبول کړې وو هغه نجاشی بادشاه او دده ملګری دی چې په حبشه کښې قرآن پاک واؤریدو او ژړل یې او مسلمانان شو، بیا دیرش کسان د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو ، قرآن پاک آؤریدو سره یې اوژړل ، اوقرآن پاک یې قبول کړو. هم دا ددې آیت مبارک شان نزول دې .

## خلاصه تفسیر

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ ﴾ اې دایمان خاوندانو الله ﷻ چه کوم څیزونه ستاسو دپاره حلال کړی دی [که دغه څیزونه دخوراك څکاك او د اغوستو دی اوکه دنکاح څیزونه وی] دې خوندناکو [زړه پورې] څیزونو لره [په قسم او لوظ کولو سره په خپلو ځانونو] مه حراموئ ﴿ وَلَا تَعْتَدُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴾ اود [شرعی] حدونو نه [چه دحراموالی او حلال والی په باره کښې تاکلے شوی دی] مخکښې مه تیروځئ بیشکه الله ﷻ [شرعی] حدونو نه وتونکو لره نه خوښوی ﴿ وَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا ﴾ اوالله ﷻ چه کوم څیزونه تاسو ته درکړی دی دهغې نه حلال او خوښ څیزونه خورئی [او استعمالوئی] ﴿ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴾ او الله ﷻ نه ویریږئ په چا چه تاسو ایمان لرئ [یعنی دحلالو څیزونو په حرام ګرځولو سره الله ﷻ ناراضه کیږی نوتاسو دهغه نه ویریږئ اودغه کار مه کوئ].

## معارف اومسائل

**مقبلو پریښودل هغه دالله ﷺ دپاکلو حدودو لاندې وي نورواډه هغی ناروادي:** په تیرو شوؤ آیتونو کښې داښودلې شویدی چه اګرکه دنیا ، ددنیاشهوتونه اوخوندونه پریښول په یوه درجه کښې غوره

اوخوښ کاردي مگرپه دې کښې دالله ﷻ دټاکلی حدودونه تیریدل بد ،ناکاره اوحرام دی- لاندې چې تفصیل ئې داسې دې:

**یوحلال څیزلره دحرام گرځولودرې درجې**: یوحلال څیزلره دحرام گرځولودرې درجې دی یوداچه عقیده ئې دهغې دحراموالی اوگرځی دویم داچه په خپلې ویناسره یوڅیزلره په ځان حرام اوگرځوی، مثلاً دیخواوبوڅکلو یادیوحلال څیزدخوراک څکاک نه قسم اوکړی چه ددې څکل یاخوړل به نهٔ کوم، یافلانې کاربه نهٔ کوم، دریم داچه عقیده ئې هم نه وی اونهٔ ئې په څه ویناسره یوڅیزپه خپل ځان حرام گرځولې وی،صرف دهغې دنهٔ کولویانهٔ استعمالولو قصد اوکړی-

په ړومبی صورت کښې به دغه کوونکې دالله ﷻ دقانون دښکاره مخالفت کولوپه وجه کافر گرځی کله چه دحرام گرځولی څیزحلالوالې په قطعي اویقیني دلیلونوسره ثابت شوې وی-

دوئم صورت کښې په قسم سره دحرام گرځولی څیزقسم خوبه اوشی،چنانچه دقسم الفاظ، د فقهې په کتابونوکښې په تفصیل سره بیان شویدی،یومثال ئې داسې هم دې چه په ښکاره ، دالله ﷻ په نوم قسم اوخوری چه فلانی څیزبه نهٔ خورم یافلانې کاربه نهٔ کوم،یاداسې اووائی چه فلانې څیزیافلانې کارپه خپل ځان،حرام گرځوم،دداسې قسم حکم دادې چه بې ضرورته دغسې قسم خوړل دگناه کاردې،دغه قسم ماتول لازم دی خوکفاره به ئې ورکولې شی،تفصیل ئې راروان دې-

دریم قسم حرام گرځول دادی چه په عقیده اووینا کښې یوحلال څیزلره ئې په ځان حرام نهٔ وی گرځولې، بلکه دهغې څیزیاکارهمیشه دپاره پریښول په دې شان سره عملاً کوی څنگه چه حرام څیزیاکارلره پریښودل کولې شی چه همیشه دپاره ئې پریږدی، که په داسې صُورت کښې حلال پریښول ثواب گنړی نودا ، بدعت اورهبانیت دې چه دقرآن کریم اودسُنت دنصونوله مخې لویه گُناه ده،دهغې خلاف کول واجب اوپه دغې پابندئ باند ټینګ پاتې کیدل دگناه کاردې،البته که دغه پابندئ کولوکښې ئې دثواب نیت نهٔ وی بلکه بل څه وجه ئې وی،مثلاً،دڅه جسمانی یارُوحانی بیمارئ په وجه یوخاص څیزهمیشه دپاره پریږدی نوهیڅ گُناه نهٔ لری، لکه چه څنې صوفیائې کراماوبزرگانونه چه دځنې حلالو څیزونو د پریښولو روایتُونه منقُول دی،دغه ټول په دې قسم کښې داخل دی،ولې چه هغوئ خپل نفس دپاره دغه څیزونه مُضر گنړلی وو یاچابزرگ وردپاره مُضرښودلی وی اوهغه دعلاج په ډول پریښې وی نودا ،هیڅ باک نهٔ لری-

په آخردآیت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿وَلَا تَعۡتَدُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُعۡتَدِينَ﴾ یعنی دالله ﷻ دحدودونه وړاندمهٔ ورتیریږئ،ولې چه الله ﷻ داسې وړاندې ورتیریدونکولره نهٔ خوښوی]-

دحدنه دورتیریدو مطلب دادې چه یوحلال څیزلره بې دڅه عذرنه په دې شان پریږدی چه ثواب ئې گنړی لکه چه یوناواقف سړې ئې تقوی گنړی خودالله ﷻ په نزد ، تعدی اوناجائزدی،په دې وجه،په دوئیم آیت کښې ارشاددې: ﴿وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ٱلَّذِيٓ أَنتُم بِهِۦ مُؤۡمِنُونَ﴾ [یعنی دالله ﷻ درکړی حلال، پاک رزق لره خورئ اودهغې الله ﷻ نه ویریږئ په کوم باند چه ستاسو ایمان دې]-

په دې آیت کښې ئې داخبره په ډاگه کړه چه حلال، پاک څیزونه، دثواب په خیال پریښول تقوی نهٔ ده،بلکه تقوی داده چه دالله ﷻ دنعمت گنړلوپه خیال ئې استعمالوئ اوشکرئې اداکوئ،البته که دڅه رُوحانی یاجسمانی علاج په ډول یوحلال څیزاستعمالول پریږدی نوهغه په دې کښې داخل نهٔ دی.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ
| نهٔ نیسی تاسو | الله | په لغوه سره | په قسمونو ستاسو کښې
| ............ الله ﷻ تاسو په عبث قسمونو باندې نه نیسی

وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ
خو | نیسی تاسو | په هغې سره | چې کلك کړي وی تاسو | قسمونه | نو کفاره دداسې قسم
خو په هغه قسمونو نیسی چې کوم تاسو په قصد سره خوړلی وی | نو دداسې قسم ماتولو کفاره داده

اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ
خوراك ورکول دی | لسو | مسکینانو ته | د درمیانه درجې | هغه خوراك | چې خوروئ ئې تاسو |
چې لسو مسکینانو ته داسې دوه دوه ورکړئ | چې کوم درمیانه حال خوراک تاسو په خپل

اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ۭ فَمَنْ
په بال بچ خپل باندې | یا جامه اغوستل دی هغوئ ته | یا آزادول دی | دیوغلام | نو هغه څوک |
اهل باندې خوروئ | یا [لسو مسکینانو] ته جامې ورکړئ | یا یومریئ آزاد کړئ | ............. نوڅوک چې

لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ۭ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا
چې وې نهٔ موندل | نو روژې نیول دی | درې | ورځې | دا | کفاره ده | دقسمونو ستاسو | کله چې
ددې طاقت نه لری | نو هغه دې درې روژې اونیسی | دا ستاسو دقسمونو کفاره ده | ......... کله چې

حَلَفْتُمْ ۭ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ۭ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ
قسم اوخورئ تاسو | اوحفاظت کوئ | دقسمونوخپلو | دارنګې | بیانوی الله | تاسو ته |
تاسوقسم اوکړئ [اوبیاهغه مات کړئ] اودخپلو قسمونوحفاظت کوئ | دغه شان الله تاسوته خپل حکمونه بنائی

اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۸۹﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا
آیتونه خپل | دپاره ددې چې تاسو | شکر اوباسئ | اې هغه کسانو | چې ایمان موراوړی دی | بیشکه
چې تاسو شکرګزارجوړشئ | ............ انې دایمان خاوندانو بیشکه

## آسان ترجمه قرآن

الله ستاسو په لغوه قسمونو تاسو ته نیسي ، لیکن چه کوم قسمونه تاسو پاخه خوړلي دي ، په هغې به تاسو نیسي. پس ددې کفاره دا ده چه لس مسکینانو باندې د درمیانه درجې روټۍ وخوروئ چه کومه تاسو خپل کور والو باندې خوروئ یا دوی ته جامې ورکړئ او یا یو غلام آزاد کړئ. که یو کس سره (ددې څیزونو نه ) څه نه وي نو هغه دې درې ورځې روژې ونیسي دا ستاسو د قسمونو کفاره ده چه کله تاسو قسمونه وخورئ (او هغه مات کړئ) ، او د خپلو قسمونو حفاظت کوئ دغه شان الله تاسو ته خپل آیتونه صفا صفا بیانوي ، دې د پاره چه تاسو شکر ادا کړئ.

**د آیتونو ربط:** پورته د پاکو څیزونو د حرامولو ذکر وو. چونکه هغه بعضې وختونو کښې د قسم په ذریعه وی ، په دې وجه مخکښې د قسم خوړلو یا کولو حکم ذکر دې :

## خلاصه تفسير

﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ﴾ الله تعالى ستاسو [دنيوى] گرفت نه كوى [يعنى په تاسو كفاره نه واجبوى] ستاسو په قسمونو كښې په بې مطلبه قسم [ماتولو] باندې ﴿ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ﴾ ليكن [دغسې] گرفت په دې كوى چه تاسو قسمونو لره [په راتلونكى خبره باندې] مضبوط كړئى [او بيا ئې مات كړئى] ﴿فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ﴾ نو ددې قسم [دماتولو] كفاره [داده چه] لسو محتاجو ته خوراكه وركړئى د درميانې درجې هغه چه دخپل كور خلقو ته ئې [عام طور دمعمول مطابق] خوراك دپاره وركوئى ﴿ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ﴾ يا دغه [لسو محتاجو ته] جامه وركړئ [ددرميانې درجې] يا يو غلام يا يو وينځه آزاد كړئى [يعنى په دې درے واړو كښې چه كوم يو كوئى دهغې درته اختيار دې] ﴿ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ﴾ اود چا چه [دے درے واړو كښې ديوهم] وس نه وى نو [دهغه كفاره] درے ورځې [پرله پسې] روژے [نيول] دى ﴿ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ﴾ دا [چه بيان شو] كفاره ده ستاسو [دداسې] قسمونو چه تاسو قسم اوخورئ [اوبيا ئې مات كړئى] او [هركله چه داكفاره واجبه ده ځكه] ﴿ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ﴾ دخپلو قسمونو خيال لرئ [چرې داسې اونه شى چه قسمونه مات كړئى او كفاره ورنه كړئ اوالله ﷻ ځنگه چه ستاسو د دينى دنيوى ښيگړې لحاظ اوساتلو او دا حكم بيان كړو] ﴿ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴾ دغه شان الله ﷻ ستاسو دپاره خپل [نور] احكام [هم] بيانوى دپاره ددې چه تاسو [ددغې نعمت چه الله ﷻ ستاسو [خلقو] دښيگړو لحاظ اوساتلو] شكر كوئى.

## معارف او مسائل

**دقسم خوړلو څو صُورتونه او هغې سره تړلى څو احكام:** په دې آيت كښې دقسم خوړلو د څو صُورتونو بيان دې، دځنو بيان په سُورت بقره كښې هم تيرشويدې اوخُلاصه دټولو داده چه په يو تيرشوې واقعه باند په خپل اختيار اوقصد سره په دروغه قسم اوخورى نودې ته دفقهاؤ په اصطلاح كښې، يمين غموس، وئيلې شى، مثلاً څوک په خپل كړى كارباند سره دپوهې په قصد، ددې دنۀ كولو قسم اوخورى، البته داپه دروغه قسم سخته گُناه كبيره اوددُنيا اوآخرت دوبال موجب دې خوپه دې كفاره نۀ لازميږى، توبه اواستغفار پر لازميږى، او، يمين غموس، ورته ځكه وئيلې شى چه داسې قسم انسان لره په گُناه اووبال كښې غرقوى، ولې چه د، غموس، معنى ډوبونكې دې-

دويم صُورت دادې چه په تيره شوې واقعه باند قسم اوخورى چه پخپله ئې په رشتيا گنړى اوپه واقع كښې غلط وى، مثلاً په څه ذريعه معلوم شى چه فلانې راغلې دې په دغې اعتماد هغه قسم اوخورى خوهغه راغلې نۀ وى، داسې قسم ته لغووئيلې شى، دغه شان هغه قسم ته هم يمين لغو وئيلې شى چه دخُلې نه ئې بې قصده دقسم لفظ اوخيژى دداسې قسم قسم حُكم دادې چه نۀ ئې كفاره شته اونۀ ئې گُناه شته-

دريم قسم قسم دادې چه په آئنده زمانه كښې دڅه كولو يانۀ كولو قسم اوخوړې شى ددې نُوم، يمين منعقد هدې، حُكم ئې دادې چه دقسم په ماتولو سره كفاره لازميږى په بعضې صُورتونو كښې ئې گُناه وى اوپه بعضې كښې ئې گُناه نۀ وى-

دلته په آیت کښې دذکرشوی، یمین لغو، نه په ظاهره، مراد هغه قسم دې چه کفاره پرنه وی، که گناه ئې وی اوکه نه وی، ولې چه ددې په مقابله کښې ﴿عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ﴾ فرمائیلې شوی دی، معلومه شوه چه دلته دمؤاخذې [گرفت] نه مراد صرف هغه مؤاخذه ده چه صورت ئې د کفارې وی-

په سورت بقره کښې: ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِىْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾ دلغو نه مراد هغه قسم دې چه بې قصده اوبې ارادې ئې دخلې نه اُوخی، یاپه خپل خیال کښې په یو رشتیا خبره قسم اوخوری اوپه واقع کښې هغه غلط وی اوددې په مقابله کښې هغه قسم ذکرشویدې چه قصداً پکښې دروغ وئیلې شوی وی اویمین غموس ورته هم وئیلې شی-

لهذا ددې آیت شریف حاصل داشو چه په، یمین لغو، باند هیڅ گناه نشته بلکه گناه په، یمین غموسباندې ده چه په قصدسره پکښې دروغ وئیلې شوی وی، په دې بنا، په سورت بقره کښې د آخرت دحکم یعنی د، گناه، بیان دې، اودسورت مائده په آیت کښې ددنیوی حکم، یعنی د، کفارې، بیان دې. حاصل ئې داشوچه په، یمین لغو، باندالله ﷻ ستاسو گرفت نه کوی یعنی کفاره درباندنه واجبوی بلکه کفاره درباندصرف په هغه قسم سره واجبوی چه په راتلونکې زمانه کښې دڅه کارکولو یانه کولودپاره خوړلې شوې وی اوبیائې مات کړې وی، بیا دکفارې، تفصیل ئې داشان بیان کړې دې:-

﴿فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ﴾ [یعنی په دې درېوخبروکښې اختیارورکړې شوې دې اوله داچه لسومسکینانوته، درمیانه درجه خوراکه، دواړه وخته، صبا، ماښام ورکړې شی، دویم داچه لسومسکینانوته دسترپټولوپه اندازه جامه ورکړې ش، مثلاً پرتوگ، یالنگ، یاأرد قمیص، دریمه خبره مملوک [غلام یاوینځه] آزادول دی-

وریسې ارشاددې: ﴿فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ﴾ [یعنی که قسم ماتوونکې دغه بیان شوو درې واړوخبروکښې یوه خبره هم نشی کولې نوبیادکفارې کولوصورت ئې دادې چه درې ورځې روژې اوساتی، په خنې روایاتوکښې دپرله پسې نیولوحکم راغلې دې یعنی ددرې واړو روژو ترمینځه کوژه اونه کړی، په دې وجه دامام ابی حنیفه ﷫ اودخنې نوروامامانوپه نزددقسم کفاره کښې درې ورځې پرله پسې روژې نیول ضروری دی-[1]

په دغه ذکرشوی آیت کښې دقسم دکفارې په باره کښې لفظ د، اطعام، راغلې دې، په عربی لغت کښې ددې دوه معنې دی یوخوراکه پرخورول اوبل خوراک ورکول، لهذا فقهاء دآیت دا مطلب ښودلې دې چه لسومسکینانوته به پوخ اوتیاره کړې خوراک ورکړې شی یاورته اوم او ناتیاره خوراک به هغه ورکوې چه درمیانه وی، یعنی هغه خوراکه چه پخپله ئې کورکښې دخوړلوعادت لری اومسکینان پوره په خېټه ماړه کړې شی، دویم صورت کښې یویومسکین ته دفطرانې [سرسائې] په اندازه ورکړې شی مثلاً پاؤکم دوه سیره غنم یاددې قیمت، لهذادلته هم ددرې واړو خبروترمنځه اختیاردې، لیکن روژه نیول په هغه صورت کښې کافی کیدې شی چه دغې درې واړوخبروکښې دیوې هم وس نه لری-

**دقسم ماتولونه وړاندې کفاره اداکول معتبرنه دی:** په آخردآیت کښې خبرداره کول په دوو خبرو سره کړې شویدی اول په ﴿ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ﴾ [یعنی دا ستاسو دخوړلوقسمونو کفاره ده] د امام

[1] ) البحر الرائق، كتاب الإيمان: ج ۴، ص ۳۱۵ والشامية، كتاب الإيمان: ج ۳، ص ۷۲۷ مطلب كفارة اليمين-

اعظم ابی حنیفه اودنوروا کثروامامانوپه نزد ددې مطلب دادې چه هرکله تاسوپه راتلونکی وخت کښې دغه کارکولویانه کولوقسم اوخورئ، اودهغې په خلاف کارتاسو نه اوشی نوکفاره ادا کول معتبردی ددې نه وړاندې معتبرځکه نه دی چه داپه قسم ماتیدوباندې واجبیږی،([2])ددې نه وړاندې ادا کول ئې داسې مثال لری لکه چه دوخت نه وړاندې مونځ اداکړې شی، یادرمضان شریف د راتلونه وړاندې دغه فرض روژې اونیولې شی-

بیا ارشاددی: ﴿وَاحْفَظُوٓا اَیْمَانَكُمْ﴾ [یعنی دخپلوقسمونوحفاظت کوئ] ددې مطلب دادې چه خپل کړې قسم ترهغې مه ماتوئ ترڅوپورې چه دهغې دماتولوشرعی یاطبعی ضرورت درته نه وی راپیښ شوې، اوځنې حضراتوددې مراد داسې بنودلې دې چه په قسم خوړلوکښې تادی[جلدی] مه کوئ، یعنی ترڅوچه سخت مجبوره شوی نه یئ نوقسم مه خورئ- [مظهری]([3])

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا

ای هغه کسانو | چی ایمان موراوړې دې | بیشکه

| ...................... ائې دایمان خاوندانو بیشکه

الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ

شراب | اوجواری | اوبتان | اوغشی دفال | پلیتی ده | دکار | دشیطان نه |

شراب اوجواری اوبتان اوپالونه ټول ناپاک څیزونه دی | ......................اودا د شیطان کارونه دی

فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ

نوځان اوساتئ: ددې نه | دپاره ددې چی تاسو | کامیابی بیا مومئ | بیشکه | غواړی | شیطان

نوددې نه ځان بچ اوساتئ | چې تاسو ته نجات ملاؤ شی | .....................شیطان خو داغواړی چې

اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِى الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ

چی واچوی | په منځ ستاسو کښی | دشمنی | اوبغض | په ذریعه دشرابو | اودجواری [خمار]

ستاسو مینځ کښې دشرابو او جواری په وجه دشمنی اوبغض پیداکړی | .....................

وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ۝

او منع کړی تاسو | دذکر دالله نه | او د مانځه نه | نو آیایئ تاسو | منع کیدونکی |

اوتاسو دالله ﷻ دحکم نه اودمونځ نه منع کړی | .....................نوتاسو به ګنی اوس هم منع نه شئ

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ

اوحکم اومنئ دالله | او حکم اومنئ درسول | اوځان اوساتئ | نوکه چری | مخ واړولو تاسو |

دالله ﷻ حکم اومنئ | اودرسول ﷺ حکم اومنئ | اود مخالفت نه ځان ساتئ | نوکه چرې تاسو مخ اوګرځولو

---

[2]) بدائع الصنائع، کتاب الإیمان، فصل حکم الیمین بالله تعالی: ج ۳، ص ۱۹

[3]) التفسیر المظهري تحت هذه الآیة: ج ۳، ص ۲۱

| فَاعْلَمُوْٓا | اَنَّمَا | عَلٰى رَسُوْلِنَا | الْبَلٰغُ | الْمُبِيْنُ۝ |
|---|---|---|---|---|
| نوپوهه شئ \| چې بيشكه | په رسول زمونږه \| | رسول دى \| | ښكاره \| | |

نو په دې پوهه شئ چې زمونږ د پيغمبر كار صرف احكام رسول دى\|

## آسان ترجمه قرآن

اې د ايمان خاوندانو ! شراب، جوارې، د بتانو ښار (تهان) او د جوارۍ غشي، دا ټول پليت او د شيطان كارونه دي نو دې نه ځان اوساتئ دې د پاره چه تاسو ته كاميابي حاصله شي (۰) شيطان خو دا غواړي چه د شرابو او جوارۍ په ذريعه ستاسو په مينځ كښې دشمني او بغض واچوي، او تاسو دالله د ياد او د مونځ نه بند كړي اوس اووايئ تاسو آيا (دې څيزونو نه) منع كيږئ؟ او دالله تابعداري كوئ او د رسول تابعداري كوئ او (دنافرمانۍ نه) ځان اوساتئ اوكه تاسو (دې حكم نه) مخ واړوئ نو پوهه شئ چه زمونږ په پيغمبر صرف دا ذمه داري ده چه هغه په واضحه طريقه (دالله د حكم) تبليغ وكړي.

**د ايتونو ربط:** پورته د حلال څيزونو د ترك كولو ممانعت وو، مخكښې د حرامو څيزونو داستعمالولو ممانعت دې.

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ﴾ اې دايمان خاوندانو خبره هم داده چه شراب جوارى اوبتان وغيره او دفال غشى دا ټول گنده څيزونه او د شيطان كارونه دى ﴿ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ۝ ﴾ نودې نه بيخى په ډډه اوسيږئ دپاره ددې چه تاسو لره [دهغه څيزونو د نقصانونونه دبچ كيدو په وجه چه اوس به بيانولے شي] كاميابى وى [او دغه ضررونه دينى هم دى او دنيوى هم ددې بيان په دې شان دى چه] ﴿ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ ﴾ شيطان خوداسې غواړى ﴿ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِى الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ﴾ چه دشرابو او جوارۍ پذريعه ستاسو ترمينځه [په سلوك برتاؤ كښې] دښمنى او [په زړونوكښې] كينه راولى [چنانچه ښكاره خبره ده چه دشرابو د استعمال په وجه خو عقل باقى نه پاتې كيږى كنځل، بدے ردے، جگړے او فساد ترې راپورته كيږى.بيا وروسے هم په طبيعتونوكښې كينه پاتې كيږى جوارى بائيلوونكى، جوارى گټوونكى ته په قهر وى چه بد اثر ئے په گټوونكى هم پريوزى دا خو دنيوى ضرر شو] او [شيطان داسې غواړى چه دشرابو او جوارۍ په ذريعه] ﴿ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ ﴾ دالله ﷻ دياددولو اومونځ نه [چه دالله ﷻ ديادولو ،دټولو نه زياته غوره طريقه ده] ايسار كړى تاسو لره [چنانچه دا هم ښكاره خبره ده چه دشرابو په استعمال سره عقل په ځائى نه پاتې كيږى په جوارئى كښې گټونكے د گټلو په نشه كښې ډوب وى او بائيلوونكے دبائللو له وجې په غم كښې ډوب وى اود گټلو په تكل كښې دومره وريوښت شوې وى چه بل هيڅ طرف ته ئے هم خيال نه وى دا خو دينى ضرر شو هر كله چه داد غسے ناكاره څيزونه دى نو اووايئ] ﴿ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ۝ ﴾ چه او س به ترے هم واوړئى [كه نه]. ﴿ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا ﴾ او تاسو [په ټولو احكاموكښې] د الله ﷻ فرمانبردارى كوئى اودرسول ﷺ فرمانبردارى كوئى او [د دوى د حكم د مخالفت كولو نه] احتياط لرئى ﴿ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا ﴾ اوكه [دفرمانبردارۍ كولونه] مخ مو واړولو نو دا اوگڼرئى ﴿ اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ۝ ﴾ چه

زمونږ درسول په ذمه صرف صفا صفا [دحکم] رسول وو [چه هغوی په ښه شان سره سرته اورسول اوتاسو ته ئې حکم در اورسولو اوس درسره دهیڅ قسم عذر څه ځائې پاتې نشو].

**معارف او مسائل**

**دمخلوقاتو به اصول دانسان دفائدې دپاره دی:** په دې آيتونو کښې الله ﷻ دا ښائې چه دکائناتو مالک، تولو کائناتو اومخلوقاتو لره دانسان دخدمت دپاره پيدا کړې دې هريو څيزئې دانسان په خاص خدمت باند مقرر کړيدې، اوانسان ئې ددغې تولو کائناتو مخدوم ګرځولې دې، په انسان ئې، يوائې داپابندي لګولې ده، چه زمونږ دمخلوقاتونه دفائدې پورته کولو کوم حدچه مقرر شويدې هغې نه دانسان تيريدل نۀ کوي، کوم څيزونه چه ستاسو دپاره حلال، طيب اوپاکيزه ګرځولې دی دهغې نۀ دده کول بې ادبی اوناشکرې ده اودکوموڅيزونو خاص استعمال چه حرام ګرځولې شويدې، دهغې نه خلاف کول نافرمانې اوبغاوت دې، بنده لره پکاردی چه دخپل مالک دهداياتو مطابق دهغه دمخلوقاتو استعمال کوي، چه هم دې ته ،عبديت، اوبندګی وئيلې شي۔

په رومبی آيت کښې دڅلوروڅيزونودحراموالی بيان دې هغه څلور څيزونه دادی:

شراب ،جوارې، بُتان اودجوارئ غشی هم ددې مضمون يوآيت په سورت بقره کښې تقريبًا هم په دغسې الفاظو کښې راغلې دې، لکه فرمائی: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ﴾ دې آيت کښې ئې دغه څلورڅيزونو ته ،رجس، وئيلی دی، رجس، په عربئ کښې داسې يو ګنده څيزته وئيلې شی چه انسانی طبيعت تر کرکه اونفرت کوي اوهمدغسې ده چه هرکله انسان لږ څه عقل سليم اوسالم طبيعت لری نو، پخپله ورته ددې څيزونونه کرکه اونفرت ورځي۔

**دازلام تعريف:** ددغه څلوروڅيزونوڅخه يوڅيز ،ازلام، دې داد ،زلم، جمع ده مُرادترهغه غشی دې چه په عربو کښې به په دې باندې خسنړی اوښکې شواودجوارئ کاربه تراغستې شو، مثلاً لسوکسانويه په شريکه يواوښ ذبح کړو، دابه بيايوشان لس برخې نۀ شوکولې، بلکه په اووۀ غشو به څه مقرر شوی برخې داشان راايستلې شوې چه څومره شميربه په هغه غشو ليکلې شوې وۀ هغه هومره برخې به اووکسانوته ورکړې شوې اوپه کومو دريو غشو به چه هيڅ شئ نۀ وو ليکلې شوې اوهغه به چې دچاپه نُوم راؤوتل نوهغه ته به ئې هيڅ برخه نۀ ورکوله۔ ددې طريقه داوه چه دغه لس غشې به ئې په يوشخلی کښې واچول، هغه شُخلی به ئې خوځولواوشرقولوبيابه ئې تر دهريو کس په نوم يويوغشې راؤښکلو ،لکه نن صباچه په بازارونو کښې لاټرې کولې شی، لهذا دا شان خسنړې کول جوارې ده چه قرآن کريم حرام ګرځولې ده۔

**قرعه اندازئ [خسنړې اچولو] جائز صُورت:** البته يوبل قسم قرعه [خسنړې] جائز درسول الله ﷺ نه ثابت دې، هغه داسې چه ديوشان حق لرونکو ترمنځه مثلاً ديومکان برخې هم د شريکانو په شميراوويشلې شی اوصرف دهغې د طرفونو ټاکلودپاره قرعه اندازی اوکړې شی چه فلانی ارخ ته برخه دفلانی اوفلان ارخ ته دبل فلانی شوه ،هنه، که دتولوشريکانويه خوښه دهريو شريک برخه اوټاکلې شوه نوبيادخسنړې اچولوضرورت نشته، ددې يوصُورت داسې هم کيدې شی چه مثلاً د تللو په څيزونو کښې زرکسان يوشان شريکان دی اويوشان برخې لری نوپه دې کښې هم په قرعه اندازئ سره فيصله کولې شی۔

دغشو په ذريعه دغوښې د ويش جاهلانه رسم حراموالی دسُورت مائده په يوتيرشوی آيت کښې هم داسی راغلی دی لکه فرمائی: ﴿وَأَن تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ﴾

خُلاصه داشوه چه په مذکوره څلوروحراموڅیزونوکښې دوه څیزونه ،میسر ، او ، اِزلام ، د نتیجې په اعتبارسره یودی،پاتې نورو دوه څیزونوکښې یوڅیز،انصاب،دې چه د ، نُصب ، جمع ده دا هغه څیزدې چه عبادت دپاره تاکلې شوې وي مثلاً بت وي یاځه اونه [درخته] ،کانړې وغیره وي-

**شرابو اوجوارئ جسمانی اورُوحانی خرابئ:** ددې آیت دشان نزول اوورپسې آیت مبارك نه معلومیږي چه په دې آیت کښې ددوو څیزونوحراموالې اوخرابئ بیانول مقصود دی چه شراب اوجواری ده، د ،انصاب ،بیان یې ورسره څکه یوځائې کړو چه خلق په دې پوهـ شي چه شراب اوجواری هم هغسې سخته ګناه لري لکه څنګه چه بُت پرستي سخته ګناه لري-

دابن ماجه،په یوحدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه :﴿شارب الخمر كعابد الوثن﴾ [شراب څکونکې دومره لوئې ګناهګاردې لکه څومره چه بت پرست [د بت عبادت کوونکې] لوئې ګناهګاروی]-([4])اوپه ځنې روایتونوکښې راغلی دی﴿شارب الخمر كعابد اللات والعزي﴾ [شراب څکونکې داسې دې لکه دلات اوعزی عبادت کوونکې]-([5])

خُلاصه د خبرې دا شوه چه دلته دشرابو اودجوارئ دسخت حراموالی اوددې درُوحانی اوجسمانی خرابیو بیانول دی،اول ئې رُوحانی اومعنوی خرابئ په دې الفاظو کښې بیان کړې شوې:﴿رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ﴾ مطلب ئې دادې چه داڅیزونه دفطرت سلیمه په نزد ،ګنده اوکرکجن څیزونه دی او شیطانی جالونه دی،کله چه انسان پکښې راګیرشي نوبیشمیره ناکاره څیزونواوبیشمیره خرابیانو کښې اخته شي،ددې رُوحانی خرابیو بیانولونه پس حُکم ورکړې شو:﴿فَاجْتَنِبُوْهُ﴾چه ددې نه ځان ساتئ-

په آخرکښې ئې اوفرمائیل:﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾په دې سره دابنودل مقصُوددی چه دې څیزونونه په ځان ساتلوباندې ددنیااوآخرت کامیابی اړه لري-

ورپسې په بل آیت کښې دشرابواوجوارئ ددُنیوی اوظاهری خرابیو داسې بیان شویدې:﴿إِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ أَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ﴾ [شیطان په شرابواوجوارئ کښې اخته کولوسره ستاسوترمنځه دُشمنی اوکینه پیداکول غواړي]-

داآیتُونه هم ددغسې واقعاتوپه باره کښې نازل شویدی چه دشرابوپه نشه کښې خلقونه داسې حرکتُونه صادرشول چه قهر،غصه اوجنګ،جګړې تررااولاړې شوې،داهغسې یوناساپې او د پیښې خبره نۀ وه بلکه هرکله چه یوانسان دشرابوپه نشه کښې دعقل نه لاس اووینځی نوهغه نه خامخا دغسې حرکتونه صادریږي-

دغه حال دجوارئ هم دې چه بائیلونکې اګرچه په دغه وخت خپل بائیللو ته غاړه کیږدی اوډیرزیات تاوان په سرواخلی،خوګټونکی سره ئې په زړۀ کښې بغض،عداوت اوقهر،غصه پیداشي، څنګه چې حضرت قتاده ؒ ددې آیت په تفسیرکښې فرمائیلی دی چه ځنې عربو داعادت لرلوچه په جوارئ کښې به ئې خپل مال،اولاد اوتول ټبر[خاندان]اوبائیللو په خپل ځان به ئې ددیرغم،خفګان ژوندتیرولو-([6])

---

[4]) سنن ابن ماجة کښې ددې حدیث دا الفاظ ملاوشویدی: مدمن الخمر كعابد وثن . أبواب الأشربة. باب مدمن الخمر: ص ۲۴۲

[5])مصنف عبدالرزاق رقم الحديث: ۲۰۴۳

[6])تفسير البغوي تحت هٰذه الآية: ج۱، ص ۳

په آخر د آیت کښې د دې څیزونو یوه بله خرابي داشان بیانوي ﴿وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ﴾ [دا څیزونه تاسو لره، دالله ﷻ د یاد او مونځ نه غافله کړځوي]۔

دا خرابي، په ظاهره، روحاني او د آخرت خرابي ده چه دُنیوي خرابئ نه پس دوباره ذکر کولې شي، دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه اصلي ژوند هغه دې چه همیشه پاتې کیدونکې دې، عقلمند لره پکار دي چه هغه د دغه ژوندېنه والې اوښائست په نظر کښې لري او دهغې د حاصلولو کوشش دکوي، دهغې دخرابیدو نه دویره کوي او ځان د ترساتي، دځوور ځو دُنیوي ژوندېنه والې، دفخر ور څیزنهٔ دې او ددې خرابوالې دزیات غم، درد څیز ځکه نهٔ دې چه دا دواړه حالتونه دځوور ځووي او زر ختمیږي۔

دورانِ بقاچو بادِ صحرا بگذشت　　تلخی وخُوشی وزشت وزیبا بگذشت

[دژوند دور دصحرا دباد پشان تیرشو، غم، ښادي، خرابي اوښُکلا تیره شوه]

او دا هم وئیلې شي چه دالله ﷻ د ذکر او مونځ نه غفلت، دُنیا، آخرت، جسم او رُوح دواړو لره مُضر دي، د آخرت او رُوح دپاره ئې مُضر کیدل ځکه دي چه دالله ﷻ نه دغافل بې نماځه بنده، آخرت تباه او رُوح ئې مړوې که لږشان په غور او کتل شي نو الله ﷻ نه دغافله بنده دُنیا هم دځان وبال جوړ شي ولې چه دالله ﷻ نه دغافل بنده، انتهائي مقصود، مال، دولت، عزت او مرتبه حاصلول وي، دې سره دومره زیات جنجالونه وي چه ځان له [مُستقل] نور غمونه ترجوړ شي، په هغې کښې دا ختـه کیدو په وجه انسان خپل اصلي مقصود [مقصود المقاصد] یعني راحت، آرام او سکون نه بې نصیبه شي او ددغې راحت په سامان کښې دومره مست شي چه خپل راحت هم هیر کړي، که دغه مال، دولت عزت او مرتبه ترلاړه شي یا څه کمې پکښې راشي نو دغم او خفګان څه انتهائې نهٔ وي، غرض دا چه خالص دُنیادار انسان په دواړو حالتونو کښې په غم، خفګان کښې هروخت ګیرپروت وي۔

اگر دُنیا نبا شد دردمندیم　　وگرباشد بمهرش پائے بندیم

که دُنیا راسره نهٔ وي نو هم غمژن یُو، او که راسره وي نو دهغې په مینه کښې مست یُو

په خلاف دهغه چانه، چه زړهٔ ئې دالله ﷻ په یاد روښانه او د مونځ په نُور آباد وې، دد دُنیا مال دولت، عزت او مرتبه دهغه په خپو پریوځي او هغه ته صحیح راحت او آرام رسوي که دا څیزونه ئې دقبضې نه اوځي بیا هم دهغه زړهٔ څهٔ ښکته پورته نهٔ کیږي او حال ئې داوي:۔

نه شادی دادسامانے نه غم آورده نقصانے

نه پیشِ همتِ ماهر چه آمد بود مهمانے

[نهٔ دد دُنیا ښادئ څه نشه راپه کښې پیدا کړه او نهٔ ئې غم څه لیونې کړم، زمونږ همت داسې دې چه دغه تول هر څه ددې په وړاندې دیو میلمه شان لري]۔

خُلاصه دا شوه چه دالله ﷻ د ذکر او مونځ نه غافله کیدل که په غور سره اوکتې شي نو د دُنیا او آخرت دواړو خرابي پکښې وي نو کیدې شي چه: ﴿رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ﴾ سره خالص، د آخرت او رُوح نُقصان بیانول مقصود وي او په ﴿أَنْ يُوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ﴾ سره خالص دُنیوي او جسماني خرابي ښودل وي او په، ﴿وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ﴾ سره ددین، دُنیا مشترکه تباهي او بربادي بیانول مقصود وي۔

دلته دا خبره هم د نظر کولوجوگه ده چه دالله ﷻ په ذکر کښې خومونږ هم داخل دي، بیا دمونږ بیل بیانول څه مطلب لري؟ جواب ئې دادې چه دې کښې دا ښودل مقصود دي چه دالله ﷻ په ذکر کښې د ټولو نه غوره اواعلی ذکر مونږ دې څکه یې بیل بیان کړو۔

هرکله چه ټول، دیني، دنیوي، جسماني اوروحاني خرابیو اوناروا ؤ تفصیل اوښودلې شونو دغه څیزونو نه دمنع کولو هدایت ئې په یو عجیبه زړه پورې لګوونکی انداز کښې داسې اوفرمائیلو: ﴿فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ﴾ [یعنی هرکله چه دغه ټولې خرابۍ ستاسو په علم کښې راغلې نوبیا به هم ترمنع شئ اوکه نه؟

په دې دوارو آیتونو کښې دشرابو اوجوارۍ وغیره دحراموالي اودسخت ممانعت بیان وو چه د خُدائې قانون یوه دفعه ده، په دریم آیت کښې ددغې حکم دآسانولو اوپه دې باند عمل کولولره دآسان جوړولو په غرض، قرآن کریم دخپل بیان دیو خاص انداز په ډول داسې اوفرمائیل:

﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا ۚ فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ﴾ حاصل ددې دادې چه دالله ﷻ اودرسول فرمانبرداری، ستاسو دفائدې دپاره ده که تاسو اونه منل نو الله ﷻ اوددهٔ رسول ته ئې هیڅ نقصان نشته، دلته خو داخبره په ډاګه وه چه واقعی ،الله ﷻ ته خوئې څکه نقصان نشي کیدې چه دهغه شان ددې نه ډیرزیات لوړدې، البته درسول په باره کښې داخیال راتلې شوچه هرکله دهغوئ خبره اونهٔ منلې شي نوثواب کښې به ئې فرق راشی، اجر، عزت اومرتبه کښې به ئې فرق راشي، لهذا ددې شُبهې دلرې کولودپاره ئې اوفرمائیل:

﴿فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ﴾ [یعنی که تاسو کښې هیڅوک هم زمونږ درسول خبره اونهٔ منی، بیاهم دهغوئ په عزت اومرتبه کښې هیڅ فرق نهٔ راځی، ولې چه هغوئ ته سپارلې شوئ کارهغوئ سرته اورسولو، یعنی دالله ﷻ احکام ئې ښه په ښکاره اوپه صفاصفاټکوخلقوته اورسول ، دې نه پس که څوک ئې نهٔ منی، هغوئ خپل نقصان کوی زمونږ رسول ته هیڅ نقصان نشي رسولې۔

لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ

| نشته | په هغه کسانو

| په هغه خلقو باندې هیڅ ګناه نشته

آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا

چې ایمان ئې راوړو | اوعمل ئې اوکړو | نیک | څه ګناه | په هغه شرابو کښې | چې خوړلې ئې وو مخکښې

چې کوم ایمان راوړي | او نیک کارونه کوی | هغوئ چې مخکښې څه خوړلی وو | دهغې به هیڅ تپوس نه کیږی

إِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ

په دې شرط | چې ځان اوساتی آئنده د شرابونه | اوپه ایمان ټینګ پاتې شی | اوکوی کارونه نیک | بیا

دا حکم به په هغه وخت کښې وی چې بیا دپاره ترې نه ځان اوساتی | اونیک کارونه کوی | ........او بیا هم

اتَّقَوْا وَآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوْا وَأَحْسَنُوا ۗ وَاللَّهُ

ځان ټینګ اوساتي دشرابو نه | اواومنی | بیا | پرهیز کوی | اونیک کړی ټول عملونه خپل | اوالله

پرهیزګار پاتې شی | اودالله ﷻ حکمونه اومنی | او خپله لاز سمه اوساتی | اوبیشکه الله ﷻ

يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ

خوښوي |نيك عمله خلق|اې هغه کسانو|چې ايمان مو راوړي دې |خامخا به امتحان کوي په تاسو | الله

ته نيکان خلق خوښ دي | اې دايمان خاوندانو! الله ﷻ تاسو پاندې امتحان کوي

بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ

په يوڅيز سره|چه ښکار دې |چې رسي به هغه ته|لاسونه ستاسو|اونيزې ستاسو|دپاره ددې چې معلوم کړي

دهغې لږ ډير ښکار په باره کښې کوم ته چه ستاسو لاسونه اونيزې وررسي |ادا د دې دپاره چه الله ته په علم

اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ

الله |چې څوك|ايريږي دهغه نه| په ناليدلو |نو هغه څوك |چې واوړيدو دحد نه |پس د دې خبردارئ نه

ظاهري سره هغه څوک معلوم شي | چه دهغه نه په غيب هم ويريږي| نوڅوک چې ددې حکم نه پس زياتې اوکړي

فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ

نودې هغه دپاره| عذاب | درد ناك | اې هغه کسانو| چې ايمان مو راوړي دې| مه قتلوئ تاسو ښکار

نوهغه دپاره دردناکه سزا مقرر ده | ....... اې د ايمان خاوندانو! تاسو ښکار مه وژنئ په

وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ۭ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاۗءٌ

اوحال داچې تاسو|په احرام کښې يئ|اوهغه چاچې قتل کړو ښکار|ستاسو نه|په قصد |نوپرې بدل واجب دې

داسې حالت کښې چې تاسو احرام کښې يئ | او چاچې قصد سره ښکار اووژلو نو دهغې بدله

مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ

برابر دهغې|چې ئې قتل کړې دې|دچارپايانو نه|فيصله به کوي|په هغې سره|دوه عادلان سړي|ستاسو نه

دهغې ښکار په شان يوڅاروې دې |چې ستاسو دوه انصاف کونکي به دهغې فيصله کوي

هَدْيًاۢ بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ

په داسې کښې حال چې دانذرانه به |رسيدونکي وي| کعبې ته |يا کفاره ده| طعام |ادېو څو مسکينانو

اودا نذرانه به کعبې ته رسولې شي | يا د هغې کفاره په مسکينانو باندې دوډئ خوړل دي

اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ۭ عَفَا اللّٰهُ

يا په برابر دهغې | روژې نيول دي | دپاره ددې چې اوڅکي | عذاب | دعمل خپل | معافي اوکړه الله

اويادهغې مناسب روژې ساتل دي | دا د دې دپاره چې دخپل عمل سزا اوڅکي | ........ الله ﷻ

عَمَّا سَلَفَ ۭ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ۭ

دهغه څه|چې مخکښې څه شوي دي|اوهغه څوك|چې دوباره ئې اوکړو دا کار| نو بدل به واخلي الله| دهغه نه

دهغې کړو معافي اوکړه | او که اوس هم څوک داکار اوکړي | نو الله ﷻ به ترې بدله اخلي

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ۝ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ

اوالله| غالب دې|خاوند دبدلې اغستلو دې| حلال کړې شو| ستاسو دپاره| ښکار دسمندر |اوخوراك دهغه

اوالله ﷻ غالب دې | او بدله اخستونکي دې ............تاسو دپاره د درياب ښکار نيول او خوړل حلال دي

| مَتَاعًا لَّكُمْ | وَلِلسَّيَّارَةِ | وَحُرِّمَ | عَلَيْكُمْ | صَيْدُ الْبَرِّ | مَا دُمْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دنفعې ستاسو | اودپاره دمسافرو | اوحرام کړې شوې دې | په تاسو باندې | ښکار د وچې | ترڅو چې یئ تاسو |

دا ستاسو خوراکه ده | په کور هم | اودسفر په حالت کښې هم | او د اوچې ښکار منع دې | تاسو چې ترڅو

| حُرُمًا | وَاتَّقُوا اللّٰهَ | الَّذِيْٓ | اِلَيْهِ | تُحْشَرُوْنَ ۝٩٦ |
|---|---|---|---|---|
| په حالت داحرام کښې | او ویریږئ دالله نه | هغه ذات | چې هم هغه ته به | تاسوجمع کولې شئ |

په احرام کښې یئ | اودهغه الله ﷻ نه ویریږئ چې کوم ته بهٔ تاسو واپس کیږئ |

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې او په نیکو اعمالو باندې کاربند هو، نو هغوی چه مخکښې څه څکلی دی په هغې کښې په دوی باندې څه ګناه نشته په دې شرط چه دوی آینده د ګناهونو نه ځان ساتي او ایمان راوړي او نیک عمل کوي بیا (د کومو څیزونو نه چه دوی آینده دپاره بند کړې هي دهغې نه) ځان بچ کړي او په ایمان باندې قایم وی اوددې نه پس تقوٰی او احسان اختیار کړی الله په احسان باندې عمل کوونکو سره محبت کوی. اې د ایمان خاوندانو ! الله تعالیٰ به ضرور تاسو باندې د ښکار د یو څو ځناورو په ذریعه ضرور امتحان کوی چه هغه به ستاسو لاسونه او نیزو ته مخامخ راځي دې دپاره چه تاسو پوهه شی چه څوک د الله نه نالیدلې ویریږی او څوک چه ددې نه وروستو هم د حد نه تجاوز کوي هغه به د دردناکې سزا مستحق وی اې د ایمان خاوندانو ! چه کله تاسو د احرام په حالت کښې یئ نو هیڅ ښکار لره هم مه وژنئ او که تاسو کښې څوک دا په قصد سره قتل کړي نو د هغې بدله ورکول به واجب وي (چه دهغې طریقه به دا وي چه) کوم ځناور ئې قتل کړې وي د هغې ځناور برابر د ډنګرو نه یو ځناور چه دهغې فیصله به تاسو کښې دوه انصاف دار تجربه کار کسان کوي، کعبې ته دې ورسوې او قربانۍ دې کړي یا (دهغې دقیمت) کفاره دې مسکینانو باندې خوراک وخوروي او ادا دې کړي یا ددې برابر روژې دې ونیسي دې دپاره چه هغه کس د خپل کړو بدله وڅکی، مخکښې چه څه شوي دي الله هغه معاف کړي دي او څوک چه دوباره داسې کوي نو الله به د هغه نه بدله واخلي ، اوالله د قدرت او بدلې اخستو مالک دې. تاسو د پاره د سمندر ښکار او دهغې خوراک حلال شوې دې ، دې دپاره چه دا تاسو دپاره او د قافلو دپاره د فایدې اخستو یوه ذریعه شي ، لیکن چه کله تاسو د احرام په حالت کښې یئ نو په تاسو باندې د خشکۍ ښکار حرام کړې شوې دې ، اوداللّٰه نه ویریږئ چه هغه ته به تاسو ټول جمع کړې شئ.

د آیتونو ربط:: لباب کښې د مسند احمد په روایت د ابوهریره رضی الله عنه نه منقول دی چې کله دې پورته آیت مبارک کښې د خمر او میسر تحریم نازل شو نو ځینې خلقو عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! چې ډیر خلق چې شراب بهٔ ئې څکل او د خمار مال به ئې خوړلو نو هغوئ خو د تحریم نه مخکښې مړهٔ شوې دې. او دا اوس معلوم شو چې دا حرام دی ، دهغوئ بهٔ څه حال وی ، نو دې باندې دا آیت مبارک نازل شو چې ﴿ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ الخ.[۲]

[۲] مسند أحمد، مسند ابي هريرة رضي الله عنه رقم الحديث: ۸۶۲۱

## خلاصه تفسیر

او ددې نه مخکښې دا آیت مبارك چې ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ﴾، په هغې کښې د تحریم طیبات ذکر وو ، اوس آیت ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ﴾ الخ، کښې ددې بیان دې چې الله تعالی ته مکمل اختیار حاصل دې چې په خاصو حالاتو کښې خاص څیزونه حرام اوګرځوی [بیان القرآن].

﴿ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْٓا ﴾په داسې خلقو چه ایمان لری اونیك كارونه کوی په هغه څیز کښې څه ګناه نشته چه خوری څښی ئې [او هغه پدغه وخت حلال وی اګر چه ورسته حرام شوی وی او پدوی به ګناه ولې وی] ﴿ اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ﴾ هرکله چه [دګناه څه غوښتونکې خبره نه وی بلکه منع کوونکې خبره په کښې په دې شان سره موجوده وی چه دغه خلق [دالله ﷻ دویرې نه دغه وخت د ناروا څیزونو نه] پرهیز لری او [دلیل ددغې ویرې داوی چه دغه خلق] ایمان لری [چه دالله ﷻ څخه دویریدو په سبب] نیك كارونه کوی [چه دالله ﷻ نه دویریدو نشانی ده او هم پدغه حالت باندې تول عمر پاتې شی چنانچه هغه حلال څیزونه چه رومبې ئې خوړول څکل او وروستو حرام شی نو] ﴿ ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاَحْسَنُوْا ﴾بیا [دهغې نه هم ددغې ویرې دالله ﷻ په وجه] پرهیز کول شروع کړی او [ددغې ویرې دلیل هم دوړاندې پشان هم دغه وی چه دغه خلق] ایمان لری او په ښه شان نیك عملونه کوی [چه په ایمان اړه لری پس دلته هم سبب د علامت د دواړو دالله ﷻ ویرې لره جمع کوونکی وی مطلب دادې چه هر وار دویم باره ، دریم باره حرامولو کښې د هغوی هم دغه کردار وی دوو دریو وارو سره خصوصیت نه لری پس سره دمانع موجودیدو اوسره ددې چه دغه مانع همیشه دپاره جاری وی زمونږ دفضل نه ډیره لرې خبره ده چه دوی دې ګناهنګار وی] او [ددوی دغه مخصوص طریقه باندې بیان کړې شوې نیك عمل یواځې دګناه د لازمیدو منع کوونکې نه بلکه دثواب موندلو او.ددوی د محبوبیت تقاضا کوی ولې چه] ﴿ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴾ الله ﷻ داسې نیك عملو خلقو سره مینه لری [نو دا احتمال کله کیدیشی چه دوی دې دالله ﷻ په نزد ناخوښه وی ناخوښی خو ئې لا څه کوې بلکه د محبوبیت په غټه درجه کښې وی مطلب داچه دالله ﷻ خوښ وی] ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ ﴾ ائې د ایمان خاوندانو الله به په څه قدرې ښکار سره ستاسو امتحان کوی کوم ته [چه ستاسو نه د نه تښتیدو په وجه به] ستاسو لاسونه ﴿ وَرِمَاحُكُمْ ﴾ او نیزې رسیدې شی [دامتحان مطلب دادې چه هر کله ئې په تاسو باندې د ا حرام په حالت کښې ښکار کول حرام کړل څنګه به چه دې پسې په ډاګه بیانولې شی بیا به هم دغه وحشی څیزونه ستاسو خواو شاه ګرځوی] ﴿ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ﴾ دپاره ددې چه الله ﷻ [په ښکاره ډول هم] معلوم کړی چه څوك دهغه نه [یعنی دهغه د عذاب نه] بې لیدلو ویریږی [او دحرام دکولو نه خان ساتی کوم چه عذاب لره لازموونکی دی. دې نه لازما دا هم معلومه شوه چه دا ښکارحرام دې] ﴿ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ ﴾ نو څوك چه ددې [حرامیدو] نه پس [چه امتحان کول پرې هم دلیل جوړیږی] د [شرعی] حد نه اوځی [یعنی منع شوې ښکار اوکړی] ﴿ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴾هغه لره دردناکه سزا [تاکلې شوې] ده [چنانچه وحشی حیوانات به ورسره نزدې نزدې ګرځیدل چونکه ډیرو صحابه کرامو دښکار کولو عادت لرلو په دې کښې

دهغوی د فرمانبردارئ او د تابعدارئ کولو امتحان وو په دې کښې هغوی پاس شو ورپسے ښه
په ښکاره دغه ممانعت داسے بیان شوې دې.
﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ﴾ اې دایمان خاوندانو د وحشی ښکار لره مه وژنئ
[سوا دهغې نه چه شریعت نه دې منع کړې] کله چه تاسو په حالت داحرام کښې یئ [دغه شان
کله چه ښکار په حرم کښې وی اګر چه ښکاری په احرام کښې نه وی دهغے هم دغه حکم دې]
﴿ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ ﴾ اوڅوک چه په تاسوکښې دے لره سره دپوهے
اووژنی نوپه هغه به [ددې کار] سزا واجبه وی چه [په قیمت کښې به ورسره] برابر وی دهغه
حیوان کوم چه ده وژلے دے ﴿ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ ﴾ چه دهغې [د اندازه لګولو] فیصله دې په
تاسوکښې دوه اعتباری کسان اوکړی [کوم چه دینداری کښې هم اعتباری وی اوپه تجربه او
پوهه کښې هم هرکله چه دقیمت اندازه اولګولې شی نود وژونکی اختیار دے] ﴿ هَدْيًاۢ بٰلِغَ
الْكَعْبَةِ ﴾ که [پدغه قیمت داسې یو حیوان واخلی چه] دغه دسزا [حیوان] خاص د ځار وو نه وی
[یعنی اوښ، غوا، مینبه [ګامیښه] ګډې [میږې] چیلئ [بیزې] نر یا ښځه وی] خو شرط دادې
چه دپیرزوونے وړاندې کولو په ډول کعبے [یعنی دهغې خواوشا] پورې [یعنی په حرم کښې
دننه] اورسولےشی ﴿ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ ﴾ اوکه [ددې دقیمت برابر غله] کفاره ئے [یعنی دکفارے
په ډول] مسکینانو تهوړاندې کړې شی [یعنی یومسکین ته دیوے یوے صدقه فطر برابر
ورکړې شی] ﴿ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ﴾ اوکه ددغې [غلے] هومره روژے اونیولے شی
[یعنی دیو یوے صدقه فطر په شمیر دے هغه هومره روژے اونیولے شی اوداسزا ئے] څکه [مقرر
کړیده] چه دخپلو کړو دبدو خوند اوڅکی [په خلاف د هغه چا چه په قصد ئےښکار نه وی کړې
اګر چې په هغه باندې هم دغه سزا واجب ده خو دابه یئ د کړو سزا نشی بلکه دابه دهغه قدرمن
ښکار جزا وی اوبدله وی کوم چه دحرم یاد احرام له کبله قدرمن ګرځیدلے دے هرکله چه دا بدله
ورکړې شوه نو] ﴿ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ﴾ الله ﷻ تیرشوی [کارونه] معاف کړل ﴿ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ
مِنْهُ ﴾ او څوک چه بیا هم دغسې حرکت اوکړی [اوپه بیاکولو کښې د اول نه زیات زړورتیا
کوی] نو [پدغې وجه ددغې جزا نه علاوه کومه چه داصل فعل یا مقام بدله د په آخرت کښې]
الله ﷻ به ترې [ددغې زړورتیا] بدله اخلی [البته که تاسو توبه اوباسئ نود انتقام سبب به
ختم شی] ﴿ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴾ او الله ﷻ زبردست دې انتقام اخستلې شی.
[داحرام په حالت کښې] ﴿ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ﴾ د دریاب [یعنی داوبو]
ښکار نیول او هغې لره خوړل [تول] حلال ګرځولے شوی دی ستاسو د فائدې اخستلو دپاره او
[ستاسو] دمسافرو [دفائدې اخستلو] دپاره [چه په سفرکښې ئے خپله توښه جوړه کړی] ﴿ وَحُرِّمَ
عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ﴾ اود اوچے ښکار [اګر چه په بعضې صورتونو کښې ئے خوړل حلال
وی مګر] نیول ئے [یا په دې کښې امداد کول] تاسو لره حرام کړې شوی دی ترڅو چه تاسو د
احرام په حالت کښے یئ ﴿ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴾ اود الله ﷻ [دمخالفت] نه ویریږئ چه
دهغه خواته به تاسو راجمع کیږی او حاضریږی

## معارف او مسائل

محققینو لیکلی دي چه تقوی [یعنی دینی نقصاناتو نه دخان ساتلو] گنړې درجې دی، دغه شان د ایمان او یقین په مرتبو کښې دقوت او کمزورئ په لحاظ سره فرق شته، تجربې او شرعی نصوصو سره ثابت دی چه یو انسان هرڅومره چه په فکر، ذکر، نیک عمل او جهاد في سبیل الله کښې ترقی کوی هومره یې د الله ﷻ دویرې، دهغه دلوئ او بزرگئ په تصور سره زړه آبادیږی او ایمان او یقین ئې مضبوط او محکم کیږی چنانچه د الله ﷻ اړخ ته دتلو دې ترقئ او پورته ختلو ته پدې آیت کښې د ایمان او تقوی په دوباره ذکر کولو سره اشاره او کړې شوه او دسلوک دآخری مقام، احسان، او دهغې په نتیجه خبرداري ورکړې شو [تفسیر عثمانی]-

**مسئله:** هرکله چه آیت مُطلق دې په کوم کښې چه دحرم او احرام په حالت کښې داوچې ښکار کول حرام گرځولې شویدی نوځکه دهغه حیوان ښکار هم حرام شو چه غوښه خوراک ئې حلال وی او دهغه هم چې غوښه اوخوراک یې حرام وی- (لاطلاق الآیة)[۸]

**مسئله:** صید [ښکار] هغه حیواناتو ته وئیلې شی چه وحشی وی او انسانانو سره دیوځائې پاتې کیدو عادت نۀ لری، نو هغه حیوانات ذبح کول او خوړل روادی چه په پیدائشی دول کورنی ساتلی شوی وی لکه گډه [میږه]، چیلئ [بزه]، غوا، اوښ وغیره-

**مسئله:** البته دکومو حیواناتو ښکار چه په دلیل سره مستثنی شوې دې نو دهغې نیول او وژل حلال دی لکه ددریابی حیواناتو ښکار شو چه الله ﷻ دهغې په باره کښې داسې اوفرمائیل: ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾ یا داوچې، ځځهحیوانات شو، لکه کارغه، تپوس، مار، لړم، چیچونکې سپې یا هیڅ بې هیڅه پخپله حمله کوونکی حیوانات شو، چه ددې وژل هم جائزدی، ولې چه په حدیث شریف کښې ددې استثناء راغلې ده، دې نه معلومه شوه چه په «الصید» کښې الف لام عهدی دې-

**مسئله:** مُحرم له دهغه ښکار غوښه خوړل حلال دی، هرکله چه دابل مُحرم نۀ وی ښکار کړی اونۀ په حرم کښې ښکار کړې شوې وی، بله داچه محرم په اشاره بل چاته نۀ وی ښودلې اونۀ ئې دهغې په ښکار کولو کښې مدد کړې وی، حدیث شریف کښې هم دغسې راغلی دی او دلته په آیت کښې دې خبرې ته په «لاتقتلوا» سره اشاره هم شویده، ځکه چې دلته ﴿لَا تَقْتُلُوا﴾ ئې اوفرمائیل: ﴿لا تأكلوا﴾ ئې اونه فرمائیل-

**مسئله:** څنگه چه دحرم په ښکار کولو باندې جزا او بدله واجبیږی کله چه هغه په قصد او اراده سره وی نو په بې قصده او په هیره ښکار کولو سره ئې هم جزاء واجبیږی [اخرجه الروح][۹]

**مسئله:** څنگه چه په ړومبی ځل دښکار کولو جزاء واجبیږی دغه شان په بیا بیا کولوئې هم جزاء واجبیږی-

**مسئله:** دجزا حاصل او خُلاصه داده چه دهغه مکان [ځائې] او زمانې [وخت] په لحاظ به په دوو مُنصفانو یا یو مُنصف په ذریعه دهغه ښکار کړی ځناور دقیمت اندازه اولگولې شی، بیا په دې کښې تفصیل دې چې که چرې دغه ښکار کړې شوې ځناور غوښه خوړل حلال نه وی نو بیا هم دهغه په ده یو چیلئ نه زیات واجب نه وی یعنی د یوې چیلئ هومره قیمت مطابق جزا په ده

---

[۸] ترجمه: د آیت د مطلق کیدو وجے نه۔
[۹] روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۳۲

واجب ده. که ددغه ښکارشوی حیوان غوښه خوړل حلال وو نوبیاچې دخومره قیمت تخمینه اواندازه اولګولې شوه دهغې تول قیمت واجبیږی [که هرڅومره جوړیږی] اوپه دواړوحالوکښې ددرې صورتونواختیاردې[۱]په دغه قیمت دقربانۍ دشرطونومطابق څه څاروې واخلی اودحرم په حدودوکښې به په ذبح کولوسره په فقیرانواوویشلې شی[۲] یاپه دغه قیمت غله واخلی یویو مسکین ته دسرسانې دشرطونومطابق نیم نیم اوړې [پیمانه] ورکړې شی [۳] یادنیم نیم اوړی [پیمانې] په بدل کښې یوه یوه روژه دهغې په شمیراونیولې شی-

داخبره یاده لرل پکاردی چه دغلې په ویشلو اوپه روژوکښې د ،حرم،قیدنشته- که په آخرکښې دنیم صاع[اوړی] نه کمه غله پاتې کیدله نوهغه به یومسکین ته ورکوی یابه دهغې په بدل کښې یوه روژه نیسی، که توله جزاء هم دنیم صاع نه کمه واجبیدله نودغسې به هغه هم یومسکین ته ورکوی یابه دهغې په بدل کښې یوه روژه نیسی،زمونږ په تول نیم صاع پاؤکم دوه سیره [داتیاتولوپه سیر]جوړیږی-

**مسئله**: مذکوره اندازه لګولې غله چه دڅومره مسکینانوبرخه جوړیدله دهغومره شمیر مسکینانو ته چه سحر ماښام[دواړه وختنه] په مړه ګیډه خوراکه ورکړې شی نوداهم رواکیږی-

**مسئله**: که ددې قیمت برابردذبح کولودپاره یوڅاروې تجویزکړې شوبیاهم دهغې نه څه قیمت پاتې شونوپه دې کښې اختیاردې،چه په هغې باقی پیسو باندې بل څاروې خریدکړی،دهغې برابر غله صدقه کړی یادغلې په حساب روژې اونیسی.څنګه چه دیوحیوان په وژلوسره جزاء واجبیږی دغه شان ئې په زخمی کولوسره هم جزاء واجبیږی، که اندازه واغستې شی اوهغې باند څاروې نشی اخستې کیدې نوپه دغه اندازه اخستلی قیمت کښې به بیاهم هغه درې صورتونه رواکیږی-

**مسئله**: مُحرم دپاره کوم ښکارکول چه حرام دی،دغه شان دهغې ذبح کول هم ده دپاره حرام دی،که چرې ذبح ئې کړو نوحُکم به ئې دمُرداروی . په﴿لَا تَقْتُلُوا﴾ کښې دې خبرې ته اشاره ده چه ددې ذبح کول هم پشان دوژلوئې دی-

**مسئله**: که دښکارکولوځائې صحرایاځنګل وی نودهغې دقیمت اندازه به ورسره دنزدې آبادۍ په اعتبار اغستې شی-

**مسئله**: څنګه چه ښکار پخپله کول حرام دی دغه شان چاته ئې په اشاره یاپه بله طریقه ښودل یابل ښکاری سره هر قسم مددکول هم حرام دی-

جَعَلَ اللّٰهُ

| جوړه کړه الله

| ..........................الله ﷻ

الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ　　قِيٰمًا　　لِّلنَّاسِ　　وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ　　وَالْهَدْيَ

کعبه یعنی کور دعزت | ذریعه دقیام | دپاره دخلقو| اومیاشته عزتمنه | اودقربانۍ څاروی|

کعبه چې دعزت ځائې دی| دخلقود قیام سبب ګرځولې دې |اوهمداشان دحرمت میاشت اود قربانۍ څاروی

وَالْقَلَآئِدَ | ذٰلِكَ | لِتَعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ | مَا

او امیل والا قربانی هم | دا کاردي | د پاره ددي چي پوهه شئ تاسو | چي بیشکه الله | پوهیږي | په هغې

او هغه خاوری چي پټې ورته پرتې وی | دا په دي چي پوهه شئ تاسو بیشکه الله ﷻ ښه عالم دي | په هغه څه

فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا فِي الْاَرْضِ | وَاَنَّ اللّٰهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيْمٌ

چي په آسمانونو کښی دی | او په هغې چي په زمکه کښی دی | او بیشکه الله | په هرڅیز باندې | ښه عالم دي

چي په آسمانونو او زمکه کښي دی | ............... او الله ﷻ په هرڅیز باندې علم لري

اِعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | شَدِيْدُ | الْعِقَابِ | وَاَنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ

پوهه شئ | چي بیشکه الله | سخت ورکونکي دي | عذاب | او بیشکه الله | بښونکي | مهربان دي |

پوهه شئ چي الله ﷻ ډیر سخت حساب اخستونکي دي | ............... او بښونکي او مهربان هم دي

مَا | عَلَى الرَّسُوْلِ | اِلَّا | الْبَلٰغُ | وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ | مَا | تُبْدُوْنَ

نشته ذمه واری | په رسول باندې | مګر | رسول دی | او الله | پوهیږي | په هغه چي ښکاره کوئ ئې تاسو

د رسول ذمه واري صرف پیغام رسول دی | او الله ﷻ ته ستاسو ښکاره حالات هم معلوم دی

وَمَا | تَكْتُمُوْنَ | قُلْ | لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ | وَلَوْ | اَعْجَبَكَ

او په هغه | چي پټوئ ئې تاسو | او وایه | نه برابریږي | ناپاک | او پاک | اګر که | تعجب در ولی تاله

او ستاسو پټ حالات ورته هم معلوم دی | دوئ ته او وایه چي پاک او ناپاک برابرنه دی | اګر چي د ناپاک څیزونو

كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ | فَاتَّقُوا | اللّٰهَ | يٰٓاُولِي | الْاَلْبَابِ | لَعَلَّكُمْ

ډیروالي د ناپاکو | نو او ویریږئ | د الله نه | اې خاوندانو | د عقلونو | د پاره ددي چي تاسو

ډیروالي تاسو حیرانوی | او اې د عقل خاوندانو الله ﷻ نه او ویریږئ | ............... دې د پاره چي تاسو

تُفْلِحُوْنَ

کامیاب شئ |

کامیاب شئ |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالی کعبې لره د عزت والا کور او د خلقو د پاره د امن قایمولو ذریعه جوړه کړې ده، او د عزت میاشتې او د نذرانې څناور او ددوی په مرو کښې چه کومې پټې وي (هغه ئې هم د امن ذریعه جوړه کړې ده) دا ټول دې د پاره چه تاسو ته معلومه شي چه په آسمانونو او زمکو کښې چه څه دي په هغې الله ښه پوهیږي، او الله د هرې خبرې نه پوره خبر دې. دا خبره هم یاد ساتئ چه الله په عذاب ورکولو کښې ډیر سخت دې. او دا هم چه الله ډیر بخښونکې، ډیر مهربانه دې. په رسول باندې سوا د رسولو نه نوره څه ذمه داري نشته. او هم چه الله ... او څه چه تاسو ښکاره کوئ او څه چه پټوئ نو الله په هغې باندې پوهیږي. (اې رسوله! خلقو ته) ووایه چه پلیت او پاک څیزونه نه دي برابر، خواه که تاسو ته د پلیتو څیزونو زیاتوالې ښه لګي نو اې د عقل خاوندانو د الله نه ویریږئ دې د پاره چه تاسو کامیاب شئ.

## خلاصه تفسیر

﴿ جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ ﴾ الله ﷻ کعبے لره چه دآدب مکان دے دخلقو [دښیگړو] د پاتې کیدو ځائ اوسبب جوړه کړیده او [دغه شان] ﴿ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ﴾ دعزت خاوندے میاشتے لره هم او [دغه شان] په حرم کښې قربانیدونکی څاروی لره هم او [دغه شان] هغه څارووِ لره هم چه په غاړه کښې ئے [ددغې نخښے دپاره] پټے وی [چه دالله ﷻ ته دهدئې وړاندې کولو څاروی دی اوپه حرم کښې به ذبح کیږی] ﴿ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ﴾ دا [قرارداد د نورو دنیوی ښیگړو نه علاوه] دے دینی [ښیگړے] دپاره [هم] دی دپاره ددې [چه ستاسو اعتقاد دے صحیح او پوخ وی په داسې شان چه تاسو ددغه ښیگړو نه په دلیل نیولو سره] ددې خبرے یقین [په شروع کښې یا په مکمل کیدو سره] اوکړئی چه بیشکه الله ﷻ دټولو آسمانونو او د زمکې دننه د څیزونو [کامل] علم لری [ولے چه داسې حکم ټاکل چه په آئنده کښې دداسې ښیگړو لحاظ ساتلے شوی وی چه بشری عقلونه دهغې سوچ نشی کولې دادلیل دے دعلمی صفت د کاملوالی] ﴿ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴾ او [دے بیان شوئ معلوماتو سره د کامل علم دتعلق لرلو نه په دلیل نیولو سره یقین اوکړئی چه] بیشکه الله ﷻ ټولو څیزونو لره ښه پیژنی [ولے چه ددې معلوماتو په علم باندې هغه لره څه څیز خبردار کړې نه دې. معلومه شوه چه دعلم ذاتی نسبت ټولو معلوماتو سره یو شان وی] ﴿ اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ تاسو په یقین سره اوګڼړئی چه الله ﷻ سخته سزا ورکوونکې هم دے او الله ﷻ لوئې بخښوونکے او درحمت خاوند هم دے [نودهغه داحکامو خلاف مه کوئی اوچه کله کله تاسو نه شوی وی نودشرعی قاعدو په مطابق ترې توبه اوکړئی].

﴿ مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ﴾ درسول ﷺ په ذمه خو یواځې رسول دی [نو هغوی ﷺ په ښه شان ددې رسول اوکړل اوس تاسو سره هیڅ حیله بهانه پاتې نشوه] ﴿ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴾ اوالله ﷻ ټول پیژنی څه چه تاسو [په زړه یا په نورو اندامونو] ښکار کوئی اوڅه چه [په زړه کښې] پټ لرئ [نوتاسو لره پکار دی چه په ظاهر اوباطن دواړو سره فرمانبرداری کوئی] ﴿ قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ ﴾ تاسو [اې محمد ﷺ دوی ته داهم] اوفرمائ چه ناپاك اوپاك [یعنی گناه او فرمانبرداری یا گناه کوونکې او فرمانبرداری کوونکې] برابر نه دی [بلکه ناکاره اوپلیت ناخوښه او پاکیزه قبول شوې او خوښ څیزوی نوپه فرمانبرداریٔ کولو سره مقبول جوړیدل پکار دی په نافرمانئی کولو سره ناخوښه کیدل نه دی پکار اگر چه اثې لیدونکیه] ﴿ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ﴾ تاسو لره دناپاکو ډیروالے [څنگه چه په دنیا کښې اکثر هم دغسې کیږی] په تعجب کښې غورځوی [چه سره دناخوښه کیدو نه دې ډیر ولے دی مگر په دې خبره ځان پوهه کړئی چه ډیروالئ په څه حکمت باندے د خوښوالئ دلیل نه دې هرکله چه ډیر والئ بنیاد نشی جوړیدلے یا دا چه هرکله دالله ﷻ په علم او عذاب باندې خبر شوئ] نو [دے ته مه گورئی بلکه] ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴾ الله ﷻ نه [په خلاف دحکم کولو ئے] ویریږئی دپاره ددې چه تاسو] په پوره طریقه کامیاب اوسئ [چه هغه جنت اودالله ﷻ رضاده].

## معارف او مسائل

**دامن او تسلئ ځلور ذريعي:** الله ﷻ په رومبى آيت كښې ځلور څيزونو لره دخلقو دقائم او باقى پاتې كيدو او دامن او تسلئ سبب ښودلې دې-

يو كعبه ده، دكعبې معنى ځلور كونجه مكان دې، هركله چه دعربو په، خثعم، قبيله كښې يو بل جوړ شوى مكان هم دا نُوم لرلو، چې كعبه يمانيه، به ورته وئيلې شوه لهذا هغې نه دفرق راوستو دپاره دلته ،كعبې، سره د ،بيت الحرام، لفظ زيات كړې شو-

لفظ دقيام اوقوام اسم مصدر دې، داهغه څيزته وئيلې شى چه پر دڅه څيز قائميدل اوپاتې كيدل اړه لرى، لهذا ، د ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ معنى داشوه چه كعبه اودې سره تړلى څيزونه دخلقو دقائميدو اوپاتې كيدوسبب اوذريعه دى-

په لغت كښې ،ناس، عاموانسانانوته وئيلې شى، دلته دمقام دقرينې په وجه خاص دكعبې خلق يااهل عرب هم مُراد كيدې شى اودټولې دُنياعام انسانان هم، اوښكاره داده چه دټولې دُنياانسانان په دې كښې داخل دى- البته اهل مكه اواهل عرب يوخاص قسم خصُوصيت لرى په دغې بنياد دآيت مطلب داشو چه الله ﷻ خانه كعبه [بيت الله شريف] اوهغې څيزونولره، دټولې انسانى دُنيادقيام پاتې كيدو دپاره دامن اوآرام ذريعه جوړكړى دې دكوم بيان چه اوس راروان دې، مطلب داچه ترڅوپورې ددنيا دهرملك ،دهرې علاقې اودهراړخ خلق دې بيت الله اړخ ته مخ كولوسره مُونځونه اداكوى اوهغه خلق دبيت الله شريف حج اداكوى په چاچه حج فرض وى نوترهغه وخته پورې به داټوله دُنياقائيمه ،پاتې، اوپه حفاظت كښې وى اوكه يوكال هم داسې تيرشو چه څوك دغلته حج كولودپاره ورنغلل اودې ته په مخ كولوسره هيچامُونځ ادانكړو نو په ټوله دنيابه عامِ عذاب راشى.

**بيت الله شريف دټولې دنيادپاره يوقسم ستن اوادانره ده::** دې مضمون لره، دتفسيرامام، حضرت عطاء په دې الفاظو كښې بيان كړيدې: ﴿لوتركوه عاماً واحداً لم ينظروا ولم يؤخروا﴾ (۱۰) [بحرمحيط] دې نه معلومه شوه چه بيتِ الله شريف په معنوى لحاظ سره دټولې دُنيا ستن اواډانره ده ترڅوچه دې ته په مخ كولوسره مُونځ اداكيږى اودغلته دحج اداكولودپاره ورتلل كيږى نودُنيابه ټيكاؤپاتې كيږى اوكه[خُدانخواسته] دبيت الله شريف دغه قدرعزت ختم شى نودُنيابه هم ختم كړې شى-

اوس داحقيقت معلومول ضرورى نه دى چه ددنيا دانتظام اوبيت الله شريف تړون اوجوړښكه دې؟ ولې چه ددې هيڅ څه پته نه لګى ښكه چه داوسپنې اومقناطيس ترمنځه دتړون اوجوړڅه پته نه لګى-البته دا يو حقيقت دې چې په مشاهده راځى دى نه څوك انكار نشى كولې. دغه شان ددُنيا انتظام د بيت الله شريف سره تړون لرى اوانكارترنشى كيدې مګرددې تړون حقيقت معلومول هم دانسانى وس نه بهرخبره ده، صرف دالله ﷻ په ښودلوسره معلوميدې شى، خو د عربواواهل مكه دپاره دامن اوسلامتئ موجب كيدل ئې خلقوته په تجربې اوليدلوكتلوسره ثابت دى-

**بيت الله شريف وجوددټولې دُنيادامن سبب ده::** په دُنياكښې عموماً امن راتلل دحكومتونو په قوانينواوددې په ګرفت باندې اړه لرى، ډاكوان، غله خلق، دقتلونواوډاكودوارداتونه عموماً

---

(۱۰) ترجمه: كه چرے خلقو بيت الله يو كال دپاره پريښودلے وے نو دوى ته به بالكل مهلت نه وے وركړے شوے- تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۲

ددې په زور قابو کولې شي، لیکن کله چه دعربو دجاهلیت په زمانه کښې څه باقاعده حکومت نهٔ وو اونهٔ دعام امن قائمولو دپاره څه عام قانون سیاسی نظام صرف قبائیلی بنیادونو باندې قائم وو ، یو قبیلې دبلې قبیلې خان، مال، عزت اوننگ ناموس به ئې په خپله خوښه هروخت تباه کولې شو، په دې بناهیڅ یوقبیلې به ، په هیڅ وخت کښې خپل خانونه، مالونه اوننگ ناموس په امن اوحفاظت کښې نهٔ گنړلو، الله ﷻ په خپل کامل قدرت سره، مکه مکرمه کښې بیت الله شریف لره دحکومت په ځائې اودرولواوددې په ذریعه ئې امن راوستو، څنگه چه پوهه خلق دحکومت دقانون نه دخلاف ورزئ کولوزړهٔ ورتیانشی کولې، دغه شان الله ﷻ، دبیت الله شریف حرمت اوعزت لره په زمانه دجاهلیت کښې هم دعاموخلقوپه زړونو کښې داشان وربښخ کړې وو چه ددې په مقابله کښې به یې په خپلوجذباتواوخواهشاتوهم خپې راښکلې-

په توله دنیاکښې داخبره لکه دنمرپشان په ډاگه ده چه دعربو دجاهلیت دزمانې خلق سخت جنگیان، ضدیان اوتعصب لرونکی وو، بیاهم الله ﷻ دهغوئ په زړونو کښې دبیت الله شریف اودې سره دتړلی شوې څیزونو عزت اولوئ داسې وربښخه کړې وه چه ددې خواته به ددوئ دسردښمن اوسخت جرمدارهرکله چه وراورسیدو، دغصې اوقهرډک دغه خلقویه پر بیاهیڅ غرض نهٔ کولو، که چاته به دخپل پلار قاتل په حرم کښې مخې له ورغې نوسترگې اونظریه ئې ښکته کړو اوناغرضه به تړ تیرشو-

دغه شان به ئې حج اوعمرې دپاره په وتلی اوروان شوی کس هُم غم غرض نهٔ کولواگرچه هغه به ډیرناکاره اوورانکاره بنده باندې وربیښ شوتردې چه حرم شریف ته په رارسیدلی یاپه روان کړی څاروی به یې هم څه غرض نهٔ کولو، دغه شان په خپل ځانی هغه دښمن به هم نهٔ نقصان یې نه وررسولو چه دحج اوعمرې څهٔ نخښنه به پر پورې وه داحرام جامه به ئې په غاړه وه یابه ئې ددې حج اوعمرې څه بله نخښنه یعنې گردنئ په غاړه کړې وه-

سنه ۶ هجری کښې هرکله چه رسول الله ﷺ اوورسره نورو صحابه کرام احرام تړلی دعُمرې په نیت بیت الله شریف ته روان شو اودحرم شریف حدودوسره نژدې دحُدیبئې په مقام پاتې شو، هلته ئې حضرت عثمان سره دځوملگرو مکې مکرمې ته دننه دې دپاره وراولیږلوچه مُسلمانان، دا وخت، دجنگ په نیت نهٔ ، بلکه دعمرې اداکولوپه نیت راغلی دی لهذاددوئ مخې ته دځه خندونه نشې راپورته کولې-

قریشی سردارانو، دډیربحث اوخبرواترونه پس، خپل یونمائنده درسول الله ﷺ په خدمت کښې چه وراولیږلو نونبی کریم ﷺ دهٔ په لیدلو اوفرمائیل چه داکس ، دبیت الله شریف دعزتونوخاص لحاظ ساتی، په دې وجه، دهٔ ته خپل دقربانئ هغه څاروی رامخې ته کړئ چه دقربانئ نخښنه پر لگولې شویده، هغه چه دغه څاروی [دقربانئ] اوکتل نووې منل چه داخلق، دبیت الله شریف نه هیڅکله بندول پکارنهٔ دی-

خُلاصه داشوه چه دجاهلیت په زمانه کښې هُم، الله ﷻ دحرم شریف عزت اواحترام دجاهلی خلقوپه زړونو کښې داسې وربښخ کړې وو چه دهغې په وجه به امن وامان قائم پاتې کیدو، خو ددې په نتیجه کښې به دحرم شریف دننه خلق اوهغه بهرنی خلق هم په امن وامان سره پاتې کیدل چه دحج اوعُمرې په اراده به بیت الله شریف ته په لاروروان وو، اودحج، عُمرې څه نخښنه به پر ښکاریدله البته دنوروعلاقو خلق به په امن کښې نهٔ شو پاتې کیدې اونهٔ بهٔ ورته ددې څه تسلی وه، لیکن څنگه به چه دجاهلیت خلقودحرم شریف احترام اوعزت ساتلو، دغه شان دحج دمیاشتو

عزت به ئې هم ساتلو، دغه میاشتوته به ئې ﴿اشهرحرم﴾ وئیلې، څنوعربو په دې کښې د، رجب، میاشت هم شامله کړې وه چنانچه په دې میاشتو کښې به تولوعربودحرم شریف نه بهرهم، جنګونه کول اووینې تویول حرام ګڼل اوپه تینګه به ئې ترځان ساتلو-

هم دغه وجه ده چه په ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ کښې قرآن کریم، کعبې سره درې څیزونه نور شامل کړل اول ﴿ٱلشَّهۡرَ ٱلۡحَرَامَ﴾ [یعنی دعزت اولویې میاشت] دلته هرکله چه لفظ د، شهر، مفردراوړې شویدې په دې وجه، عامومفسرینوفرمائیلی دی چه دې نه مُراد، یوشهرحرام، د، ذی الحجې، [میاشت ده چه پکښې دحج ارکان اوعملونه اداکولې شی اوځنو فرمائیلی دی چه دالفظ اګرچه مفرددې مګر مُراد ترجنس دې چه ټول، اشهر حُرم، [دعزت میاشتې] پکښې داخلې دی-

دویم څیز، الهدی، دې، هدی، داسې یوڅاروې وی چه په حرم شریف کښې قُربانی کولې شی، کوم بنده سره به چه دغه قسم څاروې وونوعامو عربوبه دخپل دستورمطابق په هغه هیڅ غم غرض نۀ کولودغسې به هغه، بنه په امن اوتسلۍ سره خپل سفر جاری لرلو اوخپل مقصدته به بنه په اطمینان وررسیدې شو، په دې وجه، هدی، هم دامن قائمیدو یوسبب شو-

دریم څیز، القلائد، دې، قلائد، د، قلادة، جمع ده چه معنی ئې دغاړې هارده، چنانچه دجاهلیت دزمانې رسم داوو چه حج له تلونکی بنده به خپله غاړه کښې یوهاراچولوچه دغې په لیدوبه خلق پوهه شو چې دې حج دپاره روان دې څه تکلیف نه وررسی داشان د قربانۍ د څاروۀ په غاړه کښې به هم دغه شان هار اچول کیدو هغوۍ ته به هم قلائد وئیلې شوه. په دې ډول دغه دواړه قسمه هارونه دامن دقائمیدوذریعه جوړه شوه-

په ژورنظرکتلو سره دغه درې واړه څیزُونه [الشهرالحرام-الهدی-القلائد] بیت الله شریف سره تړون لری ځکه ددې عزت کول هم دبیت الله شریف دعزت کولویوه برخه ده-

خلاصه داشوه چه بیت الله شریف اودې سره تړلی څیزونه، دټولې دُنیا خلقودپاره عمومًا اوعربو اومکیانوخلقودپاره خُصوصًا ددوۍ ددین، دُنیا دواړو دپاره، قیام، او، قوام، جوړ کړیدې-

د ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ په تفسیرکښې څخه مفسرینوفرمائیلی دی چه دې نه مُراددادې چه بیت الله شریف اوحرم شریف، ټولودپاره دامن ځائې جوړکړې شویدې، څنوعُلمائې کرامو فرمائیلی دی چه دې نه مُراد، اهل مکه دپاره درزق اوروزۍ فراخی ده، دټولې دُنیانه ورته الله ﷻ هرقسم رزق وررسوی، دوۍ ته بنه په فراخۍ اوآسانۍ رزق ملاویږی، سره ددې چه دغه زمکه دکر، کروندې جوګه نۀ ده-

څنوفرمائیلی دی چه اهل مکه لره به خلقو کوم چې به دبیت الله شریف خادمان اوحفاظت کوونکی بلل، خلقوبه ورته خُدائې خلق وئیل اوتل دپاره به ئې دهغوۍ عزت اواحترام کولو ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ نه ئې ځکه ددوۍ دغه عزت او اعزاز خاص مُراداغستې دې-

امام عبدالله رازی فرمائیلی دی چه دې، تولواقوالوکښې هیڅ اختلاف نشته، د ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ په مفهوم کښې داټول څیزونه داسې داخل دی چه الله ﷻ، بیت الله شریف لره، دټولو خلقو د قیام، تیکاؤاودُنیااوآخرت دخیر، ښیګړې اوکامیابۍ ذریعه جوړه کړې ده، اهل عرب اواهل مکه ته ئې په خُصوصیت سره ددې برکاتو غټه برخه ورکړې شوې ده اودظاهرو، باطنوپیرزونه ئې پر کړیده-

په آخردآیت کښې ئې داسې فرمائیلی دی: ﴿ذَٰلِكَ لِتَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَأَنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ﴾ [یعنی مونږ بیت الله شریف اودې پورې تړون لرونکی څیزونولره، خلقودپاره دامن وامان، دقیام پاتې کیدو ذریعه جوړه کړیده چه اهل عرب ئې په خُصوصیت سره پخپله وینی

ګوري، داځکه اوونیلي شو چه ټول خلق په دې پوهه شي چه الله ﷻ د آسمانونو او زمکې په هر څیز باند په هر شان پوهیږي او هم هغه ئې انتظام کولي شي]-

په دويم آیت کښې ئې داسې اوفرمائیل: ﴿اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [پوهه شئ چه الله ﷻ سخت عذاب ورکوونکې دې اودا، چه الله ﷻ ډیر بخښنه کوونکې اورحم کوونکې دې] په دې کښې اوښودلې شو چه دحرامو او حلالو ر الیږلې شوی احکام خالص په حکمت اومصلحت بنادی چه دې باندې عمل کولو کښې تاسو لره خیر دې دهغې په خلاف کولو سخت وبال اوعذاب دې، ورسره ئې دا هم اوښودل چه دهیرې یا غفلت په وجه انسان نۀ څۀ ګناه اوشي نو الله ﷻ ورته سمدستي عذاب نۀ ورکوي، بلکه توبه کوونکو اوشرمنده کیدونکو دپاره دبخښنې دروازه پرانستې [خلاصه] شویده-

په دريم آیت کښې ئې داسې فرمائیلی دی چه: ﴿مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ﴾ [یعنی زمونږ درسول الله ﷺ په ذمه خو یواځې دومره قدرې کاردې چه زمونږ احکام اورسوي، ددې دمنلو اونۀ منلو فائده اونقصان به هم دوئ ته رسي، ددوئ دنافرمانئ نه، زمونږ رسول ﷺ ته هیڅ نقصان نشته اوپه دې هم پوهه شئ چه الله ﷻ سره دهوکه نشئ کولې، هغه، ستاسو د، ظاهر، باطن، ښکاره اوپټ، هرکار نه واقف دی-

په څلورم آیت کښې ارشاد دې: ﴿قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ﴾ په عربی ژبه کښې، خبیث، او طیب، دواړه خپل منځ کښې دیویل برعکس الفاظ دی، طیب، دهرڅیز کره اواعلی ته وئیلې شی او، خبیث، دهرڅیز ردی اوخراب ته وئیلې شی، په دې آیت کښې داکثرو مفسرینو په نزد، خبیث، نه مرادحرام اوناپاک دی او، طیب، نه مراد حلال اوپاک. معنی داشوه چه دالله ﷻ په نزد، بلکه دهرعقل سلیم دخاوند په نزد، پاک اوناپاک یا حلال اوحرام یوشان نشی کیدې-

دلته، خبیث، او، طیب، دخپل عموم په لحاظ حرام اوحلال مال، دولت لره هم شاملیږی، ښه او بدانسانانو لره هم اوښو، بدو عملونو او اخلاقو لره هم.

مطلب دآیت ښکاره داسې دې چه دیوعقل سلیم په نزد، نیک، بد، ښه اوخراب یوشان نشي کیدې، هم ددې فطری قانون په جوړ، دالله ﷻ په نزد، حرام، حلال یا پاک اوناپاک څیزونه اودغه شان ښه اوبدعملونه یوشان نۀ دی اونۀ خونیک اوبدانسانان سره برابراویوشان دی-

وریسې فرمائی: ﴿وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ﴾ [یعنی اګرچه لیدونکو لره کله کله دخرابو اوخبیثو څیزونو ډیروالې مرغوب کوی اوپه خواږشا کښې چه خراب اوخبیث څیزونه خواره اوډیرشی نولیدونکی ئې ښه ګڼړی، خوداد، انسانی علم اوشعور بیماری اوداحساس قصورروی-

**دآیت شان نزول:** په څنې روایتونو کښې راغلی دی چه هرکله په اسلام کښې شراب حرام اودهغې خرید، خرڅول بند کړې شو، نود شرابوداسې یوسوداګرچه هم په هغې کښې ئې څه مال جمع کړې وو درسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه اې د الله رسوله ﷺ! دغه جمع کړې مال که زۀ په یونیک کار کښې اولګوم نو آیا، هغه به زما دپاره فائده من وی؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه که نۀ، دغه مال په جهاد یا حج وغیره کښې اولګوې نودابه دالله ﷻ په نزد دماشې دیووزر هومره قیمت هم نۀ لری، ولې چه الله ﷻ، دپاکو او حلالو څیزونو نه سوا هیڅ څیز لره نۀ قبلوی-[11]

[11] تفسیر روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۱۳

دحرام مال دابیکاری اوبې عزتی خودآخرت په اعتبارسره شوه، اوکه په ژورنظراوکتلې شي او د ټولو کارونوانجام مخې ته راوستې شي نومعلومه به شي چه ددُنیا په کاروبارکښې هم حلال او حرام مال یوشان نهٔ وی، دحلالو څیزونونه چه څومره فائدې، ښې نتیجې، حقیقی آرام اوراحت نصیب کیږی هغه په حرام مال سره نهٔ حاصلیږی -

په تفسیر، دُرمنثور[۱۲]، کښې د، ابن ابی حاتم، په حواله نقل شویدی چه هرکله دتابعینودزمانې راشدخلیفه حضرت عُمربن عبدالعزیز رحمه الله دتیرې زمانې، ، دامیرانومقررکړی ناروا قلنګونه او ټیکسُونه بندکړل اوپه دغه سلسله کښې خلقونه اغستې شوی مالُونه واپس کړې شو او سرکاری بیت المال خالی شو، آمدنی ډیره کمه شوه نو د یو صوبې ګورنر هغوئ ته خط اولیکلو چې د بیتِ المال آمدنی ډیره کمه شوه، راسره فکردې چه دحکومت کاروباربه څنګه چلیږی، حضرت عُمربن عبدالعزیز ورته په جواب کښې هم داآیت اولیکلو: ﴿لَا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ﴾ اوداسې ئې هم ورته اولیکل چه تاسونه وړاندې خلقوچه په زورظُلم سره اغستې مال باند خزانه ډکه کړې وه، تاسودهغې په خلاف عدل اوانصاف قائمولو سره خپله خزانه کمه کړئ اوهیڅ پروامهٔ کوئ، زمونږ دحکومت کاربه هم په دې لږ مال باندې پوره کیږی.

داآیت اګرچه په یوخاص واقعه کښې نازل شویدې چه دشمیر کمې، زیاتې هیڅ څیزنهٔ دې، په لږوالی اوزیاتوالی سره دیوڅیزدښه والی اوبدوالی رشتینئ پیمانه نشی جوړیدې- بلکه که ددنیا دهرقسم خلقوپه حالاتوباندې لږ شان هم نظرواچولې شي نوپه ټوله دُنیاکښې به دخیراندازه اوشمیرکم اودبدئ اوخرابئ شمیربه ګنړوی، دایمان په مقابله کښې به کُفر، دتقوی، پاکئ، دیانتدارئ اوامانتدارئ به مقابله کښې به فسق، بدکاری اودعدل وانصاف په مقابله کښې په زورظُلم ،دعلم مقابله کښې به بې علمی، دعقل په مقابله کښې به بې عقلی ډیره لیدلې شی، چنانچه ددې نه دایقین کول لازمیږی چه د یو څیز اود یوې ډلې دشمیرګنړوالې دهغې په ذاتی حالاتواوشان باند اړه لری، که ذتی حالات اوشان ئې ښهٔ وی نوهغه به ښه وی اوکه خراب وی نوهغه به هم خراب وی، چنانچه قرآن کریم دې حقیقت لره په دې الفاظو کښې داسې واضح کړیدې ﴿وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ﴾.

البته په څنوموقعوکښې اسلام هم په ګنړوالی باندې فیصله کول درست ګرځولې دی خوداپه هغه ځائې کښې چرته چه د دلیل دمضبُوطوالی اود ذاتی خوبیانوپه اندازه داقتدار خاوند څوک فیصله کوونکې حاکم موجودنهٔ وی نوپه داسې موقعودعوامو دجګړې ختمولودپاره دشمیر په ګنړوالی فیصله کولې شی لکه دامام مقررولوفیصله چه شوه، هرکله چه په دې موقعه څوک امام یاامیرفیصله کوونکې موجودنهٔ وی نودرائې په ګنړوالی به فیصله کولې شی خوداسې هیچرې نهٔ ده چه کوم څیزلره دګنړشمیر خلقوغوره کړوهغه څیزبه جائز، حلال اوحق وی-

په آخر دآیت کښې ئې اوفرمائیل ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ﴾ ایعنی ای دعقل خاوندانو! دالله ﷻ نه ویریږئ! په دې کښې، دې خبرې ته اشاره شوه چه دیوڅیز ګنړوالې غوره کیدل یادلږوالی په مقابله کښې ګنړوالی لره دحق اورشتینئ پیمانه ګرځول دهوښیاروخلقوکارنهٔ دې، څکه هوښیارو خلقوته په خطاب کولوسره هغوئی لره ددې غلطې رویې نه منع کولودپاره د ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ حُکم ورکړې شو.

---

[۱۲] الدر المنثور تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۴۳

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ | اٰمَنُوْا | لَا تَسْئَلُوْا | عَنْ أَشْيَاءَ |
| اې هغه کسانو چې ایمان مو راوړی دی | مه کوئ پوښتنه | په باره دهغه څيزونو کښې | |
| اې دایمان خاوندانو دداسې څيزونو په باره کښې تپوسونه مه کوئ ............ (۱۴) | | | |

۱۴) بې مطلبه تپوس شول:- په صحيح حديث مبارك کښې دی چه په مسلمانانو کښې دټولونه غټ مجرم هغه دې چه ديو څيز باره کښې سوال اوکړی چه هغه حرام نه وو او دده په سوال کولو سره هغه څيز حرام شو (صحيح بخاری) يوخل د رسول کريم ﷺ نه تپوس اوشو که يو سړی خپلې ښځې سره پردی سړی اووينی نو څه به کوی ؟ که خلقو ته ددې خبر کوی نو دا هم ډيره دبې شرمئ خبره ده او که نه کوی نو دا هم ډيره دبې غيرتئ خبره ده. رسول کريم ﷺ ته داسوال ډير خراب معلوم شو. آخر هم په دې سړی باندې داقسمه واقعه راغله اود لعان حکم نازل شو. (صحيح بخاری)
دبخاری او مسلم په يو حديث کښې دی چه رسول کريم ﷺ د بکواس کولو نه او مال ضائع کولو او زياتوتپوسونو کولو نه منع فرمائيلې ده.( صحيح بخاری) په صحيح مسلم کښې دی چه ترکومې پورې څه اونه وايم تر هغه وخته پورې تاسو هم څه تپوس مه کوئ. ستاسو نه مخکښې خلق هم داشان خصلتونو هلاك کړی دی چه هغوی به ډيرزيات سوالونه کول. او خپلو نبيانو سره به ئې اختلاف کولو. هرکله چه څه تاسو ته څه حکم اوکړم نودخپل طاقت مطابق هغه پوره کوئ اوکه تاسو لره منع کوم نو منع کيږئ. دا رسول کريم ﷺ په هغه وخت کښې فرمائيلی وو چه کله ئې خلقو ته خبر ورکړوچه الله ﷻ په تاسو باندې حج فرض کړې دې ، نو چا رسول کريم ﷺ ته اووئيل چه هر کال ؟ نو رسول کريم ﷺ خاموش شو. هغه بيا تپوس اوکړو . رسول کريم ﷺ هيڅ جواب ورنکړو. هغه په دريم ځل سوال اوکړو . رسول کريم ﷺ اوفرمائيل هر کال نه . ليکن که ما آوئيلی وې نو هر کال به فرض شوې وو اوبيا به تاسو دا حکم هيڅکله نشو پوره کولې. (صحيح بخاری)بيا رسول کريم ﷺ دا مخکښې آيت مبارك اولوستلو.
حضرت انس ؓ فرمائي چه کله مونږ د رسول کريم ﷺ نه دسوال کولو نه منع کړې شو نو مونږ د رسول کريم ﷺ نه به تپوس کولو کښې ويره کيده او مونږ به غوښتل چه يو ناواقفه سړې راشی او هغه تپوس اوکړی او مونږ ئې واورو. (صحيح بخاری)
حضرت براء بن عازب فرمائي چه کله به ما د رسول کريم ﷺ نه څه سوال کول غوښتل نوکلونه کلونه به تير شو خو د هيبت په وجه به ما جرات نشو کولې. مونږ خو خواهش ساتلو چه څوك اعرابی راشی او د رسول کريم ﷺ نه سوال اوکړی او مونږ ئې هم واورو.(ددې سند دشرط مسلم مطابق دې) حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه د حضرت محمد ﷺ د أصحابونه بهتر جماعت بل نه وو ، هغوی رسول کريم ﷺ نه صرف دولس مسائل اوپوښتل چه ټول په ټوله په قران پاك کښې سوال وجواب سره ذکر دی لکه دشرابو سوال، دحرمت والاميا شتې په باره کښې سوال، ديتيمانو په باره کښې سوال وغيره وغيره. (مجمع الزوائد)
په دې ځائې کښې " ام " يا خو د بل په معنی کښې دی يا په خپله اصلی معنی کښې دی. يعنی دسوال په باره کښې چه په دې ځائې کښې ا نکاری دې. دا حکم دمومن کافر ټولو دپاره دې. ځکه چه د رسول کريم ﷺ رسالت دټولو دپاره وو. په قرآن پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه ﴿يَسْئَلُكَ أَهْلُ الْكِتٰبِ﴾ (اهل کتاب ستاسونه سوال کوی چه ته په هغوی باندې څه آسمانی کتاب نازل کړی هغوی داسې سوال د حضرت موسیٰ ؑ نه هم کړې ووچه الله ﷻ مونږ په خپلو سترګوسره کتل غواړو چه دهغوی د ظلم په وجه هغوی د تيز آواز په وجه هلاك کړې شو). رافع بن حريمله او وهب بن زيد وئيلی وو چه ائې حضرت محمد ﷺ په مونږ باندې څه آسمانی کتاب نازل کړه چه هغه مونږ وايو او زمونږپه ښارونو کښې هغه درياب ونه جاری کړې. نو بيا به مونږ تاسو رسول کريم ﷺ لره اومنو .... [بقيه په راروانه صفحه....

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنْ تُبْدَ | لَكُمْ | تَسُؤْكُمْ | وَاِنْ تَسْئَلُوْا | عَنْهَا |
| كه ښكاره شي | تاسو ته | نو په تكليف كښي به واچوي تاسو | او كه تاسو تپوس اوكړو | په باره دهغې كښي |
| كه هغه تاسو ته ښكاره كړې شي نو تاسو به خفه كړي ........ او كه تاسو په داسې وخت كښې تپوس كوئ | | | | |
| حِيْنَ | يُنَزَّلُ | الْقُرْاٰنُ | تُبْدَ | لَكُمْ عَفَا اللّٰهُ |
| په هغه وخت كښي | چي نازلولې شي | قرآن | نو ضرور به ښكاره كړې شي | تاسو ته | معافي اوكړه الله |
| چې قران پاك رانازليږي نو هغه به درته خواه مخواه ښكاره كولې شي الله ﷻ تاسو ته معافي اوكړه | | | | |
| عَنْهَا | وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ | قَدْ | سَاَلَهَا | قَوْمٌ |
| دتيرو تپوسونو | او الله بښونكي | صبرناك دې | په تحقيق سره | پوښتنه كړې وه دداسې خبرو | يو قوم |
| او الله ﷻ بښونكي او برداشت كونكې دې ............. ستاسو په شان يو بل قوم هم تپوسونه كول | | | | |

...بقيه حاشيه د تيرمخ].. نو په دې باندې دا آيت نازل شو.

ابوالعاليه وائي چه يوسړي رسول كريم ﷺ ته اووئيل يارسول الله ﷺ چه كاش زمونږ دګناهونو كفاره هم هغه وې لكه څنګه چه دبني اسرائيلو دګناهونو وه. ددې په آوريدو رسول كريم ﷺ درې ځل دالله ﷻ په دركاه عاليه كښې عرض اوكړو چه اې الله ﷻ مونږ داسې نه غواړو مونږ دا سې نه غواړو. بيائې عرض اوكړو چه واورئې په بني اسرائيلو كښې به چه چا څه ګناه كوله نو دهغه په دروازه باندې به ليكلې كيدل او ورسره به ددې كفاره هم ليكلې كيدله. اوس خو يادنياوي رسوائي منظوره كړئې او كفاره اداكړئې او خپل پټ ګناهونه ښكاره كړئې يا كفاره مه وركوئې اود آخرت رسوائي منظوره كړئې. خوتاسو ته الله ﷻ فرمائيلي دي چه ﴿وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾ (چه دچا نه څه خراب كار اوشي يا هغه په خپل ځان باندې ظلم اوكړي ،بيا بخښنه غواړي نو دې به الله ﷻ لره ډيربخښنې والا اومهربانه ذات بيامومي). داشان يومونځ تر بل مونځ پورې دګناهونو كفاره ګرزي. بيا يوه جمعه تر بلې جمعې پورې دګناهونو كفاره ګرزي. واورئې چه كوم سړې د بدئ اراده اوكړي او بدي اونكړي نودده په حق كښې بدي نه ليكلې كيږي ، او كه د نيكئ اراده اوكړي او هغه نيكي اونه كړي نو بياهم دده دپاره نيكي ليكلې كيږي. او كه نيكي اوكړي نو بيا دده دپاره لس نيكئې ليكلې كيږي. اوس تاسو اووائې تاسو ښه شوني او كه بني اسرائيل ؟ نه تاسو د بني اسرائيلو نه ډير ښه يئ . باوجود ددې دومره كرم او رحم نه بيا هم كه څوك هلاك شي نو پوهه شئ چه هغه پخپله هلاك شو. نو په دې باندې دا آيت نازل شو.

قريشو رسول كريم ﷺ ته اووئيل كه د صفا غر دسرو زرو شي نو مونږ به تاسو باندې ايمان راوړو. رسول كريم ﷺ اوفرمائيل ښه د مائده (آسماني دسترخوان) والو چه څه انجام وو هغه به ستاسو هم شي. نو په دې باندې هغوي انكاري شو او خپل سوال نې پريښودو. مراد دا دې چه په سركشئ او عنادسره دنبيانو نه سوال كول ډير دغندنې حركت دې . چه كفر لره... [بقيه په راروانه صفحه....

...بقيه حاشيه د تيرمخ].. دايمان په بدله كښې اخلي او آساني دسختئ په بدله كښې اخلي نوهغوي دنيغې لارې نه اړوي او جهالت او ګمراهئ كښې پريوزي. داشان دغير ضروري سوالونو كولو نه هم لكه بل ځائې كښې فرمائي چه ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا﴾ (آيا ته هغه كسانو ته نه ګورې چه دالله تعالى نعمتونو لره په كفر سره بدلوي او خپل قوم لره په هلاكت كښې اچوي ، دوى به جهنم ته داخليږي اوهغه ډير خراب ځائې دې.

مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ أَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ۝ مَا جَعَلَ اللّٰهُ

وړاندې ستاسو نه | بیا | شول هغوی | په هغې باندې | كافران | نه ده | مقرر كړې الله |

كوم چه ستاسو نه وړاندې وو | او بيا دهغې خبرې په وجه كافران شو | ............ او الله ﷻ خو نه

مِنْ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ

| هيڅ بحيره | اونه سائبه | اونه وصيله | اونه حام | خو | هغه كسان |

بحيره مقرر كړې ده | او نه سائبه ...... او نه وصيله ........ اونه حام | ............. ليكن هغه كسان چې

كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝

چې كفرني كړې دې | ترې هغوی | په الله باندې | دروغ | او ډير دهغوی | نه پوهيږي |

كفرني اختيار كړې دې | په الله ﷻ دروغ تړي | او په دوی كښې اكثر كم عقل دی |

## آسان ترجمه قرآن

اې د ايمان خاوندانو د داسې څيزونو په باره كښې تپوس نه مه كوئ چه كه تاسو ته ښكاره هې نو تاسو ته په بد لګي او كه تاسو دهغې په باره كښې داسې وخت كښې سوالات كوئ چه كله قرآن نازليږي نو تاسو ته په ښكاره كړې شي (خو) الله تيرې شوې خبرې معاف كړې دی. او الله ډير معاف كوونكې، ډير صبرناك دې. تاسو نه مخكښې يو قوم داسې سوالونه كړې وو، بيا چه دهغې (كوم جوابونه وركړې شو) دهغې نه منكر شو الله تعالى نه يو څناور لره بحيره جوړه كړې ده نه سايبه، نه وصيله او نه حام ليكن چه كوم خلق كفر كوې هغوی په الله باندې دروغ جوړ كړې دې، او دوی كښې اكثر خلق سم نه پوهيږي.

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ أَشْيَآءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ۚ ﴾ ائې دايمان خاوندانو داسې [عبث] خبرې مه پوښتئ [په كومو كښې چه دا احتمال وی چه] كه تاسو ته ښكاره كړې شی نو ستاسو د ناخوښئ سبب به وی [يعنی دا احتمال به وی چه كه دهغې جواب دركړې شو نو خوښ به مو نشی] ﴿ وَإِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ؕ ﴾ او [په كوموكښې چه دا احتمال وی چه] كه تاسو په زمانه دنازليدو دقرآن [او وحی] كښې دغه خبرې اوپوښتئ نو تاسو ته به ښكاره كړې شی [يعنی په سوال كولوكښې خو دا دويم احتمال وی چه جواب ملاو شی اوپه جواب ملاويدوكښې دغه رومبی احتمال وی چه په طبيعت به مو ښه اونه لګی اودا دواړه احتمالونه چه په مجموعی ډول د پوښتلو نه دمنع علت دی واقعی دی نودغسې سوال منع دی خير] تيرشوی پوښتل [چه تر اوسه مو كړی دی هغه خو]﴿ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ؕ ﴾ الله تعالى معاف كړی [خو بيا دغسې مه كوئی] ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ۝﴾ او الله ﷻ لوئې بخښوونكې دې [ځكه ئې تيرشوی پوښتل معاف كړل او] لوئې د زغم خاوند دے [په دې وجه كه په آئنده خلاف كولو باندې په دنيا كښې سزا درنكړی نومه دهوكه كيږئی چه بيا به هم عذاب او سزا نه وی] ﴿ قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ﴾ داسې خبرے تاسونه مخكښې [زمانه كښې] نورو خلقو [دامتونو] هم [د خپلو پيغمبرانو نه] پوښتلے وے ﴿ ثُمَّ أَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ۝ ﴾ بيا [چه ورته جواب وركړې شو نو] ددغه خبرو حق ئې په ځائې رانړو [يعنی دغه جوابونوكښې چه كوم داحكامو په باره كښې دی دهغې

په جوړ دوی عمل اونکړو اوکوم چه د واقعاتو په باره کښې وو دهغې نه يې اثر قبول نه کړو نوچرته تاسوته هم دغسې واقعه راپيښه نشي لهذا غوروالئ هم په دې کښې دے چه دغسې پوښتل پريږدئ]. ﴿مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ﴾ الله ﷻ نه بحيره مشروع کړيده اونه سائبه اونه وصيله اونه حامي ﴿وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ﴾ ليکن کوم خلق چه کافران دی هغوی [ددې رسمونوپه باره کښې] په الله ﷻ باندې د دروغو تور پورې کوی [چه الله په دې عملونو خوشحاليږی] ﴿وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ﴾ اواکثر کافران [ددين] عقل نه لری او [ددې نه کارنه اخلی بلکه د خپلو مشرانو دليدو په ډاډ دغسې بيوقوفيانے کوی].

## معارف او مسائل

**بې ضرورته تپوسونو نه منع کول:** په دې آيتونوکښې په دې خبرداري ورکړې شويدې چه څنې خلق دالله ﷻ په احکاموکښې بې ضرورته دباريکئ لټولو اودمخ نه ګنج راوښکلو شوق لری اوکوم احکام چه نه وی ورکړې شوی دهغې په باره کښې بې دځه ضرورته تپوسونه کوی، په دې آيتونوکښې دغسې خلقوته داهدايت ورکړې شو چه هغوئ ددغسې تپوسونه نه کوی چه په نتيجه کښې پر ځه پيتې پريوځی يادووئ دپتورازونوپه ښکاره کيدوسره شرمنده شی.

**شان نزول:** دمسلم دروايت مطابق، ددې آيتونوشان نزول دادې چه هرکله دحج دفرض کيدوحکم نازل شو نواقرع بن حابس رضی الله عنه تپوس اوکړو چه هرکال به زمونږ په ذمه، حج فرض وی؟رسول الله ﷺ ورته ددې هيڅ جواب ورنکړو،هم دغه تپوس ئې دويم ځل هم اوکړو،هغوئ پرچپ پاتې شو چه دريم ځل ئې هم دغه تپوس اوکړونودغه وخت هغوئ ورته په زورنې ورکولوسره اوفرمائيل که مادرته په جواب کښې ،او،فرمائيلې وې نوهرکال به درباندې حج فرض شوې وو چه دهغې د پوره کولووس به مونه رسيدو،بيائې ارشاداوفرمائيلوچه هرکله زه تاسوته دځه څيزونوپه باره کښې حکم درنکړم نوپه هغې تاسوهم چپ پاتې شئ اودهغې په باره کښې ښخ تپوسونه مه کوئ،ولې چه تاسو نه مخکښې څنې امتونه دداسې ګڼروتپوسونوکولوپه وجه هلاک شويدی چه کوم څيزونه به الله ﷻ اورسول نه وو فرض کړی په ګڼرو تپوسونو کولوپه ئې هغه په ځانونوفرض کړل اوبيابه ئې پوره کولې نه شو،اودهغې په خلاف کولوکښې به راګير شو، اوس ستاسوفرض اوذمه واری داده چه زه درته ديوکارکولوحکم درکړم دخپل وس په جوړهغې لره پوره کوئ اودځه نه موچه منع کړم،هغې لره پريږدئ،([۱۴])[مطلب دادې چه ديوڅيزپه باره کښې چه هيڅ اونشی وتيلې نودهغې په باره کښې ښخ تپوسونه مه کوئ].

**درسو ل الله ﷺ نه پس پيغمبری اووحی راتلل ختم شو:** په دې آيت کښې يوضمنی جُملہ داهم اوفرمائيلې شوه:﴿وَاِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ﴾ [يعنی دقرآن دنازليدوپه زمانه کښې که تاسودغسې تپوسونه اوکړئ نودوحی په ذريعه به ئې جواب درکړې شی،مطلب ئې داشوچه هرکله تاسودقرآن کريم دنازليدوپه زمانه کښې څه تپوس اوکړئ نوجواب به ئې دوحی په ذريعه درکړې شی دې کښې اشاره دې ته اوشوه چه که دې نه پس موتپوس اوکړو نودوحی سلسله به بنده وی جواب به ئې څنګه درکړې شی؟

[۱۴] صحيح مسلم، کتاب الحج، باب فرض الحج مرة فی العمر: ج۱، ص ۴۳۲

هر کله چه پیغمبری اووحی راتلل بندشو نودبې ضرورته تپوسونواثر یه اګرچه داسې نه وی چه نوی احکام به راشی، چه کوم څیزونه فرض نه وی هغه به فرضی شی یادوحی په ذریعه به دچاپټ رازښکاره کړې شی، لیکن دبې ضرورته پوښتنې دځپله خان جوړول، دهغې په تحقیق پسې کیدل، یادبې ضرورته څیزونوپه باره کښې پوښتنې کول دپیغمبرئ دختمیدونه پس هم بده خبره ده- اوبیاهم منع دی ولې چه په دې کښې خپل اودنوروو ختونه ضائع کول دی، چنانچه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: ﴿من حسن اسلام المرء ترکه مالا یعنیه﴾(۱۵)[دمسلمانیدو یوه خوبی داهم ده چه مسلمان عبث خبرې پریږدی]دې نه معلومه شوه چه کوم داسې مسلمانان چه بیخی دعبثو څیزونوپه تحقیق کښې انښتی وی مثلاً په دې کښې اخته وی چه دحضرت موسی علیه السلام دموربی بی څه نوم وو؟دحضرت نوح علیه السلام دکشتئ اوږدوالې اوپلنوالې څومره وو؟ هر کله چه ددې تړون انسانی عمل سره نشته نوداسې سوالونه کول بده خبره ده،خصوصاً هر کله چه داهم معلومه وی چه داسې تپوس کوونکی خلق اکثر ددین ضروری مسئلو نه خبرنه وی،په عبثو کارونوکښې داخته کیدوپه وجه ،انسان دضروری کارونونه محرومه کیږی.پاتې شوه داخبره چه فقهاؤ پخپله هم دډیرو مسئلو کښې فرضی صورتونه راایستلی دی، دهغې په باره کښې ئې سوالات قائم کړیدی اودهغې احکام ئې بیان کړیدی،نوراتلونکوواقعاتو دااوښودل چه دراتلونکو خلقو دې ته ضرورت وو،په دې بناءغه،په عبثو اوبې مطلبه تپوسونو کښې نه حسابیږی. یواسلامی تعلیم داهم دې چې کوم علم ،عمل یایوکاریاخبره، ترڅوچه څه دینی یادنیوی فائده تر نشی راولاړیدې په هغې کښې ښکیل کیدوسره وخت ضائع کول نه دی پکار-

**دبحیره، سائبه وغیره تعریف**:: بحیره،سائبه،وصیله ،حامی،ټول دجاهلیت دزمانې رسمونو،رواجونو سره تعلق لری، ددې په تفسیر کښې مفسرینو ډیر اختلاف کړیدې کیدې شو چه په دې کښې دهر یولفظ اطلاق په مختلفوصورتونوباندې کیږی، مونږ،صرف ،دسعیدبن المسیب تفسیر دصحیح بخاری نه نقل کوؤ-

،بحیره، دکوم څاروی پی:به چه دبتانوپه نوم خلقووقف کول اوخان دپاره به ئې نه راوستل، سائبه، زمونږدزمانې د،ساندږ،[اندر]پشان به یوڅاروې خوشې او آزادپریښودلې شو-

،حامی، هغه نر اوښ چه یوخاص شمیر[ښځو]اوښو سره به دیوڅایکت کولو نه پس دبتانو په نوم آزادپریښودلې شو-

،وصیله،هغه اوښه چه په مخه ښځې اولادراوړی نراولادنه راوړی- دابه ئې هم دبتانو په نوم آزاده پریښودله-(۱۶)

دې نه علاوه داڅیزونه دشرک دخاصو نخښو څخه وو دکوم څاروی دغوښې،پښیو یاسورلئ وغیره نه فائده اغستل چې الله ﷻ جائزګرځولی دی،دهغې په حلالوالی اوحراموالی باندې خپل اړخ نه قید، قیود اوشرطونه لګول دشریعت جاری کولواختیارات ځان لره ثابتول وو-لوئې ظلم داوو چه خپل دغه مشرکانه رسمونه به ئې دالله ﷻ دخوشحالئ اونزې والی ذریعه ګڼرله، ددې جواب داسې ورکړې شو چه الله ﷻ هیچرې دغه رسمونه نه دی مقرر کړی ددوئ مشرانوپه الله ﷻ

---

(۱۵) مؤطا مالک رقم الحدیث: ۱۷۰۳، کتاب الجامع، باب ما جاء فی حسن الخلق وجامع الترمذی، أبواب الزهد، باب فیمن تکلم بکلمة الخ: ج ۲، ص ۵۸

(۱۶) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب ما جعل الله من بحیرة الخ: ج ۲، ص ۳۹۵

باند دغه توربوري کړو اوزياتوبې عقلوعواموني، دې لره قبول کړو. غرض داچه، دلته داخبرداري ورکړې شو چه څنګه، په عبثو اوبيکاره پوښتنوکولوسره دشريعت په حکمونوکښې تنګې اوسختې راوستل جرم دي دهغې نه زيات سخت جرم دادې چه دشارع دحکم نه بغير، خالص په خپل خيال اوخواهش سره حرام اوحلال تجويز کړې شي، [فوائد عثماني]-

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ

اوهر کله چې اووئيلې شي|هغوئ ته | چې راشئ | هغه حکم ته |چې نازل کړې دې الله |اوراشئ پيغمبر ته

اوهر کله چې دوئ ته اووئيلې شي|چې هغه کتاب ته راشئ چې الله ﷻ نازل کړې دې|اودپيغمبرحکمونه اومنئ

قَالُوا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ۚ أَوَلَوْ كَانَ

نوواثې دوئ|کافي ده زمونږدپاره|هغه طريقه|چې موندلې دی مونږه|په هغې باندې |پلرونه خپل|اګر که وو

نوواثې چې زمونږ دپاره هغه طريقه کافي ده |چې په کومه باندې زمونږپلار نيکه وو| .........اواګر چې

آبَاؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

پلرونه دهغوئ| چې نۀ پوهيدل | په هيڅ څيز |اونۀ وو په سمه لار | اې هغه کسانو

ددوئ پلار نيکه په هيڅ نه پوهيدل| او دسمې لارې نه خبر هم نه وو| ......... ائې دايمان

آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ۖ لَا يَضُرُّكُم مَّن

چې ايمان مو راوړې دې |لازم دې په تاسوفکرکول| دځانونوخپلو |نۀ رسوی ضررتاسوته| هغه څوك

خاوندانو دخپل ځان فکر کوئ | دهغه خلقو ګمراه کيدل تاسوته هيڅ نقصان نه رسوی چه کوم ګمراه

ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۚ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ

چې بې لارې شوی دی|هرکله چې| تاسوپخپله په نيغه لاريئ|خاص الله ته دی| واپس تلل ستاسو

شوی دی | هله که تاسوپه سمه لار باندې قائم يئ | .........ستاسودټولو پيشی به الله ﷻ ته کيږی

جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

دټولو | نوخبربه کړی تاسو|د هغه کارونونو|چې وئ تاسو| چې کول به مو|

نوهغه به درته اوښائی | .........چې تاسو څه کارونه کړی دی

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه دوی ته وویلې شي چه الله کوم کلام نازل کړي دې هغې طرف ته او رسول طرف ته راشئ نو دوی وائي چه مونږ چه په (کوم دين) باندې خپل پلار نيکه موندلی دي مونږ لره هغه کافي دې. نو که چرې د دوی پلار نيکه داسې وي چه نه هغوی سره څه علم وي او نه څه هدايت نو آيا بيا به هم (دوی هغوی پسې ځي؟) اې د ايمان خاوندانو! تاسو خپل فکر کوئ او که تاسو په سمه لاره يئ نو کوم خلق چه ګمراه دي هغوی تاسو ته څه نقصان نه شي رسولې الله طرف ته د ټولو واپس کيدل دي هغه وخت به هغه تاسو ته ښائي چه تاسو څه عمل کولو.

**د آيتونو تړون:** پورته د رسم پرستو کافرانو د يو جهالت ذکر وو. او داشان جهالتونه هغوئ کښې ډير زيات وو. دهغې په آوريدو سره مؤمنانو ته ډير خفګان او انسوس کيدلو. پدې

راتلونکی آیتونو کښې مؤمنانو ته ارشاد دې چې تاسو ولې غم کوئی ، تاسو ته حکم کیږی چې تاسو خپله اصلاح اوکړئی او دې سره سره د خپل وس او توفیق مطابق د نورو د اصلاح هم کوشش اوکړئی . باقی خبره داده چې تاسو ته په کوشش باندې بدلـه درکول ستاسو په اختیار کښې نه دی ، په دې تاسو په ، کار خود کن کار بیگانه مکن ، باندې عمل اوکړئی [۱۷]

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ ﴾ کله چه دوی ته اووئیلې شی چه الله ﷻ کوم احکام نازل کړی دی دهغې طرف ته او درسول ﷺ ته طرف ته [چې په چا دغه احکام نازل شوی دی] هغې طرفته رجوع اوکړئی [نو ددې امر نه چې کوم ثابت شی هغه حق اوګنړئی او ددې نه چې کوم باطل ثابت شی هغه باطل اوګنړئی] ﴿ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ﴾ نو وائی چه مونږ ته [ددغې احکامو او درسول ﷺ ضرورت نشته مونږ لره] هم هغه [طریقه] کافی ده چه مونږ پرے خپل مشران لیدلی دی [الله ﷻ فرمائی چه] ﴿ اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴾ آیا [دغه طریقه دوی لره په هرحال کښې کافی ده] اګر چه ددوی مشرانو [ددین] هیڅ پوهه نه لرله اونه یئ [دیو آسمانی کتاب] هدایت لرلو ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ ۚ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۚ﴾ائې دایمان خاوندانو دخپلې [اصلاح] فکرکوئی [اصل کار ستاسو په ذمه دغه دے دنورو داصلاح په باره کښې ستاسوکار دادې چه هرکله تاسو د خپله طرفه دخپل طاقت په جوړ داصلاح کولو کوشش کوئی مګر په بل چائې اثر نه کیږی نوتاسو ددې فکر مه کوئی څکه] چه هر کله تاسو [ددین] په لار روان یئ [او د دین واجبات داسې ادا کوئی چه خپله اصلاح هم کوئی او دنورو خلقو په اصلاح کولو کښې هم کوشش کوئی] څوك چه [ستاسو داصلاح کولو باوجود هم] ګمراه پاتې شو نو دهغه [په ګمراه کیدلو] ستاسو څه نقصان نشته [اوځنګه چه په اصلاح وغیره کښې دحد نه زیات فکر او غم نه منع کولې شی دغه شان دهدایت نه یئ دنا امیده کیدو په صورت کښې دغصے له کبله په دنیا کښې پرے دسزا نازلیدو آرزو کول هم منع دی ولے چه دحق اوباطل مکمله فیصله خوبه آخرت کښې وی چنانچه] ﴿ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ ﴾ هم دالله ﷻ خواته تاسو ټولو لره تلل دی بیا به هغه تاسو ټولوته اوښائی هغه چه تاسوبه کول [او خبرولو نه پس به په حق باندې د ثواب اوپه باطل باندې دعذاب حکم جاری کړی].

## معارف او مسائل

**دآیتونو شان نزول:** دجاهلیت په رسمونوکښې یورسم داهم وو چه خپلومشرانوپسې به تلل،اودهغې په وجه دوی به هرې بدئ اوشرکښې راګیرده‌رخیر،ښیګړې نه بې نصیبه وو،تفسیر،درمنثور،په حواله دابن ابی حاتم نقل کړیدی چه دغې خلقو کښې به څوک خوش قسمته په حق خبرې منلوسره مسلمان شو نوورته به داپیغورورکولې شو چه تاخپل نیکونه بیوقوفان څکه اوګنړل چه دهغوئ طریقه د پریښوه اوبله طریقه داختیارکړه،په دغې ګمراهئ دپاسه ګمراهئ باند داآیت:﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا﴾ [یعنی کله به چه دوئ ته وئیلې شو چه تاسو دالله ﷻ نازل کړی حقیقتونو،احکامو اورسول اړخ ته راوګرځئ چه په هرحیثیت سره، د حکمت،

---

[۱۷] اپنا کام کرو، دوسرے کا کام مت کرو۔

مصلحت اوتاسو دپاره دصلاح اوکامیابۍ ضامن وي، نودوئ سره سوادديې نه بل څه جواب نۀ وی چه ،مونږلره خوهم هغه طریقه کافی ده په کومه چه مونږه خپل پلارنیکه لیدلی دي.[۱۸]

داهغه شیطانی دلیل نیول دی چه په لکونوانسانانو ئې ګمراهان کړل، سره ددې نه چه معمُولی پوهه، اوعلم وهُنرئې لرلو، قرآن کریم ددې په جواب کښې اوفرمائیل ﴿أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا﴾که څوک سوچه فکرکوی نوپه دې جُملې سره، قُرآن کریم، دچایوکس یایوې ډلې په قدم باند دقدم ایښودوصحیح اُصول بیان کړل، ړندوته ئې دبینایۍ، اوجاهل، غافل ته ئې دحقیقت واضح کیدومکمل سامان مخې ته راوستې دې-هغه داسې چه داخبره خلق د باخبره خوپه عقل کښې راځی چه ناپوهه خلق دپوهه خلقواوناخبروخلق د باخبره خلقوپسې روان وی،بې علمه بنده د دعالم بنده په نقش قدم روان دی، لیکن داخبره خوپه عقل کښې نۀ راځی چه دعلم،عقل اوهدایت دپیمانې نه په بیرته کیدوسره دخپل پلارنیکه یاپه خپل قوم کښې دبل چاپه پل باندې روانیدل خپله طریقه جوړه کړی اوسره ددې ورپسې روان شی چه دې پخپله کوم خواروان دې اومونږه به کوم ځائې ته رسوی-

دغه شان بعضې خلق ګنړوالی پسې روان شی ولې چه پیمانه ئې دغه ګنړوالې جوړکړې وی حالانکه داخوهم دنامعقولیت حرکت دې، چنانچه دُنیاکښې همیشه دپاره اکثریت دبې وقوفو ،کم عقلو اودعمل په لحاظ دبدعملوخلقووی، لهذا دخلقو ګنړوالې، دحق ،ناحق یادښه اوخراب دپیلتون پیمانه نشی جوړیدې-

**نااهل لره خپل مقتداجوړول هلاکیدوته بلنه ورکول دي:** دقُرآن کریم دې جُملې ټولوته دیوواضح حکمت سبق ورکړو چه په دې کښې هیڅ یوځیزددې جوګه نۀ دې چه دهغې په بُنیاد څوک دچا تابعداراودهغه په پل باند روان جوړشی - بلکه دټولونه اول په انسان دالازم دی چه دخپل ژوند مقصداودخپل سفررُخ اوټاکی،بیاددغې مقصدحاصلولودپاره دداوګوری چه څوک داسې انسان دې چه ددې مقصدلارپیژندونکې هم وی،په دغه لارروان هم وی،هرکله چه داسې څوک انسان پیدا شی نوبیشکه چه هغه پسې تلل به دۀ لره منزل مقصودته اورسولې شی،هم دغه حقیقت دې دمجتهدینواماماتو دتقلید کولو.څکه چه هغوئ په دهن باند پوهیدونکی خلق دی اوپه هغې باند عمل کوونکی هم دی- لهذا ،بې عمله خلق که دوئ پسې روان شی نوهغوئ ددین مقصد ،یعنی دالله ﷻ اودرسول الله ﷺ تابعداری حاصلولې شی، کومو خلقو نه چې لار ورکه شوې وی ، هغوئ ته خپل منزل مقصود معلوم نه وی ، یا په قصد سره منزل مقصود طرفته نه ځی نو داسې خلقو پسې تلل دهرعقلمند په نزد، خپل کوشش اوعمل لره بربادول دی، بلکه خپلوهلاکیدوته بلنه ورکول دی، دعلم، حکمت اوروشن خیالئ په دې زمانه کښې هم افسوس دې، چه لیک ،لوست [پوهان] اوعقلمند خلقوداحقیقت شاته غورځولې دې،چنانچه نن صباد تباهئ اوبربادئ دټولونه لوئې سبب دادې چه خلق، غلطو مشرانو اولیدرانو پسې روان وی-

**د اقتداء معیار:** د قران کریم دې جملې د اقتداء دپاره ډیره د عقل مطابق او ښکاره پیمانه دوه څیزونه جوړکړیدی یوعلم اوبل اهتداء ،علم،نه مطلب دمنزل مقصوداوهغې ته درسیدو طریقې پیژندل دی-او،اهتداء،نه مطلب ددغې مقصد په لارباندې تلل ،یعنی صحیح علم باندې پوره عمل کول دی-

[۱۸] الدر المنثور تحت هٰذه الآية: ج۲،ص۷

خُلاصه ئې داشوه چه چالره مقتدا اوپیشواجوړوې نو رومبې ددغې مقتداء اوپیشوا دااندازه اغستل دی چه دغه مقتدااوپیشوا دهغې مقصداودهغې دلاروچارونه پُوره واقف دې اوکه نهٔ. د کوم مقصد دپاره چه هغه پیشوا جوړولې شی،بیاورته په دې شان کتل دی چه هغه ددغې مقصد په لارروان هم دې اوکه نهٔ؟ اوداهم کتل پکاردی چه دهغه عمل دهغه د خپل علم مطابق دې اوکه نهٔ؟-

غرض دادې چه دمقتداء اوپیشواانداز ه په دې شان اغستل ضروری دی چه دهغه علم به صحیح اوعمل ئې پوره کره اومستقیم وی- یواځې په دې پیمانه ئې انداز ه اغستل غلط دی چه دغه پیشوایان پلاران،نیکُونه وی یادېرخلق ورپسې روان وی،یادېرمال،دولت خاوندان وی، یادسلطنت اوحکومت خاوندان وی-

**په چاباندې دتنقید کولواثرناکه طریقه:**: قرآن کریم ،دلته دپلار،نیکه په پل باند دروانیدو عادت لرونکو خلقوغلطی ئې ښکاره کړه اودې سره ئې په بل چاباند دتنقید کولواودهغهٔ دغلطئ ښکاره کولویوخاص اثرناکه طریقه هم اوښودله چه په هغې سره دمخاطب زړهٔ آزارنشی اونهٔ پرې مشتعل شی،ولې چه دپلار،نیکه په پل باند ذروانو خلقوپه جواب کښې ئې داسې اونهٔ فرمائیل چه ستاسوپلاران،نیکُونه جاهلان یاگُمراهان دی بلکه دیوتپوس په رنګ کښې ئې داسې اوفرمائیل چه:- آیادپلارانونیکُونوپه پل باند تلل په هغه حالاتوکښې هم معقوله خبره کیدې شی چه هغوئ نهٔ علم لری اونهٔ ئې عمل وی-

**دخلقودِاصلاح فکرلرونکوته بوتسلی:**: په دویم آیت کښې هغه مُسلمانانوته تسلی ورکړې شویده کومو چه دخلقو داصلاح په فکرکښې تول هرڅه قُربان کړی وی،هغه داسې چه هرکله تاسو دخپل وس په جوړ،دحق په تبلیغ اوتعلیم کښې پُوره کوشش اوکړو،دنصیحت اودخیرخواهئ حق مو اداکړو، بیاهم که څوک په گُمراهئ باند ټینګ پاتې شی نوتاسو هیڅ غم څکه مهٔ کوئ چه په داسې حالتکښې به دنوروخلقوپه گُمراهئ یاغلط کارئ سره ستاسو هیڅ نقصان نهٔ کیږی لکه فرمائی: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ عَلَيۡكُمۡ أَنفُسَكُمۡۖ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا ٱهۡتَدَيۡتُمۡ﴾

[یعنی اې مسلمانانو! تاسودخپل ځان فکرکوئ چه تاسوپه سمه لارروان یئ نوبې لارې خلقونه به تاسوته هیڅ نقصان نهٔ وی]-

هرکله چه ددې آیت دظاهری الفاظونه داګنړلې شی چه هرانسان دپاره صرف دخپل عمل او خپل اصلاح غم فکرکول کافی دی، نورخلق که هرڅه کوی هغوئ پسې مخه اوړل ضروری نهٔ دی،حالانکه داخبره،دقرآن کریم دبیشمیره ښکاره حکمونونه خلاف ده،ولې چه دهغې له مخه امربالمعروف او،نهی عن المنکر لره د اسلام یوه اهمه فریضه او د امت یو امتیازی خصوصیت گرخولې شوې دې. په دې وجه کله چې دا آیت مبارك نا زل شو نو څه خلقو ته شبهات پیدا شو. نبی کریم ﷺ نه سوالونه اوکړې شو. نبی کریم ﷺ وضاحت اوفرمائیلو چه هرکله دا آیت د امربالمعروف ،داحکامو سره بې سمونه نهٔ دې،که ،امربالمعروف،موپرېښو نومجرمانوسره به تاسو هم یوشان په گرفت کښې راځئ. په دې وجه ،تفسیربحرمحیط، کښې،دحضرت سعیدبن جبیر نه دآیت داتفسیر نقل کړې شویدې چه تاسوخپل شرعی واجبات په مخه اداکوئ چه پکښې جهاداو امربالمعروف،هم داخل دې،[۲۹] که دغه تولو ذمه واریو پوره کولونه پس هم خلق گمراه

[۲۹] تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج۵، ص۲۷

اوبې لاړې پاتې شي نو په تاسو ، هيڅ نقصان نشته دقُران کريم په الفاظو: ﴿إِذَا اهْتَدَيْتُمْ﴾ کښې چې غور اوکړئ نودغه تفسير پخپله ښکه واضح کيږي ښکه چه په آيت کښې په ښکاره داسې فرمائيلې شويدي چه:هرکله چه تاسو په سمه لاررروان يئ نودنورو ګمراهي تاسو لره مُضر نۀ ده او ځوک چې د ،امربالمعروف، ذمه داري نه پُوره کوي نوهغه په سمه لاره روان نۀ دې .

په تفسير دُرمنثور کښې دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ واقعه داسې نقل کړې شويده چه دهغوئ په وړاندې چاداسوال اوکړو چه دفلانى، فلانى ترمنځه سخته جګړه په دې شان جارى ده چه يو بل ته مُشرک وائى__ابن عُمر ﷺ اوفرمائيل چه آياتاسو په دې موقعه زمادې ويناته په طمع يئ چه لاړشئ اودغې دواړو سره جنګ اوکړئ؟ خوزۀ به هيچرې داسې اونۀ وايم بلکه داسې به وائيم چه لاړشئ دغه دواړه په نرمئ پوهه کړئ که وې منل نو ډيره غوره خبره ده اوکه وې نه منل نودهغوئ فکرپريږدئ اوخپل فکرکښې لګياشئ، اوبياې دخپل دې جواب په دليل کښې،هم داآيت شريف اولوستلو-([20])

**دګناهونودبندولوپه باره کښې دحضرت صديق اکبرﷺ خُطبه**::ددې آيت دظاهري الفاظونه په سرسري نظرکولوسره چه کومه شُبه کيدونکې وو دهغې دلرې کولودپاره،حضرت ابوبکر صديق ﷺ په يوه خُطبه کښې داسې اوفرمائيل چه تاسوخلق داآيت لولئ[واياست] اوبې موقعې اوبې ځايه ئې داسې استعمالوئ چه د ،امربالمعروف،ضرورت نشته، ښه پوهه شئ چه ماپخپله درسول الله ﷺ نه اؤريدلې دې چه ځوک يو ګُناه کول وينى او[دخپل وس په جوړ] دهغې دبندولوکوشش نۀ کوى نونژدې ده چه الله ﷻ به مُجرمانوسره دغه نورخلق هم په عذاب کښې راګير کړي.

داروايت په ترمذى اوابن ماجه کښې موجوددې،په ابى داؤد کښې په داسې الفاظو راغلې دې:-

ځوک چه يوظالم لره په ظلم کولووينى اوهغه لره دظلم نه[دخپل وس په جوړ] منع نۀ کړى نوالله ﷻ به ټول په عذاب کښې راګيرکړي.([21])

**دمعروف اومنکرمعنى** ::دتيرشوى تفصيل نه داخبره معلُومه شوه چه هرمُسلمان لره د مُنكر، يعنى ناجائزو کارونوبنديزراوستل ياکم ناکم دهغې نه کرکه ښکاره کول لازم اوضروري دى ،اوس په دې ځان پوهه کړئ چه ،معروف، او ،مُنكر، څه ته وائى.

لفظ دمعروف،د،معرفه،نه ،اومُنكردانكارنه راغستې شويدي،معرفه دې ته وائي چه په غور،فكركولوسره څه ځيزاوپيژندلې شي اوددې برعكس ته مُنكروئيلې شي، لكه قُرآن كريم يوځائې كښې فرمائي ﴿يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ ثُمَّ يُنكِرُونَهَا﴾ يعنى داالله ﷻ دكامل قُدرت دننداروپه ليدلو سره دهغه نعمتونه پيژنى خوبيادعنادله مخه انكاركوي،ګويا چې دغه نعمتُونه دسره نۀ پيژنى، دې نه معلُومه شوه چه دلُغت له مخې دمعرُوف معنى، پيژندلې ځيزدې اودمُنكرمعنى، ناپيژندلې ځيزدې،چنانچه په دې مناسبت سره،امام راغب اصفهانى په ،مُفردات القرآن،كښې دشريعت په اصطلاح كښې دمعروف اومُنكرمعنى داسې بيان كړيده چه معروف،هرهغه فعل ته

[20] ) الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۷

[21] ) سنن ابي داود، كتاب الملاحم، باب الأمر والنهي: ج ۲، ص ۵۹۲، وجامع الترمذي، أبواب الفتن، باب ما جاء في نزول العذاب اذا لم يغير المنكر: ج ۲، ص ۳۹، وسنن ابن ماجه، كتاب الفتن، باب الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر: ص ۲۸۹

وئیلي شي چه ښه والي ئې د شریعت یا دعقل د مخې پیژندلې شوې وي او مُنکر هرهغه فعل دې چه په شریعت کښې، یا په عقل سره نهٔ وي پیژندلې شوې او نا آشنا بلکه بد گنړلې شي،(۲۲) په دې بِنا، دامربالمعروف معنی شوه ښه کارته بلل اودنهی عن المنکر معنی دبد کارنه منع کول شو۔

**د مجتهدینو اماماتو په مختلفو اقوالو کښې یو هم په مُنکر شرعی کښې نهٔ حسابیږي:** کیدې شي چه دلته دګناه، ثواب یادنافرمانۍ په ځائې دمُنکر او معروف الفاظو استعمالولو کښې دې اړخ ته اشاره وي چه د قرآن اوسُنت داجمال اوابهام له کبله چه کومې دوه یا په زیات شمیرکښې اجتهادي یاباریکې رائې په څه مسئله کښې مخې ته راشي اودأمت فقهاؤ په هغې کښې مختلف اقوال کړې وي هغه په دې دائره کښې نه داخلیږي، یعنی دهغې تولو څخه یوقول ئې شرعی مُنکرنشي بللې بلکه هریوقول بهٔ ئې معروف شرعی بللې شي، یعنی که په دې کښې څوک یوقول لره راجح اوګرځوي نو هغې ته دا اختیار نشته چې بل باندې داسې انکار اوکړي لکه څنګه چې په منکراتو انکار کولې شي. ولې چه دصحابه کرامو اوتابعینو څخه هیڅ یوکس بل په باندې دفاسقۍ او ګنهګارۍ فتوی په دې بنائهٔ ده لګولې چه دهغوئ ترمینځه اجتهادي اختلاف وو اویوبل سره ئې اجتهادي اقوال اورائې مختلفې وې، اومکالمې کولې، هریوبه دخپلې رائې دغوروالي وجوهات بیانول، په بل بهٔ ئې اعتراض هم کولو مګر ددغې اختلاف په وجه ئې هیچرې یوبل لره فاسق یاګنهګارنهٔ دې ګنړلې۔

خُلاصه ئې داشوه چه داجتهادي اختلاف په موقعه، هریودعلم خاوندداختیارلري چه په خپله رائې سره یوجانب لره غوریز اوګرځوي لیکن داحق نهٔ لري چه بل اړخ ته مُنکراووائي، چنانچه داخبره په ډاګه شوه چه په اجتهادي مسئلو کښې، جنګ، جګړې اوکړکې راولاړیدونکې مقالې اومضمونونه خورول په، امربالمعروف، نهی عن المنکر، کښې داخل نهٔ دي، دې مسائلولره هغه خلق محاذجنګ جوړوي چې ناواقفه وي یاجاهلان وي.

**د آیتونو ربط:** پورته د دین د مصلحت احکام وو. دې نه پس د دنیاوي مصلحتونو څه احکام ذکر کیږي. او په دې کښې اشاره ده چې الله تعالیپه خپل نعمت سره د خپلو بندګانو د اصلاح معاد په شان د معاش اصلاح هم فرمائي [بیان القرآن].

**شان نزول:** ددې پورته آیتونو د نازلیدو واقعه داده چې بدیل نومې یو مسلمان دوؤ نصرانیانو سرو تمیم او عدی سره د تجارت په غرض دشام ملک ته لاړو، شام ته چې کله اورسیدل نو بدیل بیمار شو. ده د خپل مال یو فهرست جوړ کړو او په خپل مال کښې ئې کیخودو. او په دې باندې ئې خپل ملګری خبر نه کړل. هر کله چې ددهٔ مرض زیات شونو ده خپل دواړو نصرانیانوملګرو ته وصیت اوکړو چې دا ټول سامان زما وارثانو ته حواله کړئې. هغوئ ټول سامان راوړو او ددهٔ وارثانو ته ئې حواله کړو خو په هغې کښې یوه د چاندئې [سپینو زرو] پیاله وه او په هغې باندې د سرو زرو کار شوې وو، هغه ددې سامان نه اوویستله. وارثانو ته د سامان نه فهرست ملاؤ شو. دوئ د هغه کسانو نه تپوس اوکړو چې زمونږ دې مرده څه مال خرڅ کړې وو او څه ددهٔ په بیمارئې باندې خرج شوې وو. دې دواړو ددې جواب په نفی کښې

---

(۲۲) مفردات القرآن، کتاب المعین: ج ۱، ص ۴۹۹

ورکړو. دا معامله د نبی کریم ﷺ مخکښې پیش شوه. وارثانو سره هیڅ گواه نه وو نو په دې وجه دې دواړو نصرانیانو نه قسم واخستې شو چې دوئ دهغوئ په مال کښې هیڅ خیانت نه دې کړې. او نه ئې ددې نه څه څیز پټ کړې دې. آخر په قسم خوړلو سره دهغوئ په حق کښې فیصله اوشوه. څه موده پس دا خبره معلومه شوه چې دوئ هغه پیاله په مکه مکرمه کښې په یو زرگر باندې خرڅه کړې وه. هرکله چې ددوئ نه تپوس اوشو نو دوئ اووئیل چې مونږ دا د مړده نه اخستې وه. د اخستلو گواه نه وو نو مونږ په دې وجه دهغې ذکر اونه کړو. هسې نه چې مونږ په دروغه اوگنړلې شو.

د مړي وارثان بیا د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. دې ځل دمخکښې صورت هغه کسان د خریدارئی مدعیان او وارثان منکر وو. هغوئ سره څه گواه نه وو نو په دې وجه په وارثانو کښې دوه کسانو قسم اوخوړو چې هغه پیاله د مړده مال وو، اودا دواړه کسان پخپل قسم کښې دروغژن دی. چنانچه هغوئ چې په کوم قیمت باندې خرڅه کړې وه هغه قیمت ئې وارثانو ته ورکړې شو

يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ
اې هغه کسانو |
انئي .............................|

اٰمَنُوْا | شَهَادَةُ | بَيْنِكُمْ | اِذَا | حَضَرَ | اَحَدَكُمُ
چې ایمان موراوړې دې | گواهی شهادت | په منځ ستاسو کښې | کله چې | حاضر شی | یو ته په تاسو کښې
دایمان خاوندانو! ..........هرکله چې په تاسو کښې چاته د هغه د مرگ وخت راشی ..........

الْمَوْتُ | حِيْنَ | الْوَصِيَّةِ | اثْنٰنِ | ذَوَا عَدْلٍ | مِّنْكُمْ
مرگ | په وخت | دوصیت کښې | گواهی د دووکسانو | چه خاوندان دعدل وی | او وی ستاسو نه
اودوصیت موقع وی | نو دشهادت دپاره دوه کسان انصاف کونکی دې ستاسو منځ کښې مقررشی

اَوْ اٰخَرٰنِ | مِنْ غَيْرِكُمْ | اِنْ | اَنْتُمْ | ضَرَبْتُمْ | فِي الْاَرْضِ
یا دوه کسان نور | غیرله تاسو نه | که چری | یئ تاسو | چې سفرموکوؤ | په زمکه کښې |
یادبل قوم دوه کسان دې مقرر شی که [په دغه وخت کښې] تاسو په سفر کښې یئ

فَاَصَابَتْكُمْ | مُّصِيْبَةُ | الْمَوْتِ | تَحْبِسُوْنَهُمَا | مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ
نو اورسیدو تاسو ته | مصیبت | دمرگ | حصار به کړئ تاسو دواړه گواهان | روستو دمانځه نه |
اوتاسو ته دمرگ پیغام راشی | ..........نو دمونځ نه پس دواړه کسان [جمات کښې] ایسار کړئ..........

فَيُقْسِمٰنِ | بِاللهِ | اِنِ ارْتَبْتُمْ | لَا نَشْتَرِيْ | بِهٖ | ثَمَنًا
نو قسم دې اوکړی دواړه | په الله باندې | که شکمن یئ تاسو | چې نه اخلو مونږ | په دې قسم سره | مال
نو په الله ﷻ دې قسم اوخوری | چې مونږ دخپلې فاندې دپاره گواهی نه خرڅوؤ |

وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ ۙ اللّٰهِ اِنَّآ اِذًا

اگر که | وی هغه | خاوند دخپلولۍ | اونه | پټوو مونږ | گواهي | دالله | بیشکه مونږ به یو | په دغه وخت کښې

اگرچې دا زموږ دخپلو خلاف ولې نه وی | او دالله ﷻ گواهي نه پټوو | گنې په دغه وخت کښې به بیا

لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ فَاِنْ عُثِرَ عَلٰٓى اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ

د گنهگارانو څخه | بیا که چرې | پته اولگیده | په دې خبره | چې دواړه | مستحق شوی دی

مونږ په گناهگارو کښې شمیرشوا | ........ بیا که معلومه شي چې دواړو کسانو ځان په ........

اِثْمًا فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ

دگناه | نودوه نور گواهان دې | اودریږي | په ځاي ددغه دواړو | دهغه کسانو نه |

گناه کښې اچولې دې | نو بیا دې دهغوئ په ځاې دوه نور گواهان اودریږي | دهغه کسانو نه

اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ

چې وهلې شوې وی حق | دهغوئ | چې هغه دواړه غوره وی په نسبت دهغوئ | نو قسم دې اوخوری دواړه

چې مخکښې گواهانو دچا حق وهلې وو | .......... او دواړه دې په الله ﷻ قسم اوخوری ........

بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ

په الله باندې | چې گواهي زمونږه | زیاته په حقه ده | دگواهۍ دهغوئ دواړو نه | اونه دې کړې زیاتې مونږه

چې زمونږ شهادت دهغوئ دشهادت نه زیات صحیح دې | او مونږ په شهادت کښې زیاتې نه دې کړې

اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰۷﴾ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا

بیشکه مونږ به یو | په دغه وخت کښې | د ظالمانو څخه | دا طریقه | ډیره نزدې ده | چې راتلل اوکړی داخلق

گنې مونږ به ظالمانو کښې شمارشوا | په دې چل زیات امید کیدې شی | ..........چې خلق به

بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ اَوْ يَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ

گواهۍ ته | مطابق دحق دهغې | یا به اویریږی هغوئ | ددې خبری نه چې | واپس به کړې شی |

شهادت صحیح صحیح اداکړی | یا به ددې نه اوویریږی چې ........

اَيْمَانٌۢ بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى

قسمونه [زمونږ] | روستو دقسمونو دهغوئ نه | اواویریږئ | دالله نه | او اوریدل کوئ | اوالله | نه ښائی نیغه لار

دهغوئ دقسمونو نه پس به ددوئ دقسمونو تردید اوشی | او الله ﷻ نه اوویریږئ | او واورئ چې الله ﷻ

الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۱۰۸﴾

خلقو | نافرمانو ته |

فاسقانو ته سمه لار نه ښائی |

## آسان ترجمه قرآن

اې د ایمان خاوندانو ! کله چه تاسو نه څوک مرگ ته نزدې وی نو د وصیت کولو په وخت کښې دخپلو معاملاتو د فیصلې کولو دپاره د گواه جوړولو طریقه دا ده چه تاسو نه دوه دیانتدار کسان وي ( چه ستاسو

**د وصیت ګواهان جوړ شي) یا که تاسو په زمکه کښې سفر کوئ او هغلته تاسو ته د مرګ مصیبت اورسي نو د غیرو نه (یعنی غیر مسلمه) نه دي دوه کسان شي بیا که ستاسو شک راشي نو د مانځه نه وروستو دغه دوه ګواهانو لره ایسارولې شئ . او هغوی دي په الله باندې قسم وخوري چه مونږ ددې ګواهئ په بدله کښې څه مالي فائده نه اخلو ، خواه که دا معامله څمونږ د یو رشته دار ولې نه وي .او الله چه په مونږ باندې د کومې ګواهئ ذمه داري ایښودې ده هغه به نه پټوو ګنې مونږ به ګناهګارو کښې شمار شو بیا که وروستو دا پته ولګي چه دوی ( دروغ وئیلي وو او) په خپل ځان باندې ئې د ګناه بوج اوچت کړې دې نو هغه خلقو نه دې دوه کسان ددوی په ځائې (د ګواهئ د پاره) اودریږي چه دچا خلاف اولنی دوه کسانو ګناه په خپل سر اخستې وه او هغوی دې په الله قسم وخوري چه څمونږ ګواهي ددې مخکښې دوؤ کسانو د ګواهئ په مقابله کښې زیاته رښتینې ده، اومونږ ( په دې ګواهئ کښې) څه زیاتې نه دې کړې ګنې مونږ به ظالمانو کښې شمار شو.په دې طریقه کښې ددې خبرې زیات امید دې چه دا خلق به ( په شروع کښې) صحیح صحیح ګواهي ورکړي یا دې خبرې نه ووېرېږي چه ( د دروغو د ګواهئ په صورت کښې) دوی د قسمونو نه وروستو به واپس نور قسمونه واخستې شي ( چه څمونږ تردید به کوي) اودالله نه ووېرېږئ او(څه چه د هغه د طرفنه وئیلې شوي دي هغه د قبلولو په نیت یې اوروئ) او الله نافرمانو ته هدایت نه کوي.**

**ربط آیات:** پورته د دینی مصلحتونو متعلق احکام وو،اوس ورپسې د دنیوی مصلحتونو د بعضې احکامو ذکر شوې دې، اوپه دې کښې ئې اشاره اوکړه چې الله تعالی په خپل رحمت سره د معاد د اصلاح په شان د خپلو بندګانو د معاش اصلاح هم کوی. (بیان القرآن)

**شان نزول:** د ذکرشوو آیاتونو د نزول واقعه داده چه یو سړې بُدیل نومې مسلمان وو، او نور دوه سړی چې یو تمیم او بل عدی وو، دوی هغه وخت نصرانی وو، بدیل د تجارت په غرض سره ددوی سره ملک شام طرف ته لاړو، شام ته چې اورسیدل نو بُدیل بیمار شو، هغه د خپل مال فهرست اولیکلو اوپه سامان کښې ئې کیخودلو، او خپلو دواړو ملګرو ته ئې اطلاع ورنکړه، مرض چې کله زیات شو، نودغه دواړو نصرانی ملګرو ته ئې وصیت اوکړو چې زما ټول مال زما وارثانو ته اورسوئ، هغوی ټول سامان راوړو وارثانو ته ئې ورکړو، خو د سپینو زرو یوه پیالئ چې په هغې باندې د سرو زرو نقش ونګار شوې وو، دهغې سامان نه ئې اوویستله، وارثانو ته په سامان کښې فهرست ملاو شو، نوهغوی د اوصیاء (دغه دواړو ملګرو) نه تپوس اوکړو چې مړی څه مال خرڅ کړې وو یا زیات بیمار شوې ووچه دهغه په علاج باندې څه مال خرچ شوې وی، هغوی دواړو ددې جواب په نفی کښې ورکړو، آخر معامله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په عدالت کښې پیش شوه، چونکه وارثانو سره ګواهان نه وو نو دهغه دواړو نصرانیانو نه ئې قسم واخستلو چه مونږ د مړی په مال کښې هیڅ قسمه خیانت نه دې کړې، نه مو ترې څه څیز پټ کړې دې، آخر په قسم باندې فیصله دهغوی (نصرانیانو) په حق کښې اوکړې شوه، څه موده پس ښکاره شوه چه هغه پیالئ هغوی دواړو په مکه کښې یو زرګر باندې خرڅه کړې ده، کله چې ترې تپوس اوکړې شو نو وې وئیل چې مونږ د مړی نه اخستې وه، چونکه د اخستلو ګواهان موجود نه وو په دې وجه مونږ مخکښې ددې ذکر اونه کړو، چې هسې نه زمونږ تکذیب اوکړې شی.

د مړي وارثانو بيا نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته رجوع اوکړه، اوس د ړومبی صورت برعکس اوصياء (دواړه نصرانيان) د اخستلو مدعی او وارثان منکر وو، د شهادت نه موجود کيدو په وجه وارثانو کښې دوه سړو کوم چې مړي ته ډير نزدې (رشته دار) وو، قسم ئې اوخوړلو چې پيالئ د مړي ملک وو، او دا دواړه نصرانيان په خپل قسم کښې دروغجن دی، نو په کوم قيمت باندې چې هغوی دغه پيالئ خرڅه کړې وه (يو زر درهم) هغه ئې وارثانو ته ورکړې (۲۲)

## خلاصه تفسير

﴿ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ ﴾ اې دايمان خاوندانو ستاسو ترمينځه [په معاملاتو لکه وارثانو ته دمال سپارلو په باره کښې] دوه کسان وصيان جوړيدل مناسب دی [اگر چه وصيان نه جوړول هم روا دی] ﴿ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ ﴾ کله چه په تاسو کښې په چا باندې مرگ راتلل [نزدے] وی [يعنی] ﴿ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ ﴾ کله چه دوصيت کولو وخت وی [او] دغه دوه کسان داسې وی چه ديندراه وی او دتاسو [يعنی دمسلمانانو] نه وی ﴿ أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ ﴾ يا دغير قوم دوه کسان وی که [مسلمانان ملاو نشی لکه] ﴿ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُم مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ ﴾ که تاسو چرته په سفرکښې تللی يئ بيا په تاسوکښې واقعه دمرگ راشی [اودا ټول کارونه واجب نه بلکه مناسب او غوره دی.ځکه چه څنگه څوک وصی نه جوړول هم روا دی دغه شان يو وصی جوړول يا غير عادل وصی جوړول يا په کور کلی کښې غير مسلم وصی جوړول روا دی بيا ددغې وصيانو حکم دادې چه په څه وجه باندې په هغوی باندې] ﴿ تَحْبِسُونَهُمَا مِن بَعْدِ الصَّلَاةِ ﴾ ستاسو [اې وارثانو] شک وی نو [اې حاکمانو مقدمه په دې شان فيصله کړی چه اول دوارثانو نه ځکه گواهان طلب کړئی چه هغوی مدعيان دی هغوئ دې ددې خبرے گواهي ورکوی چه دغه وصيان فلانې څيز لکه جام اخستے دے او که هغوئ گواه پيش نه کړې شی نو دا وصيان هرکله چه مدعی عليهم دی ځکه به ورته داسے قسم ورکوئ چه] دغه دواړه [وصيان] پس د مانځه [دمازيگر نه لکه] ايسار کړئی [ځکه چه په دغه وخت کښې اکثر خلق زيات راجمع کيږی نو قسم خوړونکے به څه لږ ډير شرم کوی دغه شان وخت هم بزرگ دے چه دهغې څه خيال به هم کولې شی مراد ترې دادی چه هرکله وخت برکتی وی او خلق هم ډير په يو ځائې راجمع وی نو په دې سره قسم سختيږی] ﴿ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ ﴾ بيا دے دواړه [په داشان] په الله ﷻ قسم اوخوری چه [دقسم الفاظ دے داسې وی چه] ﴿ إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا ﴾ که ستاسو شک وی چې مونږ ددې قسم په بدل کښې څه [دنيوی] نفع اخستل نه غواړو [چه د دنيوی نفعې حاصلولو دپاره په قسم ربښتيا وئيل پريږدو] ﴿ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ﴾ اگر که [په دې واقعه کښې زمونږ] څوک نزدے خپلوان هم وی [چه ښيگړه مووړسره شريکه گڼړلے او په دروغه مو دهغې دخاطره قسم خوړلے او اوس خو څه داسې خبره هم نشته يعنی هرکله چه مونږ د دوچنده ښيگړے دپاره هم مونږ دروغ نه وايو نوديوے ښيگړے دپاره به ولے دروغ وايو] ﴿ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللَّهِ ﴾ اودالله ﷻ [دطرفه دکومې] خبرے [وئيلو چه حکم دے هغې] لره به مونږ پټ نه

---

(۲۲) جامع الترمذی، أبواب التفسير، سورة المائدة: ج ۲، ص ۱۳۶

کړو [ورنه] ﴿اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ۝﴾ مونږ به [که داسې اونکړو نو] په دې حالت کښې سخت
ګناهګار یو[دا وینا پخوالۍ دے چه مطلب ترې د ربښتیا وئیلو واجبیدل او د دروغو وئیلو
حراموالۍ او دالله ﷻ لوئې والۍ ئې مخې ته راوستل دی اوس ددې دواړو سختوالیو نه پس د
حاکم په رائې بے د څه سختوالی نه هم داصل مضمون قسم دے داسې اوخوری چه لکه مونږ ته
مړی پیاله نه وه راکړې اوهم په دې مقدمه فیصله کول پکار دی چنانچه ددې آیت په واقعه
کښې همدغسے اوشو. ﴿فَاِنْ عُثِرَ عَلٰٓى اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ اِثْمًا﴾ بیا [ددےنه پس] که [په څه طریقې سره
ښکاره] ددې اطلاع اوشوه چه دغه دواړه وصیان د ګناه مرتکب شویدی [لکه د آیت کومه
واقعه چه مخکښې ذکر شوه هرکله چه پیاله په مکه کښې اوموندې شوه او وصیانو دتپوس
په جواب کښې اووئیل چه مونږ دمړی نه په بیعه اخستلې وه. هرکله ئې چه داخبره او اقرار
دهغه رومبۍ خبرے نه په ښکاره مخالف وو چه په هغې کښې دمطلق اخستلو نه یې انکار
کړې وو او دضرر داسے اقرار کول حجت جوړیږی په دې وجه په ښکاره دا معلوم شو چه دوی
خیانت کړې دې او دروغ ئې وئیلی دی] ﴿فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ
الْاَوْلَيٰنِ﴾ نو [په داسې صورت کښې به د مقدمے رخ بدل شی وصیان چه رومبے مدعیان علیه
وو اوس داخستلو یې مدعیان شو او وارثان چه رومبے دخیانت دعویدار وو اوس مدعا علیه
اوګرځیدل لهذا اوس دفیصلے دا صورت شو چه اول به د وصیانو نه دپیالے داخستلو دپاره
ګواهان طلب کولې شی اوهرکله چه هغوی ګواهان پیش نه کړې شونو] د دغه [وارثانو] خلقو
نه دکومو په مقابله کښې چې [ددغه وصیانو دطرف نه دغه بیان شوې] ګناه شوې وه او [په
شریعت کښې دمیراث حقداران چه ددې آیت دواقعے په صورت کښې] دوه کسان [وو] چه
دتولو [وارثانو] نه [دمیراث په حقدارۍ کښې] زیات نزدے دی چرته چه [قسم دپاره] دغه
دواړه [وصیان] اودریدلی وو[اوس چه دې قسم دپاره] دا دواړه اودریږی ﴿فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ
اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا﴾ بیا دے دواړه [په دې شان] دالله ﷻ قسم اوخوری چه [قسم سره دے اوائی
چه] یقینًا زمونږ دا قسم [په دې وجه] ددغې دواړو [وصیانو] دقسم نه زیات صحیح دے [چه
بیخی دشك نه په ښکاره او حقیقت کښې څکه پاك دې چه اګر که مونږ ددې دحقیقت علم نه
لرو لیکن په ښکاره خوهغې کښې شك پیدا شو] ﴿وَمَا اعْتَدَيْنَآ﴾ او مونږ [دحق نه] لږ هم
تیریدل اونکړل[ورنه] ﴿اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ۝﴾ مونږ [که داسې اوکړل نو] په دا سې حالت کښې
به سخت ظالمان یو [ولے چه پردے مال په قصد سره بې اجازته اخستل ظلم دے او دا هم
سختول دی چه د حاکم په رائې به کولې شی بیا به په اصل مضمون قسم واخستلې شی هرکله
چه دبل چا په فعل باندې به وی څکه به یې صیغه داسې وی چه قسم په الله ﷻ زمونږ په علم
کښې مړی په دې مدعیانو جام نه دې خرڅ کړې اوهرکله چه ددې هیڅ څه ښکاره لارنه جوړیده
چه دا علم واقعی دے اوکه نه دې ددې وجې په واقعی کیدلو باندې زیات مضبوط قسم
واخستلې شو څنګه چه لفظ د اَحَقُّ پرے دلالت کوی.حاصل ئې داشو چه هرکله دا په ما پورې
اړه لری څکه قسم خورم چه څنګه په کښې دظاهری دروغو ثبوت نشی جوړیدے دغه شان په
حقیقت کښې هم دروغ نه دی اودا قرینه مفیده ده ددې خبرې چه دلته قسم په علم باندې دې
اوهرکله چه ددې په دروغه کیدل بے داقرار نه چرې هم نشی ثابتیدلے لهذا دے نه راولاړیدونکے
حق تلفی به سختے درجے ظلم وی، عجیبه نه ده چه دلته ظالمین پدغې وجه وئیلې شوی وی]

﴿ذٰلِكَ اَدْنٰۤى اَنْ يَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَاۤ﴾ دا [قانون چه په دواړو آیتونوکښې بیان شو] ډیره قریبه ذریعه ده ددې خبرے چه دغه [وصیان] خلقو دے واقعے لره په درست شان سره ښکاره کړی [که دزیاتی مال سپارل نه وی شوی نو قسم دے اوخوری اوکه شوی وی نو دګناه نه دې اوویریږی اوانکار دے اوکړی دا حکمت خو دوصیانو ته په قسم ورکولو کښې دې] ﴿اَوْيَخَافُوْۤا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌۢ بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ﴾ یا ددې خبرے نه دوئ اوویریږی [او قسم خوړلو نه دوئ ډډه اوکړی] چه دوی ته د قسم ورکولونه پس به [وارثانو ته] قسم ورکول راخی [بیا به مونږ کچه شو دا حکمت وارثانو ته په قسم ورکولو کښې دے اوپه دې ټولو برخوکښې حقدار ته دهغه دحق وررسول دی چه شرعی او غوښتلے شوې دے ولے که وصیانو ته قسم ورکول شرعی کار نه وې او وصیان دمال په سپارلو کښې رښتونی وے نو دهغوی د تهمت لرے کولو به څه طریقه نه وه او اوس د رښتیا کیدلو په وخت براءت کیږی او د دروغ کیدلو په وخت شاید د دروغو دقسم نه په ویریدلو سره انکار اوکړی نو د وارثانو حق ثابتیږی او د وارثانو تحلیف مشروع نه وې او شرعی لحاظ سره دهغوئ حق وې او د اثبات حق څه صورت بیا نه وو. او که شرعی لحاظ سره دهغوئ حق نه وې د اوصیاء د اثبات حق څه طریقه به نه وه. او اوس د وارثانو د حق کیدو په وخت کښې دهغوئ اثبات حق کیدې شی او د حق نه کیدو په وخت کښې به دقسم څخه په انکار به د اوصیاء حق ثابتیږی. نو وصیانو ته دقسم ورکولو دحکمت دوه برخے دی او ﴿يأتوا بالشهادة﴾ دواړو لره شامل دے اودغه شان وارثانو ته دقسم ورکولو د حکمت هم دوه برخے دی چه ددې دویمه برخه وصیانو ته دقسم ورکولو په ړومبئ برخه کښې وررننوتے ده او ړومبے شق د ﴿ اويخافوا﴾ مدلول دې نو د هرو دواړو قسمونو ورکولو په مجموعه کښې به د ټولو برخو لحاظ اوساتلې شی] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا﴾ اوالله ﷻ نه ویریږئ [په معاملاتو او حقوقو کښې دروغ مه وائې] او [دهغه احکام] وا ورئ [یعنی وے منئ] اوکه خلاف مو تړې اوکړو نو فاسقان به شئ] ﴿ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ الله ﷻ به فاسقانو خلقو ته [د قیامت په ورځ دفرمانبردارو د درجو طرف ته] لار خودنه نه کوی [بلکه دخلاصی موندو په وخت به هم دهغوی نه کم پاتې کیږی نو دغسې خسارے او زیان ته ولے غاړه ایږدئی].

## معارف اومسائل

**مسئله** ① چاته چه مړی مال په دې غرض سپارلې وی چه چاته دهغې ورکړه د اوکړې شی نوهغه ته، وصی ،وتیلې شی ، وصی ،یوکس هم کیدې شی اوګنړهم-

**مسئله** ② داخبره زیاته غوره ده چه،وصی ،دمُسلمان اوعادل وی خواه دسفرپه حالت کښې وی یادکورکلی په حالت کښې،لیکن لازم اوضروری نهٔ ده.

**مسئله** ③ دجګړې په صُورت کښې دزیاتی څیزثابتوونکې ته مُدعی وائی اوبل اړخ ته مدعاعلیه وائی

**مسئله** ④ اول به دمُدعی نه ګواهان طلب کولې شی که هغه دشرعی ضابطې مُطابق پیش کړل نومُقدمه به هم هغه ګټی اوکه پیش ئې نه کړې شو نومُدعاعلیه ته به قسم ورکولې شی چه مُقدمه به دې ګټی اوکه دې قسم نه انکار اوکړی نومُدعی به مُقدمه ګټی-

**مسئله** ⑤ دمقام یازمانې په لحاظ قسم سختول دحاکم په رائې انحصار لري څنګه چه په آیت کښې بیان شو، خولازم اوضروري نه دی، دذې آیت نه نې هم لازمیدل نه ثابتیږي اونوروآیتونونه نې اطلاق[مطلق کیدل] ثابتیږي-

**مسئله** ⑥ که مُدعاعلیه دغیر[یعني د خان نه علاوه د بل چا د] فعل په باره کښې قسم خوري نوالفاظ به نې داوي چه ماته دذې فعل څه خبرنشته-

**مسئله** ⑦ که دمیراث په مُقدمه کښې وارث، مُدعاعلیه وی نوچاته چه په شریعت کښې میراث رسیږي قسم خوړل به په هغوئ راځي که هغه یووی اوکه ګنړ وي، اوچه کوم وارث نه وی نوقسم به په هغه نه راځي-[بیان القرآن]-

**د یو کافر په معامله کښې د بل کافر ګواهي قابل قبول ده**: ﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ﴾ تر﴿أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ﴾ په دې آیت کښې مسلمانانوته حُکم ورکړې شویدې چه کله په تاسوکښې څوک مړکیږي نودوه داسې کسان وصیان جوړکړئ چه هم دتاسو څخه اونیکان وی اوکه دخپل قوم کسان دغلته نه وی نودغیرقوم[کافرانو] نه نې جوړ کړئ-

دې نه امام ابوحنیفه دامسئله راوېستلې ده چه دکُفاروخپل منځ کښې یوبه بل ګواهي ورکول جائزدی-ولې چه په دې آیت کښې دکُفاروګواهي په مُسلمانانوباند رواګرځولې شویده لکه فرمائی چې ﴿أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ﴾نود کُفاروبه خپل منځ کښې دخنوبه څخه باند ګواهي ورکول په طریق اولی سره رواشو، لیکن وروسې نازلیدونکی آیت لکه ﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ﴾ تر-﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ﴾پورې- دکُفاروګواهي ورکول په مُسلمانانوباند منسوخ شوالبته دهغوئ خپل منځ کښې په یوبل باند ګواهي ورکول هم هغه شان باقی پاتې دی[قرطبی، احکام القُرآن دجصاص]-([24])

دامام اعظم دمسلک تائید دهغې حدیث نه هم کیږي چه یویهودي هرکله چه زنااوکړه نوخپلو خلقوئې دهغه مخ تورکړو اودرسول الله ﷺ په وړاندې ئې پیش کړو، هغوئ په دې باره کښې تپوس اوکړو نودهغه خلقوورته عرض اوکړو چه ده زناکړیده، چه ګواهي پر اوشوه نوهغوئ دهغهٔ دسنګسارولوحُکم ورکړو[جصاص]([25])

**څه د یو کس په بل باندې حق وی نو هغه قید کولې شي**: ﴿تَحْبِسُونَهُمَا﴾ ددې آیت نه یواصول دامعلُوم شو که د یو کس په بل کس باندې حق واجب وی نوددغه حقدارد خپل حق په خاطرهغه دضرورت په وخت قید کولې شي-

﴿مِنْ بَعْدِ الصَّلَوٰةِ﴾ د،صلوة،نه دمازیګرمُونځ مُراددې، داوخت ځکه اوټاکلې شو چه اهل کتابوبه ددې وخت ډیرتعظیم کولو، دروغ ونیل، خصوصاپه دې وخت کښې ددوئ په نزد ناروا وو-معلُومه شوه چه په قسم ورکولوکښې دیوخاص وخت یاخاص مقام دقیدلګولوبه وجه سختی پیدا کول روا دی[قرطبی]-([26])

---

[24] ) أحكام القرآن للجصاص، سورة المائدة، باب فى شهادة اهل الذمة بعضهم على بعض: ج ٦، ص ٢٠٨، وتفسير القرطبي: ج ٦، ص ٣٥١

[25] ) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ٣٥٢

[26] ) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ٣٥٣

يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ

| هغه ورځ | چې راجمع به کړي الله | تول پيغمبران | نو اوبه وائي | چې څه

| په کومه ورځ چې الله ﷻ تول پيغمبران راجمع کړي | نوتپوس به ترې اوکړي

أُجِبْتُمْ ط قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ط اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ۝

جواب درکړې شو تاسوته | اوبه وائي هغوئ | نشته هيڅ علم | مونږته | بيشکه ته | هم ته | ښه عالم يې | په پټو خبرو

چې تاسوته څه جواب درکړې شوې وو | هغوئ به اووائي مونږ ته هيڅ پته نشته | بيشکه ته په پټوخبروډېرخبردار يې

اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ ۘ

کله چې به | اووائي الله | اې عيسى | خوېه | دمريم | ياد کړه | نعمت زما | په تا باندې | اوپه مور ستا باندې

کله چې به الله ﷻ اووائي چې عيسى خوئې دمريم، ماچې کوم نعمتونه په تا اوستا په مورباندې کړي وو هغه يادکړه

اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ قف تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ

کله چې | ما مضبوط کړې وې ته | په روح پاک [جبريل] سره | تابه خبرې کولې | دخلقو سره | په زانګو کښې

کله چه ما په روح القدس سره ستا مدد کړې وو | تاسو په زانګو کښې هم خلقو سره خبرې کولې

وَكَهْلًا ۚ وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ

اوپه زوړوالي کښې هم | اوکله چې | ما اوخودو تاته | کتاب | اوحکمت | اوتورات

اوپه بوډاتوب کښې هم | .........اوماتاته.............کتاب..............اوحکمت..........او تورات

وَالْاِنْجِيْلَ ۚ وَاِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِيْ

اوانجيل | اوکله | چې به تاجوړول | دختې نه | په شان د شکل | دمارغه | په حکم زما سره |

اوانجيل اوښودل | اوکله چې به تا زما په حکم دختې نه دمرغئ شکل جوړولو

فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ

نو تابه پوکې کولو | په هغې کښې | نو شو به | مارغه | په حکم زما سره | او تاروغول | مورزادي ړوند

او تا به په هغې کښې پوک وهلو | نو هغه به زما په حکم مرغئ شوه | اوتابه روغول مورزا ده ړانده خلق

وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِيْ ۚ وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِاِذْنِيْ ۚ

اوچې لاس خپې يې برګ وو | په حکم زماسره | اوکله چې | به تاراايستل | مړي | په حکم زماسره

اوزما په حکم دې جذاميان خلق روغول | ..........او ځما په حکم به دې مړي ژوندي کول

وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ اِذْ جِئْتَهُمْ

اوکله چې | منع کړل ما | بني اسرائيل | ستانه | څه وخت چې | راغلې ته هغوئ ته

اوڅه وخت چه ما بني اسرائيل تاته د نقصان دررسولو نه بند کړل | په هغه وخت کله چې ورته تا

بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

دښکاره نښو سره | نو اووئيل هغه کسانو | چې دحق نه منکر وو | دهغوئ نه | چې نه دې دا | مګر |

ښکاره نښې پيش کړې | نو کوم خلق چې کافران وو هغوئ اووئيل چې دا | معجزې خو

| سِحْرٌ | مُّبِيْنٌ۞ |
| --- | --- |
| جادو | ښکاره |
| ښکاره باره جادو دي | |

## آسان ترجمه قرآن

هغه ورځ یادة کړئ چه الله به ټول رسولان راجمع کړي، او وو به وائی چه تاسو ته څه جواب درکړې شوې وو؟ نو هغوی به وائی چه "مونږ ته څه علم نشته، د پټو خبرو ټول علم هم تا ته دې (دا واقعه به په هغه ورځ وی) چه کله الله ووائي چه: "اې عيسی ابن مریم ځما انعام یاد کړه چه ما په تا او ستا په مور باندې کړې وو، چه کله ما د روح القدس په ذریعه ستا امداد کړې وو تا د خلقو سره په ځانګو کښې هم خبرې کړې وې او په بوډاوالي کښې هم، او چه کله ما تا ته د کتاب او د حکمت او د تورات او د انجیل تعلیم درکړې وو، او چه تا به ځما په حکم باندې کله خاورة واغسته او د مارغه پشان شکل به دې جوړ کړو بیا به دې هغې کښې پو کې ووهلو نو هغه به ځما په حکم باندې (صحيح) مارغه جوړ شو، او تا به مادر زادة ړوند او برګې مرض والا ځما په حکم باندې بنه کولو، او چه کله به تا ځما په حکم باندې مړو لره ژوندي کول، او چه کله ما بني اسرائيل هغه وخت ستا نه لرې کړل چه کله ته هغوی ته په واضحه دلائلو سره راغلې وې ،او هغوی کښې چه کوم کافر وو هغوی وئيل وو چه دا د صفا جادو نه سوا نور څه نه دي.

**دآيتونو ربط** :: پورته مختلف احکام ذکر شو. او ددې په مينځ کښې په دې باندې دعمل کولو ترغيب او ددې په مخالفت باندې ترهيب فرمائيلې شوې دې. هم ددې په تاکيد کښې راتلونکې آيت مبارك کښې د قيامت د سختې ورځې ذکر کولې شی. او ددې وجه داده چې په اطاعت باندې په سختئ سره قائم اودرېږی او مخالفت نه منع شی. او د قرآن کريم اکثر هم دا طرز دې. بيا دې سورت په آخر کښې د کتاب مکالمه ذکر اوفرمائيله. او دا ددې نه په مخکښې آيتونو کښې ذکر شوې ده. اوددې مقصد اهل کتابو ته دعيسی ﷺ متعلق څينې مضامين آورول دی، او په دې کښې دهغوئ د عبديت اثبات او د الوهيت نفی ده. [اګر چې ددې خطاب واقع کيدل به په قيامت کښې وی]

## خلاصه تفسیر

﴿يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ﴾ [هغه ورځ به څنګه هيبتناکه وی] په کومه ورځ به چه الله ﷻ ټول پيغمبران [سره دهغوی د امتونو] راجمع کوی ﴿ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ ﴾ بيا به [دهغوی دنافرمانه امتيانو د زړونې ورکولو دپاره هغوی ته د آورولو په غرض] ارشاد اوفرمائی چه تاسو ته [ددغې امتيانو له طرفه] څه جواب درکړې شوې وو ﴿ قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ﴾ هغوی به عرض اوکړی چه [ظاهری جواب خو ئې راته معلوم دے او بيان به يئ هم کړی ليکن دهغوی د زړونو دخبرو] مونږ ته هيڅ خبر نشته دې [هغې لره هم ته پيژنی ولې چه] ﴿اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ۞﴾ ته بيشکه په پټو خبرو پوره پوره علم لرونکې ئې [مطلب دا چه يوه ورځ به داسې وی چه دعملونو او احوالو لټون به کيږی څکه تاسو لره پکار دی چه مخالفت اونافرمانئ کولونه په مخه ويريږنی اوپه دغه ورځ به عيسی ﷺ سره يو خاص قسم خبرے اترې وی] ﴿ اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ ﴾ کله چه الله ﷻ [ورته] اوفرمائی چه اې عيسی ﷺ خوئې د مريم زما انعام رایاد کړه [چه خوندئې تازه

شی] ﴿ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ ﴾ چه په تا او ستا په مور بی بی مے [په مختلفو وختونوکښې په مختلفو صورتونوسره کړې وو لکه] ﴿ اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ﴾ کله مے چه په روح القدس [یعنی جبریل علیه السلام] سره امداد او تائید درکړو [او] ﴿ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ﴾ تابه خلقو سره [په دواړو حالتونوکښې یو شان] خبرے کولې [دمورېی بی] په غیږ کښې هم اوپه پوخ عمر کښې هم [په دواړه قسمه خبروکولو کښې څه فرق نه وو] ﴿ وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴾ اوکله مے چه درته [آسمانی] کتابونه اودپوهے خبرے او [خاص طورسره] دتورات او انجیل تعلیم درکړو ﴿ وَاِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِيْ ﴾ اوکله به دے چه دختے نه داسې شکل جوړ کړو څنګه چه د مارغه شکل وی زما په حکم سره ﴿ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ ﴾ بیا به دے هغې [جوړ کړی شکل کښې پوکے کولو چه هغې نه به په رښتیا یو سادار] مارغه جوړیدو زما په حکم سره ﴿ وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِيْ ﴾ اوتا به ښه کولو پیدائشی ړوند اودبرص [جزام] رنځور زما په حکم ﴿ وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِاِذْنِيْ ﴾ اوکله به چه تا مړو لره [دقبرونو نه] راویستل [او ژوندی کولوسره به دې] اودرول زما په حکم ﴿ وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ ﴾ اوکله چه ما بنی اسرائیلو لره [یعنی بعضو لره کوم چه ستاسو مخالف وو] تاسو نه [یعنی ستاسو د وژلواو هلاکولو نه] بنداوساتل ﴿ اِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ﴾ کله [چه هغوی تاسو ته ضرر رسول اوغوښتل په دې سے حال کښې] چه تاسو هغوی ته [دخپلے پیغمبرئی] دلیلونه [معجزات] راوړلی و ﴿ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ ﴾ بیا چه په هغوی کښې څوك کافر وو هغوی وئیلی وو ﴿ اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴾ چه دا [معجزات] سوا د ښکاره د جادو نه بل هیڅ هم نه دی.

## معارف اومسائل

**په قیامت کښې به دټولونه اول تپوس دپیغمبرانو علیهم السلام نه کولې شی:** ﴿يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ﴾ د قیامت په ورځ به اګرچه داول نه ترآخره پورې پیداکیدونکی ټول انسانان په یوپرانستی میدان کښې ولاړوی خواه هغه دهرملک اودهرې زمانې انسانان چه وی، هریونه به دټول عمرحساب کتاب اغستې شی خودلته په خصوصیت سره دپیغمبرانو علیهم السلام بیان داسې راغلو:

﴿يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ﴾ [هغه ورځ یاده کړئ په کومه ورځ به چه الله جل جلاله ټولورسولانو لره دحساب کتاب دپاره جمع کړی] ددې مطلب دادې چه اګرکه دټولې دُنیاانسانان به هم دغلته راجمع کړې شوی وی خوړومبې به تپوس دپیغمبرانو علیهم السلام نه خکه کولې شی چه ټولـه دُنیاپه دې پوهه شی چه په نن ورځ هیڅوک دحساب کتاب اوسوال، جواب نه مستثنی اوخلاص نهٔ دی، رسولانونه به داسې تپوس کولې شی ﴿مَاذَآ اُجِبْتُمْ﴾ یعنی هرکله چه تاسوخپل خپل اُمتونه الله اودهغه دحق دین اړخ ته راؤبلل نودغې خلقوڅهٔ جواب درکړې وو؟آیا، هغوئ ستاسوپه ښودلواحکاموباندعمل اوکړو یاانکاراومخالفت ئې تر اوکړو؟-

ددې تپوس مخه به اګرچه دپیغمبرانو علیهم السلام اړخ تـه وی مګرمقصُودبهٔ ئې دهغوئ اُمتونو تـه آؤرول وی چه هغوئ ددغه اُمتونوپه نیک اوبدعملونوباند دټولو څخه اول ئې پیغمبران ګواهار جوړکړې شی-اُمتونو دپاره به داوخت نازك خکه وی چه هغوئ به دسختې پریشانئ په دې موقعه دهغوئ دشفاعت په طمع وی، خودالله جل جلاله ددې تپوس په جواب کښې بـه هغوئ د واقعاتو په حلاف څهٔ خبره نشی کولې- مُجرمان اوګهنګاران به په دې سره نورزیات اندیښمن شی چه هرکله

زمونږ په جرمونو باند زمونږ پیغمبران گواهان جوړ شي نو بل څوک به زمونږ شفاعت یا مدد اوکړي شي؟ انبياء ﷺ به د دغې تپوس جواب داسې کوی ﴿قَالُوا لَا عِلْمَ لَنَا ۖ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ یعنی مونږه د دوئ د ایمان او عمل هيڅ خبرنۀ لرو، تاسو پخپله دغيبو د ټولو څيزونو نه پوره خبریې-

**یوو شبهې ازاله کول**: دلته یو سوال داپیدا کیږی چه دپیغمبرانو دوفات نه پس دامتیانو د ایمان اوعمل په حقله خود پیغمبرانو ﷺ دغه جواب به صحیح اوصفاوی چه مونږ ترخبرنۀ یو-ولې چه دغيبو علم سوا دالله ﷻ به بل هيڅوک نۀ لری لیکن هر کله چه دپیغمبرانو ﷺ په حیات کښې هم په گنړ شمير کښې امتیان دهغوئ په وړاندې وو، هم دهغوئ په لاس ئې اسلام قبول کړې وو- اودهغوئ په راوړلی احکامو باند ئې عمل کړې وو، دغه شان نافرمانه کافران هم دهغوئ په وړاندې وو کوموچه دانبیاؤخبره نۀ وه منلې بلکه مخالفت اودشمنی ئې ورسره کول. دداسې خلقو په باره کښې به داځنگه صحیح شی چه مونږ ته ددوئ دایمان اوعمل څه علم نشته؟

دتفسیر بحر محیط([27]) په حواله امام ابوعبدالله رازی ددې په جواب کښې اوفرمائیل چه دلته دوه څیزونه بیل بیل دی یو علم دې چه معنی ئې یقین کامل ده او بل ظن دې چه معنی ئې غالب گمان دې، ښکاره خبره ده چه خپلې مخې ته دموجود انسان په ایمان اوعمل باند گواهی ورکول، صرف دگمان دغلبې په اعتبارسره ورکولې شی، که داسې نۀ وی نودزړونو درازاودحقیقی ایمان تعلق زړۀ سره وی هغه هیچاته په یقینی توگهد وحی الهی نه بغیر نه نشی معلومیدلې په هر امت کښې د منافقانو ډلې پیدا شوی دی چې په ظاهره په ایمان هم راوړلو او، په احکامو به ئې عمل کولو خو په زړونو کښې ئې ایمان نۀ وو اونۀ ئې دتابعدارئ کولو څه جزبه لرله، اوداشان په دنیاکښې ئې داټول هرڅه دریاکارئ وو- هرکله چه ټولو دنیوی احکامو په ظاهری عملونو باند اړه لرله چابه چه خپل مسلمانی ښکاره کوله، دخداوندی احکامو تابعداری به ئې کوله اوداسلام اوایمان خلاف هيڅ قول اوعمل ترنه صادر شوې نۀ وونو پیغمبران ﷺ اودهغوئ امتونه په دې مجبوره وو چه دغسې کسانو ته مؤمن صالح اووائی خوا هغوی په زړۀ کښې مؤمنان مخلصان وو یا منافقان وو، په دې وجه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: [نحن نحکم بالظواهر والله متولی السرائر]([28]) مونږ خو په ظاهری عملونو باند حکم جاری کوؤ دزړونو دپټورازونو متولی [قابو لرونکې] پخپله الله ﷻ دې-

ددې ضابطې له مخه، په دنیاکښې خو انبیاؤ ﷺ اودهغوئ نائبانو، اوخلیفگانو، عالمانو به دحسن ظن [نیک گمان] په بنیاد داسې گواهی ورکولې شوه چه دامؤمن صالح دې لیکن نن دغه عالم دنیاختم شو چه ټوله اړه ئې په ظن اوگمان لرله خواوس میدان محشر دې چه دذرې تپوس به کیږی، اصلیتونه حقیقتونه به ښکاره کولې شی، دمجرمانو په باره کښې به اول دنورو گواهی اغستې شی، که په دې باند دمجرم تسلی اونشې اودخپل جرم اقرارئې اونکړو نو خاص قسم سرکاری گواهان به په کار راوستې شی، په ژبه اوخله به ئې دخاموشئ مهر اووهلې شی، دهغه دلاسونو، خپو اوځرمنې پوستکی نه به ئې گواهی اغستې شی، دغه څیزونه به دهر فعل پوره حقیقت بیانوی ﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ انن ورځ به مونږ ددوئ په خلو باندې مهر اولگوؤ او ددوئ لاسونه او پښې به د هغه کارونو او عملونو گواهی

---

[27] ) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٣٩

[28] ) مسند الشافعي رقم الحديث: ٨، باب الإيمان والاسلام، وأسنى المطالب رقم الحديث: ٢٤٩

ورکوی چې دوئ په دنیا کښې کول! دغه وخت به انسانانوته معلومه شی چه ددوئ ټول اندامونه درب العالمین خفیه پولیس وو، چه داپر ګواهی اوکړی نودانکار هیڅ لارې به نې پاتې نشی-
خُلاصه داشوه چه دهغې جهان، هیڅ یوحُکم به خالص په ګُمان او اندازه باند نهٔ چلیږی بلکه په علم اویقین باند دهرڅیز اډانړه وی، داخواوس درته معلومه شوه چه دچا، دایمان اوعمل، حقیقی او یقینی علم، سوادالله ﷻ نه بل هیڅوک نهٔ لری، په دې بنا، هرکله چه دقیامت په ورځ به د پیغمبرانو ﷺ نه داتپوس اوشی چه: ﴿مَاذَآ أُجِبْتُمْ﴾ نوهغوئ به ددې تپوس په حقیقت پوهه شی چه دا تپوس په دُنیاکښې نهٔ، بلکه په محشر کښې کیږی څکه به نې جواب دظن اوتخمین په بُنیاد به نهٔ بلکه دیقین په بُنیاددامې ورکړی چه مونږ هیڅ علم نهٔ لرو چه مُناسب اوصحیح به همدغسې وی-
**یوسُوال ،دهغې جواب اودانبیاء ﷺ دانتهائی شفقت بکاره کیدل**: دلته داسؤال پیداکیږی چه د اُمتونو احکام قبلول یا نهٔ قبلول او د فرمانبرداریٔ کولو یانهٔ کولو کوم واقعات چې هغوئ ته وربیښ شو دې سره هغوئ ته څومره غالب ګُمان حاصل شو، د هغه سوال په جواب کښې هغه بیانول پکار وو، اودیقینی علم حواله په الله ﷻ کولې شی، لیکن دلته انبیاؤ ﷺ دخپلو معلُوماتو اوددوئ په وړاندې د تیروشوؤ واقعاتو بیان اونکړل بلکه دعلم الهی په حواله ئې کړل اوخاموش یې اختیار کړه.
ددې حکمت دادې چه انبیاء ﷺ په خپلو اُمتونواوعاموخلقوباند بې انتهامهربانه وی دهغوئ په باره کښې به داسې خبره کول نهٔ غواړی چه دهغې له کبله په ګرفت کښې راشی، البته که څه مجبورې وې نووئیلې به وو، دلته به دعلم یقینی دنیشتوالی عُذرېې هرکله چه موجود وی نوپه دغې بُنیادبه پر ګواهی اونکړی، اودخپلو اُمتیانوپه خلاف دڅه وئیلونه به ځان بچ کړی-
**په محشرکښې دپنځو څیزونو سُوال**: خُلاصه داشوه چه په دې آیت کښې دقیامت دهیبتناکې د نتدارې یوه معمُولی برخه مخې ته راوستې شوه چه هرکله دحساب کتاب په موقعه دټولونه زیات غوریز بندګان دالله ﷻ پیغمبران ﷺ به وړاروی اولړزیږی به، نودنورو به څه حال وی لهذا ،نن نه ددغې ورځې فکرکول پکاردی اودعُمردافُرصت ددغې حساب دتیاریٔ دپاره غنیمت ګنړل پکار دی، دترمذی شریف په حواله درسول الله ﷺ ارشاددې:
﴿لاتزول قدما ابن آدم يوم القيامة حتى يسئل عن خمس عن عمره فيما افناه وعن شبابه فيما ابلاه وعن ماله من اين اكتسبه واين انفقه وماذا عمل بما علم﴾ (۲۹)
یعنی دقیامت په ورځ به هیڅ یوانسان دخپل ځائې نه قدم نشی پورته کولې ترڅوچه دپنځو څیزونو تپوس تراونکړې شی- یوداچه هغه دخپل عُمراوږدې شپې ورځې په څه شان تیرې کړې، دخوانیٔ عمرئې څنګه تیرکرو، کوم چه په خصوصیت سره دعمل زمانه وه، دټول عُمرمال دولت ئې دکوم ځائې نه په څه شان پیداکړې اوګټلې وو؟ اوپه کوموځایُونواوڅیزونو کښې نې بیااولګولو؟ په خپل علم ئې څه عمل اوکړو؟
هرکله چه الله ﷻ دبې انتهارحمت اوشفقت خاوند دې،نوددې امتحان دسوالاتوپرچهئې یې وړاندې درسول الله ﷺ په ذریعه دې اُمت ته اوښودله،اوس صرف ددغې سوالاتو دحل کولو طریقه زده کول اودهغې محفُوظ کول پاتې دی،دامتحان نه وړاندې دسوالاتو ښودلونه پس هم که څوک پکښې فیل شی نوهغه نه به زیات بې نصیبه بل څوک وی؟

(۲۹) جامع الترمذی، أبواب صفة القیامة، باب ما جاء فی شان الحساب الخ: ج ۲، ص ۶۷

**حضرت عیسیٰ علیه السلام سره خصوصي سوال، جواب:** په رومبی آیت کښې دعاموپیغمبرانو علیهم السلام دحال اوسوال، جواب بیان وو، په درنیم آیت کښې اوبیا وړسې هم، دسورت ترختمیدو پورې، په نهو آیتونو کښې په خصوصیت سره دبنی اسرائیلو دآخری پیغمبرحضرت عیسی علیه السلام اوپه هغوئ باند دالله ﷻ دمخصوصوانعاماتوڅه تفصیل بیان شویدې، دغه شان په محشرکښې، دهغوئ نه دیو خصوصي سوال اودهغې دجواب ذکردې چه دې پسې په نوروآیتونوکښې راروان دې۔

ددې سوال، جواب حاصل هم، بنی اسرائیلو اوټول مخلوق ته داهیتناکه ننداره ښودل دی چه هرکله په دغه میدان کښې به دروح الله اوکلمة الله نه سوال کیږي چه آیا تاسو خپل امت او خلقو ته وئیلي ووچې ما او زما مور لره دالله ﷻ نه سوا نور الهان جوړ کړئی چې د هغه په بنیاد ستاسو امت، تاسولره دالله ﷻ شریک ګرځولي وو۔هغوئ باند به سخت هیبت راشي اوهم په دغه هیبت کښې به بیابیاپه مختلف اندازکښې ددې نفی کوی، فرمائي چه ماورته دغه تعلیم نهٔ وو ورکړې، په سره ددې چه ډیره غزتمنه لویه اوپاکیزه هستی ده، دالله ﷻ برګزیده پیغمبردې –

اول به داسې عرض اوکړی: ﴿سُبۡحَٰنَكَ مَا يَكُونُ لِيٓ أَنۡ أَقُولَ مَا لَيۡسَ لِي بِحَقٍّ﴾ [یعنی تهٔ پاک ئې، زماڅه قدرت وو چه داسې خبره م کړې وې چه د هغې خبرې د کولو حق مې نه لرلو]۔

په بل اندازکښې به خپله صفائي داسې هم پیش کړی چه الله ﷻ لره به په خان ګواه کړي اووائی به چه که دغسې م وئیلي وې نوضروربه ئې تاته علم وو خکه چه قول اوفعل خولاڅه کوی، تاته خوزما دزړهٔ رازونه هم معلوم دی، ولې چه تهٔ خو﴿عَلَّٰمُ ٱلۡغُيُوبِ﴾ ئې ددې ټول تمهیدنه پس به داصل سوال جواب ورکوی۔

**دحضرت عیسیٰ علیه السلام جواب دالله ﷻ په دربارکښې:** ماخوهغوئ ته هغه تعلیم ورکړې وو، دکوم دچه ماته حکم راکړې وو، ﴿أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمۡ﴾ [یعنی دالله ﷻ عبادت کوئ چه زما او ستاسو [دواړو] پروردګاردې]بیاددې تعلیم نه پس ترڅو چه زهٔ په دغې خلقوکښې موجودوم نودهغوئ دقول اوفعل ګواه وم [تردغه وخته پورې په هغوئ کښې هیچاهم دغسې نهٔ وئیل] چه کله دزهٔ بره [پورته] اوخیژولم نوبیادغه خلق هم ستاپه نګرانئ کښې وو، هم تهٔ دهغوئ دخبرواوافعالونه پوره واقف ئې]۔

**په حضرت عیسیٰ علیه السلام باند دیو څومخصوصوانعاماتو ذکر:** په دې آیتونوکښې دحضرت عیسیٰ علیه السلام کوم سوال، جواب چه ذکرکړې شویدې ددې نه وړاندې دهغه مخصوصوانعاماتوهم ذکردې چه په خصوصي ډول، په حضرت عیسی علیه السلام باند کړې شوی وو اودمعجزاتو په ډول ورکړې شوی وو، په دغې مجموعه کښې یوارخ ته دخاصو انعاماتو اوبل اړخ ته دجواب طلبئ په ننداري ښودلو سره دبنی اسرائیلو هغه دواړو قومونوته خبرداري ورکړې شویدې، چه یوخوئې دهغوئ سپکاوې اوکړو، قسماقسم تورونه ئې پر پوري کړل اووې تزنولو، اوبل قوم، خدائي، یادخدائي خوئې اوګرځولو- دانعاماتو په یادولوسره ئې رومبی قوم ته اودسوال، جواب په ذکرکولوسره ئې بل قوم ته خبرداري ورکړو، په دې موقعه چې دکوموانعاماتو تفصیلي بیان په ګنړو آیتونو کښې شویدې، دې کښې یوجملـه دزیات غورفکرکولوجوګه ده هغه داده ﴿تُكَلِّمُ ٱلنَّاسَ فِي ٱلۡمَهۡدِ وَكَهۡلٗا﴾ [یعنی یوه خصوصي معجزه، حضرت عیسی علیه السلام ته داورکړې شوې وه چه هغوئ به دماشو متوب په حالت کښې هم اودپوخ عمرپه حالت کښې هم خبرې کولې]۔

رومبئ معجزه ئې خصوصي انعام کيدل ښکاره خبره ده، ولې چه پيدا کيدونه پس سمدستي خوځوک ماشوم دخبرو کولوجوګه نه وي، که يوماشوم دموريه غيږ يا په خانګو کښې خبرې کوي نودا، دهغه خصوصي بيلتون او خصوصيت کيدې شي خوپه پوخ عمر کښې خبرې کول دبيانولو او ذکرکولو وړه خبره نه ده، ځکه چه هرانسان په دې عمر کښې خبرې کوي. ليکن که دحضرت عيسى عليه السلام په خصوصي حال باند غوراوکړې شي نو دې معجزه کيدل به هم په ډاګه شي، ولې چه حضرت عيسى عليه السلام، پوخ عمر ته درسيدونه وړاندې آسمان ته اوخيژولې شو، اوس ددې ځائې [زمکې] خلقوسره په دغه عمر کښې هله خبرې کولې شي چه دوباره دې زمکې ته [دآسمان نه] تشريف راوړي، ځنګه چه دمسلمانانو اجماعي عقيده ده اودقرآن اوسنت دډاګيز خبرونه ثابته ده، معلومه شوه چه په دې شان دې خلقوسره په دغه عمر کښې خبرې کول دحضرت عيسى عليه السلام خصوصي معجزه ده ځنګه چه په ماشومتوب کښې خبرې کول ئې خصوصي معجزه وه-

وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ اَنْ اٰمِنُوْا بِيْ وَبِرَسُوْلِيْ ۚ

| اوکله چې اشاره اوکړه ما | حواريانو ته | چې ايمان راوړئ | په ما | اوپه رسول زما

| اوکله چې ما حواريانو ته [ستاپه خله] اشاره اوکړه | چې په ما اوخماپه پيغمبرانوايمان راوړئ

قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ اِذْ

اووئيل هغوئ | چې ايمان راوړو مونږ | اوګواه اوسه | چې بيشکه مونږ | مسلمانان يو | په دې باره کښې يادکړه کله

نوهغوئ اووئيل | چې مونږ ايمان راوړئ دې | او ته ګواه اوسه چې مونږ مسلمانان يو | اويادکړه هغه وخت

قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ

چه اووئيل | حواريانو | اې عيسى | خوې | دمريم | آيا | طاقت لري | رب ستا | چې نازل کړي

کله چې حواريانو اووئيل | چې ائې عيسى خوئې دمريم! آيا ستارب دا طاقت لري چې

عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ۗ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۲﴾

په مونږ باندې | يوه خوانچه | دآسمان نه | اووئيل هغه | اويريږئ دالله نه | که يئ تاسو | مومنان

چې مونږ ته د پورته آسمان نه خوانچه راوليږي | هغه اوفرمائيل چې دالله نه ويريږئ که تاسو مومنان يئ

قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا وَنَعْلَمَ

اووئيل هغوئ | غواړو مونږه | چې اوخورو مونږ | دهغې نه | اوچې مطمئن شي | زړونه زمونږه | اوچې معلومه شي مونږ ته

هغوئ اووئيل چې مونږ صرف داغواړو چې دهغې نه خوراک اوکړوا او زړونو ته مو اطمينان حاصل شي او مونږ ته

اَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۱۱۳﴾ قَالَ

داخبره چې | رښتيا وئيلي وو تا مونږ ته | اومونږ شو | په هغې باندې | دګواهانو نه | اووئيل

معلومه شي | چې تا مونږ ته هرڅه رښتيا وئيلي دي | اوپه دې خبره مونږ ګواهان شو | ......... اووئيل

عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ

عيسى | خوى | دمريم | اے الله | ربه زمونږه | نازل کړه | په مونږ باندې | خوانچه | دآسمان نه |

عيسى خوئې دمريم | چې ائې زمونږه ربه په مونږ باندې يوه خوانچه دآسمان نه نازله کړه

تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً

چي شي | دپاره زمونږه |دخوشحالۍ موقع |دپاره د ړومبنو زمونږه |او د روستنو زمونږه| اوپوه نښه وي

چي زمونږ دمخکښنو او روستنو خلقو دپاره د خوشحالۍ موقع شي | او د ته شان چي يوه نخښه هم

مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ قَالَ اللّٰهُ

ستا د طرفنه| اوروزي راکړه مونږ ته | او هم ته | بهتره | روزي ورکونکي ئې | اوونيل| الله

ستا د طرفه راشي | اومونږ لره روزي راکړه | اوته ډيربنه روزي ورکونکي ئې | ........الله ﷻ ورته اوونيل

اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ

زه | نازلونکي يم دهغې | په تاسو باندې | نو هغه څوك| چي کفر کوي|اروستو [دهغې نه]| ستاسو نه

چي زه تاسوته خوانچه راليږم| ..................خو ددې نه پس هم که تاسو کښې چا انکار اوکړو

فَاِنِّيْ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗ

نو بيشکه زه | به عذاب ورکوم هغه ته| داسې عذاب | چي نه به وي ورکړې ما هغه عذاب

نوزه به ورته داسې سخت عذاب ورکوم| چې هغه شان عذاب به ما

اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۱۵﴾

هيچا ته | په مخلوقاتو کښې |

په دنيا کښې هيچا ته نه وي ورکړې

## آسان ترجمه قرآن

اوکله چه ما د حواريانو په زړه کښې دا خبره واچوله چه: تاسو په ما او زما په رسول باندې ايمان راوړئ. نو هغوی ووئيل: چه مونږ ايمان راوړې دې او ته ګواه شه چه مونږ تابعدار يو. (اودهغوی دهغه واقعې ذکر هم واوره) چه کله حواريانو وئيلي وو چه: "اې عيسیٰ ابن مريم! آيا ستا پروردګار داسې کولې شي چه مونږ باندې دآسمان نه (دخوراك) يو دسترخوان راوليږی؟ عيسیٰ عليه السلام ووئيل چه: دالله نه وويريږئ که تاسو مؤمنان يئ هغوی ووئيل چه" مونږ دا غواړو چه دې دسترخوان نه وخورو ، او دې سره څمونږ زړونه مطمئن شي اومونږ ته (داول نه زيات) په يقين سره دا معلومه شي چه تا څه وئيلي دې هغه رښتيا دی، او مونږ دې باندې په ګواهي کونکوکښې شامل شو. عيسیٰ ابن مريم درخواست وکړوچه اې الله! مونږ باندې دآسمان نه يو دسترخوان راوليږه چه څمونږ دپاره او زمونږ د مخکښنواو وروستنو دپاره د خوشحالۍ يوه موقع جوړه شي او ستا دطرف نه يوه نښه وي او مونږ ته دا نعمت را کړې ، او ته دټولو نه بهتر ورکړه کونکې ئې .الله تعالیٰ ووئيل چه بې شکه څه به په تاسو باندې هغه دسترخوان راوليږم، خو دې نه وروستو چه چا کفر وکړو نوڅه به هغه ته داسې سزا ورکړم چه دنيا کښې به ئې هيڅ چا ته ورنکړم.

## خلاصه تفسير

﴿ وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ ﴾ اوکله چه ما حواريانو ته[ستاسو په خله] حکم ورکړو ﴿ اَنْ اٰمِنُوْا بِيْ وَبِرَسُوْلِيْ ۚ ﴾ چه تاسو په ما او زما په رسول [عيسی عليه السلام] باندې ايمان راوړئ ﴿ قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ ﴾ هغوی [جواب کښې تاسو ته] اوونيل چه مونږ [په الله اورسول يعنی په تاسو] ايمان

راوړو اوتاسو گواه اوسئ چه مونږ [دالله ﷻ او ستاسو] پوره فرمانبردار يو ﴿ اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ﴾ هغه وخت يادلو جوگه دے كله چه حواريانو [حضرت عيسى عليه السلام ته] عرض اوكړو چه ائې عيسى عليه السلام ابن مريم ﴿ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ﴾ آيا ستا پروردگار داسې كولې شي [يعنى لكه دخلاف حكمت كيدلو وغيره غوندې څه خنډ په دې كښې جوړيدے نشي] چه په مونږ د آسمان نه څه خوراكه [تياره پخ كړې] راكوزه كړى ﴿ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ هغوى اوفرمائيل چه الله ﷻ نه ويرېږئ كه تاسو ايمان دارېئ [مطلب دا چه تاسو خو ايماندار يئ په دې وجه دالله ﷻ نه اوويريږئ اود معجزے د فرمائش كولو نه خان ځكه ساتئ چه دا بےضرورته او دآدب نه خلاف دى].

﴿ قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا﴾هغوى اووئيل چه [زمونږ مقصد دبے ضرورته فرمائش كول نه دى بلكه ديوے ښيگړے په غرض ددې خواست داسې كوؤ چه] مونږ [يوخو] داغواړو چه [دبركت حاصلولو په غرض] دے نه اوخورو ﴿ وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا﴾ او [بل داغواړو چه] زمونږ زړونو ته [په ايمان باندې] پوره تسلي اوشى [اود تسلئ مطلب دادې چه] ﴿وَنَعْلَمَ اَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا﴾زمونږ دا يقين نورهم زيات شي چه تاسو [دپيغمبرئ په دعوى كښې] مونږ ته رښتيا وئيلى دى [ځكه چه خومره دليلونه زياتيږى هومره ددعوے يقين زياتيږى] ﴿ وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِيْنَ﴾ او [دريم دا غواړو چه] مونږ [دهغه خلقو په مخكښې چا چه دا معجزه نه ده ليدلے] دگواهئ وركوونكو نه شو چه مونږ داسې معجزه ليدلے ده دپاره ددې [چه دهغوى په مخكښې پيغمبرى ثابته كړې شو چه په دې درخواست كښې ددوى غرض صحيح دې نو الله ﷻ نه ئې] ﴿ قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ﴾ دعا اوغوښتله چه ائې الله ﷻ زمونږ پروردگاره په مونږ باندې دآسمان نه خوانچه نازله كړې ﴿تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا﴾ چه هغه [خوانچه] زمونږ دپاره يعنى په مونږ كښې چه اول [يعنى په موجوده زمانه كښې] دى او چه پس [ددې نه راتلونكى] دى ټولو دپاره يو دخوشحالئ خبره شى [د موجوده خلقو خوشحالى خو په خپلو مشرانو باندې دانعام كيدو په وجه اودا غايت او نتيجه خوخاص ده مومنانو سره] ﴿ وَاٰيَةً مِّنْكَ﴾ او [زما په پيغمبرئ] ستاسو د طرفه يوه نښانى شى [چه دمومنانو يقين زيات شى اوپه موجوده اوپه غيرو موجوده خلقو باندې حجت جوړشى اودا مقصد مومنانو او نورو دپاره عام دې] ﴿وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴾ اوته مونږ ته هغه [خوانچه] راكړې اوته دټولو وركوونكو نه ښه ئې [ولے چه د ټولو وركړه دخپلې نفعے دپاره وى او ستا وركړه دمخلوق دفائدې دپاره ده په دې وجه مونږ دخپلو منافعو په پيش كولو سره ستانه د خوانچے خواست كوؤ] ﴿ قَالَ اللّٰهُ اِنِّىْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ﴾ الله ﷻ [ورته په جواب كښې] ارشاد اوفرمائيلو چه [تاسو خلقو ته اووائې چه] زه دغه خواره په تاسو باندې [دآسمان نه] نازلوونكے يم ﴿ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ﴾ بياچه څوك په تاسو كښې دے نه پس به [ددې] ناحق شناسى كوى يعنى دعقل او نقل له مخے به [ددې حقوق واجبه نه ادا كوى] ﴿ فَاِنِّىْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ﴾ نو زه به ورته داسې سزا وركوم چه دغه سزا به [ددغې وخت] ﴿ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ﴾ ددنيا په خلقو كښې چا ته نه وركوم.

## معارف اومسائل

**مؤمن له پکاردي چه مُعجزې نه طلب کوي** ﴿قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ [چه حوارینوحضرت عیسی علیه السلام نه دآسمان نه دخوانچې دنازلیدوغوښتنه اوکړه نوهغوئی ورته جواب کښې اوفرمائیل چه که تاسوایمانداریئ نوالله ﷻ نه ویرېږئ] دې نه معلومه شوه چه ایماندار بنده لره نۀ ښائ چه په داسې فرمائشونوکولوسره الله ﷻ لره اوآزمائي اوهغه نه دخلاف عادت څیزونوغوښتنه اوکړي بلکه پکاردي چه روزي وغیره په هغه ذریعو سره طلب کړي کوم چه قدرت مقرر کړیدي۔

**کله چه نعمت ډیرزیات لوئي وي نودناشکرئ وبال هم لوئي وي** ﴿فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ﴾ ددې آیت نه معلومه شوه چه کله نعمت ډیرلوئې اودلوئې شان وي نودهغې دشکر ګذارئ تاکیدهم ډیرزیات کیدل پکاردي اودهغې په ناشکرئ به عذاب هم ډیرسخت او غیرمعمولي وي۔

مائده دآسمان نه راکوزه [راکښته] شوې وه اوکه نه؟ په دې باره کښې دمفسرینو حضراتو اختلاف دې، جمهورددې دنازلیدو قائل دی چنانچه دترمذی په یوحدیث کښې دحضرت عماربن یاسر رضي الله عنه نه منقول دی چه مائده [خوانچه] دآسمان نه نازله شوې وه، په هغې کښې روټئ اوغوښه وه اوپه دغه حدیث کښې داهم شته چه دغه خلقو [یعنی څنې کسانو] خیانت اوکړو اوصبادپاره ئې اوساتله نودبیزوګانو [شادګانو] اوخنزیرانوپه شکل شو، ([30]) [نعوذبالله من غضب الله]۔

اوددې حدیث نه داهم معلومیږی چه دې نه به دغې خلقوخوړل، څنګه چه په ، تاکل کښې دهغوئ داغرض هم ښکاره کړې شویدې البته راتلونکی وختونودپاره ئې ساتل منع کړې شوې وو۔ [بیان القرآن]۔

| مَرْيَمَ | ابْنَ | يٰعِيْسَى | قَالَ اللّٰهُ | وَاِذْ |
|---|---|---|---|---|
| دمریم | خویه | اې عیسی | اووئیل الله | او هرکله چې |

[اددې احساناتویادولو نه پس] الله ﷻ درته وائی چې اې عیسی خوئي دمریم

| ءَاَنْتَ | قُلْتَ | لِلنَّاسِ | اتَّخِذُوْنِيْ | وَاُمِّيَ | اِلٰهَيْنِ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| آیا تا | وئیلي ووٚ | خلقو ته | اچې اونیسئ ما | اومور زما | دوه خدایان | ماسوا دالله نه |

آیاتاخلقو ته وئیلي وو | چې دالله ﷻ نه سوا مااوزما مور دواړه معبودان جوړ کړئ

| قَالَ | سُبْحٰنَكَ | مَا يَكُوْنُ | لِيْٓ | اَنْ اَقُوْلَ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| [نو] اوبه وائي عیسی | پاکي ده تالره | نۀ دی مناسب | ما لره | چې اووایم زۀ | هغه خبره |

هغه به اووائي چې پاکي تالره ده | مادا څنګه کولې شو چې هغه خبره مې کړې وی

| لَيْسَ | لِيْ | بِحَقٍّ | اِنْ كُنْتُ | قُلْتُهٗ | فَقَدْ | عَلِمْتَهٗ | تَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې نشته | ماته | حق | که وم زۀ | اچې وئیلي وې ما دا خبره | انوبیشکه | معلومه به وې تاته | معلوم دی تاته |

چې ماته ئې حق حاصل نه دې | که ما وئیلي وې نو هغه به تا ته ضرور معلوم وې | تاته ښۀ معلوم دی

---

[30] جامع الترمذي، أبواب التفسير، ومن سورة المائدة: ج ۲، ص ۱۳۷

مَا فِىۡ نَفۡسِىۡ وَلَاۤ اَعۡلَمُ مَا فِىۡ نَفۡسِكَ ؕ اِنَّكَ اَنۡتَ

هغه | چي په زړه کښې زما دی | او نه دی معلوم ما ته | هغه | چي په ذات ستا کښې دی | بیشکه ته | هم ته

څه چي زما په زړه کښې دی | او ما ته هغه نه دی معلوم چي کوم ستا په علم کښې دی | ....... بیشکه ته

عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ ﴿۱۱۶﴾ مَا قُلۡتُ لَهُمۡ اِلَّا مَاۤ اَمَرۡتَنِىۡ بِهٖۤ

بنه عالم ئې | په پټو حقیقتونو | نه دی وئیلی ما | هغوئ ته | مګر هغه | چي حکم کړې وو تا ما ته | په هغې سره

په ټولو حقیقتونو ډیر ښه پوهیږې | ما ورته د هغې نه سوا هیڅ نه وو وئیلی | چي څه تا ما ته حکم کړې وو

اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ رَبِّىۡ وَرَبَّكُمۡ ۚ وَكُنۡتُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا

چي بندګی او کړئ | د الله | چي رب زما دې | او رب ستاسو دې | او ووم زه | په هغوئ باندې | نګران |

[او هغه دا] چي دی والله ﷻ عبادت کوئ | او هغه زما او ستاسو رب دې | او زه ترې تر هغه وخته پورې خبر اوم

مَّا دُمۡتُ فِيۡهِمۡ ۚ فَلَمَّا تَوَفَّيۡتَنِىۡ كُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِيۡبَ عَلَيۡهِمۡ ؕ

ترڅو چي ووم زه | په هغوئ کښې | پس هر کله چي | تا واپس او غوښتلم زه | نو وې ته | هم ته | نګران | په هغوئ باندې

ترڅو چي زه په دوئ کښې موجود ووم | او کله چي تازه واپس راوبللم نو بیا صرف ته د هغوئ نه خبر وې

وَاَنۡتَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ﴿۱۱۷﴾ اِنۡ تُعَذِّبۡهُمۡ فَاِنَّهُمۡ عِبَادُكَ ۚ

او ته | په هر څیز باندې | نظر لرونکې ئې | او س که ته | عذاب ورکړې دوئ ته | نو بیشکه دوی | بندګان ستا دی

او ته د هر څه خبر شته دې | ................ که ته دوئ ته سزا ورکوې نو دا ستا بندګان دی .......

وَاِنۡ تَغۡفِرۡ لَهُمۡ فَاِنَّكَ اَنۡتَ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ﴿۱۱۸﴾

او که ته معافی او کړې | دوئ ته | نو بیشکه ته هم ته | غالب ئې | د حکمت خاوند ئې |

او که ته دوئ معاف کړې | نو بیشکه ته غالب او د حکمتونو خاوند یې |

## آسان ترجمه قرآن

او (هغه وخت یاد کړه) چه کله به الله ووائي چه: اې عیسیٰ ابن مریم! آیا تا خلقو ته وئیلي وو چه ما او څما مور لره دالله نه سوا دوه خدایان جوړ کړئ؟ هغه به وائي چه: مونږ خوستا ذات (د شرک نه) پاک ګنړو څما مجال نه وو چه څه داسې خبره وکړم چه د هغې ما ته حق نشته او که ما داسې وئیلي وې نو هغه به تا ته یقینًا معلوم وې ته په هغه خبرو پوهیږې کومې چه څما په زړه کښې پټې دي، او څه ستا په پټو خبرو نه پوهیږم. یقینًا تا ته د ټولو پټو خبرو پوره علم دې. ما دې خلقو ته د دې نه سوا نوره څه خبره نه ده کړې د کومې چه تا ما ته حکم کړې وو او هغه دا چه د الله عبادت کوئ چه څما هم پروردګار دې او ستاسو هم پروردګار دې. او تر کومې پورې چه څه دوی کښې موجود ووم نو د دوی د حالاتو نه خبر ووم. بیا چه کله تا څه اوچت کړم نو ته خپله د دوی نګران وې او ته په هر یو څیز ګواه ئې. که ته دوی ته سزا ورکوې نو دوی ستا بندګان دي. او که دوی لره معاف کوې نو یقینًا ستا قدرت هم کامل دې او حکمت هم کامل دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذۡ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيۡسَى ابۡنَ مَرۡيَمَ ﴾ او هغه وخت هم د یادولو وړ دے کله چه به الله ﷻ [په قیامت کښې د حضرت عیسی علیه السلام نه نصرانیانو او کافرو ته د آورولو په غرض] او فرمائی چه ائې

عیسی ﷺ خونے دمریم [په هغه خلقو کښې چه عقیده ئے د تثلیث یعنی د دریو خدایانو] وه
[یعنی الله سره ئے حضرت عیسی ﷺ او حضرت مریم لره په خدائې کښې شریك منل نو]
﴿ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ آیا تا دے خلقو ته وئیلی وو چه مالره [یعنی
حضرت عیسی ﷺ لره] اوزما مور [حضرت مریم بی بی] لره هم علاوه دالله ﷻ نه معبودان
اوګرځوئی ﴿قَالَ سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي﴾ نو عیسی ﷺ به عرض اوکړی چه [توبه توبه] زه خو
[پخپله عقیده کښې] تالره [دهرشریك نه] پاك ګنړم [څنګه چه ته په واقع کښې پاك یې نو په
داسې حالت کښې] مالره په هېڅ شان نه ښائیدل چه داسې خبره م کړې وے ﴿أَنْ أَقُولَ مَا
لَيْسَ لِي بِحَقٍّ﴾ دکومې دوئیلو چه زما هیڅ حق نشته [نه دخپلې عقیدې له مخه ولے چه زه
موحد یعنی دیو الله ﷻ قائل یم اونه دالله ﷻ د پیغام د مخه څکه چه ماته داسې هیڅ پیغام نه
وو راکړې شوې او ددې خبرے د وئیلو دلیل زما دادې چه] ﴿إِن كُنتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ﴾ که ما
[په واقع کښې] وئیلې وے نو تاته به ددې [یقیناً] علم وو [مګر هرکله چه ستاسو په علم کښې
هم مانه دی وئیلی نو په واقع کښې مے هم نه دی وئیلی اود وئیلو په صورت کښې ستاسو په
علم کښې دی کیدل څکه ضروری دی چه] ﴿تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ﴾ ته خو زما د زړه
دننه خبرے هم پیژنی [که په خله مے وئیلې وے نو د هغې علم به درته ولے نه وو] او زه [دنورو
مخلوقاتو پشان دومره عاجز یم چه] ستا په علم کښې چه څه دی هغې لره [ستا دخودولو نه
بغیر] نه پیژنم [څنګه چه دنورو مخلوقاتو هم دغه حال دے پس] ﴿إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ دټولو
غیبو پیژندونکے هم ته ئے [نوهرکله چه خپله دومره بے وسی او ستا کمال ماته معلوم ددې نو په
الوهیت کښې دشریکیدو د عوی درسره څنګه کولے شم تر دې پورې خو ددې خبرې وینا نفی
اوشوه وریسے ددې په برعکس وئیلو ثابتول دی]. ﴿مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ﴾ ماخو دوی ته نور
څه نه وو وئیلی صرف هغه [خبره] چه تا راته دهغې د وئیلو فرمائیلی وو ﴿أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي
وَرَبَّكُمْ﴾ چه تاسود الله ﷻ بند ګی اختیار کړئی چه زما هم رب دے او ستاسو هم رب دې او
[تردې پورې خو عیسی ﷺ دخپل حالت په باره کښې عرض اوکړو وریسے ددغه خلقو د حالت
په باره کښې عرض کوی څکه چه ﴿ءانت قلت للناس اتخذوانی﴾ کښې ګویا چه په ښکاره خو تپوس
ددې خبرې دې چه آیا تا داسې خبره کړیده اوکه نه.لیکن د اشارے په طور ددې هم تپوس
معلومیږی چه د تثلیث دا عقیده د کومے پیدا شوه. نو حضرت عیسی ﷺ به په دې باره کښې
دا شان عرض اوکړی چه]﴿وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ﴾ زه په دوی[د ددوی په حالت] خبر ووم
ترڅو چه په دو ی کښې [موجود] پاتې کیدم [نو تردغه وخته پورې چه ددوی حال لیدلے کتلے
دے دهغې په باره کښې بیان کولې شم] ﴿فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ﴾ بیا کله چه تامالره
پورته کړو [یعنی په اول خل ژوندے آسمان ته او دویم وار په وفات کولو سره] نو [دغه وخت
یواځې] ته په دوی [ددوی په احوالو] خبردار پاتې شوې [دغه وخت ماته خبر نشته چه ددوی د
ګمراه کیدو سبب څه وو او څنګه وو.] ﴿وَأَنتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ او ته هر څه پوره خبر لرے [تردے
پورې خو ئے خپله او ددوی معامله عرض کړه وریسے ددوی اوالله ﷻ دمعاملاتو په باره کښې
عرض کوی چه] ﴿إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾ که ته دوی ته [په دې عقیده] سزا ورکوے نو ،
ستا اختیار دې ولے چه] دا ستا بندګان دی [او ته ددوی مالك ئے نو مالك دا حق لری چ

بندګانو ته دهغوی د جرمونو سزا ورکړې] ﴿وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ اوکه ته ئې معاف
کوې نو [بیا هم ته اختیار ځکه لرې چه] ته زبردست [د قدرت خاوند] ئې [نو دمعاف کولو
قدرت هم لرې او] د حکمت خاوند [هم] ئې [نو ستا معاف کول به هم د حکمت مطابق وی
ځکه په هغې کښې هم څه بدیت نشی کیدلې مطلب دادې چه په دواړو حالتونو کښې ته
اختیار من ئې زه په کښې هیڅ غرض نه لرم] .

## معارف او مسائل

**ضروری فائده:** ﴿وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى﴾ الله ﷻ دهرڅیز پیژندونکې دې ځکه دحضرت عیسی علیه السلام نه به
تپوس په دې غرض نهٔ کوی چه ګنی هغه ته داخبره معلومه نه ده بلکه دې نه غرض نصاراؤ ته
زورنه ورکول داسې دی چه چالره تاسو خُدائې ګنړئ هغه پخپله ستاسو دعقیدې نه برعکس
دخپلې بندګۍ اقرار کوی اوستاسو دتورپورې کولونه هغه برې دې [ابن کثیر] (۳۱)

﴿فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ﴾ دحضرت مسیح علیه السلام دمرګ، یاآسمان ته دپورته کولو
وغیره بحث په سُورة آل عمران کښې ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ﴾ لاندې تیرشویدې هلته د مطالعه کړې
شی۔ آیت ﴿فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي﴾ سره دحضرت عیسی علیه السلام په مرګ باند اوآسمان ته دپورته کولونه په
انکار باند دلیل نیول ځکه صحیح نهٔ دی چه داخبرې اترې به دقیامت په ورځ وی اودغه وخت به
آسمان نه دراکښته کیدونه پس په حقیقی مرګ مرشوې وی- چنانچه ابن کثیر، په روایت دابی
مُوسی اشعری رضی الله عنه یوحدیث نقل کړیدې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: هرکله چه دقیامت ورځ
شی نودانبیاء علیهم السلام او دهغوئ امتونه بهٔ راؤبللې شی ، بیا به عسی علیه السلام راؤبللې شی ،او الله
تعالی به ورته خپل نعمتُونه وریادکړی اورانزدې کولونه پس به ورته اوفرمائی چه:
اې عیسی دمریم خویه ﴿إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ﴾ تردې چه ورته به
اوفرمائی ﴿يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ عیسی علیه السلام بهٔ انکار اوکړی
چه پروردګاره ! مانهٔ دې وئیلی، بیابه نصاراؤنه تپوس کیږی نوهغوئ به وائی چه ،او، دوئی
[حضرت عیسی علیه السلام] مُونږ ته هم دغه حُکم راکړې وو، بیابه دغه خلق دوزخ ته بوتلې شی (۳۲)

**قوله تعالی:** ﴿إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾ یعنی تاپه خپلو بندګانو باند ظُلم اوبیخایه سختی نشی
کولې، که دوئ ته سزاورکوی نودابه خالص په عدل اوحکمت اړه لری، اوکه بالفرض مُعاف ئې
کړې نودابه ستادبې وسئ له وجې نه نهٔ وی ځکه چه ته ﴿الْعَزِيزُ﴾ [زبردست اوغالب،] ئې ځکه
هیڅوک مُجرم ستادقبضې نه په وتوسره نشی تښتیدې چه تهٔ ئې بیانشی قابُو کولې اوهرکله چه
﴿الْحَكِيمُ﴾ [دحکمت خاوندئې] ځکه داسې هم نشی کیدې چه یومُجرم لره بې هیسه پریږدې،په
هرحال،څه فیصله چه تاسو دې مُجرمانوپه حق کښې به کوئ هغه به بیخی حکیمانه اوقادرانه
وی،دحضرت مسیح داکلام به هرکله چه په محشر کښې وی چرته چه دکُفاروبه باره کښې څه
سفارش کول یارحم غوښتل وغیره نشی کیدې،په دې وجه حضرت مسیح،د ﴿الْحَكِيمُ﴾ په ځائې
د ﴿غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ وغیره صفات اختیارنکړل، بل اړخ ته دُنیاکښې حضرت ابراهیم علیه السلام خپل

---

[۳۱] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۲۳۳

[۳۲] ) کنز العمال حرف الهمزة رقم الحدیث: ۲۹۸۱

پروردګار ته داسې عرض کړې وو: ﴿رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ ۚ فَمَنْ تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ وَمَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [اې زما پروردګاره! دې بُتانو ډیر خلق ګمراه کړل، نوڅوک چه په دوئ کښې زما تابع شول هغه زما خلق دی اوچاچه زما نافرمانی اوکړه نوبیا، ته، غفور رحیم، ئې!] یعنی اوس ددې موقعه ده چه ته په خپل رحمت سره په آئنده کښې دوئ ته دتوبې اوحق ته دراګرځیدو توفیق ورکولوسره ګناهونه معاف کړې[فوائد عثمانی]۔

ابن کثیر رحمه الله په روایت دابی ذر رضي الله عنه نقل کړیدی چه رسول الله ﷺ یووار توله شپه هم دا یوآیت په مخه لوستلو: ﴿اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾ چه صباشو نوعرض م اوکړوچه یارسول الله ﷺ! تاسوهم دا یوآیت لوستلو، اودابه دپه رکوع اوسجدوکښې هم ترصباپورې لوستو، ددې وجه څه ده؟ وې فرمائیل چه: ما دخپل پروردګارنه دخپل شفاعت دپاره خواست اوکړو، هغه قبول کړې شو چه انشاء الله ﷻ داسې کس دپاره ملاویدونکې دې، چه الله ﷻ سره ئې څوک شریک نه وی ګرځولې(۳۳).

په یو بل روایت کښې داسې راغلی دی چه هغوئ دې آیت لوستلوسره آسمان ته لاسُونه مبارک هم پورته کړل اووې فرمائیل: ﴿اللهم امتی﴾ [اې زما پاک پروردګاره! زما اُمت ارخ ته نظر درحمت اوکړې] اوپه ژړاشو، هرکله چه ددې ژړا وجه ترنه الله ﷻ دجبرائیل علیه السلام په ذریعه اوپوښتله نوهغوئ جبرائیل امین لره دخپل دې قول نه خبرکړو، په دې سره الله ﷻ حضرت جبرائیل ته اوفرمائیل چه: بیالاړشه اوحضرت محمد ﷺ ته اووایه چه مونږبه زرترزره ستا داُمت په باره کښې تالره راضی کړو اوتاسولره به خفه نکړو.(۳۴)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ اللهُ | | | | | | |
| [ نو اوبه وائی الله | | | | | | |
| [..........الله ﷻ به ورته اووائی | | | | | | |
| هٰذَا | يَوْمُ | يَنْفَعُ | الصّٰدِقِيْنَ | صِدْقُهُمْ | لَهُمْ | جَنّٰتٌ |
| دا | هغه ورځ ده | چې نفع به ورکوی | رښتنو خلقو ته | رښتیا وینا دهغوئ | دپاره د هغوئ | باغونه دی |
| داهغه ورځ ده چې رښتینو خلقوته به خپل رښتیا فائده ورکړی \| دوئ دپاره داسې باغونه دی | | | | | | |
| تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَآ | اَبَدًا | رَضِيَ اللهُ |
| چې بهیږی | لاندې دهغې نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغې کښې | همیشه | راضی شو الله |
| چې د هغې لاندې به ولې بهیږی \| او دوئ به په هغې کښې همیشه وی \| الله ﷻ دهغوئ نه راضی شو | | | | | | |
| عَنْهُمْ | وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ | ذٰلِكَ | الْفَوْزُ | الْعَظِيْمُ ﴿١١٩﴾ | لِلّٰهِ | |
| دهغوئ نه | اوراضی شو هغوئ دالله نه | دا | کامیابی ده | لویه | خاص الله لره ده | |
| اوهغوئ دالله ﷻ نه راضی شو \|.............. اودا ډیره لویه کامیابی ده \|.............. د آسمانونو | | | | | | |

(۳۳) مسند أحمد، مسند ابی ذر الغفاری رضی الله عنه رقم الحدیث: ۲۰۳۶۵

(۳۴) صحیح مسلم، کتاب الایمان، دعاء النبی صلی الله علیه وسلم لامته الخ: ج ۱، ص ۱۱۳

| مُلْكُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَمَا | فِيْهِنَّ ؕ | وَهُوَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بادشاهي | دآسمانونو | اودزمكې | اودهغه څه | چې په دې كښې دى | اوهغه |
| اوزمكې اوددې مينځ كښې دټولو څيزونواختيار صرف الله دپاره دې ...............اوهغه | | | | | |
| عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ | قَدِيْرٌ ﴿۱۲۰﴾ | | | | |
| په هر څيز باندې | قادر دې | | | | |
| په هرڅه قدرت لرى | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

الله به ووائي چه دا هغه ورځ ده چه دې كښې به رښتينې خلقو ته دهغوى رښتيا فايده ورسوى. دوى دپاره هغه باغونه دى چه دهغې د لاندې نهرونه بهيږي، هغې كښې به دا خلق هميشه اوسيږي، الله ددوى نه خوشحاله دې او دوى دالله نه خوشحاله دې، هم دغه زبردسته كاميابي ده. دټولو آسمانونو او زمكو اودې كښې چه څه دي د هغې بادشاهي هم د الله ده، اوهغه په هر يو څيز قادر دې.

**د آيتونو تړون:**: پورته دواړو آيتونو كښې د قيامت د ورځې د عملونو او حالاتو، حساب وكتاب اود سوال او جواب ذكر دې، اوس ددې تفتيش او د محاسبې ذكر كيږي.

## خلاصه تفسير

[ددغې ټولو خبرو اترو كولو نه پس] ﴿ قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ ؕ ﴾ الله ﷻ به ارشاد اوفرمائي چه دا [د قيامت] هغه ورځ ده چه كوم خلق [په دنيا كښې د عقائدو عملونو او وينا كانو په لحاظ سره] رښتينې وو [چه هغه رښتيا كيدل اوس ښكاره كيږي دے كښې انبياء هم داخل دى چاسره چه خطاب كيږي اوهغه مومنان په كښې هم داخل دى د كومو د ايمان گواهي به چه انبياء اوملائكے ټول وركوى په دې مخاطباتو خبرو اتروكښې د رسولانواو د حضرت عيسى ؑ تصديق ته هم اشاره اوشوه غرض دا چه دا ټول حضرات كوم چه په دنيا كښې رښتينې وو] دهغوى رښتينى كيدل به [نن] دهغوى پكار راشي [پكار راتلل به داسې وى چه] ﴿ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ ﴾ هغوى ته به [دجنت] باغونه [اوسيدو دپاره] ملاويږى د كومو [د محلونو] دلاندے به چه نهرونه جارى وى چه په كښې به همشيه اوسيږى [او دغه نعمتونه به ورته ولے نه ملاويږى هركله چه] ﴿ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ ﴾ الله ﷻ هغوى نه راضى او خوشحاله اوهغوى دالله ﷻ نه راضى او خوشحاله دى [او څوك چه پخپله هم راضى او دده نه الله ﷻ راضى وى نوهغوى ته دغسې نعمتونه ملاويږى] ﴿ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴾ دا [څه چه بيان شو] ديره لويه كاميابى ده [چه ددنيا هيڅ كاميابى ورسره برابريدے نشى].

**د آيتونو ربط:**: دا د سورت خاتمه ده. ټول سورت كښې اصولى او فروعى احكام بيان شوى دى. ځكه په آخر كښې دا بيان كړې شوى دى چې الله تعالى ددې كائناتو مالك دې. په دې هغه ته دا حق حاصل دې چې ددې احكامو حكم وركړى. او بندگانو ته پكار دى چې ددې احكامو پابندى اوكړى. ځكه چې الله تعالى په هر څيز باندې قادر دې. هغه لوئې ذات د نافرمائى په صورت كښې په سزا وركولو او د فرمانبردارئى په صورت كښې په انعام وركولو قادر دې. نو

په دې وجه اوفرمائيلې شو چې [لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ۗ] هم دالله تعالى دپاره سلطنت دې دآسمانونو او زمکې اودهغه څيزونو چې [په دې آسمانونو او زمكه] كښې موجود دى [وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۠] او هغه په هر څيز باندې قدرت لرى.

## معارف اومسائل

فائده:: ﴿قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ ۭ﴾ عموماً ،د واقع سره مُطابق قول ،صدق ،اوخلاف واقع قول، كذب، گڼرلې شى ،ليكن قرآن اوسُنت نه معلومېږى چه ،صدق، او ، كذب،عام دې، يعنى قول اوعمل دواړولره شامل دى، څنګه چه په حديث شريف كښې دواقعې په خلاف عمل ته، كذب، وئيلې شويدې، حديث شريف دادې: ﴿من تحلى بما لم يعط كان كلابس ثوبى زور[مشكوة]﴾(۳۵) [څوک چه داسې يوکالى سره ځان ښائيسته کړى چه ورته نه وى ورکړې شوې[يعنى دداسې يوصفت ياعمل دعوى اوكړى چه ده ته حاصل نۀ وى] نوګويا كښې ددروغو دوه جامې ئې اغوستې دى]-

په يوبل حديث كښې هغه چاته رشتينې وئيلې شويدې چه دخلقو په وړاندې اوځان له يواځې مُونځ په ښه شان سره اداکوى لکه فرمائى ﴿ان العبد اذا صلى فى العلانية فأحسن وصلى فى السر فأحسن قال الله تعالى هذا عبدي حقا[مشكوة]﴾(۳۶) [يعنى څوک چه په ښکاره ښکلې مُونځ کوى اودتنهايۍ مُونځ هم دغسې ښکلې کوى نودداسې کس په باره کښې الله ﷻ فرمائى چه دازمارشتينې بنده دې]-

﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ﴾[الله ﷻ دوئ نه راضى دې اودوئ دالله ﷻ نه راضى دى]

په يوحديث كښې راځى چه جنت كښې ورتنوتونه پس به الله ﷻ فرمائى:لوئې نعمت دادې چه زۀ تاسونه راضى شوم اوس به زۀ تاسونه چرې هم نۀ ناراضه كيږم-(۳۷)

﴿ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝﴾هم دا لويه كاميابى ده،ښكاره خبره ده چه ددې نه به نوره زياته كاميابى څه وى چه مالک اوخالق جل جلاله راضى شى-

فلله الحمد اوله واخره

[سُورت مائده ختم شو]

(۳۵) مشكوة، كتاب البيوع، فصل باب اللقطة: ج ۲، ص ۳۶۱

(۳۶) مشكوة، كتاب الرقاق، باب الرياء والسمعة: ج ۲، ص ۴۵۵

(۳۷) كنز العمال رقم الحديث: ۳۹۳۸۷

| آیاتونه | | سورة الانعام مکیة وهي مائة وخمس وستون آیة وعشرون رکوعا | رکوع گاني |
|---|---|---|---|
| یو سل پنځه شپږ | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | شل |
| ۱۶۵ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۲۰ |

اَلْحَمْدُ　لِلّٰهِ　الَّذِيْ　خَلَقَ　السَّمٰوٰتِ　وَالْاَرْضَ　وَجَعَلَ

ټول تعریفونه| خاص الله لره دي| هغه [الله]| چې پیدائې کړل| آسمانونه| اوزمکه | اوپیدا ئې کړې

ټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی | هغه ذات چې آسمانونه او زمکه ئې پیدا کړې ده | ..............او

الظُّلُمٰتِ　وَالنُّوْرَ۬　ثُمَّ　الَّذِيْنَ　كَفَرُوْا　بِرَبِّهِمْ　يَعْدِلُوْنَ۝۱

تیارې | او رڼرا | بیا | هغه کسان | چې دحق نه ئې انکارکړې دی| درب خپل سره| برابروی

تیارې او رڼرا ئې پیدا کړې ده| بیاهم کافران [خپل بتان] د رب خپل سره برابروی

هُوَ الَّذِيْ　خَلَقَكُمْ　مِّنْ طِيْنٍ　ثُمَّ قَضٰٓى　اَجَلًا ؕ

هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړئ تاسو| دختې نه | بیائې مقرر کړه| یوه نیټه دمرګ|

[الله ﷻ]هغه ذات دې چې تاسونې د خاورې نه پیدا کړئ | بیا ئې ستاسو دپاره دژوندون یو نیټه مقرر کړه

وَاَجَلٌ　مُّسَمًّى　عِنْدَهٗ　ثُمَّ　اَنْتُمْ　تَمْتَرُوْنَ۝۲　وَهُوَ اللّٰهُ

اویوبله نیټه دقیامت| مقرر ده | دهغه سره| بیا | تاسو | شك کوئ | او هم دغه الله دی|

اویوه بله نیټه [دقیامت] هم هغه سره مقرر ده | بیاهم تاسو شکونه کوئ | هم دغه یو الله ﷻ

فِي السَّمٰوٰتِ　وَفِي الْاَرْضِ ؕ　يَعْلَمُ　سِرَّكُمْ　وَجَهْرَكُمْ

په آسمانونو کښې | اوپه زمکه کښې|هغه پوهیږی| په پټ حال ستاسو| اوپه ښکاره حال ستاسو|

په آسمانونو اوزمکه کښې دي | هغه ستاسو په ټولو پټو اوښکاره رازونو باندې پوهیږی

وَيَعْلَمُ　مَا　تَكْسِبُوْنَ۝۳　وَمَا　تَاْتِيْهِمْ　مِّنْ اٰيَةٍ　مِّنْ اٰيٰتِ

اوپوهیږی| په هغه عملونو|چې تاسونې کوئ| اونه | راځې دوئ ته| یوه نښه | د نښو |

اوستاسو هرقسمه کارونه ورته ښکاره دی | دخلقو دا حال دې چې ورته یو نښه د

رَبِّهِمْ　اِلَّا　كَانُوْا　عَنْهَا　مُعْرِضِيْنَ۝۴　فَقَدْ　كَذَّبُوْا

د رب خپل نه| مګر | وی دوئ| دهغې نه | مخ اړونکی | نو په تحقیق سره | دروغ اوګڼرلو دوئ

خپل رب دطرفنه راشی | نو دوئ دهغې نه مخ اړوی | ..................یقینا دوئ هغه حق کتاب دروغ

بِالْحَقِّ　لَمَّا　جَآءَهُمْ ؕ　فَسَوْفَ　يَاْتِيْهِمْ　اَنْۢبٰٓؤُا　مَا

حق | کله چې | راغې دوئ ته | نو زربه | راشی دوئ ته| خبرونه | دهغه څیزا

اوګڼرلو کوم چې دوئ ته راغلو | نو زرده چې دوئ ته به دهغه څیز باره کښې خبرونه راشی

كَانُوْا　بِهٖ　يَسْتَهْزِءُوْنَ۝۵

چې وو دوئ|په هغې پورې|چې توقې به ئې کولې |

چې کوم پورې دوئ توقې کولې |

## آسان ترجمه قرآن

ټول تعریفونه الله لره دي چه هغه آسمانونه او زمکې پیدا کړي دي، او تیاره او رڼرا ئې پیدا کړي ده بیاهم کومو خلقو چه کفر کړی دی هغوی نورو لره (په خدائۍ کښې) د خپل پروردګار سره برابروی هم هغه ذات دی چه تاسو ئې د لوندې خټې نه پیدا کړي یئ. بیا ئې (ستاسو د ژوند) یوه نیټه مقرر کړه او (د دوباره ژوندي کیدو) یو معینه نیټه د هغه سره ده. بیا هم تاسو شک کښې پراته یئ. او هم هغه الله آسمانونو کښې هم دی او زمکه کښې هم دی هغه ستاسو پټ رازونه هم پیژني او ښکاره حالات هم، او څه چه تاسو کوئ د هغې نه هم خبردار دی. او (ددې کافرو حال دادې چه) دوی ته کله د خپل پروردګار د طرف نه یوه نښه راځي نو دا خلق د هغې نه مخ اړوي. نو چه کله حق دوی ته راغې نو دوی هغې لره دروغژن کړو نتیجه دا چه د کومې خبرې سره دوی ټوقې کوې، ډیر زر به د هغې خبرونه دوی ته اورسي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ﴾ ټول تعریفونه یواځې الله ﷻ سره ښائی چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړل تیاره او رڼرا ئے جوړه کړه ﴿ ثُمَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ یَعْدِلُوْنَ ۝﴾ بیا هم کافر خلق [په عبادت کښې نورو لره] دخپل رب سره برابر ګرځوی ﴿ هُوَ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ طِیْنٍ ﴾ هغه [الله] داسې دے چه تاسو [ټول] ئے [دحضرت آدم عليه السلام په واسطه] د خاورونه جوړ کړئ ﴿ ثُمَّ قَضٰۤی اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّی عِنْدَهٗ ﴾ بیا ئے [ستاسو دمړکیدو] یو وخت مقرر کړو او بل وخت ئے مقرر کړو [دپاره دژوندی راپاسیدو] خاص دالله ﷻ په نزد [معلوم] دے ﴿ ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ ۝﴾ بیا هم تاسو [کښې بعضې] شك لرئ [چه قیامت لره ټوقے کنړی حالانکه اول چه کوم ذات ژوند دراوبخښلو دوباره وربخښل هغه ته څه مشکل دی]. ﴿ وَهُوَ اللّٰهُ فِی السَّمٰوٰتِ وَفِی الْاَرْضِ ؕ ﴾ او هم هغه دےمعبود برحق په آسمانونو کښې هم او په زمکه کښې هم [یعنی نور ټول باطل معبودان دی] ﴿ یَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَیَعْلَمُ مَا تَكْسِبُوْنَ ۝﴾ هغه ستاسو پټ حالات هم او ستاسو ظاهری حالات هم [نوشان پیژنی اوخاص کر] تاسو چه [په ظاهره یا په باطنه څه] عمل کوئی [چه جزا سزا پرے وی] هغې لره پیژنی ﴿ وَمَا تَاْتِیْهِمْ مِّنْ اٰیَةٍ مِّنْ اٰیٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِیْنَ ۝﴾ او دوی [کافرو] ته څه نشانی هم دهغه درب د نښونو نه رانغله مګر دوی دهغې نه هم هغسے مه اړوی ﴿ فَقَدْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ؕ ﴾ نو [نوهر کله چه دا ددوی عادت جوړ شوی دی] دوی دا رښتینے کتاب [قرآن] هم په دروغه اوبللو چه هغه دوی ته اورسیدو ﴿ فَسَوْفَ یَاْتِیْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ۝﴾ نو [ددوی دا دروغژن بلل خالی نه خی بلکه] زربه دوی ته خبر اورسی دهغه څیز چه هغه پورې به دے خلقو ټوقے کولې [مراد ترې عذاب دے چه په قرآن کښې به یئ ددےخبر په آوریدو سره خنداګانے کولې او ددې د خبر رسیدو مطلب دادې چه کله عذاب نازل شی نو ددې خبر رښتینوالی به په سترګو اووینی.

## معارف او مسائل

حضرت عبدالله بن عباس فرمائیلی دی چه دسورت انعام یوخصوصیت دادې چه داټول سورت سوا، دڅوایتونونه په یووخت په مکه مکرمه کښې داشان نازل شویدې چه اویازره فرښتې

ددې په اردل او اعزاز کښې تسبيح ويونکې راغلې وو،[۱] دتفسير په امامانو کښې د ،مجاهد، کلبی، قتاده وغيره هم تقريبا داقول دې.

ابواسحق اسفرائينی فرمائيلی دی چه دې سُورت کښې دتوحيد ټول اصول اوقواعد رايو خائې شويدی، داسُورت د﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾نه په شروع کيدوسره داپته ورکوی چه ټول تعريفونه الله لره دې اومُراددې خبرنه، خلقوته د ،حمد ،تعليم ورکول دی اودتعليم په دې خاص اندازکښې دې اړخ ته اشاره ده چه هغه دچاد ،حمد ، او ،تعريف، محتاج نهٔ دې،څوک ئې که ثنا ، صفت بيانوی اوکه نهٔ،هغه دخپل ذاتی کمال په لحاظ سره پخپله ستائيلې شويدې- دتيرواورڼاد پيداکولو په بيان سره ئې ددې دليل هم ورکړو چه کوم ذات ددې لوئې قُدرت اوحکمت خاونددې، هم هغه دثنا ،صفت حقدارکيدې شی.

په دې آيت کښې ،سموات،جمع د او ،ارض،مُفردراؤړلوکښې دې خبرې ته اشاره کيدې شی چه اوه واړه آسمانونه په شکل، شباهت اونوروصفتُونوکښې ديويل نه په خپل مينځ کښې زيات بيلتُون لری بل خوااوه واړه زمکې په شکل شباهت کښې سره يوشان دی،سره ددې نه چه په بل آيت کښې دزمکو شميرهم اوه راغلې دې،مطلب داچه دآسمانونوپه شکلونوکښې يوتربله زيات بيلتُون شته ځکه ئې دجمعې په صيغې راؤړل اودزمکو په شکلونوکښې يوتربله فرق نشته ځکه ئې دواحد په صيغه راؤړلې [مظهرې]-(۲)

دغه شان،ظُلمت ،ئې دجمع او،نُور ،ئې دمفردپه صيغې راؤړلوسره دې ته اشاره اوکړه چه ، نُور ، نه مطلب صحيح لاراوصراط مستقيم ده چه يوه ده او ،ظُلمات ،سره يې دغلطو لارونه تعبير اوکړو چه هغه ګڼړې [په زرګونو] دی،مظهری وبحر محيط]-(۳)

دلته دې خبرې ته هم فکرکول پکاردی چه دآسمان اوزمکې پيداکولودپاره خلق،[پيداکول] اود ،نُور، [رڼرا] او د ظُلمات، [تيرو] پيداکولودپاره ،جعل، [ګرځول] لفظ راؤړې شو، دا ،اشاره دې ته کيدې شی چه آسمانُونه اوزمکه مُستقل بالذات څيزونه دی اورڼرا، تياره مستقل بالذات څيزونه نهٔ دی بلکه عوارض اوصفات دی بله داچه،ظُلمات،ئې په ،نُور، باند شايدددې وجې نه وړاندې ذکرکړو چه په دې جهان کښې اصل،ظُلمات،دی او،نُور، ، خاص، خاص څيزونه سره داسې تړلې شويدې چه هغه وی نو،نُور،ورسره وی اوهغه چه نهٔ وی نو،نُور،نهٔ ،بلکه تياره وی-

ددې آيت نه مقصُود ،دتوحيد حقيقت اوددې واضح دليل بيانولونه پس ددُنيا هغه ټولو قومُونو لره خبردارې ورکول دی چه ياخوبيخی توحيدنهٔ منی،ياسره دمنلو ئې دتوحيد حقيقت پرينښې دې-

مجوسيان په دُنياکښې دوه خالق [پيداکوونکی] منې يوته يزدان اوبل ته اهرمن وائی، يزدان ته خالق دخيراواهرمن ته خالق دشروائی اودغه شان په ،نور،او ،ظُلمات،سره ئې هم بلې-

دهندوستان مُشرکان درې ديرش کروړه ديوتاګان او بتان خُدائ سره شريک ګرځوی، آريه سماج سره ددې چه دتوحيد قائل دی ،بياهم رُوح اومادې ته قديم وائی،چه داداوړ دالله ﷻ دقُدرت او پيدا کولونه خلاص اوآزاددی په دې طريقه هغوئ دتوحيد دحقيقت نه واؤړيدل، په دې ډول،

---

۱) المعجم الکبير للطبرانی رقم الحديث: ۱۱۷۸۳ وشعب الإيمان للبيهقی رقم الحديث: ۲۳۳۵

۲) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۲۳

۳) بحواله بالا-

نصارى هم اگرچه دتوحيد اقرار كوى مگر دې سره سره، حضرت عيسى عليه السلام او مورېى بى لره ئې دالله ﷻ شريک اوبرخې دار جوړ كړل. بيا دتوحيد دعقيدې بچ كولو دپاره ئې يولره درې خُدايان او درې خُدايانولره ئې يوخُدائې او بللو كوم چه عقل سره هم سمون نه خورى، دعرب، مُشركان خودخدايئ په ويش كښې تردې سخيان ثابت شو چه دهرغر، هركانړې ته به ئې معبُود جوړ كړو.

غرض داچه الله ﷻ انسان لره دكائناتو مخدوم او اشرف المخلوقات جوړ كړو خوچه دسمې لارې نه په گډوډولا روروان شو نوبواخې نمر، سپوږمۍ او ستورى نه بلكه اور، اوبه، اونې [درختى] كانړى تردې چه چينجى وغيره ئې خپل معبودان، حاجت روا او مُشكل كُشا اوگرځول او په سجده ورته پريوتل-

په دې آيت كښې قرآن كريم، الله ﷻ لره دآسمانونو او زمكې خالق، دتيرو اورنړا جوړوونكې او ښودلو او ددغې ټولو غلطو خيالاتو ترديدئے اوكړو چه زمكه ،آسمانونه او په دې كښې ټول هرڅه دالله ﷻ پيدائش او دهغه جوړ كړى څيزونه دى نوبيا ، دا څيزونه دالله ﷻ شريک او په خُدايئ كښې برخه من څنگه جوړيدې شى؟

په رومبى آيت كښې دلوئې جهان، يعنى دپوره دُنيا دټولونه لوئې څيزونه ئې دالله ﷻ مخلُوق او محتاج اوښودل او انسان ته ئې دتوحيد دصحيح عقيدې سبق وركړو وروسې په نورو آيتونو كښې ئې انسان ته دتوحيد دصحيح عقيدې سبق وركړو وروسې په نورو آيتونو كښې ئې انسان ته اوښودل چه ستا وجود پخپله يوه وړه دُنياده، كه ددې په ابتداء، انتها او بود وباش [قدوقامت او اندامونو] باند نظر اوكړى نو دتوحيد عقيده به ورته ديو داگيز حقيقت په شكل كښې مخې ته راشى چنانچه فرمائى

﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن طِينٍ ثُمَّ قَضَىٰ أَجَلًا ۖ﴾ يعنى الله ﷻ هغه ذات دې چه تاسولره ئې دخاورې نه پيدا كړل، آدم عليه السلام لره ئې دختې دخميرنه پيدا كړو او پكښې ئې ساه واچوله، دعامو انسانانو خوراكه او غذا دخاورې نه راوځى، دغذا نه نطفه جوړه شى او نطفې نه انسانى پيدائش په عمل كښې راځى.

حضرت موسى اشعرى فرمائيلى دى چه ،مادرسول الله ﷺ نه داسې آوريدلى دى چه الله ﷻ حضرت آدم عليه السلام لره دخاورې د خاص مقدارنه پيدا كړو چه پكښې دټولې زمكې برخې شاملې كړې شوې وې، هم په دې سبب دآدم عليه السلام اولاد بيل بيل قسم رنگ، شكل لرى، اخلاق او عادتُونه ئې مختلف دى، څوک تور، څوک سورسپين وى، څوک سخت، څوک نرم، څوک دپاكيزه خويُونو مالک، څوک گنده طبيعته وى [مظهرى په روايت دابن عدى په حسن سندسره] -(۱)

دادانسان داولنى پيدائش بيان وو وروسې دآخرنو دوو پړاو نوبيان ئې دې يو دانسان شخصى اوځانى انتها، چه په مرگ سره نوميږى دوئيم هغه انتها چه پخپله به ټول انسانان او ورسره ئې ټول كائناتى [ددنيا] خادمان ختميږى چه قيامت ورته وئيلې شى، دانسان دشخصى انتهاپه باره كښې ئې اوفرمائيل :﴿قَضَىٰ أَجَلًا ۖ﴾ يعنى دانسان درومبى پيدائش پسې الله ﷻ دده دژوند لرلو او باقى پاتې كولو دپاره لويه نيټه مقرره كړه چه هغې ته رسيدل، مرگ، نوميږى، كوم لره چې اگر چه انسان نه پيژنى مگر دالله ﷻ فرشتې ئې پيژنى بلكه پخپله انسان هم، مرگ لره په دې دول پيژنى چه په هروخت او هرځائې كښې ورسره او گير چاپيره خواوشا كښې ئې انسانان مرى-

---

۱) سنن ابي داود، كتاب السنة، باب في القدر: ج ۲، ص ۶۳۳، والتفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۲۳

وریسې دقیامت ذکرئې په دې شان اوفرمائیلو: ﴿وَأَجَلٌ مُسَمًّى عِندَهُ﴾ یعنی یوبل میعاد مقرردې چه علم ئې یواځې الله ﷻ لري، ددې میعاداونیټې علم سوادالله ﷻ نه بل هیچا انسان اوفرښتوته هم نشته-

دکلام خُلاصه داشوه چه په رُومبی آیت کښې دټولې دُنیا حال داسې اوښولې شو چه دادالله ﷻ پیداکړې اوجوړکړې دې اوپه بل آیت کښې ئې دوړوکی جهان [یعنی انسان] دِابیان اوشو چه هغه هم دالله ﷻ پیدانښ دې، بیادانسان دراوېښولودپاره،ورته دهغه خاص عُمراوښودلې شو او وریسې ئې دمرګ یقینی کیدل چنانچه وې فرمائیل: ﴿وَأَجَلٌ مُسَمًّى عِندَهُ﴾ په دې کښې ورته دا هدایت ورکړې شو چه انسان خپل شخصي مرګ لره دټولوځیزونواوټولې دُنیا په جمع فنا اومرګ په قیامت راتلوباند دلیل جوړول یوفکری اوطبعی ځیزدې،لهذا ،دقیامت په راتلوکښې دځه شک کولوګُنجائش نهٔ پاتې کیږی، په دې وجه ئې دآیت په آخرکښې دلرې ګڼړلو په ډول اوفرمائیل: ﴿ثُمَّ أَنتُمْ تَمْتَرُونَ﴾ یعنی سره ددې ډاګیزودلیلونونه هم، ستاسودقیامت په باره کښې شک شُبهې راپورته کیږی-

په دریم آیت کښې دړومبو دوؤآیتُونودمضمون نتیجه داسې بیان کړیده چه یواځې الله ﷻ هغه ذات دې چه آسمانُونواوزمکه کښې دعبادت اوفرمانبرداریٔ قابل دې چه هم دهغه عبادت او فرمانبرداری د اوکړې شی،اوهم هغه ستاسو په ظاهر، باطن،په هرحال اوهرقول اوفعل باند پُوره خبرداردې-

په رومبی آیت کښې ئې د غافل طبع انسان،ناړامی اودحق په خلاف دضدکولوشکایت په دې شان اوفرمائیلو: ﴿وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ﴾ یعنی دالله ﷻ د توحید د ډاګیزو دلیلونواوښکاره نخښنو باوجود، مُنکر انسانانوداطریقه اختیارکړیده چه دالله ﷻ دارخه چه کومه نخښنه هم ددویٔ دهدایت دپاره رالیږلې شی نومخ تر اړوی اوهیڅ غورفکرپکښې نهٔ کوی-

په پنځم آیت کښې ئې ددې عادتی غفلت تفصیل داسې بیان کړو چه ځنې واقعاتو ته پکښې اشاره شوې ده لکه فرمائی: ﴿فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ﴾ یعنی هرکله چه حق ئې مخې ته راغې نودروغژن ئې اوبللو، دلته دحق نه مُراد قُران کریم هم کیدې شی اودرسول الله ﷺ ذات اقدس هم ،وجه ئې داده چه هغویٔ دپیدانښ نه تروفات پورې خپل ټول عُمرددغه عربوقبائلو په وړاندې تیرکړو، ماشُومتوب، هلکتوب، ځوانی اوبُوډاتوب ټول ئې ددویٔ دسترګو په وړاندې وو، دوئې ته هم داپه ډیرښه شان سره معلُومه وه چه هغویٔ دچاانسان نه زدکړه نهٔ وه کړې، دهغویٔ حالت دا وو چه خپل نُوم قدرې نې هُم نشولیکلې- په ټولوعربوکښې د ،اُمی، په لقب سره یادیدلو، ځلوېښت کاله عُمرئې داسې تیرشوچه چرې شعر، شاعریٔ سره ئې تړون اودلچسپی نهٔ لرله- علم اوتعلیم سره ئې څه مُناسبت نهٔ وو ښکاره شوې چه ځلوېښت کاله دعُمرئې پُوره شونوسمدستی ئې په ژبه مُبارکه هغه حقیقتُونه، پیژندګلیٔ اوعلوم، فنون جاری شول چه ددُنیالوئې لوئې ماهر فلسفیان هم دهغې په وړاندې بې وسه شو- دعربو ټول فصیحانو، بلیغانو ته ئې دخپل راوړلی کلام دمقابلې دپاره چیلنج اوبلنه ورکړه خوسره ددې نه چه رسول الله ﷺ ته دشکست اوماتې ورکولو دپاره،دخپل سرومال ،ننګ ،نامُوس، اولاد اوخاندان نه هم دغه خلق ورتیرو و،دغه ماهرخلق ددې چیلنج قبلولو اودقرآن کریم دیوآیت مثال پیش کولونه بیخی پاتې راغلل-

په دې شان پخپله رسول الله ﷺ اود هغوئ راوړلې قرآن کريم کښې وجود پخپله دحقانيت يوه ډيره لويه نښانې وه، زيات داچه دهغوئ په زرګونو معجزې اوداګيزې نخښې ورته داسې ښکاره شوې چه دروغ جوړ شودبود لرونکې اود عقل خاوند هيڅ يوانسان تر انکارنشي کولې، خودغې خلقودغه ټولې نښانيانې د يومخه دروغژنې اوګرځولې ،لهذا په آيت کښې ئې ارشاداوفرمائيلو ﴿فَقَدْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ﴾

دآيت په آخر کښې ددوئ دکُفر ،اوانکار، او ددروغ بللو ناکاره انجام ته داشارې کولودپاره ئې اوفرمائيل ﴿فَسَوْفَ يَأْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ يعنې اوس خودخپل انجام نه غافل داخلق درسول الله ﷺ معجزواودهغوئ راوړلې هدايا توپورې مسخرې کوي قيامت اوآخرت پورې خنداګانې کوي ليکن ډيرزرهم دغه حقيقتونه به ددوئ مخې ته راشي، قيامت به قائم شي، دايمان اوعمل حساب به ورکول وي، هرڅوک به دخپلو کړوسزابيامومي، خوددغه وخت يقين اواقرارکول به دهيچا پکارنۀ راځي، ولې چه دغه دعمل وخت نه،بلکه دبدلې اوجزاء وخت دې، اوس ورته الله ﷻ دغورا وفکر کولوموقعه ورکړېده چه داغنيمت اوګنړي، دالله ﷻ په نښاناتو ايمان راوړي نوپه دُنيااوآخرت کښې کاميابي حاصلولې شي-

اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا

آيا نۀ ګوري دوئ | چې څومره | هلاك کړي دي مونږه

| ...................... آيادوئ نه ګوري چې ددوئ نه

مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ

وړاندې ددوئ نه | داهل د زمانې نه | چې قدرت ورکړې وۀ مونږ هغوئ ته | په زمکه کښې

وړاندې مونږ څومره ډلې هلاکې کړې دي | چې د هغوئ دور دوران وو | په مخ د زمکې

مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَّكُمْ وَاَرْسَلْنَا السَّمَآءَ عَلَيْهِمْ

هغه قدرت | چې نۀ دې درکړې مونږ | تاسو ته | اوليږلې وومونږه | باران | په هغوئ |

داسې طاقت مو ورکړې وو | چې تاسوته مونه دې درکړې | او مونږ په هغوئ باندې د پورته نه

مِّدْرَارًا وَّجَعَلْنَا الْاَنْهٰرَ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمْ

پرلپسې په شيبوشيبو | اوروان کړي وو مونږه | نهرونه | چې بهيدل به | لاندې د ونو دهغوئ نه |

درحمت بارانونه اوورول | اولاندې نه مو ورته ولې بهيولې | اخوچې کله نافرمانه شو

فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَاَنْشَاْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا

نوهلاك کړل مونږ هغوئ | په سبب دګناهونودهغوئ | اوپيدا کړل مونږ | روستودهغوئ نه | قومونه |

نو مونږ هغوي د هغوي د ګناهونو په وجه هلاک کړل | اوهغوئ نه پس مو نور قومونه پيدا کړل

اٰخَرِيْنَ ۝ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا فِيْ قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوْهُ

نور | اوکه نازل کړې وې مونږ | په تا باندې | ليکلې کتاب | په کاغذ کښې | اومسه کړې ئې وې هغه

اوکه مونږ په تاباندې په کاغذ کښې ليکلې شوې [کتاب] راکوز کړې وې | نودوی به هغه مسح کړې وې

بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا

په لاسونو خپلو | نو خامخا به ونيلي | هغه کسانو | چې انکار ئې کړې دې د حق نه | چې نه دې دا

په خپلو لاسونو | نو څوک چې حق نه مني | هغوئ به بيا هم دا ونيلي | چې دا [قرآن چه تا ورته پيش کړې دې]

إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝ وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ۖ وَلَوْ

مګر دې | جادو | ښکاره | او وائي دوئ | ولې نازله نه کړې شوه | په ده باندې | فرشته | او که

ښکاره جادو دې | او دوی دا وائي چه په ده باندې ولې فرشته نه نازليږي | او که مونږ بالفرض

أَنزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا

نازله کړې وې مونږه | فرشته | نو خامخا به فيصله شوې وه | کار | بيا | نه وو

فرشته را کوزه کړې وې | نو ټوله قصه به ختمه شوې وه | او بيا به هم ددې هومره

يُنظَرُونَ ۝ وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَاهُ

ورکړې شوې مهلت | او که ګرځولي وې مونږ دا پيغمبر | يوه فرشته | نو خامخا به ګرځولي وو مونږ هغه لره

مهلت نه وو ورکړې شوې | او که مونږ هډو فرښته رسول ګرځولي نو دسړي په شکل به مو ګرځولي

رَجُلًا وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا

په شکل د سړي | او خامخا به په شك کښې اچولي وو مونږه | دوئ لره | هغه چې شك کښې

.......... | ..........او دغه شان بيا به هم په شک کښې پاتې شوی وو | دوئ لکه څنګه چې

يَلْبِسُونَ ۝ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ

چې اوس پکښې اخته دې دوئ | او خامخا توقې شوې دي | په پيغمبرانو پورې | مخکښې ستا نه |

اوس په شک کښې اخته دې | او [پيغمبره] ستا نه مخکښې هم ډيرو پيغمبرانو پورې خنداګانې شوې وې

فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا

نو چاپيره شو | دهغه کسانو نه | چې توقې به ئې کولې | په دوئ پورې | هغه عذاب | چې وو دوئ

نو آخر چې کومو خلقو توقې کولې | په هغوئ باندې هغه عذاب واقع شو په کوم پورې چه به هغوئ

بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۝ قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ

چې په هغې پورې به ئې | توقې کولې | او وايه [دوئ ته] | چې او ګرځئ | په زمکه کښې |

توقې کولې | ..........ورته او وايه چې د زمکې په مخ او ګرځئ

ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ۝

بيا اوګورئ | چې څنګه | وو | انجام د دروغو ګڼړونکو |

او بيا اوګورئ چې چا [پيغمبران] په دروغه ګڼړلي وو | د هغوئ څه حال شو |

## آسان ترجمه قرآن

آیا دوی نه دي کتلي چه مونږ ددوی نه مخکښې څومره قومونه هلاك کړي دي؛ مونږ هغوی ته په زمکه کښې هغه قدرت ورکړې وو چه تاسو ته مو نه دې درکړې او مونږ په هغوی باندې د آسمان نه چه ډېر بارانونه راورولي وو او مونږ دریابونه مقرر کړي وو چه هغه د هغوی د لاندې بهیدلې. لیکن بیا دهغوی د ګناهونو د وجې نه مونږ هغوی هلاك کړل او دهغوی نه وروستو مو نور نسلونه پیدا کړل او (ددې کافرانو حال دا دې چه) که مونږ په تا باندې داسې کتاب نازل کړې وې چه په کاغذ لیکلې شوې وو او بیا دوی هغه په لاسونو باندې مسح کړې هم وې، نو کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې هغوی به وئیلې چه دا د ښکاره جادو نه سوا نور څه نه دي اودا خلق وائي چه دې (پیغمبر) باندې یو فرښته ولې نه ده راغلې؟" حالانکه که مونږ فرښته رالیږلې نو ټول کار به پوره شوې وو بیا به دوی ته مهلت نه وو ورکړې شوې. اوکه مونږ فرښتې لره پیغمبر جوړ کړې وې نو بیا به مو هم هغه د سړي (په شکل کښې) جوړولو، او بیا به مو دوی هم په هغه شبهه کښې اچولي وو لکه چه اوس پکښې مبتلا دي او (اې پیغمبره!) حقیقت دا دې چه ستا نه مخکښې هم ډېرو پیغمبرانو پسې ټوقې شوې وې لیکن نتیجه دا شوه چه کومو خلقو ټوقې کړې وې، هغوی هغه څیز راګیر کړل چه په څه پورې ئې ټوقې کولې (دې کافرانو ته) ووایه چه زمکه کښې لږ وګرځئ. بیا وګورئ چه (د پیغمبرانو) د دروغژن ګڼړونکو څه انجام شو؟

## خلاصه تفسیر

﴿ أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ قَرْنٍ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ ﴾ آیا دوی اونه لیدل چه مونږ ددوی نه مخکښې ډلو لره [په عذاب سره] هلاك کړی دی کومو ته چه مو په دنیا کښې داسې [جسمانی اومالی] قوت ورکړې وو ﴿ مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَكُمْ ﴾ چه تاسو ته مې هغسې قوت درنکړو ﴿ وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ عَلَيْهِمْ مِدْرَارًا ﴾ او مونږ په هغوی ښه بارانونه اوورول ﴿ وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمْ ﴾ او مونږ دهغوی د [فصلونو او باغونو] لاندې نهرونه جاري کړل [چه ورسره ئې فصل او میوو ښه ترقی اوکړه اوهغوی د خوشحالئ ژوند تیرولو] ﴿ فَأَهْلَكْنَاهُمْ بِذُنُوبِهِمْ ﴾ بیا [سره ددې قوت مال اواسباب نه] مونږ هغوی لره دهغوی دګناهونو په سبب [قسماقسم عذابونو سره] هلاك کړل ﴿ وَأَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ﴾ او وریسې نورې ډلې پیدا کړې [که په تاسو هم عذاب نازل کړو نو دتعجب څه خبره ده او ددې خلقو دضد دا حالت دې چه] ﴿ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ ﴾ که مونږ په کاغذ باندې لیکلې څه نوشته په تاسو نازله کړې وې بیا هغې ته دې خلقو خپل لاسونه ور اوړې وې [څنګه چه دوی غوښتلی وو چه یو لیکلې کتاب دې د آسمان نه راشي دلته د لاسونو ور اوړلو په بیانولو سره ئې دنظر بندئی شبه هم لرې کړه] ﴿ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ ﴾ بیا به هم دې کافرانو هم داسې وئیل چه دا هیڅ نه دی مګر په ډاګه جادو دې [ولې چه دخبرې منلو اراده ئې نشته اوپه هر دلیل کښې څه ناڅه نوې خبرې رایستل څه مشکل دی] ﴿ وَقَالُوا لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ﴾ اودا خلق داسې هم وائی چه دوی [پیغمبر] سره څوك فرښته [چه مونږ لیدلې اوخبرې مو ورسره کولې] ولې رانه لیږلې شوه [الله ﷻ فرمائی] ﴿ وَلَوْ أَنْزَلْنَا مَلَكًا لَقُضِيَ الْأَمْرُ ﴾ اوکه مونږ څوك فرښته [په دې شان] لیږلې نوټوله قیصه به بیخی ختمه شوې وه ﴿ ثُمَّ لَا يُنْظَرُونَ ﴾ بیا [دفرښتې د راکوځیدو نه پس] به دوی ته لږ مهلت

نشو ورکولې [ځکه چه دالله ﷻ عادت دادې چه کومو خلقو په خپلې غوښتنې معجزه اولیدله او بیائې هم ایمان راوړو نه انکار اوکړو نو سمدستی هلاکولې شي او ترڅو چه دغسې غوښتلې معجزه اونه وینی نوبه دنیا کښې مهلت ورکولې شي] ﴿وَلَوْ جَعَلْنٰهُ مَلَكًا﴾ اوکه مونږ دغې [پیغام رسوونکی] لره فرښته مقرر کړې وے ﴿لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا يَلْبِسُوْنَ﴾ نو [که بیا هم په خپل شکل دفرښتې کښې راغلې وے نو خلق به ترې زیات بوګنیدل ځکه به مونږ دغې فرښتې] لره انسان [یعني دانسان په شکل] جوړوله نوپه هغې به یئ هم دغه شبه کوله کوم چه اوس کوی [یعني دغه فرښته به یئ بشر ګنړلے او هم هغه اعتراض به یئ کولو، غرض دا چه ددوی دا غوښتنه که پوره کړے شي نو فائده به یئ دوی ته هیڅ نه وی ولې چه فرښتې لره په خپل شکل کښې دلیدلو دوی وس نه لرلو. دانسان په شکل لیږلو سره به بیا هم ددوی شبه نه پورته کیږی اوبل طرف ته به یئ نقصان دا وی چه په نه منلو به د عذاب حق دار جوړشي] ﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ﴾ او [تاسو ﷺ ددوی په بے فائدې مطالباتو غم مه کوئی ولے چه] تاسو نه وړاندې چه کوم پیغمبران شوی دی هغوی پورې هم [دمخالفینو له طرفه] مسخرې شویدی ﴿فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ چه کوم خلقو وړپورې مسخرې کړې وې هغوی لره هم هغه عذاب راګیر کړل کوم پورې ئے چه ټوقې کولې [دے نه معلوم شوه چه دداسې خلقو دداسې عمل نه پیغمبرانو ته هیڅ نقصان نه دې رسیدلے بلکه دغه خلق پخپله په عذاب او مصیبت کښې وربرے وتل که اوس دا خلق دتیروشوؤ امتونو دغه عذاب نه انکار کوی] ﴿قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ﴾ نو تاسو [دوی ته] اوفرمائې چه لږ شان په زمکه کښې اوګرځی راوګرځئ بیا اوګورئی چه د دروغژن کوونکو څه انجام شو.

## معارف اومسائل

په تیروشوؤ آیتونو کښې دالهی احکامو اودرسولانو دتعلیماتو نه دمخ اړوونکو اوورسره مخالفت کوونکو ته دسخت درکې بیان وو- په دې آیتونو کښې هم ددغې منکرینو مخه، خپلو وړاند روستو حالاتو اودتیرې شوې زمانې واقعاتو ته دراړولو او هغوئ ته دعبرت اونصیحت قبلولو موقعه ورکړې شویده،- بیشکه چه ددُنیا تاریخ دعبرتونو یو کتاب دې چه که دادبصیرت په نظر اوکتې شی نودزړګونو وعظونو نه زیات اثرناک وعظ دې، دیو حکیم [هوښیار] بنده دا جُمله څه ښه ده چه ،دنیا یو بهترین کتاب دې اوزمانه بهترین مُعلم [اُستاذ] دې- هم دغه وجه ده چه دقرآن کریم یولوئې جز قیصې اوتاریخ دې لیکن عموماً غافل طبع بنده ددُنیا تاریخ ته هم دیو تفریحی شغل نه زیات حیثیت نۀ ورکوی بلکه دوعظ اوحکمت دې بهترین کتاب لره ئې هم دخپل غفلت اونافرمانئ یوه ذریعه جوړه کړه، تیرې شوې قیصې خو ،یادخوب راوستو دپاره استعمالولې شی اویاپه خالی وختونو کښې دزړۀ مشغولولو اووخت تیرولو ذریعه جوړولې شي-

شاید چې د دې وجه قرآن پاک د دنیا د تاریخ روح [اصلی مضمون] د عبرت اونصیحت دپاره اخستې وی خودعامې دنیا تاریخی اوافسانوی کتابونو په شان نه دې. په کومو کښې چه قصې وئیل یاتاریخ بیانول مقصد ګرځولې شوې وی، په دې وجه یې تاریخی واقعات د قصو په شکل بیان نه کړل. داسې کوی چه دمعاملې اودحال مُطابق دقیصې څه برخه راوړې شی، بل ځائې کښې یې ددې قصې بله حصه د هغه مناسبت سره بیان کړې وی. دې کښې دې حقیقت ته اشاره کیدې شی چه څه خبریاقیصه، پخپله مقصود نۀ وی، بلکه دهر خبرنه څه نوې خبر راؤښکل

اودهري واقعي دښکاره کولوڅه عملي نتيجه راوښکل مقصود دوی، په دې وجه ،ددغې واقعي ځومره برخه چه ديو مقصد دپاره ضروري وي هغه لولئ؛ اوورانديې تيرېږئ اودخپلو حالاتواندازه اخلئ، دتيرو شوو واقعاتو نه سبق حاصلوئ اوخپله اصلاح کوئ.

دتيروشوو آيتونو څخه په رومبی آيت کښې درسول الله ﷺ نيغ په نيغه مخاطبو [يعنی دمکې مکرمې] خلقوته داارشاداوشو چه آيا ،دې خلقو دوراند تيرشوو قومونوحال نهٔ دی کتلی چه عبرت اونصيحت ورته تر حاصل شوې وې، دليدلو نه مراددوئ په حال باند غورفکرکول څکه دی چه دغه قومونه دهغوئ په وړاندې نهٔ وو چه ليدلې ئې شو، وريسې دراتلونکو قومونو دهلاکت اوبربادئ بيان اوشو: ﴿كَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ قَرْنٍ﴾ يعنی مونږه ددوئ نه وړاندې ځومره پيرئ هلاکې کړې.

قرن، ديوې زمانې اويووخت موجود ټولوخلقوته وئيلې شی اودزمانې هغه اوږدې برخې ته هم وئيلې شی چه دلسو کالونه واخلې ترسلوکالوپورې کيدې شی څنگه چه دې کښې مختلف اقوال راغلی دی خودغې واقعاتو اودحديث درروايتونو نه ددې تائيد کيږی چه ،قرن، يوې صدئ [پيړئ] ته وئيلې شی- چنانچه رسول الله ﷺ عبدالله بن بشرمازنی ته فرمائيلی وو چه ته به يو،قرن، ژوندې پاتې کيږې اوهغه پوره سل کاله ژوندې پاتې شو- دغه شان بل يوماشوم ته ئې ديو،قرن، ژوندی پاتې کيدودعاکړې وه نوهغه پوره سل کاله ژوندې پاتې شوې وو([1]) اودغه شان اکثروعلماؤ حضراتو په حديث﴿خير القرون قرنى ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم﴾([2]) کښې هم د،قرن، مطلب سل کاله زمانه بيان کړيده-([3])

په دې آيت کښې دتيروشوو دنيوی قومونوپه باره کښې اول دااوښودلې شو چه هغوئ ته دالله ﷻ ،په زمکه کښې هغه فراخی،قوت اودژوندتيرولو سامان ورکړې وو چه دوريسې خلقوپه برخه رانغلل، خوهرکله چه دغه خلقو رسولانو لره دروغژن اوبلل اودخدواندی احکامو مخالفت ئې اختيارکړونو دغه ټول رعب، داب مرتبه اومال ودولت ئې دالله ﷻ دعذاب په وړاندې بيکاره ثابت شو اوټول د يو مخه نيست و نابود شو، نواوسنی دامخاطبين خلق کوم چه دمکې خلق دی چه عادیانواوثموديانوپشان قوت اوطاقت ورته حاصل نهٔ دې اونهٔ دشام اويمن دخلقوپشان خوش حالی ورته نصيب ده-پکاردی چه دوئ دخپلو عملونواوکارونواندازه واخلی اوپه دې څان پوهه کړی چه په مخالفت کولوبه زمونږ انجام څه وی؟

په آخرد آيت کښې ئې ارشاداوفرمائيلو: ﴿وَأَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ﴾ يعنی دالله ﷻ دقدرت کامله يواځې داشان نهٔ وو چه دغه غټ غټ طاقتور، دمرتبې،حکومت ،مال، دولت اودرعب داب مالکان ئې دسترگو په رپ کښې تباه برباد کړل بلکه دهغوئ په ځائې ئې نورقومونه پيداکړل اودهغوئ په علاقوکښې ئې آبادکړل چه ليدونکو دهغه خلقو کمی هم محسوس نهٔ کړو کوم چه ددوئ نه وړاندې هلاک شوې وو-

---

[1] مستدرک للحاكم رقم الحديث: ۴۷۵۸، كتاب تواريخ المتقدمين من الانبياء والمرسلين، ذكر ابراهيم النبی صلی الله عليه وسلم-

[2] صحيح البخاری، كتاب الرقاق، باب ما يحذر من زهرة الدنيا الخ: ج ۲، ص ۹۵۱- وصحيح مسلم، كتاب الفضائل، كتاب فضل الصحابة ثم الذين يلونهم الخ: ج ۲، ص ۳۰۹

[3] فتح الباری، كتاب الرقاق، باب ما يحذر من زهرة الدنيا الخ: رقم الحديث: ۳۳۷۷

هسې هم د الله ﷻ د دې قدرت او حکمت لیدل کتل په هر زمانه او هر وخت کښې کیدې شي، هغه داسې چه هره ورځ په زرګونو، لکونو خلق هلاکیږی مګر په یو ځائې کښې هم خلا په نظر نۀ راځي- دا نشي محسوسولې چه دیو ځائې خلق هلاک شونو دلته بل څوک استوګن پاتې نشو-

*خدا جانے یہ دُنیا جلوہ گاہ ناز ہے کس کی؟　　ہزاروں اٹھ گئے رونق وہی باقی ہے مجلس کی*

[خُدائې پوهیږی په دې دُنیا کښې دچا نیاز چلیږی؟ په زرګونو خلق مړه شوا و بیا هم دمجلس هم هغه رونق جاری دی]

یو ځل دعرفات په میدان کښې تقریبًا لس لاکهه خلق جمع وو، خیال م دې خوالا ړو چه دنن نه تقریبًا اویا، اتیا کاله وړاندې ددې تولې ګڼړې څخه یو انسان هم دلته موجود نۀ وو او دلته تقریبًا نور هغو مره انسانان موجود وو دچا چه نن نوم نشان هم نشته، دغه شان دانسانانو هره غونډه او ګڼړه چه دماضي او مستقبل په اندازه او کتلې شي نو ډیر زیات مؤثر واعظ بنده ته ښکاری ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحۡسَنُ الۡخٰلِقِيۡنَ﴾

دویم آیت په یوه خاصه واقعه کښې نازل شویدې، هغه داسې چه عبد الله ابن أمیه، د رسول الله ﷺ په وړاندې دضد یو داسې مطالبه پیش کړه چه، زۀ تر هغه وخته پورې په تاسو ایمان نشم راوړې تر څو چه زه پخپله دا واقعه اونه وینم چې تاسو آسمان ته اوخیژئ او هغه ځائې څخه زمونږ مخې ته یو کتاب راؤنۀ ړې چه په هغې کښې زما نوم داسې لیکلې شوې وی چه زۀ به ستاسو تصدیق کوم او ددې تولو وئیلو نه پس ئې دا هم اووئیل چه که تۀ دا ټول هر څه راته اوښائې بیا هم نشم مسلمانېدې [یعنی منل م نشته] - او عجیبه اتفاق دادې چه بیا هم دغه صاحب داسې پوخ مسلمان شو چه داسلام غازی وو او دطائف په غزا کښې شهید شو-(۱)

دیو قوم دا رخه د داسې بې سرا وخپو، بیځایه، نا شوړتو مطالبو خصوصًا چه ور پورې دخندا او مسخرو کولو په ډول اوشي، په هغه ذات رسول الله ﷺ باند به څه اثر شوې وی کوم چه دمور پلار نه زیات مُشفق او مهربانه وو، هغه څوک ددې احساس کولې شي چه دقوم دخیر ښیګړې فکرورسره د رسول الله ﷺ پشان مل وی-

لهذا دې آیت کښې ورته تسلئ ورکولو دپاره اووئیلې شو چه ددوئ دغه مطالبات دځه غرض او مقصد دپاره نۀ دی، ددوئ غرض دا هم نۀ دې چه څه عمل پرې اوکړی، ددوئ شان داسې دې که ددې نه زیات واضح صُورتونه ستاسو درشتینوالئ ورته مخې ته راشي بیا به ئې هم قبول نکړی، مثلاً که مُونږ ورته هم ددوئ په فرمائیش دآسمان نه په کاغذ لیکلې کتاب هم نازل کړو، یواځې دانۀ چه په سترګو ئې اووینی چه پکښې دجادُو احتمال کیدې شي بلکه په خپلو لاسونو کښې ئې هم راواخلی کوم به چه یواځې خیال نۀ بلکه حقیقت وی، بیا به هم داسې ﴿إِنۡ هٰذَاۤ اِلَّا سِحۡرٌ مُّبِيۡنٌ﴾ خکه وائی چه ددوئ دغه تولې مطالبې او فرمایشُونه په ضد او ناړامئ باند اډانړه دی-

ددریم آیت دنازلیدو هم یو واقعه داسې وه چه هم دغه عبد الله ابن ابی أمیه، نضر بن حارث او نوفل بن خالد درې واړه یو ځائې، د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او دا مُطالبه ئې پیش کړه چه هله به په تاسو ایمان راوړو چه آسمان نه راله کتاب په دې شان راوړې چه څلور فرشتې هم

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۸۳

ورسره ددې گواهي، دپاره راشي چه داکتاب دالله ﷻ دارخه راغلې دې اوداهم گواهي اوکړي چه تاسو دالله ﷻ رسول یئ-[۱]

ددې جواب خوالله ﷻ یو داورکړو چه داغافل خلق په داسې مُطالباتو کولو سره خپل مرگ اوهلاکت ته دعوت ځکه ورکوی چه دپیغمبر نه غوښتلې معجزه چه دالله ﷻ دارخه ښکاره کړې شی که بیاهم اونه منلې شی اوپه اسلام راونړلو کښې لږ مهلت اوکړې شی نودعام عذاب په ذریعه دغه غوښتونکی خلق تباه کولې شی، هرکله چه دمکې خلقو، دغه قسم غوښتنه دنیک نیتۍ نه نه وه چه دهغې دمنلو اُمیدترکیدې شونووې فرمائیل: ﴿وَلَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُوْنَ﴾ یعنی که مونږ ددوی غوښتلې معجزه داسې ښکاره کړو چه فرشته راولیږو اودا نامنونکی ئې بیاهم اونه منی نو ددوی دهلاکیدو دپاره به دالله ﷻ حُکم جاری شی چه بیابه ورته پوتې ډیل هم نشی ورکولې، اوس دوی لره په دې پوهیدل پکاردی چه ددوی غوښتلې شوې نشانی که ښکاره نکړې شوه نوخیرپکښې هم ددوی دې-

ددې خبرې یوبل جواب په څلورم آیت کښې په دې شان ورکړې شوې دې چه داسُؤال کوونکی عجیبه بیوقوفان دی چه دفرشتو دنازلیدو غوښتنه کوی، ولې چه دفرشتو دنازلیدو دوه صورتونه دی، یوادچه فرشته په خپل اصلي صُورت کښې ورته راشي نودهیبت له کبله به دهغې لیدل اوښې کړې اوکیدې شی چه دډیرو بوگنیدوله کبله انسان مړشي-

بل صورت ئې دانسان په شکل باند راتلل دی لکه جبرائیل آمین چه ډیرکرته رسول الله ﷺ ته په انسانی شکل راغلې دې نوداوسنې اعتراض ددوی به بیاهم وی وائی به چه هرکله مونږ ، یومعلوم انسان، رسول الله ﷺ دالله ﷻ پیغمبرنهٔ منو نویوه ناآشنا انسان، چه په اصل کښې به فرشته وی څنگه اومنو؟

ددې ټولو عنادی سوالُونوجوابُونوورکولونه پس درسول الله ﷺ دتسلۍ دپاره ارشاددې چه ستاسوقوم، که تاسوپورې توقې اوخنداگانې کوی درته تکلیفُونه رسوی نودغسې ټولوپیغمبرانو عليهم السلام سره هم شویدی چه هغوی دهمت نه کارواغستو، وارئې خطانکړو، دهغې نتیجه داراوختله چه هم دغه مسخرې کوونکی به په عذاب الهی کښې راگیرشو-

خُلاصه داشوه چه ستاسو کارداحکام الهی رسول دی ددې کارپه کولوسره تاسوخپل زړهٔ فارغ کړئې که څوک ئې اثرقبوکړی یانهٔ ددې ذمه ستاسو نهٔ ده، ځکه په دې فکرکښې پریوتو سره خپل ځان مهٔ غمژن کوئې-

| قُلْ | لِّمَنْ | مَّا |
|---|---|---|
| اووایه | چې د چا دی | هغه څه |

اورته اووایه چې دچا دی هغه څه

| فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | قُلْ | لِّلّٰهِ | كَتَبَ |
|---|---|---|---|---|
| چې په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی | اووایه | اچې خاص دالله دی | لازم کړې دې الله |

چې په آسمانونو کښې دي | او په زمکه کښې دی | اووایه چې دا هرڅه دالله ﷻ دی | هغه په

[۱]) التفسير البغوي تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۲۹

عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ؕ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ

په ځان خپل | رحمت | خامخا به ضرور راجمع کوي تاسو | ورځ د قيامت ته | چې نشته شك |

خپل ځان رحم کول لازم کړی دی | تاسو ټول به ضرور د قيامت په ورځ يوځائې کړي | په دې کښې هيڅ شک

فِيْهِ ؕ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲﴾

په هغې کښې | هغه کسان | چې په تاوان کښې ئې اچولي دي | ځانونه خپل | نو هغوئ | ايمان نۀ راوړي په دې

نشته دې | نو چا چې ځانونه په نقصان کښې اچولي دی | هغوئ ايمان راوړونکې نه دی ..........

وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ؕ وَهُوَ

او خاص هغه لره دی | هغه څه چې اوسيږي | په شپه کښې | او په ورځ کښې | او هغه د هر څه

او د شپې په تياره کښې او د ورځې په رڼا کښې هر څه چې اوسيږي هغه ټول د الله ﷻ مخلوق دي | او هغه

السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا

اوريدونکې دې | او په هر څه پوهه دې | او وايه | چې آيا بغير د الله نه | او نيسم | بل دوست |

هر څۀ آوري او په هر څه پوهه دې | ...... ورته او وايه چې آيا زه بغير د الله ﷻ نه ځان د پاره بل دوست او نيسم

فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ؕ

چې پيدا کونکې ادې د آسمانونو | او د زمکې | او هغه روزي ورکوي | او نۀ ورکړې کيږي هغه ته روزي

حال دا دې چې هغه زمکه او آسمانونه جوړ کړي دي | او (هر چاته) روزي ورکوي | او (د هيچا نه) روزي نه غواړي

قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ

او وايه دوئ ته | چې بيشکه ماته | حکم راکړې شوې دې | چې شم زۀ | اول | هغه څوک

ورته او وايه چې ماته خودا حکم شوې دې | چه زه د هرچا نه وړاندې اسلام قبول کړم ...............

اَسْلَمَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۴﴾

چې غاړه ئې ايښې وي | او چې مۀ کيږه ته | د مشرکانو څخه |

... او دا چې ته د مشرکانو په ډله کښې شامل نشې

## آسان ترجمه قرآن

(دوی نه) تپوس وکړه چه: په آسمان او زمکه کښې چه څه دي هغه د چا ملکيت دې؟ (بيا که دوی جواب درنکړي نو ته خپله) ووايه چه: د الله ملکيت دې، هغه رحمت په خپل ځان لازم کړې دې، (دې وجې نه توبه او ماسي نو ستاسو مخکني ټول ګناهونه به معاف کړی ورنه) هغه به تاسو ټول ضرور بالضرور د قيامت په ورځ راجمع کړي چه د هغې په راتلو کښې څه شک نشته (ليکن) کومو خلقو چه ځانونه په تاوان کښې غورځولي دي، هغه (په دې حقيقت باندې) ايمان نه راوړي. او په شپه او ورځ کښې چه څومره مخلوقات آرام کوي ټول د هغه په قبضه کښې دي او هغه هره خبره آوري او هر څه باندې پوهيږي، ته ووايه چه: آيا څه د الله نه سوا بل څوک معاون ونيسم؟ (هغه الله پريږدم) چه د آسمانونو او زمکې پيدا کوونکې دې او هغه په ټولو باندې خوړوي او هغه د چانه نۀ خوري؟ ته ووايه چه: ماته د دې حکم

هوې دي چه په تابعداري کښې د ټولو نه اول جوړ شم، او ته د مشرکانو نه چرې هم مه کيږه.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ تاسو [دے مخالفينو ته د حجت لازملو په ډول] اووائې چه څه هغه چه په آسمانونو اوزمکه کښې موجود دي دا ټول د چا ملکيت دی [اول به دوی هم داسې جواب ورکړی چه توحيد ترې ثابتيږی اوکه په څه وجه لکه دمغلوبه کيدو د ويرے جواب ورنه کړی نو] ﴿قُلْ لِّلّٰهِ﴾ تاسو اووائې چه ټول هرڅه دالله ﷻ ملك دے [اودوی ته داهم اووائې چه] ﴿كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ الله ﷻ [دخپل فضل په وجه توبه کوونکو سره] مهربانی کول په خپله ذمه لازم ګرځولی دی [او داهم اووائې چه که تاسو توحيد لره قبول نکړو نو بيا به يئ سزا هم څکه تيرونی چه] ﴿لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ﴾ تاسو لره به اللهﷻ دقيامت په ورځ [دقبرونو نه په ژوندی راپورته کولو سره دحشر په ميدان کښې] راجمع کړی [اود قيامت حالت دادې چه] ددې په راتلو کښې هيڅ شك نشته [خو] ﴿اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ کومو خلقو چه خپل ځانونه [يعنی خپل عقلونه او نظرونه] برباد [يعنی په تپو ولاړ جوړ] کړی دی نو هغوی به ايمان نه راوړی [او په دوئ باندې د حجت جوړيدو دپاره دا هم اووائی چه] ﴿وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ هم د الله ﷻ ملکيت دی هغه څه چه په شپه کښې اوورځ کښې پاتې کيږی [ددې او ددې نه مخکښې ﴿قل لمن ما في السموات والارض﴾ دمجموعے خلاصه دا راووته چه ټول هغه څيزونه دالله ﷻ ملکيت دی کوم چه په څه مقام يا په څه زمانه کښې دی] ﴿وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ﴾ اوهغه دټولو نه لوئې آوريدونکے پوهيدونکے دې.

[د توحيد ثابتولو نه پس دوی ته] ﴿قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ اووائې چه آيا دالله ﷻ نه سوا چه د آسمانونو او زمکې پيداکوونکې دے ﴿وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ﴾ او [ټولوته] خوراك ځنباك ورکوی اوهغه ته څوك خوراك نه ورکوی [ولے چه هغه دخوراك ځنباك هيڅ ضرورت نه لری آيا د داسې الله ﷻ نه سوا] بل چا لره خپل معبود او ګرځوم [تاسو دخپل استفهام انکاری دوضاحت کولو په توګه پخپله] ﴿قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ﴾ اوفرمائې [چه زه غيرالله لره څنګه معبود ګرځولے شم چه د عقل او نقل نه خلاف دی] ماته دا حکم شويدے چه دټولو نه اول اسلام قبول کړم [چه په کښې دتوحيد عقيده هم راغله] ﴿وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ او [ماته دا اووئيلې شو چه] ته دمشرکانو نه هيچرے مه کيږه.

## معارف اومسائل

﴿قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ﴾ کښې کُفارونه غوښتنه کړې شويده چه دآسمانونو اوزمکې اودې کښې دټولو کائناتو مالک څوک دې؟ بياپخپله درسول اللهﷺ په خُله مبارکه يې داجواب اوفرمائيلو چه، دټولومالک الله ﷻ دې. دکُفارو د جواب د انتظارکولوپه ځائې، پخپله دجواب ورکولو وجه داده چه داجواب، کُفارهم منی اګرچه په شرک اوديُتانو په عبادت کولو کښې اخته وو- خودزمکې، آسمانُونواوټولو کائناتو مالک ئې الله ﷻ منلو-

﴿لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ کښې ،الی، یاخو، د ،فی، په معنی کښې اغستې شی مطلب ئې دادې چه الله ﷻ به ټول اولین اوآخرین، دقیامت په ورځ جمع کړی یاترې په قبرونو کښې جمع کول مُراد دی، مطلب به دا وی چه ترقیامته پورې به ټول انسانان په قبرونو کښې راجمع کوی تردې، چه تولولره به دقیامت په ورځ راژوندی کړی[قرطبی].

﴿كَتَبَ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ په صحیح مُسلم کښې دحضرت ابو هُریره ﷺ په روایت رسُول الله ﷺ اوفرمائیل،چه هرکله الله ﷻ مخلوقات پیدا اوکړل نو پخپله ذمه دوعدې لیکل ئې اوکړل چې هغه الله تعالی سره دی چه :﴿ان رحمتی تغلب علی غضبی﴾[زما رحمت به زما په غضب باندې غالب وی] [قرطبی]-(۱)

﴿الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ﴾ په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه په شروع کې دآیت کښې دذکرشوی عام رحمت دالله ﷻ نه که کُفارراومشرکان بې نصیبه شونوهغوئ درحمت حاصلولوطریقه داسې اختیارنکره چه ایمان ئې راناؤ ورو[قرطبی]-

﴿وَلَهُ مَا سَكَنَ فِي اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ دلته د،سُکون، نه مُراد په خپل ځائې ټیکاؤ پاتې کیدل دی یعنی ددُنیا ټول موجود څیزونه په شپه اوورځ کښې،دالله ﷻ ملکیت دی اومُراد داهم کیدې شی چه د ،سکون اوحرکت، مجموعه وی یعنی ﴿ماسکن وماتحرك﴾ خوذکریواځې د،سکون،اوشو ولې چه ،حرکت کوم چه ددې مُقابل دې هغه پخپله په پوهه کښې رازی .

| |
|---|
| قُلْ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ |
| اووایه\|چې بیشکه زه\|ویریږم \| که |
| \|........ورته اووایه چې زه ددې خبرې نه ویریږم |
| عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ مَنْ يُصْرَفْ عَنْهُ |
| نافرمانی اوکړم \|درب خپل\|دعذاب \| د ورځې لوئې نه\|هغه څوك\|چې واړولې شو عذاب \|دهغه نه \| |
| که د خپل رب نافرمانی اوکړم\|د لوئې ورځې دعذاب نه \| څوک چې په دغه ورځ دعذاب نه بچ کړې شو |
| يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُ ۚ وَذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ ۝ وَإِنْ |
| په دغه ورځ\|نوپه تحقیق\|رحم اوکړو الله په هغه \| اودا \| کامیابی ده \| ښکاره \| او که |
| نوالله ﷻ په هغه لوئې فضل اوکړو\|......... اودا لویه کامیابی ده \| ..........................اوکه |
| يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِنْ يَمْسَسْكَ |
| اورسوی تاته الله \|څه ضرر\|نونشته څوك لرې کونکې\|دهغې\|مګرهم هغه دې\|اوکه اورسوی تاته |
| الله ﷻ درته نقصان اورسوی\|نودهغه نه بغیر هیڅوک نشته چې هغه لرې کړی \| ..........اوکه څه |
| بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ |
| څه خیر\|نوهغه \| په هر څه باندې \|قادر دې \| اوهغه کامل اختیار لرونکې دې\|پورته په\| |
| خیردرته اورسوی\|نوهغه په هرڅه قدرت لری\|.................. اوهغه پخپلو بندګانو باندې کامل |

(۱) صحیح مسلم، کتاب التوبة، باب فی سعة رحمة الله تعالیٰ الخ: ج۲، ص۳۵۶ـ وتفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۶، ص۳۹۵

عِبَادِهٖ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ۝ قُلْ اَيُّ شَيْءٍ
بندګانو خپلو | اوهغه صاحب دحکمت دي | خبردار دي | اووايه دوئ ته | چي کوم څيز |
قدرت لري | اوهغه دحکمت خاونددي | او په هرڅه پوهه دي | .........تپوس اوکړه چي دچا
اَكْبَرُ شَهَادَةً ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ شَهِيْدٌ ۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۚ
لوئ دي | په لحاظ دګواهئ سره | ورته اووايه چي الله ګواه دي | په منځ زما | اوپه منځ ستاسو کښي
ګواهي د ټولونه لويه ده | ورته اووايه چي الله ﷻ زمااو ستاسو منځ کښي ګواه دي
وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ
اووحي کړي شوي دي | ماته | دا | قران | دپاره ددي چي زهٔ اوويروم تاسو | په دي سره |
اودا قران پاک ماته د وحي په ذريعه راغلي دي | چي تاسو په دي سره اوويروم
وَمَنْۢ بَلَغَ ؕ اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ
اوهغه څوک | چي ورته اورسي دا قرآن | آيا بيشکه تاسو | خامخا ګواهي کولي شئ | دا چي بيشکه
اوهرچاته چي اورسي هغه ټول[اويروم] | ښه تاسوکښي په رښتيا ګواهي ورکوئ | چي
مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰى ؕ قُلْ لَّاۤ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا
شته دالله سره | خدايان | نور | اووايه دوئ ته | نهٔ کوم زهٔ داګواهي | اووايه | خبره داده بله نهٔ ده
دالله ﷻ سره نور خدايان هم شته | ورته اووايه چي زه دا ګواهي نشم ورکولي | ورته اووايه چي
هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّاِنَّنِيْ بَرِيْۤءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ۝
چي هغه | معبود | يودي | اوبيشکه زهٔ | بيزاره يم | دهغه څيزونونه | چي تاسو ئي شريکوئ
الله ﷻ خو بس صرف يوالله دي | اوزه ستاسو د شرک کولونه بالکل بيزاره يم
اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا
هغه کسان | چي ورکړي دي مونږ هغوئ ته | کتاب | پيژني هغوئ دا خبره | لکه چي
چاته چي مونږ کتاب ورکړي دي | هغوئ دا[رسول] داسي ښه پيژني لکه څنګه چي
يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ۘ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْۤا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ
پيژني هغوئ | خامن خپل | هغه کسان | چي په نقصان کښي اچولي دي هغوئ | خانونه خپل | نوهغوئ
خپل خامن ښه پيژني | .........کومو کسانو چه خپل خانونه په تاوان کښي اچولي دي انو هغوی
لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا
نهٔ مني دا | اوڅوک دي | ډير ظالم | دهغه چانه | چي وتړي | په الله پوري | دروغ |
منونکي نه دی | اودهغه چانه لوئي ظالم څوک کيدي شي | چي په الله ﷻ باندي دروغ اوتړي
اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ۝
يا دروغ اوګنړي | آيتونه دهغه | بيشکه شان دا دي | چه نهٔ مومي خلاصي | ظالمان خلق |
ياد هغه رالیږلي شوي نښو ته دروغ اووائي | داسي ظالمان هيچري نشي کاميابيدي

## آسان ترجمه قرآن

ته ووایه چه: که څه د پروردګار نافرماني وکړم نو ماته د یوې زبردستې ورځې د عذاب ویره ده. د چا نه چه په دغه ورځ عذاب لرې کړې شو نو په هغه الله لوئ رحم وکړو او دا ښکاره کامیابي ده. که تا ته الله څه تکلیف ورسوي نو خپله د هغه نه سوا دې لره څوك لرې كوونکې نشته، او كه تا ته څه فایده ورسوي نو هغه په هر څيز قدرت والا دې او هغه په خپلو بندګانو مکمل قدرت لرې او هغه حکیم هم دې او خبردار هم. ته ووایه چه: کوم یو څیز داسې دې چه (دڅه خبرې) دګواهۍ ورکولو دپاره د ټولونه د اعلی درجې والاوي؟ ته ووایه چه الله! (او هم هغه) ځما او ستاسو په مینځ کښې ګواه دې او ما باندې دا قرآن د وحې په طور دې وجې نه نازل شوې دې چه ددې په ذریعه تاسو وویروم، او هغه ټول هم چه هغوی ته دا قرآن اورسي. آیا تاسو په رښتیا دا ګواهي ورکولې شئ چه دالله سره نور معبودان هم شته؟ ته ووایه چه: څه خو داسې ګواهي نه ورکوم، ته ووایه چه: هغه خو صرف یو خدائي دې او کوم څیزونه چه تاسو د هغه په خدائۍ کښې شریك جوړوئ څه د هغې ټولونه بیزاره یم. کومو خلقو ته چه مونږ کتاب ورکړې دې هغوئ دا لره (یعني نبي صلی الله علیه وسلم لره) داسې پیژني لکه چه خپل ځامن پیژني (بیا هم) کومو خلقو چه د ځان دپاره د تاوان سودا کړې ده هغوی ایمان نه راوړي او د هغه کس نه لوئ ظالم څوك کیدې شي چه په الله باندې د دروغو بهتان وتړي او د الله آیتونه دروغژن وګنړي؟ یقین وکړئ چه ظالمان چرې هم نشي کامیابیدې.

### خلاصه تفسیر

﴿ قُلْ اِنِّیْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَیْتُ رَبِّیْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ۝ ﴾تاسو اووایئ چه که زه دخپل رب خبره اونه منم [چه داسلام او ایمان په حکم عمل اونه کړم یا په شرك کښې اخته شم] نو زه دیوے لوئې ورځې [یعني د قیامت] دعذاب نه ویریږم [دابښکاره خبره ده چه رسول الله ﷺ دګناه نه پاك دے داسلام او ایمان برخلاف شرك اوګناه کول ئے هیڅ امکان نه لری خو دلته عام امت ته آورول دی چه دګناه نه پاك پیغمبر هم دالله ﷺ د عذاب نه ویریږی بیا ئې اوفرمائیل چه دغه عذاب داسې دے چه] ﴿ مَنْ یُّصْرَفْ عَنْهُ یَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ ﴾ د چا نه ددغې ورځې عذاب لرےکړې شو په هغه الله ﷺ لوئې رحم اوکړو ﴿ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِیْنُ ۝ ﴾ اودا [د عذاب لرے کیدل او دالله ﷺ درحمت مخه کیدل] په ښکاره کامیابی ده [په دې کښې دهغې رحمت بیان هم اوشو چه بیان ئے ددې نه مخکښې په ﴿کتب علی نفسه الرحمة﴾ کښے راغلے دې] ﴿وَاِنْ یَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ؕ ﴾ او [تاسو دوی ته دا هم اووائې چه ائې انسانه] که تاته الله ﷺ څه تکلیف [په دنیااو آخرت کښې] درکړی نودهغې لرے کوونکې سوا د الله ﷺ نه بل څوك نشته [که هغه اوغواړی لرے ئے کړی یا لرے ئے نه کړی زرئے لرےکړی یا په کښې څه وخت ورکړی] ﴿وَاِنْ یَّمْسَسْكَ بِخَیْرٍ فَهُوَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۝ ﴾ او که [تاته داشان] څه نفع د اورسوی [نودهغې هم څوك لرے کوونکې نشته لکه بل ځائې ارشاد دے ﴿فلاراد لفضله﴾ ولے چه] هغه په هر څیز باندې پوره قدرت لرونکے دے.
[اودبیان شوی مضمون دتاکید دپاره دا هم اووایئ چه] ﴿ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ ﴾ هم دغه الله ﷺ [دقدرت په لحاظ سره] په خپلو بندګانو باندې غالب او زیات پورته دے ﴿ وَهُوَ الْحَكِیْمُ الْخَبِیْرُ ۝ ﴾ او

[دعلم په لحاظ سره] هم دلوئې حکمت خاوند او پوره خبر لرونکې دې [نوپه علم سره هغه دټولو حال پیژنی اوپه قدرت سره به ټولو لره جمع کوی اوپه حکمت سره به مناسبه جزا او سزا ورکوی] ﴿ قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً ﴾ تاسو [دتوحید او پغمبرئی دغے منکرانو ته] اووائې [ښه ده دا خو راته اوښایئ] دټولو نه زیات څیز دگواهی ورکولو دپاره کوم یو دے [چه دهغې په گواهئی ورکولو سره د ټولو اختلاف د مینځه اوزی.دد ےجواب ښه په ښکاره دا هم کیدیشی چه الله ﷻ دټولو نه په دې کښې زیات دې] ﴿ قُلِ اللَّهُ شَهِيدٌ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ﴾ بیا تاسو اووائې چه زما او ستاسو په مینځ کښې [په کومه مسئله کښې چې اختلاف دې په هغه کښې هم هغه الله تعالی گواه دے [چه گواهی ئے د ټولو نه زیات شان لری] ﴿ وَأُوحِيَ إِلَيَّ هَٰذَا الْقُرْآنُ لِأُنْذِرَكُمْ بِهِ وَمَنْ بَلَغَ ﴾ او [دهغه گواهی داده چه] ماته دا قران د وحی په ډول [دالله ﷻ له طرفه] رالیږلے شوې دے [دپاره ددې] چه زه ددې قرآن پاك په ذریعه تاسو لره او کوم ته چه دا قرآن پاك رسی هغې ټولو لره [هغه وعیدونو نه] اویروم [چه د توحید او پغمبرئی نه په انکار کولو سره په دې کښې بیان شوی دی ولے چه هرکله د قرآن پاك پشان د جوړولونه ټوله دنیا عاجزه شوې ده نو دا د رسول الله ﷺ په رښتینولئ باندې دالله ﷻ تکوینی گواه شو اود قرآن پاك په مضمونونو سره ددې تشریعی گواه شوه]

﴿أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللَّهِ آلِهَةً أُخْرَىٰ﴾ آیا تاسو [دداسې لوئې گواه نه پس چې هغه توحید لره هم شامله ده] دتوحید په باره کښې په رښتیا هم دغه گواهی به ورکوئی چه الله ﷻ سره [دعبادت په حقدار گرځولو کښې] څه نورمعبودان هم [شریك] شته دے [اوکه دوی د ضد له کبله بیا هم اووائی چه او شته دې نو مونږ به هم دغه گواهی ورکوؤ نودا وخت دوی سره بحث کول بے فائدې دی بلکه صرف] تاسو [دخپلې عقیدې ښکاره کولو دپاره] ﴿ قُلْ لَا أَشْهَدُ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَإِنَّنِي بَرِيءٌ مِمَّا تُشْرِكُونَ ﴾ اووائې چه زه خو ددې گواهی نه ورکوم او بیشکه زه ستاسو دشرك نه ویزار یم.

[او ستاسو د پغمبرئی په باره کښې چه دا خلق وائی چه مونږ دیهودو اونصرانیانو نه تپوس کولو سره اولیدل نو ددې معاملے تحقیق دادې چه] ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ کوم خلقو ته چه مونږ کتاب [تورات او انجیل] ورکړې دې ﴿ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمُ ﴾دغه ټول خلق هغوی [رسول الله ﷺ] لره داسې پیژنی څنگه چه خپلو ځامنو لره پیژنی [لیکن هرکله چه دټولو نه د لوئې گواهئی په موجودگئی کښې د اهل کتابو په گواهئ باندې دا خبره اړه نه لری نوددې په نیشتوالی سره هم څه دلیل نشی نیولے کیدې او دداسې ډیرے لوئې گواهئ په موجودگئی کښې هم] ﴿الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ کومو خلقو چه خپل ځانونه برباد کړیدی هغوی به ایمان نه راوری [دعقل بربادولو مطلب دادې چه دائې په تپه اودرولے دے او کارترې نه اخلی] ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴾ دهغه نه به زیات څوك ظالم وی چه په الله باندې دروغ پورې کوی یا دالله ﷻ آیتونه په دروغ اوگڼړی داسې بے انصافو لره به [حال دا وی چه د قیامت په ورځ به نے] خلاصے نه وی [بلکه تل دپاره به عذاب کښې گیروی].

## معارف او مسائل

په تیرو شوو آیتونو کښې د الله ﷻ د کامل قُدرت بیانولو نه پس پرې د ایمان راوړلو او د شرک نه د ځان ساتلو حُکم ورکړې شوې وو په دې کښې دړومبی آیت لـه مخې ددې حکم نه په خلاف کولو سره عذاب په یو خاص انداز سره بیان کړې شوې دې، هغه داسې چه رسول الله ﷺ ته حُکم ورکړې شویدې چه خلقوته تاسو داسې اووايئ چه که، بالفرض زۀ هم دخپل رب دحُکم نه مخالفت اوکړم نو زۀ دعذاب دقیامت نه ویره لرم ،ښکاره خبره ده چه رسول الله ﷺ دهرې ګناه نه پاک دې، دهغوئ نافرمانۍ کول هيڅ امکان نۀ لرې، ليکن په دې شان سره اُمت ته داښودل دی چه هرکله ددې حُکم په خلاف کولوسره بنی اسرائيل هم نشی معاف کيدې نوبل به څوک معاف کړې شی؟

فرمائی ﴿مَنْ يُصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُ ؕ﴾ يعنی هرکله چه د محشر د ورځې عذاب بيحده زيات هيبتناک او سخت دې، چانه چه په دغه ورځ دغه عذاب منع کړيشی نو پوهه شئ چه پرې د الله ﷻ رحمت اوشو چه ﴿وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ۝﴾ دا ،لويه او ښکاره کاميابی ده، دلته د کاميابئ نه مطلب جنت ته تلل دی چنانچه دې نه معلُومه شوه چه دعذاب نه خلاصې او جنت ته تلل لازم او ملزوم [يو بل سره جخت تړلی] دی-

په دويم آيت کښې د اسلام يو بُنيادی عقيده دا بيان کړې شوې ده چه په حقيقت کښې د هر نفع او نقصان مالک يواځې الله ﷻ دې، ددې حقيقت په لحاظ بل هيڅوک، چاته يو ذره نفع يا نقصان نشی رسولې، که چاته د بل چانه نفع نقصان په ستر ګوليدلې شی، دغه يواځې يو ظاهری صورت او د حقيقت مخې ته د يو پردې نه زيات شان نۀ لرې-

کار زلف تُست مشک افشانی اما عاشقان　　مصلحت را تُهمتے بر آهوئے چین بسته اند

[د مشکو ورمې خوريدل ستا د زُلفو کار دې، البته د څـه غرض په وجه ددې تور، د چين په هوسئ پورې کوی.

داعقيده هم يوه داسې اسلامی انقلابی عقيده ده چه مسلمانان ئې د ټول مخلُوق نه بې حاجته کړی، يواځې د خالق ﷻ مُحتاجه ئې جوړ کړيدی چنانچه دوئې لره ئې داسې يو جماعت جوړ کړيدی چه په لوږو تندو او په نيستئ او بې وسئ کښې په ټول جهان باندې درونداولې لری، او د بل چا په وړاندې سر ښکته کول نۀ پيژنی-

فقر میں بھی سر بسر فخر و غرور و ناز ہوں　　کس کا نیاز مند ہوں، سب سے جو بے نیاز ہوں

[په خوارئ غريبئ کښې هم سراسری فخر، غرور او نياز خکه يم، چه يواځې يو ذات ته پيرزونې وړاندې کوم او نورو ته م هيڅ حاجت نشته] -

په قران کريم کښې ځائې په ځائې دا مضمُون په مُختلفو عنوانونو سره بيان کړې شويدې لکه يو ځائې کښې ارشاد دې:

﴿مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۚ وَمَا يُمْسِكْ ۙ فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ﴾ الله ﷻ چه کوم رحمت، خلقو د پاره پرانستو دهغې څوک ايساروونکې نشته او کوم چه ايسار کړی دهغې څوک پرانستونکې نشته-

په صحيح احاديثو کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ به په خپلو دعاګانو کښې اکثر دا وئيل:

﴿اللّٰهم لا مانع لما اعطيت ولا معطی لما منعت ولا ينفع ذا الجد منك الجد﴾ اې الله! ستا د ورکړې څوک بندوونکې نشته او ستا د بند کړی ورکړی څوک پرانستونکې نشته او د چا کوشش کوونکی کوشش

ستا په مقابله کښې څه نفع نشي ورکولې-(۱)

امام بغوی ددې آیت دلاندې دحضرت عبد الله بن عباس ﷠ په روایت نقل کړیدی چه یوځل رسول الله ﷺ په یوه سورلۍ سورشو اوزۀ ئې خپل ځان پسې روستوسورکړم، څه قدرې مزل کولونه پس ئې ماته مخ مبارک راواړولواووې فرمائیل چه اې هلکه! عرض مې اوکړوچه حاضریم، څه حُکم دې؟هغوئ اوفرمائیل چه، ته، الله یادلره الله به تایادلری، ته که الله ﷻ یادوې نوپه هرحال کښې به ئې مخې ته بیامومې، ته د امن روغتیااودعیش مزې په ژوند کښې الله ﷻ پیژنه هغه به دې دمُصیبت په وخت کښې پیژنی، کله چه سُوال کول غواړې، یواځې دالله ﷻ نه ئې کوه، که مدد غواړې، یواځې دالله ﷻ نه ئې غواړه، په دُنیاکښې کیدونکی څیزونه دتقدیرقلم لیکلی دی که ټول مخلُوق ددې خبرې کوشش اوکړی چه داسې فائده دراورسوی کومه چه الله ﷻ ستاپه برخه کښې نۀ ده مقررکړې نوهیچرې به دغسې اونکړې شی اوکه دوئ ټول په شریکه، تاته د نُقصان در رسولو کوشش اوکړی چه داسې نقصان دراورسوی کوم چه ستاپه قسمت کښې نشته نوهیچرې به پر څه قابُوبیا او نۀ مُومی، که وسه دکیږی چه په یقین سره په صبرعمل اوکړئی نوداسې ضرور اوکړه او کړی په دې دی قدرت نه وی او صبر کوه ولې چه په داسې څیزونو باندې صبرکول ډیرخیراوبرکت لری کوم چه طبیعت نه خلاف وی، اوبنه پوهه شه چه دالله ﷻ مدد، صبرسره ملګرې دې مُصیبت سره راحت اوتنګئ سره فراخی ده- [داحدیث، په ترمذی اومسنداحمد کښې هم په صحیح سندسره راغلې دی]-(۲)

افسوس دې چه دقرآن کریم ددې ښکاره اعلان اود رسول الله ﷺ د ټول عُمرمبارک د تعلیماتو باوجود، داأمت، بیاهم په دې معامله کښې بې دِرکه دی، ټول خُدائی اختیارات ئې په مخلُوقاتواوویشل، نن هم داسې کثیر مُسلمانان شته چه دمُصیبت په وخت دالله ﷻ دبللو په ځائې دمُختلفو نورو نُومونو نذرانې ورکوی اوهم دهغوئ نه مدد غواړی، الله ﷻ اړخ ته دسره خیال نۀ لری، اولیاؤ او پیغمبرانوپه وسیله دعا غوښتل بله خبره ده هغه جائزدی چه پخپله درسول الله ﷺ په تعلیماتوکښې دهغې ثبُوتُونه شته، لیکن نیغ په نیغه دخپل حاجت پُوره کولودپاره چا مخلُوق لره بلل اوهغوئ نه خپل حاجتونه غوښتل ددې قرآنی حُکم نه په ښکاره بغاوت کول دی، الله ﷻ دې مسلمانان په صراط مستقیم باندې قائم لری-

په آخردآیت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ﴾ یعنی یواځې الله ﷻ په خپلوبندګانو باند غالب اوقادردې اوټول دده دقُدرت لاندې اوور ته محتاج دی- هم دغه وجه ده چه که لوئې نه لوئې یوانسان وی، اګرچه هغه الله ﷻ ته نزدې پیغمبر وی یاددُنیالوئې نه لوئې بادشاه وی، په خپله هره اراده کښې نۀ کامیابیږی اوهرمُراد ئې نۀ ترسره کیږی-

هغه حکیم هم دې، دهغه ټول کارونه خالص حکمت دی، هرڅیزپیژنی، دلته ئې په لفظ د، قاهر، سره دالله ﷻ کامل قُدرت اوپه لفظ د، حکیم، سره دهغه د راچاپیره علم بیان کولوسره

(۱) صحیح البخاری، کتاب الأذان، باب الذکر بعد الصلاة: ج ۱، ص ۱۱۷- وصحیح مسلم، کتاب المساجد، کتاب استحباب الذکر بعد الصلاة الخ: ج ۱، ص ۲۱۸

(۲) جامع الترمذی: أبواب صفة القیامة، باب ج ۲، ص ۷۸، ومسند أحمد، مسند عبد الله بن عباس رضی الله عنهما رقم الحدیث: ۲۸۵۶

اوبنودل چه ټول صفتونه د کمال خالص په علم اوقدرت باندې اړه لري چه په دې دواړوکښې د الله ﷻ هیڅوک سیال نشته-

دپنځم آیت یوخاص شان نزول عامومفسرینو داسې نقل کړیدې چه، یوځل د مکې دخلقویو وفد نبي کریم ﷺ ته راغلواووې وئیل چه ستاسودپیغمبرۍ په دعوی ګواهان څوک دی؟ ولې چه مونږته داسې څوک ملاؤ نۀ شو چه ستاسوتصدیق اوکړي سره ددې مونږه دیهودیانواونصاراؤ نه هم ددې پوره تحقیق اوکړو-

څکه داآیت نازل شو: ﴿قُلْ اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً﴾ یعنی تاسو اوفرمایئ چه دالله ﷻ نه به زیاته لویه ګواهي دچاوي؟دچاقبضه کښې چه د ټول جهان نفع اوضرردې، بیااوفرمایئ چه زما او ستاسو تر مینځه الله ګواه دې اودالله ﷻ دګواهۍ نه مراد هغه معجزات اوآیات بینات [ښکاره نشانات] دی چه الله ﷻ درسول الله ﷺ دبرحق رسول کیدوپه باره کښې ښکاره کړل لهذا وریسې ئې اهل مکه ته خطاب کولوسره داسې اوفرمائیل:

﴿اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰى﴾ یعنی آیا ،تاسودالله ﷻ ددې ګواهۍ نه پس هم،ددې ګواهي ورکوئ چه الله ﷻ سره نورمعبودان هم شته که داسې کوئ نوپه خپل انجام پخپله پوهه شئ،زۀ خوداسې ګواهي نشم ورکولې: ﴿قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾ یعنی تاسو اوفرمایئ چه الله ﷻ بې مثاله معبوددې چه هیڅوک ئې شریک نشته او اوفرمائې:

﴿وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ﴾ یعنی ماته دوحی په صورت کښې قرآن دې دپاره راؤلیږلې شو چه ددې په ذریعه،تاسولره دالله ﷻ دعذاب نه او ویروم اوهغه خلق هم او ویروم چه ترقیامته پورې ورته دا قرآن رسیږي-

دې نه ثابت شو چه رسول الله ﷺ خاتم النبیین اوآخري پیغمبردې او قرآن کریم دالله ﷻ آخري کتاب دې، ترقیامته پورې به ددې تلاوت اوتعلیم جاري پاتې کیږي اوپه خلقو باند به ددې تابعداري کول لازمي اوضروري وي-

حضرت سعیدبن جبیرفرمائیلي دي چه چاته قرآن کریم اورسیدوهغه داسې دې لکه چه درسول الله ﷺ زیارت ئې اوکړو- په بل حدیث کښې راغلي دي چه چاته قرآن کریم اورسیدو زۀ دهغه نذیر یم-(۱)

هم دغه وجه ده چه رسول الله ﷺ داسې تاکید اوفرمائیلو، ﴿بلغوا عني ولو كان اية﴾(۲): یعنی زما احکام اوتعلیمات خلقوته وررسوئ اګرچه هغه یو آیت وي-

دغه شان دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روایت رسول الله ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ دداسې کس تراوتازه اوخوشحاله، صحتمند لري، چاچه زمامقاله واؤریده هغه ئې یاده اولرله اوبیائې زماامت ته اورسوله، ولې چه ډیرواري داسې کیږي چه یوکس به پخپله په یوه خبره دومره نۀ پوهیږي څومره چه وریسې راتلونکې بل هغه څوک پر پوهیدې شي کوم ته ئې چه دغه خبره وررسولې دی-(۳)

---

(۱) تفسیر الطبري تحت هذه الآية رقم الحديث: ۱۳۱۲۸
(۲) صحيح البخاري، كتاب الأنبياء، باب ما ذكر عن بني اسرائيل: ج۱، ص ۴۹۱
(۳) جامع الترمذي، أبواب العلم، باب في الحث على تبليغ السماع: ج۲، ص ۹۲

په آخري آيت کښې دهغه خلقو داخبره رد کړې شويده چاچه داسې وئيل چه ديهودو او نصارا او دواړونه مونږه تحقيق اوکړو، هيڅوک هم ستاسو درشتينۍ او پيغمبرۍ گواهي نۀ ورکوي، ددې په باره کښې ئې ارشاد اوفرمائيلو: ﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ﴾ يعنې يهود او نصارى خو رسول الله ﷺ لره داسې پيژني څنګه چه خپل اولاد لره پيژني ځکه چه په تورات، انجيل کښې دهغوئ پوره حُليه مباركه [شكل شباهت] اصلي وطن، دهجرت وطن، دهغوئ اخلاق او عادتُونه شريف او دهغوئ کارنامې په داسې تفصيل سره بيان شويدي چه دهيڅ پکښې هيڅ قسم شک شُبه نشي پاتې کيدې، يواځې د رسول الله ﷺ باره کښې بيان نۀ، بلکه دهغوئ دصحابه کرامو ﷺ تفصيلي بيان په تورات او انجيل کښې موجُود دې. لهذا، داخو هيچرې نشي کيدې چه څوک تورات او انجيل لولي، په هغې ايمان لري او بياهم رسول الله ﷺ لره نۀ پيژني[۱]۔

دلته الله ﷻ په مثال کښې داسې اوفرمائيل چه، څنګه خلق خپل اولاد پيژني، داسې ئې اونۀ فرمائيل چه څنګه واړه خپل مور پلار لره پيژني. وجه ئې داده چه مور، پلار خپل اولاد لره ښه په تفصيل او يقين سره پيژني، دماشُوم اولاد ټول بدن، ددې هره برخه دمور پلار په وړاندې وخت په وخت راځي، دماشوم توب نه ترخوانۍ پورې ددوئ په لاسُونو او غيږ و کښې پالنه بيامُومي، په دې وجه هم دغه وجه ده چه خپل اولاد لره مور او پلار څنګه پيژندې شي په هغه شان ئې اولاد خپل مور، پلار نشي پيژندې۔

حضرت عبدالله بن سلام ديهوديت نه اسلام ته راوړيدلي وو، هغوئ نه حضرت فاروق اعظم تپوس اوکړو چه هرکله الله ﷻ په قرآن کريم کښې داسې خبر ورکړيدې چه تاسو خلق زمُونږ رسول الله ﷺ لره داسې پيژنئ څنګه چه څوک خپل اولاد لره پيژني. ددې وجه څه ده؟ عبدالله بن سلام اوفرمائيل چه مونږه هغوئې لره په هغه صفتُونو پيژنو، کوم چه الله ﷻ په تورات کښې نازل کړيدي، ځکه زمُونږ دغه علم قطعي او يقيني دې، او اولاد لره که خپل مور، پلار پيژني په هغې کښې شُبه کيدې شي چه دغه زمُونږ اولاد دې او که نۀ؟[۱]

حضرت زيد بن سعنه هم رُومبې اهل کتاب وو، هغوئ، رسول الله ﷺ لره په هغه صفتُونو پيژندلې وو چه په تورات او انجيل کښې بيان شوي وو، صرف ديو صفت مُبارک تصديق ئې ورته مخې ته نۀ وو راغلى هغه داچه دهغوئ حلم [زغم] به دهغوئ په غُصې باندې غالب وي، ددې تصديق دپاره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، هرکله چه دا صفت ئې هم پکښې پُوره شان بيامُوندلو نو مسلمان شو۔[۲]

په آخر د آيت کښې ئې داسې اوفرمائيل: ﴿اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْۤا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ يعنې کوم خلق چه په پُوره شان رسول الله ﷺ لره پيژني او بياهم نۀ مُسلمانيږي نو دوئ دخپله لاسه خپل ځانُونه تباه کوي او په زيان او تاوان کښې خپل ځانُونه اچوي۔

---

[۱] ) تفسير البغوي، سورة البقرة: ج۱، ص ۲۳

[۲] ) المستدرک للحاکم رقم الحديث: ۲۷۳، كتاب معرفة الصحابة رضي الله عنهم، باب ذكر اسلام زيد بن سعنة رضي الله عنه۔

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ

اوهغه ورځ| چې راجمع به کړو مونږ دوئ | ټول | بیا به | اووایو مونږه |هغه کسانو ته|

اوپه کومه ورځ چې مونږ دوئ ټول راجمع کړو| ..........بیا به مونږ د هغه کسانو نه تپوس اوکړو

أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنْتُمْ

چې شرک ئې اختیار کړې دې| کوم ځائې دی| شریکان ستاسو| هغه | چې وئ تاسو |

چې مشرکان دی | چې ستاسو هغه جوړ کړې شریکان څه شول | چې تاسو د خپلو خانونو دپاره

تَزْعُمُونَ ﴿٢٢﴾ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا وَاللَّهِ

چې ګنړل به مو | بیا | به نه وی |عذر فتنه ددوئ| مګر دا |چې اووائی| قسم په الله

خدایان ګرځولې وو|هغه وخت کښې به دوئ هیڅ فتنه نشي اوچتولې|خو دومره به وائی چې زمونږ دې په الله قسم وی

رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿٢٣﴾ انْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلَى

چې رب زمونږه دې | نه وو مونږه | مشرکان | اوګوره |څنګه ئې| دروغ اووئیل | په

چې زمونږ رب دې | چه مونږ خو هیچرې شرک نه دې کړې | اوګوره څومره لوئې دروغ په خپلو خانونو

أَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾

خانونو خپلو باندې |اوورك شو | دهغوئ نه | هغه خدایان | چې وو دوئ | چې جوړول به ئې دخانه|

باندې وائی | ..........اودهغوئ ټول معبودان به ترې بیخي ورک شي..........

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۚ وَجَعَلْنَا عَلَى

اوبعضې ددوئ نه | هغه څوك دی |چې غوږنیسی | تاته | اواچولې دی مونږ | په

اوپه دوئ کښې بعضې داسې دی چې ستا خبرو ته غوږ اږدی|.......... او مونږ دهغوئ

قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ

زړونو ددوئ باندې| پردې | چې پوهه [نه] شی په دې | اوپه غوږونو ددوئ کښې| درونوالې دې

په زړونو پردې لګولې دی | چې په هیڅ نه پوهیږی| اوپه غوږونو کښې ئې کوڼوالې دې

وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ حَتَّىٰ إِذَا

اوکه اووینی دوئ|هر څومره نښې|خو ایمان نه راوړی| په هغې | ترڅو پورې | چې کله

اوکه دوی هر قسم نښې اووینی | خو دوئ په هغې ایمان نه راوړی | .......... تر دې چې کله

جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا

راشی دوئ تاته|جګړه کوی تاسره | وائی | هغه کسان | چې کافران شوې دی | چې نه دی دا

راشی اوجګړې درسره کوی| نو څوك چې کافران دی هغوئ (دهر څه آوریدو نه پس) دا وائی

إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ

مګر | قیصې دی | دپخوانو خلقو | اوهغوئ | منع کوی خلق | ددې حق قبلولو نه |

چې داخو بس د پخوانو خلقو قیصې دی | اوهغوئ نور خلق هم د دې (حق دین) قبلولو نه منع کوی

| وَيَنْـَٔوْنَ | عَنْهُ | وَاِنْ يُّهْلِكُوْنَ | اِلَّآ | اَنْفُسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او پخپله هم لرې كيږي | دهغې نه | اونه هلاكوي دوئ | مگر | خانونه خپل |
| او پخپله هم ددې نه لرې گرځي \| اوپه دې طريقه دوى صرف خپل ځانونه هلاكوي [بل چاته نقصان نه رسوي] | | | | |
| وَمَا يَشْعُرُوْنَ۝ | | | | |
| اونه پوهيږي دوئ | | | | |
| اوپه دې نه پوهيږي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هغه ورځ (ياده كړه) چه مونږ به دوى ټولو لره جمع كړو او بيا چه كومو خلقو شرك كړې دې دهغوى نه به تپوس وكړو چه: چرته دي هغه معبودان چه دهغوى په باره كښې به تاسودا دعوى كوله چه هغوى دالله په خدائۍ كښې شريك دي؟ هغه وخت به دوى سره څه بهانه نه وي سوا ددې نه چه دوى به وائي :په الله قسم چه څښتن پروردگار دې مونږ خو مشركان نه وو وگوره ! دوى خپله معامله كښې څنگه دروغ وائي. او كوم (معبودان) چه دوى د دروغو جوړ كړي وو هغه به دوى نه ورك شي اودوى كښې ځنې خلق داسې دي چه ستا خبرې ته غوږ ايږدي مگر (چونكه دا آوريدل دحق دطلب په ځائې په ضد بانديې كلكيدو دپاره وي دې وجې نه) مونږ ددوى په زړونو داسې پردې اچولي دي چه دوى په دې نه پوهيږي او ددوى غوږونو كښې مو هم كوڼوالې پيدا كړې دې او كه دوى يوه يوه ټولې نښې وگورى بيا هم دوى په هغې ايمان نه راوړي تردې چه دوى تاته د جگړې دپاره راشي نو دا كافر خلق وائي چه دا (قرآن) د مخكنو خلقو د قصو نه سوا نور څه نه دي. اودوى نورو لره هم دې (قران) نه بندوى اوخپله هم ددې نه لرې اوسي او (دغه شان) دوى دخپلو ځانونو نه علاوه نور څوك په هلاكت كښې نه اچوي ليكن دوى ته احساس نشته.

## خلاصه تفسير

**دمشركانو د ناكامۍ حالات او شهادت:** ﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ﴾ اوهغه وخت هم د ياد لرلو جوگه دے به كومه ورځ به چه مونږ ټول خلق [دحشر په ميدان كښې] رايوځائې كړو ﴿ ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا ﴾ بيا به مونږ مشركانو ته [په واسطه يا بےواسطے د زورنے په ډول] اووايو چه [اوښائى] ﴿ اَيْنَ شُرَكَآؤُكُمُ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ۝ ﴾ ستاسو هغه شريكان دچا د معبود كيدو چه تاسو دعوى كولې چرته لاړل [چه ستاسو سفارش نه كوى چه تاسو پرے تكيه كوله] ﴿ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ ﴾ بيا به دوى شرك انجام ددې نه سوا بل هيڅ هم [ښكاره نشى ﴿ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ۝ ﴾ چه دوى به [ددغې شرك نه پخپله ويزاره ښكارى او دسختے وارخطائى په حالت كښې به] داسې اووائى قسم په الله ﷻ په خپل پروردگار چه مونږ مشركان نه وو [الله ﷻ اوفرمائيل دتعجب په اندازكښې] ﴿ اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ ﴾ لږشان اوگورئى كنه څنگه [په ښكاره] دروغ ئې اووئيل په خپلو ځانونو ﴿ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ۝ ﴾ او كوم څيزونه چه دوى په دروغه د ځان نه جوړول [يعنى د دوى بتان اوهغه څه چه الله ﷻ سره به يې شريكان جوړل] هغه ټول غائب شو.

﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ﴾ او په دې [مشركانو] كښې بعضې داسې دى چه [ستاسو دقرآن كريم د لوستلو په وخت دهغې آوريدو دپاره] تاسو ته غوږونه اږدى [خو هركله چه دا آوريدل دحق د

لټولو په غرض نه دی بلکه خالص د تماشے کولو او ورپورې د خندا کولو په غرض دی په دې وجه ددې نه ورته هیڅ فائده نه رسی چنانچه] ﴿ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ﴾ مونږ ددوی په زړونو باندې پردے راوستی دی ددې نه چه دوی په دې [دقرآن کریم په مقصود] باندې پوهه نشی او ددوی په غوږونو کښې مو سخت کوڼ والے راوستې دے [چه د هدایت موندلو دپاره دوی نه آوری دا خو د دوی د زړونو او غوږونو حالت وو اوس د دوی د سترګو نظر ته خیال اوکړئ] ﴿ وَإِن يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا ﴾ که دغه خلق [ستاسو دپیغمبرئ دصدق] ټول دلیلونه [هم] اووینی په هغې به هم ایمان رانه وړی [ددوی د عنادحالت د ضد حالت] ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ ﴾ تردې [پورې رسیدلے دې چه] کله داخلق ستاسو خواته راځی نو خامخا درسره جګړے کوی [په داسې شان چه] ﴿ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا خلق کوم چه کافر دی داسې وائی ﴿ إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ۝ ﴾ چه دا [قرآن] خو هیڅ هم نه دې صرف بےسنده خبرے دی چه د پخوانو خلقو نه [نقل شوے] راروانے دی [یعنی دمذهب خاوندان پخوا راسے داسې خبرے په مخه کوی چه معبود هم یودے اودا چه انسان دالله ﷻ پیغمبر کیدیشی په قیامت کښې بیا ژوندی کیدل دی چه حاصل ئےنارامی او دروغژن بلل دی وریسےئے نوره ترقی هم اوکړه جګړے ئے شروع کړې او نور خلق ئے هم دهدایت نه بندول شروع کړل] ﴿ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْأَوْنَ عَنْهُ ﴾ اوبیا دا خلق دے [قرآن] نه نور خلق بندوی او پخپله هم [دے نه دکرکے کولو په غرض] لرے لرے پاتې کیږی ﴿ وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ ﴾ او [پدغے حرکتونو کولو سره] دا خلق صرف خپل ځانونه تباه کوی ﴿ وَمَا يَشْعُرُونَ ۝ ﴾ او [دبےوقوفئ اوسخت بغض له وجے] هیڅ خبر نه لری [چه مونږ د چا زیان او تاوان کوو زمونږددې حرکتونوپه وجه خو پیغمبر ﷺ اوقرآن پاک ته هیڅ زیان نه رسی]

## معارف اومسائل

په تیرشوی آیت کښې دابیان شوی وو چه دظالمانو، کافرانو به کامیابی نهٔ نصیب کیږی اوس په دې آیتونوکښې دهغې وضاحت اوتفصیل دې-په ړومبی اودویم آیت کښې دهغه امتحان بیان دې کوم چه دټولونه زیات سخت اودالله ﷻ رب الارباب په وړاندې به وی لکه فرمائی: ﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ﴾ یعنی هغه ورځ دیادلرلو جوګه ده په کومه کښې چه به داټول [مشرکان اوددوئ جوړکړی ،معبودان] رایوځائې کړو: ﴿ ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ۝ ﴾ یعنی بیابه مونږه دوئ نه، داسوال کوؤ چه تاسویه کوم معبودان لره چه مونږ سره شریکول اوخپل حاجت رواؤمُشکل کُشاګڼړل،نن هغه چرته دې؟تاسوسره لاس مددولې نهٔ کوی؟

دلته ،لفظ د ،ثم، نه معلومه شُوه چه په محشرکښې دټولوپه رایوځائې کیدوبه سمدستی سُوال جواب نهٔ وی بلکه ډیره زمانه به خلق حیران او وارخطاولاړوی ډیره موده پس به حساب کتاب اوسُوال جواب شروع شی.

درسول الله ﷺ ارشاد دې چه هغه وخت به ستاسو څه حال وی کله به چه تاسولره الله ﷻ دحشر په میدان کښې داسې رایوځائې کړی لکه غشی چه په شخولی کښې رایوځائې کولې شی اودغلته به پنځوس زره کاله په انتظارکښې یئ-(۱) په یو روایت کښې داسې هم راغلی دی چه دقیامت په ورځ به یوزرکاله ټول خلق په تیاره کښې وی، خپل مینځ کښې به یوبل سره خبرې هم

(۱) مستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۸۸۵۸، کتاب الأهوال، باب یوم یقوم الناس لرب العلمین الخ۔

نشی کولي [حاکم په مستدرک کښې اوبیهقي دواړو، دې روایت لره نقل کړیدې]-

په دې روایت کښې څنګه چه دپنځوس زرو اودیوزر کالو فرق بیان شویدې دغسې فرق د قرآن کریم په دوؤ آیتونو کښې هم بیان شویدې لکه یوځائې کښې فرمائي: ﴿كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ﴾ یعنی دغه ورځ به دپنځوسو زرو کالو په اندازه وی اوبل ځائې کښې ارشاددې: ﴿وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ﴾ یعنی یوورځ به ستاسو درب خواته یوزر کاله وی- ددې فرق وجه داده چه هرکله په دغه ورځ به په مختلفو خلقو مختلف قسم سختئ اوتکلیفونه وی په دغې لحاظ سره به دغه ورځ چاته زر کاله اوچاته پنځوس زره کاله محسوسیږی-

خُلاصه دکلام داشوه چه دټولونه د لوئې امتحان په ځائې کښې به اول خویوه اُوږده زمانه داسې تیریږی چه امتحان به شروع کیږی هم نه، تردې چه خلق په زرترزره دامتحان اوحساب اوکتاب شروع کیدو آرزو لری خواه انجام ئې هرڅه وی خو چې دانتظار دا سخت تکلیف خوبه ختم شی کنه: دې اُوږد انتظاراواُوږدې زمانې ته داشارې کولودپاره ئې د ،ثم، لفظ راوړو اووې فرمائیل: ﴿ثُمَّ نَقُولُ﴾ دغه شان دمشرکانو جواب ورکولو سره ئې د ،ثُم، لفظ راوړلو چه ددوئ جواب به ډیره زمانه بعد وی ولې چه هغوئ به هم دډیرغورفکرنه پس دا جواب ورکوی چه ﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾ [یعنی په الله رب العالمین به قسم اوخوری چه مونږخومشرکان نۀ وو] د کُفارو ددې جواب نه ئې تعبیرپه ،فتنة، سره څکه اوکړو چه دالفظ امتحان اوآزمیښت دپاره هم وئیلې شی او په چاباند دعاشق کیدودپاره هم استعمالیږی نودلته ترې دواړه معنې مُرادکیدې شی-په رومبی صورت کښې هرکله چه دا د امتحان جواب دې څکه په امتحان سره ترې تعبیر اوکړې شو اوپه دوئم صورت کښې عاشق کیدو سره ئې تعبیر څکه اوکړو چه داخلق ددغه بُتانو اومعبودانو عاشقان جوړشوی وو اوپه دنیاکښې ئې زړۀ ورکړې وو خواوس ئې هغه هرڅه ختم شو اوجواب ئې سوا ددې نه بل هیڅ ورنکړې شو چه هغوئ [بُتانو اومعبودانو] نه ئې دبیزارئ اوبیلتُون دعوی اوکړه-

ددوئ په دغه جواب کښې یوعجیبه څیز دادې چه هرکله دقیامت د میدان هیبتناکې ننداری اودرب الارباب پروردګار دکامل قُدرت عجیبه واقعات اووینی نوبیابه چرته دروغ وئیلې شی حالانکه دوئ خوبه په قسم دپروردګارسره دغسې دروغ اووائی چې مونږ مشرکان نه وؤ.

عامومفسرینو ددې جواب داورکړیدې چه ددوئ داجواب به په سړه سینه نۀ وی بلکه دډیرې وارخطایئ په حالت کښې به وی چه بې اختیاره به ئې دغسې جواب دخُلې نه اُوځی- لیکن د میدان حشر په عامو واقعاتو اوحالاتو باند دغورکولو نه پس داهم وئیلې شی چه هرکله الله ﷻ ددوئ پوره کیفیت اوحالت دټولوپه وړاندې راولې څکه بۀ ورته داقُدرت ورکړی چه دلته هم په آزادئ سره هغه څه اووائی څنګه به ئې چه په دنیاکښې وئیل مطلب ئې دا راخیژی چه ددوئ کُفراوشرک په ډاګه کیدوسره دروغ وئیل هم داهل محشر په وړاندې په ډاګه شی چه په دې کښې دوئ نه څوک زیات دروغژن کیدې نشی، سره ددې چه دمیدان محشرسخت نه سخت حالات ګوری اوبیاهم ددروغو وئیلونه نۀ منع کیږی چنانچه دقرآن کریم یوبل آیت: ﴿فَيَحْلِفُونَ لَهُ كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ﴾ کښې هم دغسې اشاره مُوندې شی چه دا خلق څنګه په دُنیاکښې دمسلمانانوپه وړاندې هم په دروغه دقسمونو خوړلونه ډډه نۀ کوی .دغه شان دالله تعالی نه هم نه ویریږی.

په محشر کښې هرکله چه په قسمونوخوړلوبه کافران اومشرکان دخپل کُفر اوشرک نه انکاریان شی نودغه وخت به قادرمُطلق ددوئ په خلو مُهر اولګوی اواندامُونو ،لاسُونو ،خپوته به

نې په دوئ باند دګواهئ ورکولو حکم ورکړی دغه وخت به ثابت شي چه زمونږه لاسونه، خپې، سترګې اوغوږونه وغیره ټول اندامونه دالله ﷻ خُفیه پولیس وو، دغه اندامونه به هریوعمل اوهریو کار مخې ته راولي اوښکاره به ئې کړي چنانچه سورت یسین کښې ارشاددې:
﴿اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ دقُدرت ددې کارنامې په لیدو سره به هیڅوک هم دخبرې پټولو یاددروغو وئیلو جُرات نشي کولې.
بل ځائې کښې د قرآن کریم ارشاددې: ﴿وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا﴾ [یعنی په دغه ورځ به دوئ دالله ﷻ نه څه خبره نشي پټولې] حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ددې مطلب داسې بیان کړیدې چه اول خوبه ډیرزیات دروغ اووائي اوپه دروغه به قسمونه اوخوري خوچه خپل لاسونه، خپې وغیره ئې ددوئ په خلاف ګواهي ورکړي نو دغه وخت به دغلطې خبرې کولوجُرات نشي کولې-(۱)
غرض داچه دا حکم الحاکمین په عدالت کښې به مجرم ته په پوره آزادئ سره دبیان کولوپوره موقعه ورکولې شي، ځنګه چه ئې په دُنیا کښې دروغ وئیل دغلته به هم ترې دغه اختیارنشي اغستې، ولې چه قادر مُطلق به د دروغو پرده پخپله ددوئ دلاسونو، خپوپه ذریعه څیرې کوي-
هم دغه وجه ده چه هرکله په قبرکښې دمُنکر نکیر فرشتو په وړاندې اولنئ امتحان وي چه د داخلې امتحان هم ورته وئیلې شي- دحدیث شریف نه ثابته ده چه کافربه د﴿من ربك ومادينك﴾ [ستارب څوک دې اودین دڅه دې؟] په جواب کښې ﴿هاه هاه لاادري﴾ [هائې هائې زهٔ په هیڅ نهٔ پوهیږم،] اومسلمان به په جواب کښې داسې وائي﴿ربي الله وديني الاسلام﴾ [پروردګارم الله ﷻ اودین م اسلام دې](۲) معلومیږی چه دغلته به په امتحان کښې، څوک دروغ څکه نشي وئیلې چه امتحان اغستونکې به فرشتې وي، هغوئ دغیب علم نهٔ لري اونهٔ ئې داسې قُدرت شته چه دخپو، لاسونو ګواهي واخلي ،که دغلته انسان ته د دروغو وئیلواختیارورکړې شوې وې نوکافربه هم لکه دمسلمان پشان جواب ورکولې شو اوفرشتو به دخلقو دجواب مطابق عمل کولوچه په انتظام کښې به دخلل راتلومُوجب وو لیکن په میدان حشر کښې هرکله چه امتحان اغستونکې به الله ﷻ پخپله وي که هلته څوک دروغ اووائي نوهغه به چلیدې نشي-
تفسیربحرمحیط اومظهری دځنې حضراتو داقول هم نقل کړې دې چه دخپل شرک نه دانکار کولودپاره به هغه څوک قسمونه خوري چه په ښکاره به ئې چا مخلوق لره خُدائې یادخُدائې نائب نهٔ وی بللې، البته چه ټول خدائی اختیارات ئې په مخلوقاتو باند په دُنیاکښې ویشلي وی،هغوئ نه ئې خپل حاجتُونه غوښتلي وې، دهغوئي په نوم به ئې منښتې اوپیرزونې پیش کولې، دهغوئ نه ئې روزی روغتیا ،اولاداوټول مرادونه غوښتل،دوئ به خپل ځانونه مشرکان نهٔ ګڼړل څکه به په میدان حشرکښې په قسم خوړلو سره داسې وائی چه مونږه مُشرکان نهٔ وو ،بیابه الله ﷻ ددوئ شرمندګي په ډاګه کړي-
دې آیت سره بل سوال داپورته کیږی چه الله ﷻ به کافرانو ،فاجرانو سره خبرې کوی حالاتکه دنورو قُرآني آیتُونونه معلومیږی چه الله ﷻ به کافرانو، فاجرانو سره خبرې نهٔ کوي-
جواب ئې دادې چه دعزت، رحم اوشفقت خبرې به ورسره نهٔ کوی،غوښتنه اودُعابه ئې نهٔ قبلوی، ددې خبرې نفی آیت مبارك کښې مراد نه ده چې دزورنې،رټنې، خبرې به ورسره نهٔ

(۱) التفسير البغوي تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۱۸
(۲) سنن ابي داود، كتاب السنة، باب في المسألة في القبر الخ: ج ۲، ص ۶۵۳

کوي، داسې هم کیدې شي چه الله ﷻ به ورسره پخپله هرګز خبرې نه کوي- دلته په آیت کښې دفرشتو په واسطه خبرې کول بیان شویدی-

په آخر دآیت کښې ئې اوفرمائیل ﴿اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ﴾ دې کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې چه تاسو اوګورئ دې خلقو، په خپلو ځانونو څنګه دروغ اووئیل او کوم چه په الله ﷻ ئې دروغ تړل نن هغه ټول غائب شو. په خپلو ځانونو یاند د دروغ وئیلو مطلب دادې چه ددغې دروغو وئیلو وبال به هم ددوئ په ځانونو ورپریوځی او د دروغو تړلو نه مراد داهم کیدې شی چه په دنیا کښې دالله ﷻ شریکوال او حصه دار چالره ګرځول یو دروغ تړل وو، نن چه حقیقت مخې ته راغلو نو دغه دروغ تړل ښکاره شو او داهم کیدې شی چه د ،افتراء، نه مطلب په دروغه قسم خوړل په محشر کښې وی چه دلاسونو، خپو په ګواهئ کولو سره به ښکاره شی، ځنې مفسرینو حضراتو د ،افتراء، نه مراد دمشرکانو هغه تاویلونه اغستی دی چه دخپلو باطلو معبودانو په باره کښې به ئې په دنیا کښې کول مثلاً ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى﴾ [یعنی مونږه ددې عبادت دې دپاره کوؤ چه په سفارش کولو سره مونږه الله ﷻ ته نزدې کړی، په محشر کښې دا ،افتراء، په دې شان ښکاره شوه چه ددوئ دټولونه دلوئې مصیبت په وخت کښې چا ،ددوئ سفارش اونکړو نه ئې د دوئ په عذاب کښې کمی راوستلې شوه-

دلته یوه شبه داسې راپورته کیږی چه دآیت نه دا معلومیږی چې باطل معبودان به یې غائب وی هیڅوک به مخ ته نه وی حالانکه دقرآن کریم په یوبل آیت کښې داسې ارشاد دې:

﴿اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ﴾ [یعنی دقیامت په ورځ به الله ﷻ داحکم ورکړی چه رایوځائې کړئ ظالمانو اوددوئ ملګرو لره او هغه چالره چه دې خلقو به ئې عبادت کولو] دې ارشادنه معلومیږی چه دقیامت په ورځ به باطل معبودان هم موجود او حاضروی-

جواب دادې چه په آیت کښې دغائبیدونه مراد دیوشریکوال ،حصه دار او سفارشی په حیثیت سره غائبیدل دی چه دغې خلقوته به هیڅ نفع نشی رسولې اګرچه موجود او حاضر به وی، داشان د دواړو آیتونو ترمینځه هیڅ بې سمونی او تعارض پاتې نه شو، او داسې هم کیدې شی چه یوځل به ټول راجمع کړې شی، بیابه بیل بیل شی نو دغه وخت به سوال اوکړې شی-

په دې دواړو آیتونو کښې په خصوصیت سره داخبره یادلرل دی چه هر کله الله ﷻ، دحشر په هیبتناک میدان کښې دااختیار ورکړو چه په آزادئ سره هرڅه وئیلې شی، تردې چه په دروغو قسمونو کولو سره به دخپل شرک کولونه هم انکار اوکړی- په دې کښې اشاره دې خبرې ته کیدې شی چه دروغ وئیل یو داسې ګنده عادت دې چه څوک ئې پریښودې نشی، تردې چه دغې خلقو به دنیا کښې دمسلمانانو وړاندې په دروغه قسمونه خوړل او دلته هم ترمنځ نه شو په دې وجه د الله ﷻ دټول مخلوق په وړاندې اوشرمیدل، همدغه وجه ده چه په قرآن کریم او حدیث کښې ددروغو وئیلو سخته بدی بیان شویده او سختې سختې درکې او وعیدونه پرې راغلی دی-قرآن کریم کښې ځائې په ځائې دروغژن باند د لعنت الفاظ راغلی دی او رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه، دروغونه ځان ساتئ ولې چه دروغ دفجور [بدکارئ] ملګری دی، دروغ او بدکاری دواړه به جهنم ته ورځی [ابن حبان فی صحیحه] [1]

[1] صحیح ابن حبان رقم الحدیث: ۵۷۳۴ باب الکذب-

رسول الله ﷺ نه سوال اوشوچه هغه کوم عمل دې چه انسان به پر دوزخ ته څي ؟وې فرمائيل: هغه دروغ دی [مسند احمد] ([1])

دغه شان دمعراج په شپه رسول الله ﷺ داسې يوکس اوليدو چه دواړه اوبنکی [زامې] به ئې اوشلولې شوې چه سم به شونوبيا ، بيابه شلولې شو اودغه عمل به ورسره ترقيامته جاری وی، هغوئ ددغه کس په باره کښې جبرائيل ﷺ نه تپوس اوکړو چه داڅوک دې؟هغه ورته اوفرمائيل چه دا دروغژن دې-([2])

اودمسند احمد په يوروايت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: انسان ترهغې پورې پوره مؤمن نه شی جوړيدې ترڅوچه دروغ وئيل بيخی پرې نږدی، تردې چه په ګپ شپ، توقوتقالو او خوش طبعئ کښې هم دروغ نۀ وائی-([3]) دغه شان په بيهقی کښې په صحيح سندسره راغلی دی چه دمسلمان په طبيعت کښې نور خراب خصلتونه خوکيدې شی مګرخيانت اودروغ نشی کيدې ،([4]) په يوبل حديث کښې راغلی دی چه دروغ دانسان روزی کموی-([5])

﴿وَهُمۡ يَنۡهَوۡنَ عَنۡهُ﴾ دعـامو مفسرينو ضحاک قتاده اومحمد بن حنفيه په نزد ،داآيت دعامو کفارو په باره کښې نازل شويدې چه خلقولره به ئې دقرآن کريم داؤريدو اوپرې باندې دعمل کولو نه به ئې خلق منع کول اوپخپله به هم ترلرې پاتې کيدل.حضرت عبدالله بن عباس نه منقول دی چه داآيت ،درسول الله ﷺ دتره ابی طالب اودهغه نوروترونو په باره کښې نازل شويدې چه نورخلق بۀ ئې هغوئی ته دتکليف رسولو نه منع کول پخپله به ئې دهغوئ مرسته کوله، مګرپه قرآن کريم ئې نۀ ايمان راوړو اونۀ ئې پر عمل کولو،په دې صورت کښې به﴿يَنۡهَوۡنَ عَنۡهُ﴾ کښې دا ضمير، دقرآن کريم په ځائې رسول الله ﷺ ته راجع وی [مظهری]په روايت دابن ابی حاتم دسعيد ابن ابی هلال نه]-([6])

| | عَلَى النَّارِ | وُقِفُوۡا | اِذۡ | وَلَوۡ تَرٰۤی | |
|---|---|---|---|---|---|
| | په اور باندې | ودرولې شی دوئ | څه وخت چې | اوکاش چې اووينې ته | |
| | اوکه چرې تاد دوئ هغه حالت اوليدو چې د دوزخ په غاړه به اودرولې شی | | | | |
| بِاٰيٰتِ | وَلَا نُكَذِّبَ | نُرَدُّ | يٰلَيۡتَنَا | فَقَالُوۡا | |
| نبښې | اودروغ اونۀ ګنړلې مونږه | ابوتلې شوې واپس | اې کاش که مونږه | نواوبه وائی دوئ | |
| | نو دخپل رب | لاز جوړه شی چې مونږ دنيا ته واپس کړې شو | | نوواځی به چې اې کاش داسې | |

| مَّا | لَهُمۡ | بَدَا | بَلۡ | مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ۝ | وَنَكُوۡنَ | رَبِّنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه حقيقت | دوئ ته | ښکاره به شی | بلکه | نه | مومنانو د | اوشوې مونږه | درب خپل |

نښوته به دروغ نه وايو | او صحيح مومنان به شو | په حقيقت کښې هغوئ داخبره څکه کوی چې

---

[1]) مسند أحمد رقم الحديث: ٣٥٢ مسند عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما۔
[2]) د دے مضمون حديث المعجم للطبرانی کښ موجود دے رقم الحديث: ١٧٥
[3]) مسند أحمد رقم الحديث: ٨٧٦١، مسند ابی هريرة رضی الله عنه۔
[4]) السنن الکبری للبيهقی: ج ١٠، ص ١٩٧
[5]) کنزالعمال رقم الحديث: ٨٢٢٠
[6]) التفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٢٢٨

كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ۭ وَلَوْ رُدُّوْا

چي وو دوی | چي پټولو به ئې | مخكښې ددې نه | اوكه | واپس بوتلې شي دوی دنیا ته |

هغوی كوم څيز پټولو هغه ورته ښكاره شو | اوكه چرې دوی دنیا ته واپس كړې شي

لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ

نو خامخا به بیادوباره كوی | هغه كارونه | چې منع كړې شوې وو دوی | دهغې نه |

نو بیابه هم هغه كارونه كوی | چې دكومود كولو نه منع كړې شوې وو ..........

وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ۝ وَقَالُوْٓا اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا

اوبیشكه چې دوی | خامخادروغژن دی | اووائی | چه نه دې دا ژوند | مگر | ژوندزمونږ |

اودوی پاخه دروغژن دی | ....................اودوی وائی چې بل ژوند نشته | ..........بس صرف دغه

الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ۝ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ

ددنیادې | اونه یومونږ | ادوباره ژوندی كیدونكی | اوكاش | چې اووینې ته | څه وخت چې |

ددنیا ژوند دې | اومونږ به دوباره [دقیامت په ورځ]نه پیدا كیږو | اوكه چرې ته ددوی حالت اووینې كله چې

وُقِفُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ ۭ قَالَ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ۭ قَالُوْا

ودرولې شي دوی | رب خپل ته | اوبه وائی الله | آیانه دې | دا | په حقه سره | اوبه وائی دوی

به دخپل رب مخامخ اودرولې شی | نو هغه به ترې تپوس كوی | چې ولې دا ژوندون حق نه دې | نودوی به وائی

بَلٰى وَرَبِّنَا ۭ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ

هوحق دې | قسم دې په رب خپل | اوبه وائی الله | نو اوڅكئ | عذاب | په سبب دهغې | چې وئ تاسو

ولې نه دې | بلكه زمونږ دې په خپل رب قسم وی چه دا ژوند حق دې | نو الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې ښه نو اوس د

تَكْفُرُوْنَ ۝ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ۭ

چې انكاربه موكولو | یقینا په نقصان كښې پریوتل | هغه كسان | چې دروغ ئې اوگڼړلو | ملاقات دالله سره

خپل كفر په سبب عذاب اوڅكئ | بیشكه هغه خلق نقصان كښې دی | چې خپل رب سره ملاقات ته دروغ وائی

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا يٰحَسْرَتَنَا

تردې پورې | كله چې راشی دوی ته | قیامت | ناساپه | نو اوبه وائی دوی | ای افسوس دې په مونږ باندې

كله چې به هغه وخت ناڅاپه راشی | نو داخلق به اووائی چې ائې افسوس دې په مونږ باندې

عَلٰى مَا فَرَّطْنَا فِيْهَا ۙ وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ

په هغه څه | چې كمې كړې دې مونږ | په هغې كښې | حال داچې دوی | به باركړی وی | بیتی دگناهونو خپلو

چه مونږ په دې معامله كښې څومره كوتاهی كړې ده | اودخپلوگناهونوبارونه به ئې په خپلو شاگانو باندې بار كړې وی

عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ۭ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ ۝ وَمَا الْحَيٰوةُ

په شاگانوخپلو باندې | خبردار اوگورئ | څومره بد دی | هغه بیتی | چې دوی ئې باركوی | اونه دې ژوند

خبردار ډیر خراب دې هغه باركوم چه دوی اوچت كړې دې ......................... | ....... او ژوند ددې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الدُّنْيَآ | اِلَّا | لَعِبٌ | وَّلَهْوٌ ط | وَلَلدَّارُ | الْاٰخِرَةُ | خَيْرٌ | لِّلَّذِيْنَ |
| ددنیا | مگر | لوبې دی | اوتماشه ده | اوخامخاخانې داستوګنې | دآخرت | بهتردې | دپاره دهغه خلقو |

دنیا هیڅ نه دې صرف یوه لوبه اوتماشه ده او د آخرت ژوند د پرهیزګارانو خلقو دپاره

| | |
|---|---|
| يَتَّقُوْنَ ط | اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۞ |
| چې بچ کیدل غواړي دنقصان نه | نوآیا تاسو دعقل نه کارنه اخلئ |

ډیر ښه دې آیا تاسو دعقل نه کار نه اخلئ

## آسان ترجمه قرآن

او (هغه به ډیر هیبت ناک حال وي) که چرې ته وګورې چه کله دوی په دوزخ باندې اودرولې شي او دوی به وائي: اې کاش ! مونږ واپس (دنیا ته) اولیږلې شو دې د پاره چه دې ځل دالله تعالی لره دروغژنې نکړو، او مونږ په مؤمنانو کښې شمار شو حالانکه (ددوی دا آرزو به هم رښتیا نه وی) بلکه په اصل کښې هغه څیز (یعنې آخرت) به دوی ته مخامخ راغلې وي چه هغه به دوی پټولو (دې وجې نه دوی به مجبوراً دا دعوی کوی) کنې که دوی واقعي دوباره اولیږلې شي نو دوی به دوباره هغه څه کوی چه دڅه نه دوی منع کړې شوی وو او یقین وکړه چه دوی پاخه دروغژن دي. دوی خو داسې وائي چه څه دي بس هم دا د دنیا ژوند دې، او مونږ چه مړه شو نو دوباره به نه شو راژوندی کولې. او که ته هغه وخت وګورې چه کله دوی خپل رب ته مخامخ اودرولې شي ! هغه به وائي : آیا دا (دویمه زندګي) حقه نه ده دوی به وائي : هې شکه څمونږ دې په رب قسم وي ! الله به ووائي: نو بیا وڅکئ دهغه عذاب مزه چه د هغې نه تاسو انکار کولو حقیقت دا دې چه ډیر په تاوان کښې دي هغه خلق چه هغوی دالله سره د ملاقات ورځ دروغژن ګنړلې ده ! اګر دې پورې چه قیامت ناڅاپه دوی ته را شي نو دوی به وائي:" هائې افسوس ! چه مونږ دې (قیامت) باره کښې ډیر کمې کړې دې او هغوی به (هغه وخت) په خپلو څانونو باندې د ګناهونو بوج اوچت کړې وي (نو) خبردار چه ډیر بد بوج دې چه دا خلق ئې اوچتوي او د دنیا ژوند خو یو لوبې او تماشې نه سوا نور څه نه دي او یقین وکړه چه کوم خلق تقویٰ اختیار کړي هغوی د پاره د آخرت کور زیات بهتر دې نو آیا دومره خبره هم ستاسو عقل کښې نه راځي؟.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ ﴾ او که تاسو [دوی] هغه وخت اووینئ [نو ډیره هیبتناکه واقعه به اووینئ] څکه چه دا [منکران] به دوزخ سره اودرولې شي [او نزدے به وی چه جهنم کښې وراغورزولې شي] ﴿ فَقَالُوْا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا ﴾ نو [زړګونو آرزوګانوسره] وائې به ارمان دے څه ښه به وی چه مونږ [دنیا ته] بیا اولیږلے شو اوکه داسې اوشو نو مونږ به [بیا] دخپل رب آیتونو [لکه قرآن وغیره] لره هیچرې په دروغه اونه بولو ﴿ وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۞ ﴾ او مونږ به [ضرور] دایمان د خاوندانو نه شو [الله ﷻ فرمائي چه ددوی دا آرزو او وعده به په رښتیا شوق او دفرمانبردارئ کولو په اراده نه وی] ﴿ بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ط ﴾ بلکه [دغه وخت به په یومصیبت کښې راګیر وی چه] کوم څیز ئے ددې نه مخکښې [په دنیا کښې] د پټو

لاندے کولو [او بیخی ئے ختمولو] هغه نن ددوی مخے ته راغلی دي [مراد تري د آخرت عذاب دے چه د کفر او نافرمانئ په بنیاد به دوی ته ددې زورنه ورکولې شوه او دپټو لاندے کولو مطلب انکار کول دی مطلب دادې چه دا وخت دوی ته راپیښه شوي ده ځکه د ځانونو په غم کښې لګیا دی او تولې وعدې کوی اود زړه نه دوعدې پوره کولو اراده ئے بیخی نشته ترد ے چه] ﴿وَلَوۡ رُدُّوۡا لَعَادُوۡا لِمَا نُهُوۡا عَنۡهُ وَاِنَّهُمۡ لَكٰذِبُوۡنَ﴾ که [بالفرض] دا خلق بیرته هم اولیږلے شی بیا به هم هغه کار کوی دکوم نه چه دوی منع کړې شوی وو [یعنی کفر او نافرمانی به کوی] اویقیناً دوی [پدغه وعده کښې] بیخی دروغژن دی [یعنی دوعدې پوره کولو اراده نه لری اونه احتمال شته چه دنیا ته بیرته په تلو سره به داسې اوکړی].

﴿وَقَالُوۡۤا اِنۡ هِىَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنۡيَا وَمَا نَحۡنُ بِمَبۡعُوۡثِيۡنَ﴾ او دا [منکران] وائی چه ژوند بل هیڅرنه نشته یواځې هم ددې دنیا ژوند دے او مونږ به [ددې ژوند دختمیدو نه پس بیا] ژوندی نه کړې شو [الکه چه نبیان ﷺ فرمائی] ﴿وَلَوۡ تَرٰۤى اِذۡ وُقِفُوۡا عَلٰى رَبِّهِمۡ﴾ اوکه تاسو [دوی لره] هغه وخت اووینئ [نو ډیره عجیبه واقعه به اووینئ] کله به چه دوی د خپل رب په مخکښې دحساب دپاره اودرولے شی ﴿قَالَ اَلَيۡسَ هٰذَا بِالۡحَقِّ﴾ او الله ﷻ به ورته اوفرمائی چه [وائې] آیا دا [دقیامت په ورځ دوباره ژوندی کیدل] واقعی کار نه دې ﴿قَالُوۡا بَلٰى وَرَبِّنَا﴾ دوی به وائی بیشکه [واقعی کار دې] قسم دے دپروردګار ﴿قَالَ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُوۡنَ﴾ الله ﷻ به فرمائی چه اوس دخپل کفر مزه اوڅکئ.

[بیا به دوزخ ته اولیږلے شی] ﴿قَدۡ خَسِرَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِلِقَآءِ اللّٰهِ﴾ بیشکه [په سخت] زیان کښې پریوتلی دی هغه خلق چه الله ﷻ سره ملاویدو ته ئے دروغ وئیلی وو [چه مونږ به دقیامت په ورځ د ژوندی کیدو نه پس دالله ﷻ په مخکښې پیش کیږو چنانچه دا دروغژن کول به یئ لږے ورځې چلیږی] ﴿حَتّٰۤى اِذَا جَآءَتۡهُمُ السَّاعَةُ بَغۡتَةً﴾ تر دې پورې چه کله ټاکلے وخت [یعنی دقیامت ورځ خپلو پیشګی واقعاتو سره] په دوی ناڅاپه [په ناخبرئ کښې] راورسی [دغه وخت به یئ تولے وعدې او دروغژن کول ختم شی او] ﴿قَالُوۡا يٰحَسۡرَتَنَا عَلٰى مَا فَرَّطۡنَا فِيۡهَا﴾ ونیل به کوی های افسوس دے زمونږ په کوتاهئ [او غفلت] باندې چه ددې [قیامت] په باره کښې [مونږ نه] اوشو ﴿وَهُمۡ يَحۡمِلُوۡنَ اَوۡزَارَهُمۡ عَلٰى ظُهُوۡرِهِمۡ‌ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوۡنَ﴾ او حالت به ددوی دا وی چه خپل [دکفر اونافرمانئ] پیټئ به یئ په خپلو ځانونو بار کړی وی ﴿وَمَا الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَاۤ اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهۡوٌ﴾ او ددنیا ژوند خو هیڅ نه دې سوا د ټوقو لوبونه [ولے چه دا فائده نه ورکوی اوهمیشه پاتې کیدونکے نه دې] ﴿وَلَلدَّارُ الۡاٰخِرَةُ خَيۡرٌ لِّلَّذِيۡنَ يَتَّقُوۡنَ﴾ او بیا روستے کور پرهیزګارو دپاره ډیرغوره دے ﴿اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ﴾ آیا تاسو سوچ نه کوئی.

## معارف او مسائل

داسلام درې بُنیادی اصول دی توحید، رسالت، دآخرت عقیده پاتې نورې تولې عقیدې هم دې دریو عقیدو لاندې راځی، اوداهغه اصول دی چه انسان لره دخپل حقیقت اودژوند دمقصد نه په آشنا کولوسره ئې په ژوند کښې انقلاب راپیداکوی، په دې سمې اونیغې لارې باند ئې اودروی په دې کښې دآخرت عقیده اوپکښې دحساب، کتاب جزااوسزا عقیده داسې انقلابی عقیده ده چه دانسان دهرعمل مخه یوخاص اړخ ته رااړوی، همدغه وجه ده چه دقرآن کریم تول مضمونونه هم

ددې درېو عقيدو په دائره کښې راځي، په دې بيان شوؤ آيتونو کښې، په خصوصيت سره دآخرت دسوال، جواب ددغه ځائې دسخت او اوږدثواب اوعذاب اودناپائيدارې دُنيا دحقيقت بيان دې-

په رومبي آيت کښې دمجرمانو منکرانو حالت په دې شان بيان شويدې چه دآخرت په ورځ چه دوئ دجهنم په غاړه اودرولې شي اودوئ به دومره سخت هيبتناک عذاب اووينى چه په خوب وخيال کښې به ئې هم نۀ تيرېږي، دغه وخت به داآرزو ښکاره کړي چه کاش مونږ دنياته بيرته اوليږلې شوی آيتونه اواحکام دروغ نۀ بلل بلکه په هغې به موايمان راوړلو اوپه مؤمنانو کښې به داخل شوی وو-

په دوئيم آيت کښې علیم، خبیراحکم الحاکمين ددوئ دويرې دآرزو اصليت داسې ښکاره کړوچه څنګه داخلق په دُنيا کښې ددروغو عادت وودغه شان دوئ په دې وينااوتمنادآخرت کښې هم دروغژن دی، اوسواددې نه بل هيڅ خبره نۀ ده چه دانبياؤ ﷺ په ذريعه کوم حقيقتونه چه ددوئ مخې ته راوړلې شوي وو اودې خلقوسره دپيژندلو نه په هغې دپردې اچولوکوشش کولو، وجه ئې ددوئ نارامي وه يادادُنيا کچه طمعې ئې لرلې، خونن هغه ټولې سراسرى ددوئ مخې ته يويل پسې راغلې، دالله ﷻ دبې مثلې اودکامل قدرت ننداره ئې په خپلوسترګو سره اوکتلې، د پيغمبرانو ﷺ رشتينوالې ئې په خپلو سترګو اوليدلو، په آخرت کښې ددوباره ژوندى کيدو حقيقت ددوئ مخې ته راغې، دجزا، سزا ننداره ئې اوکته، دوزخ ئې اوليدو، حالانکه دوئ به په دُنيا کښې په مخه انکارکولو-اوس دوئ سره دمخالفت کولو هيڅ قسم حُجت اودليل پاتې نشو، څکه داسې وائى چه کاش! مونږدنيا ته بيرته تللې وې نومؤمنان شوی به بيادلته راغلى وو.

خوددوئ پيداکوونکى عليم وخبير مالک اوفرمائيل چه اوس خودوئ اګرچه دغسې وائى ليکن بالفرض که دُنيا ته دوئ اوليږلې شي، بيابه هم خپل دغه لوظونه، قولونه هيرکړي، اووړاند کړي ټول هرڅه به بياکوي، دکومو حراموڅيزونونه چه منع کړې شوی وو دوئ به په هغې کښې بيااخته شي، څکه ددوئ داويناهم يودروغ اوچل ول دې-

ددوئ ويناته دروغ وئيل دانجام په اعتبارسره داسې کيدې شي چه دااوسنی لوظ، قول ددوئ به بياهم دروغ او دهوکه ثابته شي. بل مطلب ئې داهم کيدې شي چه ددې خلقوداوسنۍ وينا په رشتينې وينا په رشتينې اراده سره نۀ ده بلکه هسې وخت تيرولودپاره عذاب نه دبچ کيدو په غرض ئې وائى په زړۀ کښې دغسې اراده نۀ لري-

په درئيم آيت کښې فرمائى: ﴿وَقَالُوٓا إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا﴾ داپه ،عادُوا ،باند عطف دې، معنى ئې داده چه که دوئ لره بيرته دُنياته اوليږلې شی نوهلته به بياهم دغسې وائى، چه مونږخوددې دنيا دژوند نه سوابل ژوند نۀ منو، ژوندخوهم دادې بل ژوندخودسره شته دې نۀ:

دلته يوسوال داسې پيداکيږي چه هرکله به دوئ په قيامت کښې دوباره ژوندى کيدل، جزا ،سزاپه خپلو سترګو اووينى نو هرکله چه بالفرض دنياته راوليږلې شي؟

ددې جواب دادې چه انکاردپاره داضروری نۀ ده چه په واقع کښې به دوئ ددغې واقعاتو اوحقيقتونو يقين نۀ لري، بلکه څنګه چه اوس هم په دُنياکښې ډيرکفاراومُجرمان داسلامى حقيقتونو پوره يقين لري خوخالص دضد اونارامۍ په وجه په انکارکولواوپه دروغه بللويانِد ټينګ دی نوکه دُنيا ته بياهم واپس راشي، دقيامت قائميدو، ددوباره ژونداودآخرت دټولو حالاتو ديقين لرلوباوجود خالص دشرارت اوعنادله کبله به بياهم دروغژن بللو ته بدې اووهى

یعني پاننځي راپورته کړي، لکه څنګه چه قرآن کریم ،په دې موجوده ژوند کښې دبعضې کُفارو په باره کښې داسې فرمائي:

﴿وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا﴾ داخلق زمونږ دآیتونو انکارخوکوی مکر په زړونو کښې ئې دحقوالی پوره یقین دې۔

اوڅنګه چه دیهودوپه باره کښې ئې هم داسې ارشاد دې: چې دوئ خاتم الانبیاء ﷺ لره په دې شان پیژني څنګه چه خپلوځامنو لره پیژني خوسره ددې ئې دهغوئ مخالفت ته بډې وهلی دی یعني پاننځي راپورته کړی دی۔

خُلاصه داشوه چه دکائناتو خالق ازلی علم سره پیژني چه ددې خلقوداویناچه دُنیاته دواپس تلوپه صُورت کښې به دوئ مُؤمنان صالحان شي، بیخي دروغ او دهوکه ده، که ددوئ دوینا مُطابق، دُنیادوباره پیداکړې شي اودوئ پکښې پریښودل شي نوبیابه هم هغه تول هرڅه کوي کوم ئې چه په ړومبي ژوند کښې کړي وو

په تفسیر مظهري کښې دطبراني په حواله دارِوایت دنبي کریم ﷺ نه نقل کړې شویدې چه دحساب کتاب په موقعه به الله ﷻ ،حضرت آدم علیه السلام لره دمیزان عدل خواته اودرولونه پس به ورته اوفرمائي چه دخپل اولاد دعملُونوپخپله معائنه اوکړئ اودکوم کس چه نیک عملُونه دهغه دګناهونونه یو ذره هم زیات شي نوهغه لره جنت ته بوتلې شئ، اوالله تعالی به اوفرمائي چه څه به دجهنم په عذاب کښې صرف هغه څوک داخلوم دکوم په باره کښې چه داپیژنم چې که هغه دوباره هم دُنیا ته اولیږلې شي نوهم هغه کرداربه اداکوي کوم ئې چه ړومبې اداکړې وو-(¹)

﴿وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ﴾ دحدیثو په روایتُونوکښې راغلي دي چه دقیامت په ورځ به دنیکانو خلقو عملُونه دهغوئ سورلئ جوړشي اودبدکارو خلقوعملُونه به دیودروندپیټي په شکل کښې دهغوئ په سرونو بارکړې شي-(²)

دلته دا خبره هم په خاص طور ره د ذکر وړه ده چې کافران فاسقان او فاجران به په میدان حشر کښې دخپلوخانُونوبیچ کولودپاره په وارخطایئ کښې مختلفې خبرې کوي، کله به په دروغه قسمونه خوري، کله به داآرزولري چه دوباره ددوئ دُنیاته اولیږلې شي،مګردابه هیڅوک هم نهٔ وائي چه مونږاوس ایمان راوړو اواوس به نیک عملُونه کوؤ ولې چه حقیقت به ورته په بدیهي دول داسې مخې ته راشي چه آخرت، دار عمل، [دعمل ځائې] نهٔ دې اودابه هم ورته مخې ته راشي چه ایمان ترهغه وخته پورې صحیح دې ترکومې پورې چه ایمان بالغیب وي دخپلولیدو،کتونه پس تصدیق کول خوپه خپلولیدو،کتوباند عمل کول دی، دالله ﷻ اورسُول تصدیق کول نهٔ دی، دې نه معلُومه شوه چه دالله ﷻ رضا ، دهغې نتیجې یعني همیشه ژونداوآرام، په دُنیاکښې دامن اواطمینان پاکیزه ژونداوپه آخرت کښې دجنت نعمتونه حاصلول صرف ددُنیا دژوند په ذریعه کیدې شي ددې نه وړاندې په عالم ارواح کښې هم دانشي حاصلولې اونهٔ ددې په تیریدو باند په عالم آخرت ددې حاصلول کیدې شي۔

دې نه په داګه شُو چه ددُنیاژوند ډیر لوئې نعمت اودتولونه زیات قیمتي څیزدې چه پکښې دغه غټه سوداخرید کولې شي،لهذا په اسلام کښې خُودکُشي کول حرام اودخپل مرګ دُعا یا

¹) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۲۹، ۳۳۰، ومجمع الزوائد، باب ما جاء في الحساب: ج ۵، ص ۳۵

²) د دے مطمون حدیث تفسیر البغوي تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۱۳۶ کښي اوګورئ۔

آرزو کول منع دي ځکه چه په دې کښې دالله ﷻ دیولوئې نعمت ناشکری ده، دځنې بزرګانو په باره کښې راغلی دی چه دهغوئ دوفات کیدوپه وخت دمولاناجامی داشعرئې په ژبه جاری وو

باد ورو زِ زندگی جامی نشد سیرِ غمت
وه چه خوش بُودے که عُمرِ جاودانی داشتیم

[اې جامی ددوۀ ورځوپه دې ژوند ته موړنشوې - څه ښه به وو چه دهمیشه ژوندم په برخه وې]-

دې نه داخبره هم په ډاګه شوه چه ددغې بیان شوؤ آیتونو څخه په آخری آیت کښې اوپه نورو ګڼرو آیتونوکښې چه ددُنیا ژوند عبث اولوبه بللې شویدې یاپه ګڼرو احادیثوکښې ددنیا بدی چه بیان شویده، دهغې نه مُراد ددُنیوی ژوندهغه ګړئ اووختونه دی چه دالله ﷻ دذکر، فکرنه په غفلت کښې تیرشی ورنه کوم وخت چه دالله ﷻ په عبادت اوذکرکښې تیرشی هغې سره ددُنیا هیڅ یونعمت اودولت نشی برابریدې-

دِن وہی دن ہے شب وہی شب ہے جو تیری یاد میں گذر جائے

[هغه ورځ هله په ورځ حسابیږی اوشپه هله په شپه حسابیږی ،چه ستا [پروردګار] په یادوکښې تیرشی]-

دیوحدیث شریف نه هم ددې تائید کیږی لکه فرمائی:

﴿الدنیاملعون وملعون مافیها الاذکر الله اوعالم اومتعلم﴾[1] دُنیا پخپله اوپه دُنیاکښې ټول څیزونه ملعُون دی مګردالله ﷻ یاداوعالم یاطالب علم[ددین]-

که غوراوکړې شی نوعالم اوطالب علم هم دالله ﷻ په ذکرکښې څکه داخلیږی چه علم نه مُراد هغه علم دې چه دالله ﷻ درضاسبب جوړ شی نودداسې علم پخپله ازده کول اوبل ته ورازده کول دواړه دالله ﷻ په ذکرکښې داخل دی بلکه دامام جزری ددې ښکاره قول په جوړ ددنیا هرهغه کار چه دالله ﷻ په فرمانبرداری کښې دشریعت مُطابق اوکړې شی، دغه ټول دالله ﷻ په ذکرکښې داخل دی، دې نه معلومه شوه چه ددُنیاټول ضروری کارونه دروزګارتولې روالاړې چارې او نوهغه ضروریات چه دشریعت دحدنه بهرنۀ وی هغه ټول دالله ﷻ په ذکرکښې داخل دی، دبال بچ، خپلوانو، دوستانو، ګاونډیانواومیلمنو وغیره حقوق اداکول دصحیح احادیثوله مخې خیرات اوعبادت بللې شویدی][2]

حاصل داشو چه په دې دُنیا کښې دالله ﷻ دفرمانبرداری اودالله ﷻ دذکرنه سوا بل هیڅ څیز، دالله ﷻ په نزد غوره نۀ دې، اُستاذ محترم حضرت مولاناانورشاه صاحب قدس سره څه ښه فرمائیلي دی-

بگذرازیاد گل وگلبن که هیچم یادنیست درزمین وآسمان جزذکرحق آباد نیست

[دګُل اوګُلبوټی دیادنه ورتیرځکه شه چه دام هیڅ نۀ یادیږی-په زمکه اوآسمان کښې دالله ﷻ دیادونه سوا ،بله هیڅ آبادی نشته]-

خُلاصه دکلام داده چه په دې دُنیاکښې هرانسان ته حاصل څیزاوتولونه ورته قیمتی اوزیات غوره ددۀ ژوند دې اوداهم معلومه ده چه دهرچاډژوند وخت ترڅه حده پورې وی اوداهم معلومه ده

[1] المعجم الأوسط للطبرانی رقم الحدیث: ۴۰۷۲
[2] جامع الترمذی، أبواب الزهد، باب: ج ۲، ص ۷۸

چه دخپل ژوند صحيح حد هيچا ته معلوم نه دې چه اويا کاله، اويا گينتې يا ديوې سامهلت به هم نشي ورکولې-

بل اړخ ته دا هم معلومه شوه چه دالله ﷻ درضا بيش قيمته سامان او پنګه چه ددُنيا او آخرت دآرام مزو چرچو او دهميشه آرام ضامنه ده هغه يواځې په دې محدود دنيوی ژوند کښې حاصلولې شي نو کوم انسان ته چه الله ﷻ عقل فکر ورکړی وی هغه پخپله دا فيصله کولې شي چه دژوند دغه محدودې ګړئ په څه کار کښې لګول پکار دی چه ورسره دالله ﷻ رضا حاصله شي- ددې ژوند دجاری لرلو دپاره ضروری کارونه دضرورت په اندازه کول پکار دی- چنانچه په يو حديث شريف کښې راغلی دی- [الكيس من دان نفسه ورضى بالكفاف وعمل لما بعد الموت] (۱) عقلمند او هوښيار هغه څوک دې چه دخپل ځان حساب پخپله کوی او دګذارې او په اندازه، دژوند په ضروریاتو باند راضی شي او ټول عمل دمرګ نه پس ژوند بنه کولو دپاره او کړی-

قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ

| يقينا معلومه ده مونږ ته | بيشکه شان دا دې

| اې پيغمبره مونږ ته ښه معلومه ده چې بيشکه ددوی

لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ

چې خامخا خفه کوی تا | هغه خبری | چې وائي ئې دوی | نو بيشکه دوی | نه دروغژن کوی تا | خو ليکن |

په خبرو ته غمژن کيږې | خودوی تا ته دروغژن نه وائي | ..............................بلکه

الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ۝ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ

داظالمان | د آيتونو دالله نه | انکار کوی | او په تحقيق سره | دروغژن بللې شوی دی | پيغمبران

ظالمان دالله ﷻ دآيتونو نه انکار کوی | او ستانه مخکښې ډير پيغمبران دروغژن ګڼرلې شوی وو

مِّن قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا

وړاندې ستانه | نو صبر او کړو هغوی | په هغې | چې دروغ ګڼرلې شوی وو هغوی | او تکليف رسولې شوې وو هغوی ته

خو په دروغژن کولو او په تکليف ورکولو باندې هغوی صبر او کړو |

حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ۚ وَلَقَدْ

ترهغې پورې | چې راغې هغوی ته | مدد زمونږه | او نشته هيڅوک بدلونکې | خبرو دالله لره | او په تحقيق سره

تردې چې زمونږ مدد ورته اورسيدو | او دالله ﷻ خبرې هيڅوک بدلولې نشي | ..................او د

جَاءَكَ مِن نَّبَإِ الْمُرْسَلِينَ ۝ وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ

راغلې دی تا ته | دخبرونو | دپيغمبرانو نه | او که وی | ګران | په تا باندې |

پخوانو پيغمبرانو بعضې حالات تا ته رارسيدلی دی | او که داخبره په تا ګرانه وی | چې

إِعْرَاضُهُمْ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَن تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ

مخ اړول ددوی | نو که | وس رسی ستا | چې اولټوې ته | يو سورنګ | په زمکه کښې |

ددې خبرو بې رخی برداشت کړې | نو که وس دې کيږی نو په زمکه کښې يو سورنګ اولټوه

۱) جامع الترمذي، أبواب القيامة، باب: ج ۲، ص ۷۳

أَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَاءِ فَتَأْتِيَهُمْ بِآيَةٍ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ

یا اندرپایه | په آسمان کښی | نوته راوړه دوی ته | یوه نښه | اوکه غوښتلي الله

یا آسمان ته یوپوړۍ اولګوه| او دوی ته دیوې نښې راوړلو کوشش اوکړه | اوکه الله ﷻ غوښتل

لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ

نو خامخا به ئې جمع کړي وې دوی|په هدایت باندې | نومه کیږه ته | د ناپوهانو نه |

نوټول به ئې په هدایت یوځائې کړی وو|............ نو ته د ناپوهه خلقو په شان مه کیږه

إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ ۘ وَالْمَوْتَىٰ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ

بیشکه| قبلوی بلنه دحق | هغه کسان| چې اوری | اومړی چې دی| راپورته به کړی هغوی لره الله

هغه څوک چې حق قبلوی هغوی؛ هغې ته غوږ نیسی|اوپاتې شو|مړی نو هغوی خو به الله دقبرونو نه راپورته کړی

ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ۝ وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ

بیا |خاص هغه ته | به واپس وروستې شی |او وائی خلق | چې ولې نازله نه کړې شوه | په ده باندې

بیا به هغه ته واپس پیش کړې شی | ............اودوی وائی چې ده ته ولې ............

آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ ۚ قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَنْ يُنَزِّلَ آيَةً

یوه نښه|دطرفه درب دهغه نه|ورته اووایه|چې بیشکه الله| قادردې |په دې| چې نازله کړی| یوه نښه

دالله ﷻ د طرفه نښه نه راځی| ............ورته اووایه چې الله ﷻ دنښې راکوزولو پوره پوره طاقت لری

وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝ وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ

لیکن | اکثرد دوی | نه پوهیږی |اونشته | یو زنده خناور | په زمکه کښی |

خو اکثر خلق په دې نه پوهیږی | ............اود زمکې په مخ هیڅ یو ساه لرونکې نشته

وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ ۚ مَا

اونه یومارغه |چې الوزی | په دواړه وزرو خپلو | مګر |امتونه دی| په شان ستاسو| نه دې

اونه په هوا کښې داسې مارغان شته چې په وزرو الوزی | مګردا ټول ستاسو پشان امتونه دی

فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ ۝

پریښې مونږه کمې |په کتاب کښی | دڅه څیز | بیابه |رب خپل ته | ورجمع کړې کیږی

مونږ ددې ټولو په نصیب لیکلو کښې هیڅ کمې نه دې کړې| اوبیابه دا ټول خپل رب ته واپس شی

وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا صُمٌّ وَبُكْمٌ فِي الظُّلُمَاتِ ۗ

اوهغه کسان | چې دروغ ګڼړی | آیتونه زمونږه | کاڼره دی|اوګونګیان دی|په تیارو کښی پراته دی |

اوچاچې زمونږ آیتونه دروغ اوګڼړل| هغوی کاڼره اوګونګیان او په رنګ رنګ تیرو کښې پراته دی

مَنْ يَشَإِ اللَّهُ يُضْلِلْهُ ۗ وَمَنْ يَشَأْ يَجْعَلْهُ عَلَىٰ صِرَاطٍ

څوک چې غواړی الله | نو ګمراه کوی هغه لره |اوڅوک چې غواړی | نو روانوی هغه| په لاره

الله ﷻ چې دچا باره کښې اوغواړی نو هغه ګمراه کوی | او د چا باره کښې چې اوغواړی نو هغه په

مُّسْتَقِيْمٍ ۞ قُلْ أَرَءَيْتَكُمْ إِنْ أَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ

نیغه |ورته اووایه| څه رنګې ښکاري تاسوته | که | راشي تاسو ته | عذاب دالله

سمه لاز روان کړي | ..............ورته اووایه چې فکراوکړئ که په تاسو دالله ﷻ عذاب راشي

أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ ۚ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۞

یا راشي تاسو ته | قیامت | آیا بغیردالله نه بل څوك | رابلئ تاسو | که یئ تاسو | رښتیني

یاپه تاسو[ناڅاپه]آخري وخت راشي | نوآیاتاسوبه دالله ﷻ نه سوابل چاته آواز کوئ| که تاسوریښتوني یئ

بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ إِلَيْهِ إِنْ

بلکه|خاص هم هغه| رابلئ تاسو |بیا لرې کوی |هغه مصیبت | چې تاسو رابلئ | هغې ته | که

بلکه هغه وخت کښې تاسوصرف یو الله ته آواز کوئی| نو که الله اوغواړي نو هغه مصیبت به درنه لرې

شَآءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ۞

اوغواړي|اوهیروئ تاسو| هغه | چې شریك کوئ ئې تاسو |

کړي اوپه دا سې موقع کښې درنه خپل شریکان هیرشي |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره !) مونږ ښه پوهیږو چه دا خلق کومې خبرې کوي په هغې ته خفه کیږې ځکه چه دوی په اصل کښې تا نه دروغژنوي بلکه دا ظالمان دالله دآیتونو نه انکار کوي اوحقیقت دا دې چه ستا نه مخکښې ډیر انبیاء کرام دروغژن کړې شوي دي بیا چه څنګه هغوی دروغژن کړې شو او تکلیفونه ورکړې شو نو هغوی په هغې باندې صبر وکړو، تر دې چه ځما مدد هغوی ته راورسیدو، او نشته دې بدلولکې کلماتو دالله لره.او د مخکنو انبیاء کرامو څه واقعات تا ته راسیدلي دي .او که ددې خلقو مخ اړول تا ته ګران لګي نو که ته زمکه کښې دننه (تلود پاره) څه سرنګ یا آسمان ته (ختلو د پاره) څه اندرپایه لټولې شې نو دوی ته (ددوی دا خوښتلې شوې) معجزه راوړه.او که الله غوښتل نو دوی ټول به ئې په هدایت جمع کړې وې پس ته د ناپوهو نه چرې هم مه کیږه خبره خو هغه خلق منلې شې چه (دحق طالب جوړ شي) آوري.او هر چه مړي دي نو دوی به الله د قبرونو نه راپاڅوي بیا به دوی الله ته واپس شي.دا خلق وائي چه (که دا پیغمبر وي نو) په ده څه معجزه ولې نه ده راغلې؟ ته (دوی ته ووایه بې شکه الله په دې قادره دې چه څه نښه نازله کړي، لیکن دوی کښې اکثر خلق (ددې په انجام) نه پوهیږي او په زمکه کښې چه څومره ځناور ګرځي ، او څومره مارغان چه په وزرو آلوځي . هغه ټول دمخلوقاتو ستاسو غوندې قسمونه دي مونږ په کتاب کښې (یعني لوح محفوظ کښې) څه کمې نه دې پرېښودې بیا دا ټول به راجمع کړې شي اوخپل پروردګار طرفته به بوتللې شي او کومو خلقو چه زمونږ آیتونه دروغژن کړي دي هغوی په تیارو کښې کاڼره او ړانده او ګونګیان شوي دي الله تعالیٰ چه چا ته وغواړي د (هغه د ضد د وجې نه) په ګمراهۍ کښې اچوي او چا ته چه وغواړي نو په سمه لاره کوي ئې (دې کافرانو ته) ووایه چه که تاسو رښتیني یئ نو لږ دا وښایئ چه که په تاسو دالله عذاب راشي یا په تاسو قیامت راشي نو دالله نه سوا بل چا لره به رابلئ؟ بلکه هم دې الله لره به رابلئ . بیا چه کوم تکلیف د پاره تاسو هغه لره رابللې وي ، که هغه

**وغواړې نو هغه به لري کړي او کوم (بهتان) چه تاسو د الله سره شريك کړي دي هغه به تاسو نه (هغه وخت) هېر شي.**

## خلاصه تفسیر

**د کفارو په بې هوده خبرو باندې نبي کريم ﷺ ته تسلي:** ﴿ قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ ﴾ مونږ ښه پوهيږ چه تاسو لره ددې [کافرانو] خبرې غمژن کوی نو [تاسو غم مه کوئی بلکه ددوی معامله الله ﷻ ته اوسپارئ ولې چه] ﴿ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ ﴾ دا خلق [نيغ په نيغه] تاسوته دروغژن نه وائی ﴿وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ۝ ﴾ ليکن دا ظالمان خودالله ﷻ د آيتونو څخه هم قصدا انکار کوی [اګر چې په دې سره ستاسو دروغژن ګرځول هم لازميږی مګر ددوی اصل مقصد دالله ﷻ آيتونو لره دروغژن کول دی [څنګه چه په دې کښې بعضے لکه ابوجهل ددې اقراريان دی اوهرکله چه ددوی اصل مقصد دالله ﷻ آيتونولره په دروغه بلل دی نو د دوی معامله پخپله الله ﷻ سره شوه هغه به پخپله دوی سره پوهه شی تاسو ولې غم کوئی] ﴿ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ ﴾ او [دکفارو دا دروغژن ګرځول څه نوے خبره نه ده بلکه] ډيرګنړ پغمبران چه تاسو نه مخکښې وو هغوی ته هم دروغژن وئيلې شوی دی ﴿ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا ﴾ چه پرے هغوی هم صبر اوکړو چه هغوی ته دروغژن اووئيلې شو﴿ وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا ﴾ اوورته [قسماقسم] تکليفونه وراورسولې شو تردے پورې چه زمونږ امداد هغوی ته اورسيدو [هغې سره مخالف خلق رالاندے کړې شو ترد غے وخته پورې هغوئ صبرکولو] ﴿ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ﴾ او [دغه شان دصبر کولو نه پس به تاسو ته هم دالله ﷻ امداد دراورسيږی ولې چه] دالله ﷻ خبرو [يعنی وعدو] لره څوك بدلوونکے نشته [او د امداد وعده تاسو سره شويده لکه چه الله ﷻ فرمائی ﴿لاغلبن انا ورسلی﴾ ﴿وَلَقَدْ جَاءَكَ مِنْ نَبَإِ الْمُرْسَلِينَ۝ ﴾ او تاسو ته دپغمبرانو بعضې قيصے [په قرآن پاك کښې] دررسيدلی دی [چه ورسره دالله ﷻ امداد اوبالاخر دمخالفينومغلوبه کيدل ثابتيږی ددې تسلیٔ ورکولو مطلب دادې چه دالله ﷻ دوعدې مطابق په مخکښنو څو ورځو کښې دهغوی صبر کولو نه پس هغه خپلو رسولانو ته امداد راليږی چه ورسره په دنيا کښې هم حق غالب کيږی اوباطل مغلوبه کيږی.اوپه آخرت کښې ورته عزت اوکاميابی ملاويږی.تاسو سره هم دغه شان معامله کيدونکے ده.تاسو غم مه کوئی.اوهر کله چه رسول الله ﷺ په ټول انسانانو باندې ډير زيات شفقت کوونکې او مهربانه وو نو څکه سره ددې تسلیٔ نه يئ دا غوښتل چه که دا مشرکان په موجوده معجزو اودپغمبرئ په دليلونو باندې په پوره تسلیٔ سره ايمان نه راوړی نودکوم قسم معجزو چه دوی غوښته کوی هغه معجزات دے ښکاره کړې شی کيدیشی چه داسې کولو سره دوی ايمان راوړی اوپه دې لحاظ ددوی کفر ئے چه ليدلو نودهغوی صبر نه کيدو څکه په راتلونکو آيتونو کښې ئے دا اوخودل چه دالله ﷻ دحکمت په مطابق به ددوی فرمائشی معجزے نشی ښکاره کولې .تاسو ترڅه وخته صبر اوکړئی ددغې معجزو په نه ښکاره کولو باندې فکر مند کيږئی مه.

﴿وَإِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ﴾ اوکه تاسو باندې [دمنکرانو] مخ اوړل [اوانکار کول] سخت تيريږی [اوځکه دے زړه غواړی چه ددوی فرمائشی په زمکه کښې معجزے دے ښکاره کړې شی] ﴿فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ﴾ نوکه تاسو وس وی چه [ننوتو دپاره] په زمکه

کښې څه سرنګ ﴿ اَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَآءِ ﴾ یا آسمان ته [دختلو دپاره] څه پوړئی [پارسنګ ، څېنه] اولټوئی ﴿ فَتَاْتِيَهُمْ بِاٰيَةٍ ﴾ بیا [دهغې پذریعه زمکې ته دننه یا آسمان ته پورته په تلو سره دغه ځائې نه د فرمائشی معجزو نه یو] معجزه راوړئی نو [ښه ده تاسو دغسې] اوکړئی [یعنی مونږ خو ددوی فرمائشونه ځکه نه پوره کوؤ چه یو خو ددې ضرورت نشته بل دا چه زمونږ د حکمت نه خلاف دی که په څه شان سره تاسو ددوی مسلمانیدل غواړئی نو ددې انتظام په خپله اوکړئی] ﴿ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى ﴾ اوکه الله ﷻ ته [تکوینًا] منظور وې نو دغه ټول به یې په [سمه]لاره راجمع کړې وے [لیکن هرکله چه دوی پخپله خپله ښیګړه نه غواړی په دې وجه الله ﷻ ته تکوینًا دا منظور نه شو بیا ستاسو دغوښتلو نه څه جوړیږی] ﴿ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝ ﴾ نوتاسو [دا فکر پریږدئی او] په نادانو کښې ځان نه راولئ [حق خبرے او هدایت لره خو] ﴿ اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ ۘ وَالْمَوْتٰى ﴾ هم هغه خلق قبلوی چه [حق خبرے لره دحق لټولو په اراده] آوری او [که ددې انکار او مخ اړولو پوره سزا دوی ته په دنیا کښې ورنه کړې شی نو څه اوشو آخر یو ورځ] مړو لره به ﴿ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ۝ ﴾ الله ﷻ [دقبرونو نه ژوندی کړی] راپاسوی بیا به هغوی ټول الله ﷻ ته [دحساب دپاره] راوستلې شی ﴿ وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ﴾ اودا [منکر] خلق [د دښمنئ له وجے] وائی چه که دا نبی دې نو په دوی باندې [زمونږ د فرمائشی معجزو نه] څه معجزه ولے نازله نه کړې شوه ﴿ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ ﴾ تاسو اوفرمائې چه الله ﷻ بیشکه پوره قدرت لرونکې دې په دې چه هغه [هم دغسې] معجزه نازله کړی لیکن پدوی کښې اکثر [ددې د انجام نه] ناخبره دی [ځکه داسې خواستونه کوی اوهغه انجام دادې چه که بیا هم ایمان راونړی نو ټول په سمدستی هلاك کړې شی لکه الله ﷻ فرمائی چه ﴿ لو نزلنا ملکا لقضی الامر ﴾ حاصل دادې چه ددغې کافرانو دفرمائشی معجزے ښکاره کولو خو ضرورت نشته چه ړومبے خو هم معجزے ګڼړے ښکاره کړې شوی دی لکه الله ﷻ فرمائی چه ﴿ اولم یکفهم الخ ﴾ او مونږ پوهه یو چه په دغه فرمائشی معجزه به هم ایمان راو نړی چه دهغې له وجې به سمدستی دعذاب مستحق شی لهذا د حکمت تقاضا داده چه ددوی فرمائشی معجزه ښکاره نه کړې شی او د آیت په آخر کښې ﴿ ولا تکونن من الجاهلین ﴾ دمینے شفقت په طور دی ولے چه په عربی ژبه کښې لفظ دجهالت دغے عامے معنا دپاره هم استعمالیږی په خلاف د اردو ژبے .په دې وجه ترجمه ئے په جهل یا جهالت سره کول د ادب خلاف دی.وړسے آیتونو کښې د خبرداری په غرض دقیامت او دټولو مخلوقاتو دحشر بیان دې].

﴿ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ ﴾او څومره قسمه سادار [ځیزونه] چه په زمکه [په اوچه اوپه لونده کښې] ګرځیدونکی دی ﴿ وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ ﴾او څومره قسمه الوتونکی سادار [ځیزونه] دی چه په خپلو دواړو متو سره الوځی ﴿ اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ﴾ په دې کښې څه قسم داسې نه دی چه [دقیامت په ورځ به ژوندی راپاسیدو کښې] ستاسو پشان دلے نه وی ﴿ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ﴾ او [اګر چه دخپل دېروالی په وجه به په عرف کښې بیشمیره وی لیکن زمونږ په حساب کښې ټول ځکه راغلی دی چه] مونږ [په خپل] دفتر [لوح محفوظ] کښې څه ځیز [چه قیامته پورې به موجودیدونکے وی بےلیکلو] نه دې پریښے [اګر چه الله ﷻ ته دلیکلو څه ضرورت نه وو دهغه

ازلي او راچاپيره علم كافي دے ليكن د ليكلو په ذريعه دے لره ضبط كښې راوستل عامې پوهے ته زيات نزدے دي] ﴿ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ ۝﴾ بيابه دے نه پس په خپل [تاكلي وخت باندې] تول [انسانان او ځناور] دخپل پروردګار خواته راجمع كيږي [اوپسے بيا رسول الله ﷺ ته دتسلئ وركولو مضمون داسې دې] ﴿ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ﴾ او كوم خلق چه زمونږ آيتونه په دروغه بولي ﴿ صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ ﴾ هغوی خو [دحق آوريدونه] كانړه [غوندې] او [دحق وئيلو نه] ګونګيان [غوندې] جوړيږي [او ددې په وجه] په قسماقسم تيارو كښې [راګير] دی [ځكه چه هر كله هر كفر يوه تياره ده اوپدوی كښې مختلف قسم كفرونه راجمع دی چه دا بيا بيا كوی نو بيلے بيلے ګنړے تيارے ترې جوړيږي] ﴿ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ ﴾ الله چالره چه اوغواړي [حق نه دمخ اړولو په وجه] بے لارې ئے كړي ﴿ وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝﴾ او چالره چه اوغواړي [په خپل فضل سره] نيغے لارې ته ئے برابر كړي.

﴿ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ ﴾ تاسو [مشركانو ته] اووائې چه [بنه ده] داخو اوښائي چه كه په تاسو دالله ﷺ څه عذاب راشي يا قيامت دربانديې راورسی ﴿ اَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝﴾ نوآيا [ددغې عذاب اود قيامت د ويرے ختمولو دپاره] دالله ﷺ نه سوا به بل چالره بلئ كه تاسو [د شرك په دعوی كښې] رښتينی يئ [نوپكار دی چه اوس هم غيرالله لره بلئ ليكن داسې هيچرې نه كيږي] ﴿ بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ ﴾ بلكه [دغه وخت خو] خاص هم هغه لره به بلئ بياچه دكوم [آفت] د [ختمولو] دپاره تاسو [هغه لره] بلئ كه هغه اوغواړي نولرے به كړي [اوكه وے نه غواړي نولرے به يې هم نكړي] او چالره چه تاسو [اوس دالله ﷺ] شريك ګرځوئی [دغه وخت] ﴿ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ۝﴾ دغے ټولو لره به بيخي هير كړئی .

## معارف اومسائل

ددې آيتونو څخه په رُومبی آيت كې داسې اوفرمائيلې شو: ﴿ فَاِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ ﴾ [يعنی داكفار په حقيقت كښې تاسوته دروغژن نهٔ وائی بلكه دالله ﷺ آيتونو ته ددروغونسبت كوی] ددې واقعه په روايت دسُدی سره تفسير مظهری داسې نقل كړيده چه يوځل دقُريشو دكُفارو ددوؤ سردارانو اوخنس بن شريق اوابوجهل خپل منځ كښې سره ملاقات اوشو-اخنس ابی جهل نه تپوس اوكړو چه اې ابوالحكم: اوس بالكل يواځې يُو، څوك دريمګړې زمونږ ددواړو خبره نهٔ آوري، اوس راته دااووايه چه دمحمدبن عبدالله ﷺ په باره كښې دڅه خيال دې، صحيح صحيح راته اووايه چه رشتينې يې ګنړې اوكه دروغژن؟ [په عربو كښې به ابوجهل دابوالحكم په نوم يادېدوخو هر كله چه اسلام اومسلمانانوسره ئې ضد اودُشمنی كوله په دغې وجه هغه به بيادابی جهل په نوم يادېدلو]

ابوجهل په قسم سره ورته اووئيل چه ماته محمد ﷺ ځكه رشتينې ښكاری چه ټول عمرئې چرې دروغ نهٔ دی وئيلی البته دانهٔ شو برداشت كولې چه دقُريشو دقبيلې په يوخاندان، بنی قُصی كښې ټولې خُوبئ اوكمالات راجمع شی اوباقی قُريش خالی لاس پاتې شی، جنډه دبنی قصی په لاس ده، په حرم كښې حاجيانوباندداوبوڅكولو ير مقصودی انتظام دوئ سره دې، دبيت الله شريف دروانچيان دوئی دی اوكُنجی دوئ سره په لاس كښې ده، نوكه دااومنو چه پيغمبری دهم دوئ سره وی نوروقريشو سره به څه پاتې شی-

یوبل روایت دنا جیه ابن کعب نه داسې منقول دی چه یوځل ابوجهل، رسول الله ﷺ ته پخپله داسې اووئیل چه مونږ په تاسو باندې د دروغو ګمان نۀ لرو اونۀ درته د دروغو نسبت کوو، البته هغه کتاب یادین ته په دروغه وایو، کوم چه تاسو راوړی دې [مظهری] (۱)

د دې روایتونو په بنا، د آیت حقیقي مطلب هم داسې اغستې شي چه داکُفار، تاسو ته نسبت د دروغونۀ کوی بلکه د الله ﷻ آیتونه ته د دروغو نسبت کوی، او دا مطلب ئې هم کیدې شي چه دا کُفار، اګرچه دوئ په ښکاره د رسول کریم ﷺ تکذیب کوی مګر په حقیقت کښې د رسول کریم ﷺ د دروغژن کولو انجام هم دا راوځي چې دوئ د الله ﷻ او د هغه آیتونو نه د دروغو نسبت کوی، ځنګه چه په یو حدیث شریف کښې هم راغلي دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: څوک چه ماته زیان تکلیف رارسوی هغه په حقیقت کښې الله ﷻ ته د زیان تکلیف رسولو په حُکم کښې دې- (۲)

په شپږم آیت کښې د: ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ﴾ نه معلومه شوه چه د قیامت په ورځ به انسانانو سره ټول ځناور هم راژوندی کولې شي- چنانچه ابن جریر، ابن ابی حاتم او بیهقي د حضرت ابی هریره په روایت داسې نقل کړیدی چه د قیامت په ورځ به، ټول ځناور، ځاروی او مارغان هم دوباره ژوندی کولې شي او الله ﷻ به د دوئ ترمنځه هم په دې شان انصاف کوی چه یو ښکر ورځناور په بل بې ښکرو ځناور زیاتې کړې وی او په ښکرئې وهلې وی نو په قیامت کښې به د هغې بدل هم تراغستې شي [او د غه شان بدل به د نورو ټولو ځناورونه هم اغستې شي] د دغسې بدل اغستو نه پس به ورته د خاوړې کیدو حُکم اوشي، چنانچه هغه به خاوړې شي، هم دغه وخت به کُفار هم دا ارمان اوکړی چه: ﴿يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا﴾ [کاش زۀ هم دغسې خاوړې شوې وې او د جهنم د عذاب نه خلاص شوې وې]- (۳)

امام بغوی هم په یو بل روایت سره د حضرت ابی هریره نه د رسول الله ﷺ دا فرمان مُبارک نقل کړیدې چه د قیامت په ورځ به ټولو حقدارانو ته د هغوئ حق ادا کولې شي تر دې پورې چه د بې ښکرو چیلۍ [بزې] بدل به د ښکروړې چیلۍ نه هم واغستې شي- (۴)

**د مخلوق خُدا د حقوقو بې زیات اهمیت:** دا خو هرچاته معلوم دی چه ځناور د څه شریعت او احکامو مکلف نۀ دی، یوا ځې پیریان او بُنیادم د دې مُکلف دی خوسره د دې د عُلماؤ د وینا مُطابق، په قیامت کښې د ځناورو [غیر مُکلفو] نه د بدل اغستو مطلب، دا په ډاګه کول دی چه الله رب العالمین د بې انتها عدل او انصاف خاوند دې ځکه د ظُلم نه سوا د دوئ په بل عمل باندې جزا اوسزا نشي ورکولې، د دې نه معلومه شوه چه د مخلوق خُدا ترمنځه د حقوقو او ظلمونو معامله دومره سنګینه ده چه غیر مُکلف ځناورئې هم د دې نه آزاد نکړل، مګر افسوس دې چه ډیر دیندار او عبادتګذار خلق هم په دې کښې بې پرواهي کوی

| ارسلنا | ولقد |
| --- | --- |
| اوپه تحقیق سره الیږلي دی مونږ [پیغمبرانا] | |
| اومونږ لیږلي وو رسولان | ........ |

(۱) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۳۲، وتفسير البغوي تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۸، ۱۳۹
(۲) شعب الإيمان للبيهقي رابع عشر، باب في حب النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث: ۱۵۱۱
(۳) تفسير ابن أبي حاتم رقم الحديث: ۷۲۹۶، ومستدرك للحاكم رقم الحديث: ۳۲۳۱
(۴) السنن الكبرىٰ للبيهقي: ج ۶، ص ۹۳ وتفسير البغوي تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۲

إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَخَذْنَٰهُم بِٱلْبَأْسَآءِ وَٱلضَّرَّآءِ

ډيروقومونوته | وړاندې ستا نه | نو اونیول مونږ هغوی | په سختوسره | او په تکلیفونوسره |

ډيروقومونو ته مخکښې ستانه | بیامونږ هغوی په سختواو مصیبتونو کښې راګیر کړل

لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ ۝ فَلَوْلَآ إِذْ جَآءَهُم بَأْسُنَا

دپاره ددې چې هغوی | عاجزی اختیار کړی |نوولې نه وه | کله چې|راغې هغوی ته | عذاب زمونږ

دې دپاره چې عاجزی اختیار کړی | نوهر کله چې په دوی باندې زمونږ دطرفنه سختئ راغلې

تَضَرَّعُوا۟ وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ

چې عاجزی ئې کړې وه | لیکن | سخت شو | زړونه دهغوی |اوښائسته کړو |هغوی ته|

نودوی ولې عاجزی اختیار نه کړه | بلکه ددوی زړونه سخت پاتې شو|.................. اودوی ته

ٱلشَّيْطَٰنُ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ۝ فَلَمَّا نَسُوا۟ مَا ذُكِّرُوا۟

شیطان|هغه عملونه| چې وۍهغوی| چې کوول به ئې |نوهرکله چې هیر کړوهغوی|هغه کار|چې نصیحت شوې وۍ هغوی ته

شیطان د هغوی [بدعلمونه] ښائسته کړل |..................نو هر کله چې دوی نصیحتونه هیر کړل

بِهِۦ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَٰبَ كُلِّ شَىْءٍ حَتَّىٰٓ إِذَا فَرِحُوا۟

په هغې سره|نوپرانستلې مونږ|په هغوی باندې|دروازې | دهرخیز | اتردې پورې|چې کله|خوشحاله شو

نومونږ پرې دهرقسم خوشحالو دروازې پرانیستې | ..............تردې چې دوی ته مونږ څه ورکړې وو په

بِمَآ أُوتُوٓا۟ أَخَذْنَٰهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ ۝

په هغه څه| چې ورکړې شوی ووهغوی ته|نواونیول مونږهغوی|ناڅاپه| نوبیاووهغوی | ناامیده دخیرنه

هغې خوشاله شول| نو مونږ ناڅاپه راونیول | او دوی بالکل حیران پاتې شو

فَقُطِعَ دَابِرُ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ وَٱلْحَمْدُ لِلَّهِ

نوپرې کړې شوا بیخ | دقوم | هغه |چې ظلم ئې کړې وو |او تعریف دې |خاص الله لره |

نو دظالم قوم بیخ پرې کړې شو | .........اوټول تعریفونه الله ﷻ لره دی

رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝

چې رب دې| دمخلوقاتو |

چې دټول مخلوق پروردګار دې|

## آسان ترجمه قرآن

او(اې پیغمبره!)ستا نه مخکښې مونږ ډیرو قومونو ته پیغمبران لیږلي وو بیا مونږ (دهغوی دنافرمانۍ د وجې نه) هغوی په سختو او تکلیفونو کښې مبتلا کړل، دې دپاره چه دوی عاجزۍ لره ځهل عادت جوړ کړي بیا داسې ولې ونه شول چه دوی ته څمونږ دَطرف نه سختۍ راغلله نو هغه وخت دوی عاجزي کړې وې؟ بلکه ددوی زړونه نورهم سخت شول او دا څه چه دوی کول نو شیطان دوی ته دا ښودلې کړې وه چه دا ډیر ښائسته کارونه دی. بیا چه دوی ته کوم نصیحت کړې شوې وو کله چه هغه دوی هیر کړو نو مونږ

په دوی باندې د هر یو نعمت دروازې کهلاؤ کړې تر دې چه کوم نعمتونه دوی ته ورکړې شوي وو کله چه هغې باندې دوی مست شول نو مونږ دوی لره ناڅاپه ونیول د هغې نتیجه دا شوه چه دوی بالکل ناامیده شول. د هغه خلقو جرړه ختمه کړې شوه چه کومو خلقو ظلم کړې وو د هغوی جرړه خوشه کړې شوه اوټول تعریفونه الله لره دي چه د ټول مخلوق پروردګار دي.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ او مونږ تاسو نه مخکښې امتونو ته هم پیغمبران لیږلی وو [خو هغوی اونه منل] ﴿ فَأَخَذْنَاهُم بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ ﴾ نو مونږ هغوی لره په تنګدستئ اوبیمارئ سره اونیول دپاره ددې چه دوی نرم شی [او دخپل کفر اونافرمانئ نه توبه ګار شی] ﴿ فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا تَضَرَّعُوا ﴾ کله چه هغوی ته زمونږ سزا رسیدلے وه نو هغوی نرم والې نشو [چه دهغوی جرم به معاف شوې وو] ﴿ وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ ﴾ لیکن دهغوی زړونه خو [هم هغسې سخت [په سخت] شول ﴿ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ اوشیطان دهغوی بدوعملونو لره دهغوی خیال ته [په مخه] ښکلی کړل [او ښه] اوخودل.

﴿ فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ ﴾ بیا چه کله دغه خلقو [په مخه] هغه څیزونه هیرکړل [او پریښودل ئې] دکومو چه هغوی ته [دپغمبرانو له طرفه] نصیحت کولے شو [یعنی ایمان اوفرمانبرداری] ﴿ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ نو مونږ پرے [دعیش اوعشرت] دهر څیز دروازے پرانیستے ﴿ حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا ﴾ تردې چه کله په هغه څیزونو باندې چه ورته ملاوشوی وو هغوی نشه شو [اوپه غفلت کښې ئې کفر نورهم زیات شو دغه وخت] ﴿ أَخَذْنَاهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ ﴾ مونږ هغوی لره ناګاهانه په [عذاب کښې] راونیول [او سخت عذاب موپرے نازل کړو چه په قرآن کریم کښې ئې ځائې په ځائې بیان راغلے دې] بیا [پدغے عذاب سره] ﴿ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ دظالمانو خلقو جرړے پرې کړې شوې ﴿ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ اود الله ﷻ شکر دے چه د ټول جهان پروردګار دے [چه ددغې ظالمانو هغه ظلم او ګناه ئې ختمه کړه دکومے دوجې چه په دنیا کښې سپیره توب خور شوې وو].

## معارف او مسائل

په دې آیتونو کښې په خاص انداز سره په دې شان شرک اوکفر باطل اوګرځولې شو او توحید ثابت کړې شو چه اول دمکې دمشرکانو نه سوال اوکړې شو چه که نن په تاسو باند څه مصیبت راشی مثلاً په دې دنیاکښې دریاند دالله ﷻ عذاب راشی مرګ دریاندې راشی یادقیامت سخته هیبتناکه واقعه راولاړه شی نوپه ګریوان کښې سردننه کړئ ښه په غورفکر سره راته اووایئ چه دغه وخت به دخپلو مصیبتونو لرې کولودپاره چاته آوازونه کوئ اوچانه بهٔ دخپلو عذابونو او مصیبتونولرې کولو دپاره اُمیدلرئ، آیاد کانړو نه ستاسوداجوړ کړې بُتان یابل داسې مخلوق بهٔ ستاسو پکارراشی اوتاسو به ورته فریادکوئ- کومولره چه تاسوخُدایان جوړکړی دی یایواځې الله ﷻ لره به په دغه وخت کښې بلئ؟ نوهریودعقل، فکرخاوندانسان به سواددې نه بل هیڅ جواب نشی ورکولې کوم چه الله ﷻ پخپله، ددوئ دارخ نه داسې بیان کړیدې، چه ددغه عام مصیبت په وخت کښې به دلوئې نه لوئې مشرک هم ټول بتان اوخپل جوړکړی معبودان هیرکړی اویواځې الله ﷻ لره به بلی، نواوس ئې نتیجه په دې شان ښکاره ده چه ستاسودغه بُتان اوهغه

معبودان چه دخدائي ﷻ درجه موور کړیده، خپل حاجت روا او مشکل کشا مو گرځولی دی، کله چه ددغي لوئي مصیبت په وخت کښي به ستاسو پکارنه راځي او ستاسو دوسه به دا هم نشي کیدي چه دغه وخت ئي خپل امداد دپاره راوبلئ؛ نو ددوئ عبادت او ددوئ مشکل کشا بۀ کله پکار راځي؟

دا مضمون دتیروشوو آیتونو خلاصه ده چه دفرض کولو په ډول دا بسولي شویدی چه ستاسو دکفر، شرک او نافرمانئ په سزا کښي په تاسویاند ددي دنیا په ژوند کښي هم عذاب راتلي شي اوکه بالفرض په دي ژوند کښي درباند عذاب رانشي نو په یقیني راتلونکي قیامت کښي خو به خامخا داسي کیږي چه دانسانانو دټولو عملونو او کارونو اندازه به واغستي شي او د جزا او سزا احکام به جاري کیږي-

دلته دقیامت نه مراد هغه مشهور راتلونکي قیامت هم کیدي شي او دا هم کیدي شي چه د ،ساعة، دلفظ نه دلته هغه ،قیامت صغری، مرادوی چه دهر انسان په مرگ باند په هغه قائمیږي څنگه چه مشهوره ده!

[من ماته فقد قامت قیامته] یعني څوک چه مړشو نو هم په هغه قیامت شو] (۱) ولي چه دقیامت دحساب، کتاب ابتدائی نمونه بۀ هم په قبر او عالم برزخ کښي مخکي ته راشی او دهغه ځائي دجزا او سزا نمونې به هم د دغه ځائي نه شروع شي-

حاصل دا شو چه نافرمانه خلق په دي آیتونو کښي خبردار کړي شویدی، چه په خپلي دي نافرمانئ کښي بي فکره مۀ پاتي کیږئ- کیدي شي چه په دي دنیا کښي هم په تاسو دالله ﷻ عذاب راشی څنگه چه په پخوانو امتونو راغلی وو او که دلته رانشي نو دمرگ نه پس قیامت کښي خو حساب ،کتاب یقیني دي-

لیکن هغه انسانان په داسي ځیزونو کښي چل ول کوی او بهانې پکښي لټوی کوم چه ټول جهان لره دخپل ژوند په محدود وختونو کښي او په دي کښي راپیښیدونکو پرولنډو تنگو تجربو بانه قیاس کوی، دغسي خلق دپیغمبرانو ویرولو او خبرداره کولو لره وهمی خیالات گڼړی او څه پرواه ئي نۀ لري په هره زمانه کښي راپیښیدونکی داسي حالات په خپل دلیل کښي پیش کوی چه دالله ﷻ او رسول نافرماني کوونکی خلق دمزو چرچو ژوند تیروی، دلته په دنیا کښي دغسي خلق ددنیا دولت ، عزت او مرتبي خاوندان وی، هرکله چه دوئ دغه حالات او دپیغمبرانو ویرول سره مقابله کړي نو ددوئ بهانې گرطبیعتونه او شیطان دوئ ته هم دا ښائي چه [معاذالله] د پیغمبر ویناء یو قسم تیرویستل یا وهمی خیالات دی. چنانچه ددي په جواب کښي الله ﷻ په دغه وړاندینو آیتونو کښي دپخوانو امتونو واقعات او په دوئ باند دقدرت دجاري کیدونکی قانون بیان داسي کړیدي: ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَخَذْنَاهُم بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ﴾ [یعني مونږ ه ستاسو نه وړاندي امتونو ته هم خپل پیغمبران لیږلی وو او دهغوئ دوه قسمه امتحان واغستي شو چه او گورو: آیا ،دوئ دتکلیف او مصیبت نه په ویریدو سره هم الله ﷻ ته متوجه کیږي او که نه؟ چه په دي کښي داسي فیل شو چه الله ﷻ ته دماتي کولو او دسرکشئ نه دمنع کیدو په ځائي داول نه زیات په هغې کښي اخته نۀ شو نو دوئیم قسم امتحان ئي په دي شان واغستي شو چه ددنیا دعیش، آرام دروازي پرپرانستي شوي او ددنیوی ژوند ټول هرڅه په دي غرض دوئ ته ورکړي شو

(۱) مقاصد الحسنة رقم الحدیث: ۱۱۸۳، وأسنی المطالب رقم الحدیث: ۱۵۰۱

چه ددغې نعمتونو په ليدو سره خپل مُنعم او محسن اوپيژني اپه دې شان ورته الله ﷻ رايادشي خو په دې امتحان کښې هم ناکامیابه ثابت شو، ــــ دخپل مُنعم او مُحسن دپيژندو اودهغه دشکر اداکولو په ځاې هغوئ په عيش عشرت کښې داسې مست پاتې شول چه دالله ﷻ اودهغه درسول تعليمات ئې ټول دسيرمې هيرکړل اودځو ورځو په دغه مزوچرچو باند بدمست شُو، هرکله چه په دغې دواړو قسمو امتحاناتو کښې ناکامه پاتې شول اوپه هرشان سره پر حُجت تمام شونو دالله ﷻ په عذاب کښې ناڅاپه راګير کړې شو اوداسې أف، پناه کړې شو چه نُغې ئې اووتو او نسل ئې هم پاتې نشو، په پخوانو اُمتونو باند دغه عذاب کله دآسمان نه اوکله دزمکې نه، کله په يوشان، کله په بل شان، عام عذابونه پراغلل اوټول قوم دسيرمې پکښې تباه اوبربادشو، دنوح عليه السلام پوره قوم داوبو په داسې طُوفان کښې راګيرشو چه دغرونو څوکوته هم دهغې اوبهٔ اوختلې.په عادقوم باند دهواطُوفان اتهٔ ورځې په مخه داسې راغلو چه بيخ ئې دهغوئ اوويستو اوهيڅوک پکښې پاتې نشو، ثموديان په يوهيبتناک آواز سره تباه کړې شو - دلوطيانو ټول قوم باند زمکه الټه کړې شوه چه ترننه پورې دأردن په علاقه کښې دعجيبه اوبو ډنډ په صُورت کښې دغه ځاې موجوددې، په هغې کښې هيڅ سادارځيزچيندخان [چينوګوښى] اوکبان [ماهيان] وغيره ژوندى نشى پاتې کيدې ځکه په بحرلوط سره نوميږى-

غرض داچه دپخوانو اُمتُونو دسرکشئ اونافرمانئ په وجه خو کله هغوئ په دغسې عذابونو سره تباه کړې شو اوکله په خپل مرګ داسې مړه شُو چه نسل ئې هم باقى پاتې نشو اونهٔ به ئې چانُوم اغستلو-

په تيرشوى آيت کښې داهم اوښودلې شو چه الله رب العالمين په يوقوم باند سمدستى عذاب نهٔ راولى بلکه دخبردارئ ورکولو په غرض لږې لږې سزاګانې پرنازلوى چه نيک بخته خلق دغفلت نه په رابيداريدو سره په سمه لارراشى داهم ترمعلُومه شوه چه دسزاپه ډول راوسلتې مُصيبت اوتکليف اګرچه دسزا په شکل کښې وى خوپه حقيقت کښې داسزانهٔ بلکه غفلت نه رابيدارولو دپاره وى چه بعينه درحمت تقاضاده، چنانچه په يوبل آيت کښې داسې ارشاددې

﴿وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ دلوئى عذاب ورکولونه وړاندې مُونږه ورکوتى عذابُونه ځکه راوستل چه خلق په حقيقت پوهٔ شى اودغلطې لارې نه راواوړى]-

دغې آيتُونوسره داشُبه هم لرې شوه چه دادُنيا خودارالجزانهٔ، بلکه دارالعمل ده، دلته خو يونيک اويد، خيراوشرپه يوچابرى کښې تللې شى بلکه بدد ښونه غوره پاتې کيږى ،بياپه دُنيا کښې دسزاجارى کولوڅه مطلب دې؟جواب ئې ښه ښکاره داسې دې چه اصل جزااوسزاخوپه دقيامت په ورځ وى چه يوم الدين [دجزاء ورځ] ده ليکن درحمت الهى دتقاضا مُطابق څه ناڅه تکليفُونه دعذاب دنمُونې په ډول اوڅه ناڅه راحتُونه دثواب دنمُونې په ډول په دې دُنيا کښې په خلقو راوستې شى

عارفينو خوتردې فرمائيلى دى چه ددُنياټولې مزې، چرچې دجنت دمزو چرچو نمُونې دى چه دهغې په وجه دانسان شوق جنت حاصلولوته پيداشى اوددُنيا ټول غمُونه، مُصيبتُونه دآخرت دعذاب نمُونې دى چه انسان دهغې نه دځان ساتلوانتظام اوکړى ځکه چه بغير دڅه نمُونې نه شوق پيداکول ياويرول نشى کيدې-

غرض دا چه د دُنیا راحتونه او تکلیفونه په حقیقت کښې جزا او سزا نۀ ، بلکه دا دې نمونې دی دا دُنیا د آخرت د پاره یو شوروم او گنړئ څنگه چه یو دکاندار د خپل دکان مخې ته څنې څیزونه د نمونې د پاره لگوی، خلاصه دا شوه چه د دُنیا راحتونه او تکلیفونه جزا او سزا نۀ بلکه د خالق نه دا ورریدلی مخلوق تعلق، الله ﷻ سره د جوړولو تدبیر دې-

خلق را باتو چنین بدخو کنند　　تا ترا ناچار رو آل سو کنند

[د خلقو رویه خرابه جوړول په دې غرض دی چه الله ﷻ اړخ ته د دوئ نه راواوړي]-

چنانچه د دغې آیت په آخر کښې د غه حکمت په ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ﴾ سره اوښودلې شو [یعنی په دُنیا کښې غمونه تکلیفونه راوستل په خلقو باند دې غرض د پاره وی چه الله ﷻ ته ئې مخه شي]- څکه چه د انسان طبیعت دا دې چه په مصیبت کښې ورته خُدائ را یادیږی، نو معلومه شوه چه که دُنیا کښې راتلونکې تکلیف او مُصیبت په یو کس یا په ډله او قوم وی نو هغه د عذاب په ډول نۀ ،بلکه د دې په یو اړخ کښې د الله تعالی رحمت کار کوی-

وریسې په درئیم آیت کښې فرمائی: ﴿فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [یعنی هر کله چه د هغوئ نافرمانی د حد نه هم ورتیره شوه نو په یو خطرناک امتحان کښې داسې اخته کړې شو چه د دُنیا د راحتونو او کامیابو دروازې پرې پرانستې شوې-

په دې کښې عام وبنیاد موته دا خبرداری ورکړې شویدې چه د عیش، عشرت او مزو چرچو په زیاتیدو باند د نۀ دهوکه کیږی چه گنی هم دوئ په صحیح لاره دی او کامیاب ژوند هم د دوئ دې بلکه دا د نافرمانانو خلقو د پاره یو قسم دام او گوړکئ وی چه مثالونه ئې په دُنیا کښې بیحده ډیر دی-

څنگه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی د ی،هر کله گُناه کښې اخته خلقو باند نعمتونه او دولتونه راوریږی نو تاسو پوهه شئ چه د دوئ استدراج کیږی [یعنی دغې لره یو قسم دام او گوړکئ او گنړئ]، [دې لره احمد د عقبه بن عامر نه روایت کړیدې [تفسیر ابن کثیر] -[1]

د تفسیر یو امام ابن جریر د عباده بن صامت نه د رسول الله ﷺ دا فرمان نقل کړیدې چه :هر کله الله تعالی یو قوم لره محفوظ ساتل اووده ورکول غواړی نو په هغوئ کښې دوه صفتونه داسې پیدا کړی چه په هر کار کښې میانه روی، پاکی او پاک لمنی کوی [چه د ناحق څیزونو د استعمالولو نه خان ساتي] او کوم قوم لره چه هلاکول او برباد ول غواړی نو د خیانت دروازې پرې پرانیزی- [یعنی سره د خیانتونو او بد عملو کولو هغوئ په دُنیا کښې کامیاب معلومیږی]-

په آخری آیت کښې ئې اوفرمائیل :چه د الله ﷻ په عذاب راتلو سره د ظالمانو نسل هم ختم کړې شو - او دې پسې ئې اوفرمائیل ﴿وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ دا اشاره شوه دې خبرې ته چه په مجرمانو او ظالمانو باند په دنیا کښې عذاب راتلل د ټول مخلوق د پاره یو قسم نعمت دې چه د الله ﷻ شکر پرې کول پکار دی-

| سَمْعَكُمْ | إِنْ أَخَذَ اللَّهُ | أَرَءَيْتُمْ | قُلْ |
|---|---|---|---|
| [د اوریدو طاقت ستاسو] | [که واخلی الله | [آیا وینئ تاسو] | اووایه |
| اورته اووایه چې تاسو چرې په دې خبره فکر کړې دې چې الله ستاسو غوږونه | | | |

[1] مسند أحمد، حديث عقبة بن عامر رضي الله عنه رقم الحديث: ////

وَأَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ

اودليدلو طاقت ستاسو | اومهر اولګوي | په زړونو ستاسو | نو څوك دي [بل] خدائي | بي دالله نه

اوسترګي واخلي او په زړونو درته مهر اولګوي نود الله ﷻ نه سوا بل څوك شته چي

يَأْتِيكُم بِهِ ۗ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ

چي واپس درکړي تاسو ته | دغه قوتونه | اوګوره | څنګه | باربار پيش کوو مونږ | نښي |

دا څيزونه تاسو ته واپس راولي | .........اوګوره مونږ دوی ته خپلي نښي په کومه کومه طريقه ښايو

ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُونَ ۝ قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ

بيا | دوی | ډډه کوي | اووايه | څنګه ښکاري تاسو ته | که | راشي تاسو ته

خو بيا هم دوی دهغي نه ډډه کوي | ورته اووايه چي تاسو چرته فکر کړي دي که په تاسو باندي

عَذَابُ اللَّهِ بَغْتَةً أَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الظَّالِمُونَ ۝

عذاب دالله | ناڅاپه | يا ښکاره | نه هلاکيږي | مګر | قوم | ظالمان

دالله ﷻ دطرفنه ناڅاپه يا په ښکاره عذاب راشي | نو آيا د ظالمانو نه سوا نور څوك به په کښي هلاکيږي؟

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ۖ فَمَنْ آمَنَ

اونه ليږو مونږ | پيغمبران | مګر | زيري ورکونکي | اوويرونکي | نو چاچي [ايمان راوړو

اومونږ خو رسولان په دي غرض ليږو | چي نيکانو ته زيري ورکړي | او بدان اوويروي | نو څوك چي دهغوی خبره اومنی

وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝

اواصلاح ئي اوکړه دعمل | نو نشته ويره | په هغوی باندي | اونه به هغوی | غمژن شي |

او خپله اصلاح اوکړي | .........نو په هغوی به نه ويره وي | .........او نه به غمژن شي .........

وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا

اوهغه کسان | چي دروغ ئي اوګڼل | آيتونه زمونږه | رسيږي به هغوی ته | عذاب | په سبب دهغي

اوڅوك چي زمونږ آيتونو ته دروغ وائي | ................. نوهغوی ته به د هغوی د بدو عملونو په وجه

كَانُوا يَفْسُقُونَ ۝

چي وو هغوی | چي نافرماني به ئي کوله |

عذاب رسيږي |

## آسان ترجمه قرآن

(اي پيغمبره ! دوی ته) ووايه: که الله ستاسو د آوريدو طاقت او ستاسو سترګي تاسو نه واخلي او ستاسو په زړونو باندي مهر ولګوي ، نو دالله نه سوا بل څوك معبود دي چه تاسو ته دا څيزونه درکړي؟ وګوره مونږ څنګه مختلفو طريقو باندي دلائل بيانوو بيا هم دا خلق مخ اړوي ووايه که دالله عذاب تاسو ته ناڅاپه راشي يا په ښکاره نو د ظالمانو نه سوا به آيا بل څوك هلاك کړې شي؟ مونږ پيغمبران هم د دې د پاره خو ليږو چه هغوی (په نيکو) باندي خوشخبري ورکړي (او نافرمانو باندي خلق د الله د عذاب نه)

وویروي پس کومو خلقوچه ایمان راوړو اوخپله اصلاح ئې وکړه نو په هغوی به نه څه ویره وي او نه به خفه هي. او کومو خلقوچه موني آیتونه دروغژن کړل ، هغوی ته به عذاب ورسي ځکه چه هغوی د نافرمانۍ عادت وو.

## خلاصه تفسیر

﴿ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ ﴾ تاسو [دوی ته داهم] اووائې چه دا اوښایئ که الله ﷻ ستاسو آوریدل اوبینائی بیخي واخلي [چه آوریدل اوکتل نشي کولې] ﴿ وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ ﴾ او ستاسو په زړونو مهر اولګوی [چه په زړه کښې مو څه پوهه پاتې نشي] ﴿ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِهٖ ﴾ نودالله ﷻ نه سوا بل څوك معبود شته چه دا [څیزونه] تاسو ته بیا درکړي [هرکله چه تاسو هم دنورو داسې معبودانو دنیشتوالي اقرار کوئی نو بیا په څنګه بل چالره دعبادت حقدار اوګڼئی] ﴿ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ﴾ تاسو خو اوګورئی چه موني په کوم [کوم] شان دلیلونو په مختلفو طرفونوبنکاره کوو ﴿ ثُمَّ ﴾ [بیا هم په دې دلیلونو باندې غور کولې او ددې نتیجے لره دمنلو نه] ﴿ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴾ دوی اعراض [ډډه] کوی تاسو [دوی ته داهم] ﴿ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً ﴾ اووائې چه دا اوښائې که په تاسو دالله ﷻ عذاب رابښکته شي [که] په ناخبرئ کښې یا په خبردارئ کښې [وی] ﴿ هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴾ نو آیا سوا داظالمانو خلقو نه به [پدغې عذاب سره] نور څوك هم هلاك کړې شي [مطلب دا چه که عذاب راغلو نو ستاسو دظلم په وجې سره به هم په تاسو رابښکته کیږی. مومنان به ترې بچ پاتې کیږی ځکه تاسو دعقل نه کار واخلئ اوپدې هم خپله تسلی مه کوئی چه دګڼړے په مصیبت کښې به ګنی په تاسو لره آسانی وی() یعنی تاسو په دې باندې خپله تسلی مه کوئی چه دغه عذاب کښې به تاسو سره مسلمانان هم پد شریکه راګیر کړې شی]. ﴿ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ﴾ او موني پیغمبران [چه پیغمبری ئے په پریکړو دلیلونو سره موني ثابته کړې وه] صرف ددې دپاره لیږو چه هغوی [ایماندار او فرمانبردارو ته دالله ﷻ درضا اود جنت د نعمتونو] زیرے ورکړی او [کافرانو نافرمانو خلقو لره دالله د ناراضګئ نه] اوویروی [دے دپاره ئے نه لیږو چه دحجت تمامیدو نه پس هم مخالفین د دنارامئ یےسره بیښنو اخوا دیخوا تول فرمانشونه پوره کوی] ﴿ فَمَنْ اٰمَنَ وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ ﴾ بیا [ددغه پغمبرانو د زیری ورکولو او ویرولو نه پس] چه څوك ایمان راوړئ او [دخپل حالت اعتقادی او عملی] اصلاح اوکړی نوپه دغه خلقو به [په آخرت کښې] څه اندیښنه نه وی ﴿ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴾ اونه به دوی [هلته] غمژن وی ﴿ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ﴾ او کوم خلق [چه ددې زیری ورکولو او ویرولو نه پس هم] زموني آیتونه په دروغه بولی ﴿ يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴾ په هغوی [کله کله خو پدنیا کښې هم] ورنه په آخرت کښې [خامخا] عذاب ورپورې کیږی په دې وجه چه هغوی دایمان د دائرے نه اوځي.

| عِنْدِىْ | لَكُمْ | لَآ اَقُوْلُ | قُلْ |
|---|---|---|---|
| چې ماسره دی | تاسو ته | نه وایم زۀ | اووایه |

| ......[اې پیغمبره] ورته اووایه چې تاسو ته زه دا نه وایم چې ماسره |
|---|

خَزَآئِنُ اللّٰهِ　وَلَآ　اَعْلَمُ　الْغَيْبَ　وَلَآ اَقُوْلُ　لَكُمْ　اِنِّيْ

خزاني　د　الله | اونه دا وايم زه | چې پوهيږم زه | په غيبو　|　اونه داوايم زه | تاسوته | چې زه

دالله ﷻ خزاني دي | اونه (درته دا وايم چه) زه په غيبو باندې پوهيږم | اونه درته دا وايم چې زه

مَلَكٌ　اِنْ اَتَّبِعُ　اِلَّا　مَا يُوْحٰٓى　اِلَيَّ　قُلْ　هَلْ يَسْتَوِي

فرشته يم | نه كوم تابعداري زه | مگر　| دهغې چې وحي كيږي | ماته　| اووايه | آيا برابريدې شي

فرشته يم | زه صرف د هغې وحې تابعداري كومه چې ماته كولې شي |.......... ته ورته اووايه چې آيا

الْاَعْمٰى　وَالْبَصِيْرُ　اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ　وَاَنْذِرْ　بِهِ　الَّذِيْنَ

ړوند　|　اوبينا　| نو تاسو فكر نه كوئ !　| اوويروه　| په دې وحي سره | هغه كسان

ړونداوبينا دواړه برابر كيدې شي | نو تاسو دومره فكر هم نه كوئ | ته په دې (وحي) سره هغه كسان

يَخَافُوْنَ　اَنْ يُّحْشَرُوْٓا　اِلٰى رَبِّهِمْ　لَيْسَ　لَهُمْ

چې ويريږي | چې جمع به كړې شي | رب خپل ته　| په داسې حال كښې چې نه به وي | دپاره دهغوئ

اوويروه چې دهغوئ په زړونو كښې دا ويره وي | چې الله ﷻ ته به داسې حال كښې پيش كيږي

مِّنْ دُوْنِهٖ　وَلِيٌّ　وَّلَا شَفِيْعٌ　لَّعَلَّهُمْ　يَتَّقُوْنَ

ماسوا دهغه نه | څوك دوست | اونه څوك شفاعت كونكې | شايد چې هغوئ | اوويريږي دالله نه |

چه دهغه نه بغير به ئې څوك دوست نه وي | اونه به ئې څوك سفارشي وي | نو دوئ ته پكار ده چې متقيان شي

## آسان ترجمه قرآن

(اې پېغمبره !) ته دوی ته ووايه چه څه تاسو ته دا نه وايم چه ماسره دالله خزانې دي او نه څه د غيبو (ټوره) علم لرم . اونه تاسو ته دا وايم چه څه فرښته يم څه خو صرف د هغه وحې تابعداري کوم چه په ما نازليږي. ته ووايه چه: آيا ړوند او ليدونكې برابر كيدې شي ؟ نو آيا تاسو فكرنه كوئ؟او (اې پېغمبره !) ته ددې وحې په ذريعه خلق خبردار كړه چه ددې خبرې نه ويريږي چه دوی به دخپل پروردګار سره په داسې حالت كښې راجمع كړې شي چه ددوی به نه څوك مددګار وي اونه سفارشي دې د پاره چه دا خلق تقوی اختيار كړي.

## خلاصه تفسير

﴿ قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ ﴾ تاسو [دے ضدی خلقو ته] اووائې چه نه خو زه تاسو ته دا وايم چه ما سره دالله ﷻ ټولې خزانې دی [چه څه زمانه اوغوښتلې شی هغه په خپل قدرت او اختيار سره ورکړم] ﴿ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ ﴾ او نه زه دغيب ټول څيزونه پيژنم [کوم چه الله ﷻ سره خصوصيت لری] ﴿ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ ﴾ اونه زه تاسو ته داوايم چه زه فرښته يم ﴿ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ﴾ زه خو يواځې دهغې وحی تابعداری کوم چه ماته راځی [يعنی د هغې مقتضا باندې پخپله هم عمل کوم او نور خلق ورته هم رابلم څنګه چه دټولو مخکښنو پيغمبرانو ﷺ هم دا حال وو بيا] ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ﴾ تاسو دوی ته اووائې چه ړوند او بينا چرې برابريدے شی [اوکله چه دا خبره تول منی] ﴿ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ﴾ نو آيا تاسو [دسترګو خاوندان

جوړيدل نه غواړي او پدغه شان شوی تقرير كښې كامل] غور [دحق لټولو په قصد سره] نه كوي [چه حق درته ښه ښكاره شي او تاسو په بينا خلقو كښې داخل شئ] ﴿وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ﴾ او كه [سره ددې هم هغوی عناد نه نه منع كيږي نو ورسره بحث بندكړئی اوپه خپل اصلی كار تبليغ كښې مصروف شئ كوم چه دپيغمبرئ كار دے او] داسې خلق [دكفر نافرمانئ له وجې دالله دعذاب نه په خاص شان سره] ويروئی [چه په اعتقادی يا كم نه كم په احتمالی ډول] ددې خبرے انديښنه لري ﴿أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ﴾ چه [په قيامت كښې] خپل پروردگار سره به په داسې حالت كښې جمع كولې شي [دغه وخت به دالله ﷻ نه سوا] ﴿لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ﴾ نه به هغوی لره څوك ددوی مددگاران وی اونه څوك [مستقل] سفارشيان وی [كومو لره چه كافرانو خپل مددگاراو سفارشيان گڼرلی وو] كيديشی چه دا خلق دعذاب نه اوويريږی [اوكفر اونافرمانئی نه واوړی.

## معارف اومسائل

**دمړبوهٔ كُفارو له اړخه دفرمائشی مُعجزو دپاره د ضد غوښتنه:** درسول الله ﷺ بې شميره معجزې اودالله ﷻ ښكاره نخښې دكُفارمكه مخې ته راغلې وې، چنانچه رسول الله ﷺ ديتميئ په حالت كښې يې دُنياته تشريف راوړې وو، ليك، لوست ئې بيخی نهٔ وو اوخالص اُمی وو، په داسې علاقه كښې پيداشوې وو چرته چه نهٔ خو څوك عالم وو، اونهٔ علمی مركزوو، په داسې حالت كښې ئې څلوېښت كاله عمرشريف تول هم دغه خلقو[اهل مكه]په وړاندې تيركړې وو، دغې څلوېښتوكالونه پس ئې ناڅاپه دخُلې مُباركې نه داسې حكيمانه كلام راؤختو چه عقل ورته حيرانيدو فصاحت اوبلاغت پكښې تردې حده وو چه ټولوعربوئې هم چلينج قبول نكړې شواوهميشه دپاره دهغوئ په خُلو باندې دخاموشئ مُهراولگيدو، اودكوم چې د حكمت نه ډكې معناگانې اوپكښې دانسانی ضروریاتو ترقيامته پورې لحاظ ساتلې شوې وو، اودكامل انسان دژوند دعمل داسې نظام ئې پيش كړو كوم ئې چه يواځې په نظری اوفكری حيثيت سره نهٔ، بلكه په عملی ډول ئې هم په دُنيا كښې، په ډيرې كاميابئ سره دهغې جاری كيدل خلقوته اوښودل كوم لره چه انسانی عقل اودماغ هيڅكله ترتيب نشوور كولې، هغهٔ انسانانو ته ئې دصحيح انسانيت سبق اوښولوكومو چه خپل انسانيت هيركړې وو، اودغوا ، چيلئ، اس اوخراونوروځناوروپشان ئې دخپل ژوندمقصد صرف خوراك، څكاك اوده كيدل اوويښيدل گرځولی وو، ددوئ مخه ئې داسې لوړمقصد اړخ ته راواړوله دكوم دپاره چه انسان پيداكړې شوې دې، په دې شان درسول الله ﷺ دژونداوپه دې كښې مخې ته راتلونكې داسې داسې دلوئې شان واقعې وې چه هره يوه خان خان لـه مُستقله مُعجزه اودالله ﷻ يونخښه وه، دې نه پس چاانصاف خوښوونكی عقلمند انسان دڅه بلې نخښې اومُعجزې غوښتلو څه گُنجائش نهٔ محسوسولو۔

ليكن سره ددې هم، دقريشو كُفارو، بل بل قسم مُعجزې دخپل خواهش په جوړ اوغوښتلې چه دهغې څخه څه معجزې، الله ﷻ په ډاگه ښكاره هم كړې، دسپوږمئ دوه ټكړې كولومعجزه الله ﷻ داسې ښكاره كړه چه نهٔ يواځې قريشو بلكه ددُنيا خلقوپه گڼرشمير كښې په خپلو سترگواوليدله- بياهم ددداسې معجزو ليدلو باوجود په خپل كُفر، گمراهئ، ضد اوناراميئ باند هغوئ ټينگ وو اودالله ﷻ دغه ډاگيزه نخښه ئې سحر اوجادو اوبلله دالله ﷻ ددې آيت بينه ﴿إِنَّ

﴿هٰذَآ اِلَّا سِحۡرٌ یُّؤۡثَرُ﴾ په وئیلو سره نظر اندازه کړله، بنه پر پوهیدل خوییابه ئې هم درسول اللهﷺ نه هره ورځ نوې نوې معجزې غوښتلې لکه الله ﷻ فرمائی:

﴿لَوۡلَا نُزِّلَ عَلَیۡهِ اٰیَةٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ قُلۡ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰۤی اَنۡ یُّنَزِّلَ اٰیَةً وَّلٰکِنَّ اَکۡثَرَهُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ﴾ [یعنی داخلق وائی که دوئ په رشتیا دالله ﷻ رسول وی نویوه معجزه ولې نشي ښکاره کولې، قرآن کریم ددې په جواب کښې رسول اللهﷺ ته حکم ورکړو چه تاسودغې خلقوته اوښایئ چه الله ﷻ خودهرڅه وس لری، هغه لکه څنګه چې داسې بې شمیره نشانیانې اومعجزې ئې درته ښکاره کړې کومې کومې چه تاسودسره غوښتلې نه وی همداشان په دې هم قادر دې چې ستاسو مطلوبه معجزات نازل کړی، لیکن دوئ ته دا معلومیدل چې د الله ﷻ عادت په دې باره کښې دادې چې معجزې که چاته ښکاره کړې شی نوالله ﷻ دهغې په باره کښې داعادت لری که بیاهم پردغه غوښتونکی خلق ایمان راؤنۀ ړی نوسمدستی په عذاب کښې راګیرولې شی، دقوم ښیګړه په دې کښې ده تچه دخلقوغوښتلې معجزې ورته ښکاره نکړې شی، لیکن ددې باریک حکمت نه ناخبره خلق دخپلو غوښتلو معجزو په ښکاره کولویاند کلک وی، په دغې اولوبیان شوؤآیتونوکښې ددغسې سوالونو اوغوښتنوجواب په یوخاص اندازکښې ورکړې شویدې-

**د کافرانو دې مطالبو حل:** دمکې کُفارو، رسول اللهﷺ ته په مختلفو وختونوکښې درې مُطالبې وړاندې کړې وې، ړومبې داچه که تاسو، واقعی دالله ﷻ رسول یئ نودمعجزې په ذریعه راته ددنیا ټولې خزانې راجمع کړئ دوئیمه داچه مونږته دراتلونکی وخت دمُفید اومضرڅیزونو اطلاع راکړئ چه اول نه دمفید څیزونونه دحاصلولواومضر څیزونو دبچ کیدو انتظام اوکړو-دریمه داچه مونږپه دې نۀ پوهیږو چه زمونږ دقوم داسې یوکس، چه هم زمونږ پشان دمور، پلارنه پیداشو، ټول بشری صفتونه زمونږ پشان لری، خوراک، څکاک، زمونږپشان کوی، په بازارونوکښې زمونږ پشان ګرځی راګرځی، هغه ددالله ﷻ رسول جوړشی، که څوک فرشته راغلې وې چه په پیدائیش اوپه نوروخبروکښې زمونږه پشان نۀ وې نوهغې لره به موداالله رسول منلې وې-

ددې درې سوالونوجوا ب داسې ورکړې شو: ﴿قُلۡ لَّاۤ اَقُوۡلُ لَکُمۡ عِنۡدِیۡ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَاۤ اَعۡلَمُ الۡغَیۡبَ وَلَاۤ اَقُوۡلُ لَکُمۡ اِنِّیۡ مَلَکٌ ۚ اِنۡ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا یُوۡحٰۤی اِلَیَّ ؕ﴾ [یعنی رسول اللهﷺ ته داهدایت ورکړې شو چه ددې خلقودبې ډبه سوالونو په جواب کښې ورته صفااوفرمایئ چه، هرکله تاسومانه ددنیا ټولې خزانې غواړئ نو ماکله ددې دعوې کړیده چه دالله تعالی خزانې زماپه لاس کښې دی، اوتاسوچه زمانه د راتلونکې زمانې دمضر اومفید څیزونودخبرورکولومطالبه کوئ نوماکله دادعوی کړیده چه هر غیب څیز زه نۀ پیژنم؟ اوتاسو چه رانه دفرشتو صفتونه لیدل غواړئ نوماکله وئیلی دی چه زۀ فرشته یم-

خُلاصه داشوه چه مانه دهغه څیزغوښتلې شی دکوم چه مادعوی کړی وی زمادعوی داده چه زۀ دالله ﷻ رسول یم- دهغه رالیږلې هدایت انسانانوته رسوم، اوپخپله ئې هم تابعداری کوم، نوروته هم دهغې تاکید کوم اودې دپاره یودوه نۀ، بلکه بې شمیره واضح دلیلُونه پیش کړې شوی دی-

**د پیغمبرۍ دپاره ضروري څیزونه:** دپیغمبرۍ دې دعوې دپاره داضروری نۀ دی چه دالله رسول ددالله دټولوخزانو مالک جوړشی-نۀ داضروری دی چه هغه ددالله ﷻ پشان دغیب دهرورکوټی، اولوئې څیزنه واقف وی اونۀ داضروری دی چه هغه ددبشری صفتُونونه بیل صفتُونه لرونکې فرشته وی، بلکه درسول اللهﷺ منصب صرف دادې چه هغه ددالله ﷻ له اړخه دراليږلې وحی تابعداری کوی پخپله دهم پرعمل کوی اونوروته دهم پردعمل کولوبلنه ورکوی-

**دپیغمبر باره کښې دا افراط تفریط څنګه څان ساتل:** په دې هدایت نامې سره دپیغمبرئ دمنصب حقیقت هم ښکاره اوواضح کړې شو اودرسول الله ﷺ په باره کښې هغه غلط تصورات هم لرې کړې شُو چه دغې خلقو پخپله دخانه قائم کړی وو، په دې ضمن کښې مُسلمانانوته هم داهدایت ورکړې شو چه دعیسایانو پشان دخپل رسول لره خُدائ نۀ جوړوی اونۀ ددخُدائ مالک جوړوی، ددوئ د لوئې شان اوورسره دمحبت تقاضا داده چه ددوئ په باره کښې دیهودواونصاراؤپشان دافراط، تفریط اوغلونه کاروانغستې شی څنګه چه یهودودخپلوپیغمبرانو په وژلوهم صرفه اونکړه او نصاراؤ خپل پیغمبرلره خُدائې اوګرخولو-

**علم غیب د الله ﷻ خاصه ده:** په رُومبئ جُملـه کښې اوفرمـائیلې شو چـه دالله ﷻ خزانې زماپه لاس کښې نۀ دی، دلته دخزانو په باره کښې دتفسیر عُلماؤدډیرو څیزونونومونه اغستی دی مګر پخپله قرآن کریم په دې باره کښې صرف دالله ﷻ دخزانو بیان کړیدې لکه فرمائی: ﴿وَاِنۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِلَّا عِنۡدَنَا خَزَآئِنُهٗ﴾ [یعنی په دُنیاکښې هیڅ یو داسې څیزنشته چه خزانې به ئې مُونږه سره نۀ وی، دې نه معلُومه شوه چه د ،خزائن الله، نه مطلب ددُنیا ټول څیزونه دی څه خاص څیزونه دهغې نه نشی په ګُته کولې- چرته چه مفسرینو حضراتودخاصوڅیزونونومونه اغستی دی دهغې مطلب صرف مثال ورکول دی لهذاڅه اختلاف نۀ پاتې کیږی. هرکله چه په دې آیت کښې دااوښودلې شو چه دخُدائې ټولې خزانې سرداردانبیاؤمحمدرسول الله ﷺ سره هم نشته نوبیادیواُمتی بزرګ په باره کښې داخیال لرل چه، هغه هرڅه کولې شی اوهرڅه ورکولې شی کله چه اوغواړی بالکل ښکاره جهالت دې-

په آخری جُمله کښې ئې اوفرمائیل: ﴿وَلَآ اَقُوۡلُ لَکُمۡ اِنِّیۡ مَلَکٌ﴾ [یعنی زۀ درتـه نۀ وایم چه ګنی زۀ فرشته یم چې دهغه په وجه بشری صفتُونه چه رانه وینئ نو زمادپیغمبرئ نه انکارکوئ]-

په منځنئ جُمله کښې دکلام په طرز بدلولوسره ئې داسې اوفرمائیل: ﴿ ﴿لَآ اَقُوۡلُ لَکُمۡ اِنِّیۡ اَعۡلَمُ الۡغَیۡبَ﴾ [زۀ غیب لره نۀ پیژنم] اوداسې ئې اونۀ فرمائیل چه: ﴿وَلَآ اَعۡلَمُ الۡغَیۡبَ﴾ [زۀ درتـه دانۀ وایم چه غیب لره پیژنم]-

**د کلام د اسلوب نکته:** ابوحیان په تفسیربحرمحیط کښې ددې طرز دکلام یوه باریکه توجیه دابیان کړیده چه دټولوخُدائی خزانومالک کیدل یانۀ کیدل دغه شان، فرشته کیدل یانۀ کیدل لیدلو کتلوسره تعلق لری، دغه ټول مخاطب خلق هم په دې پوهیدل چه دالله ﷻ ټولې خزانې دهغوئ په لاس کښې نۀ دی اونۀ هغوئ فرشته دی-خالص دناړامئ نه ئې دغه غوښتنه کوله چه جواب کښې ئې دومره قدرې وئیل کافی وو چه ماکله هم دادعوی نۀ ده کړې چه دالله ﷻ دخزانومالک یم، یاداچه فرشته- لیکن دعلم غیب مسئله داسې نۀ وه څکه چه دغې خلقو بـه دخپلونجومیـانو او جوګیانوپه باره کښې هم داعقیده لرله چه ددوئ غیب لره پیژنی اوپه غیبوباند پوهیږی نودالله د رسول ﷺ په باره کښې داسې عقیده لرل څه لرې خبره څکه نۀ وه چه رسول الله ﷺ نه دغې خلقو دغیبو ډیرې خبرې آوریدلې وې اودهغې واقع کیدل ئې هم په خپلوسترګو لیدلی وو، په دې وجه ئې دلته صرف ددعوې اوخبرې نفی کول کافی اونۀ ګڼړل بلکه داصل فعل نفی ئې[1] داسې

[1] ) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۱۳۹، ۱۴۰

اوکړه: ﴿وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ [يعنى زۀ غيب لره نۀ پيژنم] په دې کښې ئې ددغې خلقو داغلط فهمى هم لرې کړه چه دالله ﷻ دا طرفه دوحى ياالهام په ذريعه دغيبو دڅيزونو علم چه پيغمبر، فرشتې ياولى ته ورکړې شى نو دقرآن کريم په اصطلاح کښې ورته علم غيب نشى وئيلې اونه دغسې علم لرونکې عالم الغيب بللې شى۔

دلته داخبره هم ښه په ډاګه شوه چه يومسلمان ته په دې کښې هيڅ شک نشى کيدې چه رسول الله ﷺ ته په زرګونو اولکونو دغيبو څيزونوعلم ورکړې شوې وو، بلکه ټولوفرشتو، اواولينو، آخرينو ته چه څومره علم ورکړې شويدې ددې نه زيات رسول الله ﷺ ته علم ورکړې شويدې، څنګه چه دټول اُمت عقيده هم داده، البته دې سره سره، دقرآن اوسنت دبې شميره ډاګيزو بيانونوپه جوړ دټولو اولنو اوروستنواماماننو هم داعقيده ده چه دټولو کائناتو نه چاپيره علم يواځې دالله ﷻ يوخاص صفت دې، څنګه چه دخالق، رازق اوقادرمُطلق په صفتونو کښې الله ﷻ سره څوک فرشته يارسول نشى برابريدې داشان ورسره په علم محيط [راچاپيره علم] کښې هم، هيڅوک نشى برابريدې- لهذادالله ﷻ نه سوا يوې فرشتې يايوپيغمبر ته عالم الغيب نشى وئيلې اګرچه ورته دغيبو لکونه څيزونه معلوم وى-

خُلاصه داشوه چه دکائناتو دسردار، سيدالرسل، امام الانبياء محمدمصطفى ﷺ دکمالاتو په باره کښې دټولونه زياته همه ګيره جمله داده چه: بعد از خُدا بزرگ توئ قصه مختصر-(۱)

دهغوئ علمى کمالونه هم داشان لرى چه الله ﷻ نه پس دټولوفرشتو، انبياؤ اورسولانو نه دهغوئ علم زيات دې، بياهم الله ﷻ سره ئې علم هيچرې نشى برابريدې، داسې دعوى کول دعيسائيت د، غلو، [دحدنه دتيريدو]اراده،

په آخر دآيت کښې ئې اوفرمائيل چه ړُوند اوبينانشى برابريدې، مطلب ئې دادې چه نفسانى جذبات، ضداوعناد پريږدئ، حقيقت ته ګورئ چه په ړندو کښې حساب نشئ، بينايان اودنظر خاوندان جوړشئ، که لږشان غورفکراوکړئ نودغسې بينائى درته حاصليدې شى-

په دوئيم آيت کښې رسول الله ﷺ ته داهدايت ورکړې شويدې چه ددې ښکاره او ډاګيزو بيانونو نه پس هم که دغه خلق دخپل ضدنه واؤنه ړي نوبحث مباحثه کول ورسره پريږدئ، او دپيغمبرئ په اصلى کار[تبليغ] کښې لګيااوسئ اودتبليغ اودويرلو مخه هغه خلقوته راوګرځوئ چه په قيامت کښې دالله ﷻ په وړاندې دپيشئ اوحساب کتاب عقيده لرى لکه مُسلمانان شو يا داسې خلق شوچه کم ناکم احتمالاً مُنکر خونۀ وى، کوم چه لږنه لږ داخطره لرى چه زمونږ دعملونو حساب کتاب هم کيدې شى-

خُلاصه داده چه دقيامت په باره کښې درې قسمه خلق کيدې شى يوقسم هغه دى چه په يقينى ډول ئې عقيده لرى، بل مترددہ خلق دې چه يقين ئې نۀ وى اوانکارترهم نۀ کوى، دريم قسم مُنکر خلق دى اګرچه پيغمبرانو ﷺ ته دتبليغ اودويرولوعام حُکم دغې درې واړو قسمو خلقوته دې څنګه چه دګنړ قرآنى ارشاداتونه هم واضحه ده، خوهرکله چه ړومبى دوه قسمه خلقونه د اثر قبلولو زيات اُميد کيدې شو خکه په دې آيت کښې په خُصوصيت سره هغوئ ته دتوجه ورکولو داسې هدايت اوکړې شو ﴿وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ﴾

(۱) ترجمه: مختصر خبره داده چه الله تعالى نه پس ته ټولونه لوئى هم کاس يې۔

وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ

اومه شړه ته | هغه کسان | چې رابلي | رب خپل | په وخت د صبا کښې | او په وخت د ماښام کښې | غواړي

او هغه کسان دخان نه لرې مه شړه چې سهار ماښام الله ﷻ لره يادوي | ..........او داغواړي

وَجْهَهٗ ؕ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ

رضا د هغه | نشته په تا باندې | د حساب د هغوئ نه | هيڅ څيز | او نشته | د حساب ستا نه |

چې الله ﷻ راضي کړي | په تا باندې د هغوئ د حساب هيڅ بوج نشته | .......... او ستا د حساب

عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۞

په هغوئ باندې | هيڅ څيز | نو که تا او شړل هغوئ | نو شې به ته | د ظالمانو نه |

په هغوئ څه بوج نشته | ..........نو که هغوئ د خان نه او شړې نو زياتي کونکو کښې به شمير شې

وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا

او دغه شان | په امتحان کښې اچولي دي مونږه | بعضې د هغوئ نه | په بعضو نورو سره | د پاره د دې چې او وائي هغوئ

او داشان مونږ دوئ ديو بل په ذريعه په امتحان کښې اچولي دي | چې دوئ دا وينا اوکړي

اَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ

آيا دا هغه خلق دي | چې احسان کړې دې الله | په هغوئ باندې | په منځ زمونږ کښې | آيا نه دې الله

چې آيا هغه دا خلق دي چې الله ﷻ په مونږ کښې په دوي باندې مهرباني کړې ده | .......... آيا الله ﷻ

بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ ۞ وَاِذَا جَآءَكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ

ښه پوهه | په شکر کونکو باندې | او کله چې | راشي تاته | هغه کسان | چې ايمان راوړي |

شکرګزار بندګان ښه نه پيژني | او هر کله چې تاته هغه کسان راشي چې زمونږ په آيتونو ايمان راوړي

بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ

په آيتونو زمونږه | نو او وايه | سلامتيا ده | په تاسو | ليکلې دې | رب ستاسو | په ځان خپل باندې

..........نو ته ورته وايه سلامت اوسئ | ستاسو رب په خپل ځان باندې رحمت لازم کړې دې

الرَّحْمَةَ ۙ اَنَّهٗ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوْٓءًا بِجَهَالَةٍ

رحمت | بيشکه شان دا دې | چا چې کړې وي | ستاسو نه | څه بد عمل | په ناپوهتيا سره |

..........تاسو کښې چې څوک په ناپوهئ سره څه ګناه اوکړي | ..........

ثُمَّ تَابَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَصْلَحَ فَاَنَّهٗ غَفُوْرٌ

بيا | توبه اوباسي | روستو د هغې نه | او نيک کړي عمل خپل | نو بيشکه چې هغه | ښښونکې |

بيا روستو توبه اوباسي | .......... او خپله اصلاح اوکړي | نو بيشکه الله ﷻ بخښونکې

رَّحِيْمٌ ۞ وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ

مهربان دې | او هم دارنګې | مونږ په تفصيل سره بيانوو | آيتونه | او د پاره د دې چې ښکاره شي |

او مهربان دې | او مونږ دغه شان په تفصيل سره نښې ښايو | او د دې د پاره چې [د نيکانو خلقو نه]

| سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ۝ |
| --- |
| لاره [دمجرمانو [دتابعدارونه] ] |
| دمجرمانو لار بالکل ښکاره شي |

## آسان ترجمه قرآن

اوهغه خلقو لره د خپل مجلس نه مه اوباسه چه سحر او ماښام چه خپل پروردګار دهغه رضاء حاصلولو د پاره رابلي دهغوی په حساب کښې چه کوم اعمال دي هغې کښې په تا څه ذمه واري نشته. اوستا په حساب کښې چه کوم اعمال دي دهغې نه په هغوی باندې څه ذمه داري نشته چه د هغې د وجې نه ته هغوی اوباسي او د ظالمانو نه شې. دغه شان مونږ څه خلقو لره د نورو په ذریعه په امتحان کښې اچولي دي دپاره چه هغوی (ددوی په باره کښې) دا ووائي چه: آیادادي هغه خلق چه دوی لره الله تعالیٰ مونږ ټولو نه سوا داحسان کولو د پاره منتخب کړي دي ؟آیا (کافران چه دا خبره کوي ددوی په خیال کښې) الله تعالیٰ خپل شکر ګذار بندګان د نورو نه ښه نه پیژني ؟ او کله چه تا ته هغه خلق راځي چه څمونږ آیتونو باندې ایمان راوړي نو ته دوی ته ووایه چه : په تاسو دي سلامتیا وي ستاسو پروردګار په خپل ځان باندې د رحمت معامله لازمه کړي ده چه که ستاسو نه یو کس په ناپوهۍ سره یو بد کار وکړي بیا دهغې نه وروستو توبه اوباسي او خپله اصلاح وکړي نو الله ډیر بخښونکې ډیر مهربانه دې. اومونږ همدغسې نخښې تفصیل سره بیانوو (چه ټیغه لارهم واضحه شي) اوچه د مجرمانو لاره هم ښکاره مخې ته راشي.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ﴾ اوهغه خلقو لره [دخپل مجلس نه] مه اوباسئ چه صبا بیګاه [یعنی مناسب همیشوالی سره همیشه دپاره] دخپل رب عبادت کوی چه د سره یواځې دالله ﷻ درضا قصد لری [دمرتبې او مال حاصلولو غرض ئې په کښې نه وی یعنی دغه خلق تل دپاره عبادت هم کوی او اخلاص پکښې هم لری اخلاص اګر چه باطنی یعنی پټ خیز دے مګر په نخښو نښانو سره پیژندے هم شی اوهرکله چه د اخلاص دنیشتوالی څه دلیل نشته نوهم داخلاص ګمان ئې لرل پکار دی] ﴿ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ﴾ او ددوی [دباطن] حساب او تفتیش لږ هم ستاسو متعلق نه دی ﴿ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ﴾ او [دا ددوی دباطن په باره کښې پوښتنه کول ستاسو په ذمه نه دی او دا داسې یقینی دی لکه څنګه چه] ﴿ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ۝ ﴾ تاسو دوی لره اوباسئ [یعنی که ددوی دباطنی اخلاص پوښتنه کول ستاسو ذمه وے نو دا ګنجائش په کښې راووتلو چه د چا داخلاص تحقیق که نشو کیدلې هغوی به دې جدا کړی وو خودا کار ستاسو په ذمه نه دې او ددوی د ویستلو بله هیڅ جائزه وجه نشی کیدلے اوهرکله چه رسول الله ﷺ دامت پالوونکې دې اودا احتمال کیدیشی چه هغوئ دې دخپلو ماتحتو امتیانو دحالاتو پوښتنه اوکړی خو بل طرف ته دا احتمال بیخی نشو کیدې چه امتیان دے هم د خپل پیغمبر دباطنی حالاتو پوښتنه اوکړی لیکن دلته ئې احتمالی او یقینی پوښتنه کول یوشان ګرځولو سره ددغې دواړو نفی څکه اوکړه چه د دواړو منفی کیدل یقینی شی] ورنه [ددوی په ویستلو به] تاسو په نامناسبه کار کوونکو کښې [حساب] شئ ﴿ وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ ﴾ او [مونږ چه مومنانو لره غریبانان اوکافرانولره مو مالدران

جوړ کړيدی چه په ظاهره قياس سره برابرے نه خوری] نو [ددې وجه داده چه] په دغه شان مونږ [په دوی کښې] يو [يعنی کفارو] لره د نورو [يعنی دمومنانو] په ذريعه په آزميښت کښې راوستی دی [يعنی دعمل په دې انداز سره دکفارو امتحان اخستل دی] دپاره ددې چه دغه خلق [دمومنانو په باره کښې] ﴿ لِّيَقُولُوٓا۟ أَهَٰٓؤُلَآءِ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنۢ بَيْنِنَآ ﴾ او وائی چه آيا هم دا خلق دی چه زمونږ دټولو نه [په غوره کولو سره] پدوی باندې الله ﷻ خپل فضل کړيدے [يعنی دخپل دين اواسلام دپاره ئے دوی غوره کړی دی] ﴿ أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِأَعْلَمَ بِٱلشَّٰكِرِينَ ﴾ آيا دا خبره نه ده چه الله ﷻ حق پيژندونکی ښه پيژنی [دے غريبو خلقو دخپل حقيقی منعم حق اوپيژندو نو دحق په لټون پسے شو په حق دين اودالله ﷻ په نزد په قبليدو سره مشرف کړې شو اودغے لوئې خلقو ناشکری اوکفر اوکړو ځکه ددې نعمت نه بے نصيبه پاتې شو].

﴿ وَإِذَا جَآءَكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ اوهر کله چه هغه خلق تاسو ته راشی کوم چه زمونږ په آيتونو باندې ايمان لری ﴿ فَقُلْ سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ ﴾ نو تاسو ﷺ [دوی ته دزيری آورولو دپاره] داسې اووائې چه په تاسو سلامتی ده [يعنی په کفارو به چه هرقسم آفتونه په آخرت کښې راځی هغے نه به تاسو په امن يئ او بله دا هم چه] ﴿ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ ٱلرَّحْمَةَ ﴾ ستاسو پروردګار [په خپل فضل سره] رحمت کول او تاسو له [نعمتونه درکول] پخپله ذمه مقرر کړی دی [تر دې] ﴿ أَنَّهُۥ مَنْ عَمِلَ مِنكُمْ سُوٓءًۢا بِجَهَٰلَةٍ ﴾ چه څوك په تاسو کښې څه بدکاری اوکړی [چه] دجهالت نه [دغسې کيږی ولے چه دحکم په خلاف څه کول عملی جهالت دے مګر] ﴿ ثُمَّ تَابَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَصْلَحَ ﴾ بيا دوی وروسے توبه کړی [او آينده دپاره دخپلوعملونو] سمون اولری [په دې کښې دا هم راغلل چه ديوے توبے په ماتيدو بله توبه اوکړی] ﴿ فَأَنَّهُۥ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ نو دالله ﷻ داشان دے چه [هغه دپاره هم] لوئې بخښونکې دې [چه دګناه سزابه هم معاف کړی] او ډير رحمت کوونکې دے [چه قسماقسم نعمتونه به هم ورکوی] ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ ﴾ او [څنګه چه مونږ په دې مقام کښې دمومنانو اوکفارو د موجوده او راتلونکو حالاتو په مينځ کښې بيلتون اوکړو] دغه شان مونږ د آيتونو [چه د دوارو فريقو په موجوده او راتلونکو حالاتو باندې مشتمل دی] بيلتون په مخه کوو [ځکه چه دمومنانو طريقه هم ښکاره شی] ﴿ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ او دپاره ددې چه دمجرمانو طريقه [هم] ښکاره کړې شی [او دحق اوباطل دواضحه کيدو په وجه دحق طلبګار ته حق پيژندل آسانشی].

## معارف اومسائل

**دغرور اوجاهليت لرې کول اودعزت اوذلت اسلامی پيمانه.په اسلام کښې دامير اوغريب هيڅ بيلتون نشته::**

کومو ځګقوچه سره دانسان کيدونه انسانيت اونۀ پيژندو، بلکه انسان لره ئې ددنيا دمختلفو ښاورو څخه يوهوښيار ښاور اوګرځولو نورښاورې ئې خپل تابع اودخپل حکم لاندې راوستل اوټولونه ئې خدمت واغستو،ددوی په نزد دانسان دپيداکولوغرض ددې نه سوا بل څه کيدې شی چه دنوروښاوروپشان خوراک څکاک اوکړی،اودۀ شی اوراوبش شی اونور حيوانی جذبات استعمالول دخپل ژوند ښانګړی مقصداوګنړی،اوکله چه دژوند مقصديواځې دااوګرځولې شی نوښکاره خبره ده چه په دې دنياکښې به دښه اوخراب، لوئې اوورکوتی،دعزت مند اوبې عزته د شريف اورذيل دپيژندلو پيمانه هم داتياکلې شی، څوک چه دخوراک څکاک، د اغوستن اود نورو

معاملو سامانونه زيات لري هغه به كامياب عزتمند اوشريف گڼرلې شي اوداځيزونه چه چاسره كم وي هغه به بې عزته، ذليله، نامُراد اوناكامه وي-
كه دانصاف په نظراوكتلې شي نوددې عقيدې اونظرئې لـه مخې اخلاق اونيک عملُونه د انسانی شرافت اوعزت پيمانه دسره جوړيدې نشي بلكه نيک عمل اونيک خُوئې بـهٔ يواځې هغه گڼرلې شي چه دهغې په ذريعه صرف حيوانی مقصدونه په ښه شان پُوره كيدې شي-
همدغه وجه ده چه دټولو پيغمبرانو ﷺ اودهغوئ دراوړلی دين اومذهب اولنې اوآخرنې سبق هم داپاتې شويدې چه دې ژوندنه پس يوبل نهٔ ختمدونكې اوهميشه ژونددې، دهغه ځائې راحت او آرام بـه هم مكمل اوهميشه وي اوتكليف اوعذاب بـه هم مكمل اوهميشه وي، ددې دُنيا ژوند پخپله څهٔ مقصدنهٔ دې بلكه دراتلونكی دغه ژوند دپاره انتظام كول اوسامان تيارول ددې اصل مقصددې-

رہا مرنے کی تیاری میں مصروف       مرا کام اور اُس دُنیا میں تھا کیا

[دمرگ دپاره په تيارئ كښې لگياپاتې شوم- په دُنيا كښې ددې نه سوازمابل څه كاركيدې شو؟]
دانسان اوحيوان هم دغه ځانگړې فرق دې چه حيوان سره دراتلُونكی بل ژوند هيڅ فكرنهٔ وي، مگردعقل اوهوش دخاوندانو په نزدانسان سره دټولونه دالوئې فكرمل كيدل ضروری دی چه زما راتلُونكې ژوندبه څنگه ښه كيږی، په دې عقيده اونظريه بـه دشرافت اودرذيلتوب، دعزت اوبې عزتئ داپيمانه نشی بناكيدې چه زيات خوارک، څكاک اوكړې شی زيات مال، دولت جمع كړې شی بلكه پيمانه پردابناكيږی چه نيک اخلاق اونيک عملُونه كوم دی چه دآخرت عزت پر اړه لري-
دانبياؤ ﷺ دهداياتو اوتعليماتو نـه اودآخرت دعقيدې نـه چه هركلـه ددُنيا خلق غافله شونوطبعی نتيجه ئې دامخې تـه راغلـه چه دعزت، دولت شرافت اورذيلتوب پيمانه يواځې روتئ، خوراک، څكاک اوخيته اوتاكلې شوه، څوک چه دې كښې كامياب وي هم هغوئ شريفان اوعزتمند بللې شی په دې كښې پاتې راغلی اونيمگړی خلق، غريبانان، بې عزته، رذيل اوذليل گڼرلې شی-
همدغه وجه ده چه په هره زمانه كښې هغه خلقو، مالدارته عزتمن اوشريف اوغريب، فقيرته ئې بې عزته اورذيل اووئيل كوم چه ددې دنيوی ژوندپه نشه باند مست وو، چنانچه دحضرت نُوح ﷺ قوم ايمان راوړونكی غريب خلق په دې پيمانه رذيلان اوبلل اودااعتراض ئې اوكړو چه داسې رذيلانو سره مونږيوځائې نهٔ شوكښيناستې اووې وئيل كه تاسومُونږته څه پيغام راكول غواړئ نودغه غريبانان دخپلې خوانه لرې كړئ ﴿قَالُوٓا۟ أَنُؤْمِنُ لَكَ وَٱتَّبَعَكَ ٱلْأَرْذَلُونَ﴾ [يعنی داڅنگه كيدې شی چه مونږ درباند په داسې حالت كښې ايمان راوړو چه ستاسو يالكيان رذيلان خلق دی، حضرت نُوح ﷺ چه ددې زړهٔ دردوونكې دغه خبره واوريده نوپه مخصوص پيغمبرانه قسمه اندازكښې ئې ورتـه داسې جواب وركړو ﴿قَالَ وَمَا عِلْمِى بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ۝ إِنْ حِسَابُهُمْ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّى ۖ لَوْ تَشْعُرُونَ﴾ [يعنی زهٔ ددوئ دعملُونونه پُوره خبرنهٔ يم چه دررذيلتوب اوشرافت فيصله ئې اوكړې شم بلكه دهرچادعمل حقيقت اوددې حساب يواځې زماپروردگارتـه معلُوم دې چه دزړونودرازونونه خبردې]-
حضرت نُوح ﷺ ددغـه غټانو، جاهلانواولوئ كوُنكوخلقوجواب داسې هم وركولې شو چه دانسانی شرافت، اورذيلتوب دحقيقت نه خبرنهٔ يئ خكه داسې اوتې بوتې وايئ، تاسومال دولت

دعزت اوزذیلتوب پیمانه گنړئ حالانکه ددې پیمانه عملونه اواخلاق دي چه په هغې کښې داخلق تاسونه زیات پورته دي.خوهرکله چه حضرت نوح عليه السلام پیغمبروو،د هغوئ دتبلیغ اواصلاح دغسې اندازنشوکیدې چه په هغې سره تاؤتریخوالي راپورته کیدو،په دې وجه ئې صرف دومره قدرې اووئیل چه رذیلتوب خوپه افعالواواعمالواره لرې اوزۀ ددې دعملونونه پوره نۀ یم خبر څکه ئې دشریف رذیل کیدوفیصله نشم کولې-

داروپه اوکارنامه یواځې دحضرت نوح عليه السلام دقوم نۀ وه بلکه دهرې زمانې غریب اوبې وسه خلق ددُنیا پرستو متکبرانو اوغټانو خلقوپه نظرکې رذیلان ښکاري اګرچه په اخلاقی اوعملی ډول،هغوئ ډیرشریفان اوعزتمن وي،حالانکه داهغه خلق دي چه دخپل بصیرت اونیکوعملونوپه بناپه هره زمانه کښې دخپلو خپلوپیغمبرانو په بلنه قبلولوکښې دټولونه اول رامخې ته شویدي-
تردې پورې چه په مذهبونواوملتونوباندې نظرلرونکی خلقولره دیوپیغمبردرشتینئ اوحقانیت دایودلیل جوړشو چه دهغوئ ړومبنی تابعداران به دقوم غریبانان خلق وو چنانچه دروم بادشاه هرقل ته چه هرکله درسول الله ﷺ دارخه داسلام دپاره لیکلې دعوتنامه ملاؤشوه اودهغوئ دحقانیت اورشتینئ دلیل ئې هغه خلقونه طلب کړو چه درسول الله ﷺ دکردار اوزیست او روزګارنه خبرداروو دغه خلقونه ئې یوتپوس پکښې داهم اوکړو چه دهغوئ تابعدارو خلقو کښې زیات خلق غریب عوام دي یادقوم غټان خلق دي،ورته اووئیلې شو-غریب عوام ئې تابعداردي نوهغه اووئیل: ﴿هم اتباع الرسل﴾ [یعنی دپیغمبرانواولنی تابعداران همدغسې غریبانان خلق تیرشویدي.] [1] درسول الله ﷺ په زمانه کښې هرکله چه داسوال بیاراپورته شونوپه دې آیتونوکښې ئې جواب سره دخاصوهدایاتوورکړې شو-

ابن کثیر دابن جریر په روایت سره نقل کړیدي چه دقریشو دکافرانو یوڅوسرداران ،عتبه ،شیبه، ابن ربیعه،مطعم بن عدي اوحارث بن نوفل وغیره یوځل درسول الله ﷺ تره ابی طالب له راغلل اووې وئیل چه ستا دورارۀ محمد ﷺ خبرې آؤریدو اومنلوکښې مونږته یوخنډ داهم راولاړشویدې چه ورسره ناست پاست هغه خلق دي کوم چه زمونږ غُلامان وو اوآزادکړي مودي، یاهغه خلق دي چه خالص زمونږ په ډاډ اوامدادبه ئې ژوندتیرولو- داسې قسم سپک خلقو که هغوئ سره موجودوي نومونږه ئې په مجلس کښې نۀ شو شریکیدې،نۀ ورته اووایه که زمونږ دراتلو په وخت دغه خلق دخپل مجلس نه پورته کوي نومونږبه هله ورسره کښیناستې شو،خبره به ئې آؤریدې شو اوپه هغې به غورفکرکولې شو-

هرکله چه ابوطالب دهغوئ دغه مطالبه رسول الله ﷺ ته پیش کړه نوحضرت عمردارائې ورکړه چه دغه غریب خلق خوهسې هم ستاسومُخلص تابعداران دي دسردارانودراتلو په وخت دستاسو دمجلس مبارک نه پورته کیږي،دې کښې خوڅه عیب نۀ ښکاري. په دې باره کښې چه داآیت نازل شواوپه سختئ سره ددې کارنه هغوئ منع کړې شونوحضرت عمرهم په خپلې غلطئ باند عُذرمعذرت اوکړو اووې فرمائیل چه زمارائې غلطه وه-[2]

ددغه وخت غریبان حضرت بلال حبشي رضي الله عنه، صهیب رُومی رضي الله عنه،عماربن یاسر رضي الله عنه، سالم مولی ابی حذیفه رضي الله عنه، صبیح مولی اسید رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه، مقدادبن عمرو رضي الله عنه،

---

[1] صحیح البخاري، باب کیف کان بدء الوحي الی رسول الله صلی الله علیه وسلم الخ: ج ۱، ص ۴

[2] تفسیر الطبري تحت هٰذه الآیة رقم الحدیث: ۱۳۲۷

مسعود بن القاری ﷺ، ذوالشمالین ﷺ، وغیره صحابه کرام وو- چه دعزت اوشرافت پروانه ئې د آسمان نه نازله شوه اودقرآن کریم په یوبل ځائې کښې ددې تاکید داسې راغلې دې.

﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَن ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا﴾ په دې کښې رسول الله ﷺ ته داهدایت ورکړې شویدې چه تاسوخپل ځان دوئ سره تړلې اولرئ چه صبا، بیګا، یعنی هروخت دخپل رب عبادت کوی په اخلاص سره تاسوخپل نظر، ددوئ نه سوا، په بل چامهٔ غورځوئ چه غرض اومقصودئې ددنیوی ژوند زینت کیدې شی اوداسې خلقوخبره مهٔ منئ چه مونږ د هغوئ زړونه دخپل ذکرنه په غفلت کښې اچولی دی، کوم چه خپلونفسانی خواهشاتو پسې ځی اوکارئې هم دادې چه دالله ﷻ دمقرر کړوحدودونه بهرته ځی -

په ذکرشوی آیت کښې دغریبو خلقوصفت دابنودلې شویدې چه هغوئ ،صبا،بیګا،خپل پروردګارلره یادوی،دلته صبا ، بیګاه یومحاوره ده چه مطلب ئې دشواروزتول وختونه دی، د یادولو مطلب عبادت کول دی،دشپې ورځې دعبادت سره د: ﴿يُرِيدُونَ وَجْهَهُ﴾ قیدلګولو مطلب دادې چه کوم عبادت کښې اخلاص نهٔ وی هغه هیڅ ارزښت نهٔ لری-

په آخرد آیت کښې اوفرمائیلې شو چه:ددوئ حساب ستاسو په ذمه نهٔ دې اوستاسوحساب ددوئ په ذمه نهٔ دې، دلته دابن عطیه اوزمخشري وغیره دتحقیق مطابق د:حسابهم، او،علیهم، ضمیرونه ،دمشرکانو هغه سردارانوته راجع دی چه دغریبانانومسلمانانو دویستلو فرمائیش ئې کړې ووچه دوئ ددرسول الله ﷺ دمجلس نه بهرکړې شی هله به ورسره مونږناسته پاسته کولې شو-الله ﷻ رسول الله ﷺ ته اوفرمائیل چه داخلق که ایمان راوړی اوکه نهٔ راوړی،تاسوئې دغریبانومسلمانانوپه مقابله کښې پروامهٔ کوئ،ولې چه ددوئ دحساب ذمه داری په تاسونهٔ ده،ځنګه چه ستاسودحساب ذمه داری په دوئ نهٔ ده-که داذمه داری په تاسوراتلې یعنی ددوئ په نهٔ مسلمانیدو که تاسورانیولې شوئ،نوپه دغې صورت کښې به ددې سردارانو په خاطر تاسوغریبانو مسلمانانولره دمجلس نه بهرکولې شو- هرکله چه داسې څه خبره نشته نودې غریبانو مسلمانانولره دمجلس نه بهرکول ښکاره بې انصافی ده،که تاسو دغسې اوکړل بې انصافو خلقوکښې به حساب شئ-

په دوئیم آیت کښې ئې اوفرمائیل چه دغسې مونږه،تاسولره په خپل منځ کښې څکه په یوبل آزما یوچه دقریشو سرداران دالله تعالی ددې جابرقدرت ننداره اوکړی چه کوموغریبومسلمانانو لره چه تاسو سپک اونیچ ګڼړل،درسول الله ﷺ په تابعداری کولوسره هغوئ کومې درجې ته اورسیدل،په دنیااوآخرت کښې څنګه عزتمن شو. اودوئ په دې خبروکولوکښې لګیاپاتې شی چه:آیاهم داغریب خلق دالله ﷻ دانعام اواکرام حقداروو، چه مونږه تول شریفان ئې پریښودو اوهم ددوئ خاطرداراوشو-

هردمش برمن دل سوخته لطف دگراست　　　این گدابین که چه شائسته انعام افتاد

[هره ګړئ په مازړهٔ سوی باند پرله پسې مهربانی کیږی دې فقیرته اوګوره چه څنګه دانعام لائق اوګرځیدو]-

دکشاف وغیره دتحقیق په جوړ، ددوئ داوینا، دهغه ازمیښت اوامتحان نتیجه وه چه د کمزورو مسلمانانوپه ذریعه ددوئ نه اغستې شوې وو. دوئ په دې امتحان کښې ناکامه شو،په

ځانې ددې چه دقُدرت په دې مظاهره باند دغور کولو په وجه، دې نتيجې ته رسيدلې وې چه شرافت اورذيلتوب په مال، دولت وغيره باند اړۀ نۀ لري بلکه په اخلاقو اوعملونوادانړه لري دوئ اپوته په الله ﷻ باند داالزام لګول شروع کړل چه دعزت حقدارخو مونږوو، زمونږ په ځانې عزت هغوئ ته ولې ورکړې شو، الله ﷻ ددغې خبرې په جواب کښې دوئ لره اصل حقيقت ته په دې شان متوجه کړل: ﴿اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ﴾ [يعنې الله ﷻ ښه پوهيږي چه څوک خلق حق پيژندونکي اوشُکر ګذاره دي؟] [1]

مطلب دادې چه په حقيقت کښې شريف اوعزتمن بنده هغه څوک وي چه دخپل احسان کوونکي حق پيژني اوشُکر ګذاروي اوداسې بنده به دانعام اواکرام حقداروي، هغه څوک ددې حقدارنۀ ګرځي چه شپه ورځ دخپل احسان کوونکي اومُنعم نعمتونو کښې دلويو کولو باوجود دهغه نافرمانې کوي-

**څواحکام او هدايات** :: ددغه آيتونونه څوحکمونه اوهدايتونه رابرسيره شو-

اول داچه دچاپه زړو اوشليدلوجامو اوپه بې وسئ ليدلوسره هيچاته داحق نۀ رسي چه هغه لره سپک اوذليل اوګنړي څکه چه ډيرکرته دداسې شان خلق دالله ﷻ په نزد، ډيرزيات عزتمند اومقبُول وي- په يوحديث کښې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه ډيرمات ګډ اوګردلړلي خلق داسې وي چه دالله ﷻ په نزدداسې مقبُول وي که ديوکاردپاره قسم اوخوري چه همدغسې به کيږي نوالله ﷻ به ئې دغه قسم ضرورپوره کوي- [2]

دوئيم داچه دشرافت اورذيلتوب پيمانه خالص دُنيوي مال، دولت ګرځول دانسانيت سپکاوې دې ولې چه ددې اصل ادانړه نيک اخلاق اونيک کارونه دي-

دريم داچه ديو قوم اصلاح کوونکي اوتبليغ کوونکي دپاره اګرچه عام تبليغ هم ضروري دې چه پکښې موافق، مخالف، منونکي اونامنونکي ټول مخاطب وي ليکن دهغه خلقوحق وړاندې دې کوم چه ددوئ په تعليماتو باندپه مخه عمل کوي، دنورودپاره هغولره روستو کول ياشاته غورخول جائزنۀ دي، مثلاً غيرمُسلمو ته دتبليغ کولو په خاطر دناواقفو مُسلمانانوتعليم اواصلاح روستوکول نه دي پکار-

څلورم داچه دالله ﷻ انعامات دهغې دشکرکولوپه جورزياتيږي، څوک چه دالله ﷻ د نعمتونو د زياتيدوطلبګار وي نوهغه لره ضروري دي چه وينااوعمل سره دالله ﷻ شُکراداکول خپل ځوئې خصلت جوړکړي-

﴿وَاِذَا جَآءَكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ﴾ ددې آيت په باره کښې دتفسير دامامانو دوه قولونه دي، اکثرو مفسرينو دې آيت لره درومبې آيتونواوروميږ واقعې سره ددې تړون ښودلې دې اوپه دې تائيد کښې ئې داروايت پيش کړيدې چه هرکله دقريشو سردارانوداېي طالب په ذريعه دامطالبه پيش کړه چه هرکله ستاسوپه مجلس کښې غريبان اونيچ خلق پاتې کيږي نودهغوئ په خواکښې کښيناستو سره مونږه ستاسوکلام نشو آوريدې؛ مونږ به هله ستاسو کلام آورو او غور به پرې کوؤ چې کله تاسو دوئ دخپل مجلس ن بهر کړئې . په دې موقعه حضرت عمردامشوره ورکړه چه دې کښې څه عيب څکه نشته چه دغه خلق داسې اخلاصې دوستان دي که داخبره ورته اوکړې شي

[1] ) الکشاف تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۳

[2] ) جامع الترمذي، أبواب المناقب، باب مناقب البراء بن مالک رضي الله عنه: ج ۲، ص ۲۲۴، ۲۲۵

نويقيناً به څه وخت دپاره هغوئ ستاسو دمجلس نه په پورته كيدوسره دقريشو سردارانو دپاره ميدان خالي كوي چه دغه سرداران دالله تعالى كلام واورى اومسلمانان شي ـــــ خو په رومبوآيتونو كښې ددغې مشورې په خلاف داحكم نازل شو چه داسې دهيچرې نشي كولې ولې چه داسې كول ظلم اوبې انصافي ده،هركله چه په دې شان دحضرت عمررائې غلطه ثابته شوه نوهغه دګنهګاريدونه اوويريدو اوعُذرخواهئ دپاره راوړاند شو-

وريسې آيتونه دحضرت عمر دتسلئ دپاره نازل شو- خُلاصه ئې داده چه دغې قسم خلقونه تسلى وركړه چه په تيرې غلطئ ئې ګرفت نهٔ دې شوې او وړاندې زياتي دارحم الراحمين دبې شميرنعمتونو وعده هم ورته واوروه اودارحم الراحمين ددربارداقانون هم ورته اوښايه چه كله هم يومسلمان بنده په بې خيالئ كښې څه خراب كاراوكړي چه خبرشي توبه اوباسي اوپه آئينده كښې خپل عمل سم كړي نوالله ﷻ به ئې دغه وړاندې كړې ګناهونه معاف كړي،په آئنده كښې به ئې ددنيا اوآخرت خپلونعمتونو نه هم بې نصيبه نكړي-

په دې تشريح كولوسره معلومه شوه چه داآيتونه دهغه خاص واقعې په باره كښې نازل شويدي چه بيان ئې په وړاندينى آيتونوكښې تيرشوې،ليكن ځنې مفسرينو ددې آيتونو مضمون لره ديوې مُستقلې هدايت نامې په حيثيت سره داسې بيان كړيدې چه څوك ګناهګاران دګناه كولونه پس په هغې پښيمانه شي، اوپه توبې كولوسره خپل عمل دُرست كړي نوداحُكم هغوئ دپاره دې-

په غوركولوسره ئې نتيجه دا راوځي چه په دواړو قولونوكښې تعارُض څكه نشته چه دمفسرينو په دې اتفاق دې چه دقرآن كريم يوحُكم چه په يوخاصه واقعه كښې نازل شوى وي،هركله چه دهغې الفاظ اومضمون عام وي نوهغه خالص دغې واقعې دپاره مخصوص نهٔ وى بلكه ديوعام حُكم شان لري- مطلب ئې دادې چه دې حُكم هم ديوې عامې ضابطې حيثيت اختياركړو،داهرداسې ګناهګارلـه شامليږى چه ګناه نه پس په خپلې ګناه باند خبريدو سره خپيمانه شي اوخپل راتلونكى عملونه درست كړي-

اوس ددې آيتونوپوره تشريح اوګورئ،فرمائي: ﴿وَإِذَا جَآءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ [يعني كله چه هغه خلق تاسوته راشي كوم چه زمونږ په آيتونوباند ايمان لري، دلته دآيتونونه مُرادقرآني آيتونه هم كيدې شي اودالله تعالى دكامل قُدرت عامې نخښې هم كيدې شي نودداسې خلقوپه باره كښې رسول الله ﷺ ته داهدايت وركړې شو چې هغوئ ته دې په دې سره خطاب كوي،ددې دوه مطلبه كيدې شي يوداچه دالله ﷻ سلام ورته اورسوئ چه بې حده زيات عزت وركړې شي ـ په داسې صورت كښې د دوئ زړونه به راجوړشي كوم چه دقريشو دسردارانو په دې تجويز سره مات شوى وو، چه دوئ لره ددمجلس نه بهركړې شي- اودائې هم مُراد كيدې شي چه تاسودې خلقو ته دسلامتئ زيرې واوروئ چه كه ددغې خلقونه په عمل كښې څه غلطي ياكوتاهي هم شوى وى نوهغه به ورته معاف كړې شي اودوئ به دهرقسم آفتونونه سلامت پاتې كيږي-

په دوئيمه جُمله كښې ئې ﴿كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ اوفرمائيل، دې سره ددغې احسان دپاره دزيات احسان اوانعام وعده داسې كړې شويد چه تاسومسلمانانوته اوفرمايئ چه ستاسو رب په خپله ذمه رحمت ليكلې دې، په دې وجه ډير ويريږئ اوبوګنيږئ مهٔ،دآيت مضمون لره مدلل جوړولودپاره د،رب،لفظ ئې راواړلو ولې چه د،رب،لفظ چه كوم رحمت ته اشاره كړې وه هغه ئې

په ښکاره هم داسې بیان کړه-چه ستاسو رب رحمت لره په خپله ذمه لیکلې دې- اوس داخبره په ډاګه شوه چه هرکله یوشریف انسان دخپلې کړې وعدې خلاف نهٔ کوی نورب العالمین به ئې څنګه اوکړی، خصوصاً په هغه وخت کښې چه دغه وعده، دمعاهدې اولوظ،قول په صورت کښې لیکلې شوی وې-

بخاری،مسلم اومسنداحمد کښې دابی هریره ﷺ په روایت راغلی دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی،هرکله چه الله ﷻ ټول مخلوق پیدا کړو، دهریو دتقدیر فیصله ئې اوکړه نوپه داسې یوکتاب کښې ئې اولیکل کوم چه په عرش باند الله ﷻ سره دې-. چه﴿ان رحمتی غلبت غضبی﴾[زما رحمت زماپه غصې باندې زیات بردې]([1])

اوحضرت سلمان فارسی ﷺ فرمائیلی دی چه ،ماپخپله تورات کښې دالیکلی لیدلی دی چې هرکله الله ﷻ آسمان، زمکه اوددې ټول مخلوقات پیدا کړل نودخپل رحمت صفت ئې په سلو برخو کښې اوویشلو،ددې څخه یوه برخه ئې په ټول مخلوقات اوویشله چنانچه په انسانانو، څناورو اونورومخلوقاتوکښې هم ددغې برخې[رحمت] اثرښکاره دې،دمور، پلار، اولاد، رونړو، خویندو، ښځې خاوند دعاموخپلوانو،ګوانډیانو اودنوړودوستانوترمنځه چه کومه همدردی، مینه ،محبت ،اورحمت، شفقت چه مونډلې اولیدلې شی،دغه ټول درحمت ددغه سلمې برخې نتیجې دی،پاتې یوکم سل برخې درحمت،الله ﷻ خپل ځان سره ساتلی وی- څنوځایونوکښې د رسول الله ﷺ دیوحدیث په حواله هم داروایت بیان کړې شویدې،([2]) دې نه انسان ددې اندازه لګولې شی چه په خپل مخلوق باند دالله ﷻ رحمت دکوم شان اودکومې درجې دې.؟

داخبره په ډاګه ده چه هیڅ یوانسان څه چه، فرشته هم دالله ﷻ دشان لائق عبادت اوفرمانبرداری نشی کولې-کومه فرمانبرداری چه دفرمانبرداری دشان نه خلاف وی هغه ددنیا دخلقو په نظرکښې د انعام اواکرام دسبب جوړیدو په ځائې دالله ﷻ د خفګان سبب ګرځلې شی،هرکله چه زمونږ طاعت، عبادت اونیکۍ دالله ﷻ دلوئې دربارپه نسبت سره اوکتلې شی نودګناهونونه کم نهٔ دی، سوائی داچه هیڅ یو انسان داصلی اوحقیقی ګناهونواونافرمانونه هم خالی نهٔ وی﴿الامن عصمه الله﴾ په دې حالاتوکښې دانصاف دتقاضامطابق هیڅوک دعذاب نه بچ کیدل پکارنهٔ وو خوکیږی داسې چه په هرانسان باند دالله ﷻ نعمتونه هروخت وریږی،داټول هم ددغې رحمت نتیجه ده کوم چه دټول جهان پروردګار په خپله ذمه لیکلې دې-

**په توبې سره هره ګناه معاف کیږی** :: دې نه پس دخپل کامل رحمت تشریح ئې دیوې ضابطې په صورت کښې داسې بیان کړه: ﴿أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنكُمْ سُوءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِن بَعْدِهِ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾[یعنی څوک چه دجهالت په وجه څه بدکاراوکړی اوورپسې بیاتوبه اوکړی،خپل عمل درست کړی نوالله ﷻ دیربخښنه کوونکې دې،ددهٔ ګناه به معاف کړی اودیررحمت کوونکې دې چه یواځې په معافۍ کولوبه بس والې نهٔ وی بلکه دانعاماتو سره به ورکولې شی-

[1] صحيح البخاري، كتاب بدء الخلق، باب ما جاء في قول الله "وهو الذي يبدأ الخلق" الخ: ج ۱، ص ۴۵۳، وصحيح مسلم، كتاب التوبة، باب في سعة رحمة الله تعالى الخ: ج ۲، ص ۳۵۶، ومسند أحمد، مسند ابي هريرة رضي الله عنه: رقم الحديث ۸۴۳۷

[2] المستدرك على الصحيحين رقم الحديث: ۱۷۲، حديث سمرة بن جندب رضي الله عنه وجامع الترمذي، أبواب الدعوات، باب: ج ۲، ص ۱۹۲

په دې آيت کښې د ،جهالت،لفظ نه په ظاهره داخيال کښې راځي چه دګناه دمعافۍ به يواځې هغه صورت وي چه په ناپوهۍ کښې چانه ګناه شوې وي په قصدا و اراده که څوک ګناه اوکړي هغه به دمعاف کيدو جوګه نۀ وي،خوحقيقت داسې څکه نۀ دې چه دلته د ،جهالت، نه مُراد ،عمل دجهالت دې مطلب داچه داسې کاراوکړي څنګه چه دنتيجې نه بې خبره ئې کوي، څکه خودلته جهل،د،علم،مُقابل دې او،جهالت، د ،زغم،او،سرې سينې، مقابل دې،يعنې په محاوره کښې د ،جهالت،لفظ عملي جهالت دپاره استعمالولې شي،اوکه غوراوکړې شي نويواځې دعملي جهالت په وجې سره انسان نه ګناه کيږي،څکه څنې بزرګانوفرمائيلي دي چه څوک دالله ﷻ اورسول دځه حُکم خلاف کارکوي هغه جاهل دې چه مراد ترهم داعملي جهالت دې ، دې دپاره ناخبره اوبې علمه کيدل ضروري نۀ دي ولې چه دقرآن کريم اودصحيح احاديثو بې شميره نصونه په دې باند دلالت کوي چه توبې کولوسره هره ګناه معاف کيدې شي خواه دغفلت ،بې پروايۍ اوبې خبرۍ اود ناپوهتيا دوجې نه صادره شوې وي ياپه قصدسره،دنفس دورانۍ اودخواهشاتو دتابعدارۍ له وجې صادره شوې وي-

دلته داخبره په خاص ډول دنظرکولوجوګه ده چه په دې آيت کښې ګناهګارانوسره دبخښنې اورحمت کومه وعده چه کړې شوې ده هغې دپاره دوه شرطونه دي يوتوبه کول اوبل دعمل درست کول، د توبې معنی ده په ګناه باند پښيمانه کيدل ، په دحديث پاك کښې ارشاد دې : [انما التوبة الندم] يعنی توبه نوم د ې د پښيمانه کيدو.(۱)

اودوئيم په آئنده کښې دعمل درست کول پهځ دې اصلاح عمل کښې دا هم داخل دي چه په آئينده کښې ددغې ګناه خواته دنۀ ورتلوپوخ قصد او اراده اوکړي اودامعنی ئې هم کيدې شي چه دروميې ګناه نه دچاضائع شوي حقوق دځپل وس او اختيارپه جوړهغه ته اداکړي،دې نه مطلب حقوق الله اوحقوق العباددواړه دي،دحقوق الله مثال مونځ، روژې،زکوة،حج وغيره فرائضوکښې کوتاهي کول دي اودحقوق العباد مثال دچاپه مال باند ناجائزه قبضه اوتصرف پکښې کول دي، دچاپه تنګ، ناموس باند حمله کول، چا ته د کنځولو، بدوردوياپه بل صورت کښې زيان ور رسول دي-

په دې بنادتوبې مکمل کولودپاره څنګه چه داضروري دي چه په کړې ګناه پښيمانه شي،دالله ﷻ نه بخښنه اوغواړي اوپه آئنده کښې ځپل عمل درست اولري،دغې ګناه ته بيانۀ ورځي، دغه شان داهم ضروري دي چه کوم مونځونه اوروژې وغيره چه دغفلت اوبې پروايۍ په وجه پاتې شوي وي دهغې قضا راوړي، نا ورکړې زکوة اداکړي،پاتې شوې قرباني اوسرسايه کښې تر شوې کوتاهي پوره کړي، ناکړې فرض حج اوس اداکړي،که پځپله نشي اداکولې دحج بدل په صورت کښې دپه بل چا باند اداکړي- که په ځپل ژوند کښې ورته دحج بدل اودبل قسم قضا راوړو موقعه په ګتوورنشي نووصيت دې دپاره اوکړي چه وارثان دې دهغې فديه ورکړي يادحج بدل انتظام اوکړي. خُلاصه دا شوه چه دعمل داصلاح دپاره،صرف دراتلونکي عمل سمول کافي نۀ دي، دپاتې شوي فرض اوواجب قضا راوړل هم ضروري دي.

---

۱) مسند أحمد، مسند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رقم الحديث: ۳۵۶۸

دغه شان د دبندګانو نه په ناجائز ډول اغستي شوي مال هغوئ ته واپس کړي، یا دې ترې دهغې معافي اوغواړي، که دبندګانو نه دمعاف کولو څه صورت پاتې نشي مثلاً دمال خاوند مړشوي وی چه هیڅوک وارثان ئې نه وی یاچرته ئې پته معلومه نشي نو دهغې تدبیر دادې چه هغه دپاره دالله ﷻ نه دبخښنې دعاغوښتل په خان ضروری کړي، امید دې چه دې سره به دحق خاوند راضی شی او مال یابل حق لاندې کوونکې به خلاص اوفارغ شی۔

| |
|---|
| قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ |
| اووایه \| چې بیشکه زهٔ \| منع کړې شوې یم \| چې بندګی اوکړم |
| ته ورته اووایه چې بیشکه زه د هغه معبودانو دعبادت نه منع کړې شوې یم |
| الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ قُلْ لَّآ اَتَّبِعُ اَهْوَآءَكُمْ ۙ |
| دهغوئ \| چې تاسو ئې رابلئ \| ماسوا دالله نه \| اووایه \| چې نه کوم زهٔ تابعداری \| د خواهشاتو ستاسو |
| چې تاسوئې د الله نه سوا رابلئ ..........ورته اووایه چې زه ستاسو د خواهشاتو تابعداری نه کوم |
| قَدْ ضَلَلْتُ اِذًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ۝ قُلْ |
| یقینا بې لارې به شم زهٔ \| په دغه وخت کښې \| اونهٔ به شم زهٔ \| دنیغې لارې موندونکونه \| اووایه |
| که داسې مې اوکړل نو ګمراه به شم ..........او په سمه لار به پاتې نشم \| ..........ورته اووایه |
| اِنِّيْ عَلٰي بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَكَذَّبْتُمْ بِهٖ ۭ |
| چې بیشکه زهٔ \| په ښکاره دلیل یم \| دطرف درب خپل نه \| اودروغ ګنړلې دې تاسو \| هغه دلیل |
| چې بیشکه زه دالله ﷻ دطرفنه په ښکاره دلیل باندې ولاړ یم \| او تاسو هغې ته دروغ وایئ |
| مَا عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ ۭ اِنِ الْحُكْمُ |
| نشته په اختیار زما کښې \| هغه \| چې تاسو تلوار کوئ \| هغې ته \| نه دې اختیار دفیصلې |
| اوس دهغې [عذاب] اختیار زما په لاس کښې نهٔ دې \| چې دکوم راتلو ته تاسو تلوار کوئ \| فیصله صرف |
| اِلَّا لِلّٰهِ ۭ يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفٰصِلِيْنَ ۝ قُلْ لَّوْ اَنَّ |
| مګر \| خاص الله لره دې \| هغه بیانوی \| حق \| اوهغه \| بهترین فیصله کونکې دې \| اووایه \| که چرې \| بیشکه |
| دالله ﷻ په لاس کښې ده \| هغه حق خبرې بیانوی \| او بهترین فیصله کونکې دې \| ورته اووایه که چرې |
| عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ |
| وې په اختیار زما کښې \| هغه څیز \| چې تاسو تلوار کوئ \| هغې ته \| خامخا به شوې وه \| فیصله په مینځ زما |
| هغه عذاب زما په لاس کښې وې \| چې د کوم راتلو ته تاسو تلوار کوئ \| نوزما او ستاسو مینځ کښې به |
| وَبَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝ |
| اوپه مینځ ستاسو کښې \| اوالله \| زیات عالم دې \| په ظالمانو باندې \| |
| فیصله شوې وه \| اوالله ﷻ ته ظالمان ډیر ښه معلوم دی \| |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره ! دوی ته) ووایه چه: تاسو د الله نه سوا چه کوم (دروغ خدایان) رابلئ څه د هغې دعبادت نه منع کړې شوې يم ته ووایه چه: څه ستاسو خواهشاتو پسې نه هم تلې که څه داسې وکړم نو څه به گمراه شم، او څما شمير په هدایت موندونکو خلقو کښې ونشي.ته ووایه چه :ما ته دپروردګار د طرف نه یو ښکاره دلیل ملاؤ شوې دې چه په هغې څه قایم یم او تاسو هغې لره دروغژلوئ د کوم څیز د زر راتلو چه تاسو مطالبه کوئ هغه ما سره نشته حکم دالله نه سوا دبل چا نه چليږي هغه حقه خبره بیانوي،او هغه د ټولو نه بهتر فیصله کوونکې دې .ته ووایه چه: د کوم څیز تاسو جلتي کوئ که هغه ما سره وې نو څما او ستاسو په مینځ کښې به فیصله شوې وه.او الله ظالمان ښه پیژني.

## خلاصه تفسیر

﴿ قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ ﴾ تاسو [دغے ضدیانو ته] اووائې چه ماته د الله ﷻ دطرف نه ددې ممانعت کړې شوې دے چه دهغوی [معبودانو] عبادت کوم چه تاسو خلق ئےدالله ﷻ [دتوحید] په پرېښودو سره عبادت کوئی [او ددوی دګمراهئ دطریقے ښکاره کولو دپاره] ﴿ قُلْ لَا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ ﴾ تاسو ﷺ اووائې چه زه به ستاسو د [باطلو] خیالاتو تابعداری نه کوم ﴿ قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴾ ځکه چه [که نعوذ باالله زه دغسې اوکرم نو] په دغے حالت کښې به بےلارې شم اوپه [سمه] لاره تلوونکو کښې به پاتې نشم ﴿ قُلْ إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِنْ رَبِّي ﴾ تاسو ﷺ [ورته داهم] اووائې چه ماسره خو [ددې دین اسلام په حق کیدو کښې یو [کافی] دلیل [شته] دې چې زما د رب له طرفه [ماته راکړې شوې دے یعنی قرآن پاك چه زما معجزه ده او زما تصدیق کوی] ﴿ وَكَذَّبْتُمْ بِهِ ﴾ او تاسو [بےوجے] دے لره په دروغه بلئ [اوتاسو دا وائې چه که داسلام دین په حقه دې نو زمونږ په انکار کولو دے کانړی راو وربړی یابل څه سخت عذاب دے راشی چه په بل ځائے کښې داسې بیان شوې دې چې ﴿ اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ نو جواب ئے دادې چه] ﴿ مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ ﴾ دکوم څیز چه تاسو غوښتنه کوئی [یعنی دعذاب الیم] هغه ماسره [یعنی زما په قدرت کښې نشته دې] ﴿ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ﴾ حکم دهیچا نشته [نه چليږی] سوا الله ﷻ نه [اود نازلیدودعذاب حکم شوې نه دې نو زه څنګه عذاب درته اوښایم] ﴿ يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفَاصِلِينَ ﴾ الله ﷻ حق خبره [په دلیل سره] ښائی او دټولو نه ښه فیصله کوونکې هم هغه دے [چنانچه هغه زما دپغمبرئ واضح اومضبوط دلیل قرآن پاك راولیږلو اونورے ښکاره معجزےئے ښکاره کړې او صحیح دلیل یوهم کافی کیږی نوستاسو دفرمائشی دلیلونو ښکاره کولو ضرورت نشته ځکه ئے دا وخت دعذاب نازولو فیصله اوکړه] ﴿ قُلْ لَوْ أَنَّ عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ ﴾ تاسو ﷺ اووائې چه که ماسره [یعنی زما په وس کښې] هغه څیز وے دکوم چه تاسو غوښتنه کوئی [یعنی عذاب] نو [تراوسه به] ﴿ لَقُضِيَ الْأَمْرُ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ﴾ زما اوستاسو ترمینځه جنجال [لپخوا] ختم شوې وو ﴿ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالظَّالِمِينَ ﴾ او ظالمانو لره الله ﷻ ښه پیژنی [چه چا سره کومه معامله کوم وخت اوکړې شی.]

وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ

| اودهغه سره دی | کنجیاني | دغیبو

| اود غیبو کنجیاني خوهغه سره دی

لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ۭ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۭ

نهٔ دی معلومي هغه|مګر|هغه ته |اوپوهیږی هغه|په هغه څه |چې په اوچه کښې |اوپه دریاب کښې دی

دهغه نه بغیر بل چاته نه دی معلومې| اود اوچې اولوندې څیزونه ورته ښه معلوم دی |

وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِيْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ

اونهٔ راغورزیږی|هیڅ یوه پاڼړه |مګر |هغه عالم وی په هغې|اونشته یوه دانه| په تیارو کښې| دزمکې

اودونې چې یوه پاڼړه هم راپریوځی | نو ددې علم هغه ذات سره وی| اودزمکې په تیرو کښې داسې دانه نشته

وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝ وَهُوَ الَّذِيْ

اونشته لوندڅیز |اونه اوچ څیز| مګر| لیک دی په کتاب کښې| چې روښانه دې|اوهغه | هغه ذات دې

که لونده وی او که اوچه وی هرڅه دهغه په پرانیستی کتاب کښې لیکلی شوی دی| اوالله ﷻ هغه ذات دې

يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ

چې اخلی روحونه ستاسو | په شپه کښې | اوعالم دې | په هغه | چې کوئ تاسو|په ورځ کښې | بیا

چې دشپې ستاسوروحونه قبض کوی| اوتاسو د ورځې چې څه کوئ د هغه په علم کښې دی |بیا

يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ

واپس پورته کوی تاسو |په هغې کښې | دپاره د دې چې پوره شی| نیټه | مقرره | بیا |خاص هغه ته

تاسو[سحر] ددنیاکاروباردپاره راپورته کوی| دې دپاره چې مقرره نیټه پوره شی | ............بیا

مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

واپسی ده ستاسو | بیا | به خبر درکړی تاسو ته | په هغه څه | چې وئ تاسو | چې کول به مو |

تاسوټول به هغه ته واپس کیږئ| اوتاسو به د هغه کارونونه خبر کړی چې کوم تاسو کړی وی

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ۭ

اوهغه |پوره قدرت لری | دپاسه |دبندګانو خپلو |او رالیږی هغه | په تاسو باندې| ساتونکې فرشتې

اوهغه په خپلو بندګانو باندې کامل قدرت لری | اوستاسود نګرانئ دپاره نګرانې فرشتې رالیږی

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ

تردې پورې |کله چې | راشی | یولتاسو ته | مرګ | نو اخلی روح دهغه | فرشتې زمونږه | اوهغوئ

تردې چې په تاسو کښې دچادمرګ وخت راشی| زمونږرالیږلې[فرشتې] دهغه روح قبض کوی | اوهغوئ

لَا يُفَرِّطُوْنَ ۝ ثُمَّ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۭ اَلَا

کمې نهٔ کوی په کارخپل کښې |بیا|اواپس بوتللې کیږی |الله ته|چې کارساز دهغوئ دې| حق|خبردار شئ

[پخپل کار کښې|هیڅ قسم کوتاهی نه کوی|بیا به داټول الله ته واپس شی| اوهغه په حقه ددوی مولادې خبرشئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَهُ | الْحُكْمُ | وَهُوَ | أَسْرَعُ | الْحٰسِبِيْنَ ۝ |
| هغه لره | اختيار د فيصلې دې | او هغه | ډېر تيز دې | د ټولو حساب کوونکو نه |

چې حکم بس صرف د هغه ذات چلېږي | او هغه په حساب اخستو کښې ډېر تيز دې |

## آسان ترجمه قرآن

او د هغه سره د غيب چابياني دي چه هغې لره د الله نه سوا بل څوک نه پوهيږي. او په اوچه او سمندر کښې چه څه دي هغه د هغې نه خبر دې. د يو ونې نه يو پاڼره نه غورځيږي چه د هغې هغه ته علم نه وي، او د زمکې په تيارو کښې څه دانه يا يو اوچ يا لوند څيز داسې نشته چه يو ښکاره کتاب کښې ليکلې شوې نه وي او دا الله هغه ذات دې چه د شپې په وخت کښې (خوب کښې) ستاسو روح (يو حد ته پورې) قبض کوي او د ورځې چه تاسو څه کوئ په هغې پوهيږي ، بيا دې (نوې ورځ) کښې تاسو ته نوې ژوندگي درکوي دې د پاره چه (ستاسو د عمر) مقرره موده پوره شي، بيا هغه ته ستاسو واپس کيدل دي، هغه وخت به تاسو ته وښائي چه تاسو څه کول او هغه په خپلو بندګانو مکمل قدرت لري او تاسو د پاره نګهبانې (فرښتې) ليږي ترڅو پورې چه تاسو کښې د چا د مرګ وخت راشي نو څوک چې ليږلې شوي فرښتې هغه لره پوره پوره اخلي، او هغوی ذره هم کوتاهي نه کوي بيا دا ټول الله تعالى طرف ته واپس کولې شي چه د دوی په رښتيا مولي دي. ياد ساتئ چه حکم د هغه چلېږي او هغه د ټولو نه ډېر زر حساب کوونکې دي.

**د آيتونو ربط:**: دې مذکوره آيتونو مبارکو کښې د کافرانو د طرفه د عذاب د نازليدو يو عاجزانه فرمائش او د دې جواب په خير الفاصلين کښې او د الله تعالى د قدرت کامله تامه ذکر په اعلم باالظالمين کښې ذکر وو ، دې نه پس مخ ته په ټولو معلوماتو او مقدوراتو باندې د الله تعالى د علم او قدرت احاطه بيانيږي.

## خلاصه تفسير

﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ او الله ﷻ سره [يعنى د هغه په قدرت کښې] دى خزانے د پټو څيزونو [ممکنو په دې کښې کوم څيز کله او څومر چه غوارې ښکاره کوی ئے په دې څيزونو کښې د عذاب قسمونه هم راغلل. مطلب دا چه بل څوك په دې څيزونو قدرت نه لرى او څنګه چه کامل قدرت هم هغه سره خصوصيت لرى د غه شان پوره او کامل علم هم ورسره خصوصيت لرى چنانچه] ﴿لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ﴾ دا خزانے پټے هيڅوك نه پيژنى سوا د الله ﷻ نه ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ او هغه ټول څيزونه [هم] پيژنى چه په اوچه کښې او چه په درياب کښې دى ﴿وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا﴾ او هيڅ پاڼره [ونے نه نه] راغورزيږى مگر هغه دے لره [هم] پيژنى ﴿وَلَا حَبَّةٍ فِيْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ﴾ او نه څه دانه د زمکې په تيارو برخو کښې پرېوځى ﴿وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ﴾ او نه څه لوند او اوچ څيز [لکه ميوه وغيره] پرېوځى ﴿اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝﴾ مگر دا ټول په کتاب مبين [يعنى په لوح محفوظ] کښې [ليکلى] دى ﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ﴾ او هغه [الله ﷻ] داسې دے چه [اکثر په شپه] کښې [د اوده کيدو په وخت] ستاسو [نفسانى] روح لره [چه احساس او ادراك ورسره تعلق لرى] يو قسم قبض کړى [يعنى د کار کولو نه ئې ايسار کړى] ﴿وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ﴾ او څه چه تاسو په ورځ کښې کونى هغې لره [مدام] پيژنى ﴿ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ

مُّسَمًّى﴾ بیا تاسو لره ورځ کښې رابیداروي دپاره ددې چه [ددې اوده کیدو راوېښیدو په دو رو سره] تاکلې نیټه [ددنیوی ژوند] پوره کړې هم هغه [الله] ته [په مرګ سره] ﴿ثُمَّ اِلَیۡهِ مَرۡجِعُكُمۡ ثُمَّ یُنَبِّئُكُمۡ بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ﴾ تاسو لره تلل دی بیا به درته اوښائی هغه څه چه تاسو [پدنیا کښې] کول [اودهغې په مناسب به جزا او سزا جاری کوی]. ﴿وَهُوَ الۡقَاهِرُ فَوۡقَ عِبَادِهٖ﴾ او هم هغه [الله ﷻ دقدرت له وجې] په خپلو بندګانو غالب پورته زیات دے ﴿وَیُرۡسِلُ عَلَیۡكُمۡ حَفَظَةً﴾ او [اني بندګانو] په تاسو باندې [ستاسو دعملونو او ځانونو] څارنه کوونکی [فرښتې] رالیږی [چه ټول عمر ستاسو عملونه هم ګوری او ستاسو د ځانونو څارنه هم کوی] ﴿حَتّٰۤی اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الۡمَوۡتُ تَوَفَّتۡهُ رُسُلُنَا﴾ تر دې چې کله په تاسو کښې په چا مرګ راشی نو [دغه وخت] دهغه روح زمونږ لیږلې [فرښتې] قبض کړی ﴿وَهُمۡ لَا یُفَرِّطُوۡنَ﴾ اولږه کوتاهی نه کوی [بلکه کله چه ورته د څارنې کولو حکم وو نو څارنه یې کوله او چه دمرګ حکم اوشو نو دغه څارنداولې فرښتې روح قبض کوونکو فرښتو سره یو ځائې شی] ﴿ثُمَّ رُدُّوۡۤا اِلَی اللّٰهِ مَوۡلٰىهُمُ الۡحَقِّ﴾ بیا به ټول مالك حقیقی ته راوستې شی ﴿اَلَا لَهُ الۡحُكۡمُ وَهُوَ اَسۡرَعُ الۡحٰسِبِیۡنَ﴾ښه واورئی [دغه وخت به] فیصله یواځې دالله وی [او هیڅوك په په کښې دخل نشی ورکولې] اوهغه به ډیر زر حساب واخلی.

## معارف اومسائل

**څلاښونه دیځ هیڅو اثرناکه نسخه:** دټولې دُنیا په مذهبونوکښې یوځانګړې اسلامی نُسخه اوداسلام دټولونه لوئې رکن، دتوحید عقیده ده اوداهم ښکاره خبره ده چه صرف دالله تعالی ذات لره یواویواځې ګڼړل توحید نشی بللې بلکه توحید ددې نُوم دې چه په ټولوصفات کمالیو کښې هغه لره بې سیاله اوبې مثله اومنلې شی اوبل هیڅ مخلوق لره دهغه په کاملو صفتُونوکښې دهغه شریك اوحصه داراونهٔ ګڼړلې شی-

دالله ﷻ دکمال صفتُونه:حیات،علم، قُدرت، سمع، بصر، اراده،مشیت خلق او رزق ورکول وغیره دی-په دې ټولوصفتُونوکښې هغه داسې کامل دې چه ورسره ددې صفتُونو څخه هیڅ یوصفت کښې هیڅ مخلُوق ورسره نشی برابریدې، بیاپه دې صفتُونو کښې هم دوه صفتُونه دټولونه زیات بې مثله دی،چه یوعلم اوبل قدرت دې-چنانچه علم ئې په ټولوشته څیزونو اوناشته څیزونو، په ښکاره او پټو څیزونو، لویو، وړواوپه ذرې ذرې باند حاوی او را چاپیره دې اوقُدرت ئې هم دغسې په هرڅه باند را چاپیره دې. اوس په دې رومبو دوؤ آیتُونوکښې هم ددغې صفتُونو بیان دې-دادوه صفتُونه داسې دی چه که انسان په دغې صفتُونوباند ئې مکمل یقین لری اوځان ته ئې په خپله مخه کښې دلرلو همت اوکړی نوهیڅ جرم اوګُناه ترې بیانشی کیدې ،ښکاره خبره ده چه هرکله یوانسان په خپل هرقول اوعمل اوخپلو ټولو حرکاتو سکناتو کښې هروخت دامخې ته لری چه یوعلیم اوخبیر اوقادر مطلق م هروخت وینی ګوری، زما د ظاهر،باطن او د د زړهٔ د ارادو او خیالُونونه هم خبرداردې نودغه قادرمطلق نافرمانی به ترهیڅ کله اونشی همدغه وجه ده چه دا دواړه آیتُونه ،انسان نه کامل انسان جوړوی، ددهٔ اخلاق اوعملُونه درست کوی او درست ئې لری ګویا دایوه ډیره اثرناکه نُسخه ده-

په رومبی آیت کښې فرمائی:﴿وَعِنۡدَهٗ مَفَاتِحُ الۡغَیۡبِ لَا یَعۡلَمُهَاۤ اِلَّا هُوَ﴾ دمفاتح، مُفرد، مفتح، ، او، ،مفتح،په زوردمیم سره اوپه زیردمیم سره هم دررومبی معنی خزانه او د دویم معنی کُنجی

ده،هر کله چه د ،مفاتح، دادواړه معنی کیدې شوې ځکه ځنې ترجمه کوونکو او مفسرینو ددې ترجمه،خزانې،کړیده او ځینو ،کُنجیانې، کړیده،خو حاصل د دواړو یو ځکه راوځي چه دخزانو دکُنجیانو مالک هم دخزانو مالک کیدل دی-

**دقرآن کریم په اصطلاح کښې علم غیب او عام قدرت مُطلقه یواځې د الله ﷻ خاص صفتونه دي په دې کښې ورسره هیڅ مخلوق شریکېدې نشي**:: د غیب، لفظ نه مُراد هغه څیزونه دي چه نیشت وی یا د شته کیدو باوجود الله ﷻ چامخلوق لره په هغې،نهٔ وی خبر کړې[مظهری][1]

دړومبی قسم مثالونه هغه حالات او واقعات دی چه قیامت سره تعلق لری مثلاً داچه څوک به کله او چرته پیدا کیږی،کوم کوم کارنهٔ کوی،څومره عمر به ئې وی، په عمر کښې به څومره وارساه اخلی، څومره ځل به قدمونه پورته کوی،چرته به مری،اوچرته به ښخیږی، روزی به چاته، څومره اوڅه وخت ملاویږی باران به څه وخت،چرته او څومره کیږی-

اودویم قسم مثال دموریه ګیډه شوې یوبچې دې چه سره دشته والی نه ئې داپته نهٔ لګی چه هلک دې او که جینئ ،ښکلې دې او که بدرنګه،بدشکل دې نیک طبیع ته دې او که بدطبیعته دې؟دغه شان نورداسې قسم بې شمیره څیزونه دی چه سره دشته والی نهٔ ئې څوک مخلوق علم اوخبرنهٔ لری-

د ﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ معنی داشوه چه الله ﷻ سره دغیبو خزانې دی مطلب ئې داچه دهغه په ملکیت او قبضه کښې دی چه علم ئې هم دهغه په قبضه کښې دې،اودهغې ښکاره کول اوشته کول هم دالله ﷻ په قُدرت کښې دی چه کله او څومره به شته کیږی؟لکه دقرآن کریم په یویل آیت کښې راغلی دی: ﴿وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ ۚ وَمَا نُنَزِّلُهٗۤ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ [یعنی مُونږسره د هر څیز خزانې دی،خومونږه هرڅیزپه یوخاص اندازه کښې نازلوو-]

خُلاصه داشوه چه ددې جُملې نه دالله ﷻ بې مثاله علمی کمال هم ثابت شواودقُدرت کمال هم ،اوداتر هم ثابت شوچه محیط[راچاپیره]علم اوقُدرت مُطلقه یواځې دالله ﷻ صفت دې چه بل هیچا ته نشی حاصلیدې ولې چه د ﴿عِنْدَهٗ﴾ په وړاندې کولوسره دعربی قواعدو په جوړ حصراو خصوصیت ته اشاره کړې شویده،وروستو دغه اشاره ئې په داګه بدله کړه اودښه پوهولو دپاره ئې اوفرمائیل ﴿لَا يَعْلَمُهَاۤ اِلَّا هُوَ﴾ [یعنی دغیبو دغه خزانې دالله ﷻ نه سوابل هیڅوک نهٔ پیژنی]-

لهذاددې جُملې نه دوه څیزونه ثابت شواول داچه الله ﷻ دغیبو په ټولو څیزونو یاند چاپیره علم سره خبردار دې اوپه ټولو یاند په کامل قُدرت سره قادردې،بل داچه دالله ﷻ نه سوادبل هیڅ مخلوق په بل یومخلوق یاپه څه څیز باند دغسې علم اوقُدرت حاصل نهٔ دې-

په قُرآنی اصطلاح کښې د ،غیب،دلفظ کومه معنی چه دتفسیر مظهری په حواله پورته بیان کړې شوه هغه داسې چه،غیب،هغه څیزونه دی چه یاخو بیخی نیشت وی یاسره دشته کیدو چا مخلوق ته ښکاره شوی نهٔ وی که دامعنی مخې ته اولرلې شی نوپه سرسری نظرسره کومې شُبهې چه عوامو ته راپورته کیږی هغه پخپله ختمې شی-

خلقوته زیاتې شبهې ددې نه راولاړیږی چه د ،غیب، لُغوی معنی داسې اخلی چه یوڅیزمُونږ د نظراوعلم نه غائب وی اګرچه نوروسره دهغې دعلم حاصلولوذریعې موجودې وی لکه علم نجوم، رمل،جفر، یادورغوی دکرښونه چه آئنده واقعات معلومولې شی،یادکشف اوالهام په ذریعه چه

[1]) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۲۵

چاته دآئنده واقعاتو علم کیدي شي، یادمون سون په باره کښې پیشنګویاني کوي او ډیرې خبرې ئې صحیح هم راخیژي ،هرکله چه دغسې تول ځیزونه دعوامو په نزد په علم غیب کښې حساب کیږي ځکه ددغې آیتونونه ورته داسې شبهات راپیداکیږي چه قران کریم خوعلم غیب لره دالله ﷺ خصوصیت ښودلې دي لیکن لیدلو کتلونه ثابتیږي چه داعلم نوروته هم حاصلیدې شي-
ددې جواب په ډاګه داسې شوچه دکشف الهام اووحی په ذریعه چاولی یاپیغمبرته دالله ﷺ په ورکړی علم سره دراتلونکوواقعاتو خبرورکول دقرآن کریم په اصطلاح کښې علم غیب نشی بللې دغه شان داسبابو اوآلاتو په ذریعه حاصل کړي علم هم دقرآنی اصطلاح له مخې علم غیب نشی کیدې لکه دموسمیاتو ماهران چه دراتلونکی بادوباران اطلاع ورکوی یاپه نبض کتلویاند حکیمان اوډاکټران دمریض پټ حالات ښکاره کوی، چنانچه حکیمان، ډاکټران داخبره هله ورکولې شی چه ددې ماده ورته په ګتوراشی فرق صرف دومره دې چه ددې ښکاره کیدل عام نهٔ دی، دآلاتو په ذریعه ئې ماهران معلومولې شی اوعوام تر بې خبره وی کله چه دغه ماده قوی شی نوښکاره کیدل ئې عام شی هم دغه وجه ده چه دموسمیاتو ماهران دباران چې ماده ئې مخې ته نهٔ وی راغلې، نو د باران وریدو خبر نشی ورکولې لکه یو دوه میاشتې ورستو کیدونکی باران باره کښې خبر نشی ورکولې ځکه ماده یې مخې ته تذکره راغلې ده. دغه شان ،څوک حکیم ،ډاکټر، کال،دوه کاله وړاندې یاروستو دخوړلو دارو [دواء] یاخوراکې خبرنن په نبض کتوسره نشې ورکولې،ځکه چه دعادت له مخې ددې اثر په نبض کښې موجود نهٔ وی-
خلاصه داشوه چه دغسې خبرونه ورکول دنښونښاناتوپه لیدلو ورکولې شی،نوکله چه ددې ماده اونخښې نښانې ښکاره شي نواوس هغه په غیب کښې شامل پاتې نهٔ شوبلکه لیدلو کتلواو مشاهدې ته راغلو ، البته د باریکوالي او کمزورۍ په وجه په عام مشاهده تر اوسه ندی راغلی کله چې قوت اونیسی نو په عامه مشاهده کښې به هم راشی. دمعلومیدوشان ته دادې فرق راڅوتو چه خاص خلق [ماهران] پر پوهیږی عام خلق پرنهٔ پوهیږی هر کله چه قوی شی نودعامو خلقونظراوفکر، علم لاندې هم راشی-
علاوه داچه ددې تولو ځیزونو نه حاصلیدونکی واقفیت د هر څه لیدو پس دې حیثیت د تخمیني اواندازې دي اوعلم په معنی دیقین سره ترنشی حاصلیدې چنانچه داسې بې شمیره واقعات مخې ته راغلی دې او راځی چه دغسې ورکړی خبرونه غلط راخیژی-
دعلم نجوم کوم ځیزونه چه حساب سره تړون لری دهغې علم خوعلم به وی مګر غیب به نهٔ وی لکه چه څوک په حساب لګولو داسې اووائی چه نن به نمر یوځلوېښت منټه دپاسه په پنځه بجې راخیژی ،یادفلانۍ میاشتې په فلانۍ نیټه به نمریاسپوږمۍ توریږی، ښکاره خبره ده چه دیو محسوس ځیزدرفتارپه حساب لګولوسره دوخت ټاکل داسې دی لکه دهوائی جهازونو یادریل ګاډویوستیشن ته درارسیدو خبرچه ورکولې شی-علاوه داچه په علم نجوم سره دخبرونو معلومولو دعوی کول ددوکې نه سوا بل څه نهٔ دی که په سلو دروغو کښې یورشتیا راڅخیژی نو دا څه علم نهٔ دې-
دموریه ګیډه دنریابښځې په باره کښسې دفن ډیرخاوندان څه خبرې کوی خوتجربه ګواه ده چه دا هم دتخمینې اواندازې درجه لری دیقین په درجه کښې نهٔ دی، که په سلوکښې دوه څلور خبرونه صحیح راڅخیژی نودایو طبعی خبره ده علم اوخبریدو سره څه تعلق نهٔ لری۔

البته کله چه دا یکسري آلات نوی نوی راؤوتل نو دخلقو خیال داووچه دې سره به دموریه ګیډه، نر، ښځه ماشوم معلومیدې شی لیکن تجربې سره ثابته شوه چه دې سره هم دجینۍ او هلک پوره پیژندل نشی کیدې۔

خلاصه دا شوه چه دقرآن کریم په اصطلاح، چه کوم ته غیب وئیلې شی دهغې علم سوا دالله ﷻ نه بل هیچاته نشی کیدې او کوم معلومات چه دځنې اسبابو او آلاتو په ذریعه عادتاً حاصلیږی، هغه په حقیقت کښې غیب نۀ دی، په عام ډول دنۀ ښکاریدو له کبله که څوک ورته غیب وائی هغه بیله خبره ده –

دغسې چارسول، نبی یا ولی ته چه دوحی، کشف او الهام په ذریعه دېتو څیزونو علم ورکړې شی نو هغه دغیب دحدودونه اووتو چه په قرآن کریم کښې ورته دغیب په خاتې ﴿تِلْكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ﴾ وئیلې شویدی لکه چه په ګڼرو آیتونو کښې راغلی دی. ﴿لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾ کښې دځه شبهې یا استثناء هیڅ ګنجائیش پاتې نشو بلکه یواځې دامطلب ئې او تهاکلې شو چه دالله ﷻ نه سوا، دغیبو خزانې بل هیڅوک نشی پیژندلې۔

په دې جمله کښې دالله ﷻ داخصوصی صفت ښودلې شویدی چه هغه عالم الغیب دې او هر غیب لره پیژنی، وریسې جملو کښې دعلم غیب برعکس دعلم شهادت [دموجود او مخامخ څیزونو دعلم] داسې بیان دې چه ددې په علم کښې هم دالله ﷻ داخصوصیت دې چه دهغه علم محیط [راچاپیره] دې یو ذره قدرې ترهم نۀ ده وتلې۔

چنانچه وې فرمائیل :هم هغه پیژنی هرهغه څیزچه په اوچه کښې دې او هغه څیزچه په دریاب کښې دې او دځه اولې هیڅ یو پانړه نۀ پریووځی چه علم به ئې هغه ته نۀ وی دغه شان دهغې دانې هم پوره علم لری کومه چه دزمکې په تیرې حصه کښې پته وی، او په هره اوچه اولونده کښې دټولو کائناتو ذره ذره دهغه په علم کښې ده او په لوح محفوظ کښې لیکلې ده۔

خلاصه دا شوه چه دعلم په باره کښې دوه څیزونه دالله ﷻ دخصوصیاتو څخه دی چه ورسره پکښې هیڅوک فرشته، رسول یا بل څوک مخلوق شریک نۀ دې یو علم غیب او بل دموجوداتو علم محیط، چه هیڅ ذره تریته نۀ پاتې کیږی، په رومبی آیت کښې هم ددې دواړو مخصوصو صفتونو بیان داسې شویدې چه رومبۍ جمله کښې دررومبی خصوصیت داسې بیان دې. ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾ او وریسې جملو کښې دټولو کائناتو او موجوداتو، علم محیط، داسې بیان شویدې چه رومبې ئې او فرمائیل ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ [یعنی الله ﷻ داوچې اولوندې ټول هرڅه پیژنی] دې نه مرادټول کائنات او موجودات دی لکه صبا، بیګا یادولوسره چه پوره زمانه مراد اغستې شی او دمشرق او مغرب په وئیلو سره چه پوره زمکه مراد اغستې شی، مطلب ئې دا شوچه دالله ﷻ علم په ټولو کائناتو باند محیط [راچاپیره] دې۔

وریسې ئې ددې زیاته تشریح او پوره تفصیل داسې بیان کړو چه دالله ﷻ علم راچاپیر یدل یواځې دامطلب نۀ لری چه دلویولویو څیزونو علم لری بلکه وړوکی نه وړوکې او دهرپټ نه پټ څیزهم دهغه په علم کښې دې لکه فرمائی. ﴿وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا﴾ یعنی ټول جهان کښې یو پانړه نه پریوزی چې دهغه ذات په علم کښې نه وی.

مراد دادې چه دهرې اونې هره پانړه دراغوځیدو نه وراند، دراغوځیدو په وخت او دراغورځیدونه پس دهغه په علم کښې ده، هغه ذات داهم پیژنی داونې هریوه پانړه په اونه کښې څومره ځل آوړی

راوړي، کله اوچرته به راغورځيږي ،اودا به کوم کوم حال سره مخ کيږي ، د راغور ځيدو ذکر يې شاد په دې وجه اوکړو چې ددې تولو حالاتو طرفته اشاره اوشي.ځکه چې پاڼړه د ونې څخه غورځيدل، دا ددې د پرورش د نباتې او آخري ژوند حال دې ، د آخري حال ذکر کولو سره يې د ټولو حالاتو طرفته اشاره اوکړه.

وريسې ئې اوفرمائيل:﴿وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَٰتِ ٱلْأَرْضِ﴾[يعنى هغه دانه هم دالله ﷻ په علم کښې ده چه دزمکې په ژوروالي اوپه تيرو کښې چرته پرته وي هغه هم دالله ﷻ په علم کښې ده، اول ئې داونې دپاڼړې ذکراوکړو چه دعاموخلقو دليدو په وړاندې راغورځيږي،وريسې ئې دهغه دانې ذکراوکړو چه کرونده ګرئې په زمکه کښې وراچوي ياپخپله چرته دزمکې په ژوروالي اوتيرو کښې پټه شي بياپه ټولو کائناتو باند دالله ﷻ دعلم راچاپيره کيدل د اوچې اولوندې په عنوان سره ئې ذکرکړل اووې فرمائيل چه داټول څيزونه، دالله ﷻ په نزد په کتاب مبين کښې ليکلي شويدى، کتاب مُبين، نه ځنې مفسرينولوح محفُوظ مُراداغستې دې اوځنوتر علم الهى مُراداغستې دې،دې ته ئې ، کتاب مُبين، ځکه اوفرمائيل چه څنګه ليکلي څيزمحفُوظ پاتې کيږي چه دهيرې اوغلطئ احتمال پکښې نشى کيدې،دغه شان دالله ﷻ دا،علم مُحيط، هم دټولو کائناتو دذرې ذرې صرف اټکلي،اوتخميني نهٔ،بلکه يقيني دې-

دقُران کريم دګنړو آيتُونونه داثابت دى چه داسې علم مُحيط يواځې دالله ﷻ شان سره مخصُوص دې چه هغې نه دکائناتو ذره ذره اوددې هيڅ حال بهرنهٔ دى لکه سورت لُقمان کښې راغلي دي :

﴿إِنَّهَآ إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُن فِى صَخْرَةٍ أَوْ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ أَوْ فِى ٱلْأَرْضِ يَأْتِ بِهَا ٱللَّهُ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ﴾ يعنى که داوري يوه دانه داسې وي چه په ګټه کښې ورننوتې وي ياپه آسمانونو يازمکه کښې چرته وي الله ﷻ به دغه ټول راجمع کړي، بيشکه الله ﷻ لطيف اودهرڅيزنه خبرداردې-

په آيت الکُرسى کښې راغلي دي:

﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۖ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَىْءٍ مِّنْ عِلْمِهِۦٓ إِلَّا بِمَا شَآءَ﴾ يعنى الله تعال دټولو انسانانو دوړاند روستوټولو حالاتونه واقف دې اوکه ټول انسانان راجمع شى نودهغه دعلم څخه په څه څيز هم احاطه نشې کولې سواد هغه علم نه چه الله ﷻ ئې چاته ورکول اوغواړي-

په سُورت يونس کښې داسې دي:

﴿وَمَا يَعْزُبُ عَن رَّبِّكَ مِن مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ﴾ يعنى ديوې ذرې په اندازه هم څه څيزچه په زمکه کښې وي اوکه په آسمان کښې، ستادرب دعلم نه بيل نهٔ دې-

اوپه سُورت طلاق کښې دي:

﴿وَأَنَّ ٱللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَىْءٍ عِلْمًۢا﴾ يعنى دالله ﷻ علم په هرڅيز باند مُحيط [راچاپيره] دې دغه شان په بيشميره آيتُونوکې،دامضمُون په مختلفو عنواناتو سره راغلي دې خُلاصه داشوه چه په دې آيتُونو کښې بنه په ډاګه دا واضح بيان کړې شويدې چه دغيبوعلم [چه په قُران کريم کښې ورته غيب وئيلي شويدې اوتفسير ئې پورته تيرشويدې] يادتمام کائناتو مُحيط يواځې دالله ﷻ مخصُوص صفت دې دچافرشتې ياپيغمبرعلم لره دغه شان دکائناتو په هره ذره باند مُحيط ګنړل، دعيسايانوپشان رسول لره دخُدائې درجه ورکول دى اودالله ﷻ سيال ئې ګرځول

دی چه دقرآن کریم دا اگیز فرمان له مخه شرک دې، چنانچه په سورت شعراء کښې دشرک هم داحقیقت بیان شویدې:

﴿تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍۙ۝ اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ دقیامت په ورځ به مشرکان وائی چه قسم په خُدائې، مونږ په سخته گمراهئ کښې وو چه تاسو [بُتانو] لره مو رب العالمین سره برابرولې.

بیشکه الله ﷻ خپلوانبیاؤ ﷺ ته اوخصوصاً حضرت خاتم الانبیاء ﷺ ته دزرگونو، لکونو علم ورکړېدې، دټولوفرشتو اوپیغمبرانو ﷺ نه ئې ورته زیات ورکړیدې لیکن دا ښکاره ده چه خُدائې ﷻ سره برابرعلم دهیچا نشی کیدې نه اوس شته اونهٔ به وی ورنه بیاخویه د رسول دتعظیم هغه غلو [زیاتې] وی کوم چه عیسایانو اختیارکړیدې یعنی رسول لره دالله درجه ورکول دی چه شرک دې [نعوذبالله منه]-

تردې پورې دړومبی آیت بیان وو چه دالله ﷻ دعلم دصفت خصُوصیات پکښې داسې بیان شویدی چه هغه په هرغیب [پټ] اوشهادت [ښکاره] اودکائناتو په ذرې ذرې راتاؤ دې، په دوئیم آیت کښې دغه شان دالله ﷻ دقُدرت دصفت اودهغه دقادر مُطلق کیدوبیان دې چه هم هغه دذات سره مخصوص دی لکه فرمائی:

﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى﴾ [یعنی الله ﷻ په هره شپه کښې ستاسو رُوح په یوقسم قبض کوی اوبیادصبا په راویښولوسره مو راپورته کوی دپاره ددې چه ستاسو عمرپوره کړی اوبیاتوله ورځ چه څه کوئ هغه ټول دهغه په علم کښې دی دایواځې دالله ﷻ کامل قُدرت دې چه دانسان دژوندی کیدو مړکیدو او دمړکیدونه پس دوباره ژوندی کیدویونمونه هرورځ دانسان مخې ته راځی] په حدیث شریف کښې خوب ته دمرگ رورونیلې شویدې اوحقیقت هم دادې چه خوب سره دانسان ټول اندامونه داسې په ټپه اودریږی څنگه چه په مرگ سره په ټپه اودریږی-

په دې آیت کښې الله ﷻ دخوب اوبیا، دهغې نه دبیداریدو په مثال پیش کولو سره انسان په دې خبرداره کړیدې چه څنگه هرشپه اوهرصبا، هرڅوک په ذاتې توگه دمرگ نه پس دراژوندی کیدویومثال پخپله وینی گوری، دغه شان دټول جهان دخلقو اجتماعی مرگ اوبیا وروسې اجتماعی ژوندی کیدل اوگنړئ، کوم ته چه قیامت وئیلې شی کوم ذات چه په دې قادردې دهغه دکامل قُدرت نه هغه هم څه لرې خبره نهٔ ده.

لهذاپه آخردآیت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝﴾ [یعنی بیا تاسو لره، هم دالله ﷻ اړخ ته بیرته تلل دی بیابه هغه په تاسوضباط کوی [تاسو ته دربښائی] کوم عمل چه تاسوکولو]-

مُراددادې چه دعملُونو حساب به وی بیابه پرجزااوسزا او خبرداري ورکولې شی-

په دوئم آیت کښې ددې مضمون زیات تفصیل ئې داسې بیان کړیدې چه الله ﷻ په خپلوټولوبند گانوباند یوقاهره [زورآور] قُدرت لری، ترڅوچه دیوبنده ژوندی لرل ورته منظوروی نوحفاظت کوونکې فرښتې ئې حفاظت دپاره لیږی، هیڅوک هغه ته دنقصان رسولو طاقت نهٔ لری اوکله چه دبنده دعمرتاکلې نیټه پُوره شی نوهمدغه حفاظت کوونکې فرښتې دهغه دمرگ ذریعه جوړې شی اوددهٔ دمرگ اسباب برابرولو کښې پوتې [یوه ذره] کمی هم نهٔ کوی-اوبیائې په مرگ سره معامله نهٔ ختمیږی بلکه: ﴿رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ﴾ [یعنی دوباره ژوند کیدو سره به الله ﷻ ته

حاضرولې شي دلته چه داحکم الحاکمين په وړاندې ديپيشئ اودټول عُمر دحساب چې هرکله خيال اوکړې شي نوهيڅوک به خپل ځان په دغې تول پُوره اونهٔ مُوندې شي اونهٔ به خپل ځان دعذاب نه خلاص اوګنړلې شي ځکه ئې ورسره داهم اوفرمائيل:﴿مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ﴾ يعنى الله ﷻ يواځې،احکم الحاکمين، نهٔ،بلکه دخپلو بندګانومولى هم دې چه په هره موقعه باند ددوئ مددهم کوي-

وريسې فرمائي:﴿اَلَا لَهُ الْحُكْمُ﴾ بيشکه، فيصله اوحُکم يواځې دهغه دې، دلته داخيال راپورته کيدې شو چه يواځې يوذات به داريو نوانسانانو دټولوعمرونو حساب کتاب به څنګه سرته رسولې شي ؟ځکه ئې وريسې اوفرمائيل:

﴿وَهُوَ اَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ﴾ يعنى دالله ﷻ کارونه په خپلو کارونوباند قياس کول جهالت دې، هغه به ډير زر حساب پُوره کړي-

قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ

|اووايه اڅوک |بچ کوی تاسو

|ورته اووايه څوک دې

مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا

دتيارو نه | داوچې |اودسمندر|چې دعاګانې غواړئ تاسودهغه نه| په عاجزئ سره |

چې تاسو د اوچې اوسمندر په تيرو کښې دعذاب نه بچ کوی |چې تاسوئې په عاجزئ

وَّخُفْيَةً لَئِنْ اَنْجٰىنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ

اوپه پټه سره|که چرې |بچ کړومونږه هغه|ددې مصيبت نه|نوخامخا به شومونږه|دشکرايستونکو نه

اوپټه رابلئ| دا وائې که مونږ ته ئې ددې عذاب نه نجات راکړونو مونږ به ضرور د شکرګزاروځنې شو|

قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ

اووايه چې الله| بچ کوی تاسو| ددغه مصيبت نه | اودهرتکليف نه | بياهم |

ورته اووايه چې صرف الله ﷻ مو ددې عذابونواومصيبتونونه بچ کوی | ........اوبيا هم

اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ

تاسو ئې چې شريکان جوړوئ |

تاسو هغه لره شريکان جوړوئ |

## آسان ترجمه قرآن

ته ووايه چه د سمندر د تيارو نه تاسو ته هغه وخت څوک نجات درکوي چه تاسو هغه لره په ويره اوپه ورو ورو رابلئ (او دا وائئ چه) که هغه مونږ ته ددې مصيبت نه نجات راکړو نو مونږ به ضرور بالضرور په شکر ګذاروبندګانوکښې شامل شو؟ ته ووايه چه : الله تاسو ددې مصيبت نه هم بچ کوي او د هر يو تکليف نه هم. بيا هم تاسو شرک کوئ.

## خلاصه تفسير

تاسو [دغه خلقو ته] ﴿ قُلْ مَنْ يُنَجِّيكُمْ مِنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ﴾ اووائې چه هغه څوك دے چه تاسو لره د اوچے اود درياب تيارو نه داسې وخت کښې خلاصے درکوی ﴿ تَدْعُونَهُ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ﴾ چه تاسو ئے [خلاصی ورکولو دپاره] بلئ [کله] په زارئ ښکاره کولو او [کله] په پټه پټه [اوداسې وائې]چه [انې الله ﷻ]﴿ لَئِنْ أَنْجٰنَا مِنْ هٰذِهِ ﴾که ته مونږ ددې [تيارو] نه [اوس] بچ کړو ﴿ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۞ ﴾ نو [بيا] مونږ به ضرور په حق پيژندونکو [يعنى په حق پيژندلو باندې د کلك پاتې کيدوونکو] کسانو نه شو [يعنى ستا دتوحيد به اقراريان شو چه لوئې حق پيژندل دى اوهر کله چه ددې سوال جواب تاکلے دے او دغه خلق به هم بل څه جواب نه ورکوی څکه هم] ﴿ قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيكُمْ مِنْهَا ﴾ تاسو اووائې چه يواځې الله ﷻ تاسو ته خلاصے درکوی [کله چه خلاصے مومئ] ﴿ وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ﴾ او [يواځې ددغې تيارو نه نه بلکه] دهر غم نه [هم هغه خلاصے درکوی مګر]﴿ ثُمَّ أَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ۞ ﴾تاسو [داسې يئ چه] بيا هم [دخلاصی موندو نه پس په مخه] په شرك کولو کښې کښې اخته شئ [چه په لويه پيمانه حق نه پيژندل دى او وعده مو کړې وه دحق پيژندلو غرض دا چه ستاسو په اقرار سره د توحيد حق کيدل ثابتيږی نو ستاسو انکار کول نه پس څنګه مخه يوړل شى او څنګه د کتلو وړ اوګرځى؟].

## معارف اومسائل

**دالله ﷻ دعِلم اوقُدرت مُطلقه څه نشته دارو**:: په تيروشوؤآيتُونو کښې دالله ﷻ دعلم اوقُدرت کاملوالې اوددې بې مثاله فراخى بيان کړې شوې وه اوس په دې آيتونوکښې هم ددغه علم اوقُدرت څنې نخښې اونندارې بيانيږی۔

په رومبى آيت کښى، ظلمات د ظُلمة،جمع ده چه معنى ئې تيارې ده،اود ظلمات البر والبحر معنى ده د وچې او د درياب تيارې چونکه دتيارې ډيرقسمونه دى چه دشپې تياره وى، دګورو او ګنړو وريځو تيرې، دګرد،غُبارتيرى، په درياب کې دچپوتيرې هم وى نوددې تولوقسمونو تيروشاملولو دپاره لفظ د،ظُلمت،جمع استعمال شو۔

اګرچه دانسان داوده کيدواوآرام کولودپاره تياره هم يونعمت ده ليکن په عاموحالاتوکښې دانسان کارونه په رنړا سره چليږی، اوپه تيرو سره تول کارونه په تپه اودريږی،اوددې نه علاوه دډيرو مصيبتونواوآفتونو سبب جوړيږی،لهذا دعربو په محاوره کښې د،ظُلمت، لفظ، مصيبتونو، راپيښو[حادثو] اوآفتُونودپاره استعمالولې شى اوپه دې آيت کښې هم جمهور مفسرينو ، ظُلمت، لره هم دغې معنى کښې استعمال کړيدى۔

په دې بنا دآيت مطلب داراؤوتوچه الله ﷻ دمکې مُشرکانو ته دخبردارى ورکولو اوپه خپلو ورانکارو[شرارتونو] اوغلطوپاند دخبرولودپاره رسول الله ﷺ ته داحُکم ورکړو چه هغوئ ددغه خلقونه تپوس اوکړی چه هرکله داوچې اولوندې په سفرونوکښې دوئ په څه مُصيبت کښې ګيرشى اودغه وخت خپل تول بُتان شاته اوغورځوى يواځې الله ﷻ لره بلى، کله په ښکاره ږول د خپلې بيکارئ اوبې وسئ اقرارکوى اوکله په زړهٔ کښې د ددې خبرې اقرار غوتِه کوى چه دې مُصيبت نه خلاصوونکې بل هيڅوک سوادالله ﷻ نه نشته اودې سره سره داهم وعده کوى چه که الله ﷻ مونږه دې مصيبت نه خلاص کړونوشکر کول اوحق پيژندل به خپل عادت جوړ کړو، دالله

ﷻ شکرګذار به پاتې کیږو، خپل کارساز به ئې ګڼړو، بل هیڅوک به دده شریک نهٔ ګرځوو ځکه چه دالله ﷻ نه سوا په دې مصیبت کښې زمونږ بل هیڅ باطل معبود پکار رانغلو. په دې حالت کښې الله ﷻ رسول الله ﷺ ته فرمائی چه اوس تر تپوس اوکړه چه په دې حالاتو کښې ئې څوک د مصیبتونو او هلاکیدو نه ساتی؟ هرکله چه ددې جواب ټاکلې شوې اومعلوم وو چې هغوئ ددې بداهت او ښکاره دلیل نه انکار نشی کولې چې دالله ﷻ څخه سوا بل هیڅوک بت یا باطل معبود ددوئ پکار رانغلو، ځکه په بل آیت کښې الله ﷻ پخپله رسول الله ﷺ ته ارشاد اوفرمائیلو چه هم تاسو ورته اووایئ چه یواځې الله ﷻ تاسو لره ددې مصیبت نه خلاصوی، بلکه ستاسو هر تکلیف، پریشانی او بې آرامی به هم هغه لرې کوی، خو ددې ټولو ښکاره نخښو باوجود بیاهم، کله چه تاسو ته خلاصې او آرام درکړې مګر ددې ښکاره او واضحو نخښو باوجود بیا هم چ کله تاسو ته خلاصې درکوی نو بیاهم په شرک کولو کښې لګیاشئ دبتانو په عبادت کښې اخته شئ، داڅومره ټګی او هلاکوونکې جهالت دې۔

په دې دواړو آیتونو کښې دالله ﷻ دکامل قدرت بیان داسې راغلې دې چه هر انسان ته د مصیبت او تکلیف نه په خلاصی ورکولو باندې هغه پوره قدرت لری او داخبره هم ده چه هر قسم مصیبتونه، تکلیفونه او پریشانئ لرې کول یواځې دالله ﷻ په لاس کښې دی او دا هم چې داسې یو ښکاره حقیقت دې چه دلیل راوړو ته ئې حاجت نشته، چه ټول عمری دبتانو اونورو باطلو معبودانو عبادت کوونکی او بللونکی هم هرکله چه په څه مصیبت کښې راګیرشی نودغه وخت، دوئ هم یواځې الله ﷻ لره بلی او هغه ته مخه کوی۔

**عبرت**:: دمشرکانو دعمل دا انداز، دټګئ ټورئ په اعتبار سره اګرچه ډیرغټ جرم دې مګر دمصیبت راپیښیدو په وخت کښې صرف الله ﷻ ته ددوئ مائل کیدل او دحقیقت اقرار کول مونږ مسلمانانو دپاره دلونې عبرت مقام دې چه هرکله مونږ په الله ﷻ باندې ایمان لرو او سره ددې نه دمصیبتونو راپیښیدو په موقعه هم الله ﷻ نهٔ یادوو بلکه ټوله اسره او تکیه مو په مادی سامانونو وی، اګرچه مونږ جوړه داړ او تصویری بتان خپل کارسازان نهٔ بولو خو دغه مادې سامانونه، اسباب او آلات هم زمونږ دپاره دبتانو نه څکه څه کم نهٔ دی چه ددې په فکر کښې داسې غرق او ډوب یو چه دهغه کامل قدرت ارخ ته مو کله هم مخه نهٔ راړوی!

**دپښواومصیبتونو اصلی علاج**:: مونږه په هرې ناجوړتیا کښې یواځې ډاکټران او دوایانې او د هر طوفان اوسیلاب په وخت یواځې مادي سامانونه په دې شان کارساز ګڼړو چه دکائناتو مالک ته مو دسره فکر هم نهٔ ورځی حالانکه قرآن کریم بیابیا په ښکاره لفظونو کښې دابیان کړیدې چه ددنیا مصیبتونه او راپیښې [حادثې] عموماً دانسانانو دبدو عملونو نتیجې او دآخرت دسزا یوه سپکه شان نمونه وی، په دې لحاظ سره دغه مصیبتونه، مسلمانانو دپاره یو قسم رحمت وی چه غافل مسلمان پرې او ېښولې شی چه اوس هم دخپلو بدو عملونو اندازه واخلی او دهغې د پرېښودو په فکر کښې شی چه دآخرت دلونې او سختې سزانه په حفاظت کښې پاتې شی، لکه قرآن کریم فرمائې: ﴿وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾

یعنی مونږه خلقوته لږ شان عذاب، نزدې په دنیا کښې څکوو، دآخرت دعذاب نه وړاند، دپاره ددې چه دخپل غفلت او بدو نه منع شی۔

دقرآن کریم یو بل آیت کښې راغلی دی:

﴿وَمَا أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوا عَن كَثِيرٍ﴾ يعنې تاسو ته رسيدونکې مُصيبت ،ستاسو دبدو عملُونو نتيجه ده او ډيرس بد عملُونه الله ﷻ معاف کوی [هُم]-

ددې آيت په بيان کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه:

په هغه ذات م د قسم وی دچاپه قبضه کښې چه زماځان دې چه دانسان بدن په څه لرګی سره معمولی شان زخمی شی، یائې پښه اوښونيږی ، یاپه څه رګ کښې ئې سرېکه راشی، داټول دڅه ګُناه اثروی اوکوم ګُناهونه چه الله ﷻ مُعاف کوی هغه ګنړدي -،(١)

بيضاوی ددې مطلب دابيان کړيدې چه دمُجرمانو اوګُناهګارو خلقو مرضُونه اوآفتُونه، دهغوئ دګُناهونونخښنې وی، اودګناهونونه دپاک یا محفوظ ساتلی شوو خلقو مرضُونه او آفتُونه دهغوئ دصبر اواستقلال امتحان وی اودجنت لوړې درجې پرورکول غرض وی-(٢)

غرض داچه دعامو هغه انسانانوبيمارئ اوورته راپيښ شوی مصيبتُونه پريشانئ اوتکليفُونه ددوئ دټولو ګُناهُونونتيجې اونخښنې وی خلاصه دا شوه چې عام انسان کوم چه دګُناهونونه خالی نه دی هغوئ باندې هم چې کومې بيماريانې ، تکليفونه او مصيبتونه او پريشانئ راځی هغه هم ټول دګناهونو د نتيجې او اثرات وی.

دې نه داهم معلُومه شوه چه دټولو مصيبتُونو،پريشانو اودهرقسم،راپيښو ،آفتُونو اصلی اوحقيقی علاج دادې چه الله ﷻ ته رجوعس اوکړې شی، دکړو ګُناهونويخښنه اوغواړی اوپه آئنده کښې تر دپرهيز کولو[ځان ساتلو] پوخ قصداوکړی اوېواځې دالله ﷻ نه ددغې مصيبتُونولرې کولو سوال اوکړی اودُعا اوغواړی-

ددې مطلب دانهٔ دی چه مادی اسباب، داروګان [دواء] اومصيبتُونونه دځان ساتلو مادی انتظامونه بې کاره دی،بلکه مطلب ئې دادې چه اصل کارساز دالله ﷻ اوګنړی،دغه مادی څيزونه اوانتظامُونه دهم دالله ﷻ انعام اوګنړی هغه دضرور استعمال کړی،دالله ﷻ ورکړی نعمتُونه دئې اوګنړی چه هم دهغه په حُکم اوپه ارادې سره دانسان تابع اوخدمتګار دی،اور، هوا،اوبه، خاوره، اوددُنيا ټول طاقتُونه دالله ﷻ دفرمان تابع ددی،دهغه دارادې نه بغير اور سوځول نشی کولې، اوبه ئې مرکولِ نشی کولې، هيڅ دارو[دواء]اثرنشی کولې اونهٔ غذاځه نقصان رسولې شی چنانچه مولانائې روم فرمائی:

خاک وبادوآب وآتش بنده اند　　بامن وتومُرده، باحق زنده اند

[خاوړې،هوا، اوبهٔ اواورټول دالله ﷻ تابع دی- زمااوستا مړه اوالله ﷻ په نزد ژوندی دی]-

تجربه ګواه ده چه هرکله انسان دالله ﷻ نه په غافله کيدوسره صرف په مادی سامانُونو په دې لګی نو څومره چې سامانونه زياتيږی ددې زياتيدو سره ئې مصيبتُونه اوپريشانئ هم زياتيږی-

مرض بڑھتا گیا جوں جوں دوا کی

[څومره چه دارُو درمل استعمال کړی هومره ئې مرض په مخه زياتيږی]-

داسې هم کيدې شی چه دغفلت اونافرمانئ باوجود هم کله په چاباندې څه دارويا انجکشن فائده مند ثابت شی يايومادی تدبيراوانتظام کامياب شی،ليکن په مجمُوعی حيثيت سره چه دټولو خلقواندازه واغستې شی نودغه ټول څيزونه بې کاره ښکاری، اوس په دې زمانه کښې

---

(١) شعب الإيمان للبيهقي، التاسع والثلاثون من شعب الإيمان، فصل فيما يقول العاطس الخ: رقم الحديث: ٩٣٨٥

(٢) تفسير البيضاوي تحت آية سورة الشورى: ٣٠، ج ٥، ص ١٤٣

دانسان دآرام راوستو په غرض اودتکلیف لرې کولو دپاره په ګڼ شمیر کښې آلې اوسامانونه راوتلی دی اور رایستل کیږی چه پنخوس کاله وړاندې خلقو ددې خیال اوګمان هم نشو کولې- درنځونو دعلاج دپاره نوې نوې زراثرکوونکی داروګان، قسماقسم انجکشنونه [دریپونه] راووتل، لوئې لوئې ماهران ډاکټران راپیدا شول، ځائې په ځائې هسپتالونه اوشفاخانې جوړې شوې دکومو نه چه نن نه پنخوس، شپیته کاله وړاندې انسانان بیخی محرومه وو لیکن که د مجموعی حالاتو اندازه واغستې شي نو ددې آلاتو، سامانونو اوداروګانو نه محرومه خلق دومره ناجوړه، رنځوران اوکمزوری نۀ وو څومره چه اوسنی خلق په رنځونو کښې اخته دی-دغه شان عامووباګانو دپاره قسماقسم ټیکې موجودې وی، دراپیښو نه دبچ کولو دپاره اورمړکوونکی انجنرونه اودمصیبت په وخت کښې دسمدستي اطلاع اوسمدستي امداد ذریعې اوسامانونه ښه زیات دی-لیکن څومره څومره چه دغه سامانونه زیاتیږی نوانسانان دړومبی نه زیات دراپیښو اوآفتونو ښکار کیږی، ددې وجه سوا ددې نه بله نشته چه په تیرشوی دورکښې دکائناتو دخالق نه بې پرواکیدل اوپه ښکاره نافرمانی دومره نۀ وه څومره چه اوس ده، هغوئ به دراحت اوآرام رسولو سامان دالله ﷻ ورکړه ګڼړله اوسره دشکره به استعمالول خواوسنی انسانان ئې سره دباغی توب نه استعمالول غواړی ځکه ئې دغه آلې اوګڼ سامانونه دمصیبت نه نشی بچ کولې-

خُلاصه داده چه مُسلمانانو لره دمُشرکانو ددغې واقعې نه عبرت اغستل پکار دې چه د مُصیبت په وخت کښې به هغوئ هم خُدائ یادولو، دمؤمن کار دې چه دخپلو ټولو مصیبتُونو اوتکلیفُونو لرې کولو دپاره دمادی سامانُونو اوتدبیرونه استعمالولو نه زیات الله ﷻ ته رجوع اوکړی، ورنه انجام به ئې هم داوی کوم چه هره ورځ زمُونږ مخې ته داسې راځی چه هر انتظام په مجمُوعی ډول سره اپُوته خیژی دسیلابُونو دمنع کولو اودهغې دنقصاناتونه دبچ کیدلو په زرګونو انتظامُونه کولې شی، مګرسیلابُونه بیا هم راځی اوبیا بیا راځی- دمرضونو دعلاجُونو نوی نوی بندوبستُونه کولې شی، مګررنځونه ورځ په ورځ زیاتیږی، دڅیزونو دګرانئ لرې کولو دپاره په زرګونو تدبیرُونه کولې شی چه په سرسری ډول اثرناک هم ښکاری، لیکن په مجمُوعی شان سره ئې نتیجه داده چه ګرانی ورځ په ورځ زیاتیږ. دغلا، ډاکو، انسانانو تښتولو، رشوت اغستلو اود چوربازارئ [دوکانداری غلا] دبندلو دپاره مادی تدبیرُونه اوسنی ټول حکومتُونه کوی مګرپه حساب لګولوسره هره ورځ په دغه جُرمونو کښے زیاتې راتلل ښکاریږی. کاش چه مُوجُوده انسانان صرف شخصی، سرسری اوبهری نفع نقصان نه لږشان پورته انداز کښې دحالاتو ژور اندازه واخلې نو ورته به ثابت شی چه په مجمُوعی شان سره زمُونږ ټول تدبیرُونه ناکام څه، چه زمُونږ په مُصیبتُونو کښې زیاتوالې راولی ،بیادپه دې قرآنی علاج نظرواچوی چه د مصیبتُونونه د بچ کیدو صرف یوه لار داده چه دکائناتو خالق ته ماتې اوکړې شی، مادی تدبیرُونه دهم په دې شان استعمالوی چه هغه دالله ﷻ ورکړی نعمتُونه اوګڼړی اوددې نه سوا دسلامتئ بل هیڅ صُورت نشته-

| قُلْ | هُوَ | الْقَادِرُ | عَلٰٓى | اَنْ يَّبْعَثَ | عَلَيْكُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| اووایه | هغه | قادر دې | په دې | چې راولیږی | په تاسو باندې |

ورته اووایه چې هغه دا قدرت لری چې په تاسو د پورته نه ..........

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَذَابًا | مِّنْ فَوْقِكُمْ | اَوْمِنْ تَحْتِ | اَرْجُلِكُمْ | اَوْيَلْبِسَكُمْ | |
| عذاب | دپاسه ستاسونه | یا | لاندې | دخپوستاسونه | یا تقسیم کړي تاسو |
| عذاب نازل کړي \| یا ستاسو د خپو لاندې نه درته عذاب راوباسي \| یاتاسو ډلې ډلې کړي | | | | | |
| شِيَعًا | وَّيُذِيْقَ | بَعْضَكُمْ | بَأْسَ بَعْضٍ ؕ | اُنْظُرْ | كَيْفَ |
| په ډلو ډلو کښې | اواوڅکوي | بعضو تاسوته | طاقت دبعضو | اوګوره | څنګه |
| او يوې ډلې ته دبلې ډلې د طاقت زور اوښائي \|.......................اوګوره مونږ څنګه | | | | | |
| نُصَرِّفُ | الْاٰيٰتِ | لَعَلَّهُمْ | يَفْقَهُوْنَ۝ | وَكَذَّبَ | بِهٖ |
| باربارپيش کوؤمونږه | نښې | ادپاره ددې چې هغوئ | پوهه شي په حقيقت | اود روغ ګڼړی | دا |
| په جداجدا انداز خپل آياتونه بيانوؤ \| دې دپاره چې دوئ پوهه شي \|........... او ستا قوم د دې نه | | | | | |
| قَوْمُكَ | وَهُوَالْحَقُّ ؕ | قُلْ | لَّسْتُ | عَلَيْكُمْ | بِوَكِيْلٍ ؕ۝ |
| قوم ستا | حالاتکه هغه حقيقت دې | اووايه | نه یم زه | په تاسو باندې | حوالدار |
| انکار اوکړو حال دا چې دا بالکل حق دې \| ورته اووايه چې زه ستاسو ذمه دار نه یم | | | | | |
| لِكُلِّ نَبَاٍ | مُّسْتَقَرٌّ ز | وَّسَوْفَ | تَعْلَمُوْنَ۝ | | |
| دپاره دهر خبر | يووخت مقرر دې | اوزربه | پوهه شئ تاسو | | |
| دهرخبر [دښکاره کيدو] يو وخت مقرر دې \| اوتاسو به ډير زر پوهه شئ \| | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

ته ووايه چه هغه په دې پوره قدرت لري چه په تاسو دپاره نه عذاب راوليږي يا ستاسو د پښو د لاندې نه (راوباسي) يا تاسو مختلفو ټولګو کښې تقسيم کړي او يو بل سره مو په جګړه کړي، او د يو بل د طاقت مزه درکه وڅکوي وګوره مونږ څنګه مختلفو طريقو سره خپلې نښې واضح کوو، دې دپاره چه دوی پوهه شي. او(اې پيغمبره!) ستا قوم دې قرآن لره) دروغژن کړې دې او حال دا چه دا بالکل حق دې. ته ووايه چه" ماته ستاسو ذمه وارې نه ده حواله شوې دهرې واقعې دپاره يو وخت مقرر دې او ډير زر به تاسو ته هر څه معلوم شي.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ هُوَالْقَادِرُ عَلٰۤى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ﴾ تاسو [داهم] اووائي چه [څنګه هغه په خلاصي ورکولو قادر دے دغه شان] په دې هم هغه قادر دے چه [ستاسو دکفر اوشرك په وجه] څه عذاب په تاسو دپورته نه راوليږي [لکه کانړي يا هوا يا باران يا طوفان] ﴿ اَوْمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ ﴾ يا ستاسو د پښولاندے [چه کومه زمکه ده دهغې] نه [ښکاره کړی لکه زلزله يا غرقيدل او ددې عذابونو نزدے اسباب خو دالله ﷻ نه سوا دهيچا په اختيار کښې نه دی کله ناکله خو دغسې اوشی که په دنيا کښې وی که په آخرت کښې] ﴿ اَوْيَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَّيُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَاْسَ بَعْضٍ ؕ ﴾ يا چه تاسو لره [دمختلفو غرضونو په بنياد مختلف] ټولې ټولې جوړولو سره ټولو لره

[په خپل منيځ كښې] اوجنګوي اوپه تاسو كښې يو ته دبل دجنګ [په ذريعه مزه] اوڅکوي
[اوددې نزدے سبب اختياري فعل دے يا تول آفتونه رايوځائې كړي غرض دا چه نجات وركول
اوپه عذاب كښې راګيرول دواړه دهغه په قدرت كښې دي اې محمد ﷺ] ﴿ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ
الْاٰيٰتِ ﴾ تاسو اوګورئ كنه مونږ څنګه [څنګه] دليلونه [دتوحيد]د مختلفو طرفونو ته بيانوو
﴿لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ﴾ كيديشي چه هغوى [خلق] پوهه شي ﴿ وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ﴾ او [سره ددې
چه الله ﷻ په عذاب وركولو باندې قادر دے اوپه دې پوهه دے چه كفراو شرك دعذاب سبب
دې] ستاسو دقوم خلق [قريش او عرب هم] ددې [عذاب] دروغژنې كوى [او ددې د نه واقع
كيدو معتقد دى] حالانكه دا يقيني [واقع كيدونكے] دے [اوددې په آوريدو دوى داسې ونيلے
شى چه كله به وى نو] ﴿ قُلْ لَّسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ﴾ ورته اووايه چه زه تاسو باندې نګران تاكلے
شوې نه يم [چه زه به په تفصيل سره خبريم يا به هم زما اختيار كښې وى البته] ﴿لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ
وَّسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ﴾ دهر خبر د [مدلول د] دواقع كيدو يووخت [دالله ﷻ په علم كښې تاكلے] دے
او زر تر زره به تاسو ته معلومه شى [چه دا عذاب راغلو].

## معارف اومسائل

په تيروشوو آيتونو كښې دالله ﷻ دفراخه علم اوبې مثاله قُدرت دااثر ذكر شوې ووچه
دهرانسان مُصيبت هم هغه لرې كولې شى اودمُصيبت په وخت څوک چه هغه لره بلى نودالله ﷻ
امداد خپلو سترګو ته مخامخ وينى، ولې چه په تولو كائناتو باند دهغه قُدرت هم كامل دې اوپه
تولو مخلوقاتو ئې رحمت هم كامل دې، هغه نه سوابل هيڅوک دكامل قُدرت مالک نشته اونهٔ په
تول مخلوق باند بل څوک رحمت اوشفقت كوونكې شته-

اوس دلته په اولنو آيتونو كښې دكامل قُدرت دبل ارخ بيان داسې دې چه څنګه الله ﷻ ددې
قُدرت لرى چه څه عذاب، څه مُصيبت اولوئې نه لوئې آفت ايسارولې[بندولې] شى، دغه شان
داقُدرت هم لرى چه كله يوكس يادلې لره دهغه دسركشئ په سزا اوعذاب كښې اخته كول
اوغواړى نوهرقسم عذاب وردپاره آسان دې، ددُنيا حاكمان چه يومُجرم ته سزاوركوى نوپه څه
ناڅه ډول ئې پوليس اوفوځ ته ضرورت پيښيږى، ليكن الله ﷻ ته داسې څه حاجت نشته اونهٔ
دچاامدادى ضرورت لرى- دامضمون په آيت كښې داسې بيانوى:
﴿قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰٓى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا﴾ [يعنى الله ﷻ په دې هم
قادر دې چه راولیږى په تاسو باند څه عذاب ستاسو دپورته نه ياستاسودخپو د لاندې نه ياتاسو
په مختلفو ډلو كښې اوويشى اوخپل منځ كښې مواوجنګوى اوديوبل دلاسه په عذاب سره مو
هلاک كړى]

**دعذاب الهى دوه قسمه::** دلته دالله ﷻ درې قسمه عذابونه ذكر شويدى يو هغه چه پورته نه راشى
، دويم هغه چه دلاندې نه راشى دريم هغه چه ددوئ خپل مينځ كښے راپورته شى، بيا د، عذابا، لفظ
په تنوين سره نكره راوړلو كښې دعربى قواعدو مُطابق ددې خبردارې هم وركړې شو چه دې درې
وارو قسمونو كښې بيل بيل قسمونه اوصُورتونه نورهم كيدې شى-
مفسرينو حضراتو فرمائيلى دى چه دپورته نه دعذاب راتلومثالونه په پخوانو اُمتونو كښې
ديرراغلى دى، لكه دنوح عليه السلام په قوم باند دباران سخت سيلاب راغلې وو، په قوم عادباند

دهوا طوفان راغلي وو، دلوط علیه السلام په قوم باند دپورته نه کانړي راوروليږ شوي وو، په بني اسرائيلو باند وينې اوچيندخې [چنګوښي] وغيره ليږلې شوې وې، هرکله چه اصحاب فيل په مکه مکرمه چپاؤ اوکړو نودابابيلو [مارغانو] په ذريعه په هغوی داسې کانړي راؤورولې شو چه تول د مخه د خوړلي بوس [پروړ] پشان [ريزه ريزه] شو-

دغه شان د لاندې نه راغلي مختلف عذابونه هم په پخوانو اُمتونو باند راغلي وو، دنوح علیه السلام په قوم باند دپورته نه دباران طوفان راغلي وو او لاندې نه دزمکې اوبه راختيدل شروع شوي وو، غرض داچه په دوئ باند دلاندې پورته دواړه قسمه عذابونه په يووخت راغلي وو، اودفرعون قوم دخپو لاندې په عذاب غرق کړې شو- قارون هم په دغې لاندینی عذاب کښې سره دخزانو راګيرشو اوپه زمکه کښې غرق شو-

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه اوحضرت مجاهد رحمه الله وغيره دتفسير امامانو فرمائيلي دي چه دپورتني عذاب مطلب دادې چه ظالم بادشاه اوبې رحمه حاکمان پرمُسلط شي اودلاندينی عذاب مطلب دادې چه نوکران، غلامان، خدمتگاران، يالاندينی مُلازمان ئې، بې وفا، تګجن [تګ ماران]، کام چور [دهوکه باز] اوخيانتګرشي-(۱)

چنانچه درسول الله صلی الله علیه وسلم دځوارشاداتونه هم دحضرت عبدالله بن عباس ددې تفسير تائيد کيږي، په مشکوة شريف کښې دبيهقی دشعب الايمان په حواله درسول الله صلی الله علیه وسلم داارشاد منقول دې:

﴿كما تكونون كذلك يؤمر عليكم﴾ [يعنی څنګه چه ستاسو عملونه [ښه ياخراب وی] هغسې حاکمان [ښه ياخراب] به په تاسومُسلط کولې شي(۲) که تاسو نيکان اوداالله جل جلاله فرمانبرداره يئ نو ستاسو حاکمان اواميران به هم رحمدله، انصاف خوښونکی وی اوکه تاسو بدعمله يئ نوبه تاسوبه حاکمان هم بې رحمه اوظالمان مُسلط کړيشي څنګه چه مشهوره مقُوله ﴿اعمالكم عمالكم﴾ هم ده-

اوپه مشکوة کښې په حواله د، حليه ابی نعيم، درسول الله صلی الله علیه وسلم داارشادهم منقُول دې چه: الله جل جلاله فرمائی زۀ الله يم، مانه سوابل هيڅوک معبُودنشته، زۀ دټولوبادشاهانو مالک اوبادشاه يم، دټولوبادشاهانوزړونه زماپه لاس کښې دی، کله چه زمابندګان زمافرمانبرداری کوی نوزۀ دهغوئ دبادشاهانواوحاکمانوپه زړونوکښې دوئ دپاره شفقت اورحمت اچوم اوکله چه زما بندګان زمانافرمانی کوی نوزۀ ددوئ دحاکمانوزړونه په دوئ سخت کړم، هغوئ ورته په هرشان خراب عذاب ورکوی- په دې وجه تاسو، حاکمانواواميرانوته په بدو وئيلو باندخپل وختُونه مۀ بربادوئ، بلکه الله جل جلاله ته رجوع اوکړئ اودخپل عمل دښه کولوپه فکرکښې شئ چه ستاسو ټول کارونه سمدم کړم-(۳)

دغه شان په ابی داؤداونسائی کښې په روايت دحضرت عائشې درسول الله صلی الله علیه وسلم داارشادمنقُول دې:

کله چه الله جل جلاله دېواميراوحاکم ښيګړه غواړی نوهغه ته ښه وزير اوښه نائب ورکړی، که اميرنه څه هيرشي نوهغه ئې ورته رايادکړی اوکله چه اميرصحيح کارکوی نوهغه ئې مددکوی اوکله چې يوحاکم اواميردپاره څه بدی په تقديرکښې وی نوخراب خلق ئې وزيران اوماتحت جوړکړې شي، [الحديث]-(۴)

---

(۱) تفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۵۳
(۲) مشكوة، كتاب الامارة والقضاء: ج ۲، ص ۳۲۳
(۳) حواله بالا-
(۴) سنن ابی داود، كتاب الخراج الخ، باب فی اتخاذ الوزير: ج ۲، ص ۴۰۷، وسنن النسائی، كتاب البيعة، باب وزير الامام: ج ۲، ص ۱۸۱

ددې روايتونو او ذکرشوې آيت دبيان شوې تفسير حاصل دادې چه انسان ته کوم تکليفونه او مصيبتونه چه دخپلو حاکمانو دلاسه رسيږي هغه پورتني عذاب دې، داتولې څه ناګهاني پيښې نه وي بلکه دالله ﷻ دقانون تابع د انسان دعملونو سزاوې-حضرت سفيان ثوري فرمائيلي دي چه کله مانه يو ګناه اوشي نوزه دهغې اثردخپل نوکراودخپلې سورلۍ داس اودخپل پيتمي وروڼکي خرپه مزاج اوطبيعت کښې داسې محسوسوم چه داتول زمانافرماني کول شروع کړي، مولانارومي فرمائيلي دي-

خلق راباتوچنين بدخوکنند تاترانا چارروآنسو کُنند

[دخلقورويه تاسره الله ﷻ خکه خراب کړي- چه مخه دخپل خان ته راواړوي]

يعني الله ﷻ چه هرکله تاسره دپورته حاکمانو اوښکته ملازمانو کشرانووغيره رويه خراب جوړه کړي، نودغسې تکليف وركوونكو خبروسره په تاباند دې دپاره عذاب راولي چه مخه د خپل خان ته راواړوي په دې شان چه ته هوښيار اوبيدارشې اوخپلوعملونو درست کولوسره دآخرت دلوئې عذاب نه بچ شې-

خلاصه ئې داشوه چه دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دتفسير مطابق دحاکمانو زورظُلم پورتني عذاب دې اودماتحت ملازمانو بې ايماني، کام چوري تګې تورې ښکتني عذاب دې، او د دواړو علاج هم دې چه تول دخپل خپل کاراندازه واخلي اودالله ﷻ دنافرمانۍ اوبې لارې کيدونه واوړي نوقُدرت به پخپله داسې حالات پيدا کړي چه دغه مصيبت به لرې شي ګني، صرف دمادي تدبيرونو په ذريعه ددوئ داصلاح اُميدلرل خپل خان ته ددوکې ورکولونه سوابل هيڅ نه دي څنګه چه تجربه ئې هروخت کيږي-

خويش راديديم ورسوائی خويش امتحانِ مامکُن اے شاهِ بيش

[اخپل خان هم وينو اوخپل شرميدل هم وينو- اې بادشاه! زيات آزميښت راباندمه کوه]

دښکته پورته عذاب مختلف تفسيرونه چه بيان شوپه حقيقت کښې هيڅ اختلاف خپل منځ کښې نه لري ولې چه په آيت کښې راغلي لفظ د ،عذابًا ،دغې تولو تفسيرونولره شامليږي، داسمان نه راوريدونکي کاڼړي، وينه، اور، داوبوسيلاب اوسرد پاسه دحاکمانو زورظُلم ،تول په پورتني عذابونو کښې داخل دي ،دزمکې په چودلو سره په هغې کښې يوقوم په ښکته ډوبيدل، دزمکې نه راوتو اوبو کښې غرقيدل، يادلاس لاتدې ملازمانودورانۍ نه په مصيبت کښې ګرفتاره کيدل، تول ښکتني عذابونه دي-

دريم قسم عذاب په آيت کښې داذکرشويدې ﴿أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا﴾ [چه تاسو ډلې ډلې کيدو سره په خپل منځ کښې سره دشت وګريبان شئ اويوبل دپاره به عذاب جوړشی ﴿يَلْبِسَكُمْ﴾ لفظ د ،لبس، مصدرنه جوړدې، ددې اصلي معني پټول اوسرپوښ کول دې، په دې معنی سره ،لباس، هغه جاموته وئيلې شي چه دانسان بدن پرپټولې شي، همدغه وجه ده چه، التباس، دشُبهې او،اشتباه، په معنی کښې استعماليږي چرته چه ديوکلام مرادپټ وي، صفا اوبرانيستې نه وي-

شيع،د ،شيعة، جمع ده ،معنی ئې، دچاتابعدار دهغه اوپه پل باند تلونکې، ده-لکه قرآن مجيد فرمائي: ﴿وَإِنَّ مِن شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ﴾ [يعنی دحضرت نوح عليه السلام په پل باند تلونکې حضرت ابراهيم عليه السلام دې] په دې وجه عرف اومحاوره کښې لفظ د ،شيعه، داسې يوې ډلې دپاره استعماليږي چه يوخاص غرض دپاره راجمع شوې وي اوهم په دغه غرض کښې د يوبل سره لاس

امداد کوي ددې ترجمه دنن صبا محاورې مُطابق، فرقه، او ،پارټۍ [ګوند] ده-

په دې بنا دآيت ترجمه داشوه چه يو قسم عذاب داهم دې چه يو قوم په مختلفو پارټو [ګوندونو] کښې اوويشلې شي اويوبل سره دست وګريبان شي، ځکه خو رسول الله ﷺ ددې آيت د نازليدو په موقعه اوفرمائيل:

﴿لا ترجعوا بعدي كفارا يضرب بعضكم رقاب بعض﴾ تاسو زمانه نه پس د کفارو پشان مه جوړيږئ چه ديوبل څټونه وهئ؛ [ابن ابی حاتم دزيد بن اسلم نه [مظهرې]] (۱)

حضرت زيد ابن ابی وقاص فرمائيلی دی چه يو خل مونږ د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کښې چه دبنی معاويه په جومات تيريدلو هغوئ دغه جومات ته تشريف يوړلو او دوه رکعته مونځ يې ادا کړو مونږ هم دوه رکعته ادا کړل، دې څخه روستو رسول کريم ﷺ په دعا کښې مشغول شو ډيروخت ئې دُعا کوله ،بيائې اُرشاد اوفرمائيلو چه ما دخپل رب نه ددرې څيزونو سوال اوکړو يو دا چه زما اُمت دې په غرقولو سره هلاک نکړې شی ،الله ﷻ دا دُعا قبوله کړه، بله دُعا م دا اوکړه چه زما اُمت دې په قحط اولوږه هلاک نکړې شی ،دغه هم قبوله شوه، درئيمه دُعا م دا اوکړه چه زما اُمت خپل مينځ کښې يوبل سره په جګړو کولو سره تباه نکړې شی] خو دغې دُعا کولو نه زهٔ منع کړې شوم [مظهری په حواله دبغوی]-(۲)

ددې مضمون يو حديث دحضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه هم منقول دې او په هغې کښې ددرئيو دُعاګانو څخه يو دُعا داهم بيان کړې شويده چه-زما په اُمت د الله ﷻ څوک داسې دشمن نهٔ مُسلط کوی چې تول د يو مخه تباه کړی دغه دُعا قبول شوه خودې دُعا نه منع اوکړې شوه (۳) چه خپل منځ کښې دست وګريبان نشي-

ددې روايتونو نه ثابت شو چه د رسول الله ﷺ په اُمت خو به دپخوانو اُمتونو پشان دزمکې اوآسمان نه ددوئ دتول قوم دتباه کولو عذاب نهٔ راځی، ليکن يو عذاب به په دې اُمت هم په مخه راځی چه هغه خپل منځ کښې جنګ جګړې کول او دست وګريبان کيدل دی، همدغه وجه ده چه رسول الله ﷺ خپل اُمت لره په ډير تاکيد سره په فرقو او پارټو [ګوندونو] کښې دتقسيميدو او د جنګ، جګړو کولو نه منع کړيدې او په هرې موقعه ئې ددې نه ويرولې دې چه په دې دُنيا کښې يوراتلونکې عذاب په په تاسو ياند خامخا داوی چه په خپل منځ کښې به جنګ جګړې کوئ؛ چنانچه دسورت هود په يو آيت کښې دامضمون نبه په ډاګه داسې بيان کړې شويدې-

﴿لَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ۞ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ يعنی خلق به هميشه دپاره خپل منځ کښې اختلاف کوی سوا دهغه خلقو نه چه الله تعالی پر رحمت کړې وی-دې نه داخبره په ډاګه شوه چه څوک خپل منځ کښې [ابې دڅه شرعی وجې] اختلاف کوی هغوئ دالله ﷻ د رحمت نه بې نصيبه اولړې دی-

په يو آيت کښې داسې راغلی دی: ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ [او ټول په شريکه دالله تعالی رسئ په مضبوطيا سره اونيسئ]

او په بل آيت کښې ارشاد دې ﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا﴾ [او هغو خلقو په شان مه کيږئ چې خپل مينځ کښې ډلې ډلې شول او اختلاف ئې اوکړو]

---

(۱) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث: ٧٥٠٠، وتفسير الطبری تحت هذه الآية: ج ١١، ص ٤٣٠

(۲) وتفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ٢، ص ١٤٣ ومسند أحمد، مسند سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه رقم الحديث: ١٤٣٦

(۳) وجامع الترمذی، أبواب الفتن، باب سؤال النبی صلى الله عليه وسلم ثلاثا فی أمته: ج ٢، ص ٤٠

ددې تولو آیتونو او روایتونو حاصل دادې چه اختلاف ډیر سپیره او خراب څیز دې، نن صباچه دمُسلمانانو په هرشان سره ددینی او دنیوی ذلت او بربادئ اسبابو باند غور او کړې شي نو دهغې سبب به همدغه اختلاف، دست وګریبان کیدل او ګډوډی په نظر کښې راشي، چنانچه زمونږ دبدو عملونو په نتیجه کښې دغه عذاب په مونږ باند کیښودل شو، هغه مُسلمان قوم چه د اتحاد او یووالی مرکزئې د ﴿لااله الاالله محمد رسول الله﴾ کلمه وه، ددې کلمې منُونکی چه ددُنیا په هره علاقه کښې به وو، کومه ژبه به ئې چه وئیله، څه رنګ به ئې چه لرلو، نسل او نسب به ئې چه هرڅه وو نو تول به خپل منځ کښې سره رونړه رونړه وو، دغرونو او دریابونو سختونه سختې لارې به ددوئ په یووالی کښې څه خند نشوې جوړیدې، درنګ، نسب، خاندان او ژبان بیلتُون به ددوئ په لار کښې څه بندیز نهٔ جوړیدو، ددوئ قومی وحدت [یووالې] یواځې دغې کلمې سره تړلې وو، دعربو، مصر، شام، تُرک، هندوستان او چین بیلتُون به صرف دپیژندګلو دپاره وو بل هیڅ کاربه تر نهٔ شواغستې لکه علامه اقبال مرحوم وئیلی دی-

درویش خُدامست نه شرقی هے نه غربی گھر اُس کانه دلی نه صفاهان نه سمرقند

[خُدائی درویشان یواځې دالله ﷻ په مینه مست وی مشرقی او مغربی نهٔ وی- ددهٔ کور یواځې دلي، اصفهان او سمرقند نهٔ دي [بلکه تول دُنیا ئې کوردې]

نن صبا دنورو قومُونو لمسُون، تګو، تورو او په مخه کوششونو بیا، مُسلمانان دژبې، وطن او علاقې په قومیتُو نوکښې او ویشل، بیا هریو قوم او دله خپل منځ کښې دګډوډئ او اختلاف ښکار شو او مختلفې پارتئ ترجوړې شوې- کوم مسلمان قوم چه خُصوصی نخښه ئې دغیرو خلقو په بدو باند خپه رابنکل او سترګې پریتول وو خپل خانُونه به ئې په تنګدستئ کښې ساتل او بل له به ئې آرام او راحت ورکولو، دجګړو نه ځان ساتلو دپاره ئې خپل لوئې نه لوئې حق پرېښولو، نن په دوئ کښې ډیر خلق خپلو ورو ورو او ذلیلو خواهشاتو پسې لوئې نه لوئې تعلق قُربانوی، دا د غرضونو او خواهشاتو هغه اختلاف دې چه قوم او ملت دپاره یو سپیره څیز او په دې دُنیا کښې یو نغد عذاب دې-

البته دلته په دې هم پوهیدل ضروری دی چه قُرآن کریم کوم اختلاف ته چه عذاب الهی او دالله ﷻ درحمت نه بې نصیبی وئیلې ده دې نه مطلب اُصولی او دعقائدو اختلاف دې چه دنفسانی غرضونو او خواهشاتو دوجې نه وی، دې کښې هغه اختلاف داخل نه دې چه دقُرآن او سُنت د ښودلو اجتهادی اُصولو لاندې په فروعی مسئلو کښې دأمت دفقهاؤ داولې صدئ راسې، د صحابه کرامو او تابعینو ترمنځه هم راروان دې، چه ددواړو اړخو حُجت او دلیل، دقُرآن، سُنت او اجماع څخه وی او دهریو نیت پکښې دقُرآن او سُنت په احکامو باند عمل کول وی، یعنی هرکله چه دقُرآن او سُنت الفاظ مُجمل یا مُبهم وی او دهغې په تعبیر کولو کښې او هغې نه دجزوی او فروعی مسئلو په راوښکلو کښې داجتهاد او رائې اختلاف وی نو داسې اختلاف ته په یو حدیث کښې رحمت وئیلې شویدې-

په جامع صغیر کښې دنصر مقدسی او بیهقی او امام الحرمین په حواله داروایت نقل کړې شویدې چه ﴿اختلاف امتی رحمة﴾ [زما د أمت اختلاف رحمت دې] (۱) په دې باره کښې دأمت مُحمدیه تخصیص په دې وجه کړې شویدې چه ددې أمت دحقانی علماؤ او پرهیزګارو فقهاؤ ترمنځه

۱) جامع الصغیر رقم الحدیث: ۲۲۳، وکنز العمال رقم الحدیث: ۲۸۶۸۶

راپیداشوي اختلاف بـه تـل دپـاره دقـرآن اوسـنت د اُصـولو مُطـابق وي، پـه هغـې کـښې ددوارو اړخونيت به ښه وي اودالله ﷻ رضابه ئې پکښې مقصودوي، څه نفساني غرض اودمال اومرتبې طلب به ددې باعث نۀ وي، دغه وجه ده چه دجنګ جګړې سبب به هم نه جوړېږي، بلکه دعلامه عبدالرؤف مناوي دتحقيق مُطابق [چه دجامع صغير شارح هم دې] دمختلفو مسلکونو دفقهائې اُمت به هغه درجه وي کومه چه په پخوازمانه کښې داُمتونودمُختلفو شريعتونووه- يعنې سره د مختلف کيدونه به هم ټول دځيرمې دغه شريعتونه دالله ﷻ احکام و، دغه شان مجتهدين داُمت اګرچه مختلف مسلکونه لري خوهرکله چه هغه دقُرآني اصولو اوسنت لاندې وي نوټول دځيرمې به دالله ﷻ اودهغه درسول احکام بللې شي-

ددې اجتهادي اختلاف مثال په محسوساتو کښې داسې دې لکه چه يوښارته تلُونکي لوئې لوئې سړکونه دتلونکو دآسانئ دپاره په مختلفو برخوکښې تقسيمولې شي، په يوبرخه باند بسونه روان وي، په بله برخه باند نورګاړي ياټرالران چليږي، بيادسائيکلو نوچلوونکو، پياده خلقودپاره دسړک بله برخه وي، ديوسړک دومره برخې جوړول اګرچه پـه ظـاهره داختلاف صُورت ښکاري خوهرکله چه دټولومخه هم يوارخ تـه ده اوپـه ټولـو برخوباند تلُونکي ټول هـم يومقصد [ښار] تـه رسيږي، په دې وجه داختلاف ضرري نۀ ،بلکه مُفيد اوتلونکودپاره فراخي اورحمت دې- ۰

همدغه وجه ده چه دمجتهدينو امامانواوداُمت دفُقهاؤ پـه دې خبـره اتفـاق دې چـه دوئ کښې دهيچا مسلک هم باطل نۀ دې اوځوک چه ددوئ تابعداري کوي نودنوروپه نزدهغوي تـه ګنهګار وئيل جائز نه دي، دمجتهدينو امامانو اوداُمت دفقهاؤ دمـذهبونو ترمنځـه داختلاف حاصـل ددې نه زيات نۀ دې چه دمجتهداختيارکړې مسلک دهغه پـه نـزد غـوره دې اوددې پـه مقابلـه کښې د بل مجتهدمسلک ته هم هغه باطل نۀ وائي بلکه ديوبل پُوره قدراوعزت کوي څنګه چه د صحابه کرامـو اوتابعينو دفقهـاؤ اودڅلورو امامـانو بې شميره حـالات اوواقعـات پـه دې ګـواه دي چه په فقهي مسلک کښې دډيرو اختلافونواوعلمي بحثونو جاري پاتې کيدو بـاوجود هـم دوئ بـه خپل منځ کښې يوبل سره په ډيرعقيدت اواحترام پيش راتلل، دجنـګ ، جګـړې دزړه بـداوي اودُشمنئ هلتـه هيڅ احتمـال نۀ وو، ددغـې مـسلکونو اودفقهـاؤ دمـذهبونو تابعـدارانو اومقلـدينو بـه هـم دغسې معامله خپل منځ کښې لرله ترڅوچه صحيح علم اوديانتداري بـه وه-

داهغه اختلاف دې چه سراسري رحمت اوخلقو دپاره دفراخئ اوآسـانئ ذريعـه اوډيـرو مُفيـدو نتيجـو لرونکـې دې اوحقيقت همدغـه دې چه پـه فروعـي مـسئلو کـښې دراويـانو اختلاف مُضر څيزنۀ دې خوهلـه چـه اختلاف دحدنـه بهرنـشي- داخـودمختلفو اړخونو دوضاحت کولودپاره او صحيح نتيجې ته درسيدو دپاره مـددګاردې، داسې کيـدې نشي چـه ديانتداراوهوښياران د يو غونډه کوي اوپه څه مسئله کښې ددغه ترمنځه اختلاف نۀ وي، داسې قـانُون خوياپه بې عقلو کښې کيدې شي چه شُد ، بُد نۀ لري، ياپـه بې دينو خلقو کښې کيـدې شـي چـه دپـارټئ پـه لحاظ، دضمير په خلاف رائې کښې اتفاق ښکاره کوي-

درائې کوم اختلاف چه حدکښې دننه وي، يعنې دقـرآن کـريم اوسُنت پـه قطعـي اواعتقـادي مسئلو اوقطعي احکامو کښې نۀ وې صرف په فروعي اجتهادي هغـه مسئلو کـښې وي چـه دقُرآن اوسُنت نصُونه پکښې خاموش يامبهم [غيرواضح] وي اوهغـه هـم دجنـګ جګـړې اودلعن طعن حدته نۀ رسي نودمُضر کيدوپه ځائې هغه مُفيداويوقسم نعمت اورحمت دې-څنګـه چـه ددنيـا پـه کائنـاتو کـښې دټولوڅيزونوشکل، صُـورت، رنـګ، بُـوئې، خاصيت اوفـائدې مختلفـې وي، پـه

حیواناتو کښې په لکونو قسمونه، په انسانانو کښې هم دمزاجونو ،پیشو، کسبونو اوداستوګنې په طریقو کښې اختلاف دې، داټول ددې جهان رونق زیاتوی اودبې شمیره فائدواسباب دی-

د پرهغه خلق چه په دې حقیقت خبرنهٔ دی دفقهاؤ په مذهبونو کښې اودحقانی علماؤ په فتوؤکښې اختلاف ته هم دسپکاوی په نظرګوری-هغوئ داسې وائی چه علماء خپل منځ کښې اختلاف لری نومونږه کوم خوالاړشو،حالانکه داخبره بیخې صفاده چه څنګه دیوبیمار په معامله کښې دډاکټرانو اوحکیمانو اختلاف رائې راپیداشی نوهرڅوک ددې معلوموموليه کوشش کښې وی چه دفن په لحاظ سره په دوئ کښې زیات ماهراوتجربه کارڅوک دې نوپه د وئ کښې هم هغه نه علاج کوی اونوروډاکټرانو ،حکیمانو ته بدردنهٔ وائی-٠ دمقدمې دوکیلانو په منځ کښې اختلاف راځی، نوکوم وکیل چه زیات قابل اوتجربهٔ کار ګنړی دهغه په وینا باندعمل کوی نوروته بدردنهٔ وائی، همدغه اصول دلته هم پکاردی چه په یومسئله کښې دعلماؤ فتوې مختلفې شی نودخپل وس مطابق ،تحقیق کولونه پس، کوم عالم لره چه په علم اوتقوی دنورونه زیات اوغوره ګنړی دهغه تابعداری دکوی خونورعلماؤ ته د بدرد نهٔ وائی-

حافظ ابن قیم په،اعلام الموقعین، کښې نقل کړیدی چه دماهرمفتی انتخاب کول اوداختلاف په صورت کښې دهغه چافتوی غوره ګنړل چه په علم اوپرهیزګاریٔ کښې دټولونه زیات وی، داکاردهرمعاملدارپه ذمه پخپله لازم دې، ددهٔ کاردا نهٔ دې چه دعلماؤ په فتوؤکښې دچافتوې ته ترجیح ورکړی لیکن داکارهم ددهٔ دې چه په مفتیانو اوعلماؤ کښې چالره چه په علم اودیانت کښې زیات غوره ګنړی دهغه په فتوی دعمل کوی مګرنوروعلماؤ اومفتیانو پسې دبدې ردې نهٔ وائی-چنانچه په داسې کولوسره دالله ﷻ په نزدهغه بیخې خلاص دی اوکه حقیقة دفتوې ورکوونکی نه څه غلطی هم راشی نودهغې ذمه واربه همدغه مفتی وی-

خلاصه دکلام داشوه چه هر اختلاف مطلقًا ناکاره هم نهٔ دې اوهراتفاق مطلقًا ستائیلې شوې او مقصودی هم نهٔ دې، که غله،ډاکوان اوباغیان یوه ډله جوړه کړی اوخپل منځ کښې اتفاق اوکړی نو څوک په دې نه پوهیږی چه ددوئ دغه اتفاق ناکاره اوقوم دپاره هلاکوونکې دې، اوددوئ په خلاف کوم کوشش او عمل چه عوام یاپولیس وغیره اوکړی هغه دهرعقلمند په نظرکښې ستائیلې شوې اومفید دې-

معلومه شوه چه خرابی درائې په اختلاف کښې نشته اونهٔ په دې کښې څه خرابی شته چه په یو رائې باند عمل اوکړې شی بلکه ټولې خرابئ دنوروپه باره کښې دبدګمانئ اوبدزبانئ نه راپیښیږی چه دعلم اودیانت دکموالې اودغرضونو اونفسانی خواهشاتو دزیاتوالی نتیجه وی، اوکله چه په یوقوم یایوه ډله کښې داصورت پیداشی نوهغوئ دپاره درحمت دااختلاف دزحمت داختلاف په صورت کښې بدل شی، په مسلمانانو کښې تر پارتئ راولاړې شی، دیوبل په مقابله کښې جنګ جګړې تراپورته شی اوخنې وختونو کښې تر مرګ ژوبلې ته نوبت اورسیږی، په یوبل باند لعن طعن کول اوزړهٔ آزاروونکې کلمې دخلې نه اوبنکل خودمذهب مرسته ګنړلې شی، حالانکه مذهب دې غلو[حدنه تیریدو] اوزیاتئ سره هیڅ تعلق نهٔ لری، بلکه داهغه جنګ جګړه ده چه رسول الله ﷺ تر په سختئ سره منع کړیده- په صحیح احادیثو کښې دې ته د قومونو د

ګمراهۍ سبب وګرځېدلې شويدي [ترمذي ،ابن ماجه] -(۱)

په بل آيت کښې د رسول الله ﷺ د برادرۍ يعنې د مکې د قريشو د حق مخالفت ذکر کولو سره هغوئ ته دا هدايت او کړې شو چه دا خلق تاسو نه په يو تاکلې وخت د عذاب د راتلو تپوس کوي، ورته او فرمايئ چه زۀ دې کار د پاره مقرر شوې نۀ يم بلکه هرې يوې خبرې د پاره د الله ﷻ په علم کښې يو وخت مقرر دې هغه به خالص په خپل وخت کيږي او نتيجه به ئې ستاسو مخې ته راشي.

وَاِذَا رَاَيْتَ
او هر کله چې | او وينې ته |
| او هر کله چې ته او وينې

الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْۤ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى
هغه کسان | چې جګړې کوي | په ايتونو زمونږ کښې | نو لرې شه | د هغوئ نه | ترديې پورې |
چې خلق زمونږ په ايتونو کښې جګړې کوي | نو هغوئ نه يو طرفته شه | ترديې چې [هغه بحث پرېږدي]

يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ۚ وَاِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ
چې مشغول شي هغوئ | په خبره بله کښې | او که چرې | هير کړې ستا نه | شيطان | نو مۀ کېنه
او په نورو خبرو کښې مشغول شي | او که چرې شيطان درنه [دا نصيحت] هير کړي ..............

بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۞ وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ
روستو | د ياد يدلو نه | د ظالم قوم سره | او نشته | په هغه کسانو باندې | چې پرهيزګاري کوي
نو ياديدو نه پس د داسې ظالمانو د له کښې مه کېنه | او په پرهيزګارانو باندې ..............

مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ
د حساب د هغوئ نه | هيڅ خيز | ليکن شته په هغوئ | نصيحت کول | د پاره ددې چې هغوئ |
د هغوئ د حساب هيڅ ذمه واري نشته | البته نصيحت کول [پرې فرض دی] شايد

يَتَّقُوْنَ ۞ وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ
خان او ساتي د غلطۍ لارې د تګ نه | او پرېږده | هغه کسان | چې نيولې دې هغوئ | دين خپل |
چې هغوئ هم د ګناه نه خان بچ کړي | او هغه کسان پرېږده چې کومو د خپل دين نه

لَعِبًا وَّلَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ
لوبې | او عبث کار | او په دهوکه کښې اچولې دي هغوئ | ادي ژوند د دنيا | او نصيحت کوه
لوبه او تماشه جوړه کړې ده | او د دنيا د ژوند په دهوکه کښې پريوتلې دی | او ددې

بِهٖۤ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ
په دې قرآن سره | چې او نۀ نيولې شي | يو نفس | په سبب د هغه عمل | چې کړې وی هغه
قرآن په ذريعه ورته نصيحت کوه | چې څوک د عملونو په وجه داسې ګير نه شي ..............

(۱) بجامع الترمذي، أبواب التفسير، باب ومن سورة الزخرف: ج ۲، ص ۱۴۱، وسنن ابن ماجة، المقدمة، باب اجتناب البدع والجدل: ص ۶

لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ وَاِنْ تَعْدِلْ

حال دا چې نه وي | هغه لره | ماسوا د الله نه | څوک دوست | اونه سفارش کونکې | اوکه فديه ورکړي

چې بيا ورله د الله ﷻ نه بغير ېل څوک دوست اوسفارشي نه وي | اوکه هرقسم فديه ورکول غواړي

كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اُبْسِلُوْا

هرځومره فديه | وابه نهٔ غستلې شي | ددغه نفس نه | داکسان | هغه کسان دي | چې نيولې کيږي به |

نو دا به ترې نه نشي قبلولې | .................. [ځکه] چې داخلق به دخپلو عملونو

بِمَا كَسَبُوْا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ

په سبب دهغه عمل | چې کړې وي هغوئ اوي به دهغوئ دپاره | څکل | دګرمو اوبو نه | اوعذاب

په سزا کښې ګرفتار وي | اودغه خلقو دپاره ايشيدلې اوبه اودرد ناک عذاب مقرر دي

اَلِيْمٌ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ۟ قُلْ اَنَدْعُوْا

درد ناک | په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې دحق نه انکار ني کولو | اووايه | آيا راؤبلو مونږه |

دا هرڅه د دې وجې چه دوی به [دوحدانيت نه] انکار کولو | [پيغمبره] اددوئ نه تپوس اوکړه | چې آيا مونږ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰٓى

بغير دالله نه | هغه چې نفع نشي راکولې مونږ ته | اونه نقصان راکولې شي مونږ ته | اوواپس شو مونږه | په

دالله ﷻ نه بغير نور [معبودان] راوبلو | چې نه مونږ ته نفع رسولې شي اونه نقصان | اوددې نه پس چې

اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ

پوندو خپلو باندې | روستو | دهغې نه چې الارا وښودله مونږ ته الله | پشان دهغه سړي | چې بې لارې کړې وي هغه

الله ﷻ مونږ ته نيغه لار خودلې ده بيا په شالا شو | .................. دهغه چا په شان چې هغوئ لره

الشَّيٰطِيْنُ فِي الْاَرْضِ حَيْرَانَ ۪ لَهٗٓ اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗٓ

شيطانانو | په زمکه کښې | چې حيران وي | حال دا چې هغه لره | ملګري وي | چې آوازونه کوي هغه ته

شيطانانو په بيابان کښې بې لارې کړې وي | اوبالکل حيران ګرځي | په داسې حال کښې چې ملګري ورته بلنه کوي

اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ۗ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ۗ

دې نيغې لارې ته | راشه مونږ ته | اووايه | بيشکه | هدايت دالله چې دي | هغه حقيقي هدايت دي |

چې زمونږ په شان دهدايت طرفته راشه | ورته اووايه چې سمه لار هغه ده چې الله ﷻ خودلې ده

وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۟ۙ وَاَنْ اَقِيْمُوا

اوحکم شوې دې مونږ ته | چې تابعدار شو مونږه | رب دمخلوقاتو ته | اودا چې | قائيموئ |

اومونږ ته حکم شوې دې چه د کائناتو د رب تابعدار جوړ شو | .................. او دا چې تاسو مونځ

الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ۗ وَهُوَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۟

مونځ | اواووېرېږئ دهغه نه | اوهغه | هغه ذات دې | چې هغه ته به | ورجمع کړې شئ تاسو |

قائموئې | اودالله ﷻ نه وېرېږئ | او هم هغه ته بهٔ تاسو ټول جمع کيږئ ..................

| وَهُوَ | الَّذِيْ | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ | بِالْحَقِّ ۭ | وَيَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه | هغه ذات دې | چې پيدا کړي ئې دي | آسمانونه او زمکه | په حقه سره | اوپه کومه ورځ |

اوالله ﷻ هغه ذات دې چې آسمانونه اوزمکې ئې په حقه پيدا کړې دی | ............ اوپه کومه ورځ

| يَقُوْلُ | كُنْ | فَيَكُوْنُ ۚ | قَوْلُهُ | الْحَقُّ ۭ | وَلَهُ | الْمُلْكُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې اووائي الله | شه | نو شي به | خبره دهغه | حقه ده | اوهغه لره به وي | بادشاهي |

چې هغه دومره اووائي |چې قيامت شه | نو هغه به شي| دهغه وينا حقه ده | اوتوله بادشاهي به

| يَوْمَ | يُنْفَخُ | فِي الصُّوْرِ ۭ | عٰلِمُ | الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ ۭ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه ورځ | چې پوک اوکړې شي | په شپيلۍ کښې | عالم دې | په پټو | اوپه ښکاروُ باندې |

په هغه ورځ دهغه وي | چې په کومه ورځ شپيلۍ پوک وهلې شي |هغه په غيبواوڅرګنده څيزونوباندې عالم دې

| وَهُوَ | الْحَكِيْمُ | الْخَبِيْرُ ۝ |
|---|---|---|
| اوهغه | د حکمت خاوند دې | خبردار دې |

اوهغه دحکمتونو خاونداو خبردارذات دې |

## آسان ترجمه قرآن

اوکله چه ته هغه خلق ووينې چه ځمونږ آيتونو ته بد رد وئيلو کښې اخته وي نو ته هغه وخت پورې دوی نه جدا شه ترڅو چه دوی په بله خبره کښې مشغول شوي نه وي. اوکه شيطان ستا نه دا خبره هيره کړي نو ديادېدو نه وروستو د ظالمانو سره مه کېنه. ددوی په کهاته کښې چه کوم اعمال دي د هغې ذمه داري په پرهيزګارو باندې نشته خو نصيحت کول دهغوی کار دې کيدې شي چه هغوی هم (داسې خبرو نه) ځان اوساتي. او پرېږده هغه کسان چه هغوی خپل دين لره لوبه اوتماشه جوړه کړې ده اوهغوی لره ددنيا ژوند دهوکه کښې اچولي دي او ددې (قران په ذريعه (خلقوته) نصيحت کوه دې د پاره هسې نه چه يو کس دخپلو اعمالو په وجه داسې راګير شي چه د الله (دعذاب نه) دبچ کولو دپاره د الله نه سوا نه د هغه څوک مددګار وي او نه سفارشي ، اوکه هغه (خپل خلاصون د پاره) هر قسم فديه هم پيش کړي نو هغه به ترينه قبوله نکړې شي نو دغه (دين لره په لوبو او تماشو نيوونکي ) هغه خلق دي چه د خپل عمل په وجه دوی نيولې شوي دي چونکه دوی کفر اختيار کړې وو دي وجې نه دوی لره د ګرمو اوبو څښل او دردناک عذاب (تيار) دې (اې پيغمبره !) دوی ته ووايه چه آيا مونږ د الله نه علاوه داسې څيزونه راوبلو چه نه مونږ ته فايده راکولې شي او نه نقصان اوکله چه الله مونږ ته هدايت را کړې دې نو مونږ د هغې نه وروستوهم په پوندو واپس واوړو؟ (او )د هغه کس پشان (شو) چه هغه لره شيطان دهوکه کړې وي او صحرا ته ئې بوتلې وي، او حيران ګرځي، د هغه څه ملګري وي چه هغه سمې لارې طرف ته رابلي چه مونږ ته راشه ؟" ته ووايه چه دالله ورکړې شوې هدايت په صحيح معنو کښې هدايت دې اومونږ ته حکم کړې شوې دې چه الله رب العلمين ته سر ټيټ کړو. اودا (حکم ورکړې شوې دې) چه: مونځ قايم کړئ او د هغه (نافرمانۍ نه) ووېرېږئ. او الله هغه ذات دې چه هغه طرفته ستاسو ټولو واپس کيدل دي. اوالله

هغه ذات دې چه هغه آسمانونه او زمکې په حقه پيدا کړي دي او په کومه ورځ چه هغه (د قيامت په ورځ) وائي چه موجود هغه نو موجود به شي. دهغه وينا حقه ده او په کومه ورځ چه به پوله ووهلې شي په هيبلي کښې. په هغه ورځ به بادشاهي هم دهغه وي هغه غايب او حاضر هر يو څيز لره پيژني ، او هغه ډير لوئ حکمت والا ، پوره خبر دې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِيٓ اٰيٰتِنَا ﴾او [اې مخاطبه] کله چه ته هغه خلق اووينې چه زمونږ په آيتونو [او حکمونو] کښې عيبونه لټول کوي ﴿ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهٖ ﴾ نوته دغې خلقو [سره دکښيناستلو] نه په ډډه شه تردے چه هغوی په يوه بله خبره کښې لګيا شي ﴿ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ ﴾اوکه تانه شيطان هيره اوکړی [يعنى په دغسې مجلس کښې د کښيناستلو نه منع کيدل درته ياد پاتې نشي نو کله چه درته ياد شي نو] ﴿ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِينَ ﴾ دياديدو نه پس بيا دغسې ظالمانو سره مه کښينه [سمدستی پاسه] ﴿ وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ﴾ او [که څه ددنيا يا دين څه واقعی ضرورت دغسې مجلس ته په تلو کښې راپيښ شي نو دهغې حکم دادې] کوم خلق چه [دشرعی ممنوعاتو نه چه دغسې مجلسونو ته بے ضرروته تلل په کښې هم داخل دی] احتياط کوی او هغوی ته به ددغې خلقو [پيغور کوونکو او دروغژن بلونکو] د ګرفت [او دپيغور د ګناه] هيڅ اثر نه رسيږی [يعنى دضرورت له کبله هلته تلوونکی به نه ګناهنګاريږی] ﴿ وَلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴾ ليکن دهغوی په ذمه نصيحت کول دی [خوهله چه وس ئې رسيږی] کيديشی چه دغه [پيغور کوونکی] خلق هم [دغے ګډوډونه] احتياط کول شروع کړی. [په اسلام قبلولو سره يا ددوی دلحاظ نه] ﴿ وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا ﴾ او [ددرغوبللو د مجلس نه يواځې نه بلکه] د غسے خلقو نه بيخی په ډډه اوسيږه چا چه خپل [هغه] دين [چه منل ئې د دوی په ذمه فرض وو يعنی اسلام] توقے او لوبے جوړے کړې وے [چه ورپورې توقے کوی] ﴿ وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ﴾ او دنيوی ژوند دوی لره په دهوکه کښې اچولی دی [چه ددې په خوندونوکښې لګيادی اود آخرت منکر دی ځکه ورته ددغې توقو کولو انجام نه ښکاری] ﴿ وَذَكِّرْ بِهٖٓ أَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ﴾ او [ددے کولو او بائيکاټ سره سره دغے خلقو ته] ددې قرآن په ذريعه [چه دوی ورپورې توقے کوی] نصيحت هم کوه دپاره ددې چه څوك دخپل [بد] کردار په سبب [په عذاب کښې] داسې راګير نشی. ﴿ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُونِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيعٌ ﴾ چه څوك دغير الله نه به يئ نه امدادی وی او نه سفارشی ﴿ وَإِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ﴾اوشان ئې داوی چه که [بالفرض] تولـه دنيا هم په بدل کښې ورکړی [او دهغې په لګولو سره خان خلاص کړی] بيا به هم ترے نشی اخستلے [تو نصيحت نه فائده داده چه دبدعملۍ د انجام نه خو خبر شی منل اونه منل د هغه خپل کار دې] ﴿ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا ﴾ دا [توقے کوونکی] داسې دی چه [نصيحت ئې اونه منلو او] دخپل [بد] کردار په سبب [په عذاب کښې] راګير شو [چه آخرت کښې به په دې شان ښکاری چه] ﴿ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ ﴾ دوی دپاره به زياتے تيزے [ويشيدلے اوبه] څښلو دپاره وی او [ددے نه سوا بله داشان هم] ﴿ وَعَذَابٌ أَلِيمٌۢ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴾ ددرناك عذاب سزا وی دخپل کفر په سبب [چه

بدکردار یې هم دغه دي دکوم یوه برخه چه توقع کول وو]. ﴿ قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ تاسو [دټولو مسلمانانو د طرفه دغه مشرکانو ته] اووائې چه آیا دالله ﷻ نه سوا [ستاسو په مرضئ] دداسې څیز عبادت اوکړو چه ﴿ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا ﴾ نه خو هغه [ددې دعبادت کولو په صورت کښې] مونږ ته نفع [رسوی] او نه هغه [ددې عبادت نه کولو په صورت کښې] مونږ ته نقصان رارسوی [یعنی په دواړو صورتونو کښې دنفع نقصان رسولو وس ئې نه رسی. ددې نه مراد باطل معبودان دی چه بعضې خو بیخی هیڅ وس نه لری او څوك چه څه وس لری نو هغه دده ذاتی نه وی اومعبود په کښې کم از کم د خپل موافق او مخالف ته دنفع نقصان قدرت پکار وو نو آیا مونږ ددغسې څیزونو عبادت اوکړو] ﴿ وَنُرَدُّ عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ ﴾ آیا [معاذالله] مونږ [داسلام نه] خلاف راوګرځو پس ددې نه چه مونږ ته الله ﷻ [دحق طریقې] هدایت کړې دې [یعنی اول خو شرك پخپله ناکاره دے خاص کر اسلام راوړلو نه پس ډیر زیات ناکاره دے ورنه زمونږ مثال خوبه داشی] ﴿ كَالَّذِى اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ ﴾ لکه یو کس وی چه هغه لره شیطانانو چرته په ځنګل کښې [په غولولو سره دلارې نه] غلط کړې وی اوبیدرکه ګرځی [او] ﴿ لَهٗٓ اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗٓ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ﴾ دده څه ملګری هم وی چه هغوی ئې سمے لارے ته [په چغو چغو] رابلی چه [دے خوا] مونږ له راشه [مګر هغه د ډیرے حیرانئ له وجې نه پوهیږی اونه راځی.حاصل داشو چه څنګه دغه په سمے لارې روان بنده دخپلو هغه ملګرو نه بیل شی چه دلارې په سردرك نه پوهیږی او د بیابانی بلاګانو په ګټ کښې دراتلو په وجه بےلارې شی دغه ملګری ئےبیا هم په چغوچغو خپل ځان سر سمے لارې ته رابلی خو هغه ورله نه راځی نوالله ﷻ دے نکړی که مونږ داسې اوکړو چه داسلام په لاره کښې دروانیدو نه پس خپل لار ښودونکی پیغمبرنه بیل شو او دګمراه کوونکو په ګټ کښې دراتلو په وجه ګمراه شو اودغه لار ښودونکی پیغمبر بیاهم دخیر خواهئ په وجه داسلام بلنه راکوی او مونږ دګمراهی نه پریږدو نو آیا ستاسو په خوښه مونږ خپل مثال داسې جوړ کړو] ﴿ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ﴾ تاسو دوی ته] اووائې چه [هرکله دے مثال نه دلارې نه بےلارې کیدل ناکاره ثابت شو اودا] یقینی خبره ده چه سمه لاره هغه هم د الله ﷻ [خودلې] لارده [چه اسلام دې نو ددې پریښودل یقینی طور سره بےلارې کیدل دی بیا ئے مونږ کله پریښوولې شو] ﴿ وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ او [تاسو اووائې چه مونږ شرك څنګه کولې شو] مونږ ته [خو] دا حکم شوې دې چه پوره فرمانبردار شو د پروردګار دجهان [چه یواځې په اسلام اړه لری].

﴿ وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ﴾ اودا [حکم شوې دې] چه دمونځ پابندی کوئی [چه توحید باندې دایمان راوړو ښه ښکاره نښه ده]او [داحکم شوې دے چه] دهغه نه [یعنی دالله ﷻ نه] ویریږئی [یعنی مخالفت ئے مه کوئی] چه په کښې د ټولو نه زیات شرك دے ﴿ وَهُوَ الَّذِىْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴾ [اوهم هغه [الله] دې چه ورسره به تاسو ټول [دقیامت په ورځ د قبرونو نه په راوتلو باندې حساب دپاره] جمع کولې شئ [هلته به مشرکان دخپل شرك سزا بیامومی] ﴿ وَهُوَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ﴾ او هم هغه [الله] دے چه آسمانونه او زمکه ئے سره دفائدې پیدا کړه [اویه فائده په کښې دا ده چه دے نه دخالق ﷻ په موجود والی اویه توحید باندې دلیل اونیوے شی نو دا هم د توحید یو دلیل دې] او [پورته چه په ﴿ تُحْشَرُوْنَ ﴾ یعنی په قیامت کښې د

دوباره ژوندی کیدو خبر ورکړې شوې دے هغه هم څه متل لرے مه ګڼرئی چه دقدرت په مخکښې داهم دومره آسان دےچه] ﴿ وَيَوْمَ يَقُولُ كُن فَيَكُونُ ۚ ﴾ کله الله ﷻ دومره اووائی چه [ائې حشره] ته شه بس هغه [حشر] به [سمدستی] شی ﴿ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۚ ﴾ دهغه [دا] وئیل اثرناك دی[خالی نه څی] ﴿ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ ۚ ﴾ او [دحشر په ورځ] کله چه په صور [شپیلۍ] کښې به [دالله ﷻ په حکم دویم ځل دفربنتے] پوکے اووهلے شی ټول حکومت [په حقیقت کښې هم او په ظاهر کښې هم] خاص هم دهغه [الله ﷻ وی ﴿ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۚ ﴾ اوهغه [به په خپل حکومت سره د موحدینو اومشرکینو فیصله کوی] هغه [الله ﷻ] پیژندونکې دې پټو او ښکاره څیزونو لره[نو د مشرکانو په حالاتو او عملونو باندې ئے هم علم دې] ﴿ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴾ اوهم هغه دے دلوئې حکمت خاوند [ځکه به هر یو ته مناسبه مناسبه بدله ورکوی اوهم هغه دې] پوره خبرلروونکے [ځکه ترې هیڅ څه څیز پټیدے نشی].

## معارف اومسائل

**داهلِ باطل دمجلسونو نه دځان ساتلوحکم:** په دې آیتونو کښې یوزیات داهدایت ورکړې شویدې چه دکوم کارپخپله کول ګناه وی دهغې دکوونکو په مجلس کښې شریکیدل هم ګناه ده هغې نه ځان ساتل پکاردی تفصیل ئې دادې چه:

رُومبی آیت کښې: ﴿ يَخُوضُونَ ﴾ د، خوض نه جوړشویدې ددې اصلی معنی په اوبو کښې ورګوزیدل اوترې پورې وتل دی، دغه شان په عبث اوبې مطلبه کارونوکښې داخلیدل هم، خوض، دې[1] چنانچه قرآن کریم کښې دالفظ عموماً هم په دې معنی کښې استعمال شویدې لکه:

﴿ وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ ﴾ او ﴿ فِي خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ ﴾ وغیره آیتونه چه ددې ګواه دی. په دې وجه د خوض ترجمه دلته دعیب لټولو یادجګړې کولو کړې شویده، یعنی کله چه تاسودغه خلق اووینئ چه دالله ﷻ په آیتونو کښې خالص دلوبو ټوقو اومسخرو کولودپاره دخل ورکوی اوعیبونه لټوی نوتاسوترمخ واړوئ۔

ددې آیت خطاب هریومخاطب ته عام دې چه رسول الله ﷺ پکښې هم داخل دې اودأمت کسان هم پکښې داخل دی- په حقیقت کښې رسول الله ﷺ ته خطاب کول عامومُسلمانانوته آورولو دپاره دی،ولې چه هسې خو هغوی دوړوکتوب نه هم په دغسې مجلسونوکښې کله هم شریک شوی نۀ وو، ځکه هغوئ ته دمنع کولوضرورت نۀ وو-

داهل باطل دمجلسونونه دمخ اړولو څوصورتونه کیدې شی، یوتر پورته کیدل دی بل داچې هلته سره دموجودګئ په بل څه کارکښې مشغول شی دغې پسې دسره مخه نۀ وړی،لیکن په آخر دآیت کښې اوښودلې شو چه مُرادترنه هم رُومبې صُورت دې،یعنی ترپورته کیدل دی چې په هیڅ شان پکښې ایساریدل نشته-

په آخردآیت کښې ئې اوفرمائیل چه که تانه شیطان هیرکړی، یعنی په هیره دهغوئ په مجلس کښې شریک شوئ، مطلب ئې یو دا راوځی چه په دغې مجلس کښې دشریکیدو ممانعت درته یادنۀ ووپاتې شوې،یادا درته یادپاتې نۀ شو چه داخلق دالله ﷻ دآیتونو اودرسول الله ﷺ په خلاف بیانونه په خپل مجلس کښی کوی،نوپه داسې صُورت چه څۀ وخت درته رایادشی نوسمدستی د

[1] تاج العروس: ج۱، ص ۳۶۱۵ مادۀ خوض۔

مجلس نه پورته کیدل پکاردي، سره درایادیدو هلته ایساریدل ګناه ده، په دوئیم آیت کښې هم دغه مضمون راغلي دي او په آخر کښې ئې فرمائیلي دي چه دغلته په ایساریدو به تاسو هم دهغوئ پشان یئ-

امام رازی په تفسیر کبیر کښې فرمائیلی دی چه ددې آیت اصل منشا او مطلب دګناه د مجلسونو اوددغې مجلس کوونکو خلقونه ډډه او اړخ کول دی ددې ډیرغوره صورت دادې چه بیخي ترې پورته شي لیکن که دغه ځائې نه په پورته کیدوکښې چاته دځان ومال اودننګ، ناموس خطره وی نوعوامولره داهم روادی چه ډډې کولوځه بل صورت اختیارکړی مثلاً په بل ځه شُغل کښې لګیاشی اودغې خلقو پسې مخه نۀ وړی مګرداسې خاص خلق چه په دین کښې ورپسې خلق روانیږی هغوئ لره په هر صورت کښې هلته نه پورته کیدل مناسب دی-(۱)

بیائې اوفرمائیل: ﴿وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ﴾ [یعنی که شیطان تاته هیرکړی،] داخطاب که عامومُسلمانانوته وی نوخبره خوسپینه ده چه هرانسان نه هیره شته ده دي او که رسول الله ﷺ ته خطاب وی نوسوال داپیدا کیږی چه که دالله درسول نه هم هیره کیږی نوددوئ په تعلیماتو باند به تکیه اوتسلئ څنګه پاتې کیدې شی؟

جواب ئې دادې چه واقعی، رسولِ اوټولوپیغمبرانو ﷺ نه هم دځه خاص حکمت اومصلحت په بنا، هیره کیدې شی، لیکن دالله ﷻ دا رخه ورته سمدستی دهغې خبرداري په ذریعه دوحی سره ورکولې شی چه په هیره قائم نۀ پاتې کیږی اوهم دغه وجه ده چه دانبیاء ﷺ تعلیمات بالآخر دهیرې دشُبهې نه پاک پاتې کیږی-

بهرصورت دآیت ددې جُملې نه ثابت شو چه که چانه دهیرې په بنا څۀ غلطی اوشوه نوهغه معاف ده لکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی :-

﴿رفع عن امتی الخطاء والنسیان وما استکرهوعلیه﴾(۲) زما اُمت ته دهیرې اوخطا اودهغې عمل معافی شویده چه په زبردستئ اوپه زور زیاتئ سره پرکړې شوي وي-

امام جصاص په احکام القرآن کښې فرمائیلی دی چه ،دې آیت نه معلومه شوه چه هرمُسلمان لره دداسې مجلس نه ډډه اواړخ کول پکاردی چرته چه دالله ﷻ یادهغه درسول الله ﷺ یادشریعت خلاف څه خبرې کیږی. اوبندول برخاست کول یاکم ناکم حق خبره ښکاره کول دهغه په قبضه او اختیارکښې نۀ وی البته که داصلاح په نیت دغې مجلس کښې شریک شی اودغې خلقوته دحق خبرې ښودنه کوی نوپه دې کښې څه بدیت نشته-

په آخرآیت کښې ددې ارشادِخُداوندی، درایادیدونه پس ظالم قوم سره مه کښینئ،نه امام جصاص د امسئله راغستې ده چې دداسې ظالمانو اوبې دینه ناروا خلقو په مجلس کښې شریکیدل مطلق ګناه ده خواه هغه د وخت هغوئ په ناروا خبروکښې لګیاوی اوکه نۀ وی ځکه چه دوئ باند اعتبارنشته چه بیهوده خبرې به اونکړی، ددلیل نیولووجه ئې داده چه په آیت کښې ظالمانوو سره مطلقًا دناستې پاستې کولونه منع راغلې ده- داشرط ورسره نشته چه دغه وخت هم په ظلم کولوکښې لګیاوی-(۳)

(۱) تفسیر کبیر تحت هذه الآية: ج۶، ص ۲۲۶، ۲۲۷
(۲) کنز العمال رقم الحدیث: ۱۰۳۰۷
(۳) أحکام القرآن للجصاص، باب النهی عن مجالسة الظالمین-

دقرآن کریم په یوبل آیت کښې هم دغه مضمون په وضاحت سره داسې راغلې دې: ﴿وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ﴾ [یعنی ظالمانو خلقو سره ناسته پاسته اوګډون مه کوئ ګنې دجهنم اور به مو په نصیب شي] -

کله چه دغه آیت نازل شو نوصحابه کرامو عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ اکه ددوئ مجلس ته دورتلو نه مطلقًا منع وی نوموږ به مسجد حرام کښې دمونځ اوطواف نه هم محرومه شوځکه چه دغه خلق خو همیشه دپارهلته ناست وی [داواقعه دهجرت اودفتح مکه نه وړاندې ده] او ددو کار هم عیب لټول اوناکاره ویناکول دی، نوپه دې باند دوئیم آیت دې نه پس دانازل شو:

﴿وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَلَٰكِن ذِكْرَىٰ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ﴾ [یعنی څوک چه احتیاط کوی اوهغوئ خپل کاردپاره مسجدحرام ته لاړشي نوددغې وړانکاروخلقودناکاره عملونو ذمه داری په هغوئ نشته، البته دومره ذمه واری ئې شته چه حق خبره ورته اورسوی ، کیدې شی چې دغه خلق تربه نصیحت حاصلولوسره په سمه لاړراشي-(۱)

په دریم آیت کښې هم تقریبًا دامضمون په زیات تاکیدسره داسې راغلې دې ﴿وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا﴾ دې کښې لفظ د ذر د وذر نه مشتق دې ، ددې معنی ده یو څیز نه خفه کیدل او هغه پریښودل ، دآیت معنی دا شوه چې تاسو دا خلق پرېږدئی چا چې خپل دین لهو و لعب یعنی لوبې توقې جوړ کړې دې . ددې دوه معنې کیدې شی . یوه دا چې دوئ کوم حق دین یعنی اسلام چې رالیږلې شوې دې هغې پورې خندا ګانې کوی . ددې استهزا او تمسخر کوی . بله دا چې دوئ خپل اصلی دین پریښودې دې ا ولهو ولعب لره ئې خپل دین منلې دې ، د دواړو معنو حاصل تقریبا یو دې .

دې نه پس ارشاد دې چې ﴿وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا﴾ [یعنی دغې خلقو لره د دُنیا دځوورخو ژوند په غرور او دهوکه کښې اچولی دی] دائې ددوئ دمرض اصلی سبب بیان کړو چه ددوئ دتولې سرکشئ اونافرمانئ اصلی سبب دادې چه هم ددُنیا دځوورخو په ژوندباند عاشقان دی اوآخرت ئې هیرکړې دې که په آخرت اوقیامت ئې عقیده لرلی نوهیڅکله به ئې دغسې حرکتونه نۀ کول-

په دې آیت کښې رسول الله ﷺ اوعامومُسلمانانو ته دوه حُکمونه ورکړې شویدی اول داچه دغسې کسانونه ډډه کوی چه بیان ئې په ذکرشوې جُمله کښې راغلې دې، بله داچه یواځې دغه خلقو نه ډډه کول اومخ اړول هم کافی نه دی بلکه په ایجابی ډول داهم ضروری دی چه دقران کریم په ذریعه ورته نصیحت هم کوئ اودالله ﷻ دعذاب نه ئې په مخه ویروئ-

په آخرد آیت کښې ئې ددغې عذاب تفصیل داسې بیان کړو چه ددوئ هم دغه حالت جاری پاتې شو نودخپل بدکردارپه جال کښې به پخپله اونښلی، په آیت کښې دلته د .ان تبسل، لفظ راوړې شویدې چه معنی ئې قیدیدل اوانښتل ددی-

هرکله چه په دُنیا کښې انسان داعادت لری چه دځه غلطئ کولویاپه چاباند دظلم کولوسزائې په برخه شی نوهغې نه دځان ساتلو درې ذریعې استعمالوی، کله دخپل دلې ،پرې دخلقو په زور هغې نه دځان خلاصولو کوشش کوی، که ددې وس ئې نۀ وو نودلویو خلقودسفارش نه کار واخلی اوکه داهم نشو کیدې نوبیادې دپاره مال لګوی-

(۱) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۵۵، ۱۵۶

الله ﷻ په دې آيت كښې اوښودل چه دالله ﷻ دمجرم دپاره، دسزانه ئې ساتل نهٔ دوست، عزيز كولې شي، نهٔ دچاسفارش بغيردالله ﷻ داجازت نه چليدې شي اونهٔ ترڅه مال قبلولې شي، بلكه بالفرض كه دټول جهان مال هم ورسره وي اوهغه ټول دخپلې سزانه دبچ كيدوپه بدل كښې وركوي بياهم تر نشي قبلولې-

په آخردآيت كښې ئې داسې اوفرمائيل ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا ۖ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ﴾ [يعنى داهغه خلق دي چه دخپلو بدعملونو په سزا كښې راګيرشويدي، دوئ ته څكلو دپاره به دجهنم جوشيدونكې اوبه ملاويږي چه دهغې په پاره كښې بل آيت داسې بيان كړيدې چه ،هغه به كُولمې ټكړې ټكړې كوي،اوددغې اوبونه علاوه به وردپاره نورهم دردناك قسم عذابونه وي ددوئ دكُفر اوانكار په بدل كښې]-

ددې آخرى آيت نه داهم معلوم شُو چه كوم خلق دآخرت نه غافله ،يواځې ددُنيا په ژوند باند غاوره وي هغوئ سره ناسته پاسته كول اوپه مجلس كښې ئې شامليدل هم ،انسان دپاره هلاكوونكى دى،ددې انجام دادې چه دوئ سره ناست پاست خلق به هم په هغه عذاب كښې اخته وي په كوم كښې چه دوئ وي-

ددې درې واړوآيتُونوحاصل چه مُسلمان ددخراب ماحول اوبدمجلس نه بچ كول دى. چې د انسان دپاره زهر قاتل دى ،دقرآن اوحديث دبيشميره نصونونه علاوه مشاهده ، كتل اوتجربه ددې ګواه ده چه دخراب ماحول اوخرابې سوسائټئ نه انسان له بدكرداره اومُجرم جوړيږي چه دې كښې راګيرشى نواول خوانسان دضمير اوطبع نه خلاف په ناكاره كارونو كښې اخته شي، چه دا عادت واخلى نودناكاره والى احساس ئې هم ختم شي بلكه هغه دې حدته اورسي چه بدورته ښهٔ، اوښه ورته بدښكاري-لكه چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دى چه كله يو كس اول ځل په ګناه كښې اخته كيږي نو د هغه په زړهٔ باندې تور داغ اولګى او څنګه چې سپينه جامه باند يوتورداغ دهرچا طبيعت نهٔ اخلى دغسې په زړهٔ باند دغه تورداغ ئې هم طبيعت باند بوج وي ليكن هركله چه په مخه ګُناهونه كوي اودكړوګُناهونونه توبه نهٔ كوي نوپه مخه دغه تور داغُونه نورنورهم لګى تردې چه دزړهٔ نُورانى تخته ئې بيخى توره شي، ددې نتيجه داراوُځى چه دغه كس بيادښه اوبد بيلتُون نشى كولې، چنانچه قرآن كريم كښې ئې دا په ران سره تعبير كړيدې لكه فرمائى:

﴿كَلَّا ۖ بَلْ ۜ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [يعنى ددوئ په زړونو باند ددوئ دبدوعملُونوپه وجه زنګ پورې شو چه سميدل ئې نشى كيدې]-[1]

كه غوراوكړې شى نواكثردې حالت ته رسوونكې څيزغلط ماحول اوګنده مجلس وى [نعوذبالله منهما] لهذادماشُومانو دپالُونكوفرض دى چه ماشُومان ددغسې چاپيريال اوسوسائټئ نه محفوظ لرلو كښې پُوره كوشش كوى-

وريسې درې آيتُونو كښې هم دشرك دباطل ګرځولو اودتوحيد اوآخرت دثابتولومضمُون دې، چه ترجمې نه ښكاره كيږي.

[1] جامع الترمذي، أبواب التفسير، باب ومن سورة ويل للمطففين: ج ۲، ص ۱۷۱

وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ

او كله چې | اووئيل | ابراهيم | پلار خپل | آزر ته

او هغه وخت ياد كړه چې ابراهيم ﷺ خپل پلار آزر ته اووئيل

أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً إِنِّي أَرَاكَ وَقَوْمَكَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ

آيا نيسي ته | بتان | په خدايۍ سره | بيشكه چې زه | وينم تا | او قوم ستا | په گمراهۍ | ښكاره كښې

چې آيا ته بتان په خدائي سره نيسي | زه خووينم چې ته او ستا قوم په ښكاره گمراهۍ كښې يئ

وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرٰهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

او همدا رنگې | او خودلو مونږه | ابراهيم ته | انظام سلطنت | دآسمانو نو | او دزمكې |

او دغه شان مونږ ابراهيم ﷺ ته دآسمانونو او زمكې دبادشاهت نظام اوخودلو

وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ اللَّيْلُ

او دپاره ددې چې شي هغه | ديقين كونكو نه | نو هر كله چې | خوره شوه | په هغه باندې | شپه

او ددې دپاره چې په هغه دله كښې شامل شي چه كوم يقين كوي | هر كله چې پرې شپه راغله

رَأَىٰ كَوْكَبًا قَالَ هٰذَا رَبِّي فَلَمَّا أَفَلَ قَالَ

اوليدو هغه | يوستورې | اووئيل هغه | دا رب زما دې | پس هر كله چې | پټ شو هغه | نووې وئيل |

اوستورى ئې اوليدل | نووې وئيل چه دا زما رب دې | خو چې كله ډوب شو نو وې وئيل چې

لَا أُحِبُّ الْآفِلِينَ فَلَمَّا رَأَى الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ

نه خوښوم زه | پټيدونكى | بيا هر كله چې | اوليده هغه | سپوږمۍ | خليدونكې | نو وې وئيل |

زه ډوبيدونكو سره محبت نه كوم | هر كله چې ئې روښانه سپوږمۍ ............ | اوليده نو وې وئيل

هٰذَا رَبِّي فَلَمَّا أَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَمْ يَهْدِنِي

دا رب زما دې | خو هر كله چې | غائبه شوه هغه | نو وې وئيل | كه چرې | هدايت اونكړې ماته

چې دا زما رب دې | خو كله چې هغه پريوته | نو وې وئيل كه چرې ماته الله ﷻ سمه لار اونه ښائي

رَبِّي لَأَكُونَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّالِّينَ فَلَمَّا رَأَى الشَّمْسَ

رب زما | نو خامخا شم به زه | د قوم | گمراه نه | هر كله چې | اوليدو هغه | نمر

نو زه به د هغه خلقو نه شم چه گمراهان دی | ........ بيا هر كله چې نمر ئې خليدونكې اوليدو

بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّي هٰذَا أَكْبَرُ فَلَمَّا أَفَلَتْ

خليدونكې روښانه | نو وې وئيل | دا رب زما دې | دا د تولو نه لوئ دې | خو هر كله چې | پناه شو هغه

نو وې وئيل چې دا زما رب دې | او دا په ټولو كښې لوئې دې | خو كله چې هغه پريوتو ............

قَالَ يٰقَوْمِ إِنِّي بَرِيءٌ مِمَّا تُشْرِكُونَ

نو وې وئيل | اې زما قومه | بيشكه زه | بيزاره يم | دهغو نه | چې تاسو ئې شريكوئ

نو وې وئيل چې اې زما قومه زه ستاسو د شرك نه ويزاره يم ............

إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ

بیشکه زه چی یم | ګرزولې دې ما | مخ خپل | هغه الله ته | چی پیدا کړی دی هغه | آسمانونه | او زمکه

ماخو خپل مخ هغه ذات طرف ته اوګرځولو | چې آسمانونه او زمکې ئې پیدا کړې دی

حَنِيفًا وَّمَآ أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝ وَحَاجَّهُ قَوْمُهُ ؕ

حال دا چی یو مخیزې یم حق ته | او نهٔ یم زه | دمشرکانو نه | او جګړه او کړه دهغه سره | قوم دهغه

زه یو مخیز یم | او دمشرکانو په ډله کښې نه یم شامل. | او دهغه قوم هغه سره جګړه او کړه

قَالَ أَتُحَآجُّوٓنِّي فِي اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ

نو هغه او وئیل آیا تاسو جګړه کوئ زما سره | په حق دالله کښې | او حال دا چی لاره ښودلې ده هغه ماته

هغه ورته او وئیل چې آیا تاسو ماسره دالله ﷻ په حق کښې جګړه کوئ؟ او حال دا دې چې هغه ماته سمه لار ښودلې ده

وَلَآ أَخَافُ مَا تُشْرِكُونَ بِهٖٓ إِلَّآ أَنْ يَّشَآءَ رَبِّي شَيْـًٔا ؕ

او نهٔ ویریږم زه | دهغې نه | چی تاسو ئې شریکان کوئ | دهغه سره | مګر کیږي به هغه | چی او غواړی | رب زما څه خیز

او زه ستاسو د جوړ کړې شوؤ شریکانو نه ویره نه کوم | البته زما رب چې څه غواړي [نو هغه به کیږي]

وَسِعَ رَبِّي كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ؕ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ۝ وَكَيْفَ

فراخه دې | رب زما | په هر خیز باندې | په لحاظ دعلم سره | نو آیا نهٔ قبلوئ تاسو نصیحت | او څنګه |

زما د رب علم په هر څهٔ راخور دې | نو تاسو هم حق نه سبق نهٔ زده کوئ | .........او څنګه به

أَخَافُ مَآ أَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمْ أَشْرَكْتُمْ

او ویریږم زه | دهغې نه | چی شریکان کړی دی تاسو | او نهٔ ویریږئ تاسو | ددې نه چی بیشکه تاسو | شریك کړې دې تاسو

زه ستاسو د شریکانو نه او ویریږم | حال دا دې چې تاسو نه ویریږئ چې دا سې څیزونه

بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ

دالله سره | هغه څه | چی نه دې نازل کړې الله | په شریکولو دهغې سره | په تاسو | څه دلیل |

الله ﷻ سره شریکوئ | چې دهغې [د عبادت په جواز] هڅو تاسو سره هیڅ دلیل نشته دی

فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِالْأَمْنِ ۚ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝

نو کومه | یوه ددې دواړو ډلونه | زیاته مستحقه ده | په امن سره | که یئ تاسو | چی پوهیږئ |

[دا او وائې] چې کومه یوه په دې دواړو ډلو کښې دامن زیاته حقداره ده؟ | که تاسو پوهیږئ

## آسان ترجمه قرآن

او (هغه وخت یاد کړئ چه کله ابراهیم علیه السلام خپل پلار آزر ته وئیلي وو چه: آیا تا بتان په خدایئ نیولی دي؟ زه وینم چه ته او ستا قوم په ښکاره ګمراهئ کښې مبتلا دي. او دغه شان مونږ ابراهیم علیه السلام ته د آسمانونو او زمکو د سلطنت نظاره کوله. او مقصد دا وو چه دې د مکمل یقین کوونکو نه شي. نو چه کله په هغه شپه شوه نو هغه یو ستورې اولیدو. وې وئیل چه: دا زما رب دې بیا چه کله هغه فنا شو نو ده ووئیل چه زه د فنا کیدونکو سره مینه نه کوم بیا چه کله دوی سپوږمۍ لره پړقیدونکي اولیده نو وې وئیل چه

: دا ځما رب دي. ليکن چه کله هغه هم پرېوتله نو وې وئيل چه که چرې ځما رب ما ته هدايت ونکړي نو ځه به يقيناً د ګمراهانو نه شم. بيا چه کله ده لمر پرقيدونې اوليدو نو وې وئيل چه : دا ځما رب دې دا ډېر لوئ دې بيا چه کله هغه پرېوتلو نو وې وئيل چه، اې ځما قومه ! کوم کوم څيزونه چه تاسو د الله په خدايۍ کښې شريک کوئ نو ځه د هغې ټولو نه بېزاره يم ما خو پوره يکسو يې سره خپل مخ هغه ذات طرف ته کړې دې چه هغه اسمانونه او زمکې پيدا کړي دي او ځه د شرك کونکو نه نۀ يم. او (بيا دا وشول چه) د هغه قوم د هغه سره جګړه شروع کړه ابراهيم عليه السلام (دوی ته) ووئيل چه آيا تاسو ما سره د الله په باره کښې جګړه کوئ حال دا چه هغه ما ته هدايت کړې دې؟ او کوم څيزونه چه تاسو د الله سره شريك کوئ ځه د هغې نه نۀ وېرېږم (چه هغه به ما ته څه نقصان را کړي) خو که ځما پروردګار (ما ته) څه (نقصان را کول) وغواړي (نو هغه به هر حال کښې را رسي) ځما د پروردګار علم په هر يو څيز احاطه کړې ده. آيا تاسو بيا هم څه نصيحت نه قبلوئ؟ او کوم څيزونه چه تاسو د الله سره شريك کړي دي ځه د هغې نه څنګه وېرېږم حال دا چه تاسو دې څيزونو لره دالله سره شريك کولو نه نه وېرېږئ چه د هغې په باره کښې په تاسو هغه څه دليل نه دې رالېږلې؟ اوس که تاسو سره څه علم وي نو ښکاره ئې کړئ چه په مونږ دواړو ډلو کښې کوم يو د بې وېرې اوسېدو زيات مستحقه ده؟

**خلاصه تفسير**

﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ ءَازَرَ ﴾ او هغه وخت هم ديادلو جوګه دے کله چه ابراهيم عليه السلام خپل پلار آزر [نومې] ته اوفرمائيل ﴿ أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا ءَالِهَةً ﴾ چه آيا ته بتانو لره معبودان ګرځوے ﴿ إِنِّىٓ أَرَىٰكَ وَقَوْمَكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ۝ ﴾ بيشکه زه تا اوستا ټول قوم لره [چه په دې عقيده کښې درسره شريك دی] په ښکاره غلطۍ کښې وينم [اودستوروپه باره کښې به دے نه روستو خبرے اترې کول راځی په مينځ مينځ کښې دحضرت ابراهيم عليه السلام دنظر صحيح والۍ بيانولے شی چه مخکښې روستو دواړو سره تعلق لری فرمائی] ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُرِىٓ إِبْرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ او مونږ په هم دغسې [کامل] شان ابراهيم عليه السلام ته د آسمانونو او زمکې مخلوقات [دمعرفت په نظر] اوخودل ﴿ وَلِيَكُونَ مِنَ ٱلْمُوقِنِينَ ۝ ﴾ دپاره دے چه هغوی [دخالق ﷻ د ذات او صفتونو] پيژندونکے جوړ شی اودپاره ددې چه [د معرفت د زياتيدو له وجے] دکامل يقين کوونکونه شی. [اوس دستورو په باره کښې به خبرے اترې کيږی په کومو چه مناظره ختميږی ولے چه ددې نه مخکښې د بتانو په باره کښې خبرے اترې اوشوے] بيا [په دغه ورځ ياپه بله ورځ] ﴿ فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ ٱلَّيْلُ رَءَا كَوْكَبًا ﴾ کله چه دشپې تياره په هغوی [او دغه شان په ټولو] خوره شوه نو هغوی يو ستورے اوکتو [چه ځليدو] ﴿ قَالَ هَٰذَا رَبِّى ﴾ هغوی [خپل قوم ته مخ کړو او ورته ئې] اوفرمائيل چه [ستاسو دخيال په مطابق] دا زما [او ستاسو] رب او [د حالاتو بدلولو اختيار مند] دے [ډېره ښه ده اوس لږ وخت کښې به حقيقت معلومه شی چنانچه لږه شيبه پس هغه په افق کښې پټ شو] ﴿ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَآ أُحِبُّ ٱلْءَافِلِينَ ۝ ﴾ نوکله چه هغه ډوب شو نو هغوی اوفرمائيل چه زه ډوبيدونکو سره مينه نه لرم [او رب ګنړلو سره محبت لازمی دې نو حاصل دادې چه زه ئې رب نه ګنړم] ﴿ فَلَمَّا رَءَا ٱلْقَمَرَ بَازِغًا ﴾ بيا [پدغه شپه کښے يا څه په بله شپه کښې] چه کله ئې سپوږمۍ اوليدله [چه] ځليدوونکے [راختلی شوې وه] ﴿ قَالَ هَٰذَا رَبِّى ﴾ نو [هم د ړومبي پشان] وے

فرمائیل چه [ستاسو دخیال په جوړ] دا زما [او ستاسو] رب [او د حالاتو بدلوونکے] دے [ابنه ده اوس لړه شیبه کښې ددې شان هم اوګورئی] ﴿ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَىِٕنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ رَبِّيْ ﴾ نوهرکله چه هغه هم ډوب شو نو هغوی اوفرمائیل چه که ماته زما [حقیقي] رب په مخه هدایت نه کوی [څنګه ئې چه تراوسه راته په مخه کوی] ﴿ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ ۝ ﴾ نو زه به هم [ستاسو پشان] په ګمراه خلقو کښې شم ﴿ فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً ﴾ بیا [که دسپوږمۍ او ستوری قیصے دواړو دیوشپې وی نوهم د هغه په صبا اوکه دا بیله بیله شپه وی نو د سپوږمۍ دشپې په صبا یا دڅه دبلے شپې په صبا کښې] چه کله ئې نمر اولیدو [په ډیر شان شوکت سره] پرقیدونکے [راختلے وو] ﴿ قَالَ هٰذَا رَبِّيْ هٰذَآ اَكْبَرُ ﴾ نو [دړومبی دوو خلو پشان بیا یې] اوفرمائیل چه [ستاسو دخیال په جوړ] دا زما [اوستاسو] رب [اود حالاتو بدلوونکے] دے [او] دا خو په ټولو [ذکر شوؤ ستورو] کښې لوئې دے [په دې باندې به خبره خلاصه شي چه که ددې رب کیدل باطل شونو د وړو به ددې نه په اوچته پیمانه باطل شي. غرض دا چه په ماښام کیدو باندې هغه هم ډوب شو] ﴿ فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ۝ ﴾ نوکله چه هغه ډوب شو هغوی اوفرمائیل چه بیشکه زه ستاسو دشرك نه ویزاره [او کرکه کوونکې] یم [یعنی ویزاری ترے ښکاره کوم داعتقاد په وجه خو همیش دپاره ترے ویزار ووم].

زه [دټولو طریقو نه] ﴿ اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ ﴾ یو مخیز کیدوسره خپله مخه د [ظاهر او د زړه] هغه [ذات] طرف ته [کول تاسوته ښکاره] کوم ﴿ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا ﴾ چا چه آسمانونه او زمکه پیداکړل ﴿ وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ ﴾ او زه [ستاسو پشان] دشرك کوونکو نه نه یم [نه داعتقاد اونه د قول او عمل له مخے] ﴿وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ﴾ او هغوی سره دهغوی قوم [عبث] حجت کول شروع کړل [هغه داچه دا پخوانۍ طریقه ده ﴿وجدنا اباءنا لها عابدين﴾ .اودخپلو معبودانو نه یې داسې هم اوویرولو چه هسې نه دوی درباندې څه آفت رانه ولی؟.لکه دهغوئ دې جواب پړے دلیل کیدیشی چه ﴿ولا اخاف الخ﴾.هغوی [د ړومبۍ خبرے په جواب کښې خودا] ﴿ قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّيْ فِي اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ﴾ اوفرمائیل چه آیا تاسو دالله ﷻ [دتوحید] په معامله کښې ماسره [باطله] حجت بازی کوئی حالاتکه هغه ماته [ددلیل نیولو صحیح] طریقه خودلے ده [چه ستاسو مخے ته مے پیش کړه او ددې دلیل نیولو جواب یواځې دانشی کیدلې چه دا زړه طریقه ده تاسو دا دلیل نیول بیکاره او زما په نزد ددې جوګه نه دی چه مخه وروسے یوړلے شی] ﴿ وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖٓ ﴾ او [دبلے خبرے په جواب کښې ئې دا اوفرمائیل چه] زه هغه څیزونه کومولره چه ستاسو الله ﷻ سره [دعبادت په حقدارۍ کښې] شریکان جوړ کړیدی نه ویریږم [چه هغه ماته څه جنجال راپیښ کړې شی ولے چه هغوی کښې د قدرت صفت نشته اوکه یو څیز کښې قدرت هم وی نوهغه مستقل نه وی] ﴿ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّيْ شَيْــًٔا ﴾ لیکن که زما پروردګار څه کار کول غواړی [نو هغه بله خبره ده چه هغه به اوشی نوداترے کله لازمه شوه چه ددغې باطلو معبودانو لره قدرت یعنی طاقت ثابت شو یا ترے ویره کول ضروری شو او] ﴿ وَسِعَ رَبِّيْ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴾ زما پروردګار [څنګه چه قادر مطلق دے څنګه چه ددغې څیزونو نه معلومه شوه دغسې هغه] هر څیز لره دخپل علم په ګیره کښې [هم] راوستې دے [غرض دا چه قدرت او علم دواړه هم هغه سره خصوصیت لری.اوستاسو معبودان خو قدرت نه لری اونه دوی علم

لري] ﴿ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴾ آیا تاسو [آورئ او] بیا [هم] خیال نه کوئ [او څنګه چه زماد نه ویریدو وجه داده چه هغه ستاسو معبودان دعلم او قدرت نه خالي دی بله دا هم ده چه ماداسې څه کار هم نه د کړې چه دهغې په وجه اوویریږم نوبیا] ﴿ وَكَيْفَ اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ ﴾ زه ددغه څیزونو نه څنګه اوویریږم چالره چه تاسو [الله سره دعبادت په حقدارئ او درب والي په اعتقاد کښې] شریك جوړ کړي دی حالانکه [ویریدل تاسو لره ددوو وجو نه پکار دی. اول ددے وجې نه چه تاسو دویرے کاریعنی شرك کړې دې په کوم چه عذاب ورکولې شي. دویم ددې وجې نه چه تاسو ته دالله ﷻ قادرکیدل او عالم کیدل ثابت شوی دی مګر] ﴿ وَلَا تَخَافُوْنَ اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ ﴾ تاسو ددې خبرے [وبال] نه نه ویریږئ چه تاسو الله ﷻ سره داسې څیزونه شریکان ګرځولي دي ﴿ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ﴾ چه په هغې [دهغې په معبودکیدو] باندې الله ﷻ په تاسو باندې څه دلیل [لفظي طور یا معنوي طور] نازل کړې نه دې [مطلب دا چه تاسو لره ویریدل پکار دی مګر ددې په خلاف ما ویروی] ﴿ فَاَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ﴾ نو [ددې تقریر نه پس ښه سوچ اوکړئ اوپه انصاف سره اوښائی چه] ددغې دوؤ [ذکر شوؤ] ډلو نه [یعنی دمشرکینو او موحدینو نه] دامن [یعنی دبے ویرے کیدو] زیات حقدار څوك دے [او ویره هم هغه چه په واقع کښې اعتباري دی یعنی آخرت] ﴿ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴾ که تاسو [څه] خبر لرئ.

## معارف اومسائل

ددې آیتونونه په رُومبو تیرشوؤ آیتُونوکښې درسول الله ﷺ دخطاب بیان دې چه مُشرکینو دعربو ته ئې کړې ووا و د دې بلنې بیان وو چه دوئ دبت پرستی پریږدی اوصرف خُداپرستی دکوی-

اوس په دې آیتُونوکښې هم دحق ددغې بلنې تائید په یوخاص اندازکښې داسې کړې شویدې چه دعربو زړهٔ اوطبیعت ته هم ښه پریوؤځی-هغه دا چې حضرت ابراهیم علیه السلام دټولوعربو جد امجد دې اوټول عرب دهغوئ په تعظیم کولوباند تل دپاره متفق راروان دی. دې آیتونو مبارکو کښې د ابراهیم علیه السلام مناظره بیان شویده چه هغوئ دبُت پرستئ اوستاره پرستئ په خلاف خپل قوم سره کړې وه اوبیائې ټولوته دالله ﷻ دتوحید سبق ورکړې وو،

په رومبی آیت کښې دی چې حضرت ابراهیم علیه السلام خپل پلارآزرته فرمائیلی وؤ چه هرکله تاسو په خپلو لاسونوجوړکړی څیزونه خپل معبُودان ګرځولی دی څکه تاسو اوستاسوټول قوم لره په ګُمراهئ کښې وینم-

مشهوره داده چه آزرد حضرت ابراهیم علیه السلام د پلار نُوم دې ،خواکثروتاریخ دانو دهغه نُوم تارُخ ښودلې دې اوآزرئې دهغه لقب ښودلې دې امام رازی اوډپخوانوعلماؤیوټولی داوئیلی دی چه دحضرت ابراهیم علیه السلام د پلار نُوم تارُخ دې اود تره نُوم ئې آزروو،دې چه هرکله دنمرود وزیر جوړشو نوپه شرک کښې اخته شو، اوتره ته دعربئ په محاوره کښې پلاروئیل یوه عامه خبره ده اوهم ددغې محاورې په جوړئې آزرته ئې پلاروئیلی شوی دی-(۱) زرقانی په شرح مواهب کښې ددې ډیرشواهداومثالُونه نقل کړیدی-

۱) تفصیل دپاره وګورئ: تفسیر الرازي ج ۶، ص ۳۲۶ تحت هذه الآية

**دعقیده ودرست کولو اونیکو عملونوته بلنه ورکول دخپلې کورنۍ اوخاندان نه شروع کول پکاردي:-** آزرکه دحضرت ابراهیم علیه السلام پلار وواوکه تره، خو په نسب کښې دهغوئ یوعزتمن مشروو، چنانچه ابراهیم علیه السلام دټولونه اول دحق اودعوت بلنه ورکول دخپل کورنه شروع کړل څنګه چه رسول الله ﷺ ته هم ددې حُکم داسې شویدې: ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ [یعنی نزدې خپلوان دالله ﷻ دعذاب نه ویروه] اوهم په دې بنا هغوی، بیادټولونه اول خپل خاندان ته دحق بلنه ورکړې وه چه په کوه صفاباندې ئې دغې غرض دپاره راغونډ کړی وو-

په تفسیربحرمحیط کښې راغلی دی چه دې نه داهم معلومه شوه چه هرکله په یوخاندان کښې یوعزتمن ،بزرګ ددین په صحیح لاره نهٔ وی نوهغه ته دصحیح لارې اړخ ته بلنه ورکول دهغهٔ داحترام نه خلاف نهٔ دی بلکه د همدردئ او خیر خواهئ تقاضا هم ده،اوداهم تر معلومه شوه چه دحق بلنه ورکول اودا صلاح کاردخپلو قریبی خلقونه شروع کول دپیغمبرانو سُنت دی-(۱)

**دوه قومي نظرئې نظریه چه مسلمان یوه ولسه اوکافر بله ولسه ده:** په دې آیت کښې حضرت ابراهیم علیه السلام دخپل قوم اوخاندان نسبت خپل ځان ته اونکړوبلکه پلارته ئې اوفرمائیل چه ستاقوم په ګمراهئ کښې وینم، دااشاره یوې لوئې قربانئ ته هم شوه چه حضرت ابراهیم علیه السلام د الله ﷻ د رضا دپاره دخپلې مُشرک برادرئ نه بائیکاټ اوکړو اوپه خپل عمل سره ئې اوښودل چه مُسلم قومیت داسلام په رشته قائمیدې شی،نسبی اووطنی قومیتونه که دې سره ټکرخوری نوهغه ټول پرېښول پکاردی-

هزارخویش که بیګانه ازخُدا باشد فِدائے یکتن بیګانه کاشناباشد

**ترجمه:** په زرګونو هغه قریبان چې دالله ﷻ څخه ناآشنا وی قربان دې شی په یو هغه کس باندې چې دالله ﷻ سره آشنا وی.

قُرآن کریم دحضرت ابراهیم علیه السلام ددې واقعې په ذکرکولوسره راتلونکواُمتونوته داهدایت کړیدې چه په دې کښې ددهغوئ په پل باند روان شی لکه فرمائی:

﴿قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ [یعنی اُمت محمدیه لره دحضرت ابراهیم علیه السلام اودهغوئ دملګرو داعمل یوه بهترینه نمونه اودتابعدارئ کولوجوګه ده چه هغوئ خپلې نسبي اوقومي برادرئ ته صفااووئیل چه مونږ تاسونه اوستاسو دغلطو معبودانونه ویزاره یواوزمونږ اوستاسو ترمنځه دبُغض اودُشمنئ دیوال به ترهغې ولاړوي ترڅو چه تاسودیوالله ﷻ عبادت اختیارنکړئ]-

معلُومه شوه چه داهغه دوې قومي نظرئې دی چه پاکستان ئې جوړکړو ،دټولونه رُومبې ددې اعلان خلیل الله حضرت ابراهیم علیه السلام کړیدې،اُمت مُحمدیه اونوروټولو اُمتونوددغې هدایت مُطابق همدغه طریقه اختیارکړه ،اوپه عامه طریقه، په مسلمانانو کښې اسلامی قومیت مشهورشو-

دحجة الوداع په سفرکښې چه رسول الله ﷺ دیوې قافلې دخلقو نه دهغوئ دقومیت په باره کښې تپوس اوکړو نوهغوئ په جواب کښې عرض اوکړو: ﴿نحن قوم مسلمون﴾ [بخاری]-

---

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۱۵۸

په دې کښې دعربو دپخوانی دستور مطابق دیوې قبیلې یا یوخاندان دنوم اغستو په ځائې نې، مسلمون، اوونیل، اوهغه حقیقی قومیت ئې اوښولو چه د دنیانه آخرت پورې ورسره تلونکې دې۔
حضرت ابراهیم علیه السلام خودلته دخپلې برادرۍ نسبت خپل پلارته اوکړو اودخپلې ویزارۍ اعلان ئې اوکړو او کوم قام کښې چې د قام نه دخپلې بې زارۍ او تعلق ختمولو اعلان کول وو هلته ئې خپل ځان ته منسوب کړو اوداسې ئې اوفرمائیل: ﴿قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ﴾ [یعنی ای زما قومه ،زۀ ستاسو دشرک نه ویزاره یم] په دې کښې دې اړخ ته اشاره ده چه اګرکه دنسب اووطن په لحاظ، تاسوزما قوم یئ لیکن ستاسو مشرکانه فعلونو [کارونو] زۀ تاسونه په بائیکاټ کولوباندې مجبوره کړم.
هرکله چه دحضرت ابراهیم علیه السلام پلار دبرادرۍ خلق په دوه قسمه شرک کښې اخته وو، یعنی دبُتانو اوستورو عبادت کوونکی ووځکه هغوۍ په دغې دواړو خبرو خپل پلار او خپل قوم سره مناظره اوکړه۔
اول ئې دابیان اوکړو چه بُت پرستی ضلالت اوګمراهی ده اوورپسې ئې دابیان اوکړو چه ستوری دعبادت کولوجوګه نۀ دی اودې نه وړاندې په یوآیت کښې دتمهید په ډول باندې الله ﷻ دحضرت ابراهیم علیه السلام یوخاص شان اوپه علم اوبصیرت کښې ئې داعلی مقام بیان په دې شان اوفرمائیلو: ﴿وَكَذٰلِكَ نُرِیْٓ اِبْرٰهِیْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِیَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِیْنَ﴾ [یعنی مونږه حضرت ابراهیم علیه السلام ته دآسمانونو اوزمکې مخلوقات داشان اوښودل چه ددې ټولوڅیزونو حقیقت په ډاګیزه الفاظو کښې معلوم شی اودهغې یقین ئې مکمل شی چنانچه ددې په نتیجه کښې ورپسې آیتونو دعجیبه شان مناظرې په شکل کښې داشان بیان کړیدې۔
**په دعوت او تبلیغ کښې دحکمت اوتدبیرنه کاراخستل دانبیاؤ سُنت دی:** ﴿فَلَمَّا جَنَّ عَلَیْهِ الَّیْلُ رَاٰ كَوْكَبًا﴾ [یعنی یوه شپه چه تیاره خوره شوه اوپه یوستوری ئې نظرپریوتونوخپل قوم ته ئې دآذرولو دپاره اوونیل چه ،داستورې زمارب دې] مطلب ئې داوو چه ستاسو دخیالاتو اوعقیدوله مخې هم دا [ستورې] زما اوستاسورب [پالونکې] دې ـــــ اوس په لږساعت کښې ددې حقیقت اوګورۍ چنانچه څه لږه شیبه پس چه هغه ډوب شونوحضرت ابراهیم علیه السلام ته په قوم باندې دحجت قائمولو ډاګیز موقعه په لاس ورغله اووې فرمائیل: ﴿قَالَ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِیْنَ﴾ ،افلین،د افُول، نه جوړشویدې چه معنی ئې ډوبیدل دی۔
مطلب ئې دادې چه زۀ ډوبیدونکوڅیزونوسره مینه نۀ لرم اوڅوک چه خُدائ یا معبُود جوړ کړې شی نوهغه دټولونه زیات دمینې اولوېۍ حقدارشی چنانچه مولانارومی په یوشعرکښې هم دا واقعه داسې بیان کړیده:

خلیل آسادرِ مُلکِ یقیں زن　　　نوائے لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِیْن زن(۱)

بیا چرته په بله شپه کښې ورته ځلیدونکې سپوږمۍ ښکاره شوه نوبیائې خپل قوم ته د آذرولو دپاره هم هغه طریقه اختیارکړه اووې فرمائیل: [ستاسو دعقیدو په جوړ] دازمارب دې خوددې حقیقت به هم، څه شیبه پس مخې ته راشی، چنانچه هرکله سپوګمۍ چه ډوبه شوه نووې فرمائیل چه که زمارب ماته هدایت نۀ کولې نوزۀ به هم ستاسوپشان په ګمراهانو کښې داخل شوې وم او هم دغه سپوګمۍ به م خپل رب اومعبود ګنړلولیکن په راختو اوډوبیدو سره ددې بدلیدونکو حالاتو زۀ په دې خبردارکړم چه دا ستورې هم دعبادت جوګه نۀ دې۔

(۱) اې ابراهیم! دیقین په بادشاهۍ کې هسا اووهه د لا احب الآفلین آواز اولګوه.

په دې آيت کښې ئې دې اړخ ته هم اشاره اوکړه چه زمارب څه بل شې دې چه دهغه دا ړخه راته هدايت کيږي-
بيائې چرته يوورځ چه نمر په راختوکښې اوليدونوبيائې قوم ته دا ؤرولو دپاره هم په هغه طريقه اوفرمائيل چه [ستاسو دخيال په مطابق] دازمارب دې اوداخودټولونه زيات لوئې دې خوددې حقيقت اوشان به هم زرترزره ستاسومخې ته راشي، هرکله چه نمرهم په خپل وخت باند ډوب شونوپه خپل قوم باند ئې دآخري حُجت تماموولونه پس اوس اصلي حقيقت په ښکاره ډول داسې بيان کړو: ﴿يٰقَوْمِ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ۝﴾ [يعنې اې زماقومه زهٔ ستاسو ددې مُشرکانه خيالاتونه ويزاره ئيم چه تاسودالله ﷻ مخلوقات هغه سره په خدايئ کښې شريک ګرځولي دي]دې نه پس ئې دا حقيقت اوښودلو چه په دې ټولومخلوقاتو کښې هيڅوک زمااوستاسورب [پالونکې] نشي کيدې ځکه چه داپه خپل وجود کښې دنورومحتاجه دې اوهروخت په خپلوښکته کيدو او د راختو او ډوبيدوپه تغيراتو بدلونوکښې راګيردي، بلکه زمونږ دټولورب هغه دې چه آسمانونه اوزمکه او په دې کښې پيداکيدونکې ټول مخلوقات ئې پيداکړيدي ځکه م خپله مخه ستاسو دجوړکړو بتانو اوپه بدليدواواثرقبلولو کښې راګير شوؤ ستورونه راؤګرځوله اوبواځې خُدائې اړخ ته م کړيده اوزهٔ ستاسو پشان دمُشرکانو ځخه نهٔ يم-
دمُناظرې په دې واقعه کښې حضرت ابراهيم عليه السلام دپيغمبرانه حکمت اووعظ نصيحت نه کار واغستو اوپه يوځل ئې ددوئ نجوم پرستئ ته په غلطه ياګُمراهي اونهٔ فرمائيله بلکه داسې يو اندازئې اختيارکړو چه دهرعقلمند انسان زړهٔ اودماغ تراثرقبول کړي اوبخپله حقيقت اوپيژني، البته دبت پرستئ په خلاف په خبره کولوکښې ئې سختي اختيارکړه اودائې ښهٔ په ډاګه بيان کړل چه پلار اوټول قوم م په ګُمراهئ کښې دې، وجه ئې داوه چه بُت پرستي دعقل نه بهر په ډاګه يوقسم ګُمراهي ده، په خلاف دستاره پرستئ نه چه دهغې ګُمراهي دومره واضحه اوپه ډاګه نهٔ وه-
دلته داخبره هم دغورفکرکولوجوګه ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام دستاره پرستئ په خلاف، دخپل قوم په وړاندې چه کوم استدلال بيان کړيدې دهغې حاصل دادې چه کوم څيز بدلون قبلوي، حالات ئې بدليږي رابدليږي اوپه خپلوحرکاتو کښې ديويل طاقت تابع وي، هغه ددې جوګه نشي ګرځيدې چه خپل رب جوړکړيشي، چنانچه دې دپاره دستورو دراختو ډوبيدو او د منځني ټولوحالاتونه دليل نيولې شو چه داپه خپلوحرکاتو کښې خودمُختاره نهٔ وي، دچادحُکم تابع دي په يوخاص روش باند چليږي، ليکن حضرت خليل الله عليه السلام په دې ټولوکښې ددې د ډوبيدوحالت دليل نيولو دپاره پيش کړو، ولې چه ددې ډوبيدل دعوامو په نظرکښې يوقسم ددې زوال ګڼړلې شي او دانبياؤ عليهم السلام ددليل نيولو عام اندازداسې وي چه دعوامو په ذهنونوباند اثر غورځوي هغه فلسفي حقيقتونه نهٔ بيانوي بلکه دعامو ذهنونو په جوړخطاب کوي، همدغه وجه ده چه دستورو دبې وسئ اوبې اثرئ ثابتولودپاره ئې ددې ډوبيدل خلقوته راوړاند کړل ورنه هسې خوددې بې وسي ددې راختونه هم ثابتولې شوه اوورپسې څومره بدلونونه چه مخې ته راځي دهغې نه هم دليل نيولې کيدې شو-

**داسلام تبليغ کوونکو دپاره خوهدايات:** دحضرت ابراهيم عليه السلام دمُناظرې ددې طرز نه عُلماؤ او مُبلغينودپاره يو څو ضروري هدايات حاصل شو اول داچه قومونه ته تبليغ کولواودهغوئ د اصلاح دپاره نهٔ خوهرچرته سختي مُناسب ده اونهٔ هرچرته نرمي- بلکه هريو دپاره يوموقعه او حد وي چنانچه دبُت پرستئ په باره کښې حضرت خليل الله عليه السلام سخت الفاظ ځکه استعمال کړيدي

چه داګمراهي ئې دخلقو په ليدلو کتلو کښې راخی اودستاره پرستئ په باره کښې ئې څکه سخت الفاظ استعمال نکړل چه دستورو اوسيارو بې وسی اوبې اختياري دومره واضحه اوښکاره نه وه څومره چه دخپلوجوړکړوبُتانو وه، بلکه په يو تدبيرسره ئې دمعاملې حقيقت دقوم په ذهن کښې کښينولو - دې نه معلومه شوه چه هرکله عوام په داسې يوغلطئ اوګمراهئ کښې اخته وی چه په عامو نظرونو کښې واضح نۀ وی نوعالم اوتبليغ کوونکی لره پکاردی چه دسختئ کولوپه ځائې ددوئ دشبهاتولرې کولوځه تدبير اوکړی-

بل هدايت پکښې دادې چه حضرت ابراهيم ؏ دحق اوحقيقت ښکاره کولو دپاره قوم ته نيغ په نيغه داسې اونۀ فرمائيل چه تاسوداسې کوئ، بلکه خپل حال ئې ورته اوښودلو چه زۀ خوهغه څيزونه معبودان نشم ګرځولې چه دراختواوډوبېدو په چکرونو کښې ګير وی څکه م خپله مخه داسې هستئ ته راګرځولې ده چه داټول څيزونه ئې پيداکړی اوددې پالونکې دې-اصل مقصد خونې هم دوئ ته وئيل وو چه تاسولره هم دغسې کول پکادی، خوحکيمانه اندازکښې ئې هغوئ لره نيغ په نيغه څکه مخاطب نکړل چه هسې نۀ په ضدشي- دې نه معلومه شوه چه مبلغ باند لازم دی چه هغه په داسې اندازکښې تبليغ کوی چه په خلقو باند ښه اثرغورځوی داسې نۀ چه حق خبره صرف په خپله خوښه سره خلقو ته بيانوی-

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ

هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | اوګډوډئې نه کړو | ايمان خپل | دظلم سره | دغه کسان چې دی |

چاچې ايمان راوړې دې | اوخپل ايمان ئې ظلم [شرک] سره نه دې ګډ کړې | نوهم دغه خلق

لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۝ وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ

هم هغوئ لره دې | امن | اوهغوئ | نيغه لارموندونکی دی | اودغه وۀ | دليل زمونږه

په امن کښې دی | ..............اوهم دوی په سمه لار روان دی | ............دا زمونږ هغه دليل وو

اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ

چې ورکړې وومونږه هغه | ابراهيم ؏ ته | په مقابله | دقوم دهغه کښې | اوچتوومونږ | په درجو کښې

چې ابراهيم ؏ ته مودقوم مقابله کښې ورکړې وو | اومونږ دهغه خلقو درجې اوچتوو

مَّنْ نَّشَآءُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ۝ وَوَهَبْنَا

هغه خوك | چې اوغواړو مونږه | بيشکه | رب ستا | صاحب دحکمت دې | پوهه دې په هرڅه | اوورکړو مونږه

چې دچا باره کښې زمونږ خوښه شی | بيشکه رب ستادحکمت خاوند | او په هرڅه پوهه دې | اومونږ

لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوْحًا هَدَيْنَا

هغه ته | اسحاق | اويعقوب | هر يو ته | اوښودله مونږه لار | اونوح ؏ ته | ښودلی وه مونږه لار

ورله اسحاق اويعقوب ؏ [اولاد] ورکړل | اوهريوته موسمه لار اوخودله | [او ددوئ نه] پخوامونوح ؏ ته

مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ

وړاندې دهغه نه | اوداولاد دهغه نه | داود ؏ ته | اوسليمان ؏ ته | اوايوب ؏ ته | اويوسف ؏ ته

اوخودله | او بيامودهغه اولاد کښې داود ؏ ته.........او سليمان ؏ ....او ايوب ؏..... او يوسف ؏

وَمُوسٰى وَهٰرُونَ ۚ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٤﴾

اوموسی (ع) ته | اوهارون (ع) ته | او دارنګې | بدله ورکوونکي مونږ | نیکانوخلقوته

اوموسی (ع) ..... او هارون (ع) ته خودلې وه | ............ اودغه شان مونږ نیکانوته بدله ورکوو

وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيسٰى وَإِلْيَاسَ ۚ كُلٌّ

اوهدایت اوکړومونږ زکریا (ع) ته | اویحیی (ع) ته | اوعیسی (ع) ته | اوالیاس (ع) ته | داټول

اوزکریا (ع) او یحیی (ع) او عیسی (ع) او الیاس (ع) ته موخودلې وه | دا ټول [پیغمبران]

مِّنَ الصّٰلِحِينَ ﴿٨٥﴾ وَإِسْمٰعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ

دنیکانونه وو | اوهدایت اوکړو مونږ اسماعیل (ع) ته | اوالیسع (ع) ته | اویونس (ع) ته

د صالحانو ځني وو | ............ او اسماعیل (ع) ............ او الیسع (ع) ............ اویونس (ع)

وَلُوطًا ۚ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِينَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ اٰبَآئِهِمْ

اولوط (ع) ته | اوهریو ته فضیلت ورکړومونږه | په مخلوقاتوباندې | اودپلارانودهغوی نه

اولوط ته موخودلې وه | او دوی کښې هریوته مونږ دهغه زمانې په خلقو فضیلت ورکړې وو | اوددوی بعضو پلرونو

وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَإِخْوٰنِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ

اوداولاددهغوی نه | اودرونړو دهغوی نه | اوغوره کړل مونږه هغوی | اونیغ برابر کړل مونږه هغوی |

اودبعضو اولاد او د بعضو رونړوته مو فضیلت ورکړې وو | او غوره کړی وو مونږ | او په

إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٨٧﴾ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِي بِهٖ مَنْ

لارې | نیغې ته | دا | هدایت دې دالله | نیغه لارښائی | په دې سره | هغه چاته

نیغه لار موروان کړی وو | ........ دغه دالله (ج) هدایت دې | چې چاته ئې په خپلو بندګانو

يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ

چې خوښ ئې شی | دبندګانوخپلونه | اوکه چرې | شرك کړې وې دوی | نوخامخا به ضائع شوې وو ددوی

کښې خوښ شی نوهغه ته ئې ورکوی | خوکه دې خلقوشرك کړې وې نوخواه مخواه

مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٨٨﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ اٰتَيْنٰهُمُ

هغه عملونه | چې وو دوی | چې کول به ئې | داپیغمبران | هغه کسان وو | چې ورکړې وو مونږ هغوی ته

به ئې ټول عملونه ضائع شوې وو | ............ داهغه کسان دی چې مونږ ورته ............

الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ فَإِنْ يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ

کتاب | اوحکم | اونبوت | نوکه چرې | انکارکوی | د دې نعمت نه | دا خلق

کتاب او حکمت او پیغمبری ورکړې وه | ...نوکه داخلق ددې [قرآن] نه انکار اوکړی

فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا بِكٰفِرِينَ ﴿٨٩﴾

نوپه تحقیق سره | مقرر کړې دې مونږ | په دې نعمت سره | یوداسې قوم | چې نه دی هغوی | دهغې نه | انکارکونکی

نومونږ به دا نعمت داسې خلقو ته اوسپارو | ............ چې هغوی د دې نه منکر نه دی

## آسان ترجمه قرآن

(حقیقت خو دا دي چه) کومو خلقو ایمان راوړي دي او هغوی دخپل ایمان سره د ظلم څه ګډون نه دي کړي امن او آرام خو دهغوی حق دي او هم هغوی په سمه لاره دي. دا څمونږ هغه کامیاب دلیل وو چه مونږ ابراهیم علیه السلام ته هغه د قوم په مقابله کښې ورکړي وو. مونږ دچا چه وغواړو نو درجې اوچتوو. بې شکه ستا د رب حکمت هم لوئې دې او علم هم کامل دې او مونږ ابراهیم علیه السلام ته د اسحاق (په شان ځوی) او د یعقوب علیه السلام (په شان نمسې) ورکړو او دوی کښې هر یو ته مونږ هدایت کړې وو او نوح علیه السلام ته مونږ مخکښې هدایت کړې وو او د هغوی د اولاد نه داؤد، سلیمان، ایوب یوسف، موسیٰ او هارون ته هم ــ دغه شان مونږ نیک عمل کوونکو ته بدله ورکوو. او زکریا یحییٰ، عیسیٰ او الیاس ته (هم هدایت ورکړو) دا ټول د نیکانو خلقو نه وو. او اسماعیل، یسع یونس او لوط ته هم ــ دې ټولو ته مونږ د دنیا په خلقو باندې فضیلت ورکړې وو. د دوی پلار نیکه او د دوی اولاد ته او د دوی د ورونړو نه هم ډیرو خلقو ته مونږ دې ټولو لره غوره کړې وو او سمې لارې ته مو رسولي وو. دا دالله ورکړې شوې هدایت دې چه د خپلو بندګانو نه چاته وغواړي نو سمې لارې ته ئې رسوی او که دوی شرک کړې وې نو ددوی ټول (نیک اعمال) به برباد شوي وو دا هغه خلق وو چه دوی ته مونږ کتاب، حکمت او نبوت ورکړې وو او اوس که دا (د عربو) خلق ددې (نبوت نه) انکار وکړي نو (څه پرواه مه کوه، ځکه چه) ددې منلو د پاره مونږ داسې خلق مقرر کړی دی چه ددې منکر نه دي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَلَمۡ یَلۡبِسُوۡۤا اِیۡمَانَهُمۡ بِظُلۡمٍ﴾ کوم خلق چه [په الله ﷻ باندې] ایمان لري او خپل [دغه] ایمان شرك سره نه ګډوی هم داسې خلقو د پاره [په قیامت کښې] امن دے ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الۡاَمۡنُ وَهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ﴾ او هم دوی [په دنیا کښې په سمه] لار روان دی [او دوی صرف موحدین دی په خلاف د مشرکانو چه اګر که معنا لغوی سره په الله ﷻ باندې ایمان لری ځکه چه دالله ﷻ منوونکي دی لیکن شرك هم کوی چه ورسره شرعی ایمان نه پاتې کیږی. هر کله چه موحدین د امن جوګه دی نو په دې صورت کښې تاسو پخپله ویریږئی ما مه ویروئی حالانکه نه ستاسو معبودان د ویریدو جوګه دی او نه ما د ویرے څه کار کړې دې او نه د دنیا ویره د اعتبار جوګه ده. او ستاسو حالت په دریے واړو اعتبارو سره د ویرے محل دې] ﴿وَتِلۡكَ حُجَّتُنَاۤ اٰتَیۡنٰهَاۤ اِبۡرٰهِیۡمَ عَلٰی قَوۡمِهٖ﴾ او دا [حجت کوم چه ابراهیم علیه السلام په توحید باندې قائم کړې وو] زمونږ [ورکړې] حجت وو مونږ ابراهیم علیه السلام ته دهغوی د قوم په مقابله کښې ورکړې وو [هر کله چه دا مونږ ورکړې وو نو یقینی طور دا د اعلیٰ درجے وو او د حضرت ابراهیم علیه السلام څه تخصیص دی] ﴿نَرۡفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنۡ نَّشَآءُ﴾ مونږ [خو] چا لره چه غواړو په [علمی او عملی] مرتبه کښې ئے زیاتوو [چنانچه تولو انبیاء کرامو ته مو د درجو دا لوړ والے ورکړو] ﴿اِنَّ رَبَّكَ حَكِیۡمٌ عَلِیۡمٌ﴾ بیشکه ستاسو رب د لوئې حکمت خاوند دے [چه د هریو حال او استعداد پیژنی او هر چاته د هغه مناسب کمال ورکوی].
﴿وَوَهَبۡنَا لَهٗۤ اِسۡحٰقَ وَیَعۡقُوۡبَ﴾ او [مونږ څنګه چه ابراهیم علیه السلام ته د علم او عمل ذاتی کمال ورکړو دغه شان اضافی کمال مو هم ورکړو چه دهغې د اصولو [پلار نیکه او بره نیکوه] او فروعو [اولاد او نوسی کړوسی او لاندې سلسله] سره ئے ډیر و ته کمال ورکړو چنانچه] مونږ هغوی ته [یو ځوئے]

اسحاق ورکړو او [یونمسی] یعقوب [ورکړو اوددې نه دنور اولاد نفی نه کيږی اود دوارو صاحبانو نه] ﴿ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوحًا هَدَيْنَا مِن قَبْلُ ﴾ هريو ته [دحقے طريقے] مونږ هدايت اوکړو او [ابراهيم نه] مخکښې زمانه کښې مونږ نوح ﷺ ته [چه د ابراهيم ﷺ په نيکونو کښې کيدل مشهور دی او د اصل فضيلت په فرع کښې هم اثر لری دحقے لارې] هدايت اوکړو ﴿وَمِن ذُرِّيَّتِهِ دَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسَىٰ وَهَارُونَ ۚ﴾ او دهغوی [ابراهيم ﷺ] د [لغوی يا عرفی ياشرعی] اولاد نه [تر آخره پورې خومره چه ذکر شويدی ټولو ته مو دحقے لارې هدايت اوکړو يعنی] داود ﷺ ته او [دهغوی خوئې] سليمان ﷺ ته او ايوب ﷺ ته اويوسف ﷺ ته او موسی ﷺ ته او هارون ﷺ ته [دحقے لارې هدايت مو اوکړو] او [هرکله چه دوی په هدايت روان شو نو مونږ ورته غوره بدله ورکړه لکه د ثواب او دزيات نزديکت بدله او څنګه مو چه په نيکو کارونو ورته جزا ورکړه] دغه شان [زمونږ عادت دے چه] ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۚ﴾ مونږ نيکو کارو ته [مناسبه] جزا ورکوو ﴿وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَىٰ وَعِيسَىٰ وَإِلْيَاسَ ۖ كُلٌّ مِّنَ الصَّالِحِينَ ۝﴾ اودغه شان [مونږ دحقے لارې هدايت اوکړو] زکريا ﷺ ته او د [هغوی خوئې] يحيی ﷺ ته او عيسی ﷺ ته او الياس ﷺ ته [او دې] ټول [حضرات] په پوره سپيڅلی خلقوکښې وو ﴿ وَإِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا ۚ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ ۚ﴾ او دغه شان [مونږ دحقے لارې هدايت اوکړو] حضرت اسماعيل ﷺ ته او يسع ﷺ ته او يونس ﷺ ته اولوط ﷺ ته او [ددوی نه] هريو ته [ددغې زمانو] ټول اهل جهان باندې [په پغمبرئی سره]. مونږ فضيلت ورکړو.

﴿ وَمِنْ آبَائِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ ۖ﴾ او دغه شان ددوی [ذکر شوؤ حضراتو] څه پلرونو نيکونو ته او څه اولاد ته اوڅه رونړو ته [مونږ دحقے لارې هدايت اوکړو] ﴿وَاجْتَبَيْنَاهُمْ وَهَدَيْنَاهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ۝﴾ او مونږ هغوی ﷺ [ټولو] ته دنيغے لارې [يعنی دحق دين] هدايت اوکړو [او هغه دين چه ټولو ته دهغې هدايت شوې وو] ﴿ ذَٰلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ۚ﴾ دالله ﷻ [دطرفه هدايت چه کيږی] هغه هم دا [دين] دے دخپلو بندګانو نه چاته چه اوغواړی ددې هدايت [يعنی منزل ته درسولو په صورت کښې] کوی [چنانچه اوس چه څوك خلق موجود دی هغوی ته هم ددې هدايت په دې معنا سره اوشو چه هغوی‌ته ئې صحيح لار اوخودله بيا منزل ته رسيدل يانه رسيدل دهغوی کار دې] مګر ددوی نه بعضو خلقو ددې هدايت په [پرينبودو سره شرك اوکړو] او [شرك دومره ناخوښه څيز دے چه غير انبياء ﷺ خو لا پريږده] ﴿وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝﴾ که بالفرض دوی [يعنی دغه پيغمبران ﷺ] هم [نعوذبالله] شرك کولے نو څه چه به دوی [نيك] عمل کولو هغه به ټول عبث ګرځيدلی وو [وړيسے د پيغمبرئی مسئلے ته اشاره ده چه] ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ﴾ دا [څومره چه بيان شو] داسې وو چه مونږ دوی [دخيرمے] ټولوته [آسمانی] کتاب او [علمونه د] حکمت اوپيغمبرئی ورکړې وه [او پيغمبری خو داسې څه عجيبه څيز نه دې چه دا کافران خلق تاسو نه انکار کوی ولے چه ددې نظير نشته دې] نوکه [دنظير په موجود والی هم] ﴿ فَإِن يَكْفُرْ بِهَا هَٰؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ ۝﴾ دا خلق [ستاسو] دپيغمبرئی نه انکار اوکړی نو [تاسو غم خکه مه کوئی چه] مونږ ددې [دمنلو] دپاره داسې ډير خلق مقرر کړی دی [يعنی مهاجرين اوانصار] چه ددې منکر نه دی.

## معارف او مسائل

دتیروشوؤ آیتُونو څخه په ړومبی آیتُونو کښې دحضرت ابراهیم علیه السلام دهغه مُناظرې بیان وو کومه ئې چه خپل پلار آزر او دنمرود ټول قوم سره کړې وه، په هغې کښې ئې ورته دبُت پرستۍ او ستاره پرستۍ په خلاف یقینی شهادتُونه وړاندې کړی وو او وادانې هم ورته فرمائیلی وو چه تاسو مالره د خپلو بتانونه داسې ویروئ چه دهغې نه په انکار کولو به هغه مالره برباد کړی سره ددې چه دبتانو خو دسره دغه وس نهٔ رسی او نهٔ ماڅه داسې کار کړې دی چه دهغې په سزا کښې ماته څه مُصیبت راپیښ شی۔ او دانې ورته اوفرمائیل چه ویریدل خو تاسو له پکار دی خکه چه ستاسو جُرم ډیر سخت دې ولې چه دالله ﷻ مخلوقات بلکه د مخلوقاتو دلاس نه جوړ شوی څیزونه الله تعالی سره شریک کړی او برابر کړی دی، بیا هر بودعقل خاوند په دې پوره خبر دې چه الله ﷻ علیم، خبیر او قادر مُطلق دې اوس تاسو راته اووایئ چه دامن او اطمینان حقدار څوک دې او چالره ویریدل پکار دی؟

اوس ددې آیتُونو څخه په ړومبی آیت کښې دامضمُون راغلې دې چه عذاب نه په امن کیدل اومطمئن کیدل یواځې دهغه کسانو دپاره کیدې شی چه په الله ﷻ ایمان لری او بیا په خپل ایمان کښې دظلم ګډون اونکړی. چنانچه په حدیث شریف کښې راغلې دی چه ددې آیت په نازلیدو سره صحابه کرام او بوګنیدل اوعرض ئې اوکړو چه یارسول الله! په مونږ کښې څوک داسې کیدې شی چه دګناه کولو په وجه به ئې خپل ځان باند ظُلم نهٔ وی کړې، اودې آیت کښې الله ﷻ فرمائی چه دعذاب نه په امن کیدو شرط دادې چه ایمان سره ئې څه ظُلم نهٔ وی ګډ کړې، اوس به زمُونږ دخلاصی مُوندلو څنګاره چاره کیدې شی؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه تاسو ددې آیت مبارک په صحیح مفهوم باندې پوهه نه شوئی. ولې چه آیت کښې دظُلم نه مطلب شرک دې څنګه چه په بل آیت کښې فرمائی ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾[۱] په دې بنا دآیت مُراد داشو چه څوک دایمان راوړلو نه پس دالله ﷻ په ذات او صفتُونو کښې چالره شریک اونهٔ ګرځوی، هغه به دعذاب نه په امن او هدایت مُوندونکی وی۔

خُلاصه داده چه بیوقوفان خلق، بُتانو، اونو [درختو]، ستورو او دریابُونو لره اختیار مند ګنړی او دهغې عبادت کوی. او دعبادت په پریښودلو دې نه ویریږی چه څه نقصان بهٔ راورسی، حضرت خلیل الله ﷺ ورته دکانړی کربښه داسې په ګُته کړه چه هر کله رب العالمین ستاسو د هر کار نه خبر دې او ستاسو په ښه او خراب دواړو باند ښه پوره قُدرت لری دهغه نه خو تاسو نهٔ ویریږئ چه په نافرمانئ کولو به ئې درته څه زیان اورسی، او کوم څیزونه چه علم او قُدرت بیخی نهٔ لری هغې نه ویریږئ؟ دابې عقلی نهٔ ده نو نور څه دی؟ ویره یواځې دالله ﷻ نه کول پکار دی او څوک چه په هغه ایمان لری هغه ته هیڅ خطره نشته۔

﴿وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ﴾ څنګه چه رسول الله ﷺ په داګه فرمائیلی دی، دلته دظُلم نه مُراد شرک دې عامه ګُناه ترمُراد نهٔ ده خو هر کله چه، ظُلم، ئې نکره راوړلو نو دعربی ژبې دقواعدو له مخه ظُلم ئې عام کړو، یعنی دې نه مُراد هر قسم شرک شو ﴿يَلْبِسُوا﴾ د. لبس، نه جوړ دې چه معنی ئې اغوستل یاسره ګډول دی، په دې بنا دآیت مُراد دادې چه څوک خپل ایمان سره دڅه قسم شرک ګډون اوکړی یعنی الله ﷻ لره هم دکمال ټول صفتُونه منی او سره دهغې، غیر الله لره هم دهغې ځنې بعضې صفتُونه منی نو هغه ددې امن او ایمان نه خارج دې۔

[۱] صحیح البخاری، کتاب استتابة المعاندین، باب ما جاء فی المتأولین: ج ۲، ص ۱۰۲۵

ددې آيت نه معلومه شوه چه شرک يواځې دانه دې چه په ډاګه، شرک اوبت پرستي کوي بلکه هغه څوک هم مشرک دې چه داسلام کلمه وائي خوڅوک فرشته، رسول ياولي الله، الله سره دهغه په خاص صفتونو کښې شريکوي، اګرکه هغه څه بت ته سجده رکوع نه کوي اونه دهغې څه بل قسم عبادت کوي. په دې کښې هغه عوامو ته سخت خبرداري ورکول دي چه اولياؤ يا دهغوئ مزارونو او قبرونو لره حاجت رواګڼري، طوافونه ورباندې کوي د قبر کاڼرې په ځان مږي، خاورې يې ځان سره اوړي، ګډان، غوئې د قبر خوا کښې ذبح کوي وغيره. اودعمل نه ئې داځرګنديږي چه دوئ داسې ګڼري لکه چه خداي اختيارات ورته حواله شوي وي[نعوذبالله منه]-

په دويم آيت کښې الله ﷻ فرمائي چه هرکله حضرت ابراهيم عليه السلام په مناظره کښې په خپل قوم باند برراغلو اوهغوئ ئې بيخي چپ کړل نودازمونږانعام اواحسان وو چه صحيح نظريه ورکړه اودهغې ډاګيز دليلونه موورته اوښودل، هيڅوک دپه خپل عقل، پوهه ياتقرير اوفصاحت، بلاغت باندفخر اوناز ځکه نه کوي چه هيڅ يوکاردالله ﷻ دامداد نه بغيرڅوک نشي کولې، دلوړې پائې انساني عقل دحقيقتونومعلومولو دپاره کافي نه دې ولې چه په هردور اوزمانه کښې داليدلي کيږي چه لوئې لوئې ماهران، فلسفيان په ګمراهئ کښې ښکيل وي اوډير نالوستي اوبې علمه خلق دصحيح عقيدې اوصحيح نظرئې پابندوي لکه مولاناتئې رومي فرمائيلي دي-

بے عنایاتِ حق وخاصانِ حق　　　گرمَلک باشد سیه هستش ورق

[دالله ﷻ دمهربانتيو نه بغيردالله ﷻ دخاصانو پانړه هم توره وي اګرکه هغه فرشته هم وي]-

په آخردغې آيت کښې فرمائي: ﴿نَرۡفَعُ دَرَجَٰتٖ مَّن نَّشَآءُ﴾[يعني مونږه درجې دهغه چالوړوو چا دپاره ئې چه اوغوارو] په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام ته په ټول جهان کښې ترقيامته راتلونکونسلونوکښې داسې خاص مقام اوعزت ورکړې شوې وو چه يهوديان، عيسايان، مسلمانان دبُدهـ مت مذهب خلق وغيره ټول ئې دپاکيزګئې اقراريان دي اوپه مخه ئې تعظيم کوي، داهم زمونږ فضل اوانعام دې دچاپه اختيارکښې نشته اونه ئې څوک په خپل عمل سره حاصلولې شي-

دې پسې په شپږوآيتونوکښې داوولسو پيغمبرانو لړئ بيان شويده چه ځنې ئې پکښې د حضرت ابراهيم عليه السلام پلاران اونيکونه دي، اوزيات ئې اولاددي. ځنې ئې پکښې رونړه اوورونه دي، په دې آيتونوکښې يوارخ ته دابيان شويدى چه دغه حضرت په هدايت باند وو، صالحان وو اوپه صراط مستقيم باند روان وو اودابښودلې شويدى چه دوئ لره الله ﷻ دخپل دين دخدمت دپاره غورکړي اوقبول کړي وو، اوبل ارخ ته الله ﷻ داضباط کړيدى چه حضرت ابراهيم عليه السلام خالص دالله ﷻ درضادپاره خپل پلار، وطن اوخپل خپلوان پريښى وو ځکه ورته الله ﷻ دآخرت د لوړو درجو اودداعمى اوبې مثاله راحتونو نه ورآندې په دنياکښې هم دخپلې برادرئ نه زيات غوره برادري اودوطن نه ئې زيات ښه وطن ورکړو اودالوئې عزت اوشرافت ئې ورکړو چه ترقيامته پورې ټول راتلونکي پيغمبران ئې ددوئ [حضرت ابراهيم عليه السلام] په اولاد کښې راؤليږل ،يوشاخ دحضرت اسحاق عليه السلام نه روان شو چه پکښې دبني اسرائيلو پيغمبران راغلل او بل شاخ ئې دحضرت اسماعيل عليه السلام نه روان شو په دې کښې سيدالاولين والاخرين، نبي الانبياء خاتم النبيين ﷺ پيداشوچه ټول دخيرمې دحضرت ابراهيم په اولاد کښې دي. دې نه داهم معلومه شوه چه اګرکه عزت اوبې عزتي، خلاصې اوعذاب دانسان په خپل ذاتي عمل باند اړه لري ليکن په

پلرونو، نیکونو کښې ئې څوک نبی یاولی کیدل یاپه اولاد کښې ئې عالمان اوصالحان کیدل هم
پولوئې نعمت دې چه په هغې سره هم انسان ته فائده رسي-

ددغه اوولسو پیغمبرانو ﷺ په لړۍ کښې حضرت نُوح علیه السلام خود حضرت ابراهیم علیه السلام غورنیکه
کیږي پاتې نورئې دهغوئ اولادبللې دي لکه فرمائي: ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ الاية﴾ په دې کښې
یواشکال داسې راولاړیږي چه هرکله دحضرت عیسی علیه السلام پلارنۀ وو نوصرف دمورداړخه څنګه
دحضرت ابراهیم علیه السلام په اولاد کښې حسابیدې شي؟ عاموعُلماؤ اوفقهاؤ ددې جواب داورکړیدې
چه د ﴿ذُرِّيَّت﴾ لفظ دځوئې اولُور دواړولـه اړخه اولاد ته شامليږي لکه چه حسنين رضی الله عنهما د رسول
الله ﷺ په ﴿ذُرِّيَّت﴾ کښې داخل دي-

بل اشکال دا راولاړیږي چه هرکله حضرت لُوط علیه السلام د حضرت ابراهیم علیه السلام په اولادکښې نۀ
دې بلکه د هغوئ وراره دې نو هغه څنګه په کې داخلیدې شي؟ ددې جواب هم صفااوواضح
دې چه په عُرف کښې تره ته پلاراووراره ته اولاد وئیل په خلقوکښې مشهوردی، نودااشکال
پخپله ختميږي.

په دغې آیتُونو کښې چه په حضرت ابراهیم علیه السلام باند الهی انعامات بیان کړې شو، نوپه دې
سره خوبودالله ﷻ داقانُون قُدرت اوښولې شو چه څوک دالله ﷻ په لارکښې خپل خوښ څیزونه
قُربانوي الله ﷻ ورته په دُنیا کښې هم دهغې نه زیات غوره څیزونه ورکوي، بل اړخ ته دمکې
مُشرکانو ته ددې حالاتو په آورولوسره دې اړخ ته هدایت کول مقصُوددی چه تاسوخلق د مُحمد
مصطفی ﷺ خبره نۀ منی نواوګورئ چالره چه تاسولوئې منئ هغه [یعنی ابراهیم علیه السلام اودهغه
تول خاندان په مخه داوئیلی دی چه لائق دعبادت یواځې دالله ﷻ ذات دې، هغه سره څوک په
عبادت کښې شریکول یادهغه په مخصُوصوصفاتوکښې ئې ورسره شریکول کُفر اوګمراهی
ده، تاسوخلق په خپلوهغه خبرو اوڅیزونو کښې هم راګیریږئ چه پخپله ئې منئ-

په اتم آیت کښې همدغه مضمُون بیان کړې شو او په آخرکښې درسول الله ﷺ تسلئ دپاره
اوفرمائیلې شو:

﴿فَاِنْ يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوْا بِهَا بِكٰفِرِيْنَ﴾ [یعنی که ستاسوڅه مخاطب خلق ستاسو خبره
نۀ منی اودتولورُومبنو پیغمبرانو دهدایاتو پیش کولو باوجُود په انکار کولوباند ټینګ دی
نوتاسو غم څکه مۀ کوئ چه مُونږه ستاسودبلنې اوهدایت منلو اوددې خپلولو دپاره یولوئې قوم
مقررکړې دې هغوئ به دکفراوانکارخواته نۀ ځي، په دې کښې ددغې مُبارک دورمهاجرین
اوانصارهم داخل دی اوترقیامته پورې تول راتلُونکی مُسلمانان هم، چنانچه داآیت، هغه تولو
خلقودپاره دفخر خبره ده څکه چه الله ﷻ دصفت کولوپه مقام کښې ذکرکړیدی: ﴿اللهم اجعلنا منهم
واحشرنا فی زمرتهم﴾ [اې الله جل شانه ! ته مونږ ددوئ نه اوګرځوه ، او زمونږ حشر د دوئ په
تولګی کښې اوکړه]

| فَبِهُدٰىهُمُ | هَدَى اللّٰهُ | الَّذِيْنَ | اُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|
| پس په هغوئ پسې | هدایت کړې ووُ الله | هغه کسان دی چې | داپیغمبران |
| منکر نه دی | دغه خلق وو چې الله ﷻ ورته هدایت کړې ووا | نوته هم دهغوئ په لار | |

اقْتَدِهْ ۗ قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۗ اِنْ هُوَ

اقتدا او کړه ته | او وايه | نه غواړم زه ستاسو نه | په کار د دې تبليغ او هدايت | څه اجر | نه دې | دا قرآن |

تګ کوه | دوئ ته او وايه چې زه د تبليغ په دې کار ستاسو نه اجرت نه غواړم | دا قرآن پاک

اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ۝ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ

مګر | نصيحت دې | د پاره د مخلوقانو | او او نکړو دوئ قدر | د الله | لکه څنګه چې حق دې |

د ټولې دنيا د خلقو د پاره يو نصيحت دې | او دوئ د الله ﷻ عظمت هغه شان او نه پيژندلو څنګه چه

قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ ۗ

د قدر د هغه | کله چې | او وئيل دوئ | چې نه دې نازل کړې | الله | په هيڅ انسان باندې | هيڅ څيز

د هغه عظمت پيژندل پکار وو | کله چې دوئ او وئيل چې الله کله هم په هيڅ يو بشر هيڅ حکم نه دې نازل کړې

قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِيْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا

ورته او وايه | چا نازل کړې دې | کتاب | هغه | چې راوړې وو | هغه | موسى | چې رڼا وه

ورته او وايه چې هغه کتاب چا نازل کړې وو | چې کوم موسى ؈ راوړې وو | هغه د ټولو خلقو د پاره رڼا

وَّهُدًى لِّلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ تُبْدُوْنَهَا

او لارښود و نکې وو | د پاره د خلقو | تاسو جوړوئ د هغې نه | پاڼې پاڼې | چې ښکاره کوئ بعضې د هغې نه

او هدايت وو | ................. اوس هغه تاسو پاڼې پاڼې کوئ | لږ څه په کښې ښکاره کوئ

وَتُخْفُوْنَ كَثِيْرًا ۚ وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ

او پټوئ ترې نه | ډير | او ښودلې شوې دې تاسو ته | هغه علم | چې نه وو معلوم | تاسو ته

او ډير څه په کښې پټوئ | او خودلې شوې دی تاسو ته [د هغه کتاب په وجه] هغه خبرې

وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ۗ قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ ۝

او نه پلار انو ستاسو ته | ورته او وايه | چې الله | بيا | پريږده هغوئ | په غلطو بحثونو خپلو کښې | چې لوبې کوی

چې تاسو او ستاسو پلار نيکه ته نه وې معلومې | او وايه الله نازل کړې دې | بيا پريږده چې خپلو عبثو کښې مشغول وی

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِيْ

او دا [قرآن] | يو کتاب دې | چې نازل کړې دې مونږه | چې برکتناک دې | چې تصديق کونکې دې | د هغه کتاب

او مونږ چې دا کوم کتاب نازل کړې دې | دا هم د [تورات پشان] يو برکتی کتاب دې | او د هغې کتاب تصديق کوی

بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا ۗ

چې وړاندې د دهٔ نه دې | د پاره د دې چې ته او ويروې | مورد کلو [مکه] | او هغه څوک | چې چاپيره د دې نه دی

کوم چه د دې نه وړادې وو | او د دې د پاره راغلې دې چې ته پرې ام القرى او د چاپير چل خلق او ويروې

وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ

او هغه کسان | چې ايمان راوړی | په آخرت باندې | هغوئ ايمان راوړی | په دې قرآن | او حال دا چې هغوئ

او څوک چې په آخرت باندې ايمان راوړی | نو هغوئ په دې کتاب هم ايمان راوړی | او هغوئ د

عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۞ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ

د مونځونو خپلو | حفاظت کوی | اوڅوك دي ازيات ظالم | دهغه چانه | چي تړی | په الله باندي

د خپلو مونځونو ډير خيال ساتی | اودهغه چا نه لوئي ظالم څوک کيدي شی | چي په الله ﷻ باندي

كَذِبًا اَوْقَالَ اُوْحِيَ اِلَيَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ

دروغ | ياوائی | چي وحی شوی ده | ماته | او حال دا چي وحی کړي شوي نه وی | هغه ته | څه څيز | او د هغه چا نه

دروغ اوتړی | يادا اووائی چي ماته وحی راغلي ده | او | په حقيقت کښي | هيڅ وحی ورته نه وی راغلي | ..اودهغه

قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ۭ وَلَوْ تَرٰٓى

چي اووائی | چي نازل به کړم زه | په شان | دهغي | چي نازل کړي دي | الله | اوکاش چي اووينې ته |

چا نه چي وائی چه زه به هم دالله ﷻ پشان کتاب نازل کړم | ........................اوکه ته اوګوري

اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ

څه وخت چي وی | ظالمان خلق | په سختو | دمرګ کښي | اوفرشتې ورته |

څه وخت چي دا ظالمان دمرګ په مصيبت کښي ګرفتار وی | ............اوفرشتو ورته

بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ اَلْيَوْمَ

رااوږده کونکی وی | لاسونه خپل | اوورته وائی چي رااوباسئ | روحونه خپل | نن ورځ به |

لاسونه وراوږده کړی وی | او | اورته وائی | چي خپل روحونه راوباسئ | .............نن به تاسو

تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ

بدله درکړي کيږی تاسوته | عذاب سپکونکي | په سبب دهغي | چي وئ تاسو | چي وئيل به مو

ته سپکونکي عذاب درکولي شی | ............ څکه چي تاسو په الله ﷻ ناحقه خبري ترلي |

عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ۞

په الله باندي | ناحقه خبری | اووئ تاسو | دآيتونو دهغه نه | چي تکبر به مو کولو

............او دهغه د اياتونو منلو نه مو هم تکبر کولو............

وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

اوبه تحقيق سره | رابه شئ تاسومونږته | يو اځي | لکه څنګه چي | پيدا کړی وئ مونږه تاسو | په اول | خل

او | الله به ورته وائی | اوس تاسومونږ ته هغسي يواځي | اوتش لاس | راغلي يئ | لکه څنګه چي مونږه اول خل پيدا کړي وئ

وَتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ وَمَا نَرٰى

اوپريښودل تاسو | هغه څه | چي درکړی وو مونږ تاسوته | روستو | دشاګانو ستاسو نه | اونه وينو مونږه

مونږ چي په دنيا کښي هرڅه درکړي وو | هغه موروستو پريخودل | ...............اومونږ تاسو سره

مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ

تاسو سره | سفارشيان ستاسو | هغه | چي ګمان به کووتاسو | چي بيشکه هغوی |

ستاسو هغه سفارشيان اونه ليدل په کوم چه به تاسو ګمان کولو چه هغوی ستاسو په کارونو کښي

فِيكُمْ شُرَكٰٓؤُا لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ

ستاسو په کارجوړولو کښې | شریکان دي | په تحقیق سره | ختم شو تعلقات | په منځ ستاسو کښې

ستاسو شریکان دي | ستاسو ټول تعلقات ختم شول..............

وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ

اوورک شو | ستاسو نه | هغه څه | چې وئ تاسو | چې گمان به مو پرې کولو دسفارشیانو

اوکومې دعوې چې مو کولې هغه ټولې درنه هیرې شوې |

## آسان ترجمه قرآن

دا خلق (چه کوم یو ذکر شو) هغه وو چاته چه الله (د مخالفینو په رویه باندې د صبر کولو) هدایت کړې وو ، نو (اې پیغمبره!) ته هم د هغوی په لاره باندې روان شه (مخالفینو ته) ووایه چه څه تاسو نه په دې (دعوت باندې) څه اجرت نه غواړم.دا د دنیا د ټولو خلقو د پاره یو نصیحت دې، او بس او دې (کافرانو) چه کله دا ووئیل چه الله په هیڅ انسان باندې څه نه دې نازل کړي نو دوی دالله صحیح قدر ونه پیژندلو (دوی ته) ووایه چه ، هغه کتاب چا رالیږلې وو چه موسیٰ علیه السلام راوړې وو . چه دخلقو دپاره رڼرا او هدایت وو چه هغه تاسو په جدا جدا کاغذونو کښې ایښودې دې چه (هغې نه لږڅه) تاسو ښکاره کوئ او ډیرې حصې پټوئ، او(چه د هغې په ذریعه ) تاسو ته د هغه خبرو تعلیم هم کړې شوې وو چه تاسو ته د هغې علم نه وو ، او نه ستاسو پلار نیکه ته ؟ (اې پیغمبره! ته خپله دوی ته ددې سوال په جواب کښې ) دومره ووایه چه:هغه کتاب الله نازل کړې وو.بیا دوی په خپل حال باندې پریږده چه دوی په خپلو بې هوده خبرو کښې زړه مشغولوی. او (دغه شان) دا ډیر د برکت والا کتاب دې چه مونږ رالیږلې دې اود مخکنو کتابونو تصدیق کوونکې دې دې دپاره چه ته(صلی الله علیه وسلم) ددې په ذریعه د کلو مرکز ( (یعني مکه ) او ددې نه گیر چاپیره خلق خبر کړې او کوم خلق چه په آخرت باندې ایمان راوړي هغوی په دې باندې هم ایمان راوړي. اوهغوی د خپل مونځ پوره پوره حفاظت کوي او دهغه کس نه به لوئ ظالم څوک وي چه په الله باندې دروغ وائي . یا دا وائي چه ما ته وحي راغلې ده حال دا چه هغه ته څه وحي نه وي راغلې، اودغه شان هغه کس چه کوم دا وائي چه څه به هم داسې کلام نازل کړم لکه چه الله رالیږلې دې؟ اوکه ته هغه وخت وګورې (نو ډیر خوفناک منظر به وویني)چه دا ظالمان د مرګ په سختو کښې گرفتار وي،او فرښتو به خپل لاسونه خواره کړي وي (او وائي به چه) خپل روحونه اوباسئ . نن ورځ تاسو ته د ذلت عذاب درکولې شي دې وجې نه چه تاسو د دروغو خبرې الله پورې تړلې او ددې وجې نه چه تاسو دهغه دلیلو خلاف تکبر کولو. (بیا به د قیامت په ورځ الله دوی ته وائي چه )" تاسو ما ته داسې یوائې راغلئ لکه چه مونږ په اول ځل پیدا کړي وئ اوڅه چه مونږ تاسو ته درکړي وو هغه تاسو خپل شاته پریښودل، او مونږ ته خو ستاسو هغه سفارشیان چرته په نظر نه راځي چه د هغوی په باره کښې ستاسو دعویٰ وه چه هغوی ستاسو په معاملاتو حل کولو کښې (مونږ سره) شریک دي. حقیقت دا دې چه هغوی سره ستاسو هغه ټول تعلقات ختم شوي دي،اودَ کومو (ځانلو) باره کښې چه ستاسو لوئ لوئ گمانونه وو هغه ټول ستاسو نه ورک شول.

## خلاصه تفسير

[او مونږ چه دغم نه كولو اوصبر كولو وايو نو وجه داده چه ټولو انبياء كرامو هم دغسې كړې دی چنانچه] ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ ﴾ دا [حضرات [داسې وو چه ورته الله ﷻ د صبر] هدايت كړې وو نو [په دې باره كښې] تاسو هم دهغوی په لاره [دصبر] روان اوسئ [هر كله چه تاسو ته هم ددې هدايت كړې شوے ولے چه د دوی نه تاسو ته نه نفع شته اونه ضرر چه دهغې په وجه به غم او بےصبری كوئی او ددې مضمون دظاهرولو دپاره دوی ته دتبليغ كولوپه وخت] ﴿ قُل لَّا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴾ تاسو [داهم] اووائې چه زه تاسو نه [دقرآن پاك په دې تبليغ] باندې هيڅ څه بدله نه غواړم [چه دهغې په ملاويدو سره به مے فائده او په نه ملاويدو سره په مے زيان وی.بے غرضه درته نصيحت كوم] ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْعَالَمِينَ ﴾ دا [قرآن پاك] خو صرف دټولو جهانونو دپاره يو نصيحت دے [چه منلو كښې ئے هم ستاسو نفع اوپه نه منلو كښې ئے هم ستاسو نقصان دے] ﴿ وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ ﴾ او دغے [منكرو] خلقو چه دالله ﷻ قدر پيژندل پرے څنګه واجب وو هغسے قدرئے اونه پيژندلو ولے چه [په صفا ټكو كښې] ﴿ إِذْ قَالُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ ﴾ داسې ئے اووئيل چه الله ﷻ په هيڅ بشر باندې څه څيز [يعنی څه كتاب] تراوسه نه دې نازل كړې [دا وئيل څكه قدر پيژندل نه دی چه ددې نه دپغمبر دمسئلے انكار لازميږی او دپيغمبرئ نه منكر خلق الله ﷻ لره دروغژن بولي حالانكه الله ﷻ ته دربښتيا نسبت كول واجب دی.نو په دې سره واجب قدر شناسئ كښې خلل اچول شو داخو تحقيقی جواب شو او الزامی خله بندونكی جواب وركولو دپاره] تاسو [دوی ته] ﴿ قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي جَاءَ بِهِ مُوسَىٰ ﴾ دا اووائې چه [داخو اوښائې چه] هغه كتاب چا نازل كړې دې كوم چه موسی ﷺ راوړې وو يعنی تورات چې هغه تاسو خپله هم منئ] چې د هغه كيفيت دا وو چې ﴿ نُورًا وَهُدًى لِّلنَّاسِ ﴾ هغه [خپله د تورت پښان واضح وو او [د چا دهدايت دپاره چه هغه راغلې وو دغے] خلقو دپاره هغه [دشرائعو دبيانولو په ذريعه] هدايت دے كوم لره ﴿ تَجْعَلُونَهُ قَرَاطِيسَ تُبْدُونَهَا وَتُخْفُونَ كَثِيرًا ﴾ چه تاسو [دخپلو نفسانی غرضونو دپاره] په بيلو بيلو پاڼرو كښې اينبے دے چه هغې [كښې مو څومره پاڼرے چه اوغوښتے] هغې لره ښكاره كوئی [په كومو كښې چه ستاسو د مطلب خلاف څه خبره نه وه] او ډير خبرو لره [چه دخپل مطلب نه خلاف دی يعنی په كومو پاڼرو كښې چه هغه ليكلے شوې دے هغې لره] پټوئی او [ددغې كتاب په بركت] تاسو ته ډيرے داسې خبرې ﴿ وَعُلِّمْتُم مَّا لَمْ تَعْلَمُوا ﴾ در اوخودلے شوې چه هغې لره [دكتاب ملاويدو نه مخكښې] نه تاسو [يعنی دبنی اسرائيلو قوم چه دآيت د نازليدو په وخت كښې موجود وو] پيژندل ﴿ أَنتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ ﴾ اونه ستاسو [نزدې سلسلے] مشرانو [پيژندل مطلب دا چه دكوم تورات دا حالت دے چه اول خوئے تاسو هم منئی بلكه دا چه هركله نور او هدايت دے څكه دمنلو جوګه هم دې. دريم داچه هروخت ستاسو په استعمال كښې دے سره ددې چه استعمالولئے په شرمناكه طريقه دی ليكن ددې په وجه دانكار كولو ګنجائش پاتې نشو. څلورم دا چه ستاسو په حق كښې هغه دلوئې نعمت اواحسان څيزدے دهغې په بركت تاسوعالمان جوړ شوئی چه په دې لحاظ په كښې دانكار ګنجائش نشته. دا اوښائی چه دے لره چا نازل كړې دې .اوهر كله چه ددې سوال جواب داسې تاكلے شوې دې چه دغې خلقو به هم سوا ددې بل جواب نه وو وركړې

لهذا رسول الله ﷺ ته پخپله دجواب ورکولو حکم داسې دے چه] تاسو [هم هغه] ﴿قُلِ اللّٰهُ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِىْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ﴾ اووايئ چه الله ﷺ [دغه کتاب] نازل کړې دې [او ددې نه د دوی عامه دعوی باطله شوه] بيا [چه دا جواب خو ورته واؤ روليے نو] دوی لره ددوی په شغل کښې په بيهودګئ سره لګيا پريږدئي [يعني ستاسو منصبي کار ختم شو که نه منی نوتاسو په فکر کښې مه پريوزئي مونږ به ورسره پخپله پوهه شو

﴿وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ﴾ او [څنګه چه تورات زمونږ نازل کړې کتاب وو دغه شان] دا [قرآن پاك] هم [دکوم چه په دروغه بلل ديهودو ددغه خبرے نه اصل مقصودددی] داسې کتاب دے کوم لره چه مونږ [په تاسو] نازل کړې دې چه لوئې [دخير او] برکت خاوند دے [چنانچه په دې باندې ايمان راوړل او عمل پرے کول دخلاصی اود دواړو جهانونو دنفعے موجب دے او] ﴿مُصَدِّقُ الَّذِىْ بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ دخپل ځان نه مخکښې [دنازل شوئ] کتابونو [ددې خبرے] تصديق کوونکې دے [چه دا دالله ﷺ د طرفه نازل کړې شوی دی نو مونږ دا قرآن پاك دخلقو د نفعے او داالهی کتابونو د تصديق دپاره نازل کړو] ﴿وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ او دپاره ددې [مو نازل کړو چه] تاسو [ددې په ذريعه] دمکے او خواوشا خلق [په خصوصيت سره دالله ﷺ دهغه عذاب نه چه دمخالفت کولوپه وجه به راوستې شی] او ويروئې [او دغسې عام ويرول هم کوئ ﴿ليكون للعالمين نذيرا﴾] او [ستاسو دويرولو نه پس که ټول خلق ايمان نه راوړی خو] ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ﴾ کوم خلق چه د آخرت [پوره] يقين لری [او ددې په وجه ورسره دعذاب انديښنه شی او دخان ساتلو فکر راشی او تل دپاره ورسره د خلاصی د لارو چارو دلټولو اود حق د تاکلو غم ورسره وی خواه که څه نقلی دليل وی يا عقلی تجويز سره وی] داسې خلق [خو] په دې [قرآن پاك] باندې ايمان [خامخا] راوړی ﴿وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ﴾ او [دايمان او اعتقاد سره سره ددې دعملونو هم پابند وی ولے چه عذاب نه دپوره خلاصيدو وعده په مجموعه باندې شويده چنانچه] هغوی په خپل مونځ باندې هميشوالئ لری [هرکله چه مونځ په شواروز کښې پنځه کرته بيا بيا کول دی تکليفونه په کښې هم شته سره ددې پرے هميشوالئ لرل ددې دليل دے چه دهغه غبادت به په درجه اولی پابند وی کوم چه کله کله او آسان وی غرض دا چه د چا منلو او نه منلو پسے مخه مه اوړئ څوك چه خپله ښيګړه غواړی هغه به يئ منی او څوك چه خپل خير ښيګړه نه غواړی هغه به يئ نه منی تاسو خپل کار جاری لرئ]. ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ اودهغه چا نه به زيات ظالم څوك وی چه په الله ﷺ باندې ددروغو تور پورې کړی [او دمطلق نبوت يا د خاص نبوت منکر وی لکه چه پورته دبعضې خلقو داوينا بيان شويده چه ﴿ما انزل الله على من شئ﴾ او بعضو خلقو داسې هم وئيلی دی چه ﴿ابعث الله بشرا رسولا﴾ ﴿اَوْ قَالَ اُوْحِىَ اِلَىَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَىْءٌ﴾ يا داسې وائی چه په ماباندې وحی راځی سره ددې چه هغه ته دهيڅ خبرے هم وحی نه وی راغلې [لکه مسيلمه کذاب] او [دغه شان دهغه نه به هم زيات ظالم څوك وی] ﴿وَمَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ څوك چه داسې وائی څنګه کلام الله ﷺ [درسول الله ﷺ ددعوے په مطابق] نازل کړې دې دهغې پشان زه هم راوړم [او درته نے ښايم لکه چه نضر يا عبدالله بن سعد بن ابی سرح] به چه وئيل غرض دا [چه دغسې ټول خلق غټ ظالمان دی] ﴿وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِىْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ﴾ او [دظالمانو حال دادې چه] که تاسو دوی

لره [هغه وخت] اووينې [نو ډيره هيبتناکه ننداره به درته ښکاره شي] هرکله چه دا ظالمان خلق به [کوم چه ذکر شو] دمرګ په [روحانی] سختو کښې [اخته] وی ﴿ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ ﴾او [دمرګ] فرښتے [چه دملك الموت امداديانے دی دهغوی د روح راويستلو دپاره دهغوی طرف ته] خپل لاسونه وراوږدوی [او دسختۍ ښکاره کولو په غرض به ورته په مخه داسې وائی چه] ﴿ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۗ ﴾ ښه ده [زر زر] خپل روحونه راوباسی [څنګه چه په ترخ ترخ ګرځيدئی اوګورئ] ﴿ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ﴾په دې سبب نن به [مرکيدو سره سمدستی] تاسو ته د ذلت سزا درکولې شی [چه تاسو به دالله ﷻ په ذمه دروغ خبرے تپلے [لکه ﴿ما انزل الله الخ، اوحی الی الخ اوساُنزل الخ وغیره﴾ ﴿ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴾ اوتاسو به دالله ﷻ د آيتونو [قبلولو] نه [چه دهدايت ذريعه وه] تکبر کولو [داحال به يئ دمرګ په وخت وی] ﴿ وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى ﴾او [کله چه دقيامت ورځ شی نوالله ﷻ به ورته فرمائی] تاسو زمونږ خواته [ديار اومددګار نه] خالی خالی [شوئی او] راغلې [اوپه داسې حالت کښې راغلئ] ﴿ كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ﴾څنګه چه مونږ اول ځل [په دنياکښې] تاسو پيدا کړی وے [چه نه مو په بدن باندې جامه وه اونه موپه ښپو کښې پيزار وو] ﴿ وَتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ ﴾ او څه چه مو تاسوته [په دنيا کښې سازوسامان] درکړې وو [په کومو چه تاسو مغروره وئ] هغه مو دخپل روستو پريښو [ځان سره مو هيڅ رانوړے شو مطلب دا چه دمال دولت په آسره مه پاتې کيږئی دابه تول هم دلته په دنيا کښې پاتې شی] ﴿ وَمَا نَرٰى مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ ﴾ او [تاسوکښې چه بعضې خلقو په دخپلو باطلو معبودانو په سفارش چه ملاتړله نو] مونږ خو تاسو سره [دا وخت] ستاسو هغه سفارش کوونکی نه وينو [چه ترے ثابته شوه چه په واقع کښې هم تاسوسره نه دی] ﴿ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا ۚ ﴾ دکومو په باره کښې چه تاسو دعوی لرله چه هغه ستاسو په معامله کښې [زمونږ] شريکان دی [چه کومه معامله دعبادت مومونږ سره کړې وه هم هغه هغوی‌سره هم وه] ﴿ لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴾ واقعی ستاسو [او دهغوی] په خپل مينځ کښې خوتعلق ختم شو [چه نن تاسو دهغوی نه ويزاره او هغوی تاسو نه ويزاره شفاعت اوسفارش به مو څه اوکړی] اوهغه ستاسو دعوی [چه ذکر شوه] تولـه د مينځه اووتله [هيڅ دکار اونختـه نو اوس به درباندې پوره پوره مصيبت راځی].

## معارف اومسائل

په تيروشوو آيتُونو کښې حضرت خليل الله ابراهيم ﷺ باند دالله ﷻ دعظيـم الشـان انعامـاتو او د هغویٔ دلورو درجويان وو چه دهغې په ذريعه عموماً دحضرت آدم ﷺ پوره نسل تـه اوخصـوصاً دمکې مکرمې اوعربو خلقوته عملی صُورت دابښودل مقصود ووچه هرکلـه څوک دالله ﷻ مکملـه فرمانبرداری دخپل ژوندمقصد اوګرځوی اوهغې دپاره دخپلو خوښـوڅيزونو قُربـانی پيـش کـړی څنګه چه ابراهيم ﷺ داسې پيش کره چه موريلار قوم اووطن تول ئې الله ﷻ دپاره پريښـول، بيـا د بيت الله شريف دآبادولولوئې خدمت دپاره ئې دشام ملک غوند خيرازه [آباد] وطن پريښـو اود مکې مکرمې شګلن ملک ئې قبول کړو، چه ورته دبی بی اوماشُوم پريښولو حُکم په دغـه بيابـان کښې اوشو نوسمدستی ئې پرعمل اوکړو، دداسې فرمانبرداروا‌صل بدلـه خويـه قيامت نـه پـس يواځې په جنت کښې ملاويږی، ليکن الله ﷻ ورته په دُنياکښې هغه مرتبه اودولت وربخښـی چه

دهغې مخې ته دتولې دُنیا دولتونه کمزورې پاتې شی.

هرکله چه حضرت ابراهیم ﷺ خپل قوم اوبرادری دالله درضا دپاره پریښنودهغې په بدل کښې ورته الله ﷻ دپیغمبرانو ﷺ دله ورکړه چه زیات پکښې دهغوئ به اولاد کښې دی، دعراق اوشام ملک ئې پریښنودالله ﷻ کور، بلد امین او اُم القری یعنی مکه ورته نصیب شوه، دهغوئ قوم دهغوئ بې عزته کول اوغوښتل نودهغې په بدل کښې الله ﷻ هغوئ لره دتولې دُنیا دخلقو اوترقیامته پورې دراتلونکو نسلونو داسې امام اوپیشواجوړکړو چه ددنیا مختلف قومُونه اومذهبُونه دحضرت ابراهیم ﷺ په قدراوعزت کولویاند اتفاق لری حالاتکه خپل منځ کښې ئې غټ غټ اختلافات نه وی.

په دې سلسله کښې داوولسو په شمیر کښې دپیغمبرانو ﷺ لړئ بیان شوې وه چه زیات پکښې دحضرت ابراهیم ﷺ په اولاد اونسل کښې داخل دی اودابنودلې شوی وو چه داتولې هغه بزرګې هستئ دی چه الله ﷻ دتول جهان په انسانانو کښې دخپل دین دخدمت دپاره چُونړکړی وو اوسمه لارئې ورته ښودلې وه-

اوس ددې آیتُونو څخه په رُومبی آیت کښې رسول الله ﷺ ته په خطاب کولوسره دمکې خلقوته آورولې شویدی چه دیوقوم پلرونه اونیکونه یواځې په دې وجه دهغوئ دینی مشران نشی جوړیدې چه نسبی پلاران اونیکونه ئې دی اودهغوئ هرقول اوفعل پسې روان شی څنګه چه عموماً دعربو اودمکې دخلقو خیال وو، بلکه دچاتابعداری کولودپاره رومبې په دې پوهیدل ضروری دی چه دغه خلق پخپله هم دهدایت په صحیح لاره دی اوکه نهٔ دی، په دې بنا دپیغمبرانو ﷺ دیولند شمیرلړئ بیانولو نه پس اوفرمائیلې شو: ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ﴾ [داهغه خلق دی چه الله ﷻ ورته هدایت کړیدې] بیائې اوفرمائیل: ﴿فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ﴾ [تاسو هم ددوئ هدایت اوطریقه کاراختیارکړئ]-

په دې کښې یوهدایت اهل عربو اوتمام اُمت ته دادې چه د پلارانو نیکونو د تقلیدوهم پرستی پریږدئ، اودهغه خلقو تابعداری کوئ چه دالله ﷻ له اړخه هدایت مُوندونکی بزرګان دی-

بل هدایت پکښې رسول الله ﷺ ته داسې دې چه تاسوهم ددغه رومبنو پیغمبرانو ﷺ طریقه اختیارکړئ-

دلته داخبره هم دغورکولو جوګه ده چه دپیغمبرانو ﷺ په شریعتُونو کښې به فروعی اوجُزوی اختلافات رُومبې هم راتلل اوپه ملت اسلام کښې هم ددې نه مختلف ډیراحکام نازل شویدی نوبیاددې څه مطلب شو چه رسول الله ﷺ ته دررُومبنو پیغمبرانو په طریقه باند دتلو اوعمل کولو هدایت اوکړې شو؟

چه نورآیتُونه اوحدیث روایتُونه مخې ته کیږدونوددې جواب داوی چه دلته په تولوفروعی اوجُزوی احکامو کښې دررومبنو پیغمبرانو ﷺ دطریقې اختیارولو حکم نهٔ دې بلکه ددین په بُنیادی احکامو، توحید، رسالت اوآخرت کښې دهغوئ طریقه کار اختیارول مقصُوددی چه دهیڅ پیغمبر په شریعت کښې په دې کښې هیڅ بدلُون نهٔ دې راغلې، یعنی دحضرت آدم ﷺ نه چه واخلې ترخاتم الانبیاء ﷺ پورې په دې کښې دتولوپیغمبرانوهم یوه عقیده اویوه طریقه راروانه ده، باقی فروعی احکام چه پکښې څه تبدیلی نهٔ ده راوستې شوې په هغې کښې هم طریقهٔ کارشریکه پاتې شویده اودحالاتودبدلیدو په وجه دحکمت اووخت دتقاضا مُطابق چه څه بل حکم ورکړې شو په هغې عملدرآمد اوکړې شو-

همدغه وجه ده چې رسول الله ﷺ ته به دوحی په ذریعه څه خاص هدایت نهٔ وواغلې نو هغوی به دخپل معمول مطابق په فروعی معاملاتو کښې هم د رومبنو پیغمبرانو ﷺ په طریقه کاربانده عمل کولو [مظهری وغیره] -(۱)

وریسې رسول الله ﷺ ته خصوصیت سره دیو داسې اعلان کولو حُکم ورکړې شو چه ټولو پیغمبرانو ﷺ هم په مخه کړیدې لکه فرمائی ﴿قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًاۖ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرَىٰ لِلۡعَٰلَمِينَ﴾ [یعنی ستاسو دژوند ښائیسته کولو دپاره چه کوم هدایات تاسو ته درکوم دهغې اجرت یا عوضانه تاسو نه نهٔ اخلم، که دامو اومنل نوزما پکښې هیڅ څه فائده نشته اوکه مو اونهٔ منل نو نُقصان م پکښې نشته- داخودټولې دُنیا دخلقو دپاره دنصیحت اوخیرخواهۍ پیغام دې په تعلیم ورکولو اوتبلیغ ورکولوباند ټولوپیغمبرانو ﷺ څه غوضانه او اجرت نهٔ دې اغستې چنانچه په دې شان سره تبلیغ کول زیات اثرلری-

دوئیم آیت دهغه خلقوپه جواب کښې راغلې دې چاچه داسې وئیلی وو چه الله ﷻ چرې په څه بشر[انسان] باند څه کتاب نهٔ دې نازل کړې، دکتابُونو اورسولانو قضیه دسره غلطه ده-(۲)

دغسې وئُونکې که دمکې بُت پرست وی [څنګه چه ابن کثیر فرمائیلی دی] نو معامله خوښکاره ده چه هغوی دڅه کتاب اوپیغمبر اقراریان نهٔ وواوکه یهودوی [څنګه چه نورومفسرینو اختیار کړیدی] اودآیت روانی په ظاهره ددې تائید کوی نودهغوی داسې وینا کول خالص دقهر اوغُصې په بنا وو کوم چه ددوئ دمذهب نه هم خلاف وو- چنانچه دامام بغوی په یوروایت کښې دی چه هم ددې کبله یهودیان دهغه چانه ناراضه شو چاچه داخبره کړې وه اوهم ددغې غلطۍ په وجه یې دمذهبی پیشوایۍ [مشرۍ] دعُهدې نه لرې کړې وو-(۳)

په دې آیت کښې الله ﷻ رسول الله ﷺ ته فرمائیلی دی چه چادابیهوده خبره کړیده هغوی دالله ﷻ حق پیژندل نهٔ دی کړی ګنی دبې ادبۍ داخبره به دهغوی دخُلې نه نهٔ وتله ،کوم خلق چه مطلقًا دآسمانی کتابونونه انکار کوی هغوی ته اووایه چه کوم خبره همدغسې وی چه الله ﷻ په هیڅ یو انسان باند کتاب نهٔ دې نازل کړې نوداراته اووایۍ چه داتورات [کوم لره چه تاسوهم منۍ] اوددې په وجه دقوم مشران جوړشوی یئ] چانازل کړیدې ؟اوورسره ئې داهم ورته اوښودل چه تاسوداسې قسم کاړه تلُونکی یئ چه کوم کتاب تورات ته تاسوآسمانی کتاب وایۍ اومنۍ ئې هغې سره هم ستاسو معامله داده چه تاسوددې ټرلی کتاب په ځائې دې لره په بیلوبیلو پانړو کښې لیکلې دې، غرض او کارمو دادې چه کله موزړهٔ اوغواړی نوڅه پانړه ئې دمنځ نه راوباسۍ، اودهغې د مضمراتو نه انکاراوکړۍ لکه چه هغه آیتُونه موتر وپستلی دی کوموچه درسول الله ﷺ علاماتو او صفتُونو سره تعلق لرلو، چنانچه دآیت دآخری جُملې ﴿تَجۡعَلُونَهُۥ قَرَاطِيسَ﴾ همدغه مطلب دې، [قَرَاطِيسَ] د، [قِرۡطَاس] جمع ده معنی ئې پانړه اوکاغذ ده-

---

(۱) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۳۱، وشرح معانی الآثار، كتاب الجنائز، باب الجنازة تمر بالقوم الخ ج ۱، ص ۴۸۸

(۲) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۲۹۹، ۳۰۰

(۳) تفسير البغوی تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۳۱، ۲۴۷

ورپسې ئې دغې خلقوته داسې خطاب اوفرمائيلو : ﴿وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ؕ﴾ [يعنې د قرآن کريم په ذريعه درته دتورات اوانجيل نه زيات داسې علم هم درکړې شوچه نه وړاندې نهٔ تاسو دهغې خبرلرلواونهٔ ستاسوپلرونو نيکونو]-

په آخردآيت کښې ئې داسې اوفرمائيل : ﴿قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ۝﴾ يعنې ددې سوال، [چه هرکله الله ﷻ دسره کتاب نهٔ دې رالېږلې نوتورات چانازل کړو] جواب خو به هغوئ څه ورکړي، هم تاسو اوفرمايئ چه خالص الله ﷻ نازل کړيدی اوهرکله چه په هغوئ باندحُجت تمام شو نو ستاسوکارختم شو اوس چه هغوئ په کومو لويو توړقو کښې اخته دی هم په دغه حال ئې پرېږدئی، دوئ باندې د الله تعالی د طرفنه نازل شوی کتابونوپه باره کښې په دوئ باندې حُجت تمام کړې شو نوپه درئيم آيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ﴾ [يعنې څنګه چه دوئ دالله ﷻ داړخه دتورات نازليدل منی دغه شان داقرآن هم ،مونږه نازل کړيدې اودهغې دحقوالی اورشتينوالی دپاره داګواهی کافی ده چه قرآن کريم هغې تولوڅيزونو ته رشتيا وائی کوم چه په تورات اوانجيل کښې نازل شويدی، تورات اوانجيل نه پس ددې نازلول څکه ضروری شوچه دغه دواړه کتابونه بنی اسرائيلو دپاره لېږلې شوی وو اوددوئ د دويم شاخ بنی اسماعيلو د هدايت دپاره څوک خاص پيغمبراوکتاب تراوسه نهٔ وو راغلې [کوموته چه عرب وئيلې شی اوپه ،أم القری، [مکه مکرمه] اوددې په خواؤشاکښې اوسيږی] اوس د قرآن کريم هغوئ دپاره خصوصاً اودټولې دُنيا خلقودپاره عموماً نازل کړې شويدې-قرآن مکې مکرمې ته،أم القری، [دټولوعلاقوجرړه اوبنياد] څکه اوفرمائيلو چه دتاريخی روايتونو په مُطابق هرکله چه زمکه پيداکيده نوشروع ئې ددې ځائې نه اوشوه، دغه شان مکه مکرمه دټولې دُنيا دپاره قبله اوپه عبادت کښې ورتـه دمخ کولومرکزهم داده [مظهری] (۱) ﴿اُمَّ الْقُرٰى﴾ سره د﴿وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ﴾ فرمائيلومطلب دمشرق نه تر مغربه اودشمال نه ترجنُوبه پورې ټوله دُنيا ده-

دآيت په آخرکښې ئې اوفرمائيل: ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ۝﴾ [يعنې څوک چه په آخرت ايمان لری هغوئ په قرآن هم ايمان راوړی اودخپلو مُونځونوپابندی کوی] په دې کښې ديهودو اومشرکينوپه يوې شريکې بيمارئ باند خبرداري ورکړې شويدې چه داسې بې فکری کول چه په خپله خو بنهٔ منل اونهٔ منل اوددې خلاف محاذجوړول ددې مرض اثردې چه په آخرت باندايمان نهٔ لری، څوک چه په آخرت اوپه يوم الحساب ايمان لری، دالله ﷻ ويره به دهغه مخه ضروردې اړخ ته رااړوی چه په دليلونوکښې غوراوکړی اودحق خبرې په قبلولو کښې دخپلو نسلی مشرانو دجاهليت درسمونو څه پروانهٔ کوی-

که غوراوکړې شی نودآخرت نه بې فکره کيدل،أم الامراض، دی، کُفر اوشرک هم ددې نتيجه ده اوټول ګناهُونه اونافرمانئ هم، په آخرت باند ديقين لرونکی نه که چرې څهٔ ګناه اوغلطی صادر شی نوزړهٔ ئې په درزيدو شی، نتيجه ئې داوی چه توبه اوکړی اوآئنده دپاره، ګناه نه دبچ کيدوپوخ قصد کوی-په حقيقت کښې دالله ﷻ نه ويره کول اودآخرت فکرکول داسې يوڅيزدې چه د انسان نه صحيح انسان جوړوی اودجُرمونو کولونه ئې بندوی. په دې وجه دقرآن کريم هيڅ يو

(۱) التفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۶۷

سورت بلکه هیڅ یو رکوع غالبًا داسې نه ده چه د آخرت فکرته پکښې مخه راړولې شوې نه وی

﴿اللهم اجعل جملة همومنا هما واحدا هم الاخرة﴾(۱)

إِنَّ اللَّهَ

| بیشکه الله

بیشکه الله ﷻ ........................................ |

فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَىٰ ۖ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ

چونکي دي | ددانې | اود زړی | راوباسی | ژوندي | د مړي نه | اوراویستونکي دي | دمړي

ددانې او زړی[زړنړی] چونکي دي | .....دمړی نه ژوندي راوباسی | .........اودژوندی نه مړی راوباسی

مِنَ الْحَيِّ ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ۝ فَالِقُ

دژوندي نه | دغه کاروونه کونکي | الله دي | نوکوم طرفته | ګرځولې کیږئ تاسو | چونکي دي

.........دا ستاسو الله ﷻ دي | نوتاسو[دهغه د عبادت نه] کوم طرفته اړولې شئ | هغه د

الْإِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ

د صبا | اوجوړه کړې ئې ده | شپه | وخت د آرام | اونمر | اوسپوږمۍ | نښې د حساب

صبا راویستونکي دي | اوشپه ئې د آرام وخت مقرر کړې دې | اونمر او سپوږمۍ ئې حساب مقرر کړې دي

ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ۝ وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ

دا | اندازه ده | دغالب | اودعلیم | اوهغه | هغه ذات دي | چې پیدا ئې کړل | ستاسو دپاره

دا دغالب او پوهه الله ﷻ اندازه ده | ..........اوالله ﷻ هغه ذات دي چې ستاسو دپاره ئې

النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۗ قَدْ

ستوری | دپاره ددې چې لاره اومومئ | په هغې سره | په تیارو کښې | دوچې | اود دریاب | په تحقیق سره

ستوری مقرر کړی دی | چې تاسو پرې د اوچې او سمندر په تیرو کښې لارې معلومې کړئ |

فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ۝ وَهُوَ الَّذِي

په تفصیل سره بیان کړی دی مونږ | نښې | دپاره دهغه قوم | چې پوهیږی | اوهغه | هغه ذات دی |

مونږ خپل آیاتونه په تفصیل سره هغه خاته بیانوو چې پوهه لري | الله ﷻ هغه ذات دي چې

أَنْشَأَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ ۗ قَدْ

چې پیدا ئې کړئ تاسو | دنفس یو نه | نوځانې د قرار دي | اوځانې د امانت دي | په تحقیق سره

تاسوټول ئې د یو نفس نه پیدا کړی یئ | نو بیا یو د استوګنې ځائي دي او بل د امانت ځائي دي

فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَفْقَهُونَ ۝

واضحه بیان کړی دی مونږه | نښې | دپاره دهغه قوم | چې پوهیږی

مونږ پوهه خلقو ته ټولې نښې ښکاره بیان کړې دی

(۱) ترجمه: اے الله زمونږه فکرونه یو فکر جوړ کړے او هغه هم د آخرت۔

## آسان ترجمه قرآن

بې شکه الله دانې او هډوکي لره څیرونکې دې، او د ساه والا د بې ساه څیزونو نه راویاسي ، او هم هغه بې ساه والا څیزونه د ساه والا نه راویستونکې دې خلقو ! دغه دې الله ! بیا هم څوک تاسو دهوکه کوی کوم الله طرف ته اړولې دا هغه ذات دې چه د هغه په حکم باندې صبا راخیژی، او هم هغه شپه د آرام وخت ګرځولې دې او نمر او سپوږمۍ ئې د حساب پابند ادا ټول د هغه ذات منصوبه بندې ده چه د هغه قدرت هم کامل دې او علم هم. او هغه تاسو دپاره ستورې پیدا کړي دي، دې دپاره چه تاسو ددې په ذریعه د اوچې او د لوندې لارې معلومې کړئ. مونږ ټولې نښې صفا صفا بیان کړی دی. (مګر) هغه خلقو دپاره چه د علم نه کار واخلی. الله هغه ذات دې چه تاسوئې د یو نفس نه پیدا کړئ. بیا د هر یو کس یو مستقر دې او یو د امانت کیښودو ځائ مونږ ټولې نښې یو یو ښکاره واضحې کړی دی (مګر) د هغه خلقو دپاره چه د عقل نه کار اخلي.

## خلاصه تفسیر

﴿ اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى ﴾ بیشکه الله ﷻ څیرے کوونکې دے دانے او هډوکو [زړو] لره [یعنی په زمکه کښې د ښخولو نه پس چه کومه دانه یا هډوکے څیری کیږی دایواځې د الله ﷻ کار دې] ﴿ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ﴾ هغه سادار [څیز] دے بے ساه [څیز] نه بهر راوباسی [لکه د نطفې نه چه انسان پیدا کیږی] اوهغه بےساه [څیز] د سادار [څیز] نه راوخکونکې دې [لکه د انسان د بدن نه چه نطفه راښکاره کیږی] ﴿ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴾ الله دادې [د چا چه داسې قدرت دې] نوتاسو [دعبادت په پرېښودلو سره] چرته [دغیرالله دعبادت طرف ته] خلاف روان یئ؛ ﴿ فَالِقُ الْاِصْبَاحِ ﴾ هغه [الله ﷻ] صبا [صادق] لره [دشپې نه] راخ‌کوونکې دے [یعنی شپه ختمه شي او صبا صادق ښکاره کیږی] ﴿ وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ﴾ اوهغه شپے لره د آرام څیز جوړ کړې دې [چه ټول سترې ستومانه په اوده کیدو سره په کښې آرام بیامومی] اونمر او سپوږمئ [یعنی رفتار] ئے په حساب سره ایښے دے [یعنی رفتار ئے په ضبط کښې راوستې دے چه دهغې نه وختونو لره په ضبط اویاد کښې راوستل آسانیږی] ﴿ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴾ دا [چه رفتار ئے په حساب دې] غټه شوې خبره ده د داسې ذات چه قادر [مطلق] دے [چه داسې حرکت پیدا کولو باندې هغه قدرت لری] دلوئې علم خاوند دے [چه ددې ښیګړے او حکمتونه یئ پیژندل څکه په دې خاص انداز باندې اوانړه کړل]. ﴿ وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ ﴾ او هغه [الله ﷻ] داسې دے چا چه ستاسو [دفائدې] دپاره ﴿ النُّجُوْمَ لِتَهْتَدُوْا بِهَا فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ﴾ ستورى پیدا کړل [او هغه فائده داده] چه تاسو ددې په ذریعه [دشپې] په تیرو کښې په اوچه کښې هم او په دریاب کښې هم لاره معلومه کړې شئ؛ ﴿ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴾ بیشکه مونږ [دا] دلیلونه [دتوحید اود انعام] ښه صفا صفا بیان کړی دی [اګر چه رسی نفع یې ټولو ته مګر نفع په ترې حاصلیږی] هغه خلقو دپاره کوم چه [دښه او خراب څه] خبر لری [ولې چه یواځې هم داسې کسان غور کوی] ﴿ وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ﴾ او هغه [الله ﷻ] داسې دے چا چه تاسو [ټول په اصل کښې] دیوکس نه [چه حضرت آدم ﷺ دې] پیدا کړئی ﴿ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ ﴾ بیا [خوروسے دتوالد او تناسل لړئ داسې راروانه

ده چه ستاسو نه هرچالره دمادے په مرتبه کښې] یوځائې دزیات پاتې کیدو دے [یعنی دمور درحم] اویوځائې دخه وخت اوسیدو دے [یعنی دپلار شا لکه الله ﷻ فرمائی چه ﴿ من بين الصلب﴾ ﴿ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ۝﴾ بیشکه مونږ [دا] دلیلونه [هم دتوحید اوانعام] په ښه شان صفاصفا بیان کړی دی [په عام ډول مګر ددې نفع به هم د ړومبې پښان] هغه خلقو دپاره [وی] چه شد بد لری [دا تفصیل د یخرج الحی الخ شو].

## معارف اومسائل

په تیروشوؤ آیتونو کښې د کُفارو او مُشرکانو ضد اوعناد، دحقیقتونو او نتیجونه دغافله کیدو یادګیرنه وه، ددغه ټولو خرابو اصل بُنیاد دالله ﷻ نه او دهغه دبې مثاله علم او قُدرت نه بې خبری ده، په دې وجه اوس په دې څلورو آیتونو کښې الله ﷻ دغافل انسان ددغې رنځ بیمارئ علاج په دې شان کړیدې چه دخپل فراخ علم اودلوئې قُدرت یوځونمُونې اوپه انسان باند ښے دخپلو انعاماتو او احساناتو یولړئ ذکرکړه چه په هغې کښې په لږ شان غور فکر کولو سره هرسالم طبیعته انسا ن د خالق کائنات لوئې والې او بې مثاله قوت او ددې خبرې اقرار کولو نه سوا نشی پاتې کیدې چه داعظیم الشان کارنامې په ټولو کائناتو کښې سوا د الله ﷻ نه دهیچا په وس کښې نهٔ دی چنانچه په ړومبی آیت کښې فرمائی:

﴿اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى﴾ [یعنی الله ﷻ ددانې اوهډوکی [زړی یا زونی] څیری کوونکې دې] په دې کښې دقُدرت یوحیرانوونکې کرشمه دابنودلې شویده چه اوچه دانه او اوچ هډوکې چه څیری کړی دهغې نه شنه، زرغنه اونه رابرسیره کول یواځې ددغې پاک ذات فعل اوکاردې کوم چه دکائناتو پیدا کوونکې دې، دانسان کوشش اوعمل په دې کښې هیڅ دخل نشی لرلې۔

دکروندګر دټولو کوششونو نه حاصل ددې نه زیات نشی کیدې چه ددانې او هډوکی [مندکی] دننه نه چه کوم نازک تیغ دالله ﷻ قُدرت رابرسیره کړې دی دهغې دلارې نه داسې څیزونه لرې کړی چه په دې کښې خنډ ان جوړیدې شی، زمکه دقُلبې په ذریعه نرمول، خره اوبه ورکول اودنورو ټولو عملُونو اثر زیات نه زیات هم داوی چه درابرسیره شی، په دې کښې رنګ په رنګ اوعجیبه قسم پاڼې او بیاتر داسې میوې رابرسیره کول ددې ټولونه انسانی عقل اودماغ پاتې راخی انسان دا نشی کولې چه دخپل عقل اودماغ په ذریعه دې نه د اونې یادګل یوه پاڼه جوړه کړی، په دې بنا الله ﷻ فرمائی ﴿اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ۝ ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗۤ اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ۝﴾ [آیا تاسو هغه دانې نهٔ وینئ چه په خاؤرو کښې ئې غورځوئ چه هغه تاسو کرلې اوجوړې دی یا مونږه ؟]

په بله جُمله کښې فرمائی: ﴿يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ﴾ [یعنی الله ﷻ دبې ساه څیزونو نه ساه دار څیزونه پیدا کوی، بې ساه څیزنه مُراد نُطفه یاهګئ ده چه انسانان او حیوانات ترې پیدا کیږی، دغه شان دساه دارو څیزونو نه بې ساه څیزونه راؤباسی دلته دبې ساه څیزونو نه مراد هم هغه نُطفه یاهګئ ده چه هغه دساه دارو څیزونو نه راوځی۔

وړبسې فرمائی: ﴿ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ۝﴾ [یعنی داټول کارونه هرکله چه صرف الله ﷻ کوی نوبیاسره دپوهې کوم خواغولیدلی روان یئ چه خپلو جوړو کړوپتانولره مُشکل کُشا او حاجت روا معبودان بولئ۔

په دریم آیت کښې فرمائی ﴿فَالِقُ الْاِصْبَاحِ﴾ د، فالق، معنی څیروونکې، د، اصباح، معنی دلته دصباوخت دې، نود ﴿فَالِقُ الْاِصْبَاحِ﴾ معنی، دصبا څیروونکې، شوه-مطلب داچه دګورې [ګمنی]

تیرې ځادرشلولوسره دصبار ابرسیره کوونکې داهم دهغه فعلونواوعملونو څخه دې چه پکښې دپیریانو ،بنیادمواوټولو کائناتو قوتونه هیڅ نه دی، اوهردسترګوخاوند ددې په لیدو سره په پوهیدو مجبوره دې چه دشپې دتیرې نه پس دصبار نړاپیدا کوونکې ،نه څوک انسان کیدې شي نه فرشته اونه بل څه مخلوق ،بلکه دا یواځې دهغه هستۍ کاردې چه دخلقو دذهنونونه بالاتردې اوډټول جهان پیدا کوونکې دې۔

**دمخلوقاتو دآرام دپاره دشپې قدرتي اومجبوري تیاتلي هیدل یولوئې نعمت دې**: وړیسې فرمائي:

﴿وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا﴾ سکن،لفظ د ،سکون ،نه مشتق دې، هرداسې څیزته ،سکن، وئیلې شي چه هغې ته په رسیدو سره انسان ته سکون اطمینان اوراحت [آرام] حاصلیږي په دې وجه دانسان د استوګنې کورته قرآن کریم کښې ،سکن ،وئیلې شویدی لکه فرمائي: ﴿جَعَلَ لَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا﴾ ولې چه دانسان کوراګرکه یوه جونګړه هم وي هلته په رسیدوباند انسان ته عادتًا سکون اوآرام حاصلیږي، لهذاددې جملې معنی داشوه چه الله ﷻ شپې لره، هرسادار دپاره دسکون اوآرام څیز جوړکړې دې ﴿فَالِقُ الْإِصْبَاحِ﴾ کښې دهغه نعمتونوبیان ووچه انسان ئې دورځې درنړانه حاصلوي اودشپې په تیاره کښې هغه نشي کیدې وړیسې:

﴿وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا﴾ فرمائیلوسره ئې دې اړخ ته اشاره اوکړه چه څنګه دورځې رنړا لوئې نعمت دې چه انسان ددې په ذریعې سره خپل ټول کاروبارونه کوي،دغه شان دشپې تیرې لره هم بده مه ګڼړئ خکه چه داهم یولوئې نعمت دې-چه په دې کښې دټولې ورځې ستړې ستومانه انسان په آرام کولوسره ددې جوګه شي چه په راتلونکې ورځ کښې بیاپه چستۍ اوښه په طبیعت کاراوکړي شي څکه چه انساني فطرت په یومخ محنت کول نشي زغملې-

دشپې تیرې لره آرام دپاره تیاکل یومستقل نعمت اودالله ﷻ دغالب قدرت یوه خاصه تنداره ده خودانعمت هره ورځ بې دغوښتو موندې شي څکه ورته دانسان فکرنه ورځي ،چه داڅومره لوئې انعام اواحسان دې؟فکر، غوراوکړئ که هرچاپه خپله خوښه ،خپل آرام دپاره وخت تیاکلې نوچابه دصبا داتو بجوپه وخت داوده کیدواراده کوله، چا به دولس بجې اوچابه دشپې په مختلفو برخوکښې، دهغې نتیجه به داوه چه په ټول شواروز کښې څلیریشت ګینټې ټولې به داسې وې چه څوک نه څوک به په کارروز ګارکښې لګیا وو اوکارخانې به چلیدلې ،ددې لازمې نتیجه داوه چه دخلقو په خوب کښې به هم خلل راتلو، دکارکوونکو په کارکښې به هم حرج راتلو، داوده کیدو نکو په آرام کښې به هم دکارکوونکو شورشغب دکارخانو اومشینونو غریار، ګرزار خلل اونقصان راوستوپه کارروز ګارکښې به هم حرج څکه راتلو چه دغه کارکوونکی به اوده وو، داوده کیدونکوخپل ډیرهغه کارونه به خرابیدل اوپاتې کیدل دکومو کول به چه ددوی داوده کیدو په وخت کښې ضروري وو.دالله ﷻ غالب قدرت نه یواځې په انسان باند بلکه هر سادار څیز باند دشپې په وخت خوب داسې غلبه کړو چه کارپریښوااوده کیدوته مجبوره وی،په ماښام کیدو سره هرمارغه،درنده اوڅاروي خپلې خپلې تیکاڼوته اوکورته مخه کوي، هرانسان کار پریښوداوآرام کولوته مجبوره شي په ټولې دنیاخاموشي خوره شي اودشپې تیاره په خوب اوآرام کولوکښې مددګارثابتیږي ولې چه عادت داسې وی چه په زیاته رنړاکښې چاته خوب نه ورځي-غوراوکړئ که دټولې دنیا حکومتونواوعاموخلقوپه اتفاق اودبین الاقوامي معاهدو په ذریعه داوده کیدویووخت تیاکلې نواول خوبه دې کښې ډیرمشکلات راولاړیدل،که بیاهم څه اتفاق

راغلي وي نونورسادارڅیزونه به ددغې معاهدې اوترون چاپابند کول اوکه هغه همدغسې پرانستې اوخوشې ګرځیدې نو دأوده کیدونکو خلقو اودهغوئ دسامانُونوبه څه حال وو؟ دالله ﷻ دغالب قدرت نه قربان شم چه هرانسان بلکه هرسادارڅیزیاند په یوخاص وخت کښې خوب غالب کړو اودبین الاقوامی معاهدو اوترُون نه ئې بې حاجته کړل ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾

**دنمر اوسپوږمۍ حساب:** الله ﷻ فرمائي: ﴿وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا﴾، حُسبان، په پيښ سره مصدر دې، معنی ئې حسابول اوشمیرل دی، مطلب ئې دا اوځی چه الله ﷻ دنمر اوسپوږمۍ دراختو اوډوبیدو اوددې درفتار يوخاص حساب لرلې دې چه ددې په ذریعه انسانان دکالونو، میاشتو، ورځو، ګینټو بلکه منټونو اوسیکنډونوحساب په آسانئ سره لګولې شي-

دادالله ﷻ دغالب قُدرت کاردې چه ددې عظیم الشان نوراني غونډ سکو[پنډوسونو] د حرکتونواورفتارونوانتظام ئې په داسې مضبوط انداز کښې ایښې دې چه په زرګونو کالونو تیریدو سره هم په دې کښې دیومنټ څه چه دیوسیکنډ فرق نۀ راځی، ددې مشینرئ ته د ورکشاپ څه ضرورت نۀ راپیښیږی، نۀ ئې چرته دپرزوسولیدل اوبدلیدل راپیښیږي ،اودغه دواړه نوراني پنډوسونه په يوټاکلې رفتارسره روان وی. ﴿لَا الشَّمْسُ يَنْۢبَغِيْ لَهَاۤ اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ﴾ په زرګونو کالُونو تیریدوسره ددې رفتار اوچلن کښې دیوسیکنډ فرق هم نۀ راځی، افسوس د ې چه انسان دقدرت په دې مضبوط اونۀ بدلیدونکی انتظام دوکه شو اوتیروتو او دا څیزونه ئې مستقل بالذات [دخپل اختیارخاوندان] اوګڼل بلکه مقصُود اومعبُودان ئې اوګرځول که ددې دانظام کله کله خرابیدلې ماتیدلې اوددې دسمولو دپاره څوورځې یاځوګینټې لګیدلې، هله به انسان په دې پوهیدو چه دامشینونه پخپله خوښه نۀ چلیږی، بلکه ددې چلوونکې او جوړوونکې بل یوذات دې مګر ،

اے روشنئ طبع توبرمن بلاشُدی، [اې رڼرا طبیعنی ته زما دپاره بلا جوړه شوې]

ددې پنډو سونومضبوط اونۀ بدلیدونکی نظام دانسان په سترګو پردې راوستې اوخپل ځان ته ئې فکر کړوتردې چه هغه داهیرکړل چه

*کوئی محبوب ہے اس پردۂ زنگاری میں*

حالانکه آسمانی کتابُونه، انبیاء ﷺ اورسولان ﷺ ددې حقیقت نه دخبرولو دپاره نازل شوی او رالیږلې شویدی.

په دې ارشاد سره قرآن کریم دې اړخ ته هم اشاره اوکړه چه دکالُونو اومیاشتو حساب شمسی او قمری دواړه کیدې شی، چه دواړه دالله ﷻ انعامات دی، دابیله خبره ده چه دنالوستو خلقو د آسانتیا اودکړکیچن حساب نه دخلاصولودپاره په اسلامی احکامو کښې قمری میاشتې اوکلونه حسابولې شی اوهرکله چه اسلامی تاریخ اواسلامی احکام ټول په قمری حساب باند اړه لری، خکه په اُمت باند ددې حساب قائم لرل فرض دی، که شمسی حسابُونه دڅه ضرورت له کبله اختیار کړې شي نوڅۀ ګُناه ئې نشته، لیکن قمری حساب بیخی شاته غورځول اودمخې نه ئې برته کول لويه ګناه ده ولې چه انسان ته به داپته نۀ لګی چه رمضان به کله وی لوئې وړوکې اختریه کله وی اومحرم وغیره به کله وی؟

دآیت په آخرکښې ئې اوفرمائیل ﴿ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ﴾ [یعنی داحیرانوونکې مضبُوط نظام د حرکتُونوچه پکښې هیڅکله دیومنټ اویوسیکنډ فرق هم نۀ راځی، دادهغه پاک ذات دقُدرت

کرشمه کیدې شی چه ،عزیز، په هرڅیز باند غالب اوقوی هم دې او ،علیم، یعنی په هرڅیزاوکار پوهیدونکې هم دې-

په درئیم آیت کښې فرمائی: ﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ [یعنی دنمر، سپوږمۍ نه علاوه نورستوری هم دالله ﷻ دکامل قُدرت خاص ننداري دی، ددې دپیداکولو د زرګونوحکمتونو څخه یوحکمت داهم دې چه انسان داوچې اودلوندې په خپلوسفرونوکښې ددې ستوروپه ذریعه خپلې لارې معلومولې شی چرته چه دشپې په تیرو کښې دارخونو او طرفونوپته لګول آسان نۀ وی، تجربه ګواه ده چه په دې اوسنۍ مشینی زمانه کښې هم دستورو دهدایت نه بې حاجته نۀ دې-

په دې آیت کښې هم دانسان په دې غفلت اولنډنظرۍ باند خبرداري داسې ورکړې شویدې چه دا ستوری هم، دجوړوونکی اوچلوونکی دحُکم تابع دی، نۀ په خپل وجود [موجودیدو]کښې مستقل دی، اونۀ ئې په پاتې کیدواوخپل عمل کولوکښې خپل اختیارشته، څوک چه یواځې هم په دې باندنظرونه ښخ کړی اوددې جوړوونکی ته نۀ ګوری هغه ډیرلنډنظری اودوکه خوړونکی دی-

آنانکه بجزروئے توجائے نگرانند کوته نظرانند چه کوته نظرانند

[څوک چه ستادمخ نه بغیر بل ځائې ته ګوری،لنډنظری او څومرلنډنظری دی]

بیائې ارشاداوفرمائیلو ﴿قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ [یعنی مُونږه دقُدرت دلیلُونه ښه صفاصفا بیان کړل هغه خلقو دپاره چه خبرلری] دې سره اشاره دې خبرې ته اُوشوه چه څوک په دې ډاګیزو نخښنو سره هم الله ﷻ نۀ پیژنی هغه بې خبره دې اوپه شُدبُد کښې نۀ دی-

په څلورم آیت کښې ارشاددې ﴿وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ﴾ مستودقرارنه جوړدې، مستقر، دقرار نیوځائې ته وئیلې شی ،مُستودع، د ،ودیعت ،نه مشتق دې،معنی ئې داده چه څه څیز په عارضی ډول څوورځې کیښودل شی،په دې بنابه،مستودع، هغه ځائې ته وئیلې شی چرته چه څه وخت دپاره یوڅیزپه عارضی ډول کیښودې شی-

یعنی یواځې الله ﷻ هغه ذات دې چه انسان لره ئې دیوځان یعنی حضرت آدم علیه السلام نه پیداکړو بیائې ورله،مستقر، څه مُودې پورې دپاتې کیدو ځائې جوړکړو اوبل ئې ورله ،مستودع، څو ورځو پورې دپاتې کیدو ځائې جوړکړو-

داخودقرآن کریم الفاظ دی، ددې په تعبیر اوتفسیر کولوکښې ګڼرا حتمالات دی لهذا دتفسیر د علماؤ په دې کښې مختلف اقوال دی،چا ،مستودع،دمورخیټې ته وئیلی دی،او ،مستقر، ئې دې دنیا ته وئیلی دی ،چا ،مستودع، قبرته او ،مستقر،ئې دارِدآخرت ته وئیلی دی، داسې نورهم ګڼر قولُونه په دې کښې شته دې چه دقرآن په الفاظو کښې ددغې ټولو ګُنجائش شته- حضرت قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې داقول غوره کړځولې دې چه ،مستقر، نه مُراد داردآخرت کښې دجنت یادوزخ مقام دې، اودانسان دپیداکیدو دشروع نه ترآخرته پورې پورۍ اودرجې ټول، مستودع، دې ولې چه په دې کښې څوورځې تیکاویدل کیږی که دا د مور خیټه وی،په زمکه داستوګنې ځایونه وی اوکه قبر اوبرزخ وی،[1] دقرآن کریم دیوآیت نه هم ددې قول غوره والې معلومیږی لکه فرمائی ﴿لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ﴾ یعنی تاسویه ټل دپاره دیوې درجې نه بلې درجې ته ځیږئ- حاصل ئې داشو چه ددار آخرت نه وراندې دانسان ټول ژوند دسفرشان

[1] تفسیر المظهری تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۷۳

لري چه دظاهري تيكاويدو باوجود، په حقيقت كښې دعمر دسفرپړاؤ نه لګيادې په مخه وهي اومنزل غوښوي -

مسافر ہوں کہاجاتاہے، ناواقف ہو منزل سے
ازل سے پھرتے پھرتے گورتک پہنچاہوں مشکل سے

[مسافريم دې نه خبرنۀ نيم چه چرته به خم چه پړاؤنه ناواقف يم- دازل راسې په ګرځيدو ګرځيدو ګورته په مُشکله رسيدلې يم] -

په دې آخري آيت كښې هم په ظاهري تيپ تاپ اودمخلُوقاتوپه رنګينو كښې مشغوليدوسره خپل اصلي، مستقر، اودالله اوآخرت نه غافله كيدونكې سترګې پرانستې شويدي دپاره ددې چه هغه حقيقت اوپيژني اوددُنيا ددوكې اوتيروتو نه خلاصې بيامُومي لكه مولاناجامي چه فرمائيلي دي.

همه انداز ترازين است ✻ كه توطفلي وخانه رنګين است

[په زمانه كښې ټول هرڅه ستادپاره ښائيست خكه دي چه تۀ ماشوم اوكوررنګين او نقشدار دې]

| وَهُوَ الَّذِيٓ |
| --- |
| [اوهغه \| هغه ذات دې \| |
| اوالله ﷻ هغه ذات دې چې |
| اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ |
| چې نازلې ئې كړې \| داسمان نه \| اوبۀ \| نو رااويستل مونږه\|په هغې سره\| بوټي \| دهرڅيز |
| داسمان دطرفه ئې اوبه راورولې دي\| اودهغې په ذريعه مونږ هرقسم شينكې رازرغون كړو |
| فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا |
| نورااويستل مونږه\|دهغې نه\|شين فصل\|را اوباسومونږه\| دهغې نه \|داني\| قط په قط يو بل كښې نختې |
| اوبه هغې كښې مو شنه ښاخونه پيداكړل اوبه هغې مو قط په قط دانې پيداكړې |
| وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّجَنّٰتٍ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّالزَّيْتُوْنَ |
| او د كجورونه \|دغنچې دهغې نه\| وږى \| نږدې \| او باغونه\| دانګورو \| اوخونه \| |
| اودكهجورو دغونچې نه زوړندې غونچې........ ........\|اود انګوروا وخونه او د انارو باغونه |
| وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ اُنْظُرُوْٓا اِلٰى ثَمَرِهٖٓ |
| اوانار \|چې يوشان وى په رنګ كښې\| اونۀ وى يوشان په خوند كښې\| اوګورئ\| ميوې دهرې ونې ته |
| ........چې څه ديوبل پشان دى \| او څه ديوبل نه مختلف دى \| ددې ونوميوو ته اوګورئ |
| اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ |
| كله چې ميوه اونيسى \| اوپخيدو د هغې ته \| بيشكه \| په دې څيزونو كښې \| نښې دي\| دپاره دهغه قوم |
| چې كله ميوه اوكړى اوكله پخه شي\|بيشكه په دې څيزونو كښې دهغه خلقو دپاره د عبرت نښې دي چې |
| يُّؤْمِنُوْنَ ۝ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ |
| چې ايمان راورى\| اوجوړكړى دى خلقو\| الله لره\| شريكان \|چې پيريان دى\|حال داچې پيدا كړى دى الله پيريان |
| مومنان دى\|اودوئ الله ﷻ لره پيريان شريكان ګرځولي دى\|حال دادې چې الله خو هغوى هم پيدا كړي دى |

وَخَرَقُوْا | لَهٗ | بَنِيْنَ | وَبَنٰتٍۭ | بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ | سُبْحٰنَهٗ | وَتَعٰلٰى
اوجوړ کړل خلقو | الله لره | ځامن | اولونړه | بغير د علم نه | پاکي ده هغه لره | او ډير اوچت دي
اودوئ الله ﷻ لره بغير د پوهې نه ځامن او لونړه جوړ کړي دي | الله ﷻ پاک دی | او د هغه خبرو د نسبت نه

عَمَّا | يَصِفُوْنَ ۝ | بَدِيْعُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ؕ | اَنّٰى
د هغه خبرونه | چې دوئ بيانوي | هغه لره | پيدا کونکي دي | د آسمانونو | او د زمکې | څنګه
اوچت دي کومې چې دوئ بيانوي | ............ د آسمانونو او زمکې پيدا کونکي دي | ............ څنګه

يَكُوْنُ | لَهٗ | وَلَدٌ | وَّلَمْ تَكُنْ | لَّهٗ | صَاحِبَةٌ ؕ | وَخَلَقَ
کيدي شي | هغه لره | ځوئې | حال دا چې نشته | هغه لره | ملګرې دژوند [ښځه] | او پيدا کړي دي هغه
د هغه د پاره ځوئې کيدي شي | حالانکه د هغه بي بي نشته ............ | او هغه هر څيز پيدا

كُلَّ شَيْءٍ ۚ | وَهُوَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيْمٌ ۝ | ذٰلِكُمُ | اللّٰهُ | رَبُّكُمْ ۚ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا
هر څيز | او هغه | په هر څيز | باندي خبردار دي | دغه | الله | رب دي ستاسو | نشته لائق د عبادت | مګر
کړي دي | او په هر څه پوهه دي | هم دا الله ﷻ دې چې ستاسو پالونکي دي | د هغه نه بغير بل څوک معبود نشته

هُوَ ۚ | خَالِقُ | كُلِّ شَيْءٍ | فَاعْبُدُوْهُ ۚ | وَهُوَ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | وَّكِيْلٌ ۝
هغه دي | پيدا کونکي | د هر څيز | نو عبادت کوئ د هغه | او هغه | په هر څيز باندي | نګهبان دي
د هر څيز پيدا کونکي دي | ............ د هغه عبادت کوئ | او هغه د هر څيز کارساز دي ............

## آسان ترجمه قرآن

او الله هغه ذات دې چې تاسو د پاره ئې د آسمان نه اوبه راوورولې، بيا دې سره مونږ هر قسم هغه کې راوټوکول دې (ګياه نه) مونږ سبزې پيدا کړې چې د هغې نه مونږ يو بل د پاسه سورې دانې راوباسو . او د کجورو د غنچو نه د ميوو هغه غنچې راووځي چې (د ميوو د درونډوالي د وجې نه) ښکته وې او مونږ د انګورو باغونه پيدا کړي دي . او خوګه او انار چې ديو بل سره يو شان هم دي، او د يو بل نه مختلف هم چې کله دا ونې ميوې ورکوي نو ددې ميوو او ددې د پخيدو کيفيت ته په غور سره وګورئ. خلقو ا دې ټولو څيزونو کښې لوئ نښې دي (مګر) د هغه خلقو د پاره چې ايمان راوړي. او خلقو پيريان الله سره په خدائۍ کښې شريک کړي دي حال دا چې الله هغوی لره پيدا کړي دی او بې د څه پوهې نه ئې هغه لره ځامن او لونړه جوړې کړي دي . حال دا چې دا الله په باره کښې چې دوی کومې خبرې جوړوي . الله د هغې ټولو نه پاک او اوچت دي هغه خو د آسمانونو او زمکو نوې پيدا کونکې (موجد) دي. د هغه څوک ځوې څنګه کيدې شي حال دا چې د هغه بي بي نشته؟ هم هغه هر څه پيدا کړي دي . او هغه په هر څه باندې پوهيږی. خلقو! هغه دې الله چې ستاسو پروردګار دې ا د هغه نه سوا بل معبود نشته. هغه د هر يو څيز خالق دې.پس د هغه عبادت وکړئ. او هغه د هر يو څيز نګراني کوونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ﴾ او هغه [الله ﷻ] داسې دے چې د آسمان [د طرفه] نه يې اوبه راوروليے ﴿ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ بيا مونږ [هم] د دغې [يو اوبو] په ذريعه هر قسم

[رنگارنگ] زرغونه [دزمکې نه] راوبنکله [هم ديو اوبو يوے خاورے نه دومره مختلف قسمه ونے [درختی]چه رنگونه بويونه خوندونه او فائدې ئے ديو بل نه ډيرے زياتے مختلفے دی څومره عجيبه کرشمه دقدرت ده] ﴿فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا﴾ بيا مونږ ددغې [تيغ] نه [چه په اول کښې زمکې نه راوتو کيږی څوك ورته زرغونه توکه او تيغ وائی او په رنگ زير وی] شنه خانگه راوبنکله چه دغې [بناخ] نه مونږ يو بل دپاسه ختلے دانے راوباسو [داخو د غلو شان دے چه مجمل بيان ئے په ﴿فالق الحب والنوى﴾ کښې راغلې دے] ﴿وَمِنَ النَّخْلِ مِن طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ﴾ اوړ کهجورو د [ونو نه] يعنى دهغې د غوټۍ نه غنچے [راوخی] چه [د زيات وزن له وجې] بنکته را زوړندے شی ﴿وَجَنَّاتٍ مِّنْ أَعْنَابٍ وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ﴾ او [هم ددغه اوبو نه مونږ] د انگورو باغونه [پيدا کړل] او زيتون او انار [يعنى ددې ونے مو پيدا کړې] داسې چه [د انارو او زيتون ميوے په شکل انداز او رنگ وغيره کښې] يو بل سره يو شان وی [اوبعضې] يو بل سره يو شان نه وی [اوبه] ﴿انظُرُوا إِلَىٰ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ وَيَنْعِهِ﴾ دهر يو ميوه خو اوگورئی کله چه هغه وده کوی [چه دغه وخت بيخی کچه بے خونده وی او د نفعے اخستلو جوگه نه وی] او [بيا] دد ے پخيدو ته اوگورئی [چه دغه وخت په ټولو صفتونو کښې څنگه کامله شی دا هم دالله ﷻ دقدرت نخښے دی] ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ په دې [خبرو] کښې [هم] دليلونه [دتوحيد موجود] دی [اگر چه دتبليغ په اعتبار سره ټولو دپاره دی مگر د فائدې اخستلو په لحاظ هم] هغه خلقو دپاره [دی] چه د ايمان [راوړلو فکر] لری [دا دميوؤ اوفروټو بيان اوشو چه اجمالی بيان ئے په والنوى کښې راغلې دے.

﴿وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ الْجِنَّ﴾ او [مشرکانو] خلقو [په خپل اعتقاد کښې] شيطانانو لره [د داسې] دالله ﷻ [چه صفتونه اوکارونه ئے پورته بيان شو] شريکان گرځولی دی [چه دهغوی په غولولو سره شرك کوی اودالله ﷻ په مقابله کښې دهغوی په وينا باندې عمل کوی] ﴿وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوا لَهُ بَنِينَ وَبَنَاتٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ سره ددې چه دے خلقو لره [بخپله ددوی د اقرار مطابق هم] الله ﷻ پيدا کړی دی [هرکله چه بل څوك پيداکوونکې نشته نو معبود هم بل څوك نه دی کيدل پکار] او دے [مشرکانو کښې بعضې] خلقو دالله ﷻ په حق کښې ځامن او لونړه [په خپل اعتقاد کښې] خاص بے دليله تراش کړی دی [څنگه چه نصرانيانو به حضرت مسيح ؑ لره اوبعضې يهودو به حضرت عزير ؑ لره دالله ﷻ ځوئے اود عربو مشرکانو به فرښتو ته دالله ﷻ لونړه وئيلې] ﴿سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ﴾ هغه پاك او بالا دے دهغه خبرو نه چه دا خلق ئے [دالله ﷻ په شان کښې] بيانوی [چه دهغه دے څوك شريك وی يا څه اولاد وی] ﴿بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ هغه دآسمانونو او زمکې موجد [د نيشت نه شته کوونکې] دے [او بل هيڅوك موجد نشته نو معبود به هم بل څوك نه وی دے سره د شريك نفی اوشوه اود اولاد د نفی دليل دادې چه په حقيقت کښې اولاد دښځې خاوند ترمينځه ديو بو ځائې والی نه پيدا کيږی نو] ﴿أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن لَّهُ صَاحِبَةٌ﴾ دالله ﷻ اولاد چرته کيدې شی حالانکه دهغه څوك بی بی خو شته دے نه ﴿وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ﴾ اوالله ﷻ [چه څنگه دا خلق پيدا کړل ﴿وخلقهم﴾ زمکه او آسمانونه ئے پيدا کړل ﴿بديع السموت والارض﴾ دغه شان هغه] هرڅيز پيداکړو او [څنگه چه هغه په

خالقیت کښې بې مثله دے دغه شان په دې صفت کښې هم بې مثله دے چه] ﴿ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴾ هغه هرڅيز ښه پيژني [د ازل نه هميشه دپاره هم اوپه دې صفت کښې هم دده هيڅوک شريک نشته او پيدا کول بغير د علم نه نشي کيدې دے نه هم ثابته شوه چه بل هيڅوک پيداکوونکې نشته] ﴿ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ ﴾ دا [ذات د چا صفتونه دکمال چه بيان شو] دے الله ﷻ ستاسو رب دهغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته دهر څيز پيداکوونکې [ځنګه چه پورته بيان شو هرکله چه دا صفتونه يواځې په الله ﷻ کښې دی] نوتاسو خلق [هم] دهغه عبادت کوئی ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴾ او [بيادا چه هم] هغه د هرڅيز [حقيقي] کارساز دے [بل څوك کار ساز هم نشته نوکه تاسو دهغه عبادت کوئی هغه به تاسو ته حقيقي نفع درسوي او بل به درته څه درکړی غرض دا چه خالق هم هغه عليم هم هغه وکيل هم هغه او دا ټول څيزونه داتقاضا کوی چه معبود دے هم هغه وی].

## معارف او مسائل

په دې مضمونونو کښې دعجيبه ترتيب لحاظ ساتلې شويدې، هغه داسې چه دلته درې قسمه کائنات بيان شويدی- سفليات[ښکتني]علويات [پورتني] فضائي بيان ئې دسفلياتو نه ځکه شروع کړو چه هغه راته ډيرنزدې دی- بيانې ددې دوه برخې جوړې کړې يوهغه چه دزمکې نه راټوکيږی لکه اونې، بوټی اوباغونه اوبل حيوانات لکه انسان اونورڅاروی ځناور او سادار څيزونه، اولنی ئې ځکه وړاندې بيان کړل چه په نسبت سره نوروته زيات ښکاره دی اودبل معامله ځکه باريکه ده چه په روح باند اړه لری، چنانچه دنطفې مختلف حالات اودرجې طبيبانو او ډاکترانوسره مخصوص دی چه يواځې پرهغوی پوهيږی اودټوکيدونکو څيزونو ټول حالات د عامو خلقومخې ته دی-بيانې دآسمانی فضادڅيزونوبيان اوکړو، لکه صبا، مابنام، بيائې علويات بيان کړل لکه شمس، قمر، نجوم، بياهرکله چه سفليات زيات ليدلې کتلی کيږی ځکه ئې دادوياره راوړل اوبيان ئې پرختم کړو، ولې چه اول دهغې اجمالی بيان وو اوداخل ئې تفصيلی بيان راغلو، ليکن دتفصيلی ترتيب ئې داجمال دترتيب په نسبت اپوته داسې اوکړو چه دانفس بيان ئې وړاندې کړوو اودنباتاتوبيان ئې روستوکړو، ممکنه ده چه ددې بنياد داوی چه په تفصيلی بيان کښې دنعمت دښکاره کولوعنوان اختيار کړې شويدې په دې شان سره هرکله هغه څوک چه پر انعام شويدې مقصود اومتبوع دې ځکه هغه وړاندې کړې شوې وی اوپه نباتاتوکښې وړاندينی ترتيب داسې باقی دې چه دغلو کيفيت په دانه اوهډوکی باند وړاندې بيان شويدې، دباران ذکرپه منځ کښې ځکه راغلو چه دادنباتاتوتابع دې په دې کښې دمزې خبره داهم کيدې شی چه باران بيل بيل شان داسې لری چه دابتداء اوبنيادپه اعتبارسره علوی، دانتها په اعتبارسره سفلی اودمزل په اعتبار سره فضائی دې-

| لَا تُدْرِكُهُ | الْأَبْصَارُ | وَهُوَ | يُدْرِكُ | الْأَبْصَارَ | وَهُوَ | اللَّطِيفُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نشی کتلې هغه | سترګې | اوهغه | وينی | سترګې | اوهغه | باريك ليدونکې دی |

اوهغه [د مخلوق] په سترګونه ليدلې کيږی | اوهغه ټولې سترګې وينی | اوهغه ډير باريک بين

الْخَبِيرُ ۝ قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ

خبردار دي | په تحقيق سره | راغلي دي تاسوته | رڼاګانې دپوهې | دطرفه درب ستاسونه |

خبردار دي | ......... تاسو ته دخپل رب دطرفنه دليلونه راغلي دي .................................

فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِ ۚ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا ۚ

نوچاچې | اوغږولې سترګې | نوفائده ئې دپاره دخپل ځان ده | اوچاچې ابندې کړې | نونقصان ئې په هغه دې

نوڅوک ئې چې اووينې | نوفائده ئې ځان دپاره ده | اوڅوک چې ځان ړوند کړي | نو نقصان ئې ځان دپاره دي

وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ ۝ وَكَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْأَيَٰتِ

اونه يم زه | ستاسو | ساتونکې | اوهم دغه شان | مونږ باربار بيانوو | آيتونه |

اوزه په تاسونګهبان | مقررشوې | نه يم | ................اومونږ خپل آياتونه دغه شان بيانوو

وَلِيَقُولُوا۟ دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهُۥ

اوددې دپاره چې اووائي داخلق | دبل چانه وئيلې دي تا | اودپاره ددې چې مونږ بيان کړو حقيقت |

اوددې دپاره چې دوئ اووائي چې تا | چرته دچانه | لوستلي دی | ..............او څوک چې

لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ۝ اتَّبِعْ مَآ أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۚ

هغه قوم ته | چې پوهه لري | تابعداري کوه | دهغې | چې وحي شوې ده | تاته | دطرفه درب ستانه

پوهه دي هغوئ ته حقيقت ښکاره کړو | ته د هغه وحي تابعداري کوه کومه چې تاته ستا رب کړې ده

لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ۝ وَلَوْ

نشته لائق دعبادت | مګر | هغه دې | اومخ اوګرځوه | دمشرکانونه | اوکه چرې

دهغه نه بغير بل معبود نشته | .......اود مشرکانو هيڅ پرواه مه کوه | ............ اوکه چرې

شَآءَ اللَّهُ مَآ أَشْرَكُوا۟ ۗ وَمَا جَعَلْنَٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ۖ

غوښتلې الله | نونه به وو کړې شرک دې خلقو | اونه ئې مقرر کړې مونږ ته | په دوئ | څوکيدار ساتونکې

الله ﷻ غوښتلې نو دوئ به شرک نه وو کړې | اومونږ ته په دوئ محافظ نه ئې مقرر کړې

وَمَآ أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ ۝

اونه ئې | ته | په دوئ باندې | وکيل |

اونه ته ددوئ ذمه دار يې

## آسان ترجمه قرآن

نظرونه هغه لره نه شي ليدې او هغه ټولو نظرونو لره راګيروي. دهغه ذات دومره لطيف دې او هم دومره خبردار دې (اې پيغمبره ! دې خلقو ته ووايه چه :) تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرف نه د بصيرت ډيرونه راغلي دي، اوس څوک چه په ښکاره سترګو دي لره ګوري هغه د خپل ځان سره ښيګړه کوي، او څوک چه خپل ځان ړوند کړي نو هغه به خپل نقصان وکړي او ماته ستاسو دحفاظت ذمه داري نه ده حواله کړې شوې دغه شان مونږ آيتونه بيا بيا مختلفو طريقو سره واضح کوو (دې دپاره چه ته دا خلقو

ته اورسوي) او آخر دا خلق دا وواي چه: تا دچا نه ازده کړي دي او کوم خلق چه دعلم نه کار اخلي هغوی دپاره مونږ حق واضح کوو (اې پيغمبره !) تا پاندې چه د پروردګار د طرف نه کومه وحي راغلې ده دهغې تابعداري کوه ، د هغه نه سوا هيڅوک معبود نشته او کوم خلق چه دالله سره شرک کوي ، دهغوی نه بې پرواه شه. که دالله خوښه وه نو دې خلقو به شرک نه وو کړې مونږ نه ته د دوی په حفاظت مقرر کړې يې، او نه ته ددې خلقو د کارونو ذمه دار ئې.

## خلاصه تفسير

[او دهغه دعليم کيدو او په دې کښې دهغه د ځانګړې کيدو شان دادې چه] ﴿ لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ ﴾ په هغه باندې خو د هيچا نظر راچاپيره کيدې نشی [چنانچه په دنيا کښې خوئې دسره څوك ليدلې نشی لکه چه په شرعی دليلونو سره ثابته ده او په آخرت کښې به که جنتيان ئې وينی څنګه چه په شرعی دليلونو سره ثابته ده خو پوره راچاپيره کيدل پرې محال او ناممکن دی او هغه څيز چه په سترګو ليدلې شی او بيا هم دهغې په ظاهر باندې نظر پوره احاطه نشی کولې نود حقيقت باطنی احاطه کول به يې ددې نه ډير زيات محال وی ولې چه د ظاهر په نسبت باطن په ډيرودرجوسره پټ وی اوپه ډيرو درجو سره د ظاهر په نسبت په کښې خطائی هم زياته راتلې شی] ﴿ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ ﴾ اوهغه [الله ﷻ] په ټولو نظرونو باندې [کوم چه دهغه داحاطې کولونه پاتې راغلی وو واجبی طور] محيط کيږی [دغه شان په نورو څيزونو باندې هم علمی طور سره محيط دے ﴿وهو بكل شئ عليم﴾] ﴿ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴾ او [هر کله چه هغه په ټولو محيط دے اوپه هغه څوك محيط نشته دې نو دے نه لازمه شوه چه] هم هغه لوئې باريك بين با خبره دے [او څوك بل نه دې او دا دعلم هغه کامليدل دی چه په کښې الله ﷻ ځانګړے او بے مثله دے تاسو دغے خلقو ته اووايئ چه] ﴿ قَدْ جَاءَكُمْ بَصَائِرُ مِنْ رَبِّكُمْ ﴾ اوس بے شبهے تاسو ته ستاسو د رب د طرفه دحق ليدو ذريعې [يعنی دتوحيد او رسالت دحقوالي عقلی او نقلی دليلونه] رارسيدلی دی ﴿ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِ ﴾ نو چه څوك [ددې په ذريعه سره حق لره] اووينی هغه به خپله فائده کوی ﴿ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ ﴾ او څوك چه ړوند پاتې شی هغه به خپل نقصان کوی او زه ستاسو [يعنی ستاسو د عملونو] نګران نه يم [يعنی څنګه چه څارندوال ناکاره کارته څوك نه پريږدی دغسې ذمه زما نه ده ولې چه زما کار صرف تبليغ کول دی]

﴿ وَكَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ ﴾ او [ګورئ] مونږ په دې سے [سپيځلی] ډول باندې دليلونه دمختلفو طرفونو نه بيانوو دپاره ددې چه تاسو ټولو ته اورسوئی او دپاره ددےچه دا [منکر خلق دتعصب نه] داسې اووائی چه تاسو چا نه [دا مضمونونه] لوستی دی [مطلب دا چه دغه خلق بنه جخت په دې کښې راګير شی چه مونږ درته حق بنه په داګه ثابتولو اوتاسو بيا بےځايه بهانے د ځان نه کولې] ﴿ وَلِنُبَيِّنَهُ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ او دپاره ددې چه مونږ [قرآنی مضامين] عقلمندو دپاره بنه ښکاره کړو [يعنی د قرآن کريم د نازلولو درے فائدې دی يو دا چه تاسو ته دتبليغ اجر درکړې شی بله دا چه په منکرينو باندې زيات جرم ثابت شی دريم دا چه دعقل خاوندانو او حق لټوونکو ته حق ښکاره کړې شی]

﴿ اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ ﴾ تاسو [دا مه ګورئ چه څوك ئې منی او څوك ئې نه منی] پخپله په دې طريقه روان اوسئ چه دهغې [يعنی په هغې باندې د روان پاتې کيدو] وحی ستاسو د

رب دطرفه تاسو ته راغلي ده [اوپه دې طريقه کښې لوئې څيز دا عقيدې لرل دي چه] ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ الله ﷻ نه سوا بل هيڅوك دعبادت لائق نشته [اوپه دې طريقه کښې د تبليغ حکم هم داخل دی] او [په دې باندې کلك پاتې شئ] مشرکانو ته خيال مه کوئی [چه افسوس هغوی ولې دا قبوله نکړه] ﴿ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَآ اَشْرَكُوْا ﴾ او [دخيال نه کولو وجه داده چه] که الله ﷻ ته منظور وے نو دوی به شرك نه ووکړې [ليکن ددغې خلقو دبدوعنوانو له وجې الله ﷻ ته دا منظوره شوه چه دوی له سزا ورکړی څکه ئے دغسې سامان راجمع کړو نو آيا تاسو دوی لره مسلمانان جوړولے شئ] ﴿ وَمَا جَعَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ﴾ او [تاسو ولے په دې فکر کښې پريوځئ] مونږ تاسو لره ددوی [د عملونو] نګران نه يئ جوړ کړی ﴿ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴾ اونه تاسو [پدغے عملونو باندې دعذاب ورکولو دپاره زمونږ د طرفه] اختيار مند يئ [نو هر کله چه تاسو سره د جرمونو دتفتيش څه تعلق نشته اونه درته دسزا ورکولو حکم درکړې شوې دې نو بيا ولے فکر کوئی].

## معارف اومسائل

دسُورت انعام ددې پنځو آيتونو څخه په رُومبی آيت کښې، ابصار، لفظ راغلې دې چه د، جمع صيغه ده معنی ئې نظراودليدلوقُوت دې، د، ادراک، معنی ده مُوندل، نيول، احاطه کول. حضرت عبدالله بن عباس دلته د، ادراک، تفسير، احاطه کول بيان کړيدی، [بحر محيط] (۱)

دآيت معنی داشوه چه ټول مخلُوقات پيريانَ، انسانان، فرشتې اوټول حيوانات که په يوځل اوپه جمع الله ﷻ لره ليدل اوغواړی نوپه دې شان ئې نشی ليدلې چه دهغه دذات احاطه اوکړی، خوالله ﷻ دټولو مخلُوقاتو نظرونه په پُوره شانِ سره داسې وينی چه په دې ټولوباند مُحيط هم وی، په دې لنډ آيت کښې دالله ﷻ دوه مخصوص صفتُونه بيان شويدی، اول داچه ټولوکائناتو کښې دهيچا نظر يواځې څه چه که ټول په جمع هم الله ﷻ ته کتل اوغواړی نوهيچرې دهغه دذات احاطه نشی کولې-

دحضرت ابی سعيد خُدری ﷺ په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه که ددُنيا ټول انسانان، پيريان، فرشتې اوشطانان ټول چه دکوم وخت نه ئې پيداکيدل شروع شويدی اوترکومه وخته به چه پيداکيږی داټول راجمع شی په يوصف کښې اودريږی نوهم به په خپل نظرسره دالله ﷻ دذات احاطه اونکړې شی[مظهری په حواله دابن ابی حاتم]-(۲)

اوداخاص صفت يواځې دالله ﷻ کيدې شی ورنه نظرته الله ﷻ داسې طاقت ورکړی دې چه دوړوکی[کشنی] نه وړوکی حيوان وړې نه وړه سترګه ددُنيا لوئې لوئې کُرې ليدلې شی اودهغې احاطه کولې شی لکه نمر، سپوږمۍ چه زمکه اوټوله دُنياهم ددې په مقابله کښې څه حيثيت نه لری مګريواځې انسان نه بلکه وړوکې نه وړوکې حيوان ئې ليدې شی اوپه خپل نظرسره ئې احاطه کولې شی-

اوحقيقت دادې چه نظر خودانسانی حواسونه يوه داسې حاسه ده چه ورسره دمحسُوس څيزونو علم حاصليدې شی خودالله ﷻ پاک ذات دعقل اووهم داحاطې نه هم ډيرزيات پورته دې

(۱) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۲۲
(۲) تفسير ابن ابی حاتم رقم الحديث: ۷۷۴ والتفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۲۷۴

نو دنظر په دې حاسې سره به ئې څنګه احاطه اوکړې شي؟-

تُو دِل میں آتا ہے سمجھ میں نہیں آتا　　　بس جان گیا میں تری پہچان یہی ہے

[ته په زړه کښې راځې خو پوهه کښې نه راځې، اوس زهٔ پوهه شوم چه ستا پیژند ګلې همدغه ده]۔

دالله ﷻ ذات اوصفتونه لامحدود دي، خوانساني حواس، عقل اوخیال ټول محدود څیزونه دي بنکاره خبره ده چه یو لامحدود په محدود کښې نشي ځائې کیدې، همدغه وجه ده چه د دنیا کومو عاقلانو، فلسفیانو چه په عقلي دلیلونو سره دکائناتو دخالق دپتې لګولو اودهغه دذات او صفتونو دموندلو اواحاطې دپاره خپل عمرونه په بحث اوتحقیق کښې اولګول اوکومو صوفیائې کرامو چه دکشف اوشهود په لاره ددې میدان سیل، سفر اوکړو داټول په دې اتفاق لري چه دهغه ذات اوصفتونو حقیقت نهٔ چا موندلې دې اونهٔ ئې موندې شي، چنانچه مولانا رومي رحمه الله فرمائیلي دي-

دُوربینان بارگاهِ الست　　　غیر ازیں پے نه بُرده اندکه هست

[د ،الست، په دربار کښې که چاهر څومره نظرلرې زغلولې دې- هغوئ ددې نه سوا فیصله نهٔ ده کړې چه بس هغه موجود دې [او تفصیل ئې نشي بیانولې]-

شیخ سعدي فرمائیلي دي-

چه شبها نشستم درین سیر گم　　　که حیرت گرفت آستینم که ،قُم،

[ډیرې شپې په دې منزل کښې ورک ناست وُم- آخر حیرانه شُوم اودپورته کیدو حکم راته اوشو یعنې ددې حقیقت ته اونهٔ رسیدم خکه راپورته شوم]-

**دالله ﷻ دلیدلو مسئله**:: انسان الله ﷻ لره لیدلې شي اوکه نه؟ په دې مسئله کې دټولو اهل سُنت والجماعت عقیده داده چې په دنیا کښې ئې هیڅوک نشي لیدلې چنانچه دحضرت موسی علیه السلام ددې خواست :

﴿رَبِّ أَرِنِيٓ﴾ [اې زما پروردګاره! ماته ځان رابنکاره کړه چه اود وینم] داجواب ورکړې شو: ﴿لَن تَرَىٰنِي﴾ [ته م هیچرې نشې لیدلې]- هرکله چه حضرت موسی علیه السلام ته داسې جواب ورکړې شو نو بیا دبل چا انسان یا پیرې به څهٔ وس اورسی؟ البته دصحیح اوقوی متواترو حدیثونو نه ثابت دي چه په آخرت کښې به مؤمنانو ته دالله ﷻ دیدار اوزیارت نصیب کیږي اوپخپله قرآن کریم هم فرمائي:

﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ۝ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ دقیامت په ورځ به ډیرې مخونه تروتازه خوشحاله وي اوخپل رب ته به ګوري-

البته کفار اومُنکران به په دغه ورځ هم دسزا په ډول دالله ﷻ ددیدار نه محرومه وي لکه قرآن کریم فرمائي:- ﴿كَلَّآ إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ﴾ کُفار به په دغه ورځ دخپل رب دزیارت نه بند کړې شوي وي اوبې نصیبه به وي-

آخرت کښې به دالله ﷻ دیدار اوزیارت په مختلفو مقاماتو کښې وي، دمحشر په میدان کښې هم، جنت ته درسیدونه پس هم، اوجنتیانو دپاره دټولونه زیات لوئې نعمت به دالله ﷻ زیارت اودیدار وي-

چنانچه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه هرکله جنتیان به چه جنت ته ورد ننه شي نو الله ﷻ به ورته اوفرمائي چه کوم نعمتونه دجنت چه درکړې شویدي دهغې نه زیات درته نور څه پکار دي راته اووایئ چه هغه هم درکړم، دوئ به عرض اوکړي چه اې الله! تا راته دجهنم نه خلاصې راکړو،

جنت ته دراوستو ددې نه زيات به نورڅه غواړو؟ دغه وخت به حجاب دمنځه نه پورته کړې شي او ټول به دالله ﷻ زيارت اوکړي چنانچه دجنت دټولونعمتونونه به زيات دانعمت وي. داحديث په صحيح مُسلم کښې دحضرت صهيب نه منقول دې-(۱)

دصحيح بخاري په يوحديث کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ يوځل دسپوږمۍ په شپه کښې د صحابه کرامو په ټولي کښې تشريف لرلو، سپوږمۍ ته ئې اوکتل اووې فرمائيل چه [په آخرت کښې] تاسو به خپل پروردگار داسې په ډاګه وينئ ځنګه چه داسپوږمۍ وينئ-(۲)

دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت په ترمذي اومسنداحمد کښې يوحديث داسې منقول دې چه الله ﷻ په جنت کښې کومو کسانوته خاص درجه ورکړې هغوئ ته به صبا بيګاه دالله تعالى زيارت نصيب کيږي-(۳)

خُلاصه داشوه چه په دُنياکښې دالله ﷻ زيارت نشي کيدې خوآخرت کښې به ئې ټول جنتيان زيارت اوديدارکوي-رسول الله ﷺ چه دمعراج په شپه کوم ديدار الهي کړې وو هغه هم په حقيقت کښې د دار آخرت ديدار وو. لکه چه شيخ محي الدين ابن عربي فرمائيلي دي چه دُنيا يواځې دهغې جهان نُوم دې چه آسمانُونو کښې راګير دې، خودې نه پورته دآخرت مقام دې هلته په رسيدو دالله ﷻ ديدارکولوته ددُنيا ديدارکول نشي وئيلې-

اوس سوال داراپورته کيږي چه هرکله يې اوفرمائيل چه ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ﴾ ددې نه معلومه شوه چه انسان دالله ﷻ په هيڅ صُورت کښې ديدار نشي کولې نوپه قيامت کښې به ځنګه ديدار اوکړې شي؟ددې جواب ښه ښکاره داسې دې چه دآيت معنى داده چه د انسان نظر دالله ﷻ دذات احاطه نشي کولې ولې چه دهغه ذات لامحدُود اوانساني نظرمحدُود دې،دامطلب ئې هيچرې نه دې چه انسان دسره ديدار الهي نشي کولې-

خُلاصه داشوه چه په قيامت کښې به ديدارالهي په دې شان وي چه نظربه ئې احاطه نشي کولې خوپه دُنياکښې دغه قسم ديدار هم ځکه نشي کيدې چه انساني نظردهغې دبرداشت کولو طاقت نۀ لري په آخرت کښې به ورته الله ﷻ ددغه قسم ديدار کولوطاقت ورکړي خوبيابه هم انساني نظر دذات الهي احاطه نشي کولې-

په دې آيت کښې دالله ﷻ بل صفت دابيان شويدې چه دهغه نظربه ټولو کائناتو باندې مُحيط دې،ددُنيا هيڅ ذره هم دهغه دنظرنه پټه نۀ ده، داعلم مُطلق اوعلمي احاطه هم صرف دالله ﷻ خصوصت دې، دهغه نه سوا هيڅ مخلُوق ته دکائناتو دټولوڅيزونواوذرې علم نۀ چرته حاصل شويدې اونۀ به حاصل شي ،ولې چه داد الله ﷻ يوخاص صفت دې-

بيافرمائي ﴿وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ﴾ دعربي لُغت په اعتبارسره ،لطيف، لفظ دوو معنودپاره استعماليږي- يومهربان ،بل دکثيف مُقابل، يعني هغه څيز چه دحواسو په ذريعه محسُوسولې اومعلومولې نشي-

---

(۱) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب اثبات رؤية المؤمنين فى الاخرة ربهم: ج ۱، ص ۱۰۰

(۲) صحيح البخارى، كتاب التوحيد، الرد على الجهمية وغيرهم، باب قول الله 'وجوه يومئذ' الآية: ج ۲، ص ۱۱۰۵

(۳) جامع الترمذى، أبواب صفة الجنة، باب ما جاء فى رؤية الرب تبارك وتعالى: ج ۲، ص ۸۲ ومسند أحمد، مسند عبد الله بن عمر رضى الله عنهما رقم الحديث: ۵۳۲۱

د ،خبير، معنى ده باخبر، نودپوره جملې معنى داشوه چه الله ،لطيف، دې خکه نې په حواسوسره ادراک نشى کيدې او ،خبير، دې خکه دټولو کائناتو يوذره هم دهغه دعلم اوخبرنه بهرنۀ ده. اوکه دلته د ،لطيف، معنى مهربان اوکړې شى نواشاره به دې ته شى چه اگرکه الله ﷻ زمونږ دهرقول، فعل بلکه دهرې ارادې اوخيال نه هم باخبره دې، دهغې تقاضاداوه چه په هره گناه باند زمونږ گرفت کيدلې ليکن هرکله چه هغه لطيف اومهربان هم دې خکه په هره گناه باند گرفت نۀ کوى.

په دوئيم آيت کښې ،بصائر، دبصيرت جمع ده معنى نې عقل ودانش ده، يعنى هغه قوت او طاقت دکوم په ذريعه چه انسان دغير محسوس څيزونوعلم حاصلولې شى، دلته په آيت کښې د ،بصائر، نه مراد هغه دليلونه اوذريعې دى چه هغې سره انسان حق اوحقيقت معلومولې شى، په دې بنا دټول آيت معنى به داسې شى چه دالله ﷻ دارخه تاسوته دحق ليدلو ذريعې اووسيلې رارسيدلى دى، يعنى قرآن کريم راغلو، رسول الله ﷺ راغلو، دهغوى معجزې راغلې، دهغوى اخلاق اومعاملات اوتعليمات دخلقو مخې ته راغلل، داټولې دحق ليدلو ذريعې دى-نوڅوک چه دې ذريعونه کارواخلى هغه دبصيرت او عقل خاوندجوړشى، هغه خپله نفع حاصله کړه اوددې ذريعوپه پريښوچه څوک دحق نه ړوندپاتې شو نوهم خپل زيان يعنى نقصان نې اوکړو-

په آخر دآيت کښې فرمائى چه:زۀ ستاسونگران نۀ يم- ،يعنى رسول الله ﷺ ددې ذمه دارنۀ دې چه په زبردستۍ سره خلق دناکاره کارونونه منع کړى څنگه چه ديونگران اوسارندوال ذمه دارى وى، بلکه درسول الله ﷺ منصبى فريضه صرف داحکام الهى رسول اوپه هغې باند پوهول دى، بياکه څوک نې په خپله خوښه تابعدارى کوى يانۀ کوې، داهغه ذمه دارى ده-

دتوحيد اورسالت کوم واضح دليلونه چه په تيرشوؤ آيتونوکښې بيان شوى وو، په دريم آيت کښې هغې ته اشارې کولوسره اوفرمائيلې شو ﴿وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ﴾ [يعنى مونږ داسې دليلونه په مختلفو طريقوسره بيانوؤ]-

وريسې اوفرمائيلې شو ﴿وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهُ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾

حاصل نې دادې چه دهدايت ټول سامان، معجزې اودليلونه، بې مثله قرآن کريم اوديوخاص امى دخُلې مبارکې نه داسې علوم اوحقيقتونه ښکاره کيدل چه دهغې نه ددنيا ټول فلسفيان اوحکيمان عاجز اوبې وسه پاتې شويدى داسې بليغ کلام چه په هغې کښې ترقيامته پورې راتلونکو بنيادمو اوپيريانو ته چيلنج ورکړې شو چه که ددې پشان يوور کوټې شان سورت هم جوړولې شې نو راوړى، خوبياهم ترټوله دنيا عاجزه شوه، داټول دحق ليدلو سامان داسې وو چه هرنا ضد منکر لره هم درسول الله ﷺ په خپو پريوتل پکاروو، ليکن دچا په طبيعت کښې چه ضدى اوکوږوالې وو هغوى دا وئيل شروع کړه ، دَرَسْتَ يعنى دا علو خوتا دچا څخه وئيلى دى ورسره دا يې هم اوفرمائيل: ﴿وَلِنُبَيِّنَهُ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ د دې حاصل دادې چه دچا پوهه درسته اوعقل نې سليم وى، هغوى لره دابيان نفعمن اومفيد ثابت شو- خلاصه نې داشوه چه د هدايت سامان خودټولو مخې ته کيښودل شو خوکوږ دماغو ترفائده پورته نکړه اودسالم عقل خاوندان ددې په ذريعه ددنيا رهبران جوړشول-

په څلورم آيت کښې رسول الله ﷺ ته داهدايت دې چه تاسودې ته مۀ گورئ چه څوک نې منى او څوک نې نۀ منى، تاسوپخپله په دغه طريقه روان اوسئ کومې دپاره چه تاسو ته وحى راغلې ده اوپکښې دټولو نه لونې څيزدااعتقاد دې چه دالله ﷻ نه سواهيڅوک لائق دعبادت نشته دغه شان

په دې وحی کښې د تبلیغ حکم هم داخل دې، په دې باند تاسو تینګ پاتې شئ او مشرکانو ته خیال مه کوئ چه افسوس! دوئې ولې قبول نکړو-

په پنځم آیت کښې د دې دا وجه اوښودلې شوه چه که الله ﷻ ته په تکوینی ډول د ټولو انسانانو مسلمانیدل منظوروې نو دوئ به شرک نه کولې لیکن د دوئ د بدو عملونو په وجه الله ﷻ ته دا منظوره وه چه دوئ ته سزملاؤشی ځکه نې همدغسې سامان جمع کړو، بیا تاسو دوئ لره څنګه مسلمانان جوړولې شئ، او ولې په دې فکر کښې پریوځئ، مونږه خو تاسو لره د دوئ د عمل نګران نه یئ جوړ کړی او نه په دې عملونو باند عذاب ورکولو د پاره زمونږ دا رخه اختیار من یئ، د دې کبله تاسو لره د دوئ د عملونو په وجه فکرمند کیدل نه دی پکار-

وَلَا تَسُبُّوا | الَّذِيْنَ | يَدْعُوْنَ
| او مه کوئی کنځل | هغو ته | چې رابلې نې | دا خلق |
| او (اې مسلمانانو) هغې معبودانو ته کنځل مه کوئ | چې دوئ نې

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | فَيَسُبُّوا | اللّٰهَ | عَدْوًا | بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ | كَذٰلِكَ
ماسوا د الله نه | نو کنځل به او کړی | الله ته | په دشمنئ کښې | په ناپوهتیا سره | دغه شان |
دالله ﷻ نه سوا عبادت کوی | ځکه چې دوئ به په دښمنئ کښې د ناپوهئ په وجه الله ﷻ ته کنځل او کړی داشان

زَيَّنَّا | لِكُلِّ اُمَّةٍ | عَمَلَهُمْ | ثُمَّ | اِلٰى رَبِّهِمْ | مَّرْجِعُهُمْ
ښائیسته کړې دې مونږه | هر امت ته | عمل دهغوئ | بیا | رب دهغوئ ته | واپس تلل دی دهغوئ
مونږ هر یو امت ته خپل خپل عمل ښائسته کړې دې | بیا به دا ټول خپل رب ته پیش کیږی

فَيُنَبِّئُهُمْ | بِمَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ۞ | وَاَقْسَمُوْا
نو خبر به کړی هغوئ | په هغه کارونو | چې وو هغوئ | چې کول به نې | او قسمونه خوړی هغوئ |
نو هغه به ورته خبر ورکړی چې دوئ څه څه کارونه کړی دی | او دوئ په الله ﷻ باندې

بِاللّٰهِ | جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ | لَئِنْ | جَآءَتْهُمْ | اٰيَةٌ | لَّيُؤْمِنُنَّ
په الله باندې | په سختو قسمونو خپلو سره | که چرته | راغله دوئ ته | څه نښه | نو خامخا به ایمان راوړی دوئ
غټ غټ قسمونه خوړل | که دوئ ته دالله ﷻ د طرفه نښه راشی | نو دوئ په پرې ایمان راوړی

بِهَا ؕ | قُلْ | اِنَّمَا الْاٰيٰتُ | عِنْدَ اللّٰهِ | وَمَا يُشْعِرُكُمْ ۙ | اَنَّهَآ
په هغې | (ورته او وایه) | بیشکه نښې | دالله سره دی | او څه پوهه کړئ تاسو | چې بیشکه دا نښې
(اې پیغمبره) دوی ته او وایه چې ټولې نښې الله ﷻ سره دی | او تاسو څه په دې پوهه کړئ

اِذَا | جَآءَتْ | لَا يُؤْمِنُوْنَ ۞ | وَنُقَلِّبُ | اَفْـِٕدَتَهُمْ | وَاَبْصَارَهُمْ
کله چې | راهم شی | نه راوړی ایمان دوئ | او مونږه اړوو | زړونه د دوئ | او سترګې د دوئ
که دغه نښه راشی نو بیا هم دوئ ایمان نه راوړی | او مونږ به د دوئ زړونه او سترګې د حق نه بدلې کړو

كَمَا | لَمْ يُؤْمِنُوْا | بِهٖٓ | اَوَّلَ مَرَّةٍ | وَّنَذَرُهُمْ
لکه څنګه چې | ایمان راونړو دوئ | په دې کتاب باندې | په اول ځل | او پریږدو مونږ دوئ
لکه څنګه چې دوئ په دې ښکاره نښو په اول ځل ایمان نه دې راوړئ | او په خپله سرکشئ کښې

| | |
|---|---|
| فِيْ طُغْيَانِهِمْ | يَعْمَهُوْنَ |
| په سرکشئ ددوئ کښې | چې حيران وي |
| په ئې حيران پريږدو | |

## آسان ترجمه قرآن

(مسلمانانو !) کوم د (دروغو خدايان) چه دا خلق دالله نه سوا رابلي ، تاسو دوی ته بد رد مه وايئ ،ددې په نتيجه کښې به دا خلق د جهالت د وجې نه الله ته بد رد ووائي دې دنيا کښې خو) مونږ دغه شان د هر يوې ډلې عمل د هغوی په نظر کښې ښايسته کړې دې بيا دوی ټولو لره خپل پروردګار ته واپس کيدل دی. هغه وخت به هغه دوی ته وښائي چه دوی به څه کول.او دې خلقو ډير پاخه قسمونه خوړلی دي چه که دوی ته څه نښه (يعنې د دوی مطلوبه معجزه) راغله نو دوی به يقيناً په هغې باندې ايمان راوړی (دوی ته) ووايه چه ټولې نښې دالله په قبضه کښې دي او (مسلمانانو!) تاسوته څه پته ده چه که هغه (معجزې) راهم شی بيا هم دوی ايمان نه راوړي لکه څنګه چه دوی په اول ځل ( دقرآن غوندې معجزې باندې ) ايمان رانه وړو مونږ هم (ددوی د ضد په بدله کښې) ددوی زړونه او سترګې اړوو . او دوی داسې حالت کښې پريږدو چه دوی خپله سرکشئ کښې حيران وي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾او کنځل مه کوئی هغه [باطلو معبودانو] ته دچا چه دا [مشرکان] خلق دالله ﷻ [دتوحيد] په پريښودو سره عبادت کوی ﴿ فَيَسُبُّوا اللّٰهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ خکه چه [ستاسو په داسې کولو سره] بيا به هغوی دجهل دلارې [په غصه کښې راشی] دالله ﷻ پشان کښې به بې ادبی اوکړی [اوپه دې د تعجب اونه کړې شی چه داسې بې ادبی کوونکو ته پرې سزا ولې نشی ورکولې خکه چه] ﴿ كَذٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ عَمَلَهُمْ ﴾ مونږ [په دنيا کښې خو همداشان [څنګه چه کيږی] دهرې طريقې خاوندانو ته مو دهغوی عمل [ښه وی اوکه خراب] زړه پورې جوړ کړې دې [يعنی داسې اسباب راجمع شی چه دهر يو خپله طريقه خو ښه وی دے نه معلومه شوه چه دا جهان په اصل کښې د ازميښت او امتحان ځائې دې نو دلته سزا هم ضروری نه ده] ﴿ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ مَّرْجِعُهُمْ ﴾ بيا [البته په خپل وخت باندې] هم دخپل رب خواته دوی [ټولو] لره تلل دی ﴿ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴾ نو [دغه وخت] هغه به په دوی خبر کړی څه چه هم هغوی [پدنيا کښې] کول [او مجرمانو ته به سزا ورکړی]. ﴿ وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ﴾او دغې [منکرو] خلقو چه قسمونو کښې زيات زور اولګولو په الله ﷻ ئې قسم اوخوړو چه ﴿ لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ﴾که دوی [يعنې مونږ] ته [يعنې ددوی دفرمائشی نښو نه] څه نښې راشی [يعنې ښکاره شی] نودوی [يعنې مونږ] به خامخا پدغه [نښو] باندې ايمان راوړو [يعنې دنښو ظاهروونکی پغمبری به اومنی] ﴿ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ تاسو [په جواب کښې] اووائې چه نښې ټولې دالله ﷻ په قبضه کښې دی [هغه چه په څه شان غواړی په هغې کښې تصرف کوی بل چالره په کښې دخل ورکول اوفرمائش کول بې ځايه دی ولې چه دالله ﷻ نه سوا چاته معلوم نه دی چه دکومې ښکاره کيدل حکمت دے اود کومې نه ښکاره کولو کښې حکمت يقينی دې نو الله ډير څه نخښې دمحمد ﷺ دپغمبرئ ددعوې ريښتينې کولو دپاره ښکاره کړی چه دليل

جورېدو دپاره بس دي نودا دا ددوی د فرمائش جواب اوشو] او [هرکله چه دمسلمانانو په زړه کښې دا خيال وو چه دغه نخښے ښکاره کيدل به ښه وو چه کيديشي دوی مسلمانان شوی وے نو الله ﷺ مسلمانانو ته داسې خطاب کوی چه] ﴿ وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ ﴾ تاسو ته ددې څه خبر دے [بلکه مونږ ته خبر دې] چه دغه [فرمائشی] نخښے کله چه راشي [يعني ښکاره کړې شي] دا خلق به [د ډير ضد نه] بيا هم ايمان راونړی] او [ددوی دا يمان نه راوړو له وجے] ﴿ وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ ﴾ مونږ به هم ددوئ زړونه [دحق لتهولو دقصد نه] او ددوی نظرونه [دحق ليدو نه] واړوو [اوددې‌به دا ايمان نه راوړل داسې دی] ﴿ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ ﴾ څنګه چه دے خلقو په دې [قرآن کريم] باندې [چه لويه معجزه ده] ړومبی ځل [کله چه هغه راغلو] ايمان راونړو [نو اوس ئے ايمان نه راوړل هم څه لرے مه ګنړئ] ﴿ وَنَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ۝ ﴾ او [د نظرونو اړولو يعني بيکار ګرځولو مطلب ظاهري اړول نه دی بلکه مراد دادې چه] مونږ به دوی لره ددوی په سرکشئ [اوکفر] کښې حيران [سرګردان] هم‌داسې پريږدو [چه د ايمان راوړلو توفيق به يئ نه وی دا معنوی اړول شو].

## معارف او مسائل

ددې ذکرشوؤ آيتونو څخه ړُومبي آيت په يوخاص واقعه کښې نازل شويدې اوپه دې کښې ديوې ډيرې ضرورې مسئلې هدايت ورکړې شويدې چه کوم کارپخپله کول جائز نهٔ وی دهغې سبب اوذريعه جوړيدل هم جائز نهٔ وی۔

دابن جرير دروايت مطابق دآيت شان نزول دادې چه هرکله درسول الله ﷺ تره ابوطالب دمرګ په مرض پروت وونودقريشو مشرکانو سردارانو سره دافکر شو چه دابی طالب وفات کيدل به دوئ دپاره يوه ګرانه مسئله څکه جوړه کړی چه که بيامونږه محمد ﷺ اووژنو دابه زمونږ دعزت اوشرافت نه خلاف داسې وی چه خلق به وائي: دابی طالب په ژوندخومونږه هغوئ ته هيڅ زيان اونهٔ شورسولې دهغه په مرګ موچه يواځې بيامونږ څکه موقتل کړو، ولې چه هسې خودوئ درسول الله ﷺ سخت دُشمنان وو، هروخت هغوئ ته دزيان رسولوپه تکل کښې وواودهغوئ دوژلو سازشونه به ئې کول۔په دې بنا ، دوئ په مشورې سره داخبره غټه کړه چه اوس هم وخت دې چې ابی طالب سره ملاويدوسره هم هغه سره پخپله داخبره خلاصه کړو۔

هريو ليکلې لوستلې اوخبرداره مُسلمان په دې پوهـ دې چه ابوطالب اګرچه مُسلمان شوې نهٔ وو ليکن رسول الله ﷺ سره ئې يواځې مينه محبت نهٔ لرلو بلکه دهغوئ عظمت اوبزرګی ئې په زړهٔ کښې ناسته وه اودهغوئ ددشمنانو مقابلې ته ئې خپله سينه هم ډال کړې وه۔

څو قريشی سردارانو په مشورې سره يووفد تيار کړو چه هغې کښې ابوسفيان، ابوجهل، عمروبن عاص وغيره سرداران شامل وو۔ ابی طالب سره دملاقات دپاره دوخت اغستو کار مُطلب نومې يو سړی ته اوسپارلې شو، هغه داکارترسره کړو اووفدئې دهغه خواته وراورسولو۔

دغـه وفـد ابـی طالـب تـه اووئـيـل چـه تـهٔ زمـونږ مـشـراوسرداريئ،تاته معلومـه ده چـه وراره محمد ﷺ دې مونږ ته اوزمونږ معبودانوته سخت تکليفونواوزيانونو رسولولته پدې وهلی دی، مونږداغواړو چه هغوئ راوبلئ اوپوهـ ئې کړئ چه زمونږ معبودانوته دبدنهٔ وائي،مونږبه ورسره په دې صُلح اوکړو چه په خپله خوښه د هغه په خپل دين باند عمل کوی، څوک چه خپل معبُودان جوړول غواړی مونږ به پر هيڅ غم غرض نهٔ کوؤ۔

ابوطالب رسول الله ﷺ لره خپلې خواته راوبللو او ورته ووې وئیل چه ستاسو دبرادرۍ [قوم] داسرداران راته راغلی دی ، هغوئ دوفد دخلقو نه تپوس اوکړو چه تاسو خلق څه غواړئ؟ هغوئ ورته اووئیل چه زمونږ خواهش دادې چه تاسو مونږه اوزمونږه معبودان پرېږدئ، بدرد ورپسې مه وایئ، مونږ به تاسو اوستاسو معبود پرېږدو او په دې شان به زمونږ ترمنځه مخالفت ختم شي.

رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ښه ده زهٔ ستاسو داخبره اومنم نوآیا تاسو به داسې کلمې وئیلو ته تیارشئ چه دهغې په وجه به تاسو دټولو عربو مالکان اوګرځئ اودعجمو خلق به هم ستاسو تابعدارشي اوقلنګونه [شکراني] به ورکوي-

ابوجهل اووئیل دغسې یو کلمه څه، لس خویه اووایُو رااوښایئ هغه کومه یوه ده؟__ هغوئ اوفرمائیل :[لااله الاالله] ده ،ددې په آوریدلو ټولو ببرشو ،ابوطالب هم اووئیل چه اې زما وراره بل څه خبره اوکړئ ولې چه ستاسو ددې حکم نه ویرېږي ، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل کاکاجانه د دې کلمې نه سوازهٔ بله کلمه نشم وئیلې، که داخلق دآسمان نه راته نمر هم راښکته کړي او زما په لاس کښې ئې کېږدي، بیا هم ددې کلمې نه سوا څه بله به هیچرې اونه وایم، چنانچه دې نه ئې مقصود دا وو چې دوئ نااميده کړه-

په دې سره هغوئ ناراض شو اووې وئیل چه یا خوزمونږه دمعبودانو [بُتانو] بدووئیلو نهٔ واوړئ، ورنه مونږ به تاسو ته هم کنځل کوو اوهغه ذات ته هم چه څان ته دهغه رسول وایئ په دې موقعه داآیت نازل شو ﴿وَلَا تَسُبُّوا الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ [یعنی تاسو ددوئ بُتانو ته بدردمهٔ وایئ کومولره چه دوئ خُدایان جوړ کړیدی او په نتیجه کښې به دوئ الله ﷻ ته بدرد وئیل شروع کړي [ولې چه] دوئ بې لارې اوبې پوهې دی-(۱)

دلته د﴿تَسُبُّوا﴾ لفظ د ،سب] نه مشتق دې چه معنی ئې کنځل کول دی،رسول الله ﷺ خو د فطري اخلاقو په بنا ، رومبې نه ددې پابندوو ، په وړوکتوب کښې هم بُنیادم ته خوڅه،چه یو څاروی او ځناورته ئې هم کنځل دخُلې مبارکې نه نهٔ وو ختلي، کیدې شي چه د څه صحابه کرامو دخُلو نه داسې څه سخته خبره ختلې وي چه دوئ په کنځلو مجبوره کړي وي،چنانچه دقریشي سردارانو دغې وفد درسول الله ﷺ په وړاندې ددې منصوبې اعلان اوکړو چه که تاسو زمونږ بُتانو ته د کنځلو کولونه واؤنهٔ ړیدئ نو مونږ به هم ستاسو خُدائې ته بدرد وایو-

په دغې موقعه، داقرانی حُکم نازل شو چه دهغې په ذریعه مُسلمانان منع کړې شو چه د مُشرکانو دباطلو معبودانو په باره کښې څه سخته کلمه مهٔ وائي-په دې آیت کښې داخبره په خاص دول سره دنظر کولو جوګه ده چه ددې نه په وړاندې آیت کښې پخپله رسول الله ﷺ ته مثلاً داسې خطاب کیدو ﴿اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ﴾ او ﴿وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾ او ﴿وَمَا جَعَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾ او ﴿وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ﴾ یعنی په دې ټولو کښې خاص رسول الله ﷺ ته خطاب وو چه تاسو داسې کوئ اوداسې مهٔ کوئ، وریسې بیا په دې آیت کښې دهغوئ په ځائې دخطاب مخه عامو مسلمانانو ته راواوړیده اووې فرمائیل ﴿لَا تَسُبُّوا﴾ په دې کښې اشاره شوه دې خبرې ته چه هغوئ خو چرې هم کنځل دخُلې مُبارکې نه نهٔ وو ویستلی که هغوئ ته داخطاب هم وې نوزړهٔ به ئې مات شوې وو ، هرکله چه خطاب عام شو نوټولو صحابه کرامو احتیاط کول شروع کړل-[البحر المحیط](۲)

---

(۱) تفسیر الطبری لابن جریر تحت هٰذه الآیة: ج ۱۳، ص ۳۲ وروح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۲۴۳

(۲) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۱۲۷

سوال داپيدا كيږي چه اوس هم په ګڼرو آيتونو كښي بُتانو پـه سختو الفاظو سره يادولې شي او منسوخ شوى نهٔ دى تلاوت ئې په مخه جارى دې.

جواب ئې دادې چه په قُرآنى آيتونو كښي داسې الفاظ دمُناظرې په ډول دحقيقت ښكاره كولو دپاره راغلي دى، هلته دچاززړه دردول مقصود نهٔ وى اونهٔ ترېوعقلمند انسان دانتيجه راوښكلې شى چه دابُتانو ته بدونيل اودمُشركانو چيړل دى، دايوداسې ښكاره فرق دې چه دهرې ژبې اهل محاوره پرې په آسانه پوهيږى ولې چه كله خودچاغيب ياخرابى ديوې مسئلې دصفاكولو دپاره بيانولې شى لكه چه عموماً هره ورځ په عدالتونوكښي مخې ته راځى ليكن دغې عدالتى بيان ته ددنياهيڅوك انسان دبدوردو اوكنځلو نوم نهٔ وركوى، دغه شان دډاكټرانو اوحكيمانو په وړاندې هم ډيرداسې عيبونه بيانولې شى چه بل ځائې كښي په بل ډول هغه بيان كړې شى نو كنځل ګڼرلې شى ،خودلته هر كله چه مطلب تر نه علاج وى څكه ورته څوك كنځل نهٔ وائى.

دغه شان په قرآن كريم كښې چه چرته بُتانو ته بې حسه، بې شعوره،بې علمه بې طاقته اوبې وسه ونيلې شى دهغې اندازداسې دې چه پوهيدونكى په حقيقت باند پوهـ شى اودناپوهو غلطى پالند نظرى واضحه شي چنانچه نتيجه كښې ئې داسې ارشاد شويدې:

﴿ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ﴾ [يعنې دابُتـان هم كمزورى اوددې غوښتونكى هم كمزورى دى]-

بالكه داسې فرمائيلې شوى دى: ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ [يعنى تاسو داوستاسو تول هغه بُتان چه عبادت ئې كوئ دجهنم خشاك يئ] دلته هم دچادګمراهئ اوغلطئ خراب انجام بيانول مقصوددى،هسې بدرد ورته ونيـل مقصُودنهٔ دى، اوفقهاؤ پـه ډاګه فرمائيلى دى چه كه دې آيت لره هم،څوك دمشركانو دچيړلو دپاره لولى نو دابه هم كنځلو كولو كښې شامل وى دكومونه چه منع راغلې ده اودابه ناروا وې څنګه چه په مكروهـ ځايونو كښې دقُرآن دتلاوت ناجائز كيدل تولوته معلوم دى [روح المعانى]-[1]

خُلاصه دكلام داچه درسول الله ﷺ دخُلې مُباركې نه دكنځلو پشان څه الفاظ نهٔ وړاندې وتلى وو اونهٔ بيا امكان وو ،البته دمُسلمانانوپه باره كښې ددې امكان كيدې شو څكه چه دې آيت سره هغه بند كړې شو-

دې واقعې اوپه دې باند قُرآنى هدايت ديولوئې علم دروازه پرانستله اوڅو اُصولى مسئلې ددې نه راؤوتلې-

**دغه ګناه سبب جوړيدل هم ګناه وي:** مثلاً يواُصول ترداراؤوتلوچه هرهغه كارچه پخپله جائز او په څه درجه كښې ستائيلې شوې هم وى مګردهغې دكولونه فساد راولاړيږى چه په نتيجه كښې ئې خلق په نافرمانئ اوګناه كښې اخته كيږى هغه كار هم ممنوع شى څنګه چه باطلو معبُودانو [بتانو وغيره] ته اګرچه بدونيل كم ناكم رواخوضرور دى اودايمانى غيرت دتقاضا پـه ډول كه اوونيلې شى نوپه خپل ذات كښې دثواب اوستائيلې شوې كارخوكيدې شى خوهر كله چه نتيجه كښې ترداانديښنه پيداشوه چه خلق به الله ﷻ ته بدونيل شروع كړى اوبتانو ته بدويونكى ددغې بدئ سبب جوړشى په دې وجه دغه رواكارهم منع كړې شوچنانچه ددې يومثال هم په حديث شريف كښې داسې راغلې دې چه يوكس هم خپل مور پلارته كنځل نهٔ كوى،صحابه كرامو عرض اوكړو چه داڅوكيدې نشى چه څوك دخپل موريلار ته كنځل اوكړى.هغوئ اوفرمائيل چه ،او،انسان

[1] روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۱۳

خو پخپله خپل مورپلار ته نیغ په نیغه کنځل نه کوی خو چې دې کله دبل چا مور پلار ته کنځل اوکړی نو هغه په بدل کښې دده مورپلار ته کنځل اوکړی نو داسې شوچه لکه پخپله ئې ورته کنځل کړی وی ځکه چه ددې سبب هم دې جوړشو-(۱)

ددې یوبل مثال داسې دې کوم چه په زمانه درسالت کښې داپیش راغلوچه رسول الله ﷺ حضرت عائشه صدیقه ته اوفرمائیل: بیت الله شریف دجاهلیت په زمانه کښې دیوې راپیښې له کبله ویجاړ شونودمکې قریشو دنبوت نه وړاندې داتعمیر کړو په دې کښې دابرهیمی تعمیرنه یو څو ځیزونه خلاف تعمیرشو، یوداسې اوشو چه دبیت الله شریف یوه برخه [حطیم] همداسې [بې تعمیره] ځکه پریښودل شوه چه رقم ورسره کم وو، بله داچه په ابراهیمی تعمیر کښې دبیت الله شریف دوه دروازې [مشرقی مغربی] وې په یوې به ورننوتل اوپه بلې به تر راوتل، دجاهلیت د زمانې خلقومغربی دروازه بنده کړه اوصرف مشرقی دروازه ئې پریښوه اوهغه ئې ډیره پورته ځکه پریښوه چه یواځې دهغوئ په مرضئ سره په بیت الله شریف کښې خلق ورننوتې شي اوهرڅوک ورته په آزادئ سره نشي ورننوتې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل، زړهٔ م غواړی چه بیت الله شریف وران کړم اوبیائې دحضرت ابراهیم علیه السلام دبنا په طرز جوړ کړم خو اندیښنه م ده چه ستا دنوی مسلمان شوی قوم په زړهٔ کښې څه شکونه پیدانشی، ځکه م دااراده پریښوه-(۲)

دابراهیمی بنامطابق دبیت الله شریف تعمیر کول اګرچه یوعبادت اودثواب کاروو مګردخلقو د ناواقفتیاله کبله چه خطره پکښې موندې شوه ځکه ئې دغه اراده پریښوه- دې واقعې نه هم دا اصول رابرسیره شو چه دیوروا، بلکه دثوابی کارنه هم څه خرابې چه راولاړیږی نودغه رواکارهم ممنوع شي-

لیکن په دې یو قوی اشکال داراځی کوم چه رُوح المعانی دابی منصُورنه نقل کړیدې هغه دا چه الله تعالی په مسلمانانو باندجهاد اوکُفاروسره جنګ کول لازم کړیدی، سره ددې چه لازمی نتیجه ئې داراځیږی چه هرکله یومسلمان دغیرمسلم دوژلو اراده کوی نوهغوی به هم مسلمانانو لره وژنی اودمسلمان وژل حرام دی په دې بنا دګنی جهادکول هم منع شی؟دغه شان زمُونږ اسلامی تبلیغ، دقُرآن کریم تلاوت، آذان اومونځ پورې ډیر کُفار خنداګانې کوی نوآیا مُونږ به ددې عبادتُونونه هم لاس په سر کیږو؟

ددې جواب پخپله ابومنصور داورکړیدې چه دااشکال هله راپیداکیږی چه داضروری شرط شاته اوغورخولې شی چه هغه روا اوثوابی کاربه دڅه فساد دراولاړیدوله کبله پریښودل شی چه د اسلام دضروری اومقصدی کارونو څخه نهٔ وی، لکه باطلو معبودانو ته بدوئیل شو چه ورسره د اسلام څه مقصد تړلې نهٔ دې اودبیت الله شریف هغې طریقهٔ تعمیر سره هم څه اسلامی مقصد تړلې نهٔ وو اودبیت الله شریف هغې طریقهٔ تعمیرسره هم څه اسلامی مقصدتړُون لری اودنورو خلقو د غلطې رویئ په بنادهغه نه څهٔ خرابی یافساد راولاړیږی نوهغه به هیڅکله نشی پریښوې بلکه کوشش به ددې کولې شی چه دغه اسلامی کارونه خود په خپل ځائې جاری پاتې شی اودې نه راپیښیدونکی فسادونه اوخرابئ ترخپله وسه پورې بندې کړې شی-

(۱) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان الکبائر وأکبرها: ج ۱، ص ۴۷
(۲) سنن النسائی، کتاب مناسک الحج، باب بناء الکعبة: ج ۲، ص ۳۲ وصحیح مسلم، کتاب الحج، باب نقض الکعبة وبنائها: ج ۱، ص ۳۲

همدغه وجه ده چه یو ځل حسن بصری او امام محمد بن سیرین یوجنازې له په شریکه لاړل هلته ئې اولیدل چه په دغه جنازه کښې نرښځې ګډې وونو ددې په لیدو ابن سیرین بې جنازې کولو واپس لاړلو مګرحسن بصری اوفرمائیل چه دخلقو دغلطې رویې په وجه دمونږ خپل ضروری کار ځنګه پریږدو؟دجنازې مونځ فرض دې ددغې قسم فساد اوخرابۍ راولاړیدو دکبله هغه نشی پریښودل البته داکوشش دضرور اوکړې شی چه دغه خرابی دمنځه اوځی.

داواقعه هم په روح المعانی کښې نقل کړیده-(۱)

دې آیت نه چه کوم اصول راؤوتل دهغې خلاصه داده چه کوم کارپخپله روا، بلکه عبادت او ثواب هم وی خوپه شریعت کښې مقصودی نه وی یاڅه شرعی مقصود پراړه نه لری اودهغې نه څه خرابۍ اوفساد راولاړیږی نودهغې پریښول واجبیږی- خوچې هغه پخپله شرعی مقصود وی یا بل څه شرعی مقصودونه پراړه لری هغه به په هیڅ صورت کښې نشی پریښوې-

دې اُصولو نه دامت فقهاؤ دزرګونو مسئلو حکمونه راؤیستلی دی مثلاً یونافرمان خوئې ته دا حکم ورکولو په ځائې په بل څه طریقې سره دنصیحت په ډول دیو داسې کار کولو یا نۀ کولو دپاره آورول پکاردی کله چه داخطره وی چه دحکم په صورت کښې به ئې هغه اونۀ منی اوګناهګاریه شی اویوه بله نافرمانی به ئې اضافه شی [خلاصة الفتاوی]-(۲)

دغه شان چې کله یو نصیحت کونکی ته په قرائنو علاماتواواندازې سره معلوم شی چه د هغه به د نصیحت قبلولوپه ځائې نه هغه څه غلط انداز اختیارکړی چه په نتیجه کښې به یې نورزیات هم ګناهګارشی نوپه داسې صورت کښې نصیحت نۀ کول غوره وی، چنانچه امام بخاری په صحیح بخاری کښې ددې موضوع یومستقل باب داسې ایښې دې: [من ترك بعض الاختيار مخافة ان يقصر فهم بعض الناس فيقعوا في اشد منه](۳) [یعنی په ځنې وختونو کښې جائزبلکه غوره څیزونه هم پریښوې شی چه دکم پوهیدونکی عوامو په څه غلط فهمۍ کښې دمبتلا کیدو خطره تر راولاړیږی خوشرط دادې چه دغه کارپه اسلامی مقصدونو کښې داخل نۀ وی-

خوکوم کارونه چه په اسلامی مقصدونوکښې داخل وی، خواه فرض ،واجب وی یاسُنن مؤکده یانوراسلامی شعاتروی که دهغې په کولوسره کم فهمه عوام په غلط فهمۍ کښې مبتلاکیږی نو بیا به هم نشی پریښوې، بلکه په نوروطریقو سره به دخلقو دغلط فهمۍ اوغلط کارۍ لرې کولو کوشش کولې شی چنانچه داسلام دابتداء واقعات ګواه دی چه دمونځ ،تلاوت اود اسلامی تبلیغ په وجه به دمکې مشرکان راپاریدل خوپه دغه وجه دغه اسلامی شعائر هیچرې پرې نښودې شو ،بلکه پخپله دتیرشوی آیت په شان نزول کښې چه کومه واقعه دابی جهل وغیره سردارانو د قریشو بیان شویده دهغې حاصل همداووچه قریشی سردارانو په دې شرط صلح کول غوښتل چه رسول اللهﷺ دې توحید تبلیغ پریږدی خودهغې په جواب کښې هغوئ اوفرمائیل چه زۀ داسې هیڅکله هم نشم کولې اګرچه دوئ نمراوسپوږمۍ راوړی اوزماپه لاس کښې کیږدی-

لهذامسئله په دې شان صفاشوه چه په اسلامی مقصدونوکښې داخل کارونو کولوسره که څوک دغلط فهمۍ یاغلط کارۍ ښکار کیږی هم نودا به هیڅکله نشی پریښوې، البته داسې کارونه چه

۱) روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۲۵۸
۲) خلاصة الفتاویٰ، کتاب الکراهية: ج ۴، ص ۳۳۰
۳) صحیح البخاری، کتاب العلم، باب من ترک بعض الاختيار الخ: ج ۱، ص ۲۴

په اسلامي مقصدونو كښې داخل نهٔ دى او دهغې په پرېښودو سره څه دينى مقصد نهٔ فوت [پاتې] كيږى نو هغه به د نورو خلقو د غلط فهمۍ يا غلط كارئ داند يښنې له كبله پرېښودې شي.

په تيرو شوو آيتونو كښې ددې بيان وو چه د رسول الله ﷺ د ښكاره معجزاتو او د الله ﷻ د روښانه نخښو نښانو باوجود ضديانو خلقو ددې نه فائده وانخسته، د خپل ضد او ناراميئ يونوې شكل داسې اختيار كړو چه رسول الله ﷺ نه ئې د خاص خاص قسم معجزې ښكاره كولو غوښتنه اوكړه لكه علامه ابن جرير رحمه الله نقل كړې دى چې قريشى سردارانو دا مطالبه اوكړه د رسول كريم ﷺ څخه چه كه دا معجزه دراته اوښوله چه د صفا غونډې سره زر جوړشى نو مونږ به د نبوت او پيغمبرى او منو او مسلمانان به شو. هغوئ ورته اوفرمائيل چه ښه ده لوظ اوكړئ چه ددې معجزې په ښكاره كيدو به تاسو ټول مسلمانان شئ، كفارو په دې قسمونه هم اوخوړل، هغوئ دُعا پاره راولاړ شو چه الله ﷻ دا غر د سروزرو جوړ كړى، حضرت جبرائيل عليه السلام وحى راوړه په هغې كښې د الله ﷻ دا فرمان وو چه كه تاسو غواړئ نو دا غر به اوس د سروزرو كړم ليكن د الله تعالى د قانون مطابق نتيجه به ئې داوي چه كه بيا هم ايمان راؤنهٔ ړى نو ټول به په عام عذاب راوستو سره هلاک كړو څنګه چه پخوانو امتونو كښې داسې شويدى چه هر كله به يو خاص معجزه اوغوښتې شوه، هغه به اوښولې شوه او بيا به هم دغه خلق منكرپاتې شو نو د الله ﷻ قهر او عذاب به پر نازل شو. هر كله چه رحمة للعالمين ﷺ د دغې خلقو د عادت اوضد نه واقف وو نو په مقتضا د شفقت ئې اوفرمائيل چه زهٔ اوس ددې معجزې ښكاره كولو د پاره دُعا نهٔ كوم، چنانچه هم په دې موقعه دا آيت نازل شو: ﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ﴾[1] يعنى دغه كُفارو دغوښتلې معجزې د ښكاره كيدو په صورت كښې د مسلمانيدو مضبوط قسمونه اوخوړل. وروستو آيت: ﴿إِنَّمَا الْآيَاتُ عِنْدَ اللَّهِ﴾ ددوئ دوينا جواب دې چه معجزې او نشانيانې ټولې د الله ﷻ په اختيار كښې دى، ښكاره شوې ټولې معجزې هم د هغه دا رخه وې او س چه كومې غوښتلې شى د هغې په ښكاره كولو هم په پوره شان سره قادر دې، ليكن د عقل او انصاف له مخې دغه خلق ددې دغوښتلو حق څكه نهٔ لرى چه هر كله رسول الله ﷺ د رسول جوړيدو دعويدار دې او په دې دعوى باند ئې ډير دليلونه او شهادتونه د معجزو په صورت كښې پيش كړيدى، بل فريق خو په دغې دليلونو او شهادتونو د جرح كولو او ددې د غلطو ثابتولو حق لرى، ليكن كه په دې هيڅ جرح اونكړى او بيا د نورو شهادتونو غوښتنه اوكړى نو د هغې مثال به داسې وى لكه يو مُدعى عليه چه د مدعى په وړاندې كړو ګواهانو هيڅ جرح اونكړى او داسې اووائى چه زهٔ خو د دغې ګواهانو ګواهى نهٔ منم هله به خبره منم چه فلانې فلانې كس ګواهى اوكړى. داسې موقف خو په هيڅ قسم عدالت د سماعت او آوريدو جوګه اونهٔ ګڼړى.

هم دغه شان په نبوت او پيغمبرئ باند راغلى بيشميره، آيات بينات، او معجزې ښكاره كيدو نه پس ترڅو چه دغه معجزات غلط ثابت نكړى هغوئ ته ددې وينا حق نشته چه مونږ به هله ايمان راوړو چه فلانئ معجزه اوګورو.

[الحمد لله ! پاره نمبر ۷ ختمه شوه]

[1] تفسير الطبرى لابن جرير تحت هذه الآية: ج ۱۲، ص ۳۹

وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى

اوکه بیشکه مونږه | نازل کړي وي مونږه | دوئ ته | فرښتي | اوخبرې کړې وې دوئ سره | مړو

اوکه مونږ دوئ ته فرښتې هم راليږلې وې | اودوئ سره مړو خبرې هم کړې وې

وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ

اوجمع کړي وي مونږه | دوئ ته | هر څيز | مخامخ | نه وو دوئ | چې ايمان ني راوړي وي | مګر

اومونږ [ددنيا] ټول څيزونه ددوی مخکښې راجمع کړي وې | خو بيا هم دوئ ايمان نه قبلولو | خو

اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ ۞ وَكَذٰلِكَ

داچې | اوغواړي الله | وليکن | اکثر ددوئ نه | دناپوهتيا خبرې کوي | اودارنګې |

هله که الله ﷻ غوښتلي [چې ايمان دې راوړي] | خو په دوئ کښې زيات خلق نه پوهيږي | اوداشان

جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ يُوْحِيْ

جوړ کړي دي مونږه | دپاره | دهر نبي | دشمنان | شيطانان | دانسانانو | اودپيريانو | چې وسوسه اچوي

مونږ د هريو پيغمبر دپاره بنی آدمو او دپيريانو شيطانانو نه دشمنان ګرځولي دي | چې يو بل ته

بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُوْرًا ۭ وَلَوْ شَآءَ

ځيني ددوئ نه | ځينو ته | ښائسته کړي شوي | خبرې | دپاره ددوکې | اوکه غوښتلي |

د دهوکې او فريب خوړې پستې خبرې کوي | ................ اوکه چرته ستا ........

رَبُّكَ مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ ۞

رب ستا | نه به وو کړي دوئ دا کار | نو پريږده دوئ | اوهغه | چې دوئ ني جوړوی دخانه |

رب غوښتلي نو دوئ به داکار نشو کولي | نودوئ پريږده | اوددوی د ځان نه جوړ شوي دروغ هم پريږده

وَلِتَصْغٰٓى اِلَيْهِ اَفْـِٕدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ

اودپاره ددې چې ميلان اوکړي | دې ته | زړونه | دهغه کسانو | چې نه راوړي ايمان | په آخرت باندې

[اوددې خبرو مهلت ځکه ورکوو] چې دهغې کسانو زړونه ورته مائل شي | چې په آخرت باندې ايمان لري

وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا هُمْ

اودپاره ددې چې خوښ کړي دوئ دادروغ | اودپاره ددې چې اوکړي | هغه ګناهونه | چې دوئ

اوچې بيا ني خوښ کړي | اوچې هغه [ګناهونه اوکړي] کوم چې دوئ کول غواړي

مُّقْتَرِفُوْنَ ۞

کونکي دی دهغې |

## آسان ترجمه قرآن

اوکه بالفرض دوئ ته مونږ فرښتې راليږلې وې او مړو دوئ سره خبرې کړې وې، او (د دوئ غوښتلې شوې) هريو څيز مو د دوئ دسترګو مخامخ ايښودې وې بيا هم دوئ ايمان نه راوړو . خو که الله غوښتله

(چه دوی په زور په ایمان مجبوره کړی نو هغه جدا خبره ده مګر داسې ایمان نه مطلوب دې او نه معتبر) لیکن دوی کښې اکثر خلق د جهالت خبرې کوی او (لکه څنګه چه دا خلق ځمونږ د پیغمبر سره دښمنی کوی) دغه شان مونږ د هر یو (مخکنی) پیغمبر دپاره یو نه یو دښمن پیدا کړې وو بعضې د انسانانو او پیریانو نه شیطانان خلق چه د دهوکې ورکولو دپاره یو بل ته ډیرې دروغ خبرې ښائی. او که الله خوښټل نو دوی به داسې نه وو کړې پس دوی ځپلو دروغو جوړولو کښې پرېږده. او (د پیغمبرانو دښمنانو به دروغ خبرې دې وجې نه جوړولې) چه کوم خلق په آخرت ایمان نه لری دهغوی زړونه دې خبرو طرف ته په مائیله شی او هغوی په دې خوشحاله شی. او ټول هغه حرکات وکړی چه کوم دوی کول خوښټل.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَٰٓئِكَةَ ﴾ او [ددوی د دښمنۍ خودا شان دے چه] که مونږ [یوه فرمائشی نښه خو لا څه کوے ګنړے ګنړے او لوئې لوئې فرمائشی نښے هم ښکاره کړې وے لکه داچه] دوی ته مو فرښتے رالیږلے وے [څنګه چه دوی وائی [لولا انزل علینا الملائکة] ﴿ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ ﴾ او دوی سره مړو [په ژوندی کیدوسره] خبرے کولې [څنګه چه دوی وائی چه [فاتوبآبائنا] ﴿ وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ ﴾ او [دوی یواځې هم دومره وائی چه ﴿ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَٰٓئِكَةِ قَبِيلًا ﴾ مونږ [په دې باندې بس والے نه دې کړې لکه] ټولو [غیبی] موجوداتو لره [چه جنت دوزخ ټول هر څه په کښې راغلل] ﴿ قُبُلًا مَّا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا ﴾ دوی ته ددوی دسترګو مخے ته راوړو سره جمع کړې وے [چه ټول هر څه ئے ښه په ډاګه لیدلے وے] بیا به هم دے خلقو هیچرې ایمان نه وې راوړے ﴿ إِلَّآ أَن يَشَآءَ اللَّهُ ﴾ هنه که الله تعالی ﷻ غوښتلے [او د دوی تقدیر ئے بدل کړې وے] نو بله خبره ده [پس هر کله چه ددوی د عناد او شرارت داشان دے او پخپله ئے هم دوی پیژنی چه زمونږ نیت دا وخت هم دایمان راوړلو نه دې نو دهغې مقتضا داوه چه دښوفرمائشې ئے نه کولې چه خالص بے کاره دې] ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ ﴾ لیکن په دوی کښې زیات خلق دجهالت خبرے کوی [چه دایمان راوړ خونے قصد نشته بیا ہے هیڅه فرمائشونه کول خو ښکاره جهالت دې] او [داخلق چه ورسره دښمنی کوی تاسو ﷺ دپاره څه نوے خبره نه ده بلکه څنګه چه دوی تاسو سره دښمنی ساتی]. ﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيَٰطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ ﴾ دغه شان مونږ هم دهر نبی دښمنان ډیر پیدا کړی وو څه انسانان [چه ورسره اصل معامله وه] او څه پیریان [ابلیس او اولاد ئے] ﴿ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا ﴾ چه دهغې نه بعضې [یعنی ابلیس اود هغه لښکر] نورو بعضو [یعنی کافرو انسانانو] ته د غوړوغوړو خبرو وسوسے په مخه اچولې دپاره ددې چه خطا ئے باسی [مراد تر نه د کفر اود مخالفت خبرې دی چه په ښکاره به نفس ته ښے ښکاریدې او په باطن کښې هغه هلاکوونکې وے او هم داخطا وتلی دی هر کله چه دا څه نوې خبره نه ده نو ددې غم مه کوه چه تاسوسره داخلق داسې رویه ولے ساتی اصل دادې چه په دې کښې بعضې حکمتونه دی په دې وجه په داسې خیزونوباندې ددوی وس هم رسی] ﴿ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ ﴾ او که ستا رب [دا] غوښتلے [چه دا خلق دے په دغه خیزونو وس بیا نه مومی] نو [بیا] دوی به داسې کار نشو کولې [مګر دبعضو حکمتونو په وجه مور ورته وس ورکړې دې] ﴿ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴾ نو [هر کله چه په دې کښې حکمتونه دی بیا] داخلق او څه چه دوی [ددین په باره کښې] لړل تړل

[اللو پټو] دروغ جوړوی [الکه دپیغمبرئی نه انکار کول چه په هغه یې دښمنی بنا کړې ده] دے لره تاسو هم داسې پریږدئی [دد غم فکر مه کوئی مونږ به پخپله په تپاکلی وخت ورته مناسبه سزا ورکړو چه ددغې حکمتونو څخه یو حکمت دا هم دې]. ﴿ وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ أَفْئِدَةُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ ﴾او [دغې شیطانانو به دغه کافران خلق څکه په وسوسه کښې اچول چه] دغے [غولوونکو خبرو] ته د دوی زړونه رامات شی چه په آخرت باندې [څنګه چه پکار وو هغسے] یقین او نه لری [مراد ترې کافران خلق دی اګر چه اهل کتاب دی ولے چه ددوی هم هغسے یقین نشته څنګه چه پکار وو ورنه دنبوت په انکار باندې چه دقیامت په ورځ به یې سزا ورکولې شی هیڅ کله زړورتیا نه وه کړې] ﴿ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوا مَا هُم مُّقْتَرِفُونَ ۝ ﴾ اودپاره ددې چه [چه د زړه د راماتیدو نه پس] دا [د زړه په اعتقاد سره هم] خوښ کړی او دپاره ددې چه [د اعتقاد نه پس ئې] عمل ته ئې [هم] راولی [هغه کارونه چه دوی به عمل ته راوستل].

## معارف او مسائل

دې آیتُونو کښې مُسلمانانوته خطاب کول اودوئ په دې خبره باندې پوهول دي چه ستاسو کار پخپله په خپل دین باند تینګ پاتې کیدل اونورو ته هم په صحیح طریقه رسول دی بیاهم که هغوئ ضد کوی نوفکر څکه مهٔ کوئ چه ستاسوپه ذمه دوئ لره په زور مُسلمانول نهٔ دی که داسې وې نو الله تعالی به پخپله څکه مُسلمانان کړی ووچه دهغه نه زیات زبردست اوزورور بل څوک نشته- په دې آیتُونو کښې دمُسلمانانو تسلئ کولودپاره داهم ورته اوښودلې شو که مونږه ددوئ غوښتلې مُعجزې هم بیخی په ډاګه ښکاره کړو نو دوئ بیا هم ایمان نه راوړی، ولې چه ددوئ انکارکول دڅه غلط فهمئ یا ناخبرئ په وجه نهٔ دی بلکه دضد، عناداوضد په وجه دې چه علاج ئې په څهٔ مُعجزې ښکاره کولوسره نهٔ کیږی چنانچه په آیت ﴿ وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ ﴾ کښې هم دامضمُون بیان شویدې چه که مُونږ ورته دغه غوښتلې شوې مُعجزې ټولې ښکاره کړو، بلکه زیات دا چه فرشتوسره ئې دملاقات اومړوسره ئې دخبروکولوانتظام چه اوکړو، بیاهم دوئ منونکی نهٔ دی، وریسې په دوۀ آیتُونوکښې رسول الله ﷺ ته تسلی ورکړې شویده چه که داخلق تاسوسره دُشمنی لری نوداڅه د تعجب او حیرانئ خبره څکه نهٔ ده چه دتیروشوؤپیغمبرانو ﷺ به هم دشمنان وو، تاسوپه دې مهٔ خفه کیږئ-

أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا وَهُوَ الَّذِي

آیا نوبې دالله نه | اولټوم زهٔ | بل فیصله کونکې | اوحال دا چې هغه | هغه ذات دي

آیا زه دالله ﷻ نه بغیر بل څوک فیصله کونکې اولټوم | او الله تعالی هغه ذات دې چه

أَنزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ۚ وَالَّذِينَ

چې نازل کړې ئې دي | تاسوته | دا کتاب | ښه په تفصیل سره | اوهغه کسان

دیرپه تفصیل سره ئې دا کتاب تاسوته نازل کړې دي | ..................او هغه کسان چې

آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ

چې ورکړې وومونږه هغوئ ته | کتاب | هغوئ پوهیږی | په دې چې بیشکه داقرآن | نازل کړې شوې دي

مونږورته ددې نه مخکښې کتاب ورکړې وو | هغوئ ته ښه معلومه ده چې دا کتاب

مِّن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ۝ وَتَمَّتْ

د طرفه درب ستا نه | دحق سره | پس مه کیږه ته خامخا | دشك كونكو نه | اوتمامه شوی ده

ستا د رب دطرفه په حقه راغلي دي| نو ته د شک کونکو څنی مه کیږه |..او د رب خبره ..........

كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا لَا مُبَدِّلَ

خبره | درب ستا |په لحاظ دربنتنوالئ سره|اوپه لحاظ دانصاف سره |نشته څوك بدلونكي

په انصاف اورشتينوالی سره پوره شوې ده| ...............هيڅوک دهغه

لِكَلِمَاتِهِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝ وَإِن تُطِعْ

فرمانونودهغه لره | اوهغه | اوريدونكي دي | خبردار دي | اوكه چرى | خبره اومني ته |

حكمونه بدلولي نشي| اوهغه هرڅه آوري او په هرڅه پوهيږي | اوكه چرې ته دهغه خلقو

أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ

دزياتو |دهغه چا |چې په زمكه كښې دی |نو بې لارې به کړی هغوئ تالره | دلارې دالله نه |

د اكثريت تابعداری اوكړې اكوم چې په دې زمكه استوگن دی |نوتابه دالله ﷻ دلارې نه واړوی

إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ۝ إِنَّ

نه كوی دوئ پيروی | مگر | دگمان | اونه دی دوئ | مگر |تش قياسونه كوی | بیشکه

دوئ خو صرف دگمانونو تابعداری كوی| اوتش په اټكل پسې روان دی | .. بیشکه

رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ وَهُوَ

رب ستا | هغه | ښه پوهيږی | په هغه چا | چې بې لارې دي| دلارې دهغه نه | اوهغه |

حقيقت كښې ستارب په هغه چا ښه عالم دي چې څوک دسمې لارې نه گمراه دې | او هغه ذات ته

أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ۝

ښه پوهه دي| په لاره موندونكو باندې|

هغه څوک هم ښه معلوم دی چې څوک په سمه لار روان دی|

**آسان ترجمه قرآن**

(اې پيغمبره! دې خلقو ته ووايه چه) آيا څه الله پرېږدم او بل څوك فيصله كوونكې جوړ كړم، حال دا چه هغه تاسو ته دا كتاب نازل كړې دې چه هغې كښې د ټولو اختلافي معاملاتو تفصيل موجود دې؟ او كومو خلقو ته چه مونږ مخكښې كتاب وركړې وو هغوی پوهيږي چه دا ستا د پروردګار د طرف نه په حق سره نازل شوې دې، نو ته شك كوونكو نه چرې هم مه كيږه. او ستا د رب كلام په رښتين والي او انصاف كښې كامل دې، دهغه خبرو لره څوك بدلوونكې نشته. او هغه هره خبره آوريدونكې او په هره خبره پوهيدونكې دې. او كه ته په زمكه كښې د اوسيدونكو ډير والي پسې لاړې نو هغه به تا لره دالله د لارې نه واړوي هغوی د وهم او ګمان نه سوا بل څيز پسې نه ځي. او د دوی كار دې نه سوا نور څه نشته چه دوی خيالي اندازې

لګوي يقين وکړه چه ستا رب ښه پوهيږي چه څوك د هغې لارې نه اوړي او هم هغه خلق ښه پيژني چه په سمه لاره دي.

## خلاصه تفسير

[تاسو اووايئ چه د پيغمبرئ په مقدمه کښې زما او ستاسو ترمينځه کوم اختلاف دې زه د سرکاري حکم له مخه په هغې کښې مدعي يم او تاسو منکريئ؛ او دا مقدمه دا حکم الحاکمين په دربار کښې زما په حق کښې داسې کړې شوې او فيصله شوې ده چه زما پدې دعوئ باندې کافي ثبوتونه او دليل يعنې قرآن کريم چه معجز دے پخپله قائم کړيدي خو بيا هم تاسو نه منئ] ﴿ أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا ﴾ نو آيا [تاسو دا غواړئ چه دغه خدائي فيصله کافي او نه ګڼړئ او] دالله ﷻ نه سوا څوك بل فيصله کوونکې اولټوم ﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنْزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ﴾ حالانکه هغه داسې [کامله فيصله کړې] ده چه هغه يو کتاب [چه هغه يو کتاب پخپل اعجاز کښې] کامل [دې] تاسو ته راليږلے دے [چه دخپل اعجاز په وجه په نبوت باندې دلالت کولو دپاره کافي دې نو ددې دوه کمالونه دادي يو اعجاز او بل دا چه دالله ﷻ له طرفه نازل شوې دے او ددې نه علاوه دنورو وجو نه هم کامل دې او دې سره ترلې مقصدونه دهدايت او تعليم دپاره کافي دے چنانچه] ددې [يو بل يعنې دريم] حالت [د کاملوالي] دادې چه ددې مضمونونه [چه ددين په باره کښې زيات ضروري دي] ښه صفا صفا بيان کړې شوي دي او [دکاملوالي څلورم صفت ئے دادې چه په ړومبو آسماني کتابونو کښې ددې خبر ور کړې شوې وو چه ددې اوچت شان نخښنئ ده چنانچه] ﴿ وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْلَمُونَ ﴾ کومو خلقو ته چه مونږ کتاب [يعنې تورات او انجيل] ورکړې دې هغوئ دې لره په يقين سره پيژني ﴿ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ مِنْ رَبِّكَ بِالْحَقِّ ﴾ چه دا [قرآن پاك] ستاسو درب د طرفه په ريښتينوالي سره ليږلے شوې دے [دے قران لره پيژني خو تول بيا چه په چاکښې د ريښتيا وئيلو صفت وو هغوي ښکاره هم کړل او څوك چه عناديان وو هغوي نه ښکاره کول] ﴿ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ﴾ نو تاسو په شك کوونکو کښې مه کيږئ او [پنځم صفت دا کاموالي ددې دادې چه] ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ﴾ ستاسو درب [دغه] کلام د واقعيت او داعتدال [سمون] په لحاظ [سره هم] کامل دې [يعنې په علوموا و عقائدو کښې واقعيت او په ظاهري او باطني عملونو کښې سمون او برابرې لروونکے دے او دکام لوالي شپږم صفت ئے دادې چه] ﴿ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ ﴾ دهغه [ددې] کلام څوك بدلوونکے نشته [يعنې په دې کښې دبدلون راوستونه الله ﷻ ساتوونکے [نګهبان] دے ﴿ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾ او [په داسې کامل دليل باندې هم چه څوك په ژبے او زړه سره د دروغژن ګڼړلو معامله کوي] ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ هغه [يعنې الله ﷻ د هغوي خبرے] ښه آوري [او دهغوي عقيدې] ښے پيژني [په خپل وخت [قيامت کښې] به ورته کافي سزا ورکړي]. ﴿ وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ ﴾ او سره د واضحو دلائلو نه په دنيا کښې زيات خلق داسې [منکر او خالص ګمراهان] دي چه که [بالفرض] تاسو دهغوي خبرے منل شروع کړئ ﴿ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ نو هغوي به تاسو ﷺ لره دالله ﷻ د [سمے] لارې نه بے لارې کړي [ځکه چه هغوي پخپله ګمراهان دي چنانچه په عقيدو کښې] ﴿ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ ﴾ هغوئ خالص په بے بنياده خيالونو باندې روان دي ﴿ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴾ او [په اقوالو کښې] بيخي قياسي خبرے کوي [او دهغوي په مقابله کښې بعضې دالله ﷻ بندګان

په لاره هم دی او] ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ ﴾ يقيناً ستاسو ﷺ رب هغوی لره [هم] ښه پيژني چه دهغه [دښودلے شوي سمي] لاري نه بےلارې کيږي ﴿ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴾ او [هم] هغه هغوی لره ښه پيژني چه د هغه [په خودلے] لار باندي روان دی [نوګمراهانو ته به سزا ورکولې شی او په سمے لارې تلونکو باندې به انعامات او اکرامونه کيږی].

## معارف او مسائل

په تيروشوؤ آيتونو کښې دابيان ووچه دمکي مُشرکانو په دې باره کښې ښکاره ښکاره مُعجزات اودليلُونه اوليدل اووې پيژندل چه رسول الله ﷺ او قرآن کريم په حقه او صحيح دې خو بيا هم د ضد له کبله داغوښتنه کوي چه فلانی فلانی خاص معجزې دمونږ ته اوښودلې شی هله به نې اومنو، قرآن کريم ددوئ د فضول بحث داجواب ورکړو چه ددوئ دغه غوښتلی معجزات ښکاره کول مونږ دپاره هيڅ ګران نهٔ دی خودا ضدی خلق به ئے سره دکيدلو هم دسرکشئ نه منع نهٔ شی اودقُدرت دقانُون له مخې به ئې نتيجه داشی چه په ټولو به عذاب راشی-

په دې وجه رحمة للعالمين ﷺ دشفقت په بنياد باندې ددوئ دغوښتلو شوؤ مُعجزو دښکاره کولونه انکار اوکړو، او په هغه دليلُونو او مُعجزو باندې ئې دغور او فکر کولو بلنه دوئ ته ورکړله کومې چه ورته تراوسه پورې مخې ته راغلې وې، اوس په دې آيتونو کښې دهغه دليلُونو بيان دې چه په ښکاره ډول سره تر دقرآن کريم حقوالې اوداثابتيږی چه قرآن کريم دالله تعالی کلام دې-

درومبی آيت حاصل دادې چه زما او ستاسو تر منځه درسالت او نبوت په مسئله کښې اختلاف داسې دې چه زهٔ مُدعی يم او تاسو مُنکران يئ، او دامُقدمه داحکم الحاکمين الله تعالی دعدالت نه زما په حق کښې داشان فيصله مکمل کړې شويده چه زما په دې دعوی باندې کافی ځني ثبوتونه او دليل پخپله دقرآن کريم اعجازدې، چاچه د ټولې دنيا قومُونو ته داچيلنج ورکړيدې چه که څوک په دې کښې شک لري چه دا دالله تعالی کلام نهٔ دې، نودې کلام د ورکوتې شان سورت يا دآيت مقابلې کولودپاره تيار شئ، خو دې په جواب کښې ټول عرب پاتې راغلل، او کومو خلقو چه درسول الله ﷺ او داسلام د کمزوری کولو دپاره خپل ځانونه، مالُونه، اولاد او ننګ ناموس قربانی کول دهغوئ څخه يو هم دې ته راپورته نهٔ شوچه دقرآن کريم دمقابلې دپاره يو دوه آيتونه جوړ کړی پيش کړی نو آيا دغه ښکاره معجزه دحق قبلولو دپاره کافی نهٔ وه چه د چا نه ئې څه تعليم نهٔ وو حاصل کړې او سره ددې د هغوئ دپيش کړی کلام په مقابله کښې ټول عرب څه چه، ټوله دنيا پاتې راغلل، دا په حقيقت کښې د احکم الحاکمين دعدالت نه ددې مقدمې واضحه فيصله ده چه رسول الله ﷺ دالله تعالی برحق رسول او قرآن کريم دالله ﷻ کلام دې-

په دې باره کښې درومبی آيت الفاظ دادی: ﴿ أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا ﴾ [يعنی آيا، تاسو داغواړئ چه دالله تعالی ددې فيصلې کولو نه پس، څه يو بل فيصله کوونکې اولټوم؟] داسې نشی کيدې، ددې نه پس دقرآن کريم څو صفتونه ذکر کړې شويدی چه پخپله دقرآن کريم دحقوالی او ددې دکلام الهی کيدو ثبوت دې، مثلاً فرمائی: ﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ﴾ په دې کښې دقرآن کريم څلور خصوصی کمالات بيان شويدی، اول داچه قرآن کريم دالله تعالی له اړخه نازل شويدې، دويم دا چه دغه يو کامل او مُعجز کتاب دې چه ټول جهان ددې دمقابلې کولونه عاجزدې- دريم دا چه ټول زيات ضروری او اُصولی مضمونونه په دې کښې ډيرزيات په تفصيل سره بيان کړې شويدی- څلورم داچه دقرآن کريم دنازليدونه وړاندې اهل کتابو [يهودو او نصاری] هم په يقين سره پيژندل

چه قرآن کریم د الله تعالی له اړخه نازل شوي، حق کلام دي، بیاچه چاکښې د رشتیا او حق ونیلو صفت وو، هغوی د اخبره ښکاره هم کړه، خو عناد یاتو خلقو یه دي باندي د یقین لرلو باوجود هم نه ښکاره کوله-

د قرآن کریم د دې څلورو صفتونو بیانولو نه پس رسول الله ﷺ ته داسې خطاب دي: ﴿فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ﴾ [یعنی د دې واضحو دلیلونو نه پس تاسو ﷺ په شك کوونکو خلقو کښې مه شاملیږئ].

دا خو ښکاره خبره ده چه رسول الله ﷺ هیڅکله شك کوونکي نه شو کیدي اونه وو- څنګه چه تفسیر ابن کثیر د رسول الله ﷺ دا فرمان مبارک نقل کړیدي- نه ما چرې شک کړیدي او نه ما چرې سوال کړیدي.[1] لهذا معلومه شوه چه خطاب اګرچه هغوی ته دي مګر په حقیقت کښې نور امت ته آورول مقصود دي، او د نبی کریم ﷺ طرف ته نسبت کولو نه مطلب زورنه اوتاکید کول دي چه هر کله رسول الله ﷺ ته داسې اووئیلې شو چې شك مه کوه نوبل څوک داسې کیدي شی چه شک به پکښې اوکړی؟

په دویم آیت کښې د قرآن حکیم دوه نور خاص اوځانګړی صفتونه بیان شویدی چه د دې غټ ثبوتونه دی چه قرآن کریم د الله تعالی کلام دي، فرمائ: ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ﴾ [یعنی ستاسو د رب کلام د ریښتونوالی، انصاف او اعتدال په لحاظ سره کامل دي د دهٔ د کلام څوک بدلوونکې نشته]

د، تمت، په لفظ کښې ئې د کامل کیدو بیان دي او ﴿كَلِمَتُ رَبِّكَ﴾ نه مطلب قرآن کریم دي [بحرمحیط کښې د قتاده ﷺ نه روایت کړې شوي دي][2] چې د قرآن کریم ټول مضمونونه دوه قسمه دي یو هغه قسم دي چه په کښې د دُنیا د تاریخ عبرتناکې واقعې او حالات بیان شویدی، په نیکو عملونو باندې د ښې بدلې ورکولو وعده او په بدو عملونو باندې د سزاور کولو زورنه بیان کړې شویده- بل قسم هغه دي چه پکښې د انسان د ښیګړې او کامیابۍ احکام بیان شویدی، نو په ﴿صِدْقًا وَعَدْلًا﴾ سره ئې دادواړه قسمه صفتونه بیان کړې شویدی ، د صدق تعلق د رومبی قسم سره دي، یعنی څومره واقعات ،حالات، وعدا او وعید چه په قرآن کریم کښې راغلی دی هغه ټول رشتیا او صحیح دی-په دې کښې د هیڅ غلطۍ امکان نشته ،او د عدل تعلق دویم قسم [یعنی احکامو] سره دي، مطلب ئې دا شوچه د الله تعالی ټول حکمونه په ، ،انصاف ، ،باندې قائم دی، د ، ،عدل دلفظ مفهوم دوو معنو لره شامل دي یو انصاف ،چه پکښې په چا ظُلم او د چا حق تلفی نهٔ وی، بل اعتدال ،چه نهٔ خو ییخی، د انسان د نفسانی خواهشاتو تابع وی او نهٔ داسې وی چه انسانی جذبات او پیدائشی استعداد ئې نشی زغملې، مطلب ئې داشوچه د الله تعالی ټول احکام په انصاف او اعتدال باندې داسې ولاړ دی چه نهٔ پکښې په چا ظُلم شته اونهٔ پکښې دومره سختی او تکلیفونه شته چه انسان ئې نهٔ شی زغملې، لکه بل ځائې کښې الله تعالی فرمائی: ﴿لَا يُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ [یعنی الله تعالی چاته دومره تکلیف نه ورکوی چه د هغه دوَس نه بهروی] دلته، ،تمت، ، لفظ د ابښائی چه یواځې دانهٔ ده چه په قرآن کریم کښې یواځې د ، ،صدق او عدل، ،صفتونه موجود دی بلکه په دې صفتونو کښې د هر حیثیت نه کامل او مکمل دي-

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۶۲
[2] ) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۲۳۶

او داخبره چه ټول قرآني حکمونه د دنيا د ټولو قومونو د پاره، تر قيامته پورې د راتلونکو او بدليدونکو حالاتو د پاره چه په انصاف او اعتدال دوا ړو باندې ا ړه لري که لږ شان فکر اوکړې شي نو دا صفت يواځې د خداوندي حکمونو څخه کيدې شي چه د دنيا هيڅ يو قانون جوړوونکي اسمبلئ نه خو د ټولو موجوده او راتلونکو حالاتو پوره اندازه لګولې شي او نه د دغې ټولو حالاتو په رعايت اولحاظ لرلوسره څه قانون جوړولې شي، ولې چه هر ملک او قوم د خپل ملک او خپل قوم، يواځې موجوده حالات په نظر کښې لري او د هغې په جوړ قانون جوړوئ او د جوړيدونه پس ئې هم ډير ځيزونه پکښې د عدل او اعتدال نه خلاف محسوسيږي چه د هغې بدلول راځي. او دا خبره په تجزيه سره معلومه شوې ده.

غرض دا چه د نورو قومونو، نورو ملکونو يا د آئنده حالاتو په پوره لحاظ لرلو سره داسې قانون جوړول چه هر قوم، هر ملک او هر حال د پاره د عدل او اعتدال لرونکې وي- دا د انساني فکر او نظر نه زيات پورته دې يواځې د الله تعالى کلام دغسې کيدې شي، په دې وجه د قرآن کريم دا پنځم صفت چه پکښې بيان شوى تير او راتلونکى ټول واقعات، وعدې او وعيدونه ټول رشتيا دي دې کښې څه معمولې شك هم نشى کيدې چه ګني دا به د حقيقت نه خلاف وي- او د دې بيان شوى ټول حکمونه ټولې دنيا او تر قيامته پورې د راتلونکو نسلونو د پاره عدل او اعتدال لرونکى دى، په دې کښې په چا ظلم نشته، نه ئې په، اعتدال، او ميانه تګ کښې د وينيته د سرقدرې فرق شته، دا په خپل ځائې باندې د دې مکمل ثبوت دې چه قرآن کريم د الله تعالى کلام دې-

شپږم صفت ئې دا بيان کړو: ﴿لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ﴾ [يعنى د الله تعالى د کلماتو څوک بدلوونکې نشته، د بدليدو يو صورت دا هم کيدې شي چه څوک پکښې غلطى ثابته کړى او په دې وجه بدل کړې شي او دا هم کيدې شي چه څوک دشمن ئې په زبردستئ بدل کړي، د الله تعالى کلام د دې ټولو ځيزونو نه زيات پورته او پاک دې چنانچه الله تعالى پخپله وعده کوى: ﴿اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوۡنَ﴾ [يعنى هم مونږ قرآن نازل کړيدې او هم مونږ ئې ځارنه کوو] بيا داسې څوک کولې شي چه د الله تعالى ځارنه ماته کړي او څه بدلون پکښې راولي. چنانچه څوارلس سوه کاله تير شو او په هرې صدئ او هره زمانه کښې د قرآن مخالفين په شمير کښې د دې د منونکونه زيات وي، په طاقت او دولت کښې هم زيات، مګر د چا دا وس او نه رسيدو چه د قرآن کريم په يو زور، زير کښې فرق راوستلې شي، البته د بدلولو يو دريم صورت دا هم کيدې شو چه پخپله د الله تعالى له ا ړخه په منسوخ کولو سره بدل کړې شي، په دې وجه عبد الله بن عباس ﷠ اوفرمائيل چه په دې آيت کښې د دې ا ړخ ته هم اشاره ده چه رسول الله ﷺ آخرى پيغمبر او قرآن کريم آخرى کتاب دې، د دې نه پس د نسخ او منسوخ کيدو هيڅ احتمال نشته، (١) څنګه چه د قرآن کريم په نورو آيتونو کښې دا مضمون د دې نه په زيات وضاحت سره هم راغلې دې-

د آيت په آخر کښې ئې اوفرمائيل: ﴿وَهُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ﴾ [يعنى الله تعالى هغه ټولې خبرې اورې چه دا خلق ئې کوى او د ټولو د حالاتو او پټو رازونو نه خبر دې، هرچا ته به بدله د هغه د عمل په جوړور کوي-

په دريم آيت کښې الله تعالى رسول الله ﷺ ته خبرور کوى، چه په زمکه آبادو انسانانو کښې اکثريت په ګمراهئ کښې دې، تاسو تر مرغوب کيږئ مه، د دوئ په خبرو غوږ مه ګروئ- قرآن کريم

---

(١) روح المعانى، سورة الانعام آيت: ١١٦، ج ٨، ص ١٠، ١١

دامضمون په نورو ګنړو ځایونو کښې هم بیان کړېدې، لکه یو ځائې کښې فرمای: ﴿وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ﴾ بل ځائې کښې ارشاد [وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ] مطلب دادې چه دعادت له مخې په انسان باندې دګنړشمیررعب غالب کیږي او دهغوئ په مرسته کښې لګیاشي، په دې وجه رسول الله ﷺ ته خطاب اوکړې شوچه:

په دنیاکښې زیات خلق داسې دی چه که تاسو دهغوئ خبره منل شروع کړې، نودالله تعالی دلارې نه به موبې لارې کړی ولې چه هغوئ په عقیدو او نظریاتو کښې خالص خیالاتو او وهمونو پسې روان دې او په حکمونو کښې یواځې دتخمینې اندازې اواټکل نه کاراخلی چه بنیادئې هیڅ نشته.

خلاصه ئې داشوه چه تاسو ددوئ دګنړشمیرنه په رعب کښې مه راځئ، دوئ سره دجوړښت راوستوخیال دسره مه کوئ، ځکه چه داټول بې اصوله اوبې لارې روان دی۔

په آخر دآیت کښې ئې اوفرمائیل چه:

یقیناً، ستاسورب هغولره پیژني چه دهغه دلارې نه بې لارې کیږي، اوهغولره هم ښه پیژني چه دالله تعالی په لارروان وی، ځکه به چه ګمراهانوته سزاملاوېږی دسمې لارې خلقوته به انعام اواکرام حاصل وی۔

| |
|---|
| فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ |
| نوخورئ \| دهغې نه \| چې یادشوې دی \| نوم \| دالله |
| نودهغې ځاروونه خوراک کوئی چه دالله نوم پرې اخستې شوې وی |
| عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ ۝ وَمَا لَكُمْ |
| په هغې باندې \| که چرې یئ تاسو \| په آیتونو دهغه باندې \| ایمان راوړونکی \| اوڅه وجه ده \| تاسولره |
| که تاسو دهغه ذات په حکمونوباندې ایمان لرئ \| ...........او آخرپه تاسو څه شوی دی چه تاسو دې |
| أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَقَدْ |
| چې نه خورئ تاسو \| دهغې ځاروی نه \| چې یادشوې دی \| نوم \| دالله \| په هغې باند \| اوحال داچې بیشکه په |
| دهغه ځاروی نه خوراک نه کوئ \| چې دالله ﷻ نوم پرې یاد شوې وی \| حال دا دې چې |
| فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا |
| تفصیل بیان کړې دې الله \| تاسوته \| هغه \| چې حرام کړی دی الله \| په تاسوباندې \| مګر \| هغه |
| الله ﷻ څه حرام کړی دی \| هغه بې تاسوته په تفصیل سره بیان کړی دی \| مګر هغه چه ................ |
| اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا لَيُضِلُّونَ |
| چې مجبوره کړې شوی یئ تاسو \| هغې ته \| اوبیشکه \| ډیرخلق \| خامخا ګمراهه خبری کوی \| |
| تاسو دلوږې حالت کښې \| هغې ته محتاج شئ \| نوبیاهم هغه حلال دی \| اوډیروخلقوداحال دی |
| بِأَهْوَائِهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ |
| په سبب دخواهشاتو خپلو \| بې د علم نه \| بیشکه \| رب ستا \| هغه ښه پوهه دی \| |
| چې بې دلیله دخواهشاتو په وجه خلق ګمراه کوی \| اوالله ﷻ هغه خلق ډیر ښه پیژني کوم چه |

بِالْمُعْتَدِينَ ۝ وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ

دحدنه اوړيدونكو باندې | اوپريږدئ | ښكاره | گناه | اوپټه له هغې نه | بيشكه هغه كسان |

دالله ﷻ دحدونو نه وړاندې تيريږي | او ښكاره او پټ گناهونه پريږدئ | بيشكه څوک

يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ ۝

چې كسب كوي | دگناه | ژر به وركړې شي سزا | دهغه گناهونو | چې وو هغوئ | چې كول به ئې

چې گناونو كوي | نو ډير ژر به ورته دخپلو كړو سزا ملاو شي ..................

وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ

اومه خورئ تاسو | دهغې مذبوحې نه | چې نه وي يادكړې شوې نوم دالله | په هغې | اوبيشكه دغه خوراك

اوتاسو دهغې [مذبوحې غوښې] نه خوراک مه كوئی | چې په كوم باندې دالله ﷻ نوم نه وی اخستې شوی

لَفِسْقٌ ۗ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ

خامخاگناه ده | اوبيشكه | شيطانان | خامخا وسوسې اچوی | دوستانوخپلوته

بيشكه دا گناه ده | اوشيطان خپلوملگروته د[شكونواواعتراضونو] وسوسې اچوی

لِيُجَادِلُوكُمْ ۖ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ

دپاره ددې چې جگړه اوكړي هغوی ستاسوسره | اوكه چرې | تاسوخبره اومنله دهغوئ

چې تاسو سره جنگ اوكړي | .................. اوكه تاسو دهغوئ تابعداری | وكړئی | نو

إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ۝

نو يقيناً بيشكه چې تاسو | خامخا مشركان يئ |

يقيني طور تاسويه دمشركانونه شئ |

## آسان ترجمه قرآن

پس هرهغه (حلال) څناورخورئ چه په هغې دالله تعالى نوم اخستې هوې وي، كه تاسو واقعي دالله په آيتونو باندې ايمان لرئ او تاسو لره څه ركاوټ دې چه د هغې د وجې نه تاسو دهغه څناور نه نه خورئ چه په هغې دالله نوم اخستې هوې وی؟ حال دا چه هغهٔ تاسو ته هغه څيزونه په تفصيل سره بيان كړي دي چه هغه ستاسو دپاره (حاموحلالكوكښ) حرام كړي دي خوچه د كوم په خوړلو باندې تاسو بالكل مجبور شئ (نو دهغې څيزونونه هم په قدر د ضرورت اجازت دې) او ډير خلق د څه علم په بنياد باندې نه (بلكه صرف) د خپلو خواهشاتو په بنياد باندې نور خلق گمراه كوی. بې شكه ستا رب ښه پوهيږي په هغه چا چه د حد نه آوړي او تاسو ښكاره او پټ دواړه قسمه گناهونه پريږدئ دا يقيني خبره ده چه كوم خلق گناه كوي هغوی ته به دهغه ټولو جرمونو سزا ملاويږي چه د كومو به هغوی ارتكاب كولو. او په كوم څناور چه د الله نوم نه وی اخستې هوې دهغې نه مه خورئ. او داسې كول سخته گناه ده (مسلمانانو!) شيطانان خپلو دوستانو ته وسوسې اچوي دي دپاره چه تاسوسره بحث وكړي. اوكه تاسو د دوی خبره اومنله نو تاسو به يقيناً مشركان شئ.

ه آیتونو ربط: پورته د [ان تطع] الفاظو سره د گمراهانو د تابعدارئ څخه مطلقا منع فرمائیلې شوې وه. دې څخه ورستو په یوه واقعه کښې یو خاص امر سره د تابعدارئ څخه منع فرمائی. او هغه واقعه د مذبوح او غیر مذبوح د حلت ده. واقعه دا ده چې کفارو مسلمان په شبه کښې اچول غوښتل، [هغه داسې چې] تاسو هغه ځناور نه خورئی کوم چې الله ﷻ وژلې وی او کوم چې تاسو پخپله وژلې یعنی ذبحه کړې وی هغه خورئی. [اخرجه ابوداؤد والحاکم عن ابن عباس ﷠] بعضې مسلمانانو د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې دا شبه پیش کړه نو په دې باندې د آیتونه تر [المشرکون] پورې نازل شو. [رواه ابو داؤد والترمذی عن ابن عباس ﷠ کذا فی اللباب] ([1])

دجواب حاصل دادې چې تاسو مسلمانان یې او د الله ﷻ احکام مطلق په تاسو باندې لازم دی. او الله ﷻ د حرامو او حلالو تفصیل ښودلې دې. نو تاسو په هغې باندې روان اوسئ، حلالو باندې د حرامو او حرامو باندې د حلالو شك او گمان مه کوئی. او دمشرکانو وسوسو ته توجه مه کوئی.
اوددې جواب تحقیق دادې چې د اصولو داثبات دپاره خو دلائل عقلیه پکاردی، او د ثابتیدو څخه پس د اصولو په اعمالو او فروعو کښې صرف دلائل نقلیه کافی دی، د عقلیانو ضرورت په کښې نشته دې. بلکه کله کله د نقصاني وی. څکه چې په هغې سره دشبهاتو دروازې خلاصیږی څکه چې په فروع کښې د دلیل قطعی هیڅ ضرورت نه وی. البته که د حق یو طالب علم ته چې د زړۀ دپاره یوه شفاء غواړی یعنی تصفیه د قلب غواړی، نو دهغه په وړاندې اقناعیات او خطابیات تبرعا پیش کولو کښې هیڅ باك نشته دې. لیکن کله چې دا هم نه وی بلکه صرف جگړه وی نو خپل کار کښې اخته کیدل پکار دی. او اعتراض کوونکی طرفته هیڅ توجه نه دی ورکول پکار. خو که اعتراض کوونکی یو فرع عقلی قطعی دلیل مخالف کیدل ثابتول غواړی نو ددې جواب به د مدعی په ذمه حق وی. خو دمشرکانو په شبه کښې ددې احتمال نشته دې. په دې وجه په دې جواب کښې صرف مسلمانانو ته ددې مذکوره قاعدې مطابق خطاب شوې دې چې په داسې خرافاتو پسې مخه مه اوړئی. دحق معتقد او عامل اوسئ. په دې وجه پدې مقام کښې د مشرکانو د شبهې جواب په صراحت سره نه ذکر کول د شبهې په محل کښې نشی کیدې، خو په دې کښې هم دې طرفته اشاره ده چې کوم ځائې کښې په کُلُوا کښې په [ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ] کښې او په [لَا تَأْكُلُوا] کښې [لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ] مذکور دې. اوددې عادت څخه او د نورو دلائلو څخه معلومیږی چې [ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ] به د ذبح په وخت کښې وی. اود [لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ] د تحقیق به دوه صورتونه وی، عدم ذبح او عدم ذکر عند الذبح، نو د شبهې د جواب حاصل دا شو چې دحلت انحصار د دوؤ امورو په مجموعه باندې دې. یو ذبح چې نجسه وینه اوباسی او نجاست لره پاك کړی، او هغه نجاست د ممانعت سبب وو، اوبل د الله ﷻ نوم پرې نه اخستل څکه چې دا د برکت دپاره مفید دې، او دموی [وینې] حیواناتو کښې شرط د حلت دې، او د یو څیز د وجود دپاره د مانع لرې کیدل او د شرط وجود دواړه امور ضروری دی، نو ددې مجموعې څخه حلت ثابت شو.

[1]) سنن ابي داود، كتاب الضحايا، باب فى ذبائح اهل الكتاب: ج ۲، ص ۳۸، وجامع الترمذى، أبواب التفسير، باب ومن سورة الأنعام: ج ۲، ص ۳۶

## خلاصه تفسیر

[او کله چه ورته دکافرو د تابعدارئی کولو بدیت معلوم شو] ﴿ فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ ﴾ نو په کوم [حلال] ځناور باندې چه [د ذبح کولو په وخت] دالله ﷻ نوم [یې دبل څه شریك نه] واخستلې شی نو دهغې بعضې څخه به [زرورتیا] خورئی [او هغې لره مباح او حلال ګڼرئی] ﴿ إِن كُنتُم بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ ۝ ﴾ که تاسو دهغه په حکمونو باندې ایمان لرئی [ځکه چه حلالو لره حرام ګنړل دایمان نه خلاف دی] ﴿ وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ ﴾ او په تاسو څه څیز [یعنی عقیده] ددې باعث جوړیدې شی چه تاسو دداسې ځناورو خینې څخه نه خورئی چه پرې [د ذبح کولو په وخت] الله ﷻ نوم [یې شرکته] اخستلې شوې وی ﴿ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ ﴾ حال دادې چه دالله ﷻ [په بل آیت کښې] دهغه ټولو ځناورو تفصیل خودلے دے کوم یئ چه په تاسو حرام کړی دی ﴿ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ ﴾ مګر هغه هم کله چه تاسو ته ضرورت پیښ شی نو حلال دی [او په دغې تفصیل کښې دالله ﷻ په نوم باندې حلال کړې ځناور داخل نه دې نو دهغې په خوراك کښې دعقیدې په لحاظ ولې زړه وهنی او ددغې خلقو شبهو پسے بیخی مخه اړونی ځکه چه] ﴿ وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ دا یقینی خبره ده چه ډیر کسان [چه دهغوی بعضې څخه داهم دی خپل ځان سره نورو لره هم] په خپلو غلطو خیالونو [یعنی دهغې په بنا] بې څه د سند نه [په مخه] ګمراه کوی [لیکن ترکومه به هسکه غړئی ګرځی] ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ ۝ ﴾ په دې کښې هیڅ شك نشته چه الله ﷻ [دایمان] دحد نه وتونکو لره [چه په کښې داهم دی] ښه پیژنی [نو په یو ځل به سزا ورکوی].

﴿ وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ ﴾ او تاسو ظاهری ګناه هم پریږدئی او باطنی ګناه هم پریږدئی [لکه د حلالو څیزونو دحراموالی عقیده لرل باطنی ګناه ده ځنګه چه ددې په عکس باندې هم ګناه ده] ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ ۝ ﴾ بیشکه کوم خلق چه ګناه کوی هغوی ته به دهغوی د کړو [سزا] زرده چه ورکړې شی [په قیامت کښې] ﴿ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ ﴾ او دهغې ځناورو نه مه خورئی په کومو چه [په بیان کړې طریقے سره] دالله ﷻ نوم نه وی اخستل شوې [لکه چه مشرکان دغسې ځناور خوری] ﴿ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ ﴾ اودا کار [یعنی دهغه ځناور نه خوړل چه د الله ﷻ نوم پرے نه وی اخستلې شوے] بې حکمی ده [غرض دا چه مه په پریښودو کښې دهغوی تابعداری کوئی او مه په کولو کښې] ﴿ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ ﴾ او [ددغې خلقو شبهې ځکه ددې جوګه نه دی چه مخه ورپسے بوړے شی] چه یقیناً شیطانان [پیریان] خپلو [دې] دوستانو [او تابعدارو] ته [ددغې شبهو] تعلیم ورکوی ﴿ لِيُجَادِلُوكُمْ ﴾ دپاره ددې چه دوی تاسو سره [بیکاره] جګړې اوکړی [یعنی اول خودغه شبهې د نص نه خلاف دی بل دا چه غرض ئې خالص جګړه کول دی ځکه ورپسے مخه اوړل ندی پکار] ﴿ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ۝ ﴾ اوکه تاسو [خدائې دے نکړی] ددغې خلقو تابعداری [په عقیدو یا په کارونو کښې] کول شروع کړی نو یقیناً به مشرکان شئ [ولې چه دالله ﷻ په تعلیم به دنورو تعلیم غوره اوګرځوئی چرته چه برابر ګنړل ئې هم شرك دے یعنی د دوی تابعداری داسې ناکاره څیز دے ځکه ددې د مقدماتو یعنی ورپسے دمخې وړلو نه هم ځان ساتئی].

## معارف او مسائل

﴿مَا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ﴾ كښې د ذبح اختياري او د ذبح بې اختياري يعنې دَغشي، باز، او سپي وغيره ښكار، هر كله چه دديې دخوشې كولو په وخت بسم الله او وئيلې شي وؤ حقيقي او ذكر حكمي تول داخل دي نو د امام ابي حنيفه رحمه الله په نزد كه په هيره چانه بسم الله ونيل پاتې شي نو هغه د ﴿مَا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ﴾ په حكم كښې داخل دي البته په قصد سره د بسم الله پريښولو كبله د امام صاحب په نزد حراميږي-(١)

| |
|---|
| أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنٰهُ |
| آيا هغه څوك چې وو ا مړ \| نو ژوندی كړو مونږ هغه |
| آيا هغه څوك چې مړ وو \| او مونږ ژوندې كړو ا |
| وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ |
| او وركړو مونږ هغه لره \| نور \| چې تګ كوي \| په هغې سره \| په خلقو كښې \| په شان دهغه چادې \| |
| او داسې رڼا مو وركړه چې د خلقو مينځ كښې پرې ژوند تيروی ګرځي \| ..................دهغه چا |
| مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ |
| چې مثال دهغه \| په تيارو كښې پروت وي \| نه وي اوتونكې دهغې نه \| دارنګې \| ښايسته كړې شوې |
| پشان كيدې شي \| چې په تيرو كښې وي \| او دهغې نه بهر نشي راوتې \| ..........دغه شان |
| لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٢٢﴾ |
| دپاره دكافرانو \| هغه كارونه \| چې دي دوئ \| چې كوی ئې \| |
| كافرانو ته د هغوئ [خراب] عملونه ښائسته شوی دي \| |

## آسان ترجمه قرآن

ته دوايه چه كوم كس مړوی او بيا مونږ هغه ته ژوندې وركړې وي، او هغه ته مو يو رڼا وركړې وي، چه دهغې په ذريعه هغه په خلقو كښې ګرځي آيا دي دهغه كس پشان كيدې شي چه دهغه حال دا وي چه په تيارو كښې وي دهغې نه وتلې نه شي؟ دغه شان كافرانو ته دا ښايسته كړې شوي دي چه كوم كار دوی كوي.

## خلاصه تفسير

﴿أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا﴾ داسې كس چه وړاندې مړ [يعنې ګمراه] وو ﴿فَأَحْيَيْنٰهُ﴾ بيا مونږ هغه ژوندے [يعنې مسلمان] جوړ كړو ﴿وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ﴾ او مونږ هغه ته يو داسې نور [يعنې ايمان] وركړو چه هغه دے لره ځان سره كړې په خلقو كښې ګرځي راګرځي [يعنې هر وخت دا ورسره وي چه په هغې سره هغه د ټولو ضررونو نه لكه د ګمراهئ وغيره نه په حفاظت او امن كښې بے فكرئ ګرځي نو] آيا داسې كس [په بدحالئ كښې] ﴿كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا﴾ دهغه چا په پشان كيدې شي چه دچا حالت داسې وي چې د [ګمراهئ] تيارو كښې [انخښتې وی] او دهغې نه راوتلې هم نشي [مراد دا چه هغه مسلمان نه شو او په دې دے

تعجب اونه کړي شي چه سره ددې کفر تیاره ده هغه پرے تینګ پاتې شو وجه ئے داده چه څنګه مومنانو ته دهغوی ایمان ښه معلومیږی ﴿ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴾ دغه شان کافرانو ته دهغوی عملونه [دکفر وغیره] په مخه ښکلی معلومیږی [چنانچه هم په دې وجه دمکې سرداران چه تاسو ته خوشې فرمائشونه شبې اوجنګ جګړے رامخے ته کوی خپل کفر له دښه ګنړلو له وجې په هغې تینګ ولاړ دی]۔

## معارف اومسائل

په تیروشوؤ آیتونوکښې ړومبې دَدې بیان راغلې چه دا سلام مخالفینو دَرسول الله ﷺ اوقرآن کریم ښکاره معجزې لیدلې وې خوسره ددې دَضد اوضد له کبله دنوؤ معجزوغوښتنه کوی۔ وړیسې قرآن کریم اوښودل چه که داخلق واقعی حق لټوونکی وې نوکومې معجزې چه دَدوی دَستر ګومخې ته راغلی دی هغه دوی ته دَحق دلاړې ښودلودپاره کافی نه هم زیاتې وې بیا دَ هغې معجزوبیان راغلو۔

اوس په دې ذکر شوی آیت کښې رسو الله ﷺ اوپه قرآن باندې دَایمان راوړونکو او دَ کُفر او انکار کوونکو څه حالات اوخیالات اودَدواړودَنیک اودَبدانجام بیان اودَمؤمن اوکافر، اودَایمان او دَ کُفر حقیقت په مثالونوکښې ښودلې شوې دې، دَمؤمن اوکافرمثال ئې دَژوندی اومړی اودَایمان اوکُفرمثال ئې دَرانړااوتیرې ورکړیدې، داقرآنی مثالونه بیانول دی چه پکښې شاعری نشته بلکه دَیوحقیقت ښکاره کول دی۔

**مؤمن ژوندے دے اوکافرمړے**: په دې مثال بیانولوکښې مؤمن ته ژوندې اوکافرته مړې وئیلې شویدې، وجه ئې داده چه اګرکه دَانسانانو، حیواناتواو اونو بوټو[درختو] وغیره دَژوند قسمونه او شکلونه مختلف دی لیکن دې نه هیڅ پوهه انسان انکارنشی کولې چه ددوی څخه دَ هر یو دَ ژوند یوخاص مقصدوی چه قُدرت پکښې دَدغه مقصد دَحاصلولوپوره اهلیت اوصلاحیت ایښې دې لکه قرآن کریم فرمای:﴿ اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى ﴾ [یعنی الله تعالی دَدې دُنیا هر څیز پیدا کړو اودَڅه مقصدد پاره ئې چه کوم څیزپیدا کړې ووهغې ته ئې دَرسیدو پوره پوره هدایات ورکړل، دَهغې په موجب هرمخلوق دَخپل ژوندفرض اوخپله خپله ډیوټی اداکوی، په دې جهان کښې، زمکه، اوبه، هوا، اوراوداشان آسمانی مخلوق، نمر، سپوږمۍ، تول ستوری خپله خپله وظیفه او کار پیژنی اوخپل خپل فرض اداکوی اوهم دغه دَفرض اداکول دَهرڅیزدَ ژوندثبوت دې اوکله چه په څه حال کښې دَدې څخه څه څیزخپله ډیوټی اداکول پریږدی نو هغه ژوندې نه دې بلکه مړ دې ، اوبه که خپل کار تنده مړه کول اوخیرې لرې کول پریږدی نو هغې ته اوبه نشی وئیلې۔ اوراو چې سوزیدل او بلیدل پریږدی نو هغه اوربانې نشی، ونې [درختې] او ګیاه[اوابنہ] زرغونیدل اوتوکیدل او یا میوه ورکول پریږدی نوهغه دبې ساه ، مړ څیز پشان دې بوټې پاتې نه وی

دَتولوکائناتودَتفصیلی اندازه اغستونه پس یوانسان چه څه عقل اوشعورلری په دې خبره باندې غور کولودپاره بـه مجبوره وی چه دَانسان دَژوندمقصدڅه دې اودیوټی ئې څه ده؟ اوداچه، که هغه دَخپل ژوندمقصدپوره کوی نودَدې بـه جوګه وی چه ژوندې ورته اووئیلې شی اوکه نه پُوره کوی نودَیومړی دکالبُوت نه زیات بل څه حقیقت نه لری۔

اوس په دې سوچ کول پکاردی چه دَانسان دَژوندمقصدڅه دې اوفرض ئې څه دی؟اودبیان شوی أصول مطابق داټاکلې شویده چه که دې دَخپل ژوندمقصداوخپله ډیوټی ادا کوی نوژوندې

دي ورنه دَدې قابل دي چه مړې ورته اوونيلې شي، كومو داسې كَسانوچه دَبصيرت نه خالي دي،
انسان لره دَدنياپخپله راتوكيدونكي وابښه ياهوښيارقسم څناور گرځولې دې اودَهغه په نزد يو
انسان، سپى اوخركښې څه بيلتون نشته-دَدې تولودژوند مقصدئې خپل نفساني خواهشاتَ پوره
كول، خوراک، څښاک، اودهٔ كيدل، ويښيدل اوپيامړ كيدل گرځولې دى، واني هغه خودعقل او
شعور دَخاوندانو په نزد دَخطاب قابل نهٔ دې، دَدنياتول هوښياران چه هرمذهب، ملت اوهرمكتب
خيال سره تعلق لرئ، دوئ دَدنيادپيداكيدونه تراوسه پورې په دې اتفاق لرئ چه انسان دَ
كائناتومخدوم اوپه مخلوقاتوكښې بهترين دي اودابشكاره خبره ده چه زيات غوره اوزيات پورته
هغه څيزگنړلې اوبللې شي چه دَهغه دَژوند مقصد اعلى اودَډيرغوروالي په اعتبارسره امتيازي
شان لرى اوپه شدبدباندې پوهه هريوانسان په دې پوهيږي چه په خوراک، څكاک اودهٔ كيدو
راويښيدو اوسيدو او اغستوكښې انسان دَنوروڅناورونه څه خاص بيلتون نهٔ لرى، بلكه ډير
خناور ددهٔ نه زيات غوره اوزيات مقداركښې خوراک څكاک كوى، دَده نه زيات غوره قُدرتي
اغوستن لرى، دَدهٔ نه په زياته غوره هوا اوفضاكښې ساه اخلي او وخت تيروى، په خپلې نفع او
نقصان باندې پوهيدوكښې هرڅناوربلكه هره اونه [درخته] ترڅه حده پورې شعور لرى، او دا
استعدادلرى چه ځان دپاره مفيدڅيزونه حاصل كړى او مضرڅيزونونه ځان اوساتى.

دغه شان نوروته په فائد ورسولوكښې تول حيوانات اواونې بوټى دَ انسان نه څوقدمه وړاندې
داسې ښكارى چه دَدې غوښه، څرمن، هډوكى، پلې او دَ اونوبوټو دَ جرړونه واخله ترڅانگو او
پاڼوپورې هر يو څيزئې دَمخلوق دَپاره پكارراتلونكې اودَدوئ دَژوند ضروررياتو پيداكولوكښې
بى شميره فائدې لرونكې دې ، بل طرفته د انسان ته اوگورې نونهٔ خودَهغه غوښه، څرمن پكار
راځى اونهٔ ئې ويښتهٔ، هډوكى اوپلې وغيره دغسې پكارولې شي-

اوس داكتل دى چه په دې حالاتوكښې بيا، حضرت انسان په څه بناباندې دكائناتومخدوم اوپه
مخلوقاتو كښې زيات غوره مخلوق گرځيدې شى؟اوس دَحقيقت پيژندلوپراؤنزدې راؤرسيدو
لرشان غوركولوسره معلوميږى چه دَدې تولوڅيزونودَعقل اوشعوررسائى صرف دَموجوده ژوند
وختى اوهنگامى نفع نقصان پورې ده، اوپه دې ژوند كښې هغه نورودپاره فائده رسوونكې
ښكارې، دَدې دُنيادَژوندنه رُومبې څه وواو وريسى څه راتلونكى دى؟ په دې ميدان كښې څو د
كانړوبوټوڅه چه دَلوئې نه لوئې هوښيارڅناورعقل اوشعورهم كارنهٔ وركوى اونهٔ په دې ميدان
كښې دَدغې څيزونونه يوڅيز پكار راتلونكې يامفيد كيدې شى، بس هم داهغه ميدان دې چه
پكښې دكائناتومخدُوم اوافضل المخلوقات انسان لره كاركول دى اوهم په دې سره دَنورو
مخلوقاتونه دَده بيلتُون واضح كيدې شي-

معلومه شوه چه دَانسان دَژوند مقصدد تول جهان ابتدااوانتهامخې ته ايښول، دَتولوپه نتيجو
او انجامونو باندې نظراچول اودااتاكل چه په مجموعى لحاظ سره كوم څيزنفع رسان اومفيددې
اوكوم يو څيز ضررناک اوتكليف وركوونكې دې؟بياهم دې بصيرت سره، پخپله خپل ځان دپاره
هم فائده من څيزونه حاصلول او ضررناكوڅيزونونه ځان ساتل ،نوروخلقولره هم دغې مفيد
څيزونواړخ ته بلل او دَ خرابو څيزونو نه ئې دَساتلويندوبست كول دى، دپاره دَدې چه هميشه
دپاره آرام اوقلارى اودَتسلئ ژوند حاصل شي-

اوهركله چه دَانسان دَژوند اودَانسانى كمال دامعيارى فائده پخپله حاصلول اونوروته ئې
رسول دى نواوس دَقرآن كريم دغه مثال بيانول حقيقت جوړيږى او مخې ته راځى چه ژوندې

یواځې هغه انسان دي چه په الله تعالی او هغه په رسول ﷺ باندې ایمان راوړی او دې دنیا ابتدا او انتها او په مجموعي لحاظ سره ئې نفع نقصان د وحي الهي په رڼا کښې اوپیژني ولې چه یواځې انساني عقل نه دامیدان چرته غوځ کړیدې او نه ئې غوځولې شي چنانچه لویو لویو عقلمندو خلقو، هوښیارانو، حکیمانو او د ټول جهان فلسفیانو بالآخر د دې اقرار کړیدې، مولانای روم څه ښه وئیلي دي:

زیرکانِ موشگافانِ دهی کرده هر خرطوم خطِ ابلهی

[وېښته څیري کوونکو هوښیارانو که هرڅومره په دې باره کښې خپل اسونه زغلولي دي، خو آخرئې د خپلې کم عقلۍ اقرار کړیدې]-

او هر کله چه د ژوند د مقصد په لحاظ سره ژوندې صرف هغه څوک دې چه د وحي الهي تابع او مؤمن وي نو داهم او ټاکلې شو چه څوک داسې نه وي هغه د دې جوګه دې چه مړو رته اووئیلې شي- مولانا رومي څه ښه فرمائیلي دي-

زندگی از بهر طاعت وبندگی است بےعبادت زندگی شرمندگی است

آدمیت لحم وشحم وپوست نیست آدمیت جُز رضائے دوست نیست

[ژوند د پاره د عبادت او بندګئ کول دې-بې عبادته ژوند څان شرمول دي] انسانیت یواځې غوښه، وازده[وازګه] او پوستکي[څرمن] نه ده، انسانیت بغیر د رضا د دوست [الله تعالی] نه بل څه نه دي-

د مؤمن او کافر مثال د ژوندي او مړدې، کوم چه قرآن کریم ورکړیدې بل مثال ئې د ایمان او کُفر نُور او تیاره ورکړیدې-

**ایمان نُور دې او کفر تیاره:** ایمان ته ئې نُور او کُفر ته ئې تیاره وئیلې ده که لږ شان غور اوکړې شي نو دا مثال هم څه خیالي مثال نه، بلکه د حقیقت بیان ول دی، دلته هم د رڼا او تیرې اصل مقصد دادې چه د هغې په ذریعه نزدې او لرې څیزاوکتلې شي، نتیجه به ئې داوي چه د ضرري څیزونونه څان ساتلو او د مفید څیزونو د اختیارولو موقعه به ورته په ګُتوورشي-

اوس ایمان ته اوګورئ چه هغه یو نُوردې چه رڼائې ټولو آسمانونو، زمکې او د دې نه په بهر څیزونو دراچاپیره ده، یواځې هم دا رڼا د پوره جهان انجام او د ټولو څیزونو صحیح نتیجې ښودلې شي، چاسره چه دا نُور وی نو د دې په ذریعه پخپله هم ټولو ضرري څیزونو نه څان ساتلې شي او نورهم تربچ کولې شي او چاته چه د رڼا حاصله نه وی هغه پخپله هم په تیاره کښې وي، د دنیا د مجموعي او د پوره ژوند په اعتبار سره د ضررې او مُفید څیزیلتون نشي کولې، یواځې د نزدې نزدې څیزونو پیژندګلې په لټولو سره کولې شي، د موجوده دنیا ژوند هم دا ګیر چاپیره چاپیر چل دې، کافر خو دا ژوند او د دې نفع نقصان پیژندلې شي مګر د راتلونکي مستقل او همیشه ژوند هیڅ خبر نه لری او نه د هغې د نفع او ضرر ورته څه درک لګی لکه چه قرآن کریم فرمائي:

﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۖ وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَٰفِلُونَ﴾ [دا خلق خو د دُنیا د ابسکاره ژوند او د دې کَهره کوته پیژندې شي مګر د آخرت نه بیخي بې پروادي]-

په بل یو آیت کښې د تیرو شوو مُنکرو او کافرو اُمتونو بیان کولو نه پس قُرآن کریم فرمائي:

﴿وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِينَ﴾ یعنی د آخرت په معامله کې داسې سخت غفلت کوونکی او بې عقلې کوونکي په دې دُنیا کښې بیوقوفه ناپوهه نه وو، بلکه، مستبصرین، روشن خیاله خلق وو، مګر د دې ظاهري، سرسري روشن خیالۍ یواځې د دُنیا د څوور خود ژوند جوړولو کارور کولې شو،

د آخرت د همیشه ژوند دپاره ئې هیڅ کار اونه شو کړې۔

د دې تفصیل آوریدو نه پس د قرآن کریم دغه آیت بیا یووار اولولئ:

﴿اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِى النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِى الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا﴾ مطلب د ا دې چه څوک رومبې مړ، یعنی کافر وو، بیا مونږه هغه ژوندې کړو، یعنی مسلمان مو او ګرځولو او مونږ ورته داسې نور یعنی ایمان ورکړو چه د هغې په رڼا کښې په خلقو کښې ګرځي د هغه چا برابر کیدې شي چه مثال ئې داسې دې چه په قسما قسم تیرو کښې راګیر دې او راوتلې ترې نه شي، یعنی د کفر په تیرو کښې اخته دې هغه پخپله چنانچه خپل نفع نقصان نه پیژني او هلاکیدو نه نشي بچ کیدې، نور و ته څه نفع رسولې شي؟

**د ایمان د نور فائده نورو ته هم رسي:** ﴿نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِى النَّاسِ﴾ کښې د دې خبرې هدایت هم کړې شوې دې چه د ایمان نور یواځې مسجد، درګاه، ګُټ [کونج] او کوټګۍ سره خصوصیت نه لري، بلکه چا ته چه الله تعالی دا نور ورکړې وي هغوئ دې سره هر چرته د خلقو په مجلسونو کښې او ګڼړو کښې ګرځي راګرځي او هر ځائې کښې د دې د رڼا نه پخپله هم فائده اخلي او نورو ته هم فائده رسوي، نور، د څه تیارې نه لاندې او پاتې نشي راتلې، لکه دستر ګو لیدلو خبره ده چه یوه تته ډیوه کمزورې چراغ هم د تیارو نه لاندې او پاتې نه راځي، البته رڼا ئې تر لرې پورې نه رسي، تیزه رڼا تر لرې رسي او تته رڼا لږ ځائې روښانه کوي خو بیا هم په تیاره باندې په هر حال برا و غالبه راځي، تیاره پرې چرې هم نشي برکیدې، هغه د سره رڼا نه وي چه تیاره پرې برراشي، دغه شان هغه خو ایمان نه دې چه د کفر نه مغلوب یا مرعوب شي۔ دا ایماني نور، د انساني ژوند په هره څانګه، هر حال او هر دور کښې ورسره وي۔ دغه شان په دې مثال کښې یوه بله اشاره دا هم وه چه څنګه د رڼا فائده هر انسان او حیوان ته په اراده او بې ارادې په هر حال کښې څه نه څه رسي، فرض کړئ چه نه خو د رڼا خاوند دا غواړي چې بل ته فائده او ورسي، نه بل دا اراده کوئي چې د هغه د رڼا نه ما ته فائده را اورسي خو چې رڼا چا سره وي د هغه نه بې اختیاره په قدرتي ډول هغه هر چا ته فائده رسي چا ته چه دغه رڼا رسائ لري، دغه شان د مؤمن د ایمان نه نورو ته هم څه نه څه فائده رسي خواه څوک محسوسوي او که نه محسوسوي په آخر د آیت کښې فرمائي: ﴿كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ [یعني سره د دې بښکاره او ډاګیزو دلیلونو که منکر او کافر خلق چه خبره نه مني نو د هغه وجه داده چې ( [۱]) هر څوک په خپل خیال کښې څه نه څه پرغزیو شیطان لري، شیطان او نفساني خواهشاتو د دوئ په نظر کښې خراب او ناکاره عملونه ئې ښکلي او ښائسته ښکاره کړیدي چه سخت غلطیدل او تیروتل دي [نعوذ بالله منه]

| وَكَذٰلِكَ | جَعَلْنَا |
| --- | --- |
| اوهم دارنګې | مقرر کړي دي مونږه |
| ....... اودغه شان مونږ په هر کلي کښې | |

| فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ | اَكٰبِرَ | مُجْرِمِيْهَا | لِيَمْكُرُوْا | فِيْهَا |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| په هر کلي کښې | غټان | مجرمان د هغه کلي | د پاره د دې چې مکراو دوکې اوکړي | په هغه کلي کښې |
| غټ مجرمان مقرر کړي دي | ...........چې مکر او دهوکې په کښې خوروي ........ | | | |

[۱]) ترجمه: تر څو پورې ور کولو والا خدائے ور نه کړي۔

وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنْفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ۝ وَإِذَا

اونه کوی دوکې | مګر | دخانونو خپلوسره | اونه پوهیږی دوی | اوکله چی |

اودوی ابل چاسره نه بلکه | صرف خپلو خانونو سره دهوکه کوی | خودوی نه پوهیږی | اوکله چې

جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَنْ نُؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ

راشی دوی ته | یوآیت | نووائی دوی | چی هرګزنه منومونږه | تردې پورې | چی راکړې شی مونږ ته

دوی ته یوه نښه راشی | نودوی وائی چې مونږ هیڅکله نه منو | ترڅوچې پخپله مونږ ته

مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ ۘ اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ

په شان | دهغې | چی ورکړې شوې دې | رسولانو دالله ته | الله | ښه پوهیږی | په هغه ځائې

هغه شان نښې رانکړې شی | لکه څنګه چې الله ﷻ خپلو رسولانو ته ورکړې دی | الله ﷻ ښه پوهیږی

يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ ۗ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِنْدَ اللَّهِ

چی ږدی | پیغمبری خپله | ژربه اورسیږی | هغه کسانوته | چی مجرمان دی | سپکوالی | په نز دالله

چې دپیغمبری کارچانه اخلی | کومو کسانو چه جرم کړې دې هغوی ته به دالله ﷻ دطرفنه ډیرزر

وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ۝ فَمَنْ

اوعذاب | سخت | په سبب دهغې | چی وو دوی | چی مکرونه به ئې کول | پس هغه چاته

سخت د ذلت عذاب اورسی | ځکه چې دوی به ډیرمکرونه کول | ............ [حقیقت دادې] چې الله

يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ۖ وَمَنْ

چی اراده اوکړی الله | چی هدایت اوکړی هغه ته | نوپرانیزی | سینه دهغه | دپاره داسلام | اوهغه چاته

د چا د هدایت اراده اوکړی | نو داسلام تعلیم ته دهغه سینه پرانیزی | اوڅوک چې

يُرِدْ أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا

چی اراده اوکړی الله | چی بې لارې کړی هغه لره | نوګرځوی | سینه دهغه | تنګه | بنده

ګمراه کول غواړی نودهغه سینه دا شان لنډه تنګه کړی | چې اسلام قبلول ورته داسې ښکار]

كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ ۚ كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ

لکه چی خیژی هغه | په آسمان کښی | دارنګې | مقرروی | الله | پلیتی | په هغه کسانو باندې |

لکه چې آسمان ته خیژی | دغه شان الله ﷻ پلیتی په هغه کسانو باندې ګرځوی

لَا يُؤْمِنُونَ ۝

چی ایمان نه راوړی |

چه ایمان نه راوړی |

## آسان ترجمه قرآن

هغه ډېر ښه دي او د هغه شان مونږ په هر يو کلي کښې د هغې مشرانو مجرمانو ته دا موقع ورکړې ده چه دوی په دغه (کلي) کښې (د مسلمانانو خلاف) سازشونه وکړي او کوم سازشونه چه هغوی کوی (په حقيقت کښې) هغه د بل چا نه بلکه په خپله د هغوی په خلاف کښې وي حال دا چه دوی ته د دې احساس نه وي. او کله چه دې (مکې والو) ته (د قرآن) يو آيت راځي نو دوی وائي چه: مونږ تر هغه وخته پورې چرې هم ايمان نه راوړو تر څو چه مونږ ته خپله هم د هغه شان څيز رانکړې شي لکه چه انبياء کرامو ته ورکړې شوې وو (حال دا چه) الله ښه پوهيږي چه خپله پيغمبري چا ته ورکړي. کومو خلقو چه (د غه قسم) جرم کړې دې دوی ته به د خپلو فريبونو په بدله کښې د الله د طرف نه سخت ذلت او عذاب ملاويږي. غرض دا چا لره چه الله هدايت ته د رسولو اراده وکړي د هغه سينه اسلام ته کهلاووی، او چه د چا (د هغه د ضد د وجې نه) د گمراه کولو اراده وکړي، د هغه سينه تنگه او دومره ډېره تنگه کړی چه (هغه ته اسلام راوړل دومره مشکل شي) لکه چه هغه په زور آسمان ته ختلی د هغه شان الله (د کفر) گندگي په هغه چا مسلط کوي چه ايمان نه راوړي.

## خلاصه تفسير

﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا﴾ او [څه نوې خبره نه ده څنگه چه دمکے سرداران دا جرمونه کوی او د دوی داثر لاندې نو ر خلق هم ورسره شامليږی] دغه شان مونږ [په رومبو امتونو کښې هم] په پوره علاقه کښې سردارانو لره [اول] د جرمونو کوونکی جوړ کړل [بيا د دوی د اثر لاندې نو ر عوام هم دوی سره يو ځائي شو] ﴿لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا﴾ دپاره د دې چه دغه خلق هلته [پيغمبرانو ﷺ ته د زيان رسولو دپاره] په مخه شرارتونه کوی [چه دوی پاخه دعذاب حقدار ثابت شی] ﴿وَمَا يَمْكُرُوْنَ اِلَّا بِاَنْفُسِهِمْ﴾ او دغه خلق [اگرچه په خپل خيال کښې نورو ته ضرر رسوی ليکن په واقع کښې] هم خپل ځان سره مکر کوی [ځکه چه وبال به يئ هم دوی ته وی] ﴿وَمَا يَشْعُرُوْنَ﴾ او [د زيات جهل له وجې] دوی ته [د دې] لږ هم خبر نشته او [د دې کفارو دمکے جرم تر دې حده زيات شو چه] ﴿وَاِذَا جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ﴾ کله چه دوی ته څه آيت راورسی ﴿قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ﴾ نو [سره د دې چه هغه به د خپل اعجاز په وجه په پيغمبرئی باندې دليل جوړيدو دپاره کافي وو مگر دا خلق بيا هم] داسې وائی چه مونږ [په دې نبی باندې] هيچرې ايمان نه راوړو ﴿حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ رُسُلُ اللّٰهِ﴾ تر څو چه مونږ ته دغسې څيز رانه کړې شی کوم چه رسولانو ته ورکولے شی [يعنی خطاب يا صحيفه اوکتاب چه په هغې کښې مونږ ته په تاسو باندې دايمان راوړلو حکم وی او د دې وينا لوئي جرم کيدل ښکاره دی چه په دروغ گڼړل عناد ځان غټ گڼړل او گستاخی تول د دې راجمع کوونکی دی وړسے الله ﷻ دا قول رد کوی چه] ﴿اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ﴾ دا موقعه خو الله ﷻ ښه پيژنی چرته چه خپل پيغام [دوحی په ذريعه] ليږی [آيا هرڅوک کس ناکس د دې جوگه کيديشی؟ (تا نبخشده خدائي بخشنده.[1] وړسے دسزا بيان داسې دې] ﴿سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا﴾ چه [زر] ده چه دغے خلقو ته به کومو چه دا جرم کړيدے [الله ﷻ ته په

---

[1] ترجمه: تر څو پورے ور کولو والا خدا ئے ور نه کړی۔

رسیدو یعني آخرت کښې] ﴿ صَغَارٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعَذَابٌ شَدِيْدٌ ﴾ بې عزتي رسيږي [ولې چه هغوی خپل خانونه دنبي په مقابله کښې د عزت او نبوت حقدار ګنړلي ووا] او سزا سخته [به ورکولې شي] ﴿ بِمَا كَانُوْا يَمْكُرُوْنَ ۝ ﴾ دهغوی دشرارتونو په مقابله کښې. ﴿ فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ ﴾ نو [وراندې چه کوم د مومن اوکافر حال بیان شو دے دې نه معلومه شوه چه] چا لره چه الله ﷻ [دخلاصې] په لاره اچول غواړي ﴿ يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ ۚ ﴾ دهغه سینه [یعني زړه ئې] د اسلام [قبلولو] دپاره فراخه کړي [چه ددې په قبلولو کښې اخوا دیخوا نه کوي اودغه ذکر شوي نور هم دادي] ﴿ وَمَنْ يُّرِدْ اَنْ يُّضِلَّهٗ ﴾ اوچالره چه [دتکوین وتقدیر له مخې] بې لارې ساتل غواړي ﴿ يَجْعَلْ صَدْرَهٗ ضَيِّقًا حَرَجًا ﴾ دهغه سینه [یعني زړه ئې داسلام دقبلولو نه] تنګه [او] زیاده تنګه کړي [او ورته اسلام راوړل داسې مصیبت ښکاري] ﴿ كَاَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَآءِ ۚ ﴾ لکه چه څوك [بالفرض] آسمان ته خيژي [يعني ختل غواړي اوچه ختلې نشي نو زړه ئې تنګ شي او مصيبت ورته راپيښ شي نوځنګه چه دغه كس ختلې نشي] ﴿ كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ ﴾ دغه شان په هغه كسانو باندې چې ايمان نه راوړي [ددوی دکفر اوشرارت په سبب] لعنت او غضب اچوي [ځکه ئې دايمان راوړلو توفيق اونشی].

## معارف اومسائل

دَتیرشوې آیت په آخرکښې دابیان وو چه دادُنیادامتحان ځائې دې دلته ځنګه چه په ښو اونیکو عملونوکښې انسان ته خواری اومشقت راپيښيږي اوخنډان پکښې راولاړيږي دغه شان ناکاره عملونوسره دځوورځونفساني خوندونواوخواهشاتوتيرويستل خامخاوی چه دَحقيقت اوانجام نه دَغافل انسان په نظرکښې همدغه خراب اوناکاره عملونه ښائسته کوی اودَدُنیالوئې لوئې هوښياران په دې کښې اخته کيږي.

اوس ددې آيتونوڅخه په رُومبی آيت کښې دَدې بيان داسې دې چه دَدغې امتحان اوآزمينښت يوارخ داهم دې چه دَدُنیادَشروع نه همداسې راروان دی چه دَهرې علاقې سرداران ، دولتمند اولوئې خلق، دحقيقت اوانجام نه په بې پرواکيدوسره دَځوورځوپه فاني خوندونوکښې مست شي اوجرمونوكولوكښې اخته شي، دعوامو عادت داوی چه دغې لويوخلقوپسې تلل اودهغوی نقل كول خپله خوش قسمتي اوكاميابی ګنړي اوپيغمبران ﷺ يادَهغوئ نائبان علماء اوپيران چه دوئ لره دغې ناکاره عملونونه منع کوي اودَدې انجام ته ئې مخه كول غواړی نودغه غټ خلق دَهغوئ په مقابله کښې قسماقسم شرارتونه کوی چه په ظاهره خودَدغې بزرګانوخلاف شرارتونو او سازشونو اودَهغوئ دَزړۀ آزارولوسامان ښکاري ليکن دَانجام په لحاظ سره دَدې تولووبال پخپله هم دوئ ته راګرځي اواکثرپه دُنياکښې هم ښکاره کيږي.

په دې ارشادکښې مُسلمانانوته په دې خبرداری ورکړې شويدې چه دَدُنیا غټانو ، سردارانو او مالدارو سره د برابری اوسيالي نه کوی، ددوئ په پل باندې دې دَتلوعادت پريږدی ،انجام ته کتل خپل عادت جورکړی، اوښه اوبد دې پخپله پيژني.

دغه شان رسول الله ﷺ ته داتسلی ورکول مقصوددی چه دقريشوسردارانودَمخالفت په وجه دې نه غمژن کيږي، ځکه چه داځه نوې خبره نه ده،دغسې پخوانوپيغمبرانو ﷺ سره هم دَغټانوهمدغسې سلوك وۀ ،په انجام كښې هم دغه غټان شرمنده اوذليل شواودَالله تعالى كلمه بلنده شوه.

په دویم آیت کښې دَ دغه قریشی سردارانو داسې خبرې اترې کول بیان شویدی چه دَحق په مقابله کښې خالص دَضد او خندا او توقو کولو په انداز کښې وو، بیا دَهغې جواب ورکړې شو۔
امام بغوی رحمه الله دَحضرت قتاده رضي الله عنه په روایت نقل کړې دي چه دَقریشو دَتولو نه لوئې سردار ابوجهل بوخل اووئیل چه، بنی عبد مناف [یعنی دَرسول الله ﷺ خاندان] سره مونږه په هرمحاذ باندې مقابله کړیده او کله هم تر روستونه یو پاتې شوی لیکن اوس هغوی دا وائی چه تاسو په عزت او بزرگۍ کښې زمونږ سیالان څکه نشی جوړیدې چه زمونږ په خاندان کښې یو پیغمبر راغلې دی، هغوی ته دَالله تعالی له اړخه وحی راځی، بیائې اووئیل چه زهٔ په خدائې باندې قسم کوم چه کله به هم هغوی پسې نهٔ ځو، ترڅو چه مونږ ته پخپله همدغسې وحی رانشی څنگه چه هغوی ته راځی[1] چنانچه دَآیت: ﴿وَإِذَا جَآءَتۡهُمۡ ءَايَةٞ قَالُواْ لَن نُّؤۡمِنَ حَتَّىٰ نُؤۡتَىٰ مِثۡلَ مَآ أُوتِيَ رُسُلُ ٱللَّهِۘ﴾ مطلب همدغه دی۔

**نبوت او پیغمبري کسبي او اختیاري نهٔ وي بلکه دا یو عُهده ده چه د دې د ورکولو اختیار صرف الله تعالی سره دی.** دَدې قول نقل کولو نه پس قرآن کریم دا جواب ورکړو ﴿ٱللَّهُ أَعۡلَمُ حَيۡثُ يَجۡعَلُ رِسَالَتَهُۥۗ﴾ [یعنی یواځې الله تعالی په دې پوهیږی چه خپله پیغمبری چاته ورکړی؟] مطلب دادې چه دغې بیوقوف دَخپل جهالت په وجه داگنړلی ده چه نبوت او پیغمبري دَخاندانی شرافت، دَقوم دَسرداری یا مالداری په ذریعه حاصلولې شی حالانکه دا دَالله تعالی دَخلیفه کیدو یوه مرتبه ده چه په خپل کوشش یا اختیار سره ئې څوک نشی حاصلولې، هرڅومره کمالات، زور زبردستی چه لری بیا هم په خپل اختیار سره، یا دَکمال په وجه یا په زور زبردستۍ سره پیغمبری نشی حاصلولې، یواځې الله تعالی ئې هغه چاته ورکوی چه خوښه ئې شی۔
دې نه ثابته شوه چه پیغمبری او نبوت کسبی او اختیاری څیزنهٔ دې چه په علمی یا عملی کمالاتو، یا په مجاهدې او ریاضت سره به حاصل کړې شی، که څوک دَډیرې زیاتې لوړې درجې ولی الله شی خو بیا هم پیغمبری نشی حاصلولې، بلکه دا خالص دَالله تعالی فضل دې چه د خداوندی علم او حکمت لاندې خاصانو بندگانو ته ورکولې شی، البته دا ضروری ده چه دَالله تعالی په علم کښې چاته داعُهده او مقام ورکول منظوروی نو داول سرنه ئې الله دې دَپاره قابل پیدا کوی او دهغه دَخویونو او عملونو خاص تربیت کیدی شی۔
په آخر دآیت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿سَيُصِيبُ ٱلَّذِينَ أَجۡرَمُواْ صَغَارٌ عِندَ ٱللَّهِ وَعَذَابٞ شَدِيدُۢ بِمَا كَانُواْ يَمۡكُرُونَ﴾ دلته دَ ﴿صَغَارٌ﴾ لفظ حاصلِ مصدر دې چه معنی ئې ذلت او رسوائی ده، دَتولې جُملې معنی داسې شوه چه دَحق دا مخالف خلق چه دَقوم غټان او سرداران یا دیری زربه دَدوئ لوې او عزت په خاورو کښې یو ځائې شی، دَالله په نزد به دوئ ډیر ذلیله اوبې عزته شی او سخت عذاب به ورکولې شی۔
دَالله خواته، دَدې جُملې مطلب دادې چه هرکله به دَقیامت په ورځ دا خلق دَالله تعالی مخې ته حاضرشی نو ذلیله او خوار وزار به وی او بیا به ورته سخت عذاب ورکولې شی، او دا معنی ئې هم کیدې شی چه اگرکه دا وخت دوئ ډیر عزتمند او سرداران ښکاری خو دَالله تعالی له اړخه ورته ذلت او شرمندگی رسیدونکې ده چه هغه په دُنیا کښې هم کیدلې شی او آخرت کښې هم لکه د انبیاء کرامو عليهم السلام د مخالفینو متعلق د دنیا په تاریخ کښې دا مشاهده شویده چه په آخر کښې دَهغوی مخالفین په دُنیا کښې هم ذلیله شویدی، زمونږ دَرسول الله ﷺ کومو غټو غټو مخالفینو به چه

[1] التفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۸۵

دعزت لاپې کولې دهغوئ څخه یو یو، یاخودآسلام په دائره کښې داخل شو او چې کوم داخل نه شو هغوئ په ذلت اوخوارئ سره هلاک اوبربادشو، چنانچه دابی جهل اوابی لهب وغیره قریشی سردارانوحال ددُنیاپه وړاندې راغلو او د مکې فتحې ددې ټولوملاګانې ماتې کړې-

**په دین کښې سینې فراخیدل اوددې نخښې اوعلامې:** په دویم آیت کښې دالله تعالی د اړخه د هدایت موندونکو او په ګُمراهئ باندې دټینګ پاتې کیدونکوڅه حالات اونخښې نښانې ښودلې شویدی لکه فرمائ: ﴿فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ﴾ [یعنی چاته چه الله تعالی هدایت کول غواړی نواسلام دپاره ئې سینه فراخه کړی]

حاکم په مستدرک کښې اوبیهقی په شعب الایمان کښې په روایت دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نقل کړیدی چه هرکله داآیت نازل شونوصحابه کرامو ﷺ درسول الله ﷺ نه دسینې د فراخیدو تفسیراوپوښتلو، هغوئې ورته اوفرمائیل چه الله تعالی دمؤمن په زړهٔ کښې یوه رڼا واچوی چه دهغې په وجه ددهٔ زړهٔ دحق خبرې لیدلو، پرِ دپوهیدلواوددې دقبلولودپاره پرانیستې شی [حق خبره په آسانئ سره قبلول شروع کړی اودحق خلاف خبرې نه کرکه اوبوګنیدل کوی]۔

صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړوچه داسې څه نخښه شته چه د ،،شرح صدر،، خاوندپرېپژندلې شې؟ وې فرمائیل چه، ،او،، نخښه ئې داده چه ټوله توجه یې آخرت اوددې دنعمتونواړخ ته شی، د دنیادبې ځایه خواهشاتواوفانی مزواغستونه ویریی اودمرګ راتلونه وړاندې دمرګ دپاره تیاری کول شروع کړی.(۱) بیا یې اوفرمائیل ﴿وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ﴾ [اوځوک چه په ګُمراهئ کښې لرل غواړی دهغه زړهٔ داسې تنګ اوسخت تنګ کړی چه حق خبره قبلول اوپه هغې باندې عمل کول ورته دومره ګران شی لکه ځوک چه آسمان ته خیژی-

دتفسیرامام کلبی ﷺ فرمائیلی دی، ،دزړهٔ تنګیدومطلب دادې چه په هغې کښې دحق او ښیګړې دپاره څه لارپاتې نشی، ،دامضمون دحضرت فاروق اعظم ﷺ نه منقول دې اوحضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائیلی دی چه، ،هرکله هغه دالله تعالی ذکرآوری نو وحشت او نفرت یې کیږی اوچه دشرک اوکُفرخبرې آورِی نو زړهٔ ئې په کښې لګی-(۲)

**صحابه کرام ﷺ ددین په باره کښې ،،شرح صدر،، خاوندان وو څکه به شکونه شبهې ورته ډیرې کمې راپیښیدې:** همدغه وجه ده چه صحابه کرام ﷺ ته کومولره چه الله تعالی درسول الله ﷺ دمجلس او بې واسطې شاګردئ دپاره غوره کړی وو، په اسلامی احکامو کښې هغوئ ته کمې نه کمې وسوسې راپیښې شوې، په خپل ټول عمر کښې ئې چه کوم سوالونه درسول الله ﷺ په وړاند پیش کړل هغه په ګُته شمیرلی یو څو قدرې وو، وجه ئې داوه چه درسول الله ﷺ دمجلس په برکت دالله تعالی دلویئ اومحبت ژورنقش دهغوئ په زړونو کښې پروت وواوهم دهغې په سبب ورته د ،،شرح صدر،، مقام حاصل وو، دهغوئ زړونه پخپله دحق اوباطل پیمانه جوړشوی وو، په آسانه به ئې حق، سمدستی قبلولو، اوباطل به ئې زړونوته لارنهٔ موندله، بیاڅنګه چه درسول الله ﷺ زمانې نه لرې والې راتلو، زړونوته شکونواوشبهو لار موندل شروع کړل، په عقیدو کښې اختلافونه پیدا کیدل شروع شو-

(۱) مستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۷۸۶۳ وشعب الإیمان للبیهقی رقم الحدیث: ۱۰۵۶۲
(۲) تفسیر البغوی تحت هذه الآیة: ج ۳، ص ۱۸۶

د شکونو او شبهو لرې کولو اصلي طريقه بحثونه او مناظرې کول نه دي، د شرح صدر حاصلول دي. او نن پوره دنيا په شکونو شبهو کښې راګيره ده، د بحثونو او مناظرو په لاړنې حل کول غواړي خو دا صحيح لاره نه ده-

فلسفی کو بحث کے اندر خدا ملتا نہیں ڈور کو سلجھا رہا ہے پر سرا ملتا نہیں

[فلسفي ته په بحث کولو سره خدائې نه ملاويږي، څومره چه مزې [تار] پرانستل غواړي بيائې هم سرنشي معلومولې بلکه نور هم ورته ګنجې او اړوپړوکيږي]

لا هم هغه ده چه صحابه کرامو رضی الله عنهم او د اُمت پخوانو بزرګانو د اشان اختيار کړې وه چه الله تعالی کامل قُدرت او د هغه انعام ئې مخې ته راوستو او د هغه لوئې او مينه ئې په خپلو زړونو کښې ځائې کړه، چنانچه دې سره شُبهې پخپله ختميږي، هم دغه وجه ده چه پخپله قرآن کريم رسول الله ﷺ ته دَ دې دُعاغوښتلو ښودنه کړيده: ﴿رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ﴾ [اې زما پروردګاره! زما سينه پرانيځې]-

په آخر د آيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ [يعنې دغه شان الله تعالی په ايمان نه راوړونکو باندې رټنه دکنه راولي او حق خبره ئې په زړونو کښې نه ورځي او هرويدو او عبثو پسې په منډه منډه وررَوان وي]-

وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا ۭ قَدْ فَصَّلْنَا

او دا | لاره | درب ستاده | نيغه | په تحقيق سره | واضحه بيان کړي دي مونږه

| دا ستا د رب خودلې شوې نيغه لاره ده | بيشکه مونږ نصيحت قبلونکو خلقو ته

الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ

آيتونه | دپاره دهغه قوم | چې نصيحت قبلوي | دې دهغوئ دپاره | کور دسلامتيا | په نزد رب دهغوئ

خپلې نښې په تفصيل سره بيان کړې دي | دوئ دپاره د خپل رب سره د سلامتيا کور [جنت] دي

وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ وَيَوْمَ

او هغه | دوست دهغوئ دې | په سبب دهغې عمل | چې وو هغوئ | چې کوو به ئې | او هغه ورځ |

او ددوی د نيک عمل په وجه الله ﷻ ددوئ ملګرې دې |.................. او په کومه ورځ چې

يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ۚ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ

چې جمع به کړي دا خلق | تول | اچې اے ډلې | دپيريانو | په تحقيق سره | ډير بې لارې کړي دي تاسو

الله ټول مخلوق راجمع کړي | انو پيريانو ته به اووائي | چې انې دپيريانو ډلې تاسو خو د انسانانو ډير خلق ګمراه کړي وو

مِّنَ الْاِنْسِ ۚ وَقَالَ اَوْلِيٰٓؤُهُمْ مِّنَ الْاِنْسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ

د انسانونه | او او به وائي | دوستان دهغوئ | د انسانانو نه | اے ربه زمونږه | فائده واغستله | ځينو زمونږ ځينو نورو باندې

او په انسانانو کښې چې څوک دپيريانو ملګري وي | هغوئ ته به او وائي اې زمونږ ربه مونږ ديو بل نه ښه فائدې اخستې وې

وَبَلَغْنَآ اَجَلَنَا الَّذِيْٓ اَجَّلْتَ لَنَا ۭ قَالَ النَّارُ

او اورسيدو مونږه | نيتې زمونږ ته | هغه | چې مقرر کړې وه تا | دپاره زمونږه | او به وائي [الله] | اور

او س خو هغه نيتې ته راورسيدو چې تا زمونږ دپاره مقرر کړې وه | الله ﷻ به ورته او وائي چې ځئ

مَثْوٰىكُمْ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّ
خانې دي ستاسو | هميشه به اوسئ [تاسو] | په هغې كښې | مګر | هغه | چې اوغواړي الله | بيشكه
ستاسو د ټولو خانې دوزخ دي | هميشه په هغې كښې اوسيږئ | مګر هغه چې د الله ﷻ خوښه شي [نو معاف به كړي]

رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ۝
رب ستا | دحكمت خاوند دي | اوپوهه دي |
بيشكه ستارب دحكمتونو خاوند اوپوهه دي |

## آسان ترجمه قرآن

اودا (اسلام) ستا د پروردګار (ښودلې شوې) نيغه لاره ده كوم خلق چه نصيحت قبلوي دهغوی د پاره مونږ (ددې لارې) نښې صفا صفا بيان كړې دي. ددوی د پروردګار څخه د آرام اوسكون كورهم داسې خلقو دپاره دې. اوكوم عمل چه دوی كوې دهغې د وجې نه هغه پخپله د دوی حفاظت كونكې دې. او(هغه ورځ ياده كړه) چه په كومه ورځ به الله ټول راجمع كړي او (د جناتو شيطانانو ته به ووائي چه) اې د پيريانو ټولګيه! تاسو انسانانو لره ډير ګمراه كړي وو او د انسانانو نه چه كوم ددوي دوستان وې هغوی به ووائي : اې زمونږ پروردګاره! مونږ د يو بل نه ډيره فائدې اخستې وې او اوس خپل هغه وخت ته راورسيدو چه كوم تا مونږ دپاره مقرر كړې وو. الله تعالى به ووائي : (اوس) اورستاسو د ټولو ځائ دې چه هغې كښې به تاسو ټول اوسيږئ، خو كه الله نور څه وغواړي يقين وكړئ چه ستاسو د پروردګار حكمت هم كامل دې اوعلم هم.

## خلاصه تفسير

﴿ وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا ؕ ﴾ او [بره چه كوم اسلام بيان شو نو] همدغه [اسلام] ستا درب [ښودلې] سمه لاره ده [چه په هغې باندې روان پاتې كيدو سره خلاصې مونډې شي اوچه هغه په ﴿فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ ﴾ كښې بيان شوه او ددغې صراط مستقيم د واضح كولو دپاره] ﴿ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ۝﴾ مونږ نصيحت حاصلوونكو دپاره دا آيتونه صفا صفا بيان كړی دی [چه په هغې يعنى د هغې په اعجاز سره به يئ تصديق اوكړی او بيا به يئ په مضمونونو باندې دعمل كولو په وجه خلاصې بيا مومی هم دا تصديق اوعمل كامل صراط مستقيم دې په دې خلاف دهغوی نه چه دنصيحت حاصلولو دسره فكر نه كوی. هغوی لره نه دې كافي كيږی اونه نور دليلونه وربسے ددې د منونكو د جزا ذكر دے ځنګه چه د منونكو سزا بره په څو جملو كښې ذكر شويده نو ارشاددې چه] ﴿ لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾ دغے خلقو دپاره ددوئ د رب له طرفه [په رسيدو] د سلامتئی [يعنى د امن او بقاء] كور[يعنى جنت]دې ﴿ وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝﴾ اوالله ﷻ ورسره محبت لری ددوی د [نيكو] عملونو په وجه.

﴿وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ۚ ﴾او [هغه ورځ د يادولو جوګه ده] په كومه ورځ چه الله ﷻ به ټول مخلوق راجمع كړی[اوپه دوی كښې به خاص كركافران حاضركړی ددوی او ددوئ د پيريانو، شيطانانو ته به ددوی د رټنے دكنے په غرض اووئيلې شی چه]﴿ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ مِّنَ الْاِنْسِ ۚ ﴾اې ټولګيه! د پيريانو تاسو په انسانانو [دهغوی په ګمراه كولو] كښې لويه برخه واخستله [او دوی

مو بنه اوغولول دغه شان بنیادمو نه به تپوس او کړې شي چه ﴿ أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آدَمَ أَنْ لَا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ الخ ﴾ غرض دا چه دپیریانو شیطانان به هم اقرار اوکړی] ﴿وَقَالَ أَوْلِيَاؤُهُمْ مِنَ الْإِنْسِ ﴾ او کوم انسانان چه دے [شیطانانو د پیریانو] سره تعلق لرونکی وو ﴿ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ ﴾ هغوی به [هم په اقرار کولو سره اووائی چه ائې پروردګاره ته صحیح وائې واقعی] په مونږ کښې یو دبل نه [دغے ګمراه کیدو او ګمراه کولو سره نفسانی] فائده حاصله کړې وه [چنانچه ګمراه انسانان په خپلو کفری اوشرکی عقیدو کښې مزه بیاوینې او ګمراه کوونکی شیطانان په دې سره خوند اخلی چه زمونږ لمسون او وینا کار اوکړو] ﴿ وَبَلَغْنَا أَجَلَنَا الَّذِي أَجَّلْتَ لَنَا ﴾ او [په حقیقت کښې مونږ ددوی په غولولو سره دقیامت نه منکر وو خوهغه انکار غلط ثابت شو چنانچه] مونږ هغه تاکلے نیټے ته راورسیدو چه تا مونږ دپاره اوټاکلی وه [یعنی قیامت راغلو الله ﷻ به [دپیریانو اوبنیادمو کفاروته] ﴿ قَالَ النَّارُ مَثْوَاكُمْ خَالِدِينَ فِيهَا ﴾ اوفرمائی چه ستاسو دټولوځائې دوزخ دې چه په کښې به همیشه پاتې کیږئی [دراوتلو ترې هیڅ لاره او تدبیر نشته] ﴿ إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ﴾ هنه که یواځې الله ﷻ ته [اوبشکل] منظور وی نو هغه بله خبره ده [لیکن دا یقینی ده چه الله ﷻ به یئ هم نه غواړی ځکه همیشه دپاره به پکښې پاتې کیږی] ﴿ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴾ بیشکه ستاسو پروردګار دلوئې حکمت خاوند اولوئې د علم خاوند دے [په علم سره د ټولو جرمونه معلوموی اوپه حکمت سره مناسبه سزا ورکوی].

## معارف اومسائل

دَدې آیتونونه په رُومبی آیت کښې رسول الله ﷺ ته خطاب کولوسره فرمائی ﴿وَهَٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا﴾ [یعنی دالاره ستادرب ده نیغه] په دې کښې ،،هذا،، سره اشاره قرآن کریم ته ده ځنګه چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائیلي دي یا اسلام ته ده ځنګه چه عبدالله بن عباس فرمائیلي دی [روح][1] معنی ئې داشوه چه دا قرآن یا اسلامی شریعت چه تاسوته درکړې شویدې، دالاره ستا درب ده، یعنی داسې لاره ده چه ستاسو پروردګار په خپل حکمت بالغه سره تجویز کړیده او خوښه کړې ئې ده-دلته دلارې نسبت پروردګار ته په کولو کښې دې ته اشاره شویده چه دقرآن اواسلام کوم دستورالعمل چه تاسوته درکړې شویدې په هغې باندې عمل کولو کښې الله تعالیٰ ته څه فائده نشته بلکه دپرودګارۍ دشان دغوښتنې په بناء باندې ،فائده ئې عمل کوونکولره ده ،ولې چه ددې په ذریعه دانسان داسې پالنه کول مقصوددی چه دده ددائمی کامیابۍ اوښیګړې ضامنه وی-

دلته درب نسبت رسول الله ﷺ ته ځکه اوشوچه په هغوی باندې یوه خاصه مهربانی اواحسان کول ښکاره کړې شی ،لکه فرمائی چه ،،ستاسوپروردګار دالارتجویز کړیده،،-دداسې نسبت په خوندهغه خلق پوهیږی کوم چه ذوق لرونکی وی ولې چه یوبنده لره خپل رب اومعبودته څه ادنی نسبت حاصلیدل هم هغه دپاره ددیرلوئے فخرخیزدې اوکه رب الارباب دکائناتومعبودخپل خان هغه ته منسوب کړی چه ،،زهٔ ستایم،، نودهغه دخوش قسمتۍ به څه وائې؟چنانچه حضرت حسن نظامی رحمه الله هم ددې مقام په باره کښې فرمائی:-

بنده حسن بصدزبان گفت که بندۂ توام
تو بزبانِ خودبگو که بنده نوازِ کیستی؟

[1] روح المعاني تحت هذه الآية: ج۷ ص ۱۳ وتفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج۵، ص ۲۵۱

[حسن نومې بنده خوپه خپله ژبه سل کرته اوونیل چه ستابنده یم، ته په خپل زبان اووایه چه بنده نواز دَچایې؟!]

وړیسې دَقرآني لاري حال ئې په لفظ د ﴿مُسْتَقِيمًا﴾ سره اوښودلوچه دالاره نيغه ده په دې کښې مستقیم، ئې دصراط صفت نه، بلکه حال راوړلو، دې سره اشاره دې ته اوشوه چه کومه لاراللّٰه تعالی تجویزکړې وی په هغې کښې سواد، ،مستقیم، ،کیدواو، ،نیغوالی، ،بل احتمال دَسره کیدې نه شی- [روح وبحر] [1]

بیاوړیسې فرمائی: ﴿قَدْ فَصَّلْنَا الْآيٰتِ لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ﴾ [یعنی مونږه نصیحت قبلوونکو دَپاره، دا آیتونه صفاصفابیان کړیدی]-

﴿فَصَّلْنَا﴾ دَتفصیل نه جوړدې، دَتفصیل اصلی معنی داده چه یومضمون برخې برخې کړیشی او هره برخه ځان ځان له بیان کړې شی چه پوره مضمون په ذهن کښې کښینی، په دې وجه دتفصیل حاصل، صفاصفابیانول شو-مطلب داشوچه مونږه بنیادی اواصولی مسئلې، صفاصفا تفصیل سره بیان کړیدی، چه هیڅ قسم ابهام یااجمال موپکښې نه دې پرېښې. ﴿لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ﴾ فرمائیلو سره ئې دااوښودل چه اګرکه قرآنی ارشادات بیخې صفااوواضحه دی خوفائده تړیواځې هغه خلقوپورته کړه چه دنصیحت حاصلولوپه اراده په قرآن کریم کښې غورکوی، دَضد، عناد یا دَ پلارونو نیکونو د رسمونود رَوند تقلیدپردې پکښې خنډونه نشی جوړیدې-

په دوئیم آیت کښې فرمائی: ﴿لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ [یعنی کوم خلق چه بره ذکرشوهغه دَنورو تولوځیزونونه خپل ذهن خالی کولوسره، قرآنی هدایتونه، دَنصیحت حاصلولوپه غرض ګوری او آوری] اوددې دلازمی نتیجې په ډول دغه هدایتونه قبلوی-هغوی دَپاره دَهغوی دَرب خواته دَ دارالسلام انعام موجوداومحفوظ دې، دلته دَ، ،دار، ،لفظ معنی کور اودَ، ،سلام، ، معنی، دَټولوآفتونو، مصیبتونواومحنتونونه سلامت پاتې کیدل دی، په دې وجه، ، دارالسلام، ، هغه کورته وئیلې شی چرته چه دَڅه تکلیف، مشقت، غم خفګان آفت اومصیبت څه ګردهم نه وی، نوښکاره خبره داده چه داجنت کیدې شی-

او حضرت عبداللّٰه بن عباس فرمائیلی دی چه سلام دَاللّٰه تعالی نوم دې په دې بناءَ، دارالسلام، معنی دَاللّٰه کور، ،ده، اوښکاره خبره ده چه دَاللّٰه تعالی کور دَ امن اوسلامتۍ ځائې وی، [2] په دې وجه حاصل دمعنی بیاهم داشوچه هغه کور، چرته چه هرقسم امن، آرام، سلامتی اواطمینان وی، جنت ته، ،دارالسلم، ،وئیلوسره ئې دې اړخ ته هم اشاره اوفرمائیله، چه یواځې جنت داسې ځائې دې چرته چه انسان، دَهرقسم تکلیف، پریشانۍ، ضرراودَطبیعت نه خلاف هرځیزنه همیشه دَپاره په امن اوسلامتۍ کښې وی چه په دَنیاکښې خونه چرته لوئې نه لوئې بادشاه ته داشان حاصل شویدې اونه لوئې نه لوئې نبی یارسول ته ځکه چه دافانی کیدونکې دَنیادَغسې مکمل او همیشه راحت اوآرام ځائې اومقام هیچرې نه دې-

په دې آیت کښې اوښودلې شوچه، ،نیک بختوخلقودَپاره دَهغوی دَرب خواته دارالسلام دې، ، مطلب ئې داشوچه دارالسلام په دې فانی دَنیاکښې نشی کیدې بلکه هلته به کیدې شی چه د قیامت په ورځ دَخپل رب خواته ورَاورسیږی اوبله معنی ئې داهم کیدې شی چه دَ، ، دارالسلام، ،

---

[1] بحواله بالا-
[2] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۲۵۱

وعده غلطه خکه نشي کيدې چه رب کريم ددې ضامن شويدې چه هم هغه سره محفوظ دې، اوپه دې کښې دې ارخ ته هم اشاره کيدې شي چه ددغې ، ، دارالسلام، ، دنعمتونواوراحتونوهيڅوک تصوراوس نشي کولې يواځې رب پوهيږي چاسره چه داخزانه محفوظ ده-

اوددې دوئيمې معنې په لحاظ معلوميږي چه دارالسلام مونډل يواځې په قيامت اوآخرت پورې اړه نۀ لري، بلکه داهم کيدې شي چه رب کريم چاته اوغواړي په دې دنياکښې هم ورته ، ، دارالسلام، ، په داسې شان نصيب کولې شي چه دټولو مصيبتونواوآفتونونه ئې په امن اولري، د سره ورته څه آفت اومصيبت نۀ رسي لکه په پخوانوپيغمبرانواوپه اولياء دالله تعالى کښې چه ددې مثالونه هم موجوددي، ياورته الله تعالى دآخرت نعمتونه داسې مخې ته راولي چه نظرئې حقيقت پيژندونکې اوګرځوي چه دهغې په سبب دځوورخودغه تکليف اومصيبت ئې په نظرکښې ډيرکم کوځ اوداسې ښکاره کړي چه ورپسې د توجه کولوجوګه نۀ وي اودمصيبتونوغرونه هم د هغوئ په وړاندې دماشي دوزرنه هم کم ښکاري-

رنج راحت شدچومطلب شُدبزرگ  گردِ گله توتيائے چشم گرُگ

[يعنى هرکله چه مقصدلوړوی نوټول مصيبتونه داسې ښکاري څنګه چه ليوه اوشرمخ ته دګډوبزودرمې [ګلې] ګردښکاري]-

ددنيادتکليفونوپه مقابله کښې ملاويدونکې انعامات دهغوئ مخې ته داسې راشي چه دهغې په وجه ورته دغه تکليفونه هم خوندناک معلوميږي اوداڅه لرې خبره څکه نۀ ده چه دآخرت دائمې نعمتونه خولوئې څيزدې، ددنيافاني اودځوورخودراحت تصور انسان دپاره څنګه څنګه محنتونه اومشقتونه خوندناک جوړوي، سفارشونه اورشوتونه پيش کوي، دآزادئ آرام قربانوي، دخوب اوآرام ختموونکې ملازمت اومزدوري په محنت اوشوق سره طلب کوي اوددې محنت په ملاويدوسره خوشحاله اوشکرګذار وي- ولې چه په يوديرش ورخوپوره کيدوسره ورته حاصليدونکې تنخواه خوندورکوي اوپه دغې خوندسره دملازمت اومزدورئ ټول تريخوالي خواږه جوړيږي دقرآن کريم دآيت: ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ﴾ يوتفسيرداهم دې چه الله تعالى نه ويريدونکوته به دوه جنتونه ملاويږي، يوپه آخرت کښې، بل په دنيا کښې، ددنيا جنت داوي چه اول خوپه هريوکارکښې ورته دالله تعالى مددحاصل وي هرکارکول ورته آسان ښکاري، اوکه ځوورخنې تکليف، مشقت ياناکامي هم ورته وي نودآخرت دنعمتونوپه مقابله کښې ورته هغه هم خوندناک ښکاري چه دهغې په وجه ورته داتکليف هم دراحت صورت اختيارکړي-

خلاصه داده چې په دې آيت کښې نيکانوخلقودپاره دهغوئ درب خواته د ، ، دارالسلام، ، دملاويدو چه کوم ذکردې، هغه خوپه آخرت کښې يقيني اوټاکلې شويدې اوداهم کيدې شي چه په دې دنياکښې ورته ددارالسلام مزه ورکړې شي-

په آخردآيت کښې فرمائي: ﴿وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [ددوئ دنيکوعملونوپه وجه به الله تعالى دهغوئ ذمه وار، کارساز، ناصراومددګارشي اودهغوئ ټول مشکلات آسان شي-

په دريم آيت کښې ټولوپيريانواوبنيادمولره دجمع کولونه پس ددواړوډلونه ديوسوال اوجواب بيان داسې دې چه الله تعالى به پيريانواوشيطانانوته په خطاب کولوسره دهغوئ جرم داسې ښکاره کوي چه تاسودانسانانوپه ګمراهئ کښې غټه برخه اغستې ده، دپيريانودجواب بيان قرآن کريم نۀ دې کړې، ښکاره خبره هم داده چه دعليم اوخبيرپه وړاند داقرارکولونه سوابل علاج څه

دي ؟خو دا اقرار نۀ بيانولو کښې دا اشاره ده چه په دې سوال به هغوی داسې حيران شي چه جواب کولو ته به ئې خُله نۀ جوړيږي [روح] (١)

دې پسې دانسانانو شيطانانوله اړخه دا حکم الحاکمين په دربار کښې يو جواب ذکر شويدې دا به هغه خلق وي چه په دُنيا کښې دَشيطانانو تابعدارياتې شويدي پخپله هم گُمراهان وو او دَ نورو دَ گُمراه کولو سبب به جوړيدل- اگرچه سوال دَبنيادمو دشيطانانو نه نۀ دې شوې مگر په ضمني ډول گويا دوی هم مخاطب وو ،ولې چه دوی هم دگُمراهئ خوررولو هغه کار کړې وو کوم چه دَپيريانو شيطانانو کارووـ دَدغه ضمنی خطاب په وجه دغه خلقو جواب ورکړو ،مگر ښکاريږي داسې چه پخپله دَانسان نُماشيطانانو نه به هم سوال کيږي، اگرچه دلته دَهغې ښکاره ذکرنشته مگر په سورت يسين کښې داسې راغلي دي:

﴿أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آدَمَ أَن لَّا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ﴾ [اې بنيادمو آيا مونږه تاسو ته دَرسولانو په واسطې سره دانۀ وو وئيلي چه دَشيطانانو تابعداری مۀ کوئ]-

دې نه معلوميږي چه دَانساني شيطانانو نه به هم په دغه موقعه سُوال کيږي او هغوی به په جواب کښې اقرار کوی چه بيشکه ازمونږ نه دا جُرم اوشو چه دَشيطانانو خبره مو او منله او دا به وائی چه بيشکه پيريانو شيطانانو مونږسره او مونږ هغوی سره دوستانه تعلقات لرل او يو بل نه مو نفع حاصله کړه، انساني شيطانانو خو دَهغوی نه دا نفع حاصله کړه انساني شيطانانو خو دَهغوی نه دانفع حاصله کړه چه دَدُنيا دَخوندونو حاصلولو لارې چارې ئې ازده کړې او کله کله دپيريانو شيطانانو په رُوئې اچولو يا په بلې څه طريقې سره ئې امداد هم حاصل کړو څنگه چه بُت پرستو هندوانو بلکه په ډيرو جاهلو مسلمانانو کښې هم داسې طريقې مشهورې دی چه دَهغې په ذريعه دَشيطانانو او پيريانو نه په خنې کارونو کښې امداد اغستې شي او پيريانو شيطانانو دَ بنيادمو نه دا فائده حاصله کړه چه دَهغوی خبره او منلې شوه او دَانسانانو په تابعدار جوړولو کښې کامياب شو تردې چه مرگ او آخرت ئې هم هير کړو او دې وخت، دغه خلقو اقرار اوکړو چه مرگ او آخرت ئې هم هير کړو او دا وخت، دغه خلقو اقرار اوکړو چه کوم مرگ او آخرت و دَشيطان په غولولو سره هير کړې وو او س هغه مخې ته راغلل، په دغه موقعه به الله تعالی ورته اوفرمائی: ﴿النَّارُ مَثْوَاكُمْ خَالِدِينَ فِيهَا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ﴾ [ستاسو دَدَوارو دلو دَجُرم سزا اوس داده چه ستاسو ټيکانه اوس اور دې چه پکښې به هميشه پاتې کيږئ مگر دا چه الله تعالی دَدې نه څوک اوښکل اوغواړي، ليکن دَنورو نصونوله مخې قرآن کريم گواه دې چه الله تعالی به دغسې نه غواړي څکه به پکښې هميشه اوسيدل وي-

وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ

| اوهمدارنگې | دوستان به کړو مونږ | څينی ظالمان

| اودغه شان به مونږ بعضې ظالمان د

بَعْضًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٢٩﴾ يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ

په څينو | په سبب دهغې کارونو | چې وو هغوی | چې کول به ئې | اے ډلې | دپيريانو | او دانسانانو

بعضې نورو سره دخپلو عملونو په وجه ملگری کړو | ...... انې د انسانانو او پيريانو ډلو!

(١) روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ٢٣

أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِى

ایا نه دي راغلي تاسو ته | رسولان | ستاسو نه | چي بیانول به ئي په تاسو باندي | آیتونه زما |

آیا تاسو ته ستاسو نه پیغمبران نه وو راغلی | چي زما آیتونه به ئي درته وئیل

وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ۚ قَالُوا۟

او یرولي ئي تاسو | دملاقاته | دورځي ستاسو نه | چي داده | نو او به وائي هغوئ |

او تاسو به ئي د نن ورځي دملاقات نه یرولي | .................... هغوئ به اووائي چي

شَهِدْنَا عَلَىٰٓ أَنفُسِنَا ۖ وَغَرَّتْهُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا

گواهي کوو مونږه | په خانونو خپلو باندي | او په دوکه کښي اچولي دي دوئ لره | ژوند ددنیا |

مونږ په خپلو ځانونو گواهي کوو | نن ورځ خو دوئ ددنیا ژوند په دهوکه کښي اچولي دي

وَشَهِدُوا۟ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا۟ كَٰفِرِينَ ﴿١٣٠﴾

او گواهي به اوکړي هغوئ | په ځانونو خپلو باندي | چي بیشکه هغوئ | وو | کافران |

خو په دغه ورځ به په خپلو ځانونو پخپله گواهي کوي چي دوئ کافران وو

ذَٰلِكَ أَن لَّمْ يَكُن رَّبُّكَ مُهْلِكَ ٱلْقُرَىٰ بِظُلْمٍ

داگواهي ځکه اخلي چي ثابته شي | چي نه دي | رب ستا هلاکونکي | دکلو | په ظلم سره

دا ځکه [چي معلومه شي] چي ستا رب د کلي خلق په ظلم سره نه هلاکوي په داسي حال کښي چه

وَأَهْلُهَا غَٰفِلُونَ ﴿١٣١﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ مِّمَّا

او حال دا چي اوسیدونکي | دهغي ناخبره وي | او هر یو لره | درجي دي | دهغه عمل نه

د هغي اوسیدونکي غافل وي | ..................او هر چاته به د خپل عمل مطابق درجي

عَمِلُوا۟ ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَٰفِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٢﴾

چي کړي وي هغوئ | او نه دي | رب ستا | ناخبره | دهغه عمل نه | چه کوي ئي هغوئ

ورکولي شي ، او ستا رب د دوئ د عملونو نه بي خبره نه دي.

## آسان ترجمه قرآن

اودغه شان مونږ ظالمانو لره د دوی د اعمالو د وجې نه په یو بل مسلط کوو اې د انسانانو او پیریانو ټولګیه ! آیا تاسوته خپله هم ستاسونه هغه انبیاء کرام نه وو راغلي چه تاسوته به ئې ځما آیتونه لوستل او تاسو به ئې ددې ورځې د مخامخ کیدو نه ویرولی چه دا ده ؟ هغوی به وائي :(لن) مونږ خپله دخپل ځان خلاف ګواهي ورکړې ده (چه واقعي مونږ ته انبیاء کرام راغلي وو او مونږ هغوی لره درغلن کړي وو) او(حقیقت کښ) دوی لره د دنیا ژوند دهوکه کښ اچولي وو او ( اوس ) دوی خپله د خپل ځان خلاف ګواهي ورکړه چه دوی کافران وو .دا (د انبیاء کرامو د لیږلو) ټوله سلسله دې وجې نه وه چه ستاسو پروردګار ته دا خوښه نه وه چه هغه یو کلې د څه زیاتۍ د وجې نه داسې حالت کښ هلاک کړي چه دهغې

خلق نا خبره وی. او هر قسم خلقو ته مختلفي درجې د هغوی د اعمالو مطابق ملاويږي چه کوم هغوی کړي وی. او کوم اعمال هم چه هغوی کوي ستا پروردګار د هغې نه غافله نه دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَكَذٰلِكَ نُوَلِّيْ بَعْضَ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضًا﴾ او [څنګه چه د ګمراهئ له لحاظ تولوخپل منيخ کښې تعلق او نزديکت لرلو] دغه شان [په دوزخ کښې] به مونږ بعضې کفارو لره بعضې ته نزدے [او ورکړه يو ځائې] الرو ﴿بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ ددوی [دکفری] عملونو په سبب [پيريانو اوبنيادمو ته دا خطاب په دې لحاظ وو چه دوی به يو بل سره تعلق لرلو اوس وربسے دهغه حالاتو په لحاظ خطاب ورته کولې شی چه خاص ددوی د ذات سره تعلق لری فرمائی چه] ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ﴾ ائې تولبه دپيريانو او انسانانو [بنه نودا خو اوښائې چه تاسو کفر اوانکار کولونو] ﴿اَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ آيا تاسوته هم د تاسونه پيغمبران راغلی نه وو ﴿يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ﴾ چه تاسوته به زما حکمونه [دعقيدو او عملونو په باره کښې] بيانول ﴿وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا﴾ اوتاسو ته به يې ددې نن ورځې [دراتلو] خبر درکولو [بيا څه وجه وه چه تاسو دکفر اوانکار نه منع نه شوئی] ﴿قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰٓى اَنْفُسِنَا﴾ دوی تول به عرض اوکړی چه مونږ تول په خپلو ځانونو باندې [دجرم] اقرار کوو [مونږ سره هيڅ وجه د عذر اود خپلې صفائې کولونشته وربسے ورته الله ﷻ په دوی باندې ددغې مصيبت دراتلو سبب ښائی] ﴿وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾ اودوی لره [دلته] ددنيا ژوند په هيره کښې اخته کړی وؤ [چه دنيوی مزے ئې خپل لوئې مقصود ګنړلے دے او د آخرت فکر ورسره د سره نشته] ﴿وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ﴾ او [نتيجه ئې داشوه چه دغلته] دا خلق به اقراريان وی ﴿اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ﴾ چه دوی [يعنی مونږ کافران وو [او په غلطه وو خو ددغه ځائې په اقرار څه کيږی که پدنيا کښې لږ شان غفلت کول پريږدی نودغې بدے ورځې سره به يې ولې مخ شی].

وربسے د پورته ذکر شوؤ رسولا نو دليږلو په وجه خپل رحمت ښکاره کوی چه] ﴿ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ﴾ دا [درسولانو ليږل] ددې وجې دی چه ستاسو رب ﴿مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ﴾ د څه ودانئی دخلقو دکفر په سبب [په دنيا کښې هم] په داسې حالت کښې هلاکوونکي نه دی ﴿وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ﴾ چه ددغې ودانئ استوګن [درسولانو د نه راتلو په وجه د الله ﷻ احکامو نه] بې خبره وی [نو د آخرت دغه سخت عذاب دوی دپاره خامخا نه وو څکه رسولان ليږو چه په جرمونو خبر شی اوعذاب ورته هله وی چه دوئ يې حقدار وی چنانچه وربسے فرمائی] ﴿وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا﴾ او [کله چه رسولان راغلل اودوی خبرشو نو څوك به عمل کوی] هريو دپاره [د پيريانو اوبنيادمو نه دجزا هغسے] درجے وی ددوی دعملونو په سبب ﴿وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ﴾ اوستاسو رب ددوی دعملونو نه بې خبره نه دې.

## معارف او مسائل

په رُومبی آيت کښې دَراغلی لفظ ﴿نُوَلِّيْ﴾ دَعربی لُغت په لحاظ سره دوه ترجمې کيدې شی يو معنی يو ځائې کول اونزدې کول اوبله معنی مُسلط کول ده . دَتفسيرد امامانو ،صحابه کرامو اوتابعينو نه هم دغه دواړه قسم تفسيرونه په رواياتو کښې منقول دی.

**په محشر کښې به د خلقو ډلې د عملونو او اخلاقو په بنیاد بندې وي د دُنیوي تعلقاتو په بُنیاد به نه وي:** حضرت سعید بن جبیر رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله رومبۍ ترجمه اختیار کړېده او د آیت مطلب ئې دا بیان کړېدې چه د قیامت په ورځ به د الله تعالی په نزد اجتماعي یووالي یعنې د خلقو ډلې، پاټۍ، د نسل یا وطن یا رنګ او ژبې په بنیاد نه وي بلکه د عملونو او اخلاقو په لحاظ سره وي، (۱) د الله تعالی فرمانبردار مسلمانان چه چرته وي هغوئ به د مسلمانانو ملګري وي او نافرمانه کافران به چه چرته وي هغه به د کافرانو ملګري وي- اګرکه د هغوئ په نسل، نسب وطن، ژبې، رنګ، او معاشرت کښې سره هرڅومره لرې والې او اختلاف وي، بیا به مسلمانانو کښې هم، نیکان او دینداره مسلمانان- دینداره مسلمانانو سره وي او ګناهګار بد کرداره مسلمانان به بدکردارو مسلمانانو سره یو ځائې کولې شي. په سُورت تکویني کښې د ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ مطلب هم دادې چه د عملونو او اخلاقو په لحاظ سره به د اهل محشر مختلفې ډلې جوړولې شي-

حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه هم د دې آیت په تفسیر کښې فرمائیلي دي چه د عملونو په بُنیاد به خلق به یو بل سره یو ځائې کولې شي، نیک خلق به نیکانو سره په جنت کښې او بد خلق به بدانو سره په دوزخ کښې یو ځائې کولې او غاړه کولې شي، او د دې په تائید او توثیق کښې حضرت فاروق اعظم د قرآن کریم آیت: ﴿احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ﴾ سره دلیل نیولې دې ځنګه چه د دې آیت مطلب هم دادې چه د قیامت په روځ به حکم اوشي چه ظالمان او د دوئ پشان عمل کوونکي جهنم ته بوځئ-

د ذکرشوي آیت د مضمون خُلاصه دا شوه چه الله تعالي به ځنې ظالمان نورو سره یو ځائې کړي اګرچه د قام قبیلې په لحاظ د دوئ ترمنځه ډیر زیات بیلتون وي-

په بل آیت کښې دا هم خبره په واضح ډول داسې بیان شوېده چه په محشر کښې دا دُنیوي او رسمي اتحاد [یووالي] کوم چه د نسل، وطن، رنګ، ژبې وغیره په بنیاد ولاړ دې ـ په یومخ رد کړې شي او د دغې په بُنیاد را یو ځائې شوي خلق به سره بیل بیل شي-

**په دُنیا کښې هم عملونه او اخلاق اجتماعي معاملاتو باندې اثر غورځوي:** د قیامت په ورځ به د دُنیا کم تنظیمُونه چه د قام قبیلې په لحاظ سره بنا کړې شوي وي د قیامت په ورځ به د هغې په ځاګه شلیدل په پوره شان د ټولو خلقو مخې ته راشي، خو دُنیا کښې هم د دې ادنی شان نمونه هرچرته بیا پیدا کیږي چه د نیک سړي د نیکانو خلقو سره جوړښت وي، یعنې د هغوئ ډلې ټپلې سره تړلې وي او دغه شان د نیکو کارونو کولو د پاره ورته لارې ګودرې آسانې شي او اراده ئې پر مضبوطیږي دغه شان بدکرداره خلق، بدکردارو سره یو ځائې کیږي، هغوئ سره ګډون، ترون، او ناسته پاسته لري او هم د دې مجلس په وجه د دوئ په بدعملو او بد اخلاقئ کښې په مخه همداشان وده کیږي، د نیکئ لارې د دوئ مخې ته بندې شي چه په دُنیا کښې د دوئ د بدعمل همدغه نغده سزا ده-

خلاصه دا ده چه د نیک او بد عمل یوه جزا او سزا خو به په آخرت کښې ورکولې شي او په دُنیا کښې هم د دې نغده جزا او سزا داسې ملاویږي چه نیکانو خلقو ته نیکان او دیانتدار ملګري ملاؤ شي چه د دوئ په کار کښې ترقي راولي او بدکردارو، بدنیتو خلقو ته به غرې او د کار ملګري هم د هغوئ پشان ملاویږي چه ښه په ژوره کنده کښې ئې ورګوذار کړي-

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه هر کله الله تعالی د یو پادشاه او حاکم نه راضي وي نو هغه ته ښه وزیران او کارکوونکي په نصیب کړي چه ورسره ئې د حکومت کارونه سمدم او مخ په ترقئ وي،

---

(۱) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۹۹

اوکله چه الله تعالی ترناراض وی نوکارکوونکي ملګری ورته هم ناکاره اوبدکرداره ورپه برخه کړی، ([1]) خرابوافسرانوسره روزګاروی که څوک دښه کارکولواراده هم اوکړی نوقابوئې دهغې په کولونه راخی-

**یو ظالم دبل ظالم دلاسه سزایاب مومی**: ددغې آیت دامطلب دترجمې په اعتبارسره دې اودحضرت عبدالله بن عباس، عبدالله بن زبیر، ابن زید، اودمالک بن دینار، وغیره نه ددې آیت تفسیردبلې ترجمې په اعتبارسره داسې منقول دې چه الله تعالی یوظالم لره په بل ظالم باندې مسلط کولوسره سزاورکوی-([2])

دامضمون هم په خپل ځائې صحیح، درست اودقرآن اوحدیث دنوروارشاداتومطابق دې، چنانچه په یوحدیث کښې درسول الله ﷺ ارشاددې: ﴿کماتکونون کذالك یومر علیکم﴾([3]) [چه څنګه تاسو یئ همدغسې حاکمان به په تاسومسلط کولې شی، که تاسوظالمان، بدکاره یئ نوستاسوحاکمان به هم ظالمان اوبدکاران وې، اوکه تاسونیک عمله اونیک کرداره یئ نوالله تعالی به ستاسو حاکمان، نیکان رحمدله اومنصف مزاج خلق جوړکړی-

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دی چه هرکله الله تعالی دیوقوم بهتری غواړی نوپه هغوئ دیرغوره حاکمان اوامیران مقررکړی اوچه یوقوم ته بدرسول غواړی نوپه هغوئ زیات ناکاره حاکمان اوبادشاهان مقررکړی [تفسیربحرمحیط] -([4])

په تفسیرروح المعانی کښې راغلی دی چه فقهاو رحمهم الله په دې آیت سره دلیل نیولې دې چه هرکله رعیت اوعوام دالله تعالی نه واوړی اوپه زورظلم کولوباندې ګټې پورې کړی نوالله تعالی پرې دظالمانوحاکمانومسلط کولوسره دوئ ته دهغوئ په لاس سزاورکوی-([5])

ابن کثیردعبدالله بن مسعودپه روایت درسول الله ﷺ دافرمان نقل کړیدې:

﴿من اعان ظالماسلطه لله علیه﴾ [دچاظالم لاس امدادچه څوک کوی همدغه ظالم پرې الله تعالی دده دپاذابولودپاره مقررروی اودهغه په لاس ورته سزاورکوی] -([6])

په دوئم آیت کښې دیوداسې سوال، جواب بیان دې چه په محشرکښې به پیریانواوبنیادمولره په مخاطب کولوسره داسې کولې شی چه کفراودالله تعالی په نافرمانئ کښې ستاسودآخته کیدو سبب څه وو؟ آیا، زمونږرسولان تاسوته نه وودررسیدلی چه هم ستاسودقوم نه وو؟ زماآیتونه به ئې درته لوستلوسره آورول اودننن ورځې دحاضرئ اوحساب نه ئې ویرولئ؟ ددې په جواب کښې ددوئ ټولوله اړخه درسولانودراتلواودحق دپیغام آورولواوسره ددې هم دکفراونافرمانئ کولو اقرارئې هم ذکرشویدې، اوددوئ داړخه ددغې غلط کارئ څه وجه اوسبب نه دې بیان شوې بلکه الله تعالی پخپله ددې وجه داوبنودله چه: ﴿وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾ [اودوئ لره د دنیا ژوند او مزو چرچو

---

[1]) سنن ابی داود، کتاب والخراج الامارة والفئ، باب فی اتخاذ الوزیر: ج ۲، ص ۲۰۷
[2]) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۲۵۶
[3]) مشکوٰة، کتاب الامارة، والقضاء: ج ۲، ص ۳۲۲
[4]) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۲۵۶
[5]) روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ٦، ص ۳۱
[6]) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۳۹

تیر وو یستل ،چه همدغه لره ئې تول هرڅه اوګنړل حالانکه په حقیقت کښې داهیڅ نه وو اودَ انجام نه غافله شولکه اکبرمرحوم وئیلی دي-

تھی فقط غفلت جیش کاون کچھ نہ تھا
ہم اسے سب کچھ سمجھتے تھے وہ لیکن کچھ نہ تھا

[داسراسر غفلت وودَمزوورڅپ هیڅ نه وي-مونږه دي لره ټول هرڅه ګنړل خوپه حقیقت کښې هیڅ نه وو]

په دې آیت کښې یوداخبره دَغور کولوجوګه ده چه په څنونوروآیتونو کښې خودابیان شویدی چه هرکله دَمشر کانونه به په محشر کښې دهغوئ دَشرک اوکُفر په باره کښې سوال اوکړې شي نو په خپل جُرم به ځان ناغرضه کړي،اودَرب الارباب په دربار کښې په قسم خوړلوسره دادروغ اووائي چه:
﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ۝﴾ [په خپل پروردګار موقسم دې چه مونږه بیخي مُشرکان نه وو] اودَدې آیت نه معلومیږي چه سره دپښیمانتیابه دَخپل شرک اوکُفر اقراراوکړي-په دې دواړه کښې ټکر او اختلاف معلومیږي نوروآیتونو کښې دَدې تشریح اووضاحت داشان موجود دې چه هرکله په اِبتداء کښې دوئ نه سوال اوشي نوځان به ناخبره کړي،مګردغه وخت به الله تعالی په خپل کامل قُدرت تسره ددوئ ژبې بندې کړي،دَدوئ دلاسُونو، پښو او نورو اندامونو نه به ئې ګواهي اخلي،الله به ئې په خپل قُدرت سره ګویاکړي چه دَدوئ ټول هرڅه کړه وړه به بیان کړي اودغه وخت به پیریانو او بنیاد موتولوته معلومه شي چه زمونږ لاس ،پښې،غوږونه اوژبه ټول دَالله تعالی دَقُدرت دَ کارخانې دَخفیه پولیس غړي ووکوموچه دَهرڅه په باره کښې درشتیاؤاوصحیح ګواهي ورکړه-دغه وخت به دَدوئ دانکار کولو هیڅ ځه لارپاتې نشي هلـه بـه په صفاتکو کښې دَخپـل جُرم اقراراوکړي-

**آیا په پیریانو کښې هم پیغمبران وي**:دلته اوس بله خبره دَغور کولو جوګه ده چه په دې آیت کښې الله تعالی دَپیریانواوبنیادمودواړو دلوته په خطاب کولوسره فرمائیلی دي چه، ،زمونږ رسولان تاسوته نۀ وو دررسیدلی.دې نه معلومیږي چه څنګه انسانانوته انسانان پیغمبران لیږلے شویدی دغسې پیریانوته هم دَدوئ دَقوم څخه پیریان پیغمبران لیږلې شویدي-

په دې باره کښې دَتفسیراوحدیث دَعلماؤاقوال مُختلف دي،ځنې وائي چه پیغمبران یواځې انسانان اوبنیادم راغلی دي اودَپیریانوپه قوم کښې بې واسطې [انیغ په نیغه] څوک پیرې پیغمبر نۀ دې راغلې ،بلکه داسې شویدي چه دَانسان رسُول اوپیغمبرکلام په پیریانو کښې چاخپل قوم، پیریانو ته رسولې دې-چه په حقیقت کښې دَانساني رسُولانو قاصدان اوپیغام اورونکی وو، په مجازي دول دوئ ته هم رسولان وئیلې شي ،چنانچه دې حضراتودَقرآن کریم هغې آیتونوسره دلیل نیولې دې چه پیریانودَانساني رسول کلام یاتر آوریدلې قُران ئې خپل قوم[پیریانو]ته رسولې دې لکه فرمائي:﴿اِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ۝﴾ اوپه سُورت جن کښې فرمائي﴿فَقَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا۝﴾ وغیره-

لیکن دَعُلماؤیوې دلې دَدې آیت دَظاهري معنې په اعتبارسره دافرمائیلی دي چه دَخاتم الانبیاء ﷺ نه وراند دَهرې دلې رسولان به هم دَدغې دلې نه وو،دَانسانانوپه مختلفو قومونو کښې به انساني رسُولَان راتلل اودَپیریانودَمختلفوقومونونه به هم دَپیریانو رسُولان راتلل، دایواځې دَخاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم خصوصیت دې چه دَټول جهان دَبنیادمو او پیریانودَپاره هم یورسول

راؤلیږلي شوا وهغه هم څه زماني دپاره نه ،بلکه ترقیامته پورې پیدا کیدونکو ټولو انسانانو او پیریانو دپاره هم دوی یواځې رسول دې-اوټول پیریان اوبنیادم ددوئ اُمتیان دي-

**دهندوانومشران اوبزرګان هم ممکن پیغمبران دي په هغوئ کښې دچادنبي یارسول کیدو احتمال**:-د تفسیر د امامانو څخه کلبي اومجاهدوغیره هم داقول غوره کړیدې،(۱) چه قاضي ثناء الله پاني پتي په تفسیر مظهري کښې داقول غوره کړیدې اولیکلي ئې دي چه دې آیت نه ثابتیږي چه دآدم علیه السلام نه وړاند به دپیریانورسولان هم دپیریانودقوم نه څکه کیدل چه داثابته ده چه په زمکه باند دانسانانونه په زرګونوکلونووړاند پیریان آبادوو-اوهغوئ هم دانسانانوپشان دشریعت په احکامو باند مکلف دي لهذادعقل اوشریعت له مخې ضروري دي چه په دوئ کښې دالله تعالی احکام رسوونکي پیغمبران هم وي-

حضرت قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمائیلي دي چه دهندوستان هندوان چه دخپل وید تاریخ زرګونو کلونه وړاندې ښائي اوخپل مشران اوبزرګان چه ورته اوتارهم وائي هم دغه زماني خلق ښائي-څه لرې خبره نه ده چه دادپیریانورسولان اوپیغمبران وي اودهغوئ راوړلي هدایات په یوکتابي شکل کښې جمع کړې شوي وي-(۲) دهندوانودبزرګانومشرانوچه کوم تصویرونه او بُتان په درمسالونوکښې اینبودلي شي دهغې هم شان دادې چه دچاپکښې ګنړمخونه دي دچا پکښې ډیر لاسونه،خپې دي،دچالکه دهاتي پشان خرتم وي چه دعام انساني شکلونونه ډیر مختلف دي او ښکاره خبره ده چه پیریان خپل شکلونه په دغسې شان ښکاره کولې شي ،لهذا کیدې شي چه ددوئ [هندوانو] اوتاردپیریانوپه قوم کښې راغلي رسولان یاددوئ نائبان وي،بیاپه مزه مزه څنګه چه نوروکتابونوکښې بدلون شوې په دې کښې هم په بدلون راغلې وؤ راوستوسره شرک اوبُت پرستي داخله کړې شوي وي-

په هرحال که دغه خپل کتابونه اودپیریانودرسولانوصحیح هدایات هم موجودوې نودرسول الله صلی الله علیه وسلم دپیغمبرکیدواودعامې پیغمبرئ نه پس به هغه هم منسوخ وواودعمل کولوجوګه به نه پاتې کیدل خوهرکله چه دغوکتابونواوهدایاتوکښې بدلون راغلواووران کړې شونودې نه پس خوبیاداخبره په ډاګه کیږي چه هغه دعمل کولوجوګه بیخي پاتې نشو-

په درئیم آیت کښې دابنودلې شویدي چه په بنیادموا وپیریانوکښې رسولان لیږل دالله تعالی دعدل اوانصاف اورحمت تقاضاده چه هغه په یوقوم باند بې هیسه عذاب نه لیږي ترڅوچه هغوئ رومبې څخه دپیغمبرانو علیهم السلام په ذریعې سره بیداره نکړې شي اودهدایت رانړا وي اونه لیږلي شي.

دځلورم آیت مطلب داسې په ډاګه دې چه دالله تعالی په نزدپه انسانانوا وپیریانوکښې دهر قسم خلقودرجې مقرردي چه ددوئ دعملونوپه جوړ مقررولې شي،دهغوئ څخه دهر یو جزا او سزا به هم دهغوئ دعملونودپیمانې مطابق وي-

| وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ | ذُو الرَّحْمَةِ | إِنْ يَشَأْ | يُذْهِبْكُمْ | وَيَسْتَخْلِفْ |
|---|---|---|---|---|
| اورب ستا بې نیازدې | اخاوندد رحمت دې | اکه هغه غواړي | انولرې به کړي تاسو | اوخلیفه ګان به کړي ا |
| اوبیشکه ستارب بې پرواه دې | اودرحمتونو خاوند دې | اکه هغه اوغواړي | نوتاسوبه فناکړي | او ستاسونه |

(۱) تفصیل دپاره: تفسیر البغوي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۱۹۰، وروح المعاني تحت هذه الآيات: ج ٦، ص ۲۷

(۲) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۸۹، ۲۹۰

مِنۡۢ بَعۡدِكُمۡ مَّا يَشَآءُ كَمَآ اَنۡشَاَكُمۡ مِّنۡ ذُرِّيَّةِ

روستوستاسونه | هغه څوك | چې غواړي هغه | لكه څنګه چې هغه پيدا كړي يئ تاسو | د اولاده |

پس چې څوك خوښوي هغوئ به ستاسو په ځاني راولي | لكه څنګه چې ئې تاسو د بل

قَوۡمٍ اٰخَرِيۡنَ ۝ اِنَّ مَا تُوۡعَدُوۡنَ لَاٰتٍ ۙ

د قوم | بل نه | بيشكه | هغه څيز چې ستاسو سره ئې وعده كيږي | خامخا راتلونكې دي |

قوم د نسل نه پيدا كړي يئ | تاسو سره چې د كوم څيز وعده شوې ده هغه يقيني طور راتلونكي دي

وَّمَآ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ ۝ قُلۡ يٰقَوۡمِ اعۡمَلُوۡا عَلٰى مَكَانَتِكُمۡ

اونه يئ تاسو | عاجزه كونكي | اووايه | اے قومه زما | عمل كوئ تاسو | په ځاني ځپل باندې

او تاسو الله ﷻ نشئ عاجز كولئ | اووايه چې ائې زما قومه ! پخپله طريقه عمل كوئ

اِنِّىۡ عَامِلٌ ۚ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ۙ مَنۡ تَكُوۡنُ

بيشكه زه | هم عمل كونكې يم | نو ډير زر به | معلوم شي تاسو ته | چې څوك دې | چې وي به |

اوزه هم پخپله طريقه عمل كوم | زر به درته معلومه شي چې د چا د پاره به

لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ ۝

هغه لره | انجام | د آخرت | بيشكه شان دادې | چې نشي موندلې خلاصي | ظالمان

ښه انجام د آخرت وي | ......... بيشكه چې كوم خلق ظالمان دي هغوئ هيڅرې خلاصي نشي موندې

وَجَعَلُوۡا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الۡحَرۡثِ وَالۡاَنۡعَامِ

او مقرر كړې ده دوئ | الله لره | د هغې نه | چې پيدا كړي دي هغه | د فصلونو نه | او د څارووُ نه |

او دوئ د الله ﷻ د پاره د هغه په ......... پيدا كړو ......... فصلونو ......... او څاروو كښې

نَصِيۡبًا فَقَالُوۡا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعۡمِهِمۡ وَهٰذَا

يوه حصه | نو وائي هغوئ | دا حصه | الله لره ده | په ګمان ځپل سره | او دا حصه

يوه حصه مقرر كړې ده | نو پخپل ګمان كښې وائي چې دا يوه حصه د الله ﷻ شوه او دا يوه حصه

لِشُرَكَآئِنَا ۚ فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمۡ فَلَا يَصِلُ

د پاره د شريكانو زمونږه ده | نو هغه حصه | چې وي د پاره د شريكانو د هغوئ | پس نه رسيږي

زمونږ د شريكانو شوه | نو بيا چې كومه حصه ئې شريكانو د پاره مقرر كړې وي | نو هغه هيڅرې

اِلَى اللّٰهِ ۚ وَمَا كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمۡ ؕ سَآءَ

الله ته | او هغه حصه | چې وي د پاره د الله | نو هغه | رسيږي | شريكانو د هغوئ ته | ډير بد دې

الله ﷻ ته نه رسي | او چې كومه ئې الله ﷻ د پاره مقرر كړې وي | نو هغه د دوئ شريكانو ته رسي

مَا يَحۡكُمُوۡنَ ۝

هغه حكم | چې كوي ئې هغوئ |

دوئ څومره خرابې فيصلې كوي |

## آسان ترجمه قرآن

او ستا پروردګار داسې بې نیازه دی چه رحمت والا هم دی که چرې هغه وغواړي نو تاسو به (دنیا نه) واخلي او ستاسو په ځای چه چاته وغواړي نو رابه ئې ولي . لکه چه تاسو ئې د نورو خلقو د نسل نه پیدا کړي وئ یقینًا وګړئ چه د کوم څیز تاسو سره وعده کولې شي هغه راتلونکې دی او تاسو (الله لره) عاجزه کولې نه شئ (اې پیغمبره ! دې خلقو ته) ووایه چه : اې زما قومه! تاسو په خپل ځای (د خپلې طریقې مطابق) عمل کوئ . زه (د خپلې طریقې مطابق) عمل کوم. پس ډېر زر به تاسو ته پته اولګي چه ددې دنیا انجام د چا په حق کښې راووځي. داحقیقت (په خپل ځای) دی چه ظالمان نه کامیابیږي. او الله تعالی چه کوم فصل او څاروی پیدا کړي دي، دې خلقو هغې نه د الله یوه حصه مقرر کړې ده پس دوي په خپل ګمان باندې وائي چه داحصه دالله ده او دا زمونږ د هغه معبودانو کوم چه مونږ د الله په خدائۍ کښې شریک ګرځولي دي بیا کومه حصه چه د دوی د شریکانو وي هغه خو (چرې هم) د الله حصې سره نه یوځای کیږي، او کومه حصه چه دالله وي هغه د دوی د دروغو خدایانو حصې سره یو ځای کیږي دا داسې بدې خبرې دي چه دوی جوړې کړې دي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُوالرَّحْمَةِ﴾ او ستا رب [رسولان څه دے دپاره نه لیږي چه نعوذبالله هغه دعبادت حاجتمند دې هغه خو] بیخې غنی دے [بلکه ځکه لیږي چه هغه] د رحمت خاوند [هم] دے [په خپل رحمت سره ئے رسولان ځکه اولیږل د دوی په ذریعه خلقو ته دنفع او نقصان څیزونه معلوم شی د نفعے د څیزونو نه نفع واخلی او دضرری څیزونو نه په حفاظت کښې پاتې شی نو په دې کښې هم دبندګانو فائده ده او باقی د هغه غنی کیدل خو داسې دی چه] ﴿اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ﴾ که هغه اوغواړی نو تول به [دنیا نه په یو ځل] پورته کړی ﴿وَيَسْتَخْلِفْ مِنْۢ بَعْدِكُمْ مَّا يَشَآءُ﴾ او تاسو نه پس چا [مخلوق] لره چه اوغواړی ستاسو په ځائې به ئې [پدنیا کښې] آباد کړی ﴿كَمَآ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ اٰخَرِيْنَ﴾ ځنګه چه [ددې مثال رومبے نه موجود دے چه] تاسو ئے کوم چه اوس موجود یئ] د یو بل قوم دنسل نه پیدا کړی یئ [دهغوی هیڅ پته نشته او تاسو دهغوی په ځائې موجود یئ او دغه شان دا سلسله راروانه ده خو دا سلسله د رجه په درجه قائمه ده که مونږ اوغواړو په یو ځل ئے هم کولې شو ځکه چه دچا په کیدو او نه کیدو باندې زمونږ څه کار اړه نه لری نو رسولان لیږل زمونږ د حاجت لرلو په وجه نه دی ستاسو د حاجت لرلو په وجه دی تاسو له پکار دی چه ددوی دتصدیق او تابعدارئ کولو په ذریعه نیک بختی تر لاسه کړئی او د کفر او انکار د ضرر نه بچ شئ ځکه چه] ﴿اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ﴾ دکوم څیز چه [درسولانو په معرفت] تاسو وعده کولې شی] یعنی دقیامت او عذاب] هغه بیشکه راتلوونکے څیز دے ﴿وَّمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ﴾ او [که احتمال وی چه ګویا د قیامت په راتلو به مونږ بل چرته اوتښتو او په لاس به ورنشو ځکه چه پدنیا کښې حاکمانو نه مجرمان تښتیدلے شی نو ښه پوهه شئ چه] تاسو [الله ﷻ] عاجز کولې نشئ [چه هغه ته به په لاس ورنشئ او که د حق په تاکلو باندې د دلیلونو قائمولو باوجود څوک دا ګڼری چه هم دکفر طریقه غوره او داسلام طریقه خرابه ده بیا قیامت نه څه اندیښنه کیدلې شی؟ نو داسې خلقو په جواب کښې]. ﴿قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ﴾

تاسو [آخري خبره] دا اوکړئ چه اثې زما قومه تاسو پوهه شئ ډيره ښه ده] تاسو په خپل جوړ عمل کوئي نوزه هم [په خپله طريقه] عمل کوم ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۙ مَنْ تَكُونُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ؕ﴾نواوس به زر تاسوته معلومه شي چه ددې دنيا [دعملونو] نتيجه به چالره مفيده وي [مونږ لره يا تاسو لره او] ﴿ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ ﴾ دا يقيني خبره ده چه بربادونکی به چرې [هم په انجام کښې] کاميابي بيا نه مومي [اود تولو نه زيات ظلم دالله ﷻ حق بربادول دي او دا خيزونه په صحيح دليلونو کښې په لږ شان غوزه کولوسره معلوميږي چه د اسلام طريقه حق بربادول دي اوکه دکفر طريقه؟. او څوك چه په دليلونوکښې غور نه کوي هغوی ته دومره قدرې ونيل کافي دي چه ﴿ فسوف تعلمون﴾ يعنی زر به درته ددې بدعمل انجام معلوم شي] ﴿ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا ﴾ اوالله ﷻ چه کوم فصل [وغيره] او څاروی پيدا کړی دی دغه [مشرکانو] خلقو په هغې کښې څه برخه دالله ﷻ [په نوم] اوټاکله[او څه ئې د بتانو په نوم اوټاکله حالانکه په پيدا کولوکښې ئې هيڅوك شريك نشته]﴿ فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ۚ ﴾ اوپه خپل ګمان وائی چه داخو دالله ده [چه په ميلمنو مسکينانو اومسافرو وغيره باندې په عامو څايونوکښې لګولې شي] اودا زمونږ د معبودانوده [چه د لګولو څايونه ئې خاص دی] ﴿ فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ﴾ بيا چه څه ددوی دمعبودانو [په نوم] وی ﴿ فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ ۚ ﴾ هغه خو دالله ﷻ [دنوم دبرخې] طرف ته نه رسی [بلکه که هسې ورسره يو څائې شي نوبيا ترې هم راويستلې شي] ﴿وَمَا كَانَ لِلّٰهِ﴾ اوکوم څيز چه دالله ﷻ [دنوم] دې وی ﴿ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ؕ ﴾ هغه ددوی د معبودانو [دنوم برخې] طرف ته رسی﴿سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۝﴾ هغوی څه خراب تجويز راايستلې دې [ولې چه اول خو د الله ﷻ پيداکړې د ے دبل دنوم ولے شي؟.بله دا چه دالله ﷻ ټاکلې برخه د ے ولے کمه کړې شي؟. او که دغني توب اوحاجتمندئی وجه ئې وی نوسره د حاجتمندئی نه ئې معبودان منل نوره زياته بےوقوفي ده].

## معارف اومسائل

دې نه په وړاندِ آيت کښې دابيان ووچه دَالله تعالی دستورهميشه دَپاره داپاتې شويدې چه دَ پيريانو او بنيادمو په هرقوم کښې ئې خپل پيغمبران اوخپل هدايات ليږلی دی اوترڅوچه دَ رسولانو په ذريعه ئې دوئ لره په پوره ډول نهٔ وی خبرداره کړی، ترهغه وخته پورې ئې ورته په کُفر، شرک اونافرمانئ کولوچرې هم سزانهٔ ده ورکړې –

اوس دَدې آيتُونوځنې په ړومبي آيت کښې داښودلې شويدې چه دَرسولانواوآسمانی کتابُونوټولې سلسلې دې دَپاره نهٔ وې چه زمونږعبادت اوفرمانبرداری ته دَرب العالمين حاجت وو، يادهغه څه کارزمونږ فرمانبرداری ته بندوو، داسې نهٔ ده هغه بيخی بې حاجته اوغنی دې خوسره ددې، صفت درحمت هم لری، اودټول جهان دَښتبه کولو، بيائې دَباقی لرلواودې د ظاهری، باطنی، موجوده او آئنده ټولوضرورتونو، بې غوښتوپوره کولوسبب هم صفت دَرحمت دې، ورنه عاجز انسان خو دَخپلو ضروریاتوپخپله دپيدا کولوجوګه خونشي کيدې، بلکه هغه ته خو دَخپلوټولو ضروریاتو غوښتلو هم نه طريقه ورځي ، خصوصا د وجود چې کوم نعمت ورکړې شوې دی د هغه ملاويدل خو بغير د غوښتلو نه بالکل واضح دی ، ديو انسان هم چرته د خپل ځان پيدا کيدلو دعا نه ده کړې او نه د پيدا کيدلو څخه مخکښې ددعا غوښتلو څه تصور کيدلې شي .دغه شان

انسان ته چه کوم اندامُونه ورکړې شویدی مثلاً سترګې، غوږونه، لاسُونه، خپې، زړهٔ اودماغ .آیا دا انسان غوښتی وو؟یا دَدې دَغوښتوځه چل ورتلو؟ هیچرې نهٔ.بلکه -

مانبودیم وتقاضامانبود لُطفِ تونا گفتهٔ مامی شنود

[نه مُونږ موجُود وو اونهٔ موځه تقاضاموجُوده وه- ستا مهربانئ ،زمُونږه ناوئیلې خبرې واورېدلې]-

**الله تعالی ټولونه بې حاجته دې دکائناتوپیداکول خالص دهغه درحمت نتیجه ده:** په هرحال ﴿وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ﴾[یعنی دَرب الارباب دَبې حاجتئ بیانولوسره دَ﴿ذُوالرَّحْمَةِ﴾په زیاتولوسره دااوښودلې شوچه اګرچه هغه خوستاسوټولویلکهٔ دَټولوکائناتونه بالکل بې حاجته اوبې ضرورته دې لیکن دې سره سره هغه ، ﴿ذُوالرَّحْمَةِ﴾دَرحمت خاوند هم دې-

**هیڅوک انسان.الله تعالی نهٔ دې بې حاجته کړې ولې چه دې کښې لوئې حکمت دادې چه هرکله انسان بې حاجته شي نوظلم کوي**::اوداد دَغې پاک ذات کمال دې ورنه دانسان عادت دادې چه که هغه دَنورونه بې حاجته اوبې ضرورته شي نودَبل چادَنفع ،نقصان اورنځ،راحت هیڅ پرواه نهٔ لري بلکه په دې حالت کښې په نوروباند ظُلم،زورکولوته بدې اووهی[پانځې راپورته کړی] ،دَقرآن کریم په یوآیت کښې ارشاد دې : ﴿كَلَّا إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰ ۝ أَن رَّآهُ اسْتَغْنَىٰ﴾[یعنی کله چه انسان ته خپل ځان بې حاجته اوبې ضرورته ښکاره شي نوهغه سرکشئ اوبد معاشئ ته ملاوتړې، په دې وجه الله ﷻ انسان لره په داسې ضروریاتو کښې راګیر کړی دی چې د چادَامداد نه بغیرپوره کیدې نشی، د لوئې نه لوئې بادشاه اوِ حاکم د نوکرانو او ملازمانوچپړاسیانومحتاج دی. لوئې نه لوئې مالداره انسان،دَملونوخاوند دَمزدورانو محتاج وی سحر د خپلې دوخته دَخپلې محتاجئ لرې کولوپه غرض محنَت،مزدورئ کولودَپاره بهرته اوځی همدغه شان لوئې مالدارن چه غنیان ورته وئیلې شی هغوئ هم دَمزدور ،رکشې، ګاډی اودَسورلئ په لټون کښې بهرته اووځی، قُدرت ټول خلق دَمحتاجئ په زنځیر کښې جُخت تړلی دی،هریوبل داسې حاجتمن دې چه د یو، په بل چاباند څه احسان نهٔ وی که داسې نهٔ وې نونهٔ به یومالدارچاته یوروپئ ورکړې وه اونهٔ به یومزدور دَچاځه لرشان پیتې هم اُوچتولو،داخوپواځې دَالله تعالی صفت کمال دې چه دکاملې بې حاجتئ اوبې نیازئ باوجود هم هغه﴿ذُوالرَّحْمَةِ﴾[یعنی دَرحمت خاوند]دې،دلته که دَ[﴿ذُوالرَّحْمَةِ﴾]په ځائې د ، ،رحمن، ،یا ، ،رحیم، ،لفظ راوړلې شوې وې بیاهم ورسره دکلام مقصُوداداکیدې شولیکن ، ،غنی، ، سره درحمت، ،دَجوړ خاص اهمیت ښکاره کولودَپاره دَ﴿ذُوالرَّحْمَةِ﴾عنوان ځکه اختیار کړے شوچه دَغنی اومکمل بے حاجته کیدوباوجود صفت دَ ، ،رحمت، ،هم مکمل لری اوهم دا صفت دَرسولانواوکتابونورالیږلواصل سبب دې-

وریسې داهم اوښودلې شوچه ځنګه دَهغه رحمت عام اوپُوره دې،دغه شان دَهغه قُدرت په هرڅیزاوهرکارباند راچاپیره دې، که هغه اوغواړی نوټول په یوسیکنډ کښې فناکولې شی اودَټول مخلُوق په فناکولوسره هم دِهغه دَقُدرت په کارخانه کښې معمُولی شان فرق هم نشی راتلې، بیاکه هغه اوغواړی نوموجُوده ټولوکائناتوفناکولوسره دَهغه په ځائې نورمخلُوق دغه شان په یو سیکنډ کښې راپیداکولې شی،چه مثال ئې په هردورکښې دَانسان مخې ته داسې موجُودوی چه نن کوم په کروړونوانسانان چه دَزمکې په هره برخه باند استوګنه کوی دَژوند په هرډګر کښې کاروبار چلوی که دَنن نه یوسل کاله وړاند ته غوراوکړې شی نومعلُومه به شی چه دغه وخت هم دا دُنیاپه دې شان آباده وه اوټول کارونه روان ووخوداوسنوخلقوځخه پکښې هیڅوک موجُودنهٔ وو

هغه وخت يوبل قوم موجودووچه اوس دزمكې لاندې دى، نوم نشان ئې نشته اوموجوده دنياهم ددې رومبي قوم دنسل نه پيدا كړې شويده، ارشاددې:

﴿إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِنۢ بَعْدِكُم مَّا يَشَآءُ كَمَآ أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ ءَاخَرِينَ﴾ [يعنى كه الله تعالى اوغواړى نوتاسوټول به بوځي، بوتلونه مطلب په داسې شان فناكول دى چه نوم نشان ئې پاتې نشي، اوهم په دې وجه ئې دلته دهلاكولويامره كولوذكراونكړوبلكه بوتلل ئې ځكه اوفرمائيل چه دې نه خالص داسې فناكولوته اشاره اوشي چه نوم نشان ئې هم پاتې نشي.

په دې آيت كښې دالله تعالى دغنى والى اوبې حاجتئ، بيادهغه درحمت دخاوند كيدواودكامل قدرت دمالك كيدوبيانولونه پس په دوئم آيت كښې نافرمانواوحكم نه منونكوخلقوته خبردارې وركړې شويدې چه ﴿إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَءَاتٍ ۖ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ﴾ [يعنى الله تعالى چه تاسودكوم عذاب نه ويرولى يئ هغه خامخا راتلونكې دې اوكه تاسوټول راجمع شئ بياهم دالله تعالى عذاب په شانشئ تمبولې په دريم آيت كښې بيادغفلت نه درابيدارولوطريقه ئې اختياركړه اووې فرمائيل:

﴿قُلْ يَٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّى عَامِلٌ ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ ۗ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ [په دې كښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې چه تاسودې اهل مكه ته اووايئ چه اې زماقومه! كه تاسو زما خبره نه منئ نودرته اختياردې مه ئې منئ، اوپه خپل حالت باند دخپلې عقيدې اوعنادمطابق عمل كوئ، زه به هم دخپلې عقيدې مطابق عمل كوم، زماپه دې كښې هيڅ نقصان نشته مگر زربه تاسوته معلومه شى چه ددار آخرت خلاصى اوكاميابى چاته حاصليږى -په دې بنه پوهه شئ چه ظالمان يعنى حق بربادوونكى خلق چرې هم كاميابى نه مومى.

اودتفسيرامام ابن كثيرددې آيت په تفسيركښې دې ارخ ته هم اشاره اوكړه چه دلته په آيت كښې ئې ﴿مَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ﴾ اوفرمائيل. ﴿عَاقِبَةُ الدَّارِ الآخرة﴾ ئې اونه فرمائيل-دې نه معلوميږى چه ددار آخرت نه وړاند داردنياكښې هم دكاميابئ انجام دالله تعالى نيكوبندگانوته نصيب كيږى، لكه چه دصحابه كرامواودرسول الله صلى الله عليه وسلم حالات په دې گواه دې چه په لږه زمانه كښې دقوت اواقتدارخاوندان ټول مخالف خلق دهغوئ په وړاند ذليل شو، دهغوئ ملك ئې فتح كړوپخپله دپيغمبرئ په زمانه كښې دعربوټوله جزيره ددوئ اقتدارلاندراغله-ديمن او بحرين نه چه واخلې دشام ترحدودپورې ددوئ اقتدارحكومت خورشو، بياددوئ دخلفاؤ او صحابه كرامو رضي الله عنهم په لاسه تقريباًټوله دنيا د اسلامى جنډے لاند راغله اودالله تعالى داوعده پوره شوه: ﴿كَتَبَ ٱللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِىٓ﴾ [يعنى الله تعالى ليكلى دى چه زه اوزماپيغمبران به غالب راځو] اوپه بل آيت كښې ارشاددې: ﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ ٱلْأَشْهَٰدُ﴾[1] [يعنى مونږ به دخپلورسولانومددكوؤاودهغه خلقوچه ايمان ئې راوړلو، په دې دنياكښې هم اوپه هغه ورځ هم، كله چه دعملونوپه حساب به گواهى وركوونكى، گواهئ ته اودريږى يعنى دقيامت په ورځ]-

په څلورم آيت كښې دعربودمشركانوپه يوې خاصې گمراهئ اوغلط كارئ باند خبردارې وركړې شويدې، دعربويوعادت داووچه دفصلونو، باغونوبلكه دتجارتونودپيداوارنه به ئې يوه برخه الله دپاره اوبله برخه دپاره اوبنكله دالله تعالى دنوم برخه به ئې په غريبانومسكينانولگوله اودبتانودنوم برخه به ئې دبت خانې په عبادت كوونكواوخوكيدارانولگول-

[1] تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۲۳

اول خو داچه کم ظلم نه وو چه هر څیز الله پیدا کړو او پیدا وار هم الله تعالی ورکړو او په دې کښې نې
ورسره بتان هم شریک کړل او اضافه ظلم دا وو چه که پیدا وار کښې به څه کمې راغله نو دغه کمې
به ئې د الله تعالی د برخې نه په داسې شان پوره کوله چه وئیل به ئې الله تعالی مستغنی دې او
زمونږ د څیزونو محتاج نه دې او د بتانو برخه او د خپل استعمال برخه به ئې هیڅ قدرې نه کمول
که څه وخت به د بتانو یا د دوئ د برخې نه څه څیز د الله تعالی برخې ته ورغلو نو د حساب پوره کولو
د پاره به ئې هغې نه راویستله او که د الله تعالی د حصې نه به څه څیز د بتانو یا د دوئ برخې ته
ورغلو نو هغه به ئې په دې بهانه په خائې پرېښوچه الله تعالی هسې هم غنی دې د هغه دې ته څه
ضرورت دې - چنانچه قرآن کریم د دوئ دا ګمراهی په دې شان بیانوی: ﴿سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾ [یعنی
د دې خپلو فیصله څومره بده او بې ځایه ده چې کوم ذات دوئ او د دوئ ټول څیزونه یې پیدا کړل
نو دوئ خو اول د هغه سره نور شریک کړل بیائې د هغه برخه په رنګارنګ بهانو اوچل ول سره
نوروته ورپورې ویسته] -

**کافرانوته په دې خبرداری ورکولوکښې مسلمانانو د پاره عبرت:** دا خو مشرکانو د عربوته په یوې ګمراهې
او د دوئ په غلطې روې باندې خبرداری ورکړې شویدې، د دې په ضمن کښې مسلمانانوته هم
عبرت د پاره داسې توک ورکړې شویدې چه دوئ د الله تعالی ورېښلې ژوند، د ورېښلې
اندامونو پوره طاقت په مختلفو برخو کښې ویشی، د خپل عمر او وخت څه برخه، الله او د هغه عبادت
د پاره مخصوص کوی، سره د دې چه د عمر ټول وختونه او ټولې کړې هم د هغه په عبادت
او فرمانبرداری کښې لګول پکار وو، د انسانی ضرورتونو او مجبوریانو د پاره پکښې خپل ځان
د پاره هم څه وخت ایستلی او د حق خبر داده چې د شکر اداکیدو حق ئې بیا هم نه شو اداکیدې،
خو زمونږ حالت دادې چه د شوا روزې په څلیریشتو ګینټو کښې د الله تعالی د یادو او عبادت د پاره که
څه وخت اوباسو نو د ضرورت راپیښیدو په وخت په خپل کاروبار کښې څه بندیز او ایسار یدل نه
راولو، نه د آرام په وخت کښې کموت راولو بلکه ټول زور په دغې وخت باندې اچوو- او دغه وخت
کښې کموت راولو کوم چه عبادت، تلاوت یا مونځ د پاره مقرر شوې وی، دغه شان که څه کار مو
راپیښ شی، بیماران، رنځوران شو یا بل څه ضرورت موراپیښ شی نو د ټولو نه رومبې، د هغې اثر،
هم په دغه وخت ورغورځولې شی کوم چه د الله تعالی د یادو یا عبادت د پاره مخصوص کړې شوې
وی، دا څومره غلطه فیصله څومره ناشکری او حق برباد ول دی، الله تعالی دِ مونږ ټول مسلمانان
د دې نه اوساتی-

وَكَذٰلِكَ | زَيَّنَ | لِكَثِيرٍ
او هم دارنګې | ښائیسته ښکاره کړی دی | د پاره د ډېرو
| او دارنګ د ډېرو مشرکانو په خیال کښې د دوئ

مِّنَ الْمُشْرِكِينَ | قَتْلَ | أَوْلَادِهِمْ | شُرَكَآؤُهُمْ | لِيُرْدُوهُمْ
د مشرکانو | وژل | د اولاد خپل | شریکانو د هغوئ | د پاره د دې چې هلاک کړی هغوئ
[جوړ کړی] شریکانو دوی ته خپل اولاد وژل ښائسته ښکاره کړی دی | چې برباد ئې کړی او چې

وَلِيَلْبِسُوْا　عَلَيْهِمْ　دِيْنَهُمْ ۖ　وَلَوْ　شَآءَ　اللّٰهُ

اودپاره ددې چې شكمن كړي | په هغوئ باندې | دين دهغوئ | اوكه چرې | غوښتلې　الله

دين پرې گډ وډ كړي | ..................او كه چرې الله ﷻ ته منظوره وې | نو

مَا فَعَلُوْهُ　فَذَرْهُمْ　وَمَا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۷﴾　وَقَالُوْا　هٰذِهٖٓ

نه به وژكړي هغوئ دا كار | نو پرېږده هغوئ | اوهغه چې دروغجوړوي | اوواني دوئ | چې دا

داسې به ئې نه كول | نو دوئ پرېږده چې پخپلو دروغو كښې پراته وي | اودوئ دا هم واني

اَنْعَامٌ　وَّحَرْثٌ　حِجْرٌ ۖ　لَّا يَطْعَمُهَآ　اِلَّا مَنْ　نَّشَآءُ

خاروي | اوفصلونه | محفوظ دي | نه به خوري دا | مگر هغه څوك | چې غواړو مونږ

چې دا خاروي او دا پټي منع دي دا به صرف هغه كسان خوري چې مونږ ئې اوغواړو [دا پابندي ئې

بِزَعْمِهِمْ　وَاَنْعَامٌ　حُرِّمَتْ　ظُهُوْرُهَا　وَاَنْعَامٌ

په گمان خپل سره | اوځيني خاروي دي | چې حرام كړې شوي دي | شاگانې دهغوئ | اوځيني خاروي دي

پخپل گمان كښې الگولې ده] | اوداسې خاروي ئې مقرركړي دي | چې په هغې ئې بارونه اوړل بندكړي دي | اوداسې خاروي

لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ　عَلَيْهَا　افْتِرَآءً عَلَيْهِ ؕ　سَيَجْزِيْهِمْ

چې نه يادوي نوم دالله | په هغې باندې | اودا ټول دروغ دي په الله باند | زر به بدله وركړي الله دوئ له

چې په هغې دالله ﷻ نوم [دذبح كولو په وخت كښې] نه اخلي | دا صرف په الله ﷻ باندې دروغ تړي

بِمَا　كَانُوْا　يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۸﴾　وَقَالُوْا　مَا　فِيْ بُطُوْنِ　هٰذِهِ

په سبب دهغې | چې وو | چې دروغ به ئې تړل | اوواني دوئ | هغه څه | چې په خېټو | ددې

الله ﷻ به ديرزر د دروغو سزا وركړي | ..........او دوئ واني چې ددې خاروو په خېټه كښې

الْاَنْعَامِ　خَالِصَةٌ لِّذُكُوْرِنَا　وَمُحَرَّمٌ　عَلٰٓى اَزْوَاجِنَا ۚ

خاروو كښې دي | دي دپاره دنارينو زمونږه | اوحرام كړې شوي دي | په ښځو زمونږه |

كوم بچي دي هغه خالص زمونږ دنارينوو دپاره دي | اوزمونږه زنانو باندې حرام دي

وَاِنْ　يَّكُنْ　مَّيْتَةً　فَهُمْ　فِيْهِ　شُرَكَآءُ ؕ

اوكه | وي هغه | مړ | نو بيا دوئ ټول | په خوراك دهغې كښې | شريكان دي

اوكه چرې هغه بچي مړوي | ..........نوبيا په كښې ټول [نرښځې] شريكان وي

سَيَجْزِيْهِمْ　وَصْفَهُمْ ؕ　اِنَّهٗ　حَكِيْمٌ　عَلِيْمٌ ﴿۱۳۹﴾

زر به بدله وركړي الله دوئ له | دخبرو ددوئ | بيشكه چې هغه | دحكمت خاوند دي | دهرې خبرې نه خبردي

الله ﷻ به دوئ ته دخپلو [غلطو] بيانونو سزا وركړي | بيشكه الله ﷻ صاحب د حكمت او عالم دي

قَدْ　خَسِرَ　الَّذِيْنَ　قَتَلُوْٓا　اَوْلَادَهُمْ　سَفَهًا

بيشكه | نقصان اوكړو | هغه كسانو | چې اووژل هغوئ | اولاد خپل | په وجه دجهالت

هغه خلق يقينا په نقصان كښې دي | ....چې كوموخلقو د جهالت

| افْتِرَآءً | رَزَقَهُمُ اللّٰهُ | مَا | وَحَرَّمُوْا | بِغَيْرِ عِلْمٍ |
|---|---|---|---|---|
| خالص په دروغو ترلو سره | چي ورکړي وو هغوئ له الله | هغه رزق | اوحرام کړو هغوئ | او دناپوهتیاسره |
| اوناپوهئ په وجه خپل اولاد قتل کړل\| او کومه روزي چي الله ﷻ ورکړې وه هغه ئې په خان حرامه کړه | | | | |
| | مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۴۰﴾ | وَمَا كَانُوْا | قَدْ ضَلُّوْا | عَلَى اللّٰهِ ۚ |
| | نيغه لارموندونکي | اونه وو هغوئ | يقيناً چي بې لارې شو | په الله باندې |
| داني صرف په الله ﷻ دروغ ترلي دي\| دغه خلق يقيناً ګمراه شو او دوئ سمه لار نشي موندي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اودغه شان ډیرو مشرکانو ته د هغوی شریکانو دا ښایسته کړي دي چه خپل اولاد وژل ډیر ښه کار دې، دې دپاره چه هغوی (مشرکان) بالکل تباه کړي او دوی لره د دوی د دین په معامله کښې غلط پیدا کړي.او که الله تعالیٰ غوښتلې نو دوی به داسې نه وو کړي پس دوی په خپلو دروغو جوړولو کښې پرېږده.او داوائي چه:دې ځنګرو او فصلونو باندې پابندي لګیدلې ده.ددوي ګمان دا دې چه:دې لره د هغه خلقو نه علاوه نور څوك نه شي خوړلې چا لره چه مونږ وغواړو اوځه څاروی داسې دی چه د هغې شاګانې حرام کړې شوي دي اوځه څاروي داسې دی چه دهغې په بارة کښې دوی په الله باندې دا بهتان لګوي چه هغې باندې به دالله نوم نه اخلې کوم دروغ چه دا خلق جوړوي ډیر زر به ورته الله دهغې پوره پوره بدله ورکړي او دوي دا هم وائي چه "ددې ځنګرو (څناورو) په خیټه کښې کوم بچي دي هغه صرف څمونږ د نارینو د پاره خاص دي اوهغه څمونږ په زنانو باندې حرام دي. او که هغه بچي مړ پیدا شي نو هغې نه فائدې اخستو کښې ټول (سړي او ښځې) شریك وي کومې خبرې چه دا خلق جوړوي د هغې بدله کښې به الله ډیر زر دوی ته پوره پوره بدله ورکړي.یقیناً هغه د حکمت مالك هم دې اود علم والا هم دې.حقیقت دا دې چه هغه خلق ډیر په تاوان کښې دي چه هغوی خپل اولاد د څه علمي وجې نه بغیر صرف د کم عقل توب د وجې نه قتل کړی دی .او الله چه کوم رزق الله دوی ته ورکړې دې هغه ئې په الله باندې بُهتان لګولو سره حرام کړي دې، دوی ډیر ګمراه شوي دي.اوکله (هم) په هدایت شوی نه دی.

**د آیتونو ربط:** ذکر شوؤ آیتونو کښې د مشرکانو د باطلو اوشرکیه عقائدو او د کفر بیان وو. دې آیتونو کښې ددوئ د عملي غلطیو او ددوئ د جاهلانه رسمونو بیان دې . دې آیتونو مبارکو کښې چې د دوئ دکومو جاهلانه رسمونو بیان دې هغه دادی :

غله کښې او میوؤ کښې د الله تعالى د نوم څه حصه اوباسی او بیا څه حصه د بتانو په نوم هم . او که اتفاقی طور به دالله تعالى د نوم حصه د بتانو حصې سره ګډه شوه نو هغه بهٔ ئې هم داشان ګډه شوې پرېښوده . او که چرته دې خلاف کار به اوشو نو هغه حصه بهٔ ئې راؤښکله او د بتانو حصه بهٔ ئې پرېښودله . او بهانه بهٔ ئې دا کوله چې الله تعالى غني دې . د هغه ذات حصه کمولو سره دهغه هیڅ نقصان نه کیږي . او شرکاء محتاج دی ، د هغوئ حصه نه دی کمول پکار . ددې بد رسم بیان په دې مذکوره آیتونو مبارکو کښې په رومبی کښې آیت کښې راغلي دې .

دویم رسم دا وو چې بحیره ، سائبه څناور بهٔ ئې د بتانو په نوم پرېښودل او دا بهٔ ئې وئیل چې دا کار دالله تعالى د رضا دپاره دې . په دې کښې د بتانو حصه دا وه چې عبادت بهٔ ئې د هغوئ

کولو. او د الله تعالی حصه به ئې دا گڼړله چې دهغه دا به ئې رضا د الله تعالی گڼړله.

دریم رسم دا وو چې خپل زنانه اولاد به ئې قتل کولو.

څلورم رسم دا وو چې څه پټي [کښت] به ئې د بتانو په نوم باندې وقف کړی وو. او دا به ئې وئیل چې ددې اصل مصرف سړی دی. ددې نه څه حصه ښځو ته ورکول زمونږ خوښه ده. هغوئ ته دا حق نه دې حاصل چې مطالبه اوکړی.

پنځم رسم دا وو چې دا شان عمل بۀ ئې په څناورو کښې هم کولو. څینې به ئې د سړو دپاره مخصوص کول.

شپږم رسم دا وو چې کوم څناور به ئې د بتانو په نوم باندې پرېښودل نو په هغوئ به ئې سورلی کول او بار اوړل حرام گڼړل.

اووم رسم دا وو چې کوم څناور مخصوص وو په هغې به ئې په څه موقع باندې هم دالله تعالی نوم نه اخستو. نه د پئ [شیدو] لوشلو په وخت کښې، نه په دې د سورلئ کولو په وخت کښې، نه د ذبح کولو په وخت کښې.

اتم رسم دا وو چې د کومو څناورو نومونه بۀ ئې بحیره یا سائبه کیښودل نو هغه بۀ ئې د بتانو په نوم باندې پرېښودل، اوکه ددې د ذبح کولو په وخت کښې به ددې په خیټې کښې بچې وو نو هغه بۀ ئې هم ذبح کولو. اودا به ئې صرف دسړو دپاره حلال او ښځو دپاره حرام گڼړلو. او که ددې نه به بچې مړ راؤتو نو هغه بۀ ئې ټولو دپاره حلال گڼړلو.

نهم رسم دا وو چې د څینې څناورو پئ [شیدو] به ئې د سړو دپاره حلال او ښځو دپاره حرام گڼړل

لسم رسم دا وو چې بحیره، سائبه، وصیله او حامی د څلور قسمه څناورو تعظیم بۀ ئې عبادت گڼړلو. [دا ټول روایات در منثور او روح المعانی کښې د ابن عباس رضی الله عنه، مجاهد رحمه الله، زید رحمه الله او سدی رحمه الله نه بتخرج ابن منذر رحمه الله، ابن ابی حاتم رحمه الله، ابن ابی شیبه رحمه الله، ابن حمید نه منقول دی[1]) [بیان القرآن].

## خلاصه تفسیر

﴿وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ شُرَكَاؤُهُمْ﴾ دغه شان د ډیرو مشرکانو په خیال کښې دهغوی معبودانو [شیطانانو] خپل اولاد وژل ښائسته جوړ کړی دی [څنگه چه په جاهلیت کښې د جینکو د وژلو یا د ژوندئ ښخولو رسم وو] ﴿لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ﴾ دپاره ددې چه [ددې ناکاره کار په کولو سره] هغه [شیطانان] هغو [مشرکانو] لره [دعذاب دمستحق کیدو په وجه] برباد کړي اودپاره ددې چه د دوی طریقه گډه وډه کړی [چه همیشه په غلطئ کښې اښتې پاتې شی او تاسو ددوی دناکاره کارونو نه مه غمژن کیږئ خکه چه] ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا فَعَلُوهُ﴾ که الله ﷻ ته [ددوی ښېگړه] منظور وے نو دوی به داسې کار نه کولو ﴿فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ﴾ نوتاسو دوی او کومې غلطې خبرې چه دوی جوړوی [چه داسې زمونږ دا کار ډیر ښه دې] هم داسې پرېږدئ [هیڅ فکر مه کوئ مونږ به ورسره پخپله پوهه شو] ﴿وَقَالُوا هَٰذِهِ أَنْعَامٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ لَّا يَطْعَمُهَا إِلَّا مَن نَّشَاءُ بِزَعْمِهِمْ﴾ او دوی په خپل [باطل] خیال دا هم وائی چه دا [مخصوص] څاروی

[1]) الدر منثور تحت الایات المذکوره: ج ۳، ص ۳۷۰ تا ۳۷۳ پورے، روح المعانی تحت الایات المذکوره: ج ۶، ص ۳۶ تا ۴۲ پورے.

دی او [فصلونه دی چه استعمال ئے هر چالره روا نه دي دے لره هيڅوك نشی خوړلے سوا د هغه نه چا لره چه مونږ اوغواړو [څنګه چه په څلورم پنځم رسم کښې بيان شو] ﴿ وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا ﴾ او [داسې وانی چه دا مخصوص] څاروی دی چه پرے سورلی کول یا پیتے بارول حرام کړې شوی دی [څنګه چه په شپږم رسم کښې بيان شو] ﴿ وَأَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُونَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا افْتِرَاءً عَلَيْهِ ۚ سَيَجْزِيهِم بِمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ او [داسے وانی چه دا مخصوص] څاروی دی چه پرے [دالله ﷻ نوم نه وی اخستل پکار چنانچه ددې عقيدې لړلو په وجه په هغې] دا خلق دالله ﷻ نوم نه اخلی [څنګه چه اووم رسم کښې بيان شو اودا ټولے خبرے] خالص په الله ﷻ باندې دتور پورے کولو په ډول [وانی تور پورې کول داسې وو چه دا به يې دالله ﷻ د خوشحاليدو باعث ګڼړل]. اوس الله ﷻ ورته ددی دتور پورې کولو سزا ورکوی [اوس څکه چه قيامت راتلل څه لرے خبره نه ده چه بعضې سزا خو به يې په مړ کيدو سره شروع کيږی] ﴿ وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ الْأَنْعَامِ ﴾ او دوی [داسې هم] وانی چه کوم څيز ددغې څاروو په خيټه کښې دے [يعنی دخيټے نه يې راوخی لکه بچے يا بچې شو] ﴿ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا ﴾ هغه خالص زمونږ د نارينو دپاره [حلال] دے ﴿ وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا ﴾ او زمونږ په زنانو باندې حرام دے ﴿ وَإِن يَكُن مَّيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَاءُ ﴾ اوکه هغه [دخيټے نه راوتلے بچے] مړ وی نو په هغې [يعنی ترې دفائدې اخستلو په روا والی] کښې [نارينه او زنانه] ټول يو شان دی [څنګه چه په اتم، نهم، رسم کښې بيان شو] ﴿ سَيَجْزِيهِمْ وَصْفَهُمْ ﴾ اوس الله ﷻ دوی ته ددوی د [دے] غلط بيانئی سزا ورکوی [دغلط بيانئی تقرير هم هغه دے کوم چه د تور پورې کولو بيان شو اوتر اوسه ئے چه سزا ورنکړه نو وجه ئے داده چه] ﴿ إِنَّهُ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴾ بيشکه هغه د حکمت خاوند دے [دبعضې حکمتونو په وجه ډيل ورکوی او چه اوس سزا نه ورکوی نو څوك دې دا خيال نه کوی چه ګنی چه الله ﷻ پرے خبر نه دې څکه چه] هغه دلوئې علم خاوند دې [هغه په هر څه خبر دې وريسے د خلاصے د انجام په ډول فرمائی چه] ﴿ قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُوا أَوْلَادَهُمْ سَفَهًا ﴾ واقعی په خرابئ کښې پريوتل هغه خلق چا چه [دغه شان بيان شوی کارونه خپله طريقه جوړه کړه چه] خپل اولاد ئے خالص د بے وقوفئ نه ﴿ بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ بغير څه [معقول اومقبول] سند نه اووژلو ﴿ وَحَرَّمُوا مَا رَزَقَهُمُ اللَّهُ ﴾ اوکوم [حلال] څيزونه چه دوی ته الله ﷻ خوراك څښاك دپاره ورکړی وو هغه ئے [په اعتقادی يا عملی ډول] حرام کړل [څنګه چه په پورته رسمونو اوپه لسم رسم کښې بيان شو اودټولو منشاء يو شان ده او دا مجموعه] ﴿ افْتِرَاءً عَلَى اللَّهِ ﴾ خالص په الله ﷻ باندې دتور پورې کولو په ډول [اوشو څنګه چه پورته د اولاد په وژلو کښې "يفترون" اود څاروو په حرامو لو کښې "افتراء" بيل بيل هم راغلی دی] ﴿ قَدْ ضَلُّوا وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴾ بيشکه دا خلق په ګمراهئ کښې پريوتل او [داګمراهی څه نوے نه بلکه زړه ده څکه چه مخکښې هم] چرې په لار تلونکی نه ووپاتې شوی [پس په "ضلوا" کښې د طريقے خلاصه په "ماکانوا" کښې ددې تاکيد اوپه "خسروا" کښې د خراب انجام خلاصه بيان شوه چه عذاب دې].

وَهُوَ الَّذِیٓ

اوهغه هغه ذات دی |

او الله هغه ذات دی |

اَنۡشَاَ جَنّٰتٍ مَّعۡرُوۡشٰتٍ وَّغَيۡرَ مَعۡرُوۡشٰتٍ وَّالنَّخۡلَ

چي پیدائې کړل | باغونه | غوړیدلی په لرګو باندې | اوچي نه وی غوړیدلی په بل څیز باند | او باغونه دکجورو

چې پیدا ئې کړل باغونه غوړولی [لکه انګور] اوهغه چې نه وی غوړیدلی په بل څه باندې | اود کهجورې

وَالزَّرۡعَ مُخۡتَلِفًا اُكُلُهٗ وَالزَّيۡتُوۡنَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا

اوفصلونه | چې مختلف وی | خوراکونه دهغې | اوني دخونه | اودانار | په شکل کښې یو شان

او داسې فصلونه چې رنګ رنګ خوراکونه ورکوی | اوخونه او انار چې رنګونه ئې یوشان دی

وَّغَيۡرَ مُتَشَابِهٍ ؕ كُلُوۡا مِنۡ ثَمَرِهٖۤ اِذَاۤ اَثۡمَرَ وَاٰتُوۡا حَقَّهٗ

په خوندو کښې مختلف | خورئ | د پیدا وار دهغې نه | کله چې | میوې اونیسي | او ورکړئ | حق دهغې

اوخوندونه ئې جدا جدا دی | تاسو دهغې تولې میوې خورئ | هرکله چې اولړې | اود

يَوۡمَ حَصَادِهٖ ۖ وَلَا تُسۡرِفُوۡا ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الۡمُسۡرِفِيۡنَ ۙ

په ورځ | د ریبلو دهغې | او دحد نه مه اوړئ | بیشکه چې الله | نه خوښوی | دحد نه اوړیدونکی

کټ کولو په ورځ د الله ﷻ حق ورکوئ | اوبې ځایه خرچ مه کوئ | الله ﷻ اسراف کونکی نه خوښوی

وَمِنَ الۡاَنۡعَامِ حَمُوۡلَةً وَّفَرۡشًا ؕ كُلُوۡا مِمَّا

اود ځاروو نه ځینی | بار وړونکی دی | او ځینې دفرش په کار راتلونکی دی | خورئ | دهغې نه

اوځاروی ئې پیدا کړی دی | چې بارونه اوړی | او ځینې دفرش په کار راتلونکی دی | تاسو دهغه

رَزَقَكُمُ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعُوۡا خُطُوٰتِ الشَّيۡطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمۡ

چې درکړی دی تاسو ته الله | اوپیروی مه کوئ | د قدمونو | دشیطان | بیشکه هغه ستاسو دپاره

روزۍ نه خوراک کوئ | چې کومه الله ﷻ درکړې ده | اودشیطان په قدمونو پسې مه ځئ | بیشکه هغه

عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ ۙ

دشمن دی ابنکاره |

ستاسو ښکاره دښمن دی

**آسان ترجمه قرآن**

الله هغه ذات دی چه هغه باغونه پیدا کړي دي چه دهغې نه څه (خیلو والادی چه) په ادانرو بانډې بره غوړولې هی، او څه د ادانرو [سهارې] نه بغیر اوچتیږی، او د کجورو باغونه او فصلونه، چه د هغې خوندونه جدا جدا دي، او خونه او انار، چه یو بل سره یوشان هم وي، او دیو بل نه مختلف هم چه کله

داوني میوه ورکري نو ددې میوو لره خوراك کښې استعمال کړئ اوکله چه ددې د کټ کولو وخت راشي نو د الله حق اداء کړئ او فضول خرچي مه کوئ. یاد ساتئ چه هغه فضول خرچو خلقو لره نه خوښوي. او د څاروو نه الله هغه ځناور هم پیدا کړي دي چه بار اوچتوي او هغه هم دي چه د زمکې سره لګیدلي وي الله چه کوم رزق درکړې دي دهغې نه خورئ او شیطان پسې مه ځئ یقین وکړئ چه هغه تاسو دپاره ښکاره دښمن دي.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ ﴾ او هم هغه [الله ﷻ] دے چاچه باغونه پیدا کړل هغه چه په منډونو یعني لرګو خیژولے شي [لکه انګور] اوهغه هم چه په منډو نشي خیژولے [یا خو په دې وجه چه زیلئ لکه تنې والا درخته نه لري یا سره د زیلئ د خیژولو رواج نه وي لکه خربوزه ختکے او هندوانه وغیره] ﴿ وَّالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ ﴾ اود کهجور ونے [درختی] او فصل [هم هغه پیدا کړل چه] په کښې دخوراك څیزونه د مختلف قسم کیږي [یعني ترې حاصلیږي] ﴿ وَالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ ﴾ او زیتون او انار ئې هم [پیدا کړل] ﴿ مُتَشَابِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ﴾ چه [انار انار] یو تر بله [او زیتون په زیتون یو تربله د رنګ، مزے ، شکل اومقدار په بعضې صفتونو کښې هم] یو دبل پشان وي او [کله] یو دبل پشان هم نه وي [او الله ﷻ پیدا کړل او اجازت ئې ورکړو چه] ﴿ كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ ﴾ ددې ټولو پیداوار اوخورئ [دهغې وخت نه هم] چه رابرڅیره شي [او پخې شوې نه وي] ﴿ وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ﴾ او [البته دے سره دومره ضرور دی چه] په دې کښې چه کوم حق [دشریعت له مخې] واجب دے [یعني خیرخیرات] هغه ددې د ریبلو [شوکولو] په ورځ [مسکینانو ته] ورکوئ ﴿ وَلَا تُسْرِفُوْا ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴾ او [په دې ورکولو کښې هم] د حد [شرعي اجازت] نه مه تیریږئ یقینا هغه [یعني الله تعالی] د حد [شرعي اجازت نه] تیریدونکي نه خوښوي ﴿ وَمِنَ الْاَنْعَامِ حَمُوْلَةً وَّفَرْشًا ؕ ﴾ او [څنګه چه باغونه او فصلونه الله ﷻ پیدا کړیدي دغه شان څاروي هم، نو] په څاروو کښې د ټولونه د لوړ قدوالا [هم] اود وړوکي قد [هم هغه پیدا کړل اودهغې په باره کښې هم لکه د باغونو او فصلونو ئې اجازت ورکړو چه] ﴿ كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ﴾ څه الله ﷻ تاسو له درکړی دی [او شریعت حلال کړیدی هغه] خورئ [دخپله طرفه د حرامولو حکمونه د خانه په جوړولوسره] ﴿ وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴾ دشیطان په پل مه روانیږئ، بیشکه هغه ستاسو په ډاګه دښمن دے [چه د حق د دلیلونو دواضح کیدلو باوجود هم تاسو ګمراه کوی].

## معارف او مسائل

په تیروشوو آیتونو کښې دمکې دمشرکانو دا ګمراهي بیان شوې وه چه دالله تعالی په پیدا کړو څاروو او دهغه په ورکړو نعمتونو کښې دغه ظالمانو خپل جوړ کړی بې ساه بې شعوره بتان دالله تعالی شریکان جوړ کړیدی، او کوم څیز چه دعبادت یاد خیرخیرات په ډول اوباسی په دې کښې څه برخه دالله تعالی او څه دبتانو اړدی، بیا دالله تعالی برخه هم په مختلفو چلونو او بهانو سره دبتانو په برخه کښې راولي، دغه شان نورو ډیرو جاهلی رسمونو ته ئې دشرعي قانون حیثیت ورکړیدي.

اوس ددې آیتونو څخه په رومبی آیت کښې الله تعالی داونو بوټو دمختلفو قسمونو فائدو او میوو په پیدا کولو کښې دخپل کامل قدرت دحیرانوونکو کمالاتو بیان اوکړو او په بل آیت کښې ئې

دغه شان د خناورو او خاروو د مختلفو قسمونو پیدا کول بیان او کړو او ددوئ په ګمراهئ باندې خبردارے ورکړو چه د بصیرت نه محرومه دې خلقو، قادر مطلق، علیم او خبیر سره څنګه بې خبره، بې شعوره بې ساه او بې وسه څیزونه دهغه شریکان جوړ کړیدی.

او بیانئ دوئ ته د صراط مستقیم او د عمل کولو د صحیح لارې هدایت او کړو چه هرکله ددې څیزونو په پیدا کولو او تاسوله ئې په ورکولو کښې څوک شریک او د برخې خاوند نشته نو په عبادت کښې ئې ورسره شریکان ګرځول د نعمت انتهائی ناشکری او ظلم دې چاچه دا څیزونه پیدا کړل او تاسوته ئې دراو بخښل او تاسو د پاره ئې داسې تابع کړل چه هرشان ئې استعمالولې شئ او بیانئ دغه ټول څیزونه تاسو د پاره حلال کړل ستاسو فرض دی چه دهغه د نعمتونو نه د فائدې اغستو په وخت دهغه د شکر حق یاد اولرئ او ادا ئې کړئ، شیطانی خیالات او جاهلانه رسمونه خپل دین جوړنکړئ۔

په رومبی آیت کښې د ﴿اَنْشَاَ﴾ معنی ده پیدائې کړل او، ﴿مَّعْرُوْشٰتٍ﴾ د عرش نه جوړدې چه معنی ئې پورته کول او اوچتول دی نود، معروشات، نه مطلب داونو هغه جیلغونه [بناخلې] دی چه په مناګانو خیژولې شی لکه انګور او خنې ترکاریانې او د ﴿وَّغَیْرَ مَعْرُوْشٰتٍ﴾ نه مراد هغه اونې بوټې دی چه د سره جیلغونه [بناخلې] نۀ لری، یا خولری مګرهم په زمکه خوریږی او مناګانوته نشی خیژولې لکه هندوانه، خربوزه وغیره شوه۔

د ﴿اَلنَّخْلَ﴾، معنی ده د کهجورې [خورما] اونه او د، زرع، معنی ده هرقسم فصل، زیتون، د زیتون اونې [درختې] او میوې دواړوته وئیلې شي، د، رمان، معنی انارده۔

په دې آیتونو کښې الله تعالی خواول په باغونو کښې د پیدا کیدونکو اونودوه قسمونه بیان کړل، یو هغه چه جیلغونه [بناخلې] ئې پورته خیژولې شی، بل هغه چه جیلغونه [بناخلې] ئې پورته نشی خیژولې - په دې کښې ئې خپل حکمت بالغه او د قدرت رمزونوته اشاره کړیده چه هم دیوې خاوړې، یو اوبو او یوې فضائې ئې څنګه څنګه مختلف اونې بوټی پیدا کړل، بیا ددې د میوؤ په تیاریدو، په شینوالی او تازګئ او په دې کښې د اینبودلې شوې زرګونو خاصیتونو او نخښو نښانو په لحاظ سره ئې د خنې اونو بوټو مزاج داسې جوړ کړو چه بغیر دهغې د جیلغونو [بناخلو] پورته کولو نه خو اول میوه نۀ ورکوی او که ورکوی نوودہ نۀ کوی، او باقی نه پاتې کیږی لکه انګور وغیره شو او د خنو مزاج ئې داسې جوړ کړو چه اول خوئې جیلغونه [بناخلې] په خیژول هم نۀ خیژی او که او خیژی نو میوه ئې کمزورې وی لکه خربوزه او هندوانه شوه، او خنې اونې په مضبوطو تنو باندې او درولو سره دومره لوړې ئې او خیژولې چه انسان دومره لوړوالی ته نۀ شوې خیژولې او د اونو دا قسما قسم کیدل بې هیسه او بې وجې نه دی بلکه ددې د میوؤ په لحاظ سره دې کښې لوئې حکمتونه دی، خنې میوې هم په زمکه او خاوړه کښې وده کوی او پخیږی او خنې په خاوړې لګیدو سره هم خرابیږی، خنو د پاره په لوړو لوړو څانګو باندې زوړندیدو سره په مخه تازه هوا خوړل، د نمر او ستورو د پلوشو نه رنګ حاصلول ضروری دی، هر یو له قدرت، دهغې مناسب انتظام کړیدې:

﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِیْنَ﴾

دې نه پس په خصوصیت سره ئې د ﴿اَلنَّخْلَ﴾ او، زرع، یعنی د قجورې د اونې او د فصل بیان او کړو، د قجورې میوه عموماً خلق د مزې د پاره خوری او د ضرورت په وخت تر د پوره خوراکې کارهم اغستې شی، په فصلونو کښې پیدا شوی جنسونه عموماً د انسانانو د غذا او د خاروؤ د ګیاه [وښو] په کار راوستلې شی، ددې دواړو بیانولو نه پس ئې او فرمائیل: ﴿مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ﴾ ضمیر، زرع،

ته هم راجع کیدې شي او ، نخل ، ته هم ، په هرحال مراد تر دواړه دی ، معنی ئې داده چه په کهجورو کښې مختلف قسمونه دی او دهرقسم مختلف خوند دې ، دفصل خوپه سوونو قسمونه دی چه هریو بیل بیل خوندا وفائدې لري - هم یو آب وهوا سره دیوې زمکې نه راوتونکې میوؤ کښې دومره لوئې بیلتون اوبیا دهرقسم فائدې اوخاصیتونه چه حیرانوونکی اختلاف اورنګارنګی لري ، دیوادنی بصیرت خاوندلره په دې منلو باندې مجبوره کوي چه ددې پیدا کوونکې داسې یو ذات دې چه قیاس او اندازه ئې څوک نشي لګولې او انسان ئې دعلم او حکمت اندازې لګولونه هم بیخی بې وسه دې -

دې نه پس ئې دوه نور څیزونه ﴿الزَّیْتُوْنَ﴾ او ﴿وَالرُّمَّانَ﴾ [دزیتون میوه او انار] دزیتون میوه ، میوه هم ده اوترکاري هم او ددې تیل هم دتولو تیلونه صفار انړه [رونړا] ، عمده هم دی اوبې شمیره فائدې او خاصیتونه لري ، چه عام ، خاص ټول ئې پیژني ، ددې دواړو میوؤ ذکر کولونه پس ئې اوفرمائیل : ﴿مُتَشَابِهًا وَّغَیْرَ مُتَشَابِهٍ﴾ یعنی دغه دواړه قسمه میوې خپل منځ کښې دخوند ، رنګ او مقدار په لحاظ سره یوشان هم وي او بیل بل شان هم -

ددې ټولو قسمونو داونو او میوؤ په ذکر کولو سره په دې آیت کښې انسان ته دوه حکمونه ورکړې شویدي - رومبے حکم خوپخپله دانسان دخواهش اونفس تقاضې پوره کوی ، چنانچه فرمائی :

﴿كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖۤ اِذَاۤ اَثْمَرَ﴾ [یعنی کله چه دغه اونو کښې میوه رابرسیره شي نو هغه تر خورئ ، په دې کښې اشاره اوشوه چه دې ټولو قسمونو ونو او بوټو پیدا کولونه مطلب دالله تعالی خپل ضرورت پوره کول نۀ دی بلکه خاص ستاسو دفائدې دپاره ئې پیدا کړیدی نو تاسو ته تر دفائدې پورته کولو او خوړلو اختیار دې ﴿اِذَاۤ اَثْمَرَ﴾ سره ئې دې ته اشاره اوکړه چه داونو ښاخونو او لرګونه میوه رابرخیره کول ستاسو په وس کښې نۀ دی ، کله چه دالله تعالی په حکم میوې رابرخیره شي نو هغه وخت ئې هم تاسو دخوړلو اختیار لرئ خواه هغه لاتر اوسه پخې هم نه وي -

**دوهم حکم :** بل حکم : ﴿وَاٰتُوْا حَقَّهٗ یَوْمَ حَصَادِهٖ﴾ د ﴿اٰتُوْا﴾ معنی ده ، راوړئ ، یا ، اداکړئ ، او ، حصاد ، دفصل ریبلو یا دمیوؤ شوکولو وخت ته وئیلې شي - او په ، حقه ، کښې ضمیر دخوراک هرهغه څیز ته راجع دې چه ذکر ئې پورته راغلې دې - معنی ئې داده چه دغه ټول څیزونه خورئ ، څکئ او استعمالوئ ، خو یوه خبره یاده لرئ چه دفصل دریبلو یا دمیوې دشوکولو په وخت ددې حق هم اداکوئ ، دلته دحق نه مراد په غریبانو مسکینانو باندې ئې خیرات کول دی لکه چه په بل یو آیت کښې په عامو الفاظو سره ارشاد فرمائي :

﴿وَالَّذِیْنَ فِیْۤ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ۝ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ﴾ یعنی دنیکانو بندګانو په مالونو کښې یو ټاکلې حق وي دغوښتونکو او ناغوښتونکو فقیرانو او مسکینانو -

ددې صدقې [خیرات] نه مراد عام خیرات دې یا تر مراد هغه صدقه ده چې دزمکې زکواة یا عُشر ورته وئیلې شي . په دې کښې دتفسیر داما مانو ، دصحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله دوه قوله دی ، بعض حضراتو اول قول اختیار کړې دې او وجه دا بیانوی چې دا آیت مبارک مکې دې او زکواة ورکول دمدینې منورې دهجرت نه دوه کاله پس فرض شویدی څکه تر دزمکې زکواة [عُشر] نشی مراد اغستې ، او ځنې حضرات دا آیت مدنی بولی څکه د ، حق ، نه مراد دزمکې زکواة [عُشر] اخلی

او دتفسیر امام ابن کثیر په خپل تفسیر کښې او ابن عربی اندلسی په احکام القرآن کښې ددې فیصله داسې کړیده چه آیت که مکی وی او که مدنی ، په دواړو صورتونو کښې ددې آیت مبارک

څخه دَزمکي زکواة [عشر] مراد اغستي شي ولې چه ددوئ څخه د وجوب زکوة اصل حکم په مکه کښي نازل شوې وو او د سورة مزمل آيت دَزکواة دواجبيدو اصل حکم باند مشتمل دې او داسورت په اتفاق سره مکي دې البته دَزکواة مقدار اونصاب دَهجرت نه پس تاکلې شوېدې-(۱)

په دې بناد اندازې اونصاب په باره کښي داآيت مجمل دې او په مکه معظمه کښي دَدے دَتاکلو ضرورت هم څکه نهٔ ووچه هلته مسلمانان په اطمينان کښي نه وو چه هلته به دَزمکو يا باغونو پيداوار په آسانه حاصل کړيشي په دې وجه هلته هم هغه دستورپه دغه زمانه کښي چليدوکوم چه نيکانو خلقوداسې اختيارکړې ووچه دفصل دَرېبلو يادَميوؤدَشوکولوپه وخت کښي به ئې په دغه موقعه باند موجودفقيرانومسکينانوته څه ورکول،خوڅه خاص مقدارئے تاکلې نهٔ ووځکه چه دَ اسلام نه مخکښې په نوروأمتونوکښي ئې هم رواج لرلولکه قرآن کريم آيت:

﴿إِنَّا بَلَوْنَاهُمْ كَمَا بَلَوْنَا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ﴾ کښي ذکر دی .دَهجرت نه دوه کاله پس رسول الله ﷺ دَنورو مالونو دَ دَ نصاب پشان دَزکواة دَاندازې تفصيل هم په ذريعه دَوحي بيان کړو ،لکه چه دَحضرت معاذ بن جبل ؓ دَابن عمر ؓ اوحضرت جابربن عبدالله ؓ په روايت سره دَاحاديثوپه تولو کتابونو کښے چه داسې منقول دی: ﴿ماسقت السماء ففيه العشر وماسقي بالسانية فنصف العشر﴾(۲)[دَباراني زمکوپه پيداوارکښے لسمه برخه زکواة ورکول واجب دی اوکومې زمکې چه په کوهيانوسره خړوبولې شی دَهغې په پيداوارکښې شلمه برخه دَپيداوارزکواة واجب دې-

په اسلامي شريعت کښي دَهرقسم زکواة بُنيادی أصول داابنبودلې شويدی چه په کوم پيداوار باند محنت،مشقت اولګښت کم شوې وی دَهغې زکواة به زيات وی اوځومره چه لګښت او محنت پرزياتيږی دَهغې په نسبت به ئې زکواة کميږی،مثلاً چاته چه زَرَه بنځه کړې خزانه په ګتو ورشي يادَسرو،سپينوزرو،خزانه بيامومی نوپه هغې کښې پنځمه برخه زکواة ورکول لازم دی- وريسې دَباراني زمکې نمبردې چه محنت اولګښت پرکم نه کم کيږی نودَپنځمې برخې په نيمه يعنی لسمه برخه زکواة پکښې واجب دې،کومه زمکه چه په کُوهويا په راښيول نهری اوبو خړوبولې شی نوپه دې باند هرکله چه محنت اوخرچ زيات راځی ځکه دَلسمې برخې په نيمه شلمه برخه زکواة پکښې واجب دې،وريسې عام نغديت سرواوسپينوزرواودَتجارت په مال کښې دَشلمې برخې په نيمه څلويښتمه برخه زکواة ځکه واجب دې چه په دې محنت اولګښت زيات کيږی-

هرکله چه دَقرآن کريم دَدې آيت اودَحديث دَدې بيان شوی روايت په جوړدَزمکې په پيداوار کښې څه نصاب نهٔ دې تاکلې شوې ځکه دَامام اعظم ؒ اوامام احمد بن حنبل مذهب دادې چه د زمکې پيداوارکه هرڅومره وی [يعنی که لږوی اوکه ډير]په هرصورت کښې زکواة پکښې واجب دې،دَسورت بقره په دې آيت: ﴿أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ﴾ کښې هم دَزمکې دَپيداوارنصاب نهٔ دې تاکلې شوی[ترجمه ئې داده.لګوئ دَخپلې حلالې ګټې څنې اودَهغه څيزڅنې چه مونږه ستاسودَپاره دَزمکې نه راوَبنکلې دې]بل خوارسول الله ﷺ تجارتی مالونو او څاروؤ دَپاره نصاب داسې تاکلې دې چه وې فرمائيل چه دوه پنځوس نيموتولوسپينوزرونه په کم

---

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۷۶، وأحكام القرآن لابن العربي، سورة الأنعام، مسئلة وقت وجوب الزكاة الخ: ج ۲، ص ۲۹۸

(۲) سنن النسائي، كتاب الزكاة، باب ما يوجب العشر وما يوجب نصف العشر: ج ۱، ص ۳۴۳، وسنن أبي داود، كتاب الزكاة، باب صدقة الزرع: ج ۱، ص ۲۲۵ وصحيح مسلم، كتاب الزكاة: ج ۱، ص ۳۱۶

کښې زکواة نشته .دَخلو ښښتو ګډو ،چيلو ،پښخو او ښانونه په کمه کښې زکواة نشته-(۱)

په آخر د آيت کښې فرمائي: ﴿وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ إِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ﴾ [يعنى حدنه زيات لګښت خکه مه کوئ چه الله تعالى فضول خرچه خلق نهٔ خوښوي]-

دلته دا سوال پيدا کيږي چه هر کله څوک دَالله تعالى په لار کښې خپل ټول مال څه چه خان هم اولګوی نو اسراف وئيل خولرې خبره ده، دَحق اداکول ورته وئيل هم مشکل دی، بيا دلته اسراف نه منع کول څه مطلب لري؟ جواب ئې دادې چه په يوه خاصه شعبه کښې دَاسراف کولو نتيجه دَعادت له مخې په نورو شعبو کښې قصور او کوتاهي کول وي، يعنى څوک چه په خپلو خواهشاتو کښې بيدريغه دَحدنه زيات خرچ کوی هغه عموماً دَنورو دَحقونو په اداکولو کښې کوتاهي کوي-دلته دَداسې قسم کوتاهئ کولو نه منع راغلې ده،مطلب دا چه هر کله څوک خپل ټول مال دَالله تعالى په لار کښې اولګوی او تش تور کښيني نو دَبال بچ[اولاد] او دَنورو خپلوانو بيلکه دَخپل خان حقونه به څنګه اداکوی؟ په دې وجه داهدايت اوکړې شو چه دَالله تعالى په لار کښې خرچ کول درميانه خکه وی چه دَټولو حقونه اداشي-

ثَمٰنِيَةَ أَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّأْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ
| اته | جوړې دی | دګډونه | دوه دی | او دچيلو[بزو]نه
| ټولې اته جوړې دی | دګډونه دوه | او د چيلو[بزو] نه

اثْنَيْنِ ۗ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنْثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ
دوه دی| ورته او وايه|آيا دواړه نران | حرام کړی دی الله| يا دواړه ښځې |يا هغه چې مشتمل دی
دوه دی| [اے پيغمبره!] دوئ نه تپوس اوکړه چې دوه نران په کښې الله حرام کړی |او که دواړه ښځې ياهغه

عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنْثَيَيْنِ ۗ نَبِّئُوْنِيْ بِعِلْمٍ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ
په هغې |ارحمونه |ددغه دواړو ښځو|خبر راکړئ ماته| په علم سره |که يئ تاسو| رښتني
چې دمادو په خيټو کښې پراته دی| ماته په دليل سره صحيح صحيح اوښائي |که تاسو ايمان لرئ

وَمِنَ الْإِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ۗ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ
او داوښانونه |دوه دی |او دغوايانونه| دوه دی |ورته او وايه| آيا دواړه نران | حرام کړی دی الله
او په اوښانو کښې دوه قسمونه دی| او په غوايانو کښې دوه| [اے پيغمبره!] تپوس ترې اوکړه چې آيا دواړه نران الله حرام کړی

أَمِ الْأُنْثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنْثَيَيْنِ ۗ
يا دواړه ښځې |ياهغه |چې مشتمل دی |په هغې باندې| رحمونه |ددغه دوو ښځو
دی او که دواړه مادې| يا هغه مادې چې ددې مادو په خيټو کښې پراته دی

أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ وَصّٰىكُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ
يا وئ تاسو | حاضر | کله | چې حکم کولو تاسو ته الله| په دې سره| نو څوک دې | دير ظالم
آيا تاسو حاضر ولاړ وې څه وخت چې الله ﷻ تاسو ته ددې وصيت کولو | نو دهغه چانه لوئې ظالم

(۱) ددے احاديثو تفصيل دپاره او ګورئ: سنن ابي داود، كتاب الزكاة، باب في زكاة السائمة: ج۱، ص۲۱۸، ۲۱۹

مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ

دهغه چانه چی تړی | په الله باندې | دروغ | دپاره ددې چی گمراهه کړی | خلق | بې دعلم نه

څوک کیدشی چی په الله ﷻ باندې بغیر دلیل نه تهمت لګوی | چې په دې باندې خلق ګمراه کړی

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝

بیشکه الله | نه ښائی لارښیغه | قوم | ظالمانوته |

بیشکه الله ﷻ ظالمانو ته لار نه ښائی |

## آسان ترجمه قرآن

(دڅارووه) تولې اتهٔ جوړې الله پیدا کړې دي، دوه قسمه (نر او ماده) د ګډو د نسل نه او دوه د چیلو د نسل نه . لږ د دوی نه تپوس وکړه چه: آیا دواړه نران الله حرام کړي دي یا دواړه مادې ؟ یا هغه بچې چه د دواړو نسلونو د مادې په خیټه کښې موجود وي ؟ که چرې تاسو ریښتینې یئ نو څه علمي بنیاد باندې ماته جواب را کړئ او دغه شان د اوښانو نه هم دوه قسمه (نر او ماده الله) پیدا کړي دي ، او د غواګانو هم دوه قسمونه .دوی نه ووایه چه: آیا دواړه نران الله حرام کړي دي یا دواړه مادې ؟ یا هغه بچې چه د دواړو نسلونو د مادې په خیټه کښې موجود وي ؟ آیا تاسو هغه وخت پخپله حاضر وئ کله چه تاسو ته الله ددې حکم درکړې وو؟ (که چرې نه او یقینًا نه) نو بیا دهغه کس نه به لوئ ظالم څوک وي چه په الله دروغ وائي دي د پاره چه د څه علمي بنیاد نه بغیر خلقو لره ګمراه کړي ؟ حقیقت دا دې چه الله تعالیٰ ظالمان هدایت ته نه رسوی.

## خلاصه تفسیر

[اوڅاروی چه حلالول اوحرامول په کښې کوئی]﴿ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ؕ ﴾ اته نر اوښځه [ئې پیدا کړل] یعنی په ګډه[بزه] [اوګډ][مږ] کښې دوه قسمه [یو نر یو ښځه] اوپه چیلئ [بزې]کښې دوه قسمه [یو نر اویو ښځه [تاسو [ورته] ﴿ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ ﴾ اووائې چه [داخو اوښائی چه] آیا اللهﷻ ددې [دواړو څاروو] دواړو نرانو ته حرام وئیلی دی یا دواړو ښخوته [ئې حرام وئیلی دی] ﴿ اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ ﴾یا هغې [بچی] ته چه دواړه ښځې ئې په [خپلو]خیټو کښې لری [هغه بچے چه نروی اوکه ښځه یعنی تاسو چه په مختلفو صورتونو سره د حرامی دعویدار یئ نو دا حرامول اللهﷻ کړیدی په دې خو څه دلیل قائمول پکار دی چه دوه طریقے ئې دی یو خو دا چه دچا رسول یا فرښتے په واسطے سره وی نو د پیغمبرئی او وحی مسئلے نه خو تاسو انکاریان یئ خکه دا اړخ اختیاولے نشئ نو دعوے دپاره داسې طریقه اوپاکلے شوه چه پخپله درته اللهﷻ نیغ په نیغه دا احکام درکړیدی نو] ﴿ اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ وَصّٰىكُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا ۚ ﴾ آیا تاسو [دغه وخت] حاضر وئ کله چه اللهﷻ تاسوته ددې [حلالولو او حرامولو] حکم درکړو[اوښکاره خبره ده چه داسې دعوی خوهم کیدلې نشی. نو ثابته شوه چه ورسره هیڅ دلیل نشته]. ﴿ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ﴾ نو[هرکله چه داثابته شوه چه دے دعوے دپاره هیڅ دلیل نشته نو یقینی خبره ده چه] هغه چا نه به څوك غټ ظالم [اودروغژن] وی چه په اللهﷻ باندې بے دلیله [دحلالولو او حرامولو په باره کښې] په دروغه تور

پوري کړي ﴿لِيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ د پاره ددې چه خلق ګمراه کړي [يعنی داسې کس به لوئې ظالم وی او] ﴿ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ ﴾ يقيناً الله ﷻ چه ظالمانو خلقو ته [دجنت] لاره [په آخرت کښې] اونه ښائی [بلکه دوزخ ته به يئ ليږی نودا خلق به هم ددې جرم په سزا کښې دوزخ ته ځي].

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلْ | لَّآ أَجِدُ | فِيْ مَآ | |
| اووايه | نۀ مومم زه | په هغې کښې | |
| .................[ائې پيغمبره] ورته اووايه چې ماته کومه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُوْحِيَ | إِلَيَّ | مُحَرَّمًا | عَلٰى طَاعِمٍ | يَّطْعَمُهٗٓ | إِلَّآ |
| چې وحی شوی ده | ماته | حرام کړې شوې څيز | په خوړونکی باندې | چې خوری ئې هغه | مګر |
| وحی شوې ده په هغې کښې خوزه په يو خوړونکی باندې دخوراک دپاره هيڅ څيز حرام نه مومم | | | | | مګر |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ يَّكُوْنَ | مَيْتَةً | أَوْ دَمًا | مَّسْفُوْحًا | أَوْ لَحْمَ | خِنْزِيْرٍ | فَإِنَّهٗ |
| که وی | مرداره | ياوينه | بهيدونکی | يا غوښه | دخنزير | پس بيشکه هغه |
| دا چې مردار وی | ........يابهيدلې وينه | .........يا د خنزير غوښه وی | ...ځکه چه دا | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رِجْسٌ | أَوْ فِسْقًا | أُهِلَّ | لِغَيْرِ اللّٰهِ | بِهٖ | فَمَنِ اضْطُرَّ |
| پليته ده | يانا جائزه ذبيحه وی | چې آواز شوې وی | بغير د الله | په هغې باند | پس هغه څوک چې مجبوره کړې شو |
| پليته ده او ياناجائزه ذبيحه وی چې د الله ﷻ نه سوا دبل چانوم پرې اخستې شوې وی | څوک چې محتاج شی | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَيْرَ بَاغٍ | وَّلَا عَادٍ | فَإِنَّ رَبَّكَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ |
| حال دا چې نافرمانی کونکې نه وی | اونه زياتې کونکې وی | پس بيشکه رب ستا | بښونکې دې | رحم کونکې دې |
| نونافرمانی دې نه کوی | اودحدنه دې زياتې نه کوی | بيشکه ستا رب بښونکې اومهربان دې | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَعَلَى الَّذِيْنَ | هَادُوْا | حَرَّمْنَا | كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ | وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ | |
| اوپه هغه کسانو باندې | چې يهوديان شو | حرام کړل مونږه | هرځناور نوکانو والا | اود غوييانو نه اود ګډو بيزو نه | |
| اوپه يهوديانو باندې مونږ د نوکونو ټول ځناور حرام کړی وو | اوپه غوئيو مال او چيلو کښې | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَرَّمْنَا | عَلَيْهِمْ | شُحُوْمَهُمَآ | إِلَّا | مَا | حَمَلَتْ ظُهُوْرُهُمَآ |
| حرام کړل مونږه | په هغوئ | وازګې دهغوئ | مګرنه | هغه وازګه | چې بار کړی به وه اشاګانو دهغوئ |
| مونږ پرې وازګه حرامه کړې وه | ......مګرهغه چې په ملا پورې لګيدلې وی | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَوِ الْحَوَايَآ | أَوْ مَا | اخْتَلَطَ | بِعَظْمٍ | ذٰلِكَ | جَزَيْنٰهُمْ |
| يا کلمو | يا هغه | چې لګيدلې به وه | دهډو کوسره | دا | بدله ورکړې وه مونږ هغوئ له |
| يا کولموپورې انختې وی | يا هډوکو پورې لګيدلې وی | دا مودوئ ته دسرکشۍ سزا | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِبَغْيِهِمْ | وَإِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ۝ | فَإِنْ | كَذَّبُوْكَ |
| په سبب دسرکشۍ دهغوئ | اوبيشکه مونږه خامخا ربښتنی يو | نوکه | دوئ دروغ اوګڼړی تا |
| ورکړې وه او داخه چې وايو بالکل ربښتيا دی | ............نوکه دوئ تا دروغژن اوګڼړی | | |

فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُوْ رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ ۚ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهٗ

نو او وايه|چي رب ستاسو| خاوند درحمت فراخه دي | اونشي واپس كولي څوك| عذاب دهغه|

نوته ورته اووايه چي ستاسورب دفراخه رحمت خاوند دي | ............. اودهغه عذاب د

عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝

دقوم مجرمانو نه |

مجرمانوخلقونه روستوكيدي نشي

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره ! دوی ته) ووایه چه: کومه وحی په ما باندې نازله شوې ده هغې نه څه داسې شیز نه مومم چه دهغې خوراك به خوړونكي دپاره حرام وي خو که هغه مرداره وي ،یا وینه بهیدونکې وی، یا د خنزیر غوښه وي ، ځکه چه دا پلیته ده .یا هغه داسې ګناه ځناور وي چه هغې باندې دالله نه سوا دبل چا نوم اخستې شوې وی خو څوك چه( دي شیزونو نه دیو خوړلو ته ) انتهائي مجبوره شي چه هغه نه د څه لذت حاصلولو د وجې نه داسې کوي ، او نه د ضرورت د حد نه واوړي، نو بې شکه الله ډیر بخونکې ، ډیر مهربانه دي او یهودو باندې مونږ د هر یو نوك والا ځناور حرام کړي وو . او د غواګانو او بیزو (چیلو) د اجزاؤ نه دهغې وازدې مونږ حرام کړې وې ، خو کومه وازده چه د هغوی په شاګانو یا په کلمو باندې لیپدلي وی ، یا د یو هډوکی سره انختې وی هغه ترې مستثنې وه.دا مونږ هغوی ته د هغوی د سر کشئ سزا ورکړي وه.او پوره یقین وکړه چه مونږ ریښتینې یو .بیا هم که دا (کافران) تاله دروغژنوي نو ته ووایه چه :ستاسو پروردګار ډیر فراخه رحمت والا دې او دهغه عذاب د مجرمانو نه نه واپس کیږي.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْ مَآ اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ يَّطْعَمُهٗٓ﴾تاسو اووائي چه [دكومو حيواناتو چه خبره كيږي دهغې په باره كښې]چه څه احكام د وحى په ذريعه ماته راغلى دى، په هغې كښې خو زه هيڅ حرامه غذا نه بيان مومم چا خوړونكى دپاره چه خورى ئې [كه نارينه وى كه زنانه] ﴿اِلَّآ اَنْ يَّكُوْنَ مَيْتَةً﴾ مگر [البته څه څيزونه حرام بيا مومم] دا چه هغه مردار [څاروے] وى [چه د شرعى ذبح كولو نه بغير مرشى د كوم چه ذبح كول واجب وى] ﴿ اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا اَوْ لَحْمَ خِنْزِيْرٍ﴾ يا دا چه بهيدونكے وينه وى يا دخنزير غوښه وى ﴿ فَاِنَّهٗ رِجْسٌ﴾ ځكه چه هغه [خنزير] بيخى ناپاك دے [په دې وجه ئې تولې برخے نجسے اوحرامے دى، داسې نجس ته نجس العين وائى] ﴿اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ﴾ يا كوم [څاروى وغيره] چه دشرك ذريعه [داشان] وى چه دغير الله په نوم كړې شوې وى [هغه ته د نزديكت حاصلولو په قصد ، نو دا تول حرام دى] ﴿ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ﴾ بيا [هم په دې كښې ئې دومره آسانى راوستې ده چه] څوك [چه دلوږے نه ډير زيات] بےتابه شى په شرط ددې چه نه خو [په خوړلو كښې ئې] لتوونكے د خوند وى اونه [دضرورت اوحاجت د اندازے نه] پورې وتوونكے وى ﴿ فَاِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ نو [په داسې حالت كښې به ورته ددغې څيزونو د خوراك څه ګناه هم نه وى] واقعى ستاسورب [هغه چا دپاره] غفور رحيم دے [چه په داسې وخت كښې ئے هم داشان رحم اوكړو چه د ګناه په څيز ئے هم ګناه راؤ نه ويسته]. ﴿ وَعَلَى

أَلَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ﴾ او په يهودو باندې مونږ تول نوكدار ځناور حرام كړى وو ﴿وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُوْمَهُمَآ﴾ او دغوا او چيلۍ [دبدن په برخوكښې د] دواړو وازدے پدوى [يهوديانو] باندې مونږ حرامے كړې وے ﴿إِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُوْرُهُمَآ﴾ مگر هغه [وازدے ترې مستثنى وے] چه ددې [دواړو] په ملا يا كولمو كښې لگيدلى دې ﴿أَوِ الْحَوَايَآ أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ﴾ يا هغه [وازدې] چه هډوكو پورې يو ځائې وى [نورے تولې وازدے حرامے وے نو ددغې ځيزونو حرامول ددې د ذات په حيث مقصود نه وو بلكه] ﴿ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِبَغْيِهِمْ ۖ وَإِنَّا لَصٰدِقُوْنَ﴾ ددوى د ورانكارئ په سبب مونږ ورته دا سزا وركړې وه او مونږ يقينًا رښتونى يو ﴿فَإِنْ كَذَّبُوْكَ﴾ بيا [ددې بيان شوى تحقيق نه پس هم] كه دوى [مشركان] تاسو ته [نعوذ باالله په دې مضمون كښې صرف په دې وجه] دروغژن اووائى [چه پدوى عذاب نه راځى] ﴿فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُوْ رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ﴾ نوتاسو [په جواب كښې] اووائې چه ستاسو رب د ډير فراخ رحمت خاوند دے [دبعضې حكمتونو په بنا زر راګيرول نه كوى] ﴿وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهٗ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ﴾ او [ځكه داسې مه كوئى ګڼرئى چه هميشه به دوى هم دغسې بچ كيږى كله چه دغه ټاكلے وخت راشى نو دغه وخت به] دهغه عذاب د مجرمانو خلقو نه [په هيڅ شان] نه ايساريږى.

سَيَقُوْلُ　الَّذِيْنَ　أَشْرَكُوْا　لَوْ

| ضرور به وائى | هغه كسان | چى شرك ئې كړې دې | كه

| دا مشركان به ستاپه [جواب كښې] وائى كه

شَآءَ اللهُ　مَآ أَشْرَكْنَا　وَلَآ اٰبَآؤُنَا　وَلَا　حَرَّمْنَا

غوښتلې الله [نۀ به وۀ كړې شرك مونږه | اونه پلارانو زمونږه | اونۀ به وو | حرام كړې مونږ

الله ﷻ غوښتلې نومونږ به شرك نه وو كړې | اونه به موپلار نيكه كولو | اونه به مو دځپل طرفه

مِنْ شَيْءٍ ۭ كَذٰلِكَ　كَذَّبَ　الَّذِيْنَ　مِنْ قَبْلِهِمْ　حَتّٰى

څه ځيز | دارنګې | دروغ ګڼرلې وۀ حق | هغه كسانو | چى مخكښى ددوئ نه وۀ | تر هغې پورې

څه ځيز حرام ګڼرلو | ددوئ نه مخكښې خلقو هم دغه شان خبرونه انكار كړې وو | ترڈې چې

ذَاقُوْا　بَأْسَنَا ۭ　قُلْ　هَلْ عِنْدَكُمْ　مِّنْ عِلْمٍ

چى اوڅكو هغوئ | عذاب زمونږه | دوئ ته اووايه | ايا شته　ستاسو　سره | څه علم

هغوى زمونږ عذاب اوڅكى | ......ورته اووايه چې تاسوسره څه دليل شته

فَتُخْرِجُوْهُ　لَنَا ۭ　إِنْ تَتَّبِعُوْنَ　إِلَّا　الظَّنَّ　وَإِنْ أَنْتُمْ　إِلَّا

چى راۀباسئ هغه | مونږته | نۀ كوئ پيروى تاسو | مكر | دګمان | اونۀ يئ تاسو | مكر

چې مونږ ته ئې ښكاره كړئ | تاسوخو تش په ګمان چليږئ | [دحقيقت نه بې خبره يئ] او په

تَخْرُصُوْنَ۝ قُلْ فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ۚ فَلَوْ شَآءَ

قیاسونه لګوئ | اووایه | پس الله لره دي | دلیل | حقیقت ته رسیدلی | نو که غوښتلي هغه

په اټکل پسې روان یئ | اووایه چې الله تعالی سره کامل دلیل دې | او که الله ﷻ او غوښتلی

لَهَدٰىكُمْ اَجْمَعِيْنَ۝ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ الَّذِيْنَ

نو لاره به ئې ښودلې وه تاسو | تولو ته | اووایه | راولئ | ګواهان خپل | هغه

نو تاسو ټولو ته به ئې خودنه کړې وه | ورته اووایه راشئ خپل ګواهان راولئ

يَشْهَدُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ هٰذَا ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَلَا

چې ګواهي کوي | چې بیشکه الله | حرام کړي دي دا څیزونه | نو که | ګواهي اوکړه دوئ | نو مه کوه

چې ګواهي ورکړي | چې دا (فلانی) څیزونه الله ﷻ حرام کړي دي | نو که دوئ پخپله شهادت ورکړي

تَشْهَدْ مَعَهُمْ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا

ته ګواهي | د دوئ سره | او مه کوه پیروي | د خواهشاتو | د هغه کسانو | چې دروغ ګنړي | آیتونه زمونږ

نو ته ورسره شهادت مه ورکوه | او د هغې خلقو د خواهشاتو تابعداري مکوه چې زمونږ آیتونه ئې دروغ ګنړلي دي

وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ وَهُمْ بِرَبِّهِمْ

او هغه کسان | چې ایمان نه راوړي | په آخرت باندې | او هغوئ | د رب خپل سره

او هغه کسان چې د الله ﷻ په ذات باندې او په آخرت باندې ایمان نه لري | نو هغوئ د خپل رب

يَعْدِلُوْنَ۝

برابر وي نور څوک |

سره نور څوک برابروي |

## آسان ترجمه قرآن

کومو خلکو چې شرک اختیار کړي دي هغوی به دا وائي چې: که د الله خوښه وې نو نه به مونږ شرک کړي وو، او نه زمونږ پلار نیکه، او نه به مونږ څه څیز حرام کړي وو. د دوی نه مخکښې خلکو هم دغه شان (پیغمبران) دروغژن کړي وو، تر دې چې هغوی زمونږ د عذاب مزه وڅکله. ته دوی ته ووایه چې: "تاسو څخه څه علم شته چې مونږ ته ئې پیش کړئ؟ تاسو چې کوم څیز پسې ځئ هغه د ګمان نه سوا نور څه نه دي، او ستاسو کار دې نه سوا نشته چې تاسو وهمي اندازې لګوئ (اې پیغمبره! دوی ته) ووایه چې: داسې دلیل خو د الله دې چې (زړونو ته) رسیدونکي وي. نو که هغه خوښه کړې نو ټول خلق به ئې په زور هدایت ته راوستي وو. دوي ته ووایه چې: هغه ګواهان خو مخامخ راولئ چې دا ګواهي ورکړي چې الله دا څیزونه حرام ګرځولي دي. بیا که دوئ پخپله ګواهي ورکړي هم نو ته دوی سره په ګواهي کښې مه شریکیږه او د هغه خلقو خواهشاتو پسې مه ځه چې زمونږ آیتونه ئې دروغژن کړي دي، کوم چې په آخرت باندې ایمان نه لري او چې نور (په خدایۍ کښې) د الله سره برابروي.

## خلاصه تفسیر

﴿ سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا ﴾ دامشرکان داسې وئيلو ته تيار دی ﴿ لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا ﴾ چه که الله ﷻ ته
[د رضا په ډول دا] منظور وے [چه مونږ دے شرك اوحرامول اونکړو يعني شرك او حرامول کول
ئے خوښ نه وے] نو نه به مونږ شرك کولو ﴿ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَيْءٍ ﴾ اونه به زمونږ پلارانو
نيکونو [شرك کولو] اونه به مونږ [اونه زمونږ مشرانو] څه څيز [کوم چه موږ راندي بيان شو]
حراموله شوي [دے نه معلومه شوه چه الله ﷻ په دې شرك کولو اوپه حرامولو ناراض نه دی.
الله ﷻ جواب ورکوی چه دا دليل نيول څکه باطل دی چه دے سره د رسولانو دروغژن کول
لازميږی.نودا خلق رسولانو لره په دروغه بلی او څنگه چه ډوی کوی] ﴿ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن
قَبْلِهِمْ ﴾ دغه شان کوم [کافر] خلق چه ددوی نه مخکښې تير شوی دی هغوی هم [رسولان] په
دروغه بللی وو﴿ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا ﴾ تر دې چه هغوی زمونږ دعذاب مزه او څکله [چه ښکاره خبره
ده او چه په پخوانو کفارو عذابونه راغلی وو يا د مرگ نه پس چه ښکاره دی او دا اشاره دے
خبرې ته ده چه ددې خلقو دکفرياتو په مقابله کښې يواځې قولی جواب اومناظره کافی گڼل
نه دی پکار بلکه دپخوانو کفارو پشان ورته عملی سزا ورکول هم پکار دی که دا په دنيا کښې
هم وی اوکه يواځې په آخرت کښې بل جواب ورکولو دپاره ارشاد دے چه] ﴿ قُلْ هَلْ عِندَكُم
مِّنْ عِلْمٍ ﴾ تاسو [دوی ته] اووائې چه آيا تاسو سره [په دې مقدمه باندې] څه دليل شته [چه
دغسې کول زمونږ په دې بنا دی چه الله ﷻ په دې راضی دے که وی] ﴿ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا ﴾ نوهغه
زمونږ په مخکښې ښکاره کړئی [اصل خبره داده چه دليل وغيره هيڅ نه لرئ] ﴿ إِن تَتَّبِعُونَ
إِلَّا الظَّنَّ ﴾ تاسو خلق خالص په خيالی خبرو چليږئی ﴿ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴾ اوتاسو بيخی اټکل
خبرے کوئی [او د دواړو جوابونو په ورکولو سره] ﴿ قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ﴾ تاسو [دوی ته]
اووائې چه پس [د دواړو جوابونو نه معلومه شوه چه] پوره حجت [دليل] هم د الله ﷻ شو [او
ستاسو دليل باطل شو] ﴿ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ بيا [ددې تقاضا خو داده چه تاسو ټول په لاره
راغلی وے مگر ددې توفيق ورکول د الله ﷻ کار دی] که هغه غوښتلے نوتاسو ټول به يې په
[سمه] لار راوستلی وې [مگر د الله ﷻ ډير حکمتونه دی چاته ئے توفيق ورکړو او چا ته ئے
ورنکړو البته حق ښکاره کول، اختيار او اراده ورکول ټولو دپاره عام دی، وروسے د نقلی دليل
د مطاليے دپاره ارشاد فرمائی]. ﴿ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ ﴾ تاسو [دوی ته] اووائې چه
[دخپل عقلی دليل حال خو تاسو ته معلوم شو. ښه ده اوس صحيح نقلی دليل پيش کړئی لکه]
خپل گواهان راولئ چه په دې خبره [باقاعده] گواهی ورکړی ﴿ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا ﴾ چه الله دا [بيان
کړی] څيزونه حرام کړيدی [باقاعده گواهی هغه ده چه مخے ته د راغلی واقعاتو په بنياد وی
کوم چه يقين راوستلو کښې ليدلی کتلی څيز سره برابر وی لکه دقرآن پاك دا فرمائيل ورته
اشاره کوی ﴿ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ وَصَّاكُمُ اللَّهُ بِهَٰذَا ﴾. ﴿ فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ﴾ بياکه [داسې راپيښه
شی چه په دروغه فرضی گواهان راولی او] هغوی [يعنی گواهان ددې] گواهی [هم] ورکړی نو
[هرکله چه دغه گواهی به يے قاعدې اودخانه يې خبرې جوړول وی، ولے چه مشاهده هم نشته
اود مشاهدے پشان مثل هم څه نشته څکه ئے] تاسو ددغې گواهئ آوريدل مه کوئی او [هرکله
چه داثابت شو چه دوی دروغ ويوونکی دی، د آخرت نه منکر دی مشرکان دی څنگه چه ﴿ وَلَا

حَرَّمْنَا ﴿ ﴾ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ﴾ او ﴿ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الخ ﴾ دال دي او منکر آخرت کیدل لکه ډیر ډیر آیتونه په دې دال دی او مشرك کیدل لکه او ﴿ أَشْرَكْنَا ﴾ پرې دال دې ثابت شو.نو ائې مخاطبه] دداسې خلقو دباطلو خیالاتو [چه باطلیدل ئې اوس ثابت شو] تابعداری مه کوئې چه زمونږ آیتونه په دروغه بولی ﴿ وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ ﴾ اوچه په آخرت ایمان نه لری او ددې په وجه بې ویرې ی اود حق لټون نه کوی] ﴿ وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴾ او هغوی [دعبادت په حقداره کیدلو کښې] خپل رب سره نورو لره شریك گرځوی [یعنی شرك کوی].

قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ

اهغوئ ته اووایه | راشئ | اچې واوروم | هغه | اچې حراکړی دی | رب ستاسو

| [ائې پیغمبره] دوئ ته اووایه راشئ زه تاسوته وایم چې الله ﷻ په

عَلَيْكُمْ أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَلَا تَقْتُلُوا

په ستاسو باندې|چې مه شریکوئ | دهغه سره | هیڅ څیز| اودمورا وپلارسره|احسان کوئ| اومه وژنئ

تاسوڅه حرام کړی دی | دا چې الله سره شریک مه جوړوئ| اومور پلار سره ښه سلوک کوئ اوخپل

أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ وَلَا تَقْرَبُوا

اولاد خپل | دیرې دغریبئ نه| مونږه | رزق درکوو تاسوته| اوهغوئ له| اومه نژدې کیږئ

اولاد د غریبئ دوجې مه قتلوئ| مونږ تاسوته هم اودوئ ته هم رزق ورکوو| او د بې حیائې

الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ

دبې حیایئ کارونوته| هغه | چې ښکاره وی | دهغې نه | اوهغه چې پټ وی | اومه وژنئ | نفس

خبروته مه نژدې کیږئ| ......که ښکاره وی او که پټې وی | ............اوهغه نفس مه قتلوئ

الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم

هغه اچې حرام کړې دې الله| مگر | دحق سره | دا هغه خبرې دی | چې حکم کړې دې تاسوته هغه

چې الله ﷻ د هغې قتل حرام کړې وی مگر په حقه | داهغه خبرې دی چې الله ﷻ تاسو ته ددې وصیت کړې دې

بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا

په دې سره|ښائی چې تاسو|دعقل نه کاروا خلئ| اومه نژدې کیږئ| مال دیتیم ته | مگر

دې دپاره چې تاسو عقل نه کار واخلئ| .........اودیتیم مال ته مه نژدې کیږئ| مگر

بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ وَأَوْفُوا

په هغه طریقه |چې هغه|دیره ښه وی |ترهغې پورې|چې ورسیږی هغه|قوت خپل ته| اوپوره کوئ

په بهتره طریقه ترډې چې هغه ځوانئ ته اورسی | ...........................او

الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا

پیمانه | اوتول |په انصاف سره | نه ورکوو تکلیف مونږ | یونفس ته | مگر

پیمانه اوتول په انصاف سره کوئ| مونږ هیچاته دوس نه زیات تکلیف نه ورکوو

وُسْعَهَا ۚ | وَإِذَا | قُلْتُمْ | فَاعْدِلُوْا | وَلَوْ

مطابق د طاقت دهغه | او هر كله | چې خبرې كوئ تاسو | نو د انصاف خبره كوئ | او اګر كه |

او كله چې تاسو خبرې كوئ نو په هغې كښې انصاف كوئ | ............... اګر كه

كَانَ | ذَا قُرْبٰى ۚ | وَبِعَهْدِ اللّٰهِ | اَوْفُوْا ؕ | ذٰلِكُمْ

وي [معامله] | د رشته دارانو سره | او په وعده د الله | وفا او كړئ | دا خبرې چې دي تاسو ته

خپلو سره معامله وی | او الله ﷻ سره چې موكومه وعده كړې ده | هغه پوره كړئ | ددې

وَصّٰىكُمْ | بِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَذَكَّرُوْنَ ۙ | وَاَنَّ | هٰذَا

حكم كړې دې الله تاسو ته | په دې سره | ښائيږي چې تاسو | نصيحت قبول كړئ | او بيشكه | دا

خبرو حكم درته الله ﷻ كړې دې دې د پاره چې تاسو ترې سبق واخلئ: او دا چې دغه

صِرَاطِيْ | مُسْتَقِيْمًا | فَاتَّبِعُوْهُ ۚ | وَلَا تَتَّبِعُوا | السُّبُلَ

لار زما ده | نيغه | نو ځئ هم په دې باندې | او مه ځئ تاسو | په لارو نورو

[تير شوې بيان] زما لار ده او په دې نيغه لار روان شئ: او په نورو لارو باندې مه ځئ

فَتَفَرَّقَ | بِكُمْ | عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ | ذٰلِكُمْ

نو خواره واره به كړي | تاسو له | د لارې دهغه نه | دا هغه هدايت دي |

ګنې د الله ﷻ د لارې نه به مو ګډ وډ كړي | ............... دا هدايت

وَصّٰىكُمْ | بِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَتَّقُوْنَ ۝

چې حكم كړې دې الله تاسو ته | په هغې سره | ښائيږي چې تاسو | ځان اوساتئ د غلطو لارو نه

درته الله ﷻ ددې د پاره كړې دې | چې تاسو پرهيزګار جوړ شئ

## آسان ترجمه قرآن

(دوی ته) ووايه چه: راشئ چه څه تاسو باندې ولولم چه ستاسو پروردګار (په حقيقت كښ) په تاسو باندې كومې خبرې حرامې كړې دي. هغه دا دي چه د هغه سره څوك شريك مه جوړوئ، او د مور پلار سره ښه سلوك كوئ، او د غربت د وجې نه خپل بچي مه وژنئ. مونږ تاسو ته هم رزق دركوو او هغوی ته هم، او د بې حيائۍ كارونو ته نزدې كيږئ هم مه، خواه كه هغه بې حيائي پټه وي او كه ښكاره او كوم نفس ته چه الله حُرمت وركړې دې هغه مه وژنئ مګر په حقه وجه خلقو! دا هغه خبرې دي چه ددې الله تاسو ته تاكيد كړې دې دې د پاره چه تاسو پوهه شئ، او يتيم چه تر كومې مضبوطيا د عمر ته نه وی رسيدلې، هغه وخته پورې د هغه مال ته نزدې كيږئ هم مه. مګر په داسې طريقه چه (دهغوی په حق كښ) بهتره وي، او ناپ او تول په انصاف سره پوره كوئ. (البته) الله چا ته هم د هغه د طاقت نه زيات تكليف نه وركوي او كله چه څه خبره كوئ نو انصاف كوئ. خواه كه معامله خپل نزدې خپلوانو سره وي، او د الله وعده پوره كړئ خلقو دا خبرې دي چه الله تعالی ددې تاكيد كړې دې. دې د پاره چه تاسو نصيحت قبول كړئ. او (اې پيغمبره دوی ته) دا هم ووايه چه: دا زما نيغه لاره ده. پس دې پسې روان

هئ . او نورو لارو پسې مه ځئ . ګنې تاسو به د الله تعالیٰ د لارې نه واړوي. خلګو ! دا خبرې دي چه ددې الله تاکید کړې دې دې د پاره چه تاسو متقیان شئ.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ﴾ تاسو [دوی ته] اووایئ چه راشئ زه تاسوته هغه څیزونه په لوستلو ونیلو واورَوم چه ستاسو رب په تاسو حرام کړیدی ﴿أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا﴾ هغه [څیزونه یو په کښې] دا [دے] چه الله ﷻ سره څه څیزونه شریک مه ګرځوئ [نو شریک ګرځول ورسره حرام شو] ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ او [بل دا چه] مور پلار سره احسان کوئی [نوهغوی سره په خراب شان پاتې کیدل حرام شو] ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ مِنْ إِمْلَاقٍ﴾ او [دریم دا چه] خپل اولاد لره د نیستئ په سبب [څنګه چه په جاهلیت کښې عادت وو] مه وژنئ [ځکه چه] ﴿نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ﴾ مونږ دوی ته او تاسوته [یعنی دواړو ته مقدره] روزی درکوو [هغوی ستاسو په تقدیری روزئ کښې در سره شریك نه دی، بیائې ولې وژنئ نو وژل ئې حرام شو] ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ﴾ او [څلورم دا چه] د بے حیائی [یعنی دبدکارئ] څومره طریقے دی دهغې خواته هم مه ورځئ [نو زنا کول حرام شو] ﴿مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾ که هغه په جهره وی اوکه په پټه وی [هغه طریقے هم دادی] ﴿وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ﴾ او [پنځم دا چه] د چا وژل الله ﷻ حرام کړی دی هغه مه وژنئ ﴿إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ هنه مګر په [شرعی] حق باندې وژل روا دی [لکه په قصاص یا په رجم کښې نو په ناحقه وژل حرام شو] ﴿ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ ددې [ټولو] تاسو ته [الله ﷻ] تاکیدی حکم درکړې دې دپاره ددې چه تاسو [پرے] پوهه شئ [اوسره د پوهے پرے عمل اوکړئ] ﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ او [شپږم دا چه] د یتیم دمال خواته مه ځئ [یعنی په هغې کښې دخل مه کوئی] مګر په داسې طریقے سره [ددخل کولو اجازت شته] چه [دشریعت له مخے] ښه وی [لکه هم د یتیم په کار کښې لګول وی دهغه حفاظت کول پرے غرض وی دغه شان څنو اختیارمندو مشرانواوهغه کسانوته دیتیم په مال کښې د تجارت کولو هم اجازت شته درے چاته چه ددې وصیت کړې شوی وی] ﴿حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ تر دې چه هغه دخپل بالغیدو عمر ته اورسی [تردے وخته پورې په کښې ددغې دخل ورکولو اجازت ورته شته او بیا به یتیمانو ته خپل اصل مال هم ورکولے شی خوشرط دادې چه بې وقوفه نه وی په دې بنا د یتیم په مال کښې هغه قسم دخل ورکول حرام شو چه شرعی نه وی] ﴿وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ﴾ او [اووم دا چه] ناپ تول پوره پوره کوئی په انصاف سره [په دې سے شان چه د چا حق درسره پاتې نشی او نه درته راشی نو په دې کښې تګی کول حرام شو اودا احکام څه ګران خکه نه دی چه] ﴿لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ مونږ [خو] هیچا ته دهغه دوس نه زیات [د حکمونو] تکلیف [هم] نه ورکوو [نو بیا دے ولے په دغے حکمونو کښې کوتاهی اوکړې شی] ﴿وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ﴾ او [اتم داچه] کله تاسود فیصلے یا ګواهئ وغیره په باره کښې څه خبره کوئ نو [په هغې کښې د] انصاف [خیال] لرئ اګر چه دغه کس [دچا په مقابله کښې چه خبره کوئی ستاسو] نزدے خپلوان وی [نو دعدل نه خلاف کول حرام شو] ﴿وَبِعَهْدِ اللَّهِ أَوْفُوا﴾ او [نهم دا چه] الله ﷻ سره چه کوم لوظ کوئی [لکه قسم یا نذر مشروع وی دهغې نه پوره کول هم حرام

شو] ﴿ ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴾ ددې [ټولو] تاکیدی حکم تاسو ته الله ﷻ درکړې دې دپاره ددې چه تاسو ئې یاد لرئ [او عمل پرې کوئ]. ﴿ وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ﴾ اودا [هم اووایې] چه [یواځې ددې احکامو څه تخصیص نشته بلکه] دا دین [داسلام او ددې ټول حکمونه] زما لار ده [چه ددې طرف ته د الله ﷻ په حکم بلنه درکوم] کومه چه [بیخي] نیغه [اوسمه] ده ﴿ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ ﴾ نوپه دې روان اوسئ او په نورو لارو مه ځئ ﴿ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ ﴾ چه دغه لارې به تاسو لره د الله ﷻ دلارې نه [دکومې طرف ته چه زه بلنه ورکوم] بیل [او لرې] کړې ﴿ ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴾ ددې تاکیدی حکم تاسوته الله ﷻ ځکه درکړې چه تاسو [ددې لارې دخلاف کولونه] احتیاط کوئ.

## معارف او مسائل

ددې آیتونو وړاند تقریباً دوه، درې رکوع مضمون په مخه داسې بیانیدوچه غافل اوجاهل انسان دزمکې، آسمانونو دټولو څیزونو پیدا کوونکی احکم الحاکمین نازل کړې قانون پریښو، د پلرونو، نیکونو او د خپله ځانه جوړ کړې رسمونه ئې خپل دین جوړ کړل ه الله تعالی حرام کړې څیزونه ئې حلال ګنړلو سره په استعمال کښې راوستل اودیر هغه څیزونه ئې په خپلو ځانونو حرام اوګرځول کوم چه الله تعالی حلال کړی وو، ځنې څیزونه ئې نارینوو دپاره حرام او زنانو دپاره حلال او ځنې ئې ددې الټه اوګرځول.

اوس په دې درې وارو آیتونو کښې دهغه څیزونو بیان دې کوم چه الله تعالی حرام کړیدی، په تفصیل سره دانهه څیزونه بیان کړې شویدی، وریسې لسم حکم دابیان شویدې ﴿ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ﴾ [یعنی دادین زمانیغه لارده په دې روان اوسئ] په دې کښې درسول الله ﷺ دین اوشریعت ته په اشارې کولوسره دټول حلال، حرام، جائز ناجائز، مکروه اومستحب څیزونو تفصیلات ئې دې ته داسې حواله کړل چه شریعت محمدیه کوموڅیزونوته حلال ونیلی دی هغه حلال ګنړئ، او کوموته ئې چه حرام ونیلی دی هغه حرام ګنړئ، دخپله ځانه دحلالو حرامو فیصلې مه کوئ.

بیاپه دې آیتونو کښې دکومولسو څیزونوتفصیلی بیان چه راغلې دې په دې کښې اصل مقصد خو د حرامو څیزونو بیانول دی، ددې تقاضا داوه چه دنهی اومنع کولو په عنوان سره بیان شوی وې لیکن قرآن کریم دخپل خاص حکیمانه طرزلاند څوڅیزونه په ایجابی دول دامریه صیغې سره بیان کړل اومرادئې داشوچه دغه څیزونه حرام دی [کشاف] (۱) ددې حکمت به درته لږ شان پس، معلوم شی، ددغه لسوڅیزونودحراموالی بیان په دې آیتونو کښې داشان راغلې دې.

په عبادت اوفرمانبردارئ کښې الله تعالی بل څوک شریک ګرځول، والدینوسره ښه سلوک نهٔ کول، دخوارئ، نیستئ دویرې نه اولادوژل، دبې حیایئ کارونه کول، څوک په ناحقه وژل، دیتیم مال په ناجائزه طریقه خوړل په ناپ تول کښې کمې کول، په ګواهئ، فیصله یابل کلام وغیره کښې بې انصافی کول، دالله تعالی لوظ نهٔ پوره کول، دالله تعالی سمه لارپریښول اوښې اوګس [چپه] ارخ ته نورې لارې اختیارول.

**ددې آیتونو ډیرې خصوصیتونه:** کعب احبار رحمه الله دتورات یوماهریهودی عالم چه بیامسلمان شوی وو، هغه فرمائی چه دقرآن کریم داآیتونه چه پکښې دلسوحراموڅیزونوبیان دې، دالله تعالی

(۱) تفسیر الکشاف تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۱۸۱

کتاب تورات، دبسم الله نه پس هم دې آیتونونه شروع کیږي [انتهی] او دا هم وئیلې شوي دي چه داهغه لس کلمات دي کوم چه په حضرت موسی علیه السلام باند نازل شوي وو-

دقرآن مُفسر حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائیلي دي چه داهغه آیات محکمات دي دکومو ذکرچه دآل عمران په سُورت کښې راغلې دې او دحضرت آدم علیه السلام نه ترخاتم الانبیاء ﷺ پورې دټولو پیغمبرانو شریعتُونه پرمتفق پاتې شوي اوراغلی دي په دې کښې هیڅ یو څیزپه هیڅ مذهب ،ملت او شریعت کښې منسوخ شوې نه دې-

**دا آیتُونه درسول الله ﷺ وصیت نامه ده:** اوپه تفسیر ابن کثیر کښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل شویدي چه هغوئ اوفرمائیل څوک چه داسې وصیت نامه کتل غواړي چه په هغې درسول الله ﷺ مُهر لګیدلې وي، هغه ددا آیتُونه لولي، (۱) په دے کښې هغه وصیت موجود دې کوم چه هغوئې دالله تعالی په حکم خپل اُمت ته ورکړیدې-

او حاکم په روایت دحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه نقل کړیدي چه رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته داسې خطاب اوفرمائیلو: څوک دي چه په دریو آیتُونو ،مانه بیعت اوکړي- ، بیائې هم دا ،درې آیتُونه تلاوت کړل اووے فرمائیل چه څوک دابیعت [لاس نیوې] اسرته اورسوي نواجراوبدله ئې دَ الله تعالی په ذمه شوه- ، (۲)

اوس ددې لسو آیتُونو تفصیلي بیان اوتفسیر اوګورئ: دَدے آیتُونو شروع په دې کلماتو سره اوشوه: ﴿قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ﴾ دلته دَ ﴿تَعَالَوْا﴾ ترجمه ده، راشئ، په اصل کښې داکلمه په داسې وخت کښې وئیلې شي چه په لوړځائې ولاړ کس لاندې خلق خپلے خواته رابلي، دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه ددې په قبلولو کښې بنده ته لوړوالې اوبلندي حاصلیږي، معنی ئې داشوه چه رسول الله ﷺ ته په خطاب ورکولو سره اوفرمائیلې شو چه تاسو دې خلقوته اووایئ چه راشئ، زۀ درته هغه څیزونه په وئیلوسره واورؤم کوم چه الله تعالی په تاسو حرام کړیدي، دابې واسطې دالله تعالی له اړخه راغلې پیغام دې، په دې کښې ګُمان ،اندازه او اټکل هیڅ قسم دخل نۀ لري، غرض دادې چه تاسو ،دې نه د ځان ساتلو بندوبست اوکړئ اوبې هیسه دخپل اړخ نه دالله تعالی حلال کړي څیزونه مه حراموئ- ، ،

په دے آیت کښې اګرچه نیغ په نیغه دمکې مُشرکانو ته خطاب دې خو دخطاب مضمُون عام دې چه ټولو انسانانولره شامل دې، که هغه مؤمنان وي یاکافران عرب وي یاعجم، اوسنی خلق وي یاراتلونکی خلق وي [بحر محیط] - (۳)

**دټولو نه لويه ګناه چه حرامه کړےشوې ده هغه شرک دے:** په تینګه خطاب کولو سره ئې دحرام کړو او منع کړو څیزونو په لړکښې ئې اول داارشاد اوفرمائیلو: ﴿أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا﴾ [یعنی دټولو نه اول کار دادې چه الله تعالی سره څوک شریک اوبرابر مه ګڼړئ، مۀ خود عربو دمُشرکانو پشان بُتانو لره خُدایان جوړوئ، او مۀ دیهودو اونصاراوپشان پیغمبرانو ته خُدائې یادخُدائې خوئې وایئ، اومۀ دنوروپشان فرشتوته دخُدائې لونړه وایئ او مۀ دجاهلو عوامو پشان انبیاؤ ،اولیاؤ لره په صفت دعلم او قُدرت کښې الله تعالی سره برابر ګڼړئ-

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۵۹
(۲) المستدرك للحاكم، تفسير سورة الأنعام رقم الحديث: ۳۲۹۸
(۳) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۸۸

**د شرک تعریف او د دې قسمونه:** تفسیر مظهری کښې راغلي دي چه د ﴿شَيْئًا﴾ لفظ معنی دلته دا هم کیدې شي چه هیڅ قسم ډاګیز یا پټ شرک کښې مه اخته کیږئ ډاګیز شرک خو هر څوک داسې پیژنی چه غیر الله لره په عبادت او فرمانبرداری کښې یا د الله تعالی په مخصوصو صفتونو کښې هغه سره برابر یا د هغه پشان اوګڼلې شي- او پټ شرک دادې چه په خپل کاروبار او دینی دنیوی مقصدونو او په نفع نقصان کښې اګر که عقیده خو هم داوی چه کارساز الله تعالی دې مګر په عمل سره نورو لره هم کارساز جوړوي او د ټولو کوششونو تړون نورو سره اولري یا په عبادت کښې ریاکاري داسې کوي چه نورو ته د نمائش کولو په غرض مونځ وغیره په صحیح طریقه اداکوي، یاد نوم پیداکولو په غرض خیرخیرات ورکوي یا په عمل سره د نفع، نقصان مالک غیر الله لره اوګرځوي چنانچه شیخ سعدی دا مضمون په دې شان بیان کړیدې:-

درین نوعے از شرک پوشیده است　　که زیدم بجنشنید وعمرم بخست

[په دې کښې هم یو قسم شرک پټ پروت دې چه داسې اووایئ یا اوګڼئ- چه زید او بخښلم او عمرو راته زیان راپیښ کړو-]

بلکه حقیقت د دې نه سوا بل هیڅ نۀ دې چه بخشیش یا زیان تاوان، هر څه د قادر مطلق الله تعالی له ارخه دی، زید او عمرو صرف پردې دی چه په هغې باندې بخشیش یا نقصان راښکاره کیږي، ورنه څنګه چه صحیح حدیث کښې راغلي دي چه که د ټولې دُنیا پیریان او بنیادم تاته د داسې نفع دررسول غواړي چه الله تعالی په تقدیر کښې تاسو د پاره نۀ وي ټاکلې نو هیڅکله د غسې نشي کولې، دغه شان که د ټولې دُنیا پیریان او بنیادم تاته د داسې نقصان رسولو د پاره راجمع شي چه په تقدیر د الله تعالی کښې تاسو د پاره نۀ وي مقرر شوی نو دا هم هیڅکله نشي کیدې.

خُلاصه دا شوه چه د جلي او خفي [ډاګیز او پټ] شرک نه ډیر زیات پرهیز کول پکار دی- څنګه چه د بُتانو وغیره عبادت کول په شرک کښې داخل دی، دغه شان پیغمبرانو او اولیاؤ لره په علم او قُدرت وغیره کښې الله تعالی سره برابر ګڼړل هم په شرک کښې داخل دی، که خدائې د نکړي د چا عقیده هم دغسې وي نو دا شرک جلي [ډاګیز شرک] شو او که عقیده ئې داسې نۀ وي او عمل ئې داسې وي نو شرک خفي [پټ شرک] اُورته وئیلې شي په دې مقام کښې د ټولو نه رومبې، شرک نه د بچ کیدو هدایت کړې شویدې، وجه ئې داده چه شرک یو داسې جُرم دې چه د هغې په باره کښې د قرآن کریم فیصله داده چه هغه نشي معاف کیدې، دې نه سوا نور ګُناهونه په مختلفو اسبابو سره معاف کیدې شي په دې وجه په حدیث کښې په روایت د حضرت عباده بن صامت ﷺ او حضرت ابی الدرداء ﷺ راغلي دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی سره چا لره برابر او سیال مۀ جوړوئ اګرچه تاسو ټوټې کړې شئ، یا په سولئ [دار] اوخیژولې شئ یا تاسو ژوندی اوسوځولې شئ-[1]

**دوئیم ګناه والدینو سره بدسلوکی کول:** وروسې د ګناه دوئیم خیزئے دا اوښودلو ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ [یعنی والدینو سره احسان او ښه سلوک کوئ] مقصد خو دلته دادې چه د والدینو نافرمانی مۀ کوئ، زیان مۀ وررسوئ، مګر په حکیمانه انداز کښې بیان داسې اوشو چه والدینو سره د احسان معامله کوئ، دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه د والدینو په باره کښې صرف دومره کافي نۀ دی چه د دوئ نافرمانی مۀ کوئ او زیان مۀ وررسوئ بلکه د ښه اخلاقو د پیرزوني د سلوک په ذریعه د

---

[1] سنن ابن ماجة، أبواب الفتن، باب الصبر على البلاء: ص ۲۹۱

دوی راضی ساتل اوخوشحالول فرض دی چه بیان ئې په قرآن کریم کښې داسې راغلی دې ﴿وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ﴾ [یعنی دَدوی په وړاند خپلې متې دپیرزوینې په ډول ټیټ اوښکته اولره]۔

په دې آیت کښې والدینوته زیان رسول اوتکلیف ورکول، دَشرک نه پس دَدوئم نمبرجُرم ټاکلې شویدې، لکه چه په بل آیت کښې الله تعالی دَدوی فرمانبرداری او ورته آرام رسول خپل عبادت پسې یوځائې ذکر کړیدی فرمائی ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾ [ستاسورب دافیصله کړیده چه دَده نه سوا دَبل چاعبادت مهٔ کوئ اوالدینوسره دَاحسان معامله کوئ]۔

اوبل یوځائې کښې فرمائی: ﴿اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ﴾ [زماشکراداکوه اودَخپل مورپلاربیاهم زماړخ ته راتلل دی [که خلاف موتر اوکړل نوسزابه بیامومئ]۔

په صحیحینو کښې دَحضرت عبدالله بن مسعود ﷜ په روایت دوئ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړوچه دَ ټولو نه غوره اوزیات افضل عمل کوم یودې؟هغوئ اوفرمائیل مُونځ په خپل [مستحب] وخت کښې کول، دوئ ورته بیا عرض اوکړوچه دې پسې کوم یوعمل زیات غوره دې؟ وې فرمائیل مورپلارسره ښه سلُوک کول بیائے عرض اوکړوچه وریسې کوم عمل زیات غوره دړ؟وې فرمائیل:دَالله تعالی په لار کښې جهاد کول۔(۱)

په صحیح مسلم کښې دَحضرت ابی هریره ﷜ په روایت منقول دی چه یوورځ رسول الله ﷺ درے وار اوفرمائیل﴿رغم انفه رغم انفه رغم انفه﴾ یعنی ذَلیل شووې فرمائیل، هغه څوک چه خپل مورپلار یاپه دوئ کښې ئے یوډبوډاتوب په عُمر کښې بیامُوندواوبیا هم هغه په جنت کښې داخل نهٔ شو۔(۲)

مطلب داشوچه دبوډاتوب په عُمر کښې دوالدینوپه خدمت کولوسره جنت مُوندل یقینی دی، هغه څوک ډیرېې نصیبه اوذلیله دې چه هغه دومره ارزان جنت دَخپله لاسه اوویستو، ارزان څکه چه هرکله مور، پلارپه خپل اولادباندِ په طبعی ډول پخپله مهربانه وی دَاولادپه ډیرلږ خدمت کولو سره هم ډیرخوشحالیږی۔چه دوئ دَخوشحاله ساتلودپاره دَڅه لوئې اوغټ عمل کولوضرورت نهٔ وی، اودبوډاتوب قیدپه دې وجه اولګولې شوچه هرکله مورپلارروغ جوړاوقوی وی ،خپل ضرورتونه پخپله پوره کولې شی بلکه د ولادسره هم په دغه وخت کښې خانی اومالي امداد کوی، دغه وخت هغوئ دَخدمت محتاجه نهٔ وی اونهٔ دَدوئ دَخدمت څه خاص وزن وی د قدرورخدمت هغه وخت کیدې شی چه دوئ دَبوډاتوب په وجه محتاجه وی۔

**دریم حرام داولادوژل**:: دریم څیزچه حرامیدل ئې په دې آیتونوکښې بیان شویدی هغه دَ اولاد وژل دی، دَدې دواړوپه منځ کښې مناسبت دادې چه دې نه وړاندې دَمورپلاردَحق بیان دې چه دَ مورپلارپه ذمه دې، اولادسره دَخراب سلُوک کولوډیرزیاته خرابه معامله هغه وه چه دَجاهلیت په زمانه کښې به ئې وژل یابه ئے ژوندې په خاوروورمنډلوپه دې آیت کښې دَدغې نه منع راغلهٔ، لکه فرمائی: ﴿وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ مِّنْ اِمْلَاقٍ ۭ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ﴾ دنیستئ له کبله خپل اولادمهٔ وژنئ، مونږبه تاسوته هم روزی درکوواوهغوئ ته هم]۔

دَجاهلیت په زمانه کښې دَبې رحمئ اوسنګدلئ دابدترین رسم چلیدلی وو چه دَچاپه کور کښې به جینئ پیداشوه نوهغه به ئې ددې شرمه ژوندئ په خاوروکښې ښخوله چه څه وخت به ددے په

(۱) صحیح البخاری، کتاب مواقیت الصلاة، باب فضل الصلاة لوقتها: ج۱، ص۷۶، وصحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان کون الإیمان بالله تعالی، افضل الاعمال: ج۱، ص۶۳

(۲) صحیح مسلم، کتاب البر والصلة والأدب، باب فضل صلة اصدقاء الاب والام ونحوهما: ج۲، ص۳۱۴

وجه چالره څوم جوړول راځي، اوځنې وخت به نې په ورو کتوب کښې، خپل اولاد دَ ے وسرے راپېښېدو له کبله وژلو چه کیدے شي چه دَ دوی دژوند ضرورتونه اودخوراک څکاک سامان به پوره نکړې شي۔قرآن کریم دغه رسم ختم کړو اوپه پوره ته بیان شوی ارشادالهی سره دَذهني مرض علاج هم داسې اوشوچه دَخوراک څښاک اوروزئ رسولوذمه واري نېغ په نیغه دَالله تعالی ده، هغه دونی اوتاسوتولوته روزي درکوی، دَهغه ورکړے روزی تاسو په خپل اولادخوروئ که هغه نۀ درکولے نوتاسوخوپخپله دَغنم یاوریژې یوه دانه هم نشئ پیداکولې، دَمنونوخاورولاندې دَتیغ په صورت کښې رابرخیره کول، هغې ته دَاونې شکل ورکول، په هغې کښې ګلونه اومیوه لګول، دَالله تعالی نه سوابل څوک کولې شي؟ آیامورپلار داکار کولې شي؟انسان خودومره کولې شي چه دَالله تعالی په پیداکړواوبوټې خړوب کړي، اودَالله تعالی په ورکړې توفیق سره دَهغې دَساتلواوحفاظت انتظام اوکړي، مګردې په ګلونواومیوؤ راپیداکولو کښې خونې هیڅ دخل نشته دې نه معلومه شوه چه دَمورپلار داتصوربیخې غلط دې، چه مونږه خپلوبچوته روزي ورکوو بلکه یواځې دَالله تعالی دَ غیبو دخزانې نه مورپلارته هم ملاوېږي، اولادته ئې هم، په دې وجه دلته ئې دَمورپلار ذکر وړاندې اوکړو چه مونږ به تاسوته هم روزي درکوواودوئ ته هم، په دے وړاند کولو کښې دې ته هم اشاره کیدې شي چه تاسوته روزي څکه درکولې شي چه تاسوئې خپلوماشومانوته اورسوئ. لکه په یو حدیث شریف کښې رسول الله ﷺ فرمائیلي دي[انما تنصرون وترزقون بضعفاءکم] [دکمزوري خلقو له خاطره الله تعالی ستاسو امدادکوي او تاسو ته روزي درکوي] -(۱)

دَقرآن کریم په سورت اسراء کښې هم دامضمون بیان شویدی خوهلته دې معامله کښے اولاد وړاندې ذکرشولکه فرمائي ﴿نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ﴾ [مونږ به دوئ ته هم روزي ورکوؤ اوتاسوته هم]په دے کښې اشاره دې خبرې ته ده چه زمونږ په نزد دَتولونه اول مستحق دروزئ هغه بې وسه ماشومان دی چه پخپله هیڅ نشی کولې اودهغوئ په خاطرتاسوته روزي درکولې شي۔

**داولادتعلیمي.اخلاقي پرورش نۀ کول اویه پنځ مهاره آزادپرېښول هم یوقسم اولادوژل دي:** جسماني او بدني شان سره دَاولادوژل خودآیت له مخه په داګه سخت جُرم اوسخته ګناه شوه، که غوراوکړې شي نوچه اولاد داسې بې تعلیمه اوبې تربیته پرېښودې شي چه په نتیجه کښې ئې دَالله تعالی، دَهغه درسول ﷺ او دَ آخرت دَفکرنه بې پرواپاتې شي، بداخلاقه اوبې حیاشي، داهم دَاولاد دَجسماني وژلونه څه کم څکه نۀ وي چه قرآن کریم هغه چاته مړوئیلې دي کوم چه الله تعالی نۀ پیژني اودهغه فرمانبرداري نۀ کوي، لکه﴿أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ﴾ کښې ئې چه بیان دې، کوم خلق چه دَخپل اولادعملونواوخویونودرست کولوته توجه نۀ کوي، آزادئې پرېږدي، داسې غلط تعلیم ورکوي چه په نتیجه کښې ئې اسلامي اخلاق تباه کیږي، هغوئ هم په یوشان سره دَ اولاد دَ وژلو مجرمان دي، جسماني اوبدني وژل خودَدُنیاپه څو ورځو ژوندباند اثرغورځوي اوتباه کوي ئې اودابل قسم وژل ئې دائمي دآخرت ژوندتباه کوي۔

**څلورم حرام دبیحیایئ هرڅه دے:** په دې آیتونو کښې څلورم حرام شوې دَبیحیایئ کارکول دي څنګه چې فرمائي: ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾ [یعني دبې حیایئ تولوطریقوخواته هم مۀ ورځئ، که هغه ښکاره وي اوکه پټه] -فواحش، ، دَ، ، فاحشه، ، جمع ده، دالفظ اوفحش اوفحشاء

---

(۱) سنن ابي داود، كتاب الجهاد، باب في الانتصار برذل الخيل والضعفة (لكن الفاظه هكذا "ترزقون وتنصرون بضعفائكم") ج۱، ص۳۳۹

ټول مصدرونه دي چه په پښتو کښې ئې توجه بې حیائ کولې شي او دقرآن او حدیث په اصطلاح کښې هر داسې خراب کار د پاره هم دا الفاظ وئیلې شي چه د هغې دخرابوالي او بدوالي اثرات هم خراب وي او ترلرې پورې رسیږي- څنګه چې امام راغب په مفردات القرآن کښې او ابن اثیر په ،،نهایه،، کښې هم دامعنی کړیده-(١) په قرآن کریم کښې ځانې په ځانې د ،،فحش،، او ،،فحشاء،، نه منع راغلې ده لکه په یو آیت کښې فرمائي: ﴿وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ او بل ځائې کښې فرمائي: ﴿إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ﴾ وغیره، که د ،،فحش،، او ،،فحشاء،، په دې عام مفهوم کښې ټول لوئې ګناهونه داخل دي خواه قولي وي یا فعلي وي، ظاهري وي که باطني وي، د بې حیایئ او بدکارئ ټول کارونه هم په دې کښې داخل دي، لهذا، عموماً د غې ټولو ته بدکاري وئیلې شي، دقرآن کریم په دې آیت کښې د ،،فواحش،، ،خواته هم د ورتلونه منع راغلې ده، که د دې عام مفهوم او مطلب واخستلې شي نو ټول ناکاره خصلتونه او ګناهونه په دې کښې داخل شو- که تعلق ئې سره لري او که لاسونو خپو وغیره یا زړه سره تعلق لري او لکه څنګه چه په عوامو کښې مشهوره ده، که د دې معنی بې حیائ واخستلې شي نو معنی به ئې بدکاري، او د دې ټولې لارې چارې او اسباب مراد وي.

په دې آیت کښې ،،فواحش،، سره ﴿مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾ هم او فرمائیلې شو، د رومبې تفسیر مطابق، ،ظاهري فواحشو،، نه مراد د ژبې او لاسونو خپو وغیره [اندامونو] ټول ګناهونه وي او د ،،باطني فواحشو،، نه مراد به هغه ګناهونه وي چه د زړه سره تعلق لري، لکه حسد، کینه، حرص، ناشکري، بې صبري وغیره-

او د دوئیم تفسیر مطابق ،،د ظاهري فواحشو،، نه مراد به د بې حیایئ هغه ټول کارونه وي چه په ډاګه کولې شي، او د ،،باطني،، نه به هغه مرادوي چه په پټه کولې شي، په ښکاره بدکارئ کښې د دې ټولې لارې چارې او ورسره لازم څیزونه داخل دي، لکه په بدنیت سره چا ښځې ته کتل، لاس وغیره وروړې لګول او خبرې ورسره کول په د ې کښې داخل دي، په باطني بې حیایئ کښې هغه خیالات ارادې او پټ تدبیرونه داخل دي چه د څه بیحیایئ او بدکارئ پوره کولو د پاره کړې شوي وي-

او ځینو مفسرینو حضراتو فرمائیلي دي چه د ،،ظاهري فواحشو،، نه د بې حیایئ هغه کارونه مرادي چه په عام طور د هغې ناکاروالي مشهور او معلوم وي او ټول ئې پیژني، او د ،،باطني فواحشو،، نه مراد هغه کارونه دي چه د الله تعالی په نزد د بې حیایئ کارونه دي، اګرچه په عام ډول ئې خلق بدنه ګڼړي یا عامو خلقو ته ئې حرامیدل معلومه نه دي، مثلاً د دریو طلاقو ورکولو نه پس ئې په مخه خپله ښځه لرل یا داسې ښځې سره نکاح کول چه د شریعت له مخه هغه د پاره حلاله نه وي-

خلاصه دا شوه چې دا آیت د فواحشو د اصل مفهوم په اعتبار سره ټول ظاهري، باطني ګناهونو لره او د مشهور عام مفهوم په اعتبار سره د بدکارئ او بې حیایئ ټولو ښکارو او پټو طریقو لره شامل دي چه حکم ئې دا ورکړې شویدې چه د دې څیزونو خواته مه ځئې، خواته ئې د تلونه مراد دادې چه داسې مجلسونو او مقاماتونه هم ځان ساتئ چه هلته په تلو کښې داخطره وي چه په ګناه کښې به اخته شو- او داسې کارونونه هم ځان ساتئ چه د دې ګناهونو ته د تلو لارې تر پرانستې شي لکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي:

١) مفردات القرآن: ج ١، ص ٣٧٣ والنهاية لابن أثير: ج ٣، ص ٤١٠

﴿من حمیٰ حول الحمیٰ اوشك ان یقع فیه﴾ [څوک چه د ممنوع ځائې په خوا وشا کښې ګرځي نو په هغې کښې ورننوتل هم څه لرې خبره نه ده] [1] په دې وجه د احتیاط تقاضا داده چه د کوم ځائې داخله منع کړې شویده د هغې په خوا وشا کښې د څوک نه ګرځي.

**پنځم حرام په ناحقه وژل دي:** پنځم څیز په ناحقه څوک وژل دي په دې باره کښې ارشاد د الله تعالی دې: ﴿وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ [یعنی د چا وژل چه الله تعالی حرام کړیدي هغه مه وژنئ البته په حقه سره] د دے حق تفصیل رسول الله ﷺ په یو حدیث کښې بیان کړیدې چه په روایت د عبد الله بن مسعود ؓ بخاری او مسلم، نقل کړیدې، وې فرمائیل: ، ، د یو مسلمان وژل حلال نه دی مګر په دریو وجهو سره، یو داچه څوک واده کړې په بدکارئی کښې راګیر شي، دویم داچه په ناحقه ئې څوک وژلې وی نو هغه به ئې په قصاص کښې وژلې شی دریم داچه د خپل حق دین [اسلام] نه په اوړیدو مرتد شی. [2]

کله چه حضرت عثمان غنی ؓ د باغیانو په ګیره کښې راغلې وو چه هغوئ ئې وژل [اشهید کول] غوښتل دغه وخت هم حضرت عثمان ورته دا حدیث واوړولو او وې فرمائیل چه بحمد الله ، زۀ د دې درې وارو څیزونو نه بری یم، ما خو د اسلام په زمانه کښې څه چه د جاهلیت په زمانه کښې م هم بدکاری نه ده کړې، نۀ م څوک وژلی دی او نۀ م په زړۀ کښې چرې دا وسوسه راغلې ده چه خپل دین [اسلام] پریږدم، نو بیا م تاسو په څه بناوژنئ؟ [3]

اوځنګه چه د یو مسلمان بنده بې وجې وژل حرام دی دغه شان د هغه غیر مسلم وژل هم حرام دی چه په یو اسلامی ملک کښې د قانون پابند او سیږی یا چه ورسره د مسلمانانو لوظ او قول شوې وی. په ترمذی او ابن ماجه کښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد په روایت د ابی هریره ؓ نقل شویدې چه څوک یو غیر مسلم ذمی اووژنی هغه د الله تعالی لوظ او قول مات کړو او څوک چه د الله تعالی لوظ، قول مات کړی هغه به د جنت خوشبوئی هم بوئی نکړې شی سره د دې چه د جنت خوشبوئ د اویا کالو لرې والی پورې رسی. [4]

په دې یو آیت کښې دلسو څخه د پنځو حرامو او ناروا څیزونو ذکر کولو نه پس ئې اوفرمائیل: ﴿ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ [یعنی د دې څیزونو درته الله تعالی تاکیدی حکم درکړیدې د پاره د دے چه تاسو هم پوهـ شئ]۔

**شپږم حرام د یتیم مال په ناروا اوخورل:** په دوئیم آیت کښې شپږم حکم د یتیم د مال په ناروا د خوراک د حراموالی دا شان شویدې: ﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ [یعنی د یتیم د مال خواته مه ورځئ مګر په داسې طریقه چه ښه وی تر دې چه هغه د بالغیدو عمرته اورسی] - په دې کښې د یتیمانو بچو پالونکو ته داسې خطاب دې چه هغوئ د د یتیمانو مال یو اور ګڼری او په

---

[1] ) دا الفاظ احیاء العلوم رقم الحدیث: ۲۶۱۸ کښې موجود دی، البته دے ته نژدے الفاظ په صحیح البخاری، کتاب البیوع، باب الحلال بیّن الخ. کې هم شته.

[2] ) صحیح البخاری، کتاب الدیات، باب قول الله تعالی ان النفس بالنفس الخ: ج ۲، ص ۱۰۱۶۔ وصحیح مسلم، کتاب القسامة والمحاربین الخ، باب ما یباح به دم المسلم: ج ۲، ص ۵۹

[3] ) سنن ابی داود، کتاب الدیات، باب الامام یأمر بالعفو فی الدم رقم الحدیث ۴۵۰۲

[4] ) جامع الترمذی، أبواب الدیات، باب ما جاء فیمن یقتل نفساً معاهدة: ج ۱، ص ۲۵۹، وابن ماجة، أبواب الدیات، باب من قتل معاهداً: ص ۱۹۳

ناروا طریقه د دَدے دَخوړلو اولاندې کولو خواته هم نهٔ ورځي ځکه چه په یوبـل آیت کښې هم په دې شان الفاظو کښې راغلی دی:

ځوک چه دَیتیمانو مال په ظلم سره خوري هغوئ په خپلو خیټو کښې اور ډکوي-]

البته دَیتیمانو دَمال حفاظت کول یا په داسې جائز کاروبار کښې په لګولو سره ئې زیاتول چه پکښې دَعادت له مخې دَزیان تاوان خطره نهٔ وي نو دا ښه اوضروري طریقه ده، دَیتیمانو پالُونکو لره دغسې کول پکار دي-

وروسې دَیتیم دَمال دَحفاظت حدئې داسې بیان کړو: ﴿حَتّٰى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾[تردې چه هغه دَبالغیدو عُمر ته اورسي]نو دَپالُونکي ذمه واري ختمه شوه، یتیم ته دِ دَهغه مال اوسپاري-

دَ﴿فَإِنْ آنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾اصلي معنی قُوت او طاقت دې چه دَجمهورو علماؤ په نزد دَبالغیدو دَوخت نه شروع کیږي، څهٔ وخت چه په ماشوم کښې دَبالغیدو نخښې، نښانې او مونَدې شي یائې عُمر پینځلس کاله پوره شي، نو دَشریعت له مخې به هغه بـالغ بللې شي البته دَبالغیدو نه پس به دا کتلې شي چه په دهٔ کښې دَمال دَساتنې او په صحیح خائې کښې ئې د لګولو استعداد پیدا شوې دې او که نهٔ؟ که پیدا شوې وُونو سمدستي به ورته مال حواله کړې شي او که نهٔ وو پیدا شوې نو دَهغه دَپینځویشتو کالو تر عُمر پورے به پالُونکې دَهغه دَمال دساتلو ذمه واروي. البته که په دې دوران کښې ئې استعداد پیدا شو نو هم به ورته خپل مال ورسپارلې شي- هر کله چه پینځویشتو کالو ته ئې عمر اورسیږي نو دَامام اعظم ابی حنیفه رحمه الله په نزد به ورته په هر حال خپل مال په حواله کولې شي، خو شرط دا دې چه دغه کم عقل توب ئې دَلیونتوب حد ته نهٔ وي رسیدلې، او دَځنې نورو اماما نو په نزد به دغه وخت هم ورته نشي سپارلې، بلکه شرعي قاضي به دَدهٔ دَمال ساتنه دَیوبل ذمه داربندهٔ په حواله کړي-

دا مضمُون دقرآن کریم دَدے آیت ﴿فَإِنْ آنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾[یعنی که په یتیمانو بچو کښې دَبالغیدو نه پس، تاسو دغه استعداد او وینئ چه دَخپل مال ساتنه پخپله کولې شي او په څه کاروبار کښې ئې هم لګولې شي نو خپل مال ورته ورا وسپارئ]نه راغستې شویدې چه صرف په بالغیدو باند ورته مال سپارل هم کافي ندي، بلکه دَمال حفاظت کول او دَ کاروبار چلولَو جوګه کیدل ئې شرط دي-

**اووم حرام په ناپ تول کښې کمي کول:** په دې آیت کښې اووم حُکم، په انصاف سره دَ ناپ تول پوره کولو دې، په ،انصاف سره، ،مطلب دا لري چه ورکوونکې دَبـل فریق په حق کښې څه کمي اونکړي او اغستونکې دَخپل حق نه زیات وانخلي [روح المعاني][1]

دَځیزونو په لین دین کښې، ناپ تول کښې کمې، زیاتې راوستل قرآن کریم سخت حرام ګرځولې دې او ددې نه خلاف کوونکو دَپاره په سُورت مطففین کښې سخت وعیدراغلې دې-

دَقرآن کریم مُفسر حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائیلي دي چه رسول الله ﷺ دَ ناپ ،تول دَځیزونو تجارت کوونکو ته خطاب کولو سره اوفرمائیل چه ناپ او تول، دا هغه کارونه دي چه په دې کښې بې انصافي کوونکي ګنړ اُمتونه دَالله تعالی په عذاب سره تباه کړې شویدي [تاسو په دې کښې پوره احتیاط کوئ]-[تفسیر ابن کثیر]-[2]

[1] روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ۶، ص ۸۱
[2] تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۷

**د افسرانو، ملازمینو مزدورانو په خپلو ټاکلو ډیوټئ او خدمت کښې کوتاهی کول هم په ناپ تول کښې کمی کولو په حکم کښې وی:** په ناپ، تول کښې کمی راوستل چه په قرآن کریم کښې ورته [تطفیف] وئیلې شویدی، یواځې دَ ناپ، تول ځیزونوسره خصوصیت نهٔ لری، بلکه دحق په اداکولو کښې هم کمی کول، ،تطفیف، ،حسابیږی-لکه چه مؤطا امام مالک کښې نقل شویدی چه هرکله حضرت عمر ﷺدَمونځ په ارکانو کښې کمی کوؤنکې سړې اولیدونوورته ئې اووئیل چه تا ، ،تطفیف، ،اوکړو، یعنی ستاپه ذمه چه کوم واجب حق ووهغه دادانکړو، ځکه دَدې نقل کولونه پس امام مالک پخپله فرمائیلې دی: ﴿لکل شيء وفاء وتطفیف﴾[1] یعنی حق پوره اداکول او کمول په ځیزکښې راتلې شی، صرف دَ ناپ تول په ځیزونواره نهٔ لری-

دې نه معلومه شوه چه کوم ملازم، خپله ډیوټې نهٔ پوره کوی، دَوخت غلا، یاپه کارکولوکښې کوتاهی کوی، هغه که څوک وزیر، امیروی، یامعمولی ملازم وی، دفتری کارکوونکې وی یاعلمی او دینی خدمت کوونکې، په خپله ذمه حق اداکولو کښې کوتاهی کوی نوهغه هم په، مطففینو] کښې داخل دې، دمزدورهم دغه حکم دې کله چه هغه په خپله ذمه ټاکلی وخت کښې کوتاهی کوی-

وریسې فرمائی: ﴿لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ [یعنی مونږ چاته دَهغه دَوَس نه زیات دَځه ځیزحکم نهٔ ورکوؤ] په ځنې روایتونودَحدیث کښې دَدې مطلب دابیان کړې شویدې چه هرکله څوک دَخپل وس مطابق د ناپ تول پوره پوره حق ادا کوی نو که ددې باوجود بیا هم بې خبرئ یابې اختیارئ په وجه پکښې ترڅه معمولی کمې، زیاتې که راشی نوهغه به معاف وی-

په تفسیرمظهری کښې راغلی دی چه دَدې جملې په اضافه کولوسره دې خبرې ته اشاره ده چه دَ حق دَاداکولوپه وخت احتیاط په دې کښې دې چه څه زیات څکه ورکړې شی چه دکمی راتلوشُبه پکښې پاتې نشی، [2] لکه چه رسول الله ﷺپه داسې یوه موقعه باندې تول کوونکی ته داحُکم ورکړو چه: ﴿زن وارجح﴾ [ښه کوږ دروندتول اوکړه] [احمد، ابوداؤد، ترمذی په روایت دَسویدبن قیس] [3]

دَرسول الله ﷺعام عادت داووچه په خپله ذمه دَیوحق اداکولوپه موقعه به ئې زیات اداکول خوښول، [4] اودَبخاری شریف په حواله، دَحضرت جابرپه روایت رسول الله ﷺاوفرمائیل چه:

الله تعالی دِې هغه چارحمت اوکړی چه دَخرڅولوپه وخت هم داسې نرم وی چه زیات ورکوی اودَخرید کولوپه وخت هم داسې نرم وی چه دَحق نه زیات نهٔ اخلی ،بلکه که څومعمولی کمې وی نوپه هغې راضی شی-] [5]

خوداحُکم اخلاقی دې چه په ورکولوکښې زیات ورکوی اوپه اغستوکښې که کم واخلی نوجګړه نهٔ کوی، داڅه قانونی ځیزنهٔ دې چه په داسې کولوباندې ګنی مجبوره وی، اوپه قرآن کریم

---

[1] ) مؤطا مالک، کتاب وقوت الصلاة، باب جامع الوقوت رقم الحدیث: ۲۲
[2] ) التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۳، ص ۳۰۵
[3] ) مسند أحمد، حدیث سوید بن قیس عن النبی صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث: ۱۸۲۱۱، وسنن ابی داود، کتاب البیوع، باب فی الرجحان فی الوزن الخ: ج ۲، ص ۲۷۳، وجامع الترمذی، أبواب البیوع، باب ما جاء فی الرجحان فی الوزن: ج ۱، ص ۲۴۲
[4] ) دا ــــ حدیث اوګورئ: سنن ابی داود، کتاب البیوع، باب فی حسن القضاء: ج ۲، ص ۴۷۵
[5] ) صحیح البخاری، کتاب البیوع، باب السهولة والسماحة فی الشراء الخ: ج ۱، ص ۲۷۸

کښې ذدې ارشاد فرمائیلو چه ، ،مونږه چاته دوس نه دزیات څیزحکم نه ورکوو-وجه هم داده چه بل ته دحق نه زیات اداکول اودخپل حق په کمئ باندِ راضی کیدل څه جبری حکم څکه نهٔ دې چه عامو خلقوته داسې کول آسان ندی-

**اتم حکم دعدل اوانصاف ښولودې څکه ددې خلاف ښول حرام دی:** فرمائی ﴿وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ﴾ [یعنی که تاسوخبره کول غواړئ نوحق خبره کوئ اگرچه هغه ستاسوخپلوان وی]دلته دڅه خاص خبرے ذکرنشته،څکه دجمهورومفسرینوپه نزدتر هرقسم خبره مرادا غستے شی که دغه خبره دیوے معاملے دگواهئ وی یادحاکم دارخه فیصله،یاپه خپل منځ کښې مختلف قسم خبرے اترے کول وی،په دے ټولوکښې د قرآن کریم ارشاددادې چه په هرځائې اوپه هرحال کښې چه خبره کوئ نودحق اوانصاف خیال لرل پکاردی،په یومقدمه کښې دگواهئ ورکولو یاپه یو فیصله کښې دحق اوانصاف قائم لرلومعنی خوداسې ښکاره ده چه گواه به هغه خبره کوی کومه چه ورته په یقین سره معلومه وی هغه دصفاصفابیان کړی،خپل اټکل یاگمان ته دپکښې څه دخل نهٔ ورکوی-دغه شان هرکله چه دیوې مقدمې فیصله کول وی نودګواهانو اندازه د د شرعی اصولوپه جوړواغستې شی،دَدوئ په گواهئ یاپه نوروقرینوسره چه څه ثابت شی د هغې مطابق فیصله داوکړے شی،په گواهئ اوفیصلې دواړوکښې ددچادوستی،مینه اوخپلوی په حق ونیلو کښې څه خنډ جوړنشی ،اونهٔ دچامخالفت اودشمنی دخنډجوړشي-

څکه چې هم په دې خاطر یې دا جمله زیاته کړه ﴿وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ﴾[اگرچه هغه کس ستاسو خپلوان وی دچاپه باره کښې چه گواهی ورکول یافیصله کول وی،یعنی په هیڅ حالت کښې حق اوانصاف دلاسه مهٔ ورکوئ]-

ددے آیت مقصود ددروغو گواهئ اودناحق فیصلې کولونه منع کول دی څکه چې د دروغو دگواهئ په باره کښې ابوداؤد اوابن ماجه درسول الله ﷺ داارشادنقل کړیدې چې: په دروغه گواهی کول شرک سره برابردی،درې کرته ئې اوفرمائیل اوبیائې داآیت تلاوت کړو-،، ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ ۝ حُنَفَاءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ﴾[یعنی دبُت پرستئ دگندہ عقیدې اوددروغوویلونه بچ شئ،الله سره څوک شریک مهٔ جوړوئ]-(۱)

دغه شان دحق په خلاف دفیصلے کولوپه باره کښے دابی داؤدپه حواله ،دحضرت بریده ﷺ په روایت درسول الله ﷺ داارشادنقل شویدې:

قاضیان[دمقدمے فیصله کوونکی] درے قسمه دی،دهغوئی څنې به یوجنت ته څی اودوه جنهم ته چاچه دشریعت په جوړ دمعاملے تحقیق اوکړو،حق ئې اوپیژندواودحق په جوړئې فیصله اوکړه هغه جنتی دی-اوچاچه په تحقیق کولوسره حق اوپیژندلواوبیائې هم دهغې په خلاف فیصله اوکړه، هغه دوزخی دې اوداشان هغه قاضی چې هغه ته علم نه وی یا یې په غور وفکر کولو کښې کمی اوکړه او په جهالت سره یې یوه فیصله ورکړه داهم دوزخی دې-(۲)

دقرآن کریم په نوروآیتونوکښې هم دامضمون په زیات وضاحت اوتاکیدسره بیان کړې شویدې چه په گواهئ یافیصله کښې دچادوستئ اونزدې خپلولئ،تعلق،یادشمنئ اومخالفت دهیڅ څیزاثرنهٔ دی کیدل پکارلکه یوځائې کښې ارشاد فرمائی: ﴿وَلَوْ عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ﴾

(۱) سنن ابی داود، کتاب القضاء، باب فی شهادة الزور: ج ۲، ص ۱۵۶، بحوالہ سنن ابن ماجة، أبواب الشهادات، باب شهادة الزور: ص ۱۷۱
(۲) سنن ابی داود، کتاب القضاء، باب فی القاضی یخطئ: ج ۲، ص ۵۰۳

[یعنی حق خبره اګرچه ستاسو خلاف وی یا دَ والدینو اودَ نوروخپلوانو خلاف وی په ګواهنی ورکولو کښې څه خندراوستل نهٔ دی پکار-

دغه شان یو بل آیت کښې حُکم دې: ﴿وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا﴾ [یعنی دَ یوقوم دُشمنی دِ تاسو، دَانصاف په خلاف ګواهئ ورکولو یا فیصلې کولو دَپاره نهٔ تیاروی-،،]

دګواهی او فیصلې نه علاوه یو تریله په خبرو اترو کښې دَحق او انصاف قائم لرلو مطلب دا دې چه په دې کښې دروغ اونهٔ وائی-دَچا غیبت اونکړی، بل چاته دڅه تکلیف ورکولو خبره اونکړی. اونه دَخانی اومالی زیان، تاوان ورکولو خبره اوکړی-

**نهم حُکم دَالله تعالیٰ دلوظ اوقول پوره کول یعنی دوعدې ساتلو هدایت**: په دې آیت کښې نهم حُکم دَوعدې پُوره کولو اودَوعدې ماتولو نه دَځان ساتلو دې لګه فرمائی: ﴿وَبِعَهْدِ اللّٰهِ اَوْفُوْا﴾ [یعنی دَالله تعالیٰ لوظ، قول پُوره کوئ] دَالله تعالیٰ دَلوظ نه مُراد هغه هم کیدې شی چه په ازل کښې هرانسان نه واغستې شواو پکښې ټولو انسانانو ته وئیلې شوی وو: ﴿اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ [آیا، زهٔ ستاسو پروردګار نهٔ یم؟] نو ټولو جواب ورکړو: ،بَلٰى، [بیشکه تهٔ زمُونږه رب اوپروردګار یې] دَدې لوظ تقاضا هم داده چه دَ پروردګار دَ هیڅ حُکم نه غاړه اونه رغړوی، دَکوموکارونوحکم نې چه ورکړیدې هغه دې دَټولو کارونونه وړاندې او ډیر ضروری اوګنړی اودکوموکارونونه چه منع کړې شویده دَهغې خواته دې هم نهٔ ورځی، اودَهغې دَشبهونه هم ځان ساتی-دَدې لوظ خُلاصه داده چه دَالله تعالیٰ مکمله فرمانبرداری د اوکړې شی-

اوداهم کیدې شی چه هغه خاص خاص لوظُونه ترمُرادوی چه په قرآن کریم کښې نې ذکر په مختلفو موقعو راغلې دې-اودَغې څنې دادرې آیتُونه هم دی دکوموتفسیرچه دااوس لګیائې ګورې نې [په کوموکښې چه لس حکمُونه په تاکید سره بیان کړې شویدی-]

عُلماؤ فرمائیلی دی چه په دے لوظ کښې نذراومنبتته پُوره کول هم داخل دی ولې چه داهم داسې یو لوظ دې چه انسان نې الله تعالیٰ سره دَیوکارپه کولو سره کوی چې دا کار به کومه یا به نې نه کومه .قران پاك کښې یو بل آیت کښې ښکارَه ذکر شوې دې لګه فرمائی: ﴿يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ﴾ [یعنې دَالله تعالیٰ نیکان بندګان خپلې منبتتې [نذرونه] پُوره کوی]

خُلاصه نې داشوه چه هسې خوداپه نوم نهم حُکم دې خوپه حقیقت کښې داټولو شرعی احکامو لره شاملیږی خواه هغه واجبات دی اوکه ممنوعات دی-

دَدې دویم آیت په آخر کښې نې اوفرمائیل: ﴿ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ﴾ [یعنی الله تعالیٰ تاسوته دَدې کارونو حُکم درکړیدې دَپاره ددې تاسو ئې یادلرئ]-

په دریم آیت کښې لسم حُکم بیان شویدې: ﴿وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِىْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ۚ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ﴾ [یعنی دادین محمدی زمانیغه لار ده نوپه دې لاره روان اوسئ اوپه نورولارومهٔ روانیږئ ځکه چه هغه به تاسولرهٔ دَالله تعالیٰ دَلارې نه بیل کړی]

دلته په ،،هذا،،سره دین اسلام یاقرآن ته اشاره ده ،اوسُورت انعام ته هم اشاره څکه کیدې شی چه په دې کښې داسلام ټول اصول ،توحید ،رسالت اودَشرعی حکمُونو اصول بیان کړې شویدی ،او ،،مستقیم،، دَدین دهغه لازې صفت دې چه په نحوی ترکیب کښې دَحال په صُورت کښې د دَدې په راؤړوسره اشاره دې ته کړې شویده ،چه دَاسلام دَپاره مستقیم کیدل لازمی صفت دې، وریسې فرمائی: ﴿فَاتَّبِعُوْهُ﴾ [یعنی هر کله چه معلُوم شوچه دین اسلام زما لار ده اوهم دغه

،،مستقیم ،اونیغه لارده ،هر کله چه دَمنزلِ مقصود سمه لاره گټوته راغله څکه یواځې هم په دغه لار روان اوسئ!]

بیا یې اوفرمائیل ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ﴾ ،سُبُلَ ،دَسبیل جمع ده ،معنی ئې لارده ،مُراد دادې چه الله تعالی ته درسیدو اودهغه دَرضاحاصلولو اصلی لاره خو هم یوه ده ،لیکن په دُنیاکښې خلقو ګڼړې خیالی لارې جوړې کړیدی ،تاسو په دغې لاروکښې په یوه هم څکه مه ځئ چه په حقیقت کښې دا ،الله تعالی ته دَرسیدولارې نه دی ،هر کله چه څوک په دغې لارو باندې ځی هغه به دَالله تعالی دَلارونه لرې غورځیږی-

په تفسیر مظهری کښې وائی چه ،،دَقرآن کریم دَنازلولو اودَرسول الله ﷺ دَرالیږلو مقصد خو دادې چه خلق خپل خیالات ،خپلې ارادې اوخپل تجویزونه دَقرآن اوسُنت تابع کړی ،اوخپل ژوند په دغه قالب کښې واچوی ،لیکن کیږی داسې چه خلق قرآن اوسنت لره دَخپلو خیالاتو اوتجویزونو په قالب کښې داچولو پوخ قصد کړیدی ،کوم آیت یاحدیث چه ورته په دې کښې څه بندیز راوستونکې ښکاره شو دهغې په تاویلونو کولو سره ئې دَخپلِ خواهش مُطابق جوړ کړی ،هم دې خائې نه دګمراهئ نورې لارې راپیدا کیږی ،کوم چه دَبدعاتو اوشُبهولارې دی-[1] هم ددغې نه خان ساتلو دَپاره په دې آیت کښې هدایت شویدې-

په مسند دارمی کښې دَحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په روایت منقول دی چه یوځل رسول الله ﷺ یوه نیغه کرښه [لیکه] راکش کړه اووې فرمائیل چه دا ،دَالله تعالی لاره ده ،بیائے دَدے ښی او ګس [چپه] اړخ ته نورې کرښې [لیکی] راکش کړې اووې فرمائیل چه داسُبل دی [یعنی هغه لارې دی چه دې کښې په هر لارې باندې یوشیطان مقرر دې چه خلق دَسمې لارې نه په رااړولوسره دې خوارابلی ،بیائې دا آیت په دلیل کښې تلاوت کړو-[2]

په آخر د آیت مبارك کښې ئې بیاارشاداوفرمائیلو: ﴿ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ [یعنی الله تعالی تاسوته دَدې تاکیدی حکم درکړیدې دپاره دَدے چه تاسواحتیاط کوئ!]-

ددرې وارو آیتونو تفسیر اوپه دې کښې دحرام کړوشوؤ څیزونولس اُصول پوره بیان کړې شو-

په آخرکښې دَقرآن کریم دَبیان په دے اندازهم یونظرواچوئی چه دلته ئې لس احکام بیان کړی دی ،دائې دَنن صبا دَقانُون دکتابونو پښان په لسو دفعو کښې اونه لیکل بلکه په اول کښې ئې دَپنځوحکمُونوبیانولو نه پس ئې اوفرمائیل :﴿ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ دې پسې دَخلورو حکمُونو بیانولونه پس هم دغه جمله بیاذکر کړه ،خودلته ئې دَ﴿تَعْقِلُونَ﴾ په خائې ﴿تَذَكَّرُونَ﴾ اوفرمائیلو بیا آخری حُکم ئې په مستقل آیت کښې چه بیان کړو دغه جُمله ئې دریم وار په دې شان راوړه چه دَ﴿تَذَكَّرُونَ﴾ په خائې ئې پکښې ﴿تَتَّقُونَ﴾ اوفرمائیل - دَقرآن حکیم په دې طرزِ بیان کښې ګڼر حکمتُونه دی-

اول دَاچه دَعامو قانونپښان داقرآن یواځې حاکمانه قانون نه بلکه تربیت کوؤنکې قانُون دې ،همدغه وجه ده چه هر قانُون سره دَهغې دَآسانولو تدبیر هم ښولې شی اودَالله تعالی پیژندګلی اودَ آخرت فکر یوداسې څیزدې چه په پټه اوپه ښکاره ټولو حالاتو اومقاماتو کښې انسان لره دَقانُون په

[1] التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۰۷
[2] مسند دارمی، المقدمة، باب فی کراهیة أخذ الرأی رقم الحدیث: ۲۰۸

پابندي کولو باندې مجبور کوي، په دې وجه دَدرې وارو آيتونو په آخر کښې داسې کلمات راوړلې شو چه دَهغې په وجه دَانسان مخه دَدُنيا نه آخرت ته راواوړي-

په رُومبي آيت کښې کوم پنځه حکمُونه [شرک نه ځان ساتل، دَمور پلار نافرمائي نه ځان ساتل، دَاولاد دَوژلو نه ځان ساتل، دَبې حيايئ دکارونو نه ځان ساتل، په ناحقه دَچاوژلو نه ځان ساتل] نو دَدې په آخر کښې ئې دَ ﴿تَعْقِلُوْنَ﴾ لفظ ځکه راوړو، چه دَجاهليت دَزماني خلقو به دا ځه عيب نهٔ ګڼړلو، لهذا په دې لفظ سره اشاره دې ته اوکړې شوه چه دَپلار، نيکه رسمُونه او خيالُونه پرېږدئ او عقل نه کار واخلئ-

په دوئم آيت کښې څلور حکمُونه بيان شويدي، يعني دَيتيم مال په ناحقه نهٔ خوړل په ناپ تول کښې کمي نهٔ کول، په خبرو کولو کښې دَحق او رشتياؤلحاظ ساتل، او دالله تعالى لوظ پُوره کول-
داځيزُونه خو جاهلانو به هم ضروري ګڼړل او ځنې خلقو به پرِ عمل هم کولو خو اکثر به پکښې غفلت او بې پروائي کولې شوه هر کله چه دَدې علاج، ،تذکره،، [يعني دَخُدائې او آخرت وريادول] دي ځکه ئې دلته ﴿تَذَكَّرُوْنَ﴾ او فرمائيل:

په دريم آيت کښې داهدايت دې چه، ،صراط مستقيم،، اختيار کړئ او دَنورو لارو نه ځان ساتئ: او صرِف دَالله تعالى نه ويره يو داسې څيز دَې چه انسان لره دَخپلو خيالاتو او خواهشاتو نه دَبيرته لرلو صحيح ذريعه کيدې شي، په دې وجه ئې دَدې په آخر کښې ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ﴾ او فرمائيل-

درې وارو خايونو کښې لفظ دَ، ،وصيت،، راوړې شوچه تاکيدي حکم ورته وئيلې شي، همدغه وجه ده چه ځنې صحابه کرامو رضي الله عنهم او فرمائيل چه، ،څوک، درسول الله ﷺ مُهر کړې وصيت نامه کتل غواړي هغه ددا درې آيتُونه وائي-(۱)

ثُمَّ | اٰتَيْنَا | مُوْسَى | الْكِتٰبَ | تَمَامًا | عَلَى الَّذِيْٓ
بيا | اوورکړو مونږه | موسى ته | کتاب | چې دنعمت تکميل وي | په هغه چاباندې
بيامونږ موسى عليه السلام ته کتاب ورکړوا ...........چه په نيکانو مو نعمت پوره شي

اَحْسَنَ | وَتَفْصِيْلًا | لِّكُلِّ شَيْءٍ | وَّهُدًى | وَّرَحْمَةً
چې نيکه لارئې اختيار کړې وه | او تفصيل وي | دپاره دهر څيز | او هدايت وي | او رحمت وو
...........او دهر يو څيز تفصيل اوشي | او سر ترسره هدايت او رحمت اوشي

لَعَلَّهُمْ | بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝ | وَهٰذَا | كِتٰبٌ | اَنْزَلْنٰهُ
دپاره ددې چې شايد دا خلق | په ملاقات درب خپل ايمان راوړي | او دغه شان دا | کتاب دې | چې نازل کړې دې مونږه
او دې دپاره چه هغوي [بني اسرائيل] دخپل رب په ملاقات يقين اوساتي | او دا قرآن پاک يو برکتي

مُبٰرَكٌ | فَاتَّبِعُوْهُ | وَاتَّقُوْا | لَعَلَّكُمْ | تُرْحَمُوْنَ ۝
برکتناک دې | نو پيروي او کړئ ددې | او پرهيزګاري ژوند شروع کړئ | شايد چې په تاسو | رحم اوکړې شي
کتاب دې چې مونږ نازل کړې دې | په دې عمل او کړئ | او تقوي اختيار کړئ شايد رحم درباندې اوشي

(۱) قدمر تخريجه.

اَنْ تَقُوْلُوْٓا   اِنَّمَآ اُنْزِلَ   الْكِتٰبُ   عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ   مِنْ قَبْلِنَا

چي اونه وايئ | چي بیشکه نازل کړې شوې وو | کتاب | په دوو ډلو باندې | امخکښې زمونږ نه

اوچه تاسو ونه ویلې شئ چې کتاب خو زمونږ نه وړاندې دوه ډلو [یهود و نصارا] ته ورکړې شوې وو

وَاِنْ كُنَّا   عَنْ دِرَاسَتِهِمْ   لَغٰفِلِيْنَ ۙ   اَوْ تَقُوْلُوْا   لَوْ اَنَّآ

اوبیشکه وو مونږه | دلوستلو دهغوئ نه | خامخا ناخبره | یااونه وایئ تاسو | که وې مونږ

اومونږ ته هیڅ خبر نه وو چې هغوئ په دې کښې څه لوستل | اوچه دابهانه هم نشئ کولې که مونږ

اُنْزِلَ   عَلَيْنَا الْكِتٰبُ   لَكُنَّآ   اَهْدٰى

چې نازل کړې شوې وې | په مونږ باند | کتاب | نوخامخا به وو مونږ ازیات په صحیح لار |

باندې کتاب نازل شوې وې نو مونږ به دهغوئ نه زیات په سمه لار روان شوې وو |

مِنْهُمْ ۚ   فَقَدْ   جَآءَكُمْ   بَيِّنَةٌ   مِّنْ رَّبِّكُمْ   وَهُدًى

دهغوئ نه | نو په تحقیق سره | راغلې دې تاسو ته | دلیل روښانه | دطرفه درب ستاسو نه | او هدایت

بیشکه تاسو ته دخپل رب نه ښکاره دلیل او هدایت اورحمت راغلې دې |...............

وَّرَحْمَةٌ ۚ   فَمَنْ   اَظْلَمُ   مِمَّنْ   كَذَّبَ   بِاٰيٰتِ اللّٰهِ   وَصَدَفَ

اورحمت | نو څوک دې | ډیر ظالم | دهغه چانه | چې دروغ اوګڼرې | آیتونه دالله | اومخ واړوی

.........نو دهغه چا نه څوک لوئې ظالم کېدشي چې دالله ﷻ آیاتونه دروغ ګڼړي | اوددې نه مخ

عَنْهَا ۭ   سَنَجْزِي   الَّذِيْنَ   يَصْدِفُوْنَ   عَنْ اٰيٰتِنَا   سُوْٓءَ

دهغې نه | زر به بدله ورکړو مونږ | هغه کسانوله | چې مخ اړوی | د آیتونو زمونږنه | سخت

اوګرځوی | څوک چې زمونږ دآیتونو نه مخ ګرځوی | ......نو هغوئ ته به مونږ

الْعَذَابِ   بِمَا   كَانُوْا   يَصْدِفُوْنَ ۝

عذاب | په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې مخ به ئې اړوو |

ددې انکار په بدله کښې سخت عذاب ورکوو |

## آسان ترجمه قرآن

بیا مونږ موسٰی علیہ السلام ته کتاب ورکړې وو چه د هغې مقصد دا وو چه په نیکانو خلقو د الله نعمت پوره هي، او د هر یو څیز تفصیل بیان کړې هي او هغه (دخلقو د پاره) درهنمائۍ او د رحمت سبب جوړ هي، دې د پاره چه دوی (آخرت کښې) دالله سره ملاویدو باندې ایمان راوړي او (دغه شان) داد برکت والا کتاب دې چه مونږ نازل کړې دې، پس ددې تابعداری وکړئ، او پرهیزګاري اختیار کړئ دې د پاره چه په تاسو رحم وشي. (دا کتاب مونږ دې وجې نه نازل کړې دې چه) چرته تاسو دا ونه وایئ چه کتاب خو مونږ نه مخکښې دوه ډلو باندې (یهود او نصاریٰ) باندې نازل شوې وو. او څه چه به هغوی لوستل خودل، مونږ خو د هغې نه بالکل ناخبره وو یا دا ووایئ چه که په مونږ باندې کتاب نازل شوې وو نو مونږ به دې (یهودو او نصاریٰ) نه یقینًا ډیر په هدایت وو نو دادې تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرف نه یو روښانه

دليل اود هدايت او د رحمت اسباب راغلي دي ا اوس د هغه چا نه لوئ ظالم به څوك وي چه د الله آيتونه دروغژنوي او د هغې نه مخ واړوي؟ كوم خلق چه څمونږ د آيتونو نه مخ اړوي مونږ به هغوي ته بد عذاب وركړو، ځكه چه هغوي مخ اړوي.

## خلاصه تفسير

﴿ ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ تَمَامًا ﴾ بيا [دشرك دمضمون باطلولو نه پس مونږ د پيغمبرئي په مسئله كښې خبره كوو چه مونږ يواځې تاسوپيغمبر نه يئ جوړكړى چه دے خلقو شورجوړ كړې دے بلكه تاسونه وړاندې] مونږ موسى عليه السلام لره [پيغمبر جوړ كړو تورات] كتاب مو وركړې وو (عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ وَتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ) چه په هغې سره په ښه شان عمل كوونكو باندې [زمونږ] نعمت پوره شى چې عمل اوكړى او ثواب كامل تر لاسه كړى] او د ټولو [ضرورى] احكامو [ددې په ذريعه] تفصيل اوشى. ﴿وَهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ﴾ اوددې په ذريعه لار ښوونه وى او [منوونكو دپاره] رحمت شى [مونږ ددې صفت كتاب په دې وجه وركړو] چه دغه خلق [يعنى بنى اسرائيل] دخپل رب په ملاويدو باندې يقين راوړى [اود ملاويدو د عقيدې لرلو په بنا ټول حكمتونه په ځائې راوړى] ﴿ وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ ﴾ او [هركله چه ددې اوددې دتمې انجيل درو ختم شو دے نه پس] دا [قرآن] يو كتاب دے كوم لره چه مونږ [تاسوته] راولیږلو دلوئې خير اوبركت والا ﴿فَاتَّبِعُوْهُ وَاتَّقُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ نو [اوس] ددې تابعدارى كوئې او [دے نه دخلاف كولوپه باره كښې دالله تعالى نه] ويريږئې ځكه چه په تاسو [دالله ﷻ] رحمت اوشى. [او مونږ دا قرآن دے دپاره هم نازل كړو چه] ﴿اَنْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا﴾ تاسو خلقو به [په قيامت كښې ددې دنه نازليدو په صورت كښې كله چه دربانديې دكفر اوشرك په وجه عذاب راغلے وے] داسې مو وئيلې چه [آسمانى] كتاب خو صرف زمونږ نه مخكښې چه دوه فرقے [ديهودو اوعيسايانو] وے په هغوى نازل شوې وو ﴿ وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴾ اومونږ دهغې دلوستلو او وئيلو نه بې خبره وو [ځكه راته د توحيد حقيقت څرګند نه شو] ﴿ اَوْ تَقُوْلُوْا لَوْ اَنَّآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ ﴾ آيا [نورو مخكښنو مومنانو ته د ثواب ملاويدو په وخت] داسې موونيلې چه كه په مونږ څه كتاب نازل شوې وے ﴿ لَكُنَّآ اَهْدٰى مِنْهُمْ ﴾ نو مونږ به ددغو [مخكښنو مومنانو] نه هم زيات په لاره وو [اوپه عقيدو اوعملونو كښې به مو ددوى نه زيات كمال حاصل كړې وے، دثواب حقدار به وو] ﴿ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ ﴾ نو [ياد لرئې چه] اوس [تاسو لره څه عذر نشته] تاسوته [هم] ستاسو درب د طرفه يوكتاب [چه احكام ئې] واضح [دى] ﴿ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ ﴾ او [چه] دلارې ښودلو ذريعه [ده] او [د الله ﷻ] رحمت [دے] راغلې دې ﴿ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَصَدَفَ عَنْهَا ﴾ نو [دداسې كافى شافى كتاب راتلو نه پس] دهغه چا نه به زيات څوك ظالم وى چه زمونږ دا آيتونه په دروغه بولى [اونور هم] ددې نه بندوى ﴿سَنَجْزِى الَّذِيْنَ يَصْدِفُوْنَ عَنْ اٰيٰتِنَا ﴾مونږ اوس [په آخرت كښې] هغې خلقوته چه زمونږ د آيتونو نه [خلق] منع كوى ﴿ سُوْٓءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يَصْدِفُوْنَ ﴾ هغوى ته به ددې منع كول په سبب سخته سزا وركوو [داسختى پرې ځكه زياته شوه چه ددوى منع كول او بندول وو كنى نو يواځې تكذيب په دروغه بلل هم د سزا موجب دى].

## معارف او مسائل

دَ بې خبرۍ وجه دا نه وه چه تورات او انجیل په عربۍ ژبه کښې نهٔ وو، ولې چه په ترجمې سره دَدې په مضمونونو یاندِ خبریدې شو، بلکه دا خبره واقعي وه، اصلي وجه دا ده چه اهلِ کتابو دا اهلِ عربو توحید او تعلیم پسې چرې مخه نهٔ اوړله، او که هسې دَ یو مضمون غوږونو کښې پرېوتل پېښ شي نو عموماً په خبرداره کولو کښې دَدې اثر ډیر کم وی، اگرچه په دومره خبریدو سره هم لټون او غور فکر کول واجبیږی، او په دې بِناء توحید په پرینښو عذاب ول کیدې شو، او دې نه دا اشکال نهٔ راپورته کیږي چه دحضرت موسی ﷺ او حضرت عیسی ﷺ پیغمبری گنی عامه وه خکه چه صرف زمونږ د پیغمبر محمد ﷺ پیغمبری په خصوصیت سره په اعتبار دَ مجموعې دَ اصولو او فروعو سره عامه ده، ورنه په اُصولو کښې خو دَ ټولو پیغمبرانو ﷺ تابعداری په ټولو خلقو باند واجبه ده، نو په دے بناء عذاب صحیح وو لیکن دا عُذر په سرسری نظر کښې پیش کیدې شو، اوس دَدې گنجائش هم پاتې نشو او دا الله تعالی حُجت پوره شو۔

او دَبل قول: ﴿لَوْ اَنَّاۤ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ لَكُنَّاۤ اَهْدٰى مِنْهُمْ﴾ په باره کښې یو سوال جواب، دَ فترت دَ زمانې دَ خلاصي موندونکو په اعتبار سره دَ سُورت مائده دَ دریمې رکوع په آخر کښې تیر شویدې۔

| هَلْ | يَنْظُرُوْنَ | اِلَّآ |
|---|---|---|
| دوئ | انتظار نکوی | مگر |
| آیا دوئ صرف ددې خبرې انتظار کوی | | |

| اَنْ | تَاْتِيَهُمُ | الْمَلٰٓئِكَةُ | اَوْ يَاْتِيَ | رَبُّكَ | اَوْ يَاْتِيَ | بَعْضُ | اٰيٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دې ته چې | راشي دوئ ته | فرښتې | یا راشي | رب ستا | یا راشي | خینی | نښې |
| چې فرښتې ورته مخامخ راشي | یا ستا الله ﷻ ورته پخپله راشي | یا ستا د رب نښې | | | | | |

| رَبِّكَ | يَوْمَ يَاْتِيْ | بَعْضُ | اٰيٰتِ | رَبِّكَ | لَا يَنْفَعُ | نَفْسًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| درب ستا | په کومه ورځ چې راشي | خینی | نښې | درب ستا | نهٔ به ورکوی فائده | یو نفس ته |
| ښکاره شي | په کومه ورځ چې ستا د رب ﷻ بعضې ن[...]ې راشي | نو هغه چاته به [اسمد ستی] | | | | |

| اِيْمَانُهَا | لَمْ تَكُنْ | اٰمَنَتْ | مِنْ قَبْلُ | اَوْ كَسَبَتْ |
|---|---|---|---|---|
| ایمان دهغه | چې نهٔ ئې وی | راوړې ایمان | دمخکښې نه | یا ئې نهٔ وی کسب کړی |
| ایمان فائده نهٔ ورکوی چې دمخکښې نه ئې ایمان نهٔ وی راوړې | ...... یا په خپل | | | |

| فِيْٓ اِيْمَانِهَا | خَيْرًا | قُلِ | انْتَظِرُوْٓا | اِنَّا | مُنْتَظِرُوْنَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| په ایمان خپل کښې | څه نیکی | اے نبی ورته اووایه | انتظار کوئ تاسو | مونږه [هم] | انتظار کونکی یو |
| ایمان کښې څه گټه [نیکی] نهٔ وی کړې | ورته اووایه [ښه ده] تاسو انتظار کوئ مونږ هم انتظار کوونکی یو | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

دوئ (د ایمان راوړو دپاره) دې نه سوا د څه څیز انتظار کوی چه دوی ته فرښتې راشي یا ستا پروردګار خپله راشي یا ستا د پروردګار څه نښې راشي؟ (حال دا چه) په کومه ورځ چه ستا د پروردګار څه نښه

راځله ، په هغه ورځ به هغه کس ته ایمان راوړل فائده ورنکړي چه مخکښې نه ئې ایمان نه وي راوړي، یا ئې چه څهل ایمان سره څه نیك عمل نه وي کړي (پس دې خلقوته) ووایه چه: بس ده انتظار کوئ مونږ هم انتظار کوونکي یو.

## خلاصه تفسیر

﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ﴾ دا خلق [کوم چه دکتاب او نبیانو دنازلیدو اود حق واضح کیدو نه پس هم ایمان راونړی د خپل ایمان راوړو دپاره] صرف ددې خبرې انتظار کوونکی دی [داسې ډیل کوی لکه چه څوك انتظار کوی] چه ورته د فرښتې راشی ﴿أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ﴾ یا ورته ستاسو رب راشی [لکه په قیامت کښې چه دحساب په وخت به دغسې کیږی] ﴿أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ﴾ یا ستاسو د رب څه لویې نخښه [د قیامت دنخښو نه] راشی [مراد ددې نخښو نه دمغرب له طرفه نمرراختل دی. مطلب دا شو چه آیا په ایمان راوړلو کښې دقیامت دقائمیدو یا دنزدے راتلو انتظار دې نو په دې باره کښې واورئ چه] ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ﴾ په کومه ورځ چه ستاسو درب [دا] لویه نخښه [ذکر شوې] راورسیږی [په دغه ورځ به] ﴿لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا﴾ دداسې کس ایمان به دهغه پکار نه راځی چه رومبے نه ایمان نه لری [بلکه په دغه ورځ ئې ایمان راوړي وي] ﴿لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾ یا [خو ایمان د رومبې نه هم لری لیکن] هغه په خپل ایمان کښې څه نیك عمل نه وی کړی [بلکه په ناکاره عمل شروع کړی نوتوبه به یې قبوله نه وی اوددې نه مخکښې ئې که د ګناهونو نه توبه نه وی کړی نو د مومن کیدو په برکت سره به یې توبه قبوله شوې وې .لهذا قبلیدل خود ایمان یو برکت اوفائده هم ده، دغه وخت ایمان اوتوبې راوړلو دغه خاص فائده ورنکړه اوکله چه دقیامت نخښه راتلل دایمان او توبې قبلیدو کښې بندیز جوړکړی نو په خپله قیامت راتلل خو به خامخا په دې کښې بندیز جوړیږی بیا انتظار څه دې؟. اوکه په دې زورنه هم ایمان راونړی نو] ﴿قُلِ انتَظِرُوا إِنَّا مُنتَظِرُونَ﴾ تاسو [د زیاتې زورنې په ډول] اوفرمائې چه [خیر ډیره ښه ده] تاسو [ددې څیزونو په] انتظار کښې اوسئ [که نه مسلمانیږئ نومه مسلمانیږئ] مونږ هم [ددغې څیزونو په انتظار کښې یو [دغه وخت به په تاسو عذاب راشی او مونږ مسلمانان به انشاء الله خلاصی موندونکی یو].

## معارف اومسائل

دسورت انعام اکثره برخه داهل مکه اودعربو مشرکانو دعقیدواوعملونو داصلاح اوددونې دشبهواوسوالونوپه جواب کښې نازله شویده۔

په دے ټول سورت کښې ،خصوصاً په تیروشوؤ آیتونوکښې دمکې اودعربو په استوګنو خلقو باند داواضحه کړې شویده چه تاسو درسول الله ﷺ معجزې اولیدلې، دپخوانو آسمانی کتابونو اود پخوانو پیغمبرانو پیشنګویانې مود هغوئ په باره کښې واوریدې،بیادیوامی دخلې مبارکې نه مو دقرآن آیات بینات واوریدل چه دیوې مستقلې معجزې په صورت کښې راغلو، اوس دحق اورشتینوالی لارې ستاسوپه وراند پرانستلې شوې اودالله تعالی حجت په تاسو تمام شو، اوس په ایمان راوړلو کښې دڅه انتظاردې؟

دامضمون ئې اوس په دې آیت کښې په ډیر بلیغ انداز سره داشان بیان کړو: ﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ ۗ يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ﴾ [یعنی داخلق په ایمان راوړلو کښې آیا ددې انتظار کوي چه د مرګ فرښتې ورته راشي، یاد میدان حشر انتظار کوي، چه پکښې به دجزا او سزا فیصلې دپاره الله تعالی راشي، یاددې انتظار کوي چه دقیامت ځنې آخري نښانیانې اووینی، دقیامت میدان ته فیصلې دپاره درب کریم تشریف راوړل دقرآن کریم دګڼو آیتونو نه ثابتیږي- ځنګه دسورت بقره په یو آیت کښې دا مضمون داشان راغلي دې:

﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن يَأْتِيَهُمُ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلَائِكَةُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ ۚ﴾ [آیا داخلق ددې انتظار کوي چه الله تعالی دوریځو په سورو [سایو] کښې دوئی ته راشي او فرښتې هم او خلقو دپاره دجنت او دوزخ کیدونکې فیصله سرته اورسي]-

دقیامت په میدان کښې دالله تعالی دتشریف راوړلو شان او حالت معلوم ول دانسان دوس نه بهر خبره ده، په دې وجه دصحابه کرامو ﷺ او پخوانو بزرګانو دامت مسلک په دې باره کښې دادې چه صرف په تشریف راوړلو ایمان لرل ضروري دي ولې چه دقرآن کریم نه داثابت دی او دکیفیاتو او حالاتو علم دالله تعالی ته حواله کړې شي چه په څه حالت کښې به دجزا او سزا فیصلې کولو دپاره راځي او په کوم اړخ او جهت کښې به وي؟

وریسې فرمائی: ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا ۗ﴾ [په دې کښې ئې خبرداري ورکړې چه دالله تعالی ځنې نښانیانې هر کله چه مخې ته راشي نو دتوبې دروازه به بنده شي، چه چادې نه وړاندې ایمان نه وی راوړې نو په دغه وخت ایمان راوړل به ئې قبول نه شي، او چا چه ایمان خو وړاند راوړې وی خو نیک عملونې نه وی کړی دغه وخت کښې که دې توبه کوی او په آئنده کښې دنیک عمل کولو اراده کوی نو دهغه توبه به هم نه قبلیږي، خلاصه ئې داشوه چه کافر یا فاسق چه دخپل کفر یا فسق او ګناه نه که دغه وخت توبه کول او غواړي نو هغه به نه قبلیږي- وجه ئې داده چه ایمان او توبه خو تر هغه وخت پورې قبلیدې شي تر څو چه دانسان په اختیار کښې وي، کله چه دالله تعالی عذاب او دآخرت حقیقتونه مخې ته راشي نو هر انسان به په ایمان راوړلو او دګناه نه په منع کیدو کښې پخپله مجبوره شي، لهذا دمجبورئ ایمان او توبه د قبلیدو جوګه نه وي-

دقرآن کریم بې شمیره آیتونو کښې دا بیان راغلې دې چه کله دوزخیان دوزخ ته اورسي نو فریاد به کوی او لوئې لوئې وعدې به کوی که مونږه دنیا ته بیرته اولیږلې شو نو مونږ به دایمان او نیک عمل نه سوا بل هیڅ کار نه کوو مګر تولو ته به هم دغه یو جواب وی چه اوس دایمان او عمل وخت ختم شو اوس داخبرې چې تاسو کوئی دمجبورئ او بې اختیارئ نه کوئ ځکه دې لره هیڅ اعتبار نشته-

ددې آیت په تفسیر کښې درسول الله ﷺ داارشاد منقول دې چه هر کله دقیامت داآخري نښانی ښکاره شي چه نمر به دمغرب نه راوخیژي نو ددې په لیدو به دټولې دنیا کافران دایمان کلمه درسته کړی او ټول نافرمان خلق به فرمانبرداران جوړ شي لیکن ددغه وخت ایمان او توبه به دقبلیدو جوګه نه وي، [بغوی په خپل سند سره دابی هریره نه]-(۱)

(۱) التفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۰۷

په دې آیت کښې دقرآن کریم د وضاحت نه دامعلومه شوه چه ځنې نشانیانې دقیامت به داسې وی چه دهغې په راتلو به دتوبې دروازه بنده شي یعنې د کافراو فاسق توبه به نۀ قبلیږی، قرآن کریم دغه نښانی په ګُته کړې نۀ ده، خوصحیح بخاری، ددې آیت په تفسیر کښې دابو هریره ﷛ روایت داحدیث شریف نقل کړیدې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل:

،، قیامت به تر هغې نه قائمیږی ترڅوچه دمغرب له اړخه دنمرختو واقعه نۀ وی راپیښه شوی تول خلق به دَدے نشانې په لیدلو ایمان راوړی، داهغه وخت دې چه دقرآن کریم دارشادمطابق به هیچاته دهغه ایمان راوړل فائده نۀ ورکوی-(۱)

په صحیح مُسلم کښې دحذیفه بن أسید ﷛ په روایت دَدے تفصیل داسې منقول دې چه یو ځل صحابه کرامو ﷡ دعلاماتودقیامت په باره کښې خبرې اترې کولې، په دې کښې رسول الله ﷺ تشریف راوړونو دغه وخت نې اوفرمائیل چه قیامت به تر هغې نۀ قائمیږی ترڅوچه تاسو لس نشانیانې اونۀ وینئ ، دمغرب له اړخه نمرراختل، یوخاص قسم لوږې، دابة الارض، اویاجوج ماجوج، راڅرګندیدل، دحضرت عیسی ﷵ نازلیدل، ددجال راوتل اودرے ځایه زمکه په ښکته غرقیدل یومشرق کښې بل مغرب کښې او بل په جزیرة العرب کښې اوداسې اورچه دعدن دتل نه به رابرڅیره کیږی اوخلق به په مخه بوځی اوروانوی.(۲)

اوپه مسند احمد کښې دابن عمرپه روایت منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه پۀ دې تولو نشانیانو کښې به رومبې دنمرراختل دمغرب نه اوددابة الارض راڅرګندیدل وی-(۳)

امام قرطبی په تذکره کښې اوحافظ ابن حجرپه شرح دبخاری کښې په روایت دحضرت عبدالله ابن عمرداهم نقل کړیدی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله نمر دمغرب نه راڅیژی نوهغې نه پس به شپږ شلو [یو سل شل] کالوپورې دنیاقائمه اوآباده پاتې کیږی [روح المعانی] (۴)

ددې تفصیل نه پس، دلته داسوال پیداکیږی چه هرکله به حضرت عیسی ﷵ داسمان نه راکوز شی نودصحیح روایتونو مُطابق به خلقوته دایمان بلنه ورکوی ،خلق به ایمان قبول کړی، اوپه توله دُنیاکښې به اسلام جاری شی، ښکاره خبره ده که دغه وخت ایمان نۀ قبلیږی نودغه بلنه اودخلقوپه اسلام کښې داخلیدل به تول غلط اوبې فائدې شی-

تفسیرروح المعانی کښې ددې جواب داورکړې شوې دې چه دمغرب نه دنمرراختو واقعه به دحضرت عیسی ﷵ دنازلیدونه ډیره زمانه روستووی په کومې سره چه دتوبې دروازه بندیږی-

اوعلامه بلقینی وغیره فرمائیلی دی چه داخبره هم دقیاس نه لرې نۀ ده چه دمغرب داړخه په نمرراختوسره دتوبې دروازه بندیدل به ترآخروخت پورې جاری نۀ وی بلکه څه زمانه پس به دغه حُکم بدل شی ایمان اوتوبه قبلیدل بۀ شروع شی والله اعلم [روح المعانی] -(۵)

خُلاصه دکلام داشوه چې په دغې آیت کښې اګرچه ددې وضاحت نۀ دې شوې چه په کومې نشانی راتلوسره به دتوبې دروازه بندیږ ی، خودرسول الله ﷺ دبیان نه واضحه شوه چه دانشانی به دمغرب داړخه نمرراختل وی-

---

۱) صحیح البخاري، کتاب التفسیر، باب لا ینفع نفساً ایمانها: ج ۲، ص ۶۶۷

۲) صحیح مسلم، کتاب الفتن، فی ظهور عشر آیات: ج ۲، ص ۳۹۳

۳) مسند أحمد، مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه رقم الحدیث: ۳۳۲۵

۴) تفسیر روح المعانی، سورة محمد ۱۸، ج ۱۳، ص ۱۳۲

۵) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۶، ص ۸

قرآن کریم پخپله دَدې وضاحت ځکه اونکړو چه انسان بیدار اوسی اوهره نوې راتلونکې نشانی همدغه نشانی ګنړی اوپه توبه کښې تلوار اوجلدی کوی -[تفسیر بحر محیط] -

دَدې نه علاوه ددې ابهام اواجمال نه يوه فائده داهم ده چه انسان په دې خبردارېاتې شی چه څنګه دَتولې دُنیا دَخلقو دَپاره دَتوبې دروازه بندیدل به دَمغرب دَاړخه په نمرراختوسره کیږی، دغه شان هرکَس دَپاره په خانګړی دول دغه نشانی دَهغه دَمرګ وخت راتلل وی چه په هغې سره هم دَتوبې دروازه بندیږی-

قرآن کریم په يو بل آيت کښې دانشانی په داګه داسې بیان کړیده: ﴿وَلَيۡسَتِ ٱلتَّوۡبَةُ لِلَّذِينَ يَعۡمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ حَتَّىٰٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ ٱلۡمَوۡتُ قَالَ إِنِّي تُبۡتُ ٱلۡـَٔـٰنَ﴾ [دَهغې خلقو توبه نهٔ قبلیږی چه په مخه ګناه کوی تردې چه کله يو ته دَدوئی څخه مرګ راشی نوواٸی چه زهٔ اوس توبه کوم] -

دَدې وضاحت دَ رسول الله ﷺ داسې کړیدې: [ان توبة العبد تقبل مالم يغرغر] دَبنده توبه ترهغې پورې قبليږی ترڅوچه دَمرګ آخری سلګۍ ئې نه وی راغلې-(۱)

معلومه شوه چه دَمرګ دَآخری سلګیو په موقعه هرکله چه دَمرګ فرشتې مخې ته راشی نودغه وخت هم توبه نهٔ قبلیږی اوداهم ښکاره ده چه داصُورت حال هم دَالله تعالی له اړخه يوه ډیره اهمه نشانی ده په دې وجه په دغه آيت کښې دَ﴿بَعۡضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ﴾نه مطلب دَمرګ وخت هم دې،لکه په تفسیر ، ،بحرِمُحیط، ، کښې دَځنې عُلماؤداقول هم نقل کړې شویدې اوځنې بزرګانو فرمائیلی دی: ﴿من مات فقد قامت قيامته﴾[څوک چه مړشو په هغه قیامت راغلو](۲) ولې چه دارالعمل ختم شو اودَ عملونو بدلې څه نمونه يې هم دَقبرنه شروع شوه چنانچه صائب دامضمون نظم کړیدې-

توبه هارانفس بازپسیں دست زدست	بیخبر دیر رسیدی درمحمل بستند

[توبې آخری سلګو دَمرګ دَلاسه ورکړې.اې ناخبره په مهلت سره راؤرسیدې دکیجاوې دروازه بنده شوه]

دلته دَعربی ژبې په لحاظ سره داخبره دکتلوجوګه ده چه دې آيت کښې وراندې: ﴿أَوۡ يَأۡتِيَ رَبُّكَ أَوۡ يَأۡتِيَ بَعۡضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ﴾اوفرمائیل وروسې بیا داجمله داسې رادوباره کړې شوه: ﴿يَوۡمَ يَأۡتِي بَعۡضُ ءَايَٰتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفۡسًا إِيمَٰنُهَا﴾ حالانکه په ضمیرراوړلوسره جُمله مختصره کیدې شوه،دې نه معلومیږی چه په رُومبئ جُمله کښې ﴿بَعۡضُ ءَايَٰتِ﴾اوپه بله جُمله کښې بِعینه همدغه الفاظ راوړل دابښائی چه دغه دواړه خپل منځ کښې بیلې بیلې نشانئ دی،په دې کښې هم هغه تفصیل ته اشاره کیدې شی کوم چه اوس په روایت دَ ،حذیفه بن اسید کښې داسې بیان شویدې چه دَقیامت لس نشانیانې ډیرې اهمې دی په هغې کښې آخری نشانی دَمغرب دَاړخه نمرراختل دی چه دَتوبې بندیدونشانئ ده-

په آخردَ آيت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿قُلِ ٱنتَظِرُوٓاْ إِنَّا مُنتَظِرُونَ﴾په دې کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې چه تاسوخلقوته اووایئ چه دَالله تعالی دَتولوحُجتُونو پُوره کیدونه پس هم که تاسودَمرګ یا قیامت انتظارکول غواړئ نوکوئ ئې مُونږ به هم دَدې انتظارکوچه تاسوسره به ستاسوربِ څه معامله کوی؟

---

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۹۹

(۲) تفسیر البحر المحیط: ج ۵، ص ۲۹۹

اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا لَّسْتَ
بیشکه هغه کسان | چی توټې توټې ني کړو | دين خپل | اوشو هغوئ | ډلې ډلې | نه ئي ته
چاچې خپل دين توټې توټې کړو | ...............اوډلې ډلې شو | ............نو ستا

مِنْهُمْ فِيْ شَيْءٍ ؕ اِنَّمَآ اَمْرُهُمْ اِلَى اللّٰهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ
دهغوئ نه | په هيڅ څيز کښې | بيشکه | معامله دهغوئ | الله ته [حواله ده] | بيا | به هغه خبر کړي هغوئ
دهغوئ سره هيڅ تعلق نشته | ددوئ معامله الله ﷻ ته حواله ده | بيا به ورته الله هغه کارونه اوښائي

بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ۝ مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ
په هغه څه | چی وو هغوئ | چی کول به ئي | هغه څوك | چی راغې | دنيکۍ سره | نو دي هغه لره
کوم چه هغوی کړي وو | ..............چا چې يوه نيکی اوکړه | ............نو دهغه دپاره

عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا
لس | مثله اجر دهغې | اوهغه څوك چی راغې | دبدئ سره | نو بدله به نشي ورکړې کيدې | مگر
لس چنده بدله ده | اوچا چه يوه گناه اوکړه | .......نوهغه ته به صرف دخپلې گناه هومره سزا ملاويږي

مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝
په مثل دهغې | اوپه هغوئ به | ظلم نه کيږي |
په هغوی باندې به هيڅ ظلم نشي کولې |

### آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره !) يقين وکړه چه کومو خلقو دين کښې تفرقه پيدا کړې ده ، او ډلو کښې تقسيم شوي دي، هغوی سره ستا هيڅ تعلق نشته. د هغوی معامله خو دالله په حواله ده بيا به هغه دوی ته وښائي چه دوی څه کول څوك چه يوه نيکي وکړي هغهٔ ته به دهغې پشان د لسو نيکو ثواب ملاؤ شي ، او څوك چه گناه وکړي هغه ته به صرف دهغې يوې گناه سزا ملاويږي ، او په هغوی به څه ظلم نه کيږي.

### خلاصه تفسير

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ ﴾ بيشکه کومو خلقو چه خپل دين بيل بيل کړو [يعنی ټول حق دين ئے سراسری قبول نکړو اګر چه ټول ئے پريښودو يا بعضې ئے پريښودو اودشرك كفر اوبدعت طريقے ئے اختيار کړې] ﴿ وَكَانُوْا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِيْ شَيْءٍ ﴾ او [مختلف] ټولی ټولی جوړ شو ستاسو دوی سره هيڅ تعلق نشته [يعنی تاسو ددوی نه خلاص يئ په تاسو هيڅ ذمه داری نشته] ﴿ اِنَّمَآ اَمْرُهُمْ اِلَى اللّٰهِ ﴾ بس [دوی د خپلو نيکو بد پخپله ذمه دار دی او] ددوی معامله الله (ته حواله ده [هغه ئے وينی گوری] ﴿ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ۝ ﴾ بيا به [په قيامت کښې] په دوی ددوی کړه وړه ضباطوی [او ثبوت ښکاره کيدوسره به يئ دعذاب حقدار کيدل ښکاره کړی] ﴿ مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ ﴾ څوك چه نيك كار كوی هغه ته به [كمه درجه] ددې نه لس برخے ملاويږی [يعنی داسې به گنړلے شی چه دغه نيکی ئے لس خله اوکړه اوداشان په يو نيکۍ به چه څومره ثواب ملاويدو اوس به دهغې ثواب لس چنده ملاويږی] ﴿ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا ﴾ او

څوک به چه بدکاري کوي نو هغه ته به هم دهغې برابره سزا ملاوېږي [زياته به نه ملاوېږي] ﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾ او دے خلقو باندې به [ښکاره هم] ظلم نه کيږي [په دې شان چه څه نيکي نے درج نکړي شي يا څه بدي زياته اوليکلے شي].

## معارف اومسائل

دَسُورت انعام زياته برخه دَمکې دَمُشرکانو دَخطاب اودَهغوئ دَسوال وجواب په باره کښې راغلې ده، په کوّمه کښې چه هغوئي ته داهدايت کړې شوې وو چه داوخت دَالله تعالى نيغه لاريواځې دَقُرآن کريم اودَرسول الله ﷺ په تابعدارئ باند اړه لري، څنګه چه دَدوئ نه دَوړاند پيغمبرانو په زمانه کښې دَهغوئي دکتاب اودَشريعت په تَابعدارئ باند خلاصې مونډل بناوو، نن، صرف ستاسو اوستاسودَشريعت په تابعدارئ کولوباند خلاصې مُونَدل بنادي ،عقل نه کارواخلئ او دَدې نيغې لارې په پرينبودو سره ،دَبنى اوګس اړخ غلطې لارې مهٔ اختياوئ ګنې دغه لارې به تاسو دَخدائي نه لرې کړي-

دَدې آيتُونوځنې په رُومبى آيت کښې يوعام خطاب دې چه دَعربو مُشرکانو، يهودو، نصاراؤ او مُسلمانانوټولوته دې، دَدې ټولو په مخاطب کولوسره دَالله تعالى دَلارې نه دَاوړيدونکوخراب انجام بيان کړې شويدې اورسول الله ﷺ ته هدايت ورکړې شويدې چه ستاسو هغه خلقوسره هيڅ تعلق نهٔ دى کيدل پکار چه په غلطولاروباند روان دى، بياپه دې کښې غلطې لارې هغه هم دى چه دَصراط مستقيم نه په خلاف طرف بوتلَونکي دى .لکه د مشرکانو او اهل کتابو لارې او هغه لارې هم دَى چې مخالف طرف ته خونهٔ دى ليکن دَسمې لارې نه ئې اړولوسره بنى اوګس اړخ ته بوتلونکي دى، دادَشُبهاتو اوبدعاتو لارې دى چه انسانان په ګُمراهئ کښې اچوي-فرمائي. ﴿إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ۚ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ﴾ [کوموخلقوچه لارې راؤښکلې په خپل دين کښې اوشوګنړې فرقې ستاسودوئ سره هيڅ کارنشته، دَدوئ کارخالص دَالله تعالى په حواله دى، بيابه پرِ ثابتوي ياښکاره کوي خُدائي پاک هغه څه چه دوني به کول-

په دې آيت کښې خوئي اول دَهغه خلقوپه باره کښې اوښودل چه الله اورسول ترې بيزاره دې کوم چه په غلطولاروروان دى، د دوئ سره دَ رسول الله ﷺ هيڅ تعلق نشته، بيائې ورته سخت وعيدواؤرولوچه دَدوئ معامله خالص دَالله تعالى په حواله ده هم هغه به ورته دَقيامت په ورځ سزاورکوي-

په دين کښې جُداوالي راوستل اوفرقې جوړيدل کوم چه په دې آيت کښې بيان شويدى، دې نه مُرادَ دادې چه دَدين دَبنيادي خبروتابعداري پريښودلې شي، دَخپلوخيالونواوخواهشونومُطابق يا دَ شيطان دَغولولواودوکه کولوپه وجه په دين کښې څه نوي څيزونه زيات کړي ياځنې څيزونه پريږدي-

**په دين کښې بدعت راوېستلو باند سخت وعيد**: په تفسير مظهري کښې دى چه په دې کښې د پخوانو اُمتونوخلق هم داخل دى چاچه دَخپل دين أُصول پريښول اودَخپله خان نه ئې پکښې نورڅيزونه ملاؤکړي وؤ اودَدې اُمت بدعتيان پکښې هم داخل دى چه په دين کښې بې بنياده خبرې دَخپله خان نه شامله وي (۱) چنانچه رسول الله ﷺ په يوحديث کښې دامضمون په دې شان واضح کړيدې چه زما اُمت ته به هم هغه حالات راپيښيږي کوم چه بني اسرائيلوته راپيښ شوي ووڅنګه

(۱) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳۷

چه هغوئ په بدعملو کښې اخته شوی وو هغسې به زما اُمتیان هم پکښې اخته کیږی ، بنی اسرائیل دوه اویافرقو کښې ویشلې شوی وو زما اُمت به درې اویافرقې وی چه ډیوې نه سوا ټولې فرقې به دوزخ ته ځی، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړوچه خلاصې موندونکې فرقه کومه یوه ده، وې فرمائیل ﴿ماانا علیه واصحابی﴾ [دا به هغه خلق وی چې زما اوزما دصحابه کرامو ﷺ په لاره روان وی، ، [ترمذی، ابوداؤد په روایت دابن عمر ﷺ] ([1])

اوطبرانی په معتبرسندسره دحضرت فاروق اعظم نه نقل کړیدی چه هغوئ حضرت عائشې ﷺ ته اوفرمائیل چه په دې آیت کښې دهغې فرقوذکردې چه بدعت کوونکی دی اود خپلو خواهشاتو او خیالاتوپه جوړنوې طریقې دخان نه راوباسی، ([2]) هم دامضمون دحضرت ابی هریره نه په صحیح سندسره نقل شویدې ،په دې وجه رسول الله ﷺ په دین کښې نوې طریقې دخپله خان نه راویستل په ډیرتاکیدسره منع کړیدی-

امام احمد ﷺ، ابوداؤد ﷺ اوترمذی ﷺ وغیره په روایت دعرباض بن ساریه، درسول الله ﷺ نه داارشادنقل کړیدې:

په تاسوکښې چه زمانه پس به څوک ژوندې وی هغوئ به ډیراختلافات او وینی خکه [درته وصیت کوم چه] تاسوزماسُنت اودخلفائې راشدینوسُنت بنه مضبوط اونیسئ اوپه هرکارکښې دهغې مُطابق عمل کوئ، دنوؤنوؤطریقونه ځانونه ساتلی لرئ، ولې چه په دین کښې نوې پیداکړې هرڅیزبدعت دې اوهربدعت ګُمراهی ده-([3])،،

هغوئ فرمائیلی دی چه ،،څوک دډلې نه دیولویشت په اندازه جُداشوهغه داسلام ګردنئ[هار] دخپل څټ نه اوښکله [ابوداؤد، احمد]-([4])

په تفسیرمظهری کښې دی چه دې حدیث کښې دډلې نه مُراد، دصحابه کرامو ډله ده، وجه ئې داده چه الله تعالی زموږ آقامحمد مصطفی ﷺ درسول په حیث راؤلیږلواوورته ئې قرآن ورکړو، دې نه علاوه ئې ورته بل قسم وحی هم ورکړه چه ورته حدیث یاسُنت وئیلې شی، بیاپه قرآن کریم کښې ګنړآیتونه، مشکل یامجمل یامبهم دی، ددې په باره کښې الله تعالی داوعده فرمائیلې ده چه تفسیراوبیان به ئې دخپل رسول په ذریعه کوی، لکه فرمائی: ﴿ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ﴾

هرکله چه رسول الله ﷺ دقرآن کریم دمُشکلاتواومبهماتوتفسیراودخپل سُنت تفصیلات خپلو نیغ په نیغه بالذات شاګردانویعنی صحابه کراموته دخپل قول اوعمل په ذریعه وراوښودل په دې وجه دجمهوروصحابوعمل دالله تعالی دټول شریعت بیان اوتفسیردې-

په دې وجه دمُسلمانانونیک بختی په دې کښې ده چه په هرکارکښې دکتاب الله اودرسول الله ﷺ دسنتُو تابعداری کوی ،اودکوم آیت اوحدیث په مُراد کښې چه اشتباه وی په هغې کښې

---

[1] ) جامع الترمذی، أبواب الإیمان، باب ما جاء فی افتراق هذه الأمة: ج ۲، ص ۹۳ وسنن ابی داود، کتاب السنة، باب شرح السنة: ج ۲، ص ۶۳۱

[2] ) المعجم الصغیر للطبرانی رقم الحدیث: ۵۶۱

[3] ) سنن ابی داود، کتاب السنة، باب فی لزوم السنة: ج ۲، ص ۶۳۵ وجامع الترمذی، أبواب العلم، باب ما جاء فی الأخذ بالسنة الخ: ج ۲، ص ۹۲ ومسند أحمد، حدیث العرباض بن ساریة رضی الله عنه رقم الحدیث: ۱۷۱۴۲

[4] ) سنن ابی داود، کتاب السنة، فی قتل الخوارج: ج ۲، ص ۶۵۶ ومسند أحمد، حدیث أبی ذر الغفاری رضی الله عنه رقم الحدیث: ۲۰۵۶۱

دهغوی لره اختیار کړی کوم چه جمهور صحابه کرامو اختیار کړې وی-([1])

دامقدس أصول چه شاته اوغورځولې شونو په اسلام کښې مختلفې فرقې پیداشوې، دَصحابه کرامو دَعمل طور، طریقې اودهغوی تفسیر کول ئې شاته اوغورځول اوخپل زړۀ ته ئې چه څه راغلل هغه ئې دَقرآن اوسنت مطلب اوګرځولو، دادګمراهۍ هغه لارې چارې دی چه قرآن کریم تربیابیامنع فرمائیلې ده او رسول الله ﷺ هم تول عُمرپه ډیرتاکیدسره منع کړیدی په هغوئی ئې لعَنت ونیلې دې څوک چه دَدې خلاف کوی.

دَحضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه، زۀ په شپږو کسانو لعنت کوم، الله تعالی دهم پرلعنت اوکړی، یوپه هغه چا، چه په کتاب الله کښې ئې دخپل ارخه څه زیات کړل [الفاظ ئې زیاتَ کړل یاپه معنی کښې ئې داسې څه زیاتوالې راوستوچه دصحابه کرامو رضی الله عنهم دَتفسیرنه خلاف وی] دویم په هغه چاچه دَتقدیرالهی مُنکروی، دریم په هغه چاچه په اُمت باندی په زورسره خپل ځان بادشاه یاحاکم جوړکړی چه هغه چاته عزت ورکړی کوم چه الله تعالی ذلیل کړی وی اوهغه څوک ذلیل کړی چه الله تعالی عزت ورکړې وی څلورم په هغه چاچه دَالله تعالی حرام کړی ئې حلال اوګنړل، یعنی دمکې په حرم کښې جنګ جګړې یا ښکار کوی، پنځم په هغه چاچه زمادعزت اواولادبې عزتی اوکړه، شپږم په هغه چاچه زماسُنت ئې پریښودل-([2])

په دونم آیت کښې فرمائی ﴿مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ﴾

دې نه وړاند آیت کښې دابیان ووچه صراطِ مستقیم نه آؤړیدونکوته به هم الله تعالی دَقیامت په ورځ دَدوئ دَعملونوسزاورکوی-

اوس په دې آیت کښې دآخرت دَجزااوسزا، کریمانه ضابطه داسې بیان شویده چه څوک یونیک کاراوکړی، هغه ته به لس چنده بدله ورکولې شی-

صحیح بخاری، مُسلم، نسائی اومسند احمد کښې منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو رب عزوجل رَحیم دې، څوک چه دَنیک کارصرف اراده اوکړی، هغه دَپاره یوه نیکی لیکلې شی، اګرچه هغه عمل کښې هم رانه وستلې شی، بیاچه کله دغه نیک کاراوکړی نولس نیکۍ دَهغه په عملنامه کښې لیکلې شی، اوڅوک چه دَڅه ګناه اراده اوکړی مګربیاهم په هغې عمل اونکړی نوداسې کَس دَپاره هم یوه نیکې لیکلې شی، اوکه دَدغې ګناه کارترسره کړی نویوه ګناه لیکلې شی یادَسره هیڅ لیکلې نشی، دَدې عفواوکرم په موجودګئی کښې دَالله تعالی په دربارکښې هم هغه څوک هلاکیدې شی چاچه دَخپلوهلاکیدوپوره قصد کړې وی- [ابن کثیر]-([3])

دَحضرت ابی ذرپه روایت په حدیث قدسی کښې داسې راغلی دی چه:-

یوې نیکۍ کوؤنکی ته به دلسونیکوهومره ثواب ملاویږی اودې نه هم زیات اوڅوک چه یوګناه کوی نودَهغې سزابه دَیوګناه په اندازه ملاویږی یابه ورته هم دغه معاف کړم اوڅوک چه دومره زیاته ګناه اوکړی چه زمکه تر ډکیږی، ماته راشی اودَبخښنې طلبګاروی نوزۀ به ورسره دَدغې هومره بخښنې کولو معامله اوکړم- اوڅوک چه یولیشت راته رانژدې کیږی زۀ ورته دَیولاس

---

[1] )التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۲۵، ۳۲۶

[2] )جامع الترمذي، أبواب القدر، باب ما جاء في الرضاء بالقضاء ج ۲، ص ۳۷

[3] )تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۷۸، ومسند أحمد رقم الحديث: ۲۳۸۸، وصحيح البخاري، كتاب الرقاق، باب من هم بحسنة او بسيئة: ج ۲، ص ۹۶۰، وصحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب بيان تجاوز الله تعالى عن حديث النفس الخ: ج ۱، ص ۷۸

په اندازه ورنزدې کيږم، اوڅوک چه راته دَيولاس په اندازه رانژدې کيږي زهٔ ورته دَيوباع په اندازه ورځم[دَدوؤلاسو ودَخوروالی په اندازه اوږدوالی ته باع ونيلې شی]-اوڅوک چه په خپوخوراته راځي زهٔ ورته په منډهٔ ورځم -]([1])

دَحديث دَدې روايتونونه معلومه شوه چه په آيت کښې دَنيکئ جزاپه لس چنده زياتيدل دکم نه کم حدبيانول دی چه الله تعالی په خپل فضل وکرم سره دَددې نه زياته هم اورکولې شی اوورکوی څنګه چه دَنورو روايتونونه په اوياچنده ياپه اوه سوه چنده زيات ثواب هم ثابتيږی -

دَدې آيت په الفاظوکښې داخبره هم دَغورکولوجوګه ده چه دلته لفظ دَ﴿جَآءَ بِالْحَسَنَةِ﴾نې راوړو﴿من عمل بالحسنة﴾ نې اونه فرمائيل ،په تفسير بحرمحيط کښې دی چه دې نه دې اړخ ته اشاره بيا مُوندې شی چه يواځې په څه نيک يابدکارکولوباند داجزاياسزانشی ورکولې ،بلکه جزا او سزا دَپاره دَمرګ تروخته پورے دنيک يابدعمل په ځائې کلك پاتې کيدل شرط دی،([2]) نتيجه نې دا ده چه که چاخپل کړې نيک عمل،دَڅه ګناه په باعث بربادا وضائع کړونوهغه په دغې عمل سره دَجزا حقدارپاتې نشولکه معاذالله چه کفراوشرک ټول نيک عملونه بربادوی-دې نه علاوه نورهم ډير داسې ګناهونه دی چه څنې نيک عملونه بربادوی اوبې اثره کوی يې څنګه چه قرآن کريم فرمائی: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُبۡطِلُواْ صَدَقَٰتِكُم بِٱلۡمَنِّ وَٱلۡأَذَىٰ﴾

[يعنی تاسوخپلې صدقې اوخيراتونه په احسان يادولو يا په زيان رسولوسره مه بربادوئ]-

دې نه معلوميږی چه دَخيرات کولونيکی په احسان ضباطولو[اچولو]يازيان رسولوسره بربادي‌ږی، دغه شان په حديث شريف کښې راغلی دی چه په جُومات کښې دنته دُنيوی خبرې کول نيکئ داسې خوری څنګه چه اور،لرګی خوری،([3]) دې نه معلومه شوه چه په جُومات کښې کړی نيک عملونه لکه نفل مونځ اوتسبيحات وغيره په دُنيوی خبروکولوسره بربادي‌ږی-

دغه شان بدعملونه په توبې کولوسره معاف کيږی اودَعملنامې نه کټ کولې شی،چه دَمرګ تروخته پورې باقی نهٔ پاتې کيږی،لهذاپه دې آيت کښې نې دا اونهٔ فرمائيل چه ، ،څوک نيک يا بدعمل اوکړی نوهغه ته به جزا ،سزاورکولې شی،بلکه داسې نې اوفرمائيل چه ، ،چامونړته نيک عمل راوړونولس چنده ثواب به نې ورکولې شی اوکه بدعمل نې راوړونوهم دَيوعمل سزابه بيامومی،دَالله تعالی خواته دَعمل راوړوداصورت جوړيږی چه هغه عمل نې دَمرګ تروخته پورے قائم پاتې شی،دَنيک عمل بربادونکې څه څيز راپيښ نشی اودَبدعمل راوړلو مطلب دادې چې د بد عمل څخه توبه اواستغفاراونکړی-

په آخردآيت کښې نې اوفرمائيل ﴿وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ﴾[يعنی په دې زيات لورعدالت کښې په چاظلم هيڅ کله نشی کيدې،نهٔ پکښې دَنيک عمل بدله کمولې شی،نه پکښې دَبدعمل دَزياتې سزاورکولواحتمال شته-

---

[1]) صحيح مسلم، كتاب الذكر والدعاء الخ، باب فضل الذكر والدعاء: ج ٢، ص ٣٤٣

[2]) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٣٠٢

[3]) كشف الخفاء رقم الحديث: ١١٣١

وَمِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝ قُلْ إِنَّنِي هَدٰنِي رَبِّي

په مثل دهغې | اوپه هغوئ به | ظلم نه کیږي | اے نبي اووایه | بیشکه زه | چې یم لاربښودلی ده ماته | رب زما

په هغوی باندې به هیڅ ظلم نشي کول کیږي | [اې پیغمبره] ورته اووایه ماته زما رب د نیغې لارې

إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا

لارې | نیغې | ته | دین صحیح | طریقه | دابراهیم ﷺ | چې نیغ په حقه راوان وو

خودنه کړي ده | .......... چه هغه محکم دین د ابراهیم طریقه ده چې کوږوالي په کښې نشته

وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝ قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ

اونه وو | د مشرکانو نه | اووایه | بیشکه | مونځ زما | اوعبادت طریقې زما | اوژوند زما

اوهغه دمشرکانو په ډله کښې شامل نه وو | اورته اووایه چې زما مونځ اوزما ټول عبادتونه اوزما ژوند

وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَٰلِكَ

اومرګ زما | الله لره دي | چې پالونکي دمخلوقاتو دي | نشته شریک | هغه لره | اوپه دې باندې

اوزما مرګ هرڅه خالص دالله ﷻ دپاره دي | اوهغه دټول مخلوق پروردګار دي | هیڅوک ئې شریک نشته | ماته هم ددې

أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ ۝ قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ

حکم راکړې شوې دې ماته | اوزه | اول | حکم منونکې یم | ووایه | آیابغیر دالله نه

حکم راکړې شوې دې | اوزه دهرچا نه اول دهغه حکمونه منونکې یم | ورته اووایه چې ایا دالله ﷻ نه

أَبْغِي رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا

تلاش کړم زه | بل رب | اوحال داچې هغه | رب دې | دهر څیز | اونه کسب کوی | هرنفس | مګر

سوا بل څوک رب اولټوم | حال دا دي چې صرف هغه دهرڅیز رب دې | اوڅوک چې کومه ګناه کوی

عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ثُمَّ

ذمه واري ئې په هغه بانده | اونه بار کوی | یو بار اوچتونکې | بار | دبل چا | بیا

هم هغه ته به ئې سزا ملاویږي | اوهیڅوک دبل چابوج نشي اوچتوی | بیا به تاسو ټول الله ﷻ ته

إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ

رب ستاسو ته | واپس تلل دی ستاسو | نو خبر به کړی تاسو | په هغه څه | چې وئ تاسو

پیش کیږی | نو هغه به تاسو ته هغه خبري ښکاره کړي | کومو کښې چې به

فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ۝ وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ

په هغې کښې اختلاف به موکوؤ | اوهغه | هغه ذات دې | چې جوړې کړلې تاسو خلیفګان | دزمکې |

تاسو اختلاف کولو | .......... اوالله ﷻ هغه ذات چې تاسو ئې په زمکه خلیفګان جوړ کړی یئ

وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ

اوپورته ئې کړل | ځینې ستاسو | دپاسه | دځینو | په درجو کښې | دپاره ددې چې ازمینښت اوکړی ستاسو

اوتاسو کښې ئې بعضو ته په نورو بعضو اوچتې درجې ورکړې دی | چې په تاسو باندې په هغه

فِیْ مَآ اٰتٰىكُمْ ؕ اِنَّ رَبَّكَ سَرِیْعُ الْعِقَابِ ۖ

په هغه څه کښې | چې درکړي ئې دي تاسو ته | بیشکه | رب ستا | ډیر تیز دې | په سزا ورکولو کښې

هغه نعمتونو کښې امتحان اوکړي کوم چې ئې تاسو ته درکړي دي | بیشکه الله په سزا ورکولو کښې تیز دې

وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ۟

او بیشکه هغه | خامخا ښښونکې | رحم کونکې دې |

او هغه ډیر ښښونکې او مهربان ذات دې

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) ته ووایه چه ځما پروردګار څه په یوې سمې لارې باندې لګولی یم چه د کږوالی نه پاک دین دې، د ابراهیم علیه السلام دین! چه هغه پوره طریقې سره یکسوئۍ سره خپل مخ الله طرف ته کړې وو او هغه د شرک کوونکو نه نهٔ وو. ته ووایه چه: بې شکه ځما مونځ، ځما عبادت او ځما مرګ او ژوند ټول دالله د پاره دي چه د ټولو جهانونو پالونکې دې. د هغه سره څوک شریک نشته - ددې خبرې ماته حکم شوې دې، او څه هغه ته سر ښکته کوونکې یم. ته ووایه چه څه دالله نه سوا بل چا لره پروردګار اولټوم، حال دا چه هغه د هر یو څیز مالک دې؟ او کوم یو کس چه څه کوي نو دهغې نفع نقصان بل چا ته نه بلکه هغه ته رسي، او څوک بوج اوچتوونکې د بل چا بوج نه اوچتوي بیا ستاسو پروردګار طرف ته ستاسو د ټولو واپس کیدل دي، هغه وخت به هغه تاسو هغه ټولې خبرې ښائي چه تاسو به هغې کښې اختلاف کولو او الله هغه ذات دې چه هغه تاسو آسمانونو او زمکو کښې د یو بل نائبان جوړ کړي، او تاسو کښې ئې ځنې خلقو ته د یو بل نه درجو کښې اوچتوالې ورکړې دې، دې د پاره چه تاسو ته ئې کوم نعمتونه درکړي دي هغې کښې تاسو وآزمائي دا حقیقت دې چه ستا رب ژر سزا ورکوونکې دې، او دا (هم) حقیقت دې چه هغه ډیر ښښونکې، ډیر مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ قُلْ اِنَّنِیْ هَدٰىنِیْ رَبِّیْۤ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ۚ﴾ تاسو اووائې چه ماته زما رب یوه نیغه لاره [د وحی په ذریعه] راخودلې ده ﴿ دِیْنًا قِیَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِیْمَ حَنِیْفًا ۚ﴾ چه هغه یو دین دے [چه په دلیلونو سره د ثابتیدو په وجه] مستحکم [مضبوط دې] چه طریقه ده دابراهیم علیه السلام چه په کښې یوه ذره کوږوالې نشته ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ۟﴾ او هغه [ابراهیم علیه السلام] دشرک کوونکو نه نه وو [او] تاسو ددې دین دڅه قدرې تفصیل دپاره] ﴿ قُلْ اِنَّ صَلَاتِیْ وَنُسُكِیْ وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۟ۙ﴾ اوفرمائې چه [ددې دین حاصل دادې چه] بالیقین زما مونځ او زما ټول عبادتونه او زما ژوند او مرګ دا ټول خالص الله جل جلاله لره دی چه مالك دے د ټول جهان. ﴿ لَا شَرِیْكَ لَهٗ ۚ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ ﴾ دهغه [دعبادت په حقدار کیدو یا درب والی په اختیاراتو کښې] هیڅوک شریك نشته او ماته هم ددې [په دې ذکر شوی دین باندې دپاتې کیدو] حکم شوې دے ﴿ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِیْنَ ۟﴾ او [دحکم موافق] زه [ددې دین په خاوندانو کښې] دټولو منوونکو نه ړومبے [منونکے] یم ﴿ قُلْ اَغَیْرَ اللّٰهِ اَبْغِیْ رَبًّا وَّهُوَ رَبُّ كُلِّ شَیْءٍ ؕ﴾ تاسو [باطل طرف ته دغه بلوونکوته] اوفرمائې چه آیا [دتوحید او اسلام دحقیقت په ډاګه کیدو نه پس ستاسو په وینا سره] زه دالله جل جلاله نه سوا څوك بل درب جوړولو دپاره اولټوم

[يعني نعوذ بالله ﷻ شرك اختيار كړم] حالانكه هغه مالك دے دهر څيز [او ټول څيزونه دهغه په ملكيت كښې دی چه هغه مالك سره شريك نشي كيدلې] ﴿ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ﴾ او[تاسو چه وائې چه ستاسو ګناه زمونږ په غاړې نودا څكه عبث خبره ده چه كوونكې خودے پاك اوصفا پاتې شی اويواځې بل دے ګناهګار شی بلكه خبره داده چه]څوك هم څه عمل كوی هغه هم دهغه په څټ وی﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ اوڅوك به د بل پيټے [دګناه] نه پورته كوی [بلكه هر څوك به خپله خپله سزاڅكی] ﴿ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴾ بيا [دټولو دعمل كولونه پس] به تاسو ټولو لره دخپل رب خواته تلل وی بيا به يئ هغه درباندې ضباطوی په كوم څيز چه تاسو اختلاف كولو [چه چا به يودين په حقه بللو اوچا به بل دين هلته به په عملی اطلاع سره فيصلهاوكړې شی چه اهل حق به خلاص كړې شی اواهل باطل ته سزا وركړې شی]

﴿ وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ ﴾او هغه [الله ﷻ] داسې دے چه تاسوئے په زمكه كښې اختيار مند جوړ كړئی [په دې نعمت كښې ټول يو شان يئ] ﴿ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ ﴾ او ديوئے په بل باندې [په مختلفو څيزونو كښې] مرتبه پورته كړه [په دې نعمت كښې په يوبل باندې پورته والے دې] ﴿ لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ ﴾ دپاره ددې چه په دې نعمتونو سره ظاهرا ستاسو امتحان اوكړی ، پدې څيزونو كښې چې د مذكوره نعمتونو نه يې تاسو ته دركړی دی [آزمائيل داسې دی چه څوك ددې نعمتونو قدر كوی او د منعم يعنی انعام كوونكی] فرمانبرداری كوی او څوك ئې بے قدرئ كولو سره فرمانبرداری نه كوی نو څوك فرمانبرداره اوڅوك نافرمانه شوچه دواړوسره به دهغوی دشان مناسب معامله اوسلوك كولے شی ولے چه] ﴿ إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ ﴾ يقينًا ستا رب زر سزا وركوونكې[هم]دې﴿ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾اويقينًا هغه واقعی لوئې بخښوونكے مهربانی كوونكې[هم]دې [نونافرمانو خلقو لره سزاده اوفرمانبرداراولره رحمت دې او نافرمانئی نه فرمانبرداریٔ ته را اوړيدونكو دپاره بخښنه ده نو مكلفو خلقو دپاره ضروری شوه چه دحق دين په جوړ فرمانبرداری اختيار كړی اود باطلو اودحق مخالفت كولو نه واوړی]

## معارف اومسائل

دادسُورت انعام آخری شپږ آيتونه دی چاچه په دين كښې كمی اوزياتی كولوسره مُختلف دينُونه جوړ كړیَ وواوپخپله په مختلفوټولواوفرقو كښې ويشلې شوی وو،ددوئ په مقابله كښې په وړاندينودرې آيتونو كښې دَحق دين صحيح تصوير ،ددے بنيادی أصول اوځنې دكوئې شان فروع او جزئيات بيان شويدی اوپه درنيم آيت كښې دَدې دكوئې شان فروع ذكر كړې شويدی اوپه دواړو كښې رسول الله ﷺته په خطاب كولوسره داارشادشويدې چه تاسودې خلقوته داخبره اورسونی۔

په رومبی آيت كښې فرمائی ﴿ قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾[يعنی تاسواووايئ چه ماته زما ربَ نيغه لاربښودلې ده]په دې كښې ئې اشاره اوكړه چه ما ،ستاسوپشان په خپلو خيالاتو او دَ پلرونو، نيكونو دَ رسمونو په تابعداریٔ كښې دالارنهٔ ده اختيار كړې،بلكه زمارب ماته دا لار ښودلې ده،اوپه لفظ دَ ،رب، سره ئے دې ته اشاره اوكړه چه دَهغه دَ ،رب والی ، دشان غوښتنه داده چه هغه صحيح لاراوښائی،تاسوهم كه اوغواړئ نودده اړخ ته دَهدايت سامان ،تاسولره هم موجوددې۔

په دویم آیت کښې فرمائي: ﴿دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ دلته ، ،قيمًا، ،په معنى د، ،قيام، ،سره مصدردي مرادترنه په ځائې پاتې کيدونکې مضبوط دې، مطلب داشوچه دادين مضبوط دې چه د الله تعالى له اړخه راغلې په مضبوطو بنيادونو ياند ولاړدې- د چاځانى خيالات نه دى، اوځه نوې دين اومذهب هم نه دې چه پکښې څه شبه اوکړې شى، بلکه د پخوانو تولو پيغمبرانو ﷺ هم دادين دې، په خصوصيت سره ئې د حضرت ابراهيم عليه السلام نوم ځکه ذکرکړوچه د دُنيا د تولو مذهبونو خلق د دوئ د لويئ اوپيشوايئ منونکى دى، اوسنئ تولې فرقې يهود، نصارى اود عربو مُشركان اګرچه په خپل منځ کښې اختلاف لرى مګرد حضرت ابراهيم عليه السلام په بزرګئ او پيشوايئ باند تول اتفاق لرى-داد پيشوايئ هغه مقام دې چه الله تعالى ورته د خصوصى انعام په دول ورکړيدې، لکه فرمائي: ﴿قَالَ اِنِّيْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا ؕ﴾

بيا به په دوئ کښې د هرې فرقې خلقو د دې ثابتولو کوشش کولوچه مُونړه په ابراهيمى دين باند ولاړيو، اوزمُونړه مذهب هم ،دابراهيم عليه السلام ملت دې، د دوئ د دې مغالطې لرې کولو د پاره يې اوفرمائيل چه ابراهيم عليه السلام خود غير الله د عبادت نه ځان ساتونکې اود شرک نه نفرت کوونکې وو، اوهم دغه د دوئ د تولونه لويه کارنامه ده، تاسوخلق هرکله چه په شرک کښې اخته شوئ نو يهودو حضرت عُزير عليه السلام، نصاراؤ عيسى عليه السلام او د عربو مُشرکانو په زرګونو کانړى په خُدايئ کښې شريک اومنل نو بيا په تاسو کښې هيڅ يو فرقه داحق نه لرى چه هغه ځان ته د ملت ابراهيمى پابند اووائى، البته داحق يواځې مُسلمانان ځکه لرى چه دوئ د شرک او کُفرنه بيزاره دى-

په دويم آيت کښې فرماى: ﴿قُلْ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ دلته ، ،نُسک، ، د قربانئ په معنى سره هم راځى اود حج هرفعل ته هم ، ،نُسک، ،وئيلې شى، ځکه د حج عملونو ته ، ،مناسک، ، وئيلې شى اوداالفظ د مُطلق عبادت په معنى کښې هم استعماليږى، ځکه ، ،ناسک، ،لفظ د، ،عابد، ،په معنى کښې استعماليږى ،دلته هريومعنى مراداغستې شى ولې چه د مفسرينوصحابه کراموا وتابعينونه داتول تفسيرونه منقول هم دى، مګردلته د مطلق عبادت معنې اغستل ځکه زياته مُناسبه معلوميږى چه د آيت معنى به داسې شى چه، ،زمامُونځ، زماتول عبادتونه اوزماپوره ژونداوبيامرګ ،داتول د الله رب العلمين د پاره دى-

په دې کښې د عملونود فروع ځخه اول د مُونځ ذکرراغې ولې چه دادتولونيکوعملونوروُح اود دين ستن ده، دې پسې د تولو عملونواوعبادتونواجمالى بيان راغلو، اوبيادې نه په پورته تلوسره د پوره ژوند د عملونواوحالتونوذکرراغلو، په آخر کښې د مرګ ذکرراغلو، د دې تولوپه ذکرکولوسره ئې اوفرمائيل چه زمُونږ داتول څيزونه، صرف الله رب العالمين د پاره دى، چه هيڅ شريک نه لرى، اوهم دا، د کامل ايمان اود کامل اخلاص نتيجه ده چه انسان د خپل ژوند په هرحال اوهرکارکښې، داد خپل نظرپه وړاند لرى چه زما اود تول جهان يورب دې، زه د هغه بنده اوهروخت د هغه په نظرکښې يم-زمازړه، دماغ، سترګې، غوږونه ،ژبه، لاسونه ،خپې ،قلم اوقدم د ده د مرضئ نه خلاف پورته کول پکارنه دى-

داهغه مُراقبه ده چه که انسان ئې په خپل زړه اودماغو کښې ځائې کړى نو په صحيح معنى کښې به انسان اوکامل انسان جوړشى، د ګناهُونو، نافرمانو اوجُرمونو به ئې خواته هم تيريدل نه وى-

په تفسير دُرمنثور کښې د دے آيت د لاند نقل کړيدى چه حضرت ابومُوسى اشعرى فرمائي:

زړهٔ م غواړي چه هر مسلمان دا آيت بيا بيا الولي او دَخپل ژوند وظيفه ئې جوړه کړي-(۱)

په آيت کښې دا بيان چه مونځ او ټول عبادتونه م الله لره دي، دَدے ښکاره مطلب دا دې چه دې کښې هيڅ شرک نه کوم او په دې کښې م ريا او دُنيوي نفع اغستل غرض نه دې-

مرګ او ژوند مې الله رب العالمين لره دې،، دَدې جُملې مطلب دا هم کيدې شي چه ژوند او مرګ م دَالله تعالى په قبضهٔ قُدرت کښې دې، ځکه دا لازمه ده چه دَټول ژوند عملونه او عبادتونه م دِهم خالص الله لره وي او دا معنى ئې هم کيدې شي چه څومره عملونه مې ژوند پورې تړلى دى هغه هم خالص الله لره دى، لکه مونځ، روژه او خلقو سره دَمعاملاتو حقوق او فرائض وغيره او مرګ سره تړلى عملونه م هم الله لره داسې دى چه زما وصيت کول او زما دَمرګ نه پس چه هر انسان کوم نظام خان دَپاره غواړى او په سوچ فکر کښې ئې را ولى هغه ټول رب العالمين لره او دَهغه دَحکمونو تابع دى-

بيا فرمائى: ﴿وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ﴾ [يعنى ماته دَالله تعالى له اړخه دَدې لوظ، قول او کامل اخلاص حُکم را کړې شويدې او زهٔ دَټولونه رُومبې فرمانبردار مُسلمان يم] -مُراد دا دې چه په دې اُمت کښې دَټولونه اول مُسلمان ځکه زهٔ يم چه دَهر اُمت رُومبې مُسلمان پيغمبروى، په کوم چه دَشريعت وحى نازليږى-

رُومبى مُسلمان کيدونه دې اړخ ته هم دا اشاره کيدې شى چه په مخلوقاتو کښې دَټولونه رُومبې درسول الله ﷺ نُور مبارک پيدا شويدې-هغه نه پس ته [تر هغه روستو] زمکې، آسمانونه او نور مخلوقات پيدا کړې شويدى، لکه په يو حديث کښې راغلى دى ﴿اول ما خلق الله تعالى نوري﴾(۲) [روح المعاني](۳)

**دَيوکس دګناه بارول څوک نشي پورته کولې**: په څلورم آيت کښې دَمکې دَمُشرکانو لکه دَوليد بن مغيره وغيره دَدې خبرے جواب دې چه رسول الله ﷺ او عامو مُسلمانانو ته به ئې داسې وئيل چه،، تاسو زمونږ دين ته بيرته راشئ نو ستاسو دَټولو ګُناهونو پيټې به مونږ په خپله واخلو. په دے باندې ئې او فرمائيل: ﴿قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِي رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [په دې کښې ئې رسول الله ﷺ ته او فرمائيل چه : ،، تاسو دوئ ته او وايئ چه آيا، تاسو زما څخه دا غواړئ چه ستاسو په شان زهٔ هم، دَالله تعالى نه سوا، څوک بل اولټوم حالانکه هغه دَټول جهان او ټول کائنات رب دې، دَدے ګُمراهئ اُميد زما څخه مه لرئ، باقى ستاسو دا وئيل چه : ،، مونږ به ستاسو دګُناهونو بار پورته کوو،، دا پخپله يوه بيوقوفى ده، ګُناه خو به دَهغه چا په عملنامه کښې ليکلې شى څوک ئې چه کوى، او هم هغه به دَدې دَسزا حقدار وى، ستاسو په دې ويناسره دَهغې ګُناه پيټې ستاسو په سر څنګه بار کولې شى؟ که دا خيال نے وو چه ،، ګُناه خو به هم دَهغه چا په عملنامه کښې ليکلې شى، حساب به ئې هغه سره کيږى چا چه کړې وى، ليکن دَحشر په ميدان کښې به دَدې سزا مونږ په خپله ذمه واخلو،، نو دا خيال ئې هم په دے جُملې سره رد کړې شو لکه فرمائى ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ [يعنى دَقيامت په

---

۱) التفسير الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۱۸۳

۲) ترجمه: دَټولو نه مخکے الله تعالى زما نُور پيدا کړے دے.

۳) التفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۳

ورخ به یو کَس دَبل کَس دګناه پیټی په خپل سرنشی اغستلې]-
په دې سره دَمشرکانو دَعبث قول جواب خواوشو، عامو مسلمانانو ته هم داضابطه هم اوښودلې شو، چې تاسو قیامت په دنیا مه قیاس کوئ چې انسان یو جرم اوکړی او په بل ئې ورواړوی خصوصاً کله چه دغه بل کَس په دې راضی هم وی ځکه چه دَالله تعالی په عدالت کښې دَدې څه ګنجائش نشته، هلته دَیو په ګناه بل نشی نیولې، په دې آیت باند دلیل نیولو سره رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دَزنا په پیداشوی بنده باند دَزنا کوونکو والدینو دَجرم هیڅ اثرنهٔ وی [داحدیث په صحیح سند سره حضرت عائشې روایت کړو]-[1]
دغه شان دَیو مړی په جنازه باند حضرت عبدالله بن عُمر ﷺ څوک په ژړیدو او لیدونوی فرمائیل چه ، ، دَژوندو په ژړلو سره مړیَ ته عذاب ورکولې شی ، ، -ابن ابی مُلیکه وائی چه ما دا قول دَحضرت عائشې په وړاند نقل کړونو هغې اوفرمائیل چه تاسو داسې بنده قول چه ماته نقل کوئ چه نهٔ خوچرې دروغ وائی َاونهٔ دهغه په ، ، ثقه والی ، ، کښې څه شبه کیدې شی خوکله په آوریدلو کښې هم غلطی کیدې شی، ستاسو دَپاره خود قرآن کریم دا ناطقه فیصله کافی ده:-
﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى﴾ یعنی دَیو ګناه دَبل په غاړه کیږی نهٔ] نو دَیو ژوندی سړی په ژړا سره بې قصوره مړي څنګه عذابولې شی؟[دَرمنثور] [2]
په آخر دَآیت کښې ئې اوفرمائیل چه :بیا به ستاسو ټولو له بالآخر دَخپل رب خواته تلل وی، چرته چه ستاسو دَټولو اختلافونو فیصله آوَرولې شی، ، مطلب دادې چه ده بې مطلبه خبرواو د کړو بحثونو اوړئ دَخپل انجام فکر کوئ-
په پنځم اوشپږم آیت کښې په یو ټول جامع نصیحت باند سُورت انعام ختم کړې شویدې په دې کښې دَتیرې شوې زمانې تاریخ اوپخوانو قومونو باند تیرشوی حالات ددوئ په وړاندراوړلو سره خپل مستقبل ته متوجه کړې شویدی لکه فرمائی ﴿وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ﴾ خلائف د خلیفة جمع ده، معنی ئې ، ، قائمقام ، ، اوګدی نشین ده ، پُوره معنی ئې داسې شوه چه ، ، هم الله تعالی تاسو دَرومبو قومونو په ځائې آباد کړئ، هیڅ مکان دَزمکې چې نن ئې تاسو ځان ته مالکان وایئ اوګنړئ، هغه داسې نهٔ دې چه دَنورو انسانانو په ملکیت کښې دَدې نه وړاند نهٔ وو، الله تعالی دَهغونی په لړې کولو سره تاسو دَهغوئ په ځائې کښینولی یئ اوبیا داخبره هم هَروخت دَغور کولو جوګه ده چه په تاسو کښې هم ټول یو شان ځکه نهٔ دی چه څوک غریب څوک مالدار څوک ذلیل او خوار ، څوک عزدار ، او دا هم ظاهره ده که مالداری او عزت د انسان په لاس کښې وو نو کوم انسان به غریبی او ذلت خوښه وله. دَدرجوبیلتُون هم ، تاسو ته دَدې خبر درکوی چه اختیار دَیو بل ذات په لاس کښې دی، هغه چه اوغواړی نو څوک نیستمن کړی اوچه اوغواړی نو مالدارئې کړی، چاله چه عزت ورکول اوغواړی عزتمن ئې کړی اوڅوک چه ذلیلول غواړی ذلیل کوی ئې-
په آخر دَآیت کښې ئې اوفرمائیل :﴿لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ﴾ [یعنې دَنورو خلقو په ځائې تاسولره په کښینولو او دَهغوئ دَمال ، جائیداد په مالک جوړیدلو ، اوبیا دَعزت اودولت په اعتبارسره په

[1] ) المستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۷۰۵۳
[2] ) تفسیر الدر المنثور تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۱۸۵، وجامع الترمذی، أبواب الجنائز، باب ما جاء فی الرخصة فی البکاء علی المیت: ج ۱، ص ۱۹۵

مختلفو درجو کښې دَ لرلو مقصد خالص دادې چه ستاسو ستر ګې او غوږونه او ستاسو د امتحان واغستلې شي، چه کوم نعمتونه د رومبنو خلقونه تاسو ته منتقل شويدي، په دې کښې ستاسو عمل څه دې؟ آيا، تاسو د دې شکر اداکوئ او که ناشکري او نافرماني کوئ؟ په شپږم آيت کښې د دواړو حالتونو انجام داسې اوښودلې شو ﴿إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ ۖ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ [يعني ستاسو رب، په نافرمانو خلقو باند، زر عذاب ليږونکې دې او فرمانبردارو خلقو دَپاره غفور او رحيم دې-

دَ سُورت انعام شروع دَ، حمد نه، شويده او په، مغفرت، باندے ختم شو، الله تعالى دَ مُومنو تولو ته دَ حمد [ثناوئيلو] توفيق راکړې او مُومنو تول دِ په مغفرت [بخښنې کولو سره] سربلند کړې-

په حديث شريف کښې راغلى دى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه سورت انعام ټول په ټوله په يو وار نازل شويدې او په داسې شان سره نازل شوچه او يازره فرشتې دَ دې په اَردل کښې تسبيح لوستونکې راغلې-(۱) په دے وجه فاروقِ اعظم اوفرمائيل چه سورتِ انعام دَ قرآن کريم په ډير غوره او اعلې سورتونو کښې شامل دې-

په څنې روايتونو کښې دَ حضرت على کرم الله وجهه نه منقول دى چه دا سُورت په کوم يو رنځور اولوستې شي الله تعالى ورته شفا ورکوي-(۲)

دَ الله تعالى په فضل وکرم سره دَ سُورت انعام پښتو ترجمه ختمه شوه-

واخر دعوانا أن الحمد لله رب العلمين

| ركوع ګاني | سورة الاعراف مكية وهي مائتان وست ايات واربع وعشرون ركوعا ركوعا | اياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۴ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | ۲۰۶ |

الٓمّٓصٓ ۚ ﴿۱﴾ كِتٰبٌ أُنْزِلَ إِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ

ا ل م ص | دا يو کتاب دې | چې نازل کړې شوې دې | تاته | نو نه دې وی | په سينه ستا کښې

دا قرآن پاک يو کتاب دې چې تاته نازل شوې دې | نو ستا سينه دې په دې خبره نه..........

حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲﴾

څه تنګى | ددې نه | دپاره ددې چې اوويروې ته | په دې سره | او نصيحت دى | دپاره د مومنانو |

تنګيږى | چې خلق پرې [دالله ﷻ دنيولو نه] ويروې | او مومنانو ته پرې نصيحت کوې

اِتَّبِعُوْا مَآ أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ

پيروى اوکړئ | دهغې کتاب | چې نازل کړې شوې دې | تاسو ته | د طرفه د رب ستاسو نه |

او تاسو په هغه [کتاب] عمل کوئ چې تاسو ته دخپل رب طرفنه راغلې دې |

وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ أَوْلِيَآءَ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۳﴾ وَكَمْ

او مه کوئ پيروى | بې دالله نه | د نورو سرپرستانو | ډير کم دې | هغه | چې تاسو يې قبلوئ | او ډير

او دالله نه سوا د نورو مشرانو تابعدارى مکوئ | خو [افسوس] چې تاسو ډير کم نصيحت قبلوى | او څومره

(۱) التفسير ابن كثير سورة الانعام: ج ۲، ص ۲۳۸

(۲) التفسير المظهري آخر سورة الانعام في الحاشية: ج ۳، ص ۳۲۲

مِّنْ قَرْيَةٍ　اَهْلَكْنٰهَا　فَجَآءَهَا　بَاْسُنَا　بَيَاتًا

دکلونه | چې هلاك كړل مونږه هغه كلي | نوراغې دغه كلوته | عذاب زمونږه | دشپې

ډیر کلي وو چې مونږ تباه کړل | ...... نوهغوئ ته زمونږ عذاب په داسې وخت کښې راغلو چې شپه وه

اَوْ هُمْ　قَآئِلُوْنَ۝　فَمَا كَانَ　دَعْوٰهُمْ　اِذْ　جَآءَهُمْ

یاهغوئ|دغرمې خوب کونکي وو | پس نه وه | وینادهغوئ | کله چې | راغې هغوئ ته

یا دا چې هغوئ دغرمې په خوب اوده وو| نود عذاب په وخت کښې دهغوئ په خوله باندې ددې وینا

بَاْسُنَآ　اِلَّآ　اَنْ قَالُوْٓا　اِنَّا كُنَّا　ظٰلِمِيْنَ۝　فَلَنَسْـَٔلَنَّ

عذاب زمونږه | مګر | وئیل به ئې | بیشکه وو مونږه | ظالمان | پس خامخابه تپوس کوو مونږه

نه سوا بل څه نه وو چې بیشکه مونږ ظا لمان وو| .........مونږ به ضرور دهغه خلقونه تپوس کوو

الَّذِيْنَ　اُرْسِلَ　اِلَيْهِمْ　وَلَنَسْـَٔلَنَّ　الْمُرْسَلِيْنَ۝

دهغه کسانونه |چې لیږلې شوی دی| هغوئ ته| اوخامخابه تپوس کوو| مونږه درسولانو نه |

چې پیغمبران ورته لیږلې شوی وو| اودپیغمبرانونه به هم ضرور تپوس کوو|چه تاسو زما پیغام رسولې ووکه نه|

فَلَنَقُصَّنَّ　عَلَيْهِمْ　بِعِلْمٍ　وَّمَا كُنَّا　غَآئِبِيْنَ۝

پس خامخابه بیان کړو مونږه|په هغوئ باندې| علم سره| اونه یو مونږه | غائب |

اوبیابه ورته دهغوئ د اعمالو ټوله قصه په یقین سره بیان کړو| آخرمونږ خوناخبره نه یو|

## آسان ترجمه قرآن

**الٓمّٓصٓ (اې پیغمبره !) دا کتاب تا باندې د ې د پاره نازل کړې شوې دې چه ته ددې په ذریعه خلقو لره خبردار کړې پس دې وجې نه دې ستا په زړه کښې څه پریشاني نه وي او د مؤمنانو د پاره دا یو نصیحت دې،(خلقو !) کوم کتاب چه تاسو باندې د پروردګار د طرف نه نازل شوې دې،هغې پسې روان شئ. او خپل پروردګار نه پرېږدئ چه نورو (د ځانه جوړو شوو) سرپرستانو پسې لاړ شئ – ( مګر ) تاسو خلق نصیحت ډیر کم منئ .څومره کلي دي چه مونږ هلاك کړي دي پس هغوی ته څمونږ عذاب د شپې راغې، یا داسې وخت کښې راغې چه هغوی د غرمې په وخت کښې آرام کولو.بیا چه کله هغوی باندې زمونږ عذاب راغې نو هغوی څخه د وئیلو د پاره نور څه نه وو . پس وئیل ئې چه واقعي مونږ ظالمان وو پس مونږ به ضرور د هغه خلقو نه تپوس کوو چا ته چه مونږ پیغمبران لیږلي وو . او مونږ به خپله د پیغمبرانو نه هم تپوس کوو (چه هغوی څه پیغام رسولې وو او هغوی ته څه جواب ملاو شوې وو؟) بیا به مونږ هغوی ته ټول واقعات د خپل علم په بنیاد باندې بیان کړو(ځکه چه) مونږ (ددې واقعاتو په وخت کښې) چرته غائب خو نه وو.**

**دسورة د مضامینو خلاصه:** ټول سورة باندې دنظر اچولو نه پس معلومیږي چې په دې کښې زیات تر مضامین د معاد یعنی آخرت او رسالت متعلق دی. او هم په رومبی آیت مبارك ﴿كِتٰبٌ اُنْزِلَ﴾ کښې د نبوت او آیت نمبر ۶ کښې ﴿فَلَنَسْـَٔلَنَّ﴾ کښې د معاد او آخرت د تحقیق مضمون دې. او څلورمې رکوع دنیمې نه تر د شپږمې رکوع پورې د آخرت بحث دې. بیا د اتمې رکوع نه تر

یویشتمې رکوع پورې دهغه معاملاتو ذکر دې چې دهغې تعلق انبیاء ﷺ او دهغوئ دامتونو سره دې. دا ټولې مسئلې د رسالت متعلق دی. او په دې قصو کښې ور سره سره دهغه کسانو د سزا ذکر هم دې چې د رسالت نه منکر وو. او دا دې دپاره چې دا موجود کوم منکرین دی چې دوئ عبرت حاصل کړی. او د دویشتمې رکوع د نیمې نه تر دیرویشتمې رکوع پورې بیا د معاد بحث دې. صرف په اوومه او د دویشتمې رکوع په شروع کښې اود آخری څلیریشتمې رکوع اکثره حصه کښې د توحید بحث دې. باقی د سورة ډیره کمه حصه داسې ده چې په هغې کښې جزوی طور فروعی احکام د مقام په مناسب سره ذکر شوی دی [بیان القرآن]

## خلاصه تفسیر

﴿الٓمّٓصٓ﴾ [ددې معنی د الله تعالی په علم کښې ده او دا د الله تعالی او رسول ﷺ په مینځ کښې یو راز دې. او په دې باندې امت ته خبر نه دې ورکړې شوې. بلکه ددې باره کښې تپوس کولو نه ئې هم منع فرمائیلې ده. [﴿كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ...الخ﴾] دا [قرآن پاك] یو کتاب دې چې [د الله جل جلاله د طرفه] تاسو ﷺ دې دپاره لیږلې شوې دې چې تاسو ددې په ذریعه [خلق د نافرمانئ د سزا] نه ویروی، ﴿فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ﴾ نو ستاسو ﷺ په زړه کښې دې تنګی نه رازی [چې خلق دا خبره نه مني ځکه چې ددې خبرې په منلو کښې تاسو ﷺ دبعثت په مقصد کښې هیڅ خلل نه رازی، بیا تاسو ﷺ ولې پریشانه کیږی] ﴿وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او دا [قرآن پاك خصوصیت سره] نصیحت دې ایماندارو دپاره [مخکښې عام امت ته خطاب دې چې هر کله دا قرآن پاك د الله تعالی د طرفه نازلیدل ثابت شو نو] ﴿اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ تاسو خلق [ددې کتاب] اتباع اوکړئی چې تاسو ته ستاسو د رب د طرفه راغلې دې [د کتاب اتباع داده چې په زړه دا اومنئ او په دې عمل اوکړئی] ﴿وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ﴾ او د الله تعالی په پریښودو [چې هغه ذات باری تعالی ستاسو دپاره قرآن پاك نازل کړې دې] د نورو رفیقانو اتباع مه کوئی [ځکه هغوئ تاسو ګمراه کوی لکه شیاطین الجن والانس خو ددې شفقت باوجود] ﴿قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ﴾ تاسو خلق ډیر کم نصیحت قبلوئ ﴿وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا﴾ او ډیر کلی دی چې هغوئ [یعنی د هغې کلو اوسیدونکو لره دهغوئ دکفر او تکذیب په وجه] مونږ تباه کړل ﴿فَجَآءَهَا بَاْسُنَا بَيَاتًا اَوْ هُمْ قَآئِلُوْنَ﴾ نو په هغوئ باندې زمونږ عذاب [یا خو] د شپې په وخت کښې راغلو [او دا د څملاستو او آرام کولو وخت دې] یا داسې حالت کښې [ورته راغلو] چې دوئ د غرمې په وخت کښې آرام کولو [یعنی څوك ئې په یو وخت کښې او څوك ئې په بل وخت کښې] ﴿فَمَا كَانَ دَعْوٰىهُمْ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَآ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ﴾ نو په کوم وخت کښې چې دوئ باندې عذاب راغلو نو په هغه وخت کښې دهغوئ د خلو نه سوا ددې نه بله خبره نه راوتله چې واقعی مونږ ظالمان [او خطاکار] وو [یعنی په داسې وخت کښې ئې اقرار اوکړو چې د اقرار وخت تیر شوې وو، دا خو دنیاوی عذاب شو] ﴿فَلَنَسْـَٔلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ﴾ بیا [به ددې نه پس د آخرت د عذاب سامان وی چې په قیامت کښې به] مونږ ددې خلقو نه [هم] ضرور تپوس کوو چې هغوئ ته پیغمبران راغلی وو [چې تاسو د پیغمبر خبره اومنله او که نه] ﴿وَلَنَسْـَٔلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ او مونږ به پیغمبرانو نه ضرور تپوس کوو چې [ستاسو امت ستاسو خبره اومنله او که نه [يوم يجمع الله الرسل فيقول ماذا اجبتم] او د دوارو سوالونو نه مقصد کفارو ته زجر او تنبیه ورکړې شوه]

﴿فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِم بِعِلْمٍ وَمَا كُنَّا غَائِبِينَ﴾ بيا چونکه مونږ ته پوره خبر دې نو [د ټولو په وړاندې به د دوئ اعمال] بيان کړو او مونږ [د عمل په وخت او د ځائې نه] غائب نه وو.

## معارف او مسائل

په پوره سورت د نظر اچولو نه معلوميږی چه د دې سورت مضمونونه، اکثر د معاد [آخرت] او پيغمبرئ په باره کښې دی چنانچه د سورت د اول سرنه تراتمې رکوع پورې تقريبًا د آخرت بيان شويدې، بيا د اتمې رکوع نه تر يوويشتمې رکوع پورې د پخوانو انبياؤ حالات او د دوئ د امتونو واقعات، د دوئ جزا او سزا او په دوئ باند د راتلونکو عذابونو تفصيلي بيان دې۔

﴿فَلَا يَكُن فِي صَدْرِكَ حَرَجٌ﴾ په رومبى آيت کښې رسول الله ﷺ ته په خطاب فرمائيلو سره دا ارشاد کړې شويدې چه دا قرآن د الله تعالى کتاب دې چه تاسو ته راليږلې شويدې، د دې په وجه ستاسو، د زړه تنګيدل نه دی پکار، دلته د زړه تنګيدو نه مراد دا دې چه د قرآن کريم او د دې د احکامو په رسولو کښې، د چا نه ويريدل د رته خند جوړ نشي، چه ګني خلق به دې ته دروغژن اووائې او تاسو ته به ضرر د راورسوي [په حواله د مظهری د ابی العاليه نه] - (۱)

دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه، چا دا کتاب په تاسو نازل کړيدې هغه ستاسو د امداد او حفاظت هم انتظام کړيدې، نو ولې د زړه تنګيږی؟ او ځنو حضراتو دلته د زړه تنګيدو نه مراد دا اغستې دې چه د اسلامی او قرآنی احکامو په آوريدو به چه څوک نه مسلمانيدل نو په هغوئ باند د زړه زهيريدوله کبله به رسول الله ﷺ ته د دې زيات تکليف وو، ځکه هغوئی ته او فرمائيلې شو چه ستاسو منصبى فرض يواځې تبليغ او دعوت دې چه دا کار مو او کړو، اوس ستاسو د ا ذمه داری نه ده چه څوک د مسلمانان شي او څوک د نشي، نو بې هيسه ولې زړه تنګوئ؟

﴿فَلَنَسْأَلَنَّ الَّذِينَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ وَلَنَسْأَلَنَّ الْمُرْسَلِينَ﴾ [يعنى د قيامت په ورځ به د عامو خلقو نه تپوس اوشي، چه مونږ تاسو ته خپل پيغمبران او کتابونه درليږلی وو، تاسو د هغې په باره کښې څه او کړل؟ او د پيغمبرانو نه به تپوس او کړې شي چه د پيغمبرئ کوم پيغام او د الله احکام چه تاسو ته درکړې شوی وو، آيا تاسو خپلو، خپلو امتونو ته هغه رسولی وو او که نه؟ [بيهقی د ابن عباس نه، په حواله د مظهری] - (۲)

او د صحيح مسلم په حواله، د حضرت جابر په روايت رسول الله ﷺ د حجة الوداع په خطبه کښې د خلقو نه تپوس او کړو چه هر کله د قيامت په ورځ به ستاسو نه زما په باره کښې د ا تپوس اوشي چه آيا ما تاسو ته د الله تعالى پيغام رسولې وو او که نه؟ ﴿فَمَا أَنتُمْ قَائِلُونَ﴾ [نو تاسو به څه جواب ورکوئ؟] ټولو صحابه کرامو عرض او کړو چه ، ، تاسو د الله تعالى پيغام مونږ ته رارسولې وو، او د خداوندی امانت حق مو ادا کړې وو، امت سره مو د خير خواهئ سلوک کړې وو، د د ے په آوريدو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: [اللهم اشهد] [يا الله ته ګواه اوسه] - (۳)

او د مسند احمد په روايت کښې داسې راغلې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ، ، د قيامت په ورځ به الله تعالى رانه تپوس اوکړی چه آيا، تاسو د الله تعالى پيغام بندګانو ته اورسولو؟ زه به په جواب کښې عرض اوکړم چه ، او، ما رسولې دې، په دې وجه اوس داسې بندوبست اوکړئ چه

(۱) التفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳۳۳

(۲) شعب الإيمان (عن ابي سعيد) رقم الحديث: ۳۳۳

(۳) صحيح مسلم، كتاب حجة النبى صلى الله عليه وسلم: ج ۱، ص ۳۹۷

موجوده خلق د زما پیغام هغه خلقوته اورسوی کوم چه دلته موجودنهٔ وی [مظهری]-(۱)

دلته دغائبینونه مراد هغه خلق دی چه هم دغه زمانه کښې دغلته موجودنهٔ وو اوهغه خلق تر هم مراد دي چه په آئنده زمانو کښې پیدا کیدونکی دی، دهرې زمانې خلقوته دپیغام رسولو مطلب دادې چه دهرې زمانې خلق دخپلو خپلو پسماندګانو ته داپیغام رسوی چه داشان ترقیامته پورې خلقوته درجه په درجه اورسیږی-

| وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ | الْحَقُّ | فَمَنْ | ثَقُلَتْ | مَوَازِينُهُ | فَأُولَٰئِكَ | هُمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووزن به په دغه ورځ | حق وی | نوهغه څوك | چی درنې شوې | تلې دهغه | نودغه کسان | هم هغوئ |
| او په دغه ورځ د عملونو تول حق دې | نوچې دچا د [نیک عمل] تله درنه شی | نو هم دغه خلق به | | | | |

| الْمُفْلِحُونَ ۝٨ | وَمَنْ | خَفَّتْ | مَوَازِينُهُ | فَأُولَٰئِكَ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| خلاصې موندونکې دی | اوهغه څوك | چی سپك شو | تولونه دهغوئ | پس دغه | هغه کسان دی |
| کامیاب وی | اوچې دچا [دنیکو عملونو] تله سپکه شی | نو دغه خلقو په خپله | | | |

| خَسِرُوا | أَنفُسَهُم | بِمَا | كَانُوا | بِآيَاتِنَا |
|---|---|---|---|---|
| چې په نقصان کښی ئې اچولی دی | ځانونه خپل | په سبب دهغې | چی وو هغوئ | چی په آیتونو زمونږ به ئې |
| خپل ځانونه په تاوان کښې اچولی وو | ځکه چې زمونږ آیتونو سره ئې | | | |

| يَظْلِمُونَ ۝٩ | وَلَقَدْ | مَكَّنَّاكُمْ | فِي الْأَرْضِ |
|---|---|---|---|
| ظلم کولو | اوخامخا په تحقیق سره | ځائې اوقدرت درکړو مونږ تاسوته | په زمکه کښی |
| زیاتې کړې وو | [چه دروغ ئې ورته وئیل] | اومونږ تاسو د زمکې په مخ آباد کړی یې | |

| وَجَعَلْنَا | لَكُمْ | فِيهَا | مَعَايِشَ | قَلِيلًا | مَا | تَشْكُرُونَ ۝١٠ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپیدا کړو مونږ | ستاسو دپاره | په هغې کښی | سامان دژوند | ډیرکم دي | هغه | چی تاسو شکر اوباسئ |
| اوتاسوته موهم په زمکه کښې دژوند ضروریات پیدا کړی دی | خوتاسو ډیرکم دالله شکر اوباسئ | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوپه هغه ورځ بالدې (داعمالو) وزن کیدل یو اټل حقیقت دې. پس چه د چا د تلې وزن درونـد وو نوهغوی به کامیاب وي. او د چا د تلې وزن چه سپك وو نو دا هغه خلق دي چه دوی ځمونږ آیتونو سره زیاتې کولو اوخپل ځانونه ئې په تاوان کښې وغورځول او دا صفا خبره ده چه مونږ تاسو ته زمکه کښې د اوسیدو ځائې درکړو اوهغې کښې مو تاسو ته د رزق اسباب پیدا کړل (بیا هم) تاسو خلق شکر ډیر کم ادا کوئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ﴾ او د هغه ورځې [یعنی د قیامت د ورځې د اعمالو او عقیدو] وزن واقع کیدو والا دې [چې عام طور سره د هر یو حالت ښکاره شی] ﴿فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ﴾ بیا [چې د وزن نه پس] د چا چاپړې یعنی تله [د ایمان] درنه وی [یعنی هغه مؤمن وی] ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝﴾

(۱) مسند أحمد، حديث بهز بن حكيم رقم الحديث: ۲۱۱۳

نو داسې خلق [خو به] کامیاب وی [یعنی نجات به ورته ملاؤ شی] ﴿وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ﴾ او چې د چا چابړې [د ایمان] سپکه وی [یعنی کافر وی] ﴿فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُم بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ﴾ نو دا به هغه خلق وی چې هغوئ خپل نقصانونه اوکړل ځکه چې دوئ زمونږ د آیتونو حق تلفی کوله ﴿وَلَقَدْ مَكَّنَّاكُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ او بیشکه مونږ تاسو لره په زمکه کښې د اوسیدو دپاره ځائې ورکړو ﴿وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ﴾ او ستاسو دپاره مو [زمکه] کښې د ژوند سامان پیدا کړې دې [او ددې مقتضیٰ دا وه چې تاسو ددې په شکر کښې تابعدار او اطاعت گذار وئ] ﴿قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ﴾ لیکن ډیر کم خلق شکر کوی [ددې نه مراد اطاعت دې او کم ئې په دې وجه اوفرمائیلو چې ډیر کم خلق نیک کارونه خو اکثر خلق کوی لیکن دا قابل اعتبار نه وی ځکه چې دوئ کښې ایمان نشته دې]۔

## معارف اومسائل

په رُومبی آیت کښې ارشاد دې ﴿وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ﴾ [یعنی دښو اوبدو عملونو تول کیدل] په دغه ورځ حق اوصحیح دی، په دې کښې دځه شک، شُبهې کولو گنجائش نشته، دې سره دې ته اشاره کول دی چه خلق دپه دې نهٔ تیرووځې چه وزن اوتول خودهغه څیزونو کیږی چه څه دروندوالې اوسپک والې لری، هرکله چه دانسان دښو، بدوعملونو څه جُوثه نشته نوتول به ئې څنګه کیدې شی؟ولې چه مالک الملک خوقادر مطلق دې چه په هرڅیز قادر دې، داځه ضروری خونهٔ ده چه مونږ ځه څیزنشوتللې، الله تعالی دهم هغه تلی شی تللې، دې نه علاوه نن صباداسې نوې نوې آلې دتول دپاره راوتلې دی چه دچابړو [ترازو]، دډنډئ، موتې او کاتې څه ضرورت نهٔ لری، په دغې آلاتو یاند دغه څیزونه هم تللې شی چه نن نه وړاند ئې تلل دچاپه خیال فکر کښې هم نهٔ راتلل، هواتللې شی، دبجلئ کرنټ تللې شی، گرمی یخنی تللې شی، میټر دهغې تله وی کهٔ الله تعالی په خپل کامل قُدرت سره، انسانی عمل اوتلی نوداځه لرې خبره نهٔده دې نه علاوه دکائناتو پیداکوونکې په دې هم قُدرت لری چه زمونږ عملونوته ځه وخت جوهری وجوداوځه شکل، صورت ورکړی، چنانچه درسول الله ﷺ دیر ارشادات په دې گواه دی چه په برزخ اومحشر کښې به انسانی عملونه په خاص خاص شکلونو کښې راځی۔ په قبر کښې به دانسان نیک عملونه په یوښکلی شکل کښې تر راچاپیره کیږی۔ په حدیث شریف کښې راغلی دی چه چادخپل مال، زکواة ادانکړو هغه مال نه به ئې په قبر کښې یوزهرجن مارجوړشی چه په مخه به ئې چیچی اووائی به چه زهٔ ستامال یم، ستاخزانه یم۔ (۱)

دغه شان په معتبرواحادیثو کښې راغلی دی چه په میدان محشر کښې دنیک انسان عملونو به دهغه سورلئی شی اوناکاره عملونه به ئې دپیتوپه شکل کښې په سربار کړیشی۔

په یوحدیث کښې راغلی دی چه دقرآن کریم سورت بقره اوسورت آل عمران به په میدان حشر کښې ددوؤ گورو وریځو په شکل کښې راشی اوپه هغه خلقوبه سورې جوړ کړی چابه چه داتلاوت کول۔ (۲)

دغه شان دحدیثوې شمیره مستند اومعتبر روایتونه منقول دی چه ددې جهان دختمیدونه پس به

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب الزکاة، باب اثم مانع الزکاة: ج۱، ص ۱۸۸

(۲) صحیح مسلم، کتاب فضائل القرآن الخ، باب فضل قراءة القرآن وسورة البقرة: ج۱، ص ۲۷۰

زمونږه نیک او بدتول عملونه خاص خاص شکلونه اختیار کړي او د یوجوهري وجود سره به په میدان حشر کښې راسره وي.

دقرآن کریم ددیرو ارشاداتونه هم ددې تائید کیږي، لکه فرمائي: ﴿وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا﴾ [یعنی هرڅوک به خپل تول، کړي عملونه هلته موجود بیاموسي] په بل آیت مبارک کښې راځي: ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ ۝ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ ۝﴾ [یعنی هرڅوک به خپله کړې لږه نیکي هم اووینی، او خپله کړې لږه بدی به هم اووینی] - دې حالاتونه دا ښکاره کیږي چه هر انسان سره به خپل نیک او بد عمل په جوهري وجود سره ددهٔ مخې ته راځي، په دې کښې هم د تاویل کولو ضرورت نشته چه دخپلو عملونو جزا او بدله به موجوده بیاموسي او او به ئې ګوري.

په دې حالاتو کښې دعملونو تلل کیدل څه لرې یا مشکله خبره نهٔ ده، خو هرکله چه دلږ عقل، فکر مالک انسان هم داعادت لرې چه تول څیزونه په خپل موجوده حالت او ظاهري کیفیت باندې قیاس کوي، او دتولو څیزونو جائزه هم په دغې پیمانه اخلي، چنانچه قرآن کریم فرمائي: ﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ ۝﴾ [یعنی داخلق په دُنیوي ژوند کښې یو ظاهري اړخ پیژني چه هغه هم په پوره شان نهٔ وي او دآخرت نه بیخي بې پروادي، ددُنیا په ظاهري خبرو کښې خوزمکه، آسمان یو ځائې کوي مګر دڅیزونو دهغه حقیقت نه چه په آخرت کښې به په صحیح شان سره ښکاره کیږي داخلق بیخي ناخبره دي.

هم په دې خاطر په آیت کښې داسې اوفرمائیلې شو: ﴿وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ﴾ چه ظاهربین انسان په آخرت کښې دعملونو دتول نه څه انکار او نکړي کوم چه دقرآن کریم نه ثابت او د تولو مسلمانانو عقیده ده.

په قرآن کریم کښې، دقیامت په ورځ دعملونو تللو مسئله په ګڼړو آیتونو کښې په مختلفو عنوانونو سره راغلې ده او دحدیثو روایات، دد ےپه تفصیلاتو کښې بیشمیره دي.

**دعملونو تللو په باره کښې یو شبه او دهغې جواب:** درسول الله ﷺ نه په احادیثو کښې تفصیلي بیان چه راغلې دې په هغې کښې یوه داخبره دغور کولو جوګه ده چه دمحشر په میزان دعدل کښې دتولونه دروند وزن به د[لااله الا الله محمد رسول الله] ، دکلمې وي، په کوم چاېړی کښې به چه دا کلمه وي هغه به دتولونه زیات دروند وي.

ترمذي، ابن حبان، ابن ماجه، بیهقي او حاکم دحضرت عبدالله بن عُمر ﷺ دا روایت نقل کړیدې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ، په محشر کښې به زما دامت یو کس دتول مخلوق په وړاندې او ستې شي او دهغه یو کم سل عملنامې به داسې راوړې شي چه دهرې عملنامې اوږد والې به ئې دهغه دنظر درسید و پورې وي او تولې به دبدیو او ګناهونونه ډکې وي، هغه نه به تپوس اوشي چه په دغه عملنامه کښې چه څه لیکلې شویدي هغه تول صحیح دي او که فرشتو په دې لیکلو کښې په تاځه ظلم کړیدې چه دواقعې نه ئې خلاف لیکلي دي؟ هغه به اقرار او کړي چه اې زما پروردګاره! داتول لیکل بیخي صحیح دي، خو په زړهٔ کښې به ئې ویره وي چه اوس به زما دخلاصي څه صورت کیدې شي، دغه وخت به الله تعالیٰ فرمائي.

نن به په هیچا ظلم نهٔ کیږي، او دتولو ګناهونو په مقابله کښې ستا دیوې نیکۍ پرچه هم مونږ سره شته دې چه په کښې ستا وئیلې کلمه: ﴿اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله﴾ هغه به عرض اوکړي چه اې پروردګاره! ددې دومره لونې، تورے عملنامې په مقابله کښې به دغه وړه شان پرچه

څه وزن لري، دغه وخت به ارشاد اوشي چه په تا به ظلم نۀ کیږي، بیا به په یو چاړی کښې دَغه تولې دګناهونو عملنامې کیښودلې شي او په بله کښې به دَ ایمان دَ کلمې داپرچه کیښودلې شي نو دَغه کلمې چاړې به دروندشي او دَ تولو ګناهو چاړې به سپک شي، دَدې واقعې بیانولو نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دَ الله تعالی دَ نوم په مقابله کښې هیڅ یو څیز نشي درنیدې [مظهری] ۔ (۱)

او په مسند بزار او دَ حاکم په مستدرک کښې دَ حضرت ابن عمر ؓ په روایت دَ رسول الله ﷺ دا فرمان منقول دې چه: ، هر کله دَ حضرت نوح ؑ دَ وفات کیدو وخت راغلو نو خپل هلکان ئې راؤغوښتل چه زۀ تاسو ته دَ ، [لااله الاالله] دَ کلمې وصیت کوم ځکه چه که اوه واړه آسمانونه په یو چاړی کښې او کلمه دَ ، [لااله الاالله] په بل چاړی کښې کیښوې شي نو دَ کلمې چاړی به تر درند اوخیژی، (۲) دَ دې مضمون روایتونه دَ حدیث دَ حضرت ابی سعید خُدری دَ حضرت ابن عباس او حضرت ابي الدرداء ؓ نه په معتبرو سندونو سره دَ احادیثو په کتابونو کښې منقول دی [مظهری] (۳)

دَ دې روایتونو تقاضا خو داده چه دَ مؤمن چاړې به همیشه درندوې اګرچه دَغه ګناهونه ډیر زیات وی، لیکن دَ قرآن کریم دَ نورو آیتونو او دَ احادیثو دَ ډیرو روایتونو نه ثابتیږی چه دَ مسلمانانو نیکۍ او بدۍ به تللې شي، دَ چا چې دَ نیکو چاړې به درندوی او دَ چا دَ بدو چاړې به درندوی- دَ چا دَ نیکو چاړې چه درندوی . دَ چا دَ نیکو چاړې چه درندوی هغه به خلاصې بیامومی او دَ چا دَ بدو چاړې چه درندوی هغه ته به عذاب وی، مثلاً دَ قرآن کریم په یو آیت کښې داسې راغلی دی:

﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ﴾ مونږ به دَ قیامت په ورځ دَ انصاف تله اودروو، په دے وجه به په هیچا هم لږ شان ظلم نۀ کیږی، چا چه نیکی یا بدی دَ اوری دَ یوې دانې برابر کړی وی هغه به تول په میزان دَ عمل کښې ایښوې شي او مونږ حساب دَ پاره کافی یو-

او په سورت قارعه کښې داسې دی: ﴿فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ﴾ دَ چا دَ نیکیانو چاړې به چه درندشي هغه به په اعلی عیش کښې پاتې کیږی او دَ چا دَ نیکۍ چاړې چه سپک شي دَ هغه مقام به دوزخ وی-

حضرت عبدالله بن عباس دَ دے آیتونو په تفسیر کښې لیکلی دی چه دَ کوم مؤمن چاړې دَ نیکۍ به چه درندشي نو هغه به خپلو عملونو سره جنت کښې داخل شي او دَ چا دَ ګناهونو چاړې به چه درندشي هغه به خپلو عملونو سره دوزخ ته لیږلې شي [بیهقی په شعب الایمان کښې [مظهری] (۴)

او ابی داؤد کښې په روایت دَ حضرت ابی هریره ؓ نه منقول دی چه که دَ بنده په فرائضو کښې

---

(۱) کنزالعمال رقم الحديث: ۳۲۱، جامع الترمذی، أبواب الإيمان، باب ما جاء فيمن يموت الخ: ج ۲، ص ۳، وابن ماجة، أبواب الزهد، باب ما يرجى من رحمة الله: ص ۳۱۷، وصحيح ابن حبان كتاب الإيمان، باب فرض ايمان رقم الحديث: ۲۲۵، وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ۲۸۳، والمستدرك للحاكم رقم الحديث: ۱۸۴۲

(۲) المستدرك للحاكم رقم الحديث: ۷۳

(۳) التفسير المظهري: ج ۳، ص ۳۲۸

(۴) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳۲۹

څه کمي بیامونديږ شي نو درب العالمین ارشادبه اوشي چه اوګورئ دَدے بنده څه نفلونه هم شته او که نه؟که نوافل يې وو نو دفرضو کمي به يې په هغې پوره کړېشي [مظهري] - (١)

دَدې تولو آيتونو او روايتونو حاصل دادې چه دمؤمن مسلمان چابېږ به کله دروند او کله سپک وي، په دې وجه ځنې علماؤ دا تفسير فرمائيلی دی چه دَدې نه معلومېږي چه په محشر کښې به تول دوه ځل کيږي- اول دکُفر او ايمان تول کيږي چه دهغې په ذريعه به دمؤمن او کافر ترمنځه بيلتون راوستې شي، په دې تول کښې دچاپه عملنامه کښې چه کلمه دايمان هم راشي نو دهغه تول به دروندشي او هغه به دکافرانو دډلې نه بيل کړې شي، بيابه بل تول دَنيک او بدعملونو وي، په دې کښې به دَچامُسلمانِ نيکۍ درنې شي او دچابدۍ چه دهغې په جوړېږ ورته جزا او سزا ملاوېږي. په دے شان دَتولو آيتونو او روايتونو مضمون په خپل خپل ځائې درست او سره به ترلې شي-

**دَمیلونوتول به څنګه کیږي**: بخاري او مُسلم کښې په روايت دابی هريره ﷺ څخه دا حديث پاك منقول دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې د قيامت په ورځ به غټ او څاربه خلق راشي چه تول به يې دَالله تعالى په نزد دَماشي دوزر هومره هم نهٔ وي، په دې باندې دليل دَقرآن کريم داآيت پيش کړو: ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا﴾ [يعنی دَقيامت په ورځ به مونږ دَدوئ هيڅ وزن اونهٔ لګوؤ [مظهري] (٢)

او دَحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په مناقبو کښې داحديث راغلی دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دَدهٔ پنډئی په ظاهره که هرڅومره نرۍ دی ليکن په هغه ذات م دقسم وی دَچا په قبضه کښې چه زماځان دې چه دَقيامت په ميزانِ عدل کښې به دَدهٔ تول دَاُحدغرَنه هم دروندوی- (٣)

او دَحضرت ابی هريره ﷺ په روايت هغه حديث چه امام بخاري پرخپل کتاب بخاري شريف ختم کړېدې هغې کښې داسې راغلی دی چه دوه کلمې داسې دی چه په ژبه ډيرې سپکې دی مګر دَ عمل په ميزان کښې ډيرې درنې دی او دَالله تعالى په نزد ډيرې محبوبې دی او هغه کلمې دادی ﴿سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم﴾

او دَحضرت عبدالله بن عُمر په روايت رسول الله ﷺ به فرمائيل چه: په سُبحان الله، وئيلوسره دَعمل دَميزان نيم چابېږ ډکيږي اوپه ﴿الحمدلله﴾ وئيلوسره پاتې نيم چابېږ ډکيږي- - (٤)

او ابوداؤد، ترمذي، ابن حبان په صحيح سندسره دَحضرت ابی الدرداء ﷺ نه دَرسول الله ﷺ دا فرمان نقل کړيدې چه: دَعمل په ميزان کښې به دښه خوئې هومره هيڅ عمل په وزن کښې برابرنهٔ وی-

او حضرت ابی ذر ﷺ ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه تاته داسې دوه کارونه ښايم چه په هغې عمل کول انسان دَپاره څه ګران نهٔ دی خو دَعمل په ميزان کښې به هغه دَټولو نيکو عملونو نه زيات درانهٔ وی يو، نيک خُوئې، بل زيات خاموش پاتې کيدل (٥) يعنی بې ضرورته خبرې نهٔ کول-

---

(١) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٣٢٩، وسنن ابي داود، كتاب الصلاة، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم كل صلاة لا يتمها الخ: ج ١، ص ١٣٦

(٢) صحيح البخاري، كتاب التفسير، باب اولئك الذين كفروا الخ: ج ٢، ص ٦٩٣، وصحيح مسلم، كتاب صفات المنافقين وأحكامهم، باب صفة القيامة والجنة والنار: ج ٢، ص ٣٧٥

(٣) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ٨٣٧١

(٤) مسند أحمد رقم الحديث: ٢٢٠٢٠

(٥) كنز العمال، حرف الهاء رقم الحديث: ٨٤٠٩، والمعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث: ٤٣٠٣

او امام احمد، په ، ، کتاب الزهد ، ، کښې په روايت دَحضرت حازم نقل کړيدی چه رسول الله ﷺ ته يو ځل جبرائيل امين تشريف راوړو نو هلته څوک سړې دَالله تعالى دَويرې نه ژړيدو، جبرائيل امين اوفرمائيل، ، چه دَانسان تول عملونه خو به تللې شی مګر دَالله تعالى او دَآخرت دَويرې له کبله ژړيدل داسې يو عمل دې چه تللې به نشی بلکه يوه اوښکه به هم دَجهنم لوئې نه لوئې اور مړ کړی [مظهری] - ([1])

په يو حديث کښې راغلی دی چه په ميدان حشر کښې به يو کَس حاضر شی، هر کله چه دَهغهٔ عملنامه مخې ته راشی نو هغه به خپل نيک عَملونه ډير کم بيامومی او اوبه ويريږی، ناڅاپه به يو څيز دَوريځې پشان په راپورته کيدو سره راشی او دَهغه دَنيکو عملونو په چاپيرى کښې به راوغورځيږی، دهٔ ته بهٔ اوښودلې شی چه دا، ستا دَهغه عمل نتيجه ده چه په دنيا کښې به د خلقو ته دَ دين احکام او مسئلې ښودلې اوورازده کولې، اوستا دتعليم دا سلسله چه څومره پورې چليده او چا پرعمل اوکړو، دَهغوئی تولو په عملونو کښې ستا برخه هم اولګولې شوه [مظهری دَابن مبارک نه] ([2]) ([3])

طبرانی، په روايت دَحضرت عمران بن حصين نه نقل کړيدی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دَقيامت په ورځ بهٔ دَعُلماؤ هغه سياهی [رنګ] چه په هغې سره ئې دَدين علم او دَدين احکام ليکلی دی دَشهيدانو وينو سره [په مقابله کښې] اوتللې شی نو دَعلماؤ دَسياهی وَزن بهٔ دَ شهيدانو دَ وينو دَ وزن نه زيات شی - ، ، ([4])

دغه شان دَحديثو روايتُونه دَقيامت په ورځ دَعملونو دَتول په سلسله کښې ډيردی، دلته يو څو خکه ذکر کړې شويدی چه دې نه دَخاصو خاصو اعمالو فضيلت او دَقدر اندازه اولګی -

دې تولو روايتُونو دَحديث نه دَعملونو دَتللو کيفيت مختلف معلوميږی څنونه معلوميږی چه عمل کوونکی انسانان به تللې شی او دَهغوئ دروندوالې اوسپکوالې به دَخپل خپل عمل په اعتبار سره وی-څنونه معلوميږی چه عملنامې به ئې تللې شی او د څينو نه معلوميږی چې پخپله اعمال به جسم والاجوړيږی او هغه به تللې شی، دَتفسير امام ابن کثير، دا تول روايتُونه رانقل کړيدی اوورپسې ئې فرمائيلی دی چه کيدې شی چه په مختلفو صورتونو کښې دا وزن [تول] په مختلفو وختونو کښې بيابيا کولې شی-([5]) دا هم ښکاره خبره ده چه دَدې معاملاتو پوره حقيقت باند يواځې الله تعالى پوهيږی، خو عمل کولو ډپاره په دې حقيقت باند پوهيدل ضروری هم نهٔ دی، صرف دومره کافی دی چه دَعمل په تللو باند يقين راوړی، که دَنيک عمل تول کم اوسپک شونو دَعذاب حقدار به وی، دا بله خبره ده چه الله تعالى په خپل فضل وکرم سره يادَپيغمبر ياولی شفاعت سره څوک معاف کړی او دَعذاب نه خلاص شی- صرف دَايمان دَکلمې په برکت چرته چه دَګناهګارو مُعاف کيدل په روايتُونو کښې راغلی دی ، داهغه استثنائی صورت سره تعلق لری چه دَعام وضابطونه بالاتر، خالص دَالله تعالى په فضل وکرم باند اړه لری-

---

[1]) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۲۸، وكتاب الزهد للامام أحمد بن حنبل رقم الحديث: ۳۷

[2]) التفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۲۹

[3]) المعجم الكبير للطبرانی رقم الحديث: ۲۹۱، و ۳۰۸

[4]) كنز العمال، حرف العين، رقم الحديث: ۲۸۷۱۵

[5]) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۹۰

په دې دواړو آيتونو کښې چه تفسيرئې اوس بيان شو، ګناهګاران، دَميدان حشر دَرسوائۍ اودَ الله تعالى دعَذاب نه ويرولې شوى وو، په دريم آيت کښې دَالله تعالى نعمتونه بيان کړې شو، دَحق دَقبلولو اوپر دَعمل کولو مينه په دې شان راپاره کړې شوه چه مونږه درته په زمکه باند پوره قابو اومالکانه تصرف درکړو، اوبيائې ترې تاسو لره دَخپل ژوند دَسازوسامان حاصلولو په زرګونو لارې پرانستې ګوياکښې رب العالمين دې زمکې لره دَانسان دَټولو ضروريات تو بلکه تفريحى سامان دَپاره يو قسم عظيم الشان ګودام جوړکړيدې، په دې کښې الله تعالى ټول انسانى ضروريات پيدا کړل، اوس په کښې دَانسانى کاردومره دې چه دَدې ګودام نه دَخيزونو فن اودَ سائينس نوى نوى ايجادونه اوکړى، دَهغې حاصل سوا ددې نه بل هيڅ نۀ دې چه دَ کائناتو دَخالق کوم پيدا کړى څيزونه چه دَزمکې په ګودام کښې محفوظ دى هغه په سليقې طريقې سره رابرڅيره کړى اوپه صحيح طريقه ئې استعمال کړى، دَوقوف اوسليقې نه بربند انسان کوم چه دَدَغه محفوظو څيزونو دَرابښکلو طريقې نۀ پيژنى، يادراوښکلونه پس ئې دَاستعمال په صحيح طريقه نۀ پوهيږى هغوئ دَدې دَمنافعونه بې نصيبه پاتې کيږى اودَعقل پوهې خاوند چه په دې دواړوخبروپوهيږى، هغوئ دګودام دَدے محفوظ څيزونونه فائده پورته کوى-

خُلاصه داده چه ټول انسانى ضروريات الله تعالى هم په دې زمکه کښې سنبال، اوامانت ايښى دى، پکارخوداوچه انسان دهروخت په دغې وجه دَالله تعالى شُکرګذاروى، بياهم انسان خان څخه کم عقل جوړکړى، دَخپل خالق اومالک احسانات هيرکړى، اوصرف هم په دغه څيزونو کښې اختـه پاتې شى، څکه په آخردآيت کښې دګيلې په ډول اوفرمائيلې شو ﴿قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ﴾ [يعنى تاسو خلق ډيرکم شُکراداکوئ-

وَلَقَدْ | خَلَقْنٰكُمْ | ثُمَّ | صَوَّرْنٰكُمْ | ثُمَّ | قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ
او خامخا په تحقيق | پيدا کړئ مونږه تاسو | بيا | شکل جوړ کړو مونږه ستاسو | بيا | اوونيل مونږه فرښتو ته
اومونږ تاسو پيدا کړئ [ستاسو پلار] | اوبيامو تاسو ته [هغه ته] صورتونه درکړو | بيامونږ فرښتو ته اوونيل چې

اسْجُدُوْا | لِاٰدَمَ | فَسَجَدُوْٓا | اِلَّآ | اِبْلِيْسَ | لَمْ يَكُنْ
سجده اوکړئ | آدم ته | نو سجده اوکړه هغوئ | مګر اونه کړه | ابليس | نۀ شو
آدم ﷺ ته سجده اوکړئ | نود شيطان نه بغير ټولو فرښتو سجده اوکړه | اوشيطان په سجده کونکو کښې

مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ۝ | قَالَ | مَا | مَنَعَكَ | اَلَّا تَسْجُدَ | اِذْ
دسجده کونکو نه | اوونيل الله | څه څيز | منع کړې تۀ | چې اودې نۀ کړه سجده | کله چې
شامل نشو | ........ الله ﷻ ترې تپوس اوکړو چې څه څيز ته دسجدې کولو نه منع کړې | څه وخت چې

اَمَرْتُكَ | قَالَ | اَنَا خَيْرٌ | مِّنْهُ | خَلَقْتَنِيْ | مِنْ نَّارٍ
حکم اوکړوماتاته | اوونيل شيطان | زۀ بهتر يم | دهغه نه | پيدا کړې يم تا زۀ | داور نه |
ماتاته حکم اوکړو | شيطان اوونيل چې زه دده نه بهتر يم | زه دې د اور نه پيدا کړې يم

وَّخَلَقْتَهٗ | مِنْ طِيْنٍ ۝ | قَالَ | فَاهْبِطْ | مِنْهَا | فَمَا يَكُوْنُ | لَكَ
اوپيدا کړې دې تاهغه | دختې نه | اوونيل الله | کوزشه | ددې ځائې نه | پس نۀ کيږى | تالره
اودې [آدم] دې د خاورې نه پيدا کړې دې | الله ﷻ ورته اوونيل چې ښه نو ددې ځائې نه کوزشه

أَنْ تَتَكَبَّرَ فِيهَا فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِينَ ﴿١٣﴾ قَالَ

چې تکبراوکړې ته | په دې کښې | نو اوزه | بيشکه چې ته | د ذليلانو نه ئې | اوونيل شيطان

تا سره تکبرنه ښائی | ددې ځائې نه بهرشه | ته دسپکو خلقو نه ئې | ......... شيطان اوونيل

أَنْظِرْنِيٓ إِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٤﴾ قَالَ

مهلت راکړه ماله | دهغه ورځې پورې | چې خلق به پکښې راپورته کړې کيږی | اوونيل الله

چې ته ماته دهغه وخت پورې مهلت راکړه | چې دوئ به (دمرگ نه پس) بيا ژوندی کيږی | الله ﷻ اوونيل

إِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِينَ ﴿١٥﴾ قَالَ فَبِمَآ أَغْوَيْتَنِي

بيشکه ته | دمهلت ورکړې شوونه ئې | اوونيل شيطان | نو په سبب دهغې | چې گمراه کړوتا ماله

چې تاته مهلت دې | ............. شيطان اوونيل په کومه وجه چه تا زه گمراه کړم (چه آدم دې)

لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ لَاٰتِيَنَّهُمْ

خامخا به کينم زه | دوئ ته | په لارستا کښې | چې نيغه ده | بيا | به خامخا راځم زه دوئ ته

نوضرور زه به دوی (د آدم اولاد) ته ستا په نيغه لار کښې کينم | بيا به ورته زه د هر طرف نه يعنی

مِّنْۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآئِلِهِمْ ۖ

دمخې | ددوئ نه | اودروستو ددوئ نه | اودښې طرف ددوئ نه | اودگس طرف ددوئ نه

د مخې طرفنه د شا طرفنه او دښی طرفنه او د گس طرفنه راځم | (خوستا لارته به ئې نه پريږدم)

وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شٰكِرِينَ ﴿١٧﴾ قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا

او ته به او نه مومې | زيات ددوئ | شکرايستونکی | اوونيل الله | اوزه | ددې جنت نه

او ته به په دوئ کښې زيات ناشکره بيا مومې | .....الله ﷻ ورته اوونيل چې ددې جنت نه بهراووځه

مَذْءُومًا مَّدْحُورًا ۖ لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ

ذليله | رټلې شوې | خامخاهغه څوک | چې پيروی ئې اوکړه ستا | ددوئ نه | خامخابه ډک کړم زه

ته ذليله او رټلې شوې ئې | په دې يقين اوساته چې په دوئ کښې څوک هم ستاپه لار روان شی

جَهَنَّمَ مِنْكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿١٨﴾

دوزخ | ستاسو نه | دټولو نه |

نوضرور به ستاسو د ټولونه دوزخ ډک کړم |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ تاسو پيدا کړئ او بيا مو تاسو ته شکلونه درکړل ، بيا مو فرښتو ته ووئيل چه: آدم ﷺ ته سجده وکړئ! انو ټولو سجده وکړه سوا د ابليس نه. هغه سجده کوونکو کښې شامل نه شو الله ووئيل "چه کله ما تا ته حکم کړې وو نو ته د سجدې کولو نه څه څيز منع کړې؟ هغه ووئيل چه: زه د دۀ نه غوره يم. زه دې د اور نه پيدا کړې يم او هغه دې د خټې نه پيدا کړې دې. الله ووئيل چه ښه ته دلته نه کوز شه. ځکه چه ستا دا حق نشته چه ته دلته تکبر وکړې. اوس ووځه. يقينًا ته د ذليلو نه ئې، هغه ووئيله

چه: ما ته تر هغه ورځې پورې (دژوندي پاڅې کيدو) مهلت را کړه چه په کومه ورځ به مړي د قبرونو نه پاڅولې شي" الله وو ئيل چه: "تا ته مهلت در کړې شو هغه وو ئيل چه: اوس چونکه تا څه گمراه کړي يم. دې وجې نه څه، هم) قسم خورم چه دې (انسانانو ته) به څه ستا په نيغه لاره کښې کينم. بيا به څه دوی پاندې (د څلور واړو طرفونو نه) حملې کوم، د دوی د مخکښې نه هم او وروستو نه هم. او ښې طرف نه هم. او گس طرف نه هم. او ته به دوی کښې اکثر شکر گذار ونه مومې الله وو ئيل وځه دې ځائې نه. ذليله او مردود، دوی نه چه څوک تا پسې ځي (هغه به هم ستا ملگرې وي) او څه به تاسو ټولو نه جهنم ډک کړم.

**خلاصه تفسير**

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ﴾ او مونږ ستاسو د پيدا [کيدو سامان شروع] کړو [يعني د آدم ﷺ ماده مو جوړه کړه، هم ددې مادې نه مو تاسو ټول خلق پيدا کړئ] ﴿ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ﴾ بيا [ماده جوړولو نه پس] مونږ ستاسو صورت جوړ کړو [يعني دې ماده کښې مو دآدم ﷺ صورت جوړ کړو، بيا هم دا صورت دهغوئ ﷺ په اولاد کښې راروان دې، دا نعمت د ايجاد شو] ﴿ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ﴾ بيا [کله چې آدم ﷺ جوړ شو او علوم اسماء سره مشرف شو نو] مونږ فرښتو ته حکم اوکړو چې آدم ﷺ ته [اوس] سجده اوکړئ [دا نعمت اکرام شو] ﴿فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ﴾ نو ټولو فرښتو سجده اوکړه مگر ابليس اونه کړه ﴿لَمْ يَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ﴾ هغه سجده کوونکو کښې شامل نه شو. ﴿قَالَ مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ﴾ الله تعالى اوفرمائيل ته چې سجده نه کوې ته ددې امر نه کوم يو څيز منع کړې يې حالانکه څه [پخپله] تا ته د سجدې کولو حکم کوؤم ﴿قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ﴾ وې وئيل زه دده نه بهتر يم او [هغه د مانع کيدو والا امر دادې چې] ﴿خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ﴾ زه دې د اور نه پيدا کړې يم او دې [يعني آدم ﷺ] دې ښاوړې نه پيدا کړې دې [دا دشيطانی استدلال ړومبۍ مقدمه ده، او بله مقدمه چې د هغې ذکر ئې نه دې کړې داده چې اور چونکه نوراني دې نو په دې وجه د ښاوړې نه افضل دې، دريمه مقدمه داده چې د افضل فرع او اولاد هم د غير افضل دفرع او اولاد څخه بهتر وی، څلورمه مقده داده د افضل غير افضل ته سجده کول مناسب نه دی. دا څلور واړه مقدمې ئې جوړ کړې او شيطان د خپلې سجدې نه کولو دا دليل جوړ کړو چې څه افضل يم، نو په دې وجه مې سجده اونه کړه، خو د ړومبۍ مقدمې نه سوا نورې ټولې مقدمې غلطې دی. او اوله مقدمه هم د عامو انسانانو باره کښې په دې معنی کښې صحيح ده چې دانسان په تخليق کښې غالب جز د ښاوړې دی. باقی مقدمات چې دليل په طور ئې پيش کړی وو دهغې غلط کيدل ښکاره دی. ځکه چې د اور په ښاوړې باندې افضل کيدل جزوی خو کيدې شی، کلی طور نشی کيدې. ددې پخلاف په زرگونو واقعات راغلی دی چې د نيک اولاد بد او د بد اولاد نيک وی، داشان دا هم غلط دی چې افضل لره مفضول ته سجده کول مناسب نه دی، ځينې وختونو کښې د مصالح د تقاضا ددې خلاف کيدل شاهد دی]

﴿قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُوْنُ لَكَ اَنْ تَتَكَبَّرَ فِيْهَا﴾ الله تعالى فرمائی [هرکله چې ته داسې نافرمانه يې] نو د آسمان نه لاندې کوز شه، تا ته د کبر کولو هيڅ حق حاصل نه دې [خاص کر] آسمان کښې د اوسيدو نه پس [او دې ځائې کښې ټول فرمانبردار دی] ﴿فَاخْرُجْ اِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِيْنَ﴾ ته [ددې ځائې] نه اوځه بيشکه ته [ددې تکبر په وجه] په ذليلانو کښې شمير شوې، ﴿قَالَ اَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ﴾

هغه اوونیل چې ماته تر قیامته پورې مهلت راکړه ، ﴿قَالَ اِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِیْنَ﴾ الله ﷻ اوفرمائیل چې تاته مهلت درکړې شو ، ﴿قَالَ فَبِمَاۤ اَغْوَیْتَنِیْ لَاَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِیْمَ﴾ هغه اوونیل چې په سبب دادې چې تا زه [دتکوینی حکم سره] گمراه کړې یم ، خه قسم کوم چې خه ددوئ [یعنی آدم ؑ او د آدم ؑ اولاد لاره نیولو دپاره] ستاسو په نیغه لار باندې [څوک چې په حق دین باندې دی ورخم به] کینم به ﴿ثُمَّ لَاٰتِیَنَّهُمْ مِّنْۢ بَیْنِ اَیْدِیْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ اَیْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآىِٕلِهِمْ﴾ او بیا بهٔ په دوئ باندې [د څلورو واړو طرفونو] نه حمله کوم ،ددوئ د مخکښې نه ، روستو نه ، هم او ددوئ د ګس طرفنه هم او ددوئ د ښی طرفنه هم[یعنی ددوئ د دهوکه کولو کوشش بهٔ کوم چې ستا عبادت اونه کړی نو] ﴿وَلَا تَجِدُ اَكْثَرَهُمْ شٰكِرِیْنَ﴾ تاسو په دوئ کښې اکثرو لره [ستا د نعمتونو احسان منلو والا نه وینې ﴿قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا﴾ الله ﷻ ورته اوفرمائیل چې دې [آسمان] نه ذلیل او خوار اووځه [او دا ته چې د آدم ؑ د اولاد دهوکه کولو خبرې کوې نو څه چې ستا زړه غواړی هغه کوه زه د تولو نه بې نیاز یم ، نه د چا په صحیح لار باندې راتلو کښې خما څه فائده شته دې او نه په ګمراه کیدو کښې ئې څه نقصان شته دې] ﴿لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ اَجْمَعِیْنَ﴾ په دوئ کښې چې کوم کس ستا منی څه بهٔ ضرور ستا نه [یعنی ابلیس او ددې خبرې منلو والو نه] جهنم ډکوم

## معارف او مسائل

دَحضرت آدم ؑ اودَشیطان داواقعه رُومبې هم دَسُورت بقره په څلورمه رکوع کښې بیـان شویده، دَدې په باره کښې ګڼرداسې څیزونه بیان شویدی په کومو کښې چه دتحقیق کولو ضرورت وو، دلته دَځونورو داسې څیزونوجواب لیکلې شی دکوموچه تحقیق ته ضرورت وو۔

**ترقیامته پورې دژوندي پاتې کیدو دُعاابلیس قبوله شوه اوکه نه؟ دقبلیدوپه صُورت کښې د دې آیتونو مختلفو الفاظو جوړښت راوستل دهوموتو منځه چه تعارض دے:** ابلیس دَالله تعالی نه خاص په هغه وخت کښې یوه دُعا اوغوښتله کله چه ورته زورنه اورتـه دکـنه کولې شوه-هغـه عجیبه دُعـا داوه چه ترقیامتـه پورې ماته دَژوند مهلت راکړې، دَدې په جواب کښې الله تعالی دومره قدرې اوفرمائیل کوم چه دلته په آیت کښې داسې راغلی دی : ﴿فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِیْنَ﴾[تاتـه مهلت درکړې شو]دَدې الفاظونه دَدُعا اوسوال قرینه داګڼرلې شی چه دامهلت ترقیامتـه پورې ورکړې شوځوپه دې آیت کښې په داګه شوې نهٔ ده چه دغه مهلت ترقیامتـه پورې وواوکه بلې نیتې پورې؟لیکن په بل آیت کښې داسې الفـاظ هـم راغلی دی: ﴿اِلٰی یَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ﴾دَدې دَظاهرنـه دامعلومیږی چه ابلیس ته ترقیامتـه پورې مهلت ورنکړې شوکوم چه دهٔ غوښتی وو ،بلکـه څه بلې خاص نیتې پورې چه یواځې دَالله تعالی په علم کښې محفوظ ده- حاصل داشو چه دَابلیس دُعانامکمله قبوله شوه ترقیامتـه پورې مهلتَ ورنکړې شو ،بلکه بلې یوې خاصې نیتې پورې چه علم ئې یواځې الله تعالی ته دې-

په تفسیر ابن جریر کښې یوروایت دَسُدی نه منقُول دې چه دَدې مضمون تائیدترکیږی،روایت دادې: فلینظره الی یوم البعث ولکن انظره الی یوم الوقت المعلوم وهو یوم ینفخ فی الصور النفخة الاولی فصعق من فی السموات ومن فی الارض فمات الخ.

الله تعالی ابلیس ته دَقیامت ترورځې پورې مهلت ورنکړوبلکه دَیوې تاکلې نیتې ترورځې پورې

ني مهلت ورکړېدي داهغه ورځ ده چه ړومبی شپیلۍ به پوک وهلې شي چه ورسره به د آسمان اوزمکې ټول خلق بې هوشه اومړه شي-(۱)

خلاصه داشوه چې شیطان خو پخپله دعا کښې تر هغه وخت پورې مهلت غوښتلې وو ، او دویم صور سره به ټول مړي راژوندی کړې شي ، هم دې ته یوم البعث وئیلې کیږي. که دا دعا یې بعینه قبوله شوې وې نو په هغه وخت کښې به د یو حي او قیوم ذات څخه سوا بل څوك ژوندې نه وي. او د ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ۝﴾ ظهور به اوشي. ددې دعا په بناء به ابلیس تر هغه وخت پورې ژوندې وې ، په دې وجه ددهٔ یوه دعا یوم البعث پورې د مهلت غوښتلو په ځاې ﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ سره بدلـه او قبولـه کړې شوه. او دهغې اثر به دا وی چې کله ټول عالم مرګ راوستلې شي نو هغه وخت به ابلیس ته هم مرګ راځي . بیا چې کله دوباره ژوندی کړې شي دې به هم ژوندې شي.

حاصل د تحقیق داشو چه ﴿يَوْمُ الْبَعْثُ﴾ او ﴿يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ۝﴾ دواړه بیلې بیلې ورځې دي، ابلیس ﴿يَوْمُ الْبَعْثُ﴾ پورې مهلت غوښتې وو خوتر ﴿يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ۝﴾ پورې ورکړې شو-سیدی حضرت حکیم الامة تهانوی په بیان القرآن کښې دې له ترجیح ورکړیده چه په حقیقت کښې د ، ،نفخهٔ اولی ، ،نه د جنت اونار ته داخلیدو پورې به [په منځ کښې]یو یله داسې اوږده ورځ وی چه دهغې په مختلفو برخو کښې به مختلف واقعات کیږي چه هم دهغې واقعاتو په بنابه هرې واقعې ته ددغې ورځې نسبت کولې شی،مثلاً د ، ،نفخ صور ، ،اوفنا ورځ هم ورته وئیلې شی اود ، ،بعث ، ، او ، ،جزا ، ،ورځ هم ورته وئیلې شی،دې سره ټول اشکالونه رفع شو فلله الحمد-

**آیا د کافرو دعاهم قبلیدې شي** ::ددې سوال پیدا کیدو وجه داده چه قرآن کریم فرمائي: ﴿وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ﴾ دې نه په ظاهره داپوهې ته راځي چه ګنی دکافرو دعا به نهٔ قبلیږي خو دې اوسنی آیت نه دابلیس د دعا په قبلیدو سره دا اشکال ښکاره دی ، جواب دادې چه د کافر دعا په دنیا کښې هم قبلیدې شی څنګه چه د ټولو نه د سخت کافر ، ،ابلیس ، ،دعا قبوله شوه خو په آخرت کښې به د کافر دعا نهٔ قبلیږي چنانچه د دغه پورته ذکرشوی آیت ﴿وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ﴾ هم دغه مطلب دې چې ددې آیت مبارك تعلق د آخرت سره نه د دنیا سره دې.

**دحضرت آدم اودابلیس دواقعې مختلف الفاظ**: د قرآن کریم په ډیرو ځایونو کښې داقیصه راغلې ده اوهر ځاې ددې سوال وجواب لفظونه مختلف راغلی دی سره ددې چه واقعه هم دغه یوه ده-ددې وجې داده چه هرکله مضمون یو وې نو دالفاظو اختلاف لره هیڅ اعتبار نشته،چنانچه داسې صورت د ، ،روایت بالمعنی ، ،وی چه په عربۍ ،بلکه په هره ژبه کښې ښه داده ددې استعمال موجود دې-

**ابلیس څنګه په دې زوروشوچه دالله تعالی په دربارکښې ئې داسې بې باکۍ خبرې اوکړې**: د رب العالمین په بې انتهالوئې دربارکښې فرشتې اورسولان هم درپ وهلوتوان نهٔ لري،ابلیس څنګه د داسې بې باکۍ زرورتیا اوکړې شوه؟علماؤ د دې جواب داسې ورکړې دې چه دالله دقهرلاند د راتلو یوه سخته ننداره داوه چه هرکله ابلیس دالله تعالی د دربارنه شړونکې شونو د الله تعالی اودده په مینځ کښې یو داسې حجاب حائل واقع شوچې هغه پده باندې دحق تعالی عظمت ا وجلال مستور اوپټ کړو اوبیحیائی ئې پر سوره کړه[بیان القرآن په لنډوا وضاحت سره]-

---

(۱)تفسیر الطبري لابن جریر سورة الأعراف.۲: ج ۴، ص ۳۳۱، ۳۳۲

**دَشيطان حمله په انسان باندِ صرف خلورو طرفونو ته ده بلکه عامه ده:** دَقرآن کريم په دې آيت کښې او ښودلې شو چه شيطان دَخلورو واړو اړخونو [ښى، گس وړاندِ ،روستو] نه په انسان باندے دَحملې کولو دَ رکه ور کړيده، دَدې مطلب يواځې همدغه خلور واړه اړخه نهٔ دى بلکه دې هر طرف باندِ نه پرِهم حمله کول دى. په دې وجه د پورته طرفنه يا د ښپو لاندې نه دگمراه کولو احتمال دې سرهٔ منافي نه دى. په دې سره دَهغه حديث مُبارک مطلب هم واضح کيږي په کوم کښې چه دَانسان دَوينې او رنگونو په ذريعه د انسان په ټول بدن کښې دَشيطان دَورانۍ کولو بيان راغلې دې.

په اوسنى تيرشوى آيتونو کښې شيطان ته دآسمان نه دَوتلو حُکم په دوه ځل داسې شويدې. ﴿فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِيْنَ﴾ او ﴿قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا﴾ نو دَ ړومبى حُکم مطلب غالبا تجويز دې، او دَ بل حُکم مطلب دَدې جارى کول دى [بيان القرآن په لنډو]-

وَيٰٓاٰدَمُ　اسْكُنْ　اَنْتَ　وَزَوْجُكَ

| اوا ے ادم ؑ | اوسه | تهٔ | او ښځه ستا |

| اوائې آدم ؑ ته او ستا بى بى دواړه

الْجَنَّةَ　فَكُلَا　مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا　وَلَا تَقْرَبَا

په جنت کښى | پس خورئ دواړه | د هرځائې نه چې غواړئ تاسو | اومهٔ نژدې کيږئ دواړه |

په جنت کښې اوسيږئ | نو کوم ځائې نه چه مو خوښه شي دواړه خوراک کوئى [خو ياد ساتئ چه]

هٰذِهِ الشَّجَرَةَ　فَتَكُوْنَا　مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝　فَوَسْوَسَ　لَهُمَا

دې ونې ته | نوشئ به تاسو | د ظالمانونه | پس وسوسه اوکړه | هغوئ دواړو ته

دې [فلانئ] ونې ته به نه نژدې کيږئ | گنې په ظالمانو کښې به شمير شئ | نو دواړو ته شيطان

الشَّيْطٰنُ　لِيُبْدِيَ لَهُمَا　مَا　وٗرِيَ　عَنْهُمَا

شيطان | دپاره ددې چې ښکاره کړى هغوئ دواړوته | هغه | چې پټ کړې شوى وو | د هغوئ نه

وسوسه واچوله | چې دپردې هغه اندامونه ورته ښکاره کړى کوم چې ترې نه پټ وو

مِنْ سَوْاٰتِهِمَا　وَقَالَ　مَا نَهٰىكُمَا　رَبُّكُمَا　عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ

يعنى دشرم ځايونه ددواړو | اووې وئيل | نهٔ يئ منع کړى تاسو | رب ستاسو | ددې ونې نه |

او ورته ئې اووئيل چې تاسودواړه ددې ونې نه ستاسو رب صرف په دې وجه منع کړى وئې

اِلَّآ اَنْ　تَكُوْنَا　مَلَكَيْنِ　اَوْ تَكُوْنَا　مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ۝

مگر په دې وجه | چې هسې نهٔ چرته شئ تاسو | فرښتې | يا شئ تاسو | دهميشه خلقو نه

چې فرښتې نشئ | يا هميشه دپاره [په جنت کښې] پاتې نشئ

وَقَاسَمَهُمَآ　اِنِّيْ　لَكُمَا　لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ ۝

اوقسم ئې اوخوړو دواړوته | چې بيشکه زهٔ | تاسو دواړو ته | دنصيحت کونکونه يم |

اودواړو ته ئې قسم اوکړو | چې زه يقينا ستاسو خيرخواه يم

فَدَلّٰهُمَا بِغُرُوْرٍ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا

نولاندني راویستل دواړه | په دوکه سره | نوهرکله چې | اوڅکله دواړوهغه ونه | ښکاره شو | دواړونه

نودواړه ئې په دهوکه راکوز کړل | نوهرکله چې ئې د ونې میوه اوڅکله | نودواړو ته خپل خپل

سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ

بدنونه ددواړو | اوشروع اوکړه دواړو | چې نښلولې ئې | په خپلو ځانونو | دپاڼو

بدنونه ښکاره شول | او په خپلو خپلو شرمګاهونو باندې ئې د جنت [د وونو] پاڼې نګول

الْجَنَّةِ وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَا اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ

دجنت نه | اوآوازاوکړودواړوته | رب ددواړو | وآیامانهٔ وئ منع کړې تاسودواړه | ددغې ونې نه

شروع کړل | او [دغه وخت کښې ورته] خپل رب اوونیل چې ولې ماتاسوددې ونې نه منع کړې نه وئ ؟

وَاَقُلْ لَّكُمَا اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ

اونهٔ وؤ وئیلی ما | تاسو دواړو ته | چې بیشکه شیطان | ستاسو دواړه دپاره | دشمن دې | ښکاره

او تاسوته مې دا خبره نه وه کړې | چې شیطان ستاسو ښکاره دښمن دې

قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْلَنَا

اووئیل دواړو | اے ربه زمونږه | ظلم اوکړومونږه | په ځانونوخپلوباندې | اوکه چرې | معاف نهٔ کړوتا مونږه

دواړو عرض اوکړو ائې زمونږ ربه مونږ په خپلوځانونوباندې زیاتې کړې دې | که تا مونږ معاف نکړو

وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ قَالَ

اورحم داونهٔ کړوپه مونږه | نوخامخا شوبه مونږه | دنقصان موندونکونه | اووئیل الله

او په مونږ دې رحم اونکړو | نومونږبه ډیر زیات تاوانیان شو | ........ الله ﷻ ورته اووئیل چې

اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ

کوزشئ | ځینې له تاسو | دپاره دځینو | دشمنان یئ | اودې ستاسو دپاره | په زمکه کښې

تول [دجنت نه] کوز شئ | تاسوبه [په دنیا کښې] دیوبل دښمنان یئ | اوتاسو به په زمکه باندې

مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ قَالَ فِيْهَا

ځائې دقرار | اوسامان د ژوند | دخاصې مودې پورې | اووئیل الله | په دې زمکه کښې به

تریو وخت پورې ژوند تیروئ | اوتریو وخته پورې به [د دنیوی ژوند] فائده اخلئ | الله ﷻ اووئیل چې

تَحْيَوْنَ وَفِيْهَا تَمُوْتُوْنَ وَمِنْهَا تُخْرَجُوْنَ

تاسو ژوند تیروئ | اوهم په دې کښې به تاسو مرئ | اوهم ددې نه به | تاسو راایستلې کیږئ

په دې [زمکه] کښې به ژوند تیروئ | اوهم په دې کښې به مرئ | اوبیا به هم ددې زمکې نه راویستې شئ

## آسان ترجمه قرآن

او اې آدم علیه السلام! ته او ستا بي بي دواړه په جنت کښې اوسیږئ او د کوم ځائې نه چه موښه خوښه شي خورئ. خو دې (خاص ولې) ته مه نږدې کیږئ. ګنې تاسو به د زیاتي کوونکو نه شئ بیا داسې وشو چه شیطان د

دواړو په زړونو کښې وسوسه واچوله ، دې د پاره چه د دوي د هغه ځایونه چه دوی نه پټ کړي شوي وو ، یو بل ته ښکاره کړي وي وئیل چه : ستاسو پروردګار تاسو دې ونې نه د بلې وجې نه نه ، بلکه دې وجې نه ئې منع کړي یئ چه تاسو فرښتې نه شئ ، یا تاسو ته همیشه ژوند ملاؤ نه شي او هغوی ته ئې قسمونه وخوړل چه یقین وکړئ چه څه تاسو د پاره د خیرخواهانو نه یم . د غه شان دا دواړه ئې په دهوکه بالاندې ښکته را کوز کړل پس چه دوی د هغه ونې مزه وڅکله نو ددې دواړو د شرم هغه ځایونه یو بل ته ښکاره شو او هغوی د جنت پاڼې په خپل بدن لګول شروع کړل او د دوی پروردګار دوی ته آواز وکړو چه : " آیا ما تاسو لره ددې ونې نه نه وئ منع کړي . او تاسو ته مې نه وو وئیلي چه شیطان ستاسو ښکاره دښمن دې ؟ دواړو ووئیل چه : اې ځمونږ پروردګاره ! مونږ په خپلو ځانونو ظلم کړې دې ، او که تا مونږ معاف نه کړو او په مونږ دې رحم ونکړو نو یقینًا مونږ به نامراده خلقو کښې شامل شو الله (آدم علیه السلام د هغه بي بي او ابلیس ته) ووئیل : اوس تاسو دې ځائې نه کوز شئ تاسو به د یو بل دښمنان یئ ، او تاسو د پاره به په زمکه کښې یو مودې پورې اوسیدل وي او څه لږه فائده اخستل (فیصله کړې شوي) دی . الله تعالی وفرمائیل چه : دې ( زمکه کښې) به تاسو اوسیږئ او دې کښې به تاسو ته مرګ راځي ، او دې نه به تاسو دوباره راپورته کولې شئ .

## خلاصه تفسير

﴿وَيَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ او مونږ [آدم علیه السلام ته] حکم اوکړو چې ائې آدم ته او ستا بی بی [حوا] جنت کښې اوسئ ﴿فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا﴾ بیا چې د کوم ځائې مو خوښه وی [او کوم څیز چې مو خوښ وی] دواړه ترې خوراک کوئی ﴿وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ﴾ او دومره خیال ساتئ چې] دې [خاص] ونې ته نزدې [هم] مه ورځئ [یعنی ددې میوې مه خورئ] ﴿فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ﴾ ګنی په هغه خلقو کښې به شمار شئ چې هغوئ نه به نامناسبه کار کیږی ، ﴿فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطَانُ﴾ بیا شیطان د دواړو په زړهٔ کښې وسوسه واچوله ﴿لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وُورِيَ عَنْهُمَا مِنْ سَوْآتِهِمَا﴾ چې [دوئ په ممنوعه ونه اوخوروی] ددوئ مستور بدن چې د یوبل نه پټ وو دواړه یو بل ته بې پردې کړی [څکه چې ددې ونې د خوړلو نه هم دا تاثیر دې ، که پخپله په دې کښې دا تاثیر وی یا د ممانعت په وجه وی] ﴿وَقَالَ مَا نَهَاكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَٰذِهِ الشَّجَرَةِ﴾ او [هغه وسوسه دا وه چې دواړو ته] ئې اووئیل ی ستاسو رب تاسو دواړه ددې ونې [د خوراک] نه بل د څه وجې نه نه یئ منع کړی ﴿إِلَّا أَنْ تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ﴾ مګر صرف په دې وجه چې، تاسو دواړه [ددې په خوړلو سره] فرښتې نه شئ ، یا همیشه ژوندی پاتې کیدونکی نه شئ [دوسوسې حاصل دا وو چې ددې ونې خوراک سره د ملکیت قوت او دائمی ژوند پیدا کیږی ، مګر شروع کښې ستاسو وجود ددې غذا برداشت نه شو کولې، په دې وجه تاسو منع کړې شوی وې ، اوس ستاسو حالت او قوت کښې پرمختګ اوشو او تاسو ددې خوراک برداشت کولې شئ نو اوس هغه ممانعت ختم شو] ﴿وَقَاسَمَهُمَا إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ النَّاصِحِينَ﴾ او دواړو ته ئې [په دې خبره] قسم اوخوړو چې تاسو یقین اوکړئ څه ستاسو د دواړو [دزړهٔ نه] خیر خواه یم ﴿فَدَلَّاهُمَا بِغُرُورٍ﴾ نو دا دواړه ئې په دهوکه لاندې راوستل [لاندې راوستل د حالت په اعتبار سره او د رائې اعتبار سره هم وو چې خپله لویه رائې ئې پریخوده او

ددې دښمن رائې باندې ئې عمل اوکړو ، او د مقام اعتبار سره هم چې د جنت نه اسفل طرفته راویستلې شو] ﴿فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ﴾ نو دې دواړو چې هغه ونه اوڅکله [فوراً] ﴿بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا﴾ د دواړو بدن یو بل ته ښکاره شو[یعنی د جنت لباس ترې ویستلې شو او دواړه شرمنده شو] ﴿وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ﴾ او [بدن پټولو دپاره] دواړه [د خپل بدن] دپاسه د جنت [دونو] پاڼې ایخودې ﴿وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ﴾ او [په هغه وخت] ددوئ رب دوئ ته آواز اوکړو چې ﴿اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ﴾ آیا ما تاسو دواړه ددې ونې [دخوراک نه] نه وې منع کړی ﴿وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ﴾ او تاسو ته مې دا نه وو وئیلی چې شیطان ستاسو ښکاره دښمن دې [د هغه د دهوکې نه ځان ساتئ] ﴿قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا﴾ دواړو اووئیل اې زمونږه ربه مونږ خپل نقصان اوکړو [چې مونږ پوره احتیاط اونه کړو او صبر نه مو کار نه واخستو] ﴿وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا﴾ اوکه مونږ ته بخښنه اونه کړې او مونږ باندې رحم اونه کړې ﴿لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ﴾ نو واقعی مونږ به د نقصان کوؤنکو نه شو ﴿قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ الله ﷻ [آدم ؑ او حوا علیها السلام ته] اوفرمائیل چې [د جنت نه] لاندې زمکې ته] داسې حالت کښې لاړ شئ چې تاسو [یعنی ستاسو اولاد به] خپلو کښې د یو بل دښمنان وی ﴿وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ﴾ او ستاسو دپاره په زمکه کښې داوسیدو ځائې [تجویز کړې شوې] دې او د معیشت اسبابو نه] د فائدې حاصلول [تجویز شوی دی] یو [خاص] وخت پورې [یعنی د مرګ وخت پورې] ﴿قَالَ فِيْهَا تَحْيَوْنَ وَفِيْهَا تَمُوْتُوْنَ وَمِنْهَا تُخْرَجُوْنَ﴾ او دا ئې هم] اوفرمائیل چې تاسو به هلته ژوندې تیروئ او هم هلته به تاسو ته مرګ رازی او هم ددې نه به د [قیامت په ورځ] بیا ژوندې راپورته کیږئ راوزئ.

## معارف او مسائل

په دې آیتونو کښې دَحضرت آدم ؑ او ابلیس کومه واقعه چې راغلې ده ،تو له سراسرې دَسورت بقره په څلورمه رکوع کښې په پوره تفصیل سره راغلې ده اوددې په باره کښې د راولاړیدونکو سوالونو او شبهو تفصیلی جواب اوپوره تشریح سره دنوروفائدو، دَسورتِ بقره په تفسیر کښې لیکلې شویدی، ضرورت لرئ هلته ئې اوګورئ-

| يٰبَنِيْٓ | اٰدَمَ | قَدْ | اَنْزَلْنَا | عَلَيْكُمْ | لِبَاسًا | يُّوَارِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اې اولاده | دادم | په تحقیق سره | نازل کړې دی مونږه | په تاسو باندې | جامې | چې پټ کړی |
| انې دادم اولاده مونږ تاسو ته [قسم قسم] جامې درکړې دی \| چې ستاسو سترهم پټوی | | | | | | |

| سَوْاٰتِكُمْ | وَرِيْشًا | وَلِبَاسُ التَّقْوٰى | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|
| دشرم ځایونه ستاسو | اوذریعه وی دښائیست اودحفاظت | اوجامه دتقوی چې ده | دغه |
| او ستاسو ښائست هم دې \| اود پرهیزګارۍ جامه د نورو جامونه ......... | | | |

| خَيْرٌ | ذٰلِكَ | مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ | لَعَلَّهُمْ | يَذَّكَّرُوْنَ | يٰبَنِيْٓ | اٰدَمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| غوره ده | دا دی | دنښو دالله نه | انسانیرې چې خلق | سبق واخلی | اې اولاده | دادم |
| غوره ده \| دا دالله ﷻ ایاتونه دی چې دوئ ترې سبق زده کړی \| ............انې د ادم اولاده! | | | | | | |

| لَا يَفْتِنَنَّكُمُ | الشَّيْطٰنُ | كَمَآ | اَخْرَجَ | اَبَوَيْكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| په فتنه کښې وانچوی تاسو لره | شیطان | لکه څنګه چې | ایستلی ووهغه | مور او پلار ستاسو |
| هسې نه چې شیطان موبیاپه فتنه کښې واچوی \| لکه څنګه چې ئې ستاسو مور پلار د | | | | |

مِّنَ الْجَنَّةِ    يَنْزِعُ    عَنْهُمَا    لِبَاسَهُمَا    لِيُرِيَهُمَا

د جنت نه | چې ايستلې ئې وې | دهغوئ دواړو نه | جامې دهغوئ | دپاره ددې چې اوښائي دواړو ته

جنت نه ويستلې وو | په داسې حال کښې چې هغوئ نه ئې جامې ويستلې وې | چې هغوی دواړو ته

سَوْاٰتِهِمَا ؕ    اِنَّهٗ    يَرٰىكُمْ    هُوَ    وَقَبِيْلُهٗ    مِنْ حَيْثُ

دشرم ځايونه دهغوئ | بيشکه هغه | وينې تاسو لره | هغه پخپله | او ملګري دهغه | دهغه ځائې نه

د هغوئ عورتونه اوښائي | او دهغه قام قبيله تاسو دداسې ځائې نه وينې چې تاسو ئې

لَا تَرَوْنَهُمْ ؕ    اِنَّا    جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ    اَوْلِيَآءَ    لِلَّذِيْنَ

چې نه وينئ تاسو هغوئ لره | بيشکه مونږ | جوړ کړي دي شيطانان | دوستان | دپاره دهغه کسانو

نه شئ ليدلې | مونږ شيطانان دهغه خلقو دوستان جوړ کړي دي چې هغوئ

لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝

چې ايمان نه راوړي |

ايمان نه راوړي |

## آسان ترجمه قرآن

اې د آدم اولاده مونږ تاسو دپاره لباس نازل کړې دې چه ستاسو د بدن هغه ځايونه پټ کړي چه د هغې ښکاره کول بد وي او هغه د زينت ذريعه هم ده او د تقوئ چه کوم لباس دې هغه دټولو نه غوره دې دا ټول د الله د نښو حصه ده ، ددې مطلب دا دې چه خلق سبق واخلي اې د آدم عليه السلام اولاده! شيطان ته چرې هم داسې موقع مه ورکوئ چه هغه تاسو لره داسې فتنې کښې واچوي لکه چه هغه ستاسو مور او پلار د جنت نه راويستلي وو ، چه د هغوی لباس ئې دهغوي د بدن نه ويستلې وو ، دې دپاره چه دوی ته د يو بل د شرم ځايونه اوښائي ، هغه او د هغه ډله د هغه ځائ نه تاسو لره ګوري چه د هغه ځائ نه تاسو هغه لره نه شئ ليدلې دا شيطانانو مونږ د هغه چا دوستان جوړ کړي دي چه ايمان نه راوړي .

## خلاصه تفسير

﴿يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْاٰتِكُمْ وَرِيْشًا ؕ﴾ اې د آدم عليه السلام اولاده [زمونږ يو انعام دا دې چې] مونږ تاسو دپاره لباس پيدا کړو چې دا ستاسو ستر [يعنې پرده والا بدن] لره هم پټوی او [ستاسو د بدن دپاره] يو زينت هم دې ﴿وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ ؕ﴾ او [ددې ظاهری لباس نه علاوه يو معنوی لباس هم ستاسو دپاره تجويز کړې دې چې] تقوی [يعنې د ديندارئ] لباس دې او دا دهغه [ظاهری لباس نه] ډير زيات [ضروری] دې [ځکه چې ددې ظاهری لباس مطلوب شرعی کيدل هم ددې تقوی يعنې د ديندارئ يوه فرع ده ، اصل مقصود هر حالت کښې لباس د تقوی دې] ﴿ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ۝﴾ دا [لباس پيدا کول] د الله ﷻ [د فضل او کرم] نخښنو نه دی چې دا خلق [دې نعمت لره] ياد اوساتی [او ياد ساتلو سره د خپل منعم او محسن اطاعت ادا کوئی او هغه حق د اطاعت هم دغه دې چې دې ته ئې لباس تقوی فرمائيلې ده] ﴿يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ﴾ اې بنی آدم شيطان دې تاسو په څه غلطئ کښې وانچوی [چې ددين او تقوی خلاف

ستاسو نه څه کار واخلي؛ ﴿كَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَيْكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ﴾ لکه څنګه چې ئې ستاسو نيکه او نيا [آنا] [يعنې آدم ﷺ او حوا عليها السلام] لره د جنت نه بهر کړې وو [يعنې په هغوئ باندې ئې داسې اوکړو چې دهغې په نتيجه کښې هغوئ د جنت نه بهر شو، او بهر ئې هم] په داسې حالت کښې اوکړل چې] ﴿يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا﴾ دهغوئ لباس ئې هم دهغوئ [دبدنونو نه] ويستلو چې دواړه يو بل ته ښکاره شي [اودا دشريف کس دپاره ډيره د شرم اورسوائ خبره ده] غرض داچې شيطان ستاسو زړو دښمن دې، ددهٔ نه ډيرهوښيار اوسئ، او زيات احتياط په دې وجه هم ضروري دې چې] ﴿اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ﴾ هغه او دهغه لښکر تاسو داسې ګوري چې تاسو هغوئ لره [عادةً] نه وينئ [ظاهره ده چې داسې دښمن ډير خطرناک وي، ددهٔ نه د بچ کيدو ډير اهتمام کول پکاردی، اودا اهتمام کامل ايمان اوتقوى سره حاصليږي، هغه اختيار کړئ نو بچ به شئ، څکه چې] ﴿اِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ مونږ شيطانانو لره دهغه کس ملګري جوړوؤ چې څوک ايمان نه راوړي [اوکه بالکل ئې ايمان قبول نه کړي نو هغه باندې شيطان مسلط کيږي اوکه ايمان ئې راوړې دې خو کامل نه دې نو ددې نه ئې په کمه درجه کښې پرې مسلط کوؤ، بخلاف دکامل مؤمن چې په هغه باندې شيطان بالکل قابونشي موندې، لکه څنګه چې د قرآن پاک يو آيت مبارک کښې دی چې [اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾]

## معارف او مسائل

دَدې آيتونونه وړاند په پوره يوه رکوع کښې دَحضرت آدم ﷺ اودَشيطان رجيم پُوره واقعه بيان کړې شويده چه پکښې دَشيطاني غولولو رومبي اثرداشوې وو چه دآدم اوحواعليهما السلام نه جنتي جامې لرې شوې اوهغوئ بيخې بربند پاتې شو په پاڼروباند ئې خپل دَستراندامُونه پټول شروع کړل۔

اوس دَدې آيتونوڅنې په رُومبي آيت کښې الله تعالى دَحضرت آدم ﷺ ټول اولاد ته په خطاب کولوسره اوفرمائيل چه ستاسوجامه، دَقُدرت يولوئې نعمت دې، دَدې قدراوکړئ، دلته خطاب ټولوانسانانوته دې يواځې مسلمانانوته نه دې، ولې چه دې کښې اشاره دې خبرې ته مُوندې شي چه سرپټول اولباس دَهرانسان فطري خواهش اوضرورت دې، په دې کښې هيڅ قسم مذهبي، علاقائي اوخانداني بيلتُون نشته، بيادَدې په تفصيل کښې ئې درې قسمه لباسونه بيان کړل۔

اول ﴿لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْاٰتِكُمْ﴾ دلته ، ﴿يُوَارِيْ﴾، دَ، مواراة، نه مشتق دې معنى ئې پټول دی ، سوات، دَ﴿سوءة﴾ جمع ده ـــ دادانسان هغه اندامُونوته وئيلې شي چه دهغې بربنديدل انساني طبيعت ته ډيربداودَشرم خبره ښکاري مطلب داچه دَخير، ښيګړې اوکاميابئ دپاره مونږ داسې جامه نازله کړيده چه په هغې سره تاسوخپل دَشرم اوحياانداموُنه پټولې شئ۔

بيائې اوفرمائيل ﴿وَرِيْشًا﴾ ، ريش، هغه جاموته وئيلې شي چه انسان ئې دَزينت اوښائست دَپاره استعمالوي، مراددادې چه يواځې دَسترپټولودپاره خومختصرشان جامه کافي کيدې شي، خومُونږ درته دَدې نه زياته جامه دې دَپاره هم درکړه چه تاسوپرې زينت اوښائست حاصل کړې شئ، چه شان، شوکت مو ښائسته ښکاري۔

دلته دَ﴿اَنْزَلْنَا﴾ نه مُرادورکول دی داضروري نه دي چې د آسمان نه دې تياره شوې رانازله شی څنګه چه قرآن کريم بل ځائې کښې فرمائي: ﴿وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ﴾ يعنې مونږ اوسپنه نازله کړه، دآسمان نه ئې تياره شوې راکوځول نهٔ دی مراد څکه چه اوسپنه دټولو په مخ کښې دزمکې دننه نه

راؤښکې شی اوجامې دَمالوچ [پمبوه] یاورئ وغیره نه جوړولې شی چه دآسمان نه راکُوځول پکښې نشته البته په ﴿اَنْزَلْنَا﴾ لفظ کښې اشاره دې ته کیدې شی چه څنګه دآسمان نه په راکوځیدونکو څیزونوکښې دَچا دَ تدبیر یا کاریګرئ دخل نشی کیدې، دغه شان دَجامې په اصل مادې مالوچویاورئ وغیره کښې هم دَانسان کاریګرئ اوانتظام کولو هیڅ قسم دخل نشته، دا خالص دَالله تعالی دَقُدرت ورکړه ده، دابله خبره ده چه دَخپل راحت ،آرام، دَګرمئ ،یخنئ نه دَ خان ساتلو اودَبدن وغیره دَپټولو انتظام دَپاره انسانی کاریګرئ لره دخل وی چه داهم دَالله تعالی ښودلې شوې اوورازده کړې شویدې لهذا حقیقت پیژندونکوخلقو دَپاره داتوله دَالله تعالی داسې ورکړه ده لکه چه دَ آسمان نه راکوځه کړې شوی وی۔

**دجامې دوه فائدې**: دلته دَجامودوه فائدې ښولې شوی دی، یوه دَسترپټولو یله دَیخنئ، ګرمئ نه دَخان ساتلو اودَبدن دَښائست راوستلو، دَرُومبئ فائدې وړاند ذکرکولوسره دااشاره کول دی چه دَ انسانی جامې اصل مقصدسترپټول دی چه هم دغه ئی دَعامو ځناورواوسادارڅیزونونه بیلتون راولی، ولې چه دَځناوروجامه په قُدرتی ډول دَدوئ دَبدن برخه جوړه کړې شویده، اوهغه یواځې دَ ګرمئ یخنئ نه ئې ساتنه کوی یاورسره ئې دَبدن ښائیست راځی، دسترپټولو، دومره انتظام پکښې نه دې شوې، البته دَدوئی په بدن کښې دَدوئ خاص اندامُونه په داسې شان سره قُدرت برابر کړیدی چه بیخی بربنډ نه پاتې کیږی، کله پرې دلکئ یالم پرده وی یابل څه شان سره ئې پرده وی۔

دَحضرت آدم عليه السلام اوحواء دَشیطان غولولو واقعه چه ذکرشوه ورپسې سمدستی دَجامې په ذکر کولوکښې دې اړخ ته اشاره ده چه انسان دَپاره بربنډیدل اودَشرم اندامُونه ئې نوروته ښکاره کیدل ،دَذلت، رسوائئ اوبې حیائئ نخښه اودَقسماقسم شراوفسادخیمه ده۔

**په انسان باند دَشیطان دَرُومبئ حملې شکل دهغه بربنډول وو اوس هم نوې شیطانی تهذیب دې پسې شویدې چه انسان دِپاخوټول بربنډشی یانیم بربنډ وی**: اوهمدغه وجه ده چه دَشیطان دَټولونه رُومبئ حمله دَانسان په خلاف هم په دې شان اوشوه چه جامې یې لرې شوې، نن هم چه دَشیطانانو کوم کوم شاګردان دی دَهغوئی کوشش دادې چه دَتهذیب په نوم باند هغه سراسری یانیمګړې بربنډ کړی اوپه عامو سړکونو اولاروکوڅوکښې ئې اودروی، بلکه دَترقئ په نوم خوشیطان زنانه لره دَایمان دَشرم اوحیانه پاکه کړه اونیم بربنډ ئې دَعاموخلقوپه وړاند اودروله۔

**دایمان نه پس دَټولونه رُومبی سترپټول دی**: هرکله چه شیطان دَانسان کمزورې ورخ اوکتله نو رُومبئ جمله ئې دَدهٔ په سترپټولواوکړه، نواسلامی شریعت دَدې په خلاف دَانسان دَ سر پټولو جُخت او مضبُوط بندوبست داسې اوکړو چه دَایمان نه پس ئې رُومبې فرض دَسر پټولو اوګرځولو او دَ مُونځ، روژې وغیره درجه ئې دَدې نه روستوکیښوده۔

دحضرت فاروق اعظم رضي الله عنه په روایت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائیلی دی چه دَنوې جامې اغوستوپه وخت دادَعالوستل پکاردی:

[الحمدلله الذي كساني ما اواري به عورتي واتجمل به في حياتي] اهغه ذات الله لره شُکردې چه جامه ئې راکړه چه دَهغې په ذریعه خپل سترپټ کړم اوښائست حاصل کړم۔

**دنوې جامې جوړولوپه وخت دزړې جامې دخیرات کولولې ثواب**: وې فرمائیل : څوک چه دَنوې جامې اغوستونه پس زړه جامه په غریبانو مسکینانوخیرات کړی هغه به دَخپل مرګ ژوندپه هرحال

کښې دَالله تعالى په ذمه دارئې اوپناه کښې راشي[ابن کثير دَمسند احمد نه] -([1])
په دې حديث کښې انسان ته هم دغه دوه ښيګړې ورياد کړې شويدي کوموډپاره چه الله تعالى انسانی لباس پيدا کړيدې-

**ستر پټول دانسان ديپداښيدوسره دهغه فطری عمل دې دلرغی په نوم دانوي فلسفه باطله ده.** دَ حضرت آدم ﷺ دَواقعې اودقرآن کريم دَدې ارشادونه داخبره هم واضحه شوه چه ستر پټول او جامه دَ انسان فطرى خواهش او پيدائشي ضرورت دې چه دَاولې ورځې نه ورسره لګيدلې دې، دَاوسنوځنې فلسفيانو داخبره سراسرى غلطه اوبې بنياده ده چه انسان به اول بربنډ ګرځيدو، څو ورځې ترقى ئې چه اوکړه هله پس ته ئې جامه ايجاد کړه-

**دجامې يودريم قسم:** دستر پټولو، آرام اوزينت دَپاره دَدوؤقسمو جامو ذکر کولونه پس، يودريم قسم جامه قرآن کريم ،په دې شان ذکر کړه: ﴿لِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ﴾ چه په ځنې قراتونو کښې په فتح سره داسې راغلې دې ﴿لِبَاسُ التَّقْوٰى﴾ په دې صورت کښې به داد ﴿اَنْزَلْنَا﴾ لاندې داخل شي اومعنى به ئې داوى چه مونږه دتقوى يو لباس هم نازل کړيدې، اودمشهور[رومبی]قرات له مخې ئې معنى داده چه دادوه جامې هرڅوک پيژنى خويوه دريمه جامه دَتقوى هم ده چه دَټولو جامونه زياته غوره ده،چنانچه دَحضرت ابن عباس اوعروه بن زبير دَتفسيرپه جوړدلباس تقوى نه مُراد عمل صالح اودَالله تعالى خوف دې[روح]([2])

مطلب داچه څنګه ظاهرى جامه ،دَانسانى بدن دَشرم دَاندامُونودَپاره پرده ده، دَيخنى، ګرمۍ نه دخان ساتلو اودَزيب وزينت حاصلولو ذريعه ده، دغه شان يومعنوى جامه نيک عمل اودَالله تعالى ويره ده چه دَانسان دَاخلاقى عيبُونو اوکمزوريو پرده ده، دَدائمی تکليفونو اومصيبتُونونه دَخلاصيدو ذريعه ده، څکه دادټولونه زياته غوره جامه ده-

په دې کښې اشاره دې اړخ ته هم ده چه داسې يو بدکاره بنده چه الله تعالى نه نهٔ ويريږى او د نيک عمل پابندنهٔ وى هغه که هرڅومره پردواوجامو کښې پټ وى خوانجام ئې ذليله کيدل او رسوا کيدل وى،لکه چه ابن جرير په روايت دَحضرت عثمان سره نقل کړيدى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل:-په هغه ذات م دقسم وى دَچاپه قبضه کښې چې دَمُحمد خان دې چه څوک هرڅنګه عمل چه دَخلقودَنظرنه په پټه کوى الله تعالى به ورته هم دَهغه عمل څادرورواغوستوى اواعلان به ئې اوکړى، [يعنى پټه نيک عملی اوبد عملی به ئې دَنيک عملۍ اوبد عملۍ په شان کښې څرګنده کړى-، دَڅادوراغوستولو مطلب دادې چه ټولوته ئې څرګند کړى څنګه چه په سرکړې اواغوستې څادرټولوته څرګندوى، يعنى دَانسان عمل که هرڅومره پټ وى نخښې ،نښانې ،الله تعالى دَهغهٔ په بدن ياپه مخ وغيره باند څرګندوى چنانچه دَدې حديث په سند کښې رسول الله ﷺ داآيت اولوستو﴿ وَرِيْشًا وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ﴾([3])

**دظاهرى لباس اصل مقصدهم تقوى حاصلول دى:** ﴿لِبَاسُ التَّقْوٰى﴾ لفظ نه دې ته هم اشاره مُوندې شى چه دَ ظاهرى لباس په ذريعه دَسترپټولو ،زينت اوځان ښائسته کولو ،ټولو اصلى مقصد ،تقوى او دَالله

[1] تفسير ابن کثير تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۴۰۰، ومسند أحمد رقم الحديث: ۲۸۸، اول مسند عمر بن الخطاب رضی الله عنه
[2] تفسير روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ۶، ص ۱۲۷
[3] تفسير الطبرى رقم الحديث: ۱۴۴۳۶ تحت هٰذه الآية

تعالی ویره ده ،چه دَظاهری جامې نه دهم په داسې شان څرګندیږی چه په هغې سره ئې ستر ,پوره پټ وی، دَشرم اندامونه دورسره په پوره پرده کښې وی چه بربنډ نۀ وی،اوپه بدن پورې دَجامه داسې لیوه [ګیپه سیپه]هم نۀ وی چه پکښې دغه اندامونه لکه دَبربنډښکاری،جامه دَ فخر او غرور په اندازه کښې هم نۀ وی چه پکښې دغه اندامونه لکه دَبربنډ ښکارِی،بیخایه اسراف دهم پکښې نۀ وی بلکه دَضرورت په جوړ دجامه استعمالولې شی،زنانه ددنارینئواونارینه دَ زنانئو جامې هم نۀ اغوندی ولې چه داکاردَالله تعالی په نزد ناخوښه دې-دَغیرقوم نقل دهم پَه جامه کښې نشی کولی،ولې چه داخپل قوم،اوملت سره غداری اوتګی کول دی،دې سره سره داخلاقو اوعملونودرستوالې دهم وی کوم چه دَجامې اصل مقصددې،په آخردآیت کښې فرمای:

﴿ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ۝ ﴾ یعنی انسان ته دَدرې قسمه جامه ورکول دَالله تعالی دَقُدرتونودَنخښوڅخه دی چه خلق ترِسبق حاصل کړی،

په دویم آیت کښې بیادآدمعليه السلام اولادته په خطاب کولوسره خبرداری ورکړې شویدې چه په خپل هرحال او هر کار کښې دَشیطانی چال نه ځان ساتلې لری؛ هسې نه چه په بله څه فتنه کښې مو ښکیل کړی،څنګه چه ستاسو مور،پلار[حضرت ادم اوحواء علیهما السلام]ئې جنت نه راوښکل، دَهغوئ دَجامویه اوښکلو دَ هغوئ دَسترڅرګندولوباعث جوړشو،دې ستاسوزوړ دُشمن دې،دَدۀ ددُشمنئ،همیشه هروخت خیال لرئ-

په آخردآیت کښې فرمائی﴿اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ؕ اِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ۝﴾ دلته دَ ،،قبیل،، معنی تولې اودله ده چنانچه هغې دلې ته هم ،،قبیله،،وئیلې شی چې په یو خاندان کښې شریك وی او دارنګه عام تولیو ته هم قبیل وئیلی شی. مطلب داچه شیطان ستاسو داسې دُشمن دې چه هغه [پخپله]اودَهغه ملګری خوتاسووینی اوتاسوئې نۀ وینئ،څکه دَ هغه په چل ول اودهوکوکښې ستاسودَراګیریدوزیات امکانات دی-لیکن په نوروآیتونوکښې دا هم اوښودلې شو چې کوم خلق الله تعالی ته رجوع کوونکی اودَشیطانی مکرنه هوښیار اوسیدونکې دی، هغوئی دَپاره دَشیطان چال زیات کمزورې دې-

او دَدې آیت په آخرکښې ئې چې داسې اوفرمائیل چه مُونږه شیطانان د هغوئ سرپرستان جوړکړیدي چه ایمان نۀ لری،په دې کښې هم دې اړخ ته اشاره ده چه دَایمان خاوندانولره دَ شیطانانودَچال نه بچ کیدل څه زیات مشکل نۀ دی-

خنوپخوانوبزرګانوفرمائیلی دی چه هرکله زمونږ دادُشمن مُونږه ګوری اومُونږه ئې نشو لیدې،دَدې علاج دادې چه مُونږه دَالله تعالی په پناه کښې راشوچه داشیطانان اودَدوئ هرحرکت اونقل ګوری اودوئ هغه ذات لره نشی لیدلې-

اودا ارشاد دې چې ارشاد شیطان نشی لیدلې،دا د عامو حالاتو او عام عادت په اعتبار سره دی ورنه که دَعادت خلاف که څوک انسان شیطانانولره کله اووینی نودابه ورسره بې سمونه نۀ وی ولې چه دَرسول اللهﷺ په خدمت کښې پیریان راغلی وو ،تپوسونه ئې تر کړی وو اواسلامئې قبول کړې وو اوداسې نورواقعات هم شته چه دَصحیح احادیثوپه روایتونوکښې راغلی دی[روح] (۱)

(۱) تفسیر روح المعانی تحت هٰذه الاٰیة: ج۰۶، ص۳۹

وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا

اوهر کله چې | او کړي دوئ دبې حیایۍ کار | نو وائي دوئ | چې موندلې دی مونږه

| اوهر کله چې دوئ دبې شرمۍ څه کار اوکړي | نو وائي چې مونږ خپل

عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا ۗ قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ

په دغه کار باندې | پلاران زمونږه | او الله حکم کړې دې مونږ ته | په دې سره | او وایه | چې بیشکه الله | حکم نه کوي

پلار نیکه (په د اسې) کار کولو موندلي وو | او هم الله راته د دې حکم کړې دې | ورته او وایه چه الله د

بِالْفَحْشَاءِ ۖ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝ قُلْ

دبې حیایۍ په کارونو | آیا تاسو وایئ | په الله باندې | هغه خبرې | چې تاسو نه لرئ علم دهغې | ورته او وایه

بې حیایۍ د کارونو حکم نه کوي | آیا تاسو الله ﷻ باندې داسې دروغ وایئ چې خبرتیږ هم نه یئ

أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ ۖ وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِنْدَ

حکم کړې دې رب زما | په انصاف کولو سره | او نیغ ودروئ | مخونه خپل | په وخت

ورته او وایه چې زما رب د انصاف کولو حکم کړې دې | او داچې تاسو خپل مخونه دهر سجدې

كُلِّ مَسْجِدٍ وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ

دهر | عبادت کښې | او رابلئ هغه لره | په داسې حال کښې چې خالص کونکې یئ | هغه لره | د دین

په وخت کښې (بیت الله) ته مخامخ ساتئ | او داچې صرف دهغه دین خالص ساتئ او هغه رابلئ

كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ۝ فَرِيقًا هَدَىٰ

لکه څنګه چې | پیدا کړي یئ هغه تاسو | پیدا به کړې شئ تاسو بیا | یوې ډلې ته | هغه لاره ښودلې ده |

لکه څنګه چې هغه پیدا کړي یئ | دغه شان به مو راواپس کړي | یوه ډله په هدایت شوه

وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ۗ إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا

او بله ډله چې ده | ثابته شوې ده | په هغوئ باندې | ګمراهي | بیشکه چې هغوئ | نیولي دي

او بله ډله باندې ګمراهي ثابته شوې ده | ځکه چې دوئ د الله ﷻ په ځائې

الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ

شیطانان | سرپرستان | ماسوا | د الله | او ګمان کوي هغوئ | چې بیشکه هغوئ

شیطانان خپل مشران جوړ کړي دي | او بیا هم داخیال کوي چې ګني دوئ

مُهْتَدُونَ ۝ يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ

نیغه لار موندونکي دي | اے اولاده | د آدم | کوئ | ښائیست خپل | په وخت | دهر

په سمه لار قائم دي | انې د آدم اولاده دهر عبادت په موقع باندې خپلې ښائسته جامې اچوئ

مَسْجِدٍ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ

عبادت کښې | او خورئ | او څکئ | او د حد نه مه اوړئ | بیشکه هغه | نه خوښوي

او حلال څیزونه خورئ څکئ | او اسراف مه کوئ | ...... بیشکه الله ﷻ هغه خلق نه خوښوي

| اَلْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
|---|
| دحدنه اوړېدونکی [ |
| چې کوم اسراف کوی] |

## آسان ترجمه قرآن

او چه کله دا (کافران) د بې حیائۍ څه کار وکړي نو دوی وائی چه مونږ خپل پلار نیکه په دې طریقه باندې موندلی دی، او الله مونږ ته داسې حکم کړې دې ته (دوی ته) ووایه چه: الله د بې حیائۍ حکم نه کوي. آیا تاسو هغه خبرې په الله باندې تړئ چه دهغې تاسو ته لږ څوندې علم هم نشته؟ ته ووایه چه: زما پروردګار خو د انصاف حکم کوي او دا (حکم ئې هم کړې دې چه) "کله هم سجده کوئ نو خپل مخ صحیح صحیح ساتئ او دې یقین سره هغه رابلئ چه اطاعت خالص دهغهٔ حق دې. لکه څنګه چه تاسو هغه په اول ځل پیدا کړی وئ هم داسې به تاسو دوباره پیدا کیږئ. (تاسو کښې) یوه ډله الله هدایت ته رسولې ده، او یوه ډله هغه ده چه هغوی باندې ګمراهي مسلطه شوې ده څکه چه دې خلقو دالله په ځائې شیطانان دوستان جوړ کړي دي، او داګمان کوي چه دوی په سمه لاردي. اې دآدم علیه السلام اولاده! چه کله تاسو جمات ته راځئ نو د خپل زینت سامان (یعنی کپړې په بدن) اغوندئ او خورئ او څښئ او فضول خرچي مه کوئ، یاد ساتئ چه الله فضول خرچي کوونکو لره نه خوښوي.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً﴾ او هغه خلق چې کله فحش کار کوی [یعنی داسې کار چې هغه په ښکاره خراب وی او انسانی فطرت هغه ښه نه ګنړی لکه په بربنډه طواف کول] ﴿قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا﴾ نو وائی چې مونږ خپل پلار نیکه په دې طریقه باندې لیدلی وو ﴿وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا﴾ او [نعوذ بالله] الله ﷻ مونږ ته هم دا فرمائیلی دی [اې رسول ﷺ ددوئ د جاهلانه استدلال په جواب کښې] ﴿قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ﴾ تاسو ووائې چې الله ﷻ کله هم د فحش کار تعلیم نه ورکوی ﴿أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ آیا [تاسو تاسې دعوی کولو سره] د الله تعالی په ذمه داسې خبرې لګوئی چې د هغې تاسو سره څه سند نشته دې ﴿قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ﴾ او تاسو [دا هم] ووائې چې [تاسو دکومو فحش او غلطو کارونو حکم الله ﷻ ته منسوب کړې دې هغه خو دی غلط، اوس هغه خبره واورئ چې الله ﷻ اصل کښې دهغې حکم فرمائیلې دې هغه داده چې] زما رب حکم فرمائیلې دې د انصاف کولو ﴿وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ او دا چې تاسو د هرې سجدې [یعنی عبادت] په وخت کښې خپل مخ نیغ [الله ﷻ طرف] ته کوئ [یعنی مخلوق لره دهغه په عبادت کښې مه شریکوئی] ﴿وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ او د الله ﷻ عبادت داسې کوئی چې دا عبادت صرف د الله ﷻ دپاره کوئی [په دې مختصر جمله کښې ټول مامورات شرعیه اجمالی طور سره راغلل، قسط کښې حقوق العباد، اقیموا کښې أعمال و طاعت، مخلصین کښې عقائد] ﴿كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ﴾ چې څنګه تاسو لره الله ﷻ په شروع کښې پیدا کړی وې هم دا شان به یو ځل بیا [یو وخت] دوباره پیدا کړی ﴿فَرِيقًا هَدَىٰ وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ﴾ ځینې خلقو ته الله ﷻ [دنیا کښې] هدایت کړې دې [هغوئ ته به په هغه وخت کښې جزا ملاویږی] او په ځینو باندې ګمراهی ثابته

شوي ده [هغوئ ته به سزا ملاويږي] ﴿إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ دې خلقو شيطان لره خپل رفيق جوړ کړې دې ، الله تعالى ئې پريخودې دې ﴿وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ﴾ او [ددې باوجود د خپل ځان باره کښې] دا خيال کوی چې دوئ په نيغه لاره باندې دی ، ﴿يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ اې اولاد د آدم تاسو د مسجد د هرې حاضرئ په وخت کښې [مونځ دپاره وی يا طواف دپاره وی] خپل لباس اغوندئ ﴿وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا﴾ او [ځنګه چې دلباس نه اغوستل ګناه وه ، داشان حلال څيزونه خوړل څکل هم ناجائزه ګنړل هم لويه ګناه ده ، په دې وجه حلال څيزونولره] ښه خورئ او څکئ او د شرعی حد نه مه تيريږئ ﴿إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ﴾ بيشکه الله تعالى دحد نه تيريدونکی نه خوښوی.

## معارف او مسائل

داسلام نه وړاندې عربو دجاهليت په زمانه کښې شيطانانو چه خلق په کومو شرموونکو او بې هوده رسمونو کښې راګير کړی وو هغې کښې يو رسم داهم وو چه دقريشونه سوا به بل هيچا دبيت الله شريف طواف په خپلو جامو کښې نه شو لو کې ، يا به ئې طواف دپاره دچا قريشی نه جامې په سوال غوښتلې يا به ئې په بربنډه طواف کولو-

داچرته کيدې شوه چه قريشو به ټولو طواف کوونکو ته خپلې جامې په سوال ورکولې په دې وجه به عموماً غير قريش ټولو خلقو په بربنډه طواف کولو خواه نارينه به وو او که زنانه به وو ، البته زنانو به دشپې په تياره کښې طواف کولو دې خپل شيطاني کار حکمت به ئې دابيانولو چه کومو جامو کښې مونږ ګناهونه کړيدی په هغې جامو کښې دبيت الله شريف طواف کول بې ادبی ده [دعقل ړانده داخلق دومره نۀ پوهيدل چه دهغې نه زياته بې ادبی دخانه کعبې داده چه په بربنډه ئې طواف کولې شی چه انسانيت سره هم سمون نۀ خوری] او اخې قريش بۀ ددې قانون نه مستثنی ځکه ګڼړلې شو چه هغوئ دبيت الله شريف خادمان او منجوران وو-

دا آيتونه ددې بې هوده رسم ختمولو او ددې دخرابئ ښودلو دپاره نازل شويدی لکه فرمائی چه کله به دوئ د فحش کار کولو نه منع کولې شو نو په جواب کښې به ئې داوئيل چه داخو زمونږ پلرونو ، نيکونو [مشرانو] کړی دی ددې په پريښودو سره مونږ ته پيغور جوړيږی او دا به ئې هم وئيل چه ددې حکم الله تعالى راکړې دې [ابن کثير] (۱)

په دې آيت کښې د ،،فحش،، نه مراد اکثرو مفسرينو په بربنډ طواف کول اغستی دی چه اصل کښې ،،فحش،، او فاحشه هر داسې ناکاره کار ته وئيلې شی چه ناکاروالې ئې انتها ته رسيدلې وی ، دعقل ،فهم ،سليم ،فطرت په نزد بيخی واضح او په ډاګه وی [مظهری] (۲) او په دې درجه کښې ښه والې او ناکاره والې عقلی کيدل د ټولو په نزد يوه منلې شوې خبره ده [روح] - (۳)

بيا دې خلقو دخپلو بيکاره رسمونو دروا والی دپاره دوه دليلونه وړاند کړل يو دليل ئې داوؤ چه دپلار ، نيکه په پل باند تلل او عمل کول دنيکئ کار دې هر کله چه ددې جواب بيخی ، داګيز داسې وو چه دجاهلانو پلرونو ، نيکونو تابعداری کول عقل سره سمون نه خوری لږ عقل ، فکر لرونکې بنده هم په دې پوهيدې شی چه دَيوې طريقې دروا کيدو دپاره داخه دليل نشی جوړيدې ~ولې چه په

(۱) التفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۰۱
(۲) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳۳۹
(۳) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۱۸۰

دي شان به دُنيا تولي غلطي طريقې جائزګرځولي شوې وي او په دُنيا کښې به دَصحيح اوښو طريقواو رسمونوهيڅ درک نهٔ لګيدو - په دې بِناهر کله چه دې دليل پسې مخه نهٔ شوه اوړلي کيدې ځکه ئې قرآن کريم دلته جواب ورکول ضروري اونهٔ ګڼړل البته په نورو آيتونوکښې ددې هم جواب داسې ورکړې شويدې چه: که دَچاپلار ،نيکه [مشرانو] دَځه جهالت کارکړې وي نو هغه به ددې ځنګه جوګه شي چه دَهغې په پَل دکشران لاړشي-

په برينډه طواف کولودپاره دَغې خلقوبودليل داهم وراندکړې وو چه مُونږ ته الله تعالى همدغسې حُکم راکړيدې، داسراسر په دروغه تورپورې کول اودَالله تعالى دَحُکم خلاف هغه ته دَ يو غلط حکم نسبت کول دي، لهذا ،رسول الله ﷺ ته اوفرمائيلې شوچه داسې جواب ئې ورکړئ:

﴿قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ﴾ [تاسوورته اوفرمايئ: چه الله تعالى چرې هم دَځه فحش کارحُکم نهٔ ورکوي[اولې چه داسې حُکم ورکول دَهغه دَحکمت اودَقُدوسيت دَشان نه خلاف دي، بيادَغې خلقوپه الله تعالى باندې په دروغه دَتورپورې کولواوهسې تپلو، لړلو باند ورته داسې خبرداري ورکړې شو اوپه پُوره شان ئې دغه باطل خيال ردکړې شولکه فرمائي: ﴿أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ آيا ، تاسو الله تعالى ته دَداسې څيزونونسبت کوئ چه هيڅ علم ئې نهٔ لرئ؟ يعنى دَيقين کولوباعث هيڅ حُجت تاسولره نشته، ښکاره خبره ده چه يو انسانَ ته بې تحقيقه يو کارمنسوب کول انتهائي زرورتيا اوظُلم دي نوالله تعالى نه دَځه نقل دغسې غلط نسبت کول به څومره لوئې جرم اوظُلم وي، مجتهدين صاحبان چه دَقرآني آيتُونونه دَاجتهادپه ذريعه څه احکام راوباسي اوبيانوي نې هغه په دې کښې داخل نهٔ دي ولې چه هغه هم دَقرآن دَالفاظواوارشاداتونه دَيوحُجت دلالت راوښکلې شي-

په بل آيت کښې فرمائي: ﴿قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ﴾ يعنى کوم جاهل خلق چه په برينډه طوافُونه کوي دَهغې دَرواوالې دپاره غلط دليلونه پيش کوي اوغلط نسبتُونه الله تعالى ته کوي، هغوئ ته تاسو اوفرمايئ چه الله تعالى خوهميشه دَ،، قسط،، حُکم ورکوي، دَ ،، قسط ،، اصلي معنى انصاف ،اواعتدال دې، اودلته دَقسط نه مُرادهغه عمل دې چه کمې زياتې پکښې نهٔ وي، يعنې نهٔ پکښې څه کوتاهي وي اونهٔ پکښې دَتاکلې حدنه ورتيريدل وي ځنګه چه دَتولوشرعي حکمونو همدغه حال دې، په دې وجه، دَقسط په مفهوم کښې تول عبادتُونه اوعام شرعى حُکمونه داخل دي[روح المعاني]-([1])

په دې آيت کښې دَقسط، يعنى دَانصاف اواعتدال حُکم بيانولونه پس دَدغې خلقودګُمراهئ او بې لارئ مناسب داحکامو شرعيو نه دوه شرعي حکمُونه په خصوصيت سره بيان کړې شويدى يو، ، ﴿وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ اودويم ﴿وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ رومبي حُکم دَانسانانودښکاره افعالوسره تعلق لري اودونيم ئې زړهٔ اوباطن سره تعلق لري- په رومبي حکم کښې لفظ دَ مسجد دَاکثرومفسرينو په نزد معنى داده چې دِسجدې او عبادت اومونځ په وخت خپل رخ اومخه نيغه لرئ، ددې مطلب داهم کيدې شي چه دَمونځ په وخت خپل رخ نيغ قبلې ته دکرلويندوبست کوئ، اوبله معنى ئې داهُم کيدې شي چه په خپل هرجائزقول، فعل اوعمل کښې خپل رُخ دَ رب دَ حُکم تابع لرئ يوخوابل خواتر مهٔ کيږئ، ددې معنى په لحاظ داحکم يوازې مونځ سره خصُوصيت نهٔ لري بلکه تولوعبادتونواوجائزومعاملولره هم شامليږي-

[1] تفسير روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج۶، ص ۱۶۱

اوددونیم حکم ترجمه داده چه الله تعالى لره په دې شان رابلئ چه عبادت خالص دهغه وي په هيڅ شان پکښې بل څوک شريک نکړې شی، تردې پورې چه دشرک خفی يعنی ريااونوم ،نمائش نه هم پاک وې-
دادواړه حکمونه ئې چه يوځائې ذکرکړل پکښې ارشاره دی ته هم کيدې شی چه په انسان لازم دی چه دخپل ظاهر، باطن دواړوسمون دشريعت حکمونوسره راولی، ولې چه نه خويواځې فرمانبرداری بغيرداخلاص نه کافی کيدې شی اونه يواځې باطنی اخلاص کافی کيدې شی چه دشريعت په ښکاره تابعداری ورسره نه وی، په دې شان دهغه خلقوغلطی په ډاګه کيږی چه شريعت اوطريقت دواړه مختلفې طريقې ګنړی او دا خيال کوی چې سره يواځې دطريقت مطابق د باطن درست کول کافی دی اګرچه ظاهری عمل ئې دشريعت خلاف وی ولې چه داښکاره ګمراهی ده،
په آخردآيت کښې ئې اوفرمائيل: ﴿كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ﴾ يعنی الله تعالى چه څنګه تاسوپه اول کښې پيدا کړی وئ، دغه شان به تاسودقيامت په ورځ هم ،دوباره راژوندی کولوسره راپورته کړي- دهغه دکامل قدرت په وړاند داڅه مشکل څيزنه دې اوکيدې شی چه دې آسانئ ته داشارې کولوپه غرض ئې د ﴿يُعِيدُكُمْ﴾ په ځائې ﴿تَعُودُونَ﴾ اوفرمائيل چه دوباره پيدا کولودپاره دڅه خاص عمل اوخوارئ ضرورت نشته-[روح][۱]
دلته ددې جملې راوړلويوفائده داهم ده چه انسان لره په شرعی حکمونوباند په پوره دول پاتې کيدل آسان شی- ولې چه پخپله ،دآخرت اوقيامت اوپه دې کښې دجزااوسزاتصور کول داسې يوڅيز دې چه دانسان هرمشکل آسانولې اوهرتکليف ،آرام جوړولې شی، چنانچه تجربه هم ګواه ده چه هرکله په انسان باند داويره غالبه نه وی نونه خوئې څه وعظ ونصيحت سمولې شی اونه ئې دقانون پابندی کول دجرمونونه منع کولې شی-
په درئيم آيت کښې يې اوفرمائيل چه :څنې خلقوته خوالله تعالى هدايت کړيدې اوپه څنوباند دګمراهئ ثبوت شويدې ځکه چه دې خلقوالله پريښوواوشيطانان ئې خپل ملګری اودوستان جوړ کړل اوداخيال کوی چه مونږه په سمه لارباند يو،،
مطلب دادې چه اګر دالله تعالى هدايت عام دی خودې خلقودغې هدايت نه مخ واړولو او د شيطانانو په پل روان شو- اوانتهائی ظلم ئې دااوکړوچه دوئ خپله بيماری، روغتيا ،اوګمراهی ئې هدايت اوبللو-
دې نه معلومه شوه چه شرعی حکمونونه ناخبری څه عذرنه دې، که څوک يوغلطه لار، صحيح اوبولې اوپه ډيراخلاص سره په هغې روان شی نوداسې کس دالله تعالى په نزدمعذورځکه نه دې چه الله تعالى هرچاته ،عقل ،هوش ،حواس اوپوهـ ځکه ورکړيده چه هغه ددې نه کارواخلی، کره، کهوټه اوغلط صحيح کښې بيلتون راولی، يواځې دا هم نه ده چې دوئ يې په دې عقل او پوهې باندې پريښودل بلکه ورسره ئې ورته پيغمبران ﷺ راولیږل کتابونه ئې نازل کړل اودهغې په ذريعه ئې صحيح ،غلط حق اوباطل ښه په ډاګه کړل-
که يو سړی ته په دې کښې شك وی چې يو کس هغه واقعی خپل ځان په حق باندې ګنړی اګر چې په غلطه باندې وی نو بيا هم په هغه باندې څه الزام دې . هغه معذوره ګرځول پکار دی ځکه هغه ته د خپلې غلطئ هډو علم نشته دې . جواب دادې چې الله ﷻ هر انسان ته عقل او هوش

[۱] تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ٦، ص ١٣٢

ورکړي دي او بیا یې ورته د انبیاء ﷺ تعلیم ورکړي دي ، نو ددې په ذریعه کم از کم ده ته دخپل اختیار کړې شوې طریقې خلاف احتمال او شك کول پکار دی ، اوس دده قصور دادې چې ده دې څیزونو ته بالکل توجه نه ده ورکړې ، او ده چې کومه غلطه طریقه اختیار کړې وه هغې باندې کلك ولاړ وو.

البته کیدې شي چه هغه څوک داَلله تعالی په نزد معذُوره اوګنړلې شي کوم چه خپل پُوره وَس دَحق په لټولو کښې اولګوی اوبیاهم هغې ته اونشي رسیدې څنګه چه امام غزالی رحمه الله په خپل کتاب التفرقة بین الاسلام والزندقة کښې فرمائیل دي،والله سبحانه وتعالى اعلم.

په څلورم آیت کښې فرمائي:[اې اولاده دآدم اتاسودځومات دهرې حاضرۍ په وخت خپل لباس اغوندئ اوښه خورئ ،څکئ اوډحدنه مه وړیوړي اوځئ،بیشکه الله تعالی دحدنه پورې تیریدونکی نهٔ خوښوی،دجاهلیت دزمانې عربوبه چه څنګه په برېنډه دبیت الله شریف طواف کول صحیح عبادت اودبیت الله شریف عزت ګنړلودغه شان دحج په ورځوکښې به يې خوراک څکاک هم دومره کولوچه هیله به پرِ ژوندې پاتې کیدې شُو،خصوصاً ،غوړی،پئ اونورپاکیزه څیزونه خویه ئې بیخی نهٔ خوړل [ابن جریر]-(۱)

ددې بیهوده طریقې په خلاف ،داآیت نازل شو چه پکښې دااوښودلې شوچه په برېنډه طواف کول بې حیائی اوسخته بې ادبی ده،دې نه ځان اوساتئ دغه شان کوم پاکیزه خوراکې چه الله تعالی درکړیدی بې دڅه مجبورئ دهغې نه ځان ساتل،څه ددین خبره نهٔ ده بلکه دهغه حلال کړی څیزونه په خپلوځانونوباند حرام ګرځول بې ادبی اوپه عبادت کښې دحدنه تیروتل دی چه الله تعالی ئې نهٔ خوښوی-څکه دحج په ورځوکښې ښه خوراک ،څکاک کوئ البته اسراف مهٔ کوئ،ولې چه دحلال خوراک،څکاک نه بیخی ځان ساتل هم په اسراف کښې داخل دی اودحج اصل مقصدُونه اودالله تعالی ذکرپریښودل اوپه خوراک څکاک کښې بوښتیدل هم په اسراف کښې داخل دی-

داآیت اګرچه دجاهلیت دعربودیوخاص رسم[برېنډتوب]ختمولو دپاره نازل شویدې چه دبیت الله شریف دتعظیم په نُوم به ئې په برېنډه طوافُونه کول،لیکن دتفسیراماماناوفقهاء په دې اتفاق لری چه هرکله یوحکم په یوخاص واقعه کښې نازل شي نوهغه همدغې واقعې پورې خاص نهٔ وی،بلکه دالفاظوعاموالې به معتبروی،یعنی ټول هغه څیزونه به دې حکم لاندِ راخی کوم چه دالفاظوپه عموم کښې شامل وی-

**په مُونځ کښې سترپټول فرض دی بغیرددې نه مُونځ نهٔ کیږي**: هم دغه وجه ده چه جمهورو صحابه کرامو،تابعینواومجتهدینواماماتوددې آیت نه ګڼراحکامِ راوښکلی دی،اول داچه څنګه په برېنډه طواف کول منع کړې شویدی دغه شان په برېنډ مُونځ کول هم حرام اوباطل ګرځولې شویدی چنانچه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی[الطواف بالبیت صلوٰة] (۲) دې نه علاوه هرکله چه په دې آیت کښې دجمهورومفسرینوپه نزدد ، مسجد ، نه مُرادسجده ده،اوپه حالت دسجده کښې برېنډپاتې کیدل دآیت نه په داګه منَع شو دغه شان په رکوع،قیام،قعود اودمونځ په ټولو حالتونو

(۱) تفسیر الطبری لابن جریر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۹۲

(۲) د بیت الله طواف د مونځ په شان دے یعنی څنګه چه برېنډ د بیت الله طواف منع دے نو هم دا شان برېنډ مونځ کول هم منع دی۔ سنن النسائی، کتاب مناسک الحج، باب اباحة الکلام فی الطواف: ج ۲، ص ۲۵

کښې هم منع اوحرام شو۔ اورسول الله ﷺ ددې زيات وضاحت داسې اوکړوچه :ديوې بالغې ښځې مونځ کول بغير دلوپټې نه [په بربنډ سر] ناروادی[ترمذی] (۱)

دمونځ نه علاوه په نوروحالتونوکښې هم دستر پټول فرض کيدل دنوروآيتونو ثابت دی چه دهغې ځنې يو آيت هم په دې سورت کښې داسې تيرشويدې: ﴿يٰبَنِىْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِىْ سَوْاٰتِكُمْ﴾

خلاصه داشوه چه ستر پټول انسان دپاره رومبې انسانی او اسلامی فرض دی په هرحالت کښې پر لازم دی اوطواف اومونځ کښې په درجه اولی سره فرض دی۔

**مونځ دپاره ښه لباس**: بله مسئله تر دا راووته چه هرکله ئې لباس ته په دې آيت کښې زينت اوفرمائيلو نوپکښې دې ته اشاره اوشوه چه په مونځ کښې ډيرغوره اوډيربهتر دادی چه يواځې په ستر پټولوباند بس والې اونکړې شی بلکه دخپل وس په جوړ دزينت جامه اختيار کړيشی، چنانچه حضرت حسن به دخپل عادت په جوړ دمونځ دپاره زيات غوره لباس اغوستو اوفرمائيل به ئې چه الله تعالی جمال خوښوی ځکه دخپل رب په وړاند زينت اختياروم اوالله تعالی فرمائيلی دی﴿خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾

ځکه چه دے آيت نه په مونځ کښې ستر پټول فرض ثابتيږی ،دغه شان دخپل وس په جوړصفا ، ستره ښکلې لباس استعمالول هم تر غوره اومستحب ثابتيږی۔

**په مونځ کښې دجامو په باره کښې خوسئلې**: دريمه مسئله دلته داده چه ستر پټول هرکله چه په انسان باند په هرحال کښې اوخصوصاً په مونځ اوطواف کښې فرض دی دهغې حدڅه دې؟ قرآن کريم پخپله ددې تفصيل بيان نکړو اوصرف ددې حکم ئې ورکړو چنانچه رسول الله ﷺ ددې تفصيل داسې بيان کړو چه دنارينه ستر دنو نه ترځنګنونوپورې دې اودزنانه ستر ټول بدن دې سوا دمخ دواړوتلو [ورغوږ] دلاسونو اودواړوقدمونونه۔

دحديثو په رواياتوکښې داټول تفصيل بيان شويدې(۲) دنو نه لاند ګوډو پورې دبدن څه برخه تړچه ښکاری، نارينولره داسې جامه اغوستل هم ګناه ده اومونځ ئې هم ورسره نه کيږی-دغه شان دزنانه ستر، څټ، مټې پنډئ وغيره که ديوجامې نه ښکاری نودغسې جامه اغوستل ورد پاره هسې هم ناروادی اومونځ ئې هم پکښې نه کيږی-په يوحديث شريف کښې تردې راغلی دی چه په کوم مکان کښې ښځې بربنډ سروی هلته دنيکئ ليکونکې فرښتې نه راځی-

دزنانه مخ، ورغوی اوقدمونه چه دسترنه مستثنی ګرځولې شويدی، دهغې دامعنی ده چه که په مونځ کښې دزنانه داانداموونه ښکاری نومونځ ئې کيږی څه خلل پکښې نه راځی دامطلب ئې هيچرې نه دې چه دنامحرمو په وړاند دهم ښکاره مخ بې دشرعی عذرنه آوړی راوړی-

هرکله چه داحکم دفرض ستر په باره کښې دې چه دې نه بغير مونځ نه کيږی اومونځ کښې يواځې ستر پټول نه دی بلکه دزينت دجامو اختيارولوارشاددې، لهذا نارينه لره بربنډسر، بربنډې ځنګلې يا اوږې مونځ کول مکروه دی خواه قميص دلنډولستونړوی يالستونړی ئې انغښتی دی، په داسې جامه کښې هم مونځ کول مکروه دی چه ددوستانو اوعوامو په وړاند په ورتلو کښې ورته شرم ورځی-لکه چه بې قميصه بنيان واغوندی اګرچه لستونړی ئې هم پوره وی ياپه سرباند

(۱) جامع الترمذی، أبواب الصلاة، باب ما جاء لا تقبل صلاة الحائض الا بخمار: ج۱، ص۸۶

(۲) سنن الدارقطنی رقم الحديث: ۹۰۱، ۹۰۲، كتاب الصلاة، باب الامر بتعليم الصلوات والضرب عليها وحد العورة، والسنن الكبری للبيهقی: ج۲، ص۲۲۵

دټوپۍ په خائې څه کپړه يادستي ورکوټې رومال اوتړي، چه څوک هوښيارانسان په داسې شکل کښې په څنګه خوښولې شي؟په بربنډ سر، بربنډ واوږ واوبربنډو څنګلو د مونځ مکروه کيدل د قرآن ددې آيت دلفظ، ،زينة، ،نه راغستې شويدې اورسول الله ﷺ په ښکاره هم فرمائيلي دي۔

څنګه چه دآيت رومبۍ جُمله دعربو دجاهليت دبربنډوالي درسم ختمولو دپاره نازله شويده او د الفاظو دعموم نه ئې نور ګنړ احکام اوګنړې مسئلې معلومه شوې دغه شان دوئيمه جمله ﴿وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا﴾ کښې هم اګرچه دعربو ددې رواج ختمولو دپاره نازله شويده چه دحج په ورځو کښې به ئې ښه خوراک څکاک کول ګُناه ګنړل، ليکن دالفاظو دعموم نه دلته هم نورډير احکام اومسئلې ثابتيږي۔

**دضرورت په اندازه خوراک څکاک کول فرض دي:** اول داچه دشريعت له مخه هم په انسان باند خوراک څکاک کول فرض اولازم دي، که سره دوس رسيدو څوک خوراک پريږدي اودد ے نه مړشي يادومره کمزورې شي چه فرائض اوواجبات نشي اداکولې نوداسې کس به دالله تعالى په نزد مجرم اوګُناهګاروي۔

**ددُنيابه څيزونوکښې اصل مُباحوالې اوروااوالې دي،ترڅوچه په څه دليل سره ترمنع ياحراموالې ئې ثابت نه وي نوهيڅ څيزنه حراميږي:** داحکام القرآن دجصاص، دداګيزې خبرې [تفريح] مطابق ددې آيت نه يوه مسئله داراووته چه په دُنياکښې دخوراک څکاک ټول څيزونه جائزاوحلال دي ترڅوچه دېوخاص څيزحراموالې ياترمنع په څه شرعی دليل سره ثابته نشي، دې ته اشاره د ﴿وَكُلُوا وَاشْرَبُوا﴾ نه داسې معلومه شوه چه مفعول ئې ذکرنه دې، چنانچه دعربيت علماؤپه داګه داخبره کړيده چه چرته دېوفعل مفعول ذکرنه وي نودې عمو ته اشاره وي چه هرڅيزخوړلې څکلې شي سوادغه څيزونونه چه په داګه حرام ګرځولې شوی وي۔[احکام القرآن جصاص، بيان القرآن دتهانوی ﷫] (١)

**په خوراک څکاک کښې اسراف کول جائزنه دي:** دآيت دآخرې جُملې، ﴿وَلَا تُسْرِفُوا﴾ نه ثابته شوه چه د خوراک څکاک اجازت خولاځه، چه حُکم ئې دې، خوورسره داسراف کولونه منع راغلې ده، د اسراف ، معنی دحدنه ورتيريدل دې چه دهغې ګنړصورتونه کيدې شي يوداچه دحلالونه په ورتيريدوسره حراموته وراوړسيږي اودحرامو په خوړلوڅکلوکښې اخته شي، نودا خوصفا حرام دي۔

دوئيم داچه دالله تعالى حلال کړي څيزونه بې دشرعی وجې نه په حرام ګنړلوسره پريږدي، څنګه چه دحرامو استعمالول دجرم اوګناه کاردې دغه شان حلالولره حرام ګنړل هم دالله تعالى قانون مخالفت اودسختې ګناه کاردې[ابن کثير، مظهری، روح المعانی]-(٢)

داهم اسراف دې چه دلوږې اوضرورت نه زيات خوراک څکاک اوکړي، په دې بنافقهاؤ د مړيدونه پس زيات خوراک څکاک کولولره ناروانيلی اوليکلی دي [احکام القرآن وغيره](٣)

دغه شان داهم داسراف په حُکم کښې دي چه سره دقدرت اواختياره دضرورت نه دومره کم اوخوري چه دکمزورې کيدوپه وجه دواجباتواداکولووس ئې هم بيانه رسي-ددې دواړو قسمو اسراف دبنديزدپاره قرآن کريم يوځائې کښې داسې فرمائي:

---

(١) أحكام القرآن للجصاص: ج٦، ص٣٣
(٢) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج٢، ص٢٠٥، والتفسير روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج٦، ص١٥٥
(٣) أحكام القرآن للجصاص: ج٦، ص٣٣، والمبسوط، كتاب الكسب: ج٣٢، ص٣٠

﴿إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ﴾ [دَحد نه زیات [او کم] خرچ کوونکي دَشیطانانو رونړه دي]-

او بل ځائې کښې فرمائي:

﴿وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا﴾ هغه کسان دَالله تعالی خوښ دي چه په مال لګولو کښې درمیانه چلیږي نهٔ خو دَضرورت نه زیات او نهٔ تر کم مال لګوي-([1])

**په خوراک څکاک کښې درمیانه چلیدل د دین دنیا فائده لري:** حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه فرمائیلي دي چه دَډیر خوراک څکاک نه ځانونه خکه ساتئ چه دا بدن خرابوي، بیمارئ راپیدا کوي او په عمل کښې سستي راولي، بلکه په خوراک څکاک کښې منځومیانه چلیدل اختیار کړئ چه دا دَبدن دَروغتیا دَپاره هم مفید او دَاسراف نه لرې دي، او وې فرمائیل چه الله تعالی څورب عالم نهٔ خوښوي [دې نه مراد هغه څوک دي چه دَزیات خوراک په وجه په خپل اختیار سره ئې ځان څورب کړې وي]- او وې فرمائیل چه انسان تر هغې نهٔ هلاکیږي تر څو چه خپلو نفساني خواهشاتو ته په دین باند غوره والې ورنکړي [روح دَابي نعیم نه]-([2])

پخوانو بزرګانو دې ته هم اسراف وئیلې دي چه هروخت دَخوراک څکاک په فکر کښې لګیا وي، یا دَنورو ضروري کارونو نه ئې هم وړاند ګڼړي چه خلق تر دا معلوموي چه دَده دَ ژوند مقصد سوا دَ خوراک څکاک نه بل څه نشته، هم دَدَغې حضراتو مشهوره مقوله ده چه ، ، خوردن برائې زیستن است نه زیستن برائې خوردن، [خوراک دَځان ژوندي ساتلو دَپاره دي دا سې نهٔ ده چه ژوند دِ دَ خوراک څکاک دَپاره وي-]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي: [ان من الاسراف ان تاکل کل ما اشتهيت] [ابن ماجه عن انس]-([3])

یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت عائشې رضي الله عنها لره په سالمه ورځ کښې دوه ځل په خوراک اولیدله نو وې فرمائیل چه، ، اے عائشې رضي الله عنها تهٔ دا خوښوې چه ستا شغل یوا ځې خوراک څکاک وي؟ [بیهقي]([4])

دلته په آیت کښې اګرچه دَمنځومیانه خوراک څکاک کولو بیان راغلې دي لیکن خاص وړپورې نهٔ دي بلکه په اغوستن، استوګنه او هر کار کښې منځومیانه شان خوښ کړې شوي دي- حضرت عبدالله بن عباس فرمائیلي دي چه څه موزړهٔ غواړې خورئ، څکئ او اغوندئ، صرف دَدوؤ خبرونه ځان ساتئ یو دا چه اسراف، [دَشرعي حدنه تیریدل] پکښې نهٔ وي، بل دا چه فخر او غرور پکښې نهٔ وي([5])

**دې آیت نه اته شرعي مسئلې:** خلاصه دا شوه چه دَ ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا﴾ نه اته شرعي مسئلې راؤوتې، اول دا چه دَضرورت په اندازه خوراک څکاک کول فرض دي دویمه دا چه په څه شرعي دلیل سره دَیو څیز حراموالې ثابت نشي هغه څیز حلال دي، دریم دا چه د کومو څیزونو استعمال لره چه الله تعالی او دَهغه رسول صلی الله علیه وسلم منع کړیدی دَهغې استعمال کول اسراف او ناروا دي، څلورم دا چه دَالله تعالی حلال کړي څیزونه حرام ګنړل هم اسراف او سخته ګناه ده، پنځم دا چه دَمړیدو نه پس

[1] ) أحكام القرآن للجصاص: ج ٦، ص ٢١٣
[2] ) تفسير روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ١٥٥
[3] ) ترجمه: دا هم په اسراف کے شامل دے چه ته هر هغه څیز وخوری چه ستا زړه ئې غواړي- سنن ابن ماجة، أبواب الأطعمة، باب من الاسراف أن تأكل كل ما اشتهيت: ص ٢٤٠
[4] ) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث: ٥٦٤٢، التاسع والثلاثون من شعب الإيمان، الفصل الثاني في ذم كثرة الأكل-
[5] ) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ٤٠٦

زیات خوراک څکاک کول ناروادی، شپږم داچه دومره کم خوراک کول هم اسراف دي چه دَهغې له کبله دَواجباتو اداکولو وَس هم نهٔ لري اووم داچه هروخت دخوراک څکاک په فکر کښې پاتې کیدل هم اسراف دي، اتم داچه هرهغه څیزخوړل څکل هم اسراف دي چه څه ته ئې زړهٔ اوشي۔

داخودَدې آیت دینی فاندې شوې، په طبی لحاظ سره دَبدن دَروغتیا دپاره دَدې نه زیَاته غوره بله څه نُسخه نشته، چه په خوراک څکاک کښې میانه روی اوکړې شي ولې چه په دې سره دَټولو رنځونو او مرضونو نه په امان کښې پاتې کیږی۔

په تفسیرروح المعانی اومظهری وغیره کښې راغلی دی چه امیرالمُؤمنین هارون الرشیدسره یو نصرانی طبیب به دَعلاج دَپاره پاتې کیدو، هغه علی بن حسین بن واقدته اووئیل چه ستاسو په کتاب کښې دَعلم طب څه برخه نشته، سره دَدې چه په دُنیا کښې یواځې دوه علمونه دی یوعلم ادیان [دَدین علم] بل علم ابدان [دَبدنونویعنی دَطب علم] وی علی بن حسین ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالیٰ دَطبّ اوحکمَت ټول فن دَقرآن کریم په نیم آیَت کښې راجمع کړیدې چنانچه فرمائی:

﴿كُلُوْاوَاشْرَبُوْاوَلَاتُسْرِفُوْا﴾ [اوپه تفسیرابن کثیر کښې ئې داقول دَځنې پخوانوبزرګانو په حواله هم نقل کړیدې] (۱)- بیاهغه اووئیل چه ستاسودَرسول په کلام کښې هم دَطب په باره کښې څه شته؟هغوئ ورته اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ په یوڅوکلموکښې دَطب ټول فن راجمع کړیدې، هغوئ فرمائیلی دی:

معده دَناروغتیاؤکوردې اودَضررناکوڅیزونونه پرهیزکول دَهرې دوایَې بُنیاددې اوهربدن ته هغه څیزورکوئ چه دَکوم عادت ئې وی[کشاف، روح] دَغه نصرانی طبیب چه واؤریدل نووې فرمائیل چه ستاسوکتاب اوستاسورسول دَجالینوس دپاره څه طب نهٔ دې پرېښې۔(۲)

دَحضرت ابی هریره په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه معده دَبدن حوض [تالاب] دې، دَټول بدن رګونه دَدې حوض نه خړوبیږی، که معده روغه وی نوټول رګونه دغې ځائې نه تندرستې غذاګانې ځان سره بیرته اوړی، اوکه داناروغه وی نوټول رګونه ناروغۍ ځان سره یوسی اوپه ټول بدن کښې ئې خوروی، (۳) بیهقی په شعب الایمان کښې]۔

محدثینودَدې روایتونوپه الفاظوکښې څه کلام کړیدې لیکن په دې دَټولواتفاق دې چه په بې شمیره حدیثونوکښې دکم خوراک اودَمحتاط اوسیدوتاکیدونه راغلی دی [روح]۔(۴)

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْٓ اَخْرَجَ

| اے نبی اووایه | چاحرام کړو | ښائیست دالله | هغه | چی راایستلې دې هغه

| [ائې پیغمبره] دوئ ته اووایه چې د الله ﷻ هغه زینت چا حرام کړې دې

لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ؕ قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ

دپاره دبندګانو خپلو| اوپاک څیزونه | درزق نه | اووایه | داټول څیزونه |دپاره دهغه کسانو دی

چې خپلوبندګانودپاره ئې پیدا کړی دی | اوپاک رزقونه چا حرام کړی دی| ورته اووایه چې داټول څیزونه

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۰۶

(۲) تفسیر روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۵۶، وکشاف تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۲۴

(۳) شعب الإیمان للبیهقی، التاسع والثلاثون من شعب الإیمان، فی طیب المطعم الخ رقم الحدیث: ۵۵۵۳

(۴) تفسیر روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۵۷

اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ

چي ایمان ئې راوړو | په ژوند د دنیاکښې هم | اوخاص به وی دهغوئ دپاره | په ورځ

په دې دنیاکښې د مومنانو دپاره پیدا شوی دی | ..... او په ورځ د قیامت به

الْقِيٰمَةِ ۭ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝ قُلْ

دقیامت | دارنګې | مونږه صفاصفابیانوو | آیتونه | دپاره دهغه قوم | چې پوهېږی | ورته اووایه

هم خاص هغوئ د پاره وی | مونږ دغه شان دپوهه خلقو دپاره ښکاره آیتونه بیانوو | ورته اووایه

اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ

بیشکه | حرام کړی دی | رب زما | دبې حیایئ کارونه | هغه څه | چې ظاهر وی | دهغې نه | اوهغه پټ چې وی

چې زما رب د بې شرمئ پټ اوښکاره کارونه ټول حرام کړی دی |

وَالْاِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ

اوګناه | اوزیاتي | په ناحقه سره | او چې تاسو شریك کړئ | د الله سره | هغه څیز | چې نه دې

اوګناه اوناحقه ظلم اودا چې تاسو الله ﷻ سره شریک پیدا کړنی | چې

يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا

نازل کړې | په هغې باندې | هیڅ دلیل | اوداچې اووایئ تاسو | په الله باندې | هغه خبرې |

الله ﷻ د هغې په جواز هیڅ سندنه دې نازل کړې | اوتاسو په الله ﷻ پورې داسې خبرې تړئ چې

لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا

چې تاسو ته معلومې نه وې چې الله وئیلی دی | اودپاره دهر امت | یوه نیټه د ه | نو هرکله چې

تاسوپرې هم نه پوهېږنی | اودهر قوم دپاره دمهلت یوه نیټه مقرر ده | ........... نوهرکله چې

جَآءَ اَجَلُهُمْ لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝

راشی | نیټه دهغوئ | روستو به نشی هغوئ | یوساعت | اونه به مخکښې شی دهغه نه

نیټه یې پوره شی | نونه به یوساعت روستو شی | او نه به یوساعت مخکښې شی

## آسان ترجمه قرآن

ته ووایه چه: هغه څوك دي چه هغه د زينت هغه سامان حرام كړي دي چه الله خپلو بندګانو لره پيدا كړي دي، او (دغه شان) د رزق پاك څيزونه ؟ ته ووايه چه: كوم خلقو ايمان راوړي دي هغوی ته دا نعمتونه ددې دنيا په ژوند كښې ملاؤ شوي دي د قيامت په ورځ به خالص هم د دوی دپاره وي دغسې مونږ دا ټول آيتونه هغه خلقو د پاره تفصيل سره بيانوؤ چه د علم نه كار اخلي. ته ووايه چه: "زما پروردګار خو دبې حيايئ كارونه حرام كړي دي، خواه كه هغه بې حيايي ښكاره وي او كه پټه هر قسم ګناه او ناحقه زياتي لره، او دا چه تاسو دالله سره داسې څيز شريك كړئ چه دهغې په باره كښې الله څه دليل نه

دې نازل کړې. او دا خبره چه تاسو په الله باندې داسې خبرې جوړې کړئ چه د هغې دحقیقت تاسو ته لږ غوندې علم هم نشته او د هر یو قوم دپاره یو وخت مقرر دې، پس چه کله د دوی هغه مقرر وخت راشي نو دوی لږ وخت هم مخکښې کیدې وروستو کیدې نه شي.

## خلاصه تفسیر

کوم خلق چې د الله ﷻ حلال کړې شوی څیزونه ملبوسات او مطعومات ومشروباتو لره بې دلیله بلکه د دلیل نه خلاف حرام ګنړی دوئ ته] ﴿قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ﴾ تاسو اووائې چې [دا اووائې] چې د الله ﷻ پیدا کړې شوې کپړې چې هغه ذات خپلو بندګانو د [استعمال] دپاره جوړې کړی او د خوراک څکاک حلال څیزونو لره [کوم چې الله ﷻ حلال ګرځولي دی] کوم کس حرام کړی دی [یعنی حرام او حلال ګرځول خو صرف د خالق کائنات کار دې، تاسو څوک یئ چې د خپل طرفه به یو څیز حلال او حرام ګرځوئ؟ دې مذکوره آیت مبارک کښې لباس او د خوراک څکاک څیزونو ته د الله تعالی نعمت وئیلې شوې دې دې سره کافرانو ته د اشبه کیدې شی چې دا انعام خو مونږ ته ښه ملاویږی، که زمونږ نه الله ﷻ خفه وې او زمونږ عقائد او اعمال دهغه خلاف وې نو مونږ ته بهٔ دا انعام ولې ملاویدو، ددې شبه په جواب کښې یې اوفرمائیل چې اې محمد ﷺ] ﴿قُلْ هِيَ لِلَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ تاسو دوئ ته اووائې چې [د الله تعالی د انعاماتو متعلق د استعمال اجازت څه د مقبولیت دلیل نه دې، خو که دهغې د استعمال نه پس څه وبال نه وی نو هغه د مقبولیت دلیل دې، او داسې استعمال صرف د اهل الله حصه کښې دې، ځکه کافر چې څومره ددنیا نعمتونه استعمالوی نو دومره به په آخرت کښې د هغه عذاب زیات وی، په دې وجه ئې اوفرمائیل چې] دا لباس او د خوراک څکاک څیزونه] په دې طور سره د قیامت په ورځ [هم دنفرتونو نه او عذاب نه] خالص دی دنیاوی ژوند کښې خاص د ایمان والو دپاره دی [د کفارو په خلاف اګر چې په دنیا کښې هغوئ د الله ﷻ د نعمتونو نه عیش عشرت پورته کړو او ژوند ئې تیر کړو، خو ددې نعمتونو شکر ئې د ایمان او طاعت په صورت کښې ادانه کړو، په دې وجه دوئ دپاره دا نعمتونه هلته وبال جوړ شی] ﴿كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ مونږ داشان ټول آیتونو لره د پوهه خلقو دپاره صفا صفا بیانوؤ. ﴿قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾ تاسو ﷺ [دوئ ته داهم] اوفرمائې چې [تاسو کوم حلال څیزونه بغیر د څه وجې نه حرام ګنړلی دی هغه خو الله ﷻ نه دی حرام کړی] البته زما رب صرف [هغهٔ څیزونه کوم کښې چې تاسو اخته یئ] حرام کړی دی [مثلا] ټول فحش خبرې که ښکاره دی هغه هم [لکه په بربنډه طواف کول] او که پټ دی هغه هم [لکه بدکاری] ﴿وَالْإِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ او هره د ګناه خبره [ئې حرامه کړې ده] او په ناجائز په چا باندې ظلم کول [ئې هم حرام کړی دی] ﴿وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا﴾ او دا خبره [ئې هم حرامه کړې ده] چې تاسو الله ﷻ سره داسې یو څیز [په عبادت کښې] شریک جوړ کړئی چې دهغې د الله تعالی د طرفنه څه سند نه دې نازل شوې [نه کلی طور او نه جزوی طور] ﴿وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ او دا خبره ئې [حرامه کړې ده] چې تاسو خلق الله ﷻ باندې داسې خبره اولګوئ چې دهغې تاسو سره څه سند نشته دې [لکه څنګه چې آیت قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ کښې ټول مامورات چې په هغې باندې عمل کول مشروع دې داخل شو، دا شان انما حرم کښې ټول منهیات چې

دهغې ممانعت دې شامل شو] ﴿وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ﴾ او [که ددې محرماتو د ارتکاب کوونکو ته په زر سزا نه ورکولو کښې ددې په تحریم کښې څه شک پیدا شی نو ددې جواب دادې چې دالله تعالی په علم کښې] د هرې یوې ډلې [هر د هر کس سزا] دپاره [د حکمت دتقاضه مطابق] یو موده مقرره ده ﴿فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ﴾ پس کوم وخت چې ددوئ [هغه] مقرره موده [نزدې] راشی ﴿لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ نو په هغه وخت کښې نه یو ساعت [ددې نه] روستې کیدې شی او نه مخکې کیدې شی] بلکه زر تر زره به سزا پرې جاری شی ، ددې مودې نه مخکښې سزا نه کیدل ددې دلیل نه دې چې په دې محرماتو به سزا نه وی].

## معارف اومسائل

په رومبی آیت کښې هغه چاته خبرداری ورکړې شویدې چه په عبادتونو کښې د خانه زیات ځیزونه اودخانه سختئ پیدا کوی، دالله تعالی حلال کړې ځیزونه چه په خانونو یې حرام کړی دی هغې ته عبادت اوفرمانبرداری وائی لکه چه دمکې مشرکانو به دحج په ورخو کښې، دطواف په موقعه جامې اغوستل روا، نهٔ گڼړل اودالله تعالی دحلالو اوښو غذاگانو نه ځان ساتل بهٔ ئې عبادت بللو داسې خلقوته درتنې، دکښې په انداز کښې خبرداری ورکړې شوچه دالله دبندگانو دپاره دهغه پیدا کړې زینت اوپاکیزه سپیځلی غذاگانې چه الله تعالی درکړیدی، داچاحرامې کړیدی؟

**د اعلی لباس اوخوندوروخوراکونونه پرهیزکول داسلام تعلیم نهٔ دې:** مطلب دادې چه ځیزونه حلال یاحرام گرځول، یواځې دهغه پاک ذات حق دې چاچه دا ځیزونه پیدا کړیدی، بل چالره په دې کښې دخل ورکول جائزنهٔ دی، په دې بنا هغه خلق دزورنې اوعذاب جوگه دی چه دالله تعالی حلال کړې عمده جامه یاپاکیزه اوخوندناک خوراکونه حرام گڼړی، سره دوسه کندرپوش کیدل اوخان خیرن خچن ساتل نه خو داسلام تعلیم دې اونهٔ په اسلام کښې څه خوښ شوې ځیزدې څنگه چه ډیرجاهلان ئې خیال کوی۔

په پخوانوبزرگانواوداسلام په امامانو کښې گڼرشمیرداسې تیرشویدی چه دوئ خاوندان به وو نو اعلی اوزیات قیمته جامې به ئې استعمالولې ددواړوجهانوسردار رسول اللهﷺ هم چه کله دوئ خاوندشونواعلی نه اعلی لباس ئې استعمال کړیدې، په یوروایت کښې راغلی دی چه یوځل هغوی بهرته تشریف راوړو نو یدن مبارک باندې ئې داسې څادر پروت وو چه یوزردرهمه قیمت ئې لرلو، دامام اعظم ابی حنیفه رحمه الله نه منقول دی چه هغوئ د څلورو سوؤگنی [اشرفیو] دقیمت څادراستعمال کړې وو، ([1]) دغه شان به حضرت امام مالک رحمه الله همیشه دپاره نفیسې او اعلی جامې استعمالولې، هغوئ دپاره خویوصاحب دټول کال داتلسوشلو په دې څوک پوهیږی درې سوه شپیتو جوړوجاموانتظام په خپله ذمه اغستې وو اوکومه جوړه به ئې چه یوځل بدن ته اورسیده هغه به ئې بیائهٔ استعمالوله، بعنی یوورځ داستعمالولونه پس ئې به چاغریب طالب علم ته ورکوله.

وجه داده چه رسول اللهﷺ فرمائیلی دی چاته چه الله تعالی یونعمت اووسعت ورکړی نوالله تعالی داخوښوی چه دالله تعالی ددغې نعمت اثردهغه په جامه وغیره کښې اولیدلې شی، ([2]) ولې چه نعمت ښکاره کول هم یوقسم شکردې، بل اړخ ته دوئ وندوپه صورت کښې، شلیدلې یا خیرنې خچنې جامې استعمالول ناشکری ده۔

---

[1] تفسیر روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۶، ص ۱۵۵

[2] جامع الترمذی، أبواب الاستیذان والآداب، باب ما جاء فی أن الله تعالی یحب أن یری أثر نعمته علی عبده: ج ۲، ص ۱۰۹

البته ضروري دی چه دَوُ څیزونونه دځان ساتی یودَریا اونمائش نه اوبل دَفخر او غرورنه، یعنی خلقوته دَدرشن ورکولواودَخپلې لويي ښکاره کولودَپاره دِاعلی جامې نهٔ اغوندی، ښکاره خبره ده چه دغه پخوانې بزرګان دَدغې دواړوڅیزونونه پاک وو-

دَرسول الله ﷺ یادنوروبزرګانومثلاً دَفاروق اعظم رضی الله عنه په باره کښې چه منقول دی چه هغوئ به په عاموحالاتوکښې معمولی قسم یاپیوندلګیدلی جامې استعمالولې نودهغې دوه وجې کیدې شوې یوداچه اکثربه مال راغلونو په فقیرانو، مسکینانواوپه دینی کارونوبه ئې لګولوخپل ځان دپاره به ورته پاتې نشو چه عمده لباس به ئې پر حاصلولې شو، بله داچه هرکله دوئ دَ خلقو پیشوایان وو نوپه داسې ساده اوکم قیمته جاموا‌غوستوسره به نوروحاکمانوته یوقسم نمونه ورکوله چه په عاموغریبانوباند دَدوئ دمالې حالت رعب پرېوځئ نهٔ شي-

دغه شان صوفیائې کرام چه دَښائیست دَجامواغوستواودَخوندوراعلی خوراکونونه خپل نوی مُریدان منع کوی، دَهغې مطلب دانهٔ وی چه دَدې څیزونوهمیشه دپاره پرېښودل ګنې دَثواب کاردې، بلکه په نفسانی خواهشاتوباند دَقابومُوندودپاره دَسلوک په شروع کښې داسې مجاهدې دَعلاج اوداروپه ډول کولې شی، هرکله چه داسې درجې ته اورسی چه په نفسانی خواهشاتوباند قابوراشي اونفس ئې تردې حده کمزورې شی چه حرامواوناجائزوته ئې نه راکاږی، نودغه وخت تول صوفیائې کرام دَعاموپخوانوبزرګانوپشان عُمده جامې اوخوندورې خوراکې استعمالوی اودغه وخت دَغه پاک رزقونه اوخوراکُونه وردپاره دَخندجوړیدوپه ځائې دالله تعالی دَمعرفت اونږدیکت ذریعه اوباعث جوړشي-

**په خوراک او اغوستلو کښې درسول الله ﷺ سُنت:** دَخوراک اواغوستوپه باره کښې دَرسول الله ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم اوتابعینودسُنت خُلاصه داده چه په دې څیزونوکښې دې تکلف نشی کولې، په آسانه چه ورته کوم خوراک پوشاک په ګتوورځی هغه دسره دَشُکره استعمالوی، غټه جامه اواوچ خوراک په ګُتوورځی نودې نه دَښوڅیزونوحاصلولودپاره دخپې لاسُونه نهٔ وهی چه دې دپاره قرض اغستوباند هم صرفه نهٔ کوی یاپه نورومشکلاتوکښې ځانَ ښکیل کوی-

دغه شانَ چه عُمده اوښُکلې لباس په ګُتوورشی یاخوندوره خوراکه ورته حاصله شی نوپه قصدسره ددَهغې دَخرابولوکوشش نهٔ کوی، اونهٔ ددَهغې دَاستعمالولونه ځان ساتی، ولې چه څنګه د کمزوری څیزپه موجودګئ کښې داعلی اوعمده څیزونوحاصلولودپاره لاس خپې وهل بدیت لری دغه شانَ حاصل شوې اعلی څیزپه قصدسره خرابول یادَهغې په ځائې دَځه بل کمزوری څیزاستعمالولوتکلُف کول هم بدیت لری-

دَآیت په راتلونکې جُمله کښې دَدې یوخاص حکمت داښودلې شویدې چه دَدُنیاټول نعمتُونه، نفیس اواعلی لباس، پاکیزه اوخوندورِخوراکونه، په اصل کښې خالص دَ فرمانبرداروِ مسلمانانو دپاره پیداکړې شویدی اونورخلق تر دَدوئ په برکت فائده حاصلوی، ځکه چه دا دنیا دَعمل ځائې دې دجزاء ځائې نهٔ دې، دلته دکهره ګوټه اودښه اوخراب بیلتون په دُنیوی نعمتُونو کښې نشی کیدې بلکه دَدنیادَرحمٰن دَنعمتُونوداسترخوان عام دې چه ټولودپاره یوشان پرانستې دې بلکه په دُنیاکښې دَالله تعالی عادت دادې چه که دَمؤمنانواوفرمانبرداروبندګانوپه فرمانبرداری کولوکښې څه کوتاهی راشی نو، نورخلق په دوئ غالب کړی اودُنیوی نعمتُونوپه خزانوباند هغوئ ته قبضه ورکړی اودوئ لره په لوږوتندوغریبئ اونیستئ کښې اخته کړی-

خو داقانون يواځې په دې دار العمل دنيا کښې دې ولې چه په آخرت کښې ټول نعمتونه اوراحتونه نه يواځې دالله تعالى فرمانبردار وبندګانو دپاره مخصوص وى ځنګه چه فرمائى:

﴿قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ [تاسو اووايئ چه ددنيا ټول نعمتونه هم ددې دنيا په ژوند کښې په اصل کښې دمؤمنانو حق دى اودقيامت په ورځ خو په خالص دوئ دپاره مخصوص وى]۔

اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ددې جملې مطلب دا بيان کړيدې چه ددنيا ټول نعمتونه او راحتونه په داسې خاص شان سره چه په آخرت کښې وبال جان جوړنشى يواځې دفرمانبردار و مؤمنانو په برخه دى، په خلاف دکافرانو فاجرانو نه چه اګر که دوئ ته هم په دنيا کښې نعمتونه حاصل وى بلکه دوئ ته دنورونه زيات ملاوېږى خو چونکه دغه نعمتونه به دوئ دپاره په آخرت کښې وبال جان اودائمى عذاب جوړېږى نودنتيجې په اعتبار سره دوئ دپاره، دادعزت اوراحت څيزونه شو۔

اوځينو مفسرينو حضراتو ددې معنى داپه ګوته کړيده چه ددنيا دټولو نعمتونو، راحتونو، خوند، مزوسره هر کله چه محنتونه، مشقتونه اوبيا ددې دزوال خطرې اونور قسما قسم تکليفونه او غمونه لګيدلى دى نو داخالص راحت نشو، البته په قيامت به دا نعمتونه فرمانبردارو بندګانو ته خالص داسې حاصليږى چه ورسره به هيڅ، غم اوفکر اودزوال خطره به نه وى اونه به پکښې دڅه کمې ياخرابئ، وغيره راتلو امکان وى، اونه به وروسته مصيبت راتلونکى وى، دادرې واړه مفهومه په دې جمله کښې ځائې کيدې شى، همدغه وجه ده چه صحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله مفسرينو هم دامعنى غوره کړيده۔

په آخر دآيت کښې فرمائى: ﴿كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ﴾ [مونږه دخپل کامل قدرت نشانيانې پوهه خلقو دپاره په داسې شان تفصيل اووضاحت سره بيانوؤچې هر عالم اوجاهل پرې پوهيدې شى په دې آيت کښې دخلقو دغلو [دحدنه دورتيريدو] اودجاهلانه خيالونو رد کول دى چه هغوئ به بنه لباس اغوستلو اوښه خوراک نه ځان ساتل دالله تعالى درضامندئ موجب ګڼړلو۔

وروسته په بل آيت کښې دالله تعالى دحرامو ګرځولو شوؤ څيزونو بيان دې چه دهغې په پرينبوسره حقيقتا دالله تعالى رضا حاصليږى اواشاره پکښې دې اړخ ته ده چه داخلق په دوچنده جهالت کښې اخته څکه دى چه يو خوائې دالله تعالى حلال کړى اعلى اونفيس څيزونه په ځپلو ځانونو باندې په حرام ګرځولو سره خپل ځانونو تر بې برخې کړل، او بل اړخ ته ئې اصلى حرام څيزونه ئې ځانونو دپاره حلال اوګرځول اودهغې په استعمالولو سره دالله تعالى دقهر غضب او دآخرت دعذاب حقدار شو اوپه دې ډول ئې دآخرت وبال ځانونو دپاره په بيعه واغستو، ددنيا او آخرت دنعمتونو [دواړو] نه په محرومه کيدو سره په دواړو جهانو کښې خپل زيان کوونکى اوګرځيدل۔ فرمائى: ﴿قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ [کوم څيزونه چه تاسو حرام اوګرځول هغه خو په اصل کښې حرام نه دى خو الله تعالى دبيحيائئ ټول کارونه حرام کړيدى، که ښکاره دى او که پټ، اود ګناه هر کار، اوپه ناروا په چا باندې ظلم کول اوبې دليله الله تعالى سره څه شريک ګرځول اوداچه تاسو خلق په الله تعالى داسې خبره وراوتپئ چه سند ئې درسره نشته] په دې تفصيل سره د، اثم، .لاتد ټول هغه ګناهونه راغلل چه ترون ئې دانسان دخپل ذات سره دې او، بغى، کښې ټول هغه ګناهونه راغلل چه تعلق ئې دنورو معاملو او حقوقو سره وى، شرک اوپه الله تعالى باندې دځانه خبرې تپل خو په داګه لويه ګناه ده۔

دَدې خاص تفصيل بيان څكه اوكړې شوچه په دې كښې تقريبًا هرقِسم حرام شوی څيزُونه او هرقِسم تول گُناهونه راغلل، كه هغه دَعقيدې سره تړون لري اوكه عمل سره اوبيادَاتی عمل گُناهونه وي اوكه د خلقودَحقوقووی اوپه دې وجه هم دَجاهليت دَزماني خلق په دې ټولوگُناهونو او حراموكښې اخته وو، په دې شان بل جهالت ئې داسې څرګند كړوچه حلالوڅيزونونه ځان ساتی اوپه حراموباندِ زړه ور كيږی.

اوپه دين كښې دَغلُو[زياتوراوستو]اودَځانه جوړكړی بدعاتودالازمی خُصوصيت دې چه په دې كښې ارم اوبوښت خلق، دَدين دَاصلی اوزيات ضروری څيزُونونه عادتًا غافل كيږی-په دې وجه دَ ،،غُلوفی الدين، ،اوبدعت نُقصان غبرګ اودوچندوی، حالانكه په غُلواوبدعت كښې اخته كيدل هسې هم گُناه ده خوهركله چه دَدې په مقابله كښې اصل اوصحيح دين پريښودې شی اوسُنت طريقونه ځان محرومه كړی نوغبرګه اوپه څوڅوچنده زياته گُناه تر جوړه شی[نعوذبالله منه]-

په رُومبی اودويم دواړوآيتُونوكښې دَمُشركانواومُجرمانودَدوغلطوكارونوبيان وو يوداچه حلال څيزُونه به ئې په ځان حرامول بله داچه حرام څيزونه به ئې ځان دَپاره حلالول، په دريم آيت كښې دَدوی دَخراب انجام اودآخرت دَسزااوعذاب بيان دې، فرمائی: ﴿وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ۚ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ [يعنی دامُجرمان چه سره دَهرقسم سركشئ نه دَالله تعالی په نعمتُونو باندِ مزې كوی اوپه دُنياكښې په ظاهره پرِ څه عذاب راتلُونكې نهٔ ښكاری ،دوئ دَدَالله تعالی دَدې عادت نه نهٔ بې پرواكيږی چه الله تعالی په خپل رحمت سره مُجرمانوته مهلت وركوی چه په څه شان سره دوئ دَخپلوحركتُونونه واوړی، ليكن دَالله تعالی په عِلم كښې دَدې مهلت يوه ټاكلې نيته وی كله چه دغه نيته راشی نويوه ګړئ به هم وړاند، روستونهٔ كيږی، اودوئ به په عذاب كښې نيولې شی، كله خوهم په دُنياكښې پرِ عذاب راشی اوكه دلته رانشی نومړكيدوسره سمدستی په عذاب كښې راګيركړې شی-

په دې آيت كښې دَنيتې نه دَوړاندِ روستونهٔ كيدوذكردَيوې مُحاورې په بُنياددې مثلاً دُكاندارنه څوك خريداردا تپوس كوی چه په قيمت كښې څه كمې،زياتې كيدې شی؟دې نه مطلب كمې طلب كول وی، خوورسره هسې زياتې ذكركول وی دلته هم مطلب دادې چه دَدَغه ټاكلې نيتې نه روستووالې نهٔ كيږی، دَوړاند والی ذكرورسره هسې دَعوامودَمحاورې په ډول راغلې دې-

| يٰبَنِيْٓ | اٰدَمَ | اِمَّا | يَاْتِيَنَّكُمْ | رُسُلٌ | مِّنْكُمْ | يَقُصُّوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اے اولاده | دآدم | اكه چرې | راشی تاسو ته | رسولان | ستاسو نه | چی بيانوی هغوئ |
| ائې دَآدم اولاده ! كه تاسو ته ستاسودقوم نه پيغمبران راشی اچې هغه | | | | | | |

| عَلَيْكُمْ | اٰيٰتِيْ | فَمَنِ | اتَّقٰى | وَاَصْلَحَ |
|---|---|---|---|---|
| په تاسو باندې | آيتونه زما | نوهغه څوك | چې ځان ئې اوساتلودنافرمانئ نه | اواصلاح ئې اوكړه |
| تاسوته زماحكمونه بيانوی | نوچا چې ځان د شرک نه بچ كړو | او نيک كارونه ئې اوكړل | | |

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

نونۀ به وي يره | په هغوئ باندې | اونۀ به هغوئ | غمجن كيږي | او هغه كسان | چې دروغ ئې اوګڼړل

نو په هغوئ به نه څه ويره وي | اونه به هغوئ غمژن شي | ......... او هغه كسان چې

بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ

آيتونه زمونږه | اولوئي يې اوكړه | په مقابله دهغې كښې | هم دغه كسان | خاوندان دوور دي | هغوئ به

زمونږ ايتونو ته ئې دروغ ونيلى دي | او كبر ئې كړي دي | نو هغوئ دوزخيان دي | هغوي به

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

په هغې كښې | هميشه وي | نو څوك دي | زيات ظالم | دهغه چانه | چې اوتړي

هميشه په دې كښې وي | ....... نو دهغه چا نه لوئي ظالم څوك كيدې شي | چې

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۗ اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ

په الله باندې | دروغ | يا دروغ اوګڼړي | آيتونه دهغه | دا كسان چې دي | رسيږي به دوئ ته |

په الله باندې ئې دروغ تړلي وي | يائې د هغه ايتونو ته د دروغو نسبت كړې وي | دوئ ته به د الله ﷻ

نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ ۗ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا

حصه ددوئ دليكلې شوي تقدير نه | تر هغه پورې | چې كله | راشي دوئ ته | راليږلي شوي فرښتې زمونږه

د فيصلې مطابق ددوئ حصه اورسي | خو كله چې ورته زمونږ فرښتې دروح اخستو دپاره راشي

يَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ قَالُوْٓا اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ

چې وفات كوي دوئ | اوبه وائي | چې كوم ځائې دي | هغه | چې وئ تاسو | چې رابلل به تاسو

.........نو ورته به اووائي چې ستاسو هغه معبودان څه شول چې تاسو به د الله تعالى نه

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۗ قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ

بغير د الله نه | اوبه وائي | ورك شو هغوئ | زمونږ نه | اوګواهي به اوكړي | په ځانونو خپلو باندې

سوا رابلل | .........دوئ به اووائي چې ټول رانه ورك شول | او پخپل ځان به پخپله ګواهي اوكړي

اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ۝ قَالَ ادْخُلُوْا فِيْٓ اُمَمٍ

چې بيشكه | هغوئ وو | دحق نه منكر | اوبه وائي | ننوځئ | په هغه ډلو كښې

چې مونږ د حق نه انكار كونكي وو | الله ﷻ به ورته اوفرمائي چې هغه امتونو سره دوزخ ته داخل شئ

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ فِي النَّارِ ۗ كُلَّمَا

چې تلې دي | مخكښې ستاسو نه | دپيريانو نه | او دانسانانو نه | په وور كښې | هر كله چې

چې ستاسو نه وړاندې تيرشوي وو | كه پيريان وو او كه انسانان وو | ...........هر كله چې

دَخَلَتْ اُمَّةٌ لَّعَنَتْ اُخْتَهَا ۗ حَتّٰٓى اِذَا

ننوځئ | يوه ډله | نو لعنت به وائي | په وړاندينئ ډلې خپلې باندې | تردې پورې | چې كله

يوه ډله دوزخ ته داخله شي | نو په بله ډله به لعنت وائي | .........تردې چې

اِدَّارَكُوْا فِيْهَا جَمِيْعًا ۙ قَالَتْ اُخْرٰىهُمْ لِاُوْلٰىهُمْ

راجمع شی هغوی | په هغې کښې | ټول | نواوبه وائی اروستیٔ ډله دهغوی | په حق درومبیٔ ډلې خپلې کښې

تول سره يو ځائې شی | نوهرهٔ وراندينیٔ ډله به دروستیٔ ډلې باره کښې وائی

رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ اَضَلُّوْنَا فَاٰتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا

چی اے ربه زمونږه | دې کسانو | گمراه کړی وو مونږه | نو ورکړه دوئ ته | عذاب | دوچند

چې اې زمونږه ربه ! دې خلقو مونږ گمراه کړی وو | نوته دوی ته زمونږ په نسبت داور دوچنده عذاب ورکړه

مِّنَ النَّارِ ؕ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَعْلَمُوْنَ ۝

داوورنه | اوبه وائی الله | دپاره دهرې ډلې | دوچند دی | خولیکن | نهٔ پوهیږئ تاسو

الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې هرچا دپاره عذاب دوچنده دې | خوتاسو پرې نه پوهيږئ

وَقَالَتْ اُوْلٰىهُمْ لِاُخْرٰىهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا

اواوبه وائی | مخکښی ډله | اروستیٔ ډلې ته | پس نهٔ وو | تاسولره | په مونږ باندې

او مخکښیٔ ډله به روستیٔ ته اووائی | که [مونږ دعذاب قابل يونو] تاسو ته

مِنْ فَضْلٍ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ۝

څه غوره والې | نو اوڅکئ | عذاب | په سبب دهغې | چی وئ تاسو | چی کول به مو

خو هم زمونږ مقابله کښې فضيلت نه دې حاصل | نودخپل عمل په وجه دعذاب خوند اوڅکئ

## آسان ترجمه قرآن

(او الله تعالیٰ د انسان د پيدا کولو په وخت کښې دا تنبيه کړې وه چه) "اې د آدم اولاده اکه تاسو ته ستاسو نه پيغمبرراشي چه تاسو ته ځما آيتونه لولي ، نو کوم خلق چه تقوئ اختيار کړي او خپله اصلاح وکړي په هغوی به نه څه ويره وي او نه به هغوی غمژن شي.اوهغه څوك چه هغوی ځمونږ آيتونه دروغژن کړي دي اوتکبر سره ئې دهغې نه مخ اړولې دې . هغه خلق دوزخ والا دي هغوی به په هغې کښې هميشه وی اوس ته ووايه چه دهغه کس نه به لوئ ظالم څوك وي چه په الله باندې دروغ جوړوي . ياد هغه آيتونه دروغژنوي؟ د داسې خلقو په تقدير کښې (د رزق څومره حصه ) چه ليکلې شوې ده . هغه به هغوی ته (د دنيا په ژوند کښې) رسي تر دې چه دوی ته ځمونږ ليږلې شوې فرښتې د دوی دروح قبض کولو د پاره راشي نو هغوی به وائي چه: چرته دي هغه (ستاسو معبودان) چه هغوی لره تاسو دالله په ځائې رابلل ؟"دوي به جواب ورکوي چه هغوی ټول زمونږ نه ورك شوی دی اودوي به خپله د خپلو ځانونو خلاف گواهي ورکړي چه دوی کافر وو الله تعالیٰ به اوفرمائي چه :لاړ شئ د پيريانو او انسانانو هغه ډلو سره تاسو هم دوزخ کښې داخل شئ چه کومې تاسو نه مخکښې تيرې شوی دی (دغه شان)کله هم چه يوه ډله دوزخ کښې داخليږي ،نوهغوی به خپل شان جنسو باندې لعنت وائي تردې چه دوی يو په هغې کښې راجمع شي نودوي کښې چه کوم خلق وروستو راغلي وو هغوی به د اولنو خلقو باره کښې وائي چه: اې ځمونږ پروردګاره ! دوی مونږ په غلطه لاره اړولي وو ، دې وجې نه دوی ته دوچند عذاب ورکړه. الله تعالیٰ

په فرمائي چه: د ټولو عذاب دوچند دي ليکن تاسو ته (اوس) پته نشته. او اول راتلونکي به دوروستو راتلونکو باره کښې وائي بيا خو تاسو ته په مونږ باندې څه اوچتوالې حاصل نه شو. پس کوم عمل چه تاسو کړي دي دهغې په بدله کښې دعذاب سزا وڅکئ.

## خلاصه تفسير

[مونږ عالم ارواح کښې ونيلي وو چې] ﴿يٰبَنِيٓ اٰدَمَ اِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ ائې اولاد د آدم [ﷺ] که تاسو ته پيغمبران راشي چې هم ستاسو نه به وي ﴿يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ﴾ چې هغوئ به تاسو ته زما احکام بيانوي پس [ددوئ په راتلو باندې] ﴿فَمَنِ اتَّقٰى وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ کوم کس [چې تاسو کښې ددې آيتونو د تکذيب کولو نه] پرهيز اوکړي او [عملونه] صحيح کړي [مراد دادې چې کامله اتباع اوکړي] نو په دې خلقو باندې به [آخرت کښې] نه څه انديښنې [والا خبرې واقع کيدونکې ده] او نه به غمګين کيږي ﴿وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَآ﴾ او کوم خلق [چې ستاسو نه] زمونږ د آيتونو تکذيب اوکړي او [ددې دقبليدو نه تکبر اوکړي ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ﴾ هغه خلق به دوزخ [کښې اوسيدونکې] وي ﴿هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ او په دې کښې به هميشه وي [هرکله چې دا معلوم شو چې تکذيب کوونکي بهٔ د سخت عذاب مستحق وي نو اوس ددې تفصيل واورئ] ﴿فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ دهغه سړي نه به زيات ظالم څوک وي چې په الله ﷻ باندې دروغ اوتړي [يعنې چې يوه خبره الله ﷻ نه وي کړې هغې ته د الله ﷻ خبره اووائي] ﴿اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ﴾ يا دهغه د آيتونو تکذيب اوکړي يعنې کومه خبره چې الله تعالى کړې وي نو دا وائي چې دا خبره الله ﷻ نه ده کړې] ﴿اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ﴾ ددې خلقو د نصيب چې کوم [رزق او عمر] دې هغه خو به دوئ ته [په دنيا کښې] ملاويږي [ليکن آخرت کښې به په مصيبت کښې وي] ﴿حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ﴾ تر دې پورې چې [برزخ کښې به د مرګ په وخت کښې ددوئ دا حالت وي چې] کله چې دوئ ته زمونږ وراليږلي فرښتې ددوئ د روح قبض کولو دپاره راشي ﴿قَالُوْٓا اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ نو [دوئ ته به] وائي چې [اووائې] چې هغوئ چرته لاړل چې تاسو به دالله تعالى نه سوا دهغوئ عبادت کولو [اوس ستاسو په دې مصيبت کښې ولې تپوس نه کوي] ﴿قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ﴾ هغه [کافران] به اووائي چې مونږ نه ټول غائب شو [يعنې واقعي زمونږ هيڅ پکار رانغلل] ﴿اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ﴾ او [په هغه وخت کښې به] دا اقرار اوکړي چې مونږ کافران يو [خو د هغه وخت اقرار به بې ځايه وي، او ځينو آيتونو مبارکو کښې هم داشان سوال او جواب واقع کيدل په قيامت کښې هم مذکور دي، نو په دواړو موقعو باندې کيدل ممکن دي او قيامت کښې به ددوئ دا حال وي چې] ﴿قَالَ ادْخُلُوْا فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ فِي النَّارِ﴾ الله ﷻ به اوفرمائي چې کومې ډلې [دکفارو] ستاسو نه وړاندې تيرې شوي دي جناتو نه هم او انسانانو نه هم هغوئ سره تاسو هم دوزخ ته لاړ شئ [نو وړاندينې روستني ټول کافران به دې کښې داخل شي او دا کيفيت به واقع شي چې] ﴿كُلَّمَا دَخَلَتْ اُمَّةٌ لَّعَنَتْ اُخْتَهَا﴾ کله يو جماعت [دکافرانو دوزخ] ته داخل شي نو دخپل ځان پشان نور جماعتونه به هم [چې هم ددوئ په شان کافران به وي او ددوئ نه مخکښې به دوزخ کښې داخل شوي وي] لعنت به پرې وائي [يعنې خپلو کښې به يو بل سره همدردي نه کوي بلکه د حقائقو د انکشاف په وجه

به هر سرې بل ته په خراب نظر سره ګوري او غلط به ورته وائي] ﴿حَتّٰىٓ اِذَا ادَّارَكُوْا فِيْهَا جَمِيْعًا﴾ تر دې پورې چې کله دې [دوزخ] کښې ټول راجمع شي ﴿قَالَتْ اُخْرٰىهُمْ لِاُوْلٰىهُمْ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ اَضَلُّوْنَا﴾ نو [په هغه وخت کښې به] روستنی خلق [چې روستو داخل شوی وی او دا به هغه خلق وی چې په کفر کښې به د نورو تابع وو] ړومبی [داخليدونکی] خلقو په نسبت [يعنی دهغه خلقو په نسبت چې دخپلو مشرانو او پيشوايانو د کفرپه وجه دوزخ کښې داخل شوی وو دا] او وائی چې ائې زمونږ پروردګاره ! مونږ دوئ ګمراه کړی وو ﴿فَاٰتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ﴾ دوئ ته زمونږ د دوزخ عذاب [دوچند] ورکړئی] ﴿قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَعْلَمُوْنَ۝﴾ [الله ﷻ به] اوفرمائی چې [دوئ ته دوچنده عذاب ورکولو سره به تاسو ته ولې څه راحت ملاؤشي څه ، بلکه ستاسو عذاب به هم زياتيږی، په دې وجه ستاسو عذاب هم د دوئ په شان دوچند شو پس ددې حساب نه] د ټولو [عذاب] دوچند دې ليکن] اوس هم] تاسو ته [پوره] خبر نشته [ځکه چې اوس خو لا د عذاب شروع ده ، تاسو دې زياتوالی ته نه ګورئی ، داسې خبرې کوئی چې د هغې نه معلوميږی چې د نوروباندې دعذاب دوچنده والې خپل ځان دپاره دآسانتيا سبب ګرځوئی] ﴿وَقَالَتْ اُوْلٰىهُمْ لِاُخْرٰىهُمْ﴾ او وړانديني [د اخليدونکی] خلق به روستو [داخليدونکو] خلقو لره [دالله تعالی ددې جواب نه آګاه کيدلو سره] ﴿فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ﴾ وائي به [چې هر کله د ټولو دسزا دا حالت دې نو] بيا تاسو ته په مونږ باندې [د عذاب د سپکوالی باره کښې] هيڅ فوقيت نشته دې [ځکه چې سپکوالی نه مونږ ته شته دې او نه تاسو ته] ﴿فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ۝﴾ پس تاسو هم د خپل [بد] کردار په مقابله کښې د عذاب [زياته] مزه اوڅکئ

اِنَّ الَّذِيْنَ ‏| كَذَّبُوْا ‏| بِاٰيٰتِنَا ‏| وَاسْتَكْبَرُوْا

بيشکه هغه کسان | چې دروغ ئې ګڼړلی دی | آيتونه زمونږه | اوسرکشی ئې کړی ده |

چا چې زمونږ آيتونه دروغ اوګڼړل | او د هغې د منلونه ئې ځانونه لوئې اوګڼړل [چه ايمان ئې پرې رانړول]

عَنْهَا ‏| لَا تُفَتَّحُ ‏| لَهُمْ ‏| اَبْوَابُ ‏| السَّمَآءِ

په مقابله دهغې کښې | نو بيرته به نۀ کړې شي | هغوئ ته | دروازې | دآسمان

........هغوئ ته به دآسمان دروازې هيڅکله بيرته نشی |

وَلَا يَدْخُلُوْنَ ‏| الْجَنَّةَ ‏| حَتّٰى يَلِجَ ‏| الْجَمَلُ ‏| فِيْ سَمِّ ‏| الْخِيَاطِ ط

اوداخل به نشي هغوئ | جنت ته | تر هغې چې ننوځي | اوښ | په سوری کښی | دستن

اوجنت ته به ترهغې داخل نشی چې ترڅوپورې اوښ د ستنې سوم کښې تير نشی

وَكَذٰلِكَ ‏| نَجْزِي الْمُجْرِمِيْنَ۝ ‏| لَهُمْ ‏| مِّنْ ‏| جَهَنَّمَ ‏| مِهَادٌ

اودارنګې | بدله ورکوؤ مونږ | مجرمانو ته | دې دهغوئ دپاره | دوزخ نه | فرش

اومونږ مجرمانو ته هم داشان بدله ورکوو | دهغوئ لاندې به د اور بچاونړه غوړيدلې وی

وَمِنْ فَوْقِهِمْ ‏| غَوَاشٍ ط ‏| وَكَذٰلِكَ ‏| نَجْزِي ‏| الظّٰلِمِيْنَ۝ ‏| وَالَّذِيْنَ

اودپاسه دهغوئ نه | څادر دوورا | اودارنګې | بدله ورکوؤ مونږه | ظالمانوله | اوهغه کسان

اودپاسه به ئې داورڅادر اغوستې وی | اومونږ داسې ظالمانو ته هم داشان بدله ورکوو | اوچا

أٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا

چې ایمان ئې راوړې دي | اوکارونه ئې کړي دی نیک | نه ورکوو تکلیف مونږه | یونفس ته | مګر

چې ایمان راوړو | اونیک عملونه ئې اوکړل | اومونږچاته د طاقت نه زیات تکلیف نه ورکوو

وُسْعَهَآ أُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝

په قدرد طاقت دهغه | داکسان | خاوندان دجنت دی | هغوئ به | په هغې کښې | همیشه وی

دغه خلق جنتیان دی | او هم په دې کښې به دوئ همیشه وی

وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ

اواوبه باسو مونږه | هغه | چې وی په سینو دهغوئ کښې | دکینې نه | بهیږی به | لاندې دهغوئ نه

اودهغوئ په زړونو کښې چې دیوبل خلاف څه لږ ډیرخیرې وې | هغه به لرې کړو | دهغوئ لاندې به

الْأَنْهٰرُ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدٰىنَا لِهٰذَا

نهرونه | اووائی به هغوئ | ثنا | خاص الله لره ده | هغه | چې وي ښودله مونږ ته | دالار

ولې بهیږی | اوهغوئ به وائی چې تعریفونه هغه الله ﷻ لره دی | چې مونږ ته دا لار اوخودله

وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَآ أَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ لَقَدْ

اونه وو | مونږ پخپله | چې موندلې مووې دا لار | که نه وې | ښودلې مونږ ته | الله | په تحقیق سره

اوکه الله ﷻ راته نه وې خودلې | نو مونږ پخپله نشوه موندلې |

جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ وَنُوْدُوْٓا أَنْ تِلْكُمُ

راغلي وو | رسولان | درب زمونږه | دحق سره | اوآواز به اوکړې شی | چې دغه ستاسو

مونږ ته دالله ﷻ رسولان په حقه راغلی وو | او آواز به ورته اوشی چه دا هغه جنت دې

الْجَنَّةُ أُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

جنت دې | چې تاسووارثان جوړکړې شوې یئ دهغې | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو

چې تاسو ته دخپلو [نیکو] عملونو په وجه درکړې شوې دې |

## آسان ترجمه قرآن

(خلقو !) یقین وکړئ چه کومو خلقو زمونږ آیتونه دروغژن کړي دي ، او تکبر سره ئې د هغې نه مخ اړولې دې هغوی د پاره به د آسمان دروازې کهلاؤ نه شي ، او هغوی به جنت ته تر هغه وخته پورې داخل نه شی تر څو چه اوښ دیوې ستنې په سُم کښې نه وې داخل شوې . او دغه شان مونږ مجرمانو ته د خپلو کړوبدله ورکوؤ دوی د پاره خوښم د دوزخ بستره ده ، او بره نه ددې څادر ، اودغه شان مونږ ظالمانو ته د هغوی دعمل بدله ورکوؤ او کومو خلقو چه ایمان راوړې دی او نیك عمل ئې کړې دي (یاد وساتئ چه) مونږ چاته د هغه د طاقت نه زیات تکلیف نه ورکوؤ پس داسې خلق جنت والا دی دوی به هغې کښې همیشه وی ، او ددوی په سینو کښې چه (د یوبل نه په دنیا کښې) کوم خفګان پاتې شوې وی هغه به مونږ اوباسو . دهغوی لاندې به نهرونه بهیږی ، او هغوی به وائی : ټول شکر الله لره دې چه هغه مونږ دې

منزل ته راورسولو. که چرې الله مونږ لره نه وې راړسولي نومونږ په کله هم منزل ته نه وې رارسيدلي زمونږ د پروردګار پيغمبر مونږ ته بالکل رښتيا خبرو سره راغلي وو. اوهغوی ته به په اوچت آواز سره اوويلې شي چه: اې خلقو! دا دې جنت اتاسو چه کوم عمل کړې دې دهغې په وجه بانديې تاسو ددې وارثان جوړ کړې شوی يئ.

## خلاصه تفسير

[دا حالت خو دکافرانو د اور ته د داخليدو وو ، اوس يې د جنت څخه محرومۍ حال واوړئ چې ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَا﴾ کوم خلق چې زمونږ آيتونه په دروغه ګڼړي او [ددې د منلو] نه تکبر کوی ﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ اَبْوَابُ السَّمَآءِ﴾ دهغوئ [د روح دختلود] دپاره [مرګ نه پس]د آسمان دروازې نه بيرته کيږي [دا خود مرګ نه پس د برزخ حالت شو] ﴿وَلَا يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ حَتّٰى يَلِجَ الْجَمَلُ فِيْ سَمِّ الْخِيَاطِ﴾ او [د قيامت په ورځ] به داخلق جنت ته نه داخليږي تر کومې چې اوښ د ستنې په سم يا سوری کښې تير نه شي [اودا ناممکن نو داشان ددوئ جنت ته داخليدل هم ناممکن دی] ﴿وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِيْنَ﴾ اومونږ مجرمانو ته داشان سزا ورکوؤ [يعني زمونږ دوئ سره څه دښمني نه وه څه ئې چې اوکړل هغه ورته ملاويږي ، اودا پورته چې ذکر شوی دی چې دوئ به دوزخ ته داخليږي هغه اور به ددوئ څلور واړه طرفونو ته وی او يو طرفنه به ورته هيڅ آرام نه ملاويږي ، نو ددوئ به دا حال وی چې] ﴿لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ﴾ ددوئ دپاره به د دوزخ د اور بستره وی او دپاسه ددوئ د اوور څادر وی اودا به دوئ اغوندی ﴿وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ﴾ اومونږ داسې ظالمانو ته داسې سزا ورکوؤ [چې دهغې ذکر په [فمن اظلم ممن] کښې پورته راغلې دې] ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَآ﴾ اوکوم خلق چې [د الله تعالى په آيتونو باندې] ايمان راوړی او نيک کارونه کړی وی [اودا نيک کار څه مشکل نه دې ځکه چې زمونږ عادت دې چې] مونږ هيڅ يو کس ته دهغه د وس نه زيات کار نه ورکوؤ [دا جمله معترضه وه ، غرض] ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ﴾ داسې خلق جنت ته تلونکی دی [او] ﴿هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ دې کښې به دوئ هميشه اوسيږي [اوددوئ حالت به د دوزخيانو په شان نه وی چې هلته به هم په يو بل باندې لعنت وائی ، بلکه ددوئ حالت به دا وی چې] ﴿وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ﴾ څه چې ددوئ په زړونو کښې [د څه معاملې په وجه په دنيا کښې د طبعي تقاضې په وجه] ګرد [او غم] وو مونږ به هغه [هم] لرې کړو [چې دوئ به خپل مينځ محبت سره اوسيږی او] ددوئ د مکانونو لاندې به نهرونه جاری وی ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدٰىنَا لِهٰذَا﴾ او هغه خلق به [د ډيرې خوشحالۍ نه] اووائی چې دالله تعالى [لاکهـ لاکهـ] احسان دې چې هغه ذات مونږ دې مقام ته راورسولو ﴿وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَآ اَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ﴾ او مونږ دې ځائې ته نشو رسيدلي که الله ﷻ مونږ نه وې رسولی [په دې کښې دا هم راغلل چې دې ځائې ته د رسيدو کومه طريقه وه هغه ايمان او اعمال وو او داېې مونږ ته اوخودله او په دې يې د تللو توفيق راکړو] ﴿لَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ﴾ واقعي زمونږ درب پيغمبرانو رښتونې خبرې راوړې وې [نو هغوئ چې په کومو عملونو باندې دجنت وعده کړې وه هغه رښتونې ثابت شوه] ﴿وَنُوْدُوْٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ اودوئ ته به اووائی چې دا جنت تاسو ته درکړې شو ستاسو د [نيکو] عملونو په بدله کښې،

## معارف او مسائل

په څو آيتونو کښې وړاندې د يوې وعدې او لوظ قول بيان دې کوم چه د هر انسان د پيدا کيدو نه وړاند په عالم ارواح کښې تر داسې اغستې شوې وو چه هر کله زمونږ رسول تاسو ته زمونږ هدايات او حکمونه راوړي ووئو هغه د زړه د اخلاصه منئ او د هغې په جوړ عمل کوئ او دا هم ورته ښودلې شوې وو چه څوک د نيا ته راشي او په دې لوظ قول ټينګ وي او د دې تقاضې او غوښتنې پوره کوي هغه به د هر غم، خفګان نه خلاصې بيامومي او د هميشه آرام او سهولت حقدار به وي او څوک به چه د پيغمبرانو او د هغوئ د حکمونو نه سرکشي کوي، هغوئ د پاره د جهنم دائمي عذاب مقرر دې، په دې آيتونو کښې د هغه واقع کيدونکي صورتونو ښکاره کول دي چه د نيا ته په راتلو سره د انسانانو مختلفو ډلو اختيار کړيدي، څنې خو د سره د غه لوظ، قول هير کړو او د هغې خلاف ورزي ئې اوکړه، څنې په هغې ټينګ پاتې شو، او د هغې په جوړنې نيک عملونه ترسره کړه، د دې دواړو ډلو انجام، عذاب او ثواب په دې څلور و آيتونو کښې بيان شويدې-

په رومبی او دوئيم آيت کښې د لوظ ماتوونکو منکرانو او مجرمانو بيان دې او په آخری دوو آيتونو کښې د لوظ پوره کوونکو مؤمنانو متقيانو بيان دې-

په رومبی آيت کښې فرمائي: ،چاچه انبياء ﷺ دروغژن اوبلل او زمونږ د آيتونو او هدايتونو په مقابله کښې په تکبر سره پيش راغلل هغوئ د پاره به د آسمان دروازې نشي پرانستې کيدې-

په تفسير بحر محيط کښې د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه د دې يو تفسير دا نقل شوې دې چه نه به د دغې خلقو عملونو د پاره د آسمان دروازې پرانستې شي نه د هغوئ د عاګانو د پاره، مطلب دا شو چه د عاګانې به ئې نه قبليږي، او عملونه به ئې هغه مقام ته د تلو نه بند کړې شي چرته چه د الله تعالى د نيکانو بندګانو عملونه محفوظ ساتلې شي، د دې مقام نوم د قرآن کريم په سورت مطففين کښې عليين ښودلې شويدې، چنانچه د قرآن کريم په يو بل آيت کښې هم دې مضمون ارخ ته داسې اشاره شويده: ﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ﴾ [يعنى الله ته د انسان پاک کلمات پورته خيژولې شي چه د هغوئ نيک عملونه ئې پورته اوړي.][1] يعنی د انسان نيک عملونه د الله تعالى خاص دربار ته د انسان د پاکو کلماتو رسولو سبب جوړيږي-

او د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه د يو روايت او د نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم د رويتونو مطابق د دې آيت تفسير دا هم کيدې شي چې د منکرانو د کفارو روحونو د پاره به د آسمان دروازې نشي پرانستې کيدې او هغه به ښکته راګوذارولې شي د دې مضمون تائيد د حضرت براء بن عازب د هغه حديث نه کيدې شي کوم چه ابوداؤد، نسائ، ابن ماجه او امام احمد په تفصيل سره نقل کړيدي او دلته په لنډو ورته بيانولې شي:

رسول الله ﷺ د يو انصاري صحابي جنازې ته تشريف يوړو، د هغه په قبر تيارېدو کښې څه وخت وو نو هغوئ يو ځائې کښې کښيناستل او صحابه کرام تر ګيرچاپيره چپ کيناستل، هغوئ سر مبارک راپورته کړو او وې فرمائيل چه هر کله د يو مؤمن بنده د مرګ وخت راشي نو آسمان نه د سپين ځليدونکي مخونو خاوندانې فرشتې راشي، ورسره د جنت کفن او د جنت خوشبوئانې وي، دغه مړکيدونکي ته مخامخ کښيني، بيا د مرګ فرشته حضرت عزرائيل راشي او د هغه روح ته داسې وئيل شروع کړي چه اې نفس مطمئنه! د الله تعالى د مغفرت او خوشحاليدو د پاره راؤځه، دغه وخت

[1] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۲۲۲

به ئې روح داسې په آسانئ سره دجسم نه راوځي څنګه دمشک دخلې په پرانستوسره دهغې نه بنه په آسانه اوبه راوځي، دغه روح دمرګ فرشته په خپل لاس کښې واخلي اودغه فرشتوته ئې حواله کړي، هغوئ چه روانې شي اوهرځائې کښې چې ورته دنوروفرشتوډلې په مخه ورځي نوتپوس ترې کوي چه داپاک روح دچادې؟دغه فرشتې به ئې ورته نوم، اولقب اوښائي کوم به چه دده دعزت اواحترام دپاره په دنیاکښې استعمالولې شي اووائي چه دافلانې، خوئې دفلانی دې، دغه فرشتې چه رومبی آسمان ته وراورسی نودروازې پرانستودپاره اووائی دغه دروازه ورته پرانستې شی اودهغه ځائې نورې فرشتې ورسره روانې شی تردې پورې چه په دې شان اووم آسمان ته اورسیږی، دغه وخت ورته الله تعالی اوفرمائی چه زمادې بنده عملنامه په علیین کښې اولیکئ اوروح ئې واپس کړئ، دغه روح به ئې بیرته قبرته راشی، دغلته ئې حساب اغستونکې فرشتې کښینوی اوسوال ترې کوی چه رب دخوک دې اودین د څه دې؟هغه وائی چه رب م الله تعالی او دین م اسلام دې، بیا ترې سوال کیږی چه دغه بزرګ کوم چه تاسوته درلیږلې شوې وو، څوک دې؟هغه به وائی چه داالله تعالی رسول دې، دغه وخت یوآسمانی آوازراشی چه زمابنده رشتینې دې، دده ته دجنت فرش خورکړئ، دجنت جامې ورواغوندوئ اوجنت اړخ ته دروازه ورته بیرته کړئ په دغه دروازه به ورته دجنت هواګانې اوخوشبویانې راتلل شروع شی او نیک عمل به ئې په یوښائسته شکل کښې دتسلئ اوزړه جوړولودپاره راشی۔

بـل خواهرکله چه دیو کـافراومنکرد مرګ وخت راشـی نودآسمان نـه تـورمخې فرشتې پـه هیبتناکو شکلونوکښې ورتـه راشی، ډیر زیـګ اوشار، شپاړ ټاټ بـه ورسره وی، مخامخ بـهٔ ورتـه کښینی دمرګ فرشته ئې روح په دې شان راوباسی لکـه یوازغنه څانګه چه په لمده نو نه وړئ کښې انغښتې وی اوپه زورترهغه څانګه راښکې شی، ددې روح په راوتوتر دومره بدبوئ خوره شی چه دیومردارځناوردبدبوئ نه هم زیاته وی، فرښتې دغه روح ځان سره واخلی روانې شی.، په دې کښې چې نوری فرښتې ورسره ملاوېشي نو هغوئ ترې تپوس کوی چې دا د کوم خبیث روح دې؟ دغه فرشتې ورتـه ددهٔ هغه خراب نوم اولقب وراوښائ چه پـه دنیاکښې بـه پـه دې یادیدو اووائی به چه دافلانې دفلانی خوئې دې، کله چه دوئ ئې رومبی آسمان ته وراورسوی، ددوازې پرانستو دپاره ورته اووائی نو ده دپاره به د آسمان دروازې نه کولاویږی بلکه داحکم ورتـه اوشی چه ددې بنده عملنامه په سجین کښې کیږدئ چرته چه د نافرمانو بندګانو عملنامې ایښودې شی اودهغه روح به ګوزارکړې شی چه بدن ته بیرته راشی، دحساب فرشتې ئې کیښنوی دغه سوالونه ترې کوی کوم چه دمسلمان بنده نه کولې شی، هغه به ددغه ټولو سوالونو جواب پـه ،هاه هان لاادری، سره ورکښې [هائې افسوس، زهٔ پـه هیڅ نـهٔ پـوهیږم]په دې وجـه بـه ورتـه دجهنم فرش اودجهنم جامه ورکړې شی او ده دپاره جهنم اړخ ته دروازه پرانستې شی، دهغې په ذریعه به ورته دجهنم تاؤاوګرمی وررسی اوقبربه ډیرتنګ کړیشی.(۱) [انعوذبالله منه]۔

خلاصه داشوه چه هرکله دکفارواومنکرورحونه آسمان ته یوړل شی، نودآسمان دروازه وردپاره نهٔ بیرته کیږی اوهلته به راګوذارکړیشی څنګه چه حدیث نه معلوم شو. آیت ﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَآءِ﴾ مطلب داهم کیدې شی چه ددوئ دمرګ په وخت ورته دآسمان دروازې نشی پرانستې کیدې۔

(۱) مسند أحمد، حديث البراء بن عازب رضي الله عنه رقم الحديث: ۱۷۸۰۳، وسنن ابي داود، كتاب السنة، باب في المسألة في القبر: ج ۲، ۲۵۳

په آخر د آیت کښې د دوی په باره کښې فرمائي: ﴿وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتّٰى يَلِجَ الْجَمَلُ فِيْ سَمِّ الْخِيَاطِ﴾ دلته دیَلِجَ، لفظ د وُلوج نه جوړ دې، معنی ئې په تنګ ځائې کښې ننوتل وی، د، جَمَل، معنی اُوښ او، سم، دستنې سم ته وئیلې شی، معنی ئې داشوه چه داخلق به ترهغې پورې جنت ته نشی ورتلې، ترڅو پورې چه اُوښ، دستنې په سورو کښې ورداخل نشی.

مطلب دادې چه څنګه دستنې په سم کښې د اُوښ [یاد بلبله رسئ [مترجم] ورننوتل په عادت کښې نشی کیدې، دغه شان د دوی جنت ته تلل هم نشی کیدې دې سره د دغې خلقو د جهنم دائمی عذاب بیانول مقصود دی۔

وریسې د دې خلقو د جهنم د عذاب زیات سختوالې داشان بیانیږی: ﴿لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ﴾ د، مهاد، معنی فرش ده، اوغواشِ، د غاشیة جمع ده، معنی ئې پټوونکې اوسرپوښ کوونکې څیزدې، مطلب ئې دا اوڅې چه د دے خلقو، بچونړه او اغوستل هرڅه به د جهنم وی، په رومبی آیت کښې چه جنت نه د بې نصیبئ بیان وو د هغې په ختمیدونې، ﴿وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِيْنَ﴾ اوفرمائیل اود دویم آیت په ختمیدونې، ﴿وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ﴾ اوفرمائیل په کوم کښې چه د جهنم د عذاب بیان دې ځکه چه دا د دې نه زیات سخت دی۔

په درئیم آیت کښې د الله تعالی د حُکمُونو د پابندئ اوتابعدارئ کولو بیان داسې دې چه داخلق جنتیان دی اوهم په جنت کښې به تل ا وهمیشه د پاره پاتې کیږی۔

**دشریعت په حُکمُونو کښې د آسانئ لحاظ ساتل:** لیکن دې د پاره چرته چه داشرط ذکرکړې شویدې چه ایمان دراوړی اونیک عملُونه د کوی دې سره ئې د رحمت اوکرم له مخې داهم اوفرمائیل: ﴿لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾ [معنی ئې داده چه الله تعالی چابنده ته دومره درونډ کارنهٔ وریغاړه کوی چه د هغه د وَس نه بهروی] مقصود دادې چه کوم نیک عملُونه کول چه د جنت داخلیدو د پاره شرط ګرځولې شویدی هغه داسې ګران کارنهٔ دې چه انسان به ئې نشی کولې، بلکه الله تعالی د شریعت حکمونه په هره ځائګه کښې نرم اوآسان ګرځولې دی، د رنځورتیا، کمزورئ، سفر او د نورو ضروریاتو په هرحُکم کښې لحاظ ساتلې شویدې اوآسانئ ورکړې شویدی۔

په تفسیر بحرِ مُحیط کښې دی چه هرکله انسان ته د نیکو عملُونو کولو حُکم ورکړې شو، نو احتمال کیدې شو چه دهٔ ته داحکم ځکه درونډ معلوم شی چه ټول نیک عملُونه هرچرته په هرځائې کښې په ځائې راوړل خود انسان په وَس کښې نهٔ دی، لهذا دغه شُبه ئې په دې الفاظو سره لرې کړه چه مونږه د انسانی ژوند د هراړخ، هروخت اوهرحالت جائزه اخلو او د هرحال، هروخت اوهرمقام مناسب احکام ورته ورکوو، په کوموچه عمل کول سخت کارنهٔ دې۔(۱)

**داهل جنت د زړونونه به یوبل ته دُنیوی خیری اوښکلې شی:** په څلورم آیت کښې د جنتیانو دوه خاص حالات بیان کړې شویوداچه: ﴿وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ﴾ [یعنی د جنتیانو په زړونو کښې چه یوبل ته د دُنیاکومې خیری وی هغه به مونږ د دوی د زړونونه اوباسو] داخلق به بیخی خوشحاله یوبل سره د زړونړ پشان په جنت کښې داخلیږی اوهلته به پاتې کیږی۔

په صحیح بخاری کښې راغلې دی چه هرکله به مؤمنان د پُل صراط نه په پورې وتو د جهنم نه خلاصې بیامومی نو د وئ به د جنت اودوزخ په منځ کښې په یوپُل باندِ ایسار کړې شی که په خپلو

---

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الاٰیة: ج ۵، ص ۴۴۶

كښي ډَدوی ترمنځه څه زره بداوی یاپه یوبل څه حقونه وی نو دغلته په رسیدو به یوبل نه بدل واخلي او معاملات به صفاكړی، په دي شان به دحسد، بغض، كینه وغیره نه پاک جنت ته لاړشي[1]

په تفسیر مظهری كښي دی چه داپُل به په ظاهره ډپُل صراط آخری حصه وی چه جنت سره به لګیدلي وی، اوعلامه سیوطي وغیره هم داخبره غوره كړیده-[2]

[۱] په دغي مقام ډیوبل دحق اداكول اوبدلي وركول ظاهره خبره ده چې په روپۍ پیسه سره به نه كیږی كه دا څیزونه به هلته دهیچا سره هم نه وی بلكه ددي مطلب دادې چه دحق لاندَ كوونكي نیک عملونه به حقدارته وركولي شي كه دهغه نیک عملونه نهٔ وی یاختم شي نو دَ حقدار ګناهونه به پر اچولي شي[3] څنګه چه په بخاری اومسلم كښي راغلی دی-

[۲] په یوحدیث شریف كښي رسول الله ﷺ هغه څوک دتولونه زیات نیستمن بللي دې چاچه په دُنیاكښي نیک عملونه كړی وی لیكن دَخلقودحقوقوپروائي نهٔ وی كړی نوپه نتیجه كښي به ئي دَدغي تولونیكوعملونونه تش تور، خالص نیستمن پاتي شي-[4]

دَحدیث په دي روایت كښي دَ حقوقوداداكولواودَبدلي اغستودا، عامه ضابطه بیان كړي شویده خوداضروری نهٔ ده چه هرچاته به دغسي صورت راپیښیږی بلكه دابن كثیر او تفسیر مظهری دَروایت مطابق هلته به داصورت هم كیدي شي چه بي دَڅه بدل اغستونه به هم كینې او بغضونه دَزړونونه اوویستلي شي، دَڅني روایتونو مطابق، كله به چه داخلق دپُل صراط نه وریوري ووځي نوداوبویوچینې ته په رسیدوچه دَهغي اوبهٔ اوڅكی دزړونونه به ئي یوبل سره كینې اوخیری اووینځلي شي،[5] چنانچه امام قرطبی دآیت ﴿وَسَقٰهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُوْرًا﴾ تفسیر همدغه نقل كړیدي چه دَجنت په دغه اوبوسره به ئي زړهٔ بداوی وغیره اووینځلي شي،[6] حضرت علي یوځل دي آیت لوستلوسره اوفرمائیل :اُمیدلرم چه زهٔ، عثمان، طلحه، زبیر ﷺ به دَهغه خلقونه یوچه جنت ته دَتلونه وړاند به موسیني دَخیری، خفګان نه صفاكړي شی[ابن كثیر]-[7]

داهغه حضرات دی چه په دُنیاكښي ئي خپل منځ كښي د اختلافو نه راغلی وو اونوبت ئي جنګ ته رسیدلي وو-

③ دویم حال دَجنتیانوپه جنت كښي داسې بیان كړي شوچه جنت ته په رسیدوبه داخلق په دي دَالله تعالى شُكراداكوی چه جنت اړخ ته ئي مونږته هدایت اوكړو اودَدي لارئې راته آسانه كړه اودابه وائي كه دَالله تعالى فضل نهٔ وې نو دغلته دَرسیدوزمونږ ه څه وَس نهٔ رسیدو-دي نه معلومه شوه چه هیڅ یوانسان خالص په خپل كوشش سره جنت ته نشی تلي، ترڅوچه دَالله تعالى فضل نهٔ وی، ولي چه كوشش كول هم دَبنده په خپل وَس كښي نهٔ وی هغه هم خالص دَالله تعالى په فضل وكرم سره حاصلیدي شي

---

[1] صحیح البخاری، كتاب الرقاق، باب القصاص یوم القیامة: ج ۲، ص ۹۶۷
[2] التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۵۲
[3] صحیح مسلم، كتاب البر والصلة، باب تحریم الظلم: ج ۲، ص ۳۲۰
[4] جامع الترمذی، أبواب صفة القیامة الخ، باب ما جاء فی شان الحساب والقصاص: ج ۲، ص ۶۷
[5] تفسیر ابن كثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۱۵، والتفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۵۲
[6] تفسیر القرطبی، سورة الدهر: ج ۱۹، ص ۱۴۷
[7] تفسیر ابن كثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۱۶

**دهدایت مختلفې درجې دي آخري درجه ئې جنت ته داخلېدل دي::** امام راغب اصفهاني دهدایت دلفظ په تشریح کښې ډیره مفیده اوضروري خبره داکړېده چه دهدایت لفظ ډیرعام دې چه مختلفې درجې لري.(۱) اوحقیقت دادې چه هدایت دې ته وائي چه الله تعالی ته دتلولارچاته حاصله شي، په دې وجه ځنګه چه دالله تعالی دنزدیکت درجې مختلفې اوبې حسابه دي دغسې دهدایت درجې هم بې حده اومختلفې دي، چنانچه دهدایت ادنی درجه دکُفراوشرک نه خلاصیدل اوایمان حاصلیدل دي چه دهغې په وجه دانسان مخه دغلطې لارې نه په آوړېدو سره الله تعالی ارخ ته شي، بیادبنده اوالله تعالی په منځ کښې چه څومره فاصله ده دهغې دغوڅولودهرې درجې نوم هدایت دې، په دې بنادهدایت دلټولونه هیڅ یوانسان په هیڅ وخت کښې بې حاجته کیدې نشي اګرچه پیغمبران ﷺ هم وي، ځکه خورسول الله ﷺ چه ترآخرِعُمرپورې د ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ﴾ تعلیم، خپل اُمت ته ورکول جاري اولرل، پخپله ئې هم دادعاجاري اولرله ،ولې چه دالله تعالی دنزدیکت ددرجوڅه شمیراوحدنشته، چنانچه جنت ته داخلیدل هم په دې آیت کښې هدایت اوبللې شوولې چه دادهدایت آخري مقام دې۔

وَنَادٰى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ اَصْحٰبَ النَّارِ اَنْ قَدْ وَجَدْنَا

اواوازبه اوکړي | خاوندان دجنت | خلقو د وورته | چې په تحقیق سره | بیا اوموندو مونږ

اوبیا به جنتیان دوزخیانوته اوازاوکړي | چې مونږ خو دخپل

مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا

هغه څیز|چې وعده کړې وه زمونږ سره |رب زمونږه | صحیح حقه|نو آیا |اوموندو تاسو[هم] | هغه

رب تولې وعدې پوره پوره بیا اوموندې | نوتاسو هم دخپل رب د[عذاب] وعدې

وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا قَالُوْا نَعَمْ فَاَذَّنَ

چې وعده کړې وه | رب ستاسو| حقه |اوبه وائي هغوئ| هو |نوآواز به اوکړي|

پوره پوره بیاموندې که نه ؟ | هغوئ به اووائي چې او | نو د دوئ ترمینځه به یو

مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ اَنْ لَّعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ

یواواز کونکې|په منځ ددوئ کښې |چې لعنت | دالله دوی| په ظالمانوباندې| هغه ظالمان

اواز کونکې اوازاوکړي | چې په ظالمانوباندې دې دالله ﷻ لعنت وي | هغه ظالمان

يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَهُمْ

چې منع کول ئې خلق| دلارې د الله نه |اولټوونې په دغه لارکښې | کوږوالې | اوهغوئ

چې خلق به ئې دالله ﷻ دلارې نه منع کول| اوپه هغې کښې به کوږوالې لټولو| اوهغوئ

بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ ۘ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْاَعْرَافِ

په آخرت باندې | کافران وو| اوپه منځ ددواړودلو کښې به| پرده وي | اوپه اعراف باندې به

دآخرت نه هم منکر وو| اوددې دواړو ډلو ترمینځه به پرده وي | اودهغې په اوچت سر[اعراف] به

---

(۱) مزید تفصیل دپاره وګورئ: مفردات القرآن للراغب: ج۱، ص ۵۳۹، ۵۴۰

رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ كُلًّا بِسِيْمٰهُمْ ۚ وَنَادَوْا اَصْحٰبَ

څه خلق وی | چی پیژنی به | هریو | په نښو دهغوئ سره | او آواز به اوکړی هغوئ | ملګرو

ښني خلق وی | چې هریو [جنتي او دوزخي] به خپلو خپلو نښو سره پیژني | او جنتیانو ته به

الْجَنَّةِ اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۟ لَمْ يَدْخُلُوْهَا وَهُمْ

دجنت ته | چی سلامتیا دې وی | په تاسو باندې | داخلق نه به وی داخل شوی جنت ته | او هغوئ به

آوازاوکړی | چې په تاسودې سلامتیا وی | پخپله به جنت ته داخل شوی نه وی | خو

يَطْمَعُوْنَ ۝ وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ ۙ

طمع لری دجنت | اوهرکله چی | اوګرځی | سترګې دهغوئ | په طرف | دملګرو دوور

امیدوار به ناست وی | اوڅه وخت چه دهغوئ سترګې دوزخیانو ته اوګرځی

قَالُوْا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝ ع

اوبه وائی | اے ربه زمونږه | مهٔ یوځائې کوه مونږه | سره | دقوم | ظالم

نووائی به چې ائې زمونږ ربه ! مونږ د ظالمانو ډلې دملګرتیا نه اوساتې |

وَنَادٰۤى اَصْحٰبُ الْاَعْرَافِ رِجَالًا يَّعْرِفُوْنَهُمْ

او آواز به اوکړی | داعراف خلق | هغه خلقو ته | چی اوبه ئې پیژنی هغوئ

اوداعراف خلق به ښیني [مشرانو اوسردارانو] خلقو ته آوازاوکړی | چې په هغوئ به په

بِسِيْمٰهُمْ قَالُوْا مَاۤ اَغْنٰى عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ

په نښودهغوئ سره | اوبه وائی | اونهٔ کړو دفع عذاب | ستاسونه | ډلې ستاسو

نښواوپیژني | ورته بهٔ اووائی چې ستاسو هغه ډلې او ستاسو

وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ ۝ اَهٰۤؤُلَآءِ الَّذِيْنَ

اونهٔ هغې سازو سامان | چی وئ تاسو | چی لوئ به ګڼړلو تاسو | آیا داکسان | هغه دی

خان ته لوئې ګڼل خو هیڅ پکار رانغلل | آیا دا هغه جنتیان دی | چه تاسو بهٔ د دوی په باره کښې

اَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللّٰهُ بِرَحْمَةٍ ؕ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ

چی قسمونه به خوړل تاسو | چی نهٔ به رسوی دوئ ته | الله | رحمت | چی داخل شئ | جنت ته

قسمونه کول | چې الله ﷻ به هیڅکله هیڅ کله په اونه رحمیږی | [نن هغوئ ته اووئیلې شو] چې

لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَاۤ اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ۝

نهٔ به وی یره | په تاسو باندې | اونهٔ به تاسو | غمژن کیږئ |

جنت ته داخل شئ | په تاسو باندې نه څه ویره شته | او نه به تاسو غمژن شئ |

## آسان ترجمه قرآن

او د جنت خلق به دوزخ والو ته په اوچت آواز سره وائی چه: زمونږ پروردگار چه مونږ سره کومه وعده کړې وه مونږ هغه بالکل رښتیا او موندله اوس تاسو اووایئ چه ستاسو پروردگار چه کومه وعده کړې وه. آیا تاسو هم هغه رښتیا بیا موندله؟ هغوی به په جواب کښې اووائی آو، په دې کښې به یو آواز کوونکې دهغوی په مینځ کښې آواز اوکړی چه: د الله لعنت دې په هغه ظالمانو باندې چه دالله د لارې نه ئې خلق بندول، او هغې کښې ئې کوږوالې راڅرگندول. او چه د آخرت نه ئې بالکل انکار کولو او ددې دواړو ډلو (دوزخیانو او جنتیانو) په مینځ کښې به یوه پرده وي. او اعراف باندې (یعنی دې پردې د پاسه) به څه خلق وی چه د هرې ډلې خلق به د هغوی په نښو باندې پیژني او هغوی به جنتیانو ته آواز ورکړی او ورته به ووائی چه: سلام دې وی په تاسو هغوی (اعراف والا) خو به خپله دې کښې نه وی داخل شوي، خو شوق سره به امید کوی. او کله چه د هغوی نظرونه دوزخ والو طرف ته واړولې شي نو هغوی به وائی چه: "اې څمونږ پروردگاره! مونږ دې ظالمانو سره مه پاتې کوه او اعراف والا به دې خلقو ته آواز ورکړی چه هغوی به دوی دهغوی په نښو باندې پیژني، دوي به وائی چه، نه ستاسو هغه جمع کړې شوې مال ستاسو بکار راغې، او نه هغه چه تاسو هغې لره غټ گڼړل (بیا به جنتیانو طرف ته اشاره وکړی او وبه وائی چه (آیا دا دې هغه خلق چه ددوي په باره کښې تاسو قسمونه خوړلي وو چه الله به دوی ته دخپل رحمت څه حصه ورنکړي؟ (هغوی ته خو ووئیلې شو چه:) جنت ته داخل شئ نه به تاسو ته د څه څیز ویره وي او نه به تاسو ته څه غم پیښ شي.

### خلاصه تفسیر

﴿وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابَ النَّارِ﴾ او [کله چې جنتیان جنت ته اورسی په هغه وخت به [جنتیان دوزخیانو ته [پخپل حالت باندې د خوشحالئ ظاهرولو دهغوئ دحسرت زیاتولو دپاره] اووائی ﴿أَن قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا﴾ چې مونږ سره زمونږ رب چې کومه وعده کړې وه[چې دنیکو عملونو په وجه به درته جنت درکوم] مونږ دهغې مطابق اوموندو ﴿فَهَلْ وَجَدتُّم مَّا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا﴾ اوس تاسو اووایئ چې] تاسو سره ستاسو رب څه وعده کړې وه] [چې د کفر په وجه به دوزخ کښې یئ] تاسو هم ددې وعدې مطابق اوموندو کنه [یعنی اوس خو د الله تعالی او د رسول ﷺ صدق او خپله گمراهی معلومه شوه] ﴿قَالُوا نَعَمْ﴾ هغوئ [دوزخیان به جواب کښې] اووائی چې آؤ [واقعی د الله ﷻ او رسول کریم ﷺ ټولې خبرې صحیح شوې] ﴿فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ أَن لَّعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾ بیا [ددې دوزخیانو حسرت او د جنتیانو خوشحالی زیاتولو] دپاره یو آواز کوونکئ [یعنی څوک فرښته] د دواړو فریقو] په مینځ کښې [اودریږی] او آواز به اوکړی چې د الله تعالی غضب دې وی په ظالمانو باندې ﴿الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا﴾ چې د الله تعالی د لارې [یعنی حق دین] نه ئې مخ اړولو او په [دې حق] کښې [همیشه پخپل گمان کښې ئې] غلطې [خبرې] تلاش کولې [چې پدې کښې څه عیب او اعتراض پیدا کړی] ﴿وَهُم بِالْآخِرَةِ كَافِرُونَ﴾ او هغه خلق [دې سره آخرت څخه هم منکر وو [اودهغې نتیجه نن زغمی، دا بیان خو د جنتیانو وو او د هغوئ په تائید کښې ددې سرکاری آواز کوونکی ذکراوشو، وړاندې د

اعراف والو ذکر دې] ﴿وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ﴾ ا وددې دواړو [دلو یعنی جنتیانو او دوزخیانو] په مینځ کښې یوه پرده [یعنی دیوال] وی [چې د هغې ذکر په سورة حدید کښې راغلې دې ، فضرب بينهم الخ ددې خاصه به دا وی چې د جنت اثر به دوزخ ته او د دوزخ اثر به جنت ته نه پریږدی ، پاتې شوه دا خبره چې خبرې اترې به بیا څنګه وی ، نو ممکن دی چې په دې دیوال کښې کومه دروازه وی لکه څنګه چې په سورة حدید کښې دی چې :بسورله باب ، په دې باب کښې دا خبرې اترې اوشی یا هم دغسې آواز اورسوی] ﴿وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ يَعْرِفُونَ كُلًّا بِسِيمَاهُمْ﴾ او [ددې دیوال یا ددې د پورته حصې نوم اعراف وی ، او ددې نه جنتیان اودوزخیان ټول ښکاری] اعراف نه پورته به سړی وی [چې دهغوئ نیکئ او بدئی په میزان کښې برابرې شوې] هغه خلق [جنتیانو او دوزخیانو نه] هر یو [علاوه د جنت او دوزخ ددننه علامت نه] ددې قیافه نه هم پیژنی [قیافه دا چې د جنتیانو په مخونو باندې به نورانیت او د دوزخیانو په مخونو باندې به ظلمت وی ،لکه څنګه چې آیت مبارک کښې دی چې: وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُسْفِرَةٌ ضَاحِكَةٌ مُسْتَبْشِرَةٌ : ﴿وَنَادَوْا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ﴾ او دا اهل اعراف بهٔ جنتیانو آواز کولو سره ته اووائی چې السلام علیکم ، ﴿لَمْ يَدْخُلُوهَا وَهُمْ يَطْمَعُونَ﴾تر دې وخت پورې به دا اعراف والا جنت ته نه وی داخل شوی او ددې امیدوار به وی [احادیثو کښې راغلی دی چې ددوئ امید بهٔ پوره کولې شی اودوئ ته به د جنت ته د داخلیدو حکم کیږی] ﴿وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ تِلْقَاءَ أَصْحَابِ النَّارِ﴾ اوکله چې ددوئ نظرونه په دوزخیانو باندې اولګی [نو په هغه وخت کښې به] ﴿قَالُوا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾ اووائی چې ائې زمونږه ربه مونږ دې ظالمانو خلقو سره [په عذاب] کښې مه شاملوه او لکه څنګه چې د اعراف والو جنتیانو ته سلام کلام اوکړو داشان] ﴿وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْأَعْرَافِ رِجَالًا يَعْرِفُونَهُمْ بِسِيمَاهُمْ﴾اعراف والا [دوزخیانو کښې به] ډیر خلق [چې کافر بهٔ وی او] چې هغوئ لره د هغوئ د قیافه [د ظلمت اونفرت مخونو نه] پیژنی [چې دا کافران دی] ﴿قَالُوا مَا أَغْنَىٰ عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ﴾ چغې بهٔ وهی [او] وائی چې ستاسو جماعت او ستاسو کبر کول [او د انبیاء ﷺ اتباع نه کول] ستاسو هیڅ پکار رانغلل [او تاسو هم ددې تکبر په وجه مسلمانان مو سپک اوکنړل اودا به مو وئیل چې دا بې چاره ګان د فضل وکرم مستحق دی لکه څنګه چې : أَهَٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِنَا کښې دا مضمون راغلې دې نو اوس دې مسلمانانو ته اوګورئ] ﴿أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللَّهُ بِرَحْمَةٍ﴾ آیا دا [چې په جنت کښې عیش کوی] هم هغه [مسلمانان دی] چې ددوئ په نسبت کښې به تاسو قسمونه خوړل چې الله تعالی بهٔ دوئ باندې رحم نه کوی [نو په دوئ خودومره غټ نعمت اوشو چې] ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُونَ﴾ دوئ ته حکم اوشو جنت ته داخل شئ [هلته به] نه تاسو ته څه اندیښنه وی او نه به تاسو غمژن کیږی [او دې کلام کښې د رجالا تخصیص غالبا په دې وجه معلومیږی چې تر اوسه به هم نافرمان مؤمنان په دوزخ کښې پراته وی ، ددې قرین داده چې هر کله اعراف والا د جنت په امید کښې دی خو جنت ته بهٔ لا نه وی داخل شوی نو ګناهګاره خلق چې دهغوئ ګناهونه د اعراف والاؤ د ګناهونو نه زیات دی ، ظاهری طور سره بدرجه اولی لا به د دوزخ نه وی وتلی خو داسې خلق به ددې کلام مخاطب نه وی] والله اعلم.

## معارف او مسائل

هر کله چه جنتیان په جنت کښې او دوزخیان په دوزخ کښې خپلې خپلې تیکاؤنړې ته اورسیږي او ښکاره خبره ده چه ددې دوارو مقاماتو په منځ کښې به په هر حیثیت څهٔ ډیر زیات لرې والی وی لیکن سره ددې، دقرآن کریم ډیر آیتونه په دې ګواه دی چه ددې دوارو مقاماتو په منځ کښې به څه داسې لارې وی چه دهغې په ذریعه به یو بل لیدلې شی او په خپل منځ کښې به خبرې اترې او سوال جواب کوی-په ، ،سورت صافات، ، کښې ددوؤ کسانو بیان په تفصیل سره راغلې دې چه په دُنیا کښې دیو بل ملګری وو لیکن یو مؤمن او بل کافر وو، هر کله چه په آخرت به مؤمن جنت ته او کافر دوزخ ته ورشی نو دوئ به خپل منځ کښې یو بل اووینی او خبرې به کوی لکه قرآن کریم فرمائی: ﴿فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِیْ سَوَآءِ الْجَحِیْمِ۝ قَالَ تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِیْنِ۝ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّیْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِیْنَ۝ اَفَمَا نَحْنُ بِمَیِّتِیْنَ۝ اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰی وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِیْنَ۝﴾

خُلاصه دمضمون ئې داده چه جنتی ملګرې به په سرور او چتولو سره دوزخی ملګرې او ګوری نو دجهنم په منځ کښې به ئې پروت اووینی ورته به اووائی چه کم بخته ،تا خو داسې غوښتل چه زهٔ هم په جهنم کښې پروت وم، او تا به چه ماته داوئیل چه ددې دُنیا دمرګ نه پس بیا ژوندی کیدل، څه حساب، کتاب یا ثواب او عذاب کیدونکې نشته اوس دې اولیدل چه داڅه کیږی لګیا دې]-

په دې آیتونو کښې او ددې نه روستو هم، تقریباً تریو رکوع پورې دا قسم مکالمې او سوال، جواب بیانیږی کوم به چه دجنتیانو او دوزخیانو تر منځه جاری وی-

دجنت او دوزخ تر منځه دیو بل دلیدو او دخبرو کولو لارې هم په حقیقت کښې دجهنمیانو دپاره یو قسم عذاب وی چه دهر اړخ نه به په دوئ ملامتیا په مخه کولې شی، دجنتیانو نعمتونه او آرام چه وینی نو دجهنم په اور کښې دسوزیدو سره سره دارمان او افسوس په اور کښې به سوزې او دجنت د خلقو دپاره بهٔ په نعمت او راحت کښې یو نوې قسم اضافه وی چه دبل فریق په مُصیبت لیدو سره به دخپل نعمت او راحت قدر زیات تیز وی، او کومو خلقو یه چه په دُنیا کښې دیندارو خلقو پورې خندا ګانې او توقې کولې چه دغې دیندارو به تر څه بدله نهٔ اغسته، نن چه به دغه خلق په خوارئ، بیعزتئ او عذاب کښې ښکیل وینې نو دغه وخت به دوئ پورې خندا کوی، ولې چه هغوئ ته دخپل عمل سزاور کړې شوه چنانچه په سُورت مطففین کښې الله تعالی فرمائی:

﴿فَالْیَوْمَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ یَضْحَكُوْنَ۝ عَلَی الْاَرَآئِكِ یَنْظُرُوْنَ۝ هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوْا یَفْعَلُوْنَ۝﴾ جهنمیانو لره به فرشتې هم دهغوئ په ګمراهئ خبردارې ورکوی او ددوئ دبیوقوفئ په خبرو به ئې ملامته کوی، او هغوئ به دوئ لره مخاطب کولو سره اووائی ﴿هٰذِهِ النَّارُ الَّتِیْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ۝ اَفَسِحْرٌ هٰذَا اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ۝﴾[داهغه اور دې چه تاسو به په دروغه بللو اوس ئې اوګورئ چه آیا دا جادو دې او که تاسو ته نهٔ ښکارې]-

داشان ددې آیتونو څنې په رُومبی آیت کښې فرمائی چه :جنتیان بهٔ دجهنمیانو نه تپوس کوی چه زمونږه پروردګار چه مونږ سره دکومو نعمتونو او راحتونو وعده کړې وه هغه خو مونږ بیخې رښتینې او پوره بیامونده، تاسو اوښایئ چه تاسو دکوم عذاب نه ویرولې شوی وئ هغه هم ستاسو مخې ته راغلو او که نهٔ؟ هغوئ به اقرار اوکړی چه بیشکه، مونږه هم هغې لره په خپلو سترګو اولیدلو-

دَدوئ دَدې سوال ،جواب په تائيد کښې به دَالله تعالى دَاړخه ،څوک فرشته دا آواز کوي چه دَالله تعالى لعنت او آفتونه دې په دې ظالمانو باندې چه خلق به ئې دَالله تعالى دَلارې نه ايسارول او دا به ئې غوښتل چه دَدوئ لاره دِهم نيغه پاتې نه شي او دوئ به دَآخرت نه انکار کولو۔

**اعرافيان څوک دي**:: دَجنتيانو او دوزخيانو ترمنځه دَخبرو اترو په ضمن کښې يو بله خبره دريم آيت کښې دا اوښودلې شوه چه څه خلق به داسې هم وي چه دَجهنم نه په خلاصي مونده به بيا هم جنت ته نهٔ وي تلي، البته جنت ته دَتلو طمع به لري دا خلق اعرافيان دي۔

اعراف څه ته وائي؟ ددې تشريح دسورت حديد دآيتونونه داسې معلوميږي چه په محشر کښې به خلق درې ډلې وي، يو ډاګيز کافران او مشرکان دي چه دوئ ته به پل صراط باندې دَتلو هډو څه صورت نهٔ راځي بلکه دَجهنم دَدروازونه بهٔ اول دَسره په جهنم کښې ورديکهٔ کولې شي، بل به هغه مؤمنان وي چه ورسره به دَايمان نور او رڼا وي۔ دريم قسم به منافقان خلق وي چه څنګه په دنيا کښې مسلمانانو سره پاتې کيدل دغه شان به هلته هم په شروع کښې ورسره وي چه په پل صراط روان شي نوسخته تياره به پر راخوره شي، مؤمنان به دَخپل ايمان دَنور په مدد سره په مخه روان وي، منافقان به ورپسې آواز او کړي چه لږشان ايسار شئ چه مونږه هم ستاسو دَرڼا نه فائده پورته کړو، دغه وخت به دَالله تعالى دَاړخه څوک ويونکې وائي چه بيرته مخ په روستو لاړ شئ، هلته رڼا اولټوئ، مطلب به دا وي چه دغه رڼا به دَايمان او نيک عمل وي چه ددې دَحاصلولو مقام روستو [په دنيا کښې] پاتې شو دهغه ځائې نه چه چا دَايمان او عمل په ذريعه دغه رڼا نهٔ وي راوړې هغوئ ته به نن دَرڼا فائده په ګتونهٔ ورځي، په دې حالت کښې به دَمنافقانو او مؤمنانو ترمنځه يو ديوال بنديز جوړ شي چه دهغې دَدروازې نه بهر به سراسر عذاب ښکاری او دَدروازې دننه به مؤمنان وي چرته به چې دَالله تعالى رحمتونه او جنت مخامخ ليدلې شي، لکه الله تعالى فرمائي: ﴿يَوْمَ يَقُولُ الْمُنٰفِقُونَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِينَ اٰمَنُوا انْظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّورِكُمْ ۚ قِيلَ ارْجِعُوا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا ۖ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُورٍ لَّهٗ بَابٌ ۖ بَاطِنُهٗ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ﴾

په دې آيت کښې دَجنتيانو او دوزخيانو ترمينځه ولاړ نه چې کوم ديوال او بنديز حائل کولې شي هغې ته ،، سور ،، وئيلې شويدې، چه دا دښارنه ګيرچاپيره تاؤ کړی ديوال ته وئيلې شي چه ددشمن نه دحفاظت په غرض، پلن ،مضبوط او ښه محکم جوړولې شي، په هغې کښې محافظو فوځيانو دَپاره مورچې هم جوړې شوی وی چه دَهغې په ذريعه دَچپاؤ کوونکونه خبريدې شي چنانچه دَسورت اعراف په دغه آيت کښې فرمائي: ﴿وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ يَعْرِفُونَ كُلًّا بِسِيمٰهُمْ ۚ﴾

ابن جرير او دَتفسير نورا امامان فرمائي چه دلته په آيت کښې دَ ،،حجاب،، نه مراد هم هغه دَبنديز ديوال دې چه دَسورت حديد په يو آيت کښې ورته سور وئيلې شويدی، دَدغې ديوال دَبرني برخې نوم اعراف دې، ځکه چه اعراف دَعُرف جمع ده، چه دا دَهر څيز پورته برخې ته وئيلې شي ولې چه دا دَلرې نه معلومه او ځانګړې وی،(۱) دَدې تشريح نه دا ښکاره شوه چه دَجنت او دوزخ ترمنځه دِپردې او بيلتون ديوال ته اعراف وئيلې شي د سورة اعراف په آيت کښې دا اوښودلې شو چه دَمحشر په دغه مقام کښې به داسې قسم خلق وي چه دَجنت او دوزخ دواړو حالات به وينې ګوری او جنتيانو دوزخيانو دواړو سره به خبرې اترې او سوال جواب کوي۔

(۱) تفسير البغوي تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۳۱ وتفسير الطبري تحت هٰذه الآية: ج ۱۲، ص ۴۴۹

اوس خبره داده چې دابه څوک خلق وی اودلته به ولې راایسارکړې شوی وی؟په دې کښې دَمفسرینونه مختلف قسم اقوال اودَحدیث ګڼرروایتونه راغلی دی خودجمهورومفسرینوپه نزد صحیح اوغوره خبره داده چه دابه هغه خلق وی چه دَدونی دَنیکواوبدودواړوچاړی سره برابراوسرپه سر او خیژی ، دَ نیکو په وجه خویه دَجهنم نه خلاصې بیامومی اودګناهونوپه وجه به جنت ته نشی تلې البته په آخر کښې به دَالله تعالی په رحمت داخلق هُم په جنت کښې داخل شی۔

چنانچه دَحضرت حذیفه ،ابن مسعود ،ابن عباس اودَنوروصحابه کراموتابعینوهم داقول دې اوپه دې کښې دَحدیث هغه ټول روایات هم رایوځائې کیږی کوم چه په مختلفوعنوانونوسره منقول دی،امام ابن جریردَحضرت حذیفه په روایت نقل کړیدی چه دَرسول الله ﷺنه دَاعرافوپه باره کښې تپوس اوکړې شونوهغوئ اوفرمائیل چه دابه هغه خلق وی چه نیکئ اوبدئ به ئې سرپه سروی،جهنم نه به خلاص شی خوجنت ته به نهٔ وی داخل شوی اودَاعراف په مقام کښې به ایسارکړې شی،هرکله چه دَ ټولو جنتیانو او دوزخیانو فیصله اوکړې شی هغې نه پس به ددوئ فیصله اوکړې شی اوجنت کښې به داخل کړې شی[ابن کثیر]۔(۱)

اوابن مردویه،په روایت دَحضرت جابرنقل کړیدی چه رسول الله ﷺ نه دَاعرافوپه باره کښې تپوس اوشو چه دابه څوک خلق وی؟هغوئ اوفرمائیل ،داهغه خلق دی چه دَخپلوو الدینودَمرضئ اواجازت نه بغیرپه جهاد کښې شریک شوی وؤ اودَالله تعالی په لارکښې شهیدان شو،په دې شان دَموروپلاردَنافرمانئ له کبله جنت نه ایسارکړې شواودَشهیدګئ په وجه په جهنم کښې دَداخلیدونه ایسارکړې شو۔

دَدې اودَرومبی حدیث ترمنځه هیڅ ټکر نشته بلکه داحدیث یومثال دې دَهغه خلقو چه نیکی اوبدی ئې سرپه سروی،یعنې یواړخ ته ئې دَالله تعالی په لارکښې شهیدګی شوه اوبل اړخ ته ئې دَموروپلارنافرمائی شوه اودَمیزان عمل دواړه چاړی ئې برابرشو[ابن کثیر]۔(۲)

**سلام مسنون لفظ**: هرکله چه دَاعرافیانوپیژندګلی اووضاحت اوکړې شو اوس دَآیت اصل مضمون ته فکراوکړئ،الله تعالی فرمائی چه جنتیانوته به اعرافیان آوازاوکړی اووائ به:

[سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ] دالفظ په دُنیاکښې هم دَډالئ اوتُحفې په ډول،خپل منځ کښې دَمُلاقات په موقعه وئیلې شی چه سُنت طریقه ده،دَقبرونودَزیارت کولوپه موقعه هم وئیلې شی اوبیابه په محشر او جنت کښې هم وئیلې شی،لیکن دَآیتونو اودَحدیث دَروایتونونه معلومیږی چه په دُنیا کښې ،،[اَلسَّلَامُ عَلَيۡكُمۡ] وئیل مسنون دی اودې دُنیانه چه لاړشی نو ،،[سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ]وئیل مسنون دی،دَقبرونودَزیارت کولوپه موقعه هم قرآن کښې داسې راغلی دی: ﴿سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ بِمَا صَبَرۡتُمۡ فَنِعۡمَ عُقۡبَى الدَّارِ﴾ اوجنتیانوته دَفرشتودَهرکلی ونیلوپه وخت هم په قرآن کریم کښې داسې الفاظ راغلی دی: ﴿سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ طِبۡتُمۡ فَادۡخُلُوهَا خٰلِدِيۡنَ﴾ اودلته هم اعرافیان جنتیانوته په دې لفظ سره سلام کوی۔

وروسته دَاعرافیانوحالت داسې بیانوی چه دوئ به لاتراوسه جنت ته نهٔ وی داخل شوی خو دَداخلیدوطمعداربه وی،بیاوروسته فرمائی: ﴿وَإِذَا صُرِفَتۡ أَبۡصَارُهُمۡ تِلۡقَآءَ أَصۡحٰبِ النَّارِ قَالُوۡا رَبَّنَا لَا تَجۡعَلۡنَا مَعَ

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۱۸
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۱۸، ۲۱۹

الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ﴾ [يعنى كله چه دَاعرافيانو نظر په جهنميانو پريوځي او دَهغوئ عذاب او مُصيبت اووينى نو الله تعالى ته به پناه غواړي چه مونږه دې ظالمانوسره مهٔ کړې]-

په پنځم آيت كښې دا هم ذكرشويدى چه اعرافيان به دَجهنميانو دَملامته كولو دَپاره ورته داسې وائى چه په دُنياكښې موپه كوم مال، دولت چه تكيه كوله اوپه خپلې ډلې باندِ چه زړهٔ ورو ئ او خپله لوئې موضباطوله، هغه نن ستاسوهيڅ پكارر انغلل-

په شپږم آيت كښې داسې راغلى دى: ﴿أَهٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللهُ بِرَحْمَةٍ ۚ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ﴾ دَدې په تفسير كښې حضرت عبد الله ابن عباس فرمائيلى دى چه هركله به جنتيانو او دوزخيانو سره اعرافيان خبرې اترې اوسوال جواب اوكړى نو رب العالمين به دوزخيانو ته دَاعرافيانو په باره كښې داسې فرمائي، تاسو په قسمونه خوړل چه دَدوئ بخښنه به نهٔ كيږى اونهٔ به په دوئ رحمت كولې شى نو اوس زمونږ رحمت اوګورئ-،، ورسره به اعرافيانو ته داسې اوفرمائيلې شى چه ځئ، جنت كښې داخل شئ، نهٔ د په تاسو دَتيرو شوو معاملاتو ويره وى اونهٔ دراتلونكې وخت غم اوفكر دتاسوسره مَل وى [ابن كثير]-(۱)

| |
|---|
| وَنَادٰى أَصْحٰبُ النَّارِ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيْضُوْا عَلَيْنَا مِنَ الْمَآءِ أَوْ |
| اوآواز به اوكړى ملګرى \| د وور \| ملګرو دجنت ته \| چى راتوئ کړئ \| په مونږ باندې \| داوبو نه \| يا |
| اوآواز به اوكړى دوزخيان جنتيانو ته چې مونږ ته لږې اوبه راكړئ \| او يا راته د هغه رزق نه څه راكړئ |
| مِمَّا رَزَقَكُمُ اللهُ ۚ قَالُوْا إِنَّ اللهَ حَرَّمَهُمَا |
| دهغې نه \| چى دركړې دې تاسوته \| الله \| اوبه وائى هغوئ \| چې بيشكه الله \| حرام كړى دى دا دواړه |
| كوم چه الله تعالى تاسو ته الله دركړې دې \| هغوئ به جواب كښې اووائى چې الله تعالى دا دواړه په |
| عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّلَعِبًا |
| په كافرانو باند \| هغه \| چې نيولې وو هغوئ \| دين خپل \| عبث كار \| او لوبې \| |
| كافرانو حرام كړى دى \| چې چادخپل دين نه لوبه توقه جوړه كړې وه \| |
| وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ نَنْسٰهُمْ كَمَا |
| اودوكه كړى ووهغوئ ژوند د دنيا \| انونن ورځ \| به مونږه هير كړودوئ \| لكه څنګه چې \| |
| اوددنيا ژوند په دهوكه كښې اچولې وو \| نونن به ئې مونږ هم داشان هير كړو \| لكه څنګه چې |
| نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا |
| هيركړې وو دوئ \| ملاقات \| دورځې ددوئ \| چې داده \| اولكه څنګه چې وو دوئ \| په آيتونو زمونږ |
| هغوئ ددې ورځې ملاقات هير كړې وو \| اوزمونږ د آيتونو نه به ئې |
| يَجْحَدُوْنَ ۝ وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ |
| چې انكاربه ئې كولو \| اوخامخا په تحقيق سره \| راوړې دې مونږدوئ ته \| يودا سې كتاب |
| انكار كولو \| ......اومونږ دوئ ته داسې يو كتاب رالېږلې دې |

(۱) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۲) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۲

فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّرَحْمَةً

چې په تفصیل سره بیان کړې دې مونږ هغه | دعلم په بنیاد باندې | چې لاربښودونکې ذې | اورحمت دې

چې پخپل علم مو ښه وا ضح کړې دې | او دا [کتاب] د مومنانو دپاره د هدایت اورحمت نه ډک دې

لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ ؕ

دپاره دهغه قوم | چې ایمان راوړي | نه کوی انتظاردوئ | مګر | انجام دهغې ته کوم چې ښائي داکتاب

.................. اوس دوی صرف دهغې خبرو انجام ته ګوري چې کتاب بیان کړې دی [یعنی عذاب]

يَوْمَ يَاْتِيْ تَاْوِيْلُهٗ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ

په کومه ورځ | چې راشي | انجام هغه چې ښودنه ئې کوی داکتاب | اوبه وائي | هغه کسان

په کومه ورځ دغه چې انجام مخې ته راشي | نوهغه کسان کومو چه

نَسُوْهُ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ

چې هیر کړې ئې وو دا کتاب | د مخکښې نه | چې په تحقیق سره راغلي ووا | رسولان

دا هیر کړې وو هغوئ به اووائي | چې مونږ ته زمونږ د رب پیغمبرانو

رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا

درب زمونږه | دحق سره | نوآیا شته | دپاره زمونږه | دسفارشیانونه څوك | چې سفارش اوکړي |

حقې خبرې راوړې وې | نوکاش چې زمونږ څوک سفارشیان وې | چې زمونږ دپاره ئې سفارش ئې کړې

لَنَآ اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا

دپاره زمونږه | یا واپس اولیږلې شو مونږه | چې عمل اوکړو | بدل دهغه عملونونه | چې وؤمونږه

وې | .........اویا دومره اوشوې چې مونږ واپس لاړشو | نوهغه [بد] عمل نه بیخی جدا [نیک] عمل

نَعْمَلُ ؕ قَدْ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا

چې کوؤبه مونږه | په تحقیق سره په نقصان کښې واچول دوئ | خانونه خپل | اوورك شو ددوئ نه | هغه

بذاوکړو کوم چې مونږ [په دنیا کښې] کړې ووا | دوئ خپل ځانونه تاوانې کړی وو | او د دوئ نه به هغه

كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۝ ع

چې وؤ دوئ | چې دځانه به ئې جوړول |

تول دروغ ورک شی کوم چې به دوئ جوړول |

**آسان ترجمه قرآن**

او دوزخیان به جنتیانو ته ووائی چه: مونږ باندې لږی اوبه راتوئې کړئ، یا الله چه تاسو ته کوم نعمتونه درکړې دی د هغې څه حصه (مونږ ته راکړئ) هغوی به جواب ورکړی چه: الله تعالی دا دواړه څیزونه په هغه کافرانو باندې حرام کړې دی چه هغوی خپل دین لره لوبې او حبث کرځولې وو، اوچه هغوی دنیوي ژوند په دهوکه کښې اچولي وو پس مونږ به هم دوی لره دغه شان هیر کړو لکه چه دوی دې

خبرې لره هیره کړې وه چه دوی لره دې ورځې سره مخامخ کیدل دي او لکه څنګه چه دوی څمونږ آیتونو نه ښکاره انکار کولو او حقیقت دا دې چه مونږ دوی ته یو داسې کتاب راوړې دې چه هغې کښې مونږ دخپل علم په بنیاد باندې د هر یو څیز تفصیل بیان کړې دې، او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې هغوی دپاره هدایت او رحمت دې (اوس) دا (کافر) دهغه آخري انجام نه سوا د کومې خبرې انتظار کوی چه دې کتاب کښې مذکور دې ؟ (حال دا) چه په کومه ورځ هغه آخري انجام راشي چه دې کتاب بیان کړې دې، په هغه ورځ به څوک چا چه هغه انجام مخکښې هیر کړې وو دا به وائی چه : څمونږ د پروردګار پیغمبرانو واقعی رښتیا خبر راوړې وو، اوس آیا مونږ ته څوك سفارشي شته چه څمونږ سفارش وکړي، یا آیا داسې کیدې شي چه مونږ دوباره (دنیا ته) اولیږلې شو، دې دپاره چه کوم (بد) کارونه مو اول کول، دهغې په خلاف نور (نیك) عمل وکړو؟ حقیقت دا دې چه دې خلقو د خپلو ځانونو د پاره ډیر د تاوان سودا کړې ده ، او کوم (خدایان) چه دوی جوړ کړي دی، دوی ته به (په دغه ورځ) دهغوئ څه پته هم ونه لګي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَنَادٰٓى اَصۡحٰبُ النَّارِ اَصۡحٰبَ الۡجَنَّةِ اَنۡ اَفِيۡضُوۡا عَلَيۡنَا مِنَ الۡمَآءِ﴾ او [لکه څنګه چې پورته جنتیانو د دوزخیانو سره داشان خبرې اترې اوکړې داشان] دوزخیان به جنتیانو ته آوازونه کوی [چې مونږ د اولږې او تندې نه بې دمه کیږو] الله دپاره مونږ باندې لږ شان اوبه راتوې کړئی [شاید څه سکون راته ملاؤشی] ﴿اَوۡ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ﴾ یا څه بل څه راکړئی چې الله ﷻ تاسو ته درکړی دی [دې سره دا نه لازمیږی چې هغوئ به امید ساتی اودا غوښتنه به کوی ځکه چې د ډیرې پریشانئ په حالت کښې به د توقع نه لرې خبرې هم د خلې نه اووځی] ﴿قَالُوۡۤا اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ﴾ جنتیان به [جواب کښې] اووائی چې الله ﷻ دواړه څیزونه [یعنی خوراك او څکاك] په کافرانو باندې بند کړی دی ، ﴿الَّذِيۡنَ اتَّخَذُوۡا دِيۡنَهُمۡ لَهۡوًا وَّلَعِبًا﴾ چې هغوئ خپل دین لره [چې ددې قبلول ددوئ په ذمه وو] لهو ولعب جوړ کړې وو ﴿وَّغَرَّتۡهُمُ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا﴾ او دوئ لره ددنیا ژوند په دهوکه [او غفلت] کښې اچولی وو [په دې وجه ئې هډو ددین څه پروانه اونه کړه ، او دا دارالجزاء ده ، هرکله چې دین نشته نو دهغې بدله چرته ده ، وراندې الله ﷻ د جنتیانو ددې جواب تصدیق او تائید فرمائی] ﴿فَالۡيَوۡمَ نَنۡسٰٮهُمۡ كَمَا نَسُوۡا لِقَآءَ يَوۡمِهِمۡ هٰذَا﴾ پس [هرکله چې ددوئ په دنیا کښې دا حالت وو نو] مونږ هم نن [د قیامت په] ورځ ددوئ هډو نوم نه اخلو [او دوئ ته به خوراك څکاك نه ورکوؤ] لکه څنګه چې دوئ ددې [عظیم الشان] ورځې هډو څه نوم نه وو اخستې ﴿وَمَا كَانُوۡا بِاٰيٰتِنَا يَجۡحَدُوۡنَ﴾ او لکه څنګه چې دوئ زمونږ د آیتونونه انکار کولو ﴿وَلَقَدۡ جِئۡنٰهُمۡ بِكِتٰبٍ فَصَّلۡنٰهُ عَلٰى عِلۡمٍ هُدًى وَّرَحۡمَةً لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ﴾ او یقینا مونږ دې خلقو ته یو داسې کتاب رسولې دې [یعنی قرآن] چې هغه مونږ خپل علم سره واضح واضح بیان کړې دې [او دا بیان د ټولو د آؤرولو دپاره دې خو] داد رحمت او هدایت ذریعه هغه خلقو دپاره [شوې] دې چې [ددې په آؤریدو سره] ایمان قبول کړی [او دوئ داتمام حجت باوجود ایمان نه راؤړی ددوئ د حالت نه داسې معلومیږی چې] ﴿هَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّا تَاۡوِيۡلَهٗ﴾ اودې خلقو ته ددې خبرې انتظار نشته صرف ددې [قرآن پاك] خودلې آخری نتیجه [یعنی د سزا ود عدې] انتظار دې [یعنی چې د عذاب نه وراندې د وعید نه نه ویریږی نو ددې مطلب دادې چې پخپله عذاب غواړی پس] ﴿يَوۡمَ يَاۡتِىۡ تَاۡوِيۡلُهٗ يَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ نَسُوۡهُ مِنۡ قَبۡلُ قَدۡ جَآءَتۡ رُسُلُ رَبِّنَا بِالۡحَقِّ﴾ چې په

کومه ورځ ددې [خودلې شوې] آخرې نتيجه راپيښيږي [چې دهغې تفصيل د دوزخ په بيان کښې تير شوې دې] په هغه ورځ چې کومو خلقو چې دوئ لره مخکښې هير کړې وو [ډير په پريشانئ کښې به] داسې اووائي چې واقعي د الله تعالى پيغمبر [په دنيا کښې] ريښتونې خبره راوړې وه [خو مونږ پوهه نه شو] ﴿فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا لَنَآ﴾ پس اوس زمونږ څوك داسې سفارشي شته دې چې زمونږ سفارش اوکړي ﴿اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ﴾ يا مونږ بيا [دنيا ته] واپس ليږلې شو ، مونږ خلق [چې دنيا ته واپس لاړ شو] دد ې بد عملونو چې کوم مونږ کول په خلاف نور [نيك] عملونه اوکړو [الله ﷻ فرمائي چې اوس د بچ کيدو څه صورت حال نشته دې] ﴿قَدْ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ﴾ بيشکه دې خلقو خپل ځان [د کفر] په خساره کښې واچولو ﴿وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ﴾ او دوئ چې کومې کومې خبرې کولې [په هغه وخت] ټولې هيرې شوې [اوس د سزا نه بغير به بل هيڅ نه وي]

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

| بيشکه | رب ستاسو | الله دې | هغه الله | چې پيدا ني کړل | آسمانونه

| بيشکه ستاسو رب هغه ذات دې چې آسمانونه

وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي الَّيْلَ

او زمکه | په شپږو ورځو کښې | بيائي قراراونيوؤ | په عرش باند | خوروي | شپه

او زمکه ني په شپږو ورځو کښې پيدا کړې دی | بيا په عرش برابر شو | هغه د شپې په پرده باندې

النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

په ورځ باندې | بيا ورځ طلب کوی شپې لره | په تلوارسره | اوپيدائي کړل نمر | اوسپوږمۍ

د ورځې رڼا پټوي | په داسې طريقه چې [شپه په ورځې پسې] په تيزئ سره راځي | اونمر اوسپوږمۍ

وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ

اوستوری | چې تابع کړې شوی دی | په حکم دهغه سره | خبردار شئ | هغه لره دې ټول پيدائش |

اوستوری [ټول] دهغه ذات دحکم تابع دی | خبرشئ چې ټول پيدائش د هغه ذات دې | او

وَالْاَمْرُ تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ

اوحکم کول | برکت والا دې الله | چې پالونکې | دجهانونو دې |

اوهم د هغه حکم په کښې چليږی | الله دبرکتونو مالک دې | چې رب د مخلوقاتو دې

**آسان ترجمه قرآن**

يقينًا ستاسو پروردګار هغه الله دې چه هغه ټول آسمانونه او زمکې په شپږو ورځو کښې پيدا کړل بيا هغه په عرش باندې استواء وکړه هغه په ورځ باندې د شپې څادر اچوي ، چه تيز تلو سره هغه رالالدې کوي او هغه نمر ، سپوږمۍ اوستورې پيدا کړې دې ټول د هغه د حکم تابع دي - يادساتئ چه پيدا کول او حکم کول ټول د هغه کار دې ډير برکت والا دې الله چه د ټولو جهانونو پروردګار دې ا

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾ بيشكه ستاسو رب الله تعالى دي هغه ذات چي ټول آسمانونه او زمکه په شپږو ورځو [برابر وخت] کښې پيدا کړه، ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾ بيا عرش باندې [چې هغه د سلطنت د تخت مشابه دې داشان]قائم شو [او جلوه ئې] اوفرمائيله [چې دهغه شان سره لائق دې] ﴿يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا﴾ پټوی د شپې [تياري سره] د ورځې [په رڼا لره] [يعنی د شپې تيارې سره د ورځې رڼا پټه کړی او هغه زائله شی] داشان چې هغه شپه ورځې لره زر راګيروی [يعنی زر تر زره تيريدونکې معلوميږی تر دې چې زر شپه رازی] ﴿وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ﴾ نمر او سپوږمۍ او نور ستوری ئې پيدا کړل، داشان چې ټول دهغه د حکم [تکوينی] تابع دی، ﴿أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ﴾ ياد ساتئ هم الله تعالى دپاره خاص دی خالق کيدل او حاکم کيدل، ﴿تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ ډير لوئې کمال والا دی الله تعالى چې د ټول عالم پروردګار دې.

## معارف اومسائل

دَدې آيتونوڅخه ړومبی آيت کښې دآسمانونو،زمکې،سيارواوستوروبيان وو،چه داڅيزونه دَيوخاص محکم نظام تابع،په خپل خپل کارکښې لګيادی دَدې په ترڅ کښې دَالله تعالى دَ قُدرت مطلقه بيان وو اودَعقل خاوندهرانسان ته دَفکر،غوربلنه داسې ورکړې شويده چه هرکله دغې پاک ذات،داعظيم الشان جهان دَنيشت نه شته کړو،دَخپل حکيمانه نظام دلاندَ دَدې په چلولوباند قُدرت لری،هغه لره داڅه مشکل دی چه دَدې څيزونودَفنا کولونه پس ئې دَقيامت په ورځ دوباره پيدا کړی،په دې وجه دَقيامت دَانکارکولونه واوړئ يواځې هم دغه ذات،خپل رب ګڼړئ اوهم دَهغه نه خپل حاجتونه پوره کول غواړئ،هم دَهغه عبادت کوئ،دَمخلوق پرستئ دَجنجال نه لاس په سرشئ حقيقت اوپيژنئ،چنانچه وې فرمائيل:ستاسورب يواځې الله تعالى دې چه آسمانونه اوزمکه يې په شپږوورځوکښې پيداکړل-

**دآسمانونواوزمکې پيداکول په شپږوورځوکښې ولې اوشو::** دلته داسوال راپورته کيدې شی چه هرکله الله تعالى په دې پوره قُدرت لری چه داټول جهان دَسترګوپه رپ کښې پيداکړی لکه څنګه چه قرآن هم،دا خبره بيابيان کړيده،لکه يوځائې کښې فرمائی: ﴿وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ﴾ يعنی[دَسترګوپه رپ کښې زمونږ حُکم جاری کيدې شی] په بل ځائې کښې فرمائی ﴿إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ﴾[کله چه الله تعالى دَيوڅيزدَپيداکولواراده اوفرمائی نووائی چه شه،پس هغه شی]بياپه شپږوورځوکښې دَدې جهان دَپيداکولوڅه وجه ده؟

دَقرآن کريم مُفسرحضرت سعيدبن جبير رحمه الله دَدې جواب داورکړيدې چه اګرچه الله تعالى دَسترګوپه رپ کښې ياپه کلمې دَ،،کُن،،سره دَټول جهان دَپيداکولوپُوره قُدرت لری خودَحکمت تقاضائې داوه چه انسان ته په داسې کولوسره دَخپلوضروریاتواودَجهان دَانتظام چلولوښودنه په داسې شان اوکړې شی چه هغه د په دمه دمه، [کراره کراره]ادرجه په درجه کارونه چلوئ چه په نتيجه کښې ئې کړې کارمضبوط اوپوخ ثابت شی لکه چه رسول الله ﷺ فرمائی:په غور،فکرپه دمه اودرجه کارکول دَالله تعالى دَاړخه دی اوپه جلتئ سره زرکارکول دَشيطان دَاړخه دی[مظهری

په حواله دَشعب بيهقي] -(۱)

مطلب ئې دادې چه په تُندئ کښې انسان دَيوې مسئلې په هراړخ باندې غور ،فکرنشي کولې څکه تراکثر کارونه خرابيږي او هغه پر بيا پښيمانه وي،په غور ،فکرپه دمَه او آرام سره کارکولو کښې آساني او برکت وي-

**دزمکې،آسمانونو معياراو مشورو پيدا کولونه وړاندې شپې او ورځې څنګه او پيژندې شوې:** بل سوال دلته داپيدا کيدې شي چه هر کله شپه ورځ په نمر سره پيژندلې شي نو دآسمانونو او زمکې دپيدا کيدونه وړاند هر کله چه نمر ،سپوګمۍ نه وه نو دَشپې او ورځو داشميرپه کوم حساب سره او کړې شو؟

ځنې مفسرين دَدې جواب داسې ورکوي چه مُرادتر نه دَدې دُنيادَشپې او ورځو اندازه او زمانه ده، يادامطلب کيدې شي چه الله تعالى هغه موقعې دپاره دَشپو او ورځو بل معيار او نخښه مقرر کړې وي لکه څنګه چه دجنت شپې ورځې به هم په نمر ،سپوګمۍ پورې څه تړون نه لري،په دې شان به دَدې هيڅ ضرورت پاتې نشي چه دغه شپې او ورځې دې ددې جهان دَشپې او ورځو برابرې وي بلکه کيدې شي چه هغه ددې نه ډيرې لوئې وي څنګه چه دآخرت دَورځې په باره کښې دقرآن کريم ارشاددې چه هغه به دَ زرو کالو اندازه وي-

اوعبدالله رازي فرمائيلي دي چه دَفلک اعظم حرکت دَدې دُنيادَحرکت په مقابله کښې دومره تيزدې چه انسان په منډه کښې پورته کړې قَدم زمکې ته بيانهٔ وي رارسولې خوهغې [فلک اعظم] به درې زره ميله مزل غوڅ کړې وي-[بحر مُحيط](۲)

امام احمدبن حنبل او حضرت مجاهد هم دافرمائيلي دي چه دغې شپې او ورځونه مُراددآخرت شپې ورځې دي او همدغسې دَحضرت عبدالله بن عباس نه په روايت دَضحاک منقُول دي-

[دَتولونه غوره خبره داده چه دَدغې شپې او ورځو اندازه خالص دَالله تعالى علم ته اوسپارلې شي ولې چه په دې باندې دَشريعت هيڅ يوحُکم څه اړه نهٔ لري والله اعلم مترجم]-

دَصحيح روايتُونو مُطابق دَدې جهان دَپيدا کولو دَشپې او ورځو شروع دَاتوارنهٔ راځي او په جمعه باندې ختميږي،دَخالي [هفتې] په ورځ دَدې جهان دَپيدا کولو هيڅ کارنهٔ دې شوې،ځنې علماؤ فرمائيلي دي چه دغه کاردَخالي [سبت]په ورځ ختم شوې وو څکه دَدې ورځې نُوم ،يوم السبت، کيښودلې شو،ولې چه ،سبت،په عربئ کښې دَپريکولو معنى ورکوي،[تفسير ابن کثير](۳)

ددې شپې او ورځو تفصيل دَسُورة، ،حم السجده، ،په نهم ،لسم آيت کښې داسې راغلې دې چه په دؤو ورځو کښې زمکه جوړه کړې شوه،وروسې دوؤ ورځو کښې په زمکې دپاسه غرونه جوړ کړې شو، پکښې دريابونه،خزانې،اونې ،بُوټې دَانسانانو او نورو حيواناتو دَخوراک څيزونه جوړ کړې شو داټولې څلور ورځې شوې،لکه فرمائي: ﴿خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ﴾په دې شان داڅلور ورځې ،اتوار، پير،نهې،چهارشنبه او وروسې دوه ورځې،دَزيارت او جُمعې شوې په کومو کښې چه اوه آسمانُونه پيداکړې شو لکه فرمائي: ﴿وَقَدَّرَ فِيهَا أَقْوَاتَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ﴾

(۱) شعب الإيمان للبيهقي، الثالث والثلاثون من شعب الإيمان الخ، التأني من الله الخ رقم الحديث: ۴۲۹۷

(۲) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۲۵۹

(۳) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۶

دَ زمکې، آسمانُونو دَ پیدا کولو نه پس ئې اوفرمائیل: [﴿ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ﴾] [بیا په عرش باند تیکاؤشو] دَ استواء لفظي معنی تیکاویدل او دَ عرش معنی شاهی تخت دې- دَ رحمن عرش په څهٔ شان او څهٔ څیز دې او په دې باند دَ قائمیدو [تیکاویدو] څهٔ مطلب دې؟]-

دَ دې په باره کښې بې غُباره او صفا، صحیح مسلک دَ سلف صالحینو صحابه کرامو، تابعینو او ورپسې دَ اکثرو صوفیانو دې لکه فرمائی چه انسانی عقل، دَ الله ذات، دَ هغه صفتُونه په احاطه کښې نشی راوستې- ځکه دَ دې په تحقیق کښې لګیدل بیکاره څهٔ چه ضررناک دی، په دې باند داسې اجمالی ایمان راوړل پکاردی چه دې نه دَ الله تعالی هرڅه مراد چه وی، هغه صحیح او حق دې او دَ خپل اړخ نه دَ دې معنی ټاکل اونکړې شی، چنانچه امام مالک دَ دې سوال په جواب کښې یو کَس ته اوفرمائیل چه دَ ،، استواء،، معنی خو معلومه ده خو کیفیت او حقیقت معلُومولو ته ئې انسانی عقل نشی رسیدې، په دې باند ایمان راوړل واجب دی او په دې باره کښې دَ کیفیت او حقیقت سُوال کول بدعت دې ځکه چه داسې تپُوسونه، صحابه کرامو، دَ رسول اللهﷺ نه چرې نهٔ ووکړی، چنانچه امام اوزاعی، سفیان ثوری، لیث بن سعد، سفیان بن عینیه عبدالله بن مبارک فرمائیلی دی چه کوم آیتُونو دَ الله تعالی دَ ذات او صفاتو په باره کښې راغلی دی هم دَ هغه شان پرِ ایمان راوړل پکاردی چه دَ خپله څانه پکښې هیڅ قسم تشریح او تاوِیل اونکړې شی [مظهری]-(۱)

ورپسې فرمائی: ﴿يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيْثًا﴾ [یعنی الله تعالی پټوی او راڅوی شپې لره په ورځې په دې شان چه شپه په تادئ سره ورځ رالاندې کوی] مطلب دا دې چه شپه او ورځ په یو بل پسې لګیدلې راتلل دَ الله تعالی قُدرت ته داسې آسان دَی چه لږ مهلت پکښې هم نهٔ راځی-

ورپسې فرمائی ﴿وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ﴾ [یعنی الله تعالی نمر، سپوږمئ، او ټول ستوری په داسې شان پیدا کړیدی چه ټول دَ الله تعالی دَ امر او حُکم تابع چلیږی-

په دې کښې دَ عقل خاوندانو انسانانو ته دَ غور فکر کولو داسې بلنه ورکړې شویده چه دَ لوئې نه لوئې ماهرانو جوړ کړی مشینُونه هیچرې بې نقصه نهٔ وی که بې نقصه هم وی نو په چلیدو او استعمال سره دَ هغې پرزې وغیره ضرور سولیږی، سستیږی او دَ مرمت کولو ضرورت ئې پیښیږی دَ ګریس، تیل ورکولو ضرورت ئې راځی، چنانچه دې دَ پاره په ورځو ورځو څه چه په هفتو هفتو باند مشینُونه بندپراته وی، لیکن دَ دا الله مشینُونه دَ شروع نه چه څنګه ووهم هغسې چلیږی، په رفتار او چلن کښې ئې دَ منټ بلکه دَ سیکنډ قدرې فرق هم نهٔ راځی، دَ دې وجه دا ده چه دَ الله تعالی دَ حُکم تابع چلیږی لکه فرمائی: ﴿مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ﴾ مطلب دا چه دَ دې دَ چلولو دَ پاره دَ بجلئ، تیلو، ګیس، او کوټلې ضرورت نشته، انجنړ ته ئې ضرورت نشته، دا یواځې دَ الله تعالی په حکم چلیږی، ځکه پکښې هیڅ فرق راتلل نشی کیدې، البته که پخپله الله تعالی دَ دې دَ ختمولو اراده په یو مقرر وخت باند اوکړی نو دا ټول انتظام به تس، نس شی چه نوم ئې قیامت دې-

دَ دې څو مثالُونو ذکر کولو نه پس دَ یوې کُلی قاعدې لاندې دَ الله تعالی دَ غالب قُدرت مُطلقه بیان په دې شان اوکړې شو: ﴿اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ﴾ دَ خلق معنی پیدا کیدل او دَ امر معنی حُکم کول دی، معنی دَ دې جُملې به دا شی چه یواځې الله تعالی لره خاص دی خالق کیدل او حاکم کیدل، دَ هٔ نه بغیر نهٔ څوک څهٔ ډیر معمولې څیز پیدا کولې شی او نهٔ څوک په بل چا باند دَ حُکم کولو حق لری [خو کله چه دَ الله تعالی له اړخه دَ حُکم یوه خاص شعبه چا ته اوسپارلې شی نو دَ هغه هم دَ حقیقت په اعتبار

(۱) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۵۹

سره يواځې دالله تعالى حُکم دې[-په دې بنادآيت مطلب داشوچه دَدې تولو څيزونو پيدا کولو کارهم ددهٔ وو اودَپيدا کيدونه پس تر کار اغستل هم دَبل چاپه وَس کښې نهٔ وو او دا هم دالله تعالى دَقُدرت کامله کرشمه ده-

صُوفيائې کرام فرمائى چه خلق اوامردوه عالمه دى، خلق مادې اومادياتوسره تعلق لرى او امر لطيفومجرداتوسره تعلق لرى چنانچه په آيت: ﴿قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّىْ﴾ کښې دې ارخ ته اشاره مُوندې شى چه رُوح ئې دامر رب نه اوفرمائيلو-خلق اوامردواړه، الله تعالى سره دَخاص کيدو مطلب دالرې چه آسمانُونه، زمکه اودَدې په منځ کښې تول څيزُونه مادى دى ځکه دَدې پيدائش ته ئې خلق اوفرمائيل اودآسمانُونه پورته څيزونه دَمادې اوماديت نه برى دى ځکه ئې دَدې پيداکيدلونه په لفظ دَامرسره تعبير اوکړو[مظهرى]-

په آخردآيت کښې ارشاد فرمائى: ﴿تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ دَ، تَبرکَ، لفظ دَبرکت نه جوړدې، معنى ئې زياتيدل، وده کول په خپل ځائې پاتې کيدل وغيره دى، دلته دَ، تَبركَ، معنى بلنداوبالاکيدل دى چه دَودې کولو دَمعنې نه هم اغستې شى او الله تعالى ثابت هم دې اوبلند وبالاهم دې، چنانچه دې معنې ته دَحديث شريف په دې جُملهٔ کښې هم اشاره شويده فرمائى: ﴿تبارکت وتعاليت ياذالجلال والاکرام﴾ولې چه دلته دَ ﴿تبارکت﴾ تفسير ﴿تعاليت﴾ سره کړې شويدې-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | اُدْعُوْا | رَبَّكُمْ |
| | | | | | راوبلئ | رب خپل |
| او دتول مخلوق پالونکې دې ادخپل رب نه په | | | | | | |
| تَضَرُّعًا | وَّخُفْيَةً ؕ | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ | الْمُعْتَدِيْنَ ۚ | وَلَا | |
| په عاجزئ سره | اوپه پټه سره | بيشکه چې هغه | نهٔ خوښوى | دحدنه اوړيدونکې خلق | اومهٔ کوئ | |
| زارئ او په پټه سوال کوئ | هغه دحد نه تيريدونکى خلق نه خوښوى | او تاسو د زمکې | | | | |
| تُفْسِدُوْا | فِي الْاَرْضِ | بَعْدَ | اِصْلَاحِهَا | وَادْعُوْهُ | خَوْفًا | وَّطَمَعًا ؕ |
| فساد | په زمکه کښې | اروستو | داصلاح دهغې نه | اوراوبلئ هغه | په يره | اوپه طمع سره |
| په مخ د اصلاح نه پس [په ګناهونو سره] فساد مه کوئى او الله دويرې اوطمعې په مينځ کښې رابلئ | | | | | | |
| اِنَّ | رَحْمَتَ اللّٰهِ | قَرِيْبٌ | مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ | | | |
| بيشکه | رحمت دالله | نزدې دې | نيکانو خلقو ته | | | |
| بيشکه دالله ﷻ رحمت نيکانو خلقو ته ډير نزدې دې | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

تاسو خپل پروردګار په عاجزئ او په پټه پټه رابلئ يقيناً هغه د حد نه تيرې کوونکو لره نه خوښوي او زمکه کښې ددې د اصلاح نه وروستو فساد مه کوئ او د هغه عبادت داسې کوئ چه زړه کښې مو ويره هم وي او اميد هم وي يقيناً دالله تعالى رحمت نيکانو ته نزدې دې.

## خلاصه تفسير

﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ تاسو خلق [هر حالت کښې او حاجت کښې] د خپل پروردګار نه دعا غواړئ تذلل ښکاره کولو سره هم او په پټه هم [البته] دا خبره] ﴿إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ﴾ واقعي [ده چې] الله ﷻ هغه خلق نه خوښوي چې [په دعا کښې] حد [د ادب] نه اووځي [لکه د محالات عقليه يا د محرمات شرعيه دپاره دعا کوي] ﴿وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا﴾ او ددې نه پس چې په دنيا کښې [د توحيد د تعليم او د انبياء کرامو ﷺ د بعثت په ذريعه] ددې اصلاح او صحيح والې شوې دې ، فساد مه خورئ [يعنى ددې حق امورو په تعليم سره او ددې په منلو سره په دنيا کښې امن قائميږي ، تاسو ددې مذکوره تعليم په پريښودو سره امن مه خرابوئ] ﴿وَادْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا﴾ او [لکه څنګه چې تاسو ته د خاص دعا حکم شوې دې ، داشان د باقي عباداتو حکم کيږي چې] تاسو دالله تعالى عبادت [په کوم طريقه چې تاسو ته خودنه کړې شوې ده] عبادت کوئ د الله تعالى نه ويريږئ او اميد ساتئ [يعنى عبادت کولو سره نه دې فخر وي او نه دې مايوسي وي، وړاندې د عبادت ترغيب دې چې] ﴿إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ﴾ بيشکه د الله ﷻ رحمت نزدې دې نيکو کارو ته.

## معارف او مسائل

د ذکر شوؤ آيتونو نه په مخکښې آيتونو کښې دَالله تعالى دَقُدرت کامله دَخاصو خاصو تدارو اولويو انعاماتو بيان وو- په دې آيتونو کښې اوس دَدې بيان دې چه هَر کله دَقُدرت مُطلقه مالک الله تعالى دې، ټول احسانُونه او انعامات يواځې هم هغه کوي نو دَمُصيبتُونو او حاجتُونو په وخت هغه بلل پکار دي او هم دَهغه نه دُعا غوښتل ضروري دي، ددهٔ پريښودل او بل اړخ ته ورګرځيدل ناپوهي او بې نصيبي ده، هم په دې آيتُونو کښې دَدُعا غوښتې آداب او طريقې هم اوښودلې شوې چه دَهغې په کولو سره دَدُعا دَقبليدو اُميد زيات وي-

په عربي ژبه کښې دُعا دې ته هم وئيلې شي چه څه حاجت پُوره کولو دَپاره څوک راؤبللې شي او مُطلق يادولو ته هم وئيلې شي او دلته دواړه معنې تر اغستې شي، په آيت کښې ارشاد دې: ﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ﴾ يعنى اوبلئ خپل رب خپلو حاجتونو دَپاره ، يا، دَوئ او عبادت کوئ، دَخپل رب] په رُومبى صورت کښې به ئې مطلب داوي چه ذکر او عبادت يواځې هم ددهٔ کوئ- چنانچه دادواړه تفسيرونه دَپخوانو بزرګانو او دَتفسير دَاامامانو نه منقُول ه دي-

بيا فرمائي: ﴿تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ دَ، ﴿تَضَرُّعًا﴾ معنى عاجزي او خاکساري کول او خپل ځان ذليل ښکاره کول دي دَ ﴿خُفْيَةً﴾ معنى، پټ پټ شوې ده څنګه چه په اردو کښې هم دې معنى دَپاره استعماليږي-

په دې دواړو الفاظو کښې دَدُعا او ذکر کولو دَپاره دَدوؤ ډير وضروري آداب، او طريقو بيان داسې دې- اول دا چه دَدُعا قبليدو دَپاره دا ضروري دي چه انسان ددَدُعا په وخت دَالله تعالى په وړاند خپل ځان عاجزه، خاکساره او ذليله ښکاره کړي چه الفاظ هم عاجزئ او خاکسارئ سره مُناسب وي، لب ولهجه دهم دَعاجزئ او خاکسارئ وي او دَدُعا غوښتلو شکل د هم دغسې وي، نن صبا دَ عوامو دَدُعا غوښتلو انداز داسې دې چه اول خودې ته دُعا غوښتل نشي وئيلې بلکه دُعا لوستل ورته وئيلې شي، ولى چه اکثرو ته دَدُعا دَالفاظو مطلب هم معلُوم نهٔ وي، لکه چه دَجوماتُونو امامان د

عربۍ، څه یادې کړې دُعاګانې دَمونږ ختمولونه پس لولي، اول خوپخپله دغه امامان دَدُعاپه معنی اومطلب نهٔ پوهیږي اوکه هغه پرې پوهیږي نوبې علمه اوناپوهه مقتدیان خوتر بالکل بې خبره وي، هغوئ هسې په اټکل بانداٰمین اٰمین وائي۔ دابیله خبره ده چه الله تعالی په خپل رحمت سره دابې ساه دُعاقبوله کړي اوددې دقبلیدونخښې نښانې څرګندې کړي، خودخپل اړخ نه په دې پوهیدل ضروري دي چه دُعالوستلې نهٔ بلکه غوښتلې شي، په دې وجه ضروري شوچه دَدُعا غوښتلوپه طریقه دُعا اوغوښتلې شي۔

بله خبره داده چه که دالفاظوپه مطلب باندسره دَپوهې څوک دُعاغواړي خودې سره طریقه عنوان، لب ولهجه اوصورت ظاهري دَغوښتلو نه وي، عاجزي اوخاکساري پکښې نه وي او دا دُعا به سوده مطالبه وي چه یو بنده ئې هیڅ حق نهٔ لري۔

غرض داچه په رومبی لفظ کښې دَدُعاروح اوښولې شوچه په عاجزئ، خاکسارئ سره خپل ذلیلوالې ښکاره کول اوالله تعالې نه خپل حاجت غوښتل دي، په بل لفظ کښې بل هدایت داسې ورکړې شوچه په پټه اوپه کراره دعاغوښتل ډیره غوره اوقبلیدوته نزدې وي، ځکه چه په اوچت آوازسره دُعاغوښتلوکښې خواول عاجزي اوخاکساري پاتې کیدل ګران وي، دوئیم داچه دَریا او مشهورتیاخطره پکښې هم وي، درئیم داچه صورت داسې جوړول وي چه ګویاکښې دغه کَس په دې نهٔ دې خبرچه الله تعالی داسې سمیع اوعلیم دې چه زمونږ په ظاهر، باطن دواړوباندېوشان پوهیږي۔ هره خبره چه په پټه وي اوکه ښکاره وي هغه اورې، همدغه وجه وه چه هرکله دَخیبرپه غزاکښې دَصحابه کرامو ﷺ آوازپه دُعاکښې په زوره شونورسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو خو څوک کونړیاغائب نهٔ بلئ چه دومره په لوړ آوازدعاکوئ، بلکه ستاسومخاطب خویوسمیع اوقریب [یعنی الله تعالی] دې[1] چنانچه پخپله الله تعالی دَیونیک بنده دَدُعابیان داسې فرمائیلې دې: ﴿إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا﴾ [یعنی هغه په کرار آواز سره الله تعالی لره اوبللو] دې نه معلومه شوه چه په قلاره اوروآوازسره دُعاغوښتل الله تعالی هم خوښوي۔

حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائیلي دي چه دَپه زوره آوازپه نسبت په روآوازسره دُعاکول اویا چنده زیات غوروالې لري، دَپخوانوبزرګانوعادت به داوو چه په ذکراودُعاکولوکښې به ئې غټه مجاهده کوله او اکثر اوقات به یې هم په دې کښې تیرولوخوچابه دَهغوئ آوازنهٔ اوریدو، بلکه دَدوئ دُعاګانې به صرف دَالله تعالی اودَدوئ ترمینځه وې، په دوئ کښې به اکثرو حضراتو سالم قرآن یادولو اودهغې تلاوت بهٔ ئې کولوخو هیڅوک به پرې نهٔ خبریدل، ډیرو به دیني علم حاصلولو خوپه خلقوبه ئې نهٔ ضباطولو، ډیروصاحبانوبه دَشپې اوږده اوږده مونځونه کول مکرراتلونکی به پرې هیڅ نهٔ خبریدل، اووې فرمائیل چه مونږه داسې حضرات لیدلي دي چه کوم عبادتونه به ئې په پټه کول په ښکاره باندېهغې په کولونهٔ دي لیدلې شوي، ډیرپه روآواز سره به ئې دُعاګانې کولې [ابن کثیر]۔[2]

ابن جریج فرمائیلي دي چه په لوړآوازسره دُعاکول اوپکښې شورکول مکروهه دي، امام ابوبکر جصاص رحمه الله [حنفي] په احکام القرآن کښې فرمائیلي دي چه دې آیت نه معلومه شوه چه په لوړ آواز دَدُعا غوښتلوپه نسبت په روآوازسره دُعاغوښتل ډیرغوره دي، اوهمداسې دَحضرت حسن

---

[1] صحیح البخاري، کتاب المغازي، باب غزوة خیبر: ج ۲، ص ۶۰۵

[2] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۴۲۸ -

بصري او ابن عباس ﷺ نه هم منقول دی، دې آيت نه دا هم معلومه شوه چه په مونځ کښې د سورت فاتحه په ختميدو په رو آواز سره، آمين، وئيل ډير غوره دی ولې چه دا هم يوه دُعا ده.[1]

زمونږ د زمانې، د جوماتونو امامانو ته د الله تعالى هدايت اوکړی چه د قرآن او سُنت دا ښودنه او د پخوانو بزرګانو هدايات يې بيخي پرېښودل، د هر مونځ نه پس د ځانه د دُعا څه کاروائی کولې شي، په اُوچت آواز د دُعا څه کلمې وئيلې شي چه د دُعا او د دې د آدابو او طريقو نه خلاف وی او بله دا چه دې سره د هغه مونځ ګذارو په مونځونو کښې خلل راځي چانه چه څه راکعتونه په جمع کښې تلي وی او هغه اوس ځان له کوی، د رسمونو غلبې دې خرابولره د دوی د نظرونو نه په ډېره کړی دی، په يو خاص موقعه باندې چې څه خاص دُعا پوره جمع سره څوک کوی په داسې موقعه که په اُوچت آواز باندې يو کَس د دُعا الفاظ وائی او نور پرآمين وائی د دې څه بديت نشته خو شرط دا دې چه د نورو په مونځونو او عبادتونو کښې څه خلل ورسره نۀ راځي او داسې عادت نۀ جوړوی چه عوام، د دُعا هم دغه طريقه اوګڼړی ځنګه چه نن صبا د غسې کيږی-

دا خو د خپلو حاجتونو د پاره د دُعا غوښتلو طريقه وه که د لته د دُعا معنی ذکر او عبادت واغستې شي نو په دې کښې هم د پخوانو علماؤ تحقيق دا دې چه په پټه ذکر کول د په زوره ذکر کولو نه زيات غوره دې او صوفيائې کرام خصوصاً د چشتيې مشائخ چه مبتدی، نو مُريدانو ته د په زوره ذکر ښودنه کوی، هغه د دغه کَس د حال مُناسب د علاج په غرض وی چه په زوره ذکر سره د هغه سستی او غفلت لرې شی او په زړه کښې د الله تعالى د ذکر جذبه پيدا شی ورنه په ذکر کښې جهر کول د هغوی په نزد هم مقصود نۀ دی، اګرچه جائز دې ځنګه چه د حديث شريف نه ثابت دې خو شرط دا دې چه ريا او نمائش پکښې نۀ وی-

امام احمد بن حنبل ﷺ، ابن حبان ﷺ، بيهقی ﷺ وغيره، د سعد بن ابی وقاص ﷺ په روايت سره نقل کړيدی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: [خير الذكر الخفي وخير الرزق ما يكفي][2] بهترين ذکر دا دې چه په پټه اوکړې شي او بهترين رزق دا دې چه انسان د پاره کافی شي-

البته په خاصو حالاتو او وختونو کښې په زوره کول ئې مطلوب او زيات غوره دې، چنانچه د دغه حالاتو او وختونو تفصيل رسول الله ﷺ په خپل قول او عمل سره واضح کړيدی مثلاً په اُوچت آواز سره آذان او اقامت کول، په جهری مونځونو کښې په اُوچت آواز سره د قرآن کريم تلاوت کول، د مونځونو تکبيرونه، د تشريق تکبيرونه، په حج کښې تلبيه په اُوچت آواز سره وئيل وغيره، په دې وجه فقهاؤ ﷺ په دې باره کښې دا فيصله کړيده چه په کومو خاصو حالاتو او مقاماتو کښې رسول الله ﷺ په قول يا عمل سره د جهر کولو تلقين کړيدې، هلته جهر کول پکار دی ليکن د دې نه علاوه په نورو ځايونو او حالاتو کښې په پټه ذکر کول زيات غوره او زيات فائده من دی-

په آخر د آيت کښې فرمائي: ﴿إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ﴾، معتدين، د اعتداء نه مشتق دې، د اعتداء معنی، حدنه تيريدل دی د ټولې جملې معنی دا شوه چه الله تعالى د حدنه تيريدونکی خلق نۀ خوښوی- د حدنه تيريدل که په دُعا کښې وی او که په بل څه عمل کښې وی د ټولو هم دغه حال دې چه الله تعالى ته خوښ نۀ دی بلکه که په غور سره اوکتلې شي نو دين اسلام د حدونو اود

[1] أحكام القرآن للجصاص، سورة الأعراف: ج ٦، ص ٢١٥

[2] مسند أحمد، مسند أبي إسحاق سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه رقم الحديث: ١٣٩٧ وصحيح ابن حبان، باب الأذكار رقم الحديث: ٨١٠

قيدونو پابندئ او د فرمانبردارئ كولو نوم دے، په مونځ، روژه، حج، زكواة او په ټولو معاملاتو كښې شرعي حدودونه تيريدل او كړې شي نو هغه د عبادت په ځائې ګناه جوړيږي-

په دُعا كښې د حدنه د تيريدو ګڼر صُورتونه دي، يو صُورت ئې دادې چه په دُعا كښې لفظي تكلفات قافيه وغيره اختيار كړې شي په كوم سره چه په خشوع خضوع كښې فرق راځي، بل صُورت ئې دادې چه په دُعا كښې غير ضروري شرطونه او قيدُونه اولګولې شي لكه په يو حديث شريف كښې راغلي دي چه هر كله حضرت عبد الله بن مُغفل رضي الله عنه د خپل خوئې نه داسې دُعا اؤريده چه، يا الله: په جنت كښې د ښي اړخ سپين محل ستانه غوارم- نو د غه صحابي منع كړو او وې فرمائيل چه په دُعا كښې داسې قيدُونه او شرطُونه لګول د حدنه تيريدل دي كوم چه قرآن كريم منع كړيدي [مظهري په روايت د ابن ماجه]-(۱)

د حدنه د تيريدو دريم صُورت دادې چه عامو مسلمانانو ته ښيرې كوي يا داسې څيز غواړي چه عامو خلقو د پاره مُضروي، د غه شان د حدنه د تيريدو يو صُورت دا هم دې كوم چه دلته بيان شويدې هغه داسې چه بې ضرورت په اُوچت آواز سره دُعا كوي، [تفسير مظهري، احكام القرآن]-(۲)

په بل آيت كښې فرمائي: ﴿وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا﴾ په دې كښې دوه داسې الفاظ راغلي دي چه خپل منځ كښې ديو بل نه الټه دي يو فساد او بل اصلاح، د فساد معنى خرابي او وراني دې لكه امام راغب اصفهاني رحمه الله په مفردات القرآن كښې فرمائي چه د فساد معنى داده چه يو څيز د اعتدال او درميانه حال نه بهر اوځي دغه بهروتل لږ وي او كه زيات وي(۳) هم د دغې په بنا به د فساد كموالې او زياتوالې ګڼرلې اوبللې شي، د اصلاح معنى سمُون راوستل دي ﴿وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا﴾، په دې بِنا د ټولې جُملې معنى دا شوه چه په زمكه كښې خرابي مه پيدا كوئ پس د دې نه چه الله تعالى ئې سمُون راوستې دې- امام راغب اصفهاني د اصلاح ګڼر صُورتونه بيان كړي دي يو داچه د اول سره ئې درست او سمدم پيدا كړيدي لكه فرمائي: ﴿وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ﴾ بل داچه پكښې راغلې خرابې ترلرې كړيشي لكه ﴿يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ﴾ دريم داچه ديو څيز د سمُون راوستو حُكم اوكړې شي-(۴) دلته په آيت كښې د سمُون راوستو [اصلاح] د وه مطلبه كيدې شي چه زمكه ئې د فصل او نورو زرغونولو ته كولو او كروندې د پاره جوګه كړه، د وريځو نه ئې په اوبو اورولو سره تر ګلونه او ميوې رابرخيره كړې، انسانانو او نورو حيواناتو د پاره ئې تر د ژوند ټول ضروريات او د سهولت او آرام سامانونه پيدا كړل، بل مطلب ئې دادې چه د زمكې باطني او معنوي سمُون ئې داسې راوستو چه په دې كښې ئې خپل رسولان خپل كتابُونه او هدايات راوليږل چه په دې سره ئې د كُفر، شرك او ګمراهئ نه پاكه كړه، او دا مطلب ئې هم كيدې شي چه دواړه قسمه ظاهري او باطني سمون ئې راوستو- په دې بِنا د آيت پُوره معنى داسې شوه چه هر كله الله تعالى د زمكې ظاهري او باطني سمون راوستې دې نو تاسو پكښې په ګناهُونو او نافرمانو كولو سره فساد او خرابي مه رابيدا كوئ-

۱) سنن ابن ماجة، أبواب الدعاء، باب كراهية الاعتداء في الدعاء: ص ۲۷۵
۲) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۳۴۳
۳) مفردات القرآن للأصفهاني: ج ۱، ص ۳۷۹
۴) مفردات القرآن للأصفهاني: ج ۱، ص ۳۸۴

**دَ ځمکې صحُون اوخرابۍ څه ده په دې کښې دخلقو دګناهونو څه دخل کيدې شي:** دَاصلاح ،پشان ،دَفساد هم دوه قسمونه دي،ظاهري اوباطني،ظاهري اصلاح ئې داده چه زمکه دَاوبوپشان نۀ دومره نرمه ده چه دَسره پرڅه څيزتينګيدې نشي،اونۀ دَاوسپنې پشان دومره سخته ده چه کنستې نشي،بلکه په درميانه حال کښې ئې داسې جوړه کړيده چه انسانان ئې په نرمولوسره،پکښې کر، کرونده کولې شي،فصل ،اونې،ميوې اوباغونوه پکښې رازرغونولې شي،په کنستوسره پکښې ګوهيان [خاهان]،تاخانې،نهرونه اوولې جوړولې شي،مکانات ودپاره پکښې مضبوط بُنيادونه اېښودې شوی دي،بيا په زمکه کښې دننه اوبهرئې داسې سامانونه پيدا کړيدي چه زمکه ورسره آباده وي،سبزيانې،ميوې اونې بوټي وغيره پکښې زرغونيږي،بهرئې پکښې هوا ،رڼا ،يخنې اوګرمي پيدا کړه،دوريځو په ذريعه ئې پرِ اوبه راوورولې چه اونې بوټي پرِ زرغون شي، دَ مختلفو ستورواوسيارويخې اوګرمې چپې ئې په دې راګوذارکړې چه په هغې سره ئې په ګلونه او ميوؤ وغيره کښې رنګونه اورسونه راپيدا کړل- الله تعالى انسان ته عقل،پوهه وراوبخښله چه دَهغې په ذريعه دَزمکې نه خام اوکچه څيزونه لرګي،اوسپنه،تانبه،پيتل،سلور وغيره په صفاکولواويوبل سره په يوځائې کولوسره ترقسماقسم څيزونه جوړوي،داټوله دَزمکې دَظاهري اِصلاح تنداره ده چه الله تعالى په خپل کامل قُدرت سره رابرخيره کړيده-

دَزمکې باطني اورُوحاني اصلاح،دَالله تعالى په ذکر،الله تعالى سره په تړون لرلو اودَهغه په فرمانبرداري کولواړه لري،دې دپاره خوالله تعالى اول دَهرانسان په زړۀ کښې دَالله تعالى دَياد او فرمانبرداري ماده اوجذبه اېښې ده لکه فرمائي: ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ اودَانسان دَخواؤشا په هرې ذرې کښې الله تعالى په خپل کامل قُدرت اوپه عجيبه کاريګرئ سره داسې تنداري اېښې دي چه دَهغې په ليدوسره دَمعمولي عقل اوپوهې خاوندهم ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ دَخُلې نه اوباسي، دې نه علاوه ئې خپل رسولان راوليږل کتابونه ئې نازل کړل اودَدې په ذريعه ئې دَخالق اومخلوق ترمنځه ترمنځه دَتړون راوستوپوره اَنتظام اوکړو-

هرکله چه په دې شان دَزمکې ظاهري باطني پُوره اصلاح الله تعالى اوفرمائيله نوحُکم ئې اوفرمائيلوچه تاسوئې اوس مۀ خرابوئ ځنګه چه دَاصلاح ظاهري اوباطني دوه قسمونه دي دغه شان دَفساد هم دغه دوه قسمُونه [ظاهري اوباطني]دي چه دَالله تعالى په دې اِرشادسره دَهغې دواړو بنديزاوممانعت اوکړې شو-

اګرچه دَقرآن کريم اودرسول الله ﷺ اصلي وظيفه اوفرضِ منصبي باطني اصلاح کول اود باطني فساد نه بندول دي خوهرکله چه ظاهري اوباطني اصلاح اوفساد يوبل سره مضبوط تړون لري ځکه الله تعالى دَظاهري فساد نه هم ممانعت اوکړوولې چه مثلاً غلا ،ډاکه ،قتل اوهرقسم بې حيائ په دُنيا کښې هرقسم ظاهري اوباطني فساد پيدا کوي،په دې وجه ئې په داسې څيزونو باندې په خصوصيت سره سختې پابندئ اولګولې اوسختې سزاګانې يې پرِ مقرر کړې-په عامو ګناهونو اوجرمونوئې هم ځکه پابندئ اولګولې چه دَ عامو ګناهونو او جرمونو نه ظاهري فساد راولاړيږي اوچرته ترباطني فساد هم راولاړيږي-که ژورنظر اوکړې شي نومعلومه به شي چه ظاهري فساد د باطني فساد سبب جوړيږي اوهرباطني فساد نه ظاهري فساد هم راولاړيږي-

ظاهري فساد نه باطنِي فساد پيدا کيدل خوځکه ښکاره دي چه دا ،دَالله تعالى دَفرمانبرداري خلاف ورزي کول دي چه ددې دوئيم نُوم فسادِ باطني دې البته باطني فساد ،دَظاهري فساد دپاره

سبب جوړيدل داسې يو څيزدې چه دغور، فکر کولو ضرورت پکښې شته ولې چه داپه غور فکر سره پيژندلې شي وجه ئې داده چه داټول جهان اودې هريو څيز، که لوئې وي اوکه ور کوټې دَ، مالک الملک والملکوت، جوړکړی دی اودهغه دفرمان تابع دی، ترڅو چه انسان دَالله تعالی فرمانبردارپاتې کيږي نوداټول څيزونه دَانسان صحيح صحيح خدمتګاران وي، خوهر کله چه انسان دَالله تعالی نافرمانی کول شروع کړی نودَدنياټول څيزونه په پټه باند دده نافرمانه جوړشي ولې چه انسان ئې دَسترګوپه نظرسره نشي ليدلې ليکن دَدې نخښې نشانات اوخصوصيات چه اوکتې شي اوپه هغې کښې غورفکراوکړې شي نوپخپله دَدې ثبوت په بديهي ډول ملاؤشي.

هسې خويه په ښکاره دَدنياټول څيزونه دَانسان په استعمال کښې راځي، اوبه ئې چه خيتې ته ورشي نوتنده ئې ماتوی، دَخوراک څيزئې چه دَستونی وربښکته شي نولوږه ئې ماتوی، لباس اومکان ئې دګرمۍ، يخنۍ نه دَمحفوظ کولوآرام ورکوی خوکه انجام اونتيجې ته ئې اوکتې شي نو داسې معلوميږي چه په دې کښې هيڅ يو څيزخپل کارنۀ پُوره کوی، ولې چه ددې څيزونو دَ استعمالولو اصلي مقصد دادې چه انسان ته آرام اوراحت نصيب شي، پريشانۍ اوتکليفونه ئې لرې شي اورنځورتيانه روغ شي.

اوس چه دَدُنياحالاتوته اوکتې شي نودآرام اوراحت اوروغتياسامانُونه اګرچه بيحده زيات ښکاری خوبياهم انسانان پريشانه، په نوؤ نوؤرنځونوکښې اخته نوؤنوؤمصيبتُونوکښې راګير دی، لوئې نه لوئې انسان دَتسلۍ اواطمينان ژوندنۀ شي تيرولې بلکه دَدې سامانُونوپه بيا بيا زياتيدو سره دَدغې انسانانو مُصيبتُونه آفتُونه اوپريشانۍ و رسره په مخه زياتيږي.

*مرض بڑھتا گیا جُوں جُوں دوا کی۔*

نننی انسان لره دَبجلۍ براس اونوروماد ی رنګينوچه نشه کړيدې که دَدې څيزونونه بيرته سوچ اوکړی نوورته به معلومه شي چه زمونږ ټول کوششونه، ټول مصنوعات، اوايجادات زمونږ دَاصل مقصد، اطمينان اوآرام حاصلولوکښې فيل اوناکام پاتې شويدی، دَدې وجه سوا دَمعنوی اوباطنی سبب نه بل هيڅ نشي کيدې چه هرکله مونږه دَخپل رب اومالک نافرمانی اختيار کړه نودَهغه مخلُوقاتوهم په معنوی ډول زمُونږه نافرمانی شروع کړه.

چو ن ازو گشتی همه چیزاز تو گشت

**توجمه:** چې کله ته دهغه نه واوښتې نو ټول څيزونه ستا نه واوښتل

چه دازمونږته حقيقي آرام اوراحت نۀ راکوی، چنانچه مولتارُومی فرمائيلی دی –

خاک وبادوآب وآتش بنده اند      بامن وتومُرده باحق زنده اند

[خاوره، هوا، اوبه اواور ټول دَالله تعالی بندګان دی- اګرچه مااوتاته مړه ښکاری خودَالله تعالی په نزدژوندی دی] دهغه دَفرمان تابع دی.

خلاصَه دکلام داشوه چه که په ژور نظرسره اوکتې شي نوهرګناه اودَالله تعالی نه غفلت اودَهغه هره نافرمانی، په دُنياکښې نۀ، صرف باطنی فسادپيداکوی بلکه ظاهری فسادهم دَهغې لازمی نتيجه ده لکه مولانا رُومی فرمائيلی دی –

ابرنايدازپئے منع زکواة      وزز ناافتدوباانددرجهات

[دَزکوة [عُشر] په نۀ اداکولو دَباران ورولوورېخې نۀ راځي، اوپه زناسره په جهان کښې وباګانې راځي]

داځه شاعرانه سوچ نه دي بلکه قرآن اوحدیث هم دغسې وائي، لیکن دسزا ځه لږه غوند نمونه په دې دُنیا کښې دمرضونو، وباګانو، طوفانونو اوسیلابونووغیره په شکل کښې څرګندیږي ـ په دې بناد ﴿وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا﴾ په مفهوم کښې څنګه چه هغه جرمونه او ګناهونه داخل دی چه په ظاهري ډول تر په دُنیا کښې فساد پیدا کیږي، دغه شان هره نافرمانی دَالله تعالی نه بې پروا کیدل او دهغه نافرمانی کول هم په دې کښې شامل دی، همدغه وجه ده چه هم په دې آیت کښې وریسې فرمائی: ﴿وَادْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا﴾ [یعنی الله تعالی لره، سره دویرې او اُمید بلئ] یعنی په دې شان سره دعا کوئ چه دَنه قبلیدو ویره ئې هم کوئ او بل اړخ ته دَالله تعالی دَرحمت اُمید هم لرئ، چنانچه هم دا اُمید او ویره دَاستقامت په طریقه کښې دَانساني روح دوه وزرې دی چه دې سره هغه پرواز کوی اولوړې درجې حاصلوی

دَدې عبارت دَظاهرنه داسې معلومیږي چه اُمید او ویره، دواړه په برابره درجه کښې لرل پکاردی، او ځنې علماؤ داسې فرمائیلی دی چه مُناسب دادی چه په ژوند اوروغتیا کښې ویره دځکه غالبه لری چه په فرمانبرداریٔ کښې تر کوتاهی نه راځی، اودمرګ دَنزدې کیدو په وخت دَاُمید ځکه غالب لری چه اوس دَ عمل کولو طاقت یې رخصت شویدی هم یواځې د رحمت ایمد یې عمل پاتې شویدې، [بحرِ مُحیط]۔(۱)

اوځنې محققینوفرمائیلی دی چه اصل مقصد دادې چه دَدین په صحیح لار باند تینګ پاتې شی اوتل دَپاره الله تعالی فرمانبرداری کوی، هرکله چه دَانسانانو طبیعتونه مُختلف دی چاته دَغلبې دَویرې په وجه استقامت [تینګار] او همیشه دَپاره تابعداری دَالله تعالی نصیب کیږی، او چاته د غلبې دمحبت او د امید نه په دې بِناچاته چه په کوم حالت سره په دې مقصد کښې مدد حاصلیږی هم هغه د اختیار کړی۔

خُلاصه داشوه چه دَدُعا دوه آداب دَدې نه وړاند آیت کښې اوښودلې شو، یو دا چه دُعا دې په عاجزیٔ اوزاریٔ سره وی، بله داچه په پټه او په کراره دَوی، دادواړه صفتونه دَانسان ظاهری جُوثې سره تعلق لری، ولې چه زاریٔ نه مطلب دادې چه دَدُعا کولو په وخت کښې د خپل شکل دَفقیرانو او عاجزانو پشان جوړوی، دَخپل لوئیوالی اوبې پروایۍ تنداره دِنهٔ ورکوی، په پټه باند دَدُعا کولو تعلق هم خُلې اوژبې سره دې۔

په دې آیت کښې دَدُعا دوه نورباطنی آداب دااوښودلې شو چه تعلق ئې دَانسان زړهٔ سره دې، یو دَالله تعالی نه ویره او بل تر دَرحمت اُمید، یعنی داویره هم پکارده چه شاید زما دُعا قبوله نهٔ شی، او اُمید دَقبلیدوئې هم لرل پکاردی، ولې چه دَخپلو ګناهونو او خطاګانو نه بې فکره کیدل هم دَایمان نه خلاف دی او دَالله تعالی دَفراخ نعمت نه نااُمیده کیدل هم کُفردې، دَدُعا دَقبلیدو هله اُمید کیدې شی چه دَدې دواړو حالتونو په منځ منځ کښې وی۔

په آخر دَآیت کښې فرمائی: ﴿إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِنَ الْمُحْسِنِينَ﴾ [یعنی دَالله تعالی رحمت نیک عمل کوونکو ته نزدې دې] دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چه اګرکه دَدُعا په وخت کښې دَویرې او اُمید دواړه حالتونه لرل پکاردی بیاهم دَاُمید چاپېرې ځکه درونددوی چه دَرب العالمین اورحیم الرحماء په سخا او احسان کښې نهٔ څه کمې شته اونهٔ شومتوب او بخل، هغه دَدیرناکاره بنده

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۳۱۳

تردې چه دشیطان دعاهم قبلولې شی، البته ددعادنه قبلیدودتولونه لویه خطره دهغې بدعملۍ اودګناهونودسپیرتوب په وجه کیدې شی ځکه چه دالله تعالی رحمت نیکوکاروخلقوته نزدې دې- همدغه وجه ده چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دې چه ځنې خلق اوږده اوږده سفرونه کوی، خپل شکل لکه دفقیرانوجوړوی، دالله تعالی په وړاندې دعادپاره لاسونه پورته کوی خوهرکله چه خوراک څکاک اواغوستن ئې حرام دی نوددا سې کس دعاکله قبلیدې شی [مسلم ،ترمذی، دابی هریره نه](۱)

په بل حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه دبنده دعاترهغه وخته پورې په مخه قبلیږی ترڅوچه هغه دځه ګناه یاخپلولۍ پریښودو دعااونکړی اوتادی نۀ کوی، صحابه کرامو تر دتلوار باره کښې تپوس اوکړو چه ددې څه مطلب دې؟ وې فرمائیل چه داخیال ئې راشی چه دومره وخت نه دعاکوم اوتراوسه پورې قبوله نشوه اوپه دې شان ناامیده شی اودعاغوښتل پریږدی [مسلم ،ترمذی]-(۲)

په یوحدیث شریف کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه الله تعالی نه ددعاغوښتلو په وخت کښې هیڅ شک ددې په قبلیدو کښې مۀ کوئ-(۳)

مطلب دادې چه دالله تعالی بې انتهارحمت په مخ ته راوله اوټینګ یقین لره چه دعابه م ضرور قبلیږی خوداویره لرل ورسره بې سمونه نۀ دی چه شاید زماګناهونه ددعاپه قبلیدو کښې خنډ جوړشی، وصلی الله تعالی علی نبینا وسلم-

| وَهُوَ | الَّذِیْ | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه | هغه ذات دې | | | | |
| او الله ﷻ هغه ذات دې | | | | | |
| یُرْسِلُ | الرِّیٰحَ | بُشْرًاۢ | بَیْنَ یَدَیْ رَحْمَتِهٖ ؕ | حَتّٰۤی | اِذَآ |
| چې رالیږی | هواګانې | زیرې | مخکښې درحمت خپل نه | تر دې پورې | چې کله |
| چې دخپل[باران]رحمت نه مخکښې بادونه دزیرې په طور رالیږی | هرکله چې دغه [بادونه] | | | | |
| اَقَلَّتْ | سَحَابًا | ثِقَالًا | سُقْنٰهُ | لِبَلَدٍ | مَّیِّتٍ |
| اوچتې کړې دغه هواګانې | ورځې | داوبونه ډکې اوبزو مونږه هغه | | یوښارته | چې مړوی |
| داوبوډکې ډکې وریځې اوچتې کړې | نومونږ ئې یو مړې اوچې علاقې ته اولیږیوا | | | | |
| فَاَنْزَلْنَا | بِهِ | الْمَآءَ | فَاَخْرَجْنَا | بِهٖ | مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ |
| نو نازلې کړومونږه | په هغې سره | اوبۀ | نوراوباسو مونږه | په دغه اوبوسره | دهرقسم میوونه |
| نو باران ترې اوروؤ | .......نو رنګ رنګ میوې پرې راپیدا کړو | | | | |

۱) صحیح مسلم، کتاب الزکاة، باب بیان اسم الصدقة یقع علی کل نوع الخ: ج ۱، ص ۳۲۶ وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب ومن سورة البقرة: ج ۲، ص ۱۲۸

۲) صحیح مسلم، کتاب الذکر والدعاء، باب بیان أنه یستحب للداعی الخ ج ۲، ص ۳۵۲، وجامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب قبیل أبواب المناقب: ج ۲، ص ۲۰۱

۳) داسے مضمون والا حدیث په صحیح البخاری، کتاب الدعوات، باب لیعزم المسئلة الخ: ج ۲، ص ۹۳۸ کښې اوګورئ-

كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ۝ وَالْبَلَدُ

دارنګي | راوباسو مونږه | مړي | دپاره ددې | چې تاسو نصیحت واخلئ | اوزمکه

همداشان مونږ مړي راژوندي کوو | دې دپاره چې تاسو ددې نه سبق واخلئ | اوزرخیزه زمکه

الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهٗ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِيْ خَبُثَ

پاکه | راوځي | بوټي دهغې | په حکم | درب خپل سره | اوهغه زمکه | چې خرابه وي

دالله ﷻ په حکم سره خپلې شینکې راوباسي | اوچې کومه [زمکه] خرابه وي

لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ؕ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ

نه | راوځي | مګر | لږه | دارنګي | مونږه بیا بیا بیانوو | آیتونه | دپاره دهغه قوم

هغه صرف ناقصه پیداوار زرغونوي | ..........مونږ دغه شان بیابیا خپل آیاتونه بیانوودپاره دهغه قوم

يَّشْكُرُوْنَ۝ ؑ

چې شکر اوباسي

چې شکراوباسئ |

## آسان ترجمه قرآن

او هم هغه (الله) دې چه دخپل رحمت (یعنی باران) نه مخکښې هواګانې رالیږي چه (د باران) خوشخبري ورکوي، تر دې چه هغه درنو وریځو لره اوچتوي او مونږ هغه مړي زمکې طرف ته بوځو . بیا هغلته اوبه راوروؤ ، او دهغې په ذریعه هر قسم میوې راوباسو دغه شان به مونږ مړي هم راژوندي کوؤ۔ کیدې شي (دې خبرو باندې غور کولو سره) تاسو سبق حاصل کړئ او کومه زمکه چه ښه وي د هغې پیداوار خو دخپل رب په حکم سره راووځي ، او کومه زمکه چه خرابه وي د هغې نه ناقص پیداوار نه سوا نور څه نه راووځي دغه شان مونږ خپلې نښې اړوو را اړوو ، (خو) هغه خلقو دپاره چه څوك قدر کوي.

## خلاصه تفسير

﴿وَهُوَ الَّذِيْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًاۢ بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ؕ﴾ او هغه [الله ﷻ] داسې ذات دې چې دخپل درحمت باران ورولو نه وړاندې هواګانې لیږي چې هغه [دباران ورولو امید پیداکړي او زړهٔ لره] خوشحاله کړي ﴿حَتّٰۤى اِذَاۤ اَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ﴾ تر دې پورې چې کله هغه هواګانې درنې وریځې پورته کوی نو مونږ دا وریځې یو خشکې زمکې ته اوشړو ﴿فَاَنْزَلْنَا بِهِ الْمَآءَ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ﴾ بیا ددې وریځو نه اوبه وروو بیا دې اوبو سره قسماقسم میوې راؤباسو [چې ددې نه د الله تعالى توحید او قدرت مطلقه مړو لره ژوندی کیدل ثابتیږی په دې و جه ئې اوفرمائیل چې] ﴿كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ۝﴾ داشان [د قیامت په ورځ] مونږ مړو لره [زمکې نه] راؤباسو او هغه او دروؤ [دا ټول مو په دې و جه واؤرول] چې تاسو پوهه شئ [او د قرآن پاك او د رسول کریم ﷺ هدایت اګر چې ټولو دپاره عام دې خو ددې نه فائده پورته کولو والا خلق ډیر کم دی ، ددې مثال د هغه باران پشان دې چې باران خو په هره زمکه باندې وریږی خو ونې او پټې او فصلونه هرځائې کښې نه وی صرف په هغه زمکو کښې پیدا کیږی چې په هغې کښې صلاحیت وی، په

دي وجه فرماني چې] ﴿وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ﴾ کومه زمکه چې پاکه وي دهغې پيداوار خو د الله تعالی په حکم سره ښه راوزي ﴿وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا﴾ او کوم چې خراب وي د هغې پيداوار [اګرچې راوزي خو] ډير کم راوزي ﴿كَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ﴾ داشان مونږ [هميشه] د لائلو ره رنګ په رنګ بيانوو [مګردا ټول] دهغه خلقو دپاره [فائده مند دي] چې [ددې] قدر کوي

## معارف او مسائل

په تيروشوو آيتونو کښې الله تعالی دَخپلو خاص، خاص، اولو يولويو نعمتونو بيان کړيدې، چه پکښې دآسمانونو، زمکې، شپې، ورځې، نمر، سپوږمۍ اودعامو ستورو دَپيدا کولو، دَدې څيزونو دانسان دَضرورياتو برابرولو اوددوئ په خدمت کښې دَلګياپاتې کيدو بيان هم راغلو، اوپه دې سره ئې خبرداري ورکړو چه هرکله زمونږ دَټولو ضرورياتو اوراحتونو انتظام کوونکې يواځې پاک ذات دې، نوپه هر حاجت او ضرورت کښې دعاغوښتل هم دَهغه نه پکاردي اوهغه ته رجوع کول دَخپل ځان کاميابی ګڼړل پکاردي-

اوس دَدې آيتونو ځنې په رومبی آيت کښې هم دَدغه قسم لويو لويو نعمتونو بيان دې په کومو چه دانسان اودزمکې ټول مخلوق ژوندا ره لري، لکه باران اوپه دې سره دَپيدا کيدونکو اونو، فصلونو، سبزياتو، ترکاريانو وغيره [بيان دې] فرق دومره دې چه رومبو آيتونو کښې دَهغه نعمتونو بيان وو چه عالم بالاسره تړون لري اوپه دې کښې دَهغه نعمتونو بيان دې چه لاتدينۍ دُنيا سره تړون لري [بحر محيط] -(١)

په دوئيم آيت کښې يوه خاص خبره دابښودلې شويده چه زمونږه داعظيم الشان نعمتونه اګرچه دَزمکې په هره برخه کښې عام دی، باران په دريابونو، سمندر، غرونو، بنجرو اوخرابو زمکواوپه اصيلو آبادو زمکوباند يوشان وريږي-خو فصل، اونې، بوټي اوسبزي په هغه زمکه کښې پيدا کيږي چه پکښې دَرازرغنولو صلاحيت اواستعداد وي، کاڼرجنی اوشګلنې زمکې دَدې باران نه فائده نشي حاصلولې.

په رومبی آيت کښې داتيجه راوښکلې شوه اواوښودلې شو چه کوم پاک ذات مړې زمکې ته دَودې کولوژوند ورکوي هغه لره داڅه مُشکله ده چه دَنيشت نه شته کړې اوژوندې کړې انسان مړشی بياورته ژوند ورکړي، داتيجه ئې په دې آيت کښې په ډاګه رابرڅيره کړه، دوئيم آيت نه داتيجه راوښکلې شوه چه دَالله تعالی له اړخه راغلې هدايت، دآسماني کتابونو، دَپيغمبرانو ﷺ بيادوئ دَنائبانو، علماؤ مشائخو تعليم اوتربيت دباران پشان، هرانسان دَپاره عام دی، ليکن څنګه چه دَباران رحمت نه هره زمکه فائده نشي پورته کولې دغه شان دَدې روحاني باران فائده هم هغه کسان حاصلولې شي څوک چه دَدې دَپاره جوګه وي اودَچاړونه چه دکاڼرجنې اوشګلنې زمکې پشان دَودې کولوجوګه نه وي، هغه سره دَداګيز هداياتو اوواضحو آيتونو په خپلې ګمراهۍ باند ټينګ وي-

دې نتيجې ته ئې دَدوئيم آيت په آخري جُملة کښې داسې اشاره اوفرمائيله: ﴿كَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ﴾ [داشان مونږه خپل دليلونه په قسما قسم طريقوسره بيانوو هغه خلقوته چه قدر کوي]-مطلب دادې چه اګرکه په واقع کښې دابيان ځوټولو دپاره وو مګر دَنتيجې په ډول دا، هغه

---
(١) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآيات المذكورة: ج ۵، ص ۳۲۶

خلقو دپاره مفید ثابت شو څوک چه دَدې جوګه وو، او دَدې په قدر، عزت پوهیدل، په دې شان داده وه آیتونه دَمبدا او معاد [دُنیا او آخرت] په هغه مسئلو مشتمل دی چه لوئې شان لري، اوس دَدې دوارو آیتونو په تفصیل باند پوهیدو دپاره دَرومبی آیت ارشاد مخې ته راولې، فرمائې: ﴿وَهُوَ الَّذِيْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ﴾ دلته رياح دَريح جمع ده، دَدې معنى هواده، دَ، بشراً، معنى خوشخبري، زيرې او رحمت نه مراد باران دَرحمت دې، [يعنى هم الله تعالى دې چه ليږي دَباران رحمت نه وړاند هواګانې، خوشخبرئ ور کولو دپاره]۔

مطلب دادې چه الله تعالى دَخپل عادت مطابق دَباران نه وړاند داسې يخې هواګانې ليږي چه دَهغې نه پخپله هم انسان ته تازګي حاصليږي، ګوياکښې دادَباران راتلو يو قسم زيرې ور کول وي۔ په دې بناداهواګانې دوه نعمتونه لري يوداچه پخپله انسانانو، نورو حيواناتو او عام مخلوقاتو دپاره هم فائده من وي او دَباران دَراتلو نه زيرې هم راوړي، ولې چه انسان يو نازک مخلوق دې دَدۀ ډير ضرورتونه په باران باند اړه لري، رومبې نه دَباران په خبرومو ند و سره هغه خپل انتظام کوي، دې نه علاوه پخپله ددۀ وجود اودَدۀ سامان، باران لره نشي زغملې، دَباران په نخښو ليدو سره هغه دَخپل خان او خپل سامان دَحفاظت کولو انتظام کوي۔

بيا فرمائې: ﴿حَتّٰۤى اِذَاۤ اَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا﴾ دَسحاب، معنى وريځ ده او ثقال، دَثقيل جمع ده، معنى ئې درونده ده، دَټولې جملې معنى داشوه چه کله دغه هواګانې درنو وريځولره راپورته کړي کومې چه دَاوبونه ډکې وي او زرګونه منه دغه درنې وريځې پورته خيژوي، څومره دَحيرانتيا خبره ده چه په دې ټول کار کښې مشين ته ضرورت نۀ وي نۀ پکښې څوک انسان خواري کوي، خالص دَالله تعالى په حکم، سمندرنه براسونه [مون سون] پورته روان شي، هلته تر وريځ جوړه شي، اودَ زرګونو بلکه دَلکونو ګيلنو اوبونه ډکې دغه وريځې پخپله دَهوا په جهاز سورې شي او آسمان ته اوخيژي۔

بيا فرمائې: ﴿سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ﴾ دَ، سوق معنى څه څناوربو تلل اوچلول دی دَ، بلد معنى ښار او آبادي ده، دَميت معنى مړده۔

دَټولې جملې معنى داشوه چه هرکله هواګانې، درنې وريځې اُوچتې کړي نو مونږه دغه وريځې چلوؤ د يو مړښار اړخ ته — دَمړښار نه مراد هغه ځايونه دي چه دَاوبو نيشتوالي په وجه وړانيږي — دلته دَيوې عامې زمکې په ځائې په خصوصيت سره دَښار او آبادئ ذکر کول په دې وجه مناسب معلوم شو چه دَباران نه اصل مقصد دَزمکې خړوبول دی چه انسانان تر خپل ضروريات پوره کړي کوم چه په ښار کښې اوسيږي، ورنه دَځنګل خيرازه کيدل پخپله څه مقصد نۀ دې۔

تردې پورې دَذکرشوی آيت دَمضمون نه څو اهم څيزونه ثابت شو، اول دا، چه باران دَوريځونه وربږي، څنګه چه ليدلې شي، په دې بنا به دَسماء، نه مراد هم وريځ وي چرته چه آسمان نه دَباران وريدو بيان راغلې دې، او دا هم څه لرې خبره نۀ ده چه دَدريابی او سمندری مون سون په ځائې نيغ په نيغه دَآسمان نه وريځې راپيداشي او باران تر راووربږي۔

دوئيمه داخبره ده چه يو خاص اړخ او خاص زمکې ته تلل دَوريځې خالص دَالله تعالى په حکم سره وي، هغه چه کله غواړي چرته ئې غواړي، څومره ئې غواړي دَباران ورولو حکم ورکوي، او وريځ ئې حکم منې او دَحکم تعميل ئې کوي چنانچه داسې هرځائې کښې ليدلې شي، چه ډير کرته په يو ښار، آبادئ او په زمکه باند وريځې خورې وي، هلته دَباران ضرورت هم وي ليکن دغه وريځې

نه یو ځاځکې باران هم راتونې نشي بلکه هلته تر باران وریږي چرته چه د الله تعالی حُکم اوشي، د هیچاوَس نشي رسیدې چه بل ځائې کښې تر باران [اوبه] حاصل کړي-

زړواونوو فلسفیانو د مون سون او هوا ګانو د حرکتونو د پاره څه ضابطې او اصول راؤښکلې دي په دغې بناهغوئ داښائ چه فلانې راپورته شوې مون سون به فلانی اړخ ته ځي هلته به په دومره اندازکښې وریږي چنانچه د موسمیاتو محکمې په هر ملک کښې د دې د پاره جوړې شویدی لیکن تجربه ګواه ده چه د دغې محکمې داسې خبرونه اکثر غلط خیژي، ولې چه کله د الله تعالی حُکم دَدې په عکس وی نو دَدوئ ټولې ضابطې او قاعدې بیکاره ثابتې شی، مون سون او هوا ګانې دَهغې نه په بل اړخ روانې شي او د موسمیاتو محکمې ورته همداسې ګوري-

دې نه علاوه فلسفیانو چه کومې قاعدې او ضابطې دَهوا ګانو دَحرکت دَپاره تجویز کړیدی هغه هم دَدې خلاف څکه نهٔ دی چه دَوریځو تګ راتګ دَالله تعالی دَحُکم تابع دی، ولې چه دَالله تعالی عادت په هر کار کښې هم دادې چه دَالله تعالی حُکم دَطبعی اسبابو په پردو کښې ظاهریږی، دغې طبعی اسبابو نه انسان څه قاعده او ضابطه جوړوی ورنه حقیقت هم هغه دې څنګه چه حافظ شیرازی فرمائیلی دی-

کار زُلفِ تُست مشک افشانی اما عاشقان    مصلحت راتهمتے بر آهوئے چین بسته اند

[دَمشکو خوشبوئی خورول ستا دَزولفو کار دې خودَ عاشقانو په یکښې څه رازوی چه دائې دَچین په هوسو پورې تړلې دی]-

وریسې فرمائی: ﴿فَأَنزَلْنَا بِهِ ٱلْمَآءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ مِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ﴾ [یعنی مُونږه په دغې مړبښار کښې اوبه راوروو بیاپه دې سره هر قسم میوې او ګُلونه رابرخیره کوؤ]-

په آخر دَآیت کښې فرمائی: ﴿كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ ٱلْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ [یعنی دَقیامت په ورځ به مُونږ دغه شان مړی هم راؤباسو شاید چه تاسو پوهـ شئ] مطلب دادې چه څنګه مومره زمکه ژوندئ کړه، دَدې نه مو ګُلونه او میوې راؤښکلې، دغه شان به دَقیامت په ورځ مړی دوباره ژوندی کړو او راپابه ئې سؤ، او دَامثالونه مو څکه بیان کړیدی چه تاسو ته دَسوچ، فکر، غور کولو موقعه ملاؤشي-

په روایت دَحضرت ابی هریره ﷺ رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه په قیامت کښې به شپیلۍ دوه ځل پوک وهلې شی، په رومبی ځل به ټول جهان فناشی هیڅ څیز به ژوندې پاتې نشي او په دوئم ځل پوک وهلو به سره دوباره نوې جهان پیداشي، هم په دغه حدیث کښې راغلي دي چه دَدواړو ځلو پوک وهلو ترمینځه به دَڅلویښتو کالو فاصله وی چه په هغې کښې به په مخه دَدواړو ځلو پوک وهلو ترمنځه به دَڅلویښتو کالو فاصله وی چه په هغې کښې به په مخه باران وریږي- په دَغه څلویښتو کالو کښې به دَهر مړانسان، څاروؤ او حیواناتو دَبدنونو برخې رایوځائې شی او دَهریو پوره جوثه به تر جوړه شي، په دوئیم ځلِ پُوک وهلو سره به په کښې روحونه راشی اوژوندی شوی به راپاسی، دَدې روایت اکثره برخه په بخاری او مُسلم کښې موجودده، ځنې برخې دَدې حدیث دَابی داؤد د کتاب البعث نه راغستې شویدی-(۱)

په بل آیت کښې فرمائی: ﴿وَٱلْبَلَدُ ٱلطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُۥ بِإِذْنِ رَبِّهِۦ ۖ وَٱلَّذِى خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا﴾ نکد، داسې څیزونو ته وئیلې شی چه بیفائدې او لږوی، دَدې معنی داشوه چه اګر که باران خوبه زمکه یوشان

۱) صحيح البخاري، كتاب التفسير، باب ونفخ في الصور الخ: ج ۲، ص ۷۱۱ وصحيح مسلم، باب ما بين النفختين: ج ۲، ص ۴۰۶، ۴۰۷، وسنن ابي داود، كتاب السنة، باب في ذكر البعث والصور والشفاعة: ج ۲، ص ۶۵۲

وریږي لیکن زمکو کښې فرق دې په اعلیٰ او ښوزمکو کښې دَدې په ذریعه میوې، فصلونه او فائده مند نوردېر خیزونه راپیدا کیږي، په سخته بنجره زمکه کښې اول خوځه نهٔ راټوکیږي که راټوکیږي نو په ډیر کم مقدار کښې او بیا بیکاره هم وي-

په آخر د آیت کښې فرمائي: ﴿كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ﴾ [یعني مُونږه دَخپل قُدرت دلیلونه په بیل بیل شان سره بیانوُو هغې خلقو دَپاره چه قدر کوونکي دي] په دې کښې د خبرې ته اشاره ده چه څنګه دَباران رحمت فیض عام دې خوفائده تراصیله او ښه زمکه اخلی دغه شان دپروردګار دَهدایت او واضح نَشاناتو فیض هم دَټولو انسانانو دَپاره عام دې خوفائدې ترې یواځې هغه خلق حاصلوي چه شکر ګذار او قدر پیژندونکي دي-

لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ

| په تحقیق سره | اولیږو مونږه | نوح ﷺ | قوم خپل ته | نواووئیل هغه

| مونږ نوح ﷺ دهغه قوم ته اولیږلو | ..........................نوهغه ورته اووئیل

يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اِنِّيْ

اے زما قومه | بندګي کوئ دالله | نشته تاسولره | بل خدائي | بې دهغه نه | بیشکه زهٔ

اې زما قومه صرف دالله ﷻ عبادت کوئ | دهغه نه سوا ستاسو بل څوک معبود نشته | بیشکه زه

اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝ قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖٓ

یریږم | په تاسو | دعذابه دورځې | لوئې نه | اووئیل | سردارانو | دقوم دهغه نه

په تاسو باندې د الله د لوئې ورځې د عذاب نه یریږم | ..........................دهغه دقوم سردارانو اووئیل چې

اِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ

بیشکه مونږه | وینو تالره | په ګمراهئ | ښکاره کښې | هغه اووئیل | اے زما قومه | نشته

مونږ ته خو داسې ښکاري چې ته په ښکاره ګمراهئ کښې اخته ئې | هغه اووئیل اې زما قومه

بِيْ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝

په ما باندې | ګمراهي | ولیکن زهٔ | رالیږلې شوې یم | دطرفه درب العالمین نه |

په ما کښې ذره برابر غلطي نشته | او زه د مخلوق د پالونکي د طرفه پیغمبر یم

اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَاَنْصَحُ لَكُمْ وَاَعْلَمُ

زهٔ رسوم تاسوته | پیغام | درب زما | اونصیحت کوم زهٔ | تاسوته | او ښهٔ پوهیږم زهٔ |

تاسوته دخپل رب پیغامونه دررسوم | .اوستاسو خیرخواه یم | .........او ماته د

مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ

دطرفه دا الله نه | په هغه څه | چې تاسو پرې نه پوهیږئ | آیا تعجب کوئ تاسو | په دې خبره چې

الله ﷻ دطرفه هغه خبرې معلومې دي | چې تاسو دهغې نه خبر هم نه یئ | آیا تاسو په دې خبره تعجب کوئ

| جَآءَكُمْ | ذِكْرٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | عَلٰى رَجُلٍ | مِّنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| راغي تاسوته | ذکر | دطرفه درب ستاسونه | په يوسړي باندي | له تاسونه |

چي تاسوته دخپل رب دطرفنه ستاسوپه قوم کښي په يو سړي دنصيحت خبرې راغلی دی

| لِيُنْذِرَكُمْ | وَلِتَتَّقُوْا | وَلَعَلَّكُمْ |
|---|---|---|
| دپاره ددې چې اويروی تاسو | اودپاره ددې چې پرهيزګاران شئ تاسو | اودپاره ددې چې په تاسو |

دې دپاره چې تاسودعذاب نه اويروی | اودې دپاره چې تاسو پرهيزګارجوړشئ | او دې دپاره چې

| تُرْحَمُوْنَ ۝ | فَكَذَّبُوْهُ | فَاَنْجَيْنٰهُ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| رحم اوکړې شي | خو هغوئ دروغ اوګڼړو هغه | نو بچ کړومونږه هغه | اوهغه کسان |

په تاسو رحم اوشي | خو هغوئ نوح ﷺ دروغژن اوګڼړلو | نومونږ هغه ته او د هغه سره

| مَعَهٗ | فِي الْفُلْكِ | وَاَغْرَقْنَا | الَّذِيْنَ | كَذَّبُوْا |
|---|---|---|---|---|
| چې دهغه سره وو | په کشتئ کښې | اوغرق کړل مونږه | هغه خلق | چې دروغ ئې ګڼړلي وو |

په کشتئ کښې ناست ټولو ملګرو ته نجات ورکړو | اوچاچې زمونږ آيتونه دروغ ګڼړلي وو | هغوئ مونږ غرق کړل

| بِاٰيٰتِنَا | اِنَّهُمْ كَانُوْا | قَوْمًا عَمِيْنَ ۝ |
|---|---|---|
| آيتونه زمونږ | بيشکه چې هغوئ وو | قوم ړوند |

دوئ يقيني طور سره [په زړونو باندي] ړانده شوی وو

## آسان ترجمه قرآن

مونږ نوح علیه السلام خپل قوم ته ليږلې وو نو هغه وئيلي وو چه: اې څما قومه! دالله تعالیٰ عبادت وکړئ دهغه نه سوا ستاسو بل څوک معبود نشته. يقين وکړئ ماته سخته خطره ده چه تاسو باندې يو زبردست عذاب رانشي دهغه د قوم سردارانو ووئيل چه "مونږ خو په يقيني طور ګورو چه ته ښکاره ګمراهئ کښې ئې. نوح علیه السلام جواب ورکړو چه اې څما قومه! نشته دې په ما باندې څه ګمراهي مګر څه د رب العلمين ليږلې شوې پيغمبر يم. څه تاسو ته د خپل رب پيغامات رسوم، او ستاسو خيرخواهي غواړم. او ماته دالله دطرف نه د داسې خبرو علم دې چه تاسو ته د هغې څه پته نشته آيا تاسو دې خبرې نه تعجب کوئ چه ستاسو د رب نصيحت د يو داسې سړي په ذريعه تاسو ته رارسيدلې دې چه تاسو نه دې دې دپاره چه هغه تاسو خبردار کړي، او چه تاسو د بدعملئ نه بچ شئ او دې دپاره چه تاسو باندې (دالله) رحمت اوشي؟ بيا هم دوی نوح علیه السلام لره دروغژن کړو. نو مونږ هغه لره او کشتئ کښې د هغه ملګرو لره خلاصې ورکړو او هغه ټول خلق مو غرق کړل کوم چه څمونږ آيتونه دروغژن کړي وو. يقيناً هغه خلق ړانده وو.

## خلاصه تفسير

﴿لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ﴾ مونږ نوح [علیه السلام] لره [پيغمبر جوړ کړو] او دهغه قوم طرفته مو اوليږلو ﴿فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ﴾ نو هغوئ [دې قوم ته] اوفرمائيل چې اې زما قومه تاسو [صرف] د الله ﷻ عبادت کوئی دهغه نه سوا ستاسو معبود نشته دې [او د بتانو عبادت

پریږدئی د کوم نومونه چې په سورة نوح کښې دی ود ، سواع ، او یغوث او یعوق او نسر] ﴿إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٖ﴾ ما ته په تاسو باندې [زما د نه منلو په صورت کښې] د یو لوئې [سختې] ورځې د راتلو اندیښنه ده [چې هغه د قیامت ورځ ده یا د طوفان ورځ ده] ﴿قَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِهِۦٓ إِنَّا لَنَرَىٰكَ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ﴾ د هغه د قوم څه مالداره خلقو اووئیل چې مونږ تا لره ښکاره غلطۍ کښې [اخته] وینو [چې د توحید تعلیم کوئې او د عذاب نه ویرول کوئې] ﴿قَالَ يَٰقَوۡمِ لَيۡسَ بِي ضَلَٰلَةٞ وَلَٰكِنِّي رَسُولٞ مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ هغوئ [په جواب کښې اوفرمائیل چې ائې زما قومه ما کښې هیڅ غلطی نشته دې لیکن څه د پروردګار د طرفه [الیږلې شوې] رسول یم [هغه ذات ما ته د توحید رسولو حکم راکړې دې په دې وجه خپل منصبی کار کوؤم چې] ﴿أُبَلِّغُكُمۡ رِسَٰلَٰتِ رَبِّي وَأَنصَحُ لَكُمۡ﴾ تاسو ته دخپل پروردګار پیغام [او احکام] رسوم [او په دې رسولو کښې زما هیڅ دنیاوی غرض نشته دې بلکه صرف] ستاسو خیرخواهی غواړم [ځکه چې په توحید کښې هم ستاسو فائده ده] ﴿وَأَعۡلَمُ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا تَعۡلَمُونَ﴾ او [د لوئې عذاب په ورځ کښې چې تاسو تعجب کوئی نو دا ستاسو غلطی ده ځکه چې] څه د الله تعالٰی د طرفه ددې امورو خبر لرم چې دهغې خبر تاسو ته نشته دې [نو ما ته الله تعالٰی وئیلی دی چې ایمان نه راوړلو سره به د عذاب لویه ورځ وی] ﴿أَوَعَجِبۡتُمۡ أَن جَآءَكُمۡ ذِكۡرٞ مِّن رَّبِّكُمۡ عَلَىٰ رَجُلٖ مِّنكُمۡ لِيُنذِرَكُمۡ وَلِتَتَّقُواْ وَلَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُونَ﴾ او [تاسو ته چې زما په رسول کیدو کښې شك دې اودا په دې وجه چې څه بشر یم لکه څنګ چې په سورة مؤمنون کښې تصریح ده [مَا هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيۡكُمۡ ۚ وَلَوۡ شَآءَ ٱللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةٗ ۚ الخ نو] آیا تاسو دې خبرې سره تعجب کوئی چې ستاسو د پروردګار دطرفه تاسو ته دیو داسې کس معرفت سره چې هم ستاسو د جنس نه دې [یعنی بشر دې] څه دنصیحت خبره راغله [هغه د نصیحت خبره داده چې کومه پورته ذکر شوه [إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ... الی قوله... يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ] چې هغه کس تاسو لره [د الله تعالٰی په حکم سره د عذاب نه] ویروی او دې دپاره چې تاسو [دهغه په ویرولو سره] ویریږئی او دې دپاره چې [د ویریدو په وجه مخالف پریږدئی او ددې په وجه به] په تاسو باندې رحم اوشی ﴿فَكَذَّبُوهُ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥ فِي ٱلۡفُلۡكِ﴾ پس [ددې دټول هر څه باوجود] هغه خلقو ددوئ تکذیب اوکړو نو مونږ نوح [عليه السلام] لره او چې کوم خلق دهغه سره په کشتئ کښې وو [د طوفان دعذاب نه] بچ کړل ﴿وَأَغۡرَقۡنَا ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَآ ۚ﴾ او کومو خلقو چې زمونږ آیتونه په دروغه ګڼړلی وو هغوئ مونږ [په طوفان نوح کښې] غرق کړل ﴿إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَوۡمًا عَمِينَ﴾ بیشکه هغه خلق ړانده شوی وو [د حق او باطل ، فائدې او نقصان باره کښې ئې هیڅ فکر نه کولو].

### معارف اومسائل

دسورت اعراف دشروع نه تردې پورې داسلام داُصولو ،توحید ،رسالت اوآخرت په مختلفو عنوانونو اودلیلونو سره ثابتول اوتابعداری سره دخلقو مینه پیدا کول اوددې په خلاف کولوسره وعید اوویرول وو، ددې په ترځ کښې دشیطان دګمراه کوونکی چل ول اوغولولو بیان وو، اوس داتمې رکوع نه تقریبًا ،آخر دسورت پورې دځو انبیاؤ عليهم السلام او ددوئ د امتونو ذکر دې چې په هغه کښې د ټولو انبیاء کرامو عليهم السلام متفقه طور باندې اصول مذکور ،توحید ،رسالت اوآخرت ته بلنه ورکول وو ،منونکولره داجر ،ثواب اونامنونکوخلقولره دقسماقسم عذاب اودهغوئ دبدانجام تفصیلی بیان تقریبًا په څوارلسو رکوع کښې راغلې دې، دهغې په ترځ کښې په سوونو اصولی،

او فروعي مسئلې هم راغلي دي، او موجوده قومونو ته د تیر شوؤ قومونو د انجام نه د عبرت حاصلو لو موقعه ورکړې شویده رسول الله ﷺ ته داسې تسلي اوشوه چه هر یو رسول سره داسې معاملې شوېدي۔

د آیتونو پوره رکوع [اتمه د سُورتِ اعراف] ده، په دې کښې د حضرت نُوح علیه السلام او د دوئ د اُمت د حالاتو او وینا گانو بیان دي۔

په دُنیا کښې د ټولو نه اول پیغمبر اگرچه حضرت آدم علیه السلام دې خو د هغوئ په زمانه کښې د کُفر او گُمراهئ مقابله نۀ وه، د هغوي په شریعت کښې زیات حکمُونه د زمکې د آبادکارئ او د انساني ضروریاتو په باره کښې وو، کُفر او کافران بیخي موجود نۀ وو، د کُفر شرک مقابله د حضرت نُوح علیه السلام د زمانې نه شروع شوه، د پیغمبرئ او شریعت په حیث دوئ د ټولو نه اول پیغمبر دې، دې نه علاوه د دغې زمانې په طوفان کښې ټول خلق غرق شو کوم چه پاتې و هغه د دوئې په کشتئ کښې سواره شوي خلق وو، هم یوه نوې دُنیا بیا آباده شوه ځکه ورته آدم اصغر وئیلې شي، همدغه وجه ده چه د پیغمبرانو علیهم السلام د قیصو شروع هم د دوئ نه اوشوه چې په هغه کښې په نهه نیم سوه کاله اوږد عمر کښې د هغوئ پیغمبرانه کوششونه او په دې باندې یې اکثر اُمتیان په کړه لاړ تلل او په نتیجه کښې سِوا د لږو هغه مؤمنانو نه چه ورسره په کشتئ کښې سواره وو نور ټول غرقیدل او تباه کیدل بیان شوي دي، په رُومبی آیت کښې د دې څه تفصیل داسې دې، فرمائي: ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ﴾

حضرت نُوح علیه السلام د حضرت آدم علیه السلام په اتمه پیړئ کښې دې، په مستدرک حاکم کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په روایت منقول دي چه د حضرت آدم علیه السلام او د حضرت نُوح علیه السلام ترمنځه لس قرنه تیر شویدي[۱] او په طبراني کښې همدا مضمُون د ابي ذر په رضي الله عنه روایت د رسول الله ﷺ نه منقول دې [تفسیر مظهري]۔[۲] قرن عموماً یو سل کاله زمانې ته وئیلې شي، په دې بنا د دې دواړو ترمنځه د دې روایت په جوړېو زر کاله زمانه وه۔ ابن جریر نقل کړیدي چه حضرت نُوح علیه السلام د حضرت آدم علیه السلام د وفات نه اته سوه شپږ ویشت کاله پس پیدا شویدې او د قرآن کریم د واضح بیان مطابق د دوئ [د نوح] علیه السلام عمر نهه نیم سره کاله وو او د حضرت آدم علیه السلام ټول عُمر څلویښت کم زر کاله وو، په دې بنا، د حضرت آدم د پیدائیش نه د حضرت نُوح تر وفاته پورې ټوله موده دوه زره اته سوه شپږ پنځوس کاله جوړیږي[۳] [مظهري]۔[۴] د حضرت نُوح علیه السلام اصلي نُوم شاکر په ځنې روایتونو کښې ،،سَکَن،، او په ځنو کښې عبد الغفار راغلې دې .په دې کښې اختلاف دې چه د دوئ زمانه د حضرت ادریس علیه السلام نه وړاند وه او که روستو، د اکثرو صحابه کرامو رضي الله عنهم د قول مطابق دوئ د حضرت ادریس علیه السلام نه وړاند وو [بحر مُحیط]۔[۵]

د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه حضرت نُوح علیه السلام د څلویښتو کالو په عمر کښې پیغمبر جوړ شو او د طوفان نه پس شپیته کاله ژوندې وو او مستدرک حاکم[۶]

---

[۱] المستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۲۹۹۳
[۲] المعجم الأوسط للطبراني رقم الحدیث: ۸۷۷ او ۲۱۰
[۳] التفسیر المظهري کښې تفصیل او گورئ۔
[۴] التفسیر المظهري تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۶۷
[۵] کذا في المستدرک للحاکم، کتاب تواریخ المتقدمین من الانبیاء والمرسلین۔
[۶] المستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۲۹۹۳، کتاب تواریخ المتقدمین من الانبیاء والمرسلین۔

﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ﴾ نه ثابتيږي چه حضرت نوح عليه السلام صرف خپل قوم دپاره پيغمبر وو تولې دنيا دپاره نه وو، قوم ئې په عراق كښې آبادوو، په ظاهره دتهذيب خاوندان وو البته په شرك كښې اخته وو چنانچه دوئ خپل قوم ته داسې بلنه وركړه: ﴿فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ [اې زما قومه: تاسو دالله تعالى عبادت كوئ، دهغه نه سوا ستاسو هيڅوك معبود نشته، زۀ په تاسو باندې دېوې لوئې ورځې دعذاب ويره لرم] ددې په رومبئ جمله كښې دالله تعالى عبادت ته رابلل دي چه اصل الاصول يادېږي، په بله جمله كښې دكفر او شرك نه دځان ساتلو ښودنه ده چه په دې قوم كښې دوبا په ډول خورشوې وو، په دريمه جمله كښې دهغه لوئې عذاب دخطرې نه خبرول دي چه دخلاف ورزئ په صورت كښې په دوئ راتلونكې وو، دې لوئې عذاب نه مراد دآخرت عذاب هم كيدې شي او په دنيا كښې دطوفان عذاب هم كيدې شي [تفسير كبير] (١)

ددې په جواب كښې دقوم وينائې قرآن كريم كښې داسې راغلې ده: ﴿قَالَ الْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾، ملا، دقوم سردارانو او مشرانو ته وئيلې شي، په دې بنا ددې جملې مطلب دا شو چه دقوم سردارانو او وئيل چه مونږ ته خو داسې ښكارى چه تاسو په ښكاره ګمراهئ كښې پراته يئ چه مونږه دخپل پلار، نيكه ددين نه اړوئ، دقيامت په ورځ دوباره ژوندى كيدل او جزاء، سزا مونږ ته صرف خيالې او وهمى خبرې ښكارې۔

ددې زړۀ آزاروونكې وينا په جواب كښې حضرت نوح عليه السلام چه كوم پيغمبرانه طرز اختيار كړو، تبليغ او اصلاح كوونكو دپاره هغه يو لوړ تعليم او هدايت دي چه دراپاره كولو او غصه كولو په جواب كښې نۀ راپاره شو او نۀ په قهر شو بلكه په ساده ټكو كښې دهغو شبهې داسې لرې كوى فرمائى: ﴿قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي ضَلَالَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ۝ أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنصَحُ لَكُمْ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ [اې زما قومه! ما هيڅ ګمراهى نشته، خبره داده چه زۀ ستاسو پشان دپلار نيكه د رسمونو او جهالت پابندنۀ يم، بلكه درب العالمين له اړخه رسول يم، زما وينا زما دپروردګار په هدايا تو باند بناده، دالله تعالى پيغام درته رسوم چه پكښې هم ستاسو خيردي، په دې كښې نۀ خو الله تعالى ته څه فائده او نۀ پكښې زما څه غرض شته] دلته د، ،رب العالمين]، ،لفظ، دشرك په عقيده باند يو مضبوط ګوزار داسې دي چه ددې په مقابله كښې نۀ خو ديو اود يوتا تينګيدې شي اونۀ يزدان او اهرمن ـــ وريسې فرمائى چه [دقيامت په عذاب كښې ستاسو دشك شبهې وجه ستاسو بې خبرى او ناواقفيت دي ماته دالله تعالى د اړخه ددې يقينى علم راكړې شويدى]۔

وريسې داسې بيان شويدې فرمائى: ﴿مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَائِكَةً﴾ [يعنى ددوئ قوم دنوح عليه السلام په بلنه باند يوه شبهه داهم اوكړه چه دا خو هم زمونږ پشان يو بشر او انسان دي، هم زمونږ پشان خوراك څكاك كوى او زمونږ پشان اودۀ كيږى او ويښيږى، مونږه ئې خپل پيشوا، څنګه اومنو ؟ الله تعالى كه مونږ ته څه پيغام راليږلې نودې دپاره به ئې فرشتې راته راليږلې چه دهغې خانګړى توب اولوئ به په مونږه تولو واضحه شوې وې، اوس خو ددې نه سوا بل څه خبره نشته چه زمونږ دقوم اونسل يو كس په مونږه باند خپل پورته والې اولوئې ضبا طول غواړى] ددې په جواب كښې الله تعالى اوفرمائيل: ﴿أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ

---

(١) التفسير الكبير للرازى تحت هٰذه الآية: ج: ٧، ص ٢١١

مِنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ [یعني آیا، تاسو په دې تعجب کوئ چه ستاسو دَرب پیغام تاسو ته، دَیو داسې کَس په معرفت راغلو چه هم ستاسو دَجنس نه دې په دې غرض چه هغه تاسو اوویروي او چه تاسو اوویریږئ او په تاسو رحم اوکړې شي] یعني دَهغوئ په ویرولو سره تاسو راویښ شئ، مخالفت کول پریږدئ چه په نتیجه کښې ئې په تاسو رحمت نازل شي۔

مطلب دادې چه دَانسان په پیغمبر کیدو باند تعجب کول ځکه پکارنهٔ دی چه اول خو الله تعالی مختار مُطلق دې چاته چه غواړي پیغمبري ورکوي، په دې کښې دَچه خبرې کولو هیڅوک حق نهٔ لري، دَې نه علاوه چه په اصل معامله غور اوکړې شي نو واضح به شی چه انسانانو ته په انسان پیغمبر راتلو سره مقصد پوره کیدې شی نهٔ چه دَفرشتې پیغمبر په راتلو سرهٔ۔

چنانچه دَپیغمبرئ اصل مقصد دادې چه دَالله تعالی په کاملې فرمانبرداریٔ او عبادت باند خلق قائیم کړې شی او دَهغه دَحکمونو دَمخالفت نه اوساتلې شی او دا هله کیدې شي چه هم دَدوئ دَجنس نه یو انسان دوئ ته عملی نمونه جوړیدو سره دوئ ته وراوښایئ چه سره دَبشري تقاضو، خواهشاتو او کمزورونه چه ځنګه زهٔ دَالله تعالی دَحکمونو تابعداري او دَهغه عبادت کولې شم نو تاسو ئې هم کولې شئ، که فرشته پیغمبر جوړه شوې وې او دوئ ته ئې خپله عملی نمونه پیش کولې نو هرچا به په داړه زړه وئیلې شو چه هر کله فرشتې دَبشري خواهشاتو نه پاکې دی، لوږه تنده ئې نشته، خوب نهٔ ورځی، سترې کیږی نهٔ نو دَهغې پشان مونږه ځنګه کولې شو؟ لیکن هر کله چه یو انسان پیغمبر خپلو انسانانو ته خپله عملی نمونه ورمخکښې کړی چه دَالله تعالی فرمانبرداری او عبادت داسې کوئ نو هغوئ پکښې هیڅ بهانه او عُذر نشې کولې، چنانچه دې خبرې ته ئې اشاره داسې اوفرمائیله: ﴿لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا﴾ مطلب دادې چه دَهغه چا په ویرولو سره ځوک ویریدې شي چه دَدهٔ دَجنس وی او هم دَدوئ پشان ټول بشري خصوصیات پکښې وی، دا شُبهه، دَاکثرو اُمتونو کفارو پیش کړیده چه ځوک بشر او انسان پیغمبرنهٔ دی جوړیدل پکار چه قرآن دَدغې ټولو همدغه جواب ورکړیدې، افسوس دې چه دَقرآن کریم دَدې دومره ډاګیزو خبرو باوجود هم ځنې خلق دَرسول الله ﷺ دَبشریت نه دَانکار کولو جرات کوی، ولې چه جاهل انسان په دې حقیقت نهٔ پوهیږی او دَخپل هم جنس پورته والی منلو ته نهٔ تیاریږی چنانچه دَخپلې زمانې اولیاؤ او علماؤ سره ئې هم په دې بنا باند دَسپکاوی او نفرت کولو رویه جاری وی۔

دَخپل قوم دَزړهٔ دردوونکو وینا ګانو په جواب کښې دَحضرت نُوح عليه السلام دَشفقت او نصیحت نه ډکې دې رویې په دغه بې حس قوم باند هیڅ اثر اونکړو بلکه ځانونو نه ئې رانده جوړ کړل او هغوئ لره ئې په مخه دروغژن بللو، ځکه پر الله تعالی دَطوفان عذاب راؤلیږلو، فرمائی: ﴿فَكَذَّبُوْهُ فَاَنْجَيْنٰهُ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ فِي الْفُلْكِ وَاَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا عَمِيْنَ﴾ [یعني دَنُوح عليه السلام ظالم قوم دَهغوئ دَ نصیحت او خیرخواهئ هیڅ پروا اونکړه او په مخه ئې هغوئ لره دروغژن بللو، نتیجه ئې دا شوه چه مونږه، حضرت نُوح عليه السلام او دَهغه ملګری په یو کشتئ کښې سوارهٔ کړل، طوفان نه مو خلاص کړل او کومو خلقو چه زمونږ آیتونه په دروغه بللې وو هغه موغرق کړل بیشکه دا خلق رانده پاتې کیدل]

دَحضرت نُوح عليه السلام قیصه، دَهغوئ دَقوم غرقیدل او په کشتئ کښې دَسورو خلقو خلاصې مونډل دَدې پوره تفصیل به په سُورت نُوح او سُورت هود کښې راشی دلته صرف خُلاصه ئې بیان شوه ځنګه چه دَمقام تقاضاوه۔

حضرت زيدبن اسلم فرمائيلي دي چه دحضرت نوح ﷺ په قوم باند دطوفان عذاب هغه وخت راغلو کله چه دهغوئ شميراوقوت زيات وو، دومره ګنړووچه دعراق زمکه اودډي غرونه پرتنګ شوي وو اوهميشه دالله تعالى دادستورپاتي شويدې چه نافرمانه خلقوته مهلت ورکوي نوعذاب پرداسې وخت کښې راولي چه په شمير، قوت اودولت کښې ډير زيات شي اوددې په وجه په نشه اومستئ کښې وي [ابن کثير]-(۱)

ځنې روايتونو کښې راغلي دي چه حضرت نوح ﷺ سره په کشتئ کښې اتيا کسان سواره ووچه ديونوم پکښې جرهم وو چه عربي ژبه به ئې وئيله [ابن کثير په روايت دابن ابي حاتم دحضرت عبدالله بن عباس نه]-(۲) په ځنې روايتونو کښې ددې تفصيل داسې هم راغلي دي چه دغې اتيا کسانو کښې څلويښت نارينه اوڅلويښت زنانه وو، دطوفان په ختميدو دموصل په کوم مقام کښې چه دااتيا کسان پاتې شو ددغې ځائې نوم په ،،ثمانون،، سره مشهورشو-(۳)

غرض داچه دلته دحضرت نوح ﷺ په مختصر قيصې بيانولو سره يوخودا اوښودلې شوچه دټولو پخوانو پيغمبرانو بلنه ورکول اودعقيدواصول يووبل دااوښودلي شو چه دالله تعالى دخپلوپيغمبرانو ﷺ تائيداومرسته په داسې حيران کن طريقې سره کوي،چه دغرونوځوکوته ختونکي طوفان کښې ئې هم سلامتئ ته څه خطره نه وي،دريم ئې داپه ډاګه کړل چه د پيغمبرانو ﷺ په دروغه بلل دالله تعالى عذاب ته دعوت ورکول دي ځنګه چه پخواني امتونه دپيغمبرانودروغ بللو په وجه په عذاب کښې ښکيل کړې شو نننى خلقوله پکاردي چه دداسې کولونه بې ويرې نشي-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِلَىٰ عَادٍ | أَخَاهُمْ | | | | | |
| او عاديانوته | روردهغوئ | | | | | |
| اوقوم عادته مو دهغوئ رور | | | | | | |
| هُودًا | قَالَ يَٰقَوْمِ | اعْبُدُوا اللَّهَ | مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ | غَيْرُهُ | أَفَلَا | |
| هود | اووئيل هغه | اے قومه زما | بندګي کوئ دالله | نشته دي تاسولره بل خدائ | بغير دهغه نه | آيا |
| هوداوليږلو هغه ورته اووئيل اې زما قومه صرف دالله عبادت کوئ اچې بيشکه دهغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته | | | | | | |
| تَتَّقُونَ | قَالَ | الْمَلَأُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | مِن قَوْمِهِ | إِنَّا |
| پس پريږئ تاسو | اووئيل | سردارانو | چې نه ئې منله خبره دهغه | هغو | دقوم دهغه نه | بيشکه مونږه |
| آياتاسو دګناهونونه پرهيزنه کوئ ا دقوم کافرو سردارانو ورته جواب کښې اووئيل اچې | | | | | | |
| لَنَرَاكَ | فِي سَفَاهَةٍ | وَإِنَّا | لَنَظُنُّكَ | مِنَ الْكَاذِبِينَ | | |
| خامخاوينوتالره | په بې عقلئ کښې | اوبيشکه مونږه | خامخاګمان کوو په تاباندې | دذروغژنانونه | | |
| مونږه ته خوداسې ښکارې چې ته په بيوقوفتيا کښې پروت ئې او مونږه په تا باندې د دروغژنو ګمان کوو | | | | | | |

(۱) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۱
(۲) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۱
(۳) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآيات: ج ۵، ص ۲۷۳

قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِيْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ

اوونیل هغه | اے قومه | نشته | په ما باندې | بې عقلي | وليکن زه | رسول يم

هغوی ورته اوونیل چې ائ زما قومه زه څه بيوقوفه نه يم | بلکه زه خود هغه ذات د طرفه رسول يم |

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَاَنَا لَكُمْ

د طرفه درب العالمين نه | رسوم تاسو ته | پيغامونه | درب زما | او زه | تاسو لره

چه د ټول مخلوق رب دې | تاسو ته دالله ﷻ پيغامونه دررسوم | او په دې يقين اوکړئ چې

نَاصِحٌ اَمِيْنٌ ۝ اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ

نصيحت کونکې يم | امانتدار يم | آيا تعجب کوئ تاسو | چې راغې تاسو ته | نصيحت

ستاسو خيرخواه يم | آيا تاسو په دې خبره تعجب کوئ چه تاسو ته دالله ﷻ د طرفه

مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ ؕ وَاذْكُرُوْٓا

د طرفه درب ستاسو نه | په يو سړي باندې | ستاسو نه | دپاره د دې چې اوويروي تاسو | او ياد کړئ

هم ستاسو نه يو سړي باندې نصيحت نازل شوې دې | چې تاسو د عذاب نه خبر کړي

اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ

کله چې | هغه جوړ کړئ تاسو | خليفګان | روستو | د قوم د نوح نه | او زيات ئې کړئ تاسو

او ياد کړئ چې هغه [الله] تاسو د نوح ؑ د قوم نه پس آباد کړئ | او تاسو ته ئې

فِى الْخَلْقِ بَصْۜطَةً ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝

په پيدائش کښې | په لحاظ د طاقت سره | نو ياد کړئ | نعمتونه دالله | اميد دې | چې تاسو به خلاصي بيا مومئ

مضبوطي کاتئ ورکړې | نو دالله ﷻ نعمتونه يادساتئ | چې په دنيا او آخرت کامياب شئ

قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهٗ وَنَذَرَ

اوونيل هغوی | آيا راغلې ئې ته مونږ ته | دپاره د دې چې عبادت اوکړو مونږه د الله | يوازې | او چې پريږدو مونږه

هغوی اوونيل آيا ته د دې دپاره راغلې ئې | چې مونږ صرف دالله ﷻ عبادت شروع کړو

مَا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ

هغه | چې عبادت به ئې کوو | پلار انو زمونږه | نو راوله مونږ ته | هغه عذاب | چې ته پرې يروې مونږه

او دخپل پلار نيکه نو ټول معبودان پريږدو | نو ته اوس هغه عذاب راوله د کوم نه چې دې مونږ ويرولو

اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝ قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُمْ

که چرې ئې ته | د رښتونو خلقونه | اوونيل هغه | چې واقع شو | په تاسو

که ته په دې کښې رښتونئ يئ | ...........هغه ورته اوونيل چې بيشکه په تاسو باندې د

مِّنْ رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَّغَضَبٌ ؕ اَتُجَادِلُوْنَنِيْ فِيْٓ اَسْمَآءٍ

د طرفه درب ستاسو نه | عذاب | او قهر | آيا تاسو جګړه کوئ زما سره | په هغه نومونو کښې

الله ﷻ طرفنه پليتي او غضب واقع شو | نو آيا تاسو ماسره په داسې نومونو باندې جګړه کوئ

سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا

چې کېښودلي دي تاسوهغه | تاسو او پلارانو ستاسو | چې نه دې نازل کړې | الله | په هغې

چې تاسو او ستاسو پلارانو پخپله ایخودی دی | او الله ﷻ دهغې (په معبودیت باندې) هیڅ

مِنْ سُلْطٰنٍ ؕ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ۝

څه دلیل | نو انتظار کوئ تاسو | بیشکه زه ستاسو سره | د انتظار کونکونه یم

دلیل نه دې رالیږلې | ......نو تاسو انتظار کوئ | ...او زه به هم تاسو سره انتظار کونکې یم

فَاَنْجَيْنٰهُ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَقَطَعْنَا

نو بچ کړو مونږ هغه | او هغه کسان | چې وو هغه سره | په رحمت سره | د طرفه زمونږه | او پرېکړو مونږ

نو مونږ هغه ته او دهغه ملګرو ته پخپل رحمت سره نجات ورکړو | او د هغه کسانو جرړې مو پرېکړې

دَابِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَمَا كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ۝

بیخ | دهغه کسانو | چې دروغ ئې ګڼړلې وې | آیتونه زمونږه | او نه وو هغوئ | مومنان

چې زمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړل | ...................او هغوئ هیڅکله ایمان نه راوړلو

## آسان ترجمه قرآن

او قوم عاد طرف ته مونږ د هغوی ورور هود علیه السلام لیږلې وو هغه اوو‌ئیلې: اې زما قومه! دالله عبادت وکړئ، دهغه نه سوا هیڅوك معبود نشته. آیا بیا هم تاسو د الله نه نه ویرېږئ؟ دهغوی د قوم سردارانو چا چه کفر کړې وو وو‌ئیل چه مونږ خو یقیني طور ګورو چه ته په بې وقوف تیا کښې مبتلا ئې. او بې شکه ځمونږ ګمان دا دې چه ته یو دروغژن سړې ئې هود علیه السلام وو‌ئیل: اې زما قومه! ما باندې هیڅ بې وقوفتیا نشته بلکه څه د رب العلمین د طرف نه رالیږلې شوې پیغمبر یم څه د خپل پروردګار پیغامات تاسو ته رسوم، او څه ستاسو داسې خیرخواه یم چه هغې باندې تاسو اطمینان کولې شئ آیا تاسو دې باندې تعجب کوئ چه ستاسو د رب نصیحت د یو داسې سړي په ذریعه تاسو ته رارسیدلې دې چه ستاسو نه دې د پاره چه تاسو خبردار کړي؟ او هغه وخت یاد کړئ چه هغه د نوح (علیه السلام) نه وروستو تاسو جانشین جوړ کړئ او د جسم په ډیل ډول کښې ئې تاسو (د نورو نه) اوچت کړئ. پس دالله نعمتونو طرفته توجه وکړئ دې د پاره چه تاسو ته کامیابي حاصل شي. هغوی وو‌ئیل چه آیا ته مونږ ته دې د پاره راغلې ئې چه مونږ یواځې دالله عبادت وکړو، او د کومو (بتانو) چه په ځمونږ پلار نیکه عبادت کولو نو هغه پرېږدو؟ پس که ته رېښتیني ئې نو مونږ ته هغه (عذاب) راوړه چه دهغې نه ته مونږه ویروې هود علیه السلام وو‌ئیل: چه اوس ستاسو د رب د طرف نه په تاسو باندې د قهر او د عذاب فیصله شوې ده آیا تاسو ما سره (د مختلفو بتانو) دهغه نومونو په باره کښې جهګړه کوئ چه تاسو او ستاسو پلار نیکه ایښودی دی، چه دهغې په تائید کښې الله تعالیٰ هیڅ دلیل نه دې رالیږلې؟ پس اوس تاسو انتظار کوئ څه هم تاسو سره انتظار کونکې یم پس مونږ ده لره (یعنی هود علیه السلام لره) او د هغه ملګرو لره نجات ورکړو، او د هغه خلقو جرړه مو کټ کړه چه هغوی ځمونږ آیتونه دروغژن کړي وو او نه وو دوی مؤمنان.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۗ﴾ او مونږ قوم عاد ته دده وي [د روزلئ يا وطن] رور هود [عليه السلام] لره [پيغمبر
جوړ کړو] اوليږلو ﴿قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۚ﴾ هغوئ [خپل قوم ته] اوفرمائيل چې ائې
زما قومه تاسو [صرف] د الله ﷻ عبادت کوئی دهغه ذات نه سوا ستاسو معبود نشته [او بت
پرستي پريږدئی لکه وړاندې آيت [وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا] نه معلوميږي] ﴿أَفَلَا تَتَّقُونَ﴾ پس آيا
تاسو [داسې دلوئې جرم يعنی شرك مرتكب كيدو سره د الله تعالى عذاب نه] نه ويريږئی ﴿قَالَ
الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ﴾ دهغه په قوم کښې چې کوم خاص وجاهت والا خلق کافر ووهغوئ
[جواب کښې] اووئيل ﴿إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ﴾ چې مونږ تاسو په کم عقلئ کښې وينو [چې د توحيد
تعليم کوئی او عذاب نه مويروئی] ﴿وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ او مونږ بيشکه تاسو د دروغژنو
خلقو نه ګنړو [يعنی نعوذبالله نه خو توحيد صحيح مسئله ده او نه د عذاب راتلل صحيح دی]
﴿قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ﴾ هغوئ اوفرمائيل چې ائې زما قومه څه لږ هم کم عقل نه يم ﴿وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن
رَّبِّ الْعَالَمِينَ﴾ ليکن څه پروردګار عالم ليږل شوې پيغمبر يم [هغه ذات ماته د توحيد تعليم او د
عذاب د ويرې حکم راکړې دې ، په دې وجه خپل منصبی کار کوؤم چې] ﴿أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي﴾ تاسو
ته دخپل رب پيغام [او احکام] رسوم ﴿وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ﴾ او څه ستاسو خير خواه امانتدار يم
[ځکه چې توحيد او ايمان کښې ستاسو فائده ده او تاسو زما د دبشرکيدلو په وجه ځما د نبوت
نه انکار کوئی لکه ځنګه چې سورة ابراهيم کښې دقوم نوح ، عاو او ثمود نه پس ذکر دې چې
[قَالُوا إِنْ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا] اوسورة فصلت کښې د عاد او ثمود د ذکر نه پس راغلی دی چې [قَالُوا لَوْ
شَاءَ رَبُّنَا لَأَنزَلَ مَلَائِكَةً] نو] ﴿أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ لِيُنذِرَكُمْ ۚ﴾ آيا تاسو ددې خبرې نه
تعجب کوئی چې ستاسو د رب د طرفه تاسو ته يو داسې کس په معرفت سره چې ستاسو د
جنس څخه دې [يعنی بشر] دې څه د نصيحت خبره راغله [هغه د نصيحت خبره هم هغه ده چې
کومه پورته تيره شوه [يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ ... الٰى قوله ... أَفَلَا تَتَّقُونَ] چې هغه کس تاسو [د الله تعالى د
عذاب] نه ويروی [يعنی دا خو څه د تعجب خبره نه ده ، آيا بشريت او نبوت کښې څه منافاة
شته دې ، پورته په [أَفَلَا تَتَّقُونَ] کښې ترهيب وو وړاندې ترغيب دې] ﴿وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ
قَوْمِ نُوحٍ﴾ او [ائې قومه] تاسو دا حالت ياد کړئی [او يادلو نه پس احسان اومنئ او اطاعت
اوکړئ] چې الله تعالى تاسو لره د قوم نوح نه پس [په مخ دزمکې باندې] آباد کړئی ﴿وَزَادَكُمْ فِي
الْخَلْقِ بَسْطَةً ۖ﴾ او تاسو لره ئې په جسامت او ډال ډول کښې [هم] زياتوالئ درکړو ﴿فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ
لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ پس تاسو دالله تعالى [هغه] نعمتونه ياد کړئی [او يادولو نه پس احسان اومنئ]
او اطاعت اوکړئی] چې تاسو [په هر شان] کامياب شئ ﴿قَالُوا أَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللَّهَ وَحْدَهُ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ
آبَاؤُنَا ۖ﴾ هغه خلقو اووئيل چې [دير ښه] آيا تاسو مونږ لره دې دپاره راغلی يې چې مونږ صرف د
الله عبادت اوکړو او چې د کومو [بتانو] چې زمونږ پلار نيکه عبادت کولو مونږ دې د هغوئ
[عبادت] پريږدو [يعنی مونږ به کله هم داسې اونه کړو] اوز مونږ په نه منلو باندې] چې تاسو د
کوم عذاب دهمکی راکوئی [لکه ځنګه د افلا تتقون څخه معلوميږي] ﴿فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ
الصَّادِقِينَ﴾ تاسو مونږ باندې دا عذاب راولئی که ته رښتونې يئ ﴿قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ رِجْسٌ

﴿وَغَضَبٌ﴾ هغوئ اوفرمائيل چې [هر كله ستاسو د سركشئ دا حالت دې نو] بس اوس به تاسو باندې دالله تعالى عذاب راځى [پس تاسو ته به د عذاب د شبهې جواب په هغه وخت كښې معلوم شى او باقى په توحيد باندې چې ستاسو شبه ده او دا بتان خپل معبودان ګڼړئى او دوئ ته خپل معبودان وايئ ، ليكن په حقيقت كښې ددې د معبود كيدو هيڅ دليل نشته دې نو] ﴿أَتُجَادِلُونَنِي فِي أَسْمَاءٍ سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا نَزَّلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ﴾ آيا تاسو ماسره دداسې [بې حقيقته] نومونو په باره كښې جنګ كوئى [يعنى هغه مسميات د څينې اسماء په شان دى] اودا تاسو او ستاسو پلار نيكه [د خپله ځانه] ګرځولى دى [ليكن] ددوئ دمعبود كيدو الله تعالى څه دليل [نقلى يا عقلى] نه دې ليږلې [يعنى جګړه كښې دمدعى په ذمه دليل دې او د مقابل د دليل جواب هم دې ، پس تاسو نه خو دليل قائمولې شئ اونه څما د دليل جواب راكولئ شئ بيا د جګړې څه مطلب] ﴿فَانْتَظِرُوا إِنِّي مَعَكُمْ مِنَ الْمُنْتَظِرِينَ﴾ پس تاسو [اوس جګړه ختمه كړئى او دالله تعالى د عذاب] انتظار كوئى زه هم تاسو سره انتظار كوم ﴿فَأَنْجَيْنَاهُ وَالَّذِينَ مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِنَّا﴾ غرض [عذاب راغلو او] مونږ هغوئ لره اود هغوئ ملګرو لره [يعنى مؤمنانولره] خپل رحمت [وكرم] سره [ددې عذاب نه] بچ كړل ﴿وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَمَا كَانُوا مُؤْمِنِينَ﴾ او دا خلق مو [د بيخه] ختم كړل [يعنى بالكل مو هلاك كړى] كومو چې زمونږ آيتونه په دروغه ګڼړلى وو او هغوئ [د غايت قساوت يعنى سختيدل] په وجه ايمان قبلوونكى نه وو [يعنى كه هلاك شوى نه وې نو بيا به هم دوئ ايمان نه وې راوړې نو په دې مونږ د هغه وخت د حكمت د تقاضې مطابق ددوئ خاتمه اوكړه].

## معارف او مسائل

**دعاد او ثمود لنډ تاريخ:** په اصل كښې عاد دهغه سړى نوم دې چه دحضرت نوح عليه السلام په پنځم پُشت كښې دهغوئ دځوئې سام په اولاد كښې وو ، بيا دغه سړى ټول اولاد اوټول قوم دعاد په نوم باند مشهورشو ، قرآن كريم كښې كله دې لفظ ، عاد ، سره أولى هم زياتولې شي او كله په ، ، ارم ذات العماد ، ، سره هم ياديږى ، په دې بنا ، عاد قوم ته ، ارم هم وئيلې شى - دَ ، ، عاد أولى ، ، په مقابله كښې يو بل عاد ثانيه ، هم شته؟ دې كښې دمفسرينو تحقيق ، اودمؤرخينو اقوال مختلف دى خو زياته مشهوره خبره داده چه دعاد قوم دغورنيكهٔ نوم ارم دې - دهغه يو ځوئ عوص اولاد ته ، ، عاد أولى ، ، اود بل ځوئې جثو اولاد ته عود يا عاد ثانى هم وئيلې شى ، ددې تحقيق حاصل دادې چې عاد او ثمود دواړه دارم دوه شاخونه دې يو شاخ ته عاد اولى او دويم ته ثمود يان ثانيه هم وئيلې كيږى او لفظ د ارم دعاد اوثمود دواړو دپاره استعماليږى -

ځنې مفسرين فرمائى چه هر كله په عاد قوم عذاب راغلو نو دوئ نه يو وفد مكې معظمې ته تلې وو چه عذاب نه محفوظ پاتې شو دغې ته عاد أخرى و ئيلې شى [بيان القرآن] -

هود عليه السلام د يو پيغمبر نوم دې ، دحضرت نوح عليه السلام په پنځم پشت كښې راځى چه دسام په اولاد كښې دى ، دعاد قوم اودحضرت هود عليه السلام نسب نامه په څلورم پشت كښې په سام يوځائې كيږى ، په دې بنا هود عليه السلام دعاد قوم نسبى رورد دې څكه ئې ﴿أَخَاهُمْ هُودًا﴾ اوفرمائيل -

عا دقوم په ديارلسو خاندانونو باند مشتمل وو عمان نه ترحضرموت او يمن پورې ددوئ علاقه وه ، زمكې ئې ډيرې خيرازې اوآبادې وې ، هرقسم باغونه پكښې وو ، داوسيدو دپاره به ئې ډيرلوئې لوئې اوعاليشان محلونه جوړول ، بښه لوړ اوډک بدنونه ئې وو ، چنانچه الله تعالى

فرمائي: ﴿وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَصْطَةً﴾ الله تعالى دټولو نعمتونو دروازې په دوئ پرانيستې وې مګر دَدوئ کوږ فهمئ، هم دغه نعمتونه دوئ دپاره وبال جان جوړ کړل، دَخپل قوت اورعب داب په نشه کښې مست وو اودَ ﴿مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً﴾ لاپې به ئې کولې، هغه رب العالمين ئې پريښود کوم دَنعمتونو باران چه پرې کيدو اوپه بُت پرستئ کښې اخته شو-

**دَحضرت هُود عليه السلام نسب نامه اوځنې حالات:** الله تعالى دَدوئ دَهدايت دَپاره حضرت هُود عليه السلام پيغمبر جوړ کړو اووړې ليږلو چه هم پخپله دَدوئ دَخاندان نه وو، دَعربو دَنسبونولوئې مشهور ماهر ابوالبرکات جونى ليکلى دى چه دحضرت هود عليه السلام خوئې يعرب بن قحطان دې چه په يمن کښې آباد شواويمنى قوم دَهغه دَنسل نه دې، دَعربئ ژبې شروع هم دَدوئ نه اوشوه اودغه يعرب دَنوم په مناسبت سره ددغې ژبې نُوم عربى اودَدې دويونکونوم عرب يادېږي [بحر محيط] -(۱)

خوصحيح داده چه عربى ژبه دَحضرت نُوح عليه السلام دَزمانې نه جارى وه دوئ سره په کشتئ کښې سور د يوکَس نُوم جرهم وو چه عربى ژبه ئې وئيله [بحر محيط] -(۲) داهغه جرهم دې چه دَمکې معظمې آبادى ترِ شروع شوه البته داکيدې شى چه په يمن کښې دَعربى زبان شروع ديعرب بن قحطان نه شوې وَى اودابوالبرکات دَتحقيق همدغه مطلب وى-

عادقوم ته، حضرت هود عليه السلام دَبُت پرستئ پريښو، دَتوحيد اختيارولو، دَزورظلم پريښو اودَعدل وانصاف اختيارولوبِشودنه اوکړه، خوهرکله چه دغه خلق دَخپل قُوت اودولت په نشه کښې مست وو، دَهغوئ خبره ئې اونهٔ منله، په نتيجه کښې ئې داعذاب پراغلو چه درې کاله په مخه باران بندشو، زمکې ئې شاړبيابانونه جوړشو، باغونه ئې اوسوځيدل، بياهم داخلق دَشرک اوبُت پرستئ نه منع نهٔ شو الله تعالى پراته ورځې اواوه شپې په مخه دَسيلئ سخت عذاب راوستو، دَدوئ څه پاتې باغونه اومحلونه ئې زمکې سره سم کړل، انسانان اوځاروى به ئې په هواکښې الوتل اوبيابه سردلاندې راغورځيدل، په دې شان عاديان ديو مخه هلاک شو، چنانچه الله تعالى فرمائي:

﴿وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا﴾ اوځنې حضراتونې هم دامطلب اغستې دې چه دَدغې وخت ټول خلق اُف پناه شو اوځنې حضرات داسې وائى چه ترقيامته پورې ئې دغه نسل ختم کړو-

هرکله چه عاديانو دَحضرت هود عليه السلام اونهٔ منله، په کُفر اوشرک کښې په مخه اخته پاتې کيدل اودَدې په وجه پرِ عذاب راغلونوحضرت هود عليه السلام سره دَخپلو ملګرو په يوکيږ کښې پناه واغسته، دَالله تعالى په قُدرت په دغه طُوفانى سيلئ خولوئې لوئې عاليشان محلات سردلاندې راګوزارشومګردغې کيږته ئې هيڅ نقصان نهٔ رسولو اوحضرت هود عليه السلام سره دَملګروپکښې دغه ټول وخت ښه په آرام اوتسلئ سره تيکاؤوو، اوهيڅ نقصان ئې نهٔ وو بيا مُوندې، دَخپل قوم دَهلاکيدونه پس حضرت هود عليه السلام مکې مکرمې ته ورغلو اوهم دغلته وفات شو [بحر محيط] -(۳)

دَطوفانى سيلئ په صُورت کښې عاديانوباندې طُوفان هم راتلل قرآن کريم کښې په ډاګه راغلى دى اوپه سورت مؤمنون کښې دَحضرت نُوح عليه السلام دَقيصې بيانولونه پس الله تعالى فرمائي:

﴿ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ﴾ [بيامونږه دَدوئ نه پس يوه بله ډله پيداکړه ښکاره خبره ده چه دغې ډلې نه مُراد دَعادقوم دې، بيادَدغې ډلې ذکرو، ورو قولونو اوعملونو بيانولو نه پس فرمائي:

---

(۱) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۳۲۳

(۲) قد مر تخريجه۔

(۳) كذا في تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳۳۷

﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ﴾ [راګیر کړل هغوئ لره یوسخت آواز] دَدې قرآني ارشاد په بناخنې مفسرینو حضراتو فرمائیلی دي چه په عادقوم باندې دَسخت قسم هیبتناک آواز عذاب راوستې شوې وو، خودې دواړوکښې تکر څکه نشی کیدې چه دَسیلئ طوفان اودَسخت آواز عذاب پرهم راغلي وي- دادعادقوم اودَحضرت هُود ﷺ مختصره واقعه ده چه تفصیل ئې په قرآني الفاظوکښې داسې دې: په رُومبی آیت کښې فرمائي: ﴿وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۗ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ﴾ [مُونږه عادقوم ته دَهغوئ رورحضرت هُود ﷺ، هدایت کولو دپاره اولیږلو، هغوئ ورته اوفرمائیل، اې زما قومه اتاسو، یواځې دَالله تعالی عبادت کوئ، دَهغه نه سوا بل څوک، ستاسو معبود نشته، آیا، تاسو نهٔ ویریږئ؟]

دَعادقوم نه وړاند دَحضرت نُوح ﷺ دَقوم لوئې عذاب تراوسه پورې لاذهن نه وتلې نهٔ وو، څکه حضرت هُود ﷺ ته دَعذاب دَسختوالی اولوئیوالی بیانولوضرورت نه وو، صرف دومره وئیل ئې کافی اوګنړل چه آیا، تاسودَالله تعالی دَعذاب نه نهٔ ویریږئ؟

په دویم کښې فرمائي: ﴿قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ﴾ [دَقوم سردارانو اووئیل چه مُونږه تاسولره په بیوقوفئ کښې اخته مُومو اوزمونږ ګمان دادې چه تاسو په دروغژنوکښې شامل یئ]-

دامعارضه اومباحثه تقریبًا هغه شان ده، څنګه چه دَحضرت نُوح ﷺ قوم، هغوئ سره کړې وه، صرف ځنې الفاظو کښې فرق دې، په دریم اوڅلورم آیت کښې ددې جواب هم په هغه انداز کښې دې څنګه چه دَحضرت نُوح ﷺ جواب وو، یعنی داچه په ماکښې بیوقوفی هیڅ هم نشته، خبره صرف دومره ده چه زهٔ دَرب العالمین له اړخه رسول اوپیغمبرجوړشوې راغلې یم، دَهغه پیغامُونه درته رسوم اوخه، په ډاګه ستاسوخیر خواه یم، په دې وجه ستاسودَپلرونو نیکونو په جهالتُونو اوغلطیانوکښې ستاسو دَملګرتیاکولو په ځائې، ستاسو دَطبیعتونو خِلاف حق خبره تاسوته رارسوم کومه چه تاسو یده ګنړئ-

په پنځم آیت کښې دَعادیانو هم هغه اعتراض بیان شویدې چه دوئ نه وړاند دَحضرت نُوح ﷺ قوم داسې پیش کړې وو چه دَخپل ځان پشان بشراوانسان دَخپل ځان مشراوپیشوا څنګه اُومنو که څوک فرښته پیغمبره راغلې وې نومنلې به مووه جواب ئې قرآن پاك هم هغه ورکړو کوم چه حضرت نُوح ﷺ خپل قوم ته داسې ورکړې شوې وو چه داخودتعجب خبره نهٔ ده چه څوک انسان دَالله تعالی دَرسول په حیث دَخلقو دَویرولو دَپاره راشی ولې چه دَانسانانو دَپوهولو دَپاره دَانسان پیغمبر کیدل کارتر سره کولې شی، بیاورته الله تعالی هغه اِنعامات وریادکړیدی چه الله تعالی په دغې قوم باندې کړی وو لکه فرمائي:

﴿وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً ۖ فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [هغه خبره رایاده کړئ چه الله تعالی تاسو، دَحضرت نُوح ﷺ دَقوم نه پس دَزمکې مالکان اواختیارمن جوړکړئ او په مهلت ډول کښې ئې درته خوروالې هم زیات درکړو، دَهغه دَغه نعمتونه رایادکړئ نوستاسو خیر اوبهتری به وی. خودې سرکش بدمست قوم یوه خبره هم واؤنهٔ ریده اوهم هغه جواب ئې ورکړو چه عمومًا ګمراهان خلق ئې داسې ورکوی چه آیا، تاسوداغواړئ چه مونږه، زمونږه دپلاړ نیکه ددې مذهب نه واړوې چه ټول دیوتاګان [معبُودان] پریږدو اوصرف یوخدائ منل شروع کړو، داخو به زمُونږه نه اونهٔ شی، تاسوراته چه دکوم عذاب دړکه راکوئ هغه زمونږ دَپاره اوغواړه

که رشتینی یئ؟

په شپږم آیت کښې دَحضرت هُودؑ جواب ورته داسې بیان شویدې چه هر کله ستاسو دَ سرکشئ اوبې هوشئ داحالت دې نواوس درباند دَالله غضب اوعذاب راتلل دی، تاسونې انتظار کوئ اوموږنې هم انتظاکوو. دَقوم په دې راپاروونکی جواب خوئې ورته دَعذاب راتلوخبرورکړو، لیکن پیغمبرانه شفقت اونصیحت بیامجبورکړوچه دَدغې کلام په دوراِن کښې ئې ورته اوفرمائیل چه ، ،افسوس، دې تاسواوستاسو پلرونونیکونوبې عقله اوبې روحه څیزونه خپل معبُودان جوړکړل چه نهٔ خوپرِ څه عقلی دلیل شته اونهٔ نقلی اوبیا ، تاسودَدوئ په عبادت کښې داسې پاخه شوئ چه دَدوئ په مرسته کښې ماسره جګړې کوئ-، ،

په آخری آیت کښې فرمائی چه ، ،دَحضرت هُودؑ دټول کوشش اودَعادیانودَسرکشئ آخری انجام داشو چه موږه، حضرت هُودؑ اودَهغوئ ملګری [پرایمان راؤړونکی خلق] مواوساتل اودَدروغ بلونکی خلقوجرړې موغوڅې کړې اوهغوئ پرِ ایمان راؤړونکی نهٔ وو-

په دې قیصه کښې غافلو خلقودپاره دَالله تعالی په یاد او فرمانبرداری کښې دَلګیا پاتې کیدو هدایَت، خلاف کوونکودَپاره دَعبرت سامان، تبلیغ اواصلاح کوؤنکودَپاره په پیغمبری طریقه باند دَتبلیغ اواصلاح کولوتعلیم دی-

<table>
<tr><td>وَإِلَىٰ ثَمُودَ　أَخَاهُمْ　صَالِحًا　قَالَ　يَٰقَوْمِ　اعْبُدُوا اللَّهَ</td></tr>
<tr><td>اواولیږو موږ ثمودیانو ته |رور دهغوئ | صالحؑ |اووئیل هغه |اے قومه زما | بندګی کوئ دالله</td></tr>
<tr><td>اوثمودیانو ته مو دهغوئ رور صالحؑ لیږلی وو | هغه ورته اووئیل چې صرف دالله ﷻ عبادت کوئ</td></tr>
<tr><td>مَا لَكُم　مِّنْ إِلَٰهٍ　غَيْرُهُۥ　قَدْ　جَاءَتْكُم　بَيِّنَةٌ</td></tr>
<tr><td>نشته ستاسو |بل خدائې | بې دهغه نه |بیشکه| راغلې دې تاسوته| دلیل ښکاره</td></tr>
<tr><td>هغه نه سوا ستاسو دپاره بل څوک دعبادت لائق نشته | بیشکه تاسو ته دهغه ذات د طرفه نښې</td></tr>
<tr><td>مِّن رَّبِّكُمْ　هَٰذِهِۦ　نَاقَةُ اللَّهِ　لَكُمْ　ءَايَةً　فَذَرُوهَا</td></tr>
<tr><td>دطرفه درب ستاسونه | دا | اوښه دالله ده | دپاره ستاسو |یوه نښه| نو پریږدئ دااوښه</td></tr>
<tr><td>راغلی دی چې ستاسو رب دې | دا ستاسو دپاره د الله ﷻ د معجزې په طور یوه اوښهٔ ده | نو دا پریږدئ</td></tr>
<tr><td>تَأْكُلْ　فِىٓ أَرْضِ اللَّهِ　وَلَا تَمَسُّوهَا　بِسُوٓءٍ　فَيَأْخُذَكُمْ</td></tr>
<tr><td>چې خوراك كوی| په زمکه دالله کښې |اومهٔ رسوی دې ته | څه ضرر | کنئ نو اوبه نیسی تاسو</td></tr>
<tr><td>چې دالله ﷻ په زمکه کښې څریږی | اوبه بد نیت ورته لاس مه اوړئ اګنی په تاسو به</td></tr>
<tr><td>عَذَابٌ أَلِيمٌ　وَاذْكُرُوٓا　إِذْ　جَعَلَكُمْ　خُلَفَآءَ　مِنۢ بَعْدِ عَادٍ</td></tr>
<tr><td>عذاب | دردناك | اویاد کړئ | کله چې |هغه جوړ کړئ تاسو | خلیفګان | روستو دعادیانونه</td></tr>
<tr><td>دردناک عذاب راشی | اویاد کړئی چې تاسو ئې دعادیانو نه پس آباد کړئ</td></tr>
<tr><td>وَبَوَّأَكُمْ　فِى الْأَرْضِ　تَتَّخِذُونَ　مِن سُهُولِهَا　قُصُورًا</td></tr>
<tr><td>اوځائې ئې درکړو تاسوله | په زمکه کښې اچې جوړوئ | په هواره ددې کښې | مانړئ [بنګلې]</td></tr>
<tr><td>اوپه زمکه ئې داسې استوګن کړئ | چې په میدانونو کښې خانله مانړئی [بنګلې] جوړئې</td></tr>
</table>

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَتَنْحِتُونَ | الْجِبَالَ | بُيُوتًا | فَاذْكُرُوا | آلَاءَ اللَّهِ | وَلَا تَعْثَوْا | |
| او کنئ تاسو | غرونه | دپاره دکورونو | نو یاد کړئ تاسو | نعمتونه دالله | او مه پورته کیږئ | |

او په غرونه کښې خانله کورونه تراشئ ..... نو دالله ﷻ نعمتونه یادکړئ او په مخ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْأَرْضِ | مُفْسِدِينَ | قَالَ | الْمَلَأُ | الَّذِينَ | اسْتَكْبَرُوا |
| په زمکه کښې | فساد کونکي | اووئیل | سردارانو | هغه | چې تکبرېې کړې وو |

دزمکې فساد [شرک او ګناهونه] مه کوئ نو دهغه دقوم مغرورو خلقو هغه خلقو ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ قَوْمِهِ | لِلَّذِينَ | اسْتُضْعِفُوا | لِمَنْ | آمَنَ |
| دقوم دهغه نه | هغه کسانوته | چې کمزورې ګنړلي شوي وو | هغه چاته | چې ایمان ئې راوړې وو |

اووئیل چې کوم کمزوری وو اوایمان ئې قبول کړې وو چې آیا ستاسو په دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهُمْ | أَتَعْلَمُونَ | أَنَّ | صَالِحًا | مُرْسَلٌ | مِنْ رَبِّهِ |
| دهغوئ نه | آیا تاسو ته معلومه ده | چې بیشکه | صالح ﷺ | رالیږلي شوي دې | دطرفه درب خپل نه |

یقین دې چې صالح ﷺ دخپل رب طرفنه رسول راغلي دې ............

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا | إِنَّا | بِمَا | أُرْسِلَ | بِهِ | مُؤْمِنُونَ |
| اووئیل هغوئ | بیشکه مونږ | په هغه پیغام سره | چې رالیږلي شوي دې هغه | په هغې سره | ایمان راوړونکي یو |

هغوئ اووئیل چې مونږ خودهغه په راوړی تعلیم باندې ایمان راوړی دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | الَّذِينَ | اسْتَكْبَرُوا | إِنَّا | بِالَّذِي | آمَنْتُمْ |
| اووئیل | هغه کسانو | چې تکبرئې کړې وو | بیشکه مونږ | په هغه څیز | چې ایمان راوړې تاسو |

نومغروره خلقو ورته اووئیل چې تاسو په کوم تعلیم ایمان راوړئ دې ............

| | |
|---|---|
| بِهِ | كَافِرُونَ |
| په هغې | کفر کونکی یو |

مونږ دهغې نه انکار کوو

## آسان ترجمه قرآن

او ثمود یانو طرف ته مونږ د دوی ورور صالح علیه السلام لیږلي وو هغه ووئیل چه اې خما د قوم خلقو ! دالله عبادت وکړئ د هغه نه سوا ستاسو هیڅوك معبود نشته — تاسو ته ستاسو درب د طرف نه یو واضح دلیل راغلي دې دا دالله یوه اوښه ده چه ستاسو د پاره یوه نښه ده . دې وجې نه دې لره آزاده پرېږدئ چه دا دالله په زمکه کښې ازاده څري، اودې ته د بدئ په نیت نزدې کیږئ هم مه . هسې نه چه تاسو یو دردناك عذاب ونیسي اوهغه وخت یاد کړئ چه تاسو الله د قوم عاد نه وروستو جانشین جوړ کړئ او تاسوته ئې زمکه کښې داسې ځائې درکړو چه تاسو د هغې د هموارې زمکې نه محلات جوړوئ، او غرونه توګئ د هغې نه کورونه جوړوئ. پس دالله نعمتونو ته توجه کوئ او زمکه کښې فساد مه خوروئ. د دوی د قوم سردارانو چه هغوی په تکبر کښې وو دهغه د کمزورو نه تپوس وکړو چه هغوی ایمان راوړې وو : آیا تاسو

ته ددې خبرې يقين دې چه صالح عليه السلام د الله د طرف نه رالیږلې شوې پیغمبر دې؟ هغوی ووئیل چه: بې شکه مونږ په هغه پیغام بالدې پوره پوره ایمان ساتو چه هغه پرې رالیږلې شوې دې. هغه متکبره خلقو ووئیل چه: په کوم پیغام چه تاسو ایمان راوړې دې د هغې نه مونږ منکریو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا﴾ او مونږ د ثمود قوم طرفته د دوئ رور صالح [عليه السلام] لره [پیغمبر جوړ کړو] اولیږلو ﴿قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ﴾ هغوئ [خپل قوم ته اوفرمائیل چې ائې زما قومه تاسو [صرف] د الله تعالی عبادت کوئی دهغه نه سوا ستاسو څوك معبود نشته دې [هغوئ د يو خاص معجزې خواست اوکړو چې ددې کاڼې نه يو اوښه پيدا کړه نو مونږ به دربانديې ايمان راوړو نو ددوئ په دعا سره داشان اوشو چې هغه کاڼې اوشليدو او دهغې نه يو اوښه راؤوتله. رواه محمد ابن اسحاق.([1]) دوئ اوفرمائيل چې] ﴿قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرفه يو واضح دليل [ځما د رسول کيدو] راغلې دې [وراندې ددې بيان دې] ﴿هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ لَكُمْ آيَةً﴾ دا اوښه د الله تعالی د طرفه ستاسو دپاره دليل [جوړکړې شوې او ښکاره کړې] شوې دې [او هم په دې وجه دالله تعالی اوښه ورته اووئيلې شوه چې دا الله تعالی دليل دې] پس [ددې نه علاوه چې ځما په رسالت باندې دليل دې او ددې پخپله هم حقوق دی ،من جمله ددې حقوقو نه دا هم ده چې] ﴿فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ﴾ دا پريږده چې د الله ﷻ په زمکه کښې [واښه] خورې ګرځې [دا شان پخپل نمبر کښې اوبه څکی لکه څنګه چې بل آيت مبارك کښې دی] ﴿وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ﴾ او دې ته خرابی [او تکليف سره] لاس مه لګوئی ﴿فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ هسې نه چې تاسو باندې دردناك عذاب راشی ﴿وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ عَادٍ﴾ او [ائې قومه] تاسو دا حالت ياد کړئی [او يادولو سره احسان اومنئ او تابعداری اوکړئ] چې الله تعالی تاسو [د قوم] عاد نه پس [په مخ دزمکې باندې] آباد کړئی ﴿وَبَوَّأَكُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ او تاسو ته ئې په زمکه باندې د اوسيدو دپاره ځائې درکړو ﴿تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا﴾ چې نرمه زمکه باندې [هم لوئې لوئې] محلونه جوړوئی او غرونه تراشئ او په هغې کښې [هم] کورونه جوړوئی ﴿فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ﴾ پس تاسو د الله تعالی [دا] انعاماتو لره [او نورو نعمتونو لره هم] يادکړئی ﴿وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ﴾ [او د کفر او شرك په وجه په زمکه فساد مه خوروئی [يعنی ايمان راوړئی خو دې دومره بيان نه پس څه غريبانانو ايمان قبول کړو او په دوئ کښې او مالدارو کښې دا خبرې اترې اوشوې يعنی] ﴿قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ﴾ ددوئ په قوم کښې چې کوم متکبرسرداران وو هغوئ دې غريبانانو ته چې په دوئ کښې ايمان راوړلې وو تپوس اوکړو ﴿أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَالِحًا مُّرْسَلٌ مِّن رَّبِّهِ﴾ چې آيا تاسو ته ددې خبرې يقين دې چې صالح [عليه السلام] د خپل رب د طرفنه [پيغمبر جوړکړې] شوې [راغلې] دې ﴿قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلَ بِهِ مُؤْمِنُونَ﴾ هغوی [جواب کښې] اووئيل چې بيشکه مونږ په دې [حکم] بالدې پوره يقين لرو چې دوئ ته ورکړې شوې لیږلې شوې دې ﴿قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا بِالَّذِي آمَنتُم بِهِ كَافِرُونَ﴾ هغه متکبره خلقو اووئيل چې تاسو په کوم څيز بالدې يقين راوړې دې مونږ هغې نه منکر يو.

---

[1]) تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحديث: ۸۷۹۵

## معارف او مسائل

په دې آيتونو کښې دَحضرت صالح ﷺ او دَهغوئ دَقوم [ثمود] دَحالاتو بيان دې ځنګه چه دَدې نه وړاند دَحضرت نوح ﷺ او حضرت هُود ﷺ دَقومونو بيان راغلې دې او دَسورت اعراف تر آخره پورې هم دَپخوانو پيغمبرانو او دَهغوئ دَقومونو احوال بيان شويدى، او دا بيان هم راغلې دې چه دغې قومونو دَپيغمبرانو ﷺ دَحق په بلنې باند کُفر او انکار کړې وو چه انجام ئې ډير خراب راوُختو۔

دَدې آيتونو ځنې په رُومبى آيت کښې ارشاد دې: ﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا﴾ دې نه وړاند دَعاد قوم په بيان کښې دا ښودلې شوى وو چه عاد او ثمود، هم دَيو نيکه په اولاد کښې د دوؤ کسانو نومونه دى چه دَدوئ تول اولاد [دواړه قومونه] په دغې نومونو سره يادېږي دوئ دَعربو په قطبى، مغربى علاقه کښې اوسيدل دلوئې ښارنوم ئې حجر وو چه اوس ورته عموماً مدائن صالح وئيلې شى، دَعاد قوم پشان، دَثمود قوم هم، دولتمند، قوى او بهادر قوم وو، په سنګ تراشئ او دَتعمير په فن کښې ډير ماهران وو، په هواره زمکه خولاځه کوې دَغرونو په تراشلو سره به ئې هم لوئې لوئې عمارتونه جوړول، په ارض القرآن کښې، حضرت مولانا سيد سليمان ندوى ليکلى دى چه دَدوئ دغه تعميرى يادګارونه لا تر اوسه پورې موجُود دى په دې باند په اِرمى او ثمودى خط کښې کتبې او بوړدونه نقش شويدى۔[۱]

دَدې دُنيا دَمال دولت وغيره نتيجه هم دغه وى چه دغسې خلق دَخدائې او آخرت نه په غافله کيدو سره په غلطو لارو باند تيرشى چنانچه دَثمود قوم هم دغه حال شو، سره دَدې چه دوئ نه وړاند دَحضرت نُوح ﷺ دَقوم دَعذاب واقعات بيانول دَخلقو په خُلو باند تر دغه وخته پورې جارِى وو او دَدوئ درور قوم [عاد] دَهلاکيدو واقعات خو تازه وو، مګر دَدولت او قُوت دَنشې خصوصيت دا دې چه دَدې نه وړاند دَرنګ شوى بُنياد په خاوړو دَپاسه خپل نوى بُنيادونه او دروى او تيرشوى حالات بيخى هيروى، عاديان چه هلاک شو دَهغوئ دَجائيدادونو، مکانُونو وغيره وارثان ثموديان جوړشو او هم په دغه ځايونوئې خپلو ځانُونو دَپاره نوى دَمزو، چرچو ځايُونه تيار کړل چې په هغه کښې هغوئ رونړه هلاک شوى وؤ او هم دَهغه رونړو په پَل باند سراسر روان شو، دکومو بد عملو په وجه چه هغوئ هلاک شوى وو۔ خُدائې او آخرت ئې هير کړو، پَه شرک او بت پرستئ کښې لګياشو، الله تعالى دَخپل جارى عادت په جوړ دَدوئ دَهدايت دَپاره حضرت صالح ﷺ درسول په حيث دوئ ته راوُليږلو، صالح ﷺ، دَنسب او وطن په اعتبار سره هم دَدوئ ځنې وغړې وو، يعنى دَسام په اولاد کښې وو، په دې وجه قرآن کريم ورته دَثمود رور داسې وئيلې دى: ﴿أَخَاهُمْ صَالِحًا﴾ حضرت صالح ﷺ خپل قوم ته هم هغه بلنه ورکړيده کومه چه دَحضرت آدم ﷺ راسې تر دغه وخته پورې تولو پيغمبرانو ﷺ ورکړې وه لکه قرآن کريم فرمائى: ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ﴾ [مُونږ هر اُمت کښې يو رسول اوليږلو چه هغه خلقوته هدايت اوکړى چه دَالله تعالى عبادت کوئ او دَبت پرستئ نه ځان ساتئ] د عامو انبياء کرامو ﷺ شان حضرت صالح ﷺ هم خپل قوم دغه فرمائيل وؤ چه الله تعالى خپل رب، خالق او مالک ګنړئ، دَهغه نه سوا بل هيڅوک دَمعبود جوړولو جوګه نشى کيدې، لکه وې فرمائيل: ﴿يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ﴾۔ ورسره ئې دا هم اوفرمائيل: ﴿قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ [يعنى اوس خود الله تعالى

---

[۱] ارض القرآن: ج ۱، ص ۱۸۹، ۱۹۰

له ارخه تاسوته يوه اګيزه نخښه هم راغلي ده،] دې نخښې نه مراديوه عجيبه اوښه وه چه اجمالي بيان ئې په دې آيت کښې هم دې اودقرآن کريم په مختلفو سورتونو کښې ددې زيات تفصيلات هم بيان شويدي، ددې اوښې واقعه داسې وه چه حضرت صالح عليه السلام دخپلې خوانئ په زمانه کښې خپل قوم ته دتوحيدبلنه ورکول شروع کړل اوپه مخه هم دغسې لګياوو، کله چه دبوډ اوالي نخښې پکښې څرګندې شوې نوقوم ئې يوه منصوبه جوړه کړه چه هرکله مونږه دده نه ډيرتنګ شوي يو اوس به ورته داسې يومطالبه وړاند کړوچه دبوډاوالي اوکمزورتيادوجې نه ئې نشئ پوره کولې اومونږ به ئې په مخالفت کولو کښې مخ روښږي شوچنانچه دامطالبه اوغوښتنه ئے تر اوکړه چه که تاسويقينًا دالله تعالى رسول يئ نوزمونږ دفلانی غر[کاتبه] نه داسې يوه اوښه راوباسئ چه دلسو مياشتو بلاربه، قوي اوتندرسته وي-

حضرت صالح عليه السلام اول دټولونه داوعده واغسته چه که زه ستاسوداغوښتنه پوره کړم نوټول به زما په بلنه اوبه مابانډ ايمان راوړئ؟ ټولوپه دغې لوظ، قول اوکړو نوحضرت صالح عليه السلام دوه رکعته مونځ اوکړو، الله تعالى نه ئې دعااوغوښتله چه يالله! تاته خو هيڅ کارګران نه دی ددوئ داغوښتنه پوره کړې، دعاکولوسره سمدستی غرپه خوځيدو شو، ددې يوغټ کاڼړي اوچودو دغې نه داسې يوه اوښه راووته څنګه چه دوئ ئې مطالبه کړې وه، په دې ښکاره معجزې ليدلو سره خوځه خلق مسلمانان شوټول قوم هم دمسلمانيدو اراده اوکړه، مګردقوم هغه سردارنو چه دبتانوخاص عبادتګذاراودبت پرستئ امامان و، دوئ لره اوغولول اودمسلمانيدونه ئې ايسار کړل، هرکله چه حضرت صالح عليه السلام دخپل قوم دغه لوظ، قول ماتول اوليدل، په دوئ باند د عذاب راتلوويره ئې پيداشوه نوپيغمبرانه شفقت اوزړه سواندی ئې په جوش کښې راغلو- ورته ئې نصيحت اوکړوچه ددې اوښې پوره خيال ساتئ، هيڅ تکليف مه وررسوئ، هله به تاسودعذاب نه په امن کښې پاتې شئ ورنه سمدستی به درباند عذاب راشی، لکه فرمائي:

﴿هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ اٰيَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِيْۤ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ [دااوښه ده دالله تعالى چه تاسولره دليل دې، نودا آزاده پريږدئ چه دالله تعالى په زمکه کښې خوراک کوی اوپه په بدنيت ګوتې مه وراوړئ ګنې دردناک عذاب به موراګير کړي]- دې ته ئې، ناقة الله، څکه اوفرمائيله چه دالله تعالى دکامل قدرت دليل وه-دحضرت صالح عليه السلام معجزه وه اوپه حيرانوونکي طريقې سره پيداشوې وه، لکه چه عيسى عليه السلام ته روح الله څکه اوويلې شوچه ددوئ پيداکيدل هم په معجزانه او حيرانوونکې طريقې سره شوی وو. په ﴿تَاْكُلْ فِيْۤ اَرْضِ اللّٰهِ﴾ کښې دې ته اشاره ده چه ددې اوښې په خوراک څکاک باند به ستاسو دکوره اوستاسو دخانه هيڅ خرڅ نه کيږي، ولې چه ددې پيداکوونکې خالص الله تعالى دې، دغه ګياه کښې به ئې هم ستاسودخوارئ اومحنت څه دخل نه وی، په زمکه کښې ئې آزاده پريږدئ چه دځرند دعامو ځايونونه خوراک کوی، دثمود قوم داوبوټول انتظام چه دکوهی نه ووهغې نه به دغې اوښې هم اوبه څکلې خوعجيبه خبره داوه چه په يو خل څکلو به ئې دغه ټول کوهي تشولو، په دې باره کښې حضرت صالح عليه السلام دالله تعالى په حکم دا فيصله کړې وه چه يوورځ به يواځې دااوښه دغې ګواهئ تولې اوبه څکې اوپه بله ورځ به ټول قوم ددې کوهی اوبه استعمالوی، په کومه ورځ به چه دغې اوښې نمبروونوهغه ورځ به ئې دومره پئ اوکړل چه ټول قوم به تر لوښی ډک کړل په قرآن کريم کښې داوبو ددې ويش بيان داسې راغلې دې فرمائي:

﴿وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ كُلُّ شِرْبٍ مُحْتَضَرٌ﴾ [يعنى اي صالح ﷺ خپل قوم په دې پوهه كړه چه دَدغه كوهى اوبه به دَدوى [ټولو] اودَاوښې ترمنځه په ويش وى، يوه ورځ به يواځې دَدې وى اوبله ورځ به دَټول قوم وى، په دې ويش باندې دَالله تعالى له اړخه به دَ فرشتو څارنه وى چه څوک ئې خلاف ورزى اونكړى، چنانچه په يو بل آيت كښې داسې هم راغلى دى:

﴿قَالَ هَٰذِهِ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ﴾ [دادَالله تعالي يوداسې اُوښه ده چه يوورځ به دَدې دَاوبو څكلو حق وى اودَبلې ورځې اوبه به ستاسوپه شريكه دَټول قوم حق وى]-

په دويم آيت كښې دَدې وعدې ماتوونكى سركش قوم دَخيرخواهئ په غرض دوئ لره دَالله تعالى دَعذاب نه ساتلودپاره، بيائې ورته دَالله تعالى انعامات اواحسانات وريادكړل چه اوس هم داخلق دَسركشئ كولونه واوړى، لكه فرمائى: ﴿وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ فِي الْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا﴾. دلته ،،خلفاء،، دَخليفه، جمع ده، معنى ئې قائمقام اونائب ده، ،،قصور،، جمع دَقصرده، لوړ، عاليشان عمارت اومحل ته وئيلې شى ﴿تَنْحِتُونَ﴾ نحت نه مشتق دې چه معنى ئې سنگ تراشى [كاڼړى تراشل] جبال، جمع ده جَبل ده- معنى ئې ده غر، ﴿بُيُوتًا﴾ دَبيت جمع ده، دَكوركمرې ته وئيلې شى، دَدې ټولومعنى به داشى چه دَالله تعالى هغه نعمت يادكړئ چه هغه دَعاد قوم په هلاكولوسره تاسودَهغوئ په ځائې آبادكړئ، دَهغوئ زمكې اومكانات ئې ستاسوپه قبضه كښې راوستل اوتاسوته ئې كاريگرى اوښوله چه په هواره زمكه لوئې لوئې محلونه جوړوئ اودَغرونوپه تراشلو سره پكښې كمرې اومكانونه جوړوئ په آخرد آيت كښې فرمائى: ﴿فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ﴾ [يعنى دَالله تعالى نعمتونه يادكړئ اودَهغه احسان اومنئ، دَهغه تابعدارى اختيار كړئ اوپه زمكه كښې فساد خوروونكى مه گرځئ]

**حكمونه اومسئلې** :: دَدې آيتونونه څواصولى اوفروعى مسئلې معلومه شوې:

اول داچه دَعقيدوپه اصولوكښې ټول انبياء ﷺ متفق دى اودَهغوئ شريعتونه په دې كښې يوشان دى، ولې چه ټولودَتوحيد بلنه وركړيده دَالله تعالى عبادت ته ئې خلق رابللى دى اودَهغې نه په خلاف كولوئې دَدُنيااوآخرت دَعذاب نه خلق ويرولى دى-

دويمه خبره داده چه ټولوپخوانواُمتونوكښې داسې شويدى چه دَقومونو، غټانو، دولتمنو، مخوريزوخلقو دَهغوئ بلنه نۀ ده قبوله كړې، دَهغې په نتيجه كښې په دُنياكښې هم تباه بربادشو اوپه آخرت كښې هم دَعذاب حقدارجوړشو-

دَتفسير قرطبى مُطابق دريمه خبره داده چه څنگه دَدې آيت نه معلومه شوه چه دَدُنيا نعمتونه الله تعالى، كافرانوته هم وركوى، څنگه چه عاديانواوثموديانوباندې الله تعالى دَدولت اوقُوت دروازې پرانستې وې- هم دَتفسيرقرطبى مُطابق څلورمه خبره داده چه لوئې لوئې محلونه اوعاليشان مكانونه آبادول هم دَالله تعالى نعمت دې چه جوړول ئې روادى-(١)

دابيله خبره ده چه انبياؤ، اواولياؤ داخكه نۀ دى خوښ كړى چه داڅيزونه انسان لره غافله كوى، دَرسول الله ﷺ نه چه دَلوړوعمارتونواوتعميرونو په باره كښې كوم ارشادات منقول دى دَهغې اندازهم دغه دې-

په دريم اوڅلورم آيت كښې هغه خبرې اترې اوبحث مباحثه بيان شويده چه دَثمودقوم دَدوؤ

١) تفسير قرطبى تحت هٰذه الآية: ج ٧، ص ٢٣٦

ډلو [مؤمنانو او کافرانو] ترمنځه وه، فرمائي: ﴿قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ﴾ [او وئيل دحضرت صالح ﷺ په قوم کښې هغه خلقو، چه تکبرئے کړې وو، هغه خلقوته چه سپک او کمزوري به ګڼړلې شو يعني ايماندار وته]

امام رازي په تفسير کبير کښې فرمائيلي دي چه دلته دَدې دواړو ډلو دوه صفتُونه قرآن کريم اوښودل، دکفارو وصف ئې دَمعروف په صيغې سره اوښودلو چه ﴿اسْتَكْبَرُوا﴾ دې، او دَ مؤمنانو وصف ئې دَمجهول په صيغې سره اوښودلو چه ﴿اسْتُضْعِفُوا﴾ دې په دې کښې اشاره مُونډې شي چه دکفارو داحال، يعني تکبر کول دوئ پخپله په خپل ځان کښې راوستې وو ګرفت او ملامتيا پرِ کيدې شوه او په انجام کښې دعذاب موجب شو، او دمؤمنانو کوم وصف چه دې خلقو بيانولو چه مؤمنان ګنې کمزوري او سپک خلق دي، نودا دکفارو ويناده، دمؤمنانو واقعي حال او وصف نهٔ وو ځکه پرِ ملامتيا هم نشوه راتلې بلکه ملامتيا په هغه خلقو راتله، چا به چه سپک او کمزوري ګڼړل، وريسې هغه خبرې اترې چه ددې دواړو ډلو ترمنځه اوشوې داسې وې چه کُفارو مؤمنانو ته اووئيل چه آيا، تاسوته دا واقعي معلومه ده چه حضرت صالح ﷺ دَخپل رب دا ړخه راليږلې شوې رسول دې؟ مؤمنانو جواب ورکړو چه کوم هدايات تو سره چه هغوئ دَ الله تعالى له اړخه راليږلې شويدي په دغې ټولو مونږه يقين او ايمان لرو-(۱)

په تفسير کشاف کښې دي چه دَثمود قوم مؤمنانو څنګه بليغ جواب ورکړيدې چه تاسو کوم بحث چه کول غواړئ چه دوئ دَ الله تعالى رسول دې او که نهٔ؟ داخو هډو دَبحث جوګه خبره ځکه نهٔ ده چه دا بديهي او يقيني ده او دا هم يقيني دي چه دهغوئ فرمان دَ الله تعالى دا ړخه راوړې پيغام دې، البته داسوال کيدې شي چه چا پرِ ايمان راوړې دې او چا پرِ نهٔ دې راوړې نو مونږ خو شکر د خُدائې دې دَدوئ په راوړلو شوؤ ټولو هدايا تو باند ايمان لرو، (۲) ليکن دَدوئ په بليغ جواب باند، قوم، هم هغه دَسر کشئ داسې خبره اوکړه چه په کوم څيز تاسو ايمان راوړې دې مونږ دهغې نه منکريُو، الله دمُونږ لره دَدُنيا دَمحبت او دَدولت او قُوت نشې نه په حفاظت کښې اوساتي، ځکه چه هغه دَانسان په سترګو باند پرده جوړيږي چه دَبديهي څيزونو نه هم بيا انکار کوي-

فَعَقَرُوا | النَّاقَةَ | وَعَتَوْا | عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ

نو شله کړه هغوئ | هغه اوښه | او نافرني يئ اوکړه | دحکم درب خپل نه

غرض دا چې هغوئ د اوښې پښې پريکړې | او دخپل رب دحکم نه ئې سرکشي اوکړه

وَقَالُوا | يَا صَالِحُ | ائْتِنَا | بِمَا | تَعِدُنَا | إِن كُنتَ

او وئيل هغوئ | اے صالحه | راوړه مونږ ته | هغه عذاب | چې نه ته يروې مونږه | که ئې ته

او پيغمبر ته ئې اووئيل | چې اِئې صالح ﷺ تاچې به دکوم [عذاب] وعدې کولې هغه راوله | که چرې ته

مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٧٧﴾ | فَأَخَذَتْهُمُ | الرَّجْفَةُ | فَأَصْبَحُوا | فِي دَارِهِمْ

د رسولانو نه | نو او نيول هغوئ لره | يوې زلزلې | نو شو هغوئ | په کورونو خپلو کښې

په رښتيا پيغمبر ئې | نو په هغوئ باندې سخته زلزله راغله | او په خپلو کورونو کښې

(۱) تفسير الكبير للرازي تحت هٰذه الآية: ج ۷، ص ۱۷۵
(۲) تفسير كشاف تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۵۰

| جٰثِمِيْنَ۝ | فَتَوَلّٰى | عَنْهُمْ | وَقَالَ | يٰقَوْمِ | لَقَدْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| پرمخي مړه پراته | انو اوګرځيدو | دهغوئ نه | اووې وئيل | اے قومه زما | بيشکه چې |
| پرمخ پاتې شو | او صالح ﷺ ترې نه يو طرفته شو | او ورته ئې اووئيل چې ائې زما قومه | | | |
| اَبْلَغْتُكُمْ | رِسَالَةَ | رَبِّيْ | وَنَصَحْتُ | لَكُمْ | وَلٰكِنْ |
| رااورسوؤ ماتاسوته | پيغام | درب زما | اونصيحت اوکړوما | تاسوته | خو ليکن |
| ماخوتاسوته دالله ﷻ حکمونه رارسولي وو | اوستاسوخيرخواهي مې لټولې وه | خو | | | |
| لَا تُحِبُّوْنَ | النّٰصِحِيْنَ۝ | | | | |
| نه خوښوئ تاسو | نصيحت کونکي | | | | |
| ستاسو هډو خيرخواه خلق خوښ نه وو | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

پس هغوی اوښه ووژله او د خپل پروردګار د حکم نه ئې سرکشي وکړه او وې وئيل چه : اې صالحه! که ته واقعي يو پيغمبر ئې نو راوړه هغه (عذاب) چه ته مونږ ته د هغې دهمکي راکوې! نتيجه داشوه چه دوی لره زلزلې ونيول او دوی په خپلو کورونو کښې الټه پريوتل. دې موقع باندې صالح ﷺ د قوم نه مخ اوګرزولو او وې وئيل چه اې زما قومه ما تاسو ته د خپل رب پيغام اورسولو او ستاسو خيرخواهي مې وکړه، مګر (افسوس چه) تاسو خيرخواهان نه خوښول.

## خلاصه تفسير

﴿فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ﴾ غرض [نه صالح ﷺ باندې ايمان ئې راوړو او نه يې د اوښې حقوق ادا کړل بلکه] اوښه [هم] دوئ اووژله او د خپل رب د حکم [منلو] نه ئې [هم] سرکشي اختيار کړه [هغه د توحيد او رسالت اعتقاد وو] ﴿وَقَالُوْا يٰصٰلِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ۝﴾ او [په دې باندې بيا دا بيباکي] چې دوئ اووئيل ائې صالح د کوم [عذاب] چې په تاسو مونږ ته دهمکي داکوله هغه طلب کړئ که تاسو پيغمبر يئ [ځکه چې د پيغمبر صادق کيدل لازم دی] ﴿فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ﴾ نو زلزلې هغوئ لره راؤنيول ﴿فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ۝﴾ او پخپلو کورنو کښې پرمخ پراته پاتې شو ﴿فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّيْ﴾ په هغه وخت کښې صالح [ﷺ] دهغوئ نه مخ واړولو لاړل او [د حسرت په طور يو خطاب يې اوکړ و] وې فرمائيل چې ائې زما قومه ما تاسو ته د خپل رب حکم در رسولې وو [او په دې باندې عمل کول د خلاصي سبب دې] ﴿وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ۝﴾ او ما ستاسو [ډيره] خير خواهي اوکړه [چې تاسو مې ډير په شفقت سره پوهه کړئ] ليکن [افسوس دادې چې] تاسو خلق [خپله] خيرخواهي نه خوښوله [په دې وجه تاسو زما واؤنريدل او آخر مو بده ورځ بيا مونده].

## معارف او مسائل

په تيروشوؤ آيتونو کښې دا بيان وو چه د حضرت صالح ﷺ په دعا سره د غريو لوئې ګټ اوچودوا وعجيبه اوښه تر راپيداشوه، الله تعالى دغه اوښه هم، دغې قوم د پاره آخری امتحان داسې جوړه کړې وه چه د کوم کوهي په اوبو به دغې ټول قوم او د دوئ خاروؤ ګذران کولو، دې به

هغه ټولې اوبه څکلې پدې وجه صالح ﷺ ددوی دپاره وارمقرر کړوچه یوورځ به دغه اوښه اوبه څکي اوبله ورځ به ددغې علاقې ټول خلق،

دثمود قوم ددې اوښې له کبله په سخت جنجال کښې راګیروو، د اوښې هلاکیدو ئې غوښتل خوپخپله ددې دهلاکولو نه ځکه ویریدل چه هسې نهٔ عذاب راشي. لیکن دشیطان دغولولو ئې دام چې په هغه کښې مبتلا کیدلو سره انسان خپل عقل او هوش دلاسه ورکوی هغه ښځه ده، چنانچه ددغې قوم دوه ښکلو او ښائیسته مخو ښخودا، داؤ اولګولو چه څوک دغه اوښه اووژني نو مونږ پخپله یازمونږ بله جینۍ چه ئې خوښه وی دغه به د دوژونکې وی-

ددغې قو دوه ځلمي مصداع او قزار په دغې نشه مست ددغه اوښې وژلو دپاره اووتل، د اوښې دراتلو په لاره کښې یو کټ لاند پټ کیناستل هرکله چه اوښه راغله نو مصداع پر دغښې ګوذار اوکړو او قزار په توري سره دهغې خپې پریکړې او داشان ئې هغه اووژله. چنانچه قرآن کریم په ثمود قوم کښې دټولونه زیات بدبخت دغه سړي بللې دې لکه فرمائي: ﴿إِذِ انۢبَعَثَ أَشْقَاهَا﴾ ولې چه ددهٔ له کبله ټول قوم په عذاب کښې راګیر شو- حضرت صالح ﷺ هرکله چه د اوښې په وژلو باند خبرشو نو د الله تعالى په حکم ئې ورته اوښودلو چه اوس ستاسو دژوند صرف درې ورځې پاتې دی لکه فرمائي: ﴿تَمَتَّعُوا فِي دَارِكُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ۖ ذَٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ﴾ [یعنی نورې درې ورځې په خپلو کورونو کښې آرام اوکړئ [ځکه چه دې پسې عذاب راتلونکې دی] او دا وعده په دروغه نهٔ وه، خو د کوم قوم چه بدنصیبي راشي نو هیڅ نصیحت او خبرداري پر اثر نهٔ کوي، دحضرت صالح ﷺ په دې ارشاد باند هم دغې بدبختو خلقو مسخرې کول شروع کړل او وئیل ئې چه دا عذاب به څنګه او د کوم ځائې نه راځي او نخښه به ئې څه وی؟ حضرت صالح ﷺ اوفرمائیل چه ښه ده دعذاب نخښې نښانې هم واورئ، صباله د زیارت په ورځ به ستاسو د ټولو مخونه تک زیړ شي- که نروی که ښځه، ورکوټې وی که ځوان، د پوخ عمروی او که بوډاوی، بیا په بله ورځ یعنی د جمعې په ورځ به مو مخونه تک سره شی او د خالی په ورځ به مو مخونه تک تورشي چه ستاسو دژوند آخرنۍ ورځ به وی، دغو بدنصیبو خلقو چه دا واوریدل نو د توبې استغفار کولو په ځائې ئې دا فیصله اوکړه چه حضرت صالح ﷺ هم اووژنئ، که دوی رشتیا وائې نو په مونږ باند دعذاب راتلونه وړاند دې ولې ختم نکړو؟ او که دروغژن وی نو د دروغو سزا به په دې سره بیامومي، چنانچه ددې ارادې بیان د قرآن کریم په یو بل ځائې کښې په تفصیل سره راغلې دې، دټول قوم ددې فیصلې مطابق، څه خلق، دشپې په وخت دحضرت صالح ﷺ مکان ته دهغوی دوژلو په اراده ورروان وو چه الله تعالى په لاره کښې هغوی په کاڼو ورولو سره هلاک کړل لکه فرمائي:

﴿وَمَكَرُوا مَكْرًا وَمَكَرْنَا مَكْرًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ [یعنی هغوئی هم په پټه یو چل جوړ کړو مونږه هم ورسره داسې چل اوکړو چه هغوی پرې خبر نهٔ شو، کله چه د زیارت ورځ شوه نو دحضرت صالح ﷺ دارشاد مطابق دټولو مخونه داسې تک زیړ شو لکه چه شوخ رنګ پرې مږلې شوې وی دعذاب دغه رومبی نخښه چه رشتیا اوختنه، بیا هم دغه خلقو په الله تعالى ایمان رانهٔ وړو، دخپلو غلطو کارونو نه واؤنهٔ ړیدل، بلکه حضرت صالح ﷺ ته نور هم زیات په قهر شو او ټول قوم ددوی دوژلو په تکل کښې شو، الله تعالى دې مونږ دخپل قهر نه محفوظ کړي، ددې نخښه داوی چه زړونه او دماغ الټه شی، نفع ته نقصان او نقصان ته نفع وائي، ښه ورته بد او بد ورته ښه ښکاري-

آخر، دونیمه ورځ [دجمعې] چه راغله نو دپیشن ګویئ په جوړئ مخونه تک سره او په دریمه ورځ نے تک تورشُو، په دغه وخت ټول خلق دخپل ژوندنه بې طمع شو، انتظارئې کولو چه عذاب به دکومه اړخه په څه شان سره راځي؟ــــ په داسې حال کښې په زمکه سخته زلزله راغله، دپورته نه سخته هیبتناکه چغه اوسخت آواز اوشوچه دهغې له کبله، ټول دځیرمې په یووخت په ناسته پاسته نه پړمخې اوغورځیدل اومړه شو، په دې آیتونوکښې دزلزلې بیان داسې راغلې دې:-

﴿فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ﴾ [رجفه زلزلې ته وائی] اوپه نوروآیتونوکښې:

﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ﴾ هم راغلې دې، [صیحه سختې چغې ته وئیلې شی] ددې دواړوآیتونونه معلومه شوه چه دواړه قسمه عذابونه په دوئ جمع شوی وو [یعنی دزمکې زلزله اودپاسه نه صیحه] ــ په نتیجه کښې ﴿فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ﴾ جثمین، دجثوم، نه مشتق دې معنی ئې ده، په یوځائې کښې داسې غورځیدل چه شُد بدنئ لرې، یاناست پاتې کیدل [قاموس] معنی داشوه چه په کوم حال وو هم هغلته ډیرئ شو. نعوذبالله من قهره

دثمود قوم ددې قیصې ضروری برخې خوپخپله دقرآن کریم په مختلفوسورتونو کښې ذکرشویدی اوځه برخې داحادیثوپه روایتونوکښې راغلی دی، څه هغه هم دی چه مفسرینو د اسرائیلی روایتونونه راغستی دی، خوپه دې باند څه واقعه یادحقیقت ثبوت څه اړه نه لرې۔

دصحیح بخاری دیوحدیث مطابق دغزوهٔ تبوک دسفرپه دوران کښې رسول الله ﷺ، سره دصحابه کرامودحجرپه مقام چه تیریدل نوهغوئ اوفرمائیل چه دې عذاب زپلې زمکې کښې دخوک نهٔ ورننووځی اونهٔ د ددغه ځائې دکوهی دکوهی اوبه څوک استعمالوی، حجرهغه مقام دې چرته چه په ثمودیانوباند عذاب راغلې وو- [مظهری]-(۱)

په ځنې روایتونوکښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی هرکله چه په ثمودقوم باند عذاب راغلو نوصرف ابو رغال نومې سړې ترځکه بچ شوچه هغه په دغه وخت کښې دمکې حرم ته رسیدلې وو دهغې په احترام کښې الله تعالی بچ کړو، کله چه حرم نه راووتو نوهم دغې عذاب، هغه لره هم رالاندکړو، اوهم هلته هلاک شو. رسول الله ﷺ ددهٔ دقبرنشانی اوښودله اووې فرمائیل چه دهٔ سره دسرو زرویوه لښته هم ښخه کړې شوې وه، چه دغه قبرصحابه کرامواوسپړو نودسروزرو هغه لښته واقعی پکښې پرته وه، اوهغوئ راوښکله- په دغه روایت کښې داهم شته چه دطائف اوسیدونکی خلق بنوثقیف دابی رغال اولاددی [مظهری]-(۲)

داسې قسم عذاب زپلې علاقې الله تعالی دعبرت په غرض راتلونکونسلونودپاره په ځائې ساتلی دی، چنانچه قرآن کریم بیابیا عرب خلق په دې خبردارکړی دی چه شام ملک ته ستاسو دسفر په لارکښې دغه مقامات اوس هم ستاسو دعبرت اغستودپاره موجوددی، لکه فرمائی: ﴿لَمْ تُسْكَن مِّن بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾.

دقوم صالح دعذاب دواقعې په آخرکښې الله تعالی فرمائی: ﴿فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُحِبُّونَ النَّاصِحِينَ﴾ [یعنی هرکله چه دغه قوم په عذاب هلاک شونو حضرت صالح ؑ سره دهغه خلقودغه ځائې پرینښوچاچه په دوئ ایمان راوړې وو، اوبل خوالاړل، ځنې روایتونو کښې راغلی دی چه حضرت صالح ؑ سره څلورزره مسلمانان وو چه ټول حضرموت او

---

(۱) صحیح بخاری، کتاب الانبیاء، باب قول الله تعالی والی ثمود أخاهم صالحاً: ج ۱، ص ۴۷۹

(۲) سنن ابی داود، کتاب الخراج والامارة والفئ، باب نبش القبور العادیة یکون فیها مال: ج ۲، ص ۴۳۰

هم هلته صالح ﷺ سره وفات شو، خنې روايتونو نه معلوميږي چه مكې معظمې ته لاړل او هلته حضرت صالح ﷺ وفات شويدې-

د ظاهر عبارت نه دا معلوميږي چه حضرت صالح ﷺ د ثمود د علاقې نه د تللو په وخت دغې قوم ته داسې فرمائيلي وو: اې زما قومه! ما درته د خپل رب پيغام اورسولو او ستاسو خيرخواهي م اوكړه، خوارمان دې چه تاسو خيرخواهان نهٔ خوښوئ:-

دلته سوال پيدا كيږي چه هلاک شوؤ خلقو ته د خطاب كولو څه فائده وه؟ جواب ئې دادې چه فائده پكښې نورو خلقو ته د عبرت سبق وركول دي، چنانچه دا خطاب هُو بَهُو هغسې دې كوم چه رسول الله ﷺ په غزوهٔ بدر كښې، هلاک شوؤ قريشي مشركانو ته كړې وو،(۱) خو دا هم كيدې شي چه حضرت صالح ﷺ دا خطاب خپل قوم ته د عذاب د نازليدو نه وړاند د دوئ په ژوندې كښې كړې وي اگرچه بيان ئې روستو راغلې دې-

وَلُوطًا | إِذْ | قَالَ | لِقَوْمِهِ

او اوليږو لوط | يادكړئ كله چې | او وئيل هغه | قوم خپل ته

او د لوط ﷺ واقعه ياده كړه | چې كله ئې قوم ته او وئيل

أَتَأْتُونَ | الْفَاحِشَةَ | مَا سَبَقَكُم | بِهَا | مِنْ أَحَدٍ

آيا تاسو راځئ | د بې حيايئ كار ته | چې نه دې رومبې شوې ستاسو نه | په هغې كار | هيڅوک

چې آيا تاسو د داسې بې شرمئ كار كوئ | چې ستاسو نه مخكښې هيڅ يو

مِّنَ الْعَالَمِينَ | إِنَّكُمْ | لَتَأْتُونَ | الرِّجَالَ | شَهْوَةً

د خلقونه | بې شكه تاسو | خامخا ورځئ | نارينوته | په شهوت سره

مخلوق نه دې كړې | آيا تاسو خپل شهوت د هلكانو نه پوره كوئ

مِّن دُونِ النِّسَاءِ | بَلْ أَنتُمْ | قَوْمٌ | مُّسْرِفُونَ | وَمَا كَانَ

په ځائې د ښځو | بلكه يئ تاسو | يو قوم | د حد نه اوړيدونكى | او نه وؤ

په ځائې د ښځو | رښتيا دا ده چې تاسو د حد نه ډير وړاندې تير شوې يئ | نو

جَوَابَ | قَوْمِهِ | إِلَّا أَن | قَالُوا | أَخْرِجُوهُم | مِّن قَرْيَتِكُمْ

جواب | د قوم د هغه | مګر دا چې | وئيل ئې | او باسئ دوئ | د كلي خپل نه

قوم سره د دې نه بغير بل جواب نه وو | چې خپل مينځ كښې ئې او وئيل | دوئ د خپل كلي نه او باسئ

إِنَّهُمْ | أُنَاسٌ | يَتَطَهَّرُونَ | فَأَنجَيْنَاهُ | وَأَهْلَهُ

بيشكه چې دوئ | داسې خلق دي | چې ځان پاک ساتي | نو بچ كړو مونږ هغه | او كور والا د هغه

ځكه چې دوئ خپل ځان پاک ساتل غواړي | نو مونږ هغه ته او د هغه كور والا ته نجات وركړو

(۱) صحيح البخاري، كتاب المغازي، باب قتل ابي جهل: ج ۲، ص ۵۶۶

| إِلَّا امْرَأَتَهُ | كَانَتْ | مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ۝ | وَأَمْطَرْنَا | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| مگرنه ښځه دهغه | وه هغه | دروستو پاتې کيدونکونه | اواوروؤ مونږ | په هغوئ باندې |
| خو صرف دهغه ښځه بچ نه شوه \| خکه چه په روستو پاتې کيدونکو کښې شامله وه \| او مونږ په هغوئ باندې | | | | |

| مَّطَرًا ؕ | فَانْظُرْ | كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | الْمُجْرِمِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| باران | نو اوگوره | څنګه شو | انجام | دمجرمانو |
| دکاڼو باران اوروَلو \| نواوگورئ چې دمجرمانو څه انجام شو \| | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ لوط عليه السلام ليږلې وو چه کله هغهٔ خپل قوم ته ووئيل چه: آيا تاسو هغه بې حيائي کوئ چه ستاسو نه مخکښې د دنيا يو کس هم نه ده کړې؟ تاسو د جنسي خواهش پوره کولو د پاره د ښځو په ځائې سړو ته راتلل کوئ (اودا څه اتفاقي واقعه نه ده) بلکه تاسو داسې خلق يئ چه (د شرافت) ټول حدونو نه اوړيدلي يئ، دهغوی د قوم جواب دې نه سوا نور څه نه وو چه: اوباسئ دوی لره د خپل کلي نه! داخلق دي چه ځان ته ئې پاکان جوړ کړي دي نو اوشوه داسې چه مونږ ده لره (يعنی لوط عليه السلام) او د هغه کور والا (دې کلي نه وويستل او) بچ کړل، خو د ده بي بي وه چه باقي خلقو کښې شامله وه (چه کوم عذاب کښې مبتلا شول) او مونږ په هغوی باندې (دکاڼو) باران وکړو اوس وگوره چه د دې مجرمانو انجام څنګه (خطرناک) شو؟

## خلاصه تفسير

﴿وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۝﴾ او مونږ لوط [عليه السلام] لره [څو کلو طرفته] اوليږلو هرکله چې هغوئ خپل قوم [يعنی خپل امت] ته اوفرمائيل چې تاسو داسې فحش کارونه کوئ چې دا ستاسو نه وړاندې په دنيا کښې چا نه دي کړي [يعنی] ﴿اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ﴾ تاسو سړو سره شهوت پوره کوئ او ښځې پرېږدئ [او ددې کار په کولو کښې دا نشته چې تاسو څنې دهوکه خوړلې وي] ﴿بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ۝﴾ بلکه [دې باب کښې] تاسو د حد نه [د انسانيت] تير شوي يئ ﴿وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ﴾ او [ددې مضمونونو] د دوئ د قوم نه څه [معقول] جواب جوړ نه شو سوا ددې نه چې [په آخر کښې د بيهوده لارې نه] خپلو کښې ئې اوئيل چې دې خلقو لره [يعنی لوط عليه السلام او دده مؤمنان ملګرو لره] تاسو خپل [دې] کلي نه اوباسئ [ځکه چې] ﴿اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ۝﴾ دا خلق ډير پاکيزه دی [او مونږ ته ناپاک وائي بيا دناپاکو د پاکو سره څه کار، دا خبره هغوئ د خندا په طور کړې وه] ﴿فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۚ﴾ پس [هرکله چې نوبت تر دې راؤرسيدو نو] مونږ [په دې قوم باندې عذاب راوستو او] لوط [عليه السلام] او ددوئ عليه السلام ملګرو لره [يعنی ددوئ کورنئ او نور ايمان راؤړونکو لره هم د عذاب نه] بچ کړل [داشان چې د وړاندې نه ورته د هغه ځائې نه د وتلو حکم اوشو] سوا دهغه د ښځې نه چې هغه [د ايمان نه قبلولو په وجه] ﴿كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ۝﴾ هم په هغه خلقو کښې پاتې شوه چې په عذاب کښې پاتې شوی وو ﴿وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ؕ﴾ او [هغه عذاب چې په هغوئ باندې نازل شوې وو چې] مونږ په هغوئ باندې يو نوې شان باران اوروَلو [چې هغه د کاڼو باران وو] ﴿فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ۝﴾ پس [ائې ليدونکو] اوګورئ ددې

مجرمانو څه انجام اوشو [که غور سره ئې څوك اوګوري نو تعجب به کوي او دا به ګڼړي چې د نافرمانئی څه انجام وي]۔

## معارف اومسائل

دَپیغمبرانو ﷺ اودَهغوئ دَاُمتونو کومې قیصې چه جاري دي په هغې کښې څلورم نمبر دَحضرت لوط علیه السلام قیصه ده، دوئ دَحضرت ابراهیم علیه السلام وراره کیږي، دَدواړو اصلي وطن، په مغربي عراق کښې، بصرې ته نزدې په ،،ارضِ بابل،، سره پیژندې شوه، په دې کښې دبت پرستئ عام رواج وو، دَحضرت خلیل الله علیه السلام خپله کورنئ هم په بت پرستئ کښې لګیاوه، دَدوئ دَ هدایت دَپاره ورته الله تعالی حضرت ابراهیم علیه السلام دَپیغمبر په حیث راؤلیږلو، قوم ئې مخالفت اوکړو چې نوبت یې دَنمرود اوره پورې اورسیده اوپخپله والد هم ورته دکورنه داوبنکلو دړکې ورکړې.

په خپلې کورنئ کښې ئې یواځې بی بی، حضرت ساره اووراره، حضرت لوط علیه السلام مسلمانان شو، لکه فرمائي: ﴿فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ﴾ آخر داچه دادواړه ئې ځان سره کړل اودَخپل وطن نه ئې شام ملك ته هجرت اوکړو، دَاُردن سیندته په رسیدو، دَالله تعالی په حُکم، حضرت ابراهیم علیه السلام په کنعان کښې تیکاؤشو، چه بیت المقدس ته نزدې واقع دې۔

لُوط علیه السلام هم، الله تعالی دَپیغمبر په حیث دَسدُوم اوسیدونکو دَهدایت دَپاره اولیږلو چه دَبیت المقدس اواُردن ترمنځه واقع دې، دغه علاقه کښې پنځه لوئې اوښکلي ښاروُنه وو چه نومونه ئې، سدوم عموره، ادمهٔ، صبوییم، اوبابع یاصوغروو چنانچه دَدې مجموعې لره قرآن په څو ځایونو کښې په ،، مؤتفکة،، اومؤتفکات،، الفاظوسره بیان کړیدې، سدوم به دَدې ښاروُنو دارالحکومت اومرکز ګڼړلې شو، حضرت لوط علیه السلام هم دلته تیکاؤ شو، زمکه شنه اوآباده، هرقسم میوې اوغلې به پکښې زیاتې کیدلې [داتاریخی تفصیلات بحرِ محیط مظهری، ابن کثیر، المنار وغیره کښې راغلی دی][1]

قرآن کریم دَانسان عام عادت دابیان کړیدې: ﴿كَلَّآ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَيَطْغٰٓى ۙ اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰى ؕ﴾ [انسان سر کشی شروع کړي کله چه هغه اووینی چه دَچامحتاج پاتې نشو] - هر کله چه الله تعالی په دغې خلقو هم دَخپلو نعمتُونو دروازې پرانستې وې نودعام انسانی عادت په مطابق، دَدولت اومالدارئ په نشه کښې مست، دَعیش، عشرت اوخواهشاتو هغه حدته رسیدلی وو چه انسانی غیرت، حیائې په لته اووهله اودَښه اوبدترمنځه ئې بیلتون هم نشو کولې، په داسې غیرفطری بیحیایو کښې اخته شو چه حرام اوګناه کیدل خوئې لاڅه کوې چه فِطرتِ سلیمه ته ترِهم کرکه ورځی بلکه عام څناور اوخاروی چرې هم دغسې نهٔ کوی۔

حضرت لوُط علیه السلام لره الله تعالی دوئ ته په هدایت کولویاند مامور اومقرر کړو، هغوئ دغې قوم ته اوفرمائیل: ﴿اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ﴾ [یعنی دَزورنې په ډول ئې ورته اوفرمائیل چه آیا، تاسوداسې ناکاره کارکوئ چه تاسونه وړاند په ټول جهان کښې بل هیچا نهٔ دې کړې]

دَزناپه باره کښې الله تعالی فرمائي: ﴿اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً﴾ په فاحشه باندِ ئې الف لام داخل نکړو مګردلته ئې ،،الفاحشه،، اوفرمائیل الف لام ئې پرِ راؤړو دې سره اشاره دې خبرې ته اوشوه چه داغیرفطری بدکاری ګویاکښې دَټولوناکارواؤ مجموعه اودَزنانه زیات، سخت جرُم دې۔

[1] تفسیر ابن کثیر، سورة العنکبوت ۲۶: ج ۶، ص ۲۷۲، ۲۷۳ و تفسیر البحر المحیط، سورة العنکبوت ۲۶: ج ۹، ص ۵۳

بیانې اوفرمائیل چه دابدکاری، دې نه وړاندې هیچاهم په دُنیاکښې نۀ وه کړې عمروبن دینار فرمائیلی دی چه دې قوم نه وړاندې داسې حَرکت کارناولې په بنیادموکښې نۀ وولیدلې شوې [مظهری] [1] او نه اهل سدوم نه مَخکښې د یو بدکاره نه بدکاره انسان ذهن دې طرفته تللې وو

چنانچه دَسدومیانودَیوسخت ناکاره انسان په ذهن کښې هم چرې داسې ناکاروالې نۀ وواغلې، دَبنی اُمیه یوخلیفه عبدالملک اووئیل چه که په قرآن کریم کښې دَلُوط ﷺ دَقوم واقعه نۀ وې بیان شوې نوماچرې هم ګمان نشوکولې چه یوانسان به داسې کارکولې شی [ابن کثیر] [2]

دلته په دوه شانه په دې بې حَیایئ خبرداری داسې ورکړې شویدې چه اول خوانسان په یوګناه کښې دَخپل چاپیرچل یادَخپلوپلرونو، نیکونو دَتابعدارئ په وجه اخته کیږی، اګرچه داهم په شریعت کښې څه عذرنۀ جوړیږی بیاهم په عُرف کښې عُذر ګنړلې شی، مګرداسې یوګُناه چه رومبې هیچانۀ وی کړې اونۀ دهغې دکولوڅه خاص باعث وی نودَدې وبال نورهم زیات وی، بلکه داچه په دې حیثیت سره چه څوک یوه نوې ګناه روانۀ کړی نوپه هغه یوخودَدغې ګُناه دکولو وبال اوعذاب وی دې سره به دهغه ټولوخلقو وبال اوعذاب هم دَدۀ په سروی څوک چه په دغې ګُناه کښې دَدۀ په پل روان په دغې ګناه کښې لګیاوی۔

په بل آیت کښې دَدوئ دَغه بیحیائ، په زیات واضحوالفاظوکښې داشان بیان کړې شویده چه تاسودَزنانو په ځائې په نارینۀوسره خپل شهوت پوره کوئ، په دې سره ئې اشاره اوکړه چه دَانسان دَطبعی اوفطری خواهش پوره کولواوسرولو دَپاره الله تعالی زنانۀ سره دَنکاح کولویوه جائزه طریقه مقررکړیده چه دَهغې په پرېښوسره غیرفطری طریقه اختیارول دَګنده ذهنیت اودَنفس لَزرۀ دَپلیتئ ثبوت دې، چنانچه صحابه کرامو، تابعینواومجتهدینو امامانودَعامې بدکارئ نه، داجرم اوګُناه زیاته سخته بللې ده، امام اعظم ابوحنیفه ﷫ فرمائیلی دی چه داسې فعل کوونکی ته هم هغه شان سزاورکول پکاردی څنګه چه دَلُوط ﷺ قوم ته دَالله تعالی دَاړخه ورکړې شوه چه دَآسمان نه پرِ کانړې راوریدل اوزمکه پرواړولې شوه، په دې بنیادغسې سړې دَدېو لوړغرنه راګذارکړې شی چه دَپوزته نه پرِ کانړې راوورولې شی. دغه شان دَحضرت عبدالله بن عباس ﷠ په روایت رَسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه: ﴿فاقتلوا الفاعل والمفعول به﴾ [دَدې ناکاره کارکوونکې اوهغه څوک چه داکارورسره کړې شوې وی دواړه اووژنئ] [مسنداحمد، ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه په حواله دَابن کثیر] -[3]

په آخرآیت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿بَلۡ أَنتُمۡ قَوۡمٞ مُّسۡرِفُونَ﴾ [تاسودَانسانیت دَحدنه ورتیریدونکی خلق یئ] یعنی ستاسواصل مرض دادې چه په هرکارکښې دَهغې دَحدنه ورتیریږئ، دَجنسی خواهش پوره کولو په باره کښې هم دَالله تعالی دَمقررکړی حدنه په ورتیریدو سره په غیرفطری عمل کښې اخته شوئ۔

---

[1] التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۸۲

[2] تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۲۲

[3] تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۲۰۵ وسنن ابی داود، کتاب الحدود، باب من عمل عمل قوم لوط: ج ۲، ص ۶۱۳، جامع الترمذی، أبواب الحدود، باب ما جاء فی حد اللوطی: ج ۱، ص ۲۷۰، وسنن ابن ماجة، أبواب الحدود، باب من عمل قوم لوط: ص ۱۸۳، ومسند أحمد، بدایة مسند عبدالله بن عباس رضی الله عنهما رقم الحدیث: ۲۵۶۶

په دريم آيت كښې د حضرت لوط عليه السلام د نصيحت په جواب كښې د هغوئ د قوم جواب داشان بيان كړې شويدې چه د دغه خلقو د طرف نه خو څه معقول جواب وركول اونۀ شو، البته په ضد كښې راغلل اوخپل منځ كښې ئې وئيل چه دا خلق خودلوئې پاكئ اوصفايئ دعويدار دى، د دوئ علاج دا دې چه د خپلې علاقې نه ئې اوباسو-

په دريم اوڅلورم آيت كښې د سدوم قوم د دې بې لارئ اوبې حيايئ د آسمانى سزا ذكر داسې دې چه په دغه ټول قوم باند د الله تعالى عذاب نازل شو، يواځې لوط عليه السلام اوځونور ملګرى [مؤمنان ئې] د عذاب نه خلاص پاتې شو لكه قرآن كريم فرمائى: ﴿فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥ﴾ [يعنى مونږه حضرت لوط عليه السلام اود هغه خاندان د عذاب نه خلاص كړل، ځنې مفسرينو حضراتو وئيلى دى چه د دوئ په اهل كښې دوه جينكئ وى چه مسلمانانې شوې وې، يوه ئې بى بى وه چه مسلمانه شوې نۀ وه، لكه قرآن كريم په يو آيت كښې داسې فرمائى: ﴿فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ ٱلْمُسْلِمِينَ﴾ [يعنى په دغه ټوله علاقه كښې سوا د يو كورنئ [د حضرت لوط عليه السلام] نه بل څوك مسلمانان نۀ وو، په ظاهره تر دا معلوميږى چه د حضرت لوط عليه السلام يواځې د كور خلق مسلمانان شوى وو كوم چه عذاب نه خلاص شو، خوبى بى ئې پكښې داخله نۀ وه، ځنې مفسرينو فرمائيلى دى چه اهل نه مراد عام دى، كه هغه د خپل كور خلق ئې وو يا نور تعلقداران وو كوم چه مسلمانان شوى وو- خلاصه دا شوه چه د شمير څو كسان پكښې مسلمانان شوى وو چه هغوئ له د عذاب نه بچ كولو د پاره الله تعالى حضرت لوط عليه السلام ته داسې حكم وركړې وو چه د خپلې بى بى نه سوا نور خپل اهل اوتعلقداران د شپې په آخر كښې د دغې علاقې نه اوباسئ اوپه شاد روستونۀ ګورى، ځكه چه ستاسو په وتلو سره به سمدستي په دغې علاقه باند عذاب راځي-

حضرت لوط عليه السلام د الله تعالى په حكم عمل اوكړو په آخر د شپې كښې سره د ټولو مؤمنانو د سدوم نه اووتل، د بى بى په باره كښې دوه روايتونه داسې دى چه هغه ورسره د سره روانه شوې نۀ وه، بل روايت كښې دى چې ترڅه حده ورسره روانه شوه خو د الله تعالى د حكم په عكس ئې هركله چه شاته روستو اوكتل د دغې علاقې د خلقو حال ئې كتل غوښتل نو هغه هم عذاب راګيره كړه، د قرآن كريم په مختلفو ځايونو كښې دا واقعه په اجمال اوتفصيل دواړو سره بيان كړې شويده، دلته په دريم آيت كښې صرف دومره قدرې بيان دې چه مونږه حضرت لوط عليه السلام اود هغه اهل او متعلقينو ته د عذاب نه خلاصې وركړو خو د هغوئ بى بى په عذاب كښې راګيره شوه، د خلاصى وركولو دا صورت چه په آخر د شپه كښې دووځى اوشا په روستو د نۀ ګورى په نورو آيتونو كښې بيان شويدى-

په څلورم آيت كښې په دغه قوم باند راتلونكې عذاب په لنډو ټكو كښې صرف دومره ذكر شويدې چه په دوئ باند يو عجيبه قسم باران راؤليږلې شو اوپه سورت هود كښې د دې عذاب كيفيت په تفصيل سره داسې بيان شويدې ﴿فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَٰلِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ ۝ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِىَ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ بِبَعِيدٍ﴾ [هر كله چه زمونږ عذاب راغلو نو هغه علاقه مولاند باند كړه اوكانړې موپر راؤورول د كانكړ، قط په قط چه د الله تعالى د خوانه پرنخښې لګولې شوې وې اونۀ ده دغه آبادى د دغه ظالمانو نه څه لرې]-

دې نه معلوميږى چه د پاسه نه پرې د كانړو باران اوشو اولاند ټوله زمكه جبرائيل عليه السلام د بيخه راؤښكله پورته ئې اوخيژوله اوپرمخې ئې راؤغورځوله اود كانړو باران پرقط په قط داسې شوې وو چه په مخه پرې راؤورولې شونو په زمكه قط په قط پريوتل، په دغې كانړو نخښې هم لګيدلې

وي، ځنو مفسرينو فرمائيلي دي چه په هريو کاڼړي به دهغه چانوم وو دچادهلاکولو دپاره به چه مقررو - دسورتِ حجر په آيتونو کښې ددې عذاب نه و ړاندِ داهم ذکر شويدی: ﴿فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّيۡحَةُ مُشۡرِقِينَ﴾ [دَ نمر راختو په وخت هغوئ لره چغې رالاندِ کړل]-

دې نه معلومه شوه چه اول دآسمان نه ځه سخت آواز دچغې په ډول راغلو، بیاورپسې نور عذابونه راغلل، دالفاظو نه په ظاهره معلومیږی چه دچغې نه پس ړومبې، زمکه اپوته کړې شوه، بیادزیات سپکاوی اوذلیله کولو دپاره پرکاڼړی راؤورولې شو، داسې هم کیدې شي چه اول پرکاڼړی راورولې شوی وی، بیاپرِ زمکه التِه کړې شوی وی، ځکه چه دقرآن کريم په اندازِ بیان کښې داضروری نۀ ده چه دکوم څیز ذکر ړومبې وی هغه دړومبی واقع شوې وی-

دلوط ﷺ په هیبتناکو عذابونو کښې دزمکې داپوته کولو سزادهغوئ دفحش اوبې حیایَ دکارونو سره خاص مناسبت داسې هم لری چه هغوئ به هم اپوته کارونه کول-

دسورتِ هود دآيتونو په آخر کښې قرآن کريم داهلِ عربودزیات خبرداره کولو دپاره داهم اوفرمائیل چه: ﴿وَمَا هِيَ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ بِبَعِيدٍ﴾ [یعنی دغه اپوته کړې شوې علاقه دظالمانو نه څه لرې نۀ ده، دشام دسفر په لاره کښې هر وار مخې له راځی خوحیرانی ده چه دوئ ترعبرت نۀ حاصلوی-

داتنداره یواځې دقرآن کريم دنازلیدو په زمانه کښې نۀ بلکه نن هم موجوده آپه بیت المقدس او د اردن نهر په مینځ کښې نن هم هغه حصه د زمکې په بحر لوط یا بحر میت په نوم سره یادیږی، دغه زمکه دسمندر دسطح نه ډیره ژوره ده، ددې په یوه خاصه برخه کښې ددریاب په صورت کښې یوعجیبه قسم اوبه موجودې دی چه پکښې هیڅ سادار څیز کب، چیندخه [چینګوښه] وغیره ژوندې نشی پاتې کیدې ځکه ورته ،بحرِمیت، وائی-اودسدوم مقام همدغه ښودلې شی نعوذبالله من عذابه وغضبه.

| مَّطَرًا | فَٱنظُرۡ | كَيۡفَ كَانَ | عَٰقِبَةُ | ٱلۡمُجۡرِمِينَ | وَإِلَىٰ مَدۡيَنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| باران | نو اوګوره | څنګه شو | انجام | دمجرمانو | او مدين والو ته |
| دکاڼړو باران اورولو \| نواوګورئ چې دمجرمانو څه انجام شو \| .........اودمدين خلقو ته | | | | | |
| أَخَاهُمۡ | شُعَيۡبًا | قَالَ | يَٰقَوۡمِ | ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ | مَا لَكُم |
| رور دهغوئ | شعيب | اووئيل هغه | اے قومه زما | بندګی کوئ دالله | نشته تاسولره |
| مونږدهغوی رور شعيب اولیږلو \| هغه ورته اووئيل چې اې زماقومه صرف دالله ﷻ عبادت کوئ ستاسودپاره | | | | | |
| مِّنۡ إِلَٰهٍ | غَيۡرُهُۥ | قَدۡ جَآءَتۡكُم | بَيِّنَةٌ | مِّن رَّبِّكُمۡ | |
| هيڅوك معبود | بغير دهغه نه | بيشكه راغلی دی تاسوته | ښې ښكاره | دطرفه درب ستاسونه | |
| دهغه نه سوا بل معبود نشته \| ..... تاسوته دخپل رب دطرفنه ښکاره دليل راغلې دې \| | | | | | |
| فَأَوۡفُواْ | ٱلۡكَيۡلَ | وَٱلۡمِيزَانَ | وَلَا تَبۡخَسُواْ | ٱلنَّاسَ | أَشۡيَآءَهُمۡ |
| نو پوره ورکوئ | پيمانه | اوتول | اوکم مه ورکوئ | خلقو له | څيزونه دهغوئ |
| نوپيمانه اوتول پوره پوره ورکوئ \| اوخلقو ته دهغوئ په څيزونو کښې کمې مه کوئ | | | | | |

وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا ذٰلِكُمْ خَيْرٌ

اوفساد مه کوئ | په زمکه کښې | وروستو د اصلاح دهغې نه | دا کار | غوره دي

او اصلاح نه پس په زمکه باندې فساد مه خورونئ | ..........دا ستاسو دپاره بهتره ده

لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۚ وَلَا تَقْعُدُوْا بِكُلِّ صِرَاطٍ

ستاسو دپاره | که يئ تاسو | مومنان | او مه کينئ تاسو | په هره لار کښې

که چرې تاسو يقين کوئ | او په هره يوه لاره باندې مه کينئ | ..چې خلق ويروئ

تُوْعِدُوْنَ وَتَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِهٖ

چې اويروئ خلق | او منع کوئ | دلارې | دالله نه | هغه څوك | چې ايمان ئې راوړو | په هغه

............ او چاچې ايمان راوړې دې هغوئ دالله ﷻ دلارې نه منع کوئ

وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَاذْكُرُوْا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا فَكَثَّرَكُمْ

اولټوئ هغې لره | کوږوالې | او ياد کړئ | کله چې | وئ تاسو | لږ | نو زيات ئې کړئ تاسو

او په هغې کښې کوږوالې لټوئ | او ياد کړئ چې مخکښې تاسو لږ وئ | تو هغه ډير کړئ

وَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ۝ وَاِنْ كَانَ طَآئِفَةٌ

او اوګورئ | څرنګې وو | انجام | دفساد کونکو | او که چرې وی | يوه ډله

او تاسو اوګورئ چې د [پخوانو] فسادیانو څه انجام شو | او که تاسو کښې يوې ډلې

مِّنْكُمْ اٰمَنُوْا بِالَّذِيْٓ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَطَآئِفَةٌ

ستاسو نه | چې ايمان راوړې | په هغه څيز | چې رالیږلې شوې يم زۀ | په هغې سره | او يوه ډله

په هغه تعليم ايمان راوړې دې | کوم چه ماته راکړې شوې دې | او بلې ډلې

لَّمْ يُؤْمِنُوْا فَاصْبِرُوْا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ

ايمان نۀ وي راوړې | نو صبر کوئ | ترهغې | چې فيصله اوکړي الله | په منځ زمونږ کښې | او هغه

پرې نه دي راوړې | نو لږ صبر اوکړئ چې الله ﷻ پخپله زمونږ په مينځ کښې فيصله اوکړي | او هغه

خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ۝

بهتره | فيصله کونکې دې

ډير ښۀ فيصله کونکې دې

## آسان ترجمه قرآن

او مدين طرفته مونږ د دوی ورور شعيب عليه السلام ليږلې وو. هغه ووئيل چه اې ځما د قوم خلقو! دالله عبادت وکړئ د هغه نه سوا ستاسو څوك معبود نشته. تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرف نه يو واضح دليل راغلې دې پس ناپ او تول پوره کړئ. او کوم څيزونه چه د خلقو په ملکيت کښې دي. هغې کښې د هغوی حق مه وهئ او زمکه کښې د دې داصلاح نه وروستو فساد مه کوئ خلقو! دا طريقه ستاسو دپاره غوره ده. که

تاسو څما خبره اومنئ او داسې مه کوئ چه په لارو کښې کېنئ او خلقو ته دهمکیانې ورکوئ . او کوم خلق چه په الله باندې ایمان راوړي هغوی دالله د لارې نه منع کوئ . اوهغې کښې د کوږوالی پیدا کولو کوشش کوئ . او هغه وخت یاد کړئ چه کله تاسو لږ وئ پس بیا الله تاسو زیات کړئ او دا هم وګورئ چه د فساد کوونکو انجام څه شو . اوکه تاسو کښې یو ډلې هغه پیغام باندې ایمان راوړې دې چه په کوم څه لیږلې شوې یم ، او بلې ډلې ایمان نه دې راوړې نو لږ هغه وخته پورې صبر وکړئ چه کله الله څمونږ په مینځ کښې فیصله وکړی او هغه د ټولو نه بهتر فیصله کوونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾ اومونږ مدین [والو] طرفته دهغوئ رور شعیب [؏] لره [پیغمبر جوړ کړو] اومونږ اولیږلو ﴿قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ﴾ هغوئ [مدین والو ته] اوفرمائیل چې اې زما قومه تاسو [صرف] د الله ﷻ عبادت کوئ دهغه نه سوا ستاسو بل معبود نشته دې ﴿قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ یقینا تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرفه [زما په نبوت باندې] واضح دلیل [چې څه معجزه ده] راغلې دی [هر کله چې زما نبوت ثابت دې] ﴿فَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ﴾ نو [تاسو د شریعت په حکمونو کښې څما حکم اومنئ ، څه وایم چې] تاسو ناپ تول پوره پوره کوئی ﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ﴾ او خلقو ته د هغوئ په څیزونو کښې نقصان مه رسوئی [الکه څنګه چې ستاسو عادت دې] ﴿وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا﴾ او په مخ دزمکې پس ددې نه چې [تعلیم و توحید و بعثت انبیاء وایجاب عدل او ادائې حقوق میکیال او میزان سره] ددې صحیح والی [تجویز] اوکړې شو نو فساد مه خوروئی [یعنی ددې احکامو مخالفت او کفر مه کوئی ځکه دا د فساد سبب دی] ﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ دا [څه چې څه وایم په دې باندې عمل کول] ستاسو دپاره [دنیا او آخرت دواړو کښې] نافع دې که تاسو [څما] تصدیق اوکړئی [په دې باندې دلیل قائم دې او ددې تصدیق کولو نه پس په دې باندې عمل اوکړئی او نو دا امور مذکوره په دارینو کښې ډیر فائده مند دې ، آخرت کښې خو ظاهر دی چې نجات به درته ملاویږی . اوپه شریعت باندې په دنیا کښې عمل کولو سره امن وی ، او په ناپ تول کښې پوره والی سره تجارت زیاتیږی] ﴿وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِهِ وَتَبْغُونَهَا عِوَجًا﴾ او تاسو په لاروې کښې په دې غرض مه کینئ چې څوك په الله ﷻ باندې ایمان راوړی [هغوئ ته] دهمکئ ورکړئی او [هغوئ لره] دالله تعالی د لارې [یعنی ایمان] نه منع کړئ او په دې [لارا] کښې کوږوالئ [او شبهات] تلاش کړئی [چې غلط اعتراضونه کوئی او د خلقو د دهوکه کولو دپاره سوچونه کوئی دا خلق دې مذکوره ضلالت سره سره په دې ضلالت کښې هم اخته وو چې په لارو کوڅو کښې به ناست وو اوکوم خلق چې به راتلل هغوئ به یې لمسول چې په شعیب ؏ باندې ایمان مه راوړئی ګنی مونږ به تاسولره اوژنو ، وړاندې د تذکیر نعمت ترغیب او تذکیر نقمت سره ترهیب دې یعنی] ﴿وَاذْكُرُوا إِذْ كُنتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ﴾ او هغه حالت یاد کړئی کله چې تاسو [په شمیر کښې یا مال کښې] کم وئ بیا الله تعالی تاسو لره [په شمیر کښې یا مال کښې] زیات کړئی [دا په ایمان قبلولو باندې ترغیب وو] ﴿وَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ﴾ او اوګورئی څومره خراب انجام شو د فسادیانو [یعنی کفر و تکذیب وظلم] کولو والا [الکه څنګه چې قوم ثمود او

عاد او قوم نوح تیر شوی دی داشان تاسو باندې هم د عذاب راتلو اندیښنه ده دا په کفر باندې ترهیب دې] ﴿وَإِن كَانَ طَآئِفَةٌ مِّنكُمْ ءَامَنُواْ بِٱلَّذِىٓ أُرْسِلْتُ بِهِۦ﴾ او كه [تاسو ته په عذاب راتلو كښې شك وى چې] تاسو كښې ځينې [خو] په دې حكم باندې كوم چې ما تـه راكړې شوې او ليږلې شوې يم ايمان راوړې دې ﴿وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُواْ﴾ او ځينو ايمـان نـه دې راوړې [او بيا هم دواړه ډلې هم په يو حالت كښې دى دا نه ده چې كومو خلقو ايمان نه دې قبول كړې په هغوئ باندې عذاب راغلو ، ددې نه معلومه شوه چې ستاسو د عـذاب نه ويرول بې اصل دى] ﴿فَٱصْبِرُواْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ بَيْنَنَا﴾ نو [ددې شك جواب دادې چې زر تر زره عذاب نه راتلو سره دا څنګه معلومه شوه چې عذاب به نه راځي] لږ صبر اوكړئى تر دې چې زمونږ [يعنى د دواړو ډلو] مينځ كښې الله تعالى [عملى] فيصله اوكړى [يعنى عذاب به نازل كړى او مؤمنانو ته به نجات وركړى او كفار به هلاك كړى] ﴿وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ﴾ او هغه تولو فيصله كوونكو نه بهتر دې [يعنى دهغه فيصله بالكل مناسب ده

## معارف اومسائل

دَ پیغمبرانو ﷺ په روانو قیصو کښې پنځمه قیصه دَحضرت شعیب ﷺ اودَهغوئ دَقوم ده چه دې آیتُونو کښې بیان شویده-

دَمحمد بن اسحاق دَروایت په جوړ حضرت شعیب ﷺ دَحضرت ابراهیم ﷺ دَخوئې مَدْين په اولاد كښې وو اودَحضرت لُوط ﷺ سره قرابتدارئ رشته لرى، دَحضرت خليل الله ﷺ دَدغه خوئې مَدين په نُوم دَهغه نسل اولادهم په دغې نوم سره مشهورشو، هغه علاقې تـه هم مَدين وئيلې شي په كومه كښې چه هغه اوسيدو ،په دې لِحاظ سره مَدين دَقوم اوښاردواړونوم شو، دا ښارنن هم د شرق أردن بندرګاه معان سره نژدې موجُوددې دَقرآن كريم په بل ځائې كښې دموسى ﷺ په قصه كښې داسې هم راغلى دى: ﴿وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ﴾ چه هم دغه آبادى تر مُراد ده[ابن كثير]-(۱) حضرت شعيب ﷺ ته به خطيب الانبياء وئيلې شو ځكه چه دَهغوئ بيان به ډير ښكلې وو[ابن كثير، بحرِ مُحيط].(۲)

حضرتَ شعيب ﷺ چه كوم قوم ته ليږلې شوې وو، قرآن كريم كله هغه په اهلِ مَدين، كله په اصحابِ مدين اوكله دَاصحاب ايكه په نُوم ياد كړيدې، ايكه ځنګل اوبنړته وِئيلې شي-

خنومُفسرينو حضراتوفرمائيلى دى چه دادواړه بيل بيل قومُونه وو، دَدواړوآبادئ هم بيلې وې، حضرت شعيب ﷺ په دې كښې يوقوم تـه اول اوليږلې شو دهغوئ په هلاكيدو سره بيابل قوم ته اوليږلې شو،په دواړوقومُونودراغلى عذاب الفاظ هم مختلف دى- په اصحاب مدين باند كله دَصيحة اوكله دَرجفة دعذاب ذكردې، اوپه اصحاب ايكه باند دَ،،عذاب ظُلة،،ذكرراغلې دې-دَصيحې معنى چغه ،سخت آواز ،دَرجفه معنى زَلزلـه اودَظلة معنى سائبان اوتمبوده-په اصحاب ايكه باندپه دې شان عذاب راغې چه اول په دغه ټوله آبادئ كښې څوورځې سخته ګرمى راغله بيا هغوئ ته نژدې په ځنګل ګنړه وريځه راغله اوهلتـه يخې هواګانې چليدل شروع شو، دهغې په ليدو باند دَټولې آبادئ خلق دَوريځې په دغه سورى كښې راجمع شو ،په داشان داځُدائى مجرمان، بغيرَدَځه وارنټ اوسپائى نه پخپله دَخپل هلاكيدوځائې تـه راغلل،چه ټول

(۱) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآيات: ج ۲، ص ۲۲۷

(۲) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۷ وتفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآيات: ج ۵، ص ۲۹۱

راجمع شو نووریخې نه اورراؤوریدو او په زمکه کښې هم زلزله راغله چه دهغې په وجه دغه ټول خلق دځیرمې هلاک شو-

ځنې مفسرینو حضر اتوفرمائیلي دي چه اصحاب مدین او اصحٰب ایکه هم دیوقوم نومونه دي او د عذاب دغه ذکرشوي درې واړه قسمونه هم په دغې یوقوم باند جمع شو اول دوریځې نه او رراؤوریدو، بیا ورسره سخت آوازدچغې په شکل کښې راغلو بیا په زمکه کښې زلزله راغله-[1]

بهرحال که دادواړه قومونه بیل بیل وي اوکه یوقوم وي، حضرت شعیب علیه السلام چه دوئ ته کوم دحق پیغام ورکړې وو هغه په رومبی اودویم آیت کښې ذکرشویدی، ددغې پیغام دتفسیرنه رومبې په دې خان پوهه کړئ چه هرکله اسلام دټولوپیغمبرانو علیهم السلام شریکه بلنه ده دهغې خُلاصه دحقوقواداکول دي، بیا حقونه دوه قسمه دي یونیغ په نیغه دالله تعالی حق چه دهغې په کولواوپرېښولو دانسانانو معتد به اوځه لوئې دنیوی سود [فائده]، زیان [تاوان] څه اړه نۀ لري لکه مونځ، روژه وغیره شو، بل حقوق العباد دي چه تعلق ئې انسانانوسره دې اوداقوم ددې دواړوحقوقو نه بې خبره وو اوددواړو په خلاف ئې کارکولو-

دې خلقوپه الله تعالی اودهغه په رسولانو باند ایمان نۀ راؤړلوسره دالله تعالی دحقوقو خلاف ورزی کوله، او ددې سره به ئې په ناپ، تول کښې دټګئ کولوپه وجه دخلقو حقونه ضائع کول-

زیاتی داچه دلارواوسړکونوپه سر به ناست وو تلونکی خلق به ئې ویرول اولوټل اوپه حضرت شعیب علیه السلام باند دایمان راؤړلونه به ئې منع کول، په دې شان په مخ دزمکې ئې فسا د راولاړ کړې وو، دادوئ سخت جرمونه وو چه داصلاح دپاره ئې حضرت شعیب علیه السلام لیږلي شوې وو-

دلته په رومبی دوؤآیتونوکښې حضرت شعیب علیه السلام دقوم داصلاح دپاره درې خبرې اوفرمائیلې، اوله ﴿یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَکُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ﴾ [یعنی اې زما قومه! تاسو دالله تعالی عبادت کوئ، دهغه نه سوا، هیڅوک ستاسو دمعبود کیدوجوګه نۀ دي] دتوحید دا بلنه ټولوپیغمبرانو علیهم السلام په مخه کړیده کوم چه دټولو عقیدواوعملونوروح دې، هرکله چه داقوم هم په مخلوق پرستئ کښې اخته وو، دالله تعالی دذات، صفتونواودهغه دحقوقونه غافله وو، په دې وجه ورته دټولونه اول دا پیغام ورکړې شو، اودائې هم اوفرمائیل: ﴿قَدْ جَآءَتْکُمْ بَیِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّکُمْ﴾ [یعنی تاسوته ستاسو درب داړخه واضح دلیلونه راغلی دي] دلته دواضح دلیلونه مراد هغه معجزې دي کومې چه دحضرت شعیب علیه السلام په لاس ښکاره شوي دي، په تفسیر بحرمحیط کښې دهغوئ ددغه معجزو مختلف صورتونه بیان شویدي-[2]

دوئیمه خبره ئے دااوفرمائیله: ﴿فَاَوْفُوا الْکَیْلَ وَالْمِیْزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْیَآءَهُمْ﴾ دلته کیل په معنی دپیمانې اومیزان په معنی دتول کښې دي دبخس معنی داده چه دچاپه حق کښې کمې راوستلې شي اوزیان ورته اورسولې شي، دټول آیت معنی به داسې شي: تاسوپیمانه اوتول پوره پوره کوئ اودخلقو په څیزونوکښې کمی کولوسره هغه ته نقصان مه رسوئ، ددې نه مخکښې خو د یو خاص جرم نه منع اوفرمائیلې شوه چې هغه د اخستو او خرڅولو په وخت د ناپ تول په صورت کښې کیدلې شي. وریسې، ﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْیَآءَهُمْ﴾ فرمائیلو سره په هرشان حقونو کښې کټ

---

[1] تفسیر ابن کثیر: ج ۲، ص ۲۲۷

[2] تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۵، ص ۳۹۱

کول او کمې کوتاهي راوستل نې عام کړل، خواه هغه مال سره تعلق لري، یا عزت، آبرو، یا بل څیز سره [بحر محیط] -(۱)

دې نه معلومه شوه چه څنګه ناپ، تول کښې چاته د حق نه کم ورکول حرام دي دغه شان په نورو انساني حقونو کښې کمی کول هم حرام دی، د چا په عزت، او آبرو باند حمله کول یا د چا د درجې او رتبې په موافق د هغه عزت نۀ کول، د چا فرمانبرداري کول چه واجب وي په هغې کښې کوتاهي کول دا ټول څیزونه په هغې جُرم کښې داخل دي کوم به چه د حضرت شعیب ﷺ قوم کولو، د حجة الوداع په خُطبه کښې رسول الله ﷺ د خلقو د وینو پشان د دوئ آبرو او عزت هم د احترام او حفاظت جوګه ګرځولې دې(۲) د دې حاصل هم دغه دې، قرآن کریم کښې چرته چې مطففین او تطفیف راغلي دي په هغې کښې دا ټول څیزونه داخل دي، چنانچه حضرت فاروق اعظم هر کله چه یو سړي په زرزر رکوع او سجدې کولو سره اولیدونو وې فرمائیل ﴿قد طففت﴾ تا په ناپ تول کښې کمې اوکړو [مؤطا امام مالک] (۳) مُراد ئې دا وو چه د مونځ حق دې پوره ادا نکړو-

په آخر د آیت کښې فرمائي: ﴿وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا﴾ [یعنی د زمکې د سمون راتلو نه پس په دې کښې فساد مۀ خوروئ] دا جُمله په سورت اعراف کښې وړاند هم راغلې ده چه هلته د دې د معنی تفصیل داسې بیان شوې دې چه د زمکې ظاهري سمون راتلل هر څیز لره د هغې په مصرف کښې لګولو او د حدودو په رعایت کولو او په عدل وانصاف قائیم لرلو پاند اړه لري او باطنی اصلاح داده چه الله تعالی سره تعلق اولرلې شي او د الله تعالی د حکمونو تابعداري اوکړې، په دې شان د زمکې ظاهري او باطنی فساد د دې اصولو په پرېښودو سره پیدا کیږي، د حضرت شعیب ﷺ قوم دغه ټول اصول شاته غورځولي وو چه د هغې له کبله په زمکه کښې هر قسم ظاهري او باطني فساد راولاړ شوې وو- په دې وجه ورته دا نصیحت اوکړې شو چه ستاسو د اعملونه ټوله زمکه خرابوئ د هغې نه ځان ساتئ-

بیا فرمائي: ﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ [یعنی همدغه خبره تاسو لره فائده منه ده که تاسو زما خبره او منله] مطلب دا چه که تاسو د دې ناروا حرکتونو نه واوړیدئ نو هم په دې کښې ستاسو د دین د دُنیا کامیابي او فائده ده، د دین او آخرت کامیابي خو په ښکاره د الله تعالی د حکمونو تابعدارئ سره تړون لري، او د دُنیا کامیابي خو ځکه ده چه هر کله خلقوته معلومه شي چه فلاني بنده په ناپ تول کښې او نورو حقوقو کښې د دیانتدارئ نه کار اخلي نو په بازار کښې د هغه مشهورتیا اوشي او تجارت ئې مخ په ترقئ وي-

په دریم آیت کښې فرمائي: تاسو د خلقو د ویرولو او د الله تعالی د لارې نه ایسارولو د پاره په سړکونو مۀ کښېنئ، څنې مفسرین فرمائي چه د دواړه جملې یو مطلب داسې اداکوي چه هر کله به دغه خلق په لارو کښې کښیناستل، خلق به ئې په ویرولو سره، حضرت شعیب ﷺ ته د راتلو نه منع کول نو هغوئ د دې کار نه منع کړې شو-

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۲۹۲
(۲) لتفصیل دپاره او کورئ: جامع الترمذي، أبواب التفسیر، ومن سورة التوبة: ج ۲، ص ۱۴۰
(۳) مؤطاء مالک، کتاب وقوت الصلاة، باب جامع الوقوت رقم الحدیث: ۱۹

څنوحضراتوفرمائیلی دی چه دوه بیل بیل جرمونه داسې وو چه په لاره کښې دلُوټ مار او لارې شکونې دپاره به هم کښیناستل اوپه حضرت شعیب ﷺ باندې دایمان راوړلونه به ئې خلق هم منع کول- په دې شان په یوه بله جُمله کښې یومضمُون اوپه بله جُمله کښې بل مضمُون بیان شویدې چنانچه تفسیربحرمُحیط هم دې لره اختیار کړې دې[۱] او لارشوکول اوخلق پکښې لُوټ کولو کښې دې ته هم داخل وئیلی دی چه ناجائزټیکسونه اومحصولونه وصولوی هغوئ هم دحضرت شعیب ﷺ دقوم پشان مُجرمان دی بلکه دهغوئ نه هم زیات ظالمان اوجابران دی-[۲]

په آخردآیت کښې فرمائی: ﴿وَتَبۡغُونَهَا عِوَجًا﴾ [تاسودالله تعالی په لارکښې کوږوالی لټولو پسې ارم شوی یئ چه که دکُمې ایښوځائې درته ملاؤشي نودا عتراضونو اوشُبهاتو بوجئ به وربسې راپرانیځئ اوداکوشش به کوئ چه خلق دحق دین نه ویزاره شي-

دورپسې آیت په آخرکښې فرمائی: ﴿وَاذۡكُرُوٓاْ إِذۡ كُنتُمۡ قَلِيلٗا فَكَثَّرَكُمۡۖ وَٱنظُرُواْ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُفۡسِدِينَ﴾ دغې خلقوته دخبرداری ورکولوپه غرض په دې کښې دمینې پیدا کولو اوویرولوداوړه اړخونه استعمال کړې شویدی، اول دمینې پیدا کولودپاره د الله تعالی دانعمت وریاد کړې شو چه تاسوپه اول کښې کم شمیره وئ الله تعالی ستاسونسلونوته وده ورکړه اولوئې قوم ئې جوړ کړئ یا دمال اوسامان له مخې ډیرکمزوری وئ الله تعالی په دولت اومال درکولوسره ښه آسوده کړئ بیائې دویرولو په غرض ورته اوفرمائیل چه تاسونه کوم مخکینی قومُونه چه تیرشویدی هغوئې ته اوګورئ مثلاً دحضرت نُوح ﷺ، عادیانو، ثمودیانو اودحضرت لُوط ﷺ قوم ته په هغوئ کوم کوم قسم عذابونه راغلی دی چه تاسودپوهې نه کارواخلئ-

په پنځم آیت کښې ددې قوم دیوې شُبهې جواب دې چه دحضرت شعیب ﷺ دایمان دبلنې نه پس ددوئ قوم دوه برخې شو، چاایمان راوړو اوڅوک مُنکر پاتې شو خوپه ښکاره په دواړو کښې هیڅ فرق نۀ ښکاری ځکه چه دواړه ډلې یوشان په آرام اوعیش، عشرت کښې وی- که مُنکر کیدل څه جُرم وې نومُجرم به سزا بیامُوندې وې-ددې په جواب کښې فرمائی:-

﴿فَٱصۡبِرُواْ حَتَّىٰ يَحۡكُمَ ٱللَّهُ بَيۡنَنَاۚ﴾ [یعنی تادی مۀ کوئ الله تعالی دخپل زغم اوکرم له مخې مُجرمانوته مهلت ورکوی کله چه هغوئ بیخی سرکشه شی هله فیصله کولې شی ستاسوهم دغه حال دې که تاسو دخپل انکارنه واوڼه ړیدئ نوزردې چه په مُنکروخلقوباندې به فیصله کوونکې عذاب راشي.

[الحمدلله ؛ پاره نمبر ۸ ختمه شوه]

---

[۱] تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۳۴۳
[۲] تفسیر قرطبی تحت هٰذه الآیات: ج ۷، ص ۲۴۹

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَنُخْرِجَنَّكَ

اووئیل | سردارانو | هغو | چې تکبرئې کړې وو | دقوم دهغه نه | چې خامخا به مونږ اوباسو تا

[په دې خبره] دهغه دقوم متکبره خلقو اووئیل |..................چې مونږ به تا [اې شعيبه]

يٰشُعَيْبُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ

اے شعیب |اوهغه کسان | چې ایمان ئې راوړې دې| ستا سره| دکلي زمونږه | یا به واپس راځئ تاسو

اوکوم کسان چه تاسره مومنان دی ددې خپل کلي نه بهر اوباسو |..................اویا به

فِيْ مِلَّتِنَا ؕ قَالَ اَوَلَوْ كُنَّا كٰرِهِيْنَ ۟ قَدِ افْتَرَيْنَا

په ملت زمونږ کښې |اووئیل هغه | آیا اگر چې | یومونږه | نارضا | مونږه اوتړو |

زمونږ ملت ته واپس راګرځئ| شعیب ﷺ ورته اووئیل اگر که مونږ په دې ناراضه یو| بیا خو به مطلب دا

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِيْ مِلَّتِكُمْ بَعْدَ

په الله باندې| دروغ | که واپس راغلو مونږه| په دین ستاسو کښې | پس دهغې نه

وی چې مونږ په الله ﷻ باندې دروغ تړلی دی | که ستاسو مذهب ته واپس راشو| د دې باوجود چې

اِذْ نَجّٰنَا اللّٰهُ مِنْهَا ؕ وَمَا يَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّعُوْدَ

چې خلاصې راکړې دې مونږ له | الله | ادهغې نه | اونهٔ بشائیږي | مونږ له | چې واپس لاړ شو

الله ﷻ مونږ ته د هغې نه نجات راکړې دې | اوکیدې نشی چه مونږ هغې [دین] ته واپس شو

فِيْهَآ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّنَا ؕ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ

په هغې کښې | مگر که | اوغواړې | الله| چې رب زمونږ دې |فراخه دې | رب زمونږه |په هر څیز باندې

مگر دا که الله ﷻ اوغواړې [نو هغه بیله خبره ده] زمونږ د رب علم د هر څیز فراخه دې [دهغه نه هیڅ څیز

عِلْمًا ؕ عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؕ رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا

په لحاظ دعلم سره|په الله باندې | توکل اوکړو مونږه |اے ربه زمونږه |فیصله اوکړه|په منځ زمونږ کښې

پټ نه دې| مونږ په الله ﷻ باندې بهروسه کوو| ائې ربه ! زمونږ او زمونږ ددې قوم ترمینځه

وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَاَنْتَ خَيْرُ الْفٰتِحِيْنَ ۟ وَقَالَ

اوپه منځ دقوم زمونږ کښې | په حقه سره| اوته | بهتره فیصله کونکې ئې| اووئیل

په حقه فیصله اوکړې | او بیشکه ته دټولو نه بهتر فیصله کونکې یې | نو دهغه دقوم

الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا

سردارانو | هغو | چې انکارئې کړې وو | دقوم دهغه | انه که چرې| پیروی اوکړه تاسو| دشعیب

هغه کسانوخپل قوم ته اووئیل کوم چې کافران شوې وو| که تاسو د شعیب تابعداری اوکړه

اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ۟ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ

بیشکه تاسو به| په دغه وخت کښې| خامخانقصان موندونکی شئ: انواونیول هغوئ | یوې زلزلې

نوتاسو به په دغه وخت کښې ضرور په نقصان کښې ئې |..........نو په هغوئ باندې زلزله راغله

فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جٰثِمِينَ ۝ الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا

پس شول هغوئ | په كورونو خپلو كښې | پرمخې پراته | هغه كسان اچې دروغ ني اوگنړو | شعيب

نوخپلو كورونو كښې پرمخ پريوتل | كومو كسانو چه حضرت شعيب ﷺ دروغژن گنړلي وو

كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۚ الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا

لكه چې نه وو | اوسيدلى | په دې كلى كښې | هغه كسان | چې په دروغه ني اوگنړلو | شعيب

هغوئ داسې شولكه چې په دې كلى كښې هډو اوسيدلى نه وو | چاچې شعيب ﷺ دروغژن گنړلي وو

كَانُوا هُمُ الْخٰسِرِينَ ۝ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ

ووهغوئ | هم هغوئ نقصان موندونكى | نو مخ واړوو هغه | دهغوئ نه | اووې وئيل | اے قومه زما | بيشكه

نوهغوئ پخپله هلاک شول | نوشعيب ﷺ ترې نه مخ اوگرځولو | او ورته ني اووئيل چې ائې زماقومه

أَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ فَكَيْفَ

مادراورسول تاسو ته | پيغامونه | درب زما | اونصيحت اوكړو ما | تاسوته | اوس څنگه

ماتاسوته دخپل رب حكمونه رارسولي وو | اوستاسو خيرمې غوښتلې وو | .............. نواوس زه څنگه

آسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِينَ ۝

زۀ افسوس اوكړم | په قوم | كافر باندې |

دهغه قوم په حال باندې افسوس اوكړم | خو هغوئ كفر اختيار كړو

## آسان ترجمه قرآن

د دوی د قوم سردارانو چه تكبر ئې كړې وو ، ووئيل چه اې شعيب ﷺ ! مونږ پخه اراده كړې ده چه مونږ به تا لره او په تا چه چا ايمان راوړې دې دخپل كلي نه اوباسو، يا به تاسو ټول زمونږ دين ته واپس كيږئ شعيب ﷺ ووئيل چه: ښه ؟ كه چرې مونږ (ستاسو دين نه) نفرت كوۀ نو هم؟مونږ به په الله ډير لوئ بهتان وتړو كه مونږستاسودين طرف ته واپس شو حال داچه الله مونږلره دې نه نجات را كړې دې مونږلره خو دا ممكن نه دې چه ددې طرف ته واپس شوخو زمونږ پروردگار كه څه وغواړي نو هغه جدا خبره ده زمونږ رب د علم په اعتبار سره د هريو څيز احاطه كړې ده. مونږ په الله اعتماد كړې دې.اې زمونږ ربه ! زمونږ اوزمونږ د قوم په مينځ كښې دحق فيصله وكړې – او ته د ټولو نه بهتر فيصله كوونكې ئې.او د هغه قوم هغه سردارانو چه هغوی كفر اختيار كړې وو (د قوم خلقو ته)ووئيل: كه چرې تاسو شعيب ﷺ پسې لاړئ نو ياد اوساتئ چه په دې صورت كښې به تاسو ته سخت نقصان اورسی،پس وشوه داسې چه دوی زلزلې ونيول اوخپل كور كښې پرمخې پريوتل كوموخلقو چه شعيب ﷺ لره دروغژن كړې وو هغوی داسې شو چه گويا هغوی هغلته هډو چرته اوسيدلی نه وو كومو خلقوچه شعيب ﷺ لره دروغژن كړې وو هغوی آخر دنقصان اوچتونكونه شو.پس هغه (يعني شعيب ﷺ) د هغوئ نه مخ واړولو او روان شو او وې وئيل چه :"اې زما قومه ! ما تاسو ته درب پيغامات راورسول او ستاسو خيرخواهي مې وكړه، (مگر) اوس څه په هغه قوم څنگه افسوس وكړم چه ناشكره وو!

## خلاصه تفسير

﴿ قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِ ﴾ ددوي دقوم متكبرو سردارانو [چې داخبره واوريده نو په بې ادبۍ سره ئې] اووئيل ﴿ لَنُخْرِجَنَّكَ يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَكَ مِن قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا ﴾ چې ائې شعيب ﷺ [ياد لره] مونږ به تاسو او تاسو سره ايمان راوړونکې خلق دخپلې آبادئی نه اوباسو ياخو تاسو زمونږ مذهب ته بيرته راوګرځئ [نو البته مونږ هيڅ نه وايو.دمومنانو په باره کښې دا خبره ځکه دوی اوکړه چې هغوی دايمان راوړونه مخکښې په دغې طريقې دکفر باندې وو خو د شعيب ﷺ په باره کښې ئې دا خبره ځکه اوکړه چې دپيغمبر کيدونه مخکښې به ددوی په کفر باندې خاموش پاتې کيدلو نو دوی په خپل خيال کښې دخپلې عقيدې ملګرې اوګڼړلو ورنه هيڅ پيغمبر په هيڅ وخت کښې کفر نه دې کړې] ﴿ قَالَ أَوَلَوْ كُنَّا كَارِهِينَ ﴾ شعيب ﷺ جواب ورکړو چې آيا مونږ ستاسو مذهب ته راشو اګر که مونږ [په دليل او بصيرت سره] دې لره بد [او د کرکې جوګه] ګڼړو [يعنی هرکله چې ددې په باطل کيدو باندې دليل قائم دې نو مونږ څنګه دې لره اختيار کړو]

مونږ په الله ﷻ باندې تهمت اولګولو [الله ﷻ دې نه کړي] ﴿ إِنْ عُدْنَا فِي مِلَّتِكُم بَعْدَ إِذْ نَجَّانَا اللَّهُ مِنْهَا ﴾ که مونږ ستاسو مذهب کښې داخل شو [خاص کر] دې نه پس چه الله ﷻ مونږ ته ددې نه نجات راکړې وي [ځکه چه اول خو کفر حق دين ګڼړل همدا په الله ﷻ باندې تهمت لګول دې چه دا دين معاذ الله الله ﷻ ته ناخوښه دې.خاصکر دمومن کافر کيدل ځکه چه دا دعلم اود حق د تبليدونه پس دې او لوئې تهمت دې.يوخو دغه تهمت او بل هغه تهمت چه الله ﷻ ماته د دليل علم راکړې وو چه داما حق ګڼړلو هغه علم غلط وو او شعيب ﷺ دعود لفظ يا خو تغليبا دنورو په اعتبار سره يا ددې ګمان ئې فرض کړو يا ئې د مشاکلت په طور استعمال اوکړو] ﴿ وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ فِيهَا ﴾ او مونږ له ممکن نه دې چه بيا ستاسو مذهب ته راشوخو ﴿ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّنَا ﴾ که الله ﷻ چه زمونږ مالك دې [زمونږ] په مقدر [کښې] کړې وي [چه دهغې مصحلت دهغه په علم کښې دې نو خير دا خو بله خبره ده] ﴿ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴾ زمونږ درب علم په هر څيز باندې محيط دې [په دې علم سره د مقدراتو ټول مصالح پيژني خو] ﴿ عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا ﴾ مونږ په الله ﷻ باندې بهروسه ساتو [او دبهروسې کولو نه پس دا اميد کوو چه مونږ هغه په حق دين باندې ثابت اوساتي او په دې سره دې دا شك اونکړې شي چه دوئ ته د خپلې د خير خاتمې يقين نه وو .نبيانو ﷺ و ته دا يقين ورکړې کيږي بلکه مقصود اظهار عجز او تفويض الى المالك دې چه داد نبوت د لوازماتونه دې.او بل دمومن په اعتبار سره واخستلې شي نو هيڅ شك پکښې نشته دې.چه دا جواب ئې ورکړو اووې کتل چه دوي ته خطاب کول موثر نه دې او ددوي دايمان راوړو هيڅ اميد نشته دې نو دوي ته ئې خطاب کول پريښودل او دالله ﷻ نه ئې دعا اوکړه چه] ﴿ رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ ﴾ ائې زمونږ پروردګاره زمونږ او زمونږ [ددې] قوم په مينځ کښې فيصله اوکړې [چه هميشه] دحق موافق [وي ځکه چه دالله ﷻ فيصلې حق کيدل لازم دې يعنې اوس په عملي طور سره حق حق اوباطل باطل ښکاره کړه] ﴿ رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ ﴾ اوته دټولونه ښه فيصله کوونکې ئې او ددوي دقوم [هم دې ذکرشوئ] ﴿ وَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ ﴾ کافرو سردارانو [دشعيب ﷺ دا بليغ تقرير چه واوريدو نو انديښنه ئې پيدا شوه چه هسې نه چه په سامعينو باندې ددې اثر

اوشي ددې وجې هغوي پاڼ کافرو ته] اووئيل ﴿ لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا ﴾ چه که تاسو دشعيب ﷺ په لار باندې ځئ ﴿ إِنَّكُمْ إِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴾ نو بيشکه لوئې نقصان به مو اوشي [اوددين هم ځکه چه زمونږ مذهب حق دې. حق پريښودل نقصاني دي اوددنيا هم .ددې وجې پوره ناپ تول کښې به بچت کم وي .غرض هغوي ټول په خپل کفر او ظلم باندې کلك ولاړ وو.نواوس دعذاب راتګ اوشو] ﴿ فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴾ نو زلزلې ګير کړل اوپه خپلو کورنوکښې په پرمخ پراته پاتې شو.
﴿ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا ﴾چا چه شعيب ﷺ ته د دروغو نسبت کړې وو [او مسلمانان نې دهغوي دکورونونه په وتلو تيار کړی وو پخپله]﴿ كَأَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ۚ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِيْنَ ﴾دهغوي دا حالت شوچه ګني دوي هډو په دې کورنوکښې اوسيدلي نه وو کومو چه شعيب ﷺ ته ددروغو نسبت کړې وو[او ددوي اتباع کوونکو ته به ئې خاسر [نقصان کوونکي] وئيل پخپله] هغوي په خساره کښې پريوتل﴿ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ ﴾ په دغه وخت کښې شعيب ﷺ ددوي نه مخ واړولو او لاړواو[دافسوس په طورئې فرضي خطاب اوکړو] وې وئيل چه ائې زما قومه ماخوتاسو ته دخپل رب احکام دررسولې وو [چه په هغې باندې عمل کول دهرې کاميابئ سبب وو] ﴿ وَنَصَحْتُ لَكُمْ ﴾ او ما ستاسو [لويه] خيرخواهي اوکړه [چه په څه شان مې پوهه کړئي خو افسوس تاسو اونه منله اودا بده ورځ مونن اوکتله او بيا ئې ددوي کفر او دښمني وغيره ياد کړل او وې فرمائيل چه هر کله دوي دخپله لاسه دا مصيبت واخستلو نو] ﴿ فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ﴾ بيا ددې کافرو خلقو [په هلاکت باندې] ولې غم کوم.

## معارف او مسائل

شعيب ﷺ ته هر کله چې ددهٔ قوم دا اووئيل چې که تاسو په حقه وې نو ستاسو منونکی بهٔ په مزو کښې وو او په نامنونکو باندې به عذاب راغلې وې خو اوس حالت دادې چې دواړه ډلې سره يو شان دآرام ژوند تيروی ، مونږ دې څنګه په رښتيا اومنو؟ په دې ورته شعيب ﷺ اوفرمائيل چې تيزئ مه کوئ الله ﷻ به زمونږ اوستاسو ترمينځه فيصله اوکړی ، دغه وخت دقوم متکبرو سردارانو هم هغه خبره اوکړه چې هميشه ظالمانو ، متکبرانو کړې ده . وې وئيل چې ائې شعيب ﷺ ! يا خو تاسو او په تاسو ﷺ باندې ايمان راوړنکی ملګری زمونږ مذهب ته بيرته راؤګرځی ګنی تاسوټول به د خپلې دې آبادئی نه اوباسو.
ددوئ مذهب ته بيرته راتلل خو د مؤمنانو په باره کښې ځکه رښتيا دی چې اول دغه ټول د دوئ په مذهب او طريقو وو چې د شعيب ﷺ په بلنه باندې مسلمانان شو. خو هرکله چې شعيب ﷺ هيڅ وخت هم د دوئ په باطل مذهب او باطله طريقه نه وو پاتې شوی اونه بل چا پيغمبر چرې د باطل او مشرکانه مذهب تابعداری کړې ده . نو بيا شعيب ﷺ ته دکافرو داسې بلنه ورکول چې زمونږ مذهب ته واپس راشه ، غالباً په دې وجه وو چې د نبوت ملاويدو نه مخکښې شعيب ﷺ ددغه خلقو په باطلو عملونو اوخبرو خاموشی اختيارولـه اوهم دغې قوم سره به ئې په ګډه ژوند تيرولو ، په دې بنا خالص د دوئ په خيال کښې شعيب ﷺ هم ورسره په مذهب اوعقيده کښې يو شان ښکاريدو ، هر کله چې هغوئ د ايمان بلنه شروع کړه نو د دوئ ترمينځه مذهبی اختلافات ښکاره شو ، او خيال ئې دا راغلو چې زمونږ مذهب نه واؤړيدو ، شعيب ﷺ ورته جواب کښې اوفرمائيل چې :

﴿أَوَلَوْ كُنَّا كَارِهِينَ﴾ [یعنی آیا ستاسو دا مطلب دې چې ستاسو مذهب لره ناخوښه او باطل ګڼړلو باوجود مونږ ستاسو په مذهب کښې داخل شو؟ مراد ئې دادې چې داسې هیڅرې نشی کیدې.
تر دې ځایه د ړومبي آیت مبارک مضمون دې.
د دویم آیت مبارك مضمون دادې چې شعیب ﷺ خپل قوم ته اوفرمائیل چې: ستاسو دباطل مذهب نه الله ﷻ مونږ خلاص کړو، دې نه پس که مونږ ستاسو مذهب دوباره قبول کړو نو دا به زمونږ د طرفنه په الله ﷻ باندې دروغ پورې کول وی، ځکه چې اول خو کفر او شرك لره مذهب جوړول د امعنی لری چې دا د الله ﷻ حکم دې چې په هغه ورتپل او په هغه تور پورې کول دی، ددینه علاوه چې ایمان راوړی، علم او بصیرت چاته حاصل شی او بیا هم کفر ته لاړ شی. نو دهغې مطلب دا دې چې دغه ړومبۍ طریقه باطله او غلطه وه، حق او صحیح هغه طریقه ده کومه چې مونږ اوس اختیار کړه په دې بنا دا غټ دروغ او تور پورې کول ځکه دی چې حق ته باطل او باطل ته حق وئیل شو.
د شعیب ﷺ په دې قول کښې یو قسم دعوی داسې وه چې اوس ستاسو مذهب کښې مونږ بیرته نشو داخلیدلې، داسې دعوی کول په ښکاره د عبدیت نه خلاف ده چې د الله ﷻ د دربار د نزدیکانو او معرفت د خاوندانو د شان سره سمون نه خوری، ځکه ئې اوفرمائیل چې:
﴿وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ فِيهَا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّنَا ۚ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۚ عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا﴾ یعنی [مونږ ستاسو مذهب ته بیرته هیڅکله نشو راوړیدې، سوا ددې نه چې زمونږ درب خوښه اواراده زمونږ د ګمراهۍ اوشی، زمونږ درب علم په هر څیز راچاپیره دې، مونږ هم په دغه الله ﷻ تکیه لګوؤ.
په دې سره ئې خپله عاجزی او کمزوری ښکاره کړه او په الله ﷻ ئې تکیه اوکړه خپل هر څه ئې ورته اوسپارل چې دا هم دپیغمبرۍ کاملیدل دی، ددې مطلب دا دې چې مونږ به څه یو چې دیو کار کولو اود یو کار نه د بچ کیدو دعوی اوکړې شو، څه نیکی کول یا د بدۍ نه بچ کیدل تول د الله ﷻ په فضل کیږی لکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې:
﴿لولا الله ما اهتدینا ولا تصدقنا ولا صلینا﴾ [که د الله ﷻ فضل نه وې نو مونږ به هدایت نه وو موندې، نه به مو خیرات کړې وو او نه به مو مونځ کړې وو.(۱)
تر دې چې هر کله د قوم متکبرانو سردارانو سره ئې خبرې اوکړې او شعیب ﷺ ته دا اندازه اوشوه چې په دې خلقو باندې د هیڅ خبرې اثر نه کیږی نو بیا ئې ورسره دخطاب کولو په ځائې صرف د الله ﷻ نه دا دعا اوغوښتله چې:
﴿رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ﴾ [ائې زمونږه ربه! زمونږ او زمونږ دقوم ترمینځه فیصله اوکړې د حق موافق او ته دټولو نه زیات غوره فیصله کوونکې یې].
عبدالله بن عباس ﷺ فرمائیلی دی چې دلته د فتح معنی فیصله کول دی او هم په دې بنا دفاتح معنی قاضی کیږی، [بحر محیط].(۲)
حقیقت کښې شعیب ﷺ دادعا ددغه کافرانو دهلاکت دپاره کړې وه چې الله ﷻ قبوله کړه او دغه خلق ئې په زلزله هلاك کړل، دلته د دوئم آیت مضمون اختتام ته اورسیدو.

(۱) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب غزوة الخندق وهی الأحزاب: ج ۲، ص ۵۸۹
(۲) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیات: ج ۵، ص ۳۴۹

دريم آيت مبارك كښې د شعيب ﷺ د قوم د متكبرانو سردارانو يو ګمراه كوونكې قول دا نقل كړې دې چې هغوئ خپل مينځ كښې اووئيل يا غټانو خلقو خپلو بالكيانو ته اووئيل چې كه تاسو د شعيب ﷺ تابعداري اوكړه نو غټ بيوقوفان اوجاهلان به حسابيږئ. [بحر محيط د عطا نه]. (۱)

څلورم آيت مبارك كښې ددې سركش قوم د عذاب واقعه داسې بيان شوې ده چې:

﴿فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ﴾ [هغوئ سختې او لوئې زلزلې راګير كړل چې دهغې په وجه پخپلو كورونو كښې نسكور غورزيدلې پاتې شو].

دلته د زلزلې عذاب راغلې دې او په نورو آيتونو كښې ﴿فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ﴾ راغلې دې يعنى د يَوْمِ الظُّلَّةِ عذاب راالاندې كړل. د يَوْمِ الظُّلَّةِ معنى ده د سورى ورځ مطلب دا چې اول پرې دګورې [ګنې] وريځې سورې شو هركله چې ټول ددې لاندې راجمع شونو دهغې وريځې نه پرې اوريا كاڼړى راؤورولې شو.

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ددې دواړو آيتونوترمينځه جوړښت داسې راوستلې دې چې د شعيب ﷺ په قوم باندې داسې سخته ګرمى راوستلې شوه لكه چې دجهنم دروازه ورته بيرته كړې شوې وى هغې سره ساه ډوبيدل شروع شو ، نه ورته په سيورى [سايه] كښې آرام راتلو ، نه اوبو كښې ، دا خلق د ګرمئ نه چې سخت تنګ شو نو په تهخانو[زيرخانو] كښې ورننوتل ، هلته دبهر نه هم زياته سخته ګرمى وه ، په وار خطايئ كښې دښار نه ځنګل طرفته اوتښتيدل ، هلته الله ﷻ ګوره [ګڼه] وريځ راؤليږله چې ورلاندې يخه هوا چليدله ، هركله چې ددغې ټولو خلقو د ګرمئ په وجه زړۀ خلې ته راغلې وو ، په منډه منډه ورغلل او هغه وريځې لاندې راجمع شو ، دغه وخت ټوله وريځ پرې د اور په شكل كښې راؤوريده او زلزله پرې هم راغله چې دهغې په وجه دا ټول خلق د ايرو ډيرى شوؤ ، په دې بنا په دې قوم باندې د زلزلې اود سيورى عذاب دواړه په جمع راغلى وو. [بحرمحيط]. (۲)

ځينې مفسرينو داسې هم فرمائيلى دى چې كيديشى چې ددغې قوم په څه خلقو زلزله راغلې وى او ځينې په ظله سره هلاك كړې شوى وى.

پنځم آيت مبارك كښې د شعيب ﷺ د قوم د واقعې نه نورو خلقو ته دعبرت اخستو سبق وركړې شوې دې كوم چې ددې واقعې دبيانولو اصلى مقصود دې ، فرمائى چې:

﴿الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَأَنْ لَمْ يَغْنَوْا فِيهَا﴾ غنى كله خو د مزو چرچو كولو په معنى رازى ، نو دلته ئې هم دغه معنى مراد ده ، مطلب دا چې داخلو چې په كومو مكانونو كښې چې دعيش او آرم ژوند تيرولو او ددې عذاب نه پس داسې شول چې ګويا چرې هم دلته د آرام او عيش نوم هم نه وو ، بيا فرمائى چې: ﴿الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَانُوا هُمُ الْخَاسِرِينَ﴾ [چا چې شعيب ﷺ دروغژن بللو هم هغه خلق په زيان كښې پريوتل]

اشاره دې خبرې ته ده چې دغې خلقو شعيب ﷺ او دهغوئ مؤمنانو ملګرو ته دخپلې آبادئ نه د ويستو دركې وركولې خو په انجام كښې زيان هم دهغوئ اوشو.

---

(۱) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۳۰۰

(۲) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۵، ص ۳۰۰

شپږم آیت مبارك كښې فرمائي چې : ﴿فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ﴾ [هر كله چې په قوم ئې عذاب راتلل اوليدل نو شعيب ﷺ سره د مؤمنانو خپلو ملګرو دغه ځائې نه روان شو] جمهور مفسرين فرمائي چې دوئ مكې مكرمې ته لاړل او ټول عمر هم هلته ايسار پاتې شول.

اګر چې د قوم دسركشئ اونافرمانئ په وجه شعيب ﷺ دنا اميدئ په وجه دغې قوم ته ښيره اوكړه ، خو هر كله چې په نتيجه كښې ئې پرې عذاب راتلل اوليدل نود پيغمبرئ دشان مناسب زړه ئې پرې خوږ شو ، اوخپل زړه ته د تسلئ وركولو دپاره ئې اوفرمائيل چې ما خو درته ستاسو د رب حكمونه دررسولي وو او ستاسو په خير خواهئ كښې مې لږ هم كمې نه دې كړې خو زۀ به دكافر قوم دپاره تر كومې پورې زړه خورم.

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِىْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّآ

اونۀ دې ليږلي مونږ | په يوكلي كښې | يو پيغمبر | مګر

| چې هغوئ كفر اختيار كړې وو | مونږ هيڅ يو كلي ته يو پيغمبرنه دې ليږلي

اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ

نيولي دي مونږه | خلق دهغې | په سختو سره | اوپه تكليفونو سره | ددې دپاره چې هغوئ |

مګر مونږ دهغې اوسيدونكي په سختئ او په تكليفونو كښې راګير كړي دي | دې دپاره

يَضَّرَّعُوْنَ ۝ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى

عاجزي اختيار كړي | بيا | بدل كړه مونږه | په ځائې | دبدحالئ | خوشحالي | ترديې پورې

چې دوئ عاجزي اوكړي | بيا مونږ دهغوئ بدحالي په خوشحالئ بدله كړه | ترديې چې

عَفَوْا وَّقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ

چې ډير شول | اووې وئيل | چې رسيدلي دي | پلارانو زمونږ ته | تكليفونه | اوخوشحالي

هغوئ ښه ترقي اوكړه | اووې وئيل چې داسې سختئ اوخوشحالئ خوزمونږ په مشرانو هم راغلي وې

فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى

نورا اونيول مونږ هغوئ | ناګهانه | اوهغوئ | نۀ پوهيدل | اوكه چرې | خلقو دكلو

نوپه دې كښې مونږ هغوئ ناڅاپي راونيول | او هغوئ پرې پوهه هم نشو | اوكه ددې كلي خلقو

اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ

ايمان راوړي وې | اودتقوى لارئې اختيار كړې وې | خامخا به پرانستي وو مونږه | په هغوئ باندې | بركتونه |

ايمان قبول كړې وې | ...... اوخان ئې دګناه نه بچ كولې | نومونږ به پرې دآسمان

مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ

دآسمان نه | اودزمكې نه | ليكن | دروغ اوګڼل هغوئ | نو اونيول مونږه هغوئ

اوزمكې بركتونه ښكاره كړي وو | خو هغوئ زمونږ نبئ ته دروغ اوګڼل | ..........نو مونږ

بِمَا　كَانُوْا　يَكْسِبُوْنَ۝　اَفَاَمِنَ　اَهْلُ الْقُرٰٓى
په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې کوو به ئې | آیا پس په امن کښې دی | خلق ددې کلو
دخپلو عملونو په سزا کښې راګیر کړل | آیا داخلق د کلو [اوس] د دې خبرې نه بې غمه شوی دی

اَنْ　يَّاْتِيَهُمْ　بَاْسُنَا　بَيَاتًا　وَّهُمْ　نَآئِمُوْنَ۝　اَوَاَمِنَ
له دې نه چې | رابه شي دوئ ته | عذاب زمونږه | دشپې | اودوئ | اوده وی | آیا اوپه امن کښې دی
چې زمونږ عذاب پرې د شپې راشي | کوم وخت کښې چې دوئ اوده پراته وی | ..........او که د

اَهْلُ الْقُرٰٓى　اَنْ　يَّاْتِيَهُمْ　بَاْسُنَا　ضُحًى　وَّهُمْ
خلق ددې کلو | له دې نه | چې رابه شي دوئ ته | عذاب زمونږه | په وخت دڅاښت کښې | اودوئ
کلو خلق په دې باره کښې بې غمه شوی دی | چه زمونږ عذاب ورته دغرمې راشي اوهغوئ

يَلْعَبُوْنَ۝　اَفَاَمِنُوْا　مَكْرَ اللّٰهِ　فَلَا يَاْمَنُ　مَكْرَ اللّٰهِ
لوبې کوی | آیاپس په امن کښې دی دوئ | دپټ تدبیر دالله نه | پس نه په امن کیږی | دتدبیر دالله نه
بې خبره لګیاوی لوبې کوی | آیادوی دالله پټوتدبیرونو نه غافله شو | حال دا دې چې دالله ﷻ د تدبیرونو نه صرف

اِلَّا　الْقَوْمُ　الْخٰسِرُوْنَ۝
مګر | هغه قوم | چې تباه کیدونکې وی |
هغه خلق بې غمه کیږی چه تاوانیان وی |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ چه په کوم یو کلي کښې هم یو پیغمبر لیږلي دي، دهغې اوسیدونکی مو په بدحالئ کښې او تکلیفونو کښې ضرور ګرفتار کړي دي دي د پاره چه دوی عاجزي وکړي بیا مونږ حالات بدل کړل، او د بدحالئ په ځائې مو خوشحالي ورکړه، تردې چه دوی ښه ډیر شو، او وې وئیل چه تکلیف او خوشحالي خو څمونږ پلار نیکه ته هم رسیدلي وه، بیا مونږ دوی ناڅاپه داسې ونیول چه دوی ته (اول نه) پته هم نه وه. اوکه دې کلو والا ایمان راوړې وې او تقوئ ئې اختیار کړې وې نو مونږ به په دوی باندې د آسمان نه د رحمت دروازې کهلاؤ کړې وې لیکن دوی (حق لره) دروغژن کړودې وجې نه د دوی دمسلسل بدعملئ په سزا کښې مونږ دوی لره ونیول اوس ووایه چه آیا (دلورو) کلو خلق دې خبرې نه بالکل بې خوفه شوی دی چه یو شپه په دوی باندې څمونږ عذاب داسې وخت کښې راشي چه دوی اوده وي؟ او آیا ددې کلو خلقو ته ددې خبرې نه (هم) څه ویره نشته چه څمونږ عذاب دوی ته چرته د ورځې راشی چه دوی لوبې کوی؟ آیا دا خلق د الله د ورکړې شوی مهلت (د انجام نه) بې فکره شوی دی؟ (که چرې داسې وي) نو (دا یاد ساتئ چه) دالله د ورکړې شوي مهلت نه هغه څوک بې فکره وي چه آخر نقصان والا کښې وی.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَمَآ اَرْسَلْنَا فِىْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّبِىٍّ ﴾ او مونږ [دې ذکر شوي او ددې نه علاوه نور کلو ته هم] یو کلي ته څوک نبي نه دې لیږلي ﴿ اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُوْنَ۝ ﴾ چه د هغه ځائي اوسیدونکو

ته [ددې نبي نه منلو والاؤ باندې اول اول تنبيه نه وي كړې او دتنبيه په غرض سره دوي] مونږ په محتاجئ اوبيمارئ كښې نه وې نيولي چه هغوي نرم شي [او خپل كفر اوتكذيب نه توبه گار شي] ﴿ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ﴾ بيا [چه كله دې نه متنبه نشو نو د استدراج په طور يا په دې غرض سره چه دمصيبت نه پس چه كوم نعمت وي دهغې زيات قدر وي اود نعمت وركوونكي سرې بالطبع اطاعت كول شروع كړي] مونږ ددې بدحالئ په ځائې خوشحالي رواستله ﴿حَتّٰى عَفَوْا وَّقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ﴾ تردې چه دوي ته مو [دمالدارئ او صحت سره سره مال او اولاد كښې ورته] ښه ترقي وركړه او [په دغه وخت كښې د كوږوالي په وجه ئې] اووئيل چه [هغه ړومبي مصيبت په مونږ باندې دكفر اوتكذيب په وجه نه وو گني بيا خوشحالي ولې راتلله بلكه دا دزمانې داتفاقاتونه دي چنانچه] زمونږپلرونو نيكونو ته هم [دا دوه حالتونه كله] تنگي او [كله] راحت راپيښ شوې وو [همداشان مونږ باندې داحالت تير شو چه كله هغوي په دې هير كښې پرهوتل] نو [په دغه وخت كښې] ﴿فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ مونږ دوي اچانك [په مهلك عذاب كښې] اونيول او دوي ته [ددې عذاب دراتلو] خبر نه وو [يعني اگر چه دوي ته نبيانو خبر وركړې وو خو چونكه هغوي دا خبرغلط گڼړلو او په عيش او آرام كښې پراته وو.ددې وجې دوي ته گمان نه وو].

﴿وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا﴾ او [مونږ چه دوي په مهلك عذاب كښې راونيول نو ددې سبب صرف ددوي كفر او مخالفت وو گني] كه ددې كلي اوسيدونكو [پيغمبرانو باندې] ايمان راوړلي او [ددوي دمخالفت نه] يې پرهيزكولي ﴿لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ﴾ نومونږ [په ځائې د آسماني او زمكي آفتونو] په دوي باندې به مو د آسمان اوزمكې بركتونه پرانيستي وې [يعني دآسمان نه به موباران اود زمكې نه به مو پيداوار به دوي ته بركت سره وركړې وې اواگر چه دوي ته ددې حالت نه مخكښې د خوشحالئ يو نعمت وركړې شوې وو ليكن په دې خوشالئ كښې بركت په دې وجه نه وو چه آخر دا وبال جان شو په خلاف ددې نعمتونو چه كوم دايمان او اطاعت سره ملاوېږي چه په دې كښې دا خير اوبركت وي چه دا وبال نه جوړيږي نه په دنيا كښې اونه په آخرت كښې.حاصل داشو چه كه دوي ايمان اوتقوي اختيارولي نودوي ته به هم دا بركتونه ملاويدل] ﴿وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ ليكن دوي خو [دپيغمبرانو] تكذيب اوكړو نو مونږ [هم]ددوي د[بدو]عملونو په وجې دوي په مهلك عذاب كښې راگير كړل [چه داپورته په "اخذنهم بغتة" سره تعبير كړې شوې دې.مخكښې موجوده كفارو ته عبرت وركوي] ﴿اَفَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰى اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا بَيَاتًا وَّهُمْ نَآئِمُوْنَ﴾ آيا [ددې قصو په آوريدوسره] بياهم دوي [ددې موجوده كلي اوسيدونكي [چه درسول ﷺ په دورنبوت كښې موجود دي] ددې خبرې نه بې فكره شوي دي چه په دوي باندې [هم] زمونږ عذاب دشپې په وخت كښې راشي چه كوم وخت دوي اوده وي.

﴿اَوَاَمِنَ اَهْلُ الْقُرٰى﴾ اوآيا ددې[موجوده]كلي اوسيدونكي [باوجود دكفر اوتكذيب نه چه د مخكښې كفارو دهلاكت سبب وو]ددې خبرې نه بې فكره شوي دي ﴿اَنْ يَّاْتِيَهُمْ بَاْسُنَا ضُحًى وَّهُمْ يَلْعَبُوْنَ﴾ چه [هم ددې مخكښوپشان] په دوي باندې زمونږ عذاب د ورځې په غرمه كښې راشي چه په كوم وخت كښې دوي په خپلو فضولو قصوكښې مشغول وي [مراد ددې نه دنياوي كاروبار دې] ﴿اَفَاَمِنُوْا مَكْرَ اللّٰهِ﴾ اوآيا د الله ﷻ ددې [ناگهاني] نيولو نه [چه د هغې بيان مخكښې

تیرشوي دي] بې فکره شو ﴿ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللّٰهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴾ نو [پوهه شئ چه] د الله ﷻ د نیولو نه ددې نه سوا چه ددوي بدبختی راغلې وي هېڅوك ترې بې فکر کیدلې نشي.

## معارف او مسائل

د پخوانو پیغمبرانو ﷺ اودهغوئ ﷺ دقومونو تاریخ او دهغوئ عبرتناك حالات او واقعات چې د څو رکوعګانو وړاندې نه ئې سلسله راروانه ده تر دې پورې د هغوئ څخه دپنځو انبیاکرامو ﷺ قیصې بیان شوی دی. ددغې سلسلې شپږمه قیصه د موسی ﷺ او دهغوئ د قوم نهو آیتونو نه پس را روانه ده.

داخبره مخکښې بیان شوې ده چې قرآن عظیم الشان د دنیا تاریخ او ددنیا د قومونو تفصیلي حالات چې بیانوی هغه دعامو قیصو اودعامو کتابونو په طرز په ترتیب او تفصیل سره نه بیانوی بلکه دهر مقام مناسب دځه قیصې یوه حصه بیانولې شي ، ورسره ورسره ددې نه حاصلیدونکې عبرت ښودونکي نتیجې ذکر کولې شي ، دغه شان دلته هم د پنځو قیصو بیانولو نه پس په دې آیتونو مبارکو کښې هم څه خبرداري بیان شوې دي.

نو په رومبی آیت مبارك کښې فرمائی چې د نوح ﷺ دقوم اود عادیانو ثمودیانو واقعات هم هغوئ پورې خصوصیت نه لري بلکه الله ﷻ دخپل عام عادت مطابق د قومونو د هدایت او ددوئ د سمون راوستو اوکامیابئ دپاره انبیاء کرام ﷺ لیږي څوك چې په دغه نصیحتونو غوږ نه ګروي نواول په هغوئ باندې ددنیا مصیبتونه او تکلیفونه راوستلې شي چې الله ﷻ ته ئې د توجه راګرځولو باعث جوړ شي. څنګه چې دانسان فطرت دادې چې د مصیبت په وخت کښې ورته الله ﷻ یادیږی ، په دې ډول دغه مصیبت اوظاهری تکلیف په حقیقت کښې د رحمان او رحیم رحمت اومهربانی وی لکه مولانا روم رحمه الله فرمائیلی دی چې:

خلق راباتوچنین بدخوکنند  تاتر انا چار روآنسو کنند

[خلق درسره داسې وران کړی چې الله ﷻ ته دمخې راؤړلوباعث جوړ شي].

نو د ﴿ أَخَذْنَا أَهْلَهَا بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُوْنَ ﴾ همدغه مطلب دي ، د بؤس اوباسآء معنی نیستی او لوږه ده او د ضر اوضراء معنی مرض او ناروغتیا ده. قرآن عظیم الشان کښې ځائې په ځائې دالفظ هم په دې معنی کښې راغلې دې، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ددې معنی هم دغه کړې ده ، ځینې اهل لغت فرمائی چې د بؤس اوباسآء ، مالی زیان دپاره استعمالیږی ، او ضر او ضراء بدنی نقصان دپاره استعمالیږی، ددې حاصل هم دغه دې، په دې شان دټول آیت مبارك مطلب دا شو چې هر کله مونږ یو قوم ته خپل رسول لیږو او هغوئ ئې خبره نه مني ، نومونږ دعادت مطابق ئې اول هم په دنیا کښې په مالی ،جانی ، تنګسیا کښې ئې راولو چې هغوئ نرم شی او په انجام باندې نظر اچولو سره ئې الله ﷻ ته مخه شی ،دې پسې په دویم آیت مبارك کښې فرمائی چې:

﴿ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى عَفَوْا ﴾ د ﴿ سَيِّئَةِ ﴾ نه مراد لوږه یا ناروغتیا بدحالی ده چې ذکر ئې مخکښې تیر شوې دې.د ﴿ حَسَنَةَ ﴾ نه مراد د ﴿ السَّيِّئَةِ ﴾ خلاف دمال دولت فراخی او د بدن سلامتی ده،لفظ ﴿ عَفَوْا ﴾ عفو نه جوړدې، چې یوه معنی ئې ترقی او ترقی کول هم دی،لکه وائی چې ﴿ عفا النبات ﴾ کله چې ونې [درختی] یا واښه زیات شی ، یا وائی چې ﴿ عفا الشحم والوبر ﴾ د

خاروی وازګه او وړئ زیاته شوه . د ﴿عَفَوْا﴾ همدغه معنی مراد ده چې زیات شوا و وده ئې اوکړه مطلب دادې چې اول امتحان ئې په نیستئ لوږې او ناروغتیا سره واخستې شو چې دې کښې ناکام شو ، الله ﷻ ته بې مخه نه شوه نو امتحان دمال دولت په زیاتوالی او په روغتیا او د بدن په سلامتئ سره واخستې شو. په دې کښې ښه مست شو ، مطلب ترې دا وو چې پدې حالت به دوې شکر ګذار شی او الله ﷻ ته ئې مخه شی ،لیکن دا غافل طبیعته خلق په مادی مزو کښې اوآرام کښې نشه شو او وې وئیل چې :

﴿قَدْ مَسَّ آبَاءَنَا الضَّرَّاءُ وَالسَّرَّاءُ﴾ [دا څه نوې خبره نه ده اونه په ښه او بد عمل څه اړه لری بلکه زمانه کښې هم داسې کیږی کله تنګدستی اوکله فراخی وی ، کله ناروغتیا وی او کله صحت څنګه به چې زمونږ پلرونو نیکونو ته دا حالات راپیښیدل.

خلاصه دا شوه چې کله په دې دواړو قسمه امتحانونو کښې ناکام شو ، په هیڅ شان دخپلې ګمراهئ نه نه منع کیدل ، نو ناګاهانه په عذاب کښې اخته شو ،

﴿فَأَخَذْنَاهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ د ﴿بَغْتَةً﴾ معنی ناګاهانه ،مطلب دا شوچې داسې عذاب کښې راګیر شوه چې دوی ته دسره معلوم هم نه وو.

دریم آیت مبارك کښې فرمائی چې : ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَلَٰكِن كَذَّبُوا فَأَخَذْنَاهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [که چرې ددې آبادیو خلقو ایمان راوړې وې او نافرمانئ نه ئې ځان ساتلې وې نو مونږ به پرې د آسمان او زمکې برکتونه پرانیستې وې خو هغوئ ددې دروغژن والې اوکړو نو ددې عملونو په وجه سره مو اونیول].

د برکت لفظی معنی زیاتوالې ده ، د آسمان او زمکې دبرکتونو نه مطلب دادې چې هرقسم ښیګړه به مو د هر طرفنه پرانستې وه ، د آسمان نه بهٔ د ضرورت مطابق وخت په وخت باران په دوئ وریدو ، دغوښتنې مطابق به پرې هر څیز پیدا کیدو ددغې ټولو څیزونو نه دفائدې او آرام پورته کولو سامان به مو ورته راجمع کړې وو ، چې هیڅ پریشانی اوداسې فکر به ورسره نه ملګرې کیدو چې ددې نعمت خوند مزه بهٔ ئې ورکه کړې وه او دا شان په هر څیز کښې برکت یعنی زیاتوالې به وې .

په دنیا کښې برکت په دوه قسمه راځی ، کله خو اصل څیز په واقع کښې وده کوی ، لکه چې دنبی کریم ﷺ دیو معجزې په ډول دیو وړوکی لوښی په اوبو باندې د پوره قافلې هر قسم ضرورت پوره شوا و په لږ شان خوراك باندې ګڼ خلق ماړهٔ شو لکه په صحیح روایاتو کښې مذکور دی: .

د برکت دویم مطلب دادې چې یو څیز په واقع کښې زیات نه وی خو کار پرې دومره پوره کیږی چې څومره ددې نه په ډیر زیات پوره کیږی . لکه عام طور داسې لیدلې کیږی چې کله یو لوښې ، جامه یا د کور سامان داسې برکتی وی چې ټول عمر ترې انسان فائده اخلی بیا هم هغه هغه شان روغ جوړوی اوځینې څیزونه داسې بې برکته وی چې جوړیدو سره مات شی یا روغ جوړوی او کار ترې اخستې نشی ، یا نیمګړې کار ترې واخستې شی .

او دا برکت د انسان په مال او ځان کښې هم کیدیشی او په کارو بار اووخت کښې هم کیدیشی ، ځینې وخت یو نمړئی دخوراك ، د انسان د قوت او روغتیا سبب جوړ شی او ځینې وخت ښه نه ښهٔ خوراك او دوائی هیڅ کار ورنکړی ، دغه شان په وخت کښې برکت داسې وی

چې یو گنټه کښې دومره کار اوشي څومره چې په څلورو گنټو کښې نشي کیدې، په دې ټولو صورتونو کښې اګر چې د مقدار په لحاظ سره خو زیارت نه اوشو مګر برکت په کښې داسې څرګند شو چې کارونه پرې ډیر اووتل او پرې تر سره شول.

دې آیت مبارك دا خبره هم په ډاګه کړه چې د آسمان او زمکې د ټولو مخلوقاتو او موجوداتو برکتونه په ایمان او تقوی باندې دارومدار لري. ددې په اختیارولو سره څنګه چې د آخرت کامیابي حاصلیږی ، دغه شان ددنیا کامیابي اوبرکتونه پرې هم حاصلیږی ، ددې د نیشتوالي په وجه د هر قسم برکتونو نه انسان بې نصیبه کیږی ، که ددنیا په اوسنی حالاتو نظر واچولې شي نو د اول په نسبت د زمکو پیداوار زیات دې ، د استعمال څیزونه هر قسم او زیات دي، نوی نوی څیزونه خو دومره راووتل چې د پخوانو خلقو په ذهن کښې هم نشو راتلې. خو سره ددې اکثر خلق پریشانه ، نیستمند ، ښکاری آرام ، راحت ، امن او اطمینان هیچاته حاصل نه دې ، هم دا مطلب د بې برکتئ دې.

دلته یوه خبره بله هم د نظر کولو جوګه ده ،هغه دا چې دسورت انعام په یو آیت مبارك کښې دکافرانو او فاجرانو شان داسې بیان شوېدې فرمائی چې :

﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [هر کله چې دې خلقو د الله ﷻ احکام هیر کړل نو مونږ پرې د هر قسم دروازې پرانیستې او بیا مو ناڅاپه په عذاب کښې راګیر کړل].

دې نه معلومیږی چې ددنیا د هر څیز دروازې په چا بیرته کول څه حقیقی انعام نه دې ولې چې دا د الله ﷻ قهر هم کیدیشی. او دلته دا هم اوفرمائیلې شو که دوئ ایمان او تقوی اختیار کړې وې نو مونږ به پرې د آسمان او زمکې برکتونه راپرانیستی وو ، دې نه معلومیږی چې د زمکې او آسمان برکتونه د الله ﷻ انعامات اودهغه درضا نخښې دی.

خبره داده چې ددنیا نعمتونه او برکتونه کله کله د چا جرمونو او سرکشي دحد نه ورتیریدو باندې دهغه د جرم د زیات واضح کولو دپاره محض عارضي او د څو ورځو دپاره وی ، دا دالله ﷻ دقهر و غضب نخښې وی او کله د رحمت او مهربانئ نخښه په دې شان وی چې په هغې سره دائمی فلاح نصیب کیږی. دا د ایمان او تقوی نتیجه وی د شکل په اعتبار سره په دې کښې فرق کول څکه مشکل وی چې د آخر انجام حال چاته معلوم نه وی ، خو خدائی خلقو د پیژندلو نخښه داخودلې ده چې هر کله مال ودولت عیش وآرام د الله ﷻ د شکر او عبادت توفیق نور هم زیات کړی نو دا به رحمت او فضل ګڼرلې شي. او که د فراخئ دمال ، دولت ، اوعزت په صورت کښې د الله ﷻ نافرمانی او ګناهونه سوا شي نو دا به استدارج او دالله ﷻ قهر ګڼرلې شي. اعاذنا الله منه.

څلورم آیت مبارك کښې بیا ددنیا ټولو قومونو ته خبرداریٔ ورکولو دپاره فرمائی چې ددې آبادوا وسیدونکی ددې نه بې غمه شوی دی چې زمونږ عذاب به ئې په داسې حال کښې رالاندې کړی چې دشپې به اوده وی. او آیا ددې آبادئ خاوندان ددې نه بې غمه شو چې زمونږ عذاب به ئې داسې وخت راګیر کړی کله چې دوئ د ورځې په اول سر کښې په لوبو اوعیشو کښې اخته وی ؟ آیا دا خلق د الله ﷻ د پټ تدبیر او تقدیر نه په آرام کیناستل ؟ ښه پوهه شئ چې د الله ﷻ د پټ تدبیر او تقدیر نه هغه خلق بې غمه کیدې شي چې په زیان کښې پروت وی.

خلاصه دا شوه چې خلق دې د دنیا په عیش وعشرت کښې تر دې حده نه مستیږی چې الله ﷻ هیر کړی ، دوئ دې ددې نه نه بې غمه کیږی چې د الله ﷻ عذاب به دشپې یا د ورځې په وخت په څه حالت کښې پرې راشی. څنګه چې په پخوانو امتونو باندې راغلی وو او بیان ئې اوشو ، د عقل خاوندانو ته پکار دی چې د نورو د حالاتو نه عبرت واخلی او د کوموکارونو په وجه چې خلق هلاك شوی وی دهغې خواته دې هم نه ورځی.

اَوَلَمْ يَهْدِ　لِلَّذِيْنَ　يَرِثُوْنَ

| آیا ښکاره نه شوه | هغه کسانوته | چې وارثان کیږی

| آیا دې واقعاتوکښې هغه کسانو ته نه ده معلومه شوې کوم چه

الْاَرْضَ　مِنْۢ بَعْدِ　اَهْلِهَآ　اَنْ　لَّوْ نَشَآءُ

د زمکې | روستو | داوسیدونکو دهغې نه | ادا خبره چې که چرې | اوغواړو مونږه |

دزمکې د اوسیدونکو نه پس د هغوی وارثان جوړ شوی دی | دا که چرې مونږ اوغواړو

اَصَبْنٰهُمْ　بِذُنُوْبِهِمْ　وَنَطْبَعُ　عَلٰى قُلُوْبِهِمْ

نواوبه نیسومونږه هغوئ | په سبب دګناهونودهغوئ | اومهرلګوؤ مونږه | په زړونودهغوئ باندې

نو دوئ به هم پخپلو ګناهونو کښې راونیسو | او په زړونو ورله مهرونو لګوؤ | اوهغوئ

فَهُمْ　لَا يَسْمَعُوْنَ　تِلْكَ الْقُرٰى　نَقُصُّ　عَلَيْكَ　مِنْ اَنْۢبَآئِهَا

نوهغوئ | هیڅ نه اوری | دا کلی | بیانوؤمونږه | په تاباندې | دقیصو دهغې نه

هیڅ نه آوری | دغه [زاره] کلی ووچې مونږ تاته دهغې واقعات بیانوو

وَلَقَدْ　جَآءَتْهُمْ　رُسُلُهُمْ　بِالْبَيِّنٰتِ　فَمَا كَانُوْا　لِيُؤْمِنُوْا

اوبیشکه | چې راوړې وی هغوئ ته | رسولانودهغوئ | صفاصفانښې | پس نه ووهغوئ | چې ایمان ئې راوړې وې

اوهغوئ تولو ته پیغمبران واضح دلیلونه سره راغلی وو | خوهغوئ په هغه خبره ایمان راونړو

بِمَا　كَذَّبُوْا　مِنْ قَبْلُ　كَذٰلِكَ　يَطْبَعُ اللّٰهُ　عَلٰى قُلُوْبِ

په هغه څیز | چې دروغ ګنړلې ووهغوئ | دمخکښې نه | دارنګې | مهر لګوی الله | په زړونو

چې کومه ئې مخکښې دروغ ګنړلې وه | دغه شان الله ﷻ دکافرانو په زړونو باندې مهرلګوی

الْكٰفِرِيْنَ　وَمَا وَجَدْنَا　لِاَكْثَرِهِمْ　مِّنْ عَهْدٍ　وَاِنْ وَّجَدْنَآ

دکافرانوباند | اواونه موندله مونږه | اکثرخلق دهغوئ | وفاکونکې په وعده | اوبیشکه اوموندل مونږه

........اومونږ په دوئ کښې زیات کسان بې لوظه موندلی وو | او مونږ په دوی کښې زیات

اَكْثَرَهُمْ　لَفٰسِقِيْنَ

اکثر خلق دهغوئ | خامخا فاسقا

کسان نافرمان موندلی وو |

## آسان ترجمه قرآن

کوم خلق چه د یو کلي (د اوسیدونکو هلاکت نه وروستو) دهغې وارثان جوړېږي، آیا هغوی ته دا سبق ملاؤ نه شو چه که مونږ وغواړو نو دوی لره به (هم) د دوی د ګناهونو د وجې نه څه مصیبت کښې مبتلا کړو؟ او (کوم خلق چه د ضد د وجې نه سبق نه اخلي) مونږ دهغوی په زړونو باندې مهرونه لګوو، چه د هغې د وجې نه دوی څه خبره نه آوري دا دی هغه کلي چه ددې واقعات مونږ تا ته آوروو، او حقیقت دا دې چه دوی ټولو ته ددوي پیغمبر صفا صفا دلائیل راوړي وو خو کومه خبره چه دوی مخکښې نه دروغ ګنړلې وه هغوی باندې دوی چرې هم ایمان راوړو ته تیار نه شو، کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې نو دهغوی په زړونو باندې الله دغسې مهر لګوی. مونږ د دوی نه په اکثرو کښې د وعدې څه پابندي وو نه لیده. او واقعه دا ده چه دوی کښې اکثر خلق مونږ نافرمان اولیدل.

## خلاصه تفسير

[مخکښې ددې علت بیانوی چه دوي ته دعذاب نه ولې ویریدل پکار دی او هغه علت ددوي مخکښینو امتونوسره په کفر اوتکذیب کښې شریکیدل دی یعني] ﴿ اَوَلَمۡ یَهۡدِ لِلَّذِیۡنَ یَرِثُوۡنَ الۡاَرۡضَ مِنۡۢ بَعۡدِ اَهۡلِهَاۤ ﴾ او دې [تیرو شوؤ] په زمکه اوسیدونکو والونه پس چه کوم خلق [اوس] په زمکه باندې داوسیدو په ځائې آباد دې مخکښې واقعاتو دوي ته دا خبره [اوسه پورې] نه ده ښودلې ﴿ اَنۡ لَّوۡ نَشَآءُ اَصَبۡنٰهُمۡ بِذُنُوۡبِهِمۡ ﴾ چه که مونږ غوښتلې نو دوئ به مو [هم دمخکښینو امتونوپشان] ددوي په جرمونو [دکفر اوتکذیب] په سبب هلاك کړې وې [څکه چه مخکښې امتونه هم ددې جرمونو په سبب هلاك شوي وو] ﴿ وَنَطۡبَعُ عَلٰی قُلُوۡبِهِمۡ فَهُمۡ لَا یَسۡمَعُوۡنَ ﴾ او [واقعي دا واقعات خو داسې دی چه دې نه سبق اخستل پکار وو لیکن اصل دادې چه] مونږ د دوئ په زړونو باندې مهر لګولې دې چه په دې سره [هیڅ یوه خبره په زړه سره] اوري [هم] نه [او منل لاپریږده پاتې شو په دې بندلګولو سره ددوي هغه سختیدل نوره هم زیاته شوه چه دداسې عبرتناکو واقعاتونه هم عبرت نه اخلي او دبندلګولو سبب ددوي په شروع کښې کفر کول دي. لقوله تعالی " طبع الله علیها بکفرهم" مخکښې شاید چه درسول الله ﷺ دتسلئ دپاره دټول مضمون خلاصه ده.] ﴿ تِلۡكَ الۡقُرٰی نَقُصُّ عَلَیۡكَ مِنۡ اَنۡۢبَآئِهَا ﴾ ددې [ذکر شوؤ] کلو څه نا څه قصې مونږ تاسو ته بیانوؤ ﴿ وَلَقَدۡ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ ﴾ او یقینا دې ټولو [کلو اوسیدونکو] ته ددوئ پیغمبران معجزو سره راغلي وو [خو] ﴿ فَمَا كَانُوۡا لِیُؤۡمِنُوۡا بِمَا كَذَّبُوۡا مِنۡ قَبۡلُ ﴾ بیا [هم ددوئ دضد او کلکیدلودا حالت وو چه] چه کوم څیز ته دوي په [اول ځل] په دروغه اووئیل نودا خبره نشوه چه بیا به ئې دامنلې [او څنګه چه دوي دزړه نه سخت وو] ﴿ كَذٰلِكَ یَطۡبَعُ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوۡبِ الۡكٰفِرِیۡنَ ﴾ الله تعالی همداشان دکافروپه زړونوباندې بندلګوی او[په دوي کښې بعضې خلقو په مصیبتونوکښې به ئې دایمان راوړلو وعدې هم کولې لیکن] ﴿ وَمَا وَجَدۡنَا لِاَكۡثَرِهِمۡ مِّنۡ عَهۡدٍ ﴾ اکثر خلقوکښې مونږ د وعدې پوره کول اونه لیدل [یعني دمصیبت دختمیدونه پس بیا هم هغه شان شول چه څنګه دوي وو] ﴿ وَاِنۡ وَّجَدۡنَاۤ اَكۡثَرَهُمۡ لَفٰسِقِیۡنَ ﴾ او مونږ اکثرو خلقولره [اګر چه رسولان مولیږلي وو اومعجزې مو ښکاره کړې وې او ښکاره نښې او پاخه لوظونه مو ترې واخستل بیا هم] بې حکمه مو بیاموندل [نو کفار همیشه همداسې وي تاسو هیڅ غم مه کوئ].

## معارف او مسائل

په بیان شوی آیتونو کښې هم د پخوانو قومونو واقعاتو او حالاتو په آوږولو سره دعربو اوعجمو اوسنی قومونو ته دا خودل مقصود دی چې په دې واقعاتو کښې تاسو دپاره دعبرت لوئې سبق داسې دې چې د کومو کارونو په وجه په پخوانو خلقو باندې د الله ﷻ غضب او عذاب نازل شو دهغې خواته هم مه ورځئ، او د کومو کارونو په وجه چې پیغمبران علیهم السلام او د هغوئ ﷺ متبعین کامیاب شوی وو هغه تاسو هم کوئی لکه په ړومبی آیت کښې ارشاد دې چې: ﴿أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ مِن بَعْدِ أَهْلِهَا أَن لَّوْ نَشَاءُ أَصَبْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ﴾.

د هدی ، یهدی معنی په ګوته کول ، او خودل دی ، دلته ددې فاعل پورته تیر شوی واقعات دی ، پوره معنی ئې دا شوه چې اوسنی کوم خلق چې د پخوانو خلقو د زمکو او کورونو وارثان جوړ شوی دی یا به جوړیږی ،آیا ددې واقعاتو نه عبرت نه اخلئ چې د کفر ، انکار اود الله ﷻ نافرمانئ په نتیجه کښې څنګه د دوئ پخوانی مشران هلاك شوی او تباه شوی دی، دغه شان که دوئ هم په دغه جرمونو کښې اخته شو نو په دوئ هم د الله ﷻ قهر اوعذاب راتلې شی.

دې پسې فرمائی چې: ﴿وَنَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ﴾ دطبع معنی چاپه اومهر لګول دی ، پوره معنی ئې داده چې هرکله دا خلق د تیرو شوؤ واقعاتو نه هم څه عبرت اوهدایت نه حاصلوی نو په نتیجه کښې ورته الله ﷻ په قهر شی په زړونو ئې مهر لګوی نوبیا هغوئ هیڅ نه آوری په یو روایت کښې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې هر کله انسان په ړومبی ځل ګناه اوکړی نو په زړهٔ ئې یو تور داغ اولګی چې وروسته ګناه اوکړی نو دویم داغ پرې اولګی په دریم ځل ګناه کولو سره پرې دریم داغ اولګی تر دې پورې چې دې په مخه ګناه کوی او توبه او نه باسی نو دا تور والې ددهٔ زړه راګیر کړی ، او د ښو او بدو دپیژندلو کومه ماده چې الله ﷻ فطری طور سره د انسان په زړهٔ کښې ایښودې ده هغه بالکل فنا یا کمزورې شی او ددې په نتیجه کښې بیا هغه انسان ښه لره بد او بد لره ښه ، مفید لره مضر او مضر لره مفید ګڼړی. دې حالت ته قرآن،،رانَ،، یعنی د زړهٔ زنګ سره تعبیر کړې ده. ددې حالت چې کومه آخری نتیجه وی هغې نه ،، طَبَعَ ،، یعنی مهر لګولو سره ، په دې آیت مبارك او نورو آیتونو مبارکو کښې هم تعبیر کړې شوی دی.

دلته دا سوال راپیدا کیدیشی چې هر کله په زړونو باندې دټاپې لګولو نتیجه دا وی چې عقل پوهه ئې بالکل سر اوخوری او په ښه بد نه پوهیږی لیکن دلته د ﴿فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ﴾ په ځائې ئې ﴿فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ﴾ اوفرمائیل . حالانکه غوږونه ئې آوریدل کولې شی ، ددې جوړښت به څنګه راوستې شی . جواب ئې دادی چې دلته د آوریدو مطلب ، منل او فرمانبرداری کول دی. چې په پوهیدو باندې دارومدار لری. په دې شان د ټولې جملې مطلب دا شو چې هر کله په زړونو ټاپه اولګولې شی نو هغه د حق خبرې منلو ته نه تیاریږی. یا به دا اووایو چې د انسان زړه دهغه ټولو اندامونو اوجوارحو مرکز دې نو ددې په کارونو کښې د ټولو اندامونو په کارونو کښې خلل واقع کیږی ، په زړهٔ چې کوم ښهٔ یا بد کار ځائې شی نو د سترګو مخې ته ئې هم هغه رازی اوپه غوږونو هم هغه آوری:

چشم بداندیش که برکنده عیب نما یدهنرش درنظر

[د دښمن سترګې دې بوتې [تیغې] راوځی ، ولې چې دهنر په ځائې ورته عیب ښکاری].

بل آیت مبارك کښې فرمائی چې : ﴿تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآئِهَا﴾ ، ﴿اَنْۢبَآءِ﴾ د نبا جمع ده ، معنی ئې عظیم الشان خبره ده . پدې شان د ټولې جملې معنی دا شوه چې د هلاکو شوؤ آبادیانو ځینې واقعات درته مونږ بیانوؤ . دلته په من حرف سره دې ته اشاره اوکړې شوه چې دابیان شوی حالات او واقعات ددغه قومونو ټول حالات او واقعات نه دی بلکه د زړو واقعات ځینې څو اهم واقعات ئې بیان شوی دی .

دې پسې فرمائی چې :﴿وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ ۚ﴾[ددغې ټولو خلقو پیغمبران ورته سره د معجزو راوړسیدل دکومو په ذریعه چې د حق او د باطل ترمینځه فیصله کیږی مګر د هغوئ دضد دا حال وو چې د کوم څیز باره کښې ئې یو ځل دخلې نه دا وتلی وو چې دا غلط او دروغ دی بیا دهغې په حقوالی او رښتیا والی که هر څومره معجزې ،دلیلونه او حجتونه ئې چې مخې ته راغلل نودهغې رښتیا ګڼړلو او اقرار ته تیار نشو. دې آیت مبارك نه دا معلومه شوه چې هر پیغمبر ته معجزه ورکړې شوې وه چې دهغې څخه دبعضو بیان په قرآن کریم کښې راغلې دې او د ډیرو نه دې راغلې.دې نه دا ګڼړل صحیح نه دی چې د کوم پیغمبر ﷺ د معجزاتو ذکر چې په قرآن عظیم الشان کښې نه دې راغلې د هغوئ نه هیڅ معجزه ثابته نه ده . اوپه سورة هود کښې د هود ﷺ د قوم دا ذکر شوې قول چې : ﴿مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ﴾ [مونږ ته دې هیڅ معجزه نه ده راوړلې] خالص په ضد بنا دې ، د هغوئ ﷺ معجزې ئې معمولی او سپکې ګڼړلې .

دویمه داخبره د ذکر وړ ده چې په دې ایت مبارك کښې ددې خلقو چې کوم دا حال بیان شوې دې چې یو وار د دوئ دخلو نه چې غلطه خبره اووته هغه ئې تر آخره پورې نه پریخوده خواه دهغې په مقابله کښې ورته هر څومره واضح دلیلونه راغلل ،بیا به ئې هم دخپلې خبرې تحفظ کولو.

دا دکافرانو او د الله ﷻ نه د منکرو قومونو حال دې چې په کښې زیات مسلمانان او ځینې علماء او خاص خلق هم اخته دی چې په اول ځل ئې یوه خبره غلطه او دروغ اوبلله که بیا د هغې دصحیحوالی او رښتیا والی په زرګونه دلیلونه ورته مخې ته راشی نو هم په خپلې هغه رومبئ خبرې کلك ولاړوی.داحالت د الله ﷻ قهراوغضب ته دعوت اوبلنه ورکوی[مسائل السلوک]

دې پسې فرمائی چې : ﴿كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ﴾ [څنګه چې ددغې خلقو په زړونو مهر اولګولې شو دغه شان د عامو کافرانو اومنکرانو خلقو په زړونو باندې الله ﷻ مهر لګوی چې بیا د نیکئ قبلولو جوګه پاتې نشی]. دریم آیت مبارك کښې فرمائی چې :﴿وَمَا وَجَدْنَا لِاَكْثَرِهِمْ مِّنْ عَهْدٍ ۚ﴾ [په دوئ کښې اکثر خلق مونږ وعده پوره کوؤنکی ا ونه موندل].

عبدالله بن عباس ﷺ فرمائیلی دی چې د عهد نه مراد د ﴿اَلَسْتُ﴾ هغه عهد دې چې کوم په ازل کښې دټولو خلقو دپیدا کیدو نه رومبې د دوئ د ټولو روحونو نه ﴿اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۚ﴾[آیا زه ستاسو رب نه یم؟]. په الفاظو سره اخستې شوې وؤ چې ټولو ئې په لفظ بَلٰی سره جواب ورکړې وو مګر دنیا ته په راتلو سره اکثرو خلقو دغه عهد هیر کړو ، الله ﷻ ئې پریخودو ، دمخلوق پرستئ په لعنت کښې اونختل هم په دغه وجه په دې آیت مبارك کښې اوفرمائیلې

شو چي مونږ اکثر خلق ددې وعدې پابند بيا نه موندل ، يعني په دغې وعده باندې کلك ولاړ پاتې نشو اوسرته ئې اونه رسوله. [کبير] (۱)

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلي دي چې دعهد نه مراد د ايمان وعده ده لکه قرآن عظيم الشان کښې فرمائي چې : ﴿إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا﴾ ، چې دلته هم د ايمان او فرمانبردارئ عهد مراد دې(۲). نو د آيت مبارك خلاصه دا شوه چې په خلقو کښې اکثرو خلقو مونږ سره کړې وعده ترسره نه کړه ، او خلاف اوچليدل. مطلب دا شو چې هر کله يو انسان په څه مصيبت کښې راګير شي که هغه فاسق فاجر وي نو هم ورته الله ﷻ رايادېږي ، او اکثر په زړه يا ژبې سره دا عهد کوي چې ددې مصيبت نه په خلاصيدو به د الله ﷻ په عبادت اوفرمانبردارئ کښې اخته شم او دنافرمانئ نه به ځان ساتم. چې کله ددغې مصيبت نه خلاص شي په آرام او راحت کښې شي نو په هوا او هوس کښې اخته شي او دغه عهد هير کړي.

په دغې آيت مبارك کښې د اکثر د لفظ نه دې خبرې ته اشاره موندې شي چې ډير بدبخته خلق داسې هم وي چې د مصيبت په وخت کښې ورته هم الله ﷻ نه يادېږي اودغه وخت هم د ايمان اوفرمانبردارئ عهد نه کوي. دغسې کسانو ته د بد عهدئ شکايت اوګيله کول هيڅ معنی نه لري ، او ډير خلق داسې هم دي چې لوظ پوره کوي ، د ايمان او فرمانبردارئ حقوق ادا کوي ، ځکه ئې اوفرمائيل چې : ﴿وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِم مِّنْ عَهْدٍ﴾ [مونږ په اکثرو خلقو کښې عهد پوره کول او نه موندل]. دې پسې فرمائي چې : ﴿وَإِن وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ﴾ [مونږه د دوئ څخه اکثر خلق د طاعت او فرمانبردارئ نه بهر اوموندل].

تر دې پورې دپخوانو پيغمبرانو عليهم السلام اودهغوئ عليهم السلام د قومونو پنځو واقعاتو په بيانولو سره اوسنو خلقو ته دهغې نه دعبرت او نصيحت حاصلولو دپاره خبردارئ ورکړې شوې دې.

دې پسې به شپږمه قصه د موسی عليه السلام په تفصيل سره بيانېږي چې په دې واقعاتو د واقعاتو په ضمن کښې په سوؤنو احکام ،مسئلې اود عبرت اونصيحت بې شميره موقعې دی ، هم دغه وجه ده چې په قرآن عظيم الشان کښې ددې واقعې حصې بيا بيا بيان شوې دی.

| بِآيَاتِنَا | مُّوسَىٰ | مِن بَعْدِهِم | بَعَثْنَا | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|
| سره دنښنو خپلو | موسی | روستو دهغوئ نه | اوليږومونږه | بيا |
| بيا ددې نه پس مونږ حضرت موسی عليه السلام خپلو نښنو سره ............ | | | | |

| كَيْفَ كَانَ | فَانظُرْ | بِهَا | فَظَلَمُوا | وَمَلَئِهِ | إِلَىٰ فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| څرنګې شو | پس اوګوره | دهغې سره | خوظلم اوکړوهغوئ | اوسردارانو د هغه ته | فرعون ته |
| فرعون او دهغه سردارانو ته اوليږلو نو هغوئ زمونږ نښنو سره زياتې اوکړو نو ا وګوره چې د | | | | | |

| رَسُولٌ | إِنِّي | يَا فِرْعَوْنُ | مُوسَىٰ | وَقَالَ | الْمُفْسِدِينَ | عَاقِبَةُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رالېږلې شوې يم | بيشکه زه | اے فرعونه | موسی | اواووئيل | دفساديانو | انجام |
| د فساديانو څۀ انجام شوا ........ او حضرت موسی عليه السلام ورته ا ووئيل چې ائي فرعون زۀ | | | | | | |

(۱) التفسير الكبير تحت هٰذه الآية: ج ۷، ص ۱۹۸
(۲) التفسير الكبير تحت هٰذه الآية: ج ۷، ص ۱۹۸

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ حَقِيْقٌ عَلٰٓى اَنْ لَّآ اَقُوْلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ؕ

دطرفه درب العالمین نه | لایق یم زه ددې | چې اونه وایم زه | په الله باندې | مګرحق

د مخلوقاتو د رب د طرفه پیغمبر راغلې یم | زما فرض دادی چې دالله باره کښې دحقې خبرې نه بغیربل هیڅ نه وایم

قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَرْسِلْ مَعِيَ

بیشکه راغلې یم زه تاسو ته | دصفادلیل سره | دطرفه درب ستاسونه | پس اولیږه | زما سره

تاسوته مې ستاسو درب طرفنه ښکاره دلیلونه راوړې دی | نو ته ما سره

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ؕ قَالَ اِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِاٰيَةٍ فَاْتِ

بنی اسرائیل | اووئیل | که ئې ته | چې راغلي ئې ته | دیوې نښې سره | نو راوړه

بنئ اسرائیل رخصت کړه | فرعون جواب کښې اووئیل | که تا څه نښې راوړې وی نو هغه اوښایه

بِهَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝ فَاَلْقٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ

هغه | که ئې ته | دریښتیاویونکو نه | پس اوغورزوله هغه | همسا خپله | نو یودم | وه هغه

که چرې ته [پخپله دعوی کښې] ریښتونئ یې | په دې خبره حضرت موسی علیه السلام خپله کونتئ اوغورزوله نو دهغې

ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ۝ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ۝

اژدها | ظاهره | اوراوئې ویستلو | لاس خپل | نو یودم | وه هغه | تک سپین | کتونکوته

نه یو اژدها جوړه شوه | او لاس ئې د [ترخ] نه راویستلو نوهغه دتولولیدونکوپه مخکښې سپین پړقیدونکې وو

قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ۝

اووئیل | سردارانو | دقوم د فرعون نه | بیشکه | دا | خامخا جادوګردې | ښه پوهه

د فرعون د قوم سردارانو اووئیل چې دا ښه پوخ جادوګر دې | .........................

يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ ۚ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ۝

دې غواړې | چې اوباسي تاسو | دزمکې ستاسو نه | نو څه | حکم کوئ تاسو |

دا غواړي چې تاسو دخپل ملک نه بهرکړی | نوتاسو اووائې چې په دې باره کښې تاسو مات څه وایې

## آسان ترجمه قرآن

بیا مونږ دې ټولو نه وروستو موسٰی علیه السلام خپلو نښو سره فرعون اودهغه سردارانو ته اولیږلو نوهغوی (هم) ددې (نښو) په ظلم سره ناقدرې وکړه اوس وګوره چه ددې فسادیانو انجام څنګه شو. او موسٰی علیه السلام ووئیل چه: اې فرعونه! یقین وکړه چه څه درب العلمین د طرف نه پیغمبر رالیږلې شوې یم څما فرض دی چه څه الله طرفته د حق نه سوا بله خبره منسوب نه کړم. اوڅه تاسو ته دپروردګار د طرف نه یو ښکاره دلیل سره راغلې یم، نو بنی اسرائیل ما سره اولیږه. هغه ووئیل چه: که تا څه نښه راوړې وي نو هغه مونږ ته پیش کړه که ته رښتینې ئې. په دې باندې موسٰی علیه السلام خپله همسا وغورځوله، نو هغه ناڅاپه یوه صفا صفا اژدها جوړه شوه اوخپل لاس ئې (د ترخ نه) راوویستو نو هغه ټولو کتونکو ته پړقیدو د فرعون د قوم سردارانو (یو بل ته) ووئیل چه: دې خو یقیني طور ډیر ماهر جادوګر دې. دې دا

غواړي چه تاسو د زمکې نه اوباسي. اوس وواياست چه ستاسو څه رائ ده؟

## خلاصه تفسير

﴿ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَآ﴾ بيا دې [ذكرشوؤ پيغمبرانو] نه پس مونږ حضرت موسى ﷺ ته مو خپل دلائل [يعني معجزې] وركولو سره ﴿إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ فَظَلَمُوا۟ بِهَا ۖ﴾ فرعون اودده اميرانوته [ددوي دهدايت او تبليغ دپاره] اوليږلو نو [چه كله موسى ﷺ هغه دلائل ښكاره كړل نو] دې خلقو ددې [معجزو] بالكل حق ادا نكړو [څكه چه ددې حق او تقاضه داوه چه ايمان ئې راوړې وې] ﴿فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُفْسِدِينَ﴾ نو اوګوره ددې مفسدانو څه [خراب] انجام شو [لكه څنګه چه په بل ځائې كښې ددوي غرقيدل او هلاكيدل ذكر دي.دا خو دټولې قصې اختصار وو.مخكښې تفصيل دې يعني] ﴿وَقَالَ مُوسَىٰ يَٰفِرْعَوْنُ إِنِّى رَسُولٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ او موسى ﷺ [فرعون ته دالله ﷻ په حكم سره لاړو] وې فرمائيل چه زه درب العالمين د طرفه [ستاسو خلقو دهدايت دپاره] پيغمبر [مقرر شوې] يم [چه څوك ما دروغژن ګڼړي دا دهغه غلطي ده]. ﴿حَقِيقٌ عَلَىٰٓ أَن لَّآ أَقُولَ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْحَقَّ ۚ﴾ زما شان دادې چه د ربښتياؤ نه سوا دالله ﷻ سره هيڅ خبره منسوب نه كړم [او زه د رسالت خالي دعوي نه كوم بلكه] ﴿قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ ما تاسولره ستاسودرب دطرفه يو لوئې دليل [يعني معجزه] هم راوړې ده [چه هغه د غوښتنې په وخت خودلې شم] ﴿فَأَرْسِلْ مَعِىَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ نو [چه هر كله زه دليل سره رسول يم نو زه چه څه وايم دهغې اطاعت كوئې.چنانچه ددې كارونو نه يو دا وايم چه] ته بني اسرائيلو [ته دخپل بېكار نه خلاصې وركړه] اوما سره ئې [دشام ملك ته چه هغه ددوي اصل وطن دې] اوليږه. ﴿قَالَ إِن كُنتَ جِئْتَ بِـَٔايَةٍ فَأْتِ بِهَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ﴾ فرعون اووئيل چه كه تا [دالله ﷻ دطرفه] څه معجزه راوړې ده نو هغه پيش كړه.كه ته ﷺ [په دې دعوى كښې] ربښتونې يې: ﴿فَأَلْقَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِىَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ﴾ نودوې [زر] خپله همسا [په زمكه] اوغورزوله نو اچانك دهغې نه يو ښكاره اژدها جوړه شوه [چه ددې په اژدها كيدلو كښې څه شك نشو كيدلې].

﴿وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِىَ بَيْضَآءُ لِلنَّٰظِرِينَ﴾ او [دويمه معجزه يې دا ظاهره كړه چه] خپل لاس يې [په ګريوان كښې دننه په ترخ كښې وركړه او] بهر ئې راوښكلو نو فوراً دټول كتوونكو په مخكښې ډير كړې نو فرعون اهل دربار ته اووئيل چه دا سړې لوئې جادوګر دې .دده اصل مقصد دادې چه په اوسيدو ته پرې نږدي.نو په دې باره كښې ستاسو څه مشوره ده.چنانچه په سورت شعراء كښې دفرعون دا قول نقل دې.چه دائې واوريدل لكه چه څنګه سلاطينود مصاحبينو عادت وي چه دهغوي وينا په سرسترګومني.دفرعون دقول تصديق اوموافقت دپاره] ﴿قَالَ ٱلْمَلَأُ مِن قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ عَلِيمٌ﴾ دفرعون په قوم كښې چه كوم سرداران [او اهل دربار] خلق وو هغوي [يويل ته] اووئيل ﴿إِنَّ﴾ چه واقعي [څنګه چه زمونږ بادشاه وائي چه] داسړې لوئې جادوګردې [ضرور] ﴿يُرِيدُ أَن يُخْرِجَكُم مِّنْ أَرْضِكُمْ ۖ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ﴾ دا [غواړي چه دخپل جادو په زور سره پخپله دبني اسرائيلو مشر شي او] تاسو [په دې وجه چه دبني اسرائيلو په نظركښې ازغی يئ] [ددې زمكښې نه بهر كړي نوتاسو خلق [چه څنګه بادشاه مشوره غواړي] څه مشوره وركوئې.

## معارف او مسائل

**دموسى ؑ د قصې د تفصيل وجه:-** ددې سورت په قيصو كښې دا شپږمه قيصه ده په كومو كښې چې د پيغمبرانو ؑ او د هغوئ دامتيانو بيان دې ، په زيات تفصيل او تشريح سره ددې د بيانولو يوسبب دا هم دې چې د نورو پيغمبرانو ؑ په نسبت د موسى ؑ معجزې په شمير، او ډېښكاره كيدو په مضبوطوالي كښې هم زياتې دي او د موسى ؑ د قوم بني اسرائيلو جهالت او ضد هم د پخوانو امتونو په مقابله كښې زياته سخته وه ،دا وجه ئې هم ده چې دې قيصې په ترڅ [ضمن] كښې ډير معلومات ، مسئلې او احكام راغلي دي.

**د اياتونوڅخه مراد:-** په رومبي آيت مبارك كښې فرمائي چې: چې ددوی [يعني د نوح ؑ ، هود ؑ ، صالح ؑ ، لوط ؑ او شعيب ؑ يا د دوئ قومونو] نه پس مونږ موسى ؑ ته خپل آيتونه وركړل ، فرعون او دهغه قوم ته مور وراوليږلو. دلته دآيتونو نه مراد د تورات آيتونه هم كيدې شي او دهغوئ ؑ معجزې هم

**دموسى ؑ د فرعون نوم:-** په دغه زمانه كښې به دمصر د هر بادشاه لقب فرعون وو د موسى ؑ ددغه زمانې دفرعون نوم قابوس بيان شوې دې . [قرطبي] [1].

**په اياتون د ظلم معنى:-** ﴿فَظَلَمُوا۟ بِهَا﴾ د ﴿بِهَا﴾ ضمير آيتونو ته راجع دې ، معنى ئې دا شوه چې دغې خلقو زمونږ په آيتونو ظلم اوكړو ،ددې ظلم مطلب دادې چې د الله ﷻ د آيتونو قدر ئې او نه كړو ،دهغې د شكر په ځائې ئې ناشكري اوكړه ، د اقرار په ځائې ئې انكار اوكړو ، دايمان په ځائې كفر يې اختيار كړو ، ځكه چې د ظلم اصلي معنى داده چې څه څيز دهغې د موقعې او محل په خلاف استعمال كړې شي.

**د فانظر مطلب:-** بيا فرمائي چې ﴿فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَـٰقِبَةُ ٱلْمُفْسِدِينَ﴾ [اوگورئ چې بيا ددې فساديانو څه انجام شو؟] مطلب دادې چې د دوئ په حالاتو اوخراب انجام باندې غور اوكړئ او عبرت ترې حاصل كړئ.

**پيغمبرولې دروغ نشي وئيلې:-** دويم آيت مبارك كښې موسى ؑ فرعون ته اوفرمائيل چې زه د رب العالمين رسول يم ، زما دحال او د نبوت دمنصب تقاضا اوغوښته هم داده چې الله ﷻ ته سوا د رښتيا خبرې نه بله څه خبره منسوب نكړم ، ولې چې پيغمبرانو ؑ ته د الله ﷻ د طرفنه وركړې پيغام ، هغوئ سره د الله ﷻ امانت وى ، په هغې كښې د خپله ځان نه كمې يا زياتې كول خيانت دې . او ټول انبياء ؑ د خيانت او هرې گناه نه پاك او محفوظ دى ، حاصل ئې دا شو چې تاسو لره زما په خبره ځكه يقين كول پكار دى چې زما رښتين والى ستاسو دټولو په وړاندې دې ، ماخو نه چرې دروغ وئيلى دى اونه ئې وئيلې شم اودا هم ده چې:

**دمعجزې ښكاره كول اود بني اسرائيلود خوشې كولو مطالبه:-** ﴿قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِىَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ [يوازې داخبره نه ده چې دروغ مې چرې نه دى وئيلي بلكه زما په دعوى باندې دليلونه زما معجزې هم دى ، په دې وجه د ټولو څيزونو تقاضا داده چې تاسو زما خبره واورئ او وې منئ ، بني اسرائيل چې مو هيڅ بې هيڅه خپل غلامان جوړ كړې دى هغه هم آزاد كړئ،فرعون په هيڅ خبره باندې عمل او نه كړو د معجزې ليدو مطالبه ئې اوكړه وې وئيل چې:

[1] ) تفسير القرطبي سورة البقرة آية:٤٩، ج١، ص٣٨٣

**د معجزې مطالبه:-** ﴿إِن كُنتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ [که څه معجزه دې واقعي راوړې وي نو پیش ئې کړه که ته د رښتینو خلقو نه یې].

**دهمسا څخه اژدها جوړیدل:-** موسی ﷺ ئې خبره اومنله ،خپله همسا ئې په زمکه اوغورزوله ، هغې نه یوه اژدها جوړه شوه . ﴿فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ﴾، ﴿ثُعْبَانٌ﴾ لوئې اژدها ته وئیلې شي ، د ﴿مُّبِينٌ﴾ په صفت ذکر کولو سره دا خودل دی چې ددې همسا څخه اژدها جوړیدل ښه ښکاره واقعه داسې ده چې د هیچا څه شك پاتې نشو ، نه په تیاره یا په خانله ځائې کښې وه ، اونه په کښې څه نظر بندی وه بلکه په ډك دربار کښې دټولوخلقو مخې ته ښه په ښکاره وه .

**دفرعون ویریدل:-** ځینې تاریخی روایتونو کښې د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی چې دغې اژدها هرکله چې فرعون ته خپله خله وازه کړه نو د ویرې په وجه ئې د خپل بادشاهی تخت نه توپ کړل اود موسی ﷺ پناه ئې واخستله ، او په زرګونو درباریان ئې ددې د ویرې نه مړه شو .[تفسیر کبیر] (۱).

**دهمسا څخه اژدها جوړیدو غرض:-** همسا نه اژدها جوړیدل څه ناممکن او عجیبه خبره نه ده البته دا د عام عادت څخه خلاف کیدو په وجه حیراونکې او قابل تعجب ضرور ده. اود معجزې او کرامت غرض دا وې چې کوم یو کار یوعام سړې نه شي کولې نو الله ﷻ هغه د انبیاء کرامو ﷺ په لاسونو سره ښکاره کوی . او دا ددې دپاره چې عوام پدې پوهه شي چې دده سره دالله ﷻ یو قوت شته دې. په دې وجه د حضرت موسی ﷺ همسا څخه مار جوړیدل څه قابل تعجب کار نه دې او نه ددې څخه انکار کیدې شي.

**د سپین لاس معجزه:-** دې پسې فرمائې چې ﴿وَنَزَعَ يَدَهُ فَإِذَا هِيَ بَيْضَاءُ لِلنَّاظِرِينَ﴾ د نزع معنی داده چې یوڅیز دبل نه په زور او سختئ سره راؤښکلې شي ، دلته دا په ډاګه او نه فرمائیلې شو چې څه نه ئې لاس راؤښکلو ؟ خو په نورو آیتونو کښې یوځائې داسې راغلی دی چې ﴿وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ﴾ او بل ځائې کښې داسې راغلی دی چې ﴿وَاضْمُمْ يَدَكَ إِلَى جَنَاحِكَ﴾ چې خپل لاس خپل ترخ یعنی بغل لاندې ور اومنډه ، یعنی دغه معجزه به کله په رومبئ طریقه اوکله په دویمه طریقه داسې ښکاره کولې شوه چې : ﴿فَإِذَا هِيَ بَيْضَاءُ لِلنَّاظِرِينَ﴾ [دغه لاس به کتونکو دپاره خلیدونکې وو].

**دبیضاء معنی:-** د ﴿بَيْضَاءُ﴾ لفظی معنی سپین کیدل دی چې کله دبرګې مرض د وجې نه هم کیږی خکه په یوبل آیت مبارك کښې داسې فرمائیلې شوی دی چې ﴿غَيْرِ سُوءٍ آيَةً أُخْرَى﴾ [دغه سپینوالې دڅه بیمارئ په وجه نه وو]. د ابن عباس رضی الله عنهما دروایت نه معلومیږی چې دغه سپینوالې به څه معمولی نه وو بلکه داسې رڼا بهٔ ترې ختله چې ټوله فضا به پرې روښانه شوه .[قرطبی] (۲).

په ﴿لِلنَّاظِرِينَ﴾ فرمائیلو سره دې ته اشاره اوشوه چې دا رڼا به دومره عجیبه وه چې خلق به ئې لیدو ته راغونډیدل .

**د دواړو معجزو جدا جدا مقصد:-** دغه وخت دفرعون په سوال موسی ﷺ دوه معجزې اوخودلې . یو دا چې همسا نه ئې اژدها جوړه شوه، بله دا چې لاس به ئې ګریوان کښې یا ترخ کښې اچولو

(۱) التفسیر الکبیر تحت هٰذه الآیة: ج۷، ص۲۰۳، وتفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۷، ص۲۸۵

(۲) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۷، ص۲۵۷

سره راوویستلو نو هغه به پرېږدو ، رومبۍ معجزه د مخالفينو د ويرولو دپاره وه او بله معجزه د دوئ د مينې پيدا کولو اورانزدې کولو دپاره وه ، په دې کښې اشاره وه چې د موسی ﷺ تعليم ، دهدايت يو داسې نور دې چې په تابعدارئ کولو سره ئې کاميابی مونده شي.

﴿قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ﴾ د ملا لفظ د يو قوم د اثرناکه سردارانو دپاره استعمالولی شی ، يعنی هر کله چې د فرعونی قوم سردارانو دا معجزې اوليدې نو خپل قوم ته ئې اوونيل چې دا خو غټ ماهر جادوګر دې وجه ئې داده چې :

فکر هرکس بقدر همت اوست

**ترجمه:-** [د هر چا د فکر پرواز د هغه همت پشان جوړ وی].

**په معجزه د جادو ګمان کول:-** دا شادوګان د الله ﷻ د کامل قدرت نه څنګه خبريدې شو چې ټول عمر ئې فرعون خپل خدائې او جادوګران ئې خپل رهبران جوړ کړی وو ، صرف د جادوګرو ټوټکې ئې ليدلې څکه خو ئې دغه معجزې هم ټوټکې اوبللې خو دلته ﴿سَاحِرٌ﴾ سره ﴿عَلِيْمٌ﴾ په زياتولو سره دغې خلقو دا ښکاره کړه چې د موسی ﷺ کار د عامو جادوګرو نه مختلف او ځانګړې دې څکه ئې ورته لوئې ماهر جادوګر اوونيلو.

**معجزه او جادو کښې فرق:-** ① الله ﷻ د پيغمبرانو ﷺ معجزې په داسې شان سره ښکاره کوی چې که ليدونکی ئې ضد نه کوی او لږ شان غوروفکر اوکړی نو ورته به دمعجزې او جادو ترمينځه فرق پخپله ښکاره شی.

② جادوګران اکثر په ناپاکئ اوګندګئ کښې پاتې کيږی ، څومره چې زيات ناپاکه ګنده وی هومره ئې جادو زيات اثرناك وی ، اود پيغمبرانو ﷺ پاکيزه او صفا پاتې کيدل يو طبيعت جوړ شوې وی.

③ او د الله ﷻ د طرفنه يو ښکاره فرق دا هم وی چې د پيغمبر ﷺ په مقابله کښې د چا جادو چليدې هم نشی.

④ دبصيرت خاوندان په دې حيثيت ښه پوهيږی چې د جادو په ذريعه ټول ښکاره کيدونکی څيزونه طبعی اسبابونه لاندې کيږی . فرق صرف دا دې چې دغه اسباب عامو خلقو ته نه ښکاری بلکه پټ وی . همدغه وجه ده چې عوام ئې داسبابو لاندې ګنړی ، پخلاف د معجزې نه چې طبعی اسبابو لره په دې کښې بالکل څه دخل نه وی ، هغه نيغ په نيغه د الله ﷻ دقدرت کار وی ، څکه خو ئې الله ﷻ په قرآن عظيم الشان کښې نسبت خپل ځان ته کړې دې لکه فرمائی چې : ﴿وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى﴾. ددې څخه معلومه شوه چې د معجزې او جادو په مينځ کښې هيڅ جوړښت نشته ، حقيقت پيژندونکی په ښه شان پوهيدې شی عوام چې پرې په ښه شان سره نشو پوهيدې نو الله ﷻ په کښې داسې فرقونه او بيلتونونه ښکاره کړل چې عوام پرې هم د دهوکه کيدو نه بچ شو.

خلاصه ئې داده چې هرکله فرعونيانو هم د موسی ﷺ معجزه دخپلو جادوګرو د کارونو نه مختلفه بيامونده نو څکه ئې دخلو نه دا اووتل چې موسی ﷺ دومره لوئې جادوګر دې چې عام جادوګران ورته نشی رسيدلې . ﴿يُرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ ۚ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ﴾ [دا ماهر جادوګر تاسو ددې خپل ملك نه اوښکل غواړی نو اوس تاسو څه صلاح راکوئی ؟!].

قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَاَرْسِلْ فِي الْمَدَآئِنِ

اوونیل هغوئ | په انتظار کښې اوساته دې اوورورددهٔ | اواولیږه | په ښارونو کښې

بولوصلاح ورکړه چې موسی او دهغه رور [هارون ﷺ] ته مهلت ورکړه | او تولو ښارونو ته نوکران اولیږه

حٰشِرِيْنَ ۝ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ۝ وَجَآءَ السَّحَرَةُ

راجمع کونکي نوکران | چې راولي تاته | هر یو جادوګر | پوهه | اوراغلل | جادوګران

چې دهر طرفنه پاخه جادوګران راجمع کړي | ............... او جادوګرد فرعون [دربار] ته راغلل

فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ

فرعون ته | وې ونیل | چې بیشکه | وی به زمونږ دپاره | خامخا اجر | که شو مونږه | هم مونږه

هغوئ اوونیل که مونږ په موسی ﷺ باندې غالب شو | نو مونږ ته به څه انعام راکوی کنه؟

الْغٰلِبِيْنَ ۝ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝

غالب | اوونیل فرعون | هووی به | اوبیشکه یئ به تاسو | دنزدیکا نو نه |

فرعون اوونیل چې آو تاسو به زما په نژدې درباریانو کښې شئ؛

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ۝

اوونیل هغوئ | اے موسی | یا | ته اوغورزوه | اویا | به شو مونږه | هم مونږه | غورزونکي |

هغوئ اوونیل چې اې موسی اول ته [رسئ] غورځوې او که مونږ [خپلې رسئ] اوغورزوو

قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ

اوونیل | اوغورزوئ تاسو | پس هر کله چې | اوغورزوو هغوئ | نوجادوئې اوکړو | په سترګو دخلقو باندې

موسی اوونیل چې اول تاسو اوغورزوئ | نو هر کله چې هغوئ [خپلې رسئ] اوغورزولې | نو د خلقو نظربندي ئې اوکړه

وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ۝ وَاَوْحَيْنَآ

اووې یرول هغوئ | اوراتله اوکړل هغوئ | په جادو | لوئ سره | اووحی اوکړه مونږه

اوپه خلقو ئې هیبت راوستو | او ډیرلوئې جادو ئې پیش کړو | اومونږ موسی ﷺ ته وحی اوکړه

اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَاِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا

موسی ﷺ ته | چې اوغورزوه | همساخپله | نو په هغه ساعت | هغې رانغښتل | هغه څه

چې خپله همسا دې اوغورزوه | نو کله چې هغه اوغورزوله | نو هم په هغه ساعت ئې دجادوګرانو

يَاْفِكُوْنَ ۚ فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۚ

چې دروغ جوړ کړي وو هغوئ | نو ثابت شو | حق | او باطل شو | هغه چې وو هغوئ | چې کول به ئې

تول ددروغو رسئ یو نمرئ کړه | نو حق څرګند شو | او د هغوئ جوړ کړي څیزونه باطل شول

فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ ۚ وَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ

نو مغلوبه شو هغوئ | په دغه ځائې کښې | اوګرځیدل هغوئ | ذلیله | اوپریستلي شو | جادوګران

نو په دغه موقعه هغوئ لاندې راغلل | او رسوا شول | ...............اوجادوګر بې اختیاره

سٰجِدِيْنَ ۝ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ رَبِّ مُوْسٰى

سجده کونکي | اووئيل هغوئ | ايمان راوړو مونږه | په رب العالمين | چي رب دموسی ﷺ دي

په سجده پريوتل | وي وئيل چي مونږ په رب العالمين ايمان راوړي دي | په هغه چا چي موسی ﷺ

وَهٰرُوْنَ ۝

اودهارون ﷺ دي |

هارو ﷺ ني مني |

## آسان ترجمه قرآن

دوي ووئيل چه: لږ ده ته او دده ورور ته څه مهلت ورکړه، او ټولو ښارونو ته راجمع کوونکي اوليږه. دې د پاره چه هغوی ټول جادوګر راجمع کړي او تا ته ئې راولي (پس هم دغسي وشول) او جادوګر فرعون ته راغلل (او) هغوی ووئيل: که چرې مونږ (موسٰی) باندې غالب شو نو مونږ ته خو به څه انعام ضرور ملاويږي؟ فرعون ووئيل چه "آو، او تاسو به ځما د مقربو خلقو نه (هم) شميرلي شئ. دوي (موسٰی ته) ووئيل: موسٰی! که ته وغواړي نو (چه څه غورځول غواړې) نو هغه وغورځوه، او که مونږ (خپل د جادو څيزونه) وغورځوو؟ موسٰی عليه السلام ووئيل چه تاسو وغورځوئ الوچه هغوی (خپلې رسۍ او همساګانې) وغورځولې نو د خلقو په سترګو ئې جادو وکړو اوهغوی ئې وويرول. او زبردست جادو ئې ښکاره کړو. اومونږ موسٰی عليه السلام ته د وحی په ذريعه حکم وکړو چه ته خپله همسا وغورځوه. بس بيا څه وو چه هغې هغه ټول څيزونه وخوړل چه کوم هغوی جوړ کړي وو. دغه شان حق ښکاره شو اودهغوی هغه جوړ کړې شوې کار باطل شو. په دې موقع باندې هغوی کمزوري شو اود سخت ذلت په حالت کښې (د مقابلې نه) واپس شو اودې واقعې ټول جادوګر بې اختياره په سجده کښې وغورځول هغوی ووئيل چه: مونږ په هغه رب العٰلمين باندې ايمان راوړې دې چه د موسٰی او د هارون رب دې.

## خلاصه تفسير

غرض دا چې [دمشورې کولو نه پس] ﴿ قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَاَرْسِلْ فِى الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ۝﴾ هغوي [فرعون] ته اووئيل چه ته دې [موسی ﷺ] ته مهلت ورکړه او [ته دخپل ملك په حدودو کښې دخپلو حکمرانانو] ښارونو کښې [ګرداورانو ته يعني] چپړاسيان ته [حکم نامې] اوليږه ﴿ يَأْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ۝﴾ چه هغوي [دټولو ښارونونه] ټول ماهر جادوګران [جمع کړي] تاسو ته ئې راولي حاضر ئې کړي [چنانچه همداسې انتظام اوکړې شو] ﴿ وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ ﴾ او هغه جادوګران فرعون ته راغلل] او ﴿ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ۝﴾ وې وئيل چه که مونږ [موسی ﷺ باندې] غالب راشو نو [آيا] مونږ ته به څه لويه بدله [انعام] ملاويږي. ﴿ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝﴾ فرعون اووئيل چه آو [انعام به هم لوئې ملاويږي] او [نور به دا وي چه] تاسو به [زمونږ] مقربو خلقو کښې داخل شئ [غرض داچه موسی ﷺ ته دفرعون دطرفه دا اطلاع ملاؤشوه اود مقابلې دپاره تاريخ مقرر شو او په تاريخ باندې ټول ميدان کښې جمع شول هغه وخت] ﴿ قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ ﴾ دغې ساحرانو [موسی ﷺ ته] عرض اوکړو چه اې موسی ﷺ [مونږ تاته اختيار درکوؤ] که تاسو [اول خپله همسا ميدان کښې] غورزونې [چه دې ته خپله

معجزه وانې] ﴿ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحۡنُ ٱلۡمُلۡقِينَ ﴾ اويا [که ته وانې نو] هم مونږ [خپلې رسۍ او کوتکونه میدان کښې] اوغورزوو. ﴿ قَالَ أَلۡقُواْۖ ﴾ موسی؏ اوفرمائيل چه هم تاسو [مخکښې] اوغورزوئي ﴿ فَلَمَّآ أَلۡقَوۡاْ سَحَرُوٓاْ أَعۡيُنَ ٱلنَّاسِ وَٱسۡتَرۡهَبُوهُمۡ ﴾ چه کله هغوی [خپلې رسۍ او کوتکونه] اوغورزول نو [په جادوسره د کتوونکو] خلقو نظرې بندئي اوکړه [چه په دې سره هغه کوتکونه او رسۍ د مارانو په شکل کښې ښکاریدل] او په دوي يې هيبت غالب کړو ﴿ وَجَآءُو بِسِحۡرٍ عَظِيمٖ ﴾ او يو قسم لوئې جادو ئي ورته اوخودلو ﴿ وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنۡ أَلۡقِ عَصَاكَۖ ﴾ او [په هغه وخت کښې] مونږ موسی؏ ته [دوحي په ذريعه] حکم اوکړو چه خپله همسا اوغورزوه [چه څنګه غورزولې شي] نوهمسا غورزول وو ﴿ فَإِذَا هِيَ تَلۡقَفُ مَا يَأۡفِكُونَ ﴾ چه دهغې [نه يو اژدها جوړه شوه او] داټول جوړشوي کهيل اوجادوئي خوړل شروع کړل ﴿ فَوَقَعَ ٱلۡحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾ نو [هغه وخت] دحق [حق کيدل] ظاهر شو اوهغوي [يعني جادوګرانو] چه څه جوړ کړي وو هغه ټول خراب شول ﴿ فَغُلِبُواْ هُنَالِكَ وَٱنقَلَبُواْ صَٰغِرِينَ ﴾ اوهغه [يعني فرعون اودده قوم] په دې موقع ماتې اوخوړه اوښه ذليله شول [اوحيران شول] ﴿ وَأُلۡقِيَ ٱلسَّحَرَةُ سَٰجِدِينَ ﴾ او چه کوم جادوګر وو هغوي په سجده کښې پريوتل [اوپه چغو چغو ئې] ﴿ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ وئيل چه مونږ ايمان راوړو په رب العالمين باندې ﴿ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ﴾ چه دموسی؏ اود هارون؏ هم رب دې.

## معارف او مسائل

دې آيتونو کښې د موسی؏ پاتې قيصه بيان شوې ده چې هر کله فرعون د موسی؏ ښکاره معجزه په دې شان کښې اوليده چې د همسا نه ئې اژدها جوړه شوه . چې په لاس کښې ئې اونيوه بيا هم هغه همسا شوه ، په ګريوان کښې لاس ورمنډلو نه پس ئې چې هغه ئې راوښکلو نو پرقيدو ، ددې قدرتې نخښو ليدلو تقاضا دا وه چې په موسی؏ ئې ايمان راوړې وې مګر څنګه چې د اهل باطلو عام طرز دې چې په حق باندې پردې اچول او ترې دانکار کولو دپاره صحيح څيز ته غلط رنګ ورکوی. فرعون او د فرعونيانو سردارنو خلقو هم داشان اووئيل چې دا ماهر جادوګر دې ، مقصد ئې ستاسو ملك قبضه کول او تاسو ترې اوښکل دی نو اوس تاسو له څه کول پکار دی ؟

فرعونيانو ددې جواب کښې اووئيل چې ﴿ قَالُوٓاْ أَرۡجِهۡ وَأَخَاهُ وَأَرۡسِلۡ فِي ٱلۡمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ۝ يَأۡتُوكَ بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٖ ﴾ دلته ﴿أَرۡجِهۡ﴾ د ارجاء نه مشتق دې ، معنی ئې ډيل او اميد ورکول دی. ﴿ٱلۡمَدَآئِنِ﴾ د مدينة جمع ده ، چې هر لوئې ښار ته ويلې شی. ﴿حَٰشِرِينَ﴾ د حاشر جمع ده ، معنی ئې پورته کوونکې او جمع کوونکې ده ، مراد ترې سپاهيان دی چې د ملك د هر ځائې نه جادوګران راغونډ کړی.

د ټول آيت مبارك مطلب دا شو چې د قوم خلقو دا مشوره ورکړه چې که دا جادوګر دې اود جادو په زور ملك فتح کول غواړی نو مقابله کول ئې مونږ دپاره څه ګران نه دی. زمونږ په ملك کښې لوئې لوئې جادوګران دی چې دجادو په زور به شکست ورکړی ، څه سپاهيان ئې د ملك هر ځائې ته جادوګرانو راغونډولو دپاره اوليږل. وجه ئې داوه چې دغه زمانه کښې د جادو اوسحر عام رواج وو ، په عامو خلقو باندې دجادوګرو غلبه وه. شايدهمدا وجه وه چې

موسی ﷤ ته دهمسا او یدبیضاء معجزه څکه ورکړې شوه چې جادوګرو سره مقابله اوکړي او د جادوګرو شرمیدل ټول خلق پخپلو سترګو اووینی څنګه چې الله ﷻ د جاری عادت مطابق د هرې زمانې پیغمبر ﷤ ته ددغې زمانې مناسبې معجزې ورکړې دی. د عیسی ﷤ په زمانه کښې یونانی طب او حکمت په ډیره ترقئ کښې وو نو هغوئ ﷤ ته دا معجزه ورکړې شوه چې مور زاد ړانده بیناکړی او جذامیان ددغې مرض نه روغ کړی. د نبی کریم ﷺ زمانه کښې د عربو لوئې کمال فصاحت او بلاغت وو. نو د نبی کریم ﷺ تولو نه لویه معجزه قرآن عظیم الشان جوړه شوه. چې ټول عرب او عجم ې د مقابلې کولو نه پاتې راغلل.

﴿وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ۝ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ۝﴾ [د خلقو دمشورې مطابق د ټول ملك نه د جادوګرو د جمع کولو انتظام اوکړې شو او دغه جادوګر فرعون ته راغلل، هغوئ فرعون نه تپوس اوکړو چې که مونږ په موسی ﷤ باندې غالب شو نو ددې څه انعام او اجر به راته راکولې شی؟ فرعون ورته اووئیل چې آؤ چې اجر او اجرت سره به درته دا انعام هم درکولې شی، چې تاسو ټول به زمونږ په نزدیکانو کښې شامل شئ].

د ټول ملك نه راجمع کړې شوی دغه جادوګران چې د موسی ﷤ مقابلې دپاره راوستې شوی وو په تاریخی روایاتو کښې د دوئ شمیر دنهو سوؤ نه تر درې لاکهو پورې راغلې دې. دوئ سره د همساګانو او رسیانو دومره غټ انبار وو چې په درې سوؤ اوښانو باندې بار کړې راوړې شوې وو. [قرطبی] ([1]).

فرعون جادوګرو راتلو سره رومبئ خبره د سودا بازئ داسې شروع کړه چې وې وئیل چې دمقابله په وخت، زمونږ د بر راتلو په صورت کښې به راته څه راکولې شی؟ وجه ئې دا وه چې د باطل پرستو مخې ته صرف ددنیا فائدې وی. هغوئ د هر کار کولو نه مخکښې د اجرت او فیس سوال مخې ته راولی. په خلاف د پیغمبرانو ﷩ او ددوئ ﷩ د نائبانو او جانیشنو نه چې په هر قدم دا اعلان کوی چې:

﴿وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ [دحق پیغام چې هم ستاسو د فائدې دپاره تاسو ته در رسوؤ، په هغې باندې تاسو نه څه بدله نه غواړو بلکه زمونږ اجر صرف الله ﷻ پخپله ذمه اخستې دې] فرعون ورته اوخودل چې تاسو خلق بدله غواړئ، مونږ به اجرت هم درکړو او زیاتی دا چې تاسو به د شاهی دربار نزدیکان اوګرځوؤ.

فرعون سره ددې خبرو اترو کولو نه پس ساحرانو موسی ﷤ سره د مقابلې کولو دپاره ځائې او وخت مقرر کړو یو لوئې میدان وو، ورځ داختر وه، او وخت دنمر خاته نه پس وو. لکه قرآن عظیم الشان په بل ځائې کښې فرمائی چې:

﴿قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّيْنَةِ وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى۝﴾ ([2]).

څینې روایاتو کښې راغلی دی چې په دغه موقعه موسی ﷤ د ساحرانو سردار سره داسې خبرې اوکړې چې که زه درباندې غالب راغلم نو آیا تاسو به په ما ایمان راوړئ؟ هغوئ اووئیل چې زمونږ په جادو باندې هیڅوک نشی کامیابیدلې نو مونږ به پاتې څنګه راشو؟ که

---

[1]) ترجمه: د هر یو کس فکر (سوچ) دهغه د همت په اندازه وی۔

[2]) ترجمه: موسیٰ اوفرمایل، ستاسو دحاضرېدو وخت هغه ورځ ده کومه که چه میله وی او د څاښت په وخت کښې خلق راجمع کړی شی

بالفرض تاسو ﷺ په مونږ برې بيا موندو نو مونږ په ښکاره د فرعون په مخکښې په تا ايمان راؤړو. [مظهري وقرطبي][1].

﴿قَالُوا يٰمُوسٰۤى اِمَّاۤ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّاۤ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ۝﴾[هغوئ اوونيل چې اے موسى اول ته [رسئ] غورځوې اوكه مونږ [خپلې رسئ] اوغورزوؤ]. د القاء معنى اچول او غورزول دى، دوئ چې هر كله د مقابلې ميدان ته راؤسيدو نو جادو گرو موسى ﷺ ته اوونيل چې يا خو تاسو ﷺ اول گزار اوكړئ يا به اول مونږ گزارونكى شو؟

دجادوگرانو په دې وينا كښې مطلب دا وو چې خپله بې فكرى او لوئى په دې شان سره ښكاره كړى چې اول گزارول كه هر څوك اوكړى نو زمونږ پرې هيڅ پرواه نه راځى ولې چې پخپل فن باندې زمونږ ښۀ تسلى اواعتبار دې. د دوئ د بيان انداز نه معلوميږى چې د اول گزارولو اراده هم دوئ لرله مگر زور اوطاقت ښكاره كولو دپاره ئې موسى ﷺ نه تپوس اوكړو چې اول تاسو غوزارول غواړئى او كه مونږ گزار اوكړو؟

موسى ﷺ چې د دوئ منشا اوغرض محسوس كړو او پخپله معجزه باندې ئې مكمله تكيه او اعتماد وو ،ځكه ئې اول موقعه دوئ ته وركړه اووې فرمائيل چې ﴿اَلْقُوْا﴾ اول هم تاسو گزار اوكړئ.

اوابن كثير ﷫ فرمائيلى دى چې موسى ﷺ سره د جادوگرو دا معامله د ادب او احترام وه چې د گزارولو ړومبئ موقعه ئې موسى ﷺ ته وركوله نو ددې په اثر كښې ورته الله ﷻ دايمان راؤړلو توفيق وركړو[2].

دلته سوال دا پيدا كيږى چې جادو كول پخپله يو حرام كار دې بيا چې كله دا پيغمبر ته د شكست وركولو دپاره آستعماليږى نو بيشكه چې كفر جوړيږى ، بيا موسى ﷺ څنگه دغې خلقو ته ددې اجازت وركولو دپاره اوفرمائيل چې ﴿اَلْقُوْا﴾ ليكن په حقيقت باندې غور كولو سره دا سوال پخپله ختميږى ، ولې چې دغه ځائې كښې دمقابلې دپاره د دوئ سحر پيش كول يقينى وو، خبره صرف د وړاندې او روستو غورزولو وه ،په دې كښې موسى ﷺ دخپلې اولو العزمئ اومستقل مزاجئ ثبوت داسې وركړو چې داول گزارولو موقعه ئې هم دوئ ته وركړه ،دې نه علاوه يو فائده په كښې دا هم وه چې اول جادوگران خپلو همساگانو او پړو ، رسونه ماران جوړ كړى چې د موسى ﷺ معجزه يوازې مار جوړول نه وى بلكه دې سره سره دا هم ښركند شى چې هغه د جادو دغه ټول ماران هم تير كړى اوپه ړومبى قدم باندې دجادو په ښكاره ماتې راشى .[بيان القرآن].

او داهم وئيلې شى چې دغه خبره د موسى ﷺ جادو گرو ته د جادو كولو اجازت وركول نه وو بلكه د دوئ دشرمندگئ په ډاگه كولو دپاره وو چې ښه ده تاسو گزار اوكړئ چې ستاسو دجادو څۀ حشر كيږى ؟

﴿فَلَمَّاۤ اَلْقَوْا سَحَرُوْۤا اَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ۝﴾[نو هر كله چې هغوئ [خپلې رسئ] اوغورزولې اودخلقو نظربندى ئې اوكړه اوپه خلقو ئې هيبت راوستو او ډيرلوئې جادوئې پيش كړو]

[1]) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۳۹۳

[2]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۷، ص ۲۵۸

ددې آيت مبارك نه معلومه شوه چې د دوئ دغه جادو يو قسم نظر بندي او په خيال كښې دا راوستل وو چې دغه همساګانې او رسئ ماران جوړ شوي منډې وهي حالانكه په واقع كښې هغه پخپل حال وې ماران ترې نه وو جوړ شوي ، دا يو قسم مسمريزم وو چې اثر ئې د انسان خيال او نظر مغلوب كوي .

ليكن ددې نه دا لازميږي چې سحر صرف په دې قسم كښې بند دې او په سحر سره هيڅرې د يو څيز اصليت نشي بدليدې ځكه چې څه شرعي يا عقلي دليل په دې باندې قائم نه دې ،بلكه د واقعاتو نه ثابت دي چې د سحر مختلف قسمونه دي ، كله په كښې صرف د لاس چالاكي وي چې كتونكي په كښې غلطيږي ، كله يوازې خيال بدليدل اونظر بندي وي لكه مسمريزم سره چې كيږي . او كله ورسره اصليت اوحقيقت بدليدل هم كيديشي چې انسان نه كانړې يا خرجوړ شي داهم د څه شرعي يا عقلي دليل نه خلاف نه دي .

﴿وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ ۖ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ﴾ [اووحي اوكړه مونږه موسى ﷺ چې خپله همسا دې اوغورزوه نوكله چې هغوئ اوغورزوله نو هم په هغه ساعت ئې دجادوګرانو ټول ددروغو رسئ يوه نمرئ كړه]

تاريخي روايتونو كښې راغلي دي چې دزرګونو جادوګرو په زرګونو همساګانې او رسئ هر كله چې ماران شو اومنډې ئې وهلې نو ټول ميدان دمارانو نه ډک شو او په دغه ټولو تماشايانو باندې عجيبه هيبت راغلو ليكن هر كله چې د موسى ﷺ همسا لويه اژدها شوه نو دغه ټول ماران ئې په يو وار تيرولو سره ختم كړل .

﴿فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ﴾ [نوحق ښكند شو اود هغوئ جوړ كړې څيزونه باطل شول]

﴿فَغُلِبُوا۟ هُنَالِكَ وَٱنقَلَبُوا۟ صَٰغِرِينَ﴾ [نو په دغه موقعه هغوئ لاندې راغلل او رسوا شول]

﴿وَأُلْقِيَ ٱلسَّحَرَةُ سَٰجِدِينَ ۝ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ﴾ [اوجادوګر بې اختياره په سجده پريوتل او وې وئيل چې مونږ په رب العالمين ايمان راوړې دې په هغه رب چې موسى ﷺ هارون ﷺ ئې مني]

سجده باندې پرې ويستې شو فرمائيلو سره اشاره دې ته هم كيدې شي چې د موسى ﷺ په معجزه ليدلو سره دغه خلق څه داشان وارخطا او مجبوره شو چې بې اختياره په سجده پريوتل . او دې ته هم اشاره ده چې الله ﷻ ورته توفيق وركړو او دوئ ئې په سجده پرې ويستل ، او د ﴿رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ سره ئې ﴿رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ﴾ چې زيات كړو نو خپله خبره ئې د فرعون په مقابله كښې واضحه كړه ، ولې چې دغه بې وقوف خو به خپل ځان ته رب العالمين وئيل ، هركله چې ﴿رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ﴾ ئې اووئيل نو فرعون ته ئې دا ښكاره كړه چې مونږ ستا خدائي نه منو .

| | قَالَ | فِرْعَوْنُ | ءَامَنتُم | بِهِۦ | قَبْلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| | اووئيل | فرعون | آيا ايمان راوړو تاسو | په دهٔ باندې | مخكښې ددې نه |
| فرعون ورته اووئيل چې تاسو په ده باندې ايمان راوړو | حالانكه ماخو تاسو | | | | |

| أَنْ ءَاذَنَ | لَكُمْ ۖ | إِنَّ | هَٰذَا | لَمَكْرٌ | مَّكَرْتُمُوهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې زهٔ اجازت اوكړم | تاسوته | بيشكه | دا | خامخا پټ سازش دې | چې كړې دې تاسو |
| ته ددې اجازت نه ووكړې | دا خوستاسو يو پټه منصوبه وه | ..........چې دلته په دې | | | |

فِي الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ

په دې ښارکښې | دپاره ددې چې اوباسئ تاسو | ددې نه |اوسيدونکي ددې | پس زر به

ښار کښې موجوړه کړې وه | په دې غرض چې ددې نه د دې اوسيدونکي اوباسئ | ښه زر به درته د دې

تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ

معلومه شي تاسو ته |خامخا به زه پريکړم الاسونه ستاسو | اوخپې ستاسو | دبدل بدل طرفنه

نتيجه معلومه شي | زه به ستاسو لاسونه او پښې ديوبل اړخ نه کټ کړم ....................

ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۲۴﴾ قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا

بيابه |خامخاپه سولئ کړم تاسو| تول | هغوئ اووئيل |چې بيشکه مونږه | رب خپل ته

بيابه تول په سولئ کړم | هغوئ اووئيل چې[څه دې خوښه وې هغه اوکړه] مونږ خپل رب ته

مُنْقَلِبُوْنَ ﴿۱۲۵﴾ وَمَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا

واپس تلونکي يو |اونۀ اخلې تۀ بدله| زمونږنه |مګر ددې خبرې|چې ايمان راوړومونږه|په نښو | د رب زمونږه

واپس تلونکي يو| او ته زمونږ نه بدله د دې وجې اخلې چې د خپل رب په نښنو باندې مو ايمان راوړې دې

لَمَّا جَآءَتْنَا ؕ رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا

هرکله چې | راغلې مخې زمونږ ته | اے ربه زمونږه | رااووروه |په مونږ باندې | صبر |اووفات کړې مونږه

کله چې مونږ ته راغلې |.......... ائې زمونږ ربه ، مونږ ته صبر رانصيب کړه| اومونږ په

مُسْلِمِيْنَ ﴿۱۲۶﴾ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اَتَذَرُ مُوْسٰى

مسلمانان |اواووئيل سردارانو | دقوم دفرعون نه | آيا تۀ پريږدې | موسی ﷺ

داسې حالت کښې وفات کړه چه مسلمانان يو| دفرعون دقوم سردارانواووئيل |چې آيا ته موسی ﷺ او

وَقَوْمَهٗ لِيُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ ؕ قَالَ

اوقوم دهغه | چې فساد اوکړي | په زمکه کښې | اوپريږدې بندګی ستا |اودخدايانو ستا| اووئيل ده

دهغه قوم پريږدې |چې په ملک کښې بدامنې پيدا کړي| اوتا اوستا معبودان پريږدی |فرعون اووئيل

سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ

وژنو به مونږه | خامن دهغوئ |اوژوندئ به پريږدو| ښځې دهغوئ | اوبيشکه مونږه|په هغوئ باندې

چې مونږ به ددوئ خامن وژنو|اولونږه به ئې [خدمت دپاره]ژوندئ پريږدو|او بيشکه مونږ هغوئ باندې

قٰهِرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

غالب يو |

غالب يو|

## آسان ترجمه قرآن

فرعون ووئیل چه تاسو څما د اجازت نه مخکښ په دې سړی باندې ایمان راوړو دا ضرور څه سازش دې چه تاسو په دې ښار کښ په اتفاق سره جوړ کړې دې، دې د پاره چه ددې ځائې اوسیدونکي دې ځائې نه اوباسئ ښه نو اوس به تاسو ته پته اولګی. ما هم پخه اراده کړې ده چه ستاسو لاس او پښې به ادل بدل کټ کوم . بیا به تاسو ټول په سولئ زوړند کړم .هغوي ووئیل :یقین وکړه چه مونږ ( چه مړه شو ) نو خپل مالك ته به واپس کیږو او ته دې نه سوا څمونږ د څه خبرې نه ناراضه ئې چه څمونږ دمالك نښې مونږ ته راغلې نو مونږ په هغې باندې ایمان راوړو؟ اې څمونږ پروردګاره امونږ باندې صبراتوئ کړې،اومونږته په داسې حالت کښ مرګ راولې چه مونږ ستا تابعدار یو اود فرعون د قوم سردارانو (فرعون ته) ووئیل چه:آیا ته موسٰی او دهغه ملګری آزاد پریږدې دې دپاره چه دوی زمکه کښ فساد وکړی او تا اوستا خدایان شاته وغورځوی؟هغه ووئیل:مونږ به د دوی ځامن ووژنو او ددوی جینکئ به ژوندئ پریږدو،اومونږته په دوی باندې پوره پوره قابو حاصل ده.

## خلاصه تفسیر

﴿ قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ﴾فرعون [ډېر ویریدلو چه هسې نه ټول عوام مسلمانان شي نو یو مضمون ئې جوړ کړو او جادوګرو ته ئې] اووئیل چه تاسو په موسی ﷺ باندې ایمان راوړو بغیر ددې نه چه تاسو ته اجازت درکړم ﴿اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِي الْمَدِيْنَةِ﴾ بیشکه [معلومیږي چه] دا چه [څه اوشول] دایوه کاروائي وه چه په دې باندې ستاسو عمل درآمد شوې وو په دې ښار کښې [پټ سازش شوې دې چه تاسو به داسې کوئي بیا به داسې ګټه بائیلل ظاهر کړئي او دا کاروائي ستاسو په خپلو کښې چل څکه دې] ﴿لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ۝﴾ چه تاسو ټول یوځائې شئ اوددې ښار نه ددې اوسیدونکي بهر اوباسئ [بیا دفراغت نه پس ټول یوځائې شئ اودلته حکومت کوئي] نو [ښه ده چه] اوس به تاسو ته حقیقت معلوم شی [اوهغه داچه] ﴿لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ۝﴾ زه به ستاسو دیو طرف لاس او بل طرف پښې پریکړم بیا به تاسو په سولئ په دار اوخیژوم [چه نور عبرت واخلی]. ﴿ قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ۝﴾ هغوي جواب ورکړو چه [هیڅ پرواه نشته دې] مونږ ته په مړه کیدلو [چرته خراب ځائې ته خو به لاړ نشو کنه بلکه] خپل مالك لره به ځو [چه هغه سره په هر شان امن او راحت دې نوزمونږ نقصان څه دې] ﴿ وَمَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتْنَا ؕ﴾ او تا په مونږ کښې څه دعیب لیدلې دې [چه په هغې باندې شور کوې] سوا ددې نه چه مونږ دخپل رب په احکامو باندې ایمان راوړو [نو دا څه عیب خبره نه ده .بیا ئې دده نه اعراض اوکړو اوداللہ ﷻ نه ئې دعا اوکړه چه] ﴿ رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ۝﴾ ائې زمونږ پروردګاره په مونږ باندې صبر راتو ئې کړه [چه که دوي سختي کوي نو چه مونږ مستقل یو] او زمونږ ساه په اسلام باندې اوباسې [چه دده دسختئ نه پریشانه نه شواو څه خبره دایمان خلاف اونه شي].

﴿ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ ﴾او[کله چه دموسی ﷺ دا لویه معجزه منظر عام ته ښکاره شوه او ساحرانو ایمان راوړو او بعضې خلق هم د دوئ تابع شو په هغه وخت]کښې دفرعون قوم سردارانو [چه د حکومت سرکرده خلق وو چه دائي اوکتل چه بعضې سړی مسلمانان شو نو

فرعون ته ئې] اوونيل ﴿ أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ ﴾ چه آيا ته موسی ﷺ اودده قوم [تابعين] به هم داسې بې تکليفه اوپه خپله طبع آزاد] پرېږدې چه هغوئ په ملك کښې فساد کوی[فساد دا چه خپله ډله زياته کړي چه ددې نه دبغاوت انديښنه ده] ﴿ وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ ﴾ او هغه [يعني موسى ﷺ] تاسو او ستاسو [تجويز کرده] معبودان پرېږدي [يعني ددوي د معبود منلو نه منکر وي او موسى ﷺ سره دهغه قوم هم داسې اوکړي يعني ته ددې څه غور اوکړه] ﴿ قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبْنَاءَهُمْ وَنَسْتَحْيِي نِسَاءَهُمْ ﴾ فرعون اووئيل چه [اول داسې انتظام معلومېږي چه] مونږ هم ددې خلقو ځامن قتل کول شروع کړو [چه ددوي زور زيات نشي] او [چونکه دښځو د زياتيدو نه هډو څه انديښنه نشته دې لهذا مونږ ته دکار اود خدمت دپاره هم ددوي ضرورت دې ددې وجې] ښځې يې ژوندئي پرېږدو ﴿ وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَاهِرُونَ ﴾ اومونږ ته په هررنګ په دوي زور دې [په دې انتظام کولو کښې به هيڅ مشکلات نه وي].

## معارف او مسائل

ددې آيتونو مبارکو نه په وړاندې آيتونو مبارکو کښې دا بيان راغلې دې چې دخپلو سردارانو په مشوره سره فرعون چې کوم ساحران او جادوګران د موسى ﷺ دمقابلې دپاره دټول ملك نه راجمع کړې وو ، هغوئ د مقابلې په ميدان کښې يوازې صرف دا نه چې خپل شکست يې اومنلو بلکه په موسى ﷺ باندې يې ايمان هم راوړو.
تاريخی روايتونو کښې راغلی دی چې هر کله د جادوګرو سردارانو موسى ﷺ باندې ايمان راوړو نو شپږ لاکهه فرعونيانو هم د دوئ په ليدو دايمان راوړلو اعلان اوکړو.
دې مقابلې او مناظرې نه مخکښې يوازې دوه کسان موسى ﷺ اوهارون ﷺ دفرعون مخالف وو ، کله چې د ټولو نه لوئې جادوګران د فرعونيانو د اقتدار غرې وو او دوئ سره شپږ لاکهه عوام مسلمانان شو نو لوئې طاقت دفرعون مقابلې ته تيار شو. په دې باندې د فرعون وار خطا کيدل بالکل بې ځايه نه وو. خو ددې د پټولو دپاره ئې د يو چالاك هوښيار سياستدان په انداز کښې رومبې خو په جادوګرو د بغاوت دا شان الزام اولګولو چې تاسو موسى ﷺ سره ملګرې وې او په شريکه مو دا پټ سازش د ملك او ملت دنقصان دپاره کړې وو.
﴿إِنَّ هَٰذَا لَمَكْرٌ مَكَرْتُمُوهُ فِي الْمَدِينَةِ﴾[دا خوستاسو يو پټه منصوبه وه چې دلته په دې ښار کښې مو جوړه کړې وه]. او بيا ئې جادوګرو ته خطاب کښې داسې اووئيل چې :﴿آمَنْتُمْ بِهِ قَبْلَ أَنْ آذَنَ لَكُمْ﴾[آيا زما د اجازت نه وړاندې تاسو ايمان قبول کړو] دا استفهام انکاری د زورنې ورکولو د پاره وو ، او په اجازت باندې د دوئ ايمان راوړل ئې ځکه اړه کړل چې خلقو ته دا يقين ورکړی چې زمونږ خپله اراده هم دا وه چې که دموسى ﷺ په حق باندې کيدل ښکاره شو نو مونږ به ئې هم پخپله اومنو او نورو خلقو ته به هم د مسلمانيدو اجازت ورکړو ، خو تاسو تلوار اوکړه او په حقيقت باندې دغور کولو نه بغير د يو سازش ښکار شوئ.
دفرعون ددې چالاکئ يو مطلب دا وو چې د موسى ﷺ معجزه او د جادوګرو منل ئې يو شريك سازش ثابت کړی، بل مطلب ئې دا وو چې هر کله د موسى ﷺ دغه عمل اود جادوګرو پرې ايمان راوړل ، خالص د فرعون ګمراهی ښکاره کول وو ، عوامو سره ددې هيڅ تعلق نه وو نو دۀ اوغوښتل چې د خلقو مخه ددې نه واړوی او دې نه سياسی مسئله داسې جوړه کړی چې:

﴿لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا﴾ [په دې غرض چې ددې نه د دې اوسيدونکې اوباسئ] ددې چالاکۍ نه پس د خپل رعب قائمولو په غرض جادوګرو ته د زورنې ورکول يې شروع کړل ، اول ئې په مبهم انداز کښې اووئيل چې : ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ﴾ [ښه زر به درته د دې نتيجه معلومه شي] بيا ئې ورته په ښکاره داسې اووئيل چې :

﴿لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ [زه به ستاسو لاسونه او پښې ديو بل اړخ نه کټ کړم بيا به ټول په سولۍ کړم]

فرعون که په دې ګډوډۍ کښې په فرعونيانو او په درباريانو دقابو موندلو هر څومره سازشونه اوکوششونه اوکړل ، ددهٔ د ظلم سزاګانې د روميې نه مشهورې او په خلقو رعب راوستونکې وې ، خود اسلام زبردست قوت هر کله چې په زړونو کښې ځائې اونيسي نو بيا دټولې دنيا دمقابلې کولو نه هم دغه انسان مخ نه اړوی ، نو هغه جادوګرو چې يو څو ګنټې مخکښې ئې فرعون خپل خدائې منلو او نور خلق ئې هم دې ته را اړول په يو څو منټه کښې ئې چې د اسلام کلمه اولوستله نو زړه ئې دومره غټ شو چې د فرعون د ټولو زورونو په جواب کښې ئې داسې اووئيل چې : ﴿قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ﴾ [ هغوئ اووئيل چې [څه دې خوښه وی هغه اوکړه] مونږ خپل رب ته واپس تلونکی يو].

هر کله چې جادوګرو د فرعون د زور ظلم نه خبر وو نو دهغې نه ئې د انکار کولو يا دمقابلې کولو په ځائې دهغه زورنه صحيح اومنله چې واقعی ته راته د هر قسم سزا راکولو قدرت لرې ، خو دايمان په راوړلو مو ددنيا په ژوند تکيه کول ختم شو ، ولې چې په آخرت کښې به راته ددې نه ښه ژوند راکړې شی او د خپل رب ملاقات به مو نصيب شی.

بله معنی ئې دا هم کيدېشی چې څه دې زړهٔ غواړی نو هغه راسره اوکړه آخر به زمونږ او ستاسو پيشې د رب العالمين سره کيږی چې ظالم نه به دمظلوم د ظلم بدله اخلی ، دغه وخت به دخپل دغې عمل نتيجه بيا مومی ،لکه چې په يوبل آيت مبارك کښې هم دغسې راغلی دی چې : ﴿فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ ۭ اِنَّمَا تَقْضِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا﴾ [چې څه دې زړهٔ غواړی زمونږ باره کښې د هغې حکم ورکړه ، ستا حکم يوازې زمونږ ددنيا په ژوند چليدې شی] ستا د قهر غصې په نتيجه کښې يوازې زمونږ دنيوی ژوند ختميدې شی ، مګر د ايمان راوړلو نه پس په دې ژوند مونږ په دې ملا نه تړو څکه چې دا په هر حال کښې په هر شان ختميدونکې ده فکر خو د هغې ژوند پکار دې چې پخپله هم اودهغې آرام او تکليف هرڅه ختميدونکی نه دی.

که ژور نظر سره اوکتلې شی نو د ايمان راوړلو په وجه هغه جادوګرو کښې څومره بدلون راغلو، کوم بيکاره انسان فرعون چې ئې خدائې منلو ، نور خلق ئې هم دې ته رابلل ، د الله ﷻ دشان لوئې او برترئ نه بالکل ناخبره وو ، خو اوس ددغه عقيدو او عملونو نه بالکل واؤړيدل ، او په حق دين باندې دومره کلك شو چې خپلو سرونو بائيللو باندې هم اړ نه وو ، او دنيا نه رخصتيدل ئې څکه خوښ کړل چې رب سره به ملاقات اوکړو . يوازې دا نه وه چې ايمانی قوت او جهاد فی سبيل الله همت په کښې پيدا شو بلکه معلوميږی چې دحقيقی علم او پيژندګلو لارې هم پرې خلاصې شوې ، نو دفرعون په مقابله کښې ددغې زړور بيان سره سره يې دا دعا هم شروع کړله چې :

﴿رَبَّنَآ أَفۡرِغۡ عَلَيۡنَا صَبۡرٗا وَتَوَفَّنَا مُسۡلِمِينَ﴾[اې زمونږ ربه ! مونږ ته صبر رانصيب کړه] اومونږ په داسې حالت کښې وفات کړه چه مسلمانان يو]

په دې کښې معرفت ته داسې اشاره ده چې که د الله ﷻ نه اوغوارۍ نو دانسان عزم او همت هيڅ پکار نه راځي څکه ئې د کلك پاتې کيدو دعا اوکړه ، دا دعا چې څنګه د الله ﷻ د پيژندګلو نتيجه ده دغسې د هغې مشکل د حل يوه بهترينه ذريعه هم ده چې په کښې دغه وخت دوئ راګير وو ، ولې چې په صبراو مستقل مزاجئ سره انسان دخپل حريف په مقابله کښې په لويه پيمانه کاميابيدې شي .

د يورپ دتير شوی اول جنګ عظيم په وجوهاتو او نتيجو باندې غور کوؤنکی کميشن په خپل رپورټ کښې ليکلی وو چې يوازې مسلمان قوم څکه کامياب دی چې دوئ په الله ﷻ او په آخرت باندې ايمان لرې . په ميدان جنګ کښې د ټولو قومونو نه زيات بهادران ثابت شوی دی ، په مصيبت او مشقت باندې صبر کولو کښې د ټولو نه وړاندې دی ، هم دغه وجه ده چې په دغه وخت کښې به جرمنی قومونو د جنګ ماهرانو په دې زور ورکولو چې په فوج کښې دې ديندارئ او د آخرت د ويرې پيدا کولو کوشش اوکړې شي . ولې چې په دې سره حاصليدونکې قوت په بل هيڅ څيز سره نشی حاصليدې .[تفسير المنار].

**ماهرانو کښې ايمانی بدلون راتلل دموسی ﷺ د همسا او يديضا نه هم لويه معجزه وه:** افسوس چې مسلم حکومتونه خپل ځان مضبوطولو دپاره ټول انتظامونه کوی مګر دا ئې هير کړی دی چې د طاقت او يووالی روح اختيار کړی ، فرعونی جادوګروهم په اول وار کښې ددې هر څه ګنړلی وو، خو د ټول عمر د الله ﷻ نه بيګانه منکرانو کافرانو نه نه يوازې مسلمانان جوړول بلکه کامل عارفان ، مجاهدان او غازيان جوړول د موسی ﷺ د همسا او يد بيضاء د معجزو نه څه کمه معجزه نه ده.

**فرعون باندې دموسی او هارون ﷺ دهيبت اثر :** د فرعون چالاکئ اوسياسی دروغو دومره کار خو اوکړې شو چې د هغه جاهل قوم ئې په زړې ګمراهئ کښې په مخه اخته پريخودل مګر دا د عجوبه هغوئ دپاره هم قابل د فهم نه وه چې ټوله غصه ئې په جادوګرو سره کړه د اصلی مخالفو موسی ﷺ او هارون ﷺ په باره کښې ئې هيڅ خبره د خلې نه اونه ختله څکه خو ورته خپلو درباريانو اووئيل چې :

﴿أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوۡمَهُۥ لِيُفۡسِدُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَيَذَرَكَ وَءَالِهَتَكَ﴾[چې آيا ته موسی ﷺ او دهغه قوم پريږدې چې په ملك کښې بدامنی پيدا کړی اوتا اوستامعبودان پريږدی]

فرعون په دې خبره اووئيل چې :

﴿قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبۡنَآءَهُمۡ وَنَسۡتَحۡيِۦ نِسَآءَهُمۡ وَإِنَّا فَوۡقَهُمۡ قَٰهِرُونَ﴾ يعنی ددوئ معامله زمونږ دپاره څه قابل فکر نه ده . مونږ به ددوئ سره داسې کار اوکړو چې په دوئ کله هلك پيدا کيږی نو مونږ به هغه وژنو او صرف جينکئ به ژوندئ پريږدو ، اوددې نتيجه به څه وخته پورې داشی چې ددوئ قوم کښې به سړی بالکل ختم شی او صرف ښځې به پاتې شی، او دا ښځې به زمونږ خدمت کوی او زمونږ وينځې به وی ، او مونږ خو په دې ټولو باندې پوره طاقت لرو او دوئ مونږ سره هيڅ نشی کولې.

مفسرينو علماؤ ليکلي دي چې دخپل قوم په دومره راپارولو سره بيا هم فرعون دومره اووئيل چې نارينه بچي د بني اسرائيلو به وژنو اوزنانه بچئ به ئې ژوندئ پريږدو ، چې د هغه نتيجه به په څه لږ زمانه کښې دا راؤځي چې ددوئ قوم به د نرانو نه خالي شي يوازې زنانه به پاتې شي ليکن دموسی ﷺ اوهارون ﷺ باره کښې دغه وخت هم د خلې نه څۀ خلاف خبره اونه ختله وجه ئې دا وه چې دموسی ﷺ معجزاتو واقعې د فرعون په زړه کښې او دماغو باندې سخت هيبت راوستې وو.

سعيد بن جبير رضي الله عنه فرمائيلي دي چې په فرعون دومره ويره وه چې د موسی ﷺ په ليدو سره به ترې متيازې وتلې او دا بالکل صحيح ده چې دحق ډير لوئې هيبت وی.

هيبت حق است اين ازخلق نيست

[د الله ﷻ هيبت په خلقو راځی د خلقو هيبت په چا نه راځی]

او مولانا روم فرمائی چې:

هر که ترسيد از حق وتقوي گزيد　　ترسيد ازوے جن وانس وهرکه ديد

[څوك چې الله ﷻ نه ويريږی او تقوی دار وی ، هغه لره چې هر څوك اووينی هغه ترې ويريږی که هغه پيريان وی اوکه بنيادم]

فرعون ته چې خپل قوم دا اووئيل چې ته موسی ﷺ او قوم ئې داسې پريږدې چې تا او ستا معبودان همداسې پريږدی. دې نه معلوميږی چې اگر که فرعون دخپل قوم په مخکښې دخپلې خدايئ دعوی کوله او ﴿اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى﴾ به ئې وئيل خوپخپله به ئې هم دبتانو عبادت کولو.

د بني اسرائيلو دپاره دغه ظالمانه نه قانون دويم ځل نافذ کړې شو چې دهغوئ هلکان بۀ مرۀ کول او جينکئ به ئې ژوندئ پريخودې ، دوئ دپاره دغه قانون اول ځل د موسی ﷺ دپيدا کيدونه مخکښې هم جاری کړې شوې وو چې د هغه د ناکامه کيدو ننداره تر دغه وخته پورې کوله، خو هرکله چې الله ﷻ يوقوم شرمول او ذليله کوی غواړی نو دهغوئ کړی انتظامونه په آخر کښې د هغوئ د تباهئ وجه جوړشی څنگه چې د فرعون دغه زور ظلم هم د هغه اود هغه دقوم دتباهئ سبب جوړ شو. [بيان ئې راروان دې].

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ مُوْسٰى | لِقَوْمِهِ | اسْتَعِيْنُوْا | بِاللّٰهِ | وَاصْبِرُوْا | اِنَّ | | |
| اووئيل موسی | قوم خپل ته | مدد غواړئ | د الله نه | اوصبر کوئ | بيشکه | | |
| موسی ﷺ خپل قوم ته اووئيل چې تاسو دالله ﷻ نه مدد غواړئ [اوپه هر [تکليف] صبر کوئ | | | | | | | |
| الْاَرْضَ | لِلّٰهِ | يُوْرِثُهَا | مَنْ | يَّشَآءُ | مِنْ عِبَادِهٖ | وَالْعَاقِبَةُ | |
| زمکه | دالله ده | په ميراث سره ورکوی دا | هغه چاته | چې اوغواړی هغه | دبندگانوخپلونه | اوښه انجام | |
| زمکه صرف دالله ﷻ ده | چې کومو بندگانوته ئې خوښه شی نو هغوی ته ئې ورکوی | اوآخر کښې | | | | | |
| لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ | قَالُوْٓا | اُوْذِيْنَا | مِنْ قَبْلِ | اَنْ تَاْتِيَنَا | | | |
| دپاره دپرهيزگارانودې | اووئيل هغوئ | ضرررسولې کيدومونږته | مخکښې ددې نه | چې ته راغلې وې مونږته | | | |
| کاميابی دپرهيزگاروده | [دموسی ﷺ دقوم] خلقواوئيل چې مونږته ستادراتلونه وړاندې هم تکليفونه | | | | | | |

| وَمِنۡ بَعۡدِ مَا جِئۡتَنَا ؕ قَالَ عَسٰى رَبُّكُمۡ اَنۡ يُّهۡلِكَ |
|---|
| اوروستو \| ادهغې نه\|چې ته راغلې مونږته\|اووئيل موسى\|نزدې دې \| رب ستاسو \| چې هلاك كړي |
| راكولې شو اوستادراتلونه پس هم\| ..................موسى ﷺ ورته اووئيل چې زر به ستاسو الله ﷻ |
| عَدُوَّكُمۡ وَيَسۡتَخۡلِفَكُمۡ فِى الۡاَرۡضِ فَيَنۡظُرَ كَيۡفَ |
| دشمن ستاسو \|اوخليفگان كړي تاسو \| په زمكه كښې \| بيابه گوري \| چې څرنگې |
| ستاسودشمن هلاک كړي\| اوتاسوبه ددې زمكې خليفه گان جوړكړي \| اوبيابه دا گوري |
| تَعۡمَلُوۡنَ ۞ وَلَقَدۡ اَخَذۡنَاۤ اٰلَ فِرۡعَوۡنَ بِالسِّنِيۡنَ |
| عملونه كوئ تاسو \|اوپه تحقيق سره \|نيولې ووُمونږه \| قوم دفرعون \| په قحط سره ډير كلونه |
| چې تاسوڅنگه عمل كوئى\| اومونږ دفرعون خلق څوڅوكاله په قحط |
| وَنَقۡصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُوۡنَ ۞ فَاِذَا |
| اوپه نقصان سره \| دميوو نه \| دپاره ددې چې هغوئ\|نصيحت قبول كړي \| نوهركله چې\| |
| اود پيداوارپه كمى كښې راونيول \| د دې دپاره چې دوئ ترې نه نصيحت قبول كړي \| نوهركله چې |
| جَآءَتۡهُمُ الۡحَسَنَةُ قَالُوۡا لَنَا هٰذِهٖ ۚ وَاِنۡ تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةٌ |
| به راغله هغوئ ته\|ښه زمانه\|نووئيل به هغوئ\| زمونږ دپاره ده\| دا\| اوكه \|اوبه رسيدله هغوئ ته \| خرابه زمانه |
| به په هغوئ ښهٔ وخت راغلو\| نو هغوئ به اووئيل چې دا خوزمونږ خپل كمال دې \|اوكه بدحال به پرې راغلو |
| يَّطَّيَّرُوۡا بِمُوۡسٰى وَمَنۡ مَّعَهٗ ؕ اَلَاۤ اِنَّمَا طٰٓئِرُهُمۡ عِنۡدَ اللّٰهِ |
| نويدفالى به ئې نيوله\|په موسى \|اوپه هغه چاچې دهغه سره وو\|خبردر\|بيشكه\|بدفالى دهغوئ\| دالله سره ده |
| نوموسى ﷺ اودهغوئ ملگرى به ئې سپيره گنړل\| خال دادې چې ددوئ سپيرتوب د الله د طرفه وو |
| وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ۞ وَقَالُوۡا مَهۡمَا تَاۡتِنَا |
| ليكن \| اكثردهغوئ \| نه لرى علم \|اواووئيل هغوئ\|هرهغه څيز\| چې راوړې ته مونږته ؛ |
| خود هغوى زيات خلق نه پوهيدل \| .......................دفرعون قوم اووئيل كه ته مونږ ته د جادو په |
| بِهٖ مِنۡ اٰيَةٍ لِّتَسۡحَرَنَا بِهَا ۙ فَمَا نَحۡنُ لَكَ |
| هغه\| دنښې نه \|چې ته جادو اوكړې په مونږ باندې \|په هغې سره \| پس نه يو \| مونږ \| ستا |
| ذريعه مونږ ته هرڅومره نښې پيش كړې \| ..........خو مونږ په تاباندې هركز |
| بِمُؤۡمِنِيۡنَ ۞ |
| منونكي \| |
| ايمان راوړونكي نه يو \| |

## آسان ترجمه قرآن

موسیٰ علیہ السلام خپل قوم ته ووئیل چه: دالله نه مدد اوغواړئ او صبر کوئ. یقین وکړئ چه زمکه دالله ده. هغه د خپلو بندګانو نه چه چا ته وغواړی نو ددې وارث جوړوي. او آخری انجام د پرهیزګارو په حق

کښې وي. دوي ووئيل چه: مونږ ته خو ستا د راتلو نه مخکښې هم تکليف را کړې شوې وو، او ستاد راتلو نه وروستو هم (تکليف را کولې شي)' موسٰی علیه السلام ووئيل: اميد ساتئ چه الله تعالٰی به ستاسو دښمن هلاك کړي، او تاسو به په زمکه کښې د هغوی جانشين جوړ کړي، بيا به ګوري چه تاسو څنګه کار کوئ او مونږ د فرعون ملګرو لره په قحط سالئ او د پيداوار په کمی کښې مبتلا کړل، دي د پاره چه دوی ته تنبيه ملاؤشي (خو) نتيجه دا شوه چه که دوی باندې به خوشحالي راتله نو دوی به وئيل چه: دا خو څمونږ حق وو. او که په دوی باندې به څه مصيبت راغې نودا به ئې د موسٰی علیه السلام او دهغه دملګرو سپيره توب ګڼړلو. خبردار (دا خو) خپله د دوی سپيره توب (ووچه) دالله په علم کښې وو ليکن دوی کښې اکثر خلق نه پوهيدل. او (موسٰی علیه السلام ته) به ئې وئيل چه: ته که مونږ باندې دخپل جادو چلولو د پاره خواه که څنګه نښه هم راوړې، نو مونږ په تا باندې ايمان نه راوړو.

## خلاصه تفسير

[ددې مجلس خبر چه کله بني اسرائيلو ته اورسيدو نو ډيرويريدل او حضرت موسی علیه السلام ته ئې دځه کولو وينا اوکړه نو] ﴿ قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهِ اسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا ﴾ موسی علیه السلام خپل قوم ته اوفرمائيل چه په الله ﷻ بهروسه ساتئي او مضبوط اوسيږئ [ويريږئي مه] ﴿ اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ﴾ دا زمکه دالله ده چه څوك غواړي مالك [اوحاکم ئې] جوړ کړي دخپلو بندګانو نه [نودا ئې دڅوورځو دپاره فرعون ته ورکړې ده] ﴿ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴾ او آخرکاميابي دهغو وي څوك چې دالله ﷻ نه ويريږي [نوتاسو په ايمان اوتقوی باندې قائم اوسئ، انشاء الله دا سلطنت به تاسوته ملاويږي. دلږو ورځو دانتظار ضرورت دې] ﴿ قَالُوْۤا اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَاْتِيَنَا وَمِنْۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ﴾ دقوم خلقو [دډير افسوس او غم نه چه ددې طبعي اقتضاء تکرار شکوه دې] اووئيل چه [حضرت] مونږ هميشه په مصيبت کښې پاتې شوي يو ستا علیه السلام دراتلونه وړاندې هم [چه فرعون به مونږ بيګار کولو او تر څه مودې پورې ئې زمونږ هلکان قتل کول] او ستاسو علیه السلام د راتلو نه پس هم [چه رنګ په رنګ] تکليفونه رارسوي تر دې چه بيائې داولاد دقتل کولو تجويز کړې دې] ﴿ قَالَ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى الْاَرْضِ ﴾ موسی علیه السلام اوفرمائيل [ويريږئ مه] ډير زر به الله ﷻ ستاسو دښمن هلاك کړي اودده په ځائې به تاسو ددې زمکې حاکمان جوړکړي ﴿ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴾ بيا به ستاسو طرز عمل ګوری [چه شکراوقدر او اطاعت کوئي يا بې قدري اوغفلت او معصيت. په دې کښې ترغيب دې دطاعت اود تحذير دې د معصيت نه].

﴿ وَلَقَدْ اَخَذْنَاۤ اٰلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِيْنَ ﴾ او [کله چه فرعون اودده تابعينو په انکار اومخالفت باندې ملااوتړله نو] مونږ فرعونيان [دفرعون سره حسب عادت مذکوره [ر کوع اول پاره هذا] په دې تکليفونو کښې] اخته کړو ① قحط کښې ﴿ وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴾ ②او دميوؤ په کم پيداوار کښې چه دوي [حق خبره] باندې پوهه شي [او دپوهيدلونه پس ئې قبوله کړي] ﴿ فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ ﴾ نو [بيا هم هغوي پوهه نشول بلکه دا حالت وو چه] کله به په دوي باندې خوشحالي [يعني آسانتيا په پيداوار کښې] راتلله ﴿ قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ ﴾ نو وئيل به ئې چه دا خو زمونږ دپاره کيدل پکار وو [يعني مونږ مبارك قسمت والا يو. دازمونږدخوش قسمتئ اثر

دې.دا نه وو چه داني دالله ﷻ نعمت ګنړلې وې اوشکرني ويستلې وې او اطاعت ني اختيار کړې وې] ﴿ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗ ﴾ او که دوي ته څه بدحالي [لکه قحط او کم پيداوار لکه چه ذکر شو] راپيښيدل نودابه ئې دموسى ﷺ اودده دملګرو نحوست خودلو [چه داددوي په بدبختى سره اوشو.داسې نه وه چه دوي دخپلو بدو اعمالو کفراوتکذيب وجه اوسزا ګنړلې وې اوتوبه ګار شوې وې حالانکه داټول ددوي داعمالو په وجې سره وو.لکه چه فرمائي چه] ﴿ اَلَآ اِنَّمَا طٰٓئِرُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ يادساتئي چه ددوي [ددې] بد بختى[سبب] دالله ﷻ په علم کښې دې [يعني ددوي کفريه اعمال خو الله ﷻ ته معلوم دي .داسپيره توب خودوي د اعمالو سزا ده] ﴿ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴾ ليکن [خپله بدتميزئ سره] په دوي کښې اکثر خلقو [دا] نه پيژندله ﴿ وَقَالُوْا مَهْمَا تَاْتِنَا بِهٖ مِنْ اٰيَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا ۙ فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴾ او [بلکه لا دا به ئې وئيل] چه خواه] که هر څومره عجيبه خبره مونږ ته راوړې چه ددې په ذريعه په مونږ جادو اوکړې نوبيا به هم مونږ ستا خبره بالکل اونه منو.

## معارف او مسائل

هرکله چې فرعون د موسى ﷺ نه شکست اوخوړو نو دخپلې غصې سړولودپاره ئې د بنى اسرائيلو د هلکانو د وژلو او دجينکو د ژوندئ ساتلو قانون جوړ کړو. بنى اسرائيل په وېره کښې شو چې هغه عذاب راباندې بيا راروان دې کوم چې راباندې فرعون د موسى ﷺ د پيدا کيدو نه مخکښې راوستې وو. دموسى ﷺ هم دې ته فکر وو ، دپيغمبرئ شفقت او حکمت په جوړ ددې مصيبت نه د خلاصيدو دوه څيزونه ئې خپل قوم ته په ګوته کړل.

يو دا چې ددښمن په مقابله کښې الله ﷻ نه مدد غواړئى. بله دا چې دمشکل حل کيدو پورې دصبر او همت نه کار اخلئ او دائې اوخودل چې په داسې کولو به تاسو غالب راشئ. او دا ملك به ستاسو شى ، نو د ړومبى آيت مبارك مضمون هم په دې شان دې فرمائى چې:

﴿ اِسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا ﴾[چې تاسو دالله ﷻ نه مدد غواړئ اوپه هر[تکليف] صبر کوئ].

بيا فرمائى چې : ﴿ اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ ۙ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۗ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴾[زمکه صرف دالله ﷻ ده چې کومو بندګانو ته ئې خوښه شى نو هغوى ته ئې ورکوى اوآخر کښې کاميابى دپرهيزګاروده].

**د مشکلاتو اومصيبتونو نه د خلاصيدو مجربه نسخه ::** موسى ﷺ چې بنى اسرائيلو ته کومه حکيمانه نسخه په دښمن باندې د غالب کيدو دپاره ورښودلې وه ، هغه داسې نسخه ده چې کله بې کاره نه خى او په استعمال سره ئې کاميابى يقينى کيږى. ددې نسخې ړومبى جزء ، الله ﷻ نه مدد غوښتل دى کوم چې ددې اصل روح دې ولې چې د کائناتو پيدا کوونکى مدد چا سره وى نو د هغه د امداد طرفته د ټولو کائناتو د مدد مخه څکه راګرځى چې دا ټول هم د الله ﷻ د فرمان تابع دى:

خاك وبادو آب و آتش بنده اند  بامن و تو مرده باحق زنده اند

[خاوره ، هوا اور او ټول د الله ﷻ بندګان دى اګر چې ما او تاته مړهٔ ښکارى خو د الله ﷻ په نزد ژوندى دى.

يو حديث پاك کښې راغلى دى چې هر کله چې الله ﷻ د څه کار اراده اوکړى نو د هغې اسباب او ذريعې پخپله برابريږى. همدغه وجه ده چې ددښمن په مقابله کښې لوئې نه لوئې

قوت انسان دپاره دومره پکار نه راځي څنګه چې الله ﷻ نه امداد غوښتل پکار راځي، خو شرط دادې چې دغه امداد غوښتل په اخلاص اوصدق باندې بنا وی صرف زبانی جمع خرچ اوخودلې وینا نه وی.

ددې نسخې دویم جزء صبر دې او دلغت په اعتبار سره صبر دې ته وائي چې په خلاف طبع څیز باندې په ځان قابولرلو سره کلك پاتې شی نو په یو مصیبت باندې صبر هم دا مطلب لری چې د مخ سر ټکولو، چغوسورو، وهلو طبعي جذبه قابو کښې راوستل شی.

هر تجربه کار عقل مند انسان په دې ښه پوهیږی چې په دنیا کښې هر لوئې مقصد کښې کامیابی هله حاصلیدې شی چې طبیعت نه خلاف ډیرو محنتونو مشقتونو باندې دغم نه کار واخستې شی لکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې صبر دومره زیات فراخه نعمت دې چې دې نه زیات فراخه نعمت بل څه چاته نه دې ورکړې شوې. [ابو داؤد] (۱).

دموسی ﷺ په دې حکیمانه نصیحت او په دې باندې د اړې لرونکی اجمالی وعده د کامیابئ او مدد کله د بنی اسرائیلو په پوهه کښې راتلې شوه. کوم چې د خلاف کردار عادت وو. هغوئ ددې په آؤریدو اووئیل چې:

﴿قَالُوٓا۟ أُوذِينَا مِن قَبْلِ أَن تَأْتِيَنَا وَمِنۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا﴾ [دموسی ﷺ دقوم] خلقو اوئیل چې مونږ ته ستادراتلونه وړاندې هم تکلیفونه راکولې شو اوستادراتلونه پس هم].

مطلب ئې دا چې ستاسو دراتلو نه مخکښې په مونږ راتلونکی نقصانونه خو مو څکه برداشت کول چې دداسې پیغمبر د راتلو په طمع وو چې هغه به مونږ لره دې نه خلاص کړی، ستاسو د راتلو نه پس اوس هم که مونږ باندې دغه نقصانونه وی نو څه به کوؤ؟

په دې وجه موسی ﷺ دوئ ته د حقیقت ښکاره کولو دپاره اوفرمائیل چې:

﴿قَالَ عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ [موسی ﷺ ورته اووئیل چې زر به الله ﷻ ستاسو دشمن هلاک کړی اوتاسو به ددې زمکې خلیفه ګان جوړ کړی]

خو ورسره ئې اوفرمائیل چې: ﴿فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ﴾ [اوبیا به دا ګوری چې تاسو څنګه عمل کوئ] په دې سره دا اوخودلې شو چې دیو ملك حکومت او سلطنت پخپله څه مقصد نه دې بلکه ددې ورکول دې مقصد دپاره وی چې په دغه ملك کښې عدل، انصاف قائم شی، د الله ﷻ خودلې نیکی خوره کړې شی او بدی بنده کړې شی، نوتاسو هم د مصر د حکومت سنبالولو په صورت کښې هوښیار او سیرئ، هسې نه چې تاسو هم د حکومت او اقتدار په نشه کښې د ځان نه مخکښې خلقو انجام هیر کړئ.

**حکومت او سلطنت د حکمرانانو دپاره یو آزمیښت دې**: دې آیت مبارك کښې اګر چې خطاب خاص بنی اسرائیلو ته دې، خو الله ﷻ په دې سره هرې حکمرانئ ډلې ته خبرداری ورکړې دې چې په حقیقت کښې حکومت او سلطنت د الله ﷻ حق دی، هر کله چې انسان د الله ﷻ خلیفه دې نو هم هغه ورته حکومت ورکوی اوکله ئې چې اوغواړی نو ترې نه ئې واخلی لکه فرمائی چې:

﴿تُؤْتِى ٱلْمُلْكَ مَن تَشَآءُ وَتَنزِعُ ٱلْمُلْكَ مِمَّن تَشَآءُ﴾ (۲)

---

(۱) سنن ابی داود، کتاب الزکوٰة، باب فی الاستعفاف: ج ۱، ص ۲۳۲

(۲) ترجمه: تاسو رو کوئی بادشاهی چاله چه اوغواړے او اخلے بادشاهی د هغه چانه چه تاسو اوغوړئی۔

ددې هم دغه مطلب دې . او دا مطلب يې هم کيدېشي چې په دې کښې د حکمران کس يا حکمراني ډلې آزميښت داسې وي چې آيا دوئ په دغه حکومت کښې عدل و انصاف قائمولې شي کنه؟ او د امر بالمعروف او نهي عن المنکر ذمه داری تر کومه حده پورې پوره کولې شي.

په دې موقع تفسير بحر محيط نقل کړې دی چې د بني عباس دويم خليفه منصور ته د خلافت ملاويدو نه مخکښې يوځل عمرو بن عبيد رحمه الله راورسيدو او دا آيت مبارک ئې اولوستو:

﴿عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الْأَرْضِ﴾

چې په دې کښې ورته د خلافت ملاويدو زيرې وو ، او بيا اتفاقا ددينه پس منصور خليفه جوړ شو چې بيا منصور خليفه جوړ شو، عمرو بن عبيد رحمه الله ورغلو نو منصور ورته د پيشنگوئی دغه آيت مبارک وريادکړو ، عمرو بن عبيد رحمه الله ورته دهغې ښه جواب ورکړو هغه داسې چې واقعی دهغه خليفه جوړيدو پيشنگوئی خوپوره شوه خو يوڅيز پاتې دې چې:

﴿فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ﴾[اوبيابه دا گوری چې تاسوڅنگه عمل کوئی]. دې نه مطلب ئې دا وو چې خليفه جوړيدل دخوشحالئ او فخر څيز څکه ندې چې الله ﷻ په دغې حکومت او خلافت کښې آزميښت داسې کوی چې د الله ﷻ دحکم مطابق چلوی ، اوکه پخپله خوښه ئې چلوی ؟

دې پسې ددغې آيت مبارک وعده پوره کول په قسماقسم عذابونو کښې د فرعونيانو گرفتار کيدل او په آخره کښې په درياب کښې دهغوئ غرقيدل په څه قدرې تفصيل سره بيانکړې دی، په دې کښې دټولو نه اول عذاب ، قحطی ، دڅيزونو کمې او گرانی کوم چې په فرعونيانو راغلی وه.

د تفسير روايتونو مطابق دغه قحطی پرې په مخه اووۀ کاله وه ، په آيت مبارک کښې دا قاطی په دوؤ لفظونو سره بيان شوې ده . سنين ، نقص ثمرات ، عبدالله بن عباس رضي الله عنهما او قتاده رحمه الله وغيره فرمائيلی دی چې قاطی او سوکړهې کلی والو دپاره عذاب وو او دميوؤ کموالې ښاريانو والو دپاره عذاب وو[1]. ولې چې په کلو کښې عام طور سره غله زياته پيدا کيږی ، او په ښارونو کښې باغونه زيات وی ، نو اشاره دې ته اوشوه چې دغلې فصلونه او د ميوؤ باغونه بالکل ختم شو.

ليکن چې کله يو قوم د الله ﷻ دقهر لاندې راشی د هغوئ په پوهه کښې صحيح خبره نه راځی ، فرعونيان هم هر کله چې د الله ﷻ په قهر کښې راغلی وو . دعذاب په دې رومبی گرز سره بالکل پوهه نشو بلکه ورپسې نور هر يو مصيبت به چې پرې راغلو نو هغه به ئې د موسی عليه السلام اودهغوئ دملگرو سپيرتوب بللو لکه فرمائی چې:

﴿فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوا لَنَا هَٰذِهِ ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ﴾[نو هر کله چې به په هغوئ ښۀ وخت راغلو] نو هغوئ به اووئيل چې دا خوزمونږ خپل کمال دې اوکه بدحال به پرې راغلو نوموسی عليه السلام اودهغوئ ملگری به ئې سپيره گنړل]

الله ﷻ ئې په جواب کښې اوفرمائيل چې : ﴿أَلَا إِنَّمَا طَائِرُهُمْ عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾[حال دادې چې ددوئ سپيره توب د الله د طرفه وو خود هغوی زيات خلق نه پوهيدل]

[1] ) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ٥، ص ٣٢٧

د طائر لغوی معنی مارغه ده ، عربو به د مارغانو په بنی او گس [چپه] طرف باندې د راکوزیدو ښه او خراب فالونه نیول ، په دې بنا مطلق فال نیولو ته هم طائر اووئیلې شو او دلته د طائر هم دغه معنی ده ، د پوره آیت مبارک مطلب دا شوچې د دوئ ښه او خراب فال هر څه چې وی هغه د الله ﷻ د طرفنه وی چې دې جهان کښې هر څه چې ښکاره کیږی ، ټول د الله ﷻ په قوت او ارادې سره کیږی ، دې کښې دچا د سپیرهٔ توب ا و برکتی کیدو هیڅ دخل نه وی ، دا ټول د دوئ غلط خیالات او جهالت دې چې د مارغانو دښی او گس طرف د الوتو او راکرزیدو نه ښه اوخراب فالونه نیسی او د خپلو مقصدونو او عملونه بنیاد پرې اړدی.

خبره دې آخری حد ته راؤرسیده چې فرعونیانو د موسی ﷺ ټولو معجزو ته سحر اووئیل اوشاته ئې اوغورزولې داسې بهٔ ئې وئیل چې :

﴿وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ﴾ [دفرعون قوم اووئیل که ته مونږ ته د جادو په ذریعه مونږ ته هرڅومره نښې پیش کړې خو مونږ په تاباندې هرگز ایمان راوړونکې نه یو]

| فَأَرْسَلْنَا | عَلَيْهِمُ | الطُّوفَانَ | وَالْجَرَادَ | وَالْقُمَّلَ |
|---|---|---|---|---|
| نواولیږومونږه | په هغوئ باندې | طوفان | اوملخان | اوسپږې |
| نومونږ په هغوئ باندې طوفان راولیږلو \| اوملخان او سپږې موږې راپریخودې | | | | |

| وَالضَّفَادِعَ | وَالدَّمَ | آيَاتٍ | مُفَصَّلَاتٍ | فَاسْتَكْبَرُوا | وَكَانُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| او چیندخان | اووینې | نښې | جدا جدا | نوتکبراوکړوهغوئ | اووهغوئ |
| چیندخې موږې راولیږلې او دوینې عذاب موږې راوستو \| داټولې نښې مو جدا جدا اوخودلې \| خوهغوئ بیاهم کبر کولو | | | | | |

| قَوْمًا | مُجْرِمِينَ | وَلَمَّا | وَقَعَ | عَلَيْهِمُ | الرِّجْزُ | قَالُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قوم | مجرمان | اوهرکله | چی به راغې | په هغوئ باندې | عذاب | نواوبه وئیل هغوئ |
| او لوئې مجرمان خلق وو \| ........... اوچې کله به پرې عذاب راغلو \| نو هغوئ به اووئیل چې | | | | | | |

| يَا مُوسَى | ادْعُ | لَنَا | رَبَّكَ | بِمَا | عَهِدَ | عِنْدَكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اےموسی | اوغواړه دعا | دپاره زمونږه | ادرب خپل نه | په سبب دهغې | چې وعده کړې ده هغه | ستاسو سره |
| اے موسی ﷺ زمونږ دپاره د الله ﷻ نه سوال اوکړه \| څنګه ئې چې تا سره وعده کړې ده | | | | | | |

| لَئِنْ كَشَفْتَ | عَنَّا | الرِّجْزَ | لَنُؤْمِنَنَّ | لَكَ | وَلَنُرْسِلَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| که چرې لرې کړو تا | ازمونږنه | ادا عذاب | انو خامخا به مونږه خبره اومنو | استا | اوخامخا به اولیږومونږه |
| که چرې تازمونږ نه دا عذاب لرې کړو \| نومونږ په تا ایمان راوړو \| اومونږ به تاسره خواه مخواه | | | | | |

| مَعَكَ بَنِي إِسْرَائِيلَ | فَلَمَّا | كَشَفْنَا | عَنْهُمُ | الرِّجْزَ | إِلَىٰ أَجَلٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| تاسره \| بنی اسرائیل | نوهرکله | چې ابه لرې کړومونږه | ادهغوئ نه | عذاب | دهغه نیټې پورې |
| بنی اسرائیل رخصت کړو \| خوچې کله به مونږ د هغوئ نه تریوې نیټې پورې عذاب لرې کړو | | | | | |

هُمْ بٰلِغُوْهُ اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ ۝ فَانْتَقَمْنَا

چې هغوئ [رسيدونکی وو هغې ته انو په هغه ساعت به] هغوئ [ماتوله هغه وعده] نو بدله واغستله مونږه

او دوئ به هغې ته اورسيدل [ نو هغه ساعت به دخپلو وعدو نه په شا شول] نو مونږ ترې نه بدله واخستله

مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا

دهغوئ نه [پس دوب کړل مونږه هغوئ [په سمندر کښې [په سبب دهغې چې هغوئ [دروغ گڼړلي وې [انښې زمونږه

او په سمندر کښې مو دوب کړل [ .........څکه چه هغوی زمونږ آیتونه دروغ گڼړل

وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ۝

او وو هغوئ [ دهغې نه [ بې پروا [

او د هغې نه بیخی غافله وو [

## آسان ترجمه قرآن

نو مونږ په هغوی باندې طوفان، ملخان، سپږې، چینډخان، او وینه راولیږله، چه ټولې جدا جدا نښې وې بیا هم هغوی د تکبر اظهار وکړو، او دوی خټ مجرمان وو. او کله چه به دوی باندې عذاب مسلط شو نو دوی به وئیل چه: اې موسیٰ! تا څخه د الله چه کومه وعده ده د هغې په واسطه باندې مونږ د پاره دخپل رب نه سوال وکړه (چه دا عذاب څمونږ نه لرې شی) او که واقعي تا څمونږ نه دا عذاب لرې کړو نو مونږ به ستا خبره او منو، او بنی اسرائیل به ضرور تا سره اولیږو بیا چه کله به مونږ دوی نه عذاب دومره مودې پورې لرې کړو چه هغې ته دوی لره رسیدل وو نو دوی به ناڅاپه دخپلې وعدې نه واوړیدل. نتیجه دا شوه چه مونږ دوی نه بدله واخسته، او دوی مو سمندر کښې غرق کړل څکه چه دوی څمونږ نښې دروغژن کړې وې، او د هغې نه بالکل بې پرواه هوی وو.

## خلاصه تفسیر

[هر کله چه داسې سرکشي ئي اختيار کړه نو] ﴿ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ ﴾ بيا مونږ [ددې دوؤ مصيبتونو نه علاوه داسې مصيبتونه مسلط کړل چه] په دوي باندې [دباران دزياتوالي] طوفان مواوليږلو [چه په دې سره دخان اود مالونو د تباه کيدلو انديښنه شوه] او [ددې نه چه ويريدل نو موسی ﷺ سره يې وعده اوکړه چه که مونږ نه دا مصيبتونه لرې کړه نو مونږ به ايمان راوړو اوځه چه تاسو ﷺ وائې نو مونږ به اطاعت کوؤ. بيا چه کله هغه مصيبتونه لرې شول او دزړه د خواهش مطابق غله وغيره پيدا شوه نو بيا بې فکره شول چه اوس مو خان بچ شو مال به هم ښه اوشي او هم داسې په خپل کفر او گناه باندې اخته وو. نو مونږ ددوي په پټو باندې] مولخان [راوليږل] او [کله چه بيا ئې خپل پټی په تباه کيدلو اوليدلو نو نو ويريدل. بيائې هم هغه شان وعده اوکړه او بيا چه لکه دده ﷺ په دعا سره هغه مصبتونه لرې شول او غله وغيره ئې سنباله کړه اوپه کورونو کښې ئې کيخودله نو بيا بې فکره شول چه اوس غله هم په لاس راغله او هم هغه شان په خپل کفر او گناه باندې اخته وو نو مونږ په دې غله کښې] سپږئ [پيدا کړې] او کله چه ويريدل بيا هم هغه شان ئې وعدې اوکړې اوپه موسی ﷺ باندې دعاګانې اوکړې اوهغه بلاګانې هم لرې شولې اوددې نه مطمئين شول چه اوس به اوره اوکړو او خورو ښنبو به .بيا ئې هم هغه کفر او عصيان اومخالفت شروع کړو. نوپه دغه کښې

مونږ ددوي خوراك داسې بې مزې کړوچه په دوی باندې د] چیندخانو [رمې راوستلې او ددوئ د خوراك په لوخوکښې او پتیلو[دیگونو] کښې ئې غورزیدل شروع کړل. چه په دې سره ټول خوراك خراب شو او هسې ئې په کور کښې ناسته گرانه شوه او څښاك موداسې بې مزې کړو چه دوئ به اوبه خله کښې واچولې نو هغې نه به وینه جوړه شوه.غرض په دوي موېلاگانې مسلط کړې] ﴿ءَايَٰتٍ مُّفَصَّلَٰتٍ﴾.چه دحضرت موسیٰ ؑ ښکاره معجزې وې [چه ددیو په مخالفت او تکذیب باندې ددغو ظاهریدل اوشو او اودا اووه او عصا اوید بیضاء چه یوځائې کړې نو دې ته آیت تسعه وئیلې شي] ﴿ فَٱسْتَكْبَرُوا۟ وَكَانُوا۟ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴾] نو [يكار وو چه ددې معجزو او آیات په کتلو سره نرم شوي وې مگر] هغوي [بیا هم]تکبرکولو او دغه خلق ووځه جرمونوکولو والا [چه په دومره سختئ سره هم منع شوي نه وو].

﴿ وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ ٱلرِّجْزُ﴾اوکله چه به په دوي باندې څه عذاب [ددې ذکر شوؤ] عذابونونه واقع کیدلو ﴿ قَالُوا۟ يَٰمُوسَى ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ ﴾ نو داسې به وئیـل چه ائې موسیٰ ؑ زمونږ دپاره دخپل رب نه ددې خبرې دعا اوکړه چه دکومې هغه تاسره وعده کړې ده [هغه دقهر خبره لرې کول دی.زمونږ په منع کیدلوسره.نومونږ اوس وعده کوؤ چه] ﴿ لَئِن كَشَفْتَ عَنَّا ٱلرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ كه تاسو ؑ مونږ ددې عذاب نه بچ کړئې [يعني په دعا سره لرې کړې] نو مونږ به ضرور ستا ؑ په وینا سره ایمان راوړو او مونږ به بني اسرائیل هم خلاص کړو اوستا ؑ سره به ئې اولیږو ﴿ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ ٱلرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُم بَٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴾بیا چه کله [د موسیٰ ؑ د دعا په برکت سره] دهغوي نه هغه عذاب یو خاص وخته پورې چه په دوي راتلوونکې وو لرې کړې شو نو زر ئې بیا وعده خلافي اوکړه [لکه څنگه چه مخکښې بیان شو] ﴿ فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا﴾ بیا [چه کله په هرهر رنگ ئې اولیدل چه دخپل شرارت نه نه منع کیږي نوبیا په هغه وخت کښې] مونږ دهغوي نه [پوره] بدله واخستله یعني دوي مو په دریاب کښې غرق کړل [لکه څنگه چه بل ځائې کښې دي] په دې وجه چه زمونږ ایتونه ئې په دروغه گڼړل ﴿ وَكَانُوا۟ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴾ او ددې نه به ئې بالکل مخ اړولو [او په تکذیب او غفلت کښې هم څه هسې اخوا دیخوا نه بلکه اصرار او عناد سره چه د اطاعت وعده اوکړي او بیا ئې ماته کړي].

## معارف او مسائل

ذکر شوؤ آیتونومبارکو کښې د فرعونیانو او موسیٰ ؑ پاتې حصه مذکوره چې د موسیٰ ؑ په مقابله کښې جادو گرو ماتې اوخوړه او ایمان ئې راؤړو مگر فرعونیان پخپلې سرکشئ او کفر باندې په مخه کلك پاتې شو.

د تاریخي روایتونو په بنا موسیٰ ؑ ددې نه پس شل کاله په مصر کښې پراؤ اوکړو اوخلقو ته به ئې د الله ﷻ پیغام آؤرولو. حق طرفته به ئې رابلل . دا هغه زمانه وه چې الله ﷻ موسیٰ ؑ ته په کښې نهه معجزې ورکړې وې چې د هغه په ذریعه ووچې فرعونیان خبردار کړي او په لاره ئې راولی . لکه قرآن عظیم الشان فرمائی چې : ﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ﴾

ددې نهو معجزو څخه عصا او ید بیضاء ئې د فرعون دربار کښې ښکاره کړې چې هم په هغې سره ئې په جادوگرو برې بیا موندو. دې پسې بله معجزه هغه وه چې بیان ئې ددې نه په

رومبی آیتونو کښې داسې راغلې دي چې په فرعونیانو باندې د هغوئ د ضد اود کوږ والي په وجه قاطي مسلطه کړې شوه . د دوئ د زمکو او باغونو پیداوار ډیر کم شو چې دوئ پرې سخت پریشانه شوه آخر دا چې موسی ﷺ ته ئې ددې د لرې کولو دپاره د دعا خواست اوکړو چې دا قاطي ترې لرې شی مگر چې کله قحط پورته شو نو بیا هم په خپلې سرکشئ کښې اخته شو، اودا به ئې وئیل چې دغه قاطي خود موسی ﷺ اودهغه د قوم د سپیرتوب په وجه وه اوس دغه قاطي لرې کیدل زمونږ برکت وو ولې چې دا زمونږ حالاتو سره سمون نه خوری .

پاتې نورې شپږ معجزې اونخښې اوس په دې آیتونو مبارکو کښې داسې بیانولې شی چې :
﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ مُّفَصَّلَاتٍ﴾ [انو مونږ په هغوئ باندې طوفان راولیږلو اوملخان او سپګې موږې راپریخودې چیندخې موږې راولیږلې او دوینې عذاب موږ پرې راوستو داټولې نښې مو جدا جدا اوخودلې]

په دې کښې د پنځو قسمو عذابونو بیان دې کوم ته چې ﴿آيَاتٍ مُّفَصَّلَاتٍ﴾ وئیلې شوی دی .
اود عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د تفسیر مطابق ددې ځینې هر یو به تر څه خاص وخته پورې وو پیا به لرې کړې شو او د بل عذاب راتلو پورې به ډیل ورکړې شو، یعنی دا عذابونه به په یو ځائې ټول په یو وخت نه وو راغلی بلکه دیوې لرې کیدلو نه پس به څه ډیل ورکړې شو هله به وروسې بل عذاب راغلو ، اوهم دا د شیخ الهند رحمه الله په ترجمه کښې اختیار کړې شوی دی .
ابن منذر دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما په روایت نقل کړی دی چې هر یو عذاب به په فرعونیانو باندې اوۀ ورځو پورې په دې شان وو چې دیو خالی په ورځ به شروع شو او د بل خالی په ورځ به ختم شو. دې پسې به تر بل عذاب راتلو پورې د دریو هفتو ډیل ورکولې شو.
امام بغوی رحمه الله دابن عباس رضي الله عنهما په روایت نقل کړی دی(۱) چې هر کله په رومبی وار فرعونیانو باندې د قحطئ عذاب نازل شو اود موسی ﷺ په دعا سره ختم شو ، بیا هم دغه خلق د خپلې سرکشئ نه منع نه شو، نو موسی ﷺ دعا اوکړه چې ائې پروردګاره! دا خو داسې سرکش خلق دی چې د قاطئ عذاب پرې هم څه اثر او نه کړو . اود خپل کړی لوظ ،قول نه هم واؤړیدل ، اوس پرې داسې څه عذاب راولې چې دوئ دپاره دردناك وی ، زمونږ قوم دپاره وعظ و نصیحت جوړ شی او روستو راتلونکو دپاره عبرت جوړ شی . الله ﷻ پرې څکه د طوفان عذاب راوستو.
د مشهورو مفسرینو په نزد د طوفان نه مراد د اوبو داسې طوفان دې چې د فرعونیانو په کورونو او زمکو باندې داشان وراوختو چې چرته هم د څملاستو ځائې نه وو بلکه د ناستې ځائې هم پاتې نشو. او نه ئې په زمکه کښې څه کر کرونده کولې شوه. عجیبه خبره دا وه چې د دوئ نزدې د بنی اسرائیلو چې کومې زمکې وې په هغې د طوفان هیڅ اثر نه وو. هغه ټول بالکل صحیح وو او اوچ کلك وو. خو د فرعونیانو کورونه د اوبو نه ډك پك ولاړ وو.
هر کله چې فرعونیان د طوفان نه سخت تنګ راغلل نو موسی ﷺ ته ئې د دعا خواست اوکړو . او وې وئیل که چرې الله ﷻ ستاسو په دعا سره زمونږ دا عذاب لرې کړو نو مونږ به ایمان قبول کړو. هر کله چې ددوئ نه طوفان ختم شو نو د دوئ فصلونه اول نه هم ښه اوشو. دوئ به

(۱) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۴۹ تا ۲۵۲

وئیل چې طوفان خوزمونږ دپاره عذاب نه وو بلکه داخو زمونږ د فائدې دپاره وو ځکه چې دې
سره زمونږ دزمکو پیداوار نور هم زیات شو. په دې کښې د موسی ؑ هیڅ عمل دخل نه وو.
او سره ددې د خپل کړې لوظ نه هم واوړیدل. دې پسې الله ﷻ د غور وفکر کولو دپاره یوه
میاشت مهلت ورکړو. دوئ دغه ټول وخت کښې روغ جوړ وو. هیڅ قسم پریشانی ورته نه وه.
په امن کښې وو، په خندا خوشحالئ ئې دغه ټول وخت داسې تیر کړو چې هغه خپلې کړې
وعدې ئې هم هیرې کړې. نو دویم عذاب پرې د مولخانو راغلو، او د دوئ ټول فصلونه او
باغونه ئې اوخوړل. ځینې روایتونو کښې رازی چې د لرګی دروازې ئې هم مولخانو اوخوړلې.
چتونه او د کور ټول سامانونه ئې مولخانو اوخوړل. ددې عذاب په وخت کښې هم د موسی
ؑ معجزه مخ ته وه چې دمولخانو رخ قبطیانو طرفته وؤ، ورسره نزدې د بنی اسرائیلو
کورونه او زمکې اوباغونه به بالکل محفوظ وؤ.

دې عذاب نه هم چې فرعونیان سخت تنګ شو نو موسی ؑ ته ئې بیا ددعا خواست اوکړو
وې وئیل که دا ځل رانه دا عذاب لرې کړې شو نو د ایمان راؤړلو او د بنی اسرائیلو
خوشحاله شی کولو پخه وعده درسره کوؤ، د موسی ؑ په دعا چې ترې نه دغه عذاب لرې
کړې شو نو دوئ سره بیا هم دومره غله موجوده وه چې یو کال ئې پرې تیریدې شو. دې سره ئې
سرکشی نوره هم زیاته شوه، خپل کړې لوظ اوقول ئې مات کړو ایمان ئې رانه وړاونړو او نه
ئې بنی اسرائیل آزاد کړل.

په دې شان پرې په بیغمئ او مستئ کښې یو میاشت تیره شوه، الله ﷻ پرې دریم عذاب د
سپږو او ګونړو راوستو. ﴿قُمَّلَ﴾ هغه سپږو ته هم وئیلې شی چې دانسان په بدن جامو او
ویښتو کښې پیدا کیږی، او هغه سپږو او ګونړو ته هم وئیلې شی چې په غله کښې لګی،
دلته دواړه قسمه عذابونه مراد اخستل داسې کیدې شی چې په غله کښې ئې ګونړې لګیدلې
وی او په جامو او بدن کښې ئې سپږې شوی وی، ګونړو خو ئې غله په دې شان تشه کړه چې
لسو سیرو غنمو وغیره نه به ئې دوه درې سیره اوړه هم نه وتل.

او سپږو ئې بدن څه چې ویښته روځې اوبانړه هم اوخوړل، په دې سره فرعونیان بیا وارخطا
شو، چغې سورې ئې جوړې کړې، موسی ؑ ته ئې فریاد شروع کړو، وې وئیل چې که ددې
عذاب لرې کولو دپاره دې الله ﷻ نه سوال اوکړو نو کړې لوظ قول به درسره نه ماتوؤ، خو هر
کله چې هلاکیدل د دې بختو په قسمت کښې وو هغوئ چرته لوظ پوره کولو ته سمیدې شو.
چې په امن، مزو او آرام اوراحت کښې شو ټول هر څه ئې شاته کړل او منکر شو.

هرکله چې یو میاشت بله تیره شوه نو څلورم عذاب د چیندخانو پرې راوستې شو. څوك چې به
ناست وو نو تر مرئ پورې به په چیندخانو کښې ډوب وؤ. کوم بنده چې به ملاست وو دهغې
لاندې باندې به چیندخان وو. هغه چې به ارخ اړولو نو په چیندخانو به ئې اړولو. کوم پخلې
چې به ئې کولو نو په هغې کښې او دیګونو کښې او تیار شوی خوراك ځکاك کښې بلکه په
اوړو او هر څیز کښې به چیندخان پراته وو. هرکله چې ددې عذاب نه هم تنګ شو نو موسی
ؑ ته ئې بیا خواست اوکړو او ورسره ئې بیا پخه وعده اوکړه. د موسی ؑ په دعا سره الله
ﷻ د دوئ نه عذاب لرې کړو. خوکوم قوم باندې چې د الله ﷻ عذاب راتلل وی نو دهغوئ
عقل فکر کار پرېږدی. نودغه فرعونیان بیا هم پخپل ضد کلك ولاړ وواو وې وئیل چې اوس

زمونږ نور هم يقين راغلو چې موسى ﷺ لوئې جادوګر دې. د موسى ﷺ دا ټول کارونه دجادو دی. موسى ﷺ رسول يا نبی نه دې.

دې پسې ورته د يوې مياشتې مهلت ورکړې شو چې په دې کښې هم سم نه شو نو الله ﷻ پرې پنځم عذاب راوستو او هغه د وينې عذاب وو. د خوراك څکاك هر يو څيز نه به ئې وينه جوړه شوه. هر يو کوهی يا تالاب نه چې به ئې اوبه راواخستې نو هغه به وينه وه. کوم څيز چې به ئې پخولو نو هغې نه به وينه جوړه شوه. خو په دې ټولو صورتونو د عذاب کښې د موسى ﷺ دا معجزه بالکل ښکاره وه چې ددې هر يو عذاب نه به اسرائيليان بالکل په امن اوحفاظت کښې وو. د وينې د عذاب په وخت چې به کله يو فرعونی د بنی اسرائيلی د کور نه اوبه واخستې او د هغه لاس ته به اورسيدې نو هغې نه به وينه جوړه شوې وه. په يو دسترخوان چې به اسرائيلی او قبطی کيناستل نو اسرائيلی چې به کومه نمړئی پورته کړه هغه به بالکل سمه وه خو کله چې به قطبی نمړئی واخسته نو هغه وينه وه. په يو لوښی کښې چې به دواړو خلې اولګولې نو د اسرائيلی خلې ته به هغه اوبه سمې راتلې او د قطبی په خله کښې به ترې نه وينه جوړه شوه. د نورو ټولو عذابونو پشان دا عذاب هم اوۀ ورځې جاری وو. دا بدکاره قوم بيا په چغو سورو سر شو، موسى ﷺ ته يې فرياد اوکړو، د ړومبې نه ئې زياتې پخې وعدې ورسره اوکړې، د موسى ﷺ په دعا ترې دا عذاب هم لرې کړې شو، بيا هم دوئ خپل ضد نه منع نه شو. په دې شان دغه پنځه عذابونه پرې يو بل پسې راغلل خو دغه خلق په خپلې ګمراهئ کلك ولاړ وو. لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې ::

﴿فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ﴾ [خو هغوئ بيا هم کبر کولو او لوئې مجرمان خلق وو].

دې پسې شپږم عذاب ورپسې آيت مبارك کښې درجز په نوم سره راغلې دې، ددې لفظ اطلاق اکثر په طاعون باندې کيږی. د پور ددانو پشان نور وبائی مرضونو دپاره هم دالفظ استعمالولې شی، تفسيری روايتونو کښې راغلی دی چې په دې خلقوباندې د طاعون وبا راوستې شوه، او په هغې سره ئې اويا زره کسان مړۀ شو، د دوئ په فرياد کولو سره موسى ﷺ دوئ دپاره دعا اوکړه او په هغې سره ترې دا عذاب هم لرې شو. بيا ئې په مخه لوظ او قول مات کړو. په دې ګنړو آزميښتونو او مهلتونو سره چې دوئ سم نه شونو آخری عذاب پرې دا راغلو چې ټول په ټوله خپلو کورونو نه اووتل خپل سامانونه ئې هلته پريخودل چې موسى ﷺ او د هغوئ ﷺ ملګری رالاندې کړی خو آخر په دريائې قلزم کښې ډوب شو.

﴿فَاَغْرَقْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ﴾ [او په سمندر کښې موډوب کړل ځکه چه هغوی زمونږ آيتونه دروغ ګنړل اود هغې نه بيخی غافله وو]

| كَانُوْا | الَّذِيْنَ | الْقَوْمَ | وَاَوْرَثْنَا |
|---|---|---|---|
| چی وۀ هغوئ | هغه | خلق | اووارثان کړل مونږه |
| اوچې کوم قوم کمزورې ګنړلې شوې وو مونږ هغوئ...... | | | |

يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ

چې کمزوري ګڼلې شوي وو |دمشرق طرفونو | دزمکې | اودمغرب طرفونو دهغې| هغه زمکه

دهغې ملک دمشرق او مغرب وارثان جوړکړل | ...............په کوم کښې چې موږ

بٰرَكْنَا فِيْهَا ۭ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى

چې برکت اچولې ووموږه| په هغې کښې| اوپوره شوه | وعده | درب ستا | دخير

برکتونه ايخودي وو| اوستادرب هغه ښکلې وعده پوره شوه | چې کومه ئې

عَلٰي بَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ڏ بِمَا صَبَرُوْا ۭ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ

په بنی اسرائيلو باندې |په سبب دهغې چې| صبراوکړوهغوئ| اوبربادکړل موږه | هغه | چې وو

دبنی اسرائيلو په حق کښې کړې وه | ځکه چې هغوئ صبر کړې وو | اوموږ هغه هرڅه تباه کړل

يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ ۝

چې جوړول به | فرعون | اوقوم دهغه | اوهغه | چې وو هغوئ | چې پورته به ئې خيژول

چې کوم به فرعون اودهغه قوم جوړول | اوکوم [اوچت اوچت عمارتونه ئې] چې ئې ابادول

وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتَوْا عَلٰي قَوْمٍ

اوپورستل موږه| بنی اسراءيل | په سمندر | نوورغلل هغوئ| په داسې قوم|

اوموږ بنی اسرائيل دسمندر نه تير کړل | نو په لار کښې په يو داسې قوم ورغلل | چې

يَّعْكُفُوْنَ عَلٰٓي اَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوْا يٰمُوْسَى اجْعَلْ

چې مينه ئې جوړه شوې وه |دهغه بتانوسره|چې وو هغوئ دپاره|اووئيل هغوئ | اے موسى | مقرر کړه|

خپلوبتانوته[منجوران]ناست وو | نودوئ اووئيل چې ائې موسى ﷺ موږ

لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا لَهُمْ اٰلِهَةٌ ۭ قَالَ اِنَّكُمْ

دپاره زموږه|يومعبود|لکه څنګه چې دی هغوئ دپاره|معبودان | اووئيل موسى ﷺ | چې بيشکه تاسو

له دوئ دمعبودانو پشان يو معبود جوړکړه | ............موسى ﷺ ورته اووئيل چې تاسو خو ډير

قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ۝ اِنَّ هٰٓؤُلَاۗءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ

داسې قوم ئې| چه نه پوهيږئ | بيشکه | داخلق چې دی|بربادېدونکی ده| هغه طريقه| چې هغوئ

ناپوه خلق يئ | ..........داخلق چې په کومه لار روان دی |هغه دتباهئ لار ده

فِيْهِ وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ قَالَ

په هغې کښې دی| اوباطل دی | هغه عمل | چې وو هغوئ| چې کووبه ئې | اووئيل موسى ﷺ

اودوئ ټول عبادت سراسر بې بنياده دی | ............موسى ﷺ ورته اووئيل چې

اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِيْكُمْ اِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ

آيا ماسوا دالله نه | زه اولټوم تاسودپاره | بل معبود | حالانکه هغه| فضليت درکړې دی تاسوته

آيا زه تاسودپاره دالله ﷻ نه سوا بل معبوداوګورم | حال دا دی چې هغه تاسو ته [په موجوده زمانه کښې]

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ۞ | وَاِذْ | اَنْجَيْنٰكُمْ | مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ |
| په خلقو باندي | او ياد کړئ کله چي | نجات درکړو مونږ تاسو ته | د فرعون والو نه |
| په نور مخلوق باندي فضيلت درکړي دي\| او هغه وخت ياد کړئ چي مونږ تاسو ته د آل فرعون نه نجات درکړو | | | |
| يَسُوْمُوْنَكُمْ | سُوْٓءَ الْعَذَابِ ۚ يُقَتِّلُوْنَ | اَبْنَآءَكُمْ | وَيَسْتَحْيُوْنَ |
| چي رسوو به ئې تاسو ته | سخت عذاب \| وژل به هغوئ | زامن ستاسو | او ژوندئ به پريښودلي هغوئ |
| چي تاسو ته به ئې ډير تکليفونه درکول \| ستاسو خامن به ئې قتلول \| او ستاسو جينکئ به ئې | | | |
| نِسَآءَكُمْ ؕ | وَفِيْ ذٰلِكُمْ | بَلَآءٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ۞ |
| ښځي ستاسو | او په دي کار کښي ستاسو دپاره | آزميښت وو | د طرفه درب ستاسو نه \| لوئ |
| ژوندئ پريښودلي \| او په دي کښي ستاسو درب طرفه ډيرلوئې امتحان وو | | | |

### آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه کمزوري ګنړلي شوي وو مونږ هغوی لره دهغه زمکې د مشرق او مغرب وارثان جوړ کړل چه په هغې مونږ برکتونه نازل کړي وو او دبنی اسرائیلو په حق کښې ستا د رب د خیر کلمه پوره شوه. ځکه چه هغوی د صبر نه کار اخستې وو او فرعون او د هغه قوم چه څه جوړ کړي او خېژولي وو، هغه ټول مو ختم کړل. او مونږ بنی اسرائیل په سمندر باندې پورې ویستل، نو دوی څه خلقو باندې تېر شول چه دخپلو بتانو عبادت ئې کولو بنی اسرائیلو ووئیل چه: اې موسی! مونږ دپاره هم داسې یو خدائي جوړ کړه لکه چه دې خلقو دپاره دي موسٰی علیه السلام ووئیل تاسو داسې (عجیبه) خلق یئ چه د جهالت خبرې کوئ. دا خو هغه خلق دي چه څه کښې چه دوی مشغول دی هغه ټول تباه کیدونکي دی او کوم څه چه دوئ کوی هغه ټول باطل دی. (او) وې وئیل چه: آیا تاسو د پاره د الله نه سوا بل معبود ولټوم؟ حال دا چه هغه تاسو ته د ټول جهان په خلقو فضیلت درکړي دې! او (الله فرمائی چه) یاد کړئ چه مونږ تاسو ته د فرعون دخلقو نه نجات درکړو چه تاسو ته به ئې سخت تکلیفونه درکول، ستاسو ځامن به ئې وژل او ستاسو جینکۍ به ئې ژوندئ پرېښودې او په دې کښې ستاسو د رب د طرفنه یو لوئ امتحان وو.

### خلاصه تفسير

[او فرعون او اهل فرعون مو غرق کړل او] ﴿ وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ ﴾ مونږ هغه خلق چه بالکل کمزوري ګنړلي شو [يعني بني اسرائيل] ددغه زمکې دګوټ ګوټ [کونج کونج] [يعني ټولو حددونو] مالک جوړ کړل چه په هغې کښې مونږ برکت اېښودي دي [ظاهري برکت دزيات پيداوارسره او باطني برکت د فضيلتونو اودنبيانو ﷺ د مدفن کيدو اوداستوګنې دخائې سره] ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ بِمَا صَبَرُوْا ؕ ﴾ او ستادرب حقه وعده دبني اسرائيلو په حق کښي ددوي دصبر په وجې سره پوره شوه [چه دهغې حکم دوي ته ورکړې شوې وو اصبروا] ﴿ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ ۞ ﴾ اومونږد فرعون اودده دقوم آبادې کارخانې او چه څه اوچت کورنويه ئې جوړولي ټول مو تباه کړل. ﴿ وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ ﴾ او [په کوم درياب کښې فرعون غرق کړې شوې وو] مونږ

بني اسرائيل [ددي] درياب نه پورې ويستل [چه ددې قصه په سورت شعراء كښې ده]﴿ فَأَتَوْا عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ﴾ بيا [د پورې ويستلونه پس] ددي خلقو په يو قوم باندې تيريدل اوشو چه هغوي دخو خپلو بتانو عبادت كولو [يعني دوي ته به يې سجدې كولې] ﴿ قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَل لَّنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ﴾ وې وئيل اې موسى ﷺ زمونږ دپاره هم [يو بت] معبود داسې مقرر كړه لكه څنګه چه ددوي دا معبودان دي. ﴿ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴾دوي ﷺ اوفرمائيل چه واقعي په تاسو خلقو كښې ډير زيات جهالت دې .﴿ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾دوئ چه په كم كار كښې اخته دي [نوذا به دالله ﷻ د طرفه] تباه كولې شي [لكه څنګه چه دالله ﷻ عادت دې چه هميشه حق په باطل باندې غالب كوي اودا تباه كوي] اودا كار ددوي بالكل بې بنياده دې [خكه دشرك باطل كيدل يقيني او خامخا دي].﴿ قَالَ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِيكُمْ إِلَٰهًا وَهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴾وې فرمائيل آيا دالله ﷻ نه سوا څوك بل څوك ستاسو معبود جوړ كړم حالانكه هغه ﷻ تاسو ته [په بعضو نعمتونو كښې] په ټولې دنيا والو باندې فوقيت دركړې دې ﴿ وَإِذْ أَنجَيْنَاكُم مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ ﴾ او [الله ﷻ د موسى ﷺ د قول دتائيد دپاره ارشاد اوفرمائيلو چه] هغه وخت ياد كړئي چه كله مونږ تاسو دفرعونيانو [دظلم او تكليفونو]نه بچ كړئي ﴿ يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ ۖ يُقَتِّلُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ ﴾چه تاسو ته به ئې ډير سخت تكليفونه دركول چه ستاسو خامن به ئې په كثرت سره قتل كول او ستاسو ښځې به ئې [دخپل بيګار او خدمت دپاره] ژوندئي پريښودلې ﴿ وَفِي ذَٰلِكُم بَلَاءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴾ او په دې [واقعه] كښې ستاسو دپروردګار دطرفه ډير لوئې ازميښت وو.

## معارف او مسائل

په تير شوي آيتونو كښې د فرعونيانو دجاري سركشئ اود الله ﷻ د طرفنه دمختلفو عذابونو په ذريعه هغوئ ته د زورنې وركولو بيان وو، اوس په دې آيتونو كښې دهغوئ د خراب انجام او د بنى اسرائيلو دفتح او كاميابئ بيان دې.

رومبى آيت مبارك كښې فرمائى چې : ﴿وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا﴾[اوچې كوم قوم كمزورې ګڼړلې شوي وو مونږ هغوئ دهغې ملك دمشرق او مغرب وارثان جوړ كړل په كوم كښې چې مونږ بركتونه ايخودلې وو]. د قرآن عظيم الشان الفاظو ته په ژور نظر اوكورئ داسې ئې اونه فرمائيل چې كوم قوم كمزورې او بې وسه وو، بلكه داسې اوفرمائيل چې چالره فرعونيانو كمزورى او بې وسه ګڼړلى وو. دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چې دكوم قوم مددګار الله ﷻ وى هغه په حقيقت كښې هيڅرې كمزورې اوذليله نه وى اګر چې څه وخت دهغوئ په ظاهرى حالت باندې خلق دهوكه كيږي. اوهغوئ كمزورى ګڼړى خو په آخر انجام كښې ټولو ته معلومه شوه چې هغوئ كمزورى او ذليله نه وو ځكه چې طاقت اوعزت په اصل او حقيقت كښې د الله ﷻ په قبضه كښې دې لكه پخپله فرمائى چې: ﴿وَتُعِزُّ مَن تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَن تَشَاءُ﴾(۱).

۱) ترجمه: جسے چاہے تو عزت دے اور جسے چاہے تو ذلیل کرے۔

دزمکې دمالك جوړولو دپاره ئې: ﴿وَأَوۡرَثۡنَا﴾ ځکه اوفرمائيل چې د الله ﷻ په علم کښې بنی اسرائيل داول نه زيات د فرعونيانو د مال ملك حقدار وو ځکه چې وارث دخپل مورث په ژوند کښې هم د هغه دمال ملك وارث ګڼړلې شي کله ئې چې مورث مړ شي.

﴿مَشَٰرِقَ﴾ د مشرق جمع ده. او ﴿وَمَغَٰرِبَ﴾ د مغرب جمع ده. هر کله چې ديخنئ او ګرمئ په مختلفو موسمونو کښې د غروب او طلوع طرفونه بدليږي ځکه دجمع په لفظ سره راوړې شو.

دزمکې نه دلته مراد د جمهورو مفسرينو په نزد د شام او مصر زمکه ده په کومه باندې چې الله ﷻ دفرعونيانو اوعمالقه قوم د هلاکولو نه پس دوئ ته قبضه اوحکومت ورکړې وو.

﴿ٱلَّتِي بَٰرَكۡنَا فِيهَا﴾ سره ئې دا اوخودل چې په دې زمکو کښې الله ﷻ په خصوصيت سره خپل برکتونه نازل کړي دي، د قرآن عظيم الشان په ګڼړو آيتونو مبارکو کښې دا بيان راغلې دې چې د شام ملك د برکتونو مقام دې لکه فرمائي چې: ﴿ٱلَّتِي بَٰرَكۡنَا حَوۡلَهَا﴾ دغه شان د مصر د زمکې په باره کښې هم ګڼړو روايتونو اوليدلو کتلو نه ثابته ده چې دا د برکتونو او ميوؤ مقام دې، لکه عمر بن الخطاب رضي الله عنه دريائې نيل ته سيد الانهار وئيلې دې، او عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائي چې د برکتونو نه نهه حصې په مصر کښې دي. او پاتې يوه حصه په ټوله زمکه کښې ويشلې شوې ده. [بحرمحيط] (١).

خلاصه دا شوه چې کومو خلقو لره د غرور او لويئ په نشه کښې مست خلقو دخپلې لنډ نظرئ په وجه بې وسه او کمزوري ګڼړلي وو، مونږ هغوئ لره ددغې نشه دارو مغرورانو دمال، ملك مالکان ګرځولو سره دا اوخودل چې د الله ﷻ او دهغه درسولانو وعدې رښتينې وي لکه فرمائي چې: ﴿وَتَمَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ ٱلۡحُسۡنَىٰ عَلَىٰ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ﴾ [اوستادرب هغه ښکلې وعده پوره شوه چې کومه ئې دبنی اسرائيلو په حق کښې کړې وه]

دلته دښې وعدې نه مراد هغه وعده ده چې موسی عليه السلام خپل قوم سره داسې کړې وه چې: ﴿عَسَىٰ رَبُّكُمۡ أَن يُهۡلِكَ عَدُوَّكُمۡ وَيَسۡتَخۡلِفَكُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾.

يا ترې مراد هغه وعده ده چې د قرآن کريم په يوبل ځائې کښې پخپله الله ﷻ د بنی اسرائيلو باره کښې داسې کړې ده چې:

﴿وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسۡتُضۡعِفُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَنَجۡعَلَهُمۡ أَئِمَّةٗ وَنَجۡعَلَهُمُ ٱلۡوَٰرِثِينَ ۝ وَنُمَكِّنَ لَهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَنُرِيَ فِرۡعَوۡنَ وَهَٰمَٰنَ وَجُنُودَهُمَا مِنۡهُم مَّا كَانُواْ يَحۡذَرُونَ ۝﴾ [اومونږ دا غوښتل چې دکومې ډلې زور کمولې شو هغې باندې مهرباني اوکړو اودوئ [دملک] سرداران جوړکړو [ اوهم دوئ [د دې زمکې] وارثان جوړ کړو اوپه ملک کښې ورته اقتدار ورکړو اوفرعون اوهامان اوددوئ لښکرو ته د دې [کمزورو خلقو] دلاسه هم هغه انجام اوښايو دکوم نه چې دوئ ويريدل].

حقيقت کښې دا دواړه وعدې يو دي ځکه چې هم الله ﷻ د وعدې په بنا موسی عليه السلام خپل قوم سره وعده کړې وه، دې آيت مبارك کښې دا وعده پوره کيدل په لفظ ﴿تَمَّتۡ﴾ سره ځکه ئې بيان شوه چې د وعدې پوره کول او کاملول هله کيديشي چې کله سرته اورسولې شي. ورسره ئې بنی اسرائيلو باندې د دې انعام او احسان وجه هم داسې بيان کړه چې: ﴿بِمَا صَبَرُواْ﴾ يعنی ددې وجه داده چې د الله ﷻ په لار کښې تکليفونه تير کړل او په هغې کلك پاتې شو، په دې

(١) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٣٣٢

کښې اشاره دې خبرې ته شوه چې دا يوازې دبنی اسرائيلو خصوصيت نه وو بلکه هر څوك چې د صبر او كلك پاتې كيدو عمل كوى نود الله ﷻ انعام ، فضل ، رحمت او امداد به هر وخت هغه سره وى.

فضائے بدر پیدا کر فرشتے تیری نصرت کو
اتر سکتے ہیں گردوں سے قطار اندر قطار ابھی

هر كله چې موسى ﷺ خپل قوم سره دالله ﷻ د طرفنه د امداد وعده كړې وه دغه وخت ئې هم ورته دا خودلى وو چې كاميابى حاصلول د الله ﷻ نه په مدد غوښتلو سره اود مصيبتونو او آفتونو په موقعه په كلك پاتې كيدو سره حاصليږى.

حسن بصرى ﷫ فرمائيلى دى چې دې آيت مبارك كښې دا اشاره موندېشى چې كله دكمزورو او بې وسو خلقود مقابله زورورو او وس والا خلقو سره راشى نو د كاميابئ او فلاح صحيح طريقه داده چې د مقابلې كولو په ځائې دې صبر اوكړى. دوئ فرمائيلى دى چې څوك د نقصان او ضرر بدله هم په نقصان اوضرر اخستل غواړى ، يعنى خپله بدله پخپله اخلى نو الله ﷻ ئې هم ددۀ په حواله كړى چې كله كاميابى او كله ناكامياب شى. او څوك چې د زبان او ضرر مقابله په صبر سره كوى او د الله ﷻ دمدد په انتظار كښې وى نو الله ﷻ ورته پخپله لارې سموى. او الله ﷻ د بنى اسرائيلو ددې وعدې په شان وعده امت محمديه سره هم كړې ده ، لكه فرمائى چې : ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ﴾ [او په تاسو كښې چې چا ايمان راوړې دې اونيكئ كارونه كوى نو الله تعالى ورسره وعده كړې ده چې د زمكې سلطنت بۀ ورته وركړى] [سورة نور].

اوځنګه چې بنى اسرائيلو د الله ﷻ دوعدې پوره كيدل پخپلو سترګو اوليدل ، امت محمديه دهغوئ نه په زيات واضح ډول د الله ﷻ مدد راتلل داسې اوليدل چې په ټوله زمكه ئې سلطنت او حكومت عام شو [روح البيان][1].

دلته دا شبه راپورته كول پكار نه دى چې بنى اسرائيلو خو د صبر نه څكه كار نه وو اخستې چې هر كله موسى ﷺ ئې دې ته مخه راوړله نوهغوئ په خفګان سره داسې اوويل چې ﴿اُوْذِيْنَا﴾ ، وجه ئې داده چې په فرعونى تكليفونو او نقصانونورسولو او په ايمان باندې د دوئ په مخه كلك پاتې كيدل ثابت دى كه يو ځل نيم ئې شكايت چرته دخلې نه اوختو نو هغې ته نظر اونه كړې شو، بله وجه ئې دا كيدشى چې دبنى اسرائيلو دغه وئيل د شكايت په ډول نه وه بلكه دغم خفګان ښكاره كولو په ډول وه.

بيا فرمائى چې : ﴿وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ﴾ [اوموږ هغه هرڅه تباه كړل چې كوم به فرعون اودهغه قوم جوړول اوكوم [اوچت اوچت عمارتونه ئې] چې ئې آبادول] د فرعون او فرعونيانو په جوړ كړو څيزونو كښې د دوئ كورونو او د كورنى ضرورت سامان داشان هغه مختلف قسم انتظامات چې دوئ بۀ د موسى ﷺ دمقابلې دپاره كول ، ټول په كښې داخل دى.

﴿وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ﴾ [اوكوم [اوچت اوچت عمارتونه ئې] چې ئې ابادول] دې كښې لوړ محلونه

---

[1] روح البيان تحت هٰذه الآية: ج ۱، ص ۲۱۱

او مکانونه هم داخل دی اولوړې وني اود انګورو هغه بوټی چې په څپرونو باندې خورولې شی.
تر دې پورې دفرعونی قوم د تباهئ بیان وو ، وروسته د بنی اسرائیلو د فتح او کامیابئ حاصلولو نه پس د دوئ د سرکشئ ، جهالت او د کوږ تګ بیان شروع کیږی چې د الله ﷻ د بې شمیره نعمتونو دلیدلو کتلو نه پس ئې اختیار کړې وو. مقصد ترې نه نبی کریم ﷺ ته دا تسلی ورکول دی چې پخوانو پیغمبرانو ﷺ دخپلو خپلو امتونو د لاسه څومره څومره تکلیفونه پورته کړی وو. نو خپلې مخې ته ددې په راوستو سره داوسنو سرکشانو د زیان رسولو خوږ او درد کمیږی او سپکیږی.
﴿وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ﴾ [او مونږ بنی اسرائیل دسمندر نه تیر کړل]
بنی اسرائیل چې د فرعونیانو په مقابله کښې په معجزانه ډول کامیاب شول او تسلی ئې اوشوه نو ددې اثر هم دغه شان اوشو کوم چې په عامو قومونو باندې د عیش و عشرت او عزت ،دولت ترمخه کیږی. یعنی په دوئ کښې جاهلانه څیزونه پیدا کیدل داسې شروع شو چې دغه قوم د موسی ﷺ دمعجزې په ډول هر کله چې دریاب نه پورې وتل ، پخپلو سترګو ئې دفرعون اوفرعونیانو غرقیدل او ډوبیدل هم اولیدل ، دغه ځائې نه چې لږ شان وړاندې ورتیرشو نو په داسې خلقو ورپیښ شو چې دمختلفو بتانو عبادت ئې کولو.دغه طریقه ئې چې خوښه شوه نو موسی ﷺ نه ئې خواست اوکړو چې څنګه ددې خلقو ډیرو معبودان دی داسې یو معبود خو مونږ له هم جوړ کړه چې خپلې مخې ته د پروت څیزعبادت کولو شوق خو پوره کړې شو څکه چې د الله ﷻ ذات خو زمونږ مخې ته نه وی.
موسی ﷺ ورته اوفرمائیل چې : ﴿قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ﴾ [موسی ﷺ ورته اووئیل چې تاسو خو ډیر ناپوه خلق یئ] ددې خلقو طریقه مو چې خوښه کړه ، ټول عملونه د دوئ تباه او برباد دی ، دوئ باطلو پسې روان دی ، تاسو دهغې لالچ مه کوئی ، آیا تاسو دپاره زه د الله ﷻ نه سوا بل چالره معبود جوړ کړم ، سره ددې چې تاسو الله ﷻ په ټول جهان کښې غوره کړئی.
چې مراد ترې صرف ددغې وخت خلق دی. یعنی په دغې وخت کښې بهٔ هغه خلق د ټولو خلقو نه غوره وو چا به چې موسی ﷺ باندې ایمان راوړې وو.
وروستو بنی اسرائیلو ته د دوئ پخوانې حال وریاد کړې شو چې دفرعون د لاسه دومره زورولې شوی وو چې د دوئ ماشومان هلکان به ئې وژل ، د دوئ جینکۍ بهٔ ئې د خپل خدمت دپاره ساتلې ، الله ﷻ ورته د موسی ﷺ په برکت اودعا سره ددغې عذاب نه خلاصې ورکړو ، آیا ددغې احسان په بدل کښې تاسورب العالمین سره ددنیا زیات ذلیله کانړی دهغه شریکان ګرځوئ؟ دا څومره لوئې ظلم دې؟ دې نه خو توبه کړئی کنه.

| وَوٰعَدْنَا | مُوْسٰى | ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً | وَّاَتْمَمْنٰهَا | بِعَشْرٍ | فَتَمَّ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| او وعده او کړه مونږ | د موسی سره | دیرش شپې | او پوره کړې مونږه دا | دیرش په لسونو | او باند نو پوره شوه |
| او مونږ موسی ﷺ سره د دیرشو شپو وعده او کړه \| او بیا مو پرې لس ورځې زیاتې کړې | | | | | |

| مِيْقَاتُ | رَبِّهٖٓ | اَرْبَعِيْنَ | لَيْلَةً | وَقَالَ | مُوْسٰى | لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| مقرره موده | د رب دهغه | څلویښت | شپې | او اووئیل | موسی | خپل رور هارون ته |
| نو د هغه د الله ﷻ سره نیټهٔ څلویښت شپې پوره شوه \| او موسی ﷺ خپل رور هارون ﷺ ته اووئیل | | | | | | |

| سَبِيۡلَ | وَلَا تَتَّبِعۡ | وَاَصۡلِحۡ | فِيۡ قَوۡمِيۡ | اخۡلُفۡنِيۡ |
|---|---|---|---|---|
| دلارې | اومهٔ کوه پیروی | اوتیک کار کوه | په قوم زما کښې | چې خلیفه شه زما |

چې زمانه پس قوم باندې زماخلیفه شه | صحیح کار کوه | او دهغه خلقو په رائې باندې عمل مه کوه

الۡمُفۡسِدِيۡنَ ۝

دمفسدانو |

کوم چې فساد کونکی دی |

## آسان ترجمه قرآن

اوموږ د موسٰی علیہ السلام سره د دیرشو شپو وعده کړې وه (چه دې شپو کښې دې کوه طور ته راشي او اعتکاف دې وکړي) بیا مو لس شپې نورې زیاتې کړې او دهغې تکمیل مو وکړو دغه شان ستاد رب مقرر شوې نیته څلویښت شپې شوه. او موسٰی علیہ السلام خپل رور هارون علیہ السلام ته ووئیل چه : ځما نه وروستو ځما قایم مقام جوړ شه. او ټول معاملات صحیح وساته. او فسادیانو پسې مه ځه.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَوٰعَدۡنَا مُوۡسٰى ثَلٰثِيۡنَ لَيۡلَةً ﴾ او [هرکله چه بني اسرائیل د ټول پریشانو نه مطمئین شول نوموسی ؑ ته یې درخواست اوکړو چه اوس موږته یو شریعت پکار دې چه په هغې باندې بنه په اطمینان سره عمل اوکړو. موسی ؑ الله ﷻ ته درخواست اوکړو. الله ﷻ دده قصه داسې بیان فرمائي چه] موږ موسی ؑ نه د دیرشو شپو وعده واخستله [چه کوه طور ته راشه او اعتکاف اوکړه نو تا ؑ ته به شریعت اوکتاب درکړې شي] ﴿ وَاَتۡمَمۡنٰهَا بِعَشۡرٍ فَتَمَّ مِيۡقَاتُ رَبِّهٖۤ اَرۡبَعِيۡنَ لَيۡلَةً ﴾ او لس شپې زیات ددې دیرشو شپو خاتمه جوړې شوې [یعني تورات مو ورکړو اوپه دې کښې مو لس شپې د عبادت دپاره نورې زیاتې کړې چه دهغې وجه په سورت بقره کښې ذکر شوې ده] داشان دده د پروردګار [مقرر شوې] وخت [ټول یوځائې کولو سره] پوره څلویښت شپې شو ﴿وَقَالَ مُوۡسٰى لِاَخِيۡهِ هٰرُوۡنَ اخۡلُفۡنِيۡ فِيۡ قَوۡمِيۡ وَاَصۡلِحۡ وَلَا تَتَّبِعۡ سَبِيۡلَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ ۝﴾ اوموسی ؑ [چه کوه طور ته تللو نو دتلو په وخت کښې ئې] خپل رور هارون ؑ ته وئیلي وو چه زما نه پس ددې خلقو انتظام کوه په مخه د دوئ سمې راوله اود بد انتظامو خلقو رائې باندې عمل مه کوه.

## معارف او مسائل

دې آیت مبارك کښې د موسی ؑ اود بنی اسرائیلو هغه واقعه بیان شوې ده چې د فرعون دغرقیدو اود بنی اسرائیلو دتسلئ کیدو نه پس راپیښه شوه. هغه داسې چې بنی اسرائیلو موسی ؑ ته خواست اوکړو چې اوس موږ په تسلئ یو که راته څه کتاب اوشریعت راکړې شی نو بښهٔ بیغمه به په هغې باندې عمل کوؤ. دې باره کښې موسی ؑ الله ﷻ نه سوال اوکړو، لکه فرمائی چې :

﴿وَوٰعَدۡنَا مُوۡسٰى ثَلٰثِيۡنَ لَيۡلَةً﴾ ، ﴿وٰعَدۡنَا﴾ د وعده نه مشتق دې ، ددې حقیقت داسې قسم لوظ کول دی چې چاته نفع او فائدې ورسولو دپاره یوکار کول د اول نه ښکاره کړې شی. نو په دې موقعه باندې الله ﷻ د خپل کلام نازلولو وعده په دې شرط سره اوکړه چې دیرش شپې په کوه طور کښې اعتکاف اوکړه او دغه شپې د الله ﷻ په یاد کښې تیرې کړه او بیا ئې په دې لس

شپې نورې زياتې کړې او ټولې څلويښت شپې شوې.

هر کله چې د ﴿وَعَدْنَا﴾ اصلي معنی د دواړو طرفونو نه وعده کول دي دلته ئې مطلب دا راوځي چې الله ﷻ ورسره د تورات ورکولو وعده اوکړه او موسی ﷺ د څلويښتو شپو داعتکاف کولو وعده اوکړه. هم دغه وجه ده چې د ﴿وَعَدْنَا﴾ په ځائې ﴿وَعَدْنَا﴾ اوفرمائيل.

ددې آيت مبارك په څو مسئلوباندې ژور نظر اچول پکار دي.

① هر کله چې الله ﷻ ته د څلويښتو شپو اعتکاف کول منظور وو نو په يو ځل ئې ددې دحکم ورکولو په ځائې په قسطونو سره حکم ورکولو څه حکمت وو چې اول ئې ديرش او بيا ئې لس شپې نورې ورسره يو ځائې کړې؟

جواب ئې دادې چې د الله ﷻ ټول حکمتونه معلومول دهيچا په وس کښې نشته دې دلته ددې څو حکمتونه علماء کرامو بيان کړې دي. لکه په تفسير روح البيان کښې ددې يو حکمت دابيان شوې دې چې د يو چا په ذمه د يو کار ورکولو غوره اوآسانه طريقه داده چې په دمه دمه ئې په ذمه کړې شي که اول نه چاته په يومخ زيات کار په ذمه کړې شي نو وار خطا به شي او کيدې شي چې دغه کار ترې وران شي[۱].

تفسير قرطبي کښې ددې حکمت دا خودلې شوې دې چې حاکمانو او اميرانو ته په دې سره دا تعليم ورکول دی چې که يو ماتحت ټاکلې نيتې پورې دخپلې ذمې کار پوره نه کړې شي نو هغه ته دې بله نيته اوټاکلې شي، دې باره کښې مفسرينو يوه واقعه داسې بيان کړې ده چې هر کله د ديرشو شپو اعتکاف سره موسی ﷺ په مخه د ديرشو شپو روژې پوره کړې، په مينځ کښې ئې يوه روژه او نه خوړه او دديرشمې روژې ماتولونه پس چې د کوه طور هغه ټاکلی مقام ته حاضر شو، الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې د روژه دار دخلې خاص قسم بوئی چې د معدې د تبخير نه پيدا کيږي د الله ﷻ خوښه ده، په روژه ماتولو سره تا هغه بدبوئی ختمه کړه. ځکه نورلس روژې اونيسه چې هغه بد بوئی بيا پيدا شي[۲].

ځينې تفسيری روايتونو کښې داسې هم راغلی دي چې هر کله موسی ﷺ په مخه ديرش روژې پرله پسې اونيولې نو په آخره کښې ئې مسواك اووهلو چې ورسره ئې دروژې هغه بد بوئی ختمه شوه، خوپه دې سره دا دليل نشي نيولې چې ګنی روژه دار لره مسواك وهل مکروه دی، ځکه چې اول خو ددغې روايت څه سند نه دې بيان شوې، بله دا چې دا حکم يوازې موسی ﷺ دپاره کيدې شو، دا هم کيدې شي چې د موسی ﷺ ټول امت دپاره دغه حکم وو، خو دې امت دپاره د روژې په حالت کښې دمسواك وهلو عمل د حديث پاك نه هم ثابت دې، اما بيهقي د عائشه صديقه ؓ په روايت نبی کريم ﷺ نه دا ارشاد نقل کړيدې چې: ﴿خير خصائل الصائم السواك﴾[د روژه دار ډير غوره عمل مسواك وهل دی[۳].

دې روايت ته په حواله د جامع صغير سره حسن وئيلې شوی دی.

---

[۱]) روح البيان تحت هٰذه الآية: ج ۱، ص ۷۳

[۲]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۷، ص ۲۷۵

[۳]) السنن الكبرىٰ للبيهقي، باب السواك للصائم: ج ۴، ص ۲۷۲

**فائده** :: دلته دا سوال پیدا کیږی چې هر کله موسی ؑ د الله ﷻ په حکم سره د خضر ؑ په لټون کښې په سفر وو ، نو د نیمې ورځې لوږه ئې اونه شوه زغملې او خپل ملګری ته ئې اوونیل چې :

﴿اٰتِنَا غَدَآءَنَا لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا﴾ [صبا ناری راوړه ولې چې دې سفر خو مونږ ډیر ستومانه کړی یو] نو په کوه طور کښې یې به مخه دیرش شوا روزه څنګه روژه اوساتلې شوه؟

تفسیر روح المعانی کښې ددې جواب داسې راغلې دې چې رومبې سفر د مخلوق یعنی خضر ؑ په لټون کښې وو او دا بل سفر دمخلوق په لټون کښې نه بلکه دخالق په لټون کښې وو، څکه د دواړو اثر هم بیل بیل وو ، په دې وجه په دویم سفر کښې بشری تقاضې ختمې شوې وې. نو د خوراک څکاك ضرورت ورته هم څه تکلیف نه وو([1]).

**عبادتونو کښې د سپوږمۍ حساب معتبر دې ، خو په دنیاوی معاملو کښې شمسی حساب هم کیدې شي** :: ددې آیت مبارك څخه یوه بله مسله دا ثابت شوه چې د انبیاء ؑ په شریعتونو کښې د تاریخ [نیټې] حساب د شپې څخه کیږی. څکه چې دې آیت مبارك کښې د دیرشو ورځو په ځائې د دیرشو شپو ذکر راغلې دې نو ثابته شوه چې د پیغمبرانو ؑ په ټولو شریعتونو کښې به حساب دمیاشتې او سپوږمۍ په حساب دشپې نه کیدو یعنی په کوم ماښامبه چې د نمر ډوبیدو سره میاشت ښکاره کیدل ثابت شونو هم دغه به رومبۍ شپه وه او وروسته راتلونکې ورځ به رومبۍ ورځ وه. قرطبی ﷫ په حواله د د ابن عربی ﷫ نقل کړی دی چې :﴿حساب الشمس للمنافع وحساب القمر للمناسك﴾ [دنمر حساب د دنیاوی فائدو دپاره دې او دسپوږمۍ حساب د عبادتونو ادا کولو دپاره دې].

د عبدالله بن عباس ؓ د تفسیر مطابق دغه دیرش شپې د ذی العقدې د میاشتې وی چې لس د ذی الحجې د میاشتې پرې زیاتې شوې. دې نه معلومه شوه چې موسی ؑ ته تورات د لوئې اخټر په ورځ ورکړې شو. [قرطبی]([2]).

**یوه مسئله: دنفس په اصلاح کښې څلویښت شواروزه خاص دخل لری** :: ددې آیت مبارك څخه دا هم معلومه شوه چې څلویښتو شپو ته د باطنی حالاتو په اصلاح کښې څه خاص دخل شته دې. لکه څنګه چې یو حدیث پاك کښې دی چې نبی کریم ﷺ فرمائی چې څوك څلویښت ورځې اخلاص سره دالله ﷻ عبادت اوکړی نو الله ﷻ دده دزړه څخه دحکمت چینې جاری کوی [روح البیان]([3]).

**انسان ته په ټولو کارونو کښې تدریج او صبر اختیارولو تعلیم**:: ددې آیت مبارك څخه ثابته شوه چې د اهمو کارونو دپاره یو خاص وخت مقررول ، په آسانۍ او په دمه دمه د هغې کول د الله ﷻ طریقه ده .تادی کول د الله ﷻ خوښ نه دی ولې چې پخپله الله ﷻ هم ټولې دنیا پیدا کولو دپاره شپږ ورځې مقرر کړې وې ، سره ددې چې هغه دا ټول کار د سترګو په رپ کښې هم کولې شو چې کلمه د کن ئې فرمائیلې وې. دلته بل ثبوت ئې دا هم برابر کړو چې څلویښت شواروزه

[1]) روح البیان تحت هٰذه الآیة: ج۱، ص ۷۳

[2]) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج۷، ص ۲۷۴

[3]) روح البیان تحت هٰذه الآیة: ج۱، ص ۷۳

نې موسى ﷺ ته د تورات ورکولو دپاره مقرر کړل. [قرطبي][1].

نو ددې اصولو په پریخودو سره بني اسرائیل ګمراه شو، څکه چې موسى ﷺ کوه طور ته د روانیدو په وخت هلته د دیرشو شواروزو تیرولو وئیلي وو هر کله چې لس ورځې په هغې نورې زیاتې کړې شوې نو تادی ئې شوه او وئیل ئې چې موسى ﷺ چرته لاړو اوس مونږ له بل پیشوا جوړول پکار دی. نتیجه ئې دا راؤوتله چې د سامري په دام کښې اونختل او د څخي عبادت ئې شروع کړو، که په دمه او پوړئ په پوړئ دکار کولو عادت ئې لرلې نو دغه مصیبت به ورته نه راپیښیدو. [قرطبي][2].

د آیت مبارك دوه جملې: ﴿وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ﴾ [او موسى ﷺ خپل رور هارون ﷺ ته وئیلي وو چې زمانه پس قوم باندې زما خلیفه شوې] نو صحیح کار کوه] او دهغه خلقو په رائې باندې عمل مه کوه کوم چې فساد کونکي دی].

**د ضرورت په وخت کښې يو منتظم لره بخپل ځائې باندې مقررول:** هر کله چې موسى ﷺ کوه طور ته روانیدو نو خپل رور هارون ﷺ ته ئې اوفرمائیل چې: ﴿وَاخْلُفْنِي فِي قَوْمِي﴾ [زۀ چې کوه طور کښې د الله ﷻ د وعدې مطابق په اعتکاف کښې یم نو زما په ځائې انتظام کول به ستا کار وی] دې نه ثابته شوه چې یو ذمه دار کس چې دخپل ځائې نه د ضرورت په وجه بهر اوځی نو ضروری دی چې دخپل کار چلولو دپاره د هغه کار انتظام کولو سره لاړ شي.

او دا هم ترې ثابته شوه چې ددغې انتظام چلولو دپاره دې خپل خلیفه او قائمقام مقرر کړی، ولې چې درسول کریم ﷺ عام عادت دا وو چې دمدینې منورې نه د بهر تلو په صورت کښې به ئې خپل خلیفه مقررولو، نو یو ځل ئې علي ﷺ او یو ځل ئې عبدالله ابن ام مکتوم ﷺ خلیفه مقرر کړې وو. دغه شان په مختلفو موقعو ئې مختلف صحابه کرامو ﷺ خپل خلیفه ګان مقرر کړی وو کله ئې چې د مدینې منورې نه بهر تشریف اوړې وو. [قرطبي][3].

هر کله چې موسى ﷺ هارون ﷺ لره خلیفه جوړولو نو دغه وخت ئې ورته څو هدایات ورکړل، معلومه شوه چې د قائمقام دآسانتیا دپاره دې ضروری هدایات ورکړې شي.

رومبې هدایت دا وو، ﴿أَصْلِحْ﴾ دلته د ﴿أَصْلِحْ﴾ مفعول نه دې راؤړې شوې، مطلب ئې دادې چې یوازې دخلقو اصلاح نه بلکه خپله اصلاح هم کوه، یعنی کله چې څه وراني محسوس کړئ نو دهغې دسمون کوشش کوه. دویم هدایت ئې د اوکړو چې: ﴿وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ﴾ [او دهغه خلقو په رائې باندې عمل مه کوه کوم چې فساد کونکي دی] هارون ﷺ نه خو پخپله د فساد خطره څکه نه وه چې دا د پیغمبرد شان سره سمون نه خوری، مطلب دا وو چې دفسادیانو امداد یا مدد مه کوۀ، همدغه وجه وه چې کله سامری دغه قوم د څخي په عبادت کولو سره ګمراه کړو نو هارون ﷺ خپل قوم ددغې بیهودګئ نه منع کړو او سامری ته په غضب شو. بیا هم کله چې موسى ﷺ د کوه طور نه واپس راغلو نو په دې خیال هارون ﷺ سره اونښتو چې ګنی هغوئ د اصلاح کولو کوشش نه دې کړې. د موسى ﷺ ددې واقعې نه هغې خلقو لره

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۷، ص ۲۷۵
[2]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۷، ص ۲۷۵
[3]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۷، ص ۲۷۷

سبق اخستل پکار دی چې بد انتظامی ، او بې پروائي د ټولونه لویه بزرګی ګنړی.

| وَلَمَّا | جَآءَ | مُوسٰى | لِمِيقَاتِنَا | وَكَلَّمَهٗ |
|---|---|---|---|---|
| اوهر کله چی | راغلو | موسی | امقررنیتې زمونږله | اوخبری اوکړې دهغه سره |

| اوهر کله چې موسی ﷺ زمونږ په مقرره نیټه راغلو | او الله ﷻ ورسره |
|---|---|

| رَبُّهٗ | قَالَ | رَبِّ | اَرِنِيْٓ | اَنْظُرْ | اِلَيْكَ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رب دهغه | نواووئیل هغه | اے ربه خما | اوښایه ماته ځان خپل | اچی اوګورم | تاته | اووئیل الله |

| خبرې اوکړې | نوهغه اووئیل چې ائې زماربه ماته خپل ځان اوښایه | چې په سترګو دې اووینم | الله اووئیل |
|---|---|---|---|

| لَنْ تَرٰىنِيْ | وَلٰكِنِ انْظُرْ | اِلَى الْجَبَلِ | فَاِنِ | اسْتَقَرَّ |
|---|---|---|---|---|
| هرګز ته لیدلې نشې ما | ولیکن اوګوره | دې غرته | نو که چری | په قرارپاتې شو |

| چې ته ما نشې لیدلې | [البته که ستا ډیر خواهش وی] نودې غر ته اوګوره که په خپل ځائې قلار پاتې |
|---|---|

| مَكَانَهٗ | فَسَوْفَ | تَرٰىنِيْ | فَلَمَّا | تَجَلّٰى | رَبُّهٗ | لِلْجَبَلِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په ځائې خپل | انو پس بیا به | ته لیدې شې ما | انو هر کله چی | ښکاره کړه جلوه | رب دهغه | هغه غرته |

| شو | نو ته به ما اولیدې شې | نو هر کله چې الله ﷻ په هغه غرباندې تجلی اوکړه |
|---|---|---|

| جَعَلَهٗ | دَكًّا | وَّخَرَّ مُوسٰى | صَعِقًا | فَلَمَّآ | اَفَاقَ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو کړو ئې هغه | ذرې ذرې | اوراپریوتو موسی | بې هوشه | پس هر کله چی | په هوش کښې راغې هغه | نو وې وئیل |

| نوهغه ئې ذرې ذرې کړو | او موسی ﷺ بې هوشه پریوتو | بیا چې کله په هوش کښې راغلو نو وې وئیل |
|---|---|---|

| سُبْحٰنَكَ | تُبْتُ | اِلَيْكَ | وَاَنَا | اَوَّلُ | الْمُؤْمِنِيْنَ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پاک دې ذات ستا | ماتوبه اوویسته | تاته | اوزه | اولنې | ایمان راوړونکې یم | اووئیل الله |

| چې ته پاک ذات یې | زه تاته توبه اوباسم | او په تاباندې اول ایمان راوړم | الله ﷻ ورته اوفرمائیل |
|---|---|---|---|

| يٰمُوسٰٓى | اِنِّى | اصْطَفَيْتُكَ | عَلَى النَّاسِ | بِرِسٰلٰتِىْ |
|---|---|---|---|---|
| اے موسی | ابیشکه زه چی یم | غوره کړې ماته | په خلقو باندې | په پیغمبرئ زماسره |

| ائې موسی ﷺ ماته په نورو خلقو کښې منتخب کړې یې | ځکه چې رسالت مې درکړې دې |
|---|---|

| وَبِكَلَامِىْ | فَخُذْ | مَآ | اٰتَيْتُكَ | وَكُنْ | مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپه کلام زماسره | نواونیسه | هغه | چې زه درکرم تاته | اوشه | دشکر ګزارونه |

| اوخبرې مې درسره کړی دی | نوچې څه حکمونه درکوم | هغه واخله او زما شکر کوه |
|---|---|---|

| وَكَتَبْنَا | لَهٗ | فِى الْاَلْوَاحِ | مِنْ كُلِّ شَىْءٍ | مَّوْعِظَةً | وَّتَفْصِيْلًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اواولیکلو مونږه | دپاره دهغه | په تختو کښی | دهر څیز نه | نصیحت | اوتفصیل |

| اومونږورته په یو څو تختوباندې هرقسم نصیحتونه اودهرې مسئلې تفصیل لیکلې وو |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِكُلِّ شَيْءٍ | فَخُذْهَا | بِقُوَّةٍ | وَّأْمُرْ | قَوْمَكَ | يَأْخُذُوا |
| دپاره دهر څيز | نو اونيسه هغه | په قوت سره | اوحكم اوكړه | قوم خپل ته | چې اونيسي هغوئ |
| اورته مواوونيل! چې داهدايات كلك اونيسه او خپل قوم ته ددې خبرې حكم او كړه | | | | | |
| بِأَحْسَنِهَا | | سَأُورِيكُمْ | دَارَ الْفٰسِقِيْنَ | | |
| بهتره مطلب د هغې | | ډيرزر به اوښايم زه تاسو ته | كوردفاسقانو | | |
| چې ددې په غوره مطلب دې عمل اوكړي زه به ډيرزر تاسو ته د بدكرداروخلقو كورونه اوښايم | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوچه كله موسٰى عليه السلام ځمونږ مقرر وخت پالدې راورسيدلو، اوده هغه رب د هغه سره خبرې وكړې نو هغه ووئيل چه: اې ځما پروردگاره! ما ته خپل ديدار نصيب كړه چه ځه تالره وګورم. وې فرمائيل چه: ته مالره چرې هم نه شې ليدلې، خو غر طرف ته وګوره، دې نه وروستو كه چرې هغه په خپل ځائې پالدې كلك پاتې شو نو ته به ما لره ووينې بيا چه كله د هغهٔ رب غر ته تجلي وكړه، نو هغه ئې ريزه ريزه كړو، او موسٰى عليه السلام بې هوشه پريوتلو. وروستو چه كله هغه ته هوش راغې نو هغه ووئيل چه: پاك دې ذات ستا! ځه تا ته توبه اوباسم (اوپه دې خبره چه دې دنيا كښې تا څوك نه شي ليدلې) ځه د ټولو نه اول ايمان راوړم. ووئيل: اې موسٰى! ما خپل پيغام دركړو او تاسره مې خبرې وكړې په دې مې په ټولو خلقو اوچتوالې دركړې دې پس ما چه تا ته څه دركړيدي هغه واخله، اوشكر گذار جوړشه. اومونږ هغه دپاره په تختو كښې هر قسم نصيحت او د هر يو څيز تفصيل اوليكلو (او داحكم مو وركړو چه) اوس دا په مضبوطيا سره اونيسه او خپل قوم ته حكم وكړه چه ددې په بهترينو حكمونو عمل وكړي ځه به ډير زر تا ته د نافرمانو خلقو كورونه وښايم.

## خلاصه تفسير

﴿ وَلَمَّا جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا ﴾او چه كله موسى عليه السلام [په دې واقعه كښې] زمونږ په وخت [موعود] باندې راغلې [چه دهغې قصه بيانيږي]﴿ وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ﴾ او دده رب دده سره [ډيرې د مزې اوعنايت] خبرې اوكړې ﴿ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ﴾ نو [د ډيرې خوشحالئ اوشوق نه ئې دالله عليه السلام ددیدار شوق پيداشو] عرض ئې اوكړو ائې زما پروردگاره خپل ديدار په ماباندې اوكړه چه زه تايو نظر اوګورم.﴿ قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ ﴾ ارشاد اوشو چه ته ما [په دنيا كښې] بالكل نشې كتلې خكه چه دا سترګې د ديدار تاب نشي راوړلې ﴿كما قال فى المشكوة عن مسلم لاحرقت سبحات وجهه﴾[1] ليكن [ستا د تسلئ دپاره دا تجويز كوم چه]ته دې غرطرف ته اوګوره [مونږ په دې باندې يو جهلك اچوو] ﴿ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ ﴾ نو كه دا په خپل ځائې برقرار پاتې شو نو [خير] ته به هم اوګورې[غرض موسى عليه السلام دې طرف ته كتل] ﴿ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوْسٰى صَعِقًا ﴾ نو دده رب چه په دې كومه تجلي اوكړه دا [غر] ذرې ذرې شو او موسى عليه السلام بيهوشه شو اوپريوتلو ﴿ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ بيا

[1] صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب معنى قول الله عزوجل ولقد رآه نزلة أخرى الخ: ج ١، ص ٩٩

چه کله ئې افاقه اوشوه په هوښ کښې راغلې نو عرض ئې اوکړو بيشکه ستا ﷻ ذات [ددې سترګو دبرداشت نه] منزه [او اوچت] دې زه ستا په حضور کښې [ددې ډير زيات شوقيه درخواست] معذرت کووم او [چه څه دحضورﷺ ارشاد دې چه لن ترني] دټولو نه مخکښې زه په هغې يقين کوم. ﴿قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِىْ وَبِكَلَامِىْ﴾ ارشاد اوشو چه ائې موسی ؑ [هم دا کافي ده چه] ما [تاته د] دخپل [طرفه] پيغمبرئي [درکولو وعده اوکړه] او خپل [خان سره] دخبرو کولو [شرف مې درته اوبخښلو په دې سره] نورو خلقو باندې مې تاته امتياز درکړې دې ﴿فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ﴾ نو [اوس] چه څه ماتاته درکړي دي [رسالت او هم کلامي اوتورات] دا واخله اوشکر کوه ﴿وَكَتَبْنَا لَهٗ فِى الْاَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَىْءٍ﴾ او مونږ په څو تختوباندې هرقسمه [ضروري] ﴿مَّوْعِظَةً وَّتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَىْءٍ﴾ نصيحتونه او [دضروري احکامو متعلق]د هر څيز تفصيل مو اوليکلو [هم دا تختې تورات دې.بيا حکم اوشو چه کله دا تختې مونږ درکړي]﴿فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَّاْمُرْ قَوْمَكَ يَاْخُذُوْا بِاَحْسَنِهَا﴾ نو دا په کوشش سره [پخپله هم] عمل کښې راوله او خپل قوم ته [هم] حکم اوکړه چه ددې په ښه ښه احکامو باندې [يعني په ټول باندې چه هم ټول ښه دي] عمل اوکړي ﴿سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ اوس ډير زر زه تاسو خلقو ته [يعني بني اسرائيلو ته] ددې بې حکمو [يعني دفرعونيانو يا دعمالقو] مقام ښايم [په کښې دې زيرې دې اووعده ده چه مصر يا شام باندې به عنقريب ستاسو قبضه کيدونکې وی.ددې ترغيب نه مقصد دادې چه اطاعت د الله ﷻ د احکامو دا برکات دي].

## معارف او مسائل

د ﴿لَنْ تَرٰىنِىْ﴾ معنی داده چې ته مې نشي ليدلې ، اشاره په کښې دې خبرې ته ده چې زما ديدار ناممکن نه دې خو مخاطب په موجوده حالت کښې دانشي برداشت کولې اوکه ديدار ئې دسره امکان نه لرلئ نو ﴿لَنْ اُرٰى﴾ به ئې فرمائيلي وو([1]).

دې نه ثابته شوه چې د الله ﷻ ديدار کول په دنيا کښې دعقل دمخې امکان لرې خو واقع کيدې نشي څنګه چې د جمهورو اهل سنتو مذهب دې ، دوئ فرمائي چې اګر که د الله ﷻ ديدار د عقل دمخې په دنيا کښې ممکن دې مګر د شريعت له مخې ممتنع دې لکه د مسلم شريف په يو حديث پاك کښې راغلې دی چې : ﴿لن يرى احد منکم ربه حتى يموت﴾ [مرګ نه مخکښې په دنيا کښې هيڅوك دخپل پروردګار ديدار نشي کولې].

﴿وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ﴾ دا ددې خبرې ګواهي ورکول دی چې په دې وجه په غر باندې د ادنی کرشمې غورزولو سره د اوخودلې شی چې هرکله غر ددې برداشت نشي کولې نو کمزور بدن والا انسان به ئې څنګه زغم اوکړې شی ؟

﴿فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ﴾ ﴿تجلى﴾ په عربئ ژبه کښې ښکاره کيدو ته وئيلې شی او دصوفياء کرامو په نزد هغه کتلو ته ﴿تجلى﴾ وئيلې شی چې په مينځ کښې بله واسطه وی ، لکه د آئينې په واسطه يو څيز ليدل ، په دې بنا د ﴿تجلى﴾ معنی ليدل نشي کيدې ، پخپله هم دې آيت مبارك نه دا ثابتيږی چې الله ﷻ د ليدلو نفی اوکړه او ﴿تجلى﴾ ئې ثابته کړه.

---

[1]) التفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۴۰۳

امام احمد رحمه الله ، ترمذی رحمه الله او حاکم رحمه الله په روایت دانس رضی الله عنه نقل کړی دی چې حاکم رحمه الله او ترمذی رحمه الله ئې سند ته صحیح هم وئیلی دی ، فرمائی چې هر کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم د آیت مبارك اولوستلو نود کچې گوتې په سر ئې گته گوته کیخوده او اشاره ئې اوکړه چې د الله جل جلاله د دومره قدرې نور په ښکاره کولو سره غر بسمه بسمه [زره زره] شو[1] ، دا ضروری نه ده چې ټول غر دې ذرې ذرې شوې وی بلکه هغه حصه ئې ذرې ذرې شوې وی په کومه چې الله جل جلاله دغه تجلی ښکاره کړې وه.

**موسى عليه السلام سره د الله جل جلاله كلام كول:** دومره خبره خو د قرآن عظیم الشان نه په ډاگه ثابته شوه چې الله جل جلاله ، موسى عليه السلام سره نیغ په نیغه کلام فرمائیلې وو، موسى عليه السلام سره دالله جل جلاله کلام کول دنبوت ملاویدو په وخت رومبې ځل یوشان وو او په کوه طور باندې دتورات ورکولو په موقعه دا دویم ځل کلام څه زیات خصوصیت لرلو. خو دکلام حقیقت صرف الله جل جلاله ته معلوم دې چې دا څه اوڅنگه و؟ په دې کښې د ټولو عقلی احتمالاتوگنجائش ضرور شته چې د شریعت دځه حکم نه خلاف نه وی ، خو بې دلیله یو احتمال په کښې ټاکل درست نه دی ، د پخوانو بزرگانو صحابه کرامو رضی الله عنهم اوتابعینو بیداغه مسلك په دې کښې داسې دې چې ددې معامله دې الله جل جلاله ته اوسپارلې شی او دځانه احتمالونه دې په کښې نه راؤښکلې شی. [بیان القرآن].

﴿سَأُورِيكُمْ دَارَ الْفَاسِقِينَ﴾ دلته د ﴿دَارَ الْفَاسِقِينَ﴾ دلتهد دار الفاسقین نخه څه مراد دې؟ دې باره کښې علماء کرامو فرمائیلی دی چې یا خو تر د مصر یا دشام ملك مراد دې. ولې چې هر کله موسى عليه السلام مصر فتح کړې نه وو نودغه وخت پرې د فرعون اوفرعونیانو قبضه وه ، په دې وجه یې مصر ته دارالفاسقین اووئیل او د شام په ملك باندې د عمالقو قبضه وه او هغوئ هم کافروفاسق وو لهذا هغه وخت شام هم درالفاسقین وو چې دغه دواړه قسمه خلق فاسقان او کافران وو، دا ټاکل چې دشام ملك ترې مراد دې اوکه د مصر ملك ؟ د اختلاف په بنیاد به ئې دا وی چې د فرعون د غرقیدو نه پس بنی اسرائیل مصر ته واپس تلی وو او که نه؟ که تلی وو او په مصر ئې قبضه کړې وی لکه چې د ﴿وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ﴾ نه ئې تائید کیږی چې دا دکوه طور د تجلی نه وړاندې شوی وونو ﴿دَارَ الْفَاسِقِينَ﴾ نه به مراد یوازې دشام ملك وی اوکه دې نه روستو شوی وو نو دواړه ملکونه ترې مراد کیدې شی.

﴿وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ﴾ [اومونږ ورته په یو څو تختویاندې هرقسم نصیحتونه اودهرې مسئلې تفصیل لیکلې وو] ددې نه معلومیږی چې موسى عليه السلام ته په تختو تورات تیار په تیار ورکړې شوې وو.

[1]) مسند أحمد، مسند أنس بن مالك رضي الله عنه رقم الحديث: ١٢٤٠١، وجامع الترمذي، أبواب التفسير، باب من سورة الأعراف: ج٢، ص٣٨ والمستدرك للحاكم رقم الحديث: ٣٢٦

سَأَصْرِفُ

| زر به واړوم زه

| زر به زه

عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ وَاِنْ يَّرَوْا

دا يتونو زمانه | هغه كسان | چې تكبر كوي | په زمكه كښې | په ناحقه | او كه اووينې هغوئ

دهغه كسانو مخونه په دخپلو ايتونونه واړوم | چې كومو په زمكه كښې په ناحقه خانونه لوئې ګنړل | او كه دوی

كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ۚ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوْهُ

هره نښه | ايمان نه راوړي | په هغې | او كه اووينې هغوئ الاره د نيكۍ | نه نيسی هغوئ هغه

هرقسم نښې اووينی | خو [بيا هم] په هغې ايمان نه راوړي | او كه نيغه لار ورته ښكاره شي | نو په هغې

سَبِيْلًا ۚ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ؕ ذٰلِكَ

په لار سره | او كه اووينې هغوئ | لاره د ګمراهۍ | نو نيسی هغه | په لار سره | دا خكه

باندې نه خی | .........او كه كږه لار اووينې نو په هغې روانيږی | ..............دا په دې وجه چې

بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ۝

چې بيشكه هغوئ | دروغ ګنړلي دي | نښې زمونږه | اووؤ هغوئ | دهغې نه | بې پرواه

دوئ زمونږ ايتونه دروغ ګنړل | ..................او دهغې نه غافله وو

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ

او هغه كسان | چې دروغ ئې اوګنړلې | نښې زمونږه | او ملاقات | د اخرت | ضائع شو |

او چا چې زمونږ ايتونه ..........او د اخرت راتلل دروغ اوګنړل | ..........نو دهغوئ

اَعْمَالُهُمْ ؕ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝

عملونه دهغوئ | آيا | بدله به وركړې شی دوئ له | ماسوا | دهغې نه | چې وؤ دوئ | چې كول به ئې

عملونه تباه شو | هغوئ ته به نورڅه نه بلكه صرف دخپلو عملونو بدله وركولې شي

وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوْسٰى مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا

او جوړ كړو | قوم د موسی | روستو دهغه نه | د كالو خپلو نه | سخې | جوسه دار

او د موسی ؑ قوم دهغه [كوه طور ته د تلو] نه پس دخپلو كالونه يو څخې جوړ كړو | يو تشه څوسه وه

لَّهٗ خُوَارٌ ؕ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّهٗ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا

چې وؤ هغه د پاره | آواز | آيا نه ليدل هغوئ | چې بيشكه هغه | نه كوي خبرې دهغوئ سره | او نه

چې آواز به ئې كولو | آيا دوئ دومره هم نه پوهيدل | چې نه ئې ورسره خبرې كولې | او نه ئې

يَهْدِيْهِمْ سَبِيْلًا ۘ اِتَّخَذُوْهُ وَكَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ۝ وَلَمَّا

ښائی هغوئ ته | لار | خوا ونيوؤ هغوئ هغه په خدايۍ | او وؤ هغوئ | ظالمان | او هركله چې

ورته سمه لار خودله | خو بيا هم دوئ هغه معبود جوړ كړلو | او په خان ئې ظلم اوكړو | او هركله چې

سُقِطَ فِيٓ | اَيۡدِيۡهِمۡ | وَرَاَوۡا | اَنَّهُمۡ | قَدۡ ضَلُّوۡا

اوغورزولې شوه پښېماني | په لاسونو دهغوئ کښې | اووې ليدل | چې بيشکه هغوئ | گمراهه شوی دی

دوئ خپل لاسونه اومروړل | ..........او وې کتل چې دوی گمراه شوی دی

قَالُوۡا | لَئِنۡ | لَّمۡ يَرۡحَمۡنَا | رَبُّنَا | وَيَغۡفِرۡ لَنَا | لَنَكُوۡنَنَّ

نووې وئيل | که چرې | اونه کړو رحم په مونږ پاندې | رب زمونږه | اووې نه بښلو مونږه | انو خامخا به شو مونږه

نووې وئيل که الله ﷻ راباندې رحم اونه کړې | او مونږ ته معافي اونکړې | ..........نو مونږ به

مِنَ الۡخٰسِرِيۡنَ ۝ | وَلَمَّا | رَجَعَ مُوۡسٰٓى | اِلٰى قَوۡمِهٖ | غَضۡبَانَ

دنقصان موندونکونه | اوهرکله چې | واپس راغې موسی | قوم | خپل ته | په غصه

خوامخواه د نقصان کوؤنکو نه شو | اوهرکله چې موسی دغصې او غم نه ډک خپل قوم ته واپس راغلو

اَسِفًا ۙ | قَالَ | بِئۡسَمَا | خَلَفۡتُمُوۡنِيۡ | مِنۡۢ بَعۡدِيۡ ۚ

افسوس کونکی | نووې وئيل | چې بد دې هغه | چې خليفه کړې دې تاسو زما | روستو زمانه

نو د [راتلو سره ئې] او فرمائيل چې تاسو زما د تلو نه پس ډير غلط کار کړی دې

اَعَجِلۡتُمۡ | اَمۡرَ | رَبِّكُمۡ ۚ | وَاَلۡقَى | الۡاَلۡوَاحَ | وَاَخَذَ | بِرَاۡسِ

آيا تلوار اوکړه تاسو | دحکم | درب خپل نه | اووې غورزولې | تختئ | اووې نيوؤ | سر

آيا د الله ﷻ دحکم راتلونه وړاندې موتلوار اوکړل | او د تورات تختئ ئې اوغورزولې | او خپل

اَخِيۡهِ | يَجُرُّهٗۤ | اِلَيۡهِ ؕ | قَالَ | ابۡنَ اُمَّ | اِنَّ الۡقَوۡمَ

درور خپل | چې راکاږی هغه | خان طرفته | اووئيل هغه | اے خويه دمور | بيشکه چې دې خلقو

[هارون ﷺ] ئې دسرد ويښتونه اونيولو | او خان ته ئې راښکلو | هغه ورته اووئيل چې ائې زما د مور خويه

اسۡتَضۡعَفُوۡنِيۡ | وَكَادُوۡا | يَقۡتُلُوۡنَنِيۡ ۖ | فَلَا | تُشۡمِتۡ | بِيَ

ضعيف کړم | زه | اونزدې وه | چې ئې وژلې وې زه | پس مه | خوشحالوه | په ما باندې

[ماځه کمزورې شو] دې خلقو زما د خبرې پرواه اونه کړه | اونزدې وه چې زه ئې قتل کړې وې | نو

الۡاَعۡدَآءَ | وَلَا تَجۡعَلۡنِيۡ | مَعَ الۡقَوۡمِ | الظّٰلِمِيۡنَ ۝ | قَالَ | رَبِّ

دشمنان | اومه شاملوه ما | سره دقوم | ظالمانو | اووئيل موسی | اے ربه زما

دښمنان راباندې مه خوشحالوه | او دظالمانو په ډله کښې مې مه شميره | موسی ﷺ ووئيل ائې ربه!

اغۡفِرۡ لِيۡ | وَلِاَخِيۡ | وَاَدۡخِلۡنَا | فِيۡ رَحۡمَتِكَ ۖ | وَاَنۡتَ | اَرۡحَمُ

معاف کړه ما | او رور زما | او داخل کړه مونږه | په رحمت خپل کښې | او ته | زيات رحم کونکې ئې

ما ته بخښش اوکړه | او زما رور ته هم بخښش اوکړه | او مونږ خپل رحمت کښې داخل کړې | او ته د ټولو نه زيات

الرّٰحِمِيۡنَ ۝

درحم کونکو نه |

رحم کونکې يئ |

## آسان ترجمه قرآن

څه به دخپلو نښونه هغه خلقو لره اړوم چه په زمکه کښ ناحقه تکبر کوی، او که دوی هر قسم نښې ووینې نو دوی په هغې باندې ایمان نه راوړی. او که دوئ ته د هدایت نیغه لار ښکاره شي نو دوی هغې لره خپله لارنه ګرځوی اوکه دوی ته د ګمراهۍ لار ښکاره شي نو دوی هغې لره خپله طریقه ګرځوی.دا هرڅه ځکه دي چه دوی ځمونږ نښې دروغژن کړې او دي نه بالکل بې پرواه شو.او کومو خلقو چه ځمونږ نښو لره او د آخرت ملاقات لره دروغژن کړې دي د هغوی اعمال تباه شوی دی دوی ته چه کومه بدله به ورکولې شي هغه د بل څه څیز نه ده، هم د هغه اعمالو به وي کوم چه دوی کړي وو اودموسٰی عليه السلام قوم دهغه د تلونه وروستو دخپلو کالو نه یوسخې جوړ کړو(سخې څه وو؟)د یو بې ساه څیزنه د ښوا پشان آواز راوتلو آیا دوئ دومره هم اونه کتل چه دې نه دوی سره خبرې کولې شي اونه دوی ته څه لارښودلې شی؟(خو)هغه لره ئې معبود جوړ کړو او(خپله خپلو ځانونو دپاره) ظالمان جوړ شو او چه کله دوی په خپلو کړو باندې پښیمانه شو ، او پوهه شو چه دوی ګمراه شوي دي نو دوی ووئیل چه: که چرې الله په مونږ رحم ونکړو او مونږ ته ئې بخښنه ونکړه نو یقینًا مونږ به تباه شو.او چه کله موسٰی عليه السلام په غصه او خفګان کښ خپل قوم ته واپس راغلو نو هغه ووئیل چه:تاسو ما نه وروستو څومره بده نمائندګی کړې ده ! آیا تاسو دومره تلوار اوکړه چه د خپل رب حکم ته مو هم انتظار ونکړو.او (دا ئې ووئیلې او) هغوی هغه تختۍ وغورځولې اودخپل ورور (هارون عليه السلام)سر ئې ونیولو اوهغه ئې خپل طرف ته راښکلو.هغه ووئیل چه: اې ځما د مور ځویه! یقین وکړه چه دې خلقو زهٔ کمزورې ګڼړلې ووم.او نزدې وه چه څه ئې وژلې ووم. اوس ته ماباندې دښمن ته د خوشحالولو موقع مه ورکوه او مالره ددغه ظالمانو نه مه ګرځوه. موسٰی عليه السلام ووئیل :اې ځما پروردګاره ! ماته او ځما ورور ته بخښنه وکړه او مونږ خپل رحمت کښ داخل کړه.او ته دټولو رحم کوونکو نه زیات رحم کوونکې ئې.

### خلاصه تفسیر

[اوس د اطاعت د ترغیب نه پس د ترهیب مخالفت دپاره ارشاد دې چه] ﴿ سَاَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ﴾ زه داسې خلق د خپلو احکامو نه اړولې ساتمه چه په دنیا کښې [داحکامو منلو نه] کبر کوي چه ددې دوي ته هیڅ حق حاصل نه دې [ځکه چه خپل ځان ته لوئې ونیل حق دهغه چا دې چه هغه واقعي لوئې وې او هغه یو د الله ﷻ ذات دې] ﴿ وَاِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ﴾ او [اوریدو په دوي باندې دا اثر وي چه] که دټولې [دنیا] نښې [هم] اوګوري نوبیا هم [د ډیرزیات بې رحمۍ نه به] په دې ایمان نه راوړي ﴿ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ﴾ او که د هدایت لار اوګوری نو دا خپله طریقه نه جوړوي اوکه دګمراهۍ لار اوګوري نودا هم خپله طریقه جوړه کړي [یعني دحق نه قبلولو په وجې سره بیا زړه سختیږي او دا اوریدل تر دې حده اورسي] ﴿ وَاِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ۚ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ﴾ دا [ددې درجې اوریدل ددې وجې دي چه دوي زمونږ آیتونه [دتکبر په وجې سره] په دروغه ګڼړلي وو او ددې [په حقیقت کښې دغورکولونه] غافله پاتې شو [دا سزا خویه دنیا کښې شوه چه دهدایت نه محروم پاتې شو] ﴿ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ﴾ او

[آخرت کښې به دا سزا وي چه] دا خلق چه کومو زمونږ آیتونه اود قیامت راپېښیدل په دروغه ګنړلي وو یا ددوي ټول کارونه [چه دهغې نه ددوي د نفعې توقع وه] تباه شو [او ددې عاقبت انجام جهنم دې] ﴿هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ دوي ته به هغه سزا ورکولې شي چه څه دوي کول. ﴿وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ مِن بَعْدِهِ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ﴾او [کله چه موسی ﷺ کوه طور ته دتورات راوړلو دپاره تشریف یوړو نو] دموسی ﷺ قوم [یعني بني اسرائیلو] دده د [تلو] نه پس خپل [اخستلې شوي]د سرو زرو [چه کوم ئې د قبطیانونه دمصر نه دوتلو په وخت کښې د واده په بهانه غوښتلي وو] یو څخئ [ئې ترې جوړ کړو چه دهغې قصه په سورت طه کښې ده.هغه معبود] جوړ کړوچه [صرف دومره حقیت په کښې وو چه [صرف یو قالب ووچه د هغې یو آواز وو [په دې کښې څه کمال نه وو.چه دې سره یو عاقل ته ددې دمعبودیت شك پیدا شي] ﴿أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا﴾ آیا دوي اونه کتل چه [په دې کښې خودسرې برابر هم قدرت نه وو چنانچه] هغه هغه دوي سره خبره قدرې نه کوله اونه به ئې دوي ته [ددنیا یادین] څه لار ښودله [اود الله ﷻ پشان صفات به ده کښې څه وو غرض دا چه] ﴿اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ﴾ دا [څخئ] هغوي خپل معبود جوړ کړو او [چونکه په دې کښې اصلاً څه د شکه وجه نه وه ددې وجې هغوي] ډیر بې ډبه کاراوکړو او وؤ دوئ ظالمان ﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ وَرَأَوْا أَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوا﴾ او [دموسی ﷺ دراتللونه پس چه هغې قصه مخکښې رازي دده په تنبیه کولو سره] کله چه متنبه شول او په دې خپل حرکت باندې [شرمنده شول او]معلومه شوه چه واقعي دغه خلق په ګمراهئ کښې پریوتل نو [د ندامت په طور ئې معذرت اوکړو] ﴿قَالُوا لَئِن لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ اووې وئیل چه که زمونږ رب په مونږ رحم اونکړي او زمونږ [دا] ګناه معاف نکړي نو مونږ دحده تیرشوی یو [چنانچه په یو خاص طریقه دوي ته دا توبې حکم اوشو چه ددې قصه په سورت بقره کښې په آیت ﴿فاقتلوا انفسکم﴾ کښې تیره شوې ده.

﴿وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا﴾ او [د موسی ﷺ دمتنبه کولو قصه داسې اوشوه چه] کله موسی ﷺ خپل قوم ته [دکوه طور نه] واپس شو په غصه کښې خفګان او [څکه چه هغه ته په وحي سره معلوم شوي وو [په طه کښې دي ﴿ قال فانا قد فتنا الخ﴾ ﴿قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُونِي مِن بَعْدِي﴾ نو [اول قوم طرف ته متوجه شو] وې فرمائیل چه تاسو زما د تلونه پس دانامعقوله حرکت اوکړو ﴿أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ﴾ آیا درب د حکم د [دراتلو] نه مخکښې تاسو [داسې] تلوار اوکړه [زه خو داحکامو راوړلو دپاره تلې اوومه ددې انتظار خویه مو کړې وې] ﴿وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُ إِلَيْهِ﴾ او [بیا حضرت هارون ﷺ طرف ته متوجه شو او ددیني حمیت په جوش کښې ئې] دتیزئې نه [دتورات] تختې [خوئې] یو طرف ته کښیخودلې [او په تیزئ کښې داسې په زور سره ئې کښیخودلې چه که کتوونکو غور اونکړي نو شك کیږي چه لکه غوزارې کړئې ئې وي] او [لاسونه ئې خالي کړل] اود خپل ورور [هارون ﷺ] سر [یعني وېښته] ئې اونیول او خان ته ئې راښکل [چه تا ﷺ ولې پوره انتظام اونکړو اوچونکه د غضب په غلبه کښې دا یو قسم بې اختیاری ترې اوشوه اودا غصه ددین دپاره وه.ددې وجې بې اختیاریئ ته ښه اووئیلې شو او په اجتهادي غلطئ به اعتراض نشي کولې] ﴿قَالَ ابْنَ أُمَّ إِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا يَقْتُلُونَنِي﴾ هارون ﷺ اووئیل چه ائې زما دمور خویه [اوروه ما خو خپل کوشش اوکړو ډیر زیات لیکن] دې خلقو زه بې حقیقته اوګنړم او [بلکه په نصیحت کولو باندې] نزدې

وه چه څه ئې قتل کړې وې ﴿فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْأَعْدَاءَ وَلَا تَجْعَلْنِي مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾ نو ته ﷺ په ما [سختي مه کوه] چه دښمنان راپورې اوخاندې او ما [سره په معامله کولو] کښې ددې ظالمانو په صف کښې مې مه شمیره [چه ددوی پشان زما نه هم خفه شې] ﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَأَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ وَأَنْتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ﴾ موسى ﷺ [دالله ﷻ نه دعا اوکړه او] وې وئیل چه ائې زما ربه زما خطا [اګر چه هغه اجتهادي وه] معاف کړه او زما د ورور هم [خطا چه دده نه ددې مشرکانو سره شاید ترې نه د معامله کښې شوې وي لکه چه څنګه ددې قول نه معلومیږي ﴿ مامنعك اذرايتهم ضلوا ان لا تتبعن الايه﴾. اوموږ دواړه په خپل [خاص] رحمت کښې داخل کړه او ته ﷻ زیات رحم کوونکې ئې] ددې وجې موږ ته ددعا د قبلیدو امید دې].

## معارف او مسائل

ړومبی آیت مبارك کښې ئې داسې اوفرمائیل چې زه به واړوم دخپلو آیتونومبارکو نه هغه خلق چې لوئې جوړیږی په زمکه کښې په ناحقه. دلته پا ناحقه سره دې خبرې ته اشاره ده چې د تکبر کوؤنکو په مقابله کښې تکبر کول په حقه دی چې ناکاره او دګناه خبره نه ده. ولې چې د شکل په اعتبار سره هغه تکبر وی خو د حقیقت په اعتبار سره تکبر نه وی لکه چې مشهوره خبره ده :﴿التکبرمع المتکبرین تواضع﴾ [مسائل السلوك].

**تکبر انسان د کاملې پوهې او د الله ﷻ دحکمونو نه بې نصیبه شوی:** تکبر کوؤنکی دخپلو آیتونو نه د اړولو دامطلب لرې چې داسې خلقو دپاره د الله ﷻ په آیتونو باندې د پوهیدو او ترې نه د فائدې پورته کولو نه بې نصیبه کولې شی اوددې توفیق ترې اخستې شی . دلته د الهی آیتونو نه مراد د آسمانی کتابونو آیتونه هم کیدې شی او تکوینی آیتونه ترې هم مراد اخستې شی چې د ټولې دنیا په مخلوقات او زمکې آسمانونو کښې خواره دی. په دې بنا د آیت مبارك د مضمون خلاصه دا شوه چې خپل ځان غټ او زیات غوره ګنړل داسې یوناکاره او سپیره خوئې دې چې لرونکې ئې دپوره عقل او پوهې خاوند نه وې، داسې کس د الله ﷻ په آیتونو باندې د پوهیدو نه بې نصیبه وی نه دا توفیق لرې چې په قرآنی آیتونو باندې په صحیح ډول پوهه شی او نه په آیتونو د قدرت کښې په غور فکر کولو او د الله ﷻ د معرفت په حاصلولو کښې د هغه ذهن چلیدې شی.

روح البیان کښې لیکلی چې دې نه معلومیږی چې تکبر او لوئی کول داسې یو خراب او ناکاره عادت دې چې الهی عملونو کښې بندیز جوړیږی څکه چې دا یوازې د الله ﷻ په رحمت سره حاصلیږی او د رحمت الهی تواضع او خاکسارئ ته مخه لری[۱] ، لکه مولانا رومی فرمائیلی دی چې:

هر کجا پستی است آب آنجا رود  هر کجا مشکل جواب آنجا رود

**ترجمه:** هرچرته چې زمکه ښکته وی او به هلته ورځی، اوهرځائې چې مشکل وی چواب هلته ځی.

په ړومبو دوؤ آیتونو کښې دا مضمون بیان شوې دې ، دې پسې د موسی ﷺ او بنی اسرائیلو پاتې قیصه داسې بیان شوې ده.

---

[۱]) روح البیان تحت هذه الآیة: ج۱، ص ۲۲۲

موسیٰ ﷺ په کوه طور باندې د تورات حاصلولو دپاره په اعتکاف کښې شو ، دغې چیلې دپاره ورته د الله ﷻ د طرفنه په اول کښې د دیرشو شپو د تیرولو حکم شوې وو ، هر کله چې الله ﷻ ورته د خپل حکمت په بنا د نورو لسو شپو تیرولو حکم ورکړو ، نو اسرائیلی قوم چې په تلوار کولو اوپه کوږ تګ باندې عادت وو دغه وخت یې هم ګډې وډې خبرې کول شروع کړل.
بنی اسرائیلو کښې سامری نومې یو سړې وو د دوئ یو مشر ګڼړلې شو. خو عقیده ئې کچه وه. دۀ ته موقعه په ګوتو ورغله ، بنی اسرائیلو ته ئې اووئیل چې کوم کالی یعنی زیورات درسره دفرعونیانو پاتې شوی دی هغوئ ته چونکه واپس ځکه نشی ورکړیدئ چې هغوئ خو غرق شو ، او پخپله استعمالول ئې تاسو دپاره هم حلال ځکه نه دی چې د کافرانو نه د جنګ په موقعه حاصل کړې مال غنیمت هم مسلمانانو دپاره جائز نه دې.
خلقو دۀ په وینا د فرعونیانو ټول هغه کالی چې په سوال ئې ترې غوښتی وو ، سامری سره ئې جمع کړل. په دې کښې څه د سرو زرو وو او څۀ د سپینو زرو. سامری دا ټول ویلې کړل او هغې نه د څخې یو شکل جوړ کړو او په دې کښې ئې هغه بناؤره واچوله چې کومه دۀ د جبرائیل ﷺ د آس د خپو د لاندې نه راخستې وه او هغه یې خان سره ساتلې وه. ددې په وجه دغه څخی نه د غوا پشان آواز راختل شروع شو څنګه چې د ﴿عِجْلًا﴾ په تفسیر کښې دلته په ﴿جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ﴾ فرمائیلو سره ورته اشاره شوې ده.
دسامری دا حیرانوؤنکې ټوټکه چې دخلقو مخې ته راغله ، بنی اسرائیلو ته ئې ددې کفر او شرك بلنه ورکړه چې موسیٰ ﷺ الله ﷻ سره خبر وکولو دپاره کوه طور ته په تلو کښې غلطی کړې ده. ولې چې الله ﷻ پخپله دلته راغلې دې.[معاذالله].
بنی اسرائیلو به ړومبې هم ددۀ خبره منله چې دا حیرانوؤنکې ټوټکه ئې ترې اولیده نو یقین ئې پرې راغلو نور هم مضبوط شو ، خلقو ددۀ په وینادغه څخې خدائ اوګڼړلو اودهغې عبادت ئې شروع کړو.نو په دریم آیت کښې دا مضمون په لنډو راخستې شوې دې او په بل ځائې کښې ددینه په زیات تفصیل سره ذکر دی.
څلورم آیت مبارك کښې د موسیٰ ﷺ د زورنې نه پس د بنی اسرائیلو د پښیمانتیا اودتوبې کولو بیان راغلې دې ، په دې آیت مبارك کښې د ﴿سُقِطَ فِيٓ أَيۡدِيهِمۡ﴾ معنی د عربی محاورې مطابق پښیمانه کیدل او شرمنده کیدل دی.
پنځم آیت مبارك کښې ددې واقعې تفصیل داسې بیان شوې دې چې هر کله موسیٰ ﷺ کوه طور نه واپس راغلل او ځان سره ئې تورات هم راوړلو ، موسیٰ ﷺ چې کله خپل قوم د څخی په عبادت کولو اولیدو نو ډیر زیات غصه شو. اګر چې ددې ګمراهئ خبر ورته الله ﷻ په کوه طور کښې مخکښې نه ورکړې وو. خو د آوریدو او لیدو مینځ کښې فرق وو.
چې کله یې د اخلق اولیدل چې د څخی عبادت کوی نو غصه یې انتها ته اورسیده اول ئې خپل قوم ته مخ کړو او ورته ئې اوفرمائیل چې : ﴿بِئۡسَمَا خَلَفۡتُمُونِي مِنۢ بَعۡدِيٓۖ﴾ تاسو زما د تلو نه پس ډیرغلط کار کړې دې] یعنی د الله ﷻ د کتاب ،تورات راتلو انتظار خو به تاسو کړې وې کنه. تاسو ولې په تادئ سره ګمراهی اختیار کړه ؟
ځینې مفسرینو ددې جملې دا مطلب خودلې دې چې په تلوار کولو سره دا طې کړې وه چې ځما مرګ راغلیدې بیا ئې هارون ﷺ ته مخ راؤګرزولو او ورته ئې اوفرمائیل چې هرکله څه تلم

نو ته مې خپل خليفه مقرر كړې نه وې څه؟ تا دا خلق ولې د ګمراه نه منع نه كړل؟ دۀ ته ئې د لاس وراچولو په غرض خپل لاس اوزګارولو دپاره دتورات تختې په تادئ سره كيخودلې لكه قرآن عظيم الشان فرمائي چې:

﴿وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ﴾ [اودتورات تختې ئې اوغورزولې] ليكن داسې كول هر كله چې لويه ګناه ده او پيغمبران ﷺ د هر قسم ګناهونو نه پاك دي نو د آيت مبارك نه به مراد دا وي چې اصل مطلب ئې د هارون ﷺ د نيولو دپاره خپل لاس مبارك اوزګارول وو. خو هر كله چې دغصې په حالت كښې ئې په تلوار سره كيخودې نو كتونكو ته داسې ښكاره شوه چې هغه ئې ګنې اوغورزولې. دې ته قرآن عظيم الشان د خبردارئ په ډول د غورزولو په لفظ سره تعبير كړې دې. [بيان القرآن].

بيا موسى ﷺ د هارون ﷺ دسر ويښته اونيول اوهغه ئې راښكل. ددې مطلب هارون ﷺ ته ددې خبرې زورنه وركول وو چې دوئ ﷺ زما نه پس زما قائمقامى په ښۀ طريقې سره اونه كړه. بلكه په دې كښې ترې كوتاهي اوشوه. هارون ﷺ ورته اووئيل چې زما قصور څكه نشته چې قوم زما په خبره غوږ نه دې ګرولې او نه ئې زما خبره آوريدلې ده بلكه زما په خبره راته دومره تيار شوى وو چې زما وژلو ته تيار وو. نو تاسو ماسره داسې سلوك مه كوئى چې پدې سره زما دښمنان خوشحاله شي. او ما ددې ګمراهانو مرستيال مه ګڼړئى.

دې سره د موسى ﷺ غصه ختمه شوه او الله ﷻ نه ئې دعا اوكړه چې: ﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَأَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ﴾ [موسى ﷺ اووئيل ائې ربه! ما ته بخشش اوكړه او زما رور ته هم بخشش اوكړه اوموږ خپل رحمت كښې داخل كړې اوته د ټولو نه زيات رحم كونكې يې]

په دې مقام رور دپاره دبخښنې دعا غوښتل په دې بنا هم كيدې شي چې قوم لره د ګمراهئ نه په منع كولو كښې شايد ده ﷺ څه كوتاهي شوې وي. او خپل ځان دپاره ئې د بخښنې غوښتلو يو وجه دا هم كيدې شي چې په تادئ سره ئې د تورات تختې ايخودې وې كوم نه چې قرآن عظيم الشان په غورزلو سره تعبير كړې دې او په دې غلطئ سره خبردارې وركړې شوې دې په هغه باندې مغفرت طلب كول مقصود وؤ، بله وجه دا ده چې ځان شاملول هم څكه پكار دي چې دعا ته ددۀ محتاجي هم ښكاره شي.

| إِنَّ الَّذِينَ | اتَّخَذُوا | الْعِجْلَ | سَيَنَالُهُمْ | غَضَبٌ |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه هغه كسان | چې نيولې ئې دې | سخي | زر به اورسيږي هغوئ ته | غضب |
| چا چې څخې معبود جوړ كړې دې | هغوئ به ډيرزر دالله ﷻ په غضب كښې ګرفتارشي | | | |

| مِّن رَّبِّهِمْ | وَذِلَّةٌ | فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۚ | وَكَذَٰلِكَ | نَجْزِي | الْمُفْتَرِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| درب دهغوئ نه | اوذلت | په ژوند ددنيا كښې | اودارنګې | بدله وركوو موږ | دروغ جوړونكوته |
| او ددنيا په ژوند كښې به ذليل شي ........ | اوموږ په الله باندې دروغ تړونكو ته هم دغه شان سزا وركوو | | | | |

| وَالَّذِينَ | عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ | ثُمَّ | تَابُوا | مِن بَعْدِهَا | وَآمَنُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه كسان | چې اوكړې بد عمل | بيا | توبه اوباسي | روستو دهغې نه | اوايمان راوړې |
| اوچاچې عملونه اوكړل بد | بيا د هغې نه پس ئې توبه اوويستله | ............ | اوايمان ئې راوړو | | |

إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعۡدِهَا لَغَفُورٞ رَّحِيمٞ ۝ وَلَمَّا

بیشکه رب ستا | روستو دهغه توبې نه | خامخابښونکې دی | رحم کونکې دی | اوهرکله چې |

نوبیشکه ستارب روستو دهغې نه بخښونکې مهربان دی | ..........اوهرکله چې

سَكَتَ عَن مُّوسَى ٱلۡغَضَبُ أَخَذَ ٱلۡأَلۡوَاحَۖ وَفِي نُسۡخَتِهَا هُدٗى

سړه شوه | د موسی نه | غصه | نو راواخلې غستلې تختئ | اوپه لیك تختوکښې | هدایت

دموسی ﷺ غصه سړه شوه | نوتختئ ئې راوچتې کړې | اودهغې په مضامینو کښې د هغه کسانو

وَرَحۡمَةٞ لِّلَّذِينَ هُمۡ لِرَبِّهِمۡ يَرۡهَبُونَ ۝ وَٱخۡتَارَ

اورحمت وو | دپاره دهغه کسانو | اوچې هغوئ | درب خپل نه | یریږی | اوخوښ کړل

دپاره هدایت او رحمت وو کوم چې دخپل رب نه ویریدل | ............... او خوښ کړل

مُوسَىٰ قَوۡمَهُۥ سَبۡعِينَ رَجُلٗا لِّمِيقَٰتِنَاۖ فَلَمَّآ

موسی | دقوم خپل نه | اویا | اتنه سړی | دپاره دمقررشوی وخت زمونږه | پس کله هر چې |

موسی ﷺ د خپل قوم نه اویاکسان | چې زمونږ مقرري [نیتې] ته راشي | .............بیا چې کله

أَخَذَتۡهُمُ ٱلرَّجۡفَةُ قَالَ رَبِّ لَوۡ شِئۡتَ أَهۡلَكۡتَهُم

اونیول هغوئ | زلزلې | اووئیل هغه | اے ربه زما | که خوښه وه ستا | نوهلاك کړی به وو تا دوئ

هغوئ باندې زلزله راغله | نوموسی ﷺ اووئیل چې ائې زماربه! که تاغوښتلې | نودوئ

مِّن قَبۡلُ وَإِيَّٰيَۖ أَتُهۡلِكُنَا بِمَا فَعَلَ ٱلسُّفَهَآءُ

مخکښې ددې نه | اوخاص زه هم | آیاته هلاکوې مونږه | په هغه کار | چې کړیدې | بوخوبې وقوفانو

اوزه به دې وراندې هلاک کړی وو | آیا مونږ تول په هغه [جرم] هلاکوې | چې دیوځوکم عقلودلاسه شوې دې

مِنَّآۖ إِنۡ هِيَ إِلَّا فِتۡنَتُكَ تُضِلُّ بِهَا مَن تَشَآءُ

زمونږه | نه دې داکار | مګردې یوآزمیښت ستا | ګمراهه کوې ته | په دې سره | هغه ځوك | چې غواړې ته

داخو صرف ستا یو امتحان وو | .............چې ځوك دې خوښ شی نو هغه ګمراه کوې

وَتَهۡدِي مَن تَشَآءُۖ أَنتَ وَلِيُّنَا فَٱغۡفِرۡ لَنَا

اوهدایت کوې ته | هغه چاته | چې غواړې ته | ته ئې | سرپرست زمونږ | نو ببښنه اوکړه | مونږ ته |

اوچې ځوك دې خوښ شی نو هغه ته هدایت کوې | زمونږ سرپرست خوته یې | نومونږ معاف کړه

وَٱرۡحَمۡنَاۖ وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡغَٰفِرِينَ ۝ وَٱكۡتُبۡ لَنَا

اورحم اوکړه په مونږ باندې | اوته | بهتره | ببښونکې ئې | اواولیکه | دپاره زمونږه |

او په مونږ باندې رحم اوکړه | بیشکه ته تولونه زیات معافی کونکې یې | اوزمونږ دپاره په دې

فِي هَٰذِهِ ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗ وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ إِنَّا هُدۡنَآ إِلَيۡكَۚ قَالَ

په دې دنیا کښې | نیکی | اوپه آخرت کښې هم | بیشکه | رجوع اوکړه مونږه | تاته | اووئیل الله

دنیا کښې هم نیکی اوپه آخرت کښې هم اولیکه | مونږ تاته رجوع کړې ده | الله ﷻ ورته جواب کښې اووئیل

عَذَابِیٓ اُصِیبُ بِهٖ مَنْ اَشَآءُ ۚ وَرَحْمَتِیْ وَسِعَتْ

عذاب زما | رسوم زه | دغه عذاب | هغه چاته | چې غواړم | اورحمت زما | خوردې

چې دعذاب حال مې دا دې | چې چاته ئې اوغواړم | نو هغه ته ئې ورکوم | اوزمارحمت هر یو

كُلَّ شَیْءٍ ؕ فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِیْنَ یَتَّقُوْنَ

په هرڅیزباندې | پس زرده چې اولیکم زه دارحمت | دپاره دهغه کسانو | چې ځان ساتي دنافرمانۍ نه

څیز ته شامل دې | .........اوهغه به زه دهغې چا دپاره اولیکم | چې د ګناهونو نه ځان ساتي

وَیُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَالَّذِیْنَ هُمْ بِاٰیٰتِنَا یُؤْمِنُوْنَ ۚ

اوورکوئ | زکاة | اوهغه کسان | چې هغوئ | په آیتونو زمونږه | ایمان راوړي |

اوزکواة ورکوی|اوداسې خلق چې زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړی

## آسان ترجمه قرآن

(الله ووئیل) کومو خلقو چه سخې لره په خدایۍ نیولې وو، هغوی باندې به ډیر زر دهغوی د رب د طرف نه غضب او د دنیا په ژوند کښې ذلت نازل شي او کوم خلق چه دروغ جوړوی. هغوی ته مونږ داسې سزا ورکوؤ. او کوم خلق چه بد کارونه کوی، بیا دهغې نه وروستو توبه اوباسي او ایمان راوړي نو ستا رب ددې توبې نه وروستو (د دوی د پاره) ډیر بخونکې، ډیر مهربانه دې او کله چه د موسیٰ علیه السلام غصه سړه شوه نو هغه تختې ئې راواخستې، او هغې کښې چه کومې خبرې لیکلې وې هغې کښې د هغه خلقو د پاره هدایت او رحمت وو کوم چه د خپل رب نه ویریږی. او موسیٰ علیه السلام د خپل قوم نه اویا کسان منتخب کړل، دې د پاره چه دوی څمونږ ټاکلې وخت باندې (کوه طور) ته راشي بیا چه کله دوی لره زلزلې اونیول نو موسیٰ علیه السلام ووئیل: اې څما پروردګاره! که تا غوښتلې نو څه او دوی به دې مخکښې هلاک کړي وو، آیا مونږ کښې د څو بې وقوفو د حرکت د وجې نه ته مونږ ټول هلاکوی؟ (ظاهره خبره دا چه نه، نو معلومه شوه چه) دا واقعه ستا د طرف نه صرف یو امتحان دې چه ددې په ذریعه چه ته چا ته وغواړې نو ګمراه کوې او چه چا ته وغواړې نو هدایت ورکوی، هم ته څمونږ نګهبان ئې، نو مونږ معاف کړه او په مونږ رحم وکړه بې شکه ته د ټولو معافي کونکو نه بهتر معاف کونکې ئې او مونږ لره دې دنیا کښې هم نیکي اولیکې او آخرت کښې هم، مونږ (دې غرض د پاره) تا ته رجوع کوؤ. الله ووئیل: چه خپل عذاب خو څه په هغه چا نازلوم په چا چه وغواړم. او هرچه څما رحمت دې نو هغه هر یو شي ته رسیدلې دې پس دا رحمت به هغه چا د پاره (مکمل) لیکم چه تقویٰ اختیار کړي، او زکوٰة ادا کړی او څمونږ په آیتونو ایمان راوړي.

## خلاصه تفسیر

[بیا الله ﷻ ددې څخی عبادت کوونکومتعلق موسی ﷺ ته اوفرمائیل چه] ﴿ اِنَّ الَّذِیْنَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ ﴾ کومو خلقو د څخی عبادت کړې دې [که اوس هم توبه اونه باسي نو] ﴿ سَیَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ؕ ﴾ په دوي به ددوي درب د طرفه ډیر زر غضب او ذلت په دې دنیا وي ژوند کښې راپریوزي او [څه دهغوي خاص والئ نشته دې] ﴿ وَكَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُفْتَرِیْنَ ۝ ﴾ مونږ خو تور پورې کوونکو ته هم داسې سزا ورکوؤ [چه په دنیا کښې غضب کړې شوی او ذلیله شي

اگر چه په څه وجه ددې ذلت په چا باندې ظاهريدل نه وي يا په كښې روستووالئ اوشي.چنانچه سامري دا چه توبه اونه ويستله نوپه هغه دغضب او ذلت نزول اوشوچه د هغه قصه په طه كښې ده. ﴿ قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ أَنْ تَقُولَ لَا مِسَاسَ الايه﴾(۱). ﴿وَالَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ﴾اوچه كومو خلقو دگناه كارونه اوكړل [لكه دوي دڅښني عبادت اوكړو خو] ﴿ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِهَا وَاٰمَنُوْٓا ﴾ بيا هغوي ددې [گناهونو] د [كولو] نه پس توبه اوباسي او [دا كفر پريږدي] ايمان راوړي . ﴿ إِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ ستارب ددې توبې نه پس [ددوي] دگناهونو معاف كولو والا دې [او ددوي په حال باندې] رحم كولو والا دې [اگر چه د توبې نه پس د ﴿فاقتلو انفسكم﴾ حكم هم اوشو ځكه چه رحمت د آخرت دې.چنانچه د توبه كوونكو خطاگانې داشان معاف شوې] ﴿وَلَمَّا سَكَتَ عَنْ مُّوْسَى الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ ۖ ﴾اوچه كله[دهارون ﷺ دامعذرت ئې واوريدلونو]دموسى ﷺ غصه سره شوه او هغه تختې ئې اوچتې كړې ﴿ وَفِيْ نُسْخَتِهَا هُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلَّذِيْنَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُوْنَ ﴾ او ددې [تختو] په مضمونو كښې ددې خلقو دپاره چه دخپل رب نه ويريږي هدايت او رحمت دې[مراد ترې احكام دي چه په دې باندې په عمل كولوسره موصوف بهدايت او موعود برحمت كيږي].
﴿ وَاخْتَارَ مُوْسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا ۚ ﴾او [كله چه د څښني دعبادت كوونكو قصه ختمه شوه نو موسى ﷺ په اطمينان سره د تورات احكام واورول.شكونه اوشبهات راويستل ددې خلقو عادت وو، چنانچه په دې يې هم شبه راوويستله چه مونږ ته به څنگه معلوم وي چه دا د الله ﷻ احكامات دي.كه مونږ ته الله ﷻ پخپله اوفرمائي نو صحيح ده يقين به اوكړو.دوي ﷺ الله ﷻ ته درخواست اوكړو دهغه ځائې نه حكم راغلو چه ددوي نه څه خلق چه كوم دوي معتبر گڼرې منتخب كړه اوكوه طور ته ئې راوله.مونږ به پخپله دوي ته اووايو چه دا زمونږ احكام دي.او ددې راوستلو دپاره يو وخت مقرر شو ځكه] موسى ﷺ اويا كسان دخپل قوم نه زمونږ په مقرر وخت باندې [د راوستلو] دپاره منتخب كړل [چنانچه هغه ځائې ته چه اورسيدل او د الله ﷻ كلام ئې واوريدلو نو په دې كښې ئې هم يو نكته راو ويستله چه خدائ خبر دا څوك خبرې كوي.مونږ ته به هله يقين راشي چه الله ﷻ په ښكاره په خپلو ستر گو اووينو.لقوله تعالى ﴿ لن نومن لك حتى نري الله جهرة﴾(۲).الله ﷻ ورته ددې گستاخئ سزا وركړه.دلاندې نه پرې سخته زلزله راغله او دباندې نه پرې داسې دتندر گرزار شو چه ټول هم هلته پاتې شو] ﴿ فَلَمَّآ أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ ﴾ نو كله چه دوي ته زلزلې [وغيره] راونيول﴿ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ أَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَإِيَّايَ ۖ ﴾ نوموسى ﷺ [ويريدو چه بني اسرائيل جاهل او بدگمانه خومخكښې نه دي، دابه اوگڼرې چه چرته دې بوتلل اوپه څه طريقه دې دهغوي كار ختم كړو يعني مره دې كړل ويريدو او عرض ئې اوكړو] چه ائې زما پروردگاره [دا خوماته يقين دې چه دې خلقو ته صرف سزا وركول منظور دي.خاص هلاكول دې مقصد نه دي نو كه] تاته دا منظور وي نو مخكښې به دې دوي او زه هلاك كړي وې [ځكه په دې وخت كښې ددې بني اسرائيلو هلاكيدل زما هلاكيدل دې.نوكه تا ﷻ ته دا مقصود وي نو تا ﷻ مخكښې هم داسې كولې شو خو چه كله دې داسې اونكړل نومعلومه شوه چه ددوي هلاكت هم مقصود نه دې ځكه چه په دې سره زما هلاكت هم دې اوبدنامي هم.ستا ﷻ

۱) ترجمه: وسي فرمائيل، چه ستادپاره په ژوند کے دا سزا ده چه ته به وائې ماته څوک لاس مه راوړئ۔
۲) ترجمه: مونږ به چرې هم ستا خبره ونه منو تر دې چه مونږ الله تعالى په ښكاره اووينو۔

نه امید دې چه ما به نه بدناموې او ولې] ﴿اَتُهۡلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا﴾ ته ﷻ به مونږ ددې
څوبې وقوفو په حرکت سره به مونږ هلاکوې [چه بې وقوفي خو دې اوکړې داخلق او داسې
ګستاخي اوکړې او ورسره دبني اسرائیلو دلاسه هلاك هم زه شم.ستا نه امید دې چه ته ﷻ به
داسې نه کوې نو ثابت شو چه] ﴿اِنۡ هِیَ اِلَّا فِتۡنَتُكَ ؕ تُضِلُّ بِهَا مَنۡ تَشَآءُ وَتَهۡدِیۡ مَنۡ تَشَآءُ ؕ﴾ دا واقعه
[د[رجفه اوصاعقه]محض ستا دطرفه یو امتحان دې، په داسې امتحانونونه چه څوك ته
غوارې نو په ګمراهئ کښې اچوې [چه دالله ﷻ شکایت او ناشکري اوکړي] او څوك چه ته
غوارې په هدایت ئې قائم ساتې [چه ددې حکمتونو او مصلحتونوباندې پوهیږي.نوزه ستا په
فضل وکرم سره ستا ﷻ دحکیم کیدلو علم لرم. لهذا ددې امتحان نه مطمئن یم او] ﴿اَنۡتَ وَلِیُّنَا
فَاغۡفِرۡ لَنَا وَارۡحَمۡنَا وَاَنۡتَ خَیۡرُ الۡغٰفِرِیۡنَ ۝﴾ هم ته ﷻ زمونږ خبرلرونکی یې،په مونږ رحمت او مغفرت
اوکړه او ته ﷻ دټولو معاف کوونکونه زیات ئې [نو ددوی ګستاخئ هم معاف کړه.چنانچه هغه
خلق بالکل صحیح سلامت اودریدل. په سورت بقره کښې ددې تفصیل اوګورئې].
﴿ وَاكۡتُبۡ لَنَا فِیۡ هٰذِهِ الدُّنۡیَا حَسَنَةً ﴾ او[دې دعا سره دوې د رحمت دتفصیل دپاره دا دعا هم اوکړه
چه] زمونږ دخلقونومونه په دنیاکښې هم نیك حال اولیکه او [داشان] ﴿ وَّفِی الۡاٰخِرَةِ اِنَّا هُدۡنَاۤ اِلَیۡكَ ؕ﴾
په آخرت کښې هم [ځکه چه] مونږ ستا طرف ته[په خلوص او اطاعت سره] رجوع کوؤ [الله
تعالی د موسی ﷺ دعا قبوله کړه او] ﴿قَالَ عَذَابِیۡۤ اُصِیۡبُ بِهٖ مَنۡ اَشَآءُ ۚ﴾ وې فرمائیل چه ائې
موسی ﷺ [اول خو مطلقًا زما رحمت زما په غضب باندې غالب دې چنانچه] زه خپل عذاب
[اوغضب] خو په هغه چا باندې واقع کووم چه په چائې غوارم [اګر چه دعذاب مستحق دعذاب
هر نافرمان وي لیکن بیاهم په ټولو باندې نه واقع کیږي بلکه په دوې کښې خاص خاص خلقو
باندې واقع کووم چه دوې ډیر زیات سرکشه او بې سره وي] ﴿ وَرَحۡمَتِیۡ وَسِعَتۡ كُلَّ شَیۡءٍ ؕ﴾ او زما
رحمت [داسې عام دې چه] ټولو څیزونو باندې محیط دې [ددې باوجود چه په دوې کښې ډیر
مخلوق لکه سرکشه او بې لارې خلق ددې مستحق ندې خو په دوې باندې یو رحمت دې اګر
چه هغه په دنیا کښې سهې.نو کله چه زما رحمت دغیرمستحقینو دپاره هم عام دې]﴿فَسَاَكۡتُبُهَا
لِلَّذِیۡنَ یَتَّقُوۡنَ وَیُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ﴾ نو هغه رحمت خو دهغه خلقو په نوم خو [کامل طور سره] ضروري
ویږي [حسب وعده ددې مستحق دې په وجه دهغه چه دوئ اطاعت کوي چنانچه] الله ﷻ نه
[چه دا د منجمله زړه د عملونونه دې] او زکات ورکوي [چه د اعمال جوارح نه دې]
﴿وَالَّذِیۡنَ هُمۡ بِاٰیٰتِنَا یُؤۡمِنُوۡنَ ۝ۚ﴾ او چه زمونږ په ایتونو باندې ایمان راوړې [چه دعقائدو نه دې.
نوداسې خلق مخکښې د رحمت مستحق دې.که ته ﷺ درخواست اوکړې اوکه نه اواوس ته
ﷺ درخواست هم کوې چه .﴿ ارحمنا واكتب لنا﴾.نو مونږ زیري قبول شوې درکوؤ چه ځکه چه ته
ﷺ خوداسې ئې خوکه څوك ستا ﷺ په قوم کښې درحمت مستحق جوړیدل غوارې نو هغوي
دې داشان صفتونه اختیارکړي چه مستحق شي].

**معارف او مسائل**

دا د سورة اعراف نولسمه رکوع ده. دې کښې دهغه بنی اسرائیلو خلقو دخراب انجام بیان دې
چې چا د څخې عبادت کړې وو . او په دې کلك ولاړ وو. نو فرمائی چې په آخرت کښې به د
رب العالمین غضب وي په دې خلقو چې دې نه پس چرته هم دپناه ځائې نشته اوپه دنیا کښې
به هم ذلیله اوخوار وي.

دهغو ټناهونو څه سزا په دنیا کښې هم ملاوېږي :: څنګه چې دسامري او ملګرو ئې داحال وو چې هغوئ د ځخې دعبادت کولو نه صحیح توبه اونه کړه نو الله ﷻ په دنیا کښې خوار او ذلیله کړل، نو موسی ﷺ ورته دا حکم ورکړو چې دئ دې د ټولو خلقو نه جدا پاتې کیږي. نه چا پورې لاس لګوی او نه دې بل څوك ده ته لاس لګوی. چنانچه په دې به دې ټول عمر څناورو او خاروؤ سره پاتې کیدو. انسانانو سره یوځائې اوسیدل ئې په نصیب کښې نه وو.

د تفسیر قرطبي په حواله د قتاده ﷺ په روایت کښې راغلي دي چې الله ﷻ په دغې خلقو دا عذاب مقرر کړې وو چې ده به چاله لاس یوړویا به ده ته چا لاس یوړو نو سمدستی به دواړه تبې اونیول.[قرطبي](۱)

تفسیر روح البیان کښې راغلي دي چې ده په نسل کښې دا خاصیت تر اوسه پورې شته دې(۲).

په آخر د آیت مبارك کښې فرمائي چې:

﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ ﴿١٥٢﴾﴾[او مونږ په الله باندې دروغ تړونکو ته هم دغه شان سزا ورکوو].

سفیان بن عیینه ﷺ فرمائیلي دي چې بدعت کوؤنکي هم په الله ﷻ باندې دروغ تړونکی حسابیږي چې هم ددې سزا به ورکولې شي، [مظهري](۳).

امام مالك ﷺ ددې آیت مبارك نه په دلیل نیولو سره فرمائیلي دي چې په دین کښې د خپل طرفنه بدعتونه راویستونکي هم ددې سزا حقدار دي چې په آخرت کښې به د الله ﷻ دغضب او په دنیا کښې بهٔ د ذلت حقدار وي. [قرطبي](۴)

دویم آیت مبارك کښې دهغه خلقو حال بیان شوې دې چا چې د موسی ﷺ د خبرداره کولو نه پس د خپل دغه جرم نه توبه اوکړه او توبې دپاره چې کوم سنګین شرط د الله ﷻ د طرفنه داسې لګولې شوې وو چې دوئ دې خپل مینځ کښې سره یوبل قتل کړي هله به ئې توبه قبلیږي. هر کله چې دوئ دا حکم په ځائې راوړو، نو موسی ﷺ د الله ﷻ په دې حکم راؤغوښتل او ورته ئې اوفرمائیل چې ستاسو د ټولو توبه قبوله شوه. په دې قتل عام د وژلو شوؤ توبه قبوله شوه او پاتې خلق اوبخښلې شو. دې آیت مبارك کښې فرمائي چې څوك ناکاره کار اوکړي بیا توبه ترې اوباسي او خپل ایمان صحیح کړي یعنی د ایماني تقاضې مطابق خپل عملونه صحیح کړي نو الله ﷻ به ټول پخپل رحمت سره معاف کړې اګر چې دغه کړې کار ئې د غټې نافرمانۍ اوګناه کار وي. څکه خو انسان ته پکار دي چې ګناه ترې اوشي نو زر تر زره دې توبه اوباسي.

دریم آیت مبارك کښې ددې بیان دې چې هر کله د موسی ﷺ غصه ختمه شوه نو زر زر ئې د تورات تختې بیا راپورته کړې. دې تختو کښې د الله ﷻ نه د ویریدونکو دپاره هدایت او رحمت وو.

﴿نسخه﴾ لفظ د هغې تحریر دپاره استعمالیږي چې د یو کتاب وغیره نه نقل کړې شوې وي،

(۱) تفسیر القرطبي سورة طه آیت: ۹۷، ج ۱۱، ص ۲۲۰، ۲۲۱
(۲) روح البیان تحت هٰذه الآیة: ج ۱، ص ۷۷۷
(۳) التفسیر المظهري تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۴۱۳
(۴) تفسیر القرطبي سورة طه آیت: ۹۷، ج ۱۱، ص ۲۲۱

په ځینې روایتونو کښې راغلي دي چې کله موسی ﷺ په تادئ تختې په زمکه کیخودې نو هغه ماتې شوې، بیا ورته الله ﷻ په بل ځیز لیکلې دوباره ورکړې وې ځکه ورته نسخه وائی.

**د بنی اسرائیلو د اویا کسانو انتخاب اوهغوئ هلاکیدل**:: څلورم آیت مبارك کښې یو خاص واقعه داسې بیان شوې ده چې هر کله چې موسی ﷺ بنی اسرائیلو ته تورات ورکړو نو دغې بهانه ګرو چل ولیانو کوړتلونکو اووئیل چې زمونږ یقین به ځنګه راشي چې دا د الله ﷻ کلام دې. کیدیشي چې دا تاسو د خپله ځانه لیکلې راوړې وی. د دوئ د تسلئ دپاره موسی ﷺ خپل رب ته سوال اوکړو. الله ﷻ ورته حکم اوفرمائیلو چې ددوئ نه چونړ کړی کسان کوه طور ته راوله. هلته به ورته خپل کلام په خپله واوُرومه چې ددوئ یقین پیدا شي. موسی ﷺ دوئ نه اویا کسان منتخب کړل او ځان سره کوه طور ته بوتلل. د وعدې مطابق ئې د الله ﷻ کلام پخپلو غوږونو واوُریدو، هر کله چې دا حجت په دوئ تمام شو نو وې وئیل چې مونږ ته دا نه ده معلوم چې دا آواز د الله ﷻ دې اوکه د بل چا دې؟ زمونږ به هله یقین راشي چې مونږ پخپلو سترګو الله ﷻ اووینو. دا ډیره د جهالت او ضد نه ډکه خبره وه، دالله ﷻ قهر جوش کښې راغلو او پدوئ زلزله راغله. او په دوئ باندې د پورته نه ګرزار شو. دهغې په وجه بې خوده پرې وتل چې مړهٔ شوی ښکاریدل. سورة بقره کښې دصاعقه لفظ راغلې دې او دلته د رجفة، لفظ راغلې دې. صاعقه آسمانی ګرزار ته وئیلې شي او رجفه د زمکې زلزلې ته وئیلې شي. څه لرې خبره نه ده چې دواړه قسمه عذابونه پرې یو ځائې راغلی وی.

بهر حال دوئ بیخوده شو، یا مړهٔ شوی ښکاریدل، یا حقیقت کښې مړی شوی وو، په دې موسی ﷺ ډیر خفه شو، اول پدې وجه چې په قوم کښې د سر سړی وو، بل په دې وجه چې قوم ته بهٔ ددې څه جواب ورکوی؟ قوم به ددې ټول الزام هم په ما رااوړوی. او ښکاره خبره ده چې په نتیجه کښې به ما اوژنی. په دې وجه ئې د الله ﷻ نه سوال اوکړو چې ائې زما پروردګاره! ماته معلوم دی چې ددې واقعې نه ستا مقصد ددوئ هلاکول نه دی، که داسې وې نو مخکښې ډیر واقعات داسې تیر شوی دی چې په هغې کښې د دوئ هلاکول کیدې شو، فرعون سره به یو ځائې غرق کړی شوې وو، د څخې د عبادت په موقعه به د ټولو خلقو په مخکښې هلاك کړې شوی وو. او که ستاخوښه وې نو زه به دې هم ورسره هلاك کړې وې. نو هر کله چې په هغه موقعه تا زمونږ هلاکول اونه غوښتل نو په دې موقع هم ستا زمونږ هلاکت مقصود نه دې. بلکه ددې نه ستا مقصد صرف سزا او زوروننه ده. ځکه چې دا ځنګه کیدیشي چې د څو بیوقوفانو په عمل سره ټول هلاك کړې؟ دلته موسی ﷺ دخپل ځان هلاکول ځکه ذکر کړل چې پښی شا ددغې اویا کسانو د هلاکیدو نتیجه همدغه وه چې موسی ﷺ به هم د خپل قو دلاسه هلاکیدې شو.

بیا ئې عرض اوکړو چې زه پوهیږم چې دا خالص ستا امتحان دې چې ددې په ذریعه ځینې خلق په دې شان ګمراه کوې چې د الله ﷻ نه شکایت او ناشکری ئې کوی او ځینې خلق په هدایت باندې کلك لرې په دې وجه چې هغوئ د الله ﷻ په حکمونو او مصلحتونو باندې پوهیدو سره پرې تسلی لری، زه هم ستا په فضل سره ستا د حکیم کیدو علم لرم ځکه مې په دې امتحان کښې زړه کلك دې او هم خو زمونږ خبر اخستونکې ئې مونږ ته بخښنه اوکړې او رحمت راباندې اوکړې او ته د ټولو معافی ورکوؤنکو نه زیات معافی ورکوؤنکې ئې په دې

په وجه د دوئ دا گستاخي هم معاف کړي، نو دغه ټول کسان روغ او صحيح سلامت راپورته شو.
ځینو مفسرینو فرمائیلي دي چې دغه ذکر شوي اویا کسان هغه وو چې پخپله خو د څخې په عبادت کښې شریك شوي نه وو. لیکن قوم ئې هم ددې حرکت نه منع کړې نه وو او ددې په سزا کښې په دوئ زلزله راغله. او بیهوشه شوي وو. دا هغه کسان نه دي چې د ﴿أَرِنَا اللَّهَ جَهْرَةً﴾ خواست ئې کړې وو، او په آسماني گرزار سره هلاك شوي وو. [والله اعلم]. بهر حال دوئ د موسی ﷺ په دعا سره ژوندي راپورته شو.
پنځم آیت مبارك کښې د موسی ﷺ ددې دعا تکمله دا هم ذکر شوې ده:
﴿وَاكْتُبْ لَنَا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ إِنَّا هُدْنَا إِلَيْكَ﴾ [او زمونږ دپاره په دې دنیا کښې هم نیکي اولیکه او په آخرت کښې هم مونږ تاته رجوع کړې ده].
ددې په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائیل چې:
﴿قَالَ عَذَابِي أُصِيبُ بِهِ مَنْ أَشَاءُ ۖ وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ۚ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالَّذِينَ هُم بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ﴾ [الله ﷻ ورته جواب کښې اووئیل چې د عذاب حال مې دا دې چې چاته ئې اوغواړم نو هغه ته ئې ورکوم اگر چې مستحق د عذاب هر نافرمان وي لیکن بیا هم په ټولو باندې عذاب نه واقع کیږي. بلکه په دوئ کښې په خاص خاص خلقو باندې عذاب لیږم کوم چې ډیر زیات سرکشه او متمرد وي. او زما رحمت هر یو څیز ته شامل دې او هغه به زه د هغې چا دپاره اولیکم چې د گناهونو نه ځان ساتي او زکواة ورکوي او داسې خلق زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړي].
نو دا خلق رومبي نه د رحمت حقدار دي، ځکه درته د دعا د قبلیدو زیرې درکوؤ. ددې جواب په تقریر کښې د مفسرینو حضراتو مختلف اقوال راغلي دي، ولې چې دې کښې د دعا د قبلیدو بیان په ښکاره ټکو سره نه دې ځنګه چې بل ځائې کښې داسې په صفا الفاظو سره راغلي دي چې:
﴿قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَا مُوسَىٰ﴾ [ائې موسی ﷺ ستا سوال پوره کړې شو] او بل ځائې کښې داسې په صفا الفاظو کښې راغلي دي چې: ﴿قَالَ قَدْ أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا﴾ [ائې موسی ﷺ او هارون ﷺ ستاسو د دواړو دعا مونږ قبوله کړه]
پدې بنا ځینو حضراتو ددې آیتونو مطلب دا مقرر کړې دې چې د موسی ﷺ دا خواست د خپل امت باره کښې خو قبول نه کړې شو البته د امت محمدیه په حق کښې قبول کړې شو. او ددې بیان په ښکاره راتلونکو آیتونو مبارکو کښې شوې دې. خو تفسیر روح المعاني، دې احتمال له لرې خودلې دې، په دې وجه د جواب صحیح تقریر دادې چې د موسی ﷺ د دعا دوه خبرې وې.
① یو دا چې کومو خلقو له چې عذاب او زورنه ده هغوئ دې معاف کړې شي. او په هغوئ دې رحمت اوشي. ② بله دا چې زما او زما د قوم دې د دنیا او آخرت ښیگړه مکمله اولیکلې شي.
د رومبۍ دعا جواب دې آیت مبارك کښې راغلې دې. او د دویمې دعا جواب په دویم آیت مبارك کښې راغلې دې. د رومبی آیت مبارك حاصل دادې چې زهٔ په هر گناهگار باندې عذاب نه راولم ځنګه چې مې عادت دې، بلکه یوازې په هغه چا عذاب راولم چې په هغوئ عذاب راوستل غواړم. نو دې خلقو ته به هم عذاب نه شي ورکولې تاسو بلکل بې فکره اوسئ. البته

د رحمت د خواست باره کښې وايم چې زما رحمت د هر څيز نه چاپيره دې . که هغه انسان وي او که هغه غير انسان ، مؤمن وي او که کافر ، فرمانبردار وي او که نافرمانه ، بلکه چاته چې په دنيا کښې څه عذاب او تکليف ورکولې شي ، هغه هم د رحمت نه خالي نه وي ، کم نا کم دومره خبره خو وي چې ددغې راغلي مصيبت نه په زيات مصيبت کښې راګير خو نه دې ، ولې چې الله ﷻ خو په هغې هم قدرت لرلو.

استاذ محترم مولانا انور شاه کمشيري رحمه الله فرمائيلي دي چې د رحمت د فراخئ مقصد دادې چې ددې دائره په هيڅا تنګه نه ده ، ددې معنی دا نه ده چې په هر څيز باندې رحم کيږي لکه چې ابليس ملعون وئيلي وو چې زه هم يو څيز يم او په هر څيز باندې رحم کيدل وي نو په ما باندې هم رحم کيدل دي . د قرآن کريم په الفاظو کښې دا اشاره موجود ده چې دا سې ئې نه دي فرمائيلي چې په هر څيز به رحمت کيږي بلکه داسې ئې فرمائيلي دي چې د رحمت صفت تنګ نه بلکه فراخه دې. چې په چا باندې الله ﷻ رحمت کول اوغواړي په هغه رحمت فرمائيلې شي بلکه د قرآن عظيم الشان په بل ځائې کښې ددې ګواهي داسې موجود ده :

﴿فَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ﴾ . په دې کښې ئې اوخودل چې د رحمت فراخي په مجرمانو باندې عذاب سره بې سمونه نه ده .

خلاصه دا چې موسی عليه السلام دا دعا ددغه خلقو په حق کښې بې د څه شرط نه قبوله کړې شوه يعنی د بخښنې او معافئ هم او د رحمت هم.

او بله دعا چې په کښې ددنيا او آخرت دمکملې ښيګړې دوئ دپاره د ليکلو خواست وو ، دهغې باره کښې څو شرطونه اولګولې شو. مطلب دا دې چې په دنيا کښې خو په هر مؤمن او کافر باندې رحمت عام کيدې شي مګر آخرت کښې به د ښه او بد بيلتون کولې شي. دلته به د رحمت حقدار يوازې هغه خلق وي چې څو شرطونه پوره کړي.

① اول دا چې تقوی او پرهيزګاری اختيار کړي ، يعنی ټول شرعي واجبات ادا کړي او د ناروا کارونو نه لرې پاتې شي. ② دويم دا چې دخپلو مالونونه د الله ﷻ دنوم زکوة ادا کړي.

③ دريم دا چې زمونږ په آيتونو باندې بې د څه بيلتون او تاويل نه ايمان راوړي . دا موجوده خلق هم که دا ټول صفتونه په ځان کښې پيدا کړي نو دوئ دپاره به هم ددنيا او آخرت مکمله ښيګړه اوليکلې شي . ليکن دې پسې آيت مبارك کښې ئې دې طرفته اشاره اوکړه چې دا ټول صفتون به سراسر هغه خوك حاصلوی چې دوئ نه پس به آخره زمانه کښې راځي او د نبی امی تابعداري به کوي. په نتيجه کښې به هغوئ د مکملې کاميابئ حقدار وي.

قتاده رحمه الله فرمائيلي دي چې کله آيت ﴿وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ﴾نازل شو نو ابليس اووئيل چې زهٔ په دې رحمت کښې داخل يم ، ليکن دې پسې جملو کښې اوخودل چې رحمت دآخرت پ ايمان وغيره اړه لري . ددې په آوريدو سره ابليس نااميده شو ، خو يهودو ،نصاراؤ دعوی اوکړه چې مونږ کښې دا صفتونه هم موجود دي کوم چې تقوی ايمان دې او زکوة ادا کول دي ، ليکن دې پسې چې نبی امی باندې ايمان راوړل هم دې دپاره شرط شو نو په دې وجه يهودو اونصاراؤ هم ترې اووتل کومو چې په رسول کريم ﷺ باندې ايمان راؤنه ړلو(۱).

(۱) تفسير البغوي تحت هذه الآية: ج۲، ص۲۸۷، ۲۸۸

غرض دا چې په دې عجیبه انداز کښې د موسی علیه السلام د دعا دقبلیدو بیان هم راغلو او د امت محمدیه د مخصوص فضیلتونو ذکر هم راغلو.

| |
|---|
| اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ　الرَّسُوْلَ　النَّبِیَّ　الْاُمِّیَّ　الَّذِیْ　یَجِدُوْنَهٗ |
| هغه کسان چې پیروی کوی \| ددې رسول \| چې نبی دې \| امی دې \| هغه رسول \| چې مومی هغوئ دهغه \| |
| [دارحمت] هغه څوک [بیامومی] چې ددې پیغمبرچې امی نبی دې تابعداری کوی [د چا ذکر چې دوئ خپل خان سره په |
| مَکْتُوْبًا　عِنْدَهُمْ　فِی التَّوْرٰىةِ　وَالْاِنْجِیْلِ　یَاْمُرُهُمْ |
| لیکلې شوې \| په نز خپل \| په تورات کښې \| او په انجیل کښې \| هغه حکم کوی هغوئ ته \| |
| تورات او انجیل دواړو کښې لیکلې بیامومی \| .........او هغه دوئ ته د |
| بِالْمَعْرُوْفِ　وَیَنْهٰهُمْ　عَنِ الْمُنْکَرِ　وَیُحِلُّ　لَهُمُ　الطَّیِّبٰتِ |
| په نیکئ سره \| او منع کوی هغوئ \| دبدئ نه \| او حلالوی \| دپاره دهغوئ \| پاك څیزونه |
| نیکئ حکم کوی \| او بدو کارونونه ئې منع کوی \| .........او پاکیزه څیزونه ورته حلالوی |
| وَیُحَرِّمُ　عَلَیْهِمُ　الْخَبٰٓئِثَ　وَیَضَعُ　عَنْهُمْ　اِصْرَهُمْ |
| او حراموی \| په هغوئ باندې \| ناپاك څیزونه \| اولرې کوی \| دهغوئ نه \| درانه بارونه دهغوئ |
| اوپلیت څیزونه پرې حراموی \| او ددوئ نه [دعبادتونو] درانه بوجونه لرې کوی |
| وَالْاَغْلٰلَ　الَّتِیْ　کَانَتْ　عَلَیْهِمْ ؕ　فَالَّذِیْنَ　اٰمَنُوْا　بِهٖ |
| اوبنديزونه \| هغه \| چې وو \| په هغوئ \| نو هغه کسان \| چې ایمان راوړی \| په هغه باندې |
| اوطوقونه ترې پرانیزی کوم چه په دوی باندې وو \| .........نو څوک چې ده باندې ایمان راوړی |
| وَعَزَّرُوْهُ　وَنَصَرُوْهُ　وَاتَّبَعُوا　النُّوْرَ　الَّذِیْٓ　اُنْزِلَ |
| او حمایت اوکړی دهغه \| او امداد اوکړی دهغه \| او پیروی اوکړی هغوئ \| دنور \| هغه \| چې نازل کړې شوې دې |
| اود ده [محمد] حمایت او مدد اوکړی \| او په هغه رڼا [قرآن] پسې روان شی چې هغه سره نازله شوې ده |
| مَعَهٗۤ ۙ　اُولٰٓئِکَ　هُمُ　الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۵۷﴾ |
| دهغه سره \| دا کسان چې دی \| هم دوئ \| خلاصې موندونکی دی \| |
| نو هم دغه کسان کامیاب دی \| اې پیغمبره ورته اووایه \| |

## آسان ترجمه قرآن

چه په هغه رسول یعنی نبی، امي پسې ځي چه د هغه ذکر په دوی په تورات او انجیل کښې لیکلې بیا مومي چه دوی ته به د ښو خبرو حکم کوي او د بدو خبرو نه به ئې منع کوي. او دوی د پاره به پاك څیزونه حلالوي او ګنده څیزونه به حراموي او د هغوی بوجونه او د غاړې کوم طوقونه دی هغه به لرې کړی چه کوم په دوی باندې بار شوي دي. نو کوم خلق چه دې (نبی) باندې ایمان راوړي، او د هغه عزت وکړی، د هغه مدد وکړی، او هغه ته چه کومه رڼرا راغلې ده، هغې پسې لاړ شی نو داسی خلق به کامیاب وي.

## خلاصه تفسیر

﴿ اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ ﴾ چه کوم خلق د داسې امي رسول اتباع کوي چه کوم هغوي په انجيل اوتورات کښې ليکلې پيدا کوی [چه د هغوي صفت داهم دې چه] ﴿ يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهٰىهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ ﴾ هغه دوي ته د نيکو کارونو حکم کوي او دخرابو کارونونه منع کوي ﴿ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ ﴾ او پاك څيزونه ددوي دپاره حلال ښائي [اګر چه دا په مخکښنو شريعتونوکښې حرام وو] ﴿ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ ﴾ او ناپاك څيزونه [بدستور] په دوي حراموي ﴿ وَيَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ ﴾ او په هغه خلقو چه [مخکښې شريعتونو کښې] بوج او طوق [بار] وو [يعني سخت او شديد احکام چه هغوي ئې دهغې پابند جوړ کړي وو] هغوي ئې لرې کوي [يعني داسې سخت احکام ددوي په شريعت کښې منسوخ کيږي] ﴿ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ ﴾ نو چه کوم خلق په دې نبي ايمان راوړي اودده مدد کوي اودده حمايت کوي ﴿ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴾ او دهغې نور اتباع کوي چه کوم ده سره دې [يعني قران پاك] داسې خلق پوره فلاح موندونکي دي [چه ابدي عذاب نه به نجات بيا مومي].

## معارف او مسائل

**دخاتم النبين محمد ﷺ او د محمد ﷺ د امت صفتونه** :: تير شوی آيت کښې د موسی ﷺ ددعا په جواب کښې فرمائيلې شوی وو چې هسې خو د الله ﷻ رحمت هر څيز او هر چا دپاره فراخه دې ، ستاسو ﷺ موجوده امت هم دې نه بې نصيبه نه دې ، ليکن د مکمل نعمت او رحمت حقدار به هغه خلق وی چې د ايمان تقوی او زکوة وغيره مخصوص شرطونه پوره کوی.

دې آيت مبارك کښې دهغه خلقو پته ورکړې شوې ده چې په دغې شرطونو باندې داسې پوره خيژی چې د نبی امی ﷺ تابعداری کوی ، ددې په ضمن کښې د نبی کريم ﷺ خو خصوصي فضيلتونه ، کمالات ، او نخښې هم ذکر شوې او دا اوفرمائيلې شو چې په تاسو باندې يوازې د ايمان راوړلو نه بلکه ستاسو ﷺ دتابعدارئ کولو حکم هم ورکړې شوې دې، دې نه معلومه شوه چې د آخرت دکاميابئ دپاره ايمان سره د شريعت او سنت تابعداری کول هم ضروری دی.

﴿ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ ﴾[ددې رسول چې نبی دې امی دې] دلته د رسول ، نبی د دوؤ لقبونو سره د نبی کريم ﷺ يو دريم صفت اُمّي هم بيان کړې شوې دې . د امی لفظی معنی نالوستې ده چې په ليك لوست باندې نه پوهيږی. قرآن کريم کښې د عربو عام قوم ته امیين ځکه وئيلې شی چې په دوئ کښې دلوست ، ليك ، رواج ډير کم وو ، او اُمّي کيدل د يو انسان دپاره ښه صفت نه دې ، بلکه عيب ګڼرلې شی ليکن سره ددې د نبی کريم ﷺ علومو، معارفو ، خصوصياتو ، حالاتو او کمالونو سره امی کيدل د نبی کريم ﷺ دپاره دکمال يو لوئې صفت جوړ شو يدې. ولې چې که علمی ، عملی او اخلاقی کمالونه د ليك لوست د يو خاوند نه څرګند شی هغه ددهٔ د علم او تعليم نتيجه کيدې شی ليکن يو خاص اُمّي نه داسې بيش قيمته علمونه ،بې مثله حقيقتونه اومعرفتونه څرګنديدل داسې يو ښکاره معجزه ده چې يو زيات ضدی او مخالفت او دښمن هم ترې انکار نشی کولې. خصوصا چې دعمر شريف څلويښت کاله ئې په مکه

مکرمه کښې د ټولو په مخکښې داشان تیر شو چې چا نه ئې یو حرف هم لوستلي ازده کړې نه وو هر کله چې د عمر شریف څلویښت کاله ئې پوره شو نو ناګاهان په ژبه مبارکه باندې یې هغه کلام جاري شو چې دهغې د یوې وړوکې ټکړې د مثال راوړلو نه ټوله دنیا عاجزه شوه.

پداسې حالاتو کښې د نبی کریم ﷺ امی کیدل ددې خبرې یو لوئې ثبوت دې چې نبی کریم ﷺ د الله ﷻ رسول دې او د نبی کریم ﷺ راوړلې د الله ﷻ کلام دې، په دې بنا امی کیدل اګر چې نورو دپاره یو ښه صفت نه دې مګر نبی کریم ﷺ دپاره دتعریف اوکمال یو لوئې صفت دې، لکه د متکبر لفظ چې عامو انسانانو دپاره څه ښه صفت نه دې مګر الله ﷻ دپاره په خصوصیت سر دتعریف صفت دې.

آیت مبارك کښې د نبی کریم ﷺ څلورم صفت دابیان شوېدې چې دغه خلق نبی کریم ﷺ له په تورات اوانجیل کښې لیکلې بیا مومی. په دې موقعه قرآن عظیم الشان داسې اونه فرمائیل چې د نبی کریم ﷺ صفتونه اوحالتونه به لیکلې بیا مومی بلکه د ﴿يَجِدُونَهُ﴾ لفظ ئې راوړرو، مطلب ئې دادې چې دوئ ﷺ لره لیکلې بیا مومی، دا اشاره دې خبرې ته ده چې په تورات او انجیل کښې د نبی کریم ﷺ صفتونه به په داسې تفصیل سره او وضاحت سره وی چې دهغې کتل به بالکل د نبی کریم ﷺ کتل وی. دلته په خصوصیت سره د تورات او انجیل ذکر څکه اوشو چې بنی اسرائیل هم دا دواړه آسمانی کتابونه منی اګر چې هسې خو په زبور کښې هم د نبی کریم ﷺ صفتونه موجود دی.

ددغې آیت مبارك مخاطب موسی ؑ دې چې په کښې دا خودلې شوی دی چې ددنیا او آخرت کامیابی ستاسو ﷺ په امت کښې دهغه خلقو په حصه ده چې دامی نبی ﷺ خاتم الانبیا ﷺ تابعداری کوی دکوم ذکر به چې په تورات او انجیل کښې لیکلې بیا موندې کیږی.

**تورات او انجیل کښې د رسول کریم ﷺ صفتونه او نخښې** :: موجوده تورات او انجیل کښې چې هر څومره بدلون او ګډوډې راغلې دی او ددې په وجه د اعتبار وړ نه دی پاتې شوی خو بیا هم په کښې داسې کلمات شته چې د نبی کریم ﷺ پته ورکوی او دومره خبره بالکل واضحه ده چې هر کله قرآن عظیم الشان دا اعلان اوکړو چې د خاتم الانبیاء ﷺ صفتونه او نخښې په تورات اوانجیل کښې لیکلې شوی دی، که دې خبرې واقعې سره سمون نه خوړې نو ددغې زمانې یهودو اونصاراؤ به د اسلام خلاف یو لویه وسله په لاس راختې وې.او په دې وجه به ئې قرآن کریم په دروغه بللې. او دا به ئې وئیل چې ددې نبی امی ﷺ تورات او انجیل کښې هیڅ ذکر نه دې راغلې خو ددغې وخت یهودو او نصرانیانو چې ددې خلاف هیڅ اعلان اونه کړو نو ددې خبرې مکمل ثبوت دې چې دغه وخت په تورات اوانجیل کښې د نبی کریم ﷺ صفتونه اونخښې ښه په ښکاره موجود دې چې د دغه خلقو په خلو ئې مهر اولګولو.

دخاتم الانبیاء ﷺ چې کوم صفتونه په تورات او انجیل کښې لیکلې شوی دی دهغې څه بیان قرآن عظیم الشان کښې د تورات او انجیل په حواله راغلې دې. او څه د حدیث پاك په روایتونو کښې د هغه حضراتو نه منقول دی چې چا اصلی تورات اوانجیل لیدلې وو او په هغې کښې د نبی کریم ﷺ دذکر مبارك په لوستو سره مسلمانان شوی وو.

بیهقی په دلائل النبوة کښې د انس ﷺ دافرمان نقل کړې دې چې یو یهودی هلك به د نبی کریم ﷺ خدمت کولو، هغه ناڅاپه ناجوړه شو. نبی کریم ﷺ دهغه تپوس کولو دپاره

ورغلل هلته ئې پلار د سر اړخ ته ولاړ وو ، تورات ئې ورته لوستو ، .نبی کریم ﷺ ئې پلارته اووئیل ، ستادې قسم په الله وی چا چې تورات په موسی ﷺ باندې نازل کړې دې ، آیا په تورات کښې زما حالات صفتونه او زما ښکاره کیدو بیان نه کتلی دی؟ دهغه په انکار کولو ئې دغه ځوئي اووئيل چې یارسول الله ﷺ ! دې غلط وائی ، تورات کښې مونږ ستاسو ذکر او صفتونه بیا پیدا کوؤ. زه ګواهی کوم چې د الله ﷻ نه سوا بل هیڅوک معبود نشته دی ، اوتاسو د الله ﷻ رسول یئ. پدې بنا نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته دا حکم اوکړو چې کله دا هلك وفات شی نو د دهٔ دکفن دفن انتظام تاسو اوکړئی ، دغه یهودی پلار ته ئې مه پرېږدئ .[مظهری][1].

علی ﷺ فرمائ چې د نبی کریم ﷺ په ذمه د یو یهودی قرض وو ، هغه چې د خپل قرض غوښتلو دپاره راغلو نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ماسره هیڅ نشته ، لږ مهلت راکړه، یهودی په سختئ سره مطالبه اوکړه او وې وئیل چې تر هغې به دې نه پرېږدم چې تر څو دې راته قرض نه وی راکړې. نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ستا اختیار دې زهٔ به درسره کینم.

نبی کریم ﷺ ورسره د نن ماسپخین نه تر صبا ماسپخین پورې پنځه مونځونه ادا کړل. او هم هلته ورسره ناست وو. هر کله چې صحابه کرامو ﷺ نبی کریم ﷺ اولیدلو نو خفه هم شو او په دې غصه هم ورغله. په مزه مزه ئې یهودی ویرولو او په هغه ئې غصې کولې چې نبی کریم ﷺ پرېږدی. نبی کریم ﷺ چې کله په انداز پوهه شو نو وې فرمائیل چې تاسو څه کوئی ؟ هغوئ عرض اوکړو چې مونږ داچرته برداشت کولې شو چې یو یهودی دې تاسو ﷺ قید کړې ؟نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې زما رب ددې نه زه منع کړې یم چې یو امن غوښتونکی او ذمی باندې څه ظلم اوکړم. هر کله چې یهودی دا هر څه واورېدل او دا ئې اولیدل .

هرکله چې صبا شو نو دې یهودی دا کلمه اووئیله چې ﴿اشهد ان لااله الاالله واشهد انك رسول الله﴾ اسلام ئې قبول کړو او وې وئیل چې یارسول الله ﷺ ما خپل نیم مال د الله ﷻ په لار کښې ورکړو . دهٔ قسم اوکړو چې په الله مې دې قسم وی چې دغه خبرې مې صرف ستاسو دامتحان اخستو دپاره کړې وې. تورات کښې مې ستاسو کوم صفتونه چې لوستلی وو ، کتل مې چې هغه واقعی په تاسو کښې شته او که نه .؟ ما په تورات کښې داسې لوستی دی چې :

محمد ﷺ بن عبدالله به په مکه کښې پیدا کیږی ، طیبه ته به هجرت کوی ، ملك به ئې شام وی ، سخت مزاجه به نه وی ، خبرې به سختئ نه کوی ، بازارونو کښې به شور نه کوی ، فحش او بې حیایئ نه به لرې اوسیږی. امتحان کولو سره مې اوس تاسو کښې دا صحیح اوموندل ، ځکه ګواهی کوم چې د الله ﷻ نه سوا بل څوك د عبادت لائق نشته دې او تاسو ﷺ د الله ﷻ رسول یئ . زهٔ خپل نیم مال درته پیش کوم ، ستاسو اختیار دې چې هر ځائې کښې ئې خرج کوئی . دا یهودی ډیر زیات مالدار وو چې ددهٔ نیم مال هم ډیر لوئې دولت جوړیدو. [تفسیر مظهری په حواله د دلائل النبوة بیهقی][2].

امام بغوی ﷫ خپل سند سره دکعب احبار نه نقل کړی دی چې هغوئ ﷫ به فرمائیل چې په توارت کښې د نبی کریم ﷺ باره کښې دالیکلې شوی دی چې :

---

[1]) دلائل النبوة للبيهقي، جماع أبواب أسئلة اليهود الخ، رقم الحديث: ٢٥٣٦، والتفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ٤١٧

[2]) دلائل النبوة للبيهقي، جماع أبواب أسئلة اليهود الخ، رقم الحديث: ٢٥٣٦، والتفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ٤١٧

محمد ﷺ ، د الله ﷻ رسول او غوره کړې بنده دې، نه سخت مزاج دې ، او نه بیهوده ویونکې ، په بازارونو کښې شور کوونکې نه دې ، د بدئ بدل کښې بدی نه کوی بلکه معافی اوکړې او د خلقو بد نظر انداز کوی . مکه مکرمه کښې به پیدا کیږی ، طیبه ته به هجرت کوی ، ملك بهٔ ئې شام وی ، امت بهٔ ئې حمادین وی ، یعنی په راحت او تکلیف دواړو کښې به د الله ﷻ تعریف او شکر ادا کوی . په هره لوړه باندې د ختلو په وخت به تکبر وائی ، د نمر سوری [سایه] به خکه په نظر کښې ساتی چې پخپل وخت مونځونه اوکړی ، هغه [یعنی نبی کریم ﷺ] به د خپل بدن لاندې حصه باندې لنګ استعمالوی ، خپل لاسونه پښې به د اودس په ذریعه صفا کوی ، اذان کوونکې به ئې په لوړ آواز سره اذان کوی . د جهاد د صفونه به داسې تړې چې څنګه به چې د جمع د مونځ صفونه تړی ، د شپې به د دوئ د تلاوت او ذکر آوازونه داسې کړنګیږی څنګه چې دشاتو د مچو آوازونه وی . [مظهری](۱).

ابن سعد او ابن عساکر د سهل مولی د خیثمه نه په سند سره نقل کړی دی چې سهیل اوفرمائیل چې ما پخپله په انجیل کښې د محمد ﷺ دا صفتونه وئیلی دی چې :

نبی کریم ﷺ به مندرې [لنډ قد والا] نه وی ، او نه بهٔ ډیر لوړ وی . سپین رنګې د دوؤ زلفو خاوند به وی ، د دواړو اوږو ترمینځه بهٔ ئې مهر نبوت وی ، صدقه به نه قبلوی ، په خر او اوښ به سورلی کوی . د چیلو [بزو] نه به پییئ [شیدې] پخپله لشی ، پیوند لګیدلې قمیص به اغوندی ، څوك چې داسې کوی هغه کښې تکبر نه وی ، د اسماعیل ﷺ په اولاد کښې به وی ، نوم بهٔ ئې احمد ﷺ وی(۲).

ابن سعد په طبقات کښې، دارمی پخپل مسند کښې، بیهقی په دلائل النبوة کښې د عبدالله بن سلام نه نقل کړی دی او دې د یهودو ډیر لوئې عالم وو ، او د تورات مشهور ماهر وو . هغوئ ؓ فرمائیلی دی چې په تورات کښې د نبی کریم ﷺ باره کښې دا الفاظ راغلی دی :

ائې نبی ﷺ ! مونږ ته لیږلې ئې په ټولو امتونو باندې ګواه ، نیك عمل کوونکو ته زیرې ورکوونکې ، بدعمله خلقو ډپاره ویرونکې ، د امیین حفاظت کوونکې مو جوړ کړې ، زما بنده او رسول ﷺ ئې ، ما ستاسو ﷺ نوم متوکل ایښې دې ، سخت طبیعته اوجنګ کوونکې نه ئې ، بازارونو کښې شور کوونکې بهٔ نه یئ ، د بدو بدله کښې به چاسره بد نه کوی ، بلکه معافی به کوی ، او د خلقو بد بهٔ نظر انداز کوی . الله ﷻ به ئې تر هغې وخته پورې نه وفات کوی تر څو چې ئې د غه جاهله قوم راه راست ته راوستې نه وی او هغوئ لا اله الا الله اونه وائی . او ړندې سترګې ئې کولاؤ کړی ، کاڼه غوږونه ئې د آؤریدو جوګه کړی ، او بند زړونه ئې پرانیځی(۳) . داسې یو روایت ، بخاری هم په روایت د عبدالله بن عمرو بن العاص ؓ هم راخستې دې(۴) چې : د پخوانو کتابونو لوئې ماهر ، عالم وهب بن منبه نه بیهقی په

---

(۱) تفسیر البغوی تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۲۸۹، والتفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۴۱۷، ۴۱۸

(۲) طبقات ابن سعد، باب ذکر اسماء رسول الله صلی الله علیه وسلم وکنیته: ج ۱، ص ۱۰۴، وتاریخ مدینة دمشق: ج ۱، ص ۴۱۸، ۴۱۹

(۳) طبقات ابن سعد، باب ذکر صفة رسول الله صلی الله علیه وسلم: ج ۱، ص ۳۶۰، دلائل النبوة رقم الحدیث: ۲۳۸، ومسند الدارمی رقم الحدیث: ۶، باب صفة النبی فی الکتب قبل مبعثه۔

(۴) صحیح البخاری، کتاب البیوع، باب کراهیة السخب فی الأسواق: ج ۱، ص ۲۸۵

دلائل النبوة کښې نقل کړی دی چې:
الله ﷻ زبور کښې داؤد ؈ ته دا وحی راؤلیږله چې ائې داؤده ؈ تاسو نه پس به یو داسې پیغمبر رازی چې نوم به ئې احمد وی، زۀ ترې نه هیچرې نه خفه کیږم، هغوئ ﷺ به هیچر زما نافرمانی نه کوی، ما د هغوئ ﷺ وړاندې روستو ټول ګناهونه معاف کړی دی، د دوئ ﷺ امت، امت مرحومه دې، ما ورته هغه نفلونه ورکړی دی کوم چې مې پیغمبرانو ؊ ته ورکړی وو، دوئ ﷺ مې د هغه فرضو پابند کړی دی چې په پخوانو پیغمبرانو ؊ لازم کړې شوې وو، دوئ ﷺ به د قیامت په ورځ ځما مخې ته داسې حالت کښې رازی چې نور به ئې د پیغمبرانو دنور پشان وی. ائې داؤد ؈: ما محمد ﷺ او د دوئ امت ته مې په ټولو امتونو باندې بهتری ورکړې ده. ما ورته شپږ څیزونه په خصوصیت سره ورکړی دی. چې نور امتونو ته نه دی ورکړې شوی، اول دا چې په خطا او هیره به ورته عذاب به وی، بې ارادې ګناه چې ترې اوشی که د هغې بخښنه رانه غواړی نو زه به ئې معاف کړم. کوم مال چې په ښه زړه د الله ﷻ په لار کښې اولګوی، نو زۀ به ورته هم په دنیا کښې دهغې نه ډیر زیات ورکړم. چې په دوئ څه مصیبت راشی او دغه وخت ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ اووائی، نو زۀ به پرې مصیبت، صلوة او رحمت او جنت طرفته هدایت جوړ کړم. هغوئ به چې کومه دعا کوی زۀ به ئې قبلوم، کله په دې شان چې هم غوښتې مراد به ئې تر سره کړم او کله به ئې دعا د آخرت سامان جوړ کړم. [روح المعانی] ([1]).

د سوؤنو روایتونو څخه دا څو روایتونه د تورات او زبور په حواله نقل کړې شو، پوره روایتونه، محدثینو په مستقلو کتابونو کښې جمع کړی دی.

تورات، انجیل کښې د خاتم الانبیاء ﷺ او د نبی کریم ﷺ د امت مرحومه خاص فضیلتونه، صفتونه، او نخښې په تفصیل سره په مستقلو کتابونو کښې لیکلی شوی دی، په دې آخری دور کښې مولانا رحمت الله کیرانوی مهاجر مکی ؒ خپل کتاب اظهار الحق کښې په ډیر تفصیل او تحقیق سره ددې بحث په تفصیل سره کړې دې، د نن زمانې په تورات او انجیل کښې اګر که ډیر زیات بدلون راوستې شوې دې. بیا هم ترې دوئ یعنی کیرانوی ؒ د نبی کریم ﷺ ډیر زیات صفات او فضیلتونه ثابت کړی دی. ددې کتاب ترجمه اوس اوس د عربی نه په اردو کښې شوې ده. دا د لیدو جوګه کتاب دې.

تیر شوی آیت مبارك کښې د نبی کریم ﷺ دهغه صفاتو او نخښو تفصیلی بیان وو چې په تورات، انجیل او زبور کښې لیکلې شوی وو. چې په کښې ړومبې صفت امر بالمعروف او نهی عن المنکر دې د معروف لفظی معنی، پیژندلې شوې او د منکر لغوی معنی اجنبی، ناآشنا چې پیژندلې نشی. دلته د معروف نه هغه نیك کارونه مراد دی چې په اسلامی شریعت کښې معلوم او پیژندلې شوی دی او د بدکارونونه مراد هغه کارونه دی چې په دین کښې اوشریعت کښې اوپره او ناآشنا دی.

دلته د خو کارونه د معروف په لفظ سره اود بدو کارونو نه د منکر په لفظ سره تعبیر کولو کښې دې طرفته اشاره بیا موندې شی چې په دین کښې به نیك کار یوازې هغه حسابیږی چې د

---

[1]) تفسیر روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ٦، ص ٣٩٠، ودلائل النبوة للبیهقی، باب صفة رسول الله صلی الله علیه وسلم فی التورات والانجیل، رقم الحدیث: ٣٢٣

رومبئ صدئ په مسلمانانو کښې جاري او معلوم پاتې شوې وي که داسې نه وي نو هغه به منکر بللې شي.
دې نه معلومه شوه چې صحابه کرامو ﷺ او تابعینو چې کوم کار نیک نه وي گڼړلې هغه که په ظاهره هر څومره ښکلې ښکاري د شریعت په رڼړا کښې به هغه نیک او ښه نه وي. هم دغه وجه ده چې کوم عملونه اودهغې تعلیم د نبي کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ او تابعینو کښې نشي بیا موندې ، هغې ته په صحیح احادیثو کښې محدثات الامور او بدعت او گمراهي وئیلې وی دی ، نو ددې آیت مبارك ددې جملې معنی به داشي چې نبي کریم ﷺ به خلقو ته د نیکو کارونو حکم کوی او دبدو نه به ئې منع کوی.
د اصفت اگر چې په ټولو پیغمبرانو ﷺ کښې عام دې اوعام کیدل ئې په کار ځکه دی چې هر پیغمبر ﷺ هم دې کار دپاره لیږلې شوې دې چې نیکو کارونو ته به خلق رابلي. او د بدکارو نه بهٔ ئې منع کوی ، لیکن دلته ئې د نبي کریم ﷺ په خصوصیتونو کښې شاملول دا مطلب لري چې نبي کریم ﷺ په دې صفت کښې د نورو پیغمبرانوعلیهم السلام په نسبت زیات خصوصیت او بیلتون لری چې ددې څو وجې کیدې شي. اول دا چې نبي کریم ﷺ د هر قسم خلقو د حال مناسب دهغوئ د پوهولو داسې طریقه لرله چې خبره به ئې ورته زړهٔ کښې وردننه کوله ، او په هغوئ باندې به بده نه لگیده. که په ژور نظر سره اوکتلې شي نو معلومه به شي چې هغه جاهل خلق چې دخپلو اوښانو څرولو نه بغیر په بل څه نه پوهیدل ، هغوئ بهٔ ئې هم په باریکو اوعلمي خبرو په داسې شان سره پوهول چې دهغووئ به پرې پوره تسلي وه ، قیصر اوکسری اونور عجمي بادشاهان او د هغوئ سفیرانو سره بهٔ ئې د هغوئ د پوهې په انداز کښې داشان خبرې فرمائیلې چې هغوئ به ترې اثر قبلولو. بله دا چې د دوئ د ذات مبارك او د دوئ د کلام قبلیدل او په زړونو کښې ئې تاثیر کول هم یوه معجزانه شان لری. لوئې نه لوئې دښمن بهٔ ئې چې خبرې مبارکې واوریدلې نود اثر قبلولونه بغیر به نشو پاتې کیدې.
پورته چې د تورات په حواله د نبي کریم ﷺ کوم صفتونه بیان شوی دی په هغې کښې یو داهم دو چې نبي کریم ﷺ په ذریعه به الله ﷻ ړندې سترگې پرانیزی او کاڼره غوږونه آوریدونکی جوړکړی او بند زړونه به پرانیزی، کیدیشی چې داصفات ددې خصوصیت نتیجه وی چې الله ﷻ دوئ ته د امر بالمعروف او نهي عن المنکر خاص طریقه وربخښلې وه.
بل صفت ئې دا بیان کړې شوې دې چې نبي کریم ﷺ به خلقو دپاره پاکیزه او زړهٔ پورې څیزونه حلال گرځوی. اوگنده څیزونه به ددوئ دپاره حرام گرځوی ، مراد دادې چې کوم پاك او زړه پورې ډیر څیزونه په بني اسرائیلو باندې د سزا په ډول حرام کړې شوی وو، نبي کریم ﷺ به دهغې حراموالې ختم کړی ، لکه د حلالو ځاروؤ وازگه وغیره چې د بني اسرائیلو د بدوکارونو په سزا پرې حرام گرځولې شوی وو ، نبي کریم ﷺ هغې لره حلال اوگرځول. گنده څیزونو کښې وینه ، مردار ځاروی ، شراب او ټول حرام ځاروی او د آمدنئ ټولې حرامې ذریعې لکه سود ، رشوت ، جواری وغیره شو [السراج المنیر][1]. ځینې صاحبانو خراب خویونه ، اوعادتونه هم په گنده څیزونو کښې شمیر کړی دی.

[1]) تفسیر السراج المنیر تحت هٰذه الآیة: ج ۱، ص ۱۱۲۷

دریم صفت دا بیان کړې شوې دې چې : ﴿ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَلَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ ﴾ [او ددوئ نه [دعبادتونو] درانه بوجونه لرې کوی]

د ﴿إِصْرَ﴾ معنی دروند پیټي دې چې انسان ترې رپ نشي وهلې . ﴿أَغْلَلَ﴾ جمع ده دغل ، معنی ئې هغه هتکړئی [زولنئ] ده چې دیو مجرم لاسونه دهغې په ذریعه د هغه د څټ سره تړلي شي او هغه بالکل بې اختیاره شي .

د ﴿إِصْرَ﴾ او ﴿أَغْلَلَ﴾ دواړو نه په دې آیت مبارك کښې هغه سخت او ګران واجبات دی چې په اصل دین کښې مقصود نه وو بلکه په بنی اسرائیلو باندې د سزا په طور لازم کړې شوی وو. لکه د بنی اسرائیلو پلیته جامه به یوازې په وینځلو سره پاکه نشوه ګڼړلې بلکه پلیت شوې ټول ځائې به ترې پریکولې شو ، دغه شان د کافرانو په جهاد کښې اخستې شوې مال د غنیمت پخپله دوئ دپاره حلال نه وو بلکه د آسمان نه راغلی اور به هغه سوزلو. د خالی په ورځ ښکار کول د دوئ دپاره حرام وو ، هغه اندامونه به ئې پریکول واجب وو چې په کومو به چې څه ګناه اوکړې شوه ، هر قسم قاتل نه به قصاص اخستې شو اګر چې قتل به ترې په خطا شوې وو او په دې صورت کښې هم د دیت قانون نه وو.

داسې قسم ګرانو او سختو حکمونو ته ﴿إِصْرَ﴾ او ﴿أَغْلَلَ﴾ اووئیلې شو. اوددې باره کښې فرمائیلې شوی دی چې نبی کریم ﷺ به ئې لرې کوی او ددې په ځائې به آسان احکام جاری کوی .

نبی کریم ﷺ دې باره کښې فرمائیلی دی چې ما تاسو په یو آسان شریعت باندې پریخودی یئ . چې په کښې څۀ مشقت نشته دې او نه په کښې د ګمراهئ اندیښنه شته([1]) .

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې ﴿الدین یسر﴾ یعنی دین آسانی ده([2]) ، او قرآن عظیم الشان هم فرمائیلی دی چې ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ [یعنی الله ﷻ په تاسو باندې ددین باره کښې څه تنګی نه ده راوستې .

د نبی امی ﷺ مخصوص صفتونه دکمال بیانولو نه پس فرمائی چې :

﴿فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنْزِلَ مَعَهُ أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ [نو څوك چې دې باندې ایمان راوړی اود ده [محمد ﷺ] حمایت او مدد اوکړی [ اوپه هغه رڼړا [قرآن] پسې روان شی چې هغه نازله شوې ده نو هم دغه کسان کامیاب دی]

دلته د کامیابئ موندلو دپاره داځلور شرطونه بیان شوی دی ، په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړل، د نبی کریم ﷺ عزت او احترام کول ، د نبی کریم ﷺ امداد کول ، د نبی کریم ﷺ تابعداری کوی .

د عزت او احترام دپاره دلته د ﴿عَزَّرُوهُ﴾ لفظ راوړې شوې دې.دا د تعزیر نه مشتق دې ، چې معنی ئې دشفقت په وجه منع کول اوحفاظت کول دی،عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د ﴿عَزَّرُوهُ﴾ معنی تعظیم او تکریم کړې ده([3]) ، او مبرد وئیلی دی چې د اعلی درجې تعظیم کولو ته تعزیر وئیلې شی .

---

[1] ) مسند أحمد رقم الحديث: ٢٢٩٥١

[2] ) صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب الدين يسر: ج ١، ص ١٠

[3] ) تفسير الطبري تحت هذه الآية: رقم الحديث ١٥٢٢٢

مطلب دا چې کوم خلق د نبی کریم ﷺ مدد پدې وجه کوی چې د نبی کریم ﷺ لوئي ئې په زړه کښې وی او مینه ورسره لری ، د مخالفینو په مقابله کښې ورسره مدد کوی ، هغوئ مکمل کامیابی موندونکی دی . دې قسم سلوك د نبی کریم ﷺ په حیات مبارك کښې د نبی کریم ﷺ ذات مبارك سره تعلق لرلو خو د نبی کریم ﷺ دوفات نه پس د نبی کریم ﷺ شریعت او دین سره تعلق لرل ددې مصداق دې یعنی په موجوده زمانه کښې د نبی کریم ﷺ مدد کول دادی چې د نبی کریم ﷺ دشریعت او دین مدد او مرسته اوکړې شي .
دلته قرآن عظیم الشان ته د نور وئیلو دا مطلب دې چې نور د خپل وجود پخپله دلیل دی دیو خاص امی دخلې مبارکې نه داسې اعلی او زیات بلیغ کلام راوتل چې ټوله دنیا ئې د مثال راوړلو نه پاتې راغلې ده پخپله ددې دلیل دې چې دا په حقه د الله ﷻ کلام دې .
بل مطلب دا لری چې څنګه نور پخپله هم روښانه وی او نورو تیرو کښې هم رنړا راولی نو دغه شان قرآن عظیم الشان په تیرو کښې انبنتې دنیا دغې تیرو نه راؤښکلو .

**قرآن عظیم الشان سره دسنت تابعداری هم فرض ده** :: ددې آیت مبارك په رومبئ جمله ﴿ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلرَّسُولَ ٱلنَّبِيَّ ٱلْأُمِّيَّ﴾ کښې د نبی امی د تابعدارئ کولو حکم دې او په آخری جمله ﴿وَٱتَّبَعُوا۟ ٱلنُّورَ ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ مَعَهُۥٓ﴾ کښې د قرآن عظیم الشان د تابعدارئ کولو حکم دې . دې نه ثابته شوه چې دآخرت کامیابی کتاب الله او سنت نبوی ﷺ باندې عمل کولو کښې ده . څکه چې دسنت نبوی ﷺ تابعداری کول په حقیقت کښې د نبی امی تابعداری کول دی .

**یوازې د رسول کریم ﷺ په تابعدارئ پوره کار نه کیږی نبی ﷺ سره محبت لرل او د نبی ﷺ ادب او احترام کول هم فرض دی** :: ددې دواړو جملو مینځ کښې د ﴿وَعَزَّرُوهُ﴾ او ﴿وَنَصَرُوهُ﴾ راوړلو کښې دې ته اشاره موندې شی چې د نبی کریم ﷺ د حکمونو داسې تابعداری کول مقصود نه دی څنګه چې د نور دنیوی حاکمانو تابعداری په مجبورئ کولې شي . بلکه مقصود دهغه تابعدارئ کول دی چې ده عظمت او محبت دجذبې لاندې وی ولې چې امت دخپل رسول ﷺ سره مختلف قسم تعلقات لری یو دهغې څینې دا هم دې چې رسول ﷺ د امت امیر او حاکم وی او امت یې محکوم اورعیت وی ، بل دا چې رسول ﷺ محبوب وی او ټول امت ورسره محبت لری .
بل دا چې نبی کریم ﷺ د علمی ، عملی او اخلاقی کمالات په بنا دعظمت اولویئ خاوند دې او ټول امت د نبی کریم ﷺ په مقابله کښې لاندې اوعاجز دې .
هر کله چې زمونږ رسول ﷺ ټول شانونه کامل لری څکه ئې په امت فرض دی چې د هر شان حق ئې ادا کوی . د رسول ﷺ په حیث په نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړی . د امیرا و حاکم په حیث د نبی کریم ﷺ احکام خپل کړی ، د یو محبوب په حیث ورسره زیاته مینه اوکړی . اود پیغمبرئ د کمالاتو لرلو په وجه د نبی کریم ﷺ تعظیم اوکړی او عزت ئې اوکړی .
د نبی کریم ﷺ تابعداری خو په امت باندې څکه پکار وه چې د پیغمبرانو ﷺ رالیږلو مقصد بغیر ددې نه نشو پوره کیدې . خو الله ﷻ یوازې دې ته کافی او نه فرمائیل بلکه د نبی کریم ﷺ تعظیم ، عزت ، احترام او ادب ئې هم ضروری اوګرځول . او قرآن عظیم الشان کښې ئې څائې په څائې ددې آداب اوخودل د لته په ﴿وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ﴾ سره بل څائې په قرآن عظیم الشان کښې په ﴿وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ﴾ سره ، ددې هدایت اوکړې شو ، داسې نورو ګنړلو

آیتونو کښې ددې هدایت کړې شو بدې ، یو ایت مبارک کښې خو داسې فرمائیلې شو یدی چې : ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ [ائې مومنانو ! خپل آوازونه د نبی ﷺ په آواز باندې مه اوچتوئ]

بل ځائې کښې قرآن کریم کښې داسې راغلی دی چې : ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ [ائې مومنانو ! تاسو د الله ﷻ او د رسول ﷺ نه [په هیڅ کار کښې] مه وړاندې کیږئ]
یعنی کوم مجلس کښې چې نبی کریم ﷺ تشریف فرما وی نو څه خبره راپیښه شی نو په هغې کښې د نبی کریم ﷺ نه وړاندې خبره دې هیڅوك نه کوی.

سهل بن عبدالله ددې آیت مبارك دا معنی بیان کړې ده چې هیڅوك دې تر وړاندې خبره نه کوی او د نبی کریم ﷺ د خبرې کولو په وخت دې ټول خاموش وی.

د قرآن عظیم الشان یو بل آیت مبارك کښې داسې رازی چې :
﴿لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا﴾ ([1])

ددې آیت مبارك په آخر کښې داخبردارې هم ورکړې شوې دې چې د نبی کریم ﷺ په بې ادبئ کولو سره به ټول کړی عملونه برباد شی .هم دغه وجه ده چې د صحابه کرام ﷺ به سره ددې چې هر وخت به د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې موجود پاتې کیدل اوپه داسې حالاتو کښې د ادب ،عزت احترام خیال ساتل ډیرګران شی.لیکن بیا هم ددوئ دا حال وو چې ددې آیت مبارك نازلیدو سره به صحابه کرامو ﷺ د نبی کریم ﷺ ډیر احترام او عزت کولو ، نو ابوبکر صدیق ﷺ به چې کله دنبی کریم ﷺ په مخکښې څه خبره کوله نوانداز ه بۀ ئې دا وه لکه چې څوك خپل مینځ کښې څه پټه خبره په رو رو کوی،هم دغه حال د فاروق اعظم ﷺ هم وو. [شفاء]([2])

عمر بن العاص ﷺ فرمائی چې په دنیا کښې مې د نبی کریم ﷺ نه زیات بل هیڅوك خوښ نه وو او زما دا حال وو چې ما به د نبی کریم ﷺ طرفته په ډك نظر نشو کتلې او که څوك رانه د نبی کریم ﷺ د شکل مبارك تپوس اوکړی نو زۀ بۀ ورته څکه بیان نه کړې شم چې ما ورته په ډك نظر چرې نه وو کتلی([3]).

انس ﷺ فرمائیلی دی چې کله به نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو ﷺ ډلې ته تشریف راوړو نو ټولو بۀ ښکته ښکته کتل صرف ابو صدیق ﷺ او عمر فاروق ﷺ به ورته پوره نظر کولو چې نبی کریم ﷺ به هم ورته کتل او مسکی بۀ وو. [ترمذی]([4]).

کله چې د مکې خلقو د مسلمانانو جاسوسئ کولو په غرض عروه بن مسعود ﷺ لره مدینې منور ته اولیږلو نو دوئ ﷺ چې کله هلته ورغلل او د صحابه کرامو ﷺ زاریدل او قربانیدل ئې په نبی کریم ﷺ باندې اولیدل نو په واپسئ ئې دمکې مکرمې خلقو ته خبر ورکړو چې زۀ د کسری او قیصر دربارونو ته ورغلې یم ، نجاشی بادشاه ته ورغلې یم ، مګر د محمد ﷺ د صحابه کرامو ﷺ فدائیت ته ددغه بادشاهانو د درباریانو فدائیت هیچرې نشی رسیدې .

[1]) ترجمه: تاسو د رسول بلنه داسے مه ګڼړی شنګه چه تاسو په خپل مینځ کښې یو بل رابلئ۔
[2]) الشفاء بتعریف حقوق المصطفى صلى الله عليه وسلم الباب الثالث فى تعظيم أمره ووجوب توقيره الخ: ج ۲، ص ۳۶
[3]) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب كون الاسلام يهدم ما قبله وكذا الهجرة: ج ۲، ص ۷۶
[4]) جامع الترمذي، أبواب المناقب، باب: ج ۲، ص ۲۰۸

ښکه تاسو د نبي کريم ﷺ په مقابله کښې نشی کاميابيدې[1].

د مغيره بن شعبة رضي الله عنه په حديث پاک کښې دی چې کله به نبي کريم ﷺ په کور مبارک کښې دننه وو صحابه کرامو رضي الله عنهم به ورته دبهر نه آواز کول هم بې ادبی ګڼړله ، که د دروازې مبارکې ټکولو ضرورت به راغلو نو صرف په نوک بۀ ئې ورته ټکوله ښکه چې د زيات ټکيدو او شور په وجه نبي کريم ﷺ ته تکليف اونه رسی[2].

د نبي کريم ﷺ دوصال نه پس به صحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو په مسجد نبوی ﷺ کښې په زوره خبرې خو لا څه کوې چې وعظ او تقرير به ئې هم په اوچت آواز نه کولو. اکثر صحابه کرامو رضي الله عنهم خو پدوئ کښې دا سې وو چې د نبي کريم ﷺ په نوم مبارک آوريدو سره بۀ ئې ژړل او هيبت به پرې راغلو.

نو ددې ادب او عزت کولو د برکت د وجې صحابه کرامو رضي الله عنهم د نبوت د کمالونو ځينې يوه لويه حصه بيا مونده. او د پيغمبرانو عليهم السلام نه پس ئې ورته د ټولونه زياته لوړه درجه ورکړه.

---

قُلْ يَاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ

اووايه | اے خلقو | بيشکه زۀ

| ............چې اني خلقو بيشکه زه

رَسُوْلُ اللهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا اِلَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

راليږلې شوې پيغمبرد الله يم | تاسو | ټولوته |هغه الله|چې هغه دپاره ده |بادشاهي| دآسمانونو

دالله ﷻ رسول يم | چې تاسو ټولو ته راغلې يم| ..............هغه الله ﷻ چې دآسمانونو او

وَالْاَرْضِ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ص

اود زمکې | نشته دې لائق دعبادت| مګر |خاص هم هغه دې|چې ژوندی کول کوی|اومړه کول کوی|

زمکې مالک دې | هغه نه بغيرېل څوک دعبادت لائق نشته |هغه ذات ژوندی کول اومړه کول کوی

فَاٰمِنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ

پس ايمان راوړی| په الله باند ي|اوپه رسول دهغه|چې نبی دې|امی دې|هغه رسول |چې ايمان راوړی

نوتاسوټول په الله ﷻ باندې ايمان راوړئ | اودهغه په امی رسول باندې ايمان راوړئ| هغه پيغمبر چې په

بِاللهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿١٥٨﴾

په الله باند|اوپه حکمونو دهغه باندې| اوپيروی اوکړئ دهغه | دپاره ددې چې تاسو انيغه لاربيامومئ

الله اوپه ټولو کلماتو|نوروکتابونوائې ايمان راوړې دې |اودهغه تابعداری ئې اوکړئ|نوهدايت به بيامومئ

وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ

او د قوم د موسی نه | يوه ډله ده |چې لاره ښائی خلقوته| په حقه سره|اوهم په دې حق |

اودموسی عليه السلام په قوم کښې داسې يوه ډله هم شته | چې دحقې لارې خودنه کوی | او د

---

[1] سيرة ابن هشام: ج ۲، ص ۲۰۸

[2] الشفاء الباب الثالث في تعظيم امره ووجوب توقيره: ج ۲، ص ۴۰

| يَعْدِلُوْنَ۝ |
|---|
| انصاف کوی هغوئ |
| حق مطابق انصاف کوی |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره ! دوی ته ) ووايه چه: اې خلقو! څه تاسو ټولو ته دهغه الله راليږلې شوې پيغمبر يم چه د هغه په قبضه کښې د ټولو آسمانونو او زمکو سلطنت دې، او دهغه نه سوا څوک معبود نشته هغه مرګ او ژوند ورکوي نو تاسو په الله او د هغه په رسول بانديې ايمان راوړئ چه دا نبي امي دې چه په الله او د هغه په کلماتو باندې ايمان لري ، او د هغه تابعداري وکړئ دې د پاره چه تاسو ته هدايت حاصل شي اودموسٰى عليه السلام په قوم کښې يوجماعت داسې هم دې چه خلقو ته دحق لاره ښائي اود دغه (حق) مطابق دانصاف نه کار اخلي.

## خلاصه تفسير

﴿ قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّىْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَاً الَّذِىْ ﴾ تاسو ﷺ اووائې چه ائې [ددنيا جهان] خلقو زه تاسو ته دالله ﷻ د طرفه ليږلې شوې [پيغمبر] يم ﴿لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ چه دهغه بادشاهي ده په ټولو آسمانونواو زمکو کښې ﴿ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ﴾ دده نه سوا دعبادت لائق نشته دې هم هغه ژوند ورکوي اوهم هغه مرګ ورکوي، ﴿ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِىِّ الْاُمِّىِّ الَّذِىْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ ﴾ ددې دپاره په الله ﷻ باندې ايمان راوړئي او دده په نبي امي باندې [هم ايمان راوړئي] چه [ښخپله هم] په الله ﷻ او دهغه په احکامو باندې ايمان لري [يعني کله چه ددې عظيمې رتبې باوجود هغوي ته په الله ﷻ او په ټولو رسولانو او کتابونو باندې په ايمان راوړلو کښې شرم نشته دې نوتاسو په الله ﷻ اودهغه په رسول ﷺ باندې په ايمان راوړلو نه ولې انکاريان ئې] ﴿وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ۝﴾ او د هغه [نبي] اتباع اوکړئې چه تاسو په صحيح لار باندې راشئې او [اګر چه بعضې خلقو ددوي مخالفت کړې اوکړو ليکن] ﴿ وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰۤى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ۝ ﴾ دموسى عليه السلام په قوم کښې يوډله داسې وه چه حق دين [يعني داسلام] موافق [خلقو] ته به ئې هدايت هم کولو اوددې موافق [خپلو او دغيروپه معاملاتو کښې] به ئې انصاف هم کولو [مراد ددې نه عبدالله ابن سلام وغيره دې].

## معارف او مسائل

دې آيت مبارك کښې د اسلام د اصولى مسئلو څښې د رسالت د يو اهم طرف بيان داسې دې چې زمونږ د نبى کريم ﷺ پيغمبرى ددنيا د بنيادمو او پيريانو ترقيامته پورې راتلونکو ټولو مسلمانانو دپاره عامه ده.

دې آيت مبارك کښې نبى کريم ﷺ ته ددې عام اعلان کولو حکم ور کړې شوې دې چې ددنيا خلقو ته اووايئ چې زه تاسو ټولو دپاره درسول په حيثيت سره راليږلې شوې يم ، د پخوانو پيغمبرانو ﷺ پشان خاص قوم ، خاص ملك ، خاص علاقې يا خاص وخت دپاره نه يم راليږلې شوې . او پيغمبرى به مې تر قيامته پورې عامه وى . صرف بنيادمو ته نه بلکه ټولو پيريانو دپاره هم راليږلې شوې يم .

**پیغمبری ترقیامته پورې تول عالم دپاره ده ځکه پرې پیغمبری ختمه ده:** دختم نبوت اصل راز دادې چې هر کله چې د نبی کریم ﷺ پیغمبری تر قیامته پورې ټولو راتلونکو نسلونو دپاره عامه ده نو بیا د بل یو نبی د راتلو نه څه ضرورت شته او نه ئې ګنجائش شته ، ددې تائید د نبی کریم ﷺ په دې فرمان سره کیږی چې زما په امت کښې به همیشه دپاره داسې یوه ډله قائمه وی چې په دې کښې دټولو راپورته کېدونکو فتنو مقابله او په دې کښې د راځرګنده [راښکاره] کېدونکو رخنو بندیز به کوی. د کتاب الله او سنت په تعبیر او تفسیر کښې به چې کومې غلطی راپورته کړې شوی وی ، هغه به هم لرې کوی ، چې ورسره به د الله ﷻ خاص مدد مل وی او ددې په برکت به په ټولو بر راځی. ولې چې په حقیقت کښې به دغه ډله دپیغمبرئ د ذمه داریانو ادا کولو دپاره د نبی کریم ﷺ په ځائې ولاړ وی.

امام رازی رحمه الله د آیت ﴿كُونُوا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ لاندې خودلی دی چې دا اشاره دې خبرې ته ده چې په دې امت کښې به د صادقینو یوه ډله خامخا موجوده وی ، که داسې نه وې نو بیا به د صادقینو د ملګرتیا کولو حکم نه وې کړې شوې ، په دې بنا امام رازی رحمه الله په هره زمانه کښې اجماع دامت لره ، شرعی حجت او دلیل ثابتوی ځکه چې د صادقینو د ډلې په موجودګئ کښې د ټول امت اجماع او اتفاق په څه غلطه خبره یا ګمراهئ نشی راتلې[1].

امام ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی چې دې آیت مبارك کښې اشاره موندې شی چې نبی کریم ﷺ خاتم النبین او آخری نبی دې[2] ځکه هر کله چې د نبی ﷺ بعثت او رسالت تر قیامته پورې راتلونکو نسلونو دپاره او پوره عالم دپاره عام شو نو اوس د بل نبی او رسول د راتلو ضرورت باقی پاتې نشو. په آخره زمانه کښې به چې عیسی علیه السلام رازی نو پیغمبری به ئې اګر چې په خپل حال قائمه وی نو په شریعت محمدی باندې به عمل کوی ، څنګه چې دصحیح احادیثو نه ثابته ده.

دې باره کښې دا آیت مبارك هم واضح او ښکاره ثبوت دې چې د نبی کریم ﷺ پیغمبری تر قیامته پورې راتلونکو ټولو خلقو دپاره عامه ده او د قرآن عظیم الشان نور ګڼ آیات مبارکه هم په دې باره کښې شته دې ، لکه یو ځائې کښې فرمائی چې :

﴿وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ﴾ [دا قرآن راته د وحی په ذریعه رالیږلې شوی دې چې په دې سره تاسو سره دالله ﷻ دعذاب نه او ویریږم او هغه خلق هم چې زمانه پس ورته دا قرآن کریم اورسی]

**د نبی کریم ﷺ څو اهم خصوصیات:** ابن کثیر رحمه الله دمسند احمد په حواله په قوی سند سره روایت کړېدې چې د غزوه تبوك په موقعه نبی کریم ﷺ په تهجد و کښې مشغول وو ، صحابه کرام رضی الله عنهم په ویره کښې شو چې د مونځ نه په فارغیدو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې نزدې راجمع شی داسې پنځه څیزونه راکړې شوی دی چې زما نه وړاندې هیڅ یو پیغمبر ته نه وو ورکړې شوی ، یو دا چې زما پیغمبری دټولې دنیا د ټولو قومونو دپاره عامه کړې شوې ده دهغوئ پیغمبری به یو خاص قوم او خاص علاقې پورې محدوده وه. دویم دا چې زما د دښمن په مقابله کښې ماته داسې رعب راکړې شوې دې چې که دښمن زما نه د یو میاشتې په مزل هم

---

[1] التفسير الكبير، سورة التوبة: ۱۱۹، ج ۸، ص ۱۷۶، ۱۷۷
[2] تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۸۹

لري وي نو په هغې به زما رعب رازي. دريم دا چې د کافرانو نه په لوټ کښې حاصل کړې مال زما د پاره حلال کړې شو او د پخوانو امتونو د پاره دا حلال نه وو بلکه ددې استعمالول به لويه ګناه بللې شوه ، ددې د ختمولو د پاره به آسماني تندر راتلو چې دا به ئې ايره کړو. څلورم دا چې زما د پاره ټوله زمکه مسجد او پاکئ حاصلولو ذريعه جوړه کړې شوې ده چې زمونږ مونځ د زمکې په هرې پاکې حصې کيدې شي پخلاف د تيرو شوؤ امتونو نه چې د هغوئ مونځونه بغير د خاصو عبادت خانو نه په کورونو ځنګل وغيره کښې نه شو کيدې ، د پاکئ حاصلولو داسې ذريعه جوړه کړې شوې ده چې هر کله د پاکئ حاصلولو د پاره اوبه اونشي موندې يا د بيمارئ او بل څه عذر په وجه د اوبو استعمال ددۀ د پاره مضر وي نو په ښاؤره باندې تيمم کول ددې امت د پاره د اودس اود غسل په ځائې موجود دي . حالانکه نورو امتونو ته دا آساني نه وه ورکړې شوې. د پنځم څيز به څه وائې ؟ هغه خپل مثال هم پخپله دې ، وې وئيل چې هر يو پيغمبر ته الله ﷻ ددعا قبليدل په دې شان ورکړی دی چې دهغې پخلاف به بل څه نشو کيدې . هغوئ ﷺ دغه حق خپلو خپلو مقصدونو د پاره استعمال کړو او هم دغه مقاصد ئې حاصل شو. ما ته هم دغه اووئيل شوه چې تاسو څه دعاء اوکړئ خو ما دې حق لره آخرت د پاره د امانت ساتلو خواست د الله ﷻ نه اوکړو. زما دغه حق به هغه دهغه چا پکار رازی چې تر قيامته پورې د لااله الاالله ګواهي ورکوي([1]).

داشان د امام احمد رحمه الله په حواله د نبی کريم ﷺ دا ارشاد د ابی موسی اشعری رضي الله عنه په روايت منقول دې چې څوك زما پيغمبر کيدل واؤري اوهغه زما په امت کښې وی ، يا يهودی او نصرانی وی اوبيا هم ايمان رانه وړی نو جهنم ته به ځي([2]).

صحيح بخاری کښې ددې آيت مبارك لاندې په روايت د ابی الدرداء رضي الله عنه نقل کړل شوی دی چې د ابی بکر او عمر فاروق رضي الله عنهما په مينځ کښې څه اختلاف پيدا شو ، عمر فاروق رضي الله عنه چې خفه روان شو نو ابوبکر صديق رضي الله عنه هم ورپسې د راضی کولو د پاره روان شو. عمر فاروق رضي الله عنه خپل کور ته داخل شو او دروازه ئې بنده کړه .ابوبکر صديق رضي الله عنه د مجبورئ نه واپس شو او راغلو د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو. څه وخت پس عمر فاروق رضي الله عنه هم پخپلو کړو پښيمانه شو او کور نه راؤوتو اود نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو ، چې خپله قيصه ئې نبی کريم ﷺ ته بيان اوفرمائيله. د ابی الدرداء رضي الله عنه د بيان مطابق ترې نبی کريم ﷺ هم خفه شو. صديق اکبر رضي الله عنه چې د نبی کريم ﷺ خفګان اوليدو چې عمر فارو رضي الله عنه نه خفه شو نو وې فرمائيل چې يارسول الله ﷺ دا خو زما قصور وو. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې تاسو خلق دومره هم نشئ کولې چې زما يو ملګری ته تکليف رسول پريږدئی. آيا تاسو ته معلوم نه ده چې ما د الله ﷻ په حکم دا اعلان اوکړو چې:

﴿قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾ [اووايه چې ائې خلقو بيشکه زه د الله ﷻ رسول يم چې تاسو ټولو ته راغلې يم]([3]).

[1]) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۹۰. مسند أحمد، رقم الحديث: ۶۷۲۲،مسند عبدالله بن عمرو رضي الله عنه
[2]) مسند أحمد، رقم الحديث: ۸۲۲۷، مسند ابی هريرة رضي الله عنه.
[3]) صحيح البخاري، كتاب التفسير، باب قل يايها الناس اني رسول الله اليكم جميعا: ج ۲، ص ۲۶۸

نو تاسو تولو زه دروغژن اوبللم یوازې ابو بکر صدیق ﷺ زه رښتینې اوبللم. خلاصه دا شوه چې دې آیت نه ثابت شو چې نبی کریم ﷺ د ټولو عامو موجوده او راتلونکو نسلونو دپاره پیغمبر دې. که هغوئ د هر ملك او هرې علاقې استوګن وی، هر قوم او هر خاندان سره تعلق وی، دا هم ترې ثابت شو چې د نبی کریم ﷺ د پیغمبر کیدو نه پس چې څوك پرې ایمان نه راوړی هغه به هیڅکله نجات بیا نه مومی. اګر چې هغه د یو تیر شوی شریعت او کتاب یا د یو مذهب او ملت پوره تابعداری کوی چې په تقوی او احتیاط باندې بنا وی.

د آیت مبارك په آخری کښې فرمائی چې زه د هغه پاك ذات د طرفنه رسول یم چې د چا په ملکیت کښې چې ټول آسمانونه او زمکې دی او هم هغه ژوندی کول او مړهٔ کول کوی.

دې پسې آیت مبارك کښې فرمائی چې: ﴿فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ ٱلنَّبِىِّ ٱلْأُمِّىِّ ٱلَّذِى يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَكَلِمَٰتِهِۦ وَٱتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ [نو تاسو ټول په الله ﷻ باندې ایمان راوړئ او د هغه په امی رسول باندې ایمان راوړئ هغه پیغمبر چې په الله او په ټولو کلماتو [نورو کتابونو] ئې ایمان راوړې دې او د هغه تابعداری ئې اوکړئ نو هدایت به بیا مومئ]

د الله ﷻ د کلماتو نه مراد د الله ﷻ کتابونه، تورات، انجیل او قرآن وغیره دی، د ایمان راوړلو د حکم نه پس د تابعداریٔ نور حکم کولو سره دې خبرې ته اشاره موندې شی چې صرف ایمان راوړل یا زبانی تصدیق کول کافی نه دی تر څو چې د نبی کریم ﷺ د شریعت تابعداری اونه کړې شی.

جنید بغدادی رحمه الله فرمائیلی دی چې مخلوق د پاره الله ﷻ ته د رسیدو ټولې لارې بندې دی سوا د هغې لارې نه کومه چې نبی کریم ﷺ خودلې ده.

**د موسی علیه السلام قوم کښې یو حق پرسته ډله:** ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ﴾ [او د موسی علیه السلام په قوم کښې داسې یوه ډله هم شته [چې د حقې لارې خودنه کوی] او د حق مطابق انصاف کوی] تیر شوؤ آیتونو کښې د موسی علیه السلام د قوم کوږ تګ کوږ بخثی او ګمراهی بیان شوې وه، په دې آیت مبارك کښې دا خودلې شی چې د بنی اسرائیلو ټول قوم داسې نه دې بلکه دوئ کښې څه خلق ښه هم شته چې د حق تابعداری کوی. او حق فیصلې کوی. دا هغه خلق دی چې د تورات په زمانه کښې ئې په تورات او د انجیل په زمانه کښې ئې په انجیل پوره عمل اوکړو. او د خاتم الانبیاء په پیغمبر کیدو ئې د تورات او انجیل د زیری په مطابق ئې په هغوئ ایمان راوړو او د هغوئ تابعداری ئې اوکړه د بنی اسرائیلو د دې حق پرستې ډلې بیان هم قرآن عظیم الشان کښې بار بار راغلې دې. لکه یو ځائې کښې فرمائی چې: ﴿مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَتْلُونَ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُونَ﴾

بل ځائې کښې فرمائی چې: ﴿ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِهِۦ هُم بِهِۦ يُؤْمِنُونَ﴾

ابن جریر رحمه الله او ابن کثیر رحمه الله وغیره دلته یوه عجیبه واقعه نقل کړې ده چې د دې ډلې نه مراد هغه خلق دی چې د بنی اسرائیلو د ګمراهئ، بدعملو، د پیغمبرانو علیهم السلام د وژلو وغیره نه چې تنګ شو نو دوئ نه بیل شو، دا د دوئ د دولسو قبیلو نه یوه قبیله وه، د خپل قوم څخه چې تنګ شو نو دا دعا یې اوکړه چې ائې الله ﷻ! مونږ د دې خلقو نه لرې چرته آباد کړې چې په دین مضبوط پاتې شو او ښهٔ په تسلئ سره عبادت کوؤ، الله ﷻ دوئ لره په خپل کامل قدرت سره د مشرق بعید یوې علاقې ته ور او رسول چې د یو نیم کال په مزل د دغه ځائې نه لرې وو،

هلته دوئ خالص په عبادت کښې لګیا شو. د نبی کریم ﷺ په پیغمبر کیدو سره قدرت د دوئ د مسلمانیدو دا انتظام اوکړو چې د معراج په شپه جبرائیل ؑ ، نبی کریم ﷺ لره دغلته بوتلو ، دغې خلقو پرې ایمان راوړو ، نبی کریم ﷺ ورته څو سورتونه واوړول او تپوس ئې ترې اوکړو چې تاسو سره د ناپ تول کول څه بندوبست شته ؟ ژوند په څه شان تیریږی ؟ هغوئ ورته اوفرمائیل چې کرونده کوؤ چې غله مو تیاره شی نو هم هلته ئې رشه کړو. هر څوك هلته ورځی او دخپل ضرورت په مناسب تر غله رااخلی. نبی کریم ﷺ ترې دا تپوس اوکړو چې تاسو کښې څوك دروغ وائی ؟ هغوئ اووئیل چې نه ، ځکه چې که څوك یې اووائی نو سمدستی یو اور راشی او دغه کس اوسوزوی. دوئ ﷺ ترې تپوس اوکړو چې ستاسو کورونه ولې یو شان دی ؟ هغوئ اوفرمائیل چې دې دپاره چې هیڅوك په یو بل باندې لوئی اونه ګنړی. بیا ترې نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چې تاسو د خپلو د کورونو مخې ته خپل قبرونه ولې جوړ کړی دی ؟ عرض ئې اوکړو چې مرګ راته هر وخت یاد وی ، هر کله چې نبی کریم ﷺ د معراج نه مکې مکرمې ته واپس راغلو نو دا آیت مبارك نازل شو چې: ﴿وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴾[او د موسی ؑ په قوم کښې داسې یوه ډله هم شته چې دحقې لارې خودنه کوی او د حق مطابق انصاف کوی]

تفسیر قرطبی دې روایت ته اصلی وئیلی دی خو نور احتمالونه ئې هم لیکلی دی ، ابن کثیر رحمه الله دا واقعه عجیبه اوبلله خو رد ئې نه کړه ، البته تفسیر قرطبی رحمه الله ددې روایت نقل کولو نه پس وئیلی دی چې غالبا دا روایت صحیح نه دې[1].

بهر حال ددې روایت مطلب دا راوځی چې د موسی ؑ په قوم کښې یوه ډله داسې شته چې همیشه په حق باندې کلکه پاتې شوې ده. خواه دا هغه خلق وی چې کله د نبی کریم ﷺ دپیغمبر کیدو نه چې خبر شو نو په اسلام مشرف شو ، یا د بنی اسرائیلو هغه دولسمه قبیله وی چې د مکې په یو خاص داسې حصه کښې الله ﷻ ورته ځائې ورکړې دې چې بل څوك هلته نشی رسیدې .[والله اعلم] .

| وَقَطَّعْنٰهُمُ | اثْنَتَيْ عَشْرَةَ | اَسْبَاطًا | اُمَمًا |
|---|---|---|---|
| او بیل بیل کړل مونږه هغوئ | دولس | قبیلي | ډلي ډلي |
| او مونږ دوئ دولسو خاندانو کښې جداجدا ډلې جوړې کړې وې | | | |

| وَاَوْحَيْنَآ | اِلٰى مُوْسٰى | اِذِ اسْتَسْقٰهُ | قَوْمُهٗٓ | اَنِ اضْرِبْ |
|---|---|---|---|---|
| اووحی اوکړه مونږه | موسی ته | کله چې اوبه اوغوښتلې دهغه نه | قوم دهغه | چې اووهه |
| اوکوم وخت چې ئې دموسی ؑ نه اوبه اوغوښتلې | نو مونږ موسی ؑ ته وحی اوکړه | چې | | |

| بِّعَصَاكَ | الْحَجَرَ | فَانْۢبَجَسَتْ | مِنْهُ | اثْنَتَا عَشْرَةَ | عَيْنًا |
|---|---|---|---|---|---|
| په همساخپله | دا کاڼړې | نوروانې شوې | دهغه ګټ نه | دولس | چینې |
| کاڼړې په خپله همساباندې اووهه | نودهغې نه دولس چینې روانې شوې ...................... | | | | |

---

[1]) تفسير الطبري تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ١٧٣، وتفسير الكبير تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٣٩٣، وتفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٧، ص ٣٥٢

قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۭ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ

په تحقيق سره | اوپيژندوا | هري ډلي | ځاني داوبوڅکلوځپلو | اوسوري كړه مونږه | په هغوئ باندي |

هري يوي ډلي خپل خپل ګودر پيژندلو | اومونږ په دوئ باندي د وريځي سيورئي اوكړو

الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ۭ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ

وريځ | اونازل كړو مونږه | په هغوئ باندي | ترنجبين | اومرزان | خوري | دپاكو ځيزونونه

او مونږ په دوئ باندي من اوسلوى نازله كړه | [اوورته مواوونيل] چي تاسوهغه پاك ځيزونو نه خورئي

مَا رَزَقْنٰكُمْ ۭ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا

هغه | چي دركړي دى مونږ تاسو ته | اونه وو كړي هغوئ ظلم په مونږ باندي | ليكن | اوو هغوئ

چي كوم مو تاسو ته دركړي دى | اودوئ په مونږ هيڅكله زياتي نه وو كړي | خو پخپله ئي

اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝ وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا

په ځانونو خپلو | چي ظلم ئي كولو | او كله چي | اوونيلي شو | هغوئ ته | چي اوسئ تاسو

په خپلو ځانونو زياتي كړي وو | ............ او كله چي دوئ ته اوونيلي شو چي په دي فلاني

هٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ وَقُوْلُوْا

په دي كلي كښي | اوخورئ | دهغي نه | هرځاني كښي | چي خوښه شي ستاسو | اووايئ

كلي كښي اوسيږئي | اودهغي دفصلونونه پخپله مرضئ خوراك كوئ | ............او

حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ

بښنه اوكړه | او ننوځئ | دي دروازي ته | په حالت دسجدي كښي | اوبه بښنو مونږه | تاسو دپاره |

حطة حطة وائي | اودښار دروازي ته سرټيټي داخل شئ | ............نو مونږ به ستاسو

خَطِيْٓــٰٔتِكُمْ ۭ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

ګناهونه ستاسو | زيات به كړو مونږ مهرباني | نيكانو خلقوته | پس بدله كړه | هغه كسانو | چي ظلم ئي كړي وو

ګناهونه معاف كړو | اونيكانو خلقو سره به ددي نه زياته مهرباني كوو | نو په دوئ كښي چي

مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَرْسَلْنَا

دهغوئ نه | وينا | چي بدله وه دهغه خبرى نه | چي وئيلي شوى وه | هغوئ ته | نو اوليږو مونږه |

ځوك ظالمان وو | هغوئ خودلي تكى په بل تكى بدل كړو | نومونږ په هغوى باندي

عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَاۗءِ بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ۝

په هغوئ باند | عذاب | دآسمان نه | په سبب دهغي | چي وو هغوئ | چي ظلم ئي كولو

دآسمان نه عذاب نازل كړو | ............دا په دي سبب چي هغوى به ظلم كولو

**آسان ترجمه قرآن**

اومونږ دوى لره (يعنى بنى اسرائيلو لره) په دولس خاندانونو كښ داسې تقسيم كړى وو چه هغوى جدا جدا د (انتظامى) جماعتونو شكل اختيار كړې وو. اوكله چه د موسٰى عليه السلام قوم د هغه نه اوبه وغوښتې

نو مونږ هغه ته د وحي په ذريعه ووئيل چه خپله همسا په دغه کانړي باندې ووهه نو دهغه کانړي نه دولس چينې روانې شوې هرې يوې ډلې ته خپل د څکلو ځائ معلوم شو اومونږ په دوی د وريځې سورې کړو . او مونږ په دوی باندې مَنّ او سَلْوٰی (دا ووئيل) راوليږل چه : خورئ هغه پاک رزق کوم چه تاسو ته مونږ درکړې دې — او (ددې وينا باوجود دوی چه کومه ناشکري وکړه نو) دوی څمونږ څه نقصان ونکړو ، بلکه دوی خپله خپلو ځانونو باندې ظلم کولو. او هغه وخت ياد کړه کله چه دوی ته وئيلې شوې وو چه: دې کلي ته ورشئ او وسئ او دې کښې چه کوم ځائې نه مو خوښه شي خورئ ، او دا وايئ چه (اې الله) مونږ ستا نه د بخښنې طلب گار يو او (دکلي) په دروازه کښې په ټيټ سر داخل شئ ، نو مونږ به ستاسو گناهونه معاف کړو (او) نيکي کونکو ته به نور (زيات) ثواب هم ورکړو بيا وهوه دا چه کومه خبره دوی ته وئيلې شوې وه ، هغه دوی کښې ظالمانو خلقو بدله کړه او بله خبره ئې جوړه کړه بيا مونږ ددوي د مسلسل زياتو دوجې نه دوی باندې د آسمان نه عذاب نازل کړو.

## خلاصه تفسير

﴿ وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا ﴾ او مونږ [يو انعام په بني اسرائيلو باندې دا اوکړو چه ددوي داصلاح اود انتظام دپاره] دوي په دولسو خاندانونوکښې تقسيم کړل او ټول مو بيل بيل جماعتونه مقرر کړل [او په هر ځا مو يويو سردار د فيصلو دپاره مقرر کړو چه ددې ذکر په سورت مائده کښې په دريمه رکوع کښې دې ﴿ وبعثنا منهم اثني عشر نقيبا ﴾[1] ﴿ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اِذِ اسْتَسْقٰىهُ قَوْمُهٗٓ ﴾ او [يو انعام مودا اوکړو چه] مونږ موسی ﷺ ته حکم ورکړو چه کله دده قوم دده نه اوبه اوغوښتلې [او ﴿ اَنِ اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۚ فَانْۢبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ﴾ هغوي دالله ﷻ نه دعا اوکړه نو په هغه وخت داحکم اوشو] چه خپله همسا په فلاني کانړي باندې اووهه [ددې نه به اوبه راوزي] نو بس [وهل وو چه] فوراًددې نه دولس چشمې [د دولسو خاندانو په شمار] راووتلې [چنانچه] ﴿ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ﴾ هريو سړي خپله خپله داوبو ښتلو موقع معلوم کړه او [يو انعام مو دااوکړو چه] ﴿ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ﴾ مونږ په دوي باندې وريځ سيورې کړه او [يوانعام موبړې دا اوکړو چه] دوي ته [مود غيب دخزانې نه [ترنجبين او مرزان [کرکان] اورسول [اواجازت مو ورکړو چه] ﴿ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ﴾ خورئي دپاکو څيزونونه چه مونږ تاسوته درکړي دي سره [ليکن هغه خلقو په دې کښې خبره د حکم خلاف اوکړه] ﴿ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴾ او [ددې نه] هغوي زمونږ هيڅ نقصان اونکړو ليکن خپل نقصان ئې کولو [دا واقعات د وادي تيه دي.چه ددې تفصيل په سورت بقره کښې تير شوې دې] ﴿ وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ ﴾ او [هغه زمانه ياده کړئي] چه کله حکم اوشو چه تاسو خلق په دې آبادئي کښې اوسيږئي ﴿ وَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ ﴾ او خورئي د هغه [پاکو څيزونو نه] چه په کوم ځائې کښې تاسو رغبت اوکړئي ﴿ وَقُوْلُوْا حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيْٓـٰٔتِكُمْ ﴾ او [داهم حکم درکړې شوچه کله دننه ځئ نو] په ژبې سره دا وائې چه توبه ده [توبه] او [په عاجزئي سره] ټيټ ټيټ په دروازه کښې داخل شئ مونږ به ستاسو [مخکښې] گناهونه

---

[1] ) ترجمه: او مونږ د هغوی نه دولس سرداران مقرر کړه.

معاف کړو [داخوبه دتهولو دپاره وي او] ﴿ سَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ﴾ چه کوم خلق نيك كارونه كوي او هغوئ ته به پرې زائد ته نوره هم ورکړه کوو ﴿فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ﴾ نو بدل کړه دې ظالمانو يوه بله کلمه چه خلاف وه ددې کلمې چه دهغې [دوينا] دوي ته فرمائش شوې وو. ﴿ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَظْلِمُونَ ﴾ په دې باندې مونږ په هغوي باندې يو بل آسماني آفت اوليږلو.په دې وجه چه هغوي به حکم ضائع کولو.

وَسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ إِذْ

اوتپوس اوکړه دهغوئ نه| دحال دکلی | هغه کلې | چې وۀ | په غاړه | دسمندر| کله چې

اوددوئ نه دهغه کلي [دخلقو] متعلق تپوس اوکړه | چې دسمندر په غاړه اباد وو| کله چې به

يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ

دحدنه اوړيدل هغوئ|په ورځ دخالی | کله چې | راتلل به هغوئ ته | ماهيان دهغوئ | په ورځ

هغوئ د خالی په ورځ دحد نه تجاوز کولو | هغوی ته به دخالی په ورځ کبان ښکاره

سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ

دخالی دهغوئ|سرد اوبو ته | اوپه هغه ورځ کښې | چې داخل به نۀ وۀ هغوئ په خالی کښې|نونۀ به راتلل هغوئ ته

ښکاره راتلل| ..........اوچې د خالی ورځ به نه وه نو نه بۀ راتلل |

كَذَٰلِكَ نَبْلُوهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ وَإِذْ قَالَتْ

همدارنګې |ازمايو مونږ هغوئ |په سبب دهغې |چې وۀ هغوئ |چې نافرمانی به ئې کوله |اوهر کله چې| اووئيل

نو په دې طريقه مو دهغوئ امتحان اوکړو| ځکه چې هغوئ ډير نافرمانه خلق وو| اوکله چې په هغوئ

أُمَّةٌ مِنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ

يوې ډلې | دهغوئ نه | ولې | نصيحت کوئ تاسو|هغه قوم ته | چې الله | هلاکونکې دهغوئ دې

کښې يوې ډلې اووئيل |چې تاسو داسې خلقو ته ولې نصيحت کوئ | چې الله ﷻ د هغوی هلاکونکې دې

أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا قَالُوا مَعْذِرَةً إِلَىٰ رَبِّكُمْ

یا عذابونکې دهغوئ دې| په عذاب| سخت سره | اووئيل هغوئ| دپاره دعذ ر | رب ستاسو ته

یا ورته سخته سزا ورکونکې دې| هغوئ ورته اووئيل چې مونږ [دا کار] ځکه کوو چې الله ته خپل عذر پيش کړو

وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا

اوښائی چې هغوئ | ويريږی | پس کله چې |هير کړو هغوئ|هغه|چې نصيحت شوې وو هغوئ ته|

اوکيدې شی چې هغوئ منع شی| نو هر کله چې هغوئ هغه نصيحتونه هير کړل کوم چه ورته کولې شو

بِهِ أَنْجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوءِ وَأَخَذْنَا

په هغې سره|نو بچ کړل مونږه | هغه کسان|چې منع کول ئې خلق | دبدئ نه | اواونيول مونږه

نو مونږ هغه خلقو ته نجات ورکړو کوموچې به بدئی نه خلق منع کول| اومونږ هغه

الَّذِينَ ظَلَمُوا بِعَذَابٍ بَئِيسٍ بِمَا كَانُوا

هغه کسان |چې ظلم ئې کړې وو | په عذاب | سخت سره | په سبب دهغې|چې وو هغوئ|

خلق راونيول چې ظلم به ئې کولو| ..........او په ناترسه عذاب کښې مو راونيول ځکه چې هغوئ به

| يَفْسُقُونَ۝ | فَلَمَّا | عَتَوْا | عَمَّا | نُهُوا | عَنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې نافرمانی به ئې کوله | نو هر کله چې | سرکشی اوکړه هغوئ | ادهغې نه | چې منع کړې شوی وو | ادهغې نه |

نافرمانی کوله | بیا چې هغوئ دهغه کارونو نه منع نه شو چې دکومو نه منع کړې شوی وو

| قُلْنَا | لَهُمْ | كُونُوا | قِرَدَةً | خَاسِئِينَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اوونیل مونږ | هغوئ ته | چې شئ | شادوګان | ذلیله |

نومونږ ورته اوونیل چې ذلیله شادوګان شئ |

## آسان ترجمه قرآن

او دوی نه دهغه کلي په باره کښې تپوس وکړه چه د دریاب په غاړه باندې آباد وو ، چه هغوی د سبت (خالي) د ورځې په باره کښې زیاتې کولو چه کله دهغه (دریاب) مهیان د خالي په ورځ به په تپوپونو تپوپونو راتلل ، او چه کله به د خالي ورځ نه وه نو نه به راتلل دغه شان د هغوی د بار بار نافرمانو د وجې نه مونږ هغوی ځوازمائیل او (هغه وخت هم دوی ته یاد کړه) چه کله د دوی یوې ډلې (بلې ډلې ته) وئیلي وو چه : تاسو دې خلقو ته ولې نصیحت کوئ چه دوی لره الله یا هلاکونکې دې او یا څه سخت قسم سزا ورکونکې دې؟ بلې ډلې ورته ووئیل چه : دا مونږ ځکه کوؤ چه ځمونږ دالله په نیز ذمه فارغه شي ، او کیدې شي چه (دې نصیحت سره) دا خلق پرهیزکاره شي بیا چه کله دې خلقو هغه خبره هیره کړه چه دهغې دوی ته نصیحت کړې شوې وو نو د بدۍ نه منع کوونکو لره خو مونږ بچ کړل ، او چا چه نافرماني کړې وه د هغوی د بار بار نافرمانو د وجې نه مونږ هغوی لره په سخت عذاب باندې ونیول . نو دغه شان اوشوه چه د کوم کار نه هغوی منع شوې وو ، چه کله هغوی د هغې خلاف سرکشي وکړه نو مونږ ووئیل چه : ذلیله شادوګان جوړ شئ .

## خلاصه تفسیر

﴿ وَسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ﴾ اوتاسو ددې [خپلې زماني یهودو] خلقو نه [د تنبیه په طور] ددې کلي [والو] چه دریائي شور[تریخ دریاب] سره آباد وو [اوپه دې کښې یهودیان اوسیدل چه په هغوي د خالي په ورځ ښکار کول منع وو] ﴿إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ﴾ دهغه وخت حال تري اوپوښتئ چه کله هغوي [چه دهغه ځائي داوسیدونکو ته [خالي د ورځې] متعلق څه حکم وو دهغې [په باره کښې [د شریعت] دحد نه وتل کله چه د خالي په ورځ به خودهغوي [دسیندونو] کبان په [داوبو په سر راووتل] ﴿يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ﴾ اوښکاره کیدل به [په سرباندې] ددوي په مخکښې به راتلل او چه کله به دخالي ورځ نه وه نو ددوي په مخکښې به نه راتلل [بلکه دهغه ځائې نه به لرې تلل او ددې وجه دا وه چه] ﴿ كَذَٰلِكَ نَبْلُوهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ۝ ﴾ مونږ په دوي باندې [سخت] آزمیښت کولو [چه څوك په حکم باندې پاتې کیږي او څوك نه پاتې کیږي اودا آزمیښت] په دې وجه [وو] چه هغوي به [دمخکښې نه بې حمکې کوله [ددې وجې داسې سخت حکم سره دهغوي دآزمیښت اود اهل طاعت آزمیښت په لطف او توفیق سره مقرون کیږي] ﴿ وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا ۙ اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ ﴾ او [دهغه وخت حال تري اوپوښته] چه په دوي کښې یوې ډلې به [چه نصیحت کولو او د اثر او فائدې نه مایوسه شوي وو. داسې خلقو ته چه اوس هم نصیحت کولو اودومره مایوسه شوي هم نه وو لکه

څنګه چه د ﴿لعلهم يتقون﴾ نه معلوميږي] داسې اووئيل چه داسې خلقو ته ولې نصيحت کوئ چه [دهغوي نه دحق د قبليدو څه اميد نه وي او ددې نه معلوميږي چه هغوي] الله ﷻ هلاکولو والا ﴿مُهْلِكُهُمْ اَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا﴾ يا [که هلاک نشو نو] هغوي ته [څه په بله طريقه] سخته سزا ورکولو والا دې [يعني داسې خلقو سره ولې دماغ خوري] ﴿قَالُوْا مَعْذِرَةً اِلٰى رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴾ هغوي جواب ورکړو چه ستاسو [او دخپل] رب په مخکښې عذر کولو دپاره [دوي ته نصيحت کوو چه دالله ﷻ په مخکښې اووايو چه اې الله ﷻ! مونږ خو ونيلي وو خو دوي وانه ورېدل مونږ معذور يو] او [داشان] ددې دپاره چه کيديشي دوئ اوويرېږي [او عمل اوکړي خو هغوي کله عمل کولو]. ﴿فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ﴾ نو [آخر] چه کله هغوي ددې کار پرېښودونکي شو چه کوم باندې دوي پوهه کړې شوي وو [وې نه منل] ﴿اَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوْٓءِ﴾ نو مونږ دا خلق د [عذاب څخه] بچ کړل چې کومو به ددې خراب عادت څخه منع کؤله [که برابرئې منع کول او يا د عذر په وجه ئې پرېښودې وو] او دې خلقو چه [په دې مذکوره حکم يې کښې] زياتي کوله ﴿وَاَخَذْنَا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا بِعَذَابٍۭ بَئِيْسٍۭ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ﴾ دهغوي [دې حکم ماتولو وجې سره] يو سخت عذاب کښې اونيولې شو يعني ﴿فَلَمَّا عَتَوْا عَنْ مَّا نُهُوْا عَنْهُ﴾ چه کله هغوي د کوم کار نه منع کړې شوي وو ﴿قُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِـِٕيْنَ﴾ په هغې کښې دحد نه تير شول [نو دا خو تفسير شو د نسيان ماذکروا به] نو مونږ دوي [د قهر دپاره] اووئيل چه تاسو بيزوګان جوړشئ [دا تفسير شو د عذاب بئيس].

وَاِذْ　تَاَذَّنَ　رَبُّكَ

او کله چې | خبر ورکړو | رب ستا

| ............ او هغه وخت ياد کړه چې ستا رب دا اعلان اوکړو

لَيَبْعَثَنَّ　عَلَيْهِمْ　اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ　مَنْ

چې خامخا به هغه مسلط کوي | په هغوئ باندې | دورخې دقيامت پورې | هغه څوک |

چې دقيامت ورځې پورې به په دې بنی اسرائيلو داسې خلق مسلط کړم | چه دوی ته به

يَّسُوْمُهُمْ　سُوْٓءَ الْعَذَابِ　اِنَّ　رَبَّكَ　لَسَرِيْعُ

چې رسوی به هغوئ ته | سخت عذاب | بيشکه | رب ستا | خامخازر ورکونکې دې

دذلت عذاب ورکوی | ........................ بېشکه ستا رب په سزا ورکولو کښې

الْعِقَابِ　وَاِنَّهٗ　لَغَفُوْرٌ　رَّحِيْمٌ　وَقَطَّعْنٰهُمْ

دعذاب | او بيشکه هغه | خامخا بښونکې دې | رحم کونکې دې | او جدا جدا کړل مونږه هغوئ

ډيرتيز دې | او هغه ذات بښونکې او مهربان دې | ....................... او مونږ دوئ تول په

فِى الْاَرْضِ　اُمَمًا　مِنْهُمُ　الصّٰلِحُوْنَ　وَمِنْهُمْ　دُوْنَ ذٰلِكَ

په زمکه کښې | ډلې ډلې | ځينې دهغوئ نه | نيکان دی | او ځينې دهغوئ نه | نه دي دغسې

زمکه باندې جدا جدا کړل | په دوئ کښې څوک نيکان وو او څوک په کښې بل شان وو

وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۶۸﴾

اواوامتحان اوکړو مونږ په هغوئ | په ښه حالاتوسره | اوپه بدو حالاتوسره | دپاره ددې چې هغوئ | اواپس شي

او په ښه او بدو [دواړه] کارونومونږ امتحان اوکړو | د دې دپاره چې [نافرماني] نه واپس شي

فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ يَاْخُذُوْنَ

نوپاتې شول | روستود هغوئ نه | نااهله خليفګان | چې وارثان شول | دکتاب | چې اخلي هغوئ

بيا ددغې نسلونونه پس داسې نااهله اولاد پاتې شو | او [د الله ﷻ] دکتاب وارثان شول | چې په دې

عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ۚ وَاِنْ يَّاْتِهِمْ

فائدې | ددې معمولې دنيا | اووائي | ازر ده چې معافي به اوشي | مونږ ته | اوکه راشي هغوئ ته

ددنيامال ومتاع راغونډوي | اودوئ وائي چې اميد دې چې معافي به راته اوشي | او که بياورته

عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ ۭ اَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ

مال اسباب | په مثل دهغې | نواخلي هغوئ هغه | آيانۀ ده اغستې شوې | ددوئ نه | وعده

هغه شان مال په لاس ورشي | نوابې تپوسه ئې اخلي | .آيا ددوی نه په کتاب تورات کښې کلکه

الْكِتٰبِ اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوْا مَا

دکتاب | چې نۀ به وائي دوئ | په الله | مګرحق | اولوستلې دی دوی پخپله | هغه څه

وعده نه وه اخستې شوې | چې په الله به بغيردحق نه نور څه نه وائي | اودوئ لوستې دی هغه څه

فِيْهِ ۭ وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ۭ

چې په هغې کښې دی | اوکور | آخرې | بهتره دې | دپاره دهغه کسانو | چې يريږي

چې په هغې کښې ليکلې شوی دی | اودآخرت کور پرهيزګارانو دپاره بهتردې |

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

آيا تاسو عقل نۀ لرئ |

آياتاسو نه پوهيږئ |

## آسان ترجمه قرآن

او (ياد کړه هغه وخت) چه کله ستا رب اعلان کړې وو چه هغه به په دوی باندې تر قيامته پورې يو نه يو داسې کس مسلط کوي چه هغه به دوی ته ډير سخت تکليفونه ورکوي بې شکه ستا رب ډير زرسزا ورکونکې دې او يقيناً هغه ډير بخونکې ډيرمهربانه دې، او مونږ دوی لره دنيا کښې په مختلفو ډلو کښې تقسيم کړل، نو دوی کښې نيکان خلق هم وو او نور خلق هم، او مونږ دوی لره په ښو او بدو حالاتو کښې ازمائيلي وو، دې دپاره چه دوی (سمې لارې ته) واپس شي بيا دوی نه وروستو داسې جانشين راغلل چه د کتاب (يعنی تورات) وارثان جوړ شو، مګر دهغوی حال داوو چه ددې ذليلې دنيا سامان به ئې په (رشوت کښې) اخستو او دا به ئې وئيل چه: مونږ ته به بخنه ووشي، حال دا چه که د هغې غونډې سامان دوی ته

دوباره راخلي وو نو دوی به هغې لره هم (رشوت کښې) اخستې وو آیا دوی ته کتاب کښې دا وعده نه وه اخستې شوې چه دوی به الله ته د حق نه سوا بله خبره نه منسوب کوي؟ او دې (کتاب) کښې چه څه لیکلي وو هغه دوی باقاعده لوستلي هم وو او د آخرت کور د هغه خلقو د پاره ډیر غوره دې چه کوم تقویٰ اختیاروی (اې یهودو!) بیا هم تاسو دعقل نه کار نه اخلئ؟

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ﴾ او هغه وخت یادول پکار دي چه کله ستارب ﷻ [دنبیانو په معرفت سره] دا خبره کړې وه چه هغهﷻ به په دې یهودو باندې [ددوي د گستاخیو اونافرمانیو په سزا کښې] قیامت [ته نزدې] پورې داسې [یونه یو کس] سرې به مسلط کړي چه دوي ته به سخت [د ذلت اومحکومیت] تکلیف رسوي [چنانچه ډیرې مودې راسې یهود د یو نه یو سلطنت محکوم اومقهور راروان دي] ﴿ اِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيْعُ الْعِقَابِ ۖ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ بلاشبه ستارب واقعي [چه کله غواړي] زر سزا ورکوي او بلاشبه هغه واقعي [که منع شي نو] ډیرد مغفرت او درحمت والا دي ﴿ وَقَطَّعْنٰهُمْ فِى الْاَرْضِ اُمَمًا ﴾ او مونږ په دنیا کښې دوي مختلفې ډلې کړې [چنانچه] ﴿ مِنْهُمُ الصّٰلِحُوْنَ وَمِنْهُمْ دُوْنَ ذٰلِكَ ﴾ بعضې په دوي کښې نیک [هم] وو او بعضې په دوي کښې څه بل شان وو[یعني بد وو] ﴿ وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴾ اومونږ دا بدان هم د خپلې ورکړې او تربیت او اصلاح په اسباب جمع کولوکښې هیڅکله خانله پریې نښودل بلکه همیشه] دوې مو په خوشالیو [یعني صحت او مالدارئي] او بدحالئي [یعني بیمارئي او فقر] سره مو پرې آزمیښت کولو چه کیدیشي [په دې] منع شي [څکه چه کله دنیکو ترغیب ورکولې شي اوکله دبدو ترهیب ورکولې شي.دا حال ددوي د سلفو شو]. ﴿ فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ ﴾ بیا ددې [سلفو] نه پس داسې خلق جانشین شو﴿ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ يَاْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى ﴾ چه کتاب [یعني تورات] خو ئې دهغوي نه حاصل کړو [لیکن ددې سره سره حرام خواره داسې دي چه د کتاب داحکامو په بدله کښې] ددې ادني دنیا مال متاع [که ورته ملاؤ شي نو بې تکلفه دا] اخلي ﴿ وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ۚ وَاِنْ يَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ ﴾ او [بیباک داسې دي چه دې داگناه وره گڼري] او وائي چه زمونږ به ضرور بخښنه اوشي [څکه چه مونږ (ابناء الله او احباء الله يو.داسې گناهونه زمونږ په مخکښې څه څیز دي] حالاتکه [په خپلې زرورتیا او په گناه باندې ښه اخته وي تر دوئ چه] که دوي ته [بیا] همداشان [د دین د خرڅولو په بدله کښې] مال او متاع راشي نو [په داسې بېباکئ سره ئې] اخلي [او استخاف د معصیت په خپله کفر دې چه پدې باندې دمغفرت احتمال هم نشته دې ترڅو چه یقین نه وي چنانچه مخکښې هم دا ارشاد دې چه] ﴿ اَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ الْكِتٰبِ ﴾ آیا ددوي نه ددې کتاب دمضمون وعده نه وه اخستلې شوې ﴿ اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوْا مَا فِيْهِ ﴾ چه الله ﷻ ته د حق [اوواقعي] خبرې نه سوا دنورو خبرو نسبت نه کوئي [مطلب دادې چه کله یو آسماني کتاب اومنلې شي نو ددې معني دا وي چه مونږ به ددې ټول مضمونونه منو] او [وعده هم څه اجمالي وعده وانخستلې شوه چه په هغې کښې احتمال وي چه شائد ددې خاص مضمون په دې کتاب کښې کیدل دوي ته معلوم نه وي بلکه تفصیلي وعده ترې واخستلې شوه چنانچه] هغوي په دې کتاب کښې چه څه [لیکلي] وو هغه ئې [هم] اوونیل [چه په دې سره هغه احتمال هم لاړو

بیا هم دوي دداسې لوئې خبرې دعوي کوي چه باوجود ددې نه چه د معصیت د استحقاق مغفرت عقیده هم لري چه په الله ﷻ باندې محض تور دې] او [هغوي دا تړوله قصه ددنیا دپاره باقي پریښودله باقي] ﴿وَالدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ﴾ دآخرت واالا کور دهغه خلقو دپاره [ددې دنیا نه] ښه دې چه [هغوي ددې غلیظو عقیدو نه] پرهیزکوي بیا ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ آیا [اې یهودو] تاسو [په دې خبره باندې] نه پوهیږئې.

## معارف او مسائل

د ذکر شوؤ آیتونو څېنې په ړومبو آیتونو کښې د موسی ﷺ دپاتې قیصې ذکر کولو نه پس د هغوئ ﷺ د امت دناکاره خلقو بدیت او خراب انجام بیان شویدې ، اوس په دې آیتونو کښې هم د دوئ د سزا او خراب انجام بیانول دی .

ړومبی آیت مبارك کښې هغه دوه سزا ګانې بیان شوی دی چې په دنیا کښې به پرې په مخه جاری وی ، یو دا چې تر قیامته پورې به پرې دسختې سزا ورکولو دپاره څوك مسلط کولې شی چې ذلیلان او خواران به ئې لری ، نو هم هغه راسې تر ننه پورې یهود خلق ، هر چرته چې ماتحتئ کښې پاتې او بې وسه را روان دی ، د ننه حکومت ئې هم تش په نوم څکه دې چې دغه حکومت ئې د روس ، امریکې ، برطانیه وغیره دیو چاؤنړئې نه زیات شان نه لری ، څنګه چې هر پوهیدنکې کس ته معلومه ده چې دغه لویو حکومتونه اسلام د ښمنئ دپاره دغه تش په نوم اسرائیلی حکومت چلوی که دوئ ترې لاس اخلی نو په دنیا کښې به د اسرائیلی وجود بالکل پاتې نشی .

دویم آیت مبارك کښې د یهودو د یوې بلې سزا بیان داسې راغلې دې چې دوئ ددنیا په مختلفو ملکونو کښې دډلو ډلو په صورت کښې ویشلې شوی دی ، په هیڅ یو ملك کښې تول په جمع رایوځائې شوی نه دی ، نو د ﴿وَقَطَّعْنَاهُمْ فِي الْأَرْضِ أُمَمًا﴾ هم دغه مطلب دې .

﴿قَطَّعْنَا﴾ د تقطیع مصدر نه مشتق دې معنی ئې توتې توتې کول دی . ﴿أُمَمًا﴾ د امة جمع ده ، معنی ئې یو ډله یا یوه فرقه ده ، د تړولې جملې مطلب دا شو چې مونږ یهودی قوم په مختلفو ملکونو کښې د ډلو ډلو په صورت کښې اوویشل .

دې نه معلومه شوه چې د الله ﷻ یو انعام او احسان د اهم دې چې پوره قوم تول په یوځائې راجمع وی یا چرته اکثریت او ګنړ شمیر لری او دډلو ډلو په صورت کښې ځان ځان له بیل بیل کیدل ئې د الله ﷻ عذاب دې . په دې بنا مسلمانانو باندې همیشه دپاره د الله ﷻ دا انعام او احسان راروان دې او تر قیامته پورې به وی ، چې هر چرته دوئ ته زبردست اجتماعی قوت حاصل وی، داسلسله مدینې منورې نه شروع شوه اوپه مشرق او مغرب کښې هم په دې شان په حیراؤنکې طریقه خوره شوه. مشرق بعید کښې،پاکستان ، انډونیشاء ، وغیره مستقل اسلامی حکومتونه هم ددې په نیتجه کښې جوړ شو ، بل طرفته همیشه همیشه دپاره دیهودو دا حالت په مخه پاتې شوې دې چې په مختلفو ملکونو کښې خواره واره پراته دی ، که هر څومره دولت مند دی بیا هم د اقتدار اختیاراتو لرلو نه بې نصیبه دی.

د څه مودې راسې دفلسطین په څه حصه کښې د یهودو حکومت جمعوالې او په ګوتوجوړ کړې اقتدار که چاته ښکاری نو د نبی کریم ﷺ د فرمان مطابق ، د عیسی ﷺ د آسانئ دپاره یو ځئې ته راجمع کول دی نو د صحیح احادیثو مطابق عیسی ﷺ به قیامت ته نزدې د

آسمان نه راکوزیږي ، عیسایان به ټول مسلمانیږي ،یهودو سره به جهاد کوي ، مړه کوي به ئې وروسته به عیسی ﷺ په دمشق کښې د آسمان نه راکوز شي . دجال به اووژني او داشان به د یهودو جرړه اوباسي. د الله ﷻ مجرمان د وارنټ او پولیس په ذریعه دخپل هلاکت ځائې ته نشي راغوښتې بلکه د تکویني اسبابو په راجمع کولو سره مجرمان پخپله دغه ځائې ته ښه په کوشش سره خپل د هلاکت ځائې رسي . د عیسی ﷺ نزول د شام په ملك کښې دمشق کښې کیدو والا دې ، یهودیانو سره به هم دې ځائې کښې جنګ کیږي چې عیسی ﷺ دپاره ددوئ خاتمه کول آسان شي تول عمر ورته قدرت دا سزا ورکړه چې په بیل بیل ملك کښې یهودیان ځان ځانله ډلې داسې پاتې شول چې اقتدار او حکومت ورسره نه وی اوس که فلسطین کښې ټول رایوځائې کیږي نو د ټولو په یو ځائې هلاکول مطلب دی ، دا راجمع کیدل ئې هیڅرې د الله ﷻ فضل او احسان نشي ګڼلې. خلاصه د خبرې داشوه چې موجوده اسرائیلي حکومت په حقیقت کښې یو مستقل حکومت نه دې . بلکه د غیر مسلم ملکونو د جوړې کړې د یو چاؤنړئي حیثیت لري چې هم دهغوئ په اشارو او مدد چلیږي. د اهم هغه رسوائي او ذلت دې کوم چې الله ﷻ دلته داسې بیان کړې دې چې :﴿وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ﴾[اوهغه وخت یادکړه چې ستارب دا اعلان اوکړو چې دقیامت ورځې پورې به په دې بني اسرائیلو داسې خلق مسلط کړم [ چه دوی ته به دذلت عذاب ورکوي] اول د سلیمان ﷺ د لاسه ذلیله کړې شو. بیا د بخت نصر په ذریعه په آخره کښې د نبي کریم ﷺ د لاسه او څه پاتې د فاروق اعظم ؓ په ذریعه په ذلت او خوارئ سره د دوئ اوښکل او عذابول ، ښکاره خبره ده چې تاریخ ئې هم په ښکاره مني .

ددې آیت مبارك دویمه جمله ده : ﴿مِنْهُمُ الصّٰلِحُوْنَ وَمِنْهُمْ دُوْنَ ذٰلِكَ﴾[په دوئ کښې څه نیکان وو او څه په کښې بل شان وو] دبل شان نه مطلب کافران ، فاجران اوبدکاره خلق دی ، مطلب دا چې په یهودو کښې ټول یو قسم خلق نه دی ، په کښې نیکان هم شته ، دې نه مطلب یا خو هغه خلق دی چې د تورات په زمانه کښې د تورات په ټولو حکمونو ئې عمل کړې وی ، هیڅ قسم نافرمانی ئې ترې نه وه کړې ، اونه په کښې د څه تاویل کولو او بدلون راوستو تکل ئې کړې وی. یا ترې هغه خلق مراد وی چې د قرآن عظیم الشان د نازلیدو نه پس دهغې تابع شوی وی او په نبي کریم ﷺ باندې ئې ایمان راوړې وی .

ددې بل طرفته هغه خلق دی چې تورات آسماني کتاب مني او بیا ئې هم خلاف کوي ، یا ددې په حکمونو کښې بدلون راوستو سره خپل آخرت ددې په ښکاره څیزونو سره خرخ کړی .

د آیت مبارك په آخر کښې فرمائې چې :: ﴿وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ﴾[او په ښه او بدو[دواړه] کارونو موپرې امتحان اوکړو | د دې دپاره چې[نافرمانئ] نه واپس شي] ښه حالت نه مطلب مال ، دولت او د ش وعشرت سامان ورکول دی . او د خرابو حالتونو نه مراد یا خو دخوارئي اوذلت هغه واقعات دی چې په هره زمانه کښې په مختلفو صورتونو کښې په دوئ راتلل او یا ترې مراد قحط اونیستي ده چې په دوئ راوستې شوې وه.

بهر حال مطلب دادې چې دا نسان د فرمانبردارئ یا سرکشئ د امتحان اخستو دپاره دوه طریقې دی چې هغه دواړه پرې استعمال کړې شوې . یو دا چې احسانات او انعامات مو پرې اوکړل په دې آزمینبت کښې داسې ناکام شو چې ناشکري او بې قدري ئې اوکړه ، بل دا چې

په مختلفو تکلیفونو او پریشانو کښې مو راګیر کړل. په دې آزمیښت کښې هم داسې ناکام شو چې د خپلو بدوعملوو نه واؤنه ړیدل او نه ئې ترې توبه اوکړه. کله چې په دوئ فراخی او آسوده حالی راوستې شوه نو وې وئیل چې: ﴿إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ﴾. یعنی [معاذ الله] الله ﷻ فقیر دې او مونږ مالدار، او کله چې په دوئ باندې داولړې او غریبئ امتحان راوستلې شو نو دوئ اووئیل چې [يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ] یعنی دالله ﷻ لاس تنګ شوې دې.

**فائده**: ددې آیت مبارك نه یوه فائده دا حاصله شوه چې په یوځائې کښې د قوم راجمعوالې د الله ﷻ یو نعمت دې او خوارۀ واره کیدل ئې عذاب دې. بله فائده ترې دا حاصله شوه چې ددې دنیا راحت اوتکلیف، خوشحالي او غم په حقیقت کښې د الله ﷻ د امتحان مختلفې پرچې دی، په دې شان سره د انسان آزمیښت کولې شی چې دې مؤمن او خداپرست جوړیږی او که نه؟ ددې دنیا تکلیف او مصیبت باندې ویرژړا او مخ سرټکول پکار نه دی، اونه ئې خوشحالئ او راحت باندې مغروره کیدل او پرق چاؤدل پکاردی، د آخرت فکر چې چا سره مل وی نو دا دواړه حالتونه دهغه مخه نش بندولې:

نه شادي داد سامانے نه غم آورد نقصانے

به پیش همت ماهر چه آمد بود مهمانے

**ترجمه**: نه خوشحالئ څه سامان کړې دې او نه غم نقصان رارسولې دې، خما د همت په وړاندې چې هر څه راغله هغه دیو میلمه په توګه وؤ.

دریم آیت مبارك کښې فرمائی چې: ﴿فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُوا الْكِتَابَ يَأْخُذُونَ عَرَضَ هَٰذَا الْأَدْنَىٰ وَيَقُولُونَ سَيُغْفَرُ لَنَا وَإِنْ يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِثْلُهُ يَأْخُذُوهُ﴾ [بیا دغې نسلونونه پس داسې نااهله اولاد پاتې شو] او [دالله ﷻ] د کتاب وارثان شول] چې په دې ددنیامال ومتاع راغونډوی] اودوئ وائی چې امیددې چې معافی به راته اوشی] او که بیاورته هغه شان مال په لاس ورشی] نو [بې تپوسه] ئې اخلی]

دلته ﴿خَلَفَ﴾ د ماضی صیغه ده. مصدر ئې خلافة دې، په معنی د قائمقام کیدلو خلیفه کیدلو سره رازی. دې پسې بل لفظ ﴿خَلْفٌ﴾ دې، معنی ئې قائمقام او خلیفه ده، خو په سکون د لام سره ﴿خَلْفٌ﴾ هغه خراب قائمقام ته وئیلې شی چې د خپلو نیکو مشرانو نه په بدله لار روان وی. او ﴿خَلَفٌ﴾ په زور دلام سره هغه نیك قائمقام ته وئیلې شی چې د خپلو بزرګانو په پل باندې روان وی او د هغوئ روان کړې کار جاری ساتی، البته کله کله دخراب قائمقام دپاره هم استعمالیږی.

﴿وَرِثُوا الْكِتَابَ﴾، ﴿وَرِثُوا﴾ د وراثت نه مشتق دې معنی ئې هغه څیز دې چې د چا د مړ کیدو نه پس دهغه ژوندو میراث اوړونکو ته پاتې کیږی، د جملې معنی داشوه چې د تورات کتاب دې خلقو ته په میراث کښې پاتې شو، یعنی هغوئ چې مړۀ شو نو دې خلقو ته په لاس ورغلو.

د ﴿عَرَضَ﴾ معنی هغه سامان دې چې د نغدو په بدله کښې اخستلې شی، اوکله مطلق مال دپاره هم استعمالولې شی خواه هغه نغدیت وی اوکه سامان.

تفسیر مظهری کښې راغلی دی چې دلته ئې هم دا عامه معنی مراد ده[1].

[1]) تفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۴۲۵

په دې بنا د مال ، دولت نه په ﴿عَرَضَ﴾ سره تعبير كولو كېښې دې ته اشاره ده چې د دنيا مال كه هر څومره وى هغه عارضى وى ، هميشه دپاره نه وى ،ولې چې دا لفظ د ﴿عَرَضَ﴾ د جوهر په مقابله كښې د ناپائيدار څيز دپاره استعمالولې شى كوم چې خپل مستقل وجود نه لرى . او پخپل وجود كښې د بل څيز تابع وى ، په دې وجه د عارض لفظ د وريځې په معنى كښې راځى ځكه چې د هغه وجود پاتې كيدونكې نه وى بلكه زر ختميږى قرآن عظيم الشان كښې :﴿هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ هم د دې معنى دپاره راغلې ده.

﴿هٰذَا الْاَدْنٰى﴾ كښې لفظ د ﴿اَدْنٰى ، دُنُوّ﴾ بمعنى قرب څخه هم مشتق وئيلې كيدې شى ، په دې صورت كښې به د ﴿اَدْنٰى﴾ معنى اقرب شى ، د دې مؤنث ﴿دنيا﴾ ده، او د دې معنى نزدې ده ، او د آخرت په مقابله كښې دا جهان انسان ته زيات قريب دې ، په دې وجه يې دې ته ﴿اَدْنٰى﴾ او دنيا اووئيله. او بل احتمال دا هم دې چې دا لفظ دناءة بمعنى ذلت څخه مشتق دې چې په دې لحاظ سره به ئې معنى ذليل او سپك وى ، ولې چې دنيا او د دنيا ټول سامان د آخرت په مقابله كښې سپك او ذليل دې . په دې وجه دې ته ادنى او دنيا اووئيلې شوه.

د ټول آيت مبارك معنى به دا شى چې دروميى دور په يهوديانو كښې خو دوه قسمه خلق وو ، څه نيكان او صالحان خلق وؤ چې د تورات شريف د شريعت پابند وو او څه په كښې نافرمانه ګناهګاران وو ، مګر دوئ نه پس ځوك چې د دوئ په نسل كښې د دوئ خليفه ګان قائمقام او د تورات وارثان جوړ شو هغوئ به دا كار كولو چې د الله ﷻ كتاب ئې د سوداګرئ مال جوړ كړو د خپل غرض والا خلقو نه به ئې رشوت اخستو ، د الله ﷻ كلام به ئې هغوئ دپاره بدل كړو او د هغوئ مطلب ته به ئې را اړولو .

﴿وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا﴾[او دوئ وائى چې اميد دې چې معافى به راته اوشى] الله ﷻ ورته په دې غلطئ داسې خبردارې وركړو چې :

﴿وَاِنْ يَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ﴾[او كه بياورته هغه شان مال په لاس ورشى [ نو]بې تپوسه]ئې اخلى] يعنى د دوئ حال دا دې چې كه اوس هم دوئ ته د كلام الله د تحريف په بدله كښې څه مال ملاؤ شى نو اوس هم په مال اخستلو سره د تحريف كولو څخه نه منع كيږى.

مطلب دا دې چې واقعى د الله ﷻ بخښنه او مغفرت په حقه دې . خو د هغه خلقو دپاره چې پخپلو كړو پښيمانه وى او راتلونكى وخت كښې د دې د نه كولو پخه اراده اوكړى ، او د دې اصطلاحى نوم توبه ده .

دا خلق په جرم باندې د هميشوالى كولو باوجود د مغفرت اميد هم ساتى ، حالانكه كه دوئ ته په دې كښې څه مال ملاؤ شى نو دوئ به د تحريف كولو څخه منع نه شى . په ګناه باندې كلك اوسيدل او بيا ورسره د مغفرت اميد هم ساتل ، دا خالله دهوكه وركول دى په دې كښې بل څه حقيقت نشته دې .

آيا دې خلقو نه په تورات كښې دا وعده نه وه اخستې شوې چې دوئ به د حق څخه سوا بله خبره الله ﷻ ته نه منسوب كوى ، او دې خلقو دا وعده ئې پخپله لوستلې هم وه او نورو ته ئې خودلې هم ، دا ټول د دوئ كم عقل توب دې ، حالانكه اصل خبره داده چې د آخرت كور پرهيزګاره خلقو دپاره ډير غوره دې ،لا زوال دولت دې،آيا دوئ په دومره خبره هم نه پوهيږى؟

وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ

| اوهغه كسان | چې پابندي كوى | دكتاب | اوقائم ئې اوساتو

| اوڅوک چې په کتاب باندې په پابندۍ سره عمل کوی | او مونځونه باقاعده کوی

اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ ۝ وَاِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ

مونږ | بیشکه مونږه | نه ضائع کوؤ | اجر د دغسې نیکانو خلقو | اوکله چې | پورته کړو مونږه | غر

نو مونږ د نیکانو خلقو ثواب نه ضائع کوو | ............ اوهغه وخت یاد کړه چې مونږ غر

فَوْقَهُمْ كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۚ خُذُوْا

دپاسه دهغوئ | لکه چې هغه غر | یوه چترۍ وه | او ګمان اوکړو هغوئ چې هغه | راپریوتونکې دې | په هغوئ باند | اونیسئ

د دوئ د سرونو دپاسه داسې اوچت کړو لکه چهترۍ | او دوئ ګمان کولو | چې بس دغه دې پریوتلو

مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ

هغه | چې درکړې دې مونږ تاسوته | په قوت سره | او یاد ساتئ | هغه | چې په دې کښې دی | دپاره د دې چې

| اورته موا او وئیل | چې مونږ کوم کتاب درکړې دې | هغه مضبوط اونیسئ | اوچې څه په کښې دی هغه یادساتئ

تَتَّقُوْنَ ۝ ع

تاسو خان اوساتئ |

شاید چې دګناهونو نه بچ شئ |

## آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه کتاب لره په مضبوطیا سره نیسي ، او مونځ قایموي ، نو مونږ د داسې اصلاح کونکو اجر نه ضایع کوؤ او (یاد کړه) چه مونږ غر لره د دوی د پاسه داسې اوچت کړې وو لکه چه څپر وي او دوی ته داګمان راغلې وو چه دا د دوی د پاسه راپریوتونکې دې (هغه وخت مونږ دوی ته حکم کړې وو چه) مونږ تاسوته کوم کتاب درکړې دې هغه په مضبوطیا سره اونیسئ او دهغې خبرې یادې کړئ دې دپاره چه تاسو تقوې اختیار کړئ.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ ﴾ او [په دوي کښې] چه کوم خلق دکتاب [یعني دتورات] پابند دي [چه په دې کښې په حضور ﷺ باندې دایمان راوړلو حکم هم دې نوپابندي دا ده چه مسلمانان شو] ﴿ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ ﴾ او [دعقائدوسره دنیکو عملونودکولو هم پابندي څکه] دمونځ پابندي کوي ﴿ اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ ۝ ﴾ مونږ به داسې خلقو ته چه خپله [داشان] اصلاح اوکړي ثواب به ئې نه ضائع کوؤ ﴿ وَاِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ ﴾ اوهغه وخت هم قابل ذکر دې چه کله مونږ غر اوچت کړو د چت په شان ددې [بني اسرائیلو] دپاسه [په محاذات یعنی برابرۍ کښې] ﴿ كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۚ ﴾ مو زرونه کړو او دوئ ته یقین اوشو چه اوس په دوي باندې ګئې راغوزار شو ﴿ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ۝ ﴾ او [په هغه وخت کښې ئې] اووئیل چه [شابه زر یې] قبول کړئي چه کوم کتاب مونږ تاسوته درکړې دې [یعني تورات او]

مضبوطیا سره ئې] قبول کړئې] او یاد ساتئې چه کوم احکام په دې [کتاب] کښې دي چه دهغې نه دا توقع ده چه تاسو به پرهیزګار جوړ شئ.

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې د یوې وعدې او پوخ لوظ بیان وو. کوم چې په خصوصي ډول ، د بني اسرائیلو د عالمانو نه د تورات باره کښې اخستې شوې وو چې په دې کښې به تغیر او بدلون نه راولو. او الله ﷻ ته به د حق خبرې نه سوا د بلې خبرې نسبت نه کوؤ. اودا خبره مخکښې بیان شوې ده چې د بني اسرائیلو دې عالمانو وعده خلافي اوکړه. او د غرضي خلقو د پاره به ئې د تورات احکام په رشوت اخستو بدلول. او دهغوئ د غرض مطابق به ئې بیانول. اوس دا آیت مبارك هم ددې مضمون تکمله ده چې د بني اسرائیلو ټول عالمان داسې نه وو بلکه دوئ کښې ځینې داسې هم دی چې د تورات په احکامو باندې کلك ولاړ دی. او د ایمان سخت پابند وو. مونځ ئې سره د ټولو آدابو قائم کړې، دداسې خلقو باره کښې فرمائی چې : الله ﷻ دخپلې اصلاح کوؤنکو اجر نه تباه کوی. نو کومو خلقو چې د ایمان او عمل دواړو فرض ادا کړل خپله اصلاح ئې اوکړه ، دهغوي اجر نشی ضائع کیدې.

دې آیت مبارك کښې څو فائدې دغور کولو جوګه دی ، اول دا چې کتاب نه مراد هم هغه کتاب دې دکوم بیان چې ړومبې راغلې دې ، یعنی تورات اودا هم کیدې شی چې هر آسمانی کتاب ، تورات ، انجیل او قرآن عظیم الشان ټول مراد دی.

بله خبره ددې آیت مبارك نه دا معلومه شوه چې دې سره هیڅ مقصد نشی حاصلیدې چې خان سره صرف په احتیاط او تعظیم د الله ﷻ کتاب اوساتلې شی بلکه ددې د احکامو پابندی کول ضروری دی ، شاید دې ته د اشارې کولو د پاره ئې د کتاب داخستلو یاد لوستو ذکر او نه کړو او د ﴿يُمَسِّكُونَ﴾ لفظ ئې راوړو ، چې معنی ئې ښه په کلکه نیول ، یعنی ددې په حکمونو عمل کول دی.

دریمه خبره د غور کولو جوګه داده چې دلته د تورات په حکمونو دعمل کولو اوددې د پابندئ کولو بیان وو ، بیا د تورات حکمونه په سوؤنو دی او دلته ترېنه یوازې د ﴿أَقَامُوا الصَّلَوٰةَ﴾ یعنی د مونځ د ادا کولو حکم راوړې شوې دې. دې سره اشاره دې خبرې ته کیدیشی چې د کتاب الله د حکمونو ځینې ټولو نه زیات غوره او زیات ضروری مونځ دې ، دا هم کیدې شی چې د مونځ پابندی د الله ﷻ د نورو حکمونو د پابندئ یوه نخښه ده چې ددې په ذریعه د فرمانبرداره او نافرمانه بنده پیژند ګلو کولې شی. یو خاصیت ئې دا هم دې چې د مونځ په پابندئ کولو سره د نورو احکام الهی پابندی کول هم آسانیږی. او څوك چې د مونځ پابندی نه کوی هغه د نورو حکمونو پابندی نشی کولې. لکه په یو صحیح حدیث کښې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې : مونځ ددین ستن ده[1] ، په کومه چې ددې آبادئ ولاړه ده چا چې دغه ستن قائمه کړه هغه دین قائم کړو ، او چا چې دا ړنګه کړه نوهغه د پوره د ین آبادی ړنګه کړه په دې بنا دې آیت مبارك کښې : ﴿وَالَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِالْكِتَـٰبِ﴾ [اوڅوك چې په کتاب باندې په پابندئ سره عمل کوی] نه پس ﴿أَقَامُوا الصَّلَوٰةَ﴾ [او مونځونه باقاعده کوی] فرمائیلو سره دا

---

[1]) شعب الإیمان، رقم الحدیث: ۲۸۰۷ باب في الصلوات۔

اوخودلې شو چې په کتاب باندې کلك ولاړ خلق او ددې پابندي کوونکې به صرف هغه څوك ګڼلې شي چې مونځ ، دهغې آدابو او شرطونو سره په پابندئی ادا کوی . اومونځ کښې کوتاهی کوونکې که هر څومره وظيفې کوی يا نورې خوارئی کوی هغه دالله ﷻ په نزد هيڅ نه دی ، اګر چې په دې سره ورته کشف او کرامت هم حاصل شي .

تر درې پورې بنی اسرائيلو ته د هغوئ د وعدې په ماتولو اودتورات په احکامو کښې په بدلون راوستو باندې د خبردارائی ورکولو بيان وو ، دې پسې په دويم آيت مبارك کښې د بنی اسرائيلو د يوې خاصې وعدې ذکر دې کومه چې د تورات دحکمونو دپابندئی کولو دپاره ترې اخستې شوې وه ، او بيان يې په سورةبقره کښې هم راغلې دې .

دې آيت مبارك کښې ﴿نَتَقْنَا﴾ د نتق نه مشتق دې چې معنی ئې راښکل او پورته کول دی ، سورة بقره کښې دلته د ﴿رَفَعْنَا﴾ لفظ راغلې دې ځکه ابن عباس ﷠ د ﴿نَتَقْنَا﴾ تفسير په ﴿رَفَعْنَا﴾ سره کړې دې .

د ﴿ظُلَّةٌ﴾ لفظ د ظل نه مشتق دې ، معنی ئې تمبو دې ، هر کله چې تمبو په عرف کښې داسې څيز ته وئيلې شی چې سورې ئې په سر وی او په څه ستنه يا بانړس قائم نه وی او په دې واقعه کښې غر دددوئ په سرونو زوړند کړې شوې وؤ ، د سائبان په شان نه وؤ ځکه يې د حرف تشبيه سره ذکر کړو. ورته بعينه تمبو نه بلکه د تمبو پشان ﴿كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ﴾ اوفرمائيل .

دټول آيت مبارك معنی داسې شوه چې هغه وخت هم دياد ولو جوګه دې کله چې مونږ د بنی اسرائيلو سرونودپاسه پورته کړې غر زوړنده کړو چې پخپلو ځانونو باندې د راغورزيدو ويره ئې ترې کيده ، په داسې حالت کښې دوئ ته اووئيلې شو چې ﴿خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ﴾[اورته مواووئيل]چې مونږ کوم کتاب درکړې دې هغه مضبوط اونيسئ اوچې څه په کښې دی هغه يادساتئ: شايدچې دګناهونونه بچ شئ] دا واقعه داسې وه چې هر کله د بنی اسرائيلو په خواهش او فرمائش ، موسی ﷺ نه کتاب او شريعت اوغوښتو ، د الله ﷻ په حکم ئې د څلويښتو شپو اعتکاف اوکړو ،هغې نه پس ورته الله ﷻ خپل کتاب تورات ورکړو. هرکله چې ئې بنی اسرائيلو ته واورولو نو ډير احکام په کښې دهغوئ د طبيعت او سهولت نه خلاف وو. نو هغوئ ددې نه انکار اوکړو او وې وئيل چې زمونږ نه خو په دې احکامو باندې عمل نشی کيدې ، دغه وخت جبرائيل ﷺ د الله ﷻ په حکم راغلو او په هغوئ ئې کوه طور زوړند کړو . ددغې آبادئی رقبه په تاريخی روايتونو کښې درې مربع ميله بيان شوې ده ، چې دې خلقودغه شان مرګ پخپل سر راغلې اوليدلو نوټول په سجده کښې پريوتل اودتورات د حکمونو دپابندئی کولو لوظ ئې اوکړو ، ليکن سره ددې ئې بيا هم په مخه ددې خلاف ورزی اوکړه.

**دين کښې زور زبردستی نشته ددې صحيح مطلب او دشبهې جواب** :: دلته داخبره دغور قابله ده چې د قرآن عظيم الشان دعام اعلان ﴿لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾ مطابق په دين کښې زور زبردستی نشته ، خودې واقعې نه معلوميږی چې بنی اسرائيل په زبردستئ سره دين قبلولو ته مجبور کړې شوی وو. ليکن په غور کولو سره ئې فرق داسې ښکاره کيږی چې يو غير مسلم لره اسلام ته په زبردستئ راړول نشته ، خو هرکله چې په اسلام راوړلو سره څوك د اسلامی لوظ ، قول پابند شی او بيا هم د اسلام دحکمونو خلاف ورزی کوی نو په داسې کس به ضرور زور زبردستی کولې شی . او

د خلاف کولو په صورت کښې به ورته سزا ورکولې شی ، څنګه چې په اسلامی تعزیراتو کښې ډیرې سزاګانې داسې خلقو دپاره مقرر دی ، دې نه معلومه شوه چې د ﴿لاإکراه فی الدین﴾ تعلق غیر مسلمو سره دې چې دوئ سره به زور زبردستی نشی کولې . په دې واقعه کښې بنی اسرائیلو په مسلمانیدو سره د تورات دحکمونو منلو لوظ قول کړې وو چې بیا ئې نه منل څکه پرې زور اوکړې شو او دا د ﴿لاإکراه فی الدین﴾ خلاف نه دی .

| |
|---|
| وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِيْٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ |
| او کله چې | را اوویستل ارب ستا | دبنی آدم نه | دشاګانو دهغوئ نه | اولاد دهغوئ |
| او هغه وخت یاد کړه چې ستارب دبنی آدمو دشاګانونه دهغوئ اولاد راویستو |
| وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ ۚ اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۭ قَالُوْا |
| او ګواهان ئې کړل هغوئ | په ځانونو خپلو باندې | آیا نه یم زه | رب ستاسو | اووئیل هغوئ |
| او هغوئ ئې په خپلو ځانونو ګواهان کړل | او تپوس ئې ترې اوکړو | چې زه ستاسو رب نه یم؟ | هغوئ اووئیل |
| بَلٰى ۚ شَهِدْنَا ۚ اَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا |
| هو | ګواهی کوؤ مونږ | چې او نه وایئ تاسو | په ورځ | دقیامت | چې بیشکه وو مونږه | ددې نه |
| یقیناته زمونږ رب یې | مونږ په دې ګواهان یو | دا څکه چې تاسو دقیامت په ورځ دا اونه وائیئ | چې مونږ ددې نه |
| غٰفِلِيْنَ ۝ لا اَوْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اَشْرَكَ اٰبَاۗؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا |
| ناخبره | یا اونه وایئ | چې بیشکه | شرك کړې وؤ | پلارانو زمونږه | مخکښې | او وؤ مونږه |
| خبر نه وؤ | یا دا اونه وائې چې شرک خو اول اول زمونږ پلارنیکه کړې وو | او مونږ |
| ذُرِّيَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْ ۚ اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ۝ |
| اولاد | روستو دهغوئ نه | آیا ته هلاکوې مونږه | په هغه کار باند | چې کړې وؤ | غلط کارو خلقو |
| دهغوئ په نسل کښې روستو راغلو | نو آیا ته مونږ دهغې کارونو په وجه هلاکوې | چې وړاندې باطل پرستو کړی وو |
| وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۝ |
| او همدا رنګې | په تفصیل سره بیانوؤ مونږه | نښې دقدرت | او ددې دپاره | چې واپس راشی دا خلق |
| دا شان مونږ خپلې نښې پیش کوو | دې دپاره چه کیدې شی دوئ [حقې لارې ته] راوګرځی |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې رسوله ! خلقو ته هغه وخت یاد کړه) چه ستارب د آدم د اولاد د شا نه د هغه ټول اولاد پیدا کړې وو ، او هغه ئې خپله په خپل ځان ګواه جوړ کړې وو . (او تپوس ئې ترې کړې وو چه) آیا څه ستاسو رب نه یم؟ ټولو جواب ورکړې وو چه : ولې نه ؟ مونږ ټول د دې ګواهي ورکوؤ (او دا اقرار مونږ څکه اخستې وو) دې د پاره چه تاسو دقیامت په ورځ دا او نه وایئ چه :" مونږ خو دې خبرې نه نا خبره وو یا دا اونه وایئ چه د شرك (شروع) خو ډیر مخکښې څمونږ پلار نیکه کړې وه . او مونږ د هغوی نه وروستو د هغوی اولاد یو نو آیا ته به مونږ د هغه کارونو د وجې نه هلاکوې چه کوم غلط کارو خلقو کړې وو؟. او دغه شان مونږ نښې لره په تفصیل سره بیانوؤ دې د پاره چه خلق (حق طرفته) واپس شي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيٓ آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ﴾او [دوي ته دهغه وخت واقعه ذكر كړئي]كله چه ستاسو رب [په عالم ارواح كښې د آدم ﷺ دشا نه پخپله دهغه اولاد پيدا كړو او] د آدم ﷺ دشانه ئې د هغوي اولاد راوښكلو﴿ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنْفُسِهِمْ ﴾ او [دوي ته ئي پوهه وركړه] ددوي نه ددې متعلق اقرار واخستلې شو ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ چه آيا زه ستاسو رب نه يم ﴿ قَالُوا بَلَىٰ ۛ شَهِدْنَا ۛ أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ ټولو [ددې عقل خداداد نه په حقيقت باندې پوهه شول او] جواب ئې وركړو ولې نه [واقعي ته ﷻ زمونږ رب ئې. الله ﷻ چه په هغه ځائې كښې ځومره ملائكې او مخلوقات حاضر وو ټول ئې ګواه كړل دټولو د طرف نه يې اوفرمائيل] مونږ ټول [ددې واقعې] ګواه جوړيږو [او دا اقرار اوشهادت ددې دپاره اوشو چه]تاسو خلق [يعني چه په تاسوكښې څوك ترك توحيد او په شرك باندې سزا اوخوري] دقيامت په ورځ ﴿ ﴿ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَٰذَا غَافِلِينَ ﴾داسې اونه وائې چه مونږ خو ددې [توحيد] نه محض بې خبره وو ﴿أَوْ تَقُولُوٓا إِنَّمَآ أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ ﴾ يا داسې اووائې چه [اصل] شرك خو زمونږ مشرانو كړې وو﴿ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِنْ بَعْدِهِمْ ﴾ اومونږ خوددوي نه پس ددوي په نسل كښې يو [او دعادت په طور نسل په عقائدو او خيالاتوكښې دخپل اصل تابع وي. ددې وجې مونږ بې ګناه يو.نو زمونږ په كار باندې خومونږ ته سزا نشې كيدلې. اوكه وي نو لازم دې چه ددې مشرانو په سزا كښې مونږ ماخوذ يو] ﴿أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ ﴾ نو چه څه ئې اوكړل ددې غلطې لارې [ويستونكو] والويه كار باندې ته مونږ په هلاكت كښې اچوې [نو اوس ددې اقرار اوشهادت نه پس تاسو دا عذر نشې پيش كولې بيا ددې نه پس دې ټولوسره وعده اوكړې شوه چه په دنيا كښې به دپيغمبرانو په ذريعه داوعده يادولې شي چنانچه همداسې اوشو.دلته هم اول كښې د " اذ اخذ " ترجمې نه معلومه شوه چه تاسو ته ددې واقعې دذكر كولو حكم اوشو] ﴿وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِنْ بَعْدِهِمْ ۖ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ او [په آخر كښې دا ياداشت دركولې شي چه] مونږ داشان [خپل] آيتونه صفا صفا بيانوُ [چه دوي ته ددې وعدې كيدل معلوم شي] او چه [دمعلوميدونه پس دشرك وغيره] نه منع شي.

## معارف او مسائل

**د الست دلوظ تفصيل او تحقيق** :: دې آيتونو كښې د هغې عظيم الشان لوظ ، قول بيان دې كوم چې د خالق اومخلوق ، د ټولو بندګانو او دمعبود تر مينځه هغه وخت شوې وو چې مخلوق د پيدا كيدو او مړكيدو دې جهان ته لا راغلى هم نه وو او د ازل يا د الست په لوظ سره يا ديږي.

الله ﷻ دټولو عالمونو خالق او مالك دى. زمكه ، آسمان ، ددې تر مينځه اود دې نه ما سوا هر څه چې دى هغه ټول ددهٔ مخلوق اوملكيت دى ، نه پرې د چا قانون چليدې شي او نه ددهٔ په څه كار باندې دګوتې اوچتولو چاته حق شته.

ليكن الله ﷻ خالص پخپل فضل و كرم سره ددې جهان انتظام داسې جوړ كړېدې چې هر يو څيز دپاره يوه يوه ضابطه اوقانون دې ، څوك چې په دغه قانون چليږي نوهغوئ دپاره به هر قسم هميشګير راحت اوآرام وى ، او دخلاف كوؤنكو دپاره ئې هر شان عذاب مقرر دې. بيا خلاف كوؤنكو مجرمانو ته سزا وركولو دپاره د الله ﷻ ذاتي علم كافي وو چې راګيرونكې دې

، د ټول جهان يوه ذره ترې بهر نه ده ، هغه دپاره ښکاره او پټ ټول عملونه اوکارونه بلکه د زړونو پټوارادو پورې هر څيز بالکل ښکاره دې اګر چې د نګران مقررولو هيڅ ضرورت ورته نه وو ، نه داعمالنامو ليکلو ضرورت وو ، نه دعملونوتللو اوګواهانو اودرولو ضرورت وو.
ليکن بيا هم پخپل فضل و کرم سره ئې دا غوښتل چې هيچاته به تر هغې سزا نه ورکوى تر څو چې د ستاويزى ثبوتونو او مضبوطو ګواهيانو سره د خپل دغه جرم اقرار اوکړى او خپل ځان دسزا حقدار اوګنړى .
په دې وجه ئې هر انسان سره دهغه د هر عمل اود هرې خبرې ليکونکې فرښتې مقرر کړې لکه فرمائى چې :
﴿مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾[هيڅ خبره د انسان د خلې نه نه راوځى چې په هغې باندې د الله ﷻ د طرفنه نګرانى کوونکې فرښتې مقرر نه وى]
او بل ځائې کښې ارشاد دې چې :﴿وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ﴾[د انسان هر وړوکې او لوئې کار ليکلې شوې دې]
بيا به په ميدان حشر د انسان د عملونو تللو دپاره ميزان دعدل اودرولې شى دنيکيانو په چابړى درنيدو سره به انسان خلاصې بيا مومى او د ګناهونو اود جرمونو په چابړى درنيدو سره به په عذاب کښې راګيرولې شى .
دې نه علاوه کله به چې محشر کښې د احکم الحاکمين عام دربار لګى نو د هر چا پخپل عمل به ګواهان هم تيرولې شى کوم مجرمان به چې ګواهان په دروغه اوبلى نو دهغوئ لاسونه ، پښې ، نور اندامونه به ئې پرې ګواهان جوړولې شى ، تر دې چې هغه مکان اوزمکه به پرې هم ګواهان جوړ شى په کوم چې هغوئ دغه جرمونه کړى وى . دا ټول څيزونه به د الله ﷻ په حکم ګويا شى او صحيح صحيح واقعات به بيان کړى چې دغه مجرمان به تر انکار نشى کولې ، اونه به ئې دروغژن ثابتولې شى ، بلکه پخپله به د جرمونو اقرار اوکړى لکه قرآن عظيم الشان فرمائى چې :﴿فَاعْتَرَفُوا بِذَنْبِهِمْ فَسُحْقًا لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾[1].
بيا رؤف او رحيم مالك يوازې د عدل و انصاف د نظام په قائمولو باندې بس والې اونه کړو اوندئې د دنيوى حکومتونو پشان ورته صرف يو ضابطه او قانون ورکړې دې . بلکه قانون سره ئې دتربيت يو نظام قائم کړو. لکه بلا تشبيه چې يو ډير مهربانه پلار دخپلو کورنو معاملو درست ساتلو اواهل و عيال ته د تهذيب او ادب زده کولو چې څه کورنئ ضابطه او قانون جوړوى او د هغې په خلاف کولو باندې سزا ورکولې شى ، خو دهغه شفقت او مهربانى هغه دې ته هم تياروى چې داسې نظام جوړ کړى چې دهغې تر مخه په دوئ کښې هيڅوك هم د سزا حقدار نه وى بلکه ټول په ټوله د هغې ضابطې په جوړ چليږى که يو ماشوم دپاره د صبا په وخت سکول ته دتلو هدايت وى او ددې په خلاف کول هغه دپاره سزا مقرر وى پلار لګيا شى وختى نه ددې فکر هم کوى چې ماشوم دې دپاره دوخت نه مخکښې تيار کړى .
د رب العالمين رحمت پخپل مخلوق باندې دمور پلار د شفقت او رحمت نه بې اندازې زيات دې ، په دې وجه ئې خپل کتاب ، يوازې قانون اوتعزيرات جوړ نکړل بلکه يو قسم هدايت

[1] ترجمه: غرض دخپل جرم اقرار به وکړی پس اہل دوزخ والو باندے لعنت دی۔

نامه ئې داسې جوړه کړېده چې هر قانون سره ئې دهغې طریقې هم خودلې دی چې د هغې په ذریعه په قانون باندې عمل کول آسان شي.

د پروردګارئ ددې نظام یو غوښتنه دا هم وه چې هر قوم او هر کس دخوب نه بیداروالو او خپل کریم پروردګار لره د یادولو دپاره ئې ګڼر قسم سامانونه پیدا کړل دزمکې، آسمان، ټول مخلوقات، دشپې ورځې بدلیدل او پخپله دانسان دخپل وجود په کائناتو کښې دخپلو یادولو په غرض داسې نخښې ایخودې دی چې که لږ شان هم څوك دهغې نه کار واخلي نو چرې به هم خپل مالك هیر نه کړي. ﴿وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ۝ وَفِي أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ۝﴾. [یعنی په زمکه کښې بصیرت والو دپاره زمونږ نخښې دی او پخپله ستاسو په بدن کښې هم، آیا بیا هم تاسو نه ګورئی]

دغه شان رب العالمین، د غافل انسان رابیداروالو او په عمل صالح باندې د لګولو دپاره ئې یو انتظام داهم کړې دې چې په مختلفو وختونو او حالتونو کښې ئې هر کس، ډلو او قومونونه د خپلو پیغمبرانو ﷺ په ذریعه لوظ اوقول اخستلو سره دقانون دپابندئی کولو دپاره هغوئ تیار کړی دی، لکه د قرآن عظیم الشان په ګڼرو آیتونو کښې د ډیرو داسې لوظونو اقوالو بیان راغلې دې چې مختلفو ډلو نه په مختلفو وختونو کښې اخستې شوی دی، پیغمبرانو ﷺ نه دا وعده واخستې شوه چې خپلو خپلو امتونو ته به د پیغمبرئی هغه پیغام خامخا رسوی کوم چې ورته د الله ﷻ د طرفنه ورکړې شوی دی. په دې کښې به ورته دخلقو نه ویره، دهغوئ د طرفنه ملامتیا او سپکاوی اندیښنه خنډنه جوړیږی د الله ﷻ دې مقدس جماعت د خپلې دغه معاهدې پوره حق ادا کړو اود پیغمبرئی دپیغام په رسولو کښې ئې خپل هر څه قربان کړل.

بیاد هر نبی ﷺ او رسول ﷺ د امت نه ددې خبرې لوظ او قول واخستې شو چې دوئ بهٔ دخپلو خپلو پیغمبرانو تابعداری کوې، بیا دلوئې شان په خاصو معاملو کښې په خصوصیت سره داقسم لوظ او قول تر واخستې شو چې ددې په پوره کولو کښې به خپل هر قسم توان پکار راولی خوڅوك په دې پوره اوختل اوڅوك نه.

په دغه لوظونو اقوالو کښې د لوئې شان یولوظ قول دا هم دې کوم چې ټولو پیغمبرانو ﷺ نه زمونږ د رسول محمد مصطفی ﷺ په باره کښې داسې اخستې شوې وؤ چې دوئ ټول به د نبی امی خاتم الانبیاء محمد رسول الله ﷺ تابعداری کوی چې موقعه بیا مومی نو د نبی کریم ﷺ مدد به کوی لکه قرآن عظیم الشان کښې فرمائی چې: ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ لَمَا آتَيْتُكُم مِّن كِتَابٍ وَحِكْمَةٍ ثُمَّ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهِ وَلَتَنصُرُنَّهُ ۚ﴾

دا ټول پاخه لوظونه او قولونه د الله ﷻ د کامل رحمت ننداری دی، مقصد ئې دادې چې هر کله انسان د ډیرې هیرې په وجه خپلې ذمه دارئی هیروی څکه بیا بیا ددې لوظونو په وجه راویښ کړې شو چې ددې په خلاف کولو سره تباه نشی.

**د بیعت اخستلو حقیقت:** د بیعت اخستو کوم دستور چې د پیغمبرانو ﷺ د هغوئ ﷺ د نائبانو، عالمانو او پیرانو پاتې شوې دې داهم د سنت الهیه تابعداری کول دی، نو پخپله نبی کریم ﷺ په ډیرو معاملاتو کښې صحابه کرامو ﷺ نه بیعت اخستې دی لکه دبیعت رضوان ذکر چې په قرآن عظیم الشان کښې داسې راغلې دې چې ﴿لَّقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾

بیعت عقبه هم ددې قسم یو لوظ ، قول دې ، کوم چې دمدینې منورې د انصارو نه په هغه زمانه کښې اخستې شوې وو ، کله چې هجرت نه وو شوې ، نبی کریم ﷺ ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه په ایمان اودنیك عمل په پابندئی کولو باندې بیعت اخستې دې . په صوفیاء کرامو کښې چې دکوم بیعت رواج دې داهم دایمان او نیك عمل د پابندئی اوګناهونو نه دبچ کیدو د انتظام کولو لوظ او قول دې . او د هغه طریقې تابعداری ده کومه چې دپیغمبرانو ﷺ طریقه ده او دالله ﷺ دسنت تابعداری کول دی ، او په دې کښې داسې خاص برکتونه دی چې د انسان هغه همت اوتوفیق وده ورکوی په کوم سره چې هغه د ګناهونو نه ځان ساتی او شرعی حکمونه په ځائې راوړی .

هرکله چې د بیعت حقیقت درته واضح شو نو داهم ترې ښکاره شوه چې دبیعت دامطلب اخستل سراسر جهالت دې چې ګنی د یو بزرګ په لاس کښې لاس ورکول دامطلب لری چې دغه کس تول پیتې دخپلو اوږو نه کوز کړو ، هرڅه نه خلاص شو او هیڅ ذمه داری ئې پاتې نشوه . ځنګه چې دې مطلب په ناواقفو جاهلانو کښې رواج بیا موندې شوې دې ، یاد ساتئ چې بیعت هغه لوظ او قول ته وئیلې شی چې په هغې باندې عمل کولو سره هغه سرته اورسولې شی ، ګنی د فائدې په ځائې د نقصان اوزیان موجب جوړیږی .

د سورت اعراف په تیرو شوؤ آیتونو کښې د هغه معاهدو بیان وو چې د بنی اسرائیلو نه د تورات دحکمونو د پابندئی باره کښې اخستې شوې وې اوس په دې پورتنی ذکر شوؤ آیتونو کښې دهغه عالمګیر معاهدې بیان دې چې بنیادمو نه هغه وخت په روز ازل کښې اخستې شوې وه کله چې دوئ دنیا ته هم نه وو راغلی او په عامه توګه د الست په عهد مشهوره ده فرمائی چې :

﴿وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيٓ ءَادَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ﴾ [اوهغه وخت یادکړه چې ستارب دبنی آدمو دشاګانونه دهغوئ اولاد راویستو اوهغوئ ئې په خپلوځانونو ګواهان کړل]

دې کښې بنیادمو دپاره د ذریت لفظ استعمال شوې دې ، امام راغب اصفهانی رحمه الله فرمائی چې دا لفظ په اصل کښې د ذرء نه مشتق دې ، معنی ئې پیدا کول دی ، لکه قرآن عظیم الشان کښې چې دا لفظ هم دې معنی دپاره داسې استعمال شوې دې چې : ﴿وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ﴾(۱) وغیره.

په دې بنا د ذریت لفظی معنی مخلوق شوه ، په دې لفظ سره اشاره اوکړې شوه چې دا عهد هغه ټولو خلقو دپاره عام او شامل وؤ کوم چې د آدم ﷺ په واسطه تر قیامته پورې پیدا کیدونکی وو .

د احادیثو په روایتونو کښې د ازل دعهد زیات تفصیل راغلې دې ، امام مالك رحمه الله ، ابوداؤد رحمه الله ، ترمذی رحمه الله ، امام احمد رحمه الله په روایت دمسلم بن یسار رضی الله عنه نقل کړی دی چې څه خلقو هرکله چې د عمر فاروق رضی الله عنه نه ددې آیت مبارك د مطلب تپوس اوکړو نو وې فرمائیل چې دداسې تپوس جواب نبی کریم ﷺ نه مې پخپله داسې آوریدلی دی :

---

(۱) مفردات القرآن للأصفهانی: ج۱، ص ۱۸۸

الله ﷻ رومبی آدم عليه السلام پیدا کړو ، بیا دخپل قدرت لاس ئې ورته په شا راښکلو ، دشا نه ئې چې کوم نیك اولاد پیدا کیدونکې وو هغه ترې بهر راؤوتو ، الله ﷻ اوفرمائیل چې دوئ مې جنت دپاره پیدا کړی دی . دوباره ئې چې پرې لاس دقدرت راښکلو نو دشانه ئې هغه بدکرداره او ګناهګار اولاد راؤوتو کوم چې تر قیامته پیداکوؤنکې وو، هغه ئې اودرول او وې فرمائیل چې دامې دوزخ دپاره پیدا کړی دی چې دوزخ ته دتلو کارونه بۀ کوی .

یو صحابی رضي الله عنه ترې تپوس اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! هر کله چې د رومبې نه جنتیان او دوزخیان خلق اوټاکلې شو نو بیا ترې دعمل غوښتلو څه مطلب شو؟

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کله الله ﷻ څوك جنت دپاره پیدا کړی نو هغه د جنتیانو عمل کول شروع کړی تر دې چې خاتمه ئې هم په داسې حالت کښې اوشی چې د جنتیانو کار کوی . ، او کله چې الله ﷻ دوزخ دپاره څوك پیدا کړی نوهغه د دوزخیانو په عمل کښې اخته کړی ، تر دې چې خاتمه ئې هم د دوزخیانو په عمل باندې اوشی([1]) .

مطلب ئې دا شو چې هر کله انسان ته دا معلومه نه ده چې هغه به جنتی وی که دوزخی ؟نو هغه دې د جنتیانو په عمل کولو زور راؤړی او خپل جنتی کیدو امید دې لری .

د امام احمد رحمه الله په روایت ، همدا روایت د ابی الدرداء رضي الله عنه نه منقول دې په هغې کښې دومره خبره زیاته ده چې د آدم عليه السلام د شانه رومبې راؤتونکې اولاد سپین رنګی وو کومو ته ئې چې جنتیان اووئیل او دویم ځل راوتونکې اولاد ئې تور وو چې جهنمیان ورته اووئیلې شو([2]).

او ترمذی کښې د ابی هریره رضي الله عنه هم په روایت دا مضمون نقل شوی دې په هغې کښې دا هم دی چې په دې شان تر قیامته پورې پیداکیدونکې اولاد د آدم عليه السلام راښکاره شو. او دهر یو په تندی باندې یو خاص قسم ځلیدل وو([3]).

اوس د غور کولو خبره داده چې په دې احادیثو کښې د آدم عليه السلام د اولاد ذکر په دې شان شوې دې چې هغه د آدم عليه السلام دشانه راؤښکلې شو او د قرآن عظیم الشان په الفاظو کښې د بنیادمو دشاګانونه د راؤښکلو ذکر دې ، ددې دواړو تطبیق دا شان کیږی چې د آدم عليه السلام د شانه هغه اولادئې راؤښکلې شو چې کوم د آدم عليه السلام نیغ په نیغه اولاد وو ،او د آدم عليه السلام د اولاد د شاګانو نه ئې هغه اولاد راؤښکلو دچا چې نیغ په نیغه اولاد وو ، کوم چې د آدم عليه السلام اولاد جوړیدو.

حدیث پاك کښې د آدم عليه السلام د شانه ټول اولاد رااویستلو مطلب هم دا دې چې دآدم عليه السلام نیغ په نیغه اولاد د آدم عليه السلام د شانه راؤښکلې شو او نور اولاد ئې د آدم عليه السلام د اولاد دشاګانو نه راؤویستلې شو.

قرآن عظیم الشان کښې د آدم عليه السلام د ټول اولاد نه اقرار اخستلو کښې دې ته هم اشاره ده چې دغه اولاد په دغه وخت کښې خالص روحونه نه وو بلکه روحونو سره د هغوئ جسمونه هم وو چې باریك ذرون جوړ شوی وؤ ولې چې د ربوبیت اوپالنې ضرورت هلته زیات وی چرته چې

[1] ) موطأ مالک، رقم الحدیث: ١٦٢٧ کتاب القدر باب النهی عن القول بالقدر، وسنن ابی داود، کتاب السنة، باب فی القدر: ج ٢، ص ٦٢٧، وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب ومن سورة الاعراف: ج ٢، ص ١٢٨، ومسند أحمد، مسند عمر بن الخطاب رضی الله عنه رقم الحدیث: ٣١٨

[2] ) مسند أحمد ومن حدیث ابی الدردا رضی الله عنه رقم الحدیث: ٢٨٢٥٠

[3] ) جامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب سورة الأعراف: ج ٢، ص ١٢٨

روح او جسم سره يوځائې او مرکب وي ، او د يو حال نه بل حال ته ترقي کوي . يوازې روحونه د اول نه تر آخره پورې په يو حال باندې وي ، دغه شان داحاديثو هغه روايتونه هم ددې موقف تائيد کوي کومو کښې چې د اولاد آدم ﷺ رنګونه ، سپين او تور راغلي دي . يا دا ذکر شوي دي چې د دوئ په تندو کښې يو قسم پرقيدل وو ، ځکه چې يوازې روح نه څه رنګ لرې اونه تندې لرې چې پرق کوي .

دا خبره دتعجب نه ده چې هر کله تر قيامته ټول پيداکيدونکي اولاد د آدم ﷺ پيداکړې شو نو څنګه په دغه يوځائې کښې ځائې شو ؟ ځکه چې د ابودرداء ﷺ په دغه حديث پاك کښې دا خبره په ډاګه کړې شوې ده چې دوئ د وړو وړو ميږو جوثه کښې وو په هغه جوثو کښې نه وو کومې ئې چې د اصلي جوثو رغونړه ده . او سائنس د ترقئ په موجوده زمانه کښې دا څکه څه لرې نشي کنړلې چې اوس خو په ايټم کښې د شمسي ټول نظام دشته والي تجربې لګيا دي کيږي او د فلم په ذريعه غټ نه غټ څيز د يو نرې ټکي هومره خودلې شي . نو الله ﷻ ته خو دا هيڅ ګرانه نه ده چې د دغې لوظ او ميثاق په موقعه ئې د آدم ﷺ ټول اولاد په وړو وړو شکلونو کښې پيدا کړې وي .

**دازل د لوظ باره کښې څو سوالونه اوجوابونه** : د ازل د لوظ باره څو نور څيزونه قابل غور دي :

① دغه لوظ او اقرار چرته او کله اخستې شوې وو ؟

② هر کله چې دا لوظ او اقرار په داسې وخت کښې واخستې شو چې د آدم ﷺ نه سوا بل انسان دسره نه وو پيدا شوې نو الله ﷻ ئې څنګه اوپيژندو ؟ دې دپاره ورته عقل او علم څنګه حاصل شو چې د الله ﷻ د پروردګار کيدو اقرار اولوظ ئې اوکړو ؟ ولې چې داسې اقرار هغه څوك کولې شي چې د الله ﷻ دپالنې شان ئې ليدلې کتلې وي چې په دنيا کښې د پيدا کيدو نه پس انسان ته حاصليدې شي .

جواب ئې دادې چې دمفسر قرآن عبدالله بن عباس ﷺ روايت په قوي سند سره امام احمد ﷫ ، نسائي ﷫ ، او حاکم ﷫ داسې نقل کړې دې چې دا اقرار او لوظ هغه وخت اخستې شوېدې چې کله آدم ﷺ جنت نه زمکې ته راکوز کړې شو ، دغه مقام وادئ نعمان وو چې د عرفات په ميدان سره مشهور دې . [مظهري][1] .

پاتې شو دا سوال وو چې هر کله په دغه موقعه انسانانو ته پوره عنصري وجود نه وو ورکړې شوې ، هغوئ په دې باندې څنګه خبر شو چې زمونږ څوك پيدا کوونکې او پروردګار شته دې ؟ په دغې حالت کښې ترې نه سوال کول هم داسې قسم پيټې پرې باروول وو دکوم د اوچتولو توفيق ئې چې نه لرلو ، نو ددې جواب يې دې چې څنګه ورکړې شو ؟

نو واورئې چې هر کله رب العالمين ټول انسانان د ذراتو په صورت کښې پيدا کړل ، هغه دپاره دا څه مشکل دي چې دوئ ته ئې دومره عقل او پوهه ورکړې وي د څومره چې ورته ضرورت وو ، حقيقت هم دادې چې الله ﷻ په دغې مختصر انساني وجود کښې ټول قوتونه راجمع کړي وو چې په کښې د ټولو نه لوئې قوت د عقل او شعور دې د انسان پخپل وجود

---

[1] ) تفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ٣، ص ٤٢٨، ومسند أحمد مسند عبدالله بن عباس رضى الله عنهما رقم الحديث: ٢٢٤٢، ومستدرک للحاکم رقم الحديث: ٣٩٥١

کښې د الله ﷻ د لويئ او قدرت بې شميره نخښې دي چې په هغې باندې لږ شان غور کوونکې هم د الله ﷻ د معرفت نه غافل نشي پاتې کيدې لکه قرآن عظيم الشان فرمائي چې:

﴿وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ۝ وَفِي أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ۝﴾.

دلته دريم سوال داهم راپورته کيدې شي چې ازلي اقرار او فعل که هر څومره يقيني او صحيح شي ليکن کم از کم دا خو هر چاته معلومه ده چې دنيا ته د راتلو نه پس هيچا ته ياد نه دې پاتې شوې نو بيا ددې لوظ او اقرار اخستلو فائده څه شوه ؟

جواب ئې دادې چې ډيرو بنيادمو ته دغه لوظ او اقرار په ښه شان ياد دې لکه ذوالنون مصري رحمه الله فرمائي چې د ميثاق دالوظ ماته داسې ياد دې لکه چې اوس ئې اورم ، او ځينو حضراتو خو تر دې فرمائيلي دي چې ماته ددغې لوظ اخستلو په وخت کښې دا هم معلوم دي چې ماسره خواؤ شا کښې څوك څوك موجود وو؟

او دا ښکاره خبره ده چې دا سې کسان د شاذ ونادر په درجه کښې دي نو د عامو خلقو د پوهې په جوړ خبره داسې ده چې ډير کارونه خاص اثر لري اگر چې هغه چاته ياد هم نه وي پاتې شوي ، اونه دهغې څه خبر لري. په دې بنا دې اقرار او لوظ د هر انسان په زړه کښې د الله ﷻ د پيژندگلو داسې يو تخم کرلې دې چې د هغه په ناخبرئ کښې هم پالنه بيا مومي. ځکه چې د هر انسان په فطرت کښې د الله ﷻ لوئي او محبت ددغې تخم د گلونو او ميوؤ په حيث موندې شي چې دبت پرستئ او مخلوق پرستئ په غلط انداز کښې هم ښکاره کيږي. دا به هغه بد نصيبه خلق وي چې فطرت ئې بالکل مسخ شوې او وران شوې وي او دعقل خوند مزه ئې هم نه وي پاتې شوې په کوم سره چې خوږ ، ترېخ ځيز پيژندې شي ، ليکن د دوئ نه علاوه ددنيا اربونو انسانان د الله ﷻ خيال ، فکر او لوئي په زړونو کښې لري. اگر چې مادي خواهشاتو کښې د اخته کيدو په وجه يا په گمراه کن ماحول کښې د راگيريدو په وجه هغې لږې هم کړي. نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي چې: ﴿کل مولود يولد على الفطرة﴾ او په ځينې روايتونو کښې د ﴿على الفطرة﴾ په ځائې ﴿على هذه الملة﴾ هم راغلي دې. [هر پيدا کيدونکې انسان په فطري دين اسلام باندې پيدا کيږي بيا ئې مور پلار په نورو خيالاتو کښې ښکيل کړي [بخاري ومسلم]([1])

اود صحيح مسلم په يو روايت کښې راغلي دي چې نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي چې الله ﷻ فرمائي چې ما خپل بندگان حنيف يعني د الله ﷻ منونکي پيدا کړي دي بيا شيطان ورپسې شي او د صحيح لارې نه ئې لرې بوځي([2]).

داشان خاص اثر لرونکي ډير عملونه او قولونه داسې دي چې په دې دنيا کښې د پيغمبرانو ﷺ په تعليم سره جاري دي ، د هغې اثر دادې چې په هغه که څوك پوهيږي کنه او ياد يې ساتي کنه ، په هر حال کښې خپل کار کوي او خپل اثر ښکاره کوي.

لکه د يو ماشوم پيدا کيدو سره دهغه په ښي غوږ کښې آذان او گس غوږ کښې اقامت کولو باندې هر مسلمان خبر دې او د الله ﷻ په فضل سره په ټوله اسلامي نړۍ کښې دغه طريقه

---

[1]) صحيح البخاري، كتاب الجنائز، باب ما قيل في أولاد المشركين: ج ١، ص ١٨٥، وصحيح مسلم، كتاب القبور، باب معنى كل مولود يولد على الفطرة الخ: ج ٢، ص ٣٣٦

[2]) صحيح مسلم، كتاب الجنة وصفة نعيمها واهلها، باب الصفات التي يعرف بها في الدنيا اهل الجنة الخ: ج ٢، ص ٣٨٥

جاري ده ، اګر چې دغه ماشوم نه خو ددغې کلماتو په معنی پوهیږي ، نه ورته د لوئیدو نه پس دغه کلمات یاد پاتې کیږي ، مګر حکمت ئې دادې چې په زړه کښې ئې د ایمان تخم کرلې شي نو ددې اثر زمونږ مخې ته د راځي چې د لوئیدو نه پس دغه کس بیا ځان ته مسلمان وائي او د مسلمانانو د فهرست نه په اوښکلو سره ډیر خفه کیږي . اګر چې هغه د اسلام او اسلامیاتو نه ډیر لرې هم وي . دغه شان د قرآن عظیم الشان د لوستو حکم شاید په دې باندې بنا وي چې کم ناکم دې نه خو پته فائده ضرور رسي چې د انسان په زړه کښې ورسره د ایمان نور تازه کیږي اګر چې لوستونکې د قرآن عظیم الشان په ژبان د سره نه پوهیږي .

پدې وجه د آیت مبارك په آخره کښې ارشاد دې چې : ﴿ أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا غٰفِلِيْنَ ﴾ [دا ځکه چې تاسو دقیامت په ورځ دا اونه وائیې چې مونږ ددې نه خبر نه وو] .

اشاره دې ته ده چې په دې ازلی سوال ، جواب سره ستاسو په زړونو کښې د ایمان بنیاد داسې اولګیدو چې لږ شان غور ، فکر کولو سره د الله ﷻ درب کیدو اقرار نه سوا بل هیڅ صورت نه پاتې کیږي .

وریپسې دویم آیت مبارك ارشاد دې چې :

﴿ أَوْ تَقُولُوا إِنَّمَا أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِنْ بَعْدِهِمْ ۖ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ ﴾ [یادا اونه وائې چې شرک خو اول اول زمونږ پلارنیکه کړې وو او مونږ د دهغوئ په نسل کښې روستو راغلو نو آیا ته مونږ دهغې کارونو په وجه هلاکوې چې وړاندې باطل پرستو کړی وو] .

الله ﷻ اوخودل چې دنورو د کړو سزا تاسو ته نه ده درکړې شوې ، بلکه پخپله ستاسو دغفلت سزا ده ازلی اقرار په انسان کښې داسې عقل او بصیرت تخم اچولې وو چې لږ شان ، غور وفکر کولو سره په دې خبره باندې پوهیدل څه ګران نه وو چې دا په خپل لاس جوړ کړی ، بتان او اوبه او ونه یا څه انسان داسې نشي کیدې چې انسان پرې د خپل پیدا کیدونکی پروردګار حاجت روا یا مشکل کشا یقین اوکړي .

دویم آیت مبارك کښې د امضمون داسې راغلې دې چې : ﴿ وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴾ [اوهمدارنګې په تفصیل سره بیانوو مونږه نښې دقدرت اوددې دپاره اچې واپس راشی دا خلق] مراد دادې چې په خدائی آیتونو کښې لږ شان غور اوکړی نو دهغې لوظ او میثاق ته به راوګرځی کوم چې په ازل کښې کړې شوې وو ، یعنی د الله ﷻ د رب کیدو به اقرار کول شروع کړی او د هغې په نتیجه کښې به دهغه فرمانبرداری کول ضروری ګڼړی .

| وَاتْلُ | عَلَيْهِمْ | نَبَأَ | الَّذِيْٓ | اٰتَيْنٰهُ | اٰيٰتِنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اواولوله | په دوئ باندې | خبر | دهغه سړی | چې ورکړې ووُ مونږ هغه ته | علم دآیتونوزمونږه |

اوائې پیغمبره دوئ ته دهغه خلقو قصې اووایه چې مونږ ورته خپل آیتونه ورکړل

| فَانْسَلَخَ | مِنْهَا | فَاَتْبَعَهُ | الشَّيْطٰنُ | فَكَانَ | مِنَ الْغٰوِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس راووتلو هغه | دهغې نه | نووروپسې شوا | شیطان | پس شو | دګمراهانونه |

نوهغه ترې نه ځان راښکلو نوشیطان وروپسې شوا او په ګمراهانو کښې شامل شو

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ

اوكه غوښتلي مونږ|خامخابه پورته كړي وومونږ هغه|په هغي آيتونو سره |خو ليكن هغه هميشه والي اوكړو

اوكه مونږ غوښتلي وي | نو د هغه مرتبه به موږ په دي آياتونو اوچته كړي وه| خو هغه خپله

اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ ۚ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ اِنْ

زمكي ته | اوپيروي ئي اوكړه | دخواهش خپل | نو مثال دهغه | پشان دمثال|دسپي دي | كه ته

زمكي طرفته ښكته شو| او د خواهش تابعداري ئي اوكړه| نو دهغه حال لكه دسپي شو| كه

تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ

حمله اوكړي|په هغه| نوژبه رااوباسي هغه| يا كه ته پريږدي هغه| نوهم ژبه رااوباسي| دا دمثال قوم

ته ئي اوزغلوي نو هم ژبه راوباسي| اوكه په قلار ئي پريږدي نو هم ژبه راوباسي |دامثال دهغه ډلي دي

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ۝

هغه دي | چي دروغ ئي اوگنړل| آيتونه زمونږه | پس بيان كړه | دا قيصي | دپاره ددي چي هغوئ | غورفكراوكړي

چي زمونږ آيتونه ئي دروغ گنړلي دي| ته دوئ ته داقيصي واوروه| كيدي شي چي دوئ سوچ اوفكر اوكړي

سَآءَ مَثَلَا ۨ الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا

بددي| مثال | دقوم | هغه | چي دروغ ئي اوگنړل| آيتونه زمونږه |اوپه ځانونو خپلو| دي هغوئ

دهغه قوم مثال ډيرخراب دي چي زمونږ آياتونه ئي دروغ گنړلي دي| اوهغوئ دوړاندي نه په خپلو

يَظْلِمُوْنَ ۝

چي ظلم كوي|

ځانونو زياتي كولو|

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره!) دوی ته د هغه كس واقعه بيان كړه چه هغه ته مونږ خپل آيتونه وركړي وو مگر هغه بالكل پريښودل، بيا شيطان هغه پسي شو د هغې دا نتيجه راووتله چه هغه گمراهانو خلقو كښې شامل شو اوكه مونږ غوښتلي نوددې آيتونوپه وجه به موهغه اوچت كړي وو. خوهغه زمكې طرف ته مائل شو اوخپل خواهشاتو پسې روان شو، دې وجې نه ددهٔ مثال د هغه سپي پشان شو كه چرې ته هغه باندې حمله كوې نو بيا هم هغه ژبه راوباسي او غاپي اوكه هغه (په خپل حال باندې) پريږدې نو هم دې ژبه راوباسي او غاپي دا دې مثال دهغه خلقوچه څونږ آيتونه ئې دروغژن كړي دي. پس ته دا واقعات دوی ته آوروه دې دپاره چه دوی څه سوچ وكړي. څومره بد مثال دې د هغه خلقو چه هغوی څمونږ آيتونه دروغژن كړي دي، او چه په خپلو ځانونو ئې ظلم كړې دې!

## خلاصه تفسير

﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا﴾ اودې خلقو ته [دعبرت دپاره] دهغه سړي حال اووائې چه هغه ته مونږ ايتونه وركړل [يعني د احكامو علم مو وركړو] ﴿فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ

الْغٰوِيْنَ﴾ بيا هغه د هغه [ايتونو] نه بالكل اووتلو بيا شيطان ده پسې شونو هغه په گمراهانو خلقوكښې داخل شو ﴿وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا﴾اوموږ كه غوښتلې نو په دې ايتونو[باندې دعمل كولو] په وجې سره لويه مرتبه وركړې وې [يعنى كه هغوي په دې ايتونوباندې عمل كولې چه دهغې سره وابسته قضاء اوقدر كيدل امرمعلوم دې.نو دده رتبه به لوئيدلې] ﴿وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ﴾ ليكن هغه خودنيا طرف ته مائل شو او [ددې ميلان په سبب] دخپلو نفساني خواهشاتو پيروي ئې كوله [او په ايتونو او احكامو باندې ئې عمل كول پريښودل] ﴿فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ﴾ نو [دده حالت دسپي پشان شو ﴿اِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ﴾ چه كه ته په ده حمله اوكړې [او هغه په وهلو بهر كړې] بيا هم غاپي يا دې په [دې حالت] باندې پريږدې بيا هم غاپي [په هيڅ حالت كښې ده ته راحت نشته دې.همداشان دا سړې په ذلت كښې خود سپې پشان شو او په پريشانئې كښې د سپي په دې صفت كښې شامل شو.نو څنګه چه ددې سړي حالت شو] ﴿ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا﴾ همدا حالت [عام طور باندې] دهغه خلقو دې چه هغوي زموږ ايتونه [چه په توحيد اورسالت باندې دلالت كوي] په دروغه اوګڼړل [چه دحق دښكاره كيدلونه پس محض دهواپرستئ په وجه حق پريږدي] ﴿فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ﴾ نو تاسو دا حال بيان كړئې شائد دغه خلق [ددې په آوريدو سره] څه سوچ اوكړي [حقيقت كښې] ﴿سَآءَ مَثَلَا ِۨالْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ﴾ ددې خلقو حالت هم ډير خراب حالت دې.چه زموږ ايتونه [چه په توحيد اورسالت باندې دلالت كوي] په دروغه ګڼړي او [په دې تكذيب سره] هغوي خپل [هم] نقصان كوي.

### معارف او مسائل

دې آيتونو كښې د بنى اسرائيلو يو داسې عبرت ناكه قيصه بيان شوې ده چې دې كښې د بنى اسرائيلو د يو لوړ درجې عالم ناګاهانه ګمراهانو اورتلې شوې جوړ شو. سره ددې چې ډير لوئې عالم ، د خلقو منلې شوې پير او بزرګ او د علم او معرفت اعلى پائې تـه رسيدلې وو. دا واقعه سره ددې د وجوهاتو نه بيان كړې شوې ده چې ډير عبرتونـه لرى ، ددې واقعې مناسبت تيرو شوؤ آيتونو سره دادې چې په هغې كښې د لوظ قـول او ميثاق بيـان وو كـوم چې الله ﷻ په روز ازل كـښې د ټولـو بنيـادمو نـه اوبيا پـه خـاص خـاص حـالتونو كـښې ئې يهوديـانو او نصرانيانو نه اخستې وو . په دغې آيتونو كښې داهم راغلى وو چې په دغې لوظونو باندې ډير خلق كلك پاتې نشو . بلكه يهود واخلئ چې د نبى كريم ﷺ دنيا تـه د تشريف راوړولو نـه مخكښې به ئې د نبى كريم ﷺ دتشريف راوړلو انتظار كولو ، د نبى كريم ﷺ خوئې خصلت به ئې خلقو ته بيانولو. او هغه به ئې رښتيا بلل مګر نبى كريم ﷺ چې كله مبعوث شونو ددنيا د ذليل او سپكو غرضونو پـه خاطر نبى كريم ﷺ باندې د ايمان راوړلو او د نبى كريم ﷺ د تابعدارئى كولو نه ئې ډډه اوكړه.

**د بنى اسرائيلو د يو لوئې عالم د ګمراه كيدو يو عبرتناكه واقعه** :: دې آيتونو كښې نبى كريم ﷺ تـه دا حكم شوې دې چې تاسو ﷺ دا قيصه خپل قوم ته واوروئ چې د بنى اسرائيلو د لوئې عالم او دالله ﷻ پيژندونكى داسې بيان دې چې ترقئ نه پس په ښكته راوغورزيدو. هدايت نه پس ګمراه شو ، وجه ئې دا وه چې خود غرضى او نفس پرستى پرې غالبه شوه ، دغه ټول علم ،

معرفت ، او مقبولیت ئې ختم شو. په ګمراهئ ، ذلت اوخوارئ کښې راګیر شو.
قرآن عظیم الشان کښې ددغه کس نوم یا کړهٔ وړهٔ تشخص نه دی بیان شوی ، په دې وجه د تفسیر امامان ، صحابه کرام ﷺ ، او تابعین په دې کښې اختلاف د روایتونو لري چې په دې کښې زیات مشهور او دجمهورو په نزد اعتباري روایت هغه دې چې ابن مردویه ﷫ د عبدالله بن عباس ﷠ نه په دې شان نقل کړې دی چې ددغې کس نوم بلعم بن باعوراء وو ، دشام په ملك کښې بیت المقدس سره نزدې د کنعان اوسیدونکې وو ، د یو بل روایت په جوړ دا کس په بنی اسرائیلو کښې وو. د الله ﷻ د څینې کتابونو عالم وو لکه دقرآن کریم پدې آیت مبارك کښې ورته اشاره شوې ده چې :﴿الَّذِیٓ اٰتَیۡنٰهُ اٰیٰتِنَا﴾.
د فرعون د غرقیدو او دمصر د فتح کیدو نه پس کله چې موسی ﷺ او د بنی اسرائیلو ته ، جبارین قوم سره د جهاد کولو حکم ورکړې شو ، او جبارینو وکیل چې موسی ﷺ د بنی اسرائیلو دوئ ته وراورسیدل نو ډیره ویره ورسره پیدا شوه ځکه چې دهغوئ په مقابله کښې د فرعون او فرعونیانو غرقیدل او تباه کیدل ورته د ړومبي نه معلومه وو. ددې ویر نه د بلعم بن باعوراء خواته راجمع شو. هغه ته خواست اوکړو چې الله ﷻ نه دې دعا اوکړي چې هغه ئې مخه زمونږ نه واړوي ولې چې موسی ﷺ ډیر سخت سړې دې اود هغه سره ډیر زیات لښکر دې او دې دپاره راغلی دی چې مونږ د خپل دې ملك نه ویستل غواړي. دا خواست ئې ځکه ترې اوکړو چې بلعم باعوراء ته اسم اعظم معلوم وو او د هغې په برکت به د هغه هره دعا قبلیده.
بلعم ورته اووئیل چې داسې کول خو زما د وس نه بهر ځکه دی چې موسی ﷺ د الله ﷻ نبی دې. ورسره د الله ﷻ فرښتې دی زه ورته څنګه خیرې کولې شم؟ حالانکه الله ﷻ سره چې دهغه په کوم مقام دې په هغه هم زهٔ خبر یم ، که داسې مې اوکړل نو دین دنیا به مې تباه شی.
دغې خلقو چې ډیر ضد اوکړو نو بلعم اووئیل چې ښه ده زهٔ د الله ﷻ نه معلومول غواړم چې ما ته دداسې دعا کولو اجازت شته اوکه نه ؟ د خپلې طریقې مطابق ئې دې دپاره استخاره یا بل څه عمل اوکړو. په خوب کښې ورته اوخودلې چې شو هیڅرې داسې اونه کړې. خپل قوم ته ئې اووئیل چې زه د خیرو کولو نه منع کړې شوې یم ، بیا هم ورته جبارینو څه غټه ډالئ پیش کړه چې په حقیقت کښې رشوت وو. هغه ترې دا ډالئ واخستله نو قوم ورپورې انخښتو چې زمونږ دپاره دا کار ضرور اوکړئی. څینې روایتونو کښې رازی چې ددې رشوت مشوره ورته خپلې ښځې ورکړې وه. او دا مشوره هم هغې ورکړه چې د جبارینو دا کار ضرور اوکړه. د ښځې فرمائش او د مال دولت محبت دې ړوند کونړ کړو ځکه ئې موسی ﷺ او د بنی اسرائیلو په خلاف ښیرې کول شروع کړل. د الله ﷻ د قدرت دغه وخت عجیبه کرشمه ښکاره شوه چې هغه کومې خیرې کوی دموسی ﷺ او دهغه د قوم دپاره کول غوښتلې خیرې یې د خپل قوم دپاره خلې نه وتلې ، هغوئ اوترې چغې کړې چې ته خو مونږ ته خیرې کوې ، بلعم ورته اووئیل چې زهٔ پدې کښې بې اختیاره یم. هغوئ ته په خیرو کولو مې ژبه نه ګرځی.
په نتیجه کښې دغه قوم تباه شو ، بلعم ته دا سزا ورکړې شوه چې ژبه ئې په سینه ورته زوړنده راپریوته. خپل قوم ته ئې دغه وخت اووئیل چې زما خو دنیا او آخرت دواړه تباه شو اوس خو مې خیرې او دعا نه قبلیږي. خو د موسی ﷺ په قوم باندې د غالب راتلو دپاره درته یو بل چل ښایم. داسې اوکړئی چې یو جینئ ډول سنګار کړئ او هغه د بنی اسرائیلو لښکر ته اولیږئ.

هغوئ چې ورسره څه کوي نو هغې کښې ورته انکار مه کوئی. بنی اسرائيل د ډيرې مودې راسې د کورونو نه راوتلی مسافر دی ډيره نزدې ده چې دوئ په زنا کښې اخته شی چې د الله ﷻ په کوم قوم کښې چې دا کار وی په هغه نزد ډير ناكاره كار دې ، په قوم باندې هم ددې په وجه خامخا قهر اوعذاب نازليږی ، او هيڅکله بر نشی راتلې.

دبلعم دغه شيطانی چل د دوئ زړۀ ته پريوتو ، دغسې ئې اوكړل ، د بنی اسرائيلو يو لوئې بنده په دې چل کښې راګير شو ، موسى ﷺ ډير منع کړو خو منع نشو.

ددغې وبال کښې بنی اسرائيلو باندې يو سخت قسم طاعون راغلو اودهغې په وجه په يوه ورځ کښې اويا زره بنی اسرائيلو هلاك شو. تر دې چې بنی اسرائيلو کښې کوم کس دغه ناكاره كړې وو بنی اسرائيلو دغه ناكاره كار كوونكې سره د هغه ناكاره ښځې اووژل او په يو عام ځائې کښې ئې دې دپاره زوړند کړل چې خلق ترې عبرت واخلی او ټولو توبه اوكړه نو هله ترې دغه وبا پورته شوه([1]).

دلته دهغه باره کښې : ﴿فَانسَلَخَ مِنْهَا﴾ اوفرمائيلې شو. يعنی کوم آيتونه اودهغې علم او معرفت مو چې دغه سړی ته ورکړې وو هغه ترې اووتو. د انسلاخ معنی د څرمنې نه د يو ځاروی راوتل يا دخپلې جلئ[پوست] نه د مار راوتل دی. دلته د آيتونو علم ته ئې د لباس يا څرمنې شان ورکړو . او دا اوخودلې شو چې دغه کس د علم او معرفت نه بوټ اووتلو. ﴿فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ﴾[نو شيطان وريسې شو] مطلب دا چې ترڅو ورسره د آيتونو علم او د الله ﷻ ذکر مل وو ، دشيطان پرې قابو نه شو راتلې ، کله ئې چې دغه شان ختم شو نو شيطان پرې قابو بيا مونده ، او په نتيجه کښې هغه ګمراه شو.

دويم آيت مبارك کښې فرمائی چې :﴿وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَاهُ بِهَا وَلَٰكِنَّهُ أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوَاهُ﴾[اوکه مونږ غوښتلې وې |نو د هغه مرتبه به موپه دې آياتونو اوچته کړې وه| خو هغه خپله زمکې طرفته ښکته شو| او د خواهش تابعداری ئې اوکړه]

﴿أَخْلَدَ﴾ اخلاد نه مشتق دې ، معنی ئې يو څيز ته ميلان کول يا يوځائې نيول ده.

﴿الْأَرْضِ﴾ اصلی معنی زمکه ده ، ددنيا ټول څيزونه يا خو پخپله زمکه ده يا هغه څيزونه دی چې زمکې سره تړون لری لکه کور ، جائيداد ، فصل وغيره شو. يا هغه څيزونه دی چې دزمکې نه پيدا کيږی چې د کرورونو په شمير کښې دانسان ژوند پرې اړانړه لری.

دلته د ﴿الْأَرْضِ﴾ نه دا ټول څيزونه اوټوله دنيا مراد اخستې شوی ده . دې آيت مبارك کښې دې طرفته اشاره اوکړې شوه چې د الله ﷻ آيتونه اوددې علم په اصل کښې د سربلندئی او ترقئ سبب دې ، ليکن څوك چې ددې احترام نه کوی اوددنيا ذليل خواهشات ، د الله ﷻ په آيتونو باندې وړاندې ګڼړی ، هغه دپاره دغه علم وبال جوړ شی ، په دې آيت مبارك کښې هغه وبال داسې بيانوی چې : ﴿فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث﴾[نو دهغه حال لکه دسپې شو که ته ئې اوزغلوې نو هم ژبه راوباسی اوکه په قلار ئې پريږدې نو هم ژبه راوباسی]

﴿يَلْهَثْ﴾ د ژبې په راښکلو سره په تيزه ساه اخستلو ته وئيلې شی.

[1] تفسير روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج ۹، ص ۱۱۳، والتفسير البغوی تحت هٰذه الآية: رقم الحديث ۱۱۵

هر ساه دار مخلوق ددې محتاجه وې چې د هغه دننه ګرمه او زهریله هوا بهر راؤځي او بهرنۍ ه تازه هوا د پوزې اوخلې په ذریعه دننه ننباسي ولې چې دانسان او ساه دار ځیز ژوند هم په دې باندې اډانړه لري. دا نهایت ضروري کار، د هر ساه دار دپاره الله ﷻ داسې آسان جوړ کړې دې چې د خپلې خلې او پوزې په ذریعه دغه هوا، بې دڅه خوارۍ نه اوباسي او ننباسي، دې کښې نه خو د زور لګولو ضرورت شته اونه په کښې د بل څه اختیاري عمل ضرورت شته، په قدرتي ډول باندې دغه کار بې محنته کیږي، او بې مشقته پخپله بې د څه خنډ نه چالو دې.
په ساه دار ځیزونو کښې یوازې سپې داسې یو ځناور دې چې ساه اخستلو کښې پرې زور داسې رازي چې ژبې راویستو سره ښه په زوره زوره په تکلیف سره ساه اخلي. د نور ځناورو دا حالت هغه وخت کښې وي چې څوك پرې حمله اوکړي، سترې ستومانه شي یا څه ناڅاپي محنت او خوارې کول ورته راپیښ شي. ددغه سړي مثال، قرآن عظیم الشان سپي سره په دې وجه ورکړې دې چې هغه د الله ﷻ دحکم خلاف ورزي په قصد سره کړې وه، ژبه ئې دخلې نه بهر راوتلې په سینه ورته پرته وه او په مخه بڼئې لکه دسپي په زوره زوره ساه اخسته خو اه چا به پرې حمله کړې وه اوکه نه وه کړې.
دې پسې فرمائي چې: ﴿ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا﴾ [دامثال دهغه ډلې دې چې زمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړلي دي] ابن عباس ﷠ فرمائیلي دي چې ددې نه مراد اهل مکه دي چې همیشه به ئې خواهش کولو چې یو هدایت کوؤنکې او لار خودونکې راته راشي چې مونږ الله ﷻ ته رابلي او د عبادت صحیح طریقې راته ښائي. بیا چې کله دغه لار خودونکې راغلو داسې ښکاره نخښې ئې هم پیش کړې چې دهغې په رښتنوالي او حقوالي کښې لږ هم شك پاتې نشو، بیا یې هم د الله ﷻ د آیتونو نه مخ واړولو او نبی کریم ﷺ ته یې دروغژن اوویل.
ځینې مفسرینو ددې نه مراد بني اسرائیل اخستي دي چې مخکښې خو به ئې د نبي کریم ﷺ نخښې او خصوصیات په تورات کښې لوستل خلقو ته بهٔ ئې هم بیانول او د نبی کریم ﷺ د تشریف راؤړو په انتظار کښې وو خو ددوئ په تشریف راؤړو سره د ټولو نه زیاته دښمنۍ ورسره هم دغې خلقو شروع کړه او د تورات د احکامو نه هم داسې صفا اووتل چې څنګه بلعم بن باعوراء ترې وتلې وو.
د آیت مبارك په آخر کښې فرمائي چې: ﴿فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ یَتَفَكَّرُوْنَ﴾ [ته دوئ ته داقصې واوروه کیدې شي چې دوئ سوچ اوفکر اوکړي]
دریم آیت مبارك کښې فرمائي چې د الله ﷻ د آیتونو مبارکو په دروغه ګڼړونکي په بد حال دي او داخلق هم پخپلو ځانونو باندې ظلم کوي او دبل چا وینښته هم نشي کړولي.
بیان شوؤ آیتونو مبارکو او په دې کښې په بیان شوې واقعه کښې دعقل، فکر خاوندانو دپاره ډیرې فائدې، عبرتونه او نصیحتونه دي.
① اول دا چې پخپل علم، غور والي او بزرګۍ او عبادت باندې فخر نه دې پکار، ولې چې دحالاتو په بدلیدو کښې څه مهلت نه رازي. دې باره کښې د بلعم بن باعوراء انجام ته اوګورئ، په عبادت او فرمانبردارۍ کولو باندې د الله ﷻ شکر ځکه ادا کول پکار دي چې ددې توفیق هم الله ﷻ ورکوي. په داسې حالت کښې د الله ﷻ د شکر سره سره په دې باندې د کلك پاتې کیدو دعا غوښتل پکار دي او په الله ﷻ باندې تکیه کول پکار دي.

④ بله دا چې دداسې موقعو نه او دې ته د راوړاندې کونکو څیزونو نه هم ځان ساتل دی چرته چې ده ته دخپل دین دخرابیدو اندیښنه وی ، خصوصا د مال او د بال بچ په مینه کښې دا خراب انجام په نظر کښې همیشه دپاره لرل پکار دی .

③ څلورم دا چې بې حیائی او حرامکاری پوره قوم دپاره د تباهئ اوبربادئ سامان وی ، کوم قوم چې خپل ځان د بلاګانو آفتونو او مصیبتونو نه په حفاظت کښې ساتل غواړی . هغه دپاره ضروری دی چې خپل قوم د بې حیایئ د کارونو نه ښه په مضبوطۀ منع کړی ، ګنی د الله ﷻ عذاب ته بلنه ورکول دی .

⑤ پنځم دا چې د الله ﷻ دآیتونو خلاف ورزی کول پخپله هم یو عذاب دې او هم ددې په وجه شیطان پرې غالب شی او په نورو زرګونو خرابیانو کښې ئې اونخلوی . په دې وجه الله ﷻ چې چاته علم ددین ورکړې وی هغه ته پکار دی چې دهغې قدر اوکړی او دعمل صحیح کولو دفکر نه کله هم بې فکره نشي.

| مَنْ | يَّهْدِ اللّٰهُ | فَهُوَ | الْمُهْتَدِيْ | وَمَنْ | يُّضْلِلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چاته | چې هدایت اوکړي الله | پس هغه | هدایت موندونکې دې | او هغه څوک | چې ګمراهه یې کړي |
| ا چاته چه الله ﷻ هدایت اوکړي ا نوهغه په نیغه لار روان شي ا اوڅوک چې دهدایت نه محروم کړي | | | | | |

| فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ | وَلَقَدْ | ذَرَاْنَا | لِجَهَنَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نودغه کسان چې دي | هغوئ دي | نقصانیان | اوخامخا په تحقیق سره | پیدا کړي دي مونږه | دپاره ددوزخ |
| نوهغه خلق تاوانیان دي ا ............ اویقیني خبره ده چه چې مونږ د جهنم دپاره | | | | | |

| كَثِيْرًا | مِّنَ الْجِنِّ | وَالْاِنْسِ | لَهُمْ | قُلُوْبٌ | لَّا يَفْقَهُوْنَ | بِهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ډیر کسان | دپیریانو نه | اودانسانانو نه | دي د هغوئ | زړونه | اچې سوچ نۀ کوي | په هغې سره |
| ډیر پیریان او بني آدم پیدا کړي دي ا دهغوئ زړونه شته دې خو دپوهې کوشش پرې نه کوي | | | | | | |

| وَلَهُمْ | اَعْيُنٌ | لَّا يُبْصِرُوْنَ | بِهَا | وَلَهُمْ | اٰذَانٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودي د هغوئ | سترګې | اچې کتل نۀ کوي | په هغې سره | اودي د هغوئ | غوږونه |
| اودهغوئ سترګې شته خو کتل پرې نه کوي ا ............ اودهغوئ غوږونه شته خو | | | | | |

| لَّا يَسْمَعُوْنَ | بِهَا | اُولٰٓئِكَ | كَالْاَنْعَامِ | بَلْ | هُمْ | اَضَلُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې نۀ اوري | په هغې سره | دغه کسان | اپشان دخناور دي | بلکه | هغوئ | ډیر ګمراهه دي ا |
| آوریدل پرې نه کوي ا ............ هغوئ دخاروؤ په شان دي ا بلکه دهغوئ نه هم بدتردي ا | | | | | | |

| اُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْغٰفِلُوْنَ |
|---|---|---|
| دغه کسان چې دي | هم هغوئ | غافلان دي ا |
| اوهم دغه کسان [دحق نه] غافلان دي ا | | |

## آسان ترجمه قرآن

چا ته چه الله هدایت وکړي بس هم هغه هدایت والا وی ، او څوك چه دهغه گمراه کړی نو هغه خلق نقصان اوچتوی او مونږ د پیریانو او انسانانو نه ډیر خلق د جهنم دپاره پیدا کړي دي دوی لره زړونه دي چه سوچ پرې نه کوي دوی لره سترگي دي چه هغې باندې کتل نه کوي ، دوی لره غوږونه دي چه هغې باندې آوریدل نه کوي داخلق د څنگرو پشان دي بلکه د هغې نه هم بد تر دي. دا هغه خلق دي چه دوی غفلت کښې پراته دی.

## خلاصه تفسیر

﴿ مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِیْ ۚ ﴾ چاته چه الله ﷻ هدایت کوي نو دهدایت موندونکې هم هغه وي ﴿وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ۝﴾ او چه څوك گمراه کړي داسې خلق [ابدي] په نقصان کښې پریوزي [بیا ددوي نه دهدایت توقع ساتل او په هدایت نه موندلو سره غمژن کیدل بیکاره دی] ﴿ وَلَقَدْ ذَرَاْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيْرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۖ ﴾ او [چه کله هغه خلق خپلې پښې پوهې او ادراك کولو قولو نه هډو کار نه اخلي نو هدایت به دکومه ځایه وي.نو ددوي په نصیب کښې خو هم دوزخ دې چنانچه] مونږ داسې ډیر انسانان او جنات د دوزخ [دپاره] پیدا کړي دي ﴿ لَهُمْ قُلُوْبٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ بِهَا ۡ ﴾ چه ددوي [تش په نوم] زړونه شته [دې خو] داسې دي چه [حق خبره] باندې نه پوهیږي [چونکه ددوئ اراده هم نشته دې] ﴿ وَلَهُمْ اَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُوْنَ بِهَا ۡ ﴾ او ددوئ تش په نوم سترگې شته [دې] خو داسې دي چه په دې سره] د استدلال په نظر یو څیز] نشي کتلې ﴿ وَلَهُمْ اٰذَانٌ لَّا يَسْمَعُوْنَ بِهَا ۭ ﴾ او ددوي خو [تش په نوم] غوږونه شته [دې خو] داسې دي چه په دې سره [متوجه کیدلو سره حقه خبره] نه آوري [غرض] ﴿ اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ ۭ ﴾ داخلق [د آخرت طرف ته دمتوجه کیدلونه بې فکره دي] دوي د څنارو په پشان دي بلکه [په دې حیثیت سره څناورخو د آخرت طرف ته د متوجه کیدلو مکلف خونه دي جوړ کړې شوي نو ددوي متوجه نه کیدل مذموم نه دي او دوي ته خو ددې حکم دې بیا هم بې فکري کوي نو په دې اعتبار سره] داخلق [ددې څناورونه هم] زیات بې لارې دي [ځکه] ﴿ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ۝ ﴾ دا خلق [باوجود دتوجو راگرزولو د آخرت نه] غافله دي [بخلاف د څناورو لکه چه څنگه مخکښې بیان شو].

## معارف او مسائل

د رومبی آیت مبارك مضمون دادې چې چاته الله ﷻ دصحیح لارې هدایت اوکړو هم هغه هدایت موندونکی دی او څوك چې الله ﷻ گمراه کړل نو هم هغوئ زیان او نقصان موندونکی دی.

دا مضمون په ډیرو آیتونو کښې بیا بیا راغلې دې چې په کښې خودلې شوی دی چې د هدایت ، گمراهئ ، د هر څیز خیر و شر ، ښه، او خراب پیدا کوونکې یوازې الله ﷻ دې . د انسان مخې ته ئې ښه ، خرابې ، صحیح او غلطې لارې دواړه راوستلې دی ، دهٔ ته یو خاص قسم اختیار ورکړې شوې دې چې که په ښه او صحیح لاره کښې ئې لگوی نو د ثواب او جنت حقدار کیږی که په خرابې او غلطې لارې کښې ئې لگوی نو جهنم بهٔ ئې ځائې وی.

دلته داخبره د ژور نظر کولو جوگه ده چې هدایت موندونکې ئې د مفرد په صیغې سره بیان کړې دې . او گمراهی اختیارونکی ئې په صیغې د جمع سره راوړی دی ، په دې کښې اشاره

دي ته ده چې دهدايت لارې يوازې دحق دين دې چې د آدم ﷺ نه تر خاتم الانبياء ﷺ پورې دټولو پيغمبرانو طريقه پاتې شوې ده ، اصول د ټولو شريك ، او يو دی په دې وجه د حق تابعدار خلق كه په هره زمانه كښې وی د هر يو پيغمبر په امت كښې وی ، او كوم يو دين ، او مذهب چې لری ، دا ټول يو دی ، ليكن د ګمراهئ لارې بې شميره جدا جدا لارې دی ، ځكه ئې ګمراهان د جمعې په صيغه ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ سره ذكر كړل .

دې آيت مبارك كښې دا خبره هم د لحاظ او خيال كولو جوګه ده چې د ګمراهی اختيارونكو سزا او بد انجام خوئی ذكر كړو چې هغه خلق په تاوان كښې پريوتونكی دی ليكن بل خوا د هدايت موندونكو خاص جزا بيان نه كړې شوه بلكه يوازې دومره اووئيلې شو چې دوئ هدايت موندونكی دی.

دې كښې اشاره دې خبرې ته اوكړې شوه چې هدايت ، يو داسې عظيم الشان نعمت دې چې ددين دنيا ټولونعمتونو او رحمتونولره شامل دې ، ددنيا پاكيزه ، ژوند او آخرت كښې جنت لازواله لوئې نعمتونه ، ټول هدايت سره تړون لری . په دې بنا هدايت پخپله يولوئې نعمت او ډير لوئې انعام دې چې بيا دهغه نعمتونو شمير لو ضرورت نه رازی كوم چې د هدايت په بدل كښې ملاويدونكی دی.

ددې مثال داسې دې لكه چې د يو لوئې حكومت او بادشاهئ خاوند چاته اووائی چې ته زما نزدې سړې ئې مونږ به دې خبره آؤرو ، او منو به ، نو پوهه بنده پرې پوهيږی چې ددې نه بله يوه مرتبه او منصب يا څه دولت ، دهٔ دپاره نشی كيدې .

په دې شان هر كله چې الله ﷻ يو چاته دهدايت موندونكی خطاب وركړو نو هغه ته ددين دنيا ټول نعمتونه حاصل شو. ځكه پخوانو بزرګانو اوفرمائيل چې د الله ﷻ ذكر ، عبادت پخپله جزا او د الله ﷻ عظيم الشان وركړه ده . څوك چې د الله ﷻ په ذكر كښې اخته وې هغه دغه وخت د الله ﷻ انعام نغد بيا مومی .او د آخرت او جنت انعام بل نعمت دې ، هم ددې نه د قرآن عظيم الشان ددې آيت مبارك مفهوم او مطلب هم په پوهه كښې رازی په كوم كښې چې فرمائی : ﴿جَزَاءً مِّن رَّبِّكَ عَطَاءً﴾ يعنی هم يو څيز ته ئې جزا او عطاء دواړه اوفرمائيل . سره ددې چې دا دواړه بيل بيل څيزونه دی ، جزا دعمل بدلې ته وئيلې شی اوعطاء هغه وركړه ده چې دڅه عمل وغيره په بدله كښې نه وی چې په نورو ټكو كښې ورته بخشش وئيلې شی .

دې سره ئې د جزا او عطاء حقيقت داسې اوخودلو چې څه ته تاسو جزاء اود عمل بدله وايئ هغه هم په حقيقت كښې زمونږ عطاء او انعام ځكه دې چې دا دكوم عمل بدله ګڼړلې شی ، هغه عمل پخپله زمونږ انعام وو.

دويم آيت مبارك كښې هم ددې مضمون زيات وضاحت كړې شوې دې چې هدايت او ګمراهی دواړه د الله ﷻ په قبضه قدرت كښې دی چا ته چې هدايت اوكړې شو هغه نه به ټول كارونه هم دهدايت په جوړ كيږی .

خرد چون د فتر تلقين كشايد     زمن آن دروجود آيد كه بايد[1]

او څوك چې ګمراه شی هغه نه هغه شان كارونه كيږی كوم چې ورسره پكار وی . هم په دې

[1] ترجمه: كله چه عقل د تلقين دفتر كهلاو كړی نو بيا ما نه هغه كار سرزد كيږی كوم چه كيدل پكار دي

وجه الله ﷻ فرمائی چې:

﴿وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ۖ لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا﴾ [او يقيني خبره ده چه چې موږ د جهنم دپاره ډير پيريان او بني آدم پيدا کړي دي دهغوئ زړونه شته دې خو دپوهې کوشش پرې نه کوی اودهغوئ سترګې شته خو کتل پرې نه کوی اودهغوئ غوږونه شته خو آوريدل پرې نه کوی]

دې کښې دا اوخودلې شو چې تقدير الهی اګر چې يو پټ راز دې چې هيچاته ئې په دنيا کښې څه علم نشی کيدې .ليکن په نخښنو سره د هغې اندازه لګيدې شی نو د جهنميانو يوه نخښه داده چې د الله ﷻ ورکړی قوتونه په صحيح کارونو کښې نه لګوی . د صحيح علم او معرفت دپاره چې الله ﷻ عقل سترګې او غوږونه ورکړي دی هغه ټول بې ځايه لګوی او اصل مقصد چې ورته په هغې سره دائمی اونه ختميدونکې آرام او دولت نصيب کيدې شی، دهغه طرفته توجه نه کوی

**په ښکاره کافران ښه پوهيږي ليدل کتل او آوريدل کولې شی نو په دې آيت مبارك کښې ددې د نيشتوالي نسبت ورته ولې کولې شی اددې حقيقت څه دې ؟** : دې آيت مبارك کښې د کافرانو د پوهې ليدلو او آوريدلو دنيشوالی بيان دې حالانکه په ليدلو کتلو سره نه خودغه خلق پاګلان دی او نه ړانده کاڼه دی ،بلکه ددنيا په ټولو کارونو کښې زيات هوښيار اوچالاك ثابت شوی دی .

مګر خبره داده چې الله ﷻ پخپل هر مخلوق کښې دهغه دضرورت او دهغه دژوند دمقصد په جوړ مناسب عقل او شعور ايخودې دې . کومو څيزونو ته چې موږ بې عقله ، بې حسابه او بې شعوره وايو ، اوګڼړوئې ، په حقيقت کښې هغه هم د هيڅ ادراك او عقل او شعور نه خالی نه دی . دغه څيزونه په کښې په هغه اندازه موجود دی چې په کومې سره ددې د ژوند مقصد پوره کيږي ، د ټولو نه کم عقل او شعور او حس په جماداتو کښې دې ، چې نه څۀ وده کوی او نه دخپل ځائې نه وتل اوګرځيدل راګرځيدل کوی . ددغه څيزونو اندازه په کښې دومره کمه ده چې د هغې نه ئې د ژوند نخښې پيژندل هم ډير ګران دی . ددې نه په زياته اندازه په نباتاتو کښې داڅيزونه شته چې د ژوند مقصد ئې وده کول او زياتيدل دی . هم ددې مناسب عقل او ادراك ورکړې شوې دې ، وروسې دحيواناتو نمبر دې چې دهغې دژوند په مقصد کښې وده کول ، ګرځيدل ، ځان دپاره خوراکه او غذا حاصلول ، دضررې وهلاکوونکو څيزونو نه ځان ساتل ، ترې تښتيدل اوخپل نسل پيدا کول هم دی . هغې ته ددې مناسب عقل او شعور ورکړې شو چې د نورو څيزونو نه زيات دې مګر هم دومره ورکړې شو چې په هغې سره د خپلې خيټې ډکولو ، اودۀ کيدو ، ويښيدو ، وغيره انتظام کولې شی او دښمن نه پرې ځان ساتلې شی ،ټولو نه روستو د انسان نمبر رازی چې د ژوند مقصد ئې د ټولو نه پورته داسې دې چې هغه به خپل پيدا کوونکې او پالونکی هم پيژنی . د هغه په مرضئ به روان وی . د هغه دناخوښو څيزونو نه بۀ ځان ساتی ، د ټولو مخلوقاتو په حقيقتونو به نظر اچوی او د هغې نه بۀ کار اخلی . دهر څيز نتيجې او انجام نه به ځان خبروی . د کړه ، کوټه ، ښۀ او بد جاج به اخلی ، د خرابيانو نه به ځان ساتی او خوبيانې به اختياروی . د انسانی نوع دا خصوصيت دې چې ورته د ترقئ کولو لوئې ميدان ورته حاصل دې کوم چې بل قسم مخلوق ته حاصل نه دې . يو خصوصيت ئې دادې چې ددۀ په عملونو او کارونو باندې جزا سزا شته ، هم په دې وجه ورته

عقل او شعور د ټولو مخلوقاتو نه زيات ورکړې شوې دې د پاره ددې چې د عامو حيواناتو د سطح نه زيات د خپل ژوند د مقصد په مناسب کارونو کښې ئې اولګوي ، د الله ﷻ ورکړې مخصوص عقل ،شعور ، اود هغه وربخښلې بينائی او اوريدل په کښې اولګوي .

ددې حقيقت په ښکاريدو سره د يو انسان او نورو ځناورو تر مينځه په پوهيدو ليدو ، او آؤريدو کښې ډير فرق پکار دې . که انسان هم يوازې په هغه ځيزونو کښې خپل عقل ، ليدل او آؤريدل استعمالوی ، په کومه کښې ئې چې ځان ځناور استعمالوی ، د هر ځيز په انجام او نتيجو باندې نظر لرل . خرابيانو نه ځان ساتل او د خير ښيګړې کارونه کول کوم چې انسان سره خصوصيت لری .

هغې ته ئې خيال او توجه کول پريخودل . نو دغه انسان ته به سره د عقل لرلو بې عقله راسره دنظر لګيدو نابيناؤ سره د آؤريدو کوڼ وئيلې شي . هم په دې وجه داسې خلقو ته قرآن عظيم الشان په بل ځائې کښې ﴿صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ﴾ فرمائيلی دی .

دې کښې دا بيان نشته چې دغسې خلق دخپل خوراك ،څکاك د اوسيدو ،اودۀ کيدو او ويښيدو په ضرورياتو نه پوهيږی . يا ددې په باره کښې نور څه نه پيژنی اونه وينی آؤری ، بلکه ددوئ باره کښې قرآن عظيم الشان يو ځائې کښې داسې فرمائی چې :

﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۖ وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غٰفِلُونَ﴾

او د فرعون ، هامان او ددوئ دقومونو باره کښې فرمائی چې : ﴿وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِيْنَ﴾ مګر د دوئ هوښيارتيا ليدل او آؤريدل وغيره به يوازې په داسې کارونو کښې استعماليدل په کومو کښې چې د نورو عامو ځاروؤ استعماليږی . يعنی يوازې د تن بدن ، په غم فکر کښې لګيدلی وو . د روح هيڅ خدمت ئې نه کولو ، او نه ئې ددې دائمی راحت او آرام باره کښې څه سوچ کولو او نه ئې په دغې باره کښې آؤريدل او ليدل کول ، که داسې خلق په معاشياتو او عمرانياتو کښې هرڅومره ترقی اوکړی ، سپوږمۍ او مريخ فتح کړی ، د مصنوعی سيارو نه ددنيا ټوله فضا ډکه کړی خو دا يوازې د تن بدن خدمت دې ، د کالبوت او د خيټې غم ، فکر کول دی ، دې نه مخکښې ئې هيڅ درك نه لګی چې د روح د هميشه آرام او راحت څه فکر اوکړې شي . هم دا وجه ده چې قرآن عظيم الشان ورته ړانده او کاڼه وئيلی دی . او پدې آيت مبارك کښې ئې د پوهې ، آؤريدو او ليدو نيشتوالې بيانوی ، مطلب ئې دادې چې په کوم ځيز باندې ددۀ د پاره پوهيدل پکار وو هغه نه آؤری ، په کومو ځيزونو ئې چې ځان پوهه کړی . يا څه ئې اوليدل اوکتل هغه شان خو عام ځاروی غوايان ، خرونه اوټټوان هم کوی .

په دې بنا د آيت مبارك په آخره کښې ئې اوفرمائيل چې : ﴿أُولٰٓئِكَ كَالْأَنْعَامِ﴾ [هغوئ دځاروؤ په شان دی] د خپل تن او خيټې په خدمت کښې لګيا دی ، خوراك او خيټه ددوئ د ترقئ آخری پوړئ ده ، بيا ئې اوفرمائيل چې : ﴿بَلْ هُمْ أَضَلُّ﴾ [بلکه دهغوئ نه هم بدتردی] ولې چې ځناور د شريعت د احکامو مکلف نه دی ، جزا ، سزا ددوی د پاره نشته ، که ددې ځناورو مقصد ، يوازې د ژوند او د خپل دين تن ، بدن سمول وی نو صحيح دی ، مګر انسان د پاره هر کله چې د خپلو عملونو حساب ورکول هم دی ، جزا او سزا پرې اړه لری ، نو د ځناورو نه زيات بيوقوفان څکه شو چې هغه خو د خپل مالك ښه پوره خدمت کوی ، پوره حکم ئې منی ، او دغه قسم انسان نه د خپل مالك حکم په ځائې راؤړی او نه ئې دخدمت فکر لری ، په دې بنا د

څناورو نه زیات بې وقوفه اوغافله شو، څکه فرمائی چې: ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَٰفِلُونَ﴾[اوهم دغه کسان [دحق نه] غافلان دی].

| وَلِلَّهِ | الْأَسْمَاءُ | الْحُسْنَىٰ |
|---|---|---|
| اود الله دی | نومونه | ښه |
| اود الله ﷻ دپاره ښه ښه نومونه دی ......................... | | |

| فَادْعُوهُ | بِهَا | وَذَرُوا | الَّذِينَ | يُلْحِدُونَ | فِي أَسْمَائِهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو آواز کوئ هغه ته | په هغې سره | او پریږدئ | هغه کسان | چې کوږوالې کوی | په نومونو دهغه کښې |
| نو په هغې سره ئې رابلئ \| اوهغه خلق پریږدئی چې دالله ﷻ نومونو کښې کوږوالې لټوی | | | | | |

| سَيُجْزَوْنَ | مَا | كَانُوا | يَعْمَلُونَ |
|---|---|---|---|
| زر به بدله ورکړې شی هغوئ له | دهغې | چې وو هغوئ | چې کول به ئې |
| دوئ ته به دخپلو عملونو بدله ډیره زر ورکړې شی | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**او اسماء حسنیٰ (ښه ښه نومونه) دالله دي، پس دې نومونو سره الله لره رابلئ، او هغه خلقو لره پریږدئ چه هغه په نومونو کښې کږه لاره اختیاروي، هغوی چه څه کوي نو د هغې بدله به هغوی ته ملاؤ شي.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا﴾ او ښه ښه [مخصوص] نومونه الله ﷻ دپاره [خاص] دي نو په دې نومونو سره الله ﷻ موسوم کوئي ﴿وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ﴾ او [په نورو باندې ددې نومونو اطلاق مه کوئي بلکه] داسې خلقو سره تعلق هم مه لرئي چه ددې [ذکر شوؤ] نومونو کښې کجروي کوي [داشان چه غیرالله باندې ددې نومونو اطلاق کوي لکه څنګه چه هغه خلقو هغوئ ته معبود او اله په اعتقادسره وئیله] ﴿سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ ددې خلقو په کړو په دوي ته ضرورو سزا ملاویږي.

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې د جهنمیانو ذکر وو چا چې عقل او حواس د الله ﷻ دنخښبو په لیدو، آؤریدو په هغې باندې پوهیدو او په کښې سوچ فکر کولو باندې اونه لګول، دآخرت د همیشه او نه ختمیدونکی ژوند دپاره ئې څه سامان برابر نکړو، په نتیجه کښې ئې دالله ﷻ ورکړې عقل او بصیرت دلاسه ورکړو، د الله ﷻ د ذکر په ذریعه دخپل نفس د اصلاح او کامیابئ نه غافله شو او د څناورو نه زیات په ګمراهئ او بې وقوفئ کښې پریوتو.
اوس په دې آیت مبارک کښې د دوئ د مرض علاج او دواء څودلې شوی دی چې د الله ﷻ نه دعا غوښتل او د الله ﷻ ډیر ډیر یاد کول دی، لکه فرمائی چې: ﴿وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا﴾[اود الله ﷻ دپاره ښه ښه نومونه دی نو په هغې سره ئې رابلئ].

**د اسماء حسنیٰ زیات تفسیر:** د ښکلو نومونو مطلب هغه نومونه دی چې د کمال د صفتونو په اعلی درجه باندې دلالت کوی، ښکاره ده چې د څه کمال اعلی درجه، کوم د پاسه چې بله

درجه نشی کیدې ، هغه یوازې د کائناتو خالق ته حاصله ده ، بل هیڅ مخلوق ته نشی حاصلیدې ، ولې چې هر کامل نه مخلوق څخه بل زیات کامل او هر فاضل نه بل زیات فاضل کیدې شي. لکه قرآن عظیم الشان فرمائي چې : ﴿وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ﴾.

په دې وجه آیت مبارك کښې داسې یو عبادت اختیار کړې شو چې ترې معلومه شوه چې اسماء حسنی یوازې د الله ﷻ خصوصیت دې چې نورو ته حاصل نه دې. ﴿فَادْعُوهُ بِهَا﴾ یعنی هر کله چې معلومه شوه چې الله ﷻ لره اسماء حسنی دی چې هغه یوازې هم دهغه ذات سره خصوصیت لري نو ضروري ده چې الله ﷻ لره بلئ او هم په دې اسماء حسنی ئې بلئ.

بلل ، یا ورته آواز کول د دعا ترجمه ده ، دا لفظ په قرآن عظیم الشان کښې د دوؤ معنو دپاره استعمالیږي.

① د الله ﷻ د ذکر دپاره په دې شان چې دهغه حمدوثناء سره د تسبیح او تحمید نه بیان کړې شي. ② په حاجتونو او مشکلاتو کښې د الله ﷻ نه خپل حاجتونه غوښتل ، د مصیبتونو او آفتونو نه د خلاصیدو او د مشکلاتو د آسانئ خواست ترې کول.

دې آیت مبارك کښې د ﴿فَادْعُوهُ بِهَا﴾ لفظ دواړو معنو دپاره استعمال شوې دې. په دې بنا د آیت مبارك معنی دا شوه چې د حمدوثناء او د تسبیح لائق یوازې د الله ﷻ مبارك ذات دې. مشکلاتو او مصیبتونو نه خلاصې ورکول او حاجتونه پوره کول هم یوازې د الله ﷻ په قبضه کښې دی ، نو حمدوثناء هم دده کول پکار دی او حاجت پوره کولو دپاره او مشکلاتو حل کولو دپاره الله ﷻ لره بلل پکار دی. د بللو طریقه ئې دا اوخودله چې هم هغه اسماء حسنی سره ئې بلئ چې الله ﷻ لره ثابت دی.

**د دعا غوښتو آداب ::** دې آیت مبارك کښې امت ته دوه هدایتونه ورکړې شوی دی. یو دا چې د الله ﷻ د ذات نه سوا بل هیڅوك ، د حقیقي حمدوثناء یا مشکل کشایئ او حاجت روایئ دپاره دبللو لائق او جوګه نشی کیدې. بله دا چې دده دبللو دپاره هم هر څوك آزاد نه دی چې د خپلې خوښې په الفاظو سره ئې یاد کړی. بلکه الله ﷻ پخپل فضل و کرم سره مونږ ته هغه الفاظ هم اوخودل چې کوم دهغه د شان سره ښائي او مونږ ئې پابند کړو چې هم په هغه الفاظو سره ئې یادکړو ، خپلې رائې سره ئې نور الفاظ بدل نکړو ، ولې چې د انسان د وس نه بهر خبره ده چې تول اړخیز لحاظ اوساتي او د هغه د شان لائق الفاظ جوړ کړې شي.

بخاري شریف او مسلم شریف کښې د ابی هریره رضی الله عنه په روایت د نبی کریم ﷺ داحدیث پاك منقول دې چې د الله ﷻ یو کم سل نومونه مبارك دی څوك ئې چې محفوظ کړی هغه به جنت ته ځي[1]. امام ترمذي رحمه الله او حاکم رحمه الله دغه یوکم سل نومونه په تفصیل سره خودلی دی[2]. د الله ﷻ ددې یو کم سل نومونو په وئیلو سره دهر مقصد دپاره کړې دعا قبلیږي ، څنګه چې د الله ﷻ وعده ده چې : ﴿ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ [تاسو ما لره بلئ زۀ به مو دعا قبوله کړم].

---

[1]) صحیح البخاري، کتاب الدعوات، باب لله مائة اسم غیر واحد: ج ۲، ص ۹۴۹، وصحیح مسلم، کتاب الذکر الخ: باب فی اسماء الله تعالى وفضل من احصاها: ج ۲، ص ۳۴۲

[2]) جامع الترمذي، أبواب الدعوات، باب: ج ۲، ص ۱۸۸ تا ۱۹۰، والمستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۴۰

حاجتونو او مشکلاتو دپاره ددعا نه بل هیڅ زیات ښه تدبیر نشته دی. چې په کښې دځه ضرر اندیښنه نه وی او نفع به ئې یقیني وی، د خپلو حاجتونو دپاره الله ﷻ نه دعاغوښتلو کښې خود نقصان هیڅ احتمال نشته، او یوه نفع په کښې نغده داده چې دعا یو عبادت دې چې ثواب ئې دهغه په عمل نامه کښې لیکلې شی. لکه حدیث پاك کښې رازی چې: ﴿الدعاء مخ العبادة﴾[1] [دعا کول دعبادت مغز دې]. دکوم مقصد دپاره چې دعا اوشی اکثر هم هغه غوښتلې مقصد پوره کیږی. کله داسې هم کیږی چې دغه غوښتلې مقصد د انسان دپاره مفید نه وی نو ددغې دعا مخه داسې مقصد ته واړولې شی کوم چې دده دپاره مفید وی، دغه شان حمدوثناء سره د الله ﷻ ذکر کول دایمان غذا ده چې په نتیجه کښې ئې دانسان مینه محبت الله ﷻ سره اوترلې شی، که ددنیا تکلیفونه ورته راپیښ هم شی نو هغه پرې سپکیږی، او ورته آسانیږی.

د بخاری شریف او مسلم شریف، ترمذی شریف او نسائی شریف په صحیح حدیثونو کښې د نبی کریم ﷺ دا فرمان راغلې دې چې: چاته څه بې آرامی یا سخت ضرورت راپیښ شی نو پکار دی چې دا کلمات وائی، ټول مشکلات بهٔ ئې آسان شی. ﴿لا اله الا الله العظیم الحلیم لا اله الا الله رب العرش العظیم لا اله الا الله رب السموت والارض ورب العرش الکریم﴾[2]

او د حاکم په مستدرك کښې د انس رضی الله عنه په روایت د نبی کریم ﷺ دا فرمان منقول دې چې فاطمه رضی الله عنها ته ئې اوفرمائیل چې تاسو دپاره دې نه څه بندیز دې چې تاسو زما وصیت واؤرئی او په دې عمل اوکړئی، وصیت دادې چې سحر ماښام دا دعا کوئی:

[3] ﴿یاحی یاقیوم برحمتك استغیث اصلح لی شانی کله ولاتکلنی الی نفسی طرفة عین﴾[4]

دا دعا هم ټولو حاجتونو دپاره بې مثاله ده.

خلاصه دا شوه چې ددغې آیت مبارك په دې جمله کښې امت ته دوه هدایات ورکړې شوی دی:

① یو دا چې حمدوثناء سره د مشکلاتو او حاجتونو دپاره یوازې الله ﷻ لره بلئ، مخلوقاتو لره مه بلئ.

② بل دا چې الله ﷻ یوازې په هغې نومونو سره بلئ کوم چې الله ﷻ لره ثابت دی. ددې الفاظ مه بدلوئی.

ددې آیت مبارك بله جمله کښې فرمائی چې:

﴿وَذَرُوا الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اَسْمَآئِهٖ ۭ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ [او هغه خلق پرېږدئی چې د الله ﷻ نومونو کښې کوږوالې لټوی دوئ ته به دخپلو عملونو بدله ډیره زر ورکړې شی].

لغت کښې د الحاد معنی میلان او درمیانه لارې نه برته کیدل دی، په دې بنا دقبر لحد ته لحد ځکه وائی چې هغه د قبر د مینځ یو طرفته وی. قرآن عظیم الشان کښې د الحاد معنی دا

---

[1] ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب منه: ج ۲، ص ۱۷۵

[2] ) صحیح البخاری، کتاب الدعوات، باب الدعاء عند الکرب: ج ۲، ص ۹۳۹، وصحیح مسلم، کتاب الذکر والدعاء الخ: باب دعاء الکرب: ج ۲، ص ۳۵۱، وجامع الترمذی، أبواب الوتر، باب ما جاء فی صلاة الحاجة: ج ۱، ص ۱۰۸، ۱۰۹

[3] ) ترجمه: یاحی یاقیوم، زه ستا د رحمت په واسطه تاته فریاد کوم چه زما ټول حالت صحیح کړے او ما دیو لوظے دپاره هم خپل نفس ته مه حواله کوے.

[4] ) المستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۱۹۵۸

کيدې شي چې د قرآن عظيم الشان صحيح معنې پريخودې شي او په اخواديخوا خبرو سره تاويل او بدلون په کښې راوستې شي.

دې آيت مبارک نبي کريم ﷺ ته دا هدايت ورکړې شوې دې چې تاسو ﷺ داسې خلقو سره تعلقات هم پريږدئ چې د الله ﷻ په اسماء حسنی کښې د الحاد نه کار اخلي.

**دالله ﷻ په نومونو مبارکو کښې دکوږ تګ کولو بديز او ددې مختلف صورتونه:** د الله ﷻ په نومونو مبارکو کښې د کوږ تګ يا بدلون راوستو ګڼ صورتونه کيدې شي چې ټول ددې آيت مبارک په مضمون کښې داخل دی.

يو صورت دادې چې الله ﷻ دپاره داسې يو نوم استعمال کړې شي کوم چې دقرآن پاک او د حديث تر مخه ثابت نه وي. دحقاني علماؤ اتفاق دې چې هيڅوک دا اختيار نه لري چې دخپلې خوښې يو نوم سره الله ﷻ لره ياد کړي، يا د هغه حمدوثناء دخپلې خوښې په صفت سره اوکړې بلکه دې دپاره هغه الفاظ ضروري دی چې په قرآن عظيم الشان کښې او سنت کښې دده دپاره ذکر کړې شوي وي، لکه الله ﷻ ته کريم وئيلې شي، سخي نشي وئيلې، نور وئيلې شي، ابيض ورته نشي وئيلې، شافي ورته وئيلې شي طبيب ورته نشي وئيلې، سره ددې چې د هرو دواړو الفاظو معنى سره يوه ده.

د الله ﷻ په نومونو مبارکو کښې د الحاد دويم صورت دادې چې د قرآن عظيم الشان نه ثابت شوي څه نوم مبارک ئې په دې خيال پريخودې شي چې هغه دپاره نامناسب اوګڼلې شي. په دې شان دا ښکاره بې ادبي هم ده.

**د الله ﷻ په مخصوصو نومونو مبارکو سره بل څوک يادول يا مخاطب کول جائز نه دي:** دريم صورت دادې چې د الله ﷻ د مخصوصو نومونو مبارکو څخه څه نوم بل چا دپاره استعمال کړې شي. تفصيل ئې دادې چې کوم نومونه مبارکه قرآن عظيم الشان کښې او حديث پاک کښې بل چا دپاره استعمال شوي وي، نو مونږ دپاره به هم جائز وي چې چا دپاره ئې استعمال کړو. لکه رءوف، رحيم، رشيد، علي، کريم، عزيز وغيره. او که قرآن عظيم الشان او حديث پاک کښې کوم نوم مبارک د بل چا دپاره نه وي استعمال شوې نو دهغې نوم بل چا دپاره استعمالول په دغه الحاد کښې داخل بالکل ناجائزه اوحرام دی، لکه رحمن، سبحٰن، رزاق، خالق غفار، قدوس وغيره.

بيا داسې مخصوص نومونه که بل چا دپاره دبې فکرئ او بې خيالئ د وجې نه استعمال کړې شي نو دا خو به کفر نه وي البته سخته ګناه به څکه وي چې دا مشرکانه الفاظ دی البته په دې شان استعمالولو کښې به ئې کفر او شرک هم وي چې عقيده ئې هم دغسې وي، لکه خالق، او رزاق يارحمان سبحان چاته په دې عقيده اووائي چې هغه پيدا کوؤونکې اوروزي رسان ګڼړي.

افسوس دې چې نن صبا عام مسلمانان په دې غلطئ کښې انښتي دی، څينې مسلمانانو خو اسلامي نومونه ايخودل د سره پريخودي دی. په صورت او سيرت باندې خو ړومبې نه هم نشو پيژندل کيدئ چې ګني دا مسلمان دې صرف په نوم به پيژندلې شو خو اوس ئې نومونه هم په انګريزئي طرز ايخودې شي نو د اسلامي نومونو خديجه ؓ، عائشه ؓ، فاطمه ؓ په ځائې د زنانو نومونه، نسيم، شميم، شهناز، نجمه او پروين ايخودل شروع شو. ددې نه زيات دافسوس خبره داده چې عبدالرحمان، عبدالخالق، عبدالرزاق، عبدالغفار،

عبدالقدوس وغیره ته اصل نومونو اخستو په ځائې رحمان ، خالق ، رازق ، غفار ، قدوس وئیلې شی. او دې کښې هم د لوئې غضب خبره داده چې قدرت الله ته الله صاحب او قدرت خدا ته خدا صاحب وئیلې شی. دا ټول ناجائز، حرام او ګناه کبیره ده څومره ځل چې دغسې نوم واخستې شی هغه هومره ځل ئې ګناه کبیره اوکړه او آوریدونکې هم دګناه نه خالی نه پاتې کیږی.
دا داسې بې خونده او بې فائدې ګناه ده چې زمونږ زرګونه رونړه ئې شپه ورځ کوی ، دا فکر نه کوی چې ددې لږ شان حرکت انجام څومره خطرناك دې ، چې ددغې آیت په ذکر شوې جمله کښې پرې داسې خبرداری او زورنه ورکړې شوې ده چې ﴿سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾[ادوی ته به دخپلو عملونو بدله ډیره زر ورکړې شی]. دا بدله په ګوته کړې شوې نه ده څکه سخت عذاب ته اشاره کیدیشی.
په کومو ګناهونو کښې چې څه دنیاوی فائده یا لذت اوآرام دې دهغې باره کښې خو دا هم وئیلې شی چې زه دخپل خواهش یا ضرورت نه مجبوره شوم خو افسوس دې چې اوسنی مسلمانان د جهالت او غفلت په وجه داسې فضول اوبې فائدې ګناهونو کښې اخته وی چې په کښې نه ددنیا څه فائده شته او نه یو ذره خوند او آرام په کښې شته ، وجه ئې داده چې حلال ، حرام ، جائز او ناجائز ته دچا خیال هم نشته ،[نعوذ بالله منه].

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِمَّنْ | | | | | |
| اوځینی دهغه چانه | | | | | |
| .........او زمونږ په | | | | | |
| خَلَقْنَآ | أُمَّةٌ | يَّهْدُونَ | بِالْحَقِّ | وَبِهٖ | يَعْدِلُونَ |
| چې پیدا کړی دی مونږه | یوه ډله ده | چې لار ښائی خلقو ته | مطابق دحق | اوهم ددې حق مطابق | انصاف کوی |
| مخلوق کښې یوه ډله داسې هم شته چې دحق مطابق [خلقو ته] خودنه کوی \| اودحق مطابق انصاف کوی | | | | | |
| وَالَّذِينَ | كَذَّبُوا | بِاٰيٰتِنَا | سَنَسْتَدْرِجُهُمْ | مِّنْ حَيْثُ | |
| اوهغه کسان | چې دروغ ئې اوګنړل | آیتونه زمونږه | درجه په درجه به اونیسو مونږ هغوئ | په داسې طریقه | |
| اوچاچې زمونړ آیتونه دروغ ګنړلی دی \| ...... مونږ به ئې په مزه مزه داسې راګیر کړو | | | | | |
| لَا يَعْلَمُونَ | وَأُمْلِي | لَهُمْ | إِنَّ كَيْدِي | مَتِينٌ | أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا |
| چې نۀ به پوهیږی هغوئ | اوزۀ مهلت ورکوم | هغوئ ته | بیشکه تدبیرزما | سخت دې | آیافکر اونۀ کړودې خلقو |
| چې په خان به نه پوهیږی \| اوزه هغوئ ته مهلت ورکوم \| زما نیول ډیرسخت دی \| آیا دوی چرې فکرنه دې کړې | | | | | |
| مَا بِصَاحِبِهِمْ | مِّنْ جِنَّةٍ | إِنْ هُوَ | إِلَّا | نَذِيرٌ | مُّبِينٌ |
| چې نشته په ملګری ددوئ باندې \| هیڅ لیونتوب | نه دې \| هغه | مګر | یرونکې دې | ښکاره | |
| چې ددوی په دې ملګری [پیغمبر] باندې دپیریانو هیڅ اثر نشته \| هغه خو بس ښکاره ویرونکې دې | | | | | |
| أَوَلَمْ يَنْظُرُوا | فِي مَلَكُوتِ | السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | وَمَا | |
| آیا اونۀ کړو نظر دوئ \| په | سلطنت | دآسمانونو | اودزمکې | اوپه هغه کښې | |
| آیادوی دآسمانونو اوزمکې انتظام ته نه دی کتلی \| ...........او هغه | | | | | |

| خَلَقَ اللّٰهُ | مِنْ شَيْءٍ | وَّاَنْ عَسٰۤى | اَنْ | يَّكُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| چې پیدا کړي دي الله | يو څيز | او دا سوچ ئې اونه کړو چې | کيدې شي | چې وي به |
| څيز ته ئې نه دي کتلي چې الله ﷻ پيدا کړي دي او دې ته ئې هم فکر نه دې کړې چې | | | | |
| قَدِ اقْتَرَبَ | اَجَلُهُمْ | فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ | بَعْدَهٗ | يُؤْمِنُوْنَ |
| نيته رانږدې شوي ده نو دې قران نه پس به دوئ لا په کومه خبره ايمان راوړي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او څمونږ په مخلوق کښې يو جماعت داسې هم دې چه خلقو ته حقه لاره ښائي، او د هغې (حق) مطابق د انصاف نه کار اخلي. او کومو خلقو چه څمونږ آيتونو لره دروغژن کړي دي، هغوی به مونږ داسې په مزه مزه اونيسو چه هغوی ته به پته هم ونه لګي. او څه هغوی ته مهلت ورکوم، يقين وکړه چه څما تدبير ډير مضبوط دې آيا دې خلقو دا سوچ نه دې کړې چه دا صاحب چه هغه سره د دوی واسطه ده (يعني محمد ﷺ) هغه کښې د لېونتوب څه آثر نشته، هغه څه نور څه نه بلکه په صفا طريقه خلقو لره ويرونکې دې او آيا دې خلقو د آسمان او زمکې سلطنت او الله چه کوم څيزونه پيدا کړي دي هغې بأندې غور نه دې کړې، اودا (سوچ ئې نه دې کړې) چه کيدې شي د دوی هغه مقرر وخت نزدې شوې وي؟ اوس ددې نه وروستو آخر کومه خبره ده چه هغې بأندې به دوی ايمان راوړي؟

## خلاصه تفسير

﴿ وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴾ او زمونږ په مخلوق جن وانس کښې [ټول ګمراه نه دي بلکه] يو جماعت [په دوي کښې] داسې هم دې چه [ددين] حق [يعني داسلام] موافق خلقو ته هدايت [هم] کوي او ددې موافق [په خپلو اود پردو په معاملاتو کښې] انصاف هم کوي ﴿وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ﴾ اوچه کوم خلق زمونږ ايتونه په دروغه ګڼړي ﴿ سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴾ مونږ دوي په مزه مزه [جهنم] طرف ته راکاږو په داشان چه دوي ته خبر قدرې نشته دې ﴿ وَاُمْلِيْ لَهُمْ اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ ﴾ او [په دنياکښې په عذاب نازلولو سره په دوؤ باندې د وراچولو نه] دوي ته مهلت ورکوم بيشکه خما تدبير ډير مضبوط دې.

﴿ اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ﴾ آيا هغه خلقو په دې خبره کښې غور اونکړوچه د چاسره ددوئ معامله ده هغوي ته لږ هم ليونتوب نشته دې ﴿ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴾ هغوي خوصرف يو صفا صفا [د عذاب نه] ويرولو والا دې [چه دا داصالت په طور دپيغمبر کار وي] ﴿اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ اوآيا دې خلقو غور نه دې کړې دآسمانونو او زمکې په عالم کښې ﴿وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ ﴾ او [داشان] په نورو څيزونوکښې چه الله ﷻ پيدا کړي دي [چه دوي ته د توحيد علم استدلالي حاصل شوې وې] ﴿ وَاَنْ عَسٰۤى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ ﴾ او په دې خبره کښې [هم غور ئې نه دې کړې] چه ممکن ده چه ددوي مرګ نزدې وي [چه د احتمال دعذاب نه ويريږي اوددې نه ديچ کيدلو فکر کوي اوپه فکر سره حق دين ملاويږي او د مرګ د نزديکت امکان هروخت دې او کله چه د قران غوندې مؤثره کلام نه دوي ته فکر پورې هيڅ حرکت نشته دې نو] ﴿ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴾ بيا دقران نه پس به په کومه خبره داخلق ايمان راوړي.

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې د جهنمیانو حالتونه، صفتونه، او ددوئ د ګمراهئ داسبب بیان کړې شوې وو چې خدائ ورکړې عقل او بصیرت او فطری قوتونه په اصل کار کښې اونه لګول او برباد ئې کړل، بیا ورپسې ددوئ د مرض علاج د الله ﷻ د نومونو مبارکو او د الله ﷻ د ذکر په ذریعه خودلې شوې وو، اوس په دې آیتونو کښې بل طرفته ددنیا دخاوند او اهل حق بیان دې کوموچې دالله ﷻ د ورکړی عقل نه کار اخستلوسره صحیح لاراختیار کړه ارشاد دې چې:
﴿وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ﴾[او زمونږ په مخلوق کښې یوه ډله داسې هم شته اچې دحق مطابق[خلقوته]خودنه کوی | اودحق مطابق انصاف کوی].
د تفسیر امام ابن جریر رحمه الله پخپل سند سره نقل کړی دی چې نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارک په تلاوت کولو سره اوفرمائیل چې دې کښې د ذکر شوی امت نه زما امت مراد دې، چې دخپلو جګړو فیصلې به دحق او انصاف مطابق کوی، او د لین دین په ټولو معاملو کښې به حق او انصاف خپلې مخې ته لری(۱).
عبد بن حمید رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته دخطاب کولو په وخت اوفرمائیل چې دا آیت مبارک ستاسو باره کښې نازل شوې دې او تاسو نه رومبې هم یو امت ته دا صفتونه او شان ورکړې شوې دې، بیا ئې دا آیت مبارک تلاوت کړو چې: ﴿وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ﴾(۲)، مراد دادې چې یو ټولې د موسی علیه السلام په امت کښې هم وو چې خلقو ته به ئې لار خودله، او خپل مینځ کښې د راپیښیدونکو جګړو په فیصلې کولو کښې بهٔ ئې د الله ﷻ د شریعت مکمله تابعداری کوله اوامت محمدیه ته یې هم په دې صفتونو کښې خصوصی بیلتون اوامتیاز ورکړې دې
ددې خلاصه دوه خصلتونه دی، یودا چې د نورو خلقو مشری او رهنمائی کول یا مشوره ورکول د شریعت په تابعدارئ کښې وی، بل دا چې خپل مینځ کښې راپیښې شوې جګړې دې د شرعی قانون په جوړ فیصله کړې شی.
غور کولو سره معلومیږی چې دا دواړه داسې خصلتونه اوصفتونه دی چې دیو قوم یا د یو ډلې خیر ښیګړې، ددنیا او آخرت کامیابی په دې اړه لری، یعنی په صلح، جنګ، دوستئ او دښمنئ په هر حالت کښې دې ددوئ اصل مقصد حق او انصاف کول وی، خپلو دوستانو اوملګرو ته په طریقه کار خودلو کښې د حق تابعداری کوی وی، د دښمنانو اوحریصانو په جګړه کښې هم د حق په وړاندې خپل ټول خیالات او خواهشونه پریخودل پکار دی چې خلاصه ئې حق پرستی ده نو د امت محمدیه په نورو امتونو باندې دغوره والی اولوړ والی راز او د دوئ دبیلتون نخښه هم دا حق پرستی ده چې دوئ خپل ټول ژوند د حق تابع جوړ کړو، خپلو ذاتی خواهشاتو او خاندانی یا قومی رسمونو ته په کښې بالکل دخل ورنکړو، او خپل مینځ کښې په راپیښو جګړو کښې ئې هم خپل څټ همیشه دپاره دحق په وړاندې ښکته اولرلو، د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو پوره تاریخ ددې ګواه دې، اوکله د نه چې دې امت

۱) تفسیر الطبری رقم الحدیث: ۱۵۳۵۸
۲) الدر المنثور تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۳۲۸

کښې په دې دوؤ خصلتونو کښې خلل او نقصان راغلو دغې وخت نه دسر دلاندې راگوزار شو او مخ په کښې تلل یې شروع شو.
د ډیر افسوس او غم خبره ده چې نن دا حق پرست امت خالص خواهش پرست جوړ شوېدې، دې کښې ډلې او پارټئ جوړې شوې چې دنیا ئې خاص ذاتی غرضونه او د دنیا سپکې او ذلیلې فائدې دپاره جوړېږی، یو بل ته خالص د نفساني خواهشاتو یا خانداني رسمونو او رواجونو بلنه ورکولې شی، که څوک ئې دې نه منع کوی نو ټول په جمع دهغه مقابلې ته تیار شی، لیکن نه د حق او شریعت مطابق د کار کولو چرته څه لوظ قول کولې شی، نه بل چا ته د تابعدارئی کولو نصیحت کولې شی، او نه ددې په خلاف ورزئ کولو سره د چا تندې گنجې کیږی. که خپل مینځ کښې ئې څه جگړه او مقدمه راپیښه شی نو د څو ورځو ددنیا دوهمی فائدې په خاطر د الله ﷻ قانون پریږدی. اودشیطان قانون په ذریعه فیصلې کولو ته خوشحالیږی.
ددې ناکاره انجام هر چرته لیدلې کتلې شی، ددې په وجه دا امت خوارو زار شو. [الا ماشاء الله] ولې چې دوئ د حق نه مخ واړولو، الله ﷻ ترې د خپل امداد مخ واړوله. د حق پرستئ په ځائې چا ته چې خواهش پرستئ کښې څه دنیوی نفع په لاس ورغله هغه په دغې باندې فخر کوی. مگر ددې په نتیجه کښې چې قوم او ملت تباه کیږی دهغې لیدونکې او آوریدونکې هیڅوک نشته. که د ټول امت کامیابی او ترقی د چا مخې ته وی نو ددې نه سوا، بل هیڅ لار نشته چې دا قرآنی اصول ښهٔ مضبوط اونیولې شی مطلب دا چې پخپله هم پرې په ښه شان سره عمل اوکړې او نورو ته هم ددې د پابندئی جوړولو لارې گودرې اوخودلې شی.
بل آیت مبارک کښې ددې شبهې جواب دې چې هر کله قومی ترقی په حق پرستئ او دحق او انصاف په تابعدارئ اړه لری، نو کوم غیر مسلم قومونه چې د حق نه سراسر لرې دی هغوئ ولې په دنیا کښې وده کوؤنکی ښکاری، جواب ئې دادې چې:
﴿وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ﴾ یعنی مونږ دخپلو آیتونو تکذیب کوؤنکو له د خپل حکمت او رحمت په بنا په یو وار نه نسیو بلکه په قراره قراره او په مزه مزه راگیر وو چې دوئ پرې خبر هم نه وی. په دې وجه دنیا کښې د کافرانو او فاجرانو دمالدارئ یا دعزت او مرتبې سره غولیدل څکه پکار نه دی چې دا په حقیقت کښې دوئ دپاره څهٔ دښیگړې سامان نه دې بلکه د الله ﷻ د طرفنه استدراج دې، د استدراج معنی داده چې درجه په درجه پورئ په پورئ کا راوکړې شی، د قرآن عظیم الشان او د سنت په اصطلاح کښې استدراج دې ته وئیلې شی چې د بنده په گناه کولو باندې په دنیا کښې څه تکلیف او مصیبت پرې رانشی بلکه څومره چې گناهونه ئې زیاتیږی دنیوی مال و اسباب ئې ورسره په مخه زیاتیږی. نتیجه ئې دا وی چې په خپلې بد کردارئ ورته هیڅ وخت څه خبرداري نه وی او په غفلت سره ئې سترگې ئې نه غړیږی، خپل خراب عملونه ورته خراب په نظر نه راځی. څکه ترې د آوریدو غم او فکر ورسره نه وی، د انسان داحالت د هغه رنځور پشان دې چې علاج ئې نه وی، رنځورتیا له شفاء او زهرو له تریاق گنړی او استعمالوی، نتیجه ئې دا وی چې داسې کس ناڅاپه په عذاب کښې راؤنیولې شی، اوکله تر مرگه پورې دا سلسله جاری وی او په مرگ سره ئې دغه مستی او بې هوشی ختمه شی او د همیشه عذاب ئې ځائې جوړ شی.

قرآن عظیم الشان په مختلفو سورتونو او آیتونو کښې ددې استدراج ذکر کړې دې لکه فرمائي چې:

﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ مُبْلِسُونَ﴾

[پس هر کله چې دوئ نصیحتونه هیر کړل نو مونږ پرې د هر قسم خوشحالو دروازې پرانیستې تردې چې دوئ ته مونږ څه ورکړې وو په هغې خوشاله شول نو مونږ ناڅاپه راونیول او دوئ بالکل حیران پاتې شو].

دا استدراج کافرانو سره هم کیږي او ګناهګارو مسلمانانو سره هم، هم دغه وجه ده چې کله صحابه کرامو ﷡ او نور پخوانو بزرګانو ته به الله ﷻ ددنیا نعمت او دولت ورکړو نو ددې ویره به ورسره مل شوه چې هسې نه دا استدراج وي.

دریم آیت مبارك کښې ددې استدراج بیان دې چې:

﴿وَأُمْلِي لَهُمْ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ﴾ [او زه هغوئ ته مهلت ورکوم زما نیول ډیر سخت دی]

څلورم آیت مبارك کښې د کفارو د دغه باطل خیال رد کړې شوې دې چې [معاذالله] نبی کریم ﷺ د لیونتوب په رنځ اخته دې، فرمائي چې:

﴿أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا مَا بِصَاحِبِهِمْ مِنْ جِنَّةٍ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ مُبِينٌ﴾ [آیا دوی چرې فکر نه دې کړې چې ددوي چاسره واسطه راغلې ده په هغه باندې د پیریانو هیڅ اثر نشته د هغه په ورانډې خود ټولې دنیا عاقلان او حکماء حیران دی، دهغه په باره کښې د جنون خیال کول پخپله جنون دې. نبی کریم ﷺ خو حقائق صفا صفا بیانوی او د آخرت او د الله ﷻ د عذاب څخه خلق ویروی.

پنځم آیت مبارك کښې دوئ ته د دوؤ څیزونو طرفته د فکر بلنه ورکړې شوې ده، اول د الله ﷻ په مخلوقات کښې د غور و فکر کولو اوبل د خپل عمر په دې مودې او د عمل په فارغتیا باندې د نظر کولو.

د قدرت په کاریګرئ کښې په لږ شان عقل، فکر کولو سره او غور کولو سره د معمولی پوهې خاوند به هم د الله ﷻ د قدرت شان او پیژنې او دهغې ننداره به ورته ښکاره شي، او که د ژور نظر خاوند ورته مخه کړي نو د جهان ذره ذره به ورته د قادر مطلق او حکیم مطلق ثناء خوان، تسبیح ویونکې او حمد بیانوونکې ښکاره شي. چې هغې نه پس، په الله ﷻ باندې ایمان راوړل به ئې یو فطری تقاضا جوړه شي.

د خپل عمر په موده او زمانه کښې دغور، فکر کولو نتیجه داده چې کله انسان په دې پوهه شي چې دمرګ وخت به کله رازي نو د ضروری کارونو په پوره کولو به یو ذره غفلت هم نه کوي، او ښه په توجه او چستئ سره به ددهٔ دپاره کارکوی. ولې چې د مرګ نه بې پرواه کیدل داسې یو غفلت دې چې انسان په ګډوډو او جرمونو کښې اخته کوي، او کله چې مرګ ځان ته مخې ته راولي نو ډیرو جرمونو نه دبچ کیدو دپاره آماده کوي. همدغه وجه ده چې نبی کریم ﷺ فرمائي چې. ﴿اكثروا ذكر هاذم اللذات الموت﴾(١)

(١) جامع الترمذي، أبواب الزهد، باب ما جاء في ذكر الموت: ج ٢، ص ٥٧

[تاسو هغه څيز ډيرو ډير يادوی چې ټول خوندونه ختموی يعنی مرګ]

ځکه په آيت مبارك کښې فرمائي چې:

﴿اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ ۙ وَّاَنْ عَسٰۤى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ﴾ [لفظ د ملکوت د ملك په معنی کښې د مبالغې دپاره وئيلې کيږي. ددې معنی ده عظيم ملك، د آيت مبارك معنی داده چې آيا دې منکرانو دالله ﷻ په عظيم ملك کښې غور نه دې کړې چې په آسمانونو او زمکو او بې شميره څيزونو باندې محيط دې، او آيا دوئ په دې باندې نظر نه دې کړې چې دا کيدې شی چې ددوئ مرګ نزدې وی چې هغې څخه ورستو به د ايمان او عمل فرصت ختم شی.]

د آيت مبارك په آخر کښې فرمائی چې ﴿فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ﴾ [يعنی کوم خلق چې د قرآن کريم دداسې واضحو نخښو څخه ورستو هم ايمان نه راوړی نو دوئ به په بل څه باندې ايمان راوړی]

مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ؕ وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ

هغه څوك | چې بې لارې ئې کړی الله | پس نشته | څوك لاربنودنکې | هغه ته | او پريږدی دوئ | په سرکښی ددوئ کښې

څوك چې الله ﷻ د هدايت نه محروم کړی انو هغه ته هيڅوك هدايت نشی کولې | او داسې خلق الله خپله

يَعْمَهُوْنَ ۝ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا

چې سرګردانه ګرځی | تپوس کوی ستانه | په باره دقيامت کښې | چې کله به وی | قائميدل دهغې | او وايه | بيشکه

سرکشئ کښې سرګردانه پريږدی | دوئ ستانه دقيامت باره کښې تپوس کوی | چې کله به راځی | ورته او وايه

عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ؕ ثَقُلَتْ

علم دهغې | زمارب سره دې | نهٔ ښکاره کوی هغه | په وخت خپل باندې | مګر | هم هغه | دروند دې

دهغې علم صرف زمارب سره دې | هم هغه به ئې پخپل وخت ښکاره کوی | دغه شان به

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ؕ

په آسمانونو کښې | او په زمکه کښې | نهٔ به راځی په تاسو باندې | مګر | ناساپه

دآسمانونو او زمکې ډيره سخته حادثه وی | ........ په تاسو به بالکل ناڅاپه راځی

يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ؕ قُلْ

تپوس کوی دا خلق ستا نه | لکه چې ته تحقيق کونکې ئې | په باره دهغې کښې | ورته او وايه

دوئ ستانه داسې تپوس کوی | لکه چې ته د هغې نه پوره پوره خبر ئې | ........ ورته او وايه

اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

بيشکه | هم علم دهغې | دالله سره دې | وليکن | اکثر دخلقو | نهٔ پوهيږی

چې دهغې علم صرف الله ﷻ سره دې | اخو زيات خلق بيخی نه پوهيږی

## آسان ترجمه قرآن

هغه څوك چه الله ئې گمراه كړي ، هغه ته څوك هدايت نه شي كولې .او داسې خلق الله ( بې د يار او مددگار ) پرېږدي چه دوي خپله سرکشۍ کښې حيران او پريشانه وي (اې پيغمبره !) خلق ستا نه د قيامت په باره کښې تپوس کوي چه دا به کله وي ؟ته ووايه: دهغې علم خو صرف ځما رب سره دې هم هغه به ئې په خپل وخت ښکاره کوي بل څوك نه .هغه به آسمانونو او زمکو کښې ډير درونډ څيز دي چه کله راځي نو ناڅاپه به راځي .دا خلق ستا نه داسې تپوس کوي لکه چه تا د هغې پوره تحقيق کړې دې .ته ووايه چه ددې پوره علم الله څخه دې ليکن اکثر خلق (په دې خبره) نه پوهيږي.

## خلاصه تفسير

﴿ مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ﴾ او چالره چه الله ﷻ گمراه کړي هغه هيڅوك په نيغه لار نشي راوستلې [نوبيا غم بې فائدې] ﴿ وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴾ اوالله ﷻ دوي په گمراهۍ کښې سروهلې بهرولې پريږدي [چه په يو ځل ورته پوره سزا ورکړي] ﴿ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ﴾ خلق ستاسونه د قيامت د ورځې په باره کښې تپوس کوي چه دابه کله واقع کيږي ﴿قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ﴾ تاسو اوفرمائې چه ددې [دا] علم [چه کله به واقع کيږي] صرف ځما درب سره دې [بل چا ته ددې اطلاع نشته دې] ﴿ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ﴾ دابه په خپل وخت باندې دالله ﷻ نه سوا بل هيڅوك ظاهر نکړي [او دا ظاهرول به دا وي چه دا به واقع کړي نوپه هغه وخت کښې به ټولو ته خبراوشي.ددې نه مخکښې به دا چاته دوئيلو په طور ظاهر نه کړي خکه] ﴿ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ چه هغه به په آسمانونواو زمکه کښې يوه لويه حادثه وي. [ددې وجې] ﴿ لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ﴾ هغه به تاسوباندې محض اچانك [بې خبرئي کښې] راشي [چه څنگه هغه اجسامو باندې په متغير او متفرق کولوکښې درونډ دې همدغه شان هغه په زړونو باندې هم داشان درونډ اثر کوي.اودمخکښې نه په وئيلو سره دا خبره نه پاتې کيږي.او تپوس کول هم ددې په معمول طور سره نه دې بلکه] ﴿ يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ﴾ دوي تاسونه داشان [په مبالغې سره] تپوس کوي گويا چه بانډتاسو ددې تحقيقات کړي وي] او د تحقيقاتونه پس تاسو ته ددې پوره پوره علم شوي دې] ﴿ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴾ تاسو اوفرمائې چه ددې علم [ذکر شوې] خاص الله ﷻ سره دې ليکن اکثر خلق [دا خبره] نه پيژني [چه بعضې علمونه الله ﷻ په خپله خزانه کښې پټ کړي دې.نبيانو ته ئې هم ددې خبر نه دې ورکړې.نو ددې نه په بې خبرئي د يو نبي په عدم اطلاع دتعيين دقيامت معاذالله دنبوت نفي دليل گنړي.داشان چه نبوت دپاره دا علم لازم دې او انتفاء لازم مستلزم ده انتفاء د ملزوم لره حالانکه دا رومبئ مقدمه محض غلطه ده].

## معارف او مسائل

ددې نه په مخښکې آيتونو کښې د کافرانو او منکرانو ضد بيان شويدې ، داهم بيان شوې وو چې د الله ﷻ د قدرت په ښکاره نخښو باندې هم دوئ ايمان نه راوړي . داخبره ځکه نبي کريم ﷺ دپاره د زيات غم خفگان موجب وه ، چې نبي کريم ﷺ په امت او په عام مخلوق باندې ډير زيات زهيريدل او ډير مهربانه وو ځکه اوس ددې دريو آيتونو څخه په رومبي آيت

مبارك كښې د نبي كريم ﷺ د تسلئ دپاره اوفرمائيل چې : څوك الله ﷻ گمراه كړې دى هغه هيڅوك نه شي په لارې كولې او الله ﷻ داسې خلق په گمراهئ كښې پريږدى.
مطلب دا شوچې ددې خلقو په ضد او د حق قبلولو نه په مخ اړولو باندې غم ، خفگان څكه مه كوئ چې ستاسو ﷺ د پيغمبرئ ذمه دارى هم دومره ده چې حق خبره مو بسۀ واضحه او په اثرناك انداز كښې اورسوله. اوس دچا منل او نه منل يو تقديرى كار دى ستاسو هيڅ دخل په كښې نشته دې نوولې تاسو خفگان كوئ ؟ ددې سورت په مضمونو كښې درې مضامين ډير زيات ضرورى وو. يو توحيد ، بل رسالت او دريم آخرت . دا درې واړه د ايمان او اسلام اصل بنيادونه دى ددې څخه د توحيد او رسالت مضمون په تيرو شوو آيتونو كښې په تفصيل سره راغلې دې . اوس ددې آيتونو په آخرى دوو آيتونو كښې د آخرت او قيامت مضمون بيان شوې دې چې ددې د نازليدو يوه خاص واقعه ده چې د تفسير امام ابن جرير او عبد بن حميد په روايت د قتاده نقل كړې ده . هغه داسې چې د مكې قريشو د نبى كريم ﷺ نه د ټوقو مسخرو په ډول تپوس اوكړو چې هر كله تاسو خلقو ته د قيامت دراتلو خبر وركوئى او دهغې نه خلق ويروئى كه تاسو رښتينى يئ نو ددې وخت راته اوښائې چې په كوم كال ، كوم تاريخ ،كومه مياشت او په كومه ورځ به وى ؟ چې مونږ ورته د مخكښې نه تيارې اوكړو . تاسو ﷺ سره زمونږ دخپلوئ او عزيزولئ تقاضاهم داده چې مونږ ته ئې اوښايئ اګر كه عامو خلقو ته ئې خودل نه غواړئ. نو په دې دا آيت مبارك نازل شو چې :
﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ﴾[دوئ ستاسنه دقيامت باره كښې تپوس كوى]، عربى كښې لفظ د ﴿السَّاعَةِ﴾ لږې مودې دپاره استعماليږى چې خاص حد ددې دپاره نه وى . او د اهل نجوم په اصطلاح كښې د شواروز د څلريشتو حصو نه يوې حصې ته وئيلې شى . چې په اردو كښې ورته گنټه وئيلې شى . خود قرآن عظيم الشان په اصطلاح كښې هغې ورځې ته وئيلې شى چې ټول مخلوق به په كښې مرى او هغې ورځې ته هم وئيلې شى چې په كښې ټول مخلوقات به دوباره راژوندى كيدوسره درب العالمين په دربار كښې حاضريږى.
د ﴿أَيَّانَ﴾ معنى ده كله ، او ﴿مُرْسَىٰ﴾ معنى ده قائميدل ، ﴿لَا يُجَلِّيهَا﴾ د تجلية نه مشتق دې ، چې معنى ئې پرانستل او ښكاره كول دى . د ﴿بَغْتَةً﴾ معنى ده ناڅاپه . د ﴿حَفِيٌّ﴾ معنى عبدالله بن عباس ﷺ عالم او خبردار كړې ده او په اصل كښې خفى هغه چاته وئيلې شى چې په تپوسونو كولو سره د څه خبرې پوره تحقيق غواړى.
پدې بنا د آيت مبارك مطلب دا شو چې داخلق دقيامت باره كښې سوال كوى چې هغه به كله راځى ؟ تاسو ﷺ ورته اووايئ چې ددې د ټاكلو صحيح علم يوازې زما رب سره دې ، نه روميې نه بل چاته معلوم دې اونه به په هغه وخت چاته روميې نه معلوم وى كله چې په سر راشى بلكه پخپله به ئې الله ﷻ په سر راوستو سره ښكاره كړى ، هيڅ واسطه به په مينځ كښې نه وى ، د قيامت دا پيښه به په آسمانونو او زمكه ډيره درنه واقعه وى چې په ذره ذره كيدو سره به والوځى . نو دحكمت تقاضا داده چې داسې سخته واقعه د روميې نه ښكاره نكړې شى ، گنى ديقين كوونكو ژوند به تريخ شى . او منكرانو ته به دزياتو ټوقو موقعه په لاس ورشى څكه ئې اوفرمائيل چې : ﴿لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً﴾[په تاسو به بالكل ناڅاپه راځى].

د بخاري او مسلم په يو حديث پاك كښې د ابى هريره ﷺ په روايت منقول دى چې نبى كريم ﷺ د قيامت د ناڅاپۍ راتلو باره كښې اوفرمائيل چې خلق به پخپلو خپلو كاروبار كښې مشغول وى ، يو كس بهٔ د كپړې خرڅولو په غرض دهغې تهان ګاك ته پرانستى وى ، هغوئ بهٔ سودا سرته نه وى رسولې چې قيامت به قائم شى ، يوكس به د اوښې لښلې پۍ ځان سره اخستى وى او دهغې د استعمالولو نه وړاندې به قيامت راشى . څوك به د خپل تالاؤ مرمت كوى ، هغې نه به لا اوزګار شوې نه وى چې پرې راشى . [روح المعانى][1].

مقصد دادې چې څنګه د انسان د ذاتى مرګ تاريخ او وخت نامعلومه ساتلو كښې د الله ﷻ لوئې لوئې حكمتونه دى دغه شان د اجتماعى مرګ دوخت په پټو ساتلو كښې هم لوئې حكمتونه دى ، اول او ښكاره حكمت په كښې دادې چې په يقين كوؤنكو باندې به ژوند لنډتنګ او دنيوى كارونه مشكل شى ، منكرو خلقو ته به د تږقو كولو زيات وخت په لاس ورشى او سركشى به ئې نوره هم زياته شى .

نو دحكمت تقاضا دا شوه چې ددې تاريخ نامعلومه اوساتلې شى ، دپاره ددې چې خلق ئې هيبتناكو واقعو نه هميشه ويريږى . چې دائې د ګناهونو او جرمونو نه دبنديز راوستو زبردست اثرناك علاج دې . څكه پدې آيتونو سره دا تعليم وركړې شو چې څوك د قيامت د راتلو يقين لرى او د رب العالمين په وړاندې د تولو پيشى هم يقينى ګنړى . دا به ئې يقين وى چې په دغه ورځ به د خو او بدو عملونو جاج اخستې شى ، چې په نتيجه كښې به ئې بې مثاله او بې زواله نعمتونه حاصليږى يا [معاذ الله] د دوزخ هغه سخت عذاب وى چې د هغې په تصور سره به غونى زيګ كيږى نو عقل مند بنده له دا نه وى پكار چې عمل ته د فارغيدو وخت په دې بحثونو كښې ضائع كړى چې دا واقعه به كله په كوم كال او په كوم تاريخ وى ، بلكه د عقل تقاضا داده چې دعمر فرصت غنيمت اوګنړى او ددې ورځې دپاره په تيارئى كښې مشغول شى ، درب العالمين دحكمونو د خلاف كولو نه دومره ويريږى څنګه چې د اور نه هر انسان ويريږى .

د آيت مبارك په آخر كښې ددغې خلقو په سوال رادوباره كولو سره فرمائى چې :

﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا﴾ [دوئ ستانه داسې تپوس كوى لكه چې ته د هغې نه پوره پوره خبر ئې].

رومبې سوال خو دا وو چې هر كله داسې لويه واقعه كيدونكې ده نو مونږ ته ددې پوره پوره صحيح تاريخ او وخت معلوميدل پكار دى . جواب ئې داسې وركړې شوې دې چې دا سوال د بې عقلۍ او بيوقوفۍ نه پيدا شوې دې . د عقل تقاضا داده چې ددې د تاكلو چا ته دسره خبر څكه نه وى چې هر عمل كوؤنكې هر وخت د آخرت د عذاب نه په ويريدو سره نيك عمل كښې اخته اوسى او د ناكاره عملونو نه په ځان ساتلو كښې په پوره توجه سره مصروف وى .

د دوئ د دويم سوال مطلب دا وو چې ګنى نبى كريم ﷺ ته ضرور دقيامت صحيح تاريخ ، او وخت معلوم دې . د تحقيق كولو په وجه ئې د الله ﷻ نه ددې علم ضرور حاصل كړې دې خو مونږ ته ئې د څه وجې نه نه ښائى ، څكه ئې ورته د خپلوئ او عزيزولۍ روئى واچولو او سوال ئې ترې اوكړو چې مونږ ته د قيامت پوره معلومات راكړى . ددې سوال په جواب كښې ورته

---

[1] ) تفسير روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ٦، ص ٣٦٨، وصحيح البخارى، كتاب الفتن، باب خروج النار: ج ٢، ص ١٠٥٣

الله ﷻ اوفرمائيل چې :

﴿قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ [يعنى تاسو خلقو ته اووائې چې حقيقت دادې چې د قيامت د صحيح تاريخ د الله ﷻ څخه سوا يوې فرښتې ته يا نبى ته هم علم نشته دې ، خو ډير خلق ددې حقيقت څخه بې خبره دې چې ډير علوم الله ﷻ صرف ځان سره محفوظ ساتى او ددې علم يو فرښتې يا پيغمبر ته نه وى ، خلق دا ګنړى چې د نبوت او رسالت دپاره دا لازمى ده چې د قيامت علم به ورسره خامخا وى بيا ددې څخه دا نتيجه راوباسى چې هر کله نبى کريم ﷺ ته ددې علم نشته دې نو معاذ الله دوئ ﷺ نبى نه دى ، خو پورته معلوم شو چې دا خيال بالکل غلط دې]

خلاصه دا شوه چې داسې سوال کوونکى ډير بې قوفه او ناخبره دى ، نه ورته د مسئلې حقيقت معلوم دې ، نه ورته ددې حکمت او نه د سوال کولو طريقه. البته نبى کريم ﷺ ته د څه نخښو علم ورکړې شوې وو ، او ددې علم هم ورکړې شوې وو چې هغه اوس نزدې دې څنګه چې نبى کريم ﷺ په ډيرو صحيحو احاديثو کښې ښه په ښکاره بيان کړى دى. لکه فرمائيلى دى چې زما پيغمبر کيدل او قيامت داسې سره يو ځائې شوى دى لکه د يو لاس دوه ګوتې .[ترمذى]([1]).

ځينې اسلامى کتابونو کښې چې ددنيا ټول عمر اووه زر کاله خودلې شوې دې دا د نبى کريم ﷺ حديث نه دې بلکه اسرائيلى روايتونو نه راخستلې شوې مضمون دې.

د طبقات الارض عالمانو چې د نوؤ تحقيقاتو تر مخه ددنيا عمر په لکونو کاله خودلې دې ، دا نه قرآنى آيتونو مقابل جوړيدېشى او نه صحيح حديث سره ، په اسلامى روايتونو کښې داسې کچه اوبې سنده خبرو داخلول شايد دا مقصد لرى چې د اسلام خلاف بدګمانئ پيدا کړې شى . دکومو تر ديد چې پخپله په احاديثو کښې موجود دې. يو صحيح حديث کښې پخپله رسول کريم ﷺ خپل امت ته فرمائيلى دى چې ستاسو مثال د پخوانو امتونو په مقابله کښې داسې دې لکه د تور غوئ په بدن چې يو سپين ويښته وى([2]) ، دې نه هر څوک اندازه لګولې شى چې د نبى کريم ﷺ په نظر کښې ددنيا عمر څومره اوږد دې چې اندازه ئې لګول هم ګران دى په دې بنا حافظ ابن حزم اندلسى رحمه الله فرمائيلى دى چې زمونږ عقيده داده چې ددنيا د عمر څه صحيح اندازه نشى لګولې کيدې ، ددې صحيح علم يوازې ددې پيدا کوونکى ته دې .[مراغى].

قُلْ لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِىْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ ؕ

اووايه چې زه اختيار نه لرم | دپاره دځان خپل | دنفعې | او نه دضرر | مګر | هغه کيږى | چې اوغوارى الله

ورته اووايه زه خود خپل ځان دپاره هم دنفعې نقصان مالک نه يم | مګر هغه چې الله ﷻ اوغوارى [نو هغه کيږى]

وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ ۚ

او که چرې | وې زه | چې پوهيدلې | په غيب | خامخا به ډير حاصل کړې وو ما | دخير نه

او که ماته دغيبو خبرې معلومې وې | نو خانله به مې ډيرې خيګړې راجمع کړې وې

---

[1]) جامع الترمذى، أبواب الفتن، باب: ج ۲، ص ۳۵

[2]) صحيح البخارى، كتاب الانبياء، باب قصة يأجوج ومأجوج: ج ۱، ص ۴۷۳

وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ ۚ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ

اونه به وو رسيدلي ماته | نقصان | نه يم زه | مګر | يرونکي | اوزيرې ورکونکي | دپاره دهغه قوم

اوهيڅرې به ماته څه نقصان نه وو رسيدلي | زه خوبس ويرونکي اوزيرې ورکونکي يم | هغه چاته

يُّؤْمِنُوْنَ ۝ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ

چې ايمان راوړي | هغه [الله] هغه ذات دې | چې پيدا ئې کړي تاسو | دنفس | يونه

چې ايمان راوړي | ............... الله ﷻ هغه ذات دي چې تاسو ئې ديونفس [ادم] نه پيدا کړي يئ

وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ۚ

اوجوړه ئي کړه | دهغې نفس نه | جوړه دهغې | دپاره ددې چې ارام حاصل کړي | دهغې سره

اوهم دهغه نه ئې دهغه جوړه [بي بي حواء] پيدا کړې ده | چې هغې سره سکون بيامومي

فَلَمَّا تَغَشّٰىهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ۚ

نوکله چې اسرې ورخورشو په هغې باندې انو حامله شوه | په حمل سپک سره | پس ګرځيدله به | دهغې حمل سره

نوکوم وخت چې دا سړې د ښځې سره يوځائې شوا نودهغې معمولي شان حمل پيدا شو | هغه ورسره ګرزيدئ شوه

فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا

بياهرکله چې | درنه شوه هغه | نودعا اوغوښتله دواړو دالله نه | درب خپل نه | که چرې | تاراکړومونږته | بچې صالح

بياهرکله چې حمل درونه شو | نودواړو په شريکه خپل رب نه سوال اوکړو | که تامونږ ته نيک اولاد راکړو

لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝ فَلَمَّآ اٰتٰىهُمَا

نوشو به مونږه خامخا | دشکرايستونکونه | پس هرکله چې | ورکړو الله هغوئ دواړو ته |

نومونږ به ستا ډيرشکرګزار شوا .............. نو کله چې الله ﷻ هغې دواړو ته

صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ اٰتٰىهُمَا ۚ

صحيح سالم بچې | نوجوړ کړل دواړه | هغه دپاره | شريکان | په هغې کښې | چې ورکړې ئې وو هغوئ دواړو ته

نيک خوئي ورکړو | نودواړو د الله ﷻ دپاره په هغه ولد کښې شريکان جوړ کړل | کوم چې ورته الله ﷻ ورکړې وو

فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ اَيُشْرِكُوْنَ مَا لَا يَخْلُقُ

نو لوئ دي الله | دهغې نه | چې شريکوئ دوئ دالله سره | ايا شريکوي دوئ | هغه څه | چې نشي پيدا کولي

اوالله ﷻ ډيراوچت دي | دهغه څه نه چې دوئ ئې الله سره شريکان کوي | ايادوئ ورسره هغه شريکان جوړوي

شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ۝ وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ لَهُمْ نَصْرًا

هيڅ خيز | بلکه هغوئ | پيدا کړې کيږي | اوطاقت نه لري هغوئ | دپاره دهغوئ | دامداد کولو

چه هغوی هيڅ نشي پيدا کولي | بلکه هغوی جوړولي شي | اونه دوئ سره څه مدد کولې شي | اونه د

وَلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ۝ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى

اونه دخانونو خپلو سره | امداد کولي شي | اوکه چرې | تاسو رااوبلئ هغوئ | نيغې لارې ته

خپل خان مدد کولي شي | .............. اوکه تاسوئې نيغې لارې ته راوبلئ |

| لَا يَتَّبِعُوكُمْ ۭ | سَوَآءٌ | عَلَيْكُمْ | اَدَعَوْتُمُوهُمْ | اَمْ |
|---|---|---|---|---|
| نونه کوی هغوی پیروی ستاسو | یوشان ده | په تاسو باندي | آیا که رابلئ تاسو هغوی | یا |
| نو هغوی تاسو پسي درتلي نشي \| ستاسو دپاره یوشان خبره ده که تاسو هغوی رابلئ او که | | | | |
| اَنْتُمْ صَامِتُونَ ۝ | | | | |
| تاسو \| چپ اوسئ \| | | | | |
| تاسو چپ پاتي شئ \| | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

ته ووایه چه: ترڅو الله نه وي غوښتي نوځه دخپل ځان دپاره د نفع اودنقصان اختیارنه لرم اوکه چري ماته د غیبو علم وي نو ما به دځان دپاره ښه ښه څیزونه جمع کړي وو، او ماته به څه تکلیف نه رسیدلي څه خو یو ویرونکي یم او خوشخبري ورکونکي یم، هغه خلقو ته چه څما خبره مني. الله هغه ذات دي چه هغه تاسو د یو تن نه پیدا کړي یئ او د هغه نه ئې د هغه بي بي پیدا کړه، دي دپاره چه هغه دهغي سره آرام حاصل کړي، بیا چه کله سړي ښځي لره پټه کړه [په ښځه ورخور شو] نو ښځي سپک غوندي حمل واخستو چه هغې سره به دا ګرځیده بیا چه کله دا حمل دروند شو نو دواړو (ښځې اوخاوند) دخپل پروردګار نه دعا وکړه چه: که ته مونږته تندرست اولاد را کړو نو مونږ به ضرور ستا شکر به ادا کوو لیکن چه کله الله دوی ته تندرست اولاد ورکړو نو دوی دالله ورکړي شوي نعمت کښي نورخلق دالله سره شریک جوړول شروع کړل حال دا چه الله د دوی د مشرکانه خبرونه اوچت دي. آیا دوی داسي څیزونو لره (دالله سره خدایي کښي) شریک کوي چه هیڅ څیز نه شي پیدا کولي بلکه هغوی خپله پیدا کړي شوي دي؟ اونه ددي خلقو څه مدد کولي شي او نه د خپلو ځانونو مدد کولي شي اوکه ته دوی صحیح لاري ته رابلي نو ستا خبره نه مني (بلکه) که تاسو هغوی ته رامدد شه وایئ او که خاموش پاتي کیږئ دواړه خبري هغوی دپاره برابري دي.

## خلاصه تفسیر

﴿ قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ﴾ تاسو اووائي چه زه پخپله د خپل ځان دپاره [هم چرته لا دنورو دپاره] دڅه فائدي [تکویني حاصلولو] اختیار نه لرم او نه د څه ضرر [تکویني د لري کولو] اختیار لرم] ﴿ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ﴾ خو صرف دومره چه څومره الله ﷻ غواړي [چه ماته اختیار راکړي او چه په څه کار کښي اختیار رانکړي په هغې کښي بعضي وخت فائدي فوت کیږي او ضررونه واقع کیږي یو مقدمه خوداشوه] او [دویمه مقدمه داده چه] ﴿ وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ ﴾ که ما د غیبو خبري [دامور اختیاریه متعلق] علم لرلي ﴿ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ ۚ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ ﴾ نو ما به [دخپل ځان دپاره] ډیري فائدي حاصلي کړي وې او په ما به هیڅ ضرر نه راتلو [ځکه چه دعلم غیب په سبب معلومیږي چه فلاني کارزما دپاره یقیني طورسره فائده منددي اودا به مي اختیارولي او فلاني کار زما دپاره مضر دي نوددي نه به مي ډډه کوله اواوس چونکه علم غیب نشته دي ددي وجي بعضي وختونو کښي دنافع علم نه لرم چه اختیار ئې کړم او داشان د مضر علم نه لرم چه ددي نه ځان بچ کړم بلکه کله کله خو التبه نافع مضر اومضر نافع ګڼرم. حاصل د

استدلال داشو چه دعلم غیب دپاره دنفعې اوضررمالك كيدل لازم وو.دا مقدمه په ذكر كښې روستوده اولازم متنفي دې.دا مقدمه په ذكركښې مقدمه ده نو ملزوم يعني علم غيب ئې منتفي دې اودا مطلوب ده.غرض زه دداسې كارونوعلم نه لرم] ﴿اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ﴾ زه محض [داحكام شرعيه بيانولو سره او دثواب] زيرې وركوونكې او [دعذاب نه] ويروونكې يم دهغه خلقو دپاره چه ايمان لري [خلاصه داشوه چه دنبي ﷺ اصل مقصد د امور تكوينيه احاطه كوي نه دي، ددې وجې هغه علمونو چه په هغې كښې دقيامت دخبر علم هم داخل دې نبي ته ملاويدل ضروري نه دي.البته دنبوت اصل مقصد دشريعت داموړو علم وافي او هغه ماته حاصل دې. ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾هغه الله ﷻ [داسې قادر]او منعم دې چه هغه تاسوديو واحد ځان [يعني آدم ﷺ] نه ئې پيدا كړئي ﴿ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ﴾اودده نه يې دده جوړه جوړه كړه [مراد ترې بى بى حوا ده چه د هغې تفصيل په سورت نساء كښې تير شوې دې] چه هغه ددې خپلې جوړې نه انس حاصل كړي [نو هركله چه هغه خالق هم دې او محسن هم نو عبادت دهغه حق دې] ﴿فَلَمَّا تَغَشّٰهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ﴾بيا [مخكښې دده اولاد زيات شو او په دوي كښې ښځه خاوند جوړ شو ليكن په دوي كښې دبعضو حالت داشو چه] كله خاوند ښځې سره قربت اوكړو نو دهغې حمل شو [چه اول اول] سپك غوندې وو نو هغه دې په [خېته كښې] ګرځولو [بې تكليفه] ګرځيدله ﴿ فَلَمَّا اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا ﴾ بيا چه كله هغه [حامله ددې حمل په وخت تيريدوسره] وزنداره شوه [او دواړو ښځې خاوند ته يقين اوشو چه حمل دې] نو په دغه وخت كښې دوي ته رنګ په رنګ احتمالات او توهمات كيدل شروع شول لكه په بعضې حملونوكښې خطرې پيښيږي ددې وجې] دواړو خاونداو ښځې دالله ﷻ نه چه ددوي مالك دې دعا اوغوښتله چه ﴿لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ﴾كه تا ﷻ صحيح سالم اولاد راكړو نوموږ به ښه شكر كوؤ [لكه چه څنګه عام عادت دې چه دمصيبت په وخت كښې الله ﷻ سره لوئې لوئې وعدې كوي]. ﴿ فَلَمَّا اٰتٰهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ اٰتٰهُمَا ﴾ نو كله چه الله ﷻ دوي دواړو ته صحيح سالم اولادوركړونودالله ﷻ په وركړې شوي څيزونوكښې دې دواړو شريكان جوړ كړل [په مختلف قسمه چا په اعتقاد كښې چه دا اولاد فلانې مرده پاژوندي راكړې دې .چا په عمل سره چه دده دنوم نذر اونياز ئې اوكړو يا ماشوم ئې بوتلو او هغه په مخكښې ئې دده تندې كيخودو.يا په قول سره چه دهغه په بندګۍ باندې ئې نوم كيخودلولكه عبد الشمس يا بنده على وغيره.يعني دا حق وو دالله ﷻ چه منعم او خالق او قادر او محسن دې.خرچ ئې كړو دا دنورو معبودانو دپاره] ﴿ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ نوالله پاك دې ددې شركونه نه [تردې خودالله ﷻ صفات مذكور دې چه مقتضي دې.دده د معبوديت داستحقاق د مخكښې د آلهه باطله د نقصانونو ذكر دې چه مقتضي دې . ددوي د عدم استحقاق معبوديت فرمائې] ﴿ اَيُشْرِكُوْنَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ﴾ آيا [الله ﷻ سره] داسې شريكان جوړوي چه هيڅ يو څيز نشي جوړولې او [بلكه] هغوي لره پخپله بل جوړوي [چنانچه ظاهر دې چه بت پرست دا پخپله تراشي]. ﴿وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ لَهُمْ نَصْرًا وَّلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ﴾ او [ديو څيز جوړول خو لويه خبره ده] دوي [خو داسې عاجزه دې چه ددې نه آسان كار هم نشي كولې لكه] دوي ته دهيڅ قسمه مدد [هم] نشي وركولې او [ددې نه بله لويه خبره دا ده چه] پخپله خپل مددهم نشي كولې [كه څه حادثه

دوي ته راپيښه شي لکه که يو سړي دوي ماتوي راماتوي] ﴿وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى لَا يَتَّبِعُوْكُمْ﴾
او [ددې نه لابله واورئ چه] که تاسو دوي ته څه خبره ونيلو دپاره آواز اوکړئ نودوي ستاسوپه وينا باندې نه شي ګرزيدلې [ددې دوه مطلبه کيديشي] يو دا چه تاسو دوي ته آواز اوکړئ چه دوي تاسو ته څه خبره اوکړي نوستاسو وينا به نه آوري يعني نه به وائي اودويم ددې نه زياته دا چه که تاسو دوي ته آواز اوکړئ چه راشئ مونږ تاسوته څه وايو نو ستاسوپه وينا باندې نه شي ګرزيدلې يعني ستا په وينا عمل نشي کولې بهر حال] ﴿سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ اَدَعَوْتُمُوْهُمْ اَمْ اَنْتُمْ صَامِتُوْنَ﴾
ستاسو په اعتبارسره دواړه برابر دي که تاسو دوي ته آواز اوکړئ [نودوي ئې نه آوري] اويا تاسوخاموشه شئ [نوبياخو نه آوريدل ظاهر دي.خلاصه دا شوه چه کوم يو کار دټولو نه آسان دې چه څوك درته د څه ونيلو دپاره آواز اوکړي نو هغه واورئي .هغوئ ددې نه عاجزه دي.نو چه کوم ددې نه مشکل دي چه خپل حفاظت اوکړي اوبيا ددې نه مشکل دي چه دنورو مدداوکړي او بيا د ټولونه زيات مشکل دې چه څه څيز پيدا کړي نوددې نه خو ډير زيات عاجزه دي . بيا داسې عاجزه او محتاج څنګه د معبوديت لائق کيدلې شي].

## معارف او مسائل

ړومبی آيت مبارك کښې د مشرکانو او عوامو دا غلطه عقيده رد کړې شويده چې دې خلقو د پيغمبرانو ﷺ باره کښې لرله ، هغه دا چې پيغمبران ﷺ په غيبو پوهيږی ، د الله ﷻ پشان د کائناتو ذره ذره باندې د نبی کريم ﷺ علم راچاپيره دې ، او دا عقيده ئې هم لرله چې هغوئ دهر نفع نقصان مالکان دی پخپله خوښه چاته نفع رسولې شی ، نوددې عقيدې په بنياد دغې خلقو د هغوئ نه د قيامت د ټاکلې نيټې خودلو غوښتنه کوله چې بيان ئې ددې نه په مخکښې آيت مبارك کښې تير شو ېدې .
دې آيت مبارك ددغې خلقو مشرکانو عقيده رد کړه او وې خودل چې علم غيب او دټولو کائناتو په ذره ذره باندې راچاپيره علم ، يوازې د الله ﷻ يو مخصوص صفت دې . دې کښې ورسره بل څه مخلوق شريك ګرځول خواه هغه فرښته وی يا يو نبی او رسول وی شرك او ډير غټ ظلم دې همداشان د هر نفع نقصان مالك کيدل هم يوازې د الله ﷻ خاص صفت دې چې په کښې ورسره څوك شريك ګڼړل هم کفر دې دکوم د ختمولو دپاره چې قرآن عظيم الشان نازل شو او نبی کريم ﷺ پيغمبر راؤليږلې شو. د قرآن عظيم الشان بې شميره آيتونو بيا بيا دا خبره ښکاره کړيده چې علم غيب او علم محيط چې هيڅ يوه ذره ذره ترې پټه يا بهر نشی کيدې ، دا يوازې د الله ﷻ خاص صفت دې ، دغه شان قدرت مطلقه هم چې هر نفع نقصان ئې په قبضه کښې وی ، دا هم د الله ﷻ يو خاص صفت دې ، په دې ټولو صفتونو کښې د الله ﷻ نه سوا ،بل مخلوق لره شريك ګرځول شرك دې .
پدې آيت مبارك کښې نبی کريم ﷺ ته حکم ورکړې شوې دې چې تاسو ﷺ ددې اعلان اوکړئ چې زه د خپل ځان دپاره هم د نفع نقصان مالك نه يم. د نورو د نفع نقصان بهٔ څنګه مالك شم ، دغه شان ورته ئې اوفرمائيل چې ددې اعلان اوکړئ چې زهٔ عالم الغيب نه يم ، چې دهر څيز علم لرل ما لره ضروری وی ، که زهٔ عالم الغيب وې نو د نفع هر يو څيز بهٔ زما په لاس کښې وو ، هيڅ نفع به مې دلاسه نه وته ، او دهر نقصانی څيز نه به محفوظ وم ، هيڅ نقصان به راته نه رسيدو ، حالانکه دا دواړه خبرې نشته ، ولې چې ډير داسې څيزونه رسول

کريم ﷺ ته په لاس ورنغلل کوم ئې چې په لاس کښې راوستل غوښتل او ډير داسې تکليفونه او ضررونه ورته اورسيدل کوم نه چې ئې ځان ساتل غوښتل. لکه د غزوهٔ حديبيه په موقعه سره د صحابه کرامو ﷺ عمرې اداکولو نه ايسار کړې شو سره ددې چې ټولو د عمرې احرام تړلې وو ، او د عمرې ادا کولو نه بغير احرامونه ئې کوز کړل او همدغه شان مدينې منورې ته واپس شو ، دغه شان غزوهٔ احد کښې نبی کريم ﷺ زخمی شو، او مسلمانانو عارضی ماتې اوخوړله ، دغه شان نور مشهور واقعات هم د نبی کريم ﷺ په ژوند مبارك کښې راپيښ شوی دی. او ددې واقعاتو ښکاره کولو مقصد شايد دا وی چې په خلقو باندې عملی طور دا خبره واضحه شی چې انبياء ﷺ اګر چې د الله ﷻ په نزد د ټولو نه زيات مقبول او زيات غوره دی خو بيا هم د علم الهی او قدرت مالکان نه په دې کښې د حکمت دادې چې په دې غلط فهمئ کښې څوك اخته نشی کومې کښې چې عيسايان او نصرانيان داسې اخته شوی دی چې خپل رسول ئې د الهی صفتونو مالك اوګڼړلو او په شرك کښې اخته شو.

دې آيت مبارك کښې دا هم واضحه کړه چې انبياء ﷺ خو نه قادرِ مطلق وی او نه عالم الغيب، بلکه انبياء ﷺ دعلم او د قدرت دومره حصه لری کوم چې ورته د الله ﷻ د طرفنه ورکړې شوی وی ، البته په دې کښې هيڅ شك نشته چې انبياء ﷺ ته د الله ﷻ د طرفنه ورکړې علم او قدرت د ټولو مخلوقاتو نه زيات وی ، خصوصاً زمونږ نبی کريم ﷺ ته خو د اولين اوآخرين علم ورکړې شوې وو، يعنی نبی ﷺ ته يوائې هغه ټول علم ورکړې شوی وؤ کوم چې ځان ځان له ټولو پيغمبرانو ته ورکړې شوې وو. بلکه ددې نه هم زيات علم دوئ ﷺ ته ورکړې شوې وو. نو ددغه ورکړی علم په جوړ دوئ عليه السلام ته د زرګونو په شمير کښې د غيبو خبرونه ورکړی شوی وو. چې دهغې رښتينی هرچا پخپله اوليدله. په دې وجه دا خو وئيلې شو چې نبی کريم ﷺ ته د زرګونو ، لکونو ، د غيبو څيزونو علم ورکړې شوې وو، خو دې ته د قرآن عظيم الشان په اصطلاح کښې علم غيب نشی وئيلې او نه په دې بنياد هغوئ ﷺ ته عالم الغيب وئيلې شی.

د آيت مبارك په آخر کښې فرمائی چې : ﴿إِنْ أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ [زه خو بس ويرونکې اوزيرې ورکونکې يم] هغه چاته چې ايمان راوړی او بد کارو لره سره دعذاب نه ويروم].

بل آيت مبارك کښې د توحيد د عقيدې ذکر دې کومه چې د اسلام د ټولو نه زياته لويه بنيادی عقيده ده ، او دې سره په څه قدرې تفصيل باندې دا بيان هم راغلې دې چې شرك باطل او د عقل نه خلاف دې.

د آيت مبارك په شروع کښې الله ﷻ د خپل کامل قدرت يو نندارہ د آدم ﷺ او حوا عليها السلام په پيدا کولو سره داسې بيان کړه چې:

﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا﴾ [الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ئې ديونفس [آدم] نه پيدا کړی يئ او هم دهغه نه ئې دهغه جوړه [بی بی حواء] پيدا کړې ده] چې هغې سره سکون بيامومی].

د الله ﷻ ددې عجيبه کاريګرئ تقاضا دا وه چې ټول اولاد د آدم ﷺ هميشه دهغه شکر ګذار وې او هيڅوك مخلوق ئې ورسره ددهٔ په صفتونو کښې شريکان نه ګرځولی خو غافل خصلته

انسانانو ددې په خلاف ډول داسې اوکړل چې بيان ئې ددې آيت مبارك په دويمه جمله كښې او په وروستې بل آيت مبارك كښې داسې راغلي دي چې:

﴿فَلَمَّا تَغَشَّاهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا فَمَرَّتْ بِهِ ۖ فَلَمَّا أَثْقَلَتْ دَعَوَا اللَّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ آتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ ۝ فَلَمَّا آتَاهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ فِيمَا آتَاهُمَا ۚ فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۝﴾

[يعني اولاد آدم د خپل غفلت او ناشكرئ په وجه په دې معامله كښې دا عمل اوكړو چې كله د سړي او ښځې د مادې څخه حمل اوشي نو په اول اول كښې چې د حمل بوج نه وو ښځه به په آسانتيا سره ګرځيده راګرځيده . بيا چې كله الله ﷻ په خپل قدرت سره دا حمل په دريو تيرو كښې د تربيت دپاره غټ كړو اوددې بوج محسوس شو نو مور پلار سره فكر پيدا شو او دا خطرې يې محسوسولې چې ددې حمل څخه به څنګه اولاد پيدا كيږي څكه چې كله كله د انسان د خيټې څخه عجيبه عجيبه مخلوق پيدا كيږي او كله خو ناقص الخلقت ماشوم پيدا كيږي ړوند يا ګونګې په لاس پښو باندې معذوره ، ددې خطرو په سبب مور پلار دعاګانې غواړي چې يا الله ﷻ امونږ ته صحيح سلامت ماشوم راكړې ، كه تامونږ ته نيك اولاد راكړو نومونږ به ستا ډيرشكرګزار يو

ليكن كله چې الله ﷻ د دوئ دعاګانې قبولې كړې صحيح سلامت بچې ئې وركړو نو بيا د شكركولو په ځائې په شرك كښې اخته شوچې سبب ئې همدغه اولاد جوړشو .ددې ګڼ صورتونه وي . كله خو ئې عقيده خرابه وي او دا ګڼړي چې دا اولاد راته ، چاولي ، يا بزرګ راكړې دې، كله داسې كيږي چې عملي طور يو ماشوم چا ژوندي يا مړ شوي بزرګ ته منسوب كړي او دهغه د نوم منښتې وركول شروع كړي . يا ماشوم دغې بزرګ ته په وروستلو سره دهغه په مخكښې د ماشوم تندې اولګوي . او كله دماشوم نوم په مشركانه ډول كيږدي . لكه عبداللات ، عبدالعزى ، عبدالشمس يا بندهٔ علي وغيره . دا ددې ننداره وركول دي چې ماشوم د الله ﷻ په ځائې ددغې بزرګانو پيدا كړې يا د دوئ بنده وې ، دا ټول عملونه اوعقيده شركي دي چې د الله ﷻ د نعمت په مقابله كښې د شكر په ځائې ، د ناشكرئ مختلف صورتونه دي .

د دريم آيت مبارك په آخر كښې دداسې خلقو بې لارى اوكوږوالې ئې په دې شان ښكاره كړو چې:﴿فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۝﴾[او الله ﷻ ډير اوچت دې [دهغه څه نه چې دوئ ئې الله سره شريكان كوي].

ددې آيتونو د تفسير نه داخبره ښكاره شوه چې ددې آيت مبارك په ړومبئ جمله كښې د آدم ﷺ او حوا ﷺ په ذكر كولو سره بنيادمو ته د دوئ تابعدارئ اود شكر ګذارئ تعليم وركړې شوې دې او په آخرى جملو كښې د وروستې راتلونكو بنيادمو ګمراهئ او بې لارى بيان كړې شوې ده . چې دوئ د شكر ګذارئ په ځائې شرك اختيار كړلو.

دې نه معلومه شوه چې د شرك اختياروؤنكو لين د آدم ﷺ او حوا ﷺ د لين نه بالكل بيل دې ، ددې په وجه د آدم ﷺ په عصمت باندې هيڅ شك ، شبه نشي كيدې . بلكه ددې تعلق د روستو راتلونكو نسلونو دعمل سره دې .او زمونږ دا اختيار كړې ، تفسير ، د عبدالله بن عباس ﷺ نه په روايت د ابن المنذر او ابن ابي حاتم په تفسير در منثور كښې منقول دې[1] .

[1]) الدر المنثور تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۲۸۹، وتفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث: ۹۳۲

د ترمذي رحمه الله او حاكم رحمه الله په روايتونو كښې چې يو قصه د آدم عليه السلام او حوا عليها السلام او د شيطان د فريب وركولو بيان شوې ده(۱). ځينو عالمانو ، هغې ته اسرائيلي روايتونه وئيلي دي او د هغې بې اعتباري ئې ښكاره كړې ده. خو ډيرو محدثينو ددې توثيق هم كړې دې. زمونږ د كړې تفسير په بنا كه ددې قيصې روايت صحيح هم اومنلې شي نو بيا هم د آيت مبارك په تفسير كښې اشكال او شبه نه پاتې كيږي.

ددې آيت مبارك نه څو احكام او فائدې حاصلې شوې. ① اول دا چې الله ﷻ سړې او ښځه د خپل جنس جوړه ځكه اوګرځول چې طبيعتونه ئې سره اولګي. او يوبل سره ئې پورته مينه او محبت وي. او په دې شان ددنيا د آبادئې ټولې هغه فائدې په ښه شان تر سره شي كومې چې دې سره تړون لري. ② دويمه دا چې د ښځې خاوند ژوند سره تړلي كوم حقوق اوفرائض چې په دې دواړو راوستې شي د هغې ټولو خلاصه او اصل مقصد سكون او آرام دې. ددنيا په نوې معاشره كښې او نوي رسمونو كښې چې كوم ځيزونه سكون بربادوي هغه د ښځې خاوند د تعلق بنيادي دښمنان دي. او دننني تهذيب په دنيا كښې چې كورنې ژوند عموما تنګ ، لنډ او تريخ ښكاري او هر طرفته د طلاق وركولو زور دې ، ددې د ټولو نه لوئې سبب هم دادې چې په معاشرت كښې داسې ځيزونه ښه ګڼړلې شي كوم چې د كورنی ژوند سكون سراسر بربادوي ، د ښځو د آزادئې په نوم چې دبې سترئ اوبې حيايئ طوفان په ټولې دنيا كښې په مخه راخوريږي ، د ښځې ، خاوند تر مينځه سكون بربادولو كښې لوئې دخل لري ، او تجربه ګواه ده چې په كوم رفتار سره دا بې پردګی اوبې حيايئ په ښځو كښې په مخه زياتيږي هم په دغې رفتار سره كورنې سكون او اطمينان هم لګيا دې ختميږي.

③ دريمه دا چې- د ماشومانو داسې نومونه ايخودل چې ترې د شرك مطلب اخستې شي اګر چې دنوم ايخودو نيت دغه نه وي خو بيا هم هر كله چې د شرك رسم دې نو ددې په وجه لويه ګناه ده لكه عبدالشمس ، عبدالعزی وغيره نومونه ايخودل.

④ څلورم دا چې دماشومانو په نومونو ايخودو كښې هم د شكر ادا كولو طريقه داده چې ددوئ نومونه دې الله ﷻ او رسول ﷺ سره په مناسب ډول تړون لرونكی كيخودې شی. نو نبی كريم ﷺ عبدالله او عبدالرحمان نومونه زيات خوښ كړی دي(۲).

افسوس دې چې نن مسلمانانو نه اسلامی څه پاتې رسمونه هم لګيا دې ختميږي. اول خو مسلمانان ، غير اسلامی نومونه كيږدی ، هم هغه په لنډو انګريزو حرفونو كښې بدلولو سره ختم كړې شي. د سيرت اوصورت په لحاظ خو رومبې نه هم د مسلمانانو پيژندل ګران شوی وو ، د نوی ډول نومونو داسلام آخری نشانی هم رخصت كړه، الله ﷻ دې مونږ ته ددين پوهه اوداسلام مينه نصيب كړی آمين.

---

(۱) جامع الترمذی، أبواب التفسير، باب ومن سورة الاعراف: ج ۲، ص ۱۳۸

(۲) جامع الترمذی، أبواب الاستئذان، باب ما جاء فی ما يستحب من الأسماء: ج ۲، ص ۱۱۰

إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ عِبَادٌ

| بیشکه هغه کسان اچې تاسوئې رابلئ |ماسوا د الله نه | بندګان دی

| ...........بیشکه کوم کسان چه تاسو د الله نه سوا د مدد دپاره رابلئ | هغوئ

أَمْثَالُكُمْ فَادْعُوهُمْ فَلْيَسْتَجِيبُوا لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ

په شان ستاسو | نورااوبلئ هغوئ |نوقبول والي دي اوکړي هغوئ| ستاسو | که یئ تاسو

ستاسو په شان بندګان دی |نو تاسو ورته آواز اوکړی چې هغوئ ئې قبول کړی | که چرې تاسو

صٰدِقِينَ ﴿۱۹۴﴾ أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَا أَمْ لَهُمْ أَيْدٍ

رښتینی |آیا شته د دوئ| خپې | چې ګرزی دوئ | په هغې |یاشته د دوئ | لاسونه

رښتونی یئ[چې دا زمونږ خدایان دی]| آیا دهغوی پښې شته چې تګ پرې اوکړی| یائې لاسونه شته چې

يَبْطِشُونَ بِهَا أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ يُبْصِرُونَ بِهَا أَمْ

چې نیول کوی| په هغې سره|یاشته د دوئ| سترګې |چې لیدل کوی |په هغې سره| یا شته

نیول پرې اوکړی | ...............یائې سترګې شته چې کتل پرې اوکړی | او یا ئې غوږونه شته

لَهُمْ آذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ۗ قُلِ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ

د دوئ| غوږونه | چې اوریدل کوی | په هغې سره|اووایه | چې رااوبلئ | شریکان خپل | بیا

چې آوریدل پرې اوکړی| ............[ائې پیغمبره]ته ورته اووایه چې تاسو خپل شریکان رااوبلئ | بیا

كِيدُونِ فَلَا تُنْظِرُونِ ﴿۱۹۵﴾ إِنَّ وَلِيِّيَ اللَّهُ الَّذِي

تدبیراوکړئ خلاف زما| پس مه راکوئ مهلت ماته| بیشکه | ولی زما| الله دی| هغه الله

زما دنقصان تدبیرونه جوړ کړئ| او ماته هیڅ مهلت مه راکوئ| زما مددګار خو هغه الله ﷻ دې

نَزَّلَ الْكِتَابَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى الصَّالِحِينَ ﴿۱۹۶﴾ وَالَّذِينَ

چې نازل کړې نی دي| کتاب | اوهغه | دوستی کوی | دصالحانو | اوهغه

چې دا کتاب [قران] ئې نازل کړې دي| اوهغه همیشه د نیکانو خلقو ملګرتیا کوی | او هغه څوک

تَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَا أَنْفُسَهُمْ

چې تاسو ئې رابلئ |ماسوا دهغه نه| نهٔ لری طاقت هغوئ | دامداد ستاسو | اونهٔ دخانونو خپلو سره

چې د الله ﷻ نه سوا نور خلق رابلې| نو هغوئ نه ستاسو مدد کولې شي| اونه دخپل خان

يَنْصُرُونَ ﴿۱۹۷﴾ وَإِنْ تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَى لَا يَسْمَعُوا ۖ

امداد کولې شي | اوکه چرې |تاسو دعوت ورکړئ هغوئ له| نیغې لارې ته |نو نهٔ اوری هغوئ|

مدد کولې شي |.........اوکه ته ئې خبرې آوریدو ته رااوبلې | نو آواز نه آوری

وَتَرَاهُمْ يَنْظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿۱۹۸﴾

اووینې به تهٔ هغوئ | چې ګوری | تاته |اوحال دا چې هغوئ| هیڅ هم نهٔ وینی|

اوداسې ښکاری چې هغوئ په غتوغتو ګوری | خو هغوئ د دې باوجود هم هیڅ نه وینی

## آسان ترجمه قرآن

يقين وكړئ چه دالله نه سوا چه تاسوچا لره رابلئ، هغه ټول ستاسو غوندې (دالله) بندګان دي نو لږ دهغوی نه دعا وغواړئ پس که تاسو رينښتينې يئ نو هغوی لره پکار دي چه ستاسو دعا قبوله کړي. آيا دوی لره پښې دي چه هغې باندې تلل کوي؟ يادوي لره لاسونه دي چه هغې باندې نيول کوي؟ يا دوی لره سترګي دي چه هغې باندې ليدل کوی؟ يا دوی لره غوږونه دي چه هغې باندې آوريدل کوي؟ (دوی ته ووايه چه) چه خپل هغه ټول خدايان راوبلئ چه هغوی تاسو دالله سره شريکان جوړکړی دی، اوبيا ځما خلاف سازش وکړئ او ماته لږ مهلت هم مه راکوئ ځما ساتونکي خو هغه الله دې چه هغه کتاب نازل کړې دې، اوهغه د نيکو خلقو حفاظت کوی. او تاسو چه د هغه نه سوا چا چا لره رابلئ هغوی نه ستاسو مدد کولې شي او نه خپل مدد کولې شي. او که تاسو هغوی لره صحيح لارې ته رابلئ نو هغوی آوري هم نه او تاسو ته هغوی داسې ښکاري لکه چه تاسو ته ګوري، ليکن حقيقت کښې دوی څه نه وينې.

### خلاصه تفسير

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ عِبَادٌ أَمۡثَالُكُمۡ﴾[غرض] واقعي الله ﷻ چه پريږدي او چه دچا عبادت کوئي هغوي هم ستاسو پشان [دالله ﷻ مملوك] بندګان دي [يعني ستاسو نه زيات نه وی اګر چه کم وي] ﴿فَٱدۡعُوهُمۡ فَلۡيَسۡتَجِيبُواْ لَكُمۡ﴾ نو [مونږ خوبه تاسو رښتيا هله ګنړوچه] تاسو [خو] دوي ته آواز اوکړئي [او] بيا دوي ته پکار دي چه ستاسو وينا اومني ﴿إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ﴾ که تاسو [ددوي په اعتقاد اوالوهيت کښې] رښتيا ئي [او دغه بيچارګان به ستاسو په وينا څه اوکړي، چه دوي سره دوينا آوريدلو الات نشته دي اوګورئي] ﴿أَلَهُمۡ أَرۡجُلٌ يَمۡشُونَ بِهَآ﴾ چه ددوي پښې شته دې چه په هغې سره دوي تللې شي ﴿أَمۡ لَهُمۡ أَيۡدٍ يَبۡطِشُونَ بِهَآ﴾ يا دوي لاسونه شته دې چه په هغې سره دوي نيول اوکړي ﴿أَمۡ لَهُمۡ أَعۡيُنٌ يُبۡصِرُونَ بِهَآ﴾ ياد ددوي سترګې شته دې چه په هغې سره دوي کتل اوکړي ﴿أَمۡ لَهُمۡ ءَاذَانٌ يَسۡمَعُونَ بِهَا﴾ يا ددوي غوږونه شته چه په هغې سره آوريدل اوکړي [کله چه دوي کښې فاعلي قوت نشته دې نو ددوي نه به بل څه کار صادر شي] ﴿قُلِ ٱدۡعُواْ شُرَكَآءَكُمۡ ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنظِرُونِ﴾ او تاسو [داهم] اووائې چه [چه څنګه هغوي خپلو معتقدينو ته په فائده رسولو کښې عاجزه ده داشان خپلو مخالفينو ته هم ضرر نشي رسولې لکه څنګه چه تاسو وائې چه زمونږ دبتانو بې ادبي مه کوئي ګني هغوي به په تاسو باندې څه آفت نازل کړي﴿اخرجه فی اللباب عن عبد الرزاق فی قوله تعالی "یخوفونك بالذين من دونه"﴾([1]) اوکه تاسو پوهيږئ چه دوي مونږ ته ضرر رسولې شي نو] تاسو [خپل ارمان پوره کړئي او] خپل ټول شريکان راوبلئ بيا [ټول يوخائې شئ] اوماته دضرر رسولو تدبير اوکړئي بيا [چه کله تدبير اوشي نو] ماته لږ مهلت هم مه راکوئي [بلکه زرترزره دا اوکړئي. اوګورئي چه څه کيږي. او هيڅ به هم اونشي. ځکه چه خو مهمل محض پاتې شوي دي. تاسو چه څه لاس پښه خوزلئ شئ نوتاسو به دې سره زما هيڅ نشئ کولئ]. ﴿إِنَّ وَلِـِّۧيَ ٱللَّهُ ٱلَّذِي نَزَّلَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ يقيناً زما مددګار الله ﷻ دې چه [دده د مددګارئي اوملګرتيا ښکاره ثبوت دادې چه] ده [په ماباندې] داکتاب [مبارك

---

[1]) ترجمه: اودا خلق تاسو دهغے نه يرې کوم چه د خدا ے نه علاوه دی۔

جامع خير دارين] نازل كړو [اوكه زما ملګرې اومددګار نه وې نودومره لوئي نعمت به ئې ولې راكولو] ﴿ وَهُوَيَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْنَ ۝﴾ او [ددې خاص دليل د عامي قاعدې نه هم دده مددګار كيدل معلوم دي هغه قاعده داده چه] هغه [عام طور] دنيكو بندګانو مددكوي [نو نبيان خو په دې نيكوبندګانوكښې كامل بندګان دي اوزه نبي يم نو زما به هم ضرور مدد كوي.غرض دا چه دچا دضرر نه مې ويروئي هغوي عاجز او چه څوك ما دضرر نه بچ كوي هغه قادر، بيا انديښنه د څه خبرې ده . او اګر چه دهغوي عاجزه كيدل مخكښې به تفصيل سره بيان شول.ليكن چونكه هغه بيان د عجز مقصود بالغير وو او دمقصود بالذات نفي د استحقاق د معبوديت وه.ددې وجې مخكښې د عاجزئي بيان كوي چه] ﴿وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ﴾ تاسو دكومو خلقو عبادت كوئي اوالله ﷻ موپريښودلې دې هغه [ستاسو ددښمان په مقابله كښې لكه څنګه چه زه يم] ﴿ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَكُمْ وَلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ۝﴾ ستاسو هيڅ مدد نشي كولې اونه [دخپل دښمن په مقابله كښې لكه څنګه زه يم] خپل مدد كولې شي او [مددكول خو لويه خبره ده]﴿ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى لَا يَسْمَعُوْا ﴾دوي ته [خو] كه يو خبره دوينا دپاره اووائې نو هغه [هم] نشي اوريدلې [او ددې هم دا ذكر شوې دوه معني كيدلې شي] ﴿ وَتَرٰىهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ ﴾ او [چه څنګه دوي سره داوريدو دپاره څه آله نشته دې داشان د كتلو آله هم ورسره نشته دې او ددوي په تصويركښې چه كومې ستركې جوړې كړې شوې دي هغه تش په نوم دي دكار نه دي چنانچه] دې [بتانو] ته تاسو ګورئي چه ګني هغوي تاسوته ګوري [څكه چه شكل دستركو غوندې دې] ﴿ وَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ۝﴾ او دغه [په حقيقت كښې] هيڅ نشي كتلې [څكه چه په حقيقت كښې دغه ستركې نه دي.هم پدې باندې دنورو قوت فاعله ايدي او ارجل نفي كيدل ګنړل پكار دي.نو دداسې عاجزه څه ويرول ښكاره كوؤ].

## معارف او مسائل

﴿اِنَّ وَلِيّۦَ اللّٰهُ الَّذِيْ نَزَّلَ الْكِتٰبَ ۖ وَهُوَيَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْنَ ۝﴾[دلته د ولي معنى محافظ او مددګار ده، اود كتاب څخه مراد قرآن كريم او د صالحين څخه مراد په قول د ابن عباس رضي الله عنهما هغه خلق دي چې هغوئ الله ﷻ څوك نه برابروي ، په دې د انبياء كرامو څخه واخله تر عامو نيكو مسلمانانو پورې ټول شامل دي].

دټول آيت مبارك معني دا شوه چې زه ستاسو د مخالفت كولو هيڅ پروا څكه نه لرم چې زما محافظ او مددګار الله ﷻ دې چا چې په ما قرآن عظيم الشان نازل كړې دې.

دلته د الله ﷻ د صفاتو څيني په خصوصيت سره د قرآن كريم د نازليدو ذكر ئې څكه اوكړو چې تاسو زما دښمنئ او مخالفت ته چې ملا تړلې ده ، ددې وجه داده چې زه قرآن عظيم الشان طرفته بلنه اوددې تعليم دركوم ، نو هم هغه ذات زما مددګار او محافظ دې چا چې په ما دا قرآن عظيم الشان نازل كړې دې ، په دې وجه زما هيڅ فكر نشته دې.

دې پسې آخري جمله كښې ئې عامه ضابطه اوخودله چې د انبياء عليهم السلام خو ډير لوړشان دې ، دعامو صالحانو او نيكانو مسلمانانو هم الله ﷻ متولي او كفيل دې، هم هغه ئې مدد كوي څكه دچا دښمن ،مخالفت او دښمني ورته ضرر نشي رسولې . اكثر خو هم په دنيا كښې په دښمن باندې دوئ ته غلبه وركولې شي اوكه څه وخت د الله ﷻ دحكمت په جوړ دوئ ته غلبه

ورنکړې شی نو بیا هم د دوئ په اصل مقصد کښې څه نقصان نه رازی . هغه په ظاهر کښې اګر چې ناکام معلومیږی لیکن د مقصد په لحاظ سره کامیاب وی ، ولې چې د مؤمن صالح اصلی مقصد په هر کار کښې الله ﷻ راضی کول او دهغه تابعداری کول دی ، که هغه په دنیا کښې د څه وجې نه ناکام هم شی خو د الله ﷻ د رضا حاصلولو مقصد بیا هم ورته حاصل وی چې په حقیقت کښې کامیابی ده . [والله اعلم].

خُذِ الْعَفْوَ　وَأْمُرْ　بِالْعُرْفِ　وَأَعْرِضْ　عَنِ الْجٰهِلِيْنَ۝۱۹۹　وَإِمَّا

اونیسه معافی | اوحکم کوه | په نیکئ سره | اوپه ډډه شه | د جاهلانونه | اوکه چری

انې پیغمبره معافی کوه | او دنیکئ حکم کوه | او دجاهلانونه ډډه کوه | اوکه چرې

يَنْزَغَنَّكَ　مِنَ الشَّيْطٰنِ　نَزْغٌ　فَاسْتَعِذْ　بِاللّٰهِ ط　إِنَّهٗ

اورسیږی تاته | دطرفه دشیطان نه | یوه وسوسه | نوپناه اوغواړه | په الله سره | بیشکه هغه

تاته دشیطان دطرفه څه وسوسه اورسی | نو په الله ﷻ سره پناه اوغواړه | بیشکه هغه ذات

سَمِيْعٌ　عَلِيْمٌ۝۲۰۰　إِنَّ الَّذِيْنَ　اتَّقَوْا　إِذَا　مَسَّهُمْ

ښهٔ اوریدونکې دې | اوښه پوهه دې | بیشکه هغه کسان | چې یریږی دالله نه | کله چې اورسیږی هغوئ ته

اوریدونکې او عالم دې | ........بیشک کوم کسان چې پرهیزګار دی | که هغوئ ته د

طٰٓئِفٌ　مِّنَ الشَّيْطٰنِ　تَذَكَّرُوْا　فَإِذَا هُمْ　مُّبْصِرُوْنَ۝۲۰۱ج

یوه وسوسه | دشیطان نه | نو یاد شی ورته حکم دالله | نوبیا هغوئ | لیدونکی وی

دشیطان دطرفه څه وسوسه اورسی | نو زر الله ﷻ یادکړی | اوسمدستی ئې سترګې اوغړیږی

وَإِخْوَانُهُمْ　يَمُدُّوْنَهُمْ　فِي الْغَيِّ　ثُمَّ　لَا يُقْصِرُوْنَ۝۲۰۲

اورونړه ددوئ | راکاږی دوئ | په ګمراهئ کښې بیا | نهٔ کوی هیڅ کمې |

[پاتې شو] دشیطان رونړه نو هغوئ خودوی غلطې لارې ته راکاږی || وهیڅ کمې په کښې نه کوی |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) د معافئ طریقه اختیار کړه ، او (خلقو ته) د نیکئ حکم وکړه ،او جاهلانو ته توجه مه کوه. او که تا ته کله د شیطان د طرف نه څه چونګاره (وَسوَسه) اورسي نو دالله نه پناه وغواړه یقیناً هغه هرې خبري لره آوریدونکې او په هر څیز پوهیدونکې دې کوم خلقو چه تقوئ اختیار کړې ده هغوی ته د شیطان د طرف نه چه کله څه خیال ورسي نو هغوی (الله) یادوي نو دهغوی سترګي ناڅاپه کهلاؤ شي.او کوم چه د شیطانانو ورونړه دي؛هغوی لره دا شیطانان په ګمراهئ کښې راکاږي، نتیجه داچه هغوی (دګمراهئ نه) نه واپس کیږي.

## خلاصه تفسیر

[خلقوسره داسې میل جول ساته چه د دوي د اعمالواو اخلا قونه] ﴿ خُذِ الْعَفْوَوَأْمُرْبِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ۝ ﴾ سرسري [نظر کښې چه کوم] سلوك [معقول او مناسب معلوم شي هغه] قبلوه [دهغې بیخ او حقیقت ته مه ګوره بلکه په ظاهري نظرکښې چه کوم کار د چا نه ښه اوشي هغه

په ښو کارونوکښې شميره.دباطن حال الله ﷻ ته حواله کړه.څکه چه پوره اخلاص او دقبوليت دشرائطو جامعيت داخص الخواص حصه ده.حاصل داشو چه په معاشره کښې آسانتيا کيږده.نه که تشدد.دا سلوك په ښوکارونوکښې دي] او [چه کوم يو کار په ظاهري نظرکښې خراب وي په هغې کښې دا سلوك کيږده چه په هغه باب کښې] دنيك کار تعليم ورکړه [او زيات دوړ پسې مه انخله] ﴿ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ ﴾ اوكه [اتفاقي طور دجهالت په وجه] تاسو ته دشيطان دوسوسونه [غصه] راشي [چه په هغې کښې احتمال وي چه څه خبره به د مصلحت خلاف واقع شي] ﴿ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ﴾ نو[په داسې حالت کښې زر] د الله ﷻ پناه غواړه ﴿إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ بيشکه هغه ښه آوريدونکې او پوهيدونکې دي [ستاسو استعاذه آوري او ستاسو مقصد پيژني ، هغه به تاته ددې نه پناه درکړي او څنګه چه استعاذه او دالله ﷻ توجو ستاسو دپاره فائده منده ده همداشان د ټولو الله ﷻ والو خلقو دپاره فائده منده ده].﴿ إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا ﴾ يقيناً [دا خبره ده چه] کوم خلق خدا ترس دي چه کله دوي ته څه خطره دشيطان دطرفه [دغصې يادخه کار] اوشي نوهغه [زرد الله ﷻ] په ياد کښې اخته شي[لکه استعاذه اودعا اودالله ﷻ عظمت او عذاب اوثواب يادول]﴿ فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴾ پس يو دم ددوي سترګې پرانيستې شي [او په دوي باندې د امر حقيقت منکشف شي.چه په دې سره هغه خطره هيڅ اثر نه کوي] ﴿ وَإِخْوَٰنُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الْغَيِّ ﴾ او [ددې په خلاف] چه کوم دشيطانانو تابع وي هغه [شيطانان] دوي ګمراهئ ته راکاږي ﴿ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ ﴾ پس[هغه تابعين دګمراهئ نه] نه منع کيږي [نه هغوي استعاذه کوي او نه محفوظ دي.نو دغه مشرکان خو دشيطان تابع دي دوي به کله منع شي. ددې وجې ددوي دپاره په غم او غصه کښې پريوتل عبث دي].

## معارف او مسائل

**دقرآني اخلاقو يو ټول اړخيزه هدايت نامه** :: دا آيتونه د قرآني زياتو غورو اخلاقو يو ټول اړخيزه هدايت نامه ده چې ددې په ذريعه د نبی کريم ﷺ تربيت اوکړې شو او په ټولو اولينو او آخرينو کښې ورته د لويو اخلاقو د خاوند خطاب ورکړې شو.

تيرو شوؤ آيتونو کښې د اسلام د د ښمنانو کاره تګ، ضد او بداخلاقی ذکر کړې شوه. اوس په دې آيتونو کښې نبی کريم ﷺ ته د هغې خلاف زياتو غورو اخلاقو هدايت په دې جملو کښې ورکړې شوې دې ، رومبی جمله ﴿خُذِ الْعَفْوَ﴾ ده ، عربی کښې د عفو ګڼې معنې کيدې شی چې په دې موقعه ئې د هرې معنی ګنجائش شته ، همدغه وجه ده چې د تفسير مختلفو علماء کرامو ددې مختلفې معنې اخستې دی ، جمهورو مفسرينو د امعنی غوره کړې ده چې عفو هر هغه کار ته وئيلې شی چې په آسانئ سره بې د څه تکليف او مشقت نه سرته رسولې شی.

په دې بنا د ټولې جملې معنی به دا شی چې تاسو ﷺ هغه څيز قبلوئ چې خلق ئې په آسانئ سره کولې شی. مطلب دا چې کوم کارونه د شريعت تر مخه واجب دی ، په لوړه پيمانه دهغې کول خلقو ته مه غواړئ بلکه په کوم شان سره چې په آسانئ سره کولې شی نو هم په هغه درجه ئې ترې قبلوئې . لکه د مونځ اصل حقيقت خو دادې چې بنده د ټولې دنيا نه يومخيز دخپل رب په مخکښې لاس په نامه پدې غرض ولاړ وې چې حمدوثناء سره خپل معروضات

،بې واسطې د الله ﷻ په دربار کښې پخپله پيش کوی ، ګويا کښې هغه دا وخت الله ﷻ سره نيغ په نيغه مخاطب دې ،ددې مناسب کوم خشوع و خضوع ، ادب او احترام چې پکار دې هغه په لکونو مونځ ګذارو کښې د الله ﷻ يو نيم بنده ته نصيب کيږی ، عام خلق دا درجه نشي موندې.

دې آيت مبارك كښې نبی كريم ﷺ ته دا تعليم وركړې شوې دې چې تاسو ﷺ د خلقو نه ددې د اعلى پيمانې مطالبه مه كوئى ، بلكه ددې كومه درجه چې په آسانئ سره كولې شى هم هغه قبوله كړئى. دغه شان په نورو عبادتونو زكوٰة ، روژې ، حج عامو معاملو او معاشرت په شرعى واجباتو كښې چې كوم خلق ددې پوره كره نشى حق ادا كولې هغوئ نه هم سرسرى فرمانبردارى قبوله كړئى.

صحيح بخارى كښې د عبدالله بن زبير رضي الله عنه په روايت نبی كريم ﷺ ددې آيت مبارك هم دا معنى كړې ده[۱] او په يو روايت كښې راغلى دى چې نبی كريم ﷺ ددې آيت مبارك په نازليدو اوفرمائيل چې ماته الله ﷻ دا حكم كړې دې چې په عملونو او اخلاقو كښې دخلقو نه سرسرى فرمانبردارى قبوله كړم ، ما قصد كړې دې چې تر څو پورې زۀ دې خلقو سره يم هم دغسې به كوم .[ابن كثير][۲].

د تفسير د امامانو يوې لوئې ډلې يعنى عبدالله بن عمر رضي الله عنه ، عبدالله بن زبير رضي الله عنه ، عائشه صديقه رضي الله عنها او مجاهد رحمه الله وغيره ددې جملې معنى هم دا كړې ده .

د عفو بله معنى معافى كول او پښه راښكل هم كيدې شى د تفسير د علماء كرامو يو ډلې ددې جملې مطلب دا اخستې دې چې تاسو ﷺ د ګناهګارو ، خطاكارو ، ګناهونه او كوتاهيانې معاف كوئى.

د تفسير امام ابن جرير طبرى رحمه الله نقل كړی دی چې كله دا آيت مبارك نازل شو نو نبی كريم ﷺ د جبرائيل عليه السلام نه ددې مطلب اوپوښتلو ، جبرائيل عليه السلام هركله چې د الله ﷻ نه ددې مطلب معلوم كړو نو وې فرمائيل چې الله ﷻ په دې آيت مبارك كښې تاسو ته حكم كړيدې چې څوك دربانديې ظلم كوی هغه معاف كوئ ، څوك چې څه نه دركوی هغوئ ته بخښش كوئ او څوك چې درسره راشه درشه نه كوی نو تاسو ﷺ ئې ورسره كوئى[۳].

د لته د ابن مردويه په روايت د سعد بن عباده رضي الله عنه نه نقل كړی دی چې داحد په غزا كښې كله چې د نبی كريم ﷺ ترۀ حمزه رضي الله عنه شهيد كړې شو او په ډيرې بې رحمئ سره ترې اندامونه پريكړې شوه ، دهغوئ رضي الله عنه بې عزتى اوكړې شوه ، نبی كريم ﷺ ددې په ليدو سره اوفرمائيل چې چا حمزه رضي الله عنه سره داسې كړی دی زه به دهغوئ اويا كسانو سره داسې كوم ، په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو چې ستاسو ﷺ شان او مقام نه دې بلكه ستاسو شان دادې چې دمعافئ كولو او پښې راښكلو نه كار واخلئ[۴] ، څنګه چې ددې مضمون تائيد د هغه حديث نه هم كيږی چې امام احمد رحمه الله ،د عقبه بن عامر رضي الله عنه په روايت سره نقل كړې دې اوپه

۱) صحيح البخاري، كتاب التفسير، باب خذ العفو وأمر بالعرف الآية: ج ۲، ص ۶۶۹
۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۵۳۱
۳) تفسير الطبري رقم الحديث: ۱۵۵۷۴
۴) تفسير البغوي تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۵۳

هغې کښې دوئ ﷺ ته نبي کريم ﷺ ددې زياتو غورو اخلاقو تعليم ورکړې دې ، چې څوک دربانديې ظلم کوؤ هغه معاف کوي ، څوک چې درسره راشه درشه پريږدي نوته ورسره راشه درشه کوه او څوک دې چې بې نصيبه کړي ته ورته بخشش ورکوه([1]).

بل ځائې کښې په روايت د علي ﷺ نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي چې زه تاسو ته د اولينو او آخرينو داخلاقو ځينې ډيرو غوره اخلاقو تعليم درکړم، هغه داچې څوك دې بې نصيبه کړي ، ته پرې بخشش کوه څوك چې درسره راشه درشه پريږدي ته هغوئ سره هم راشه درشه کوه[بيهقي]([2])

دعفو د اولې او دويمې معنی ترمينځه اگر چې فرق شته دې ليکن حاصل د دواړو هم يو داسې دې چې په عملونو او اخلاقو کښې د خلقو نه سرسري فرمانبرداري قبلوئي. زيات لټون مه کوئي او نغم ورپسې مه لګوئ. دوئ نه په اعلی پيمانه د فرمانبردارئ توقع مه کوئي . د دوئ خطاګانو او کوتاهيانو پسې مخه مه اوړئي ، د ظلم بدله مه اخلئ ، نو درسول کريم ﷺ اخلاق او عملونو نه هميشه دپاره په دې قالب بانديې پوره پاتې شوی وو ، پوره ننداره ئې د فتح مکه په موقعه داسې اوشوه چې کله د هغوئ ﷺ د سر دښمنان ئې لاس مبارك لاندې راغلل نو هغه ټول يې آزاد ئې کړل او ورته ئې اوفرمائيل چې د ظلم بدله خو تاسو نه نه اخلم بلکه ستاسو هغه تيرې شوې معاملات هم مخې ته نه راولم.

ددې هدايت نامې دويمه جمله : ﴿وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ﴾ عرف په معنی د معروف ، هر غوره او مستحسن کار ته وئيلې شي ،. مطلب ئې دادې چې څوك درسره بد کوي او ظلم درسره کوي نو تاسو ﷺ د هغوئ نه بدل مه اخلئ بلکه هغوئ معاف کوئ خو ورسره د نيك کار هدايت هم کوئي ، گويا که د بدئي بدله په نيکئ سره او د ظلم بدله يوازې په انصاف سره نه بلکه په احسان سره ورکوئي .

دريمه جمله :﴿وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴾[او دجاهلانونه ډډه کوه]. مطلب ئې دادې چې دوئ نه دظلم دبدلې اخستلو په ځائې ورسره خير خواهي او همدردي کوئ او په نرمئ ورته حق خبره ښايئ. خو ډير جاهلان داسې هم وي چې ددې شريفانه معاملې اثر نه قبلوي بلکه سره ددې د جهالت نه کار اخلي ، نو تاسو ورسره ګذاره داسې کوئ چې دهغې جواب په سختئ سره مه ورکوئي بلکه د دوئ نه يو خواته شئ.

د تفسير امام ابن کثير رحمه الله فرمائيلي دي چې د يود خواته کيدلو هم دا مطلب دادې چې د دوئ د بدو جواب مه ورکوئي ، داسې نه چې ورته هدايت کول پريږدئي ځکه چې دا د پيغمبرئ شان سره سمون او جوړښت نه لري([3]).

دلته په صحيح بخاري کښې يو واقعه د عبدالله بن عباس ﷺ نه داسې نقل شوې ده چې د عمر فاروق ﷺ د خلافت په زمانه کښې عيينه ابن حصن مدينې ته راغلو او د خپل وراره حر بن قيس ميلمه شو. حر بن قيس ﷺ په هغه عالمانو کښې حسابيږي چې کوم به د فاروق اعظم ﷺ په مجلس شوری کښې شريکيدل عيينه خپل وراره حر بن قيس ﷺ ته اووئيل چې

---

[1]) مسند أحمد، رقم الحديث: ۱۶۹۹۶

[2]) السنن الكبرى للبيهقي: ج ۱۰، ص ۲۳۵

[3]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۵۲۳

ته د امیر المؤمنین په نزدیکانو کښې يئ. زما دپاره هغوئ ﷺ سره د ملاقات کولو وخت ترې واخلئ، د حر بن قیس ﷺ په خواست باندې عمر فاروق ﷺ هغه ته د راتلو اجازت ورکړو، دهغوئ مجلس ته په رسیدو عینیه ډیرې د بې ادبئ او غلطې خبرې اوکړې، وې وئیل چې تاسو ﷺ مونږ ته پوره حق نه راکوئی. مونږ سره انصاف نه کوئی، فاروق اعظم ﷺ ته چې په دې خبرو غصه ورغله نو حر بن قیس ﷺ عرض اوکړو امیر المؤمنین الله ﷻ فرمائی:

﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ۝﴾ [ائې پیغمبره معافی کوه | او دنیکئ حکم کوه | او دجاهلانو نه ډډه کوه]. اودا سړې هم جاهل دې .ددې آیت مبارك په آؤریدو سره د عمرفاروق ﷺ غصه سړه شوه او هغه ته يې هیڅ اونه وئیل.

د فاروق اعظم ﷺ دا عادت مشهور او معروف وو چې: ﴿کان وقافا عند کتاب الله عزوجل﴾. یعنی د کتاب الله په مخکښې به ئې سر ښکته لرلو[1].

دا آیت مبارك د غورو اخلاقو یو ټول اړخیز آیت مبارك دې. عالمانو ددې خلاصه دا بیان کړې ده چې خلق په دوه قسمه دی. یو هغه خلق دی چې ښه کارونه کوی. دویم هغه چې بد کارونه کوی. دې آیت مبارك دواړو طبقو سره د ښه اخلاقو کولو دا هدایت کړې دې چې د نیکو کار کوونکو نه د هغوئ ظاهری نیکی قبلوئی. زیات لټون وریسې مه کوئی کوم چې په آسانئ سره کولې شی، د بدکارانو خلقو په معاملو کښې ئې دا هدایت ورکړو چې دوئی ته نیك کار ورازده کړئی. د نیکئ لارو ته اوښایئ که هغوئ ئې قبول نه کړی او خپلې ګمراهئ او غلطئ باندې کلك اوسی، جاهلانه خبرې کوی نو هغوئ نه یو خواته شئ، د هغوئ د جاهلانو نه خبرو جواب دسره مه ورکوئی، امید دې چې په دې سلوك سره به په خود کښې راشی او خپلې غلطئ نه به توبه کړی.

دویم آیت مبارك کښې فرمائی چې: ﴿وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۚ إِنَّهٗ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝﴾ [اوکه چرې تاته دشیطان دطرفه څه وسوسه اورسی نو په الله ﷻ سره پناه اوغواړه بیشکه هغه ذات آوریدونکې او عالم دې].

حقیقت کښې دا آیت مبارك هم د ړومبی آیت مبارك د مضمون مکمل کول دی. ولې چې په دې کښې کوم هدایت ورکړې شوې دې چې د ظلم کوؤنکو په ظلم او دجهالت کوؤنکو په خطا باندې پښه راکاړی ، ددوئ د بدو جواب په بدو سره مه ورکوئی. نو دا خبره په انسانی طبیعت باندې د ټولو نه زیاته درنه او سخته ده، خصوصاً پداسې موقعو کښې ښهٔ، سمدم خلقو لره هم شیطانان غصه کوی او جنګ جګړو کولو ته ئې راپاروی، څکه دویم آیت مبارك کښې خودنه اوکړې شوه چې که په داسې موقعو چې زیات مستقل په نظر راشی نو په دې پوهه شی چې هغه دشیطان د طرفنه او علاج ئې د الله ﷻ په پناه کښې راتللو سره کوئی.

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې د نبی کریم ﷺ په مخکښې دوؤ کسانو جګړه شروع کړه په هغې کښې یو کس د غصې په وجه بې قابو کیدونکې وو، رسول کریم ﷺ هغه په لیدو اوفرمائیل چې: ماته داسې یوه کلمه معلومه ده که چرې دا سړې ئې اووائی نو غصه به ئې ختمه شی. وې فرمائیل چې هغه کلمه داده: ﴿اعوذبالله من الشیطان الرجیم﴾ دغه کس د نبی کریم ﷺ

---

[1]) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب خذ العفو وأمر بالعرف الآیة: ج ۲، ص ٦١٩

دغه خبره مبارکه اومنله او سمدستي ئې اولوسته ، قهر ، غصه ئې بالکل سړه شوه[1] .

**عجیبه فائده** :: دتفسیر امام ابن کثیر ﷫ دلته یوه عجیبه خبره لیکلې ده چې په ټول قرآن عظیم الشان کښې درې آیتونه د غوره اخلاقو د تعلیم او تلقین دپاره ټول اړخیز راغلي دي او د درې واړو په آخر کښې شیطان نه د پنا غوښتلو بیان دې .

یو په سورت اعراف کښې دا آیت مبارك دې :

دویم د سورة مؤمنون دا آیت مبارك دې چې :﴿اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ ؕ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَصِفُوْنَ ۝ وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُبِكَ مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ۝ وَاَعُوْذُبِكَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنِ ۝﴾[ته د بدې خبرې په جواب کښې هغه وايه کومه چې غوره ده او څه چې دوئ بیانوی هغه مونږ ته ډیر ښه معلوم دی او دعا اوکړه چې ائې زما ربه زۀ د شیطانانو د وسوسو نه په تاسره پناه غواړم او ائې زما ربه! زه ددې خبرې نه هم په ستا سره پناه غواړم! چې هغوئ ماته راشی]

دریم آیت مبارك دحم السجده دې چې : ﴿وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ؕ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِيْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ حَمِيْمٌ ۝ وَمَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا ۚ وَمَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ۝ وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝﴾[او نیکی اوبدی هیڅ کله برابریدې نشی.ته په ښه [خوږه] طریقه [دښمن] د ځان نه لرې کړه نوستا اود چا ترمینځه چې دشمنی وی هغه به داسې [نرم] شی لکه مهربان دوست اودا نصیحت دهغه چا نصیب کیږی چې صبر کولې شی اودا سبق هغه څوک اخستې شی چې د لوئې نصیب خاوندووی اوکه چرې ستاپه زړه کښې د شیطان د طرفه څه وسوسه پیدا شی نو د الله ﷻ نه پناه غواړه بیشکه هغه هرڅه آوری په هر څه پوهه دې].

دې درې واړو آیتونو کښې قهر راوستونکوخلقو لره د معاف کولو ، پرې د ناغرضه کیدلو او د بدو په بدله کښې د ښیګړې کولو د هدایت سره سره شیطان نه پناه غوښتلو هدایت کړې شوې دې . دې نه معلومیږی چې انسانی جګړو سره شیطان خاص دلچسپی لری چرته چې جګړه راپیښه شی هغه د شیطانانو د ښکار ځائې جوړشی او د ډیر زغم خاوندان عزت مند خلق په غصه کښې راولی او د حد نه ئې د اوښکلو کوشش کوی ، کله چې غصه د قابو نه بهر شی نو دا د شیطان د غلبې ثبوت دې ، ددې علاج دادې چې الله ﷻ ته ماتې[توجه] اوکړی اودهغه نه پناه غواړی ، هله به ښه اخلاق کمال ته اورسی ځکه خو وړپسې دریم څلورم آیت مبارك کښې هم شیطانه دپناه غوښتلو هدایت کړې شو یدې[2] .

وَاِذَا لَمْ تَاْتِهِمْ　بِاٰيَةٍ　قَالُوْا　لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ؕ　قُلْ　اِنَّمَآ　اَتَّبِعُ

اوهرکله چې ته رانوړې دوئ ته | نښه | نووائی | چې ولې دخوښه نه کړه هغه | ورته اووایه | بیشکه | پیروی کوم زۀ

او که ته ته هرقسم معجزه اونښایې | نو دوئ وائی چې ولې دې دغه معجزه دځان نه پیش نکړه | ورته اووایه

مَا　يُوْحٰٓى　اِلَيَّ　مِنْ رَّبِّيْ ۚ　هٰذَا　بَصَآئِرُ　مِنْ رَّبِّكُمْ

دهغې | چې وحی کولې شی | ماته | دطرفه درب زمانه | دا | دپوهې رڼراګانې دی | دطرفه درب ستاسونه

زه په هغه لار روان یم | چې خپل رب راته وحی کړې ده | دا ټول ستادرب دطرفنه دلیلونه دی

[1] جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما يقول عند الغضب: ج ۲، ص ۱۸۳

[2] تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۵۳۱، ۵۳۲

| القرآن | قرئ | واذا | لقوم يؤمنون۝ | ورحمة | وهدى |
|---|---|---|---|---|---|
| قرآن | الوستلي كيږي | اوهركله چي | دپاره دهغه قوم چي ايمان راوړي | اورحمت دي | اوهدايت دي |

اودهغه خلقو دپاره هدايت اورحمت دي چي مومنان دی | اوكله چي قرآن پاک لوستې شي

| لعلكم ترحمون۝ | وانصتوا | له | فاستمعوا |
|---|---|---|---|
| ښائي چي په تاسورحم اوشي | اوچپ اوسی | هغه ته | نو غوږ كيږدئ |

نوپه توجه سره ئې آورئې | او چپ اوسئ | د دي دپاره چي تاسوباندي رحم اوشي |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره) كله چه ته دوی ته (د دوی خوښتلې شوې) معجزه نه پيش كوې نو دوی وائي چه: تا دا معجزه ولې په خپلې خوښې پيش نه كړه؟ ته ووايه چه: څه خو د هغه خبرې تابعداري كوم چه څما د رب د طرف نه ماته د وحې په ذريعه راوسولې شي دا (قرآن) ستاسو د رب د طرف نه د بصيرتولو مجموعه ده او كوم خلق چه ايمان راوړي نو هغوی دپاره هدايت او رحمت دې ۔ اوكله چه قرآن لوستلې شي نو غوږ ورته كيږدئ او چپ شئ دې دپاره چه په تاسو رحم وشي.

## خلاصه تفسير

﴿ وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِم بِآيَةٍ قَالُوا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ﴾ اوچه كله تاسو [ددوي دفرمائشي معجزو نه چه دكومو دوي د عناب په وجه فرمائش كولو] څه معجزه ددې مخكښې ظاهره نكړې [ددې وجه چه الله ﷻ دا معجزه د حكمت د تقاضې مطابق نه پيدا كوي] نو دغه خلق [دنفي په قصد درسالت تاسو ته] وائي چه تاسو ﷺ [كه نبی ﷺ يئ] نودا معجزه ولې نشوه [ظاهره] ﴿ قُلْ إِنَّمَا أَتَّبِعُ مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ مِن رَّبِّي ﴾ تاسو ﷺ اوفرمائي چه [زما كار پخپل اختيار دمعجزو راوړلو نه دي بلكه زما اصلي كار خودادې چه] زه دهغې تابعداري اوكړم چه كوم زما رب ما ته حكم كړې دې [په دې كښې تبليغ هم راغلو البته دنبوت داثبات دپاره صرف دمعجزې كيدل ضروري دي .نوددې وقوع شوې دې چنانچه په دوي كښې دټولو نه اعظم يو هم دا قران دې.چه ددې شان دادې چه] ﴿ هَٰذَا بَصَائِرُ مِن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ دا [په خپل ځائې] باندې ډير دليلونه دي ستاسو د رب دطرفه [ځكه چه ددې هرمقدارد سورت مثلا يو معجزه ده نو په دې حساب سره ټول قران پاك څومره دليلونه شو او ددې دا دليل خوعام دې] او [پاتې شو ددې نفع بالفعل نو هغه خو خاص ده منوونكو دپاره چنانچه هغه] هدايت او رحمت دې دهغه خلقو دپاره چه [په دې] ايمان لري ﴿ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ ﴾ او [تاسو دوي ته داهم اووائې چه] كله قرآن پاك وئيل كيږي [لكه چه حضور ﷺ ددې تبليغ كوي] نودې طرف ته ښه غوږ ايږدئې ﴿ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ او خاموشي اختياروې [چه ددې معجزه كيدل او ددې تعليم ښه په پوهه كښې راشي چه دهغې نه] اميد دې چه په تاسويه رحمت اوشي [نوې يا زيات نور هم].

## معارف او مسائل

ذكر شوؤ آيتونو مباركو كښې د نبی كريم ﷺ برحق كيدو ثبوت اوپدې باندې دمخالفينو د شبهو جواب او ددې دوارو په ترڅ كښې څو شرعی حكمونه بيان شوی دی .

د پیغمبرئی د ثبوت دپاره ټولو پیغمبرانو ﷺ ته معجزې ورکولې شي ، په دې بنا سید الانبیاء ﷺ ته دومره معجزې ورکړې شوې دی چې پخوانو پیغمبرانو ﷺ دمعجزو نه ډیرې زیاتې هم او ښکاره هم دی .

د نبی کریم ﷺ هغه معجزې ډیر ګڼړې دی کومې چې قرآن عظیم الشان او د احادیثو د صحیح روایتونو نه ثابتې دی ، علماء کرامو په دې باندې مستقل کتابونه لیکلی دی ، د علامه سیوطی خصائص کبری نومې کتاب پدې موضوع باندې لیکلې شوې یو مشهور کتاب دې چې دوه لوئې لوئې جلدونه لری .

د نبی کریم ﷺ بې شمیره معجزې ښکاره شوې دې خو سره دهغې هم مخالفو ضد دا کولو چې دخپل طرفنه ئې د مقرر کړو نوؤ معجزو ښکاره کولو مطالبه اوکړه چې بیان ئې په دې سورة کښې مخکښې تیر شو .

اوس ددې دوؤ آیتونو څخه په رومبی آیت مبارك کښې د دوئ یو اصولی جواب ورکړې شوې دې ، خلاصه ئې داوه چې د پیغمبرئ معجزه دې دپاره وی چې په هغې سره ددهٔ پیغمبری ثابته شی . او کله چې د یو مدعی دعوی په معتبرو شهادتونو سره ثابته شی اوپه دغه مخالفه ډله باندې څه جرح هم نه اوکړی نو ددنیا په هیڅ یو عدالت کښې چاته دا حق نشی ورکولې چې مدعی نه دا غوښتنه اوکړې شی چې هغه دې د فلانی فلانی خاصو کسانو ګواهی پیش کړی هله به ئې اومنو ، په دې بنا د ډیرو واضحو معجزو په لیدو سره دمخالفینو دامطالبه کول خالص د ضد خبره ده چې مونږ ته فلانئ خاص معجزه ښکاره کړئ هله به مو رسول اومنو ، نو هیڅ یو عدالت دا نشی منلې .

نو په رومبی آیت مبارك کښې فرمائی چې کله تاسو ﷺ د دوئ په ګوته کړې څه خاص معجزې نه ښکاره کوئ نو ستاسو دپیغمبرئ نه انکار کولو په غرض وائی چې تاسو راته فلانئ معجزه ولې ښکاره نکړه ؟ نو تاسو جواب ورکړئ چې زما کار خو دادې چې زه دهغه حکمونو تابعداری اوکړم چې په ما باندې زما درب د طرفنه په ذریعه د وحی لیږلې شی چې په کښې تبلیغ هم شامل دې ، څکه پخپل اصلی کار کښې اخته یم او د پیغمبرئ دپاره مې هغه نورې معجزې هم کافی دی چې ستاسو ټولو د سترګو د مخکښې راغلی دی ، دهغې د کتلو نه پس څه خاص معجزه طلب کول دضد کار دې چې ورپسې مخه اوړل پکار نه دی .

په دغه خودلوشوؤ معجزو کښې قرآن عظیم الشان پخپله یوه عظیمه معجزه ده چې ټولې دنیا ته ئې دخپل یو ورکوټی سورة پشان د راوړلو دعوت ورکړو ، اوټولې دنیا لاس پښې اووهلې خو بیا ئې هم ددې پشان یو وړوکې سورة راؤ نه ړو ، دا ددې غټ ثبوت جوړ شو چې قرآن عظیم الشان د چا بنیادم کلام نه بلکه د الله ﷻ بې مثله کلام دې .

څکه فرمائی چې : ﴿هٰذَا بَصَآئِرُ مِنۡ رَّبِّکُمۡ﴾ [دا ټول ستاسو درب د طرفنه دلیلونه دی] چې په کښې معمولی غور کوو هم ددې یقین کولو نه بغیر نه شی پاتې کیدې چې دا کلام د الله ﷻ کلام دې ، د چا مخلوق هیڅ قسم دخل په کښې نشته دې ، بیا دې پسې فرمائی چې : ﴿وَهُدًی وَّرَحۡمَةٌ لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ﴾ [او دهغه خلقو دپاره هدایت اورحمت دې چې مومنان دی] مګر مقصد ته رسوؤ نکې او د الله ﷻ د رحمت مستحق جوړونکی یوازې هغه خلقو دپاره دې چې په دې ایمان راوړی .

یوبل آیت مبارك کښې اوخودلی شو چې قرآن عظیم الشان مؤمنانو دپاره رحمت دې خو ددې رحمت نه د فائدې حاصلولو دپاره څه شرطونه اوطریقې دی چې د عام خطاب په ډول ئې داشان ذکر کړل چې : ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ [او کله چې قرآن پاک لوستې شی نو په توجه سره ئې آورئې او چپ اوسئ].

دې آیت مبارك دشان نزول باره کښې مختلف روایات راغلی دی چې دا حکم د مونځ د قرآت باره کښې دې ، یا د خطبې باره کښې یا مطلقا د قرآن عظیم الشان د قرآت باره کښې ، چې په مونځ کښې یا خطبه کښې وی یا په نورو حالاتو کښې وی ، لیکن د جمهورو مفسرینو په نزد صحیح خکه دې چې څنګه ددې آیت مبارك الفاظ عام دی دغه شان حکم ئې هم تولو حالاتو دپاره عام دې سواد خاصو موقعو نه چې په هغې استثنی ده .

په دې بنا د احنافو دې آیت مبارك سره په دې خبره دلیل نیولې دې چې امام پسې دې مقتدیان لوستل نه کوی ، او کومو فقهاء کرامو چې مقتدیانو ته د سورة فاتحې لوستلو هدایت کړې دې په هغوئ کښې هم ځینې ددې رعایت ساتلې دی چې د امام د سکتې په وخت دې فاتحه لولی ، دلته ددې بحث موقعه نه ده ، په دې بحث کښې علماء کرام مستقل لوئې واړه کتابونه لیکلی دی .

د آیت مبارك اصل مضمون دادې چې قرآن عظیم الشان د کومو خلقو دپاره رحمت اوګرځولې شو هغې دپاره شرط دادې چې د قرآن عظیم الشان ادب او عزت اوپیژندې ، اوعمل پرې اوکړې او لوئې ادب ئې دا دې چې ددې د لوستلو په وخت آؤریدونکی ورته غوږ کیږدی اوچپ پاتې شی ، د غوږ ایخودلو مطلب دا هم کیدې شی چې واؤری اودائې هم کیدې شی د عمل کولو کوشش پرې اوکړې [مظهری و قرطبی] ([1]).

د آیت مبارك په آخر کښې ﴿لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ فرمائیلو سره دې ته اشاره ده چې قرآن عظیم الشان هغه چا دپاره رحمت جوړیږی چې دغه ټول بیان شوی شرطونه او آداب پوره کړی .

**د قرآن کریم د تلاوت په وخت په خاموشئ سره د آؤریدو باره کښې څو ضروری مسئلې** :: بل طرفته ترې دا خبره ښکاره کیږی چې ددې پخلاف کولوسره چې چا د قرآن عظیم الشان بې عزتی اوکړه نو هغه به د رحمت په ځائې د الله ﷻ د قهر او غضب حقدار جوړیږی .

مونځ کښې قرآن عظیم الشان ته غوږ ایخودل اوچپ پاتې کیدل خو په عام ډول مسلمانانو ته معلوم دی اګر چې په دې باندې عمل کولو کښې کوتاهی داسې کوی چې ځینې خلقو ته دا هم خبر نه وی چې امام کوم یو سورة لوستلې دې ، په دوئ لازمه ده چې د قرآن عظیم الشان لوئی او پیژنی اودهغې د آؤریدو په وخت پوره خیال ساتی ، د شریعت تر مخه د جمعې دخطبې هم دغه حکم دې ، ددې آیت مبارك نه علاوه خاص د خطبې په باره کښې نبی کریم ﷺ داسې هم فرمائیلی دی چې :

﴿اذا خرج الامام فلا صلوة ولا كلام﴾ [کله چې امام دخطبې وئیلو دپاره راښکاره شی نو هیڅ مونځ او کلام نشته] ([2])

---

[1] ) تفسیر المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۴۲۸، وتفسیر القرطبی تحت هٰذه الآية: ج ۷، ص ۳۵۵

[2] ) مجمع الزوائد رقم الحدیث: ۳۱۲، لکن ألفاظه مختلفة۔

يو بل حديث پاك كښې كښې دا هم راغلي دي چې دغه وخت دې هيڅوك بل چاته د نصيحت په غرض د خاموش اوسيدو د پاره په خله وائي هم نه[1] ، غرض دا چې دخطبې په دوران كښې هيڅ قسم كلام كول تسبيح ، دردو وئيل يا مونځ وغيره كول جائز نه دي
فقهاء كرام فرمائي چې د جمعې دخطبې پشان داخترونو او دنكاح وغيره د خطبې هم دغه حكم دې چې هغه ته غوږ ايخودل او ورته چپ پاتې كيدل واجب دي[2] . البته په عامو حالاتو كښې چې څوك خپل ځان له په زوره تلاوت كوي په دې كښې د فقهاء كرامو اختلاف دې چې ورته غوږ ايخودل اوچپ پاتې كيدل واجب دي او كه نه ؟
ځينې فقهاء كرام فرمائي چې دې ته هم غوږ ايخودل او چپ ورته پاتې كيدل واجب دي اوداسې نه كولو ته ئې ګناه وئيلې ده . او په دې وجه ئې د خلقو د كار ، روزګار يا آرام كولو په ځائې كښې قرآن عظيم الشان په زوره لوستل جائز نه دي بللې ، او څوك چې داسې كوي نو هغه ته ئې ګناه ګار وئيلى دى .[حواله: خلاصه الفتاوىٰ وغيره][3].
ليكن ځينې فقهاء كرامو وئيلي دي چې غوږ ورته ايخودل يا چپ پاتې كيدل د قرآن عظيم الشان په زوره تلاوت كولو ته هله واجب دي چې دغه تلاوت دآوږولو په غرض وي لكه مونځ او خطبې وغيره كښې چې لولى او څوك چې خپل ځان له تلاوت كوي يا ګنړ خلق په يو مكان كښې ځان ځانله تلاوت كوي نو دبل تلاوت ته غوږ ايخودل او ورته چپ پاتې كيدل څكه واجب نه دي چې صحيح احاديثو نه ثابته ده چې نبي كريم ﷺ به دشپې په مونځ كښې په زوره قرآت كولو او ازواج مطهرات به آرام فرمائيلو. حالانكه كله خو به د حجرې مباركې نه بهر هم د نبي كريم ﷺ آواز مبارك آوريدلې شو.
دغه شان د بخاري او مسلم يوحديث پاك كښې راغلي دي چې نبي كريم ﷺ د يو سفر په دوران كښې چرته د شپې پړاؤ اوكړو نو د سحر په وخت كښې ئې اوفرمائيل چې ما دخپل سفر اشعري ملګرى دشپې په تياره كښې دهغوئ د تلاوت په آوازونو اوپيژندل چې هغوئ چرته دي اوخيمې ئې كوم ځائې كښې دي اګر چې د ورځې په رڼرا كښې راته علم نه وو[4]. نو په دې واقعه نبي كريم ﷺ خپل اشعري ملګرى په زوره تلاوت كولو نه منع نه كړو. اونه ئې اوده خلقو ته دا هدايت اوكړو چې د قرآن عظيم الشان وئيلو په وخت دې دهغې دآوريدو دپاره ټول راپاسيې او ناست دې وي .
ددې قسم روايتونو نه فقهاء كرامو دا ګنجائش راؤښكلې دې چې څوك خپل ځان سره تلاوت په زوره كوي نو هغې ته غوږ ايخودل اوچپ ورته پاتې كيدل واجب نه دي خو بيا غوره خبره داده چې تلاوت ته دې هم په خامو شئ سره غوږ ايخودې شي او په داسې ځايونو كښې تلاوت په زوره كول هم مناسب نه دي چې څوك اوده وي ، آرام كوي ، يا په كاروبار كښې مشغول وي . دې نه دهغې صاحبانو غلطي معلومه شوه چې څوك د ريډيو تلاوت پداسې

[1] ) كنز العمال رقم الحديث: ۲۱۲۱۳
[2] ) الشامي، كتاب الصلوٰة، مطلب السنة تكون سنة عين وسنة كفاية: ج ۱، ص ۵۲۵
[3] ) خلاصة الفتاوىٰ: ج ۱، ص ۱۰۳
[4] ) صحيح البخاري، كتاب المغازي، باب غزوة خيبر: ج ۲، ص ۶۰۸، وصحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل الأشعريين: ج ۲، ص ۳۰۳

خائې كښې لګوي چې چرته خلق ګنړي وي او دهغې آوريدو ته ئې غوږ نه وي. دغه شان د شپې په وخت د مساجدو د لاؤډ سپيكر په ذريعه تلاوت د قرآن عظيم الشان خورول مناسب او درست نه دى چې ورسره د خلقو خوب ، آرام ، اوكار روزګار كښې خلل راځي.

علامه ابن همام رحمه الله ليكلي دي چې كله په مونځ يا خطبه كښې د جنت يا دوزخ مضمون تلاوت كولې شي نو دغه وخت دجنت سوال كول او دوزخ نه پناه غوښتل هم ځكه جائز نه دي چې ددې آيت تر مخه د الله ﷻ د رحمت وعده هغه چا دپاره ده چې د قرآن عظيم الشان د تلاوت په وخت چپ پاتې كيږي او څوك چې چپ نه پاتې كيږي هغه سره دا وعده نشته ، البته په نفل مونځونو كښې دداسې آيتونو د تلاوت نه پس په رو دعا غوښتل د سنت نه ثابت دي ، اوباعث دثواب ګرځي . [مظهري]([1]).

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ
| اويا دوه | رب خپل
| اوانې پيغمبره خپل رب

فِىْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ
په زړه خپل كښې | په عاجزئ سره | اوپه يره سره | اوكم داوچت آواز نه | دوينا نه | په صباكښې
په زړه كښې په عاجزئ او په ويرې سره او په چپ آواز سره چه په زوره نه وي | د صبا او د

وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ
اوپه بيګاه كښې | اومه كيږه ته | دبې خيرونه | بيشكه | هغه كسان | چې په نزدرب ستاكښې دي
د ماښام په وخت كښې يادوه | اوغافلانو كښې ځان مه شاملوه | كومې فرشتې چې ستارب سره دي

لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ۝
تكبرنه كوي هغوئ | دعبادت دهغه نه | اوپاكي بيانوي دهغه | اوخاص هغه ته | سجدې كوي |
هغوئ دالله ﷻ دعبادت نه ځانونه لوئې نه ګنړي | اودهغه تسبيح وائي | اوهغه ته سجدې كوي

## آسان ترجمه قرآن

اودخپل رب سحر او ماښام ذكر كوه ، خپل زړه كښې هم ، په عاجزئ او دويرې (په جلا ياتو) سره او ژبې سره هم ، بې د آواز ډيراوچتولو نه اوهغه خلقو كښې مه شامليږه چه كوم غفلت كښې پراته دي (۰) ياد ساته چه كومې (فرښتې) ستا رب څخه دي هغوى د هغه د عبادت نه په تكبر سره مخ نه اړوي ، او د هغه تسبيح بيانوي او د هغه مخې ته سجده لګوي.

## خلاصه تفسير

﴿وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِىْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً﴾ او [تاسو هر سړي ته دا هم اووائې چه] ائې سړيه خپل رب ياد وه [قرآن پاك سره يا تسبيح وغيره سره كه] په خپل زړه كښې وي [يعني په رو آواز سره] عاجزئ سره وي ﴿ وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ﴾ او [كه] دتيز آواز په نسبت كم آواز سره [هم

[1] ). تفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۳، ص ۴۵۲، وفتح القدير: ج ۲، ص ۲۴۳، كتاب الصلوٰة، فصل فى القراءة.

داشان عاجزئ سره او ویرې سره] سحر ماښام [يعني علی الدوام]﴿ وَلَا تَكُنۡ مِّنَ ٱلۡغَٰفِلِينَ ۝﴾ او [د دوام مطلب دادې چه] په اهل غفلت کښې ځان مه شمیرئې [چه په کوم ذکرنو مامور يئ هغه هم پريږدئ] ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ﴾ يقيناً چه [کومې ملائيکې ستادرب په نزد [مقربې] دې هغه دده د عبادت نه [چه په هغه کښې اصلي عقائد دي] تکبر نه کوي ﴿وَيُسَبِّحُونَهُۥ وَلَهُۥ يَسۡجُدُونَ ۩﴾ او دده پاکي بيانوي [چه دا لساني طاعت دې] او ده ته سجده کوي [چه د اعمال جوارح نه دي].

## معارف او مسائل

دې نه مخکښې تير شوؤ آيتونو کښې د قرآن عظيم الشان د آوريدو او ددې د آدابو بيان وو ، اوس په دې دوؤ آيتونو کښې د جمهورو په نزد د الله ﷻ د مطلق ذکر حکم اوددې د آدابو بيان دې چې په کښې د قرآن عظيم الشان تلاوت هم شامل دې ، او د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په نزد په دې کښې هم د ذکر نه مراد خاص قرآن پاك دې نه په دې کښې بيان شوی آداب هم د قرآن پاك سره متعلق دی ليکن دا څه اختلاف څکه دې چې قرآن پاك نه علاوه د نورو ذکرونوحکم او آداب د ټولو په نزد همدغه دی.

خلاصه دادہ چې په دې آيت مبارك کښې انسان ته الله ﷻ ډيادولو حکم کړې دې. او ددې سره ددې وختونه او آداب بيان شوی دی.

**پټ او په زوره ذکر کولو حکمونه** :: د ذکر کولو باره کښې قرآن عظيم الشان په دې آيت مبارك کښې د رو او په زوره د ذکر کولو دواړو اختيار ورکړې دې. پټ ذکر باره کښې فرمائی چې:

﴿وَٱذۡكُر رَّبَّكَ فِي نَفۡسِكَ﴾ [اوائې پيغمبره خپل رب په زړه کښې په عاجزئ يادوه]

ددې هم دوه صورتونه دی ، يو دا چې بغير د ژبې خوزولو نه الله ﷻ په زړهٔ کښې يادولې شی يعنی دهغه ذات او صفتونه په خيال کښې ، فکر کښې راوستې شی چې ورته ذکر قلبي يا تفکر وئيلې شی . بل ذکر داسې کول دی چې په ژبه هم د الله ﷻ نومونه مبارکه په رو آواز سره ادا کړې شی ، د ټولو نه زيات غوره صورت دادې چې په زړهٔ کښې د الله ﷻ ذکر سره د پوهې ښه په سوچ ،فکر سره اوکړې او په ژبه ئې هم په کرار آواز سره حروف ادا کړی ولې چې په دې صورت کښې په غور فکر سره د الله ﷻ په ذکر کښې ژبه هم شريکه شي او که يوازې په زړه کښې په غور فکر سره د الله ﷻ په ذکر مشغول وی او په ژبه دهغې حروف نه ادا کوی نودا هم ډير ثواب لری خو د ټولو نه کمه درجه د هغه ذکر ده چې يوازې په ژبه ئې ذکر وی او زړهٔ ئې ددې نه خالی اوغافله وی. دداسې ذکر باره کښې مولانا رومی رحمه الله فرمائی چې ::

برزبان تسبيح ودر دل گاؤخر     اين چنين تسبيح کے دارد اثر

چې په ژبهٔ ئې تسبيح اوپه زړه کښې ئې خر او غوايه وی نو دداسې تسبيح به څه اثر نه وی؟. اود مولانا رومی مقصد دادې چې د غافل زړهٔ په ذکر کولو سره د ذکر اثر او برکتونه په کامله درجه کښې نه حاصليږی . البته دې نه هم انکار نشی کيدې چې يوازې د ژبې ذکر هم دثواب اوفائدې نه خالی نه وی څکه چې کله خو دا د ژبې ذکر د زړهٔ د ذکر ذريعه او سبب جوړيږی . په ژبه باندې په مخه ذکر کولو سره زړهٔ هم اثر قبلوی . او کم از کم يو اندام خو په ذکر کولو کښې اخته وی چې ثواب ئې هيڅرته نه ځی . نو هغه خلق دې هم ذکر نه پريږدی چې يوازې په

ژبه ئې ذکر جاري وي او زړهٔ کښې ئې ورته خيال فکر نه وي ، بلکه په زړهٔ کښې د خيال فکر لرلو کوشش دې جاري لري.
هم دې آيت مبارك کښې د ذکر کولو دويمه طريقه دا خودلې شوې ده چې ﴿وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾[او په زوره د نسبت په کم آواز سره چه په زوره نه وي]مطلب دا چې ذکر کوؤنکي ته دا اختيار هم شته چې په رو آواز سره ذکر اوکړي مگر ددې ادب دادې چې ډير په زوره آواز نه راؤباسي ، په درميانه آواز سره ذکر کوي او ادب او عزت په کښې اوساتلې شي .ډير په زور تلاوت کول ددې نخښهٔ کيدې شي چې د مخاطب ادب او احترام ئې په زړه کښې نشته . ولې چې د چا ادب ، رعب او عزت په زړهٔ کښې وي نو دهغه په وړاندې په اوچت آواز سره خبرې کولو ته ئې طبيعت نه تياريږي. په دې وجه د الله ﷻ ذکر يا د قرآن عظيم الشان تلاوت په داسې آواز سره پکار دی چې د ضرورت نه زيات په زوره نه وي.
خلاصه ئې دا شوه چې دې آيت مبارك نه د الله ﷻ ذکر او د قرآن کريم د تلاوت درې طريقې حاصلې شوې.
① يوه دا چې يوازې په زړه کښې د الله ﷻ د ذکر او د قرآن عظيم الشان معنې پخپل تصور او فکر کښې راولي او ژبه پرې بيخي نه ښوزوي.
② دويمه دا چې ژبه هم پرې ښوزوي او آواز ئې دومره په زوره نه وي چې بل څوك ئې آؤريدې شي. دا دواړه طريقې په ﴿وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ﴾[او ياد کړه پيغمبره خپل رب په زړه کښې په عاجزۍ سره يادوه] کښې داخلې دي.
③ دريم دا چې د زړهٔ په حضور سره د غور وفکر نه ژبه ئې هم پرې خوزي او آواز ئې هم راؤځي ، خو ددې طريقې آدب دادې چې آواز زيات پورته نه کړي دا طريقه په دې جمله کښې بيان کړې شوېده. په يو بل ځائې کښې ددې زيات وضاحت قرآن عظيم الشان دشان کړې دې چې:
﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا﴾ دې کښې نبی کريم ﷺ ته حکم دې چې پخپل قراءت مه زيات جهر کوه او نه بالکل اخفاء ، بلکه دجهر او اخفاء په درمياني کيفيت اختياروه.
مونځ کښې د قرآن پاك د قرات باره کښې هم دا هدايت کړې دې ، لکه په صحيح حديث کښې راغلي دي چې يو ځل نبی کريم ﷺ په آخرې شپه کښې دخپل کور مبارك نه بهر تشريف يوړو ، د سيدنا ابوبکر صديق ﷺ کور ته چې اورسيدل نو هغوئ ﷺ ئې په مونځ کښې داسې مصروف اوليدو چې رو پټ تلاوت ئې کولو او کله چې د عمر فاروق ﷺ کور ته اورسيدل نو هغوئ ﷺ مونځ کښې په زوره زوره تلاوت کولو. سحر چې کله دواړه د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو رسول کريم ﷺ صديق اکبر ﷺ ته اوفرمائيل چې زه د شپې ستاسو خواه ته درغلې وم نو ما اوکتل چې تاسو دشپې په وخت کښې دې مونځ کښې ډير په رو رو[کرار کرار] تلاوت کولو. هغوئ ﷺ اوفرمائيل چې کوم پاك ذات ته مې اؤرولو نو هم دومره کافي وو.عمر فاروق ﷺ ته ئې اوفرمائيل چې تا په زوره تلاوت کولو. هغوئ ﷺ اوفرمائيل چې دې سره زما دا غرض وو چې خوب رابانديې غالب نشي. او ددې په برکت زما نه شيطان لرې اوتښتي.نبی کريم ﷺ دا فيصله اوفرمائيله چې صديق اکبر ﷺ ته ئې د آواز لږ د تيز کولو

هدایت اوکړو اوعمرفاروق ﷺ ته ئې د آواز لږشان رو[کرار] کولو هدایت اوفرمائیلو.[ابوداؤد]([1])

د ترمذی د روایت مطابق هر کله چې عائشه صدیقه ﷺ نه دا سوال اوکړې شو چې آیا نبی کریم ﷺ به په مونځ کښې تلاوت رو کولو اوکه په زوره ؟عائشه صدیقه ﷺ اوفرمائیل چې کله به ئې رو تلاوت کولو او کله به ئې په زوره تلاوت کولو([2]).

دشپې په نفل مونځ کښې او د مونځ نه بهر ځینې علماء کرامو په زوره تلاوت کول خوښ کړی دی. او ځینې علماء کرام فرمائی چې رو تلاوت کول ښه دی.خو امام اعظم ﷫ په دې کښې د رو او په زوره د تلاوت کولو اختیار ورکړې دې.البته په زوره تلاوت کولو کښې دتولو په نزدخو شرطونه ضروری دی.

① اول دا چې په دې کښې د نمود ریاکارئ اندیښنه نه وی.

② دویم دا چې دغې آواز نه چاته تکلیف نه وی یا بې آرامی او پریشانی نه وی او چرته چې دا تکلیفونه او اندیښنې ترې راولاړیږی نو د ټولو په نزد په رو آواز سره تلاوت کول زیات غوره دی.

دتلاوت او د قرآن عظیم الشان دنور ذکرونو او تسبیحاتو حکم هم دغه دې ، یعنی داهم په اوچت او رو آواز سره کول جائز دی. خو شرط دادې چې آوازدومره اوچت نه وی چې دهغې په وجه په خشوع و خضوع کښې څه نقصان راشی. د ادب نه خلاف نه وی ، اود نورو خلقو په آرام کښې یا کار کښې څه خلل دې سره نه رازی.

او ددې خبرې فیصله چې په زوره آواز اوښکل په دې کښې بهتر دی اوکه رو آواز اوښکل ؟ داپه هغه بنده او په هغه حالاتو اړه داسې لری چې ځینې خلقو دپاره په زوره قرات بهتر دې او ځینې دپاره په رو ،دغه شان ځینې حالاتو کښې په زوره قرات کول بهتر وی او ځینې کښې په رو قرات کول بهتر وی ، [تفسیر مظهری و روح البیان وغیره]([3]).

د تلاوت او ذکر دویم ادب دا دې چې په عاجزئ او زارئ سره ذکر اوکړې شی. ددې نتیجه دا راوځی چې د الله ﷻ لوئی او بزرګی د انسان مخې ته وی. او چې کوم ذکر کوی دهغه په معنی او مطلب باندې ئې نظر وی.

دې آیت مبارك کښې په لفظ د ﴿خِيفَةً﴾ سره دریم ادب دا اوخودلې شو چې د ذکر تلاوت په وخت په انسان باندې دهیبت او ویرې حالت پکار دې. د ویرې حالت داسې چې مونږ د الله ﷻ دعبادت اودهغه لوئې حق نشو ادا کولې مونږ نه په دې کښې بې ادبی هم راتلې شی. دا ویره هم پکار ده چې خپل ګناهونه ځان ته رامخې ته کړی او د الله ﷻ دعذاب نه ویره کوی. داشان د انجام اوخاتمې ویره هم پکار ده. چې معلومه نه ده چې زمونږ خاتمه به په څه شان کیږی. په هر حال ذکر او تلاوت داشان کول پکار دی چې څنګه چې څوك بوګنیدونکې او ویریدونکې ئې کوی.

---

[1]) سنن ابی داود، کتاب الصلوة، باب فی رفع الصوت بالقراءة فی صلوٰة اللیل: ج۱، ص۱۸۸

[2]) جامع الترمذی، أبواب الصلوٰة، باب ما جاء فی قراءة اللیل: ج۱، ص۱۰۰

[3]) التفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج۳، ص۴۵۳، ۴۵۴، وروح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج۱، ص۸۱۸،۸۲۶

ددعا داغسې آداب هم ددې سورة اعراف د شروع په يو آيت مبارك كښې داشان راغلى دى چې : ﴿اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً﴾، په هغې كښې د ﴿خِيفَةً﴾ په ځائې ﴿خُفْيَةً﴾ راغلې دې چې معنې ې په رو آوازسره ذكر كول دى ګويا كښې د ذكر او تلاوت يو ادب دا هم دې چې په رو اوغلى آواز سره كولې شى ليكن دې آيت مبارك دا معنى هم ښكاره كړه چې په آواز سره ذكر كول هم منع نه دى خو شرط دادې چې ضرورت نه زيات آواز نه اوچتوى ، او دومره په زور دې هم نه كوى چې د عاجزئ زارئ حالت ورسره ختم شى .

په آخر د آيت مبارك كښې د ذكر او تلاوت وختونه يې اوخودل چې دا صبا اوماښام كښې كول پكار دى . ددې دا معنى هم كيدې شى چې په شپه ورځ كښې كم ناكم دوه واره د الله ﷻ ذكر كول پكار دى . او دا مطلب ئې هم كيدې شى چې صبا او ماښام ذكر كولو سره ئې مطلب دادې چې د شواروز ټول وختونه وى څنګه چې دمشرق او مغرب په ذكر كولو سره ټول جهان مراد اخستې شى ، په دې صورت كښې به د آيت مبارك معنى دا وى چې انسان دپاره په هر حال كښې هميشه د ذكر او تلاوت پابند اوسيدل پكار دى . لكه عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى چې نبې كريم ﷺ بهٔ هر وخت او په هر حال كښې د الله ﷻ په ياد كښې مشغول وو[1].

په آخر د آيت مبارك كښې فرمائى چې: ﴿وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ﴾ [اوغافلانو كښې ځان مه شاملوه]

دويم آيت مبارك كښې د خلقو د عبرت او نصيحت په غرض ، د الله ﷻ د نيكانو يو مخصوص حال داسې بيان كړې دې كوم خلق الله ﷻ ته نزدې وى نو هغوئ د عبادت تكبر نه كوى . الله ﷻ ته دنزديكت نه مطلب الله ﷻ ته مقبول كيدل دى ، چې په كښې ټولې فرښتې ، ټول پيغمبران عليهم السلام اودامت نيكان بندګان شامل دى . دتكبر نه كولو مطلب دادې چې په ځان غټ ګڼړلو سره دهغه په عبادت كښې څه كوتاهى نه كوى . بلكه خپل ځان عاجزه ګڼړلو سره ، هميشه دپاره د الله ﷻ په ياد او عبادت كښې مشغول پاتې كيږى . په مخه كوى ، او الله ﷻ ته سجدې كوى . دې نه معلومه شوه چې څوك هميشه دپاره دالله ﷻ په عبادت كښې اودهغه په يادو كښې مصروف وى نو دا ددې خبرې دليل دې چې هغه هر وخت الله ﷻ سره وى او د الله ﷻ ملكرتيا ورته حاصله وى .

**د سجدې څينې فضيلتونه او حكمتونه:** دلته د مونځ په عبادت كښې يوازې د سجدې ذكر كول څكه كړې شوې دې چې دمونځ په ټولو اركانو كښې سجدې ته خاص فضيلت حاصل دې .

صحيح مسلم كښې ثوبان رضي الله عنه نه روايت دې چې يو سړى ثوبان رضي الله عنه ته اووئيل چې تاسو راته داسې څه عمل اوښائې چې د هغې په كولو سره جنت ته لاړ شم ، ثوبان رضي الله عنه پدې چپ پاتې شو . بيا ئې په دويم ځل هم دا سوال اوكړو نو ثوبان رضي الله عنه بيا هم چپ پاتې شو . په دريم وارچې ئې سوال اوكړو نو وې فرمائيل چې ما هم دا سوال د نبى كريم ﷺ نه كړې وو . نبى كريم ﷺ راته په جواب كښې فرمائيلى وو چې ډيرې ډيرې سجدې كوه . څكه چې كله ته يوه سجده كوې ديو ځل سجدې كولو په بركت به الله ﷻ ستا يوه درجه زياتوى . او يوه ګناه به دې معاف كوى . دا سړې وائى چې ثوبان رضي الله عنه نه پس زه ابى الدردا رضي الله عنه ته ورغلم او داشان تپوس مې ترې اوكړو ،

[1] ) صحيح مسلم ، كتاب الطهارة ، باب ذكر الله تعالى فى حال الجنابة وغيرها: ج ۱ ، ص ۱۶۲

هغوئ ﷺ راته هم ددې په شان جواب راکړو[1].

د صحيح مسلم په حواله ابی هريره رضی الله عنه نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې بنده خپل رب ته تولو نه زيات نزدې په هغه وخت کښې وی چې کله په سجده کښې وی نو ځکه ته د سجدې په حالت کښې په ښه شان سره دعا کوه چې د هغې قبليدو اميد زيات وی[2].

ياد ساتئ چې يوازې دسجدې څه تاکلې عبادت نشته، هم دغه وجه ده چې د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نزد د زياتو سجدو کولو مطلب دادې چې زيات نفل مونځونه کوئ ولې چې څومره نفلونه مونځونه زيات وی نو هغه هومره به سجدې زياتې وی. البته ځان له په سجده کښې دعا کول هم بديت نه لری او په سجده کښې ددعا کولو هدايت، نفلی مونځونو دپاره مخصوص دې فرض مونځونو دپاره نه دې.

سورة اعراف ختم شو دا آخری آيت مبارك دسجدې دې. د صحيح مسلم په حواله د ابی هريره رضی الله عنه نه روايت دې چې کله يوبنيادم دسجدې آيت مبارك تلاوت کړی اوبيا سجده ادا کوی نو شيطان په ژړا کښې تښتی او وائی چې ارمان دې انسان ته د سجدې کولو حکم اوشو هغه په دې عمل اوکړو جنت ئې ځائې شو ماته دسجدې حکم اوشو اومانه منلو او زما ځائې جهنم شو[3].

| اياتونه | سوة الانفال مدنية وهي خمس وسبعون اية وعشر ركوعات | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۷۵ | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | ۱۰ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَسْـَٔلُوْنَكَ | عَنِ الْاَنْفَالِ ۭ | قُلِ | الْاَنْفَالُ | لِلّٰهِ | وَالرَّسُوْلِ ۚ |
| تپوس کوی ستانه | په باره دمالونو دغنيمت کښې | اووايه | چې غنيمتونه | الله دپاره دی | اورسول دپاره |

دوئ ستاسونه دغنيمتونوپاره کښې تپوس کوی ورته اووايه چې داغنيمتونه خودالله او د رسول دپاره دی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاتَّقُوا | اللّٰهَ | وَاَصْلِحُوْا | ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۠ | وَاَطِيْعُوا | اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗٓ |
| پس اويريږئ | دالله نه | اوا صلاح کړئ | تعلقات په منځ خپل کښی | اوحکم اومنئ | دالله | اودرسول دهغه |

نو تاسودالله ﷻ نه اوويريږئ | اوپه خپل مينځ کښې تعلقات ښه ساتئ | اود الله ﷻ اودرسول حکم منئ

| | | |
|---|---|---|
| اِنْ | كُنْتُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ ① |
| که چری | يئ تاسو | مومنان |

که تاسويه سچه مومنان يئ

**آسان ترجمه قرآن:** (اې پيغمبره!) خلق ستا نه د مال غنيمت په باره کښې تپوس کوی، ته ووايه چه د مال غنيمت (په باره کښې د فيصلې اختيار) دالله اودرسول دې نو تاسو د الله نه وويريږئ او خپلو کښې تعلقات سم کړئ او د الله او د هغه د رسول تابعداري وکړئ که تاسو واقعي مؤمنان يئ.

[1] ) صحيح مسلم، کتاب الصلاة، باب فضل السجود والحث عليه: ج ۱، ص ۱۹۳
[2] ) صحيح مسلم، کتاب الصلاة، باب ما يقال فی الرکوع والسجود: ج ۱، ص ۱۹۱
[3] ) صحيح مسلم، کتاب الايمان، باب بيان اطلاق اسم الکفر علی من ترك الصلاة: ج ۱، ص ۶۱

**د سورت مضامین**:: سورة انفال شروع کیږي ، دا مدنی سورة دې .ددې نه وړاندې سورة اعراف کښې د مشرکانو او اهل کتابو د جهل او عناد او د کفروفساد ذکر وو او دې سره د متعلق بحثونو بیان وو. دې سورة کښې اکثر مضامین د غزوهٔ بدر په موقع باندې د هغه خلقو د بدانجام ، ناکامئ او د شکست او سره ددوئ په مقابله کښې د مسلمانانو د کامیابئ چې دا دمسلمانانو دپاره انعام او د کافرانو دپاره دعذاب او انتقام وو.
هرکله چې ددې انعام د ټولو څخه لویه وجه د مسلمانانو خلوص او خپل مینځ کښې د دوئ اتفاق او اتحاد وو. او دا اخلاص او اتفاق د الله ﷻ او دهغه درسول ﷺ د مکملې تابعدارئ نتیجه وه . ځکه د سورت په شروع کښې د تقوی د حق د تابعدارئ ، د الله ﷻ د ذکر او توکل وغیره تعلیم ورکړې شوې دې .

## خلاصه تفسیر

﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ﴾دا خلق ستاسو نه دغنیمت دحکم تپوس کوي تاسو ﴿ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ ﴾ اووائي چه دا غنیمت دالله ﷻ دې [یعني د الله ﷻ ملکیت دې.هم دهغه حق دې چه ددې متعلق څه غواړي حکم ورکړي] او درسول دې [په دې معني چه هغه به دالله ﷻ نه حکم معلوم کړ یي او دا به نافذ کړي. حاصل دادې چه د غنیمت دمالونو په باره کښې ستاسو درائې او دتجویزهیڅ دخل نشته دې بلکه دهغه فیصله به دشریعت په حکم باندې وي] ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ﴾ نوتاسو [ددنیا حرص مه کوئي او د آخرت طلبګار اوسئ داشان چه] الله ﷻ نه ویریږئي او په خپلو کښې دتعلقاتو اصلاح کوئي [چه په خپلو کښې حسد اوبغض نه وي] ﴿ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴾ او دالله ﷻ اوده درسول ﷺ اطاعت کوئي که تاسو ایمان والا یئ.

## معارف او مسائل

دا آیت مبارك دبدر دغزا د یوې واقعې په باره کښې راغلې دې . هر کله چې د تفصیلي تفسیر نه مخکښې هغه واقعه مخې ته کیخودې شي نو په تفسیر پوهیدل به آسان شي .
واقعه داسې ده چې دکفرا و اسلام ترمینځه ټولونه په اولنئ غزا کښې کله چې مسلمانانو برې بیا موندو اود غنیمت څه مال ئې لاس ته راغلو نو دهغې د تقسیم په باره کښې د مسلمانانو مینځ یو شور جوړ شو او دې شور د هغوئ د اخلاص او اتفاق سره دهغه مقام څه سمې نه خوري په کوم چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم ټول ژوند قالب شوې وو ، ځکه د ټولو نه په رومبی آیت مبارك کښې ددې فیصله اوکړې شوه دې دپاره چې ددې پاکیزه ډلې په زړونو کښې د صدق او اخلاص اتفاق او ایثار نه سوا بل څه پاتې نشي . د بدر په غزا کښې د یو شریك صحابی عباده رضي الله عنه د خلې نه د مسند احمد رحمه الله ، ترمذی رحمه الله ، ابن ماجه رحمه الله ، مستدرك حاكم وغيره کښې دا واقعه په داشان منقول ده چې هر کله عباده بن صامت رضي الله عنه نه چا ددې آیت مبارك د انفال د لفظ مطلب اوپوښتلو نو هغوئ اوفرمائیل چې دا آیت مبارك هم زمونږ دبدریانو په باره کښې نازل شوې دې ، خبره د اسې ده چې د غنیمت د مال د تقسیم باره کښې زمونږ تر منیځه څه اختلاف راپیدا شو چې زمونږ په اخلاقو ئې بد اثر واچولو. الله ﷻ ددې آیت مبارك

په ذریعه د غنیمت مالونه زمونږ دلاسه واخستل او نبی کریم ﷺ ته ئې اوسپارل چې نبی کریم ﷺ په ټولو حاضرو غازیانو برابر برابر تقسیم کړی[1].

عباده رضی الله عنه فرمائیلی دی چې مونږ ټول نبی کریم ﷺ سره د بدر په غزا کښې شریك شو دسخت جنګ نه پس الله ﷻ دښمن ته شکست ورکړو ، زمونږ دغازیانو په دغه موقعه باندې درې ډلې جوړې شوې .

① یوه ډله دښمن پسې شوه چې هغوئ راواپس نشی .

② بله ډله داسې وه چې د غنیمت مال ئې راغونډ کړو .

③ دریمه ډله هغه وه چې د نبی کریم ﷺ خوا کښې په دې غرض راجمع شو چې هسې نه دښمن په نبی کریم ﷺ باندې حمله اونکړی .

کله چې جنګ ختم شو نو هر څوك خپل د پړاؤ ځائې او ډیرې ته راؤرسیدل . د غنیمت راجمع کولو ډلې اووئیل چې دا ټول غنیمت زمونږ کیږی ځکه چې دا مونږ راجمع کړې دې . د بل چا د حصې بالکل څه سوال نه پیدا کیږی. په دښمن پسې شوې ډلې اووئیل چې دا غنیمت هم زمونږ کیږی چې زمونږ د وجې نه ټول بیغمه شو او بې ویرې ئې دغنیمت مال راغونډ کړې شو. اوکومه ډله چې د نبی کریم ﷺ د حفاظت دپاره د نبی کریم ﷺ خواته راجمع شوې وو هغوئ اووئیل چې دا زمونږ کیږی ځکه چې دټولو نه زیات ضروری کار دغزا مونږ سر ته رسولې دې چې د نبی کریم ﷺ حفاظت مو کړې دې .

د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دې خبرو چې نبی کریم ﷺ خبر شو نو په هغې دا آیت مبارك نازل شو ، په هغې کښې دا ښکاره کړې شو چې دا مال د الله ﷻ دې ، ددې بل هیڅوك ، مالك اوحقدار نشته دی، سوا د هغه کسانو نه چې نبی کریم ﷺ ئې ورته ورکړی . نو نبی کریم ﷺ د الله ﷻ د حکم په جوړ دغه غنیمت ددغې غزا په ټولو شریکو خلقو باندې برابر برابر تقسیم کړو. او ددوئ د شان خلاف کوم اختلاف چې راپورته شوې وو ، په هغې ټول پښیمانه وو.

او هم د مسند احمد رحمه الله په حواله سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روایت دې چې ددې آیت مبارك شان نزول داسې هم منقول دې ، سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه اوفرمائیل چې د بدر په غزا کښې مې عمیر رضی الله عنه نومې رور شهید شو د هغوئ رضی الله عنه په بدل کښې مې سعید بن العاص مشرك اووژلو ، د هغه توره مې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړه ، او دا مې غوښتل چې دا توره هم زما شی . خو هرکله چې نبی کریم ﷺ د غنیمت په مال کښې ددې د شامولو حکم اوکړو . زه ددې حکم په منلو مجبوروم خو زړه مې ډیر خفه شو ، چې ورور مې شهید شو او دهغه په مقابل کښې مې وې دښمن قتل کړو هغه توره مې حاصله ړکه او هغه ځما څخه واخستلې شوه خو سره ددې ټولو خبرو درسول کریم ﷺ د ارشاد د تعمیل دپاره روان شوم چې دغه توره د غنیمت د مال په ډیری کښې شامله کړم. هلته لارسیدلې هم نه اوم چې نبی کریم ﷺ باندې دا آیت مبارك نازل شو. نبی کریم ﷺ راؤبللم او هغه توره ئې هم ماته راکړه[2].

---

[1] مسند أحمد رقم الحديث: ۲۱۶۸۵، ومستدرک للحاکم رقم الحديث: ۳۲۱۶، تفسير سورة الأنفال۔
[2] مسند أحمد رقم الحديث: ۱۴۶۳

ځینې روایتونو کښې داسې هم راغلي دي چې سعد ﷺ نبي کريم ﷺ ته دا عرض هم کړې وو چې دا توره دې ماته راکړې شي ، خو نبي کريم ﷺ ورته فرمائيلي وو چې دا نه يوازې زما ځيز دې چې چا ته يې ورکړم او نه ملك دې ، لا ړ شه د غنيمت په ټول ډيرى کښې ئې شامله کړه . الله ﷻ چې ځنګه فيصله اوکړه هغسې به کوؤ . [ابن کثير ، مظهري] (۱) کيدې شي چې دواړه واقعې پيښې شوې وى او چې ددې دواړو واقعو په جواب کښې دسورة انفال دا آيت مبارك نازل شوى وى .

**د آيت مبارك پوره تفسير دادې ::** انفال د نفل جمع ده ، معنى ئې فضل او انعام دې ، نفلي مونځ ، روژې ، صدقې وغيره ته هم نفل ځکه وئيلې شي چې هغه دچا په ذمه واجب نه وى ، خلق ئې پخپله خوښه کوى ،د قرآن عظيم الشان او سنت په اصطلاح کښې نفل، او انفال د غنيمت د مال دپاره هم استعماليږى چې کفارو نه په وخت د جهاد کښې حاصليږى ، خو قرآن عظيم الشان کښې دې معنى دپاره درې لفظونه استعمال شوى دى . ① انفال ② غنيمة ③ فيئ .

انفال لفظ هم په دې آيت مبارك کښې استعمال شوې دې .دغنيمة لفظ اوددې تفصيل ددې سورة په يوځلويښتم آيت مبارك کښې استعمال شوې دې چې تفصيل به ئې هم هلته بيانولې شي .دفيئ د لفظ اودهغه متعلق تفصيل بيان د سورة حشر ددې آيت مبارك : ﴿مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ﴾ لاندې راروان دې، ددې درې واړو لفظونو ترمينځه څه معمولي فرق شته خو هرکله چې دا فرق ډير لږ دې ځکه هر يو لفظ د بل په ځائې باندې مطلقا د مال غنيمت دپاره استعمالولې شى .

غنيمة عموما هغه مال ته وئيلې شي چې د جنګ او جهاد په ذريعه د مخالفې ډلې نه حاصل شوى وى .

فيئ هغه مال ته وئيلې شي چې بغير د جنګ او جهاد نه د کافرانو نه ترلاسه شوې وى ، خواه په تيښته کښې ترې پاتې شوى وى يا په خپلې خوښه ئې مسلمانانوته ورکړې وى . دنفل او انفال لفظ عموما هغې انعام دپاره استعمالولې شى چې امير جهاد ، يو خاص مجاهد ته د خاص دهغه امتيازى کارګذارئ په بدله کښې د غنيمت د حصې نه علاوه دانعام په ډول ورکړي .دامعنى په تفسير ابن جرير کښې دعبدالله بن عباس ﷺ نه نقل کړې شوې ده . [ابن کثير] (۲)

او کله نفل او انفال الفاظ مطلقا د مال غنيمت دپاره هم استعمالولې شى ، په دې آيت مبارك کښې اکثرو مفسرينو هم دغه عامه معنى اخستې ده .صحيح بخارى کښې د عبد الله بن عباس ﷺ نه هم دغه عامه معنى نقل کړې شوې ده .اوحقيقت هم دادې (۳) چې دا لفظ دعام او خاص دواړو معنو دپاره استعمالولې شى ، په دې بنا هيڅ اختلاف په کښې نشته ، اوددې ډير غوره تشريح او تحقيق هغه دې چې امام ابوعبيده ﷺ پخپل کتاب الاموال کښې ذکر کړې دې .

هغه فرمائى چې په اصل لغت کښې نفل ،دفضل او انعام معنى ورکوى .په دې امت باندې د الله ﷻ داخصوصى انعام دې چې د جهاد او جنګ په ذريعه کوم مال د کفارو چې د مسلمانانو مجاهدينو لاس ته راشى هغه مسلمانانودپاره حلال کړې شى . په پخوانو امتونو کښې دا

---

(۱) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۸ والتفسير المظهري: ج ۴، ص ۶

(۲) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۵

(۳) صحيح البخاري، كتاب التفسير، باب قوله يسألونك عن الأنفال الآية: ج ۲، ص ۶۶۹

دستورنه وؤ بلکه د مال غنیمت دپاره قانون دا وؤ چې هغه به د هیچا دپاره حلال نه وؤ ، ټول د غنیمت مالونه به په یو ځائې کښې ډیرې کیخودې شو. آسمانی تندر به راغلو او هغه به ئې اوسیزلو. دا به د الله ﷻ په نزد ددغې جهاد د قبلیدو نخښهٔ وه ، دا بهٔ هیڅ یو غازی دپاره حلال نه وو. که دهغې سوزولو دپاره به آسمانی اور تندر رانغلو نو معلومه به شوه چې دغه جهاد الله ﷻ نه دې قبول کړې ، او بیا به د سپیرتوب د وجې نه هم دغه مال ، چا نه استعمالولو.
د بخاری او مسلم په حواله د جابر ﷺ په روایت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : ماته پنځهٔ داسې څیزونه راکړې شوې دی چې زما نه مخکښې هیڅ یو پیغمبر ته او دهغه امت ته نه وو ورکړې شوی . د هغې پنځو څخه ئې یو دا هم اوخودل چې ﴿احلت لی الغنائم ولم تحل لاحد قبلی﴾ یعنی زما دپاره د غنیمت مالونه حلال کړې شو. حالانکه زما نه مخکښې چالره هم حلال نه وو]([1]).
دې آیت مبارک کښې د انفال حکم دا اوخودلې شو چې دا دالله ﷻ او د هغه درسول دی ، ددې معنی داده چې اصل ملکیت خو د الله ﷻ دې چې تصرف ئې د الله ﷻ درسول په لاس کښې ورکړې شو ، هغه بهٔ ئې د الله ﷻ په حکم دخپل صوابدید په جوړ تقسیموی.
له دې وجې د تفسیر د امامانو یو جماعت چې په هغې کښې حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ، مجاهد رحمه الله ، عکرمه رحمه الله ، سدی رحمه الله وغیره داخل دی ، دا فرمائی چې دا حکم د اسلام په شروع کښې وو او تر دې وخت پورې د غنیمت د تقسیم قانون نه وو نازل شوې ، او [هغه قانون] ددې سورت په پنځمه رکوع کښې راروان دې ، څکه چې دا ټول مال غنیمت د نبی کریم ﷺ په اختیار کښې ورکړې شوې وو ، چې تاسو ﷺ یې څنګه غوارئی نو تصرف کښې یې راولئ، او ددې څخه ورستو چې تفصیلی احکام راغلی دی ، په هغې کښې دا دی چې د ټول غنیمت پنځمه حصه به بیت المال کښې د مسلمانانو د ضرورت دپاره جمع کیږی. څلور حصې به ئې د یو خاص قانون په جوړ په دغه جهاد کښې د شریکو مجاهدینو ترمینځه تقسیمولې شی چې تفصیل یې په صحیح احادیثو کښې راغلې دې . هم په دې تفصیلی بیان سره د سورة انفال ددې رومبی آیت مبارک حکم منسوخ شو ، او بعضې حضراتو فرمائیلی دی چې دې باره کښې هیڅ ناسخ منسوخ نشته ، البته مال فیئې به ټول په ټوله د نبی کریم ﷺ په تصرف کښې وی او ددې تفصیل په سورة حشر کښې بیان شوې دې ، چې تاسو پخپل اختیار سره چې څنګه غوارئی نو عمل اوکړئی. دغلته ددې د احکامو بیانولو نه پس ارشاد ربانی دادې چې : ﴿وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوۡلُ فَخُذُوۡهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمۡ عَنۡهُ فَانۡتَهُوۡا ۚ﴾ .
دې تفصیل نه معلوم شو چې مال غنیمت هغه دې چې د جنګ او جهاد په نتیجه کښې د مسلمانانو مجاهدینو لاس ته راشی . مال فیئ هغه دې چې بې د څه جنګ او جهاد نه د مسلمانانو لاس ترې راشی ، د انفال لفظ دواړو دپاره په عام ډول هم استعمالیږی ، او خاص هغه انعام دپاره هم استعمالیږی چې یو غازی ته دجهاد یو امیر ورکړی.
په دې لړ کښې غازیانو ته دانعام ورکولو څلور صورتونه د نبی کریم ﷺ دزمانې مبارکې راسې جاری دې . یو صورت دادې چې امیر اعلان اوکړی چې په جهاد کښې څوک مخالف لره اووژنی نو دهغه ټول سامان به د ژوندی مسلمان وی . دا به د غنیمت په مال کښې نشی جمع

[1]) صحیح مسلم، کتاب المساجد ومواضع الصلاة: ج ۱، ص ۱۹۹، وصحیح البخاری، کتاب التیمم، باب وقول الله تعالیٰ: فلم تجدوا ماء الآیة: ج ۱، ص ۴۸

کولې . دويم صورت دادې چې د يو لوئې لښکر نه يو جماعت جدا کړې او يو خاص طرفته جهاد دپاره اوليږلې شي او ورته دا حکم اوشي چې ستاسو حاصل کړې غنيمت به تول ستاسو وي صرف پنځمه حصه به ترې بيت المال کښې د عامو مسلمانانو د خير ښيگړې دپاره جمع کولې شي . دريم صورت دادې چې بيت المال کښې جمع کړې پنځمې حصې نه د جهاد امير يو خاص غازي ته د خپل رائې په جوړ په انعام کښې دهغه مجاهد د يو امتيازي کاروائي په بدل کښې ورکړي. څلورم صورت دادې چې تول مال غنيمت نه څه حصه دې دپاره جدا کړې شي چې هغه خدمت کوؤنکو خلقو ته د انعام په شکل کښې ورکړې کوم چې د مجاهدينو د آسونو وغيره خدمت کوي او هغوئ سره په نورو کارونو کښې لاس امداد کوي . [ابن کثير] (۱).

د آيت مبارک د مضمون خلاصه دا شوه چې نبي کريم ﷺ ته په خطاب کولو سره الله ﷻ فرمائي چې خلق تاسو نه د انفال باره کښې تپوس کوي تاسو ﷺ ورته اووايئ چې انفال تول د الله ﷻ او د هغه د نبي کريم ﷺ دي يعني پخپله ئې څوک حقدار يا مالک نشته بلکه د الله ﷻ په حکم سره دهغه نبي کريم ﷺ چې څه فيصله کوي هم هغه به جاري کيږي .

**خپل مينځ کښې د خلقو اتفاق او اتحاد په تقوى او د الله ﷻ په ويرې اړه لري** : ددې آيت مبارك په آخري جمله کښې فرمائي چې : ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۠ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ [نو تاسو د الله ﷻ نه اوويريږئ] اوپه خپل مينځ کښې تعلقات ښه ساتئ [ او د الله ﷻ او د رسول حکم منئ که تاسو په سچه مومنان يئ].

دې کښې اشاره هغه واقعې ته ده کومه چې د بدر د غزا په موقعه چې په کښې د اموال غنيمت دتقسيم متعلق صحابه کرامو ﷺ په مينځ کښې راغلې وه چې دهغه په وجه د ناچاقئ او خفگان خطره وه ، الله ﷻ پخپله د غنيمت د مال د تقسيم فيصله په تير شوي آيت مبارك سره اوفرمائيله ، اوس په دې آيت مبارك کښې ورته د زړونو د اصلاح او خپل مينځ کښې د تعلقاتو ښۀ کولو طريقه خودلې شوېده چې مرکزي نقطه ئې تقوى او د الله ﷻ ويره ده .

تجربه گواه ده چې کله د تقوى او د الله ﷻ دويرې غلبه شي نو لوئې لوئې جنگونه جگړې په منټونو کښې ختميږي خپل مينځ کښې د کرکې او دښمنئ غرونه د دوړې په شکل کښې والوځي . لکه مولانا رومي ﷫ د تقوى دارو خلقو حال داسې بيانوي چې :

خود چه جائے جنگ وجدل نيك وبد كيں     الم از صلحها هم مير مد(۲)

يعني داخلق خو جنگ سر څه غرض څکه نه کوي چې د دوئ زړونه د الله ﷻ په ويره اومينه کښې مصروف وي، د مخلوقاتو د صلح او درستگئ دپاره د تعلقاتو زياتولو فرصت ورته څنگه ملاويدې شي .

بسودائے جانان زجان مشتغل     بذكر حبيب از جهان مشتغل

ترجمه: د جانان په فکر کښې د ځان نه خبر نه وي ، د محبوب په ياد کښې د تول جهان نه ناخبره وي .

---

(۱) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۰۹

(۲) ترجمه: د دے خلقو جنگ او جهگړے سره په څه دلچسپي وي، دوی ته دخلقو په مينځ کښې صلح او دوستۍ دپاره هم فراغت نه ملاويږي۔

په دې بنا دې آيت مبارك كښې د تقوى تدبير ئې اوخودلو او وې فرمائيل چې ﴿وَاَصۡلِحُوۡا ذَاتَ بَيۡنِكُمۡ﴾ [اوپه خپل مينځ كښې تعلقات ښه ساتئ]. او ددې زياته تشريح ئې داسې كړې ده:
﴿وَاَطِيۡعُوا اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗۤ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ﴾ [اود الله ﷻ اودرسول حكم منئ كه تاسو په سچه مومنان يئ].
يعنى ايمان د فرمانبردارئ تقاضا كوى او فرمانبردارى د تقوى نتيجه ده، او كله چې دا ځيزونه خلقو ته حاصل شى نو خپل مينځ كښې دهغوئ جګړې پخپله ختمې شى او د دښمنئ ځائې ئې مينه او محبت اونيسى.

| اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ الَّذِيۡنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ |
| --- |
| بيشكه \| چې مومنان \| هغه كسان دى \| كله چې \| ياد كړې شئ الله |
| كه تاسو په سچه مومنان يئ \| .............مومنان هغه كسان دى چې كله دالله ذكر واورى \| نو |
| وَجِلَتۡ قُلُوۡبُهُمۡ وَاِذَا تُلِيَتۡ عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتُهٗ زَادَتۡهُمۡ |
| نواويريږى \| زړونه دهغوئ \|اوهر كله چې \|الوستې كيږى \| په هغوئ \| آيتونه دهغه \| نو زياتوى هغوئ |
| زړونه ئې اوويريږى \| او چې كله پرې دهغه آياتونه اولوستې شى \| ...................نو د هغوئ |
| اِيۡمَانًا وَّعَلٰى رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُوۡنَ الَّذِيۡنَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ |
| په لحاظ دايمان سره \|اوپه رب خپل باندې \|هغوئ بروسه كوى \| هغه كسان دى \| چې قائموى \| مونځ |
| ايمان پرې نورهم مضبوط شى \| او په خپل رب باندې بهروسه كوى \|هغه خلق چې دمونځونو پابندى كوى |
| وَمِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ |
| اودهغه مال نه \|چې وركړې دې مونږ هغوئ له \|خرچ كوى \| دغه كسان چې وى \| هم هغوئ \| مومنان دى |
| اوچې مونږ ورته څه وركړى دى دهغې نه [دالله ﷻ لار كښې] خرچ كوى \| ..........نو دغه كسان |
| حَقًّا لَهُمۡ دَرَجٰتٌ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ وَمَغۡفِرَةٌ وَّرِزۡقٌ كَرِيۡمٌ |
| په حقه سره \|دى دپاره دهغوئ \| درجې \| په نز \|درب دهغوئ \|اوبښانه ده \| اورزق دې \| دعزت |
| په رښتيا مومنان دى \| دوئ دپاره دخپل رب سره لوئې درجې دى \| او بخشش اودعزت رزق دې |

## آسان ترجمه قرآن

مؤمنان خو هغه خلق دى چه كله ددوى مخكښې دالله ذكر وشي نو د دوى زړونه په ويره شي او كله چه دوى باندې دالله آيتونه لوستلې شي نو هغه آيتونه د دوى ايمان ته نوره ترقى وركوى او دوى په خپل پروردګار باندې اعتماد كو، كوم چه مونځ كوى او مونږ چه كوم رزق وركړې دې، دهغې نه (فى سبيل الله) خرچ كوى هم دا خلق دي چه دوى حقيقت كښې مؤمنان دي دوى د پاره د دوى د رب څخه لوئې درجې دي، مغفرت دې او دعزت رزق دې.

## خلاصه تفسير

[بس] ﴿ اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ الَّذِيۡنَ ﴾ ايمان والا هم هغه دي ﴿ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتۡ قُلُوۡبُهُمۡ ﴾ چه كله [ددوي په مخكښې] دالله ﷻ ذكر راشي نو [دده ﷻ دعظمت داستحضار سره] ددوئ زړونه ويريږي ﴿ وَاِذَا تُلِيَتۡ عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتُهٗ زَادَتۡهُمۡ اِيۡمَانًا ﴾ او كله چه دالله ﷻ ايتونه په دوي لوستلې شي نودغه ايتونه ددوي

ایمان نور هم زیات [مضبوط] کوي ﴿ وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴾ او دغه خلق په خپل رب باندې توکل ساتي [او] ﴿ الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴾ چه مونځ قائموي او چه مونږ دوي ته څه ورکړي دي په هغې کښې خرچ کوي [نو] ﴿ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ﴾ رښتوني ایمان والادي دا خلق ﴿ لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾ ددوي دپاره لوئې لوئې درجې دي ددوي درب سره ﴿ وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴾ او [ددوي دپاره] مغفرت دې او د عزت روزي ده.

## معارف او مسائل

**د مؤمن مخصوص صفات:** دې آیتونو کښې د هغه مخصوص صفات بیان دي چې هر مؤمن دپاره پکار دی په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې هر مؤمن د ې دخپلو ظاهری، باطنی، کیفیتونو او صفاتو جاج اخستل جاری لری، که دا صفات په کښې موجود وی نو د الله ﷻ شکر دې ادا کوی چې الله ﷻ ورته د مؤمنانو صفات ورکړل که څه صفت په کښې د سره نه وی یا ناتوان او کمزورې وی نو دهغې د حاصلولو او مضبوطولو کوشش دې کوی.

**ړومبې صفت د الله ﷻ ویره:** ړومبې صفت ئې دا بیان کړو چې: ﴿ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ ﴾ [مومنان هغه کسان دی چې کله د الله ذکر اوشي نو زړونه ئې اوویریږی]. مطلب دا چې د الله ﷻ لوئې او مینه د دوئ په زړونو کښې داسې داخل وی چې دهغې یوه تقاضا هیبت او ویره ده. د قرآن عظیم الشان په یو بل آیت مبارك کښې ددې ذکر کولو سره داسې مینه لرونکو ته زیرې ورکړې شوې دې: ﴿ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ ﴾. [یعنی زیرې ورکړه هغه عاجزه او نرم طبیعت والا خلقو ته چې د هغوئ زړونه ویریږی چې کله دهغوئ په وړاندې د الله ﷻ ذکر اوکړې شي] دې دواړو آیتونو کښې د الله ﷻ د ذکر او دهغه د یادولو دیو خاص تقاضا بیان دې. یعنی د هیبت او ویرې او په بل آیت مبارك کښې د الله ﷻ د ذکر دا خاصیت بیان کړې شوې دې چې دې سره زړونه تسلی بیا مومی لکه فرمائی چې: ﴿ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ﴾.

دې نه معلومه شوه چې په دې آیت مبارك کښې دکوم خوف او هیبت چې ذکر دې هغه د زړهٔ آرام او تسلئ سره بې سمونه نه دې، یعنی د الله ﷻ ذکر سره زړهٔ کښې پیدا کیدونکې ویره هغسې هیچرې نه ده څنګه چې د یو درنده یا دښمن ویره د زړهٔ سکون او آرام بربادوی. هم دغه وجه ده چې دلته د خوف د لفظ په ځائې د وجل لفظ راوړلې شو. د کوم ترجمه چې ویره نه ده. بلکه هغه هیبت دې چې د لویودشان د لویئ په سبب زړه کښې ئې پیدا کیږی. ځینې مفسرینو فرمائیلی دی چې دلته د الله ﷻ د ذکر او یاد نه مراد دادې چې څوك ګناه کولو ته تیار شی، په دغه حال کښې ورته الله ﷻ رایاد شي نوهغه د الله ﷻ دعذاب نه اوویریږی او دغې ګناه کولو نه ایسار شی، په دې صورت کښې به د خوف نه مراد هم د عذاب ویروی. [بحر محیط][1].

**بل صفت په ایمان کښې وده کیدل دی:** د مؤمن دویم صفت دا خودلې شوې دې چې کله د هغه عذاب په مخکښې د الله ﷻ آیتونه تلاوت کولې شی نو ایمان ئې وده کوی. د ایمان د ودې کولو نه مطلب دادې چې د ایمان طاقت، شان او نور کښې وده اوکړی څنګه چې په دې باندې د تولو عالمانو کرامو، مفسرینو او محدثینو اتفاق دې، تجربهٔ او مشاهده داده چې په نیکو

[1]) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ٦، ص ٢١

عملونو سره په ایمان کښې قوت او د سینې داسې فراخی راپیدا شی چې نیک عملونه دهغه طبعی عادت جوړ شی . اودهغې په پریخودو سره ورته تکلیف وی . او دګناه نه ئې طبعی کرکه پیدا شی چې خواته ئې هم نه ورځی . د ایمان دې مقام ته په حدیث کښې د ایمان حلاوت وئیلې شوې دې لکه په نظم کښې چې :

**و اذا حلت الحلاوة قلبا نشطت فی العبادة الاعضاء**

یعنی کله چې د چا په زړه کښې د ایمان حلاوت ځائې اونیسی نو دهغه لاسونه ، پښې او ټول اندامونه په عبادت کښې آرام او خوند بیا مومی .

په دې بنا د آیت مبارك د مضمون خلاصه دا شوه چې د کامل مؤمن دا صفت پکار دې چې کله دهغه په مخکښې د الله ﷻ آیتونه لوستې شی نو دهغه په ایمان کښې صفائی او وده راځی او نیکو عملونو ته ئې شوق زیاتیږی . دې نه هم دا معلومه شوه چې څنګه عام مسلمانان قرآن عظیم الشان لولی او آوری چې نه خو د قرآن عظیم الشان دادب او احترام څه خیال ساتی ، نه ئې د الله ﷻ د شان په لوییځ څه نظر وی ، نودا مقصودی تلاوت نشو اونه ترې اعلی نتیجې پیدا کیږی اګر چې ثواب نه دا هم خالی نه وی .

**دریم صفت په الله ﷻ باندې توکل کول دی** :: دریم صفت د مؤمن ئې دا بیان کړو چې هغه په الله ﷻ باندې توکل کوی مطلب دادې چې پخپلو ټولو عملونو او حالاتو کښې د هغه مکمل اعتماد اوتکیه یوازې د الله ﷻ په ذات مبارك وی . صحیح حدیث کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ددې دا معنی نه ده چې خپلو ضروریاتو دپاره مادی سامان او انتظام د سره پریږدی . بلکه مطلب دادې چې یوازې هم په دې یې آسره نه وی بلکه ددې د پکارولو نه پس ټوله معامله الله ﷻ ته په داسې شان سپاری چې دغه ټول سامان او انتظامات هم د الله ﷻ پیدا کړی څیزونه دی.او ددې ثمرات او نتیجې به هم الله ﷻ پیدا کوی، یعنی هر څه یوازې د هغه په خوښه کیږی.

لکه په یوحدیث شریف کښې راغلی دی چې : ﴿اجملوا فی الطلب و توکلوا علیه﴾[یعنی د روزئ حاصلولو او د خپلوحاجتونو پوره کولو دپاره په مینځنئ درجه کښې طلب کوئی او دمادی اسبابو په ذریعه کوشش کوئی خو اصل معامله الله ﷻ ته سپارئ] خپل زړونه او دماغونه صرف په مادی انتظاماتو او اسبابو کښې اننبلولی مه لرئی.

**څلورم صفت د مونځ قائمول** :: د مؤمن څلورم صفت ئې د مونځ قائمول اوخودل ، دلته یوه خبره یاده لرئ چې دمونځ کولو په ځائې ئې مونځ قائمول څکه فرمائی چې مونځ سره د ټول آدابو اوشرطو نوداشان په ځائې راوړل دی څنګه چې نبی کریم ﷺ پخپل قول او عمل سره خودلی دی ، څکه چې بغیر ددې نه مونځ کول خو ورته وئیلې شی لیکن مونځ قائمول ورته نشی وئیلې . قرآن پاك کښې چې د مونځ کوم فوائد او آثار او برکات ذکر شوی دی اوفرمائیلې شوی دی چې : [اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَاۗءِ وَالْمُنْكَرِ] یعنی مونځ د بې حیایئ او هرې ګناه نه منع کوی. دا هم په اقامت صلوة باندې موقوف ده.هر کله چې د مونځ په آدابو کښې کمې راشی نو د فتوې په لحاظ سره خو ددهٔ مونځ ادا شو خو مونځ کښې چې څومره کوتاهی شوې ده دهغې به مقدار به ترې برکات ختم شی. او په څینې صورتونو کښې بهٔ ترې دا ټول برکات ختم شی .

**پنځم صفت ، دالله تعالی لار کښې خرچ کول:** د مؤمن پنځم صفت دا بیان شوېدې چې الله تعالی دۀ ته کوم رزق ورکړی دې هغه دالله تعالی په لار کښې خرچ کړي . دا د الله تعالی په لار کښې خرچ کول عام دی . دې کښې ټول خیرخیرات ، صدقات ، وقف ، صله چې په کښې زکوة ، صدقة الفطر وغیره واجبات هم شامل دی داخل دی . او نفلی صدقات ، او تبرعات ، هم ، د میلمنو ، بزرګانو مالی خدمت هم.

د مؤمن د پنځم صفت بیانولو نه پس ارشاد فرمائی چې : [أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا] یعنی هم داسې خلق رېښتونی مسلمانان دی .ددوئ ظاهر او باطن یو شان وی ، او ژبه او زړۀ ئې متفق وی . ګنی په چاکښې چې دا صفات نه وی هغوئ خو په خپله باندې [اشهدان لااله الاالله واشهدان محمدا رسول الله] وائی خو ددوئ په زړونو کښې نه د توحید رنګ شته ې او نه د رسول ﷺ اطاعت کوونکی دی . ددوئ عملونه ددوئ د اقوالو تردید کوی. دې آیت مبارک کښې دې طرفته اشاره ده چې د هر یو حق یو حقیقت وی نو هر کله چې هغه حاصل نه وی نو حق نه حاصلیږی.

یو سړی حسن بصری رحمه الله نه تپوس اوکړو چې آئې ابو سعید آیا ته مؤمن یې ؟ نو هغوئ رحمه الله اوفرمائیل چې ائې روره د ایمان دوه اقسام دی . که ستا دسوال مطلب دا وی چې څه په الله تعالی دهغه په فرښتو ، دهغه په کتابونو اورسولانو او په جنت او په دوزخ او د قیامت په حساب و کتاب باندې ایمان لرم نو جواب دادې چې بیشکه څه مؤمن یم . اوکه ستا د سوال مطلب دا وی چې څه هغه مؤمن یم کنه چې د کوم ذکر په سورة انفال کښې راغلې دې نو ماته هیڅ نه دی معلوم چې څه په هغوئ کښې داخل یم او که نه . د سورة انفال د آیت نه هم هغه آیات مراد دی چې کوم اوس پورته ذکر شو.

دې مذکوره آیتونو کښې د رېښتونی مؤمن صفاتو او علاماتو بیانولو نه پس فرمائی چې : [لَهُمْ دَرَجَاتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ]

دې کښې دریښتونی مؤمن دپاره د دریو څیزونو وعده فرمائیلې شوې ده . یوه درجه عالیه ، بله مغفرت ، او دریم د بهترین رزق.

تفسیر بحر محیط کښې دی چې دې نه وړاندې آیت مبارک کښې چې د مؤمن کوم صفات بیان شوی دی هغه په درې قسمه دی . یو هغه چې دهغې تعلق زړۀ او باطن سره دې . لکه ایمان ، ویره ، الله تعالی باندې توکل . بل هغه چې د هغې تعلق بدنی عملونو سره دې . لکه مونځ وغیره ، دریم هغه چې دهغې تعلق د انسان مال سره دې لکه دالله په لار کښې خرچ کول .

ددې دریو اقسامو په بدله کښې د دریو انعامونو ذکر دې . درجات عالیه د قلبی او د باطنی صفاتو په مقابله کښې ، او مغفرت دهغه صفاتو په مقابله کښې چې هغه د انسان دظاهری بدن سره تعلق ساتی . لکه مونځ روژه وغیره . لکه یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې مونځ د ګناهونو کفاره ده . او رزق کریم دالله تعالی په لار کښې د خرچ کولو په مقابله کښې راغلې دې . تاسو چې څه خرچ کړل دهغې نه به درته بهتر او ډیر زیات په آخرت کښې ملاویږی[1] .

---

[1]) تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج۶، ص ۳۲

كَمَآ　اَخْرَجَكَ　رَبُّكَ　مِنْۢ بَيْتِكَ　بِالْحَقِّ ۪

د غنیمت معامله داسې ده لکه چې| را ایستلي وې ته| رب ستا| دکورستا نه | په حقه سره |

لکه څنګه چې ته خپل رب د یو مصلحت په بناء د خپل کور نه راوویستلې

وَاِنَّ فَرِيْقًا　مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ　لَكٰرِهُوْنَ ۙ　يُجَادِلُوْنَكَ

او بیشکه ایوه ډله| د مومنانونه | خامخا ناخوښه وه| جګړه ئې کوله ستا سره|

اودمسلمانانو یوې ډلې ته داخبره ډیره ګرانه ښکاریده |هغوئ تاسره په یوه حق خبره کښې جګړه کوله

فِي الْحَقِّ　بَعْدَ مَا　تَبَيَّنَ　كَاَنَّمَا　يُسَاقُوْنَ

ددې حق په معامله کښې| روستو دهغې نه |چې صفا ښکاره شوې وه| لکه چې|بوتللې کیږي هغوئ

حالانکه هغه حق ښکاره شوې وو| او داسې جګړه ئې کوله لکه چې هغوی مرګ طرف ته راښکلی شي

اِلَى الْمَوْتِ　وَهُمْ　يَنْظُرُوْنَ ۚ

مرګ ته | اوهغوئ ورته | ګوری |

............ او هغوئ ورته[په سترګو] ګوری |

**آسان ترجمه قرآن**

(دمال غنیمت دتقسیم) دا معامله داسې ده لکه چه ستا رب تا لره دخپل کورنه د حق د پاره وویستلو حال دا چه د مسلمانانو یوې ډلې ته دا خبره خوښه نه وه هغوی تاسره د حق په معامله کښې د هغې د واضح کیدو باوجود داسې بحث کولو لکه چه دوی مرګ ته راښکلې شي، اودوي (هغې ته) په سترګو باندې ګوري.

**خلاصه تفسير**

[دمال غنمت دخلقو د مرضئ موافق نه تقسیمیدل بلکه دالله ﷻ دطرفه ددې تقسیمیدل اګر چه بعضوخلقوته طبعي لحاظ سره ګران پریوتل خود ډیرو مصالحو له کبله داخیر او بهتره ده. اودا معامله خلاف طبع ده خو د ډیرو مصالحو په وجې سره هم داسې ده] ﴿كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ﴾ لکه څنګه چه ستا رب ستا د کور [او کلي] نه دمصلحت سره تاسو [بدر طرف ته] روان کړني ﴿ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ ۙ﴾ اودمسلمانانو یوه ډله [دخپل شمیر او سامان جنګ دلږ والي په وجه طبعي لحاظ سره] دانې ګران ګڼړل ﴿يُجَادِلُوْنَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ ﴾ هغوئ ددې مصلحت [په کار] کښې [یعني په جهاد اودلښکر دمقابله په معامله کښې] ددې نه پس چه دهغې ظهورشوې وو [دخپل بچ کیدلو دپاره دمشورې په طور] ﴿ كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ۚ﴾ ستاسوسره داسې جنګیدل چه باید څوك دوې مرګ طرف ته بوخي او هغوي [مرګ باید] چه ګوري [خو آخرکار انجام ددې هم ښه شو چه اسلام غالب اوکفر مغلوب شولو].

**معارف او مسائل**

دسورة په شروع کښې دابیان کړې شوې دې چې د سورة انفال زیات تر مضامین په کافرانو او مشرکانو باندې د عذاب او انتقام او په مسلمانانو باندې د احسان او انعام باره کښې دی. او دې لړ کښې دواړو دپاره د عبرت او نصیحت احکام بیان شوی دی. ددې ټولو څخه زیاته

ړومبئ د زيات شان والا واقعه دبدر غزا وه چې كافرانو سره د ډير سامان او سره د زيات شمير او قوت ، جانی ، مالي نقصانات بيا موندل او ماتې شكست ئې اوخوړو. اگر چې مسلمانان قوت ، شمير او مال او سامان كښې ډير كم وو. خو بيا هم دوئ ته يو عظيم الشان فتح ملاؤ شوه . دې سورت كښې د بدر واقعه ډير په تفصيل سره بيان كړې شوې ده.او دا ددې پورتنو آيتونو ځنځه شروع كيږى .

ړومبى آيت مبارك كښې ددې خبرې ذكر دې چې دبدر په موقع ډيرو مسلمانانو دا خبره نه خوښوله چې جهاد دې اوكړې شي. خو الله ﷻ د خپل خاص حكم په ذريعه خپل حبيب ﷺ ته د جهاد حكم وركړو. نو كومو خلقو باندې چې دجهاد خبره ښه نه وه لگيدلې هغوئ هم رسول اكرم ﷺ سره شامل شو. ددې خبرې د بيانولو دپاره چې قرآن عظيم الشان كوم الفاظ استعمال كړي دى هغه د غور وړ دى .

اول دا چې د آيت مبارك شروع [كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ] ځنځه كيږى . دې كښې د كما لفظ يو داسې لفظ دې چې تشبيه دپاره استعماليږى ، نو دا د غور خبره ده چې دلته د څه څيز تشبيه ده. مفسرين حضرات ددې مختلف توجيهات بيانوى. امام تفسير ابو حيان رحمه الله ددې پشان پنځلس اقوال نقل كړى دى. هغې كښې زيات اقرب درې احتمالات دى.

**اول احتمال** :: او ل دا چې ددې دبيانولو مقصد دادې چې د غزوۀ بدر په موقع باندې صحابه كرام رضي الله عنهم كښې د غنيمت په مال باندې خپلو كښې اختلاف پيدا شوې وو. بيا دالله ﷻ په حكم هغوئ د رسول اكرم ﷺ دحكم تعميل او كړو او ددې ډير ښه نتائج او بركتونه ښكاره شو. داشان ددې جهاد شروع كښې څه خلق په دې خفه وو او خوښه ئې نه وه خو بيا دالله ﷻ د حكم مطابق هغوئ اومنل او ددې ډير مفيد او ښكلى ثمرات واضح شو. دا توجيه فراء او مبرد طرفته منسوب ده . [بحر محيط][1] بيان القرآن كښې دې ته ترجيح وركړې شوې ده . لكه ځنگه چې خلاصه تفسير كښې بيان شوى دى .

**دويم احتمال** :: دويم احتمال دادې چې تير شوى آيتونو مباركو كښې مؤمنانو دپاره د آخرت د اعلى درجاتو او مغفرت او باعزته رزق وعده كړې شوې وه. دې آيت مبارك كښې ددې وعدې د يقينى كيدو ذكر كړې شوې دې ، يعنى اگر چې د آخرت وعده خو په ستر گو نه ښكارى خو لكه ځنگه چې د بدر په موقع باندې دالله ﷻ د نصرت اوعده رښتونې شوه داشان به آخرت كښې هم دالله ﷻ وعده پوره كيږى ، [تفسير قرطبى بحواله نحاس][2].

**دريم احتمال** :: دريم احتمال هغه دې كوم چې ابو حيان رحمه الله د پنځلو اقوالونقل كولو ځنځه روستو ليكلې دې چې ماته په دې كښې يو قول باندې هم اطمينان نه وو. يوه ورځ ما دې آيت مبارك كښې غور كولو او ستر گې مې ورغلې . خوب وينم چې يو ځائې ته روان يم او ما سره يوبل كس هم دې .گويا ما ورسره ددې آيت متعلق بحث كولو او ما ورته وئيل چې ماته داسې مشكل راپيښ شوې دې . او ورته مې هغه بيان كړل چې ماته كوم مشكل ددې آيت مبارك متعلق راپيښ شوې وو. داسې معلوميږى چې دې ځائې كښې يو لفظ محذوف دې . بيا

---

[1] ) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج٦، ص ٣٢، ٣٣

[2] ) تفسير القرطبى تحت هٰذه الآية: ج٧، ص ٣٦٨

يكدم خما زړه كښې راغلل چې دې ځائې كښې د نصرك لفظ محذوف دې. ما پخپله دا خوبښ كړو هغه سړى هم كوم سره چې ما بحث كولو. كله چې بيدار شوم نو ما په دې غور اوكړو نو ځما اشكال ختم شو. څكه چې دې صورت كښې لفظ د كما تشبيه دپاره نه دې بلكه د سبب بيانولو دپاره استعمال شوې دې. او ددې معنى داشوه چې د بدر په غزه كښې د الله ﷻ د طرفه چې كوم خاص مدد او مدد رسول اكرم ﷺ سره شوې وو دهغې سبب داوو چې په دې جهاد كښې رسول اكرم ﷺ چې څه اوكړل هغه ئې صرف خپلې رائې سره اونه كړل بلكه د الله ﷻ په حكم سره ئې اوكړل. د الله ﷻ په حكم سره رسول اكرم ﷺ دخپله كوره اووتل. او د حق اطاعت هم دا نتيجه پكار ده اوهم داسې كيږى چې د الله ﷻ مدد او نصرت هغه سره وى[1].

بهر حال د آيت مبارك په دې جمله كښې دا دري واړه معنې محتمل او صحيح دى. دې څخه روستو كه په دې نظر واچولې چې نو قرآن عظيم الشان ددې جهاد دپاره پخپله د رسول اكرم ﷺ وتل نه دى ذكر كړى. بلكه دا ئې اوفرمائيل چې الله ﷻ اوويستل. دې كښې اشاره دې طرفته ده چې د رسول اكرم ﷺ عبديت او اطاعت حقيقت كښې دالله ﷻ فعل دې يعنى كوم څه چې د رسول اكرم ﷺ د اندامونو مباركو څخه صادريږى هغه په حقيقت كښې د الله ﷻ حكم وى. لكه څنګه يو حديث قدسى كښې د رسول اكرم ﷺ ارشاد مبارك دې چې كله يو بنده د بندګئى او عبديت په ذريعه دالله ﷻ تقرب حاصل كړى نو الله ﷻ ددۀ باره كښې فرمائى چې څه ددۀ سترګې جوړيږم، هغه چې څه ګورى نو ځما په ذريعه ګورى، څه دده غوږونه جوړ شم، هغه چې څه آورى نو ځما په ذريعه آورى: څه دده لاسونه او پښې جوړ شم، هغه چې څه نيسى نو ځما په ذريعه ئې نيسى، او دې چې كوم طرفته ځى نو ځما په ذريعه ځى[2]. ددې خلاصه دا شوه چې د الله ﷻ خاص نصرت او مدد ددۀ ملګرې وى. ددۀ د سترګو او لاسونو پښو څخه چې كوم كارونه صادريږى هغه په حقيقت كښې دالله ﷻ د مرضئ او منشاء مطابق وى.

رشتهٔ در گردنم افگنده دوست　　　میبرد هر جا که خاطر خواه اوست

**توجمه:** په غاړه كښې مې د دوست رشته او تعلق اچولې دې، هغه چې چرته يې زړۀ غواړى بوزې مې،

خلاصه دا شوه چې لفظ اخرجك كښې اشاره ده چې د رسول اكرم ﷺ جهاد دپاره وتل حقيقت كښې د الله ﷻ د حكم مطابق وو چې د هغه ذات نه ښكاره شوه.

د لته دا خبره هم قابل غور ده چې [اَخْرَجَكَ رَبُّكَ] ئې اوفرمائيل. دې كښې ئې دالله ﷻ صفت رب سره اشاره اوفرمائيله چې دې جهاد ته تلل د رب د ربوبيت او تربيت د شان مطابق وو. څكه چې ددې په ذريعه د مظلوم او مقهور مسلمانانو دپاره د فتح او د مغرور او ظالم كافرانو دپاره اول د عذاب مظاهره كول وو.

---

[1]) تفسير البحر المحيط تحت هٰذه الآية: ج ۶، ص ۲۵

[2]) صحيح البخارى، كتاب الرقاق، باب التواضع: ج ۲، ص ۹۶۳

[مِنۢ بَيْتِكَ] ددې معنی ده ستاسو د کور څخه. مطلب دا شو چې ستا رب ويستلی ته ستا د کور څخه. د جمهورو مفسرينو په نزد ددې کور څخه مراد د مدينې منورې کور يا پخپله مدينه طيبه ده. او د هجرت څخه روستو رسول اکرم ﷺ دې ځائې کښې ميشته شو. ځکه چې د بدر واقعه د هجرت په دويم کال راپيښه شوې وه. دې سره ئې د [بِالْحَقِّ ۳] لفظ اضافه اوکړه او دائې اوفرمائيل چې دا ټول هر څه د حق راوستلو او د باطل ختمولو دپاره وو. د نورو حکومتونو په شان د ملك قبضه کولو حرص يا د بادشاه غصه په کښې شامله نه وه.

د آيت مبارك په آخر کښې ئې اوفرمائيل چې [وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ ۝] يعنی د مسلمانانو يوې ډلې دا نه جهاد ګران ګڼړلو او نه يې خوښولو. صحابه کرامو ﷺ ته دا مشکل ولې او څنګه راپيښ شو. په دې د پوهيدو دپاره په راتلونکی آيت مبارك باندې پوهيدلو د پاره د بدر دغزه اولنی حالات او ددې اسباب معلومول مناسب دی، په دې وجه د بدر پوره واقعه بيانولی شی.

دابن عقبه او ابن عامردبيان مطابق واقعه څه په دې ډول ده چې رسول اکرم ﷺ ته مدينه منوره کښې دا خبر ملاؤ شو چې ابو سفيان يو تجارتی قافلې سره مکې مکرمې ته روان دې. او دې تجارت کښې دمکې مکرمې ټول قريش شامل دی.دابن عقبه دبيان مطابق دمکې مکرمې هيڅ يو قريشی سړې يا زنانه په دې کښې باقی پاتې نه وو چې د هغه په دې کښې حصه نه وی. که چا سره يومثقال سره زرهم وو نوهغه هم په دې کښې خپله حصه اچولې وه. ددې قافلې د پوره سرمايه مطابق ابن عقبه فرمائی چې دا پنځوس زره ديناره وو. دينار د سرو زرو يوسکه ده چې دڅلورنيمو ماشو برابروی.د سرو زرو د موجوده حيثيت مطابق ددې قيمت دوه پنځوس روپئ دې، او ددې پوره قيمت شپږويشت لاکھ روپئ جوړيږی .او دا ننن صبا نه بلکه نن څخه څوارلس سوه کاله د آکاهو شپږويشت لاکھ دی چې نن ددې څخه شپږويشت کروړه روپئ جوړيږی. ددې تجارتی قافلې حفاظت اود کاروبار دپاره د قريشو اويا نوجوانان او سرداران ورسره وو. ددې څخه معلومه شوه چې د اتجارتی قافله حقيقت کښې د قريشو يو ډله وه.

بغوی د ابن عباس ﷺ څخه روايت کوی چې دې قافله کښې د قريشو څلويښت سوارهٔ د قريشو سرداران وو. دوئ کښې عمروبن العاص، محزمه بن نوفل خاص طور سره قابل ذکر دی. او دا هم معلوم دی چې د قريشو د ټولو څخه لوئې طاقت ددوئ هم دا تجارت او تجارتی سرمايه وه. او ددې په ذريعه دوئ رسول اکرم ﷺ او ددهٔ ملګری تنګ کړې وو او مدينې منورې ته ئې په تللو مجبوره کړې وو. هغه وخت کښې کله چې رسول اکرم ﷺ ته د شام د سفر څخه ددې د واپسئ خبر اوشو نو د رسول اکرم ﷺ رائې دا وه چې ددې قافلې سره دې مقابله اوکړې شی چې د قريشو زور مات شی. صحابه کرامو ﷺ سره مشوره اوکړې شوه. دا د رمضان مياشت وه. د اول څخه د جنګ تياری نه وه. ځينې حضراتو د بهادرئ او همت اظهار اوکړو. او ځينو په دې کښې زړه وهلو. ځکه رسول اکرم ﷺ ټولو باندې په جهاد کښې شرکت لازم نه کړو. بلکه دا حکم ئې اوفرمائيلو چې چاسره سورلی وی نو هغوئ دې مونږ سره شرکت اوکړی. په دې وجه ډير خلق جهاد کښې د شرکت څخه پاتې شو. کومو خلق چې دا غوښتل چې په دې جهاد کښې شرکت اوکړی خو دهغوئ سورلئ بهر صحرا کښې وې نو اجازت ئې اوغوښتلو چې خپلې سورلئ راولی. خو دومره وخت نه وو ځکه دا حکم اوشو

چې چا سره سورلۍ موجود دی او هغوئ جهاد کښې تګ غواړي نو صرف هغوئ دې روان شي.د بهر څخه د سورلوراغوښتلو وخت نشته دې . ددې په وجه ډیر کم خلق جهاد کښې د شرکت دپاره تیار شو. او چا چې په کښې د سره شرکت کول نه غوښتل نو د هغه سبب هم د اوؤ چې رسول اکرم ﷺ یو خو د ټولو جهاد کښې شریکیدل ضروري نه وو ګرځولی ، بلکه دا چې دد غه خلقو تسلي وه چې دغه تجارتي قافله ده څه جنګي لښکر نه دې چې د مقابلې دپاره نبی کریم ﷺ او د نبی کریم ﷺ ملګرو ته د زیاتو مجاهدینو ضرورت شي. په دې وجه په دې جهاد کښې زیات تعداد کښې صحابه کرام رضي الله عنهم شریك نه شو.

کله چې نبی کریم ﷺ سره ددغه لښکر روان شو او بیرسقیاء ته اورسیدل نو قیس بن صعصعه رضي الله عنه ته ئې د لښکر دشمیرلو حکم ورکړو. هغوئ رضي الله عنه ورته ددې لښکر ټول شمیر درې سوه دیارلس اوخودلو. نبی کریم ﷺ ددې په اوریدو خوشحاله شو او وې فرمائیل چې په دومره شمیر کښې د طالوت لښکر هم وو چې د فتح اوکامیابۍ نیك فال دی. دغه وخت صحابه کرامو رضي الله عنهم سره ټول اویا اوښان وو چې یو یو په کښې په دریو دریو کسانو شریك وو چې په وار وار به پرې یویو اوښ سوریدلو نبی کریم ﷺ سره په یو اوښ دوه نور شریکان ابولبابه رضي الله عنه او علي رضي الله عنه وو کله به چې نبی کریم ﷺ دپیاده تلو وار راغلو نو دوئ دواړو به ورته عرض به ئې اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! هم تاسو سوارۀ اوسئ . خو نبی کریم ﷺ به ورته جواب کښې اوفرمائیل چې نه خو تاسو زمانه زیات توانایئ او نه زۀ د ثواب حاصلولو نه بې شوقه یم . چې خپل ثواب تاسوته درکړم ، څکه به نبی کریم ﷺ پخپل وار پیاده تلو.

بل طرفته چا ابوسفیان د شام ملك په یومشهور مقام باندې دې ته خبر کړو چې نبی کریم ﷺ سره د یو لښکر د قافلې په تکل کښې بهر راوتلی دی . ابوسفیان ددغې قافلې سردار وو. پخپله ئې احتیاطی انتظامات اوکړل او کله چې قافله ئې د حجاز په حدودو کښې داخله شوه نو یو هوښیار ، تکړه سړې ضمضم بن عمر یې په شل مثقاله سرو زرو یعني تقریبا دوه زره روپۍ باندې راضی کړو چې په تیز رفتاره اوښۀ دې سور شي او زر تر زره دې دا خبر مکې مکرمې ته اورسوی چې زمونږ قافلې ته د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه خطره راپیښه شویده.

ضمضم بن عمر ددغه زمانې دخاص رسم مطابق د خطرې دنخښې په ډول دخپلې اوښې غوږ او پوزه پریکړل ،خپلې جامې ئې وراندې ، روستو نه څیرې کړې او کجاوه ئې خلاف [چپه] د اوښې په شا کیخوده ، په دې شان ئې چې مکې مکرمې ته دا خبر اورسولو نو هلته شور ګډ شو او ټول قریش مقابلې دپاره تیار شو ، پخپله چې څوك جنګ دپاره وتلې شو هغوئ تیار شو او څوك چې د څۀ عذر په وجه نشو وتلې نو هغوئ په خپل ځائې باندې بل څوك دې جنګ دپاره تیار کړل ، او صرف درې ورځې ددې لښکر په تیارئ کښې اولګیدې.

چا به چې په دې کښې دشریکیدو نه څه لږه سستي ښکاره کوله نو دغه خلقو به دشك په نظر ورته کتل او ګمان به ئې کولو چې دا د مسلمانانو په پره دی. په خصوصیت سره بۀ ئې دوئ ته مخه شوه او جنګ ته په وتلو بۀ ئې مجبوره کول ، هغه خلق ئې هم په دې جنګ کښې شریکیدلو دپاره مجبور کړل چې په ښکاره مسلمانان وو. او په څه عذر سره ئې لا تر اوسه پورې هجرت نه وو کړې ،د بنی هاشم خاندان هغه خلق ئې هم په شریکیدو مجبور کړل چې مسلمانانو سره د همدردئ ګمان ئې پرې کولو. نو د نبی کریم ﷺ ترۀ عباس رضي الله عنه او

ابی طالب دوه خامن ، طالب او عقیل ئې هم په دوئ کښې راوستل.
دې تیار شوی لښکر کښې ، یو زر ځوانان ، دوه سوه آسونه ،شپږ سوه زغرې وې ، سندر غاړې وینځې سره د خپلو داریالوو دریا وؤ او دوکړو وغیره هم ورسره شوې او بدر طرفته روان شو ، په هر پړاؤ باندې به لس اوښان ددې خلقو دخوراك دپاره حلالولې شو.
بل طرفته نبی کریم ﷺ صحابه کرام ﷺ د یو تجارتی قافلې په انداز کښې په ساده ډول په دولسم د رمضان شریف د مدینې منورې نه راؤښکل ، د څو پړاؤنو نه پس بدر مقام ته اورسیدل. دوه کسان د ابوسفیان د خبر راوړلو دپاره اولیږلې شو. [مظهری](١)
دغه مخبرانو خبر ورکړو چې د ابی سفیان قابله د نبی کریم ﷺ پدې لښکر کولو باندې خبر یدلو سره د سمندر په غاړه ، روغ جوړ د نبی کریم ﷺ نه تیر شو ، خود هغوئ دحفاظت دپاره دمکې مکرمې نه د یو زر ځوانانو یو لښکر راروان دې چې مسلمانانو سره د مقابلې کولو اراده هم لري .[ابن کثیر](٢)
په دې بنا دحالاتو نقشه بدله شوه ، دغه وخت نبی کریم ﷺ خپلو ملګرو صحابه کرامو ﷺ سره مشوره اوکړه چې دغه راروان لښکر سره جنګ اوکړو او که نه ؟ ابو ایوب انصاری ﷺ او ځینې نورو صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چې مونږ خو ددغې لښکر د مقابلې توان نه لرو. اونه مونږ د جنګ په اراده راوتلي یو.
سیدنا صدیق اکبر ﷺ سمدستی اودریدو عرض ئې اوکړو چې څنګه تاسو ﷺ حکم کوئی په سر سترګو بهٔ ئې منو. دغه شان عمر ﷺ عرض اوکړو او جهاد ته خپل تیاریدل ئې ښکاره کړل ، په دې موقعه مقداد ﷺ پاسیدو او داسې عرض ئې اوکړو :
یارسول الله ﷺ ! د الل ﷻ چې کوم حکم درته شوې دې ، هغه جاری کړئی. مونږ تاسو ﷺ سره یو. قسم په الله ﷻ مونږ به هغه جواب نه درکوؤ څنګه چې بنی اسرائیلو موسی ﷺ ته داسې ورکړې وو: ﴿فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ﴾ زما دې قسم په هغه ذات وی چې چا حق دین سره تاسو رالیږلی یئ ، که تاسو ﷺ مونږ د حبشې برك الغماد نومې مقام ته هم جنګ دپاره بوځئ نو مونږ به درسره یو.
نبی کریم ﷺ خوشحاله شو هغه ﷺ ته ئې دعا اوفرمائیله ، خو تر دغه وخته پورې د انصارو د طرفنه داسې څه جواب نه وؤ راغلی. دا احتمال کیدې شو چې نبی کریم ﷺ سره د نصرت اومدد کوم لوظ قول چې انصارو کړې وو هغه په مدینه منوره کښې دننه دپاره دپاره وو. د مدینې منورې نه بهر دمدد کولو پابند نه وو ، په دې وجه بیا نبی کریم ﷺ دلې ته خطاب کولو سره اوفرمائیل چې خلقو مشوره راکړئی چې دا جهاد اوکړو او که نه ؟
هر کله چې ددې خطاب مخه انصارو ته وه نو سعد بن معاذ انصاری پوهه شو او عرض ئې اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! آیا تاسو ﷺ مونږ نه تپوس کول غواړئی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې او ، سعد بن معاذ ﷺ عرض اوکړو :
یارسول الله ﷺ ! مونږ درباندې ایمان راوړې دې او ددې ګواهي مو ورکړې ده چې تاسو څه چې فرمایئ هغه ټول حق دی ، او مونږ درسره ددې لوظ ، قول کړې دې چې په هر حال کښې

---

(١) التفسیر المظهری: ج ۴، ص ۱۶
(٢) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۱۷

به ستاسو فرمانبرداري کوؤ، نود الله ﷻ څه حکم چې تاسو ته راغلي دي هغه اوفرمائي. زما دې قسم وي په هغه ذات چې حق دين سره ئې راليږلې ئې، که مونږه سمندر ته بوځې نو په هغې به درسره داخل شو. او يو کس به هم ستاسو نه نه روستو کيږي. دا به هم په مونږ څه بوج نه وي چې صبا تاسو مونږ اوجنګوئې. اميد دې چې الله ﷻ به زمونږ کار تاسو ته په دې شان اوښائي چې ستاسو ﷺ سترګې مبارکې به په هغې باندې يخې شي، د الله ﷻ په حکم چې تاسو ﷺ مونږ چرته بوتلل غواړئې مونږ به درسره ځو.

نبي کريم ﷺ ددې په آوريدو ډير زيات خوشحاله شو او قافلې ته ئې حکم اوکړو چې د الله ﷻ په نوم روان شي. او دا زيرې ئې ورکړو چې ما سره الله ﷻ دا وعده کړې ده چې په دغې دواړو ډلو کښې به په يوه ډله غلبه بيا مومئ. دواړو ډلو نه مراد يو د ابي سفيان هغه تجارتي قافله وه او بله د مکې مکرمې نه راتلونکې جنګي لښکر وو، بيا ئې اوفرمائيل چې: قسم دې مې په الله ﷻ وي، ګويا د مشرکانو د وژلو ځائې زه پخپلو سترګو وينم. [دا پوره واقعه د تفسير ابن کثير او تفسير مظهري نه راخستې شوې ده][1]. د واقعې په تفصيل چې خبر شوې، اوس ددغې آيتونو په مطلب ځان پوهه کړئې، رومبی آيت مبارك کښې چې دا ارشاد دې چې:

﴿وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ﴾ [او د مسلمانانو يوې ډلې ته دا خبره ډيره ګرانه ښکاريده]. دې سره په وخت د ځينې صحابه کرامو طرفنه ښکاره شوې وؤ خو هغوئ د جهاد کولو نه د کم همتئ اظهار کړې وؤ او همدا واقعه په بل ايت مبارك کښې داسې بيان کړې ده چې:

﴿يُجَادِلُوْنَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ﴾ [هغوئ تاسره په يوه حق خبره کښې جګړه کوله حالانکه هغه حق ښکاره شوې وو] او داسې جګړه ئې کوله لکه چې هغوی مرګ طرف ته رابښکلي شي او هغوئ ورته [په سترګو] ګوري].

حقيقت کښې دا اګر چې د صحابه کرامو ﷺ نافرماني کول نه وو بلکه د مشورې په جواب کښې ئې خپله کمزوري او کم همتي ښکاره کړې وه، مګر د رسول کريم ﷺ ملګرو نه دداسې رائې اظهار هم ددوئ د لوړ مقام په اعتبار سره الله ﷻ ته خوښ نه وؤ او دا د دوئ لوړ شان سره نه ښائيدل، ځکه ئې د خفګان په الفاظو سره بيان کړو.

| إِلَى الْمَوْتِ | وَهُمْ | يَنظُرُونَ | وَإِذْ يَعِدُكُمُ | اللَّهُ | إِحْدَى |
|---|---|---|---|---|---|
| مرګ ته | اوهغوئ ورته | ګوري | او کله چې وعده کوله ستاسو سره | الله | ديوې |
| ........ او هغوئ ورته [په سترګو] ګوري | | | اوهغه موقع ياده کړئ چې الله ﷻ درسره په | | |

| الطَّائِفَتَيْنِ | أَنَّهَا | لَكُمْ | وَتَوَدُّونَ | أَنَّ | غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ددوؤ ډلو | چې بيشکه هغه | ستاسو دپاره ده | اوتاسو خوښوله | چې بيشکه | بې ازغي ډله |
| دوؤ ډلو کښې ديوډلې وعده اوکړه | چې هغه به تاسو ترلاسه کړئ | اوتاسو دا خوښول چه کومه ډله | | | |

| تَكُونُ | لَكُمْ | وَيُرِيدُ | اللَّهُ | أَنْ يُحِقَّ | الْحَقَّ | بِكَلِمَاتِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وی دي | تاسولره | اوغوښتله | الله | چې ثابت کړي | حق | په فرمانونو خپلو سره |
| کمزورې بې وسلې وه هغه درباندې پيښه شي | | | اوالله ﷻ ته منظوره وه چې پخپل حکم سره حق ثابت کړي | | | |

[1] ) تفسير ابن کثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۳ ته ۱۸ پورے ـ والتفسير المظهري: ج ۴، ص ۱۱ ته ۱۷ پورے۔

وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ۙ لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ

او پریکړي | بېخ | دکافرانو | دپاره ددې چې حق ثابت کړي | حق | او چې باطل ثابت کړي

او د کافرانو جرړې ختمې کړي | ..................چې حق ښکاره کړي | او باطل

الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ۚ اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ

باطل | اګرکه | بدګنړي | مجرمان | کله چې | تاسوفریادکوو | رب خپل ته

ختم کړي | اګر که مجرمان ئې نه خوښوي | ..................او کله چې تاسو خپل رب ته فریاد کولو

فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ

نو قبول ئې کړو | ستاسو دپاره | چې بیشکه زه | مدد کوونکې یم ستاسو | په زرګسانو سره | دفرښتونه

نو الله ﷻ ستاسو فریاد واورېدو | او وې وئیل | چې زه ستاسو د مدد دپاره یو زر فرښتې

مُرْدِفِيْنَ ۝ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَئِنَّ

پرلپسې راتلونکې | او نه وګرځولې دا امداد الله | مګر | زېرې | او دپاره ددې چې مطمئن شي

یو بل پسې لیږم | او دا خبره الله ﷻ څکه اوکړه چې په تاسو زېرې اوشي | ..................او ستاسو

بِهٖ قُلُوْبُكُمْ ۚ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ

په دې سره | زړونه ستاسو | او نه دې امداد | مګر | د طرفه دالله نه دې | بیشکه الله | غالب دې

زړونه مطمئن شي | او مدد خو صرف دالله ﷻ د طرفه وي | بیشکه الله ﷻ غالب دې

حَكِيْمٌ ۝ ع

دحکمت خاوند دې | د طرفه خپل نه

او دحکمت خاوند دې |

## آسان ترجمه قرآن

او هغه وخت یاد کړئ کله چه ستاسو رب تاسو سره وعده کړي وه چه دوارو ډلو کښې به یوه ستاسو وي، او ستاسو خواهش دا وو چه کومه ډله کښې ( د خطرې ) څه ازغې نه وو نو هغه تاسو ته ملاؤ شي ، او الله دا غوښتل چه دخپلو احکامو په ذریعه حق لره ښکاره کړي ، او د کافرو جرړه کټ کړي. دې د پاره چه د حق حق کیدل او د باطل باطل کیدل ښکاره کړي ، خواه که مجرمانو ته دا خبره هر څومره ناخوښه وي او یاد کړه هغه وخت کله چه تاسو خپل رب ته فریاد کولو نو هغه ستاسو د فریاد جواب درکړو چه ستاسو د مدد د پاره زر فرښتې رالیږم چه هغه به پرله پسې درځي. او دا وعده الله د څه بلې وجه نه نه، بلکه صرف دې وجې نه چه دا خېرې شي او دې د پاره چه ستاسو زړونو ته اطمینان حاصل شي ، ګنې مدد د بل چا د خوا نه نه بلکه دالله د طرف نه راځي. یقیناً الله د قدرت والا هم دې او حکمت والا هم.

## خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ ﴾ او تاسو خلق هغه وخت یاد کړئي چه کله الله ﷻ ستاسو سره دهغه دوؤ ډلو [یعني تجارتي قافله یا لښکر] نه د یو [ډلې] وعده کوله ﴿ اَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّوْنَ اَنَّ غَيْرَ

ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ ﴾ چه هغه [ډله] ستاسو لاس ته راشي [يعني مغلوب به شي دا وعده مسلمانانوسره دنبي ﷺ په واسطې سره د وحی په ذريعه شوې وه] اوتاسوپه دې خواهش كښې وې چه غير مسلح ډله [يعني تجارتي قافله] ستاسو په لاس راشي ﴿ وَيُرِيْدُ اللهُ اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ ﴾ اوالله ﷻ ته دا منظور وو چه خپل احكامو نه دحق نه حق كيدل [هغې ته عملی لحاظ سره غلبه وركړې] او ثابت ئې كړي﴿ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ﴾ او [دامنظور وو چه] ددې كافرو بنياد ختم كړي.﴿ لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴾چه حق حق او باطل باطل كيدل [عملی لحاظ سره] ثابت كړي اګر چه دا مجرمان خلق [يعني دمغلوبه كيدووالا كفارو ته څومره هم] ناخوښه كړي. ﴿اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ﴾ هغه وخت يادكړئي چه كله تاسو خپل رب ته [د خپل شمير اود سامان جنګ دلږ والي او د دښمن كثرت مو كتلو] اوفرياد موكولو نوالله ﷻ ستاسو فرياد واوريدو [اووعده ئي اوفرمائيله]﴿ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ ﴾چه زه ستاسو په يو زرفرښتو سره مددكوم چه دابه سلسله وار راځي ﴿وَمَا جَعَلَهُ اللهُ اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ ﴾ اوالله ﷻ دامدد صرف ددې [حكمت] دپاره اوكړو چه [تاسو ته د فتحې موندلو] زيرې وي او چه ستاسو زړونو ته قرار راشي [يعني د انسان تسلي په طبعي لحاظ سره په جنګ په سامان سره كيږي او ددې وجې هغه جمع كړې شو] ﴿وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللهِ اِنَّ اللهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ او [په حقيقت كښې خو] مدد [اوغلبه] صرف دالله ﷻ دطرفه ده يقينا الله ﷻ زبردست دې حكمت والا دې.

## معارف او مسائل

دې آيتونو كښې د بدر د غزا بيان دې او د الله ﷻ د هغې مدد او مخصوص انعاماتو بيان دې چې په مسلمانانو باندې ئې كړی وو.

رومبی آيت مبارك كښې دا بيان دې چې كله نبی كريم ﷺ او صحابه كرامو ﷡ ته دا خبر وركړې شو چې دقريشو لوئې لښكر د خپلې تجارتی قافلې د حفاظت دپاره دمكې مكرمې نه راوتلې دې نو اوس د مسلمانانو مخې ته دوه ډلې وې ، يو تجارتی قافله وه چې په رواياتو كښې ورته عير وئيلې شوی دی او بل هغه فوجی لښكر وو چې مكې مكرمې نه راروان شوې وو ، دې ته نفير وئيلې شوی دی ، په دې آيت مبارك كښې دا اوخودلې شو چې دغه وخت الله ﷻ د خپل رسول ﷺ سره او د نبی كريم ﷺ په ذريعه ټولو مسلمانانو سره دا وعده كړې وه چې ددغې دواړو ډلو څخنې په يوه ډله به ستاسو مكمله قبضه اوشی چې دوئ سره به پخپله خوښه هر څه كولې شئ. اوس داښكاره ده چې په تجارتی قافله باندې قبضه كول آسان او بې خطر وو ، او په فوجی لښكر باندې قبضه كول ډير ګران او سخت خطرناك وو. نو ددې مبهمې وعدې په آوريدوو سره صحابه كرامو ﷡ دا خواهش لرلو چې په تجارتی قافله باندې ئې قبضه اوشی. ليكن د الله ﷻ په اشارو سره نبی كريم ﷺ او مشرانو صحابه كرامو ﷡ دا اراده لرله چې په فوجی لښكر باندې ئې قبضه راشی نو بهتر به وی.

په دې آيت مبارك كښې هغه صحابه كرامو ﷡ ته خبردارې وركړې شوې دې چې دخپلې آسانئ او بې خطرې كيدو په وجه ئې په تجارتی قافلې باندې قبضه راتلل غوښتل خود الله ﷻ اراده داوه چې داسلام اصل مقصد حاصل شی ، يعنی د حق ، حق كيدل به ښكاره شی او د

کافرانو جړې پریکړې شي . او ښکاره خبره د ه خو دا کار هله کیدې شو چې فوجي لښکر سره مقابله اوشي او په هغې باندې دمسلمانانو مکمله قبضه او غلبه اوشي .
خلاصه ئې دا شوه چې مسلمانانو ته د دوئ په دې په هغې کم همتئ ، آرام پسندئي او د وختي فائدې حاصلولو په اراده باندې خبرداري ورکړې شوې دې ، ولې چې د الله ﷻ اراده دلوړو همتونو او لوړو مقصدونو او همیشه دپاره په مکملو فائدو حاصلولو باندې مشتمله وه ، بیا ئې په دویم آیت مبارك کښې نوره زیاته په ډاګه کړه چې د الله ﷻ د قدرت د قبضې نه خو هیڅ څیز بهر نه وو . که هغه غوښتلې نو په تجارتي قافله باندې هم د مسلمانانو قبضه راتلې شوه . مګر هغه د نبی کریم ﷺ اود صحابه کرامو ﷺ د شان سره مناسب اوګڼله چې د فوجي لښکر دې مقابله اوکړی چې په فوجي لښکر ئې قبضه اوشي ، د حق ، حق کیدل او د باطل باطل کیدل ښکاره شي .
دلته دا خبره دغور قابله ده چې الله ﷻ خو علیم ، خبیر او د هر کار د شروع او انجام نه خبر دې ، بیا هم دغلبې حاصلولو وعده داسې په مبهم انداز کښې کولو کښې چې څه مصلحت وو چې د دوو ډلو نه به په یوې ډلې د مسلمانانو قبضه راځي او هغه ډله ئې اونه ټاکله ، په دې کښې دا حکمت او مصلحت کیدې شي چې په دې سره د صحابه کرامو ﷺ امتحان اخستل داسې مراد وو چې دوئ آسان کار خوښوی او که ګران ؟ بل دا چې د دوئ د لوړ همتئ ، لوړو مقصدونو دپاره د کوششونو کولو او د خطرو نه د نه ویریدو تربیت اوتعلیم ورکول وو .
دریم او څلورم آیت مبارك کښې هغه واقعه بیان شویده چې فوجي لښکر سره د مقابلې ټاکلو نه پس هر کله چې نبی کریم ﷺ دا اوکتل چې د دوئ ملګری صرف درې سوه دیارلس کسان دی او هغه هم داسې چې اکثر په کښې بې وسلې دی او بل طرفته د صحابه کرامو ﷺ په مقابله کښې د کافرانو داسې وسله دار لښکر دې چې زر کسان ځوانان په کښې شامل دی نو د الله ﷻ په حضور کښې د لاس مدد غوښتلو دپاره ئې لاسونه پورته کړل ، نبی کریم ﷺ به دعا کوله او صحابه کرامو ﷺ به پرې آمین وئیلو ، عبد الله بن عباس ﷺ د نبی کریم ﷺ ددعا دا کلمات نقل کړی :
ائې الله ﷻ ! ماسره دې چې کومه وعده فرمائیلې ده هغه زر پوره کړې ، یا الله که د مسلمانانو دا کم شمیره ډله ختمه شوه نو په زمکه به ستا ، هیڅوك عبادت کوونکې پاتې نشی ، ولې چې ټوله زمکه د کفر اوشرك نه ډکه ده ،صرف دا څو کسان مسلمانان ستا صحیح عبادت اداکوی .
نبی کریم ﷺ هم دغه شان په مخه په عاجزئی او زارئی سره دعاکوله ، تردې چې اوږو مبارکو نه ئې څادر هم اوخوئیدو ، ابوبکر صدیق ﷺ ور اوراندې شو څادر مبارك ئې ورته په اوږو مبارکو بیا ور واچولو او عرض ئې اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! زیات فکر مه کوئی الله ﷻ به ستاسو ﷺ دعا ضرور قبوله کړی او خپله وعده به ضرور پوره کوی .
آیت مبارك کښې د [اِذۡ تَسۡتَغِیۡثُوۡنَ رَبَّکُمۡ] الفاظو څخه هم دغه واقعه مراد ده . معنی ئې دا شوه چې هغه وخت یاد کړئي چې تاسو خپل رب ته فریاد کولو . او تاسو مددغوښتلو . دا فریاد کول اګر چې د رسول اکرم ﷺ د طرفه وو او خو صحابه کرامو ﷺ پرې آمین اووئیل . ځکه دغه ټولو ته ئې نسبت اوکړې شو .

دي پسې د دعا د قبليدو بيان ئې داسې اوفرمائيلو چې [فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ] يعنى الله ﷻ ستاسو فرياد واؤريدو او وې فرمائيل چې يو زر فرښتو سره به ستاسو مدد کوی او [دا فرښتې] به پرله پسې د قطارونو په شکل کښې راځی.

فرښتو ته الله تعالى ډير زيات طاقت ورکړې دې ، دهغې اندازه د لوط ﷺ د قوم د واقعې څخه هم لګيدلې شی چې يواځې جبرائيل ﷺ صرف په يو وزر دغه ټوله زمکه پورته کړه او بيرته ئې راګزار کړه . په دې موقعه هم صرف يوې فرښتې دا ټول کار سرته رسولې شو . مګر الله ﷻ د انسانی فطرت په جوړ په ګڼر شمير کښې د فرښتو ليږلو وعده او فرمائيله چې ددې ګڼړ والی په وجه هم ددوئ زياته تسلی اوکړې شی .

څلورم آيت مبارک کښې هم دا مضمون [وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِ قُلُوبُكُمْ] يعنى الله ﷻ دا صرف په دې وجه اوکړل چې تاسو ته زيرې درکړی او ستاسو زړونه په اطمينان کښې شی.

د بدر په غزا کښې کومې فرښتې چې د مسلمانانو د مدد دپاره ليږلې شوې وې د هغې شمير دلته يو زر خودلې شوې دې . او په سورة آل عمران کښې درې او پنځه زره خودلې شوې دې .

دا په حقيقت کښې درې بيلې بيلې وعدې وی چې په مختلفو حالاتو کښې الله ﷻ مسلمانانو سره کړې وې . د يو زر فرښتو ليږلو وعده په هغه حالت کښې اوکړې شوه چې په اول کښې رسول اکرم ﷺ دعا او عامو مسلمانانو فرياد اوکړو . د درې زرو فرښتو ليږلو وعده چې په سورة آل عمران کښې رومبې ذکر شوې ده ، دا هغه وخت اوکړې شوه کله چې مسلمانانو ته دا خبر اورسيدو چې قريشی لښکر دپاره نور مدد هم راروان دې . لکه روح المعانی کښې د شعبی ، د ابن شيبه او ابن المنذر وغيره څخه منقول دی چې د بدر په موقعه هر کله چې مسلمانانو ته دا اطلاع اورسيده چې کرز بن جابر محاربی د مشرکانو د مدد د پاره سره د مدد سره راروان دې نو دې سره مسلمانان ډير پريشانه شو چې په دغه موقعه د سورة آل عمران په دې آيت [أَلَن يَكْفِيَكُمْ أَن يُمِدَّكُمْ رَبُّكُم بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُنزَلِينَ] کښې د درې زرو فرښتو ليږلو وعده اوکړې شوه[1].

دپنځوسو زرو فرښتو ليږلو دريمه وعده دې شرط سره تړلې شوه چې که مشرکانو په يو ځل په جمع باندې حمله اوکړه ، دا وعده د آل عمران ددغه آيت مبارک څخه پس په دې آيت مبارک [بَلَىٰ ۚ إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ] يعنى که تاسو ثابت پاتې شوئ او په تقوی قائم پاتې شوئ ، او د مقابل لښکر په تاسو باندې په يو ځل حمله اوکړه نو ستاسو رب به ستاسو مدد په پنځو زرو فرښتو سره کوی ، او هغوئ به په خاص نخښه يعنى وردئ کښې وی .

ځينې مفسرينو فرمائيلی دی چې دې وعده کښې درې شرائط ايخودې شوی وو. يو شرط ثابت قدمی ، دويم تقوی ، دريم دمخالف فريق په يو ځل باندې حمله کول .

رومبی دوه شرطونه خو په صحابه کرامو ﷡ کښې موجود وو او په دې ميدان کښې د اول څخه تر آخره پورې په دوئ کښې هيڅ فرق رانغلو . او دويم شرط د سره موجود داسې نشو چې

[1]) روح المعانی، تفسير سورة آل عمران آيت: ۱۲۴، ج ۳، ص ۱۴۶

په یو ځل مشرکانو حمله اونه کړه ، دپنځو زرو فرښتولیږلو هم څه ضرورت پیښ نشو .
په دې وجه دا معامله د یو زر او دریو زرو په مینځ کښې دائره شوه چې دې کښې دا احتمال هم دې چې ددرې زرو نه مراد دا وی چې یو زر ئې اول لیږلې وی او دوه زره وروستو لیږلو سره ټولې درې زره شوې او دا احتمال په کښې هم شته چې اول ځل یو زر ځان له او بل ځل درې زره ئې لیږلې وی .
دلته دا هم کتل پکار دی چې د زرو ، دریو زرو ، او پنځو زرو درې واړو ځان ځان له جدا جدا صفتونه داسې خودلې شوی دی چې په سورة انفال کښې د زرو فرښتو صفت مردفین خودلې شوې دې ، معنی ئې ده وروستو لګوونکې . دې کښې ا شاره دې ته کیدې شی چې دې فرښتو پسې نورې فرښتې به هم راروانې وی ، دسورة آل عمران په رومبی آیت مبارك کښې ددغې ملائکو صفت منزلین بیان کړې شوې دې . چې اشاره په کښې دې ته کیدې شی چې دا فرښتې به آسمان څخه رالیږلې شی . دې کښې بله اشاره ددې خاص اهمیت ته هم ده چې په زمکه باندې موجودو فرښتو په ځائې د آسمان څخه رالیږلو فرښتو څخه دا کار به اخلو ، او د آل عمران په دویم آیت مبارك کښې د پنځو زرو فرښتو صفت مسومین بیان کړې شوې دې .
مطلب دا چې د دوئ په خاص لباس او خاص نخښه وی . څنګه چې د احادیثو په روایتونو کښې د بدر د فرښتو سپینې پګړئی او د غزوهٔ حنین کښې د مدد فرښتو سرې پګړئی بیان شوی دی[1] .
په آخر د آیت مبارك کښې ارشاد دې چې : [وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ] دې کښې ئې مسلمانانو ته خبرداری ورکړو چې هر کیدونکې مدد که پټ وی او که ښکاره ، هغه ټول د الله ﷻ د طرفنه او هم دهغه په قبضه کښې وی ، د فرښتو مدد هم د هغه دحکم تابع دې ، ځکه دې ستاسو نظر خالص په هغه لوئې ذات ، وحده لاشریك وی ځکه چې هغه د لوئې قدرت او حکمت خاوند دې .

| اِذْ | يُغَشِّيْكُمُ | النُّعَاسَ | اَمَنَةً | مِّنْهُ |
|---|---|---|---|---|
| یادکړئ کله چې | واچوله په تاسو باندې [الله] | پرکالی | دپاره دامن | دطرفه خپل نه |

| اوهغه وخت یادکړه چې الله د خپل طرفه په تاسو باندې دامن راوستو دپاره پرکالی راوسته |
|---|

| وَيُنَزِّلُ | عَلَيْكُمْ | مِّنَ السَّمَآءِ | مَآءً | لِّيُطَهِّرَكُمْ | بِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونازلې کړې [الله] | په تاسو باندې | دآسمان نه | اوبه | ددې دپاره چې پاك کړی تاسو | په دې سره |

| او داسمان د طرف نه ئې په تاسو اوبهٔ راوورولې د دې دپاره چې تاسو په هغې سره پاك کړی |
|---|

| وَيُذْهِبَ | عَنْكُمْ | رِجْزَ | الشَّيْطٰنِ | وَلِيَرْبِطَ |
|---|---|---|---|---|
| اولرې کړی | ستاسو نه | پلیتی | دشیطان | اودپاره ددې چې مضبوط والې اوکړی |

| اوستاسو نه شیطانی پلیتی [وسوسې] لرې کړی ...................اود دې دپاره چې ستاسو زړونه |
|---|

[1] ) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۱۱۹۱۷

عَلٰى قُلُوْبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْاَقْدَامَ ؕ اِذْ يُوْحِىْ رَبُّكَ

په زړونو ستاسو | اومحکم کړي | په دې سره | قدمونه | کله چې وحی کوله | رب ستا

مضبوط کړي | اوستاسو قدمونه ټينګ کړي | اوکوم وخت چې ستا رب فرښتوته حکم اوکړو

اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ اَنِّىْ مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ؕ

فرښتوته | چې بیشکه زۀ | ستاسو سره یم | پس مضبوط کړئ تاسو | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړی دې

چې زه درسره ملګرې یم تاسو مسلمانان [په میدان جنګ کښې] ثابت قدم کړئ |

سَاُلْقِىْ فِىْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوْا

اوبه غورزوم زۀ | په زړونو کښې | دهغه کسانو | چې کافران شوی دی | یره | نو اووهئ

زرده چه زه دکافرو په زړونو کښې رعب اچوم | ..................... نودوئ د ستونو دپاسه اووهئ

فَوْقَ الْاَعْنَاقِ وَاضْرِبُوْا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

دپاسه | د ستونو | اواووهئ | دهغوئ نه | هر | بند دګوتو | دا ځکه | چې بیشکه دوئ

.........................او دوی د ګوتو په هريو جوړ اووهئ | دا سزا ځکه و رکړې ده چې دوئ

شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَاقِقِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

مخالفت کړې دې دالله نه | اودرسول دهغه | اوڅوک چې | مخالفت کوی | دالله | اودرسول دهغه

دالله ﷻ اودرسول ﷺ سره مقابله کړې وه | اوڅوک چې دالله ﷻ اورسول سره مقابله اوکړی

فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۞ ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ وَاَنَّ

نوبیشکه الله | سخت عذابونکې دې | داستاسوسزاده | نواوڅکئ مزه ددې | اوبیشکه

نوالله ﷻ ډیرسخت عذاب ورکونکې دې | نو ائې [کافرانو] ددې سزا خوند اوڅکئ | اوياد ساتئ چې

لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ ۞

دې دپاره دکافرانو | عذاب دوور

په آخرت کښې هم] دکافرانو دپاره داور عذاب دې |

## آسان ترجمه قرآن

یادکړه هغه وخت کله چه تاسو له دويرې لرې کولو دپاره هغه په تاسو باندې پرکالی راوستله او په تاسو باندې ئې د آسمان نه باران راورولو دې دپاره چه تاسو په دې باندې پاك کړي، او تاسو نه دشیطان ګند کې لرې کړي اوداستاسو د زړونو ټنګ جوړه کړی او ددې په ذريعه (ستاسو) پښې ښه مضبوطې کړی هغه وخت چه ستا رب فرښتو ته د وحې په ذريعه حکم کولوچه: څه تاسو سره يم.نو تاسو د مؤمنانو قدمونه مضبوط کړئ څه به د کافرانو په زړونو کښې رعب واچوم . بيا تاسو د هغوی په څټونو باندې ګذارونه کوئ او دهغوی په هر هر بند باندې ګذار کوئ –"دا ځکه چه دوی دالله او د هغه د رسول سره دښمنې کړې ده او چه يو کس د الله او د هغه د رسول سره دښمنې کوي نو يقينًا دالله عذاب ډیرسخت دې.دا ټول خو (اوس) وڅکئ دې نه علاوه حقیقت دا دې چه د کافرانو دپاره (اصل) عذاب د دوزخ دې.

## خلاصه تفسير

﴿ إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ ﴾ اوهغه وخت يادكړئي چه كله الله ﷻ په تاسو باندې خوب راوستلو دخپل طرف نه دآرام دپاره ﴿ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ ﴾ او په تاسو باندې ئې دآسمان نه اوبه اورولې چه ددې اوبو په ذريعه تاسو ته [دبې اودسئ يا د بې غسلئ دحالت نه] پاك كړي ﴿ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ ﴾ او [چه ددې په ذريعه] ستاسو نه شيطاني وسوسې لرې كړي ﴿ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ﴾ او[چه] ستاسو زړونه مضبوط كړي او [چه] ستاسو قدمونه مضبوط كړي [يعني چه د ريګ په وجه خوځي نشي]. ﴿ إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ ﴾ هغه وخت ياد كړئي چه كله ستارب [هغه] فرښتو ته [چه دمدد دپاره نازلې شوې وې] حكم كولو چه زه ستاسو ملګرې يم ﴿ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا ﴾ نوتاسو د ايمان والو همت زيات كړئي ﴿ سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ ﴾ زه د كافر و په زړونوكښې رعب اچوم ﴿ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴾ نوتاسود كفارو په څټونوباندې[حربه] اووهئې اودوي بندونه بندونه كړئ. ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾ دا ددې خبرې سزا ده چه هغوي دالله ﷻ او دده درسول ﷺ مخالفت اوكړو ﴿ وَمَن يُشَاقِقِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾ او چه څوك دالله ﷻ اودده درسول ﷺ مخالت كوي ﴿ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴾ نوالله ﷻ [هغه ته] سخته سزا وركوي[كه هغه په دنيا كښې دڅه مصلحت دوجې يا په آخرت كښې يا په دواړوكښې] ﴿ ذَٰلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابَ النَّارِ ﴾ نو [بالفعل] دا سزا اوڅكئ او پوهه شئ چه كافرو دپاره د جهنم عذاب مقرر دې.

## معارف او مسائل

د سورة انفال د ړومبی سر نه هغه انعامات لګيا دي بيانيږي كوم چې په فرمانبردارو بندګانو باندې كړې شوي وو. د بدر د غزا ، واقعات هم ددغې زنځير كړئ دی ، دبدر په غزا كښې الله ﷻ چې كوم انعامات كړی وو ، هغې كښې ړومبې انعام دا وو چې الله ﷻ مسلمانانو لره دې جهاد دپاره راوويستل لكه : ﴿ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ ﴾ كښې ئې چې بيان اوشو.

دويم انعام د فرښتو د مدد وعده ده چې په ﴿ وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ ﴾ كښې ئې فرمان اوشو.

دريم انعام د دعا د قبليدو او د امداد وعده پوره كول دی لكه په : ﴿ إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ ﴾ كښې ئې بيان شوې دې.

اوس ددې آيتونو څينې په ړومبی آيت مبارك كښې څلورم انعام بيان شوېدې. چې په كښې مسلمانانو دپاره د دوؤ نعمتونو داسې بيان راغلې دې چې خوب ئې پرې غالب كړو چې په هغې سره ئې پريشانی او ستومانی لرې شوه. بل دا چې د اوبو انتظام ئې ددوئ دپاره اوكړو چې د مسلمانانو دپاره ورسره ميدان كلك او هوار شو او دښمن دپاره ئې بوښته جوړه كړه.

واقعه داسې وه چې هر كله د كفر او اسلام دا ړومبې جنګ چې راپيښ شو نو د كفارو لښكر ، ړومبې د بدر ميدان ته راؤرسيدل او په يو لوړ مقام ئې پړاؤ واچولو چې اوبه هم ورسره نزدې وې. نبی كريم ﷺ چې روستو ور اورسيدل نو هلته دوئ ته لاندې ځائې په حصه كښې اورسيدو. لكه چې ددې سورت په دوه څلويښتم آيت مبارك كښې دی چې : ﴿ إِذْ أَنتُم بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُم بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوَىٰ ﴾ كښې راروان دې.

بدر ته په رسیدو چې کوم ځائې په اول کښې نبی کریم ﷺ د پړاؤ دپاره غوره کړو نو ددغه ځائې بلد ، حباب بن منذر رضی الله عنه دجنګ په لحاظ سره دغه ځائې نه خوښولو ، ځکه ئې عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! آیا دا ځائې تاسو ﷺ د الله ﷻ په حکم سره خوښ کړې دې او که پخپله رائې سره مو خوښ کړې دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې دا مې د الله ﷻ په حکم سره نه دې خوښ کړې په دې کښې بدلون کیدې شی . نو حباب رضی الله عنه عرض اوکړو چې ښه نوددې نه مخ په وړاندې یو بل ځائې قبضه کول پکار دی چې چرته اوبه ډیرې وی او د مکې سردارانو سره نزدې دې . نبی کریم ﷺ دغه مشوره قبوله کړه ، هم هلته ئې پړاؤ واچولو اوبهٔ ئې قبضه کړې یو تالاؤ ئې جوړ کړو چې اوبهٔ یې په کښې محفوظې کړې .

هر کله چې دا تسلی ئې اوشوه نو بیا سعد بن معاذ رضی الله عنه عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! تاسو ﷺ دپاره مو په یو محفوظ ځائې یو تمبو جوړولو خیال ځکه دې چې تاسو ﷺ به هم هلته محفوظ یئ اوخپله سورلی بهٔ هم درسره وی . که الله ﷻ راته په جنګ کښې فتح نصیب کړه نو ډیره ښه ده ، ګنې الله ﷻ دې نه کړی که بل صورت راپیښ شو نو پخپله سورلئ سور به هغه صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ورشئ کوم چې په مدینه منوره کښې پاتې شوی دی . ولې چې هغوئ رضی الله عنهم هم داسې فدایان دی چې که زمونږ مقابله کښې وسله دار لښکر سره راتلل ورته معلوم وې نو په هغوئ کښې به یو هم ، تاسو ﷺ نه و روستو نه وو پاتې شوې . نو که دغه وخت تاسو ﷺ مدینې منورې ته ورشئ هغوئ رضی الله عنهم به درسره خامخا ملګری وی . نبی کریم ﷺ پدې اخلاصی او فدائی پیشکش ورته دعاګانې اوکړې . د ګذارې یو تمبو نبی کریم ﷺ دپاره تیار کړې شو په هغې کښې صرف نبی کریم ﷺ او سیدنا صدیق اکبر رضی الله عنه پاتې شو او معاذ رضی الله عنه توره په لاس په هغې چوکیدار اودریدو . د غزا رومبئ شپه وه ، د درې سوؤ بې سامانه خلقو مقابله د دوئ رضی الله عنهم نه په درې چنده زیات ، په وسلې بهرپوره فوج سره وه. چې د میدان جنګ ښه ځائې یې هم په ګوتو ورغلې وو. کوزنئ هغه حصه د مسلمانانو په قبضه کښې راغلې وه چې خالص ریګ وو او مسلمانانو ته په کښې ګرځیدل راګرځیدل هم ګران وو ، د هر یو مسلمان طبیعت پریشانه او فکر مند وو ، د ځینې مسلمانانو په زړونو کښې شیطان دا وسوې هم واچولې چې تاسو خو خپل ځانونه په حق ګنړئ ، اودا وخت د آرام کولو په ځائې د تهجدو په مونځ کښې مشغول یئ ، سره ددې چې دښمن په هر شان ، په تاسو باندې غالب او ګنړ دې . دغه وخت په مسلمانانو باندې د الله ﷻ یو خاص قسم خوب راوستو چې ټول مسلمانان اودهٔ شو اګر چې ډیر په کښې د اودهٔ کیدو په تکل کښې هم نه وو.

دحدیث حافظ ابو یعلی نقل کړی دی چې علی رضی الله عنه اوفرمائیل چې د بدر د غزا په دغه شپه سوا د نبی کریم ﷺ نه بې اودهٔ کیدو هیڅوک پاتې نه شو یوازې نبی کریم ﷺ ټوله شپه تهجدو کښې مشغول وو([1]).

او ابن کثیر رحمه الله په صحیح حوالې سره نقل کړی دی چې نبی کریم ﷺ په دغه شپه تهجدو کښې مشغول وو چې دخوب یوه چپه پرې راغله خو سمدستی نبی کریم ﷺ په خندا شو او وې فرمائیل چې اې ابابکر رضی الله عنه ! زیر یې واورئ دادې جبرائیل علیه السلام غونډئ سره ولاړ دې

[1]) مسند ابی یعلی الموصلی رقم الحدیث: ۲۷

اوسمدستی دتمبو نه بهر راوؤتو اودا آیت مبارك ئې تلاوت كړو چې: ﴿سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ﴾ [يعنى زر به د دښمن ډله ماتې اوخورى او مخ په شا به اوتښتى] ،

ځينې روايتونو كښې راغلى دى چې نبى كريم ﷺ مختلفو ځايونو ته په اشارې سره اوفرمائيل چې دا د ابى جهل د قتليدو ځائې دې، دا د فلانى اودا د فلانى د قتليدو ځائې دې چې هم هغسې اوشو. [تفسير مظهرى] [1].

څنګه چې دبدر په غزا كښې دمسلمانانو د پريشانئ اوستومانئ لرې كولو دپاره الله ﷻ پرې يو خاص خوب راوستو هم دغه شان داحد په غزا كښې هم شوى وو.

سفيان ثورى دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل كړى دى چې دجنګ په حالت كښې خوب دالله ﷻ دطرفنه دامن اوتسلئ نخښه وى اوپه مونځ كښې خوب راتلل دشيطان دطرفنه وى. [ابن كثير] [2]

په دغه شپه دويم نعمت دا اوشو چې په مسلمانانو باندې باران كيدلو چې د ميدان نقشه ئې بدله كړه. د قريشى لښكر په ځائې دومره تيز باران اوشو چې ختې ورته جوړې شوې او د مسلمانانو په ځائې معمولى باران كيدو سره شګه پخپل ځپل ځائې كيناسته. او ميدان ورته ښه كلك او هوار شو چې ګرځيدل راګرځيدل ورته په كښې ډير آسان شو.

دې آيت مبارك كښې ددې دواړو يعنى خوب او باران بيان دى. دې سره دميدان نقشه بالكل بدله شوه ، شيطانى وسوسې ختمې شوې كومې چې ځينې كمزورو مسلمانانو ته په زړونو كښې داسې اچولې شوې وو چې مونږ په حقه يو او بيا هم لاندې او پاتې راغلى ښكارو. دښمن مو په ناحقه دې بيا هم بر او مضبوط ښكارى ، او ښه په تسلئ دى.

دې آيت مبارك كښې فرمائى چې هغه وخت ياد كړئى كله چې الله ﷻ په تاسو د خوب جوتې راوستې، د آرام كولودپاره اوپه تاسوئې اوبه اووروليې ددې دپاره چې په دغې اوبو سره تاسو پاك كړى او تاسونه شيطانى وسوسې په شا اوتمبوى. ستاسو زړونه مضبوط كړى او ستاسو پښې كلكې كړى.

دويم آيت مبارك كښې پنځم انعام هغه بيان شوې دې چې كوم د بدر د غزا په ميدان كښې په مسلمانانو باندې دا شوې وو چې د دوئ ﷻ د مدد دپاره رااليږلو فرښتو ته ئې خطاب اوكړو ، زۀ تاسو سره يم تاسو د مؤمنانو مړانه زياته كړئى ، زۀ دكافرانو په زړونو كښې رعب اچوم ، تاسو دكفارو څټونه په نيزو وهئ ، او دهغوئ بندبند وهئ.

په دې كښې فرښتو ته دوه كارونه اوسپارلې شو ، يو دا چې د مسلمانانو مړانه زياته كړى د هغې طريقه دا كيدې شى چې فرښتې په راتلو سره د دوئ ﷻ ډله زياته كړى نو دوئ سره يو ځائې شى او په جنګ كښې حصه واخلى. بل صورت ئې داهم كيدې شى چې پخپل تصرف سره د مسلمانانو زړونه مضبوط كړى. اودوئ ﷻ كښې طاقت پيدا كړى ، بل كار ئې ورته دا اوسپارلو چې فرښتې دې پخپله هم په جنګ كښې حصه واخلى اوپه كفارو حمله كوى.

[1]) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۳، والتفسير المظهرى تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۲

[2]) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲

دې آيت مبارك نه دا معلومېږي چې فرښتو دا دواړه كارونه كړي وو ، د مسلمانانو په زړونو كښې ئې تصرف كولو سره ئې دهغوئ مرانې او طاقتونه زيات كړي وو . او په جنګ كښې ئې حصه هم اخستې وه چې تائيد ئې د احاديثو د څو روايتونو نه هم كيږي ،كوم چې په تفسير در منثور كښې او تفسير مظهري كښې په تفصيل سره بيان شوي دي او د فرښتو د جنګيدو د ستركو ليدو شهادتونه ئې د صحابه كرامو ﷺ نه نقل كړي دي[۱].

دريم آيت مبارك كښې فرمائي چې د كفر او اسلام په دې جنګ كښې چې څه اوشو دهغې سبب دا وو چې دې كافرانو د الله ﷻ او دهغه د رسول مخالفت اوكړو او څوك چې د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ مخالفت كوي هغوئ دپاره د الله ﷻ سخت عذاب وي ، دې نه معلومه شوه چې دبدر په غزا كښې يو طرفته خو په مسلمانانو باندې انعامات نازل شو ، كاميابي او برې ئې په حصه كښې شوه ، بل طرفته الله ﷻ كافران د مسلمانانو دلاسه په عذاب كړل او هغوئ ته ئې پداشان دهغوئ د بدعملئ لړه شان سزا وركړه ، چې زياته سخته سزا به ورته په آخرت كښې وركولې شي ، لكه په څلورم آيت مبارك كښې فرمائي چې : ﴿ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ وَاَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ﴾ [نو ائې [كافرانو] ددې سزا خوند اوڅكئ | او ياد ساتئ چې [په آخرت كښې هم] د كافرانو دپاره داور عذاب دې].

| | | |
|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِذَا |
| \| اے هغه كسانو | اچې ايمان مو راوړې دې | كله چې |
| \| ائې د ايمان خاوندانو هركله چې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَقِيْتُمُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | زَحْفًا | فَلَا تُوَلُّوْ |
| مخامخ شئ تاسو | دهغه كسانو سره | اچې كفرئې كړې دې | دلښكرپه شكل كښې | نوتاسومه ګرزوئ |

تاسو كافرو سره د لښكر په صورت كښې [په ميدان جنګ كښې] مخامخ شئ | نو دهغوی د مقابلې نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هُمُ | الْاَدْبَارَ | وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ | يَوْمَئِذٍ | دُبُرَهٗٓ | اِلَّا |
| هغوئ ته | شاګانې | اوچاچې اوګرزوله هغوئ ته | په دغه ورځ | شا خپله | ما سوادې نه |

مخ مه اړوئ |......................... اوچا چې هغوئ ته په داسې موقعه شا كړه [اوتختيدل] البته كه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُتَحَرِّفًا | لِّقِتَالٍ | اَوْ مُتَحَيِّزًا | اِلٰى فِئَةٍ | فَقَدْ |
| چې وي بيا راګرزيدونكې | دپاره دجنګ | ياوي ملاويدونكې | دبلې ډلې سره | نو په تحقيق سره |

دجنګې غرض دپاره ياد نورو ملګرو سره يوځائې كيدودپاره داسې اوكړي [نودا بيله خبره ده] نو هغه به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَآءَ | بِغَضَبٍ | مِّنَ اللّٰهِ | وَمَاْوٰىهُ | جَهَنَّمُ | وَبِئْسَ |
| اخته شو | په غضب سره | دالله نه | اوځائې داوسيدو دهغه | دوزخ دې | اوډيربددې |

دالله ﷻ په غضب كښې راګير شي|.........اودهغه ځائې به دوزخ شي | .............او د ورتلو دپاره هغه

[۱]) التفسير المظهري تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۹، ۳۰. والدر المنثور تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۱۹

الْمَصِيرُ ﴿١٦﴾ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا

دغه خائې دورتلو | نو نه دی وژلې تاسو هغوی | ولیکن الله | وژلې دی هغوی | او نه دی

خراب خائې دی | [حقیقت دادی] چې دوی تاسو نه وو قتل کړي | بلکه الله ﷻ قتل کړی وو

رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ

ګذار کړی تا | کله چې | ګذار کړی وې تا | لیکن الله | ګذار کړی وې | او دپاره ددې چې امتحان او کړي

او تا [موټې خاورې] نه وې ویشتې څه وخت چې تا ویشتې وې | بلکه الله ﷻ ویشتې وې | او د دې دپاره

الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾

په مومنانو | د خپل طرفه | آزمیښت | ښکلی | بیشکه الله | اوریدونکي دی | او پوهه دی

چې مسلمانان دیو غټ امتحان نه په کامیابۍ سره اوباسی | بیشکه الله ﷻ اوریدونکي او عالم دی

ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ ﴿١٨﴾

دامعامله خو ستا ده او | بیشکه الله | کمزورې کونکې دی | تدبیر | دکافرانو |

دامعامله خو تاسو سره اوشوه | پاتې شو کافران نو د هغوی مکرونه الله ﷻ کمزوری کړل

إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ ۖ وَإِن تَنتَهُوا

که غواړئ تاسو فتحه | نو په تحقیق سره | راغله تاسو ته | فتح | او که منع شوئ تاسو

[کافروته اووایه] که تاسو فیصله غوښتله نو فیصله خو درته مخې ته راغله | او که [اوس هم] منع شوئ

فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ ۚ

نو دا کار | بهتر دې | دپاره ستاسو | او که چرې | تاسو بیا او ګرزئ | نو مونږ به هم را او ګرزو سزا ته |

نو دا خبره ستاسو دپاره ډیره بهتره ده | او که تاسو بیا جنګ ته را واپس شوئ نو مونږ به هم واپس کیږو

وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ

او هر ګز به دفع نه کړي | ستاسو نه | ډله ستاسو | هیڅ څیز | اګر که ډیره لویه وی | او بیشکه الله

او تاسو ته خپله ډله هیڅ کله فائده نشی در کولې | اګر که ډیر زیاته وی | او بیشکه الله ﷻ

مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٩﴾

د مومنانو سره دی |

مومنانو سره مل دی |

## آسان ترجمه قرآن

اې مؤمنانو ! کله چه تاسو د کافرانو سره مخامخ شئ نو چه کله هغوی په تاسو باندې حمله کوي نو هغوی ته مه شاه کوئ. او که څوک د څه جنګي چال د وجې نه داسې کوي ، یا خپلې ډلې سره یو ځائې کیدل غواړي، نو د هغه خبره خو جدا ده ، مګر که دې نه سوا څوک په دغه ورځ شا آړوي (تیښته کوی) نو په هغه به د الله غضب وي ، او د هغه ځائې جهنم دې ، او هغه ډیر بد ځائې دې پس (مسلمانانو ! حقیقت کښې) تاسو دې (کافرانو لره) نه وو وژلي ، بلکه دوی لره الله وژلي وو ، او (اې پیغمبره !) چه کله تا په دوی باندې (شګې)

ويشتلي وي نو هغه تاسو نه بلکه الله ويشتلي وي او (ستاسو په لاسونو باندې مو دا کار ځکه کړې وو چه الله ددې په ذريعه مؤمنانو ته بهتر اجر ورکړي. بې شکه الله د هرې خبرې آوريدونکې دې او په هر څيز پوهيږي. دا هرڅه خو په خپل ځاځ ددې نه علاوه دا خبره هم ده چه الله تعالیٰ د کافرانو هر يوسازش کمزوري کونکې وو (اې کافرانو!) که تاسو فيصله غوښته نو تاسو ته فيصله راغله او که تاسو منع شئ نو دا په تاسو د پاره بهتره وی، او که تاسو بيا هغه کار کوئ (چه کوم تراوسه کوئ) نو مونږ به هم بيا هغه کار اوکړو (چه کوم مو اوس کړې دې) او ستاسو ډله به ستاسو پکار نه شي، خواه که هغه هر څومره ډيره وي او ياد ساتئ چه د الله مدد د مؤمنانو سره دې.

## خلاصه تفسير

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ﴾ اې ايمان والو کله چه تاسو کافرو سره [په جهاد کښې] مخامخ شئ نو ددوي نه مخ مه اړوئي [يعني دجهادنه مه تختئ] ﴿وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ يَوْمَىِٕذٍ دُبُرَهٗٓ اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴾ او چه کوم سړې په دې موقع باندې [دمقابلې په وخت] تختي مګرچه څوك د جنګ دپاره څه چل جوړوي يا خپلې ډلې سره پناه اخلي هغه ددې نه مستثني دې باقي او چه څوك داسې کوي هغه به دالله ﷻ په غضب کښې رازي اودده ځائې دوزخ دې اودا ډير خراب ځائې دې.[په ﴿فلم تقتلوهم الايه﴾ کښې هم يو قصې طرف ته اشاره ده. هغه دا چه دوي ﷺ دبدر په ورځ دشګو يو موټئ راواخستلو او کافرو طرف ته ئي اوويشتلو چه په دې سره د هغه ذرې د هغوي ټولو په سترګوکښې پريوتله او هغوي ته شکست اوشو.اود فرښتو مدد دپاره راتلل مخکښې راغلي دي. په دې باندې د تفريع په طور فرمائي چه کله داسې واقعات اوشو چه هغه بالکل ستا داختيار نه بهر دې] ﴿فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ قَتَلَهُمْ﴾ نو [ددې نه معلوميږي چه د تاثير حقيقي په مرتبه کښې] تاسو ﷺ دا [کافران] قتل نه کړل ليکن [په دې مرتبه کښې] الله ﷻ [بيشکه دوي قتل کړل [يعني موثر حقيقي دهغه قدرت دې] ﴿وَمَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى﴾ او [داشان د تاثير حقيقي په مرتبه کښې] تاسو ﷺ د خاورې موټئ [ددوي] په سترګوکښې وانچولو ليکن [په دې مرتبه کښې] الله ﷻ [واقعي] هغه غوزار کړل﴿وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْهُ بَلَاۗءً حَسَنًا﴾ او [باوجود ددې چه موثر حقيقي قدرت حق دې بيا چه آثار دقتل وغيره ئي په قدرت عبد باندې مرتب اوفرمائيل په هغې کښې حکمت دادې چه] مسلمانانو ته د خپله طرفه [دهغوي د عمل] ښه اجر ورکړي [او اجر ملاويدل الله ﷻ سنت يعني طريقه ده په دې باندې چه کار ددوي په عزم او اختيار سره صادر شو] ﴿اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ بلاشبه الله ﷻ [ددې مومنانو اقوال ښه آوريدونکي [اوددوي افعال اواحوال] ښه پيژندونکي دې [په دې افعالو استغاثه او افعال قتال اواحوال تشويش وغيره کښې چه ددوي محنت راپيښ شو مونږ ته دهغې خبر دې دوي ته به په دې اجر ملاويږي] ﴿ذٰلِكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ مُوْهِنُ كَيْدِ الْكٰفِرِيْنَ﴾ يو خبره دا اوشوه او بله خبره دا داده چه الله ﷻ ته دکافرو تدبيرونه کمزوري کول وو [او نوره زياته کمزوري په هغه وخت کښې ظاهريږي چه کله د خپل برابر والا نه بلکه د خپل ځان د کمزوري نه مغلوب شي اوداهم موقوف دې په دې باندې چه هغه آثار دمومن دلاسه ظاهرشي ګني وئيلې شول چه که تدبيرونه زمونږ خو قوي وو.ليکن داقوي په مخکښې چه دالله ﷻ تدبير دې نه اوچليدل.نوددې

د راتلوونکو مسلمانانو په مقابله کښې دې ددوي حوصله ښکته نه وي ځکه چه دوي خو کمزوری ګنړلي ﴿إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ﴾ که تاسو فیصله غواړئي نو فیصله تاسو ته موجوده شوه راغله [چه څوك په حق وو هغه ته غلبه اوشوه] ﴿وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ او که [اوس حق د زیاته ښکاره کیدلونه پس درسول الله ﷺ دمخالفت نه] منع شئ نودا ستاسو دپاره ښه بهتر دي ﴿وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ﴾ اوکه [اوس هم منع نشوئي بلکه] تاسو بیاهغه کار اوکړئي [یعني مخالفت] نوموږ هم بیا همدا کار کوو [یعني تاسو به مغلوب او مسلمانان به غالب کوو] ﴿وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ﴾ او [که تاسوته د خپل جمعیت غرور وي چه دې خل به ددې نه زیات جمع کوو نو یاد ساتئي چه] ستاسو غونډه به ستاسو هیڅ پکار رانشي اګر چه څومره هم زیاته وي ﴿وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ او واقعي خبره داده چه الله [په اصل کښې] دایمان والو سره [یعني ددوي مددګار] دې [که دڅه وجې په څه وخت کښې ددوي دغلبې ظاهریدل اونشي لیکن اصل محل دغلبې دادې.ددې وجې دوي سره مقابله کول خپل نقصان کول دي].

## معارف او مسائل

دې دوؤ آیتونو کښې د اسلام یو جنګی قانون خودلې شوېدې ، په ړومبی آیت مبارك کښې د زحف لفظ نه مراد د دواړو لښکرو مقابله اوسره ګډون کول دی ، معنی ئې داده چې جنګ اونښلې نومخ په شا ، د میدان نه تیښته کول مسلمانانو لره جائز نه دی .

دویم آیت مبارك کښې ددې حکم نه یو استثناء بیان شوې ده ، او هغه مسلمانانو دپاره د سخت عذاب بیان دې ، کوم چې د جنګ نه په ناروا طریقه تښتي.

استثناء د دوؤ حالتونو ده . ﴿إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ﴾ او ﴿أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ﴾ مطلب دا چې د جنګ په موقعه د جنګ نه مخ اړول صرف په دوؤ حالتونو کښې روا دی . یو دا چې دښمن سره جنګی دهوکې کولو دپاره وی ، او مقصد ئې جنګ نه تښتیدل نه وی بلکه دمخالف خیال بدلولو سره په هغوئ باندې په یو ځل ئې حمله کول مطلب وی همدا معنی د ﴿إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ﴾ ده ځکه چې تحرف لفظ یو طرفته کیدلو او د مائله کیدلو دپاره استعمالیږی . [روح المعانی][1].

د دویمې استثنی مطلب دادې چې میدان جنګ نه په شا تللو اجازت داسې صورت کښې هم کیدې شی چې دخپل موجود لښکر کمزورې احساس اوکړی ، مخ په شا دې دپاره راؤځی چې د مسلمان لښکر نه نور مدد راؤرسی هله پس بۀ حمله کوم ، هم دا مطلب د ﴿أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ﴾ دې ځکه چې د تیز لفظی معنی رایوځائې کیدل او ملاویدل دی ، اود ﴿فِئَةٍ﴾ معنی ډله ده ، د ټولې جملې مطلب دا شوچې خپلې ډلې سره یوځائې کیدلو دپاره که د جنګ میدان په دې غرض پریږدی چې طاقت او قوت بیا مومی نو حمله به کوی ، داسې کول هم روا دی .

دې نه پس دداسې خلقو دسزا بیان دې چې دې استثنائی حالاتو نه بغیر په ناجائزه طریقه میدان پریږدی یا مخ په شا لاړ شی لکه فرمائی چې : ﴿فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾ [یعنی د میدان جنګ نه تښتیدونکی دالله ﷻ په غضب کښې ر اګیر شی اودهغه ځائې به دوزخ وی او د ورتلو دپاره هغه خراب ځائې دې].

---

[1] ) روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج۷، ص۲۷

دي دوارو آيتونو نه دا حکم معلوم شو چې مخالفه ډله که هر څومره ګڼره او طاقتوره وي نو مسلمانانو لره تر مخ په شا کيدل حرام دي سوا د دوؤ صورتونو نه چې تښتيدل ئې مطلب نه وي بلکه جنګي دهوکه کول ئې مطلب وي ، يا د مدد حاصلولو په غرض په شا لاړ شي . کله چې مدد راؤرسي نو بيا د حملې کولو اراده ئې وي.

دا آيتونه د بدر په غزا کښې نازل شوي دي . او دغه وخت دا حکم عام وو ، چې د دښمن فوج به که هر څومره شمير کښې ډير زيات هم وو بيا به هم د جنګ ميدان پريخودلو او پشا کيدل ترې جائز نه وو. نو په ميدان بدر کښې هم دا صورت وو چې د درې سوه ديارلسو مسلمانانو مقابله د يو زر کفارو سره وه. د تخفيف احکام د سورة انفال په ۶۵، ۶۶ کښې بيا روستو نازل شوي دي . په آيت ۶۵ کښې اوفرمائيلې شو چې شلو مسلمانانو ته دوؤ سوؤ کافرانو سره او سلو مسلمانانو ته زرو کافرانو سره د جهاد حکم دې ، په آيت ۶۶ سره په دې کښې نور کمې په داشان سره اوکړې شو چې الله ﷻ اوفرمائيل چې :

﴿اَلْئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا ۚ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ﴾[اوس الله تعالى په تاسو باندې سپکوالې [آسانوالې] اوکړو اوپه علم ظاهري سره الله تعالى ته معلومه شوه چه په تاسو کښې کمزوري ده نوکه په تاسو کښې سل صابران کسان وي هغوي به په دوه سوو باندې غلبه کوي]. دې کښې اشاره دې ته اوشوه چې دوچند کافرانو سره په جنګ کولو کښې هم د مسلمانانو د بر راتلو اميد شته دې ، ځکه ترې پشاکيدل جائز نه دي البته که دوچند نه کافران زيات وي نو په داسې حالت کښې مسلمانانو دپاره ميدان پريخودل روا دي .

عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائيلي دي چې يوازې يومسلمان که د.درې کافرانو د مقابلې نه مخ پشاشو نو دا تيښته نه ده ، هوکه دوؤ د مقابلې نه ئې ډډه اوکړه نو دا اوتښتيدو چې لويه ګناه ئې اوکړه .[روح البيان][1].

اوس هم داحکم تر قيامته پورې په ځائې پاتې دې ، د جمهور امت او د څلورو امامانو په نزد شرعي حکم دادې چې تر څو پورې د دښمن شمير د دو چنده نه زيات نه وي هغه وخته پورې د ميدان نه تښتيدل حرام دي او لويه ګناه ده.

صحيحين کښې د ابي هريره رضي الله عنه په روايت منقول دي چې نبي کريم ﷺ اؤه کارونه انسان دپاره هلاکوؤنکي خودلي دي چې يو په کښې ميدان جنګ نه تښتيدل ئې هم شمير کړي دي[2] . او دغزوهٔ حنين په واقعه کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اولنې پشا کيدل قرآن عظيم الشان د شيطان لغزش ګرځولې دې چې ددې د لوئې ګناه کيدلو دليل دې،فرمائي چې: ﴿اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطٰنُ﴾

او دترمذي او ابي داؤد په روايت کښې چې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه کومه قصه منقول ده ، چې يو وار د جنګ څخه اوتښتيدل او مدينه منوره کښې يې پنا ه واخستله.او د نبي کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د جرم اعتراف يې اوکړو چې مونږ د ميدان جنګ څخه د تيښتې جرم کړې دې. نبي کريم ﷺ د خفه کيدو په ځائې هغوئ ته تسلي ورکړه او وې فرمائيل چې

[1] ) روح البيان: ج۱، ص ۸۲۸، ۸۲۹

[2] ) صحيح البخاري، کتاب الوصايا، باب قول الله تعالى ان الذين يأكلون أموال اليتامى ظلماً الخ: ج۱، ص ۳۸۸، وصحيح مسلم، کتاب الإيمان، باب الکبائر و اکبرها: ج۱، ص ۶۴

﴿انتم الفارون وانا فئتكم﴾ یعنی تاسو تښتیدونکی نه یئ بلکه مدد اخستلو څخه روستو بیا حمله کوونکی یئ او زه ستاسو دپاره مدد یم[۱]. پدې شان نبی کریم ﷺ دا حقیقت ښکاره کړو چې ددې خلقو راتښتیدل او په مدینه منوره کښې پناه اخستل به هغه استثناء کښې داخل وی په کومه کښې چې د مدد حاصلولو دپاره د میدان پریخودو اجازت ورکړې شوې دې، خو هر کله چې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د ویرې، هیبت او لویئ کوم خاص مقام چې لرلو دهغې په بنا دغه قسم راتلل ئې هم تیښته اوګڼړله. خپله ویره ئې ښکاره کړه او خپل ځان ئې د یو مجرم په حیثیت د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړو.

دریم آیت کښې د بدر د غزا دباقی واقعې بیانولو سره مسلمانانو ته دا هدایت کړې شوې دې چې د بدر دغزا په معجزانه فتح موندلو کښې د خپل کوشش او عمل دخل مه ګڼړئی بلکه دا د الله ﷻ امداد ووچې لږ اوکمزوری مسلمانان ئې په ډیرو اومضبوطو کافرانو باندې بر راوستل.

دې آیت مبارك کښې چې کومه واقعه بیان شوې ده د هغې تفصیل ابن جریر طبری رحمه الله، او بیهقی رحمه الله وغیره د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وغیره نه داسې نقل کړی دی چې د بدر دغزا په ورځ کله چې د مکې مکرمې د زړو ځوانانو لښکر د یوې غونډئی د شانه میدان ته راکوز شو نو د مسلمانانو په کمزورتی او کمی او په خپل طاقت او ګڼړوالی ئې فخر کولو او په ډیر غرور سره را اوراندې شو، دغه وخت نبی کریم ﷺ داشان په دعا شو، ائې الله ﷻ! تالره دروغژن کوونکی قریش په فخر او غرور سره راروان دی، دفتح کومه وعده دې چې راسره کړې وه هغه زر پوره کړې. [روح البیان][۲].

جبریل امین علیه السلام نازل شوا و عرض ئې اوکړو چې تاسو ﷺ یو موټې خاوره ددښمن په لښکر ور اوشیندئی، نبی کریم ﷺ همدغسې اوکړل او ابن ابی حاتم د ابن زید په روایت نقل کړی دی چې نبی کریم ﷺ درې ځل د شګو او ښاوړو نه ډك کړی موټی د کافرانو په لښکر داسې غورزولی وو چې یو ځل ئې د لښکر په ښی طرف، بل ځل ئې په ګس او دریم ځل ئې مخامخ پرې ورغورزولی وو. دهغه نتیجه دا شوه چې هغه یو موټې یا درې موټی خاوره د الله ﷻ په قدرت هغه د هر کافر لښکر په مخ باندې او په سترګو کښې ورپریوتل، او ددښمن یو کس پاتې نشو چې د هغه په سترګو او مخ باندې دا شګې او خاورې نه وی پریوتې چې دهغه اثر دا شو چې هغوئ خواره واره شو، مسلمانان ورپسې شوا و فرښتې هم ځانله په دې جنګ کښې شریکې وې. [مظهری، روح][۳].

آخر څه کفار قتل شو، څه بندیوان شو، او ډیر اوتښتیدل په میدان جنګ کښې مسلمانان غالب شو.

د نا امیدئی په حالت کښې مسلمانانو ته دا لویه کامیابی حاصل شوه. د میدان جنګ نه په واپسئ مسلمانانو خپل مینځ کښې خبرې اترې شروع کړې او خپلې کارنامې ئې بیانولې پدې باندې دا آیت مبارك نازل شو چې:

---

[۱]) جامع الترمذی، أبواب الجهاد، باب: ج۱، ص۳۰۱، ۳۰۲

[۲]) تفسیر الطبری تحت هٰذه الآیة رقم الحدیث: ۱۵۸۲۱، دلائل النبوة للبیهقی رقم الحدیث: ۹۸۱

[۳]) روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج۷، ص۴۲، والتفسیر المظهری تحت هٰذه الآیة: ج۴، ص۳۸، ۳۹

﴿فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ﴾ [حقيقت دا دي] چې دوئ تاسونه وو قتل کړي بلکه الله ﷻ قتل کړي وو].

دې کښې دا هدايت ورکړې شو چې پخپل کوشش او عمل باندې ناز مه کوئي. دا هر څه يوازې ستاسو د محنت او کوشش نتيجه نه وه بلکه خالص د الله ﷻ د مدد وو، ستاسو په لاس وژلې شوي دښمنان په حقيقت کښې تاسو نه بلکه الله ﷻ وژلي دي.

دغه شان نبي کريم ﷺ ته په خطاب کولو ارشاد دې چې: ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ [او تا [موټئ ښاورې] نه وې ويشتې څه وخت چې تا ويشتې وې [بلکه الله ﷻ ويشتې وې].

مارميت اذ رميت گفت حق کارما، برکار ها دا رد سبق

ترجمه: يعنې الله ﷻ اوفرمائيل چې دغه ويشتل په حقيقت کښې ستا کار نه وو بلکه دا د الله ﷻ کار وو چې هيڅ څيز ئې مخه نشي نيوې.

په غور کولو سره ښکاريږي چې په غزا کښې کاميابي او برې موندل زيات قيمتي نه وو بلکه زيات قيمتي دا هدايت وو چې د مسلمانانو ذهنونه ئې د اسبابو نه مسبب الاسباب ته راؤګرځول او ددې په ذريعه ئې د فخر، غرور خود پسندئي د خرابئ نه اوساتل څنګه چې په دې نشه کښې بر راتلونکي قومونه مستيږي. ورپسې الله ﷻ دا اوخودل چې برې، او شکست زمونږ د حکم تابع دی. او زمونږ مدد برې ورکول يوازې فرمانبردارو بندګانو سره ترون لرې لکه فرمائي چې:

﴿وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا﴾ [يعنې مونږ تاسو ته دا عظيمه فتح په دې وجه درکړه چې مؤمنانو ته دهغوئ د محنت پوره پوره بدله ملاؤ شي].

د بلاء لفظي معنې امتحان اخستل دی چې کله ئې الله ﷻ په دې شان اخلي چې مصيبت او مشقت کښې ئې اخته کړي او کله په دولت او راحت وغيره ورکولو سره ئې اخلي.

﴿بَلَاءً حَسَنًا﴾ هغه امتحان ته وئيلې شي چې راحت، آرام، دولت، کاميابئ ورکولو او په امداد کولو سره اخستې شي، يعنې مطلب ترې دا وي آيا دا خلق ئې د الله ﷻ په انعام ګڼړلو سره شکريه ادا کوي، يا دخپل کمال ذاتي قابليت او خپل محنت نتيجې ګڼړلو سره په فخر، لوئئ کښې اخته کيدو سره خپل دغه عمل بربادوي، ولې چې د الله ﷻ په نزد دفخر او لوئئ هيڅ قسم ګنجائش نشي کيدې لکه مولانا رومي فرمائيلي دي چې:

فهم وخاطر تيزکردن نيست راه جز شکسته مي نگيرد فضل شاه

ترجمه: سوچ و فکر او عقل تيزول لار موندل دي،، او بغير دعاجزئ څخه نه د بادشاه فضل نشي تر لاسه کولې.

څلورم آيت مبارك کښې ددې بل طرفته د کاميابئ يو فائده داهم اوخودلې شوه چې: ﴿ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ﴾ [يعنې فتح او نصرت په دې وجه مسلمانانو ته ورکړې شو چې ددې په ذريعه دکافرانو تدبيرونه ناکام او ناکاره جوړ کړې شي. او په دې پوهه شي چې مونږ سره دالله ﷻ مدد نشته دې او دالله ﷻ د مدد څخه هيڅ يو تدبير نه شي کاميابيدې].

پنځم آيت مبارك کښې شکست خوړونکو کافرانو ته خطاب دې او يو واقعې ته اشاره ده کومه چې دمکې مکرمې نه د دوئ د لښکر د را روانيد په وخت داسې راپيښه شوې وه. چې کله

قریشي کافر لښکر د مسلمانانو مقابلې ته تیار شو نو د مکې څخه د وتلو په وخت ددې لښکر سردار ابوجهل وغیره د بیت الله شریف پرده اونیوله او دعا ئې اوکړه چې اې الله ! دواړو لښکرونو چې کوم اعلی او زیات غوره دې اودې دواړو ډلو کښې چې کومه یوه زیات په هدایت ده ، او په دواړو ډلو کښې چې څوك زیات شریفان او عزت مند دی ، او د کومې یوې دین چې زیات غوره دې هغه کامیاب کړې .[مظهری] [۱].

ددې بې وقوفانو خو دا خیال وو چې په ټول هر څه کښې زمونږ غوره والې زیات دې ، په دې لحاظ ئې دا دعا د ځان په حق کښې ګڼړله ، مګر په حقیقت کښې دا هم د مسلمانانو په حق کښې دعا او د خپل ځان په حق کښې خیره اوګرزیدله. الله ﷻ فرمائي چې :

﴿إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ﴾[کافروته اووایه] که تاسوفیصله غوښتله نوفیصله خو درته مخې ته راغله] چې حق ته فتح او باطل ته شکست

: ﴿وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾[اوکه[اوس هم]منع شوئ نو دا خبره ستاسودپاره ډیره بهتره ده].

او ﴿وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ﴾ [او که تاسو بیا خپل شرارت او جنګ ته راواوړیدئ نو مونږ به هم د مسلمانانو مددته بیا را واوړو].

﴿وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ﴾[یعنی ستاسو جماعت او ډله که هر څومره زیاته وی د الله ﷻ د نصرت په مقابلې کښې به تاسو ته هیڅ درنکړی. هیڅ کله فائده نشی در کولې [وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۹﴾] اوبیشکه الله ﷻ مومنانو سره مل دې].

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | أَطِيعُوا اللَّهَ | وَرَسُولَهُ |
| اے هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | حکم اومنئ دالله | اودرسول دهغه |
| ائې د ایمان خاوندانو ! دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ دحکم تابعداری کوئ | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَوَلَّوْا | عَنْهُ | وَأَنتُمْ | تَسْمَعُونَ ﴿۲۰﴾ | وَلَا تَكُونُوا | كَالَّذِينَ | |
| او مخ مه اړوئ | دهغې نه | حال داچې تاسو | اوریئ | اومه کیږئ تاسو | پشان دهغه کسانو | |
| اودحکم اوریدونه پس ترې مخ مه اړوئ ..............اودهغه چا په شان مه کیږئ چې دا دعوی | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا | سَمِعْنَا | وَهُمْ | لَا يَسْمَعُونَ ﴿۲۱﴾ | إِنَّ | شَرَّ |
| چې وې وئیل | چې واوریدل مونږ | اوحال دا چې هغوئ | نه اوریئ | بیشکه چې | ډیر ناکاره |
| کوی چه مونږ واوریدل | حال دا چې هیڅ ئې نه وی آوریدلی | .............د الله په نیز بدترین | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الدَّوَابِّ | عِندَ اللَّهِ | الصُّمُّ | الْبُكْمُ | الَّذِينَ | لَا يَعْقِلُونَ ﴿۲۲﴾ |
| دځناورو | په نز دالله | کاڼړه | ګونګیان | هغه خلق دی | چې دعقل نه کارنۀ اخلی |
| ښاروی هغه کاڼړه اوګونګیان خلق دی ..........چې په هیڅ نه پوهیږی | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ | فِيهِمْ | خَيْرًا | لَّأَسْمَعَهُمْ | وَلَوْ |
| اوکه معلوم وې الله ته | په دوئ کښی | څه خیر | انو توفیق داوریدو به ئې ورکړې وۀ | اوکه |
| اوکه الله ﷻ ته په دوئ کښې څه خوبی ښکاریدئ | نود آوریدوتوفیق به ئې ورکړې وی | | | |

[۱]) التفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۴۲

أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

اوروليې ئې وې دوئ ته|نو خامخا به گرزيدلى وو دوئ|او دوئ| مخ اړونکي دي| اے هغه کسانو

خو|ددوئ داحال دي|که الله ﷻ داوريدو توفيق ورکړې |نومخ به ترې واړوې |او په اړخ به اوګرځي اې مومنانو!

اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ

چې ايمان موراوړې دي | قبول کړئ حکم | دالله | اودرسول | کله چې| اوبلي تاسو|

دالله ﷻ اود رسول د حکم منته اوکړئ|.............. خکه چې تاسو هغه خبرې ته رابلی

لِمَا يُحْيِيْكُمْ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ

هغه څيز ته | چې ژوندي کوي تاسو| اوپوهه شئ| چې بيشکه الله| پرده کيږي| په منځ| دانسان کښې

چې تاسوپرې [روحاني طور] ژوندي کيږئ | اوياد ساتئ چې الله ﷻ دسړي او دهغه د

وَقَلْبِهٖ وَاَنَّهٗٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ۝

اودزړه دهغه کښې |او شان دادې| چې خاص هم هغه ته به| تاسوجمع کيږئ|

زړه په مينځ کښې هم حائل کيږي | اوبيشکه تاسوټول به هغه ته جمع کولې شئ

## آسان ترجمه قرآن

اې دايمان خاوندانو ! دالله اود هغه د رسول تابعداري کوئ، او د هغه (د تابعدارئ نه) مخ مه اړوئ حال داچه تاسو (دالله او د هغه د رسول احکام) آورئ، او دهغه خلقو پشان مه کيږئ چه هغوی وائي چه مونږ واوريدل مګر هغوی (په حقيقت کښ) نه آوريدل او کړئ چه دالله په نيز بانديې بدترين د زنده سرو نه هغه کاڼه او ړانده دي چه د عقل نه کار نه اخلي او که دالله په علم کښ دوی کښ څه ښه والې وې نو دوی ته به ئې د آوريدو توفيق ورکړې وو ليکن (اوس چه هرکله دوی کښ څه ښه والې نشته) که دوی ته د آوريدو توفيق هم ورکړي نو دوی به مخ واړوي او وبه تښتي اې د ايمان خاوندانو ! دالله او د رسول تابعداري قبوله کړئ. کله چه رسول تاسو هغه خبرې ته راوبلي چه هغه سره تاسو ته ژوند درکوی او په دې خبره پوهه شئ چه الله د انسان او دهغه د زړه په مينځ کښ آړ جوړيږی او تاسو ټول به هغه طرف ته راجمع کړې شئ.

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ﴾ ائې ايمان والو دالله ﷻ منل کوئې او دده درسول ﷺ ﴿ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ ۝﴾ او ددوې دمنلونه مخ مه اړوئې او تاسو [په اعتقادسره] خو اورئ [يعني ځنکه چه عقيدې سره آورئې داسې عمل هم کوئې] ﴿ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ قَالُوْا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ۝﴾ اوتاسو [داطاعت په پرېښودلو کښې] دهغه خلقو پشان مه کيږئې چه دعوې خو کوې چه مونږ ولوريدل [لکه کفار چه مطلق په آوريدوکښې او منافقين د آوريدو سره د اعتقاد مدعي وو] حالانکه دوې به آوريدل رااوريدل هيڅ نه [ځکه چه په پوهه او اعتقاد دواړوکښې مفقود دې. مطلب دا چه ثمره د اعتقاد د آوريدلو عمل دې. هرکله چه عمل نه وې نو دبعضې وجو سره مشابه ددې سره شو چه اعقادسره ئې هډو آوريدلي نه وې چه دا هم تاسو سخته مذمومه

كنړني]. ﴿إِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِندَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ﴾ بيشكه [دا خبره ضرور ده چه يو په اعتقاد سره آوريدوونكي عمل به كوونكي دى اويو بغير داعتقاد نه اوريدونكي دى چه په مثل د نه آوريدونكو دي په خراب كيدو كښي يې فرق ضروري دې ځكه چه كافر او عاصي برابر نه دي چنانچه] بدترين مخلوق دالله ﷻ په نزد هغه خلق دي چه [حق خبره په اعتقاد سره د آوريدونه] كانړه نه دي [او حقه خبره كولو نه] ګونګيان دي [او] چه څوك [حق خبره باندې] لږه هم نه پوهيږي [او د اعتقاد باوجود چه دې سره عمل كښي كوتاهي كيږي. هغه بدتر نه دي اګر چه بد دي نو بدهم نه دي كيدل پكار] ﴿وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَّأَسْمَعَهُمْ﴾ او [چه دچا حال ذكر شو چه هغوي په اعتقاد سره نه آوري .ددې وجه داده چه په دوي كښې ديو لوئي خوبي كمى ده.اوهغه خوبي د حق طلب دي.ځكه چه د عتقاد مبداء اهم طلب او تلاش دي.اګر چه په دې وخت كښې اعتقاد نه وي خو كم از كم شك به وي بيا هم دغه شك او طلب په بركت سره حق ښكاره كيږي او هغه شك اعتقاد جوړيږي چه په هغې باندې دسماع نافع كيدل موقوف دي نو په دوي كښې هم دا خوبي مفقود ده چنانچه] كه الله ﷻ په دوي كښې څه خوبي ليدلې [مراد دادې چه كه په دوي كښې هغه ذكر شوې خوبي وې ځكه چه د خوبئ د وجود په وخت كښې دالله ﷻ دعلم تعلق ورسره لازم دې.نو لازم ئي اووئيلو او ملزوم ئي ترې مراد واخستلو او بله يوه خوبي ئي ددې وجې اووئيل چه كله داسې خوبي نه وي چه په هغې باندې دنجات دارومدار وي نو بيا هيڅ خوبي نشته دې يعني كه په دوي كښې دحق طلب وې] نو [الله ﷻ] به دوي ته په اعتقادسره] داوريدو توفيق وركړې وې [الكه څنګه چې ذكر شو چې په طلب سره اعتقاد پيدا كيږي] ﴿وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوا وَّهُم مُّعْرِضُونَ﴾ اوكړو چرته د الله ﷻ دوئ ته اوس [په موجوده حالت كښې چې په دوئ كښې د حق طلب شته ور واؤروی [الكه څنګه چه كله كله په ظاهري غوږونو سره آوري] نو ضرور به مخ اړوي په بې رخئ سره [يعني دا نه ده چه د تامل او تدبر نه پس د غلطئ د ظاهريدو نه پس ئي مخ واړولو ځكه چه دلته دغلطئ هډو ننبه نښانه نشته دې بلكه غضب دادي چه دې خوا هډو توجه نه وركوي].

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ﴾ائي ايمان والو [مونږ چه تاسوته د اطاعت حكم كړې دې نويادساتئي چه په دې كښې هم ستاسو فائده ده چه هغه ابدي ژوند دې.هركله چه دا خبره ده نو] تاسو دالله ﷻ اورسول ﷺ وينا اومنئ ﴿إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ﴾ حالاتكه رسول ﷺ [چه دهغه ارشاد دالله ﷻ ارشاد دې] تاسو د ژوند بخښونكي څيز طرف ته [يعني دين طرف ته چه دې سره تول ژوند ښه كيږي] رابلي مو [نوپه دې حالت كښې چه كله هم ستاسو فائده ده هيڅ وجه نه ده چه تاسو به عمل اونكړني] ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ﴾ او [ددې متعلق دوه خبرې] يادساتئ [يو خبره داده] چه الله ﷻ يو ادانره جوړيږي دسړي او دده د زړه په مينځ كښې [په دوه طريقوسره چه يو طريقه داده چه دمومن په زړه كښې د اطاعت په بركت سره كفر او معصيت نه راځي. اودويمه طريقه داده چه دكافر په زړه كښې دمخالفت په نحوست سره ايمان اواطاعت نه پريږدي. ددې نه معلومه شوه چه په اطاعت باندې هميشګري ډير د نفعې څيز دې او مخالفت باندې هميش والئ ډير خراب څيزدې]﴿وَأَنَّهُ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾او[دويمه خبره داده چه دا يادساتئ چه] بيشكه تاسو تول به دالله ﷻ سره جمع كيږئ [په هغه وخت كښې به په اطاعت باندې جزا او مخالفت به سزا ملاويږي.په دې سره داطاعت نافع كيدل اود مخالفت مضر كيدل ثابت شو].

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې بدر غزا چې دهغه څه قدرې تفصیل په بیان شوې دې په هغې کښې د مسلمانانو او کافرانو دواړو دپاره دعبرت او حکمت ډیر سبقونه دی چې دهغې طرفته د قیصې ترمینځې جملو کښې مخه راګرځولې شوې ده. لکه په تیرو شوؤ آیتونو کښې د مشرکانو د مکې شکست او ذلت بیانولو نه پس الله ﷻ فرمائیلي دي چې:

﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ یعنی سره ددې چې کفار ګنړ په وسلې او سامان سره بهرپور او ښه مضبوط تکړه وو خو هر کله چې د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ مخالفت ئې کولو ځکه ئې شکست او ذلت په نصیب شو. دې کښې هغې خلقو دپاره عبرت دې چې د زمکې او آسمانونو دخالق او مالك د کامل قدرت او د غیبی قوت نه زیات په مادی قوتونو باندې تکیه کوی، یا سره ددې چې د الله ﷻ نافرمانئ کوی خو بیا هم الله ﷻ نه د مدد غلطو خواهشونو لرلو سره خپل نفسونو ته دهوکه ورکوی په ذکر شوؤ آیتونو کښې ددې مسئلې بل طرف داسې بیان کړې شوې دې چې سره ددې چې مسلمانان، په لږ شمیر کښې وو، کمزوری او بې وسلې او بې سامانه وو نو دا لویه فتح او برې ورته خالص د الله ﷻ په مدد ورته نصیب شو، او د الله ﷻ دا مدد ورته د حق د تابعدارئ په نتیجه کښې په حصه شو، نو مسلمانانو ته دحق په تابعدارئ د کلك پاتې کیدو حکم داسې ورکړې شوې دې:

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [یعنی اې دایمان خاوندانو! دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ دحکم تابعداری کوئ]

بیا ددې مضمون د زیات تاکید دپاره فرمائی چې: ﴿وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ﴾ [اودحکم آوریدونه پس ترې مخ مه اړوئ]

دلته د آوریدو نه مراد حق خبره آوریدل دی او د آوریدو څلور درجې دی. یوه دا چې څه آواز صرف په غوږونو واورئ نه پرې پوهه شی، نه پرې د پوهیدو کوشش کوی، نه پرې عقیده اولری، نه پرې عمل اوکړی، اونه پرې اعتبار اوکړی. دویمه دا چې په غوږونو سره د واوری هم او پرې پوهه شی هم خو نه عقیده پرې اوساتی او نه عمل پرې اوکړی، دریمه دا چې واوری هم او عقیده اوتکیه پرې هم لری مګر عمل پرې اونه کړی. څلورمه دا چې سره داوریدو پرې پوهه شی، عقیده او تکیه پرې هم لری او عمل پرې هم کوی.

دا ښکاره خبره ده چې د آوریدو اصل مقصد د پوره ډول خو یوازې په څلورمه درجه حاصلیږی چې دکاملو مؤمنانو مقام دې. او د آوریدو رومبئ درې درجې نیمګرې او نامکملې دی چې ورته نه آوریدل هم وئیلې شی. لکه چې وروستې آیت مبارك کښې ئې بیان راروان دې. دریمه درجه داوه چې د حق آوریدو سره پرې پوهه هم شی، عقیده ئې هم لری خو عمل پرې نشته، په دې سره اګر چې د آوریدو اصل مقصد نه پوره کیږی خو عقیده هم یوخاص اهمیت لری، په دې وجه دا دریمه درجه هم بیکاره نه ده کومه چې د ګناهګارو مسلمانانو درجه ده. دویمه درجه دا وه چې صرف آوریدل وی اوپه دې پوهیدل او عقیده او عمل پرې کول نه وی، دا د منافقانو درجه ده چې قرآن عظیم الشان آوری او په پوهیږی هم او په دې باندې په ښکاره د عمل او پدې عقیده لرلو دعوی ئې هم ده. خو په حقیقت کښې د عقیدې او عمل نه خالی دی او

رومبئ درجه د عامو مشرکانو او کفارو ده ، چا چې حق کلمه اود قرآن عظیم الشان آیتونه په غوړونو واؤریدل خو نه ئې پرې ځان پوهه کړو او نه ئې ورته پوره خیال اوکړو.
دې آیت مبارك کښې مسلمانانو ته خطاب دې چې تاسو خو حق خبره آؤرئ ، یعنی آؤریدل ، ځان پرې پوهه کول ، عقیده پرې لرل خو ستاسو طرفنه موجود ددې خو دې سره پرې پوره عمل کوئ،د فرمانبردارئ نه مخ مه اړوئ ، دپاره ددې چې د آؤریدو اصلی مقصد مکمل شو.
دویم آیت مبارك کښې ددې مضمون د زیات تاکید دپاره فرمائی چې:
﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ﴾ [او دهغه چا په شان مه کیږئ چې دا دعوی کوی چه مونږ واوریدل] حال دا چې هیڅ ئې نه وی آوریدلی].
دې نه مراد هغه عام کفار هم دی چې د آؤریدو دعوی کوی دا اعتقاد دعوی نه کوی او منافقان هم چې د آؤریدو سره پرې سره پوهیدلو او د عقیدې لرلو دعوی هم لری. مگر په حقیقت کښې د غور فکر کولو اوپه صحیح شان د پوهیدلو په دا دواړه محرومه دی ، په دې وجه د دوئ آؤریدل گویا کښې نه آؤریدلی دی چې مسلمانان ئې د دوئ پشان کیدلونه منع کړل.
په دریم آیت مبارك کښې د هغه خلقو سخته بدې بیان شوېده کومه چې حق خبره په غور ، فکر کولو سره نه آؤری ، او هغه قبلوی نه ، قرآن عظیم الشان داسې خلق د ځناورو نه هم زیات ناکاره گرځولی دی لکه فرمائی دی چې:
﴿إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِندَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ﴾ [د الله په نیز بدترین ځاروی هغه کانړه اوگونگیان خلق دی چې په هیڅ نه پوهیږی]. دواب د دابة جمع ده ، داصل لغت په اعتبار سره په زمکه باندې گرځیدونکی سادار مخلوق ته دابه وئیلې شی، خو په عرف اومحاوره کښې یوازې چارپایه ځناورو ته دابه وئیلې شی. د آیت مبارك معنی دا شوه د ټولو نه زیات ناکاره چارپایه د الله ﷻ په نزد هغه دی چې د حق د آؤریدو نه کانړه او ددې دقبلولو نه گونگیان دی ، کانړه گونگیان که څه عقل لری نو هغه هم دخپل زړه خبره په اشارو سره ښکاره کولې شی ، او دبل په خبره پوهیدې شی خودا خلق هر کله چې کانړه گونگیان دی او سره ددې نه بې عقله هم دی او ښکاره خبره د ه چې کوم کوڼکی او گونګ بې عقل هم وی نو د هغه د پوهیدو او پوهولو هیڅ لار نشته.
دې آیت مبارك کښې الله ﷻ داواضحه کړه چې انسان ته د احسن تقویم شان ورکړې شو ، اشرف المخلوقات او د کائنات مخدوم اوگرځولې شو ، نو دا ټول انعامات یوازې د الله ﷻ په فرمانبردارئ باندې دار ومدار لری ، کله چې انسان د حق خبرې د آؤریدو پرې د پوهیدو او د منلو نه ئې مخ واړوی ، نو دغه ټول انعامات ترې بیرته واخستې شی ، او هغه د ځناورو نه هم زیات ناکاره شی.
تفسیرروح البیان کښې راغلی دی چې انسان دخپل اصلی خلقت په اعتبار سره د ټولو ځناورو نه زیات غوره اعلی دې او د فرښتو نه کمه درجه لری ، لیکن په خپل عمل کوشش او د الله ﷻ په تابعدارئی سره د فرښتو نه هم د زیات شرافت خاوند او اعلی کیدې شی ، که د الله ﷻ د تابعدارئ نه ډډه کوی نو بیا هغه په اسفل السافلین کښې حسابیږی او د ځناورو نه هم زیات ناکاره گنړلې شی.

خلورم آیت مبارك كښې فرمائی چې:

﴿وَلَوۡ عَلِمَ ٱللَّهُ فِيهِمۡ خَيۡرٗا لَّأَسۡمَعَهُمۡۖ وَلَوۡ أَسۡمَعَهُمۡ لَتَوَلَّواْ وَّهُم مُّعۡرِضُونَ ۝﴾ [او كه الله ﷻ ته په دوئ كښې څه خوبى ښكاريدې نود آوريدو توفيق به ئې وركړې وې خو[ددوئ داحال دې] كه الله ﷻ د آوريدو توفيق وركړي او حق خبره ورواؤروى نو ضرور مخ به ترې واړوى او په اړخ به اوګرځى].

دخير نه مراد دلته د حق لټون كول دى ، چې هم د لټې كولو په ذريعه د غور پوهې دروازې پرانستې كيږى او هم په دې سره د عقيدې او عمل توفيق نصيب كيږى ، اوڅوك چې د حق په لټه كښې نه وى ګويا كښې هغه كښې هيڅ خير نشته . معنى ئې دا ده چې كه په دوئ كښې څه خير موجود وې نو ښكاره خبره ده چې هغه به د الله ﷻ په علم كښې وو ، هر كله چې د الله ﷻ په علم كښې په دوئ كښې دننه څه خير نشته نو معلومه شوه چې په حقيقت كښې دوئ د هر خير نه بې برخې دى او د بې نصيبئ په دې حالت كښې كه دوئ ته دغور ، فكر كولو او دحق د عقيدې لرلو بلنه وركړې شى نو دوئ به ئې هيچرې قبوله نه كړى . بلكه ددې نه په مخ اړولو سره اوتښتى يعنى د دوئ دا مخ اړول به په دې بنا نه وى چې په دين كښې ورته د اعتراض څه خبره ښكاره شوه څكه ئې اونه منل بلكه حقيقت دادې چې دوئ حق خبرې ته د سره خيال اونكړو.

دې تقرير سره هغه منطقى شبه هم ختمه شوه چې د اهل علم په زړونو كښې راولاړيږى چې دا د قياس شكل اول دې چې د حد اوسط په حذف كولو سره ئې نتيجه غلطه راوځى . جواب ئې دادې چې حقيقت كښې دلته حد اوسط مكرر نه دې ولې چې د ړومبى ﴿لَّأَسۡمَعَهُمۡ﴾ مفهوم جدا او دبل ﴿أَسۡمَعَهُمۡ﴾ مفهوم جدا دې ، دړومبى سماع نه دقبلولو او فائده مند سماع مراد ده ، او دويم سماع نه مراد خالى سماع ده .

پنځم آيت مبارك كښې بيا دايمان خاوندانو ته د الله ﷻ اود نبى كريم ﷺ په حكمونو باندې د عمل كولو او دهغې د تابعدارئ كولو حكم په يو خاص انداز كښې دا شان وركړې شوې دې چې د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ په وركړې بلنه ددوئ څه فائده ملحوظ نه ده ، بلكه دا ټول حكمونه خالص ستاسو د فائدې دپاره دركړې شوى دى لكه فرمائى چې:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسۡتَجِيبُواْ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمۡ لِمَا يُحۡيِيكُمۡۖ﴾ [ائې مومنانو! دالله ﷻ اود رسول د حكم منه اوكړئ كله چې تاسو هغه خبرې ته رابلى چې تاسوپرې [روحانى طور] ژوندى كيږئ].

دې آيت مبارك كښې د ذكر شوى ژوند نه مراد د تفسير د علماء په نزد مختلف كيدې شى ، سدى فرمائيلى دى چې د ژوند بخښونكى څيز نه مراد ايمان دې ، څكه چې كافر مړ وى ، قتاده رحمه الله ترې قرآن عظيم الشان مراد اخستې دې چې د دنيا آخرت ژوند او كاميابى ورسره حاصليږى . مجاهد رحمه الله تر حق مراد اخستې دې ، ابن اسحاق رحمه الله ترې مراد جهاد اخستې دې دكوم په ذريعه چې الله ﷻ مسلمانانو ته عزت وربخښلې دې ، دا ټول احتمالونه په خپل خپل ځائې صحيح دى ، خپل مينځ كښې ددې ټولو هيڅ ټكر نشته ، مطلب دا چې قرآن عظيم الشان ، ايمان يا دحق تابعدارى كول وغيره داسې څيزونه دى چې د انسان زړۀ ورسره ژوندې كيږى اود زړۀ ژوند دادې چې د بنده اود الله ﷻ ترمينځه د غفلت او شهوت وغيره ټول خنډونه د مينځه اوځى ، دغه بنديز نه ټول لرې شى او د الله ﷻ د معرفت نور په زړه كښې ځائې اونيسى .

ترمذي او نسائي د ابی هريره ﷺ په روايت نقل کړي دي چې نبی کريم ﷺ يوه ورځ ابی بن کعب ﷺ راؤبللو ، هغه مونځ کولو ، زر زر ئې مونځ پوره کړو او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو ، نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې ولې دې په راتلو کښې وخت اولګولو ، هغه ﷺ عرض اوکړو چې مونځ مې کولو ، نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې آيا تا د الله ﷻ دا فرمان نه دې آؤريدلې چې : [اسْتَجِيبُوا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ] ابی ابن کعب ﷺ عرض اوکړو چې بيا دپاره به دده اطاعت کوم ، که په مونځ کښې هم ماته آواز راکړې نو زر به حاضريږم[۱].

ددې حديث پاك په وجه ځينې فقهاء کرامو فرمائيلی دی چې د رسول ﷺ د حکم د اطاعت په نتيجه که په مونځ کښې هم يو کار اوکړې نو دې سره په مونځ کښې خلل نه رازی.او ځينو فرمائيلی دی چې اګر چې دمونځ په خلاف کارونو کولو سره مونځ فاسديږی او ددې قضا به روستو راؤړی ، خو داسې کول پکار دی چې کله رسول کريم ﷺ چا آواز اوکړي او هغه په مونځ کښې وی نو مونځ دې پريږدی او دهغه ﷺ د حکم تعمل دې اوکړی.

دا صورت خو صرف نبی کريم ﷺ سره مخصوص دې. خو نور داسې کارونه چې په هغې کښې په تاخير کولو سره د ډير زيات نقصان خطره وی نو په دغه وخت کښې هم مونځ پريښودل او بيا ددې قضا کول پکار دی. لکه يو کس مونځ کوی او دې اوګوری چې يو نابينا کس کوهی کښې يا کندې ته نزدې دې نو دې دې زر مونځ پريږدی او دهغه دې بچ کړی.

په آخر کښې ارشاد دې چې ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ﴾[اوياد ساتئ چې الله ﷻ دسړی او دهغه د زړۀ په مينځ کښې هم حائل کيږی] ابی بن کعب ﷺ عرض اوکړو چې بيا به هم په دې عمل کوم ، که دمونځ کولو په حالت کښې هم يم نو ستاسو په بلنه به سمدستی په خدمت کښې حاضريږم.

ددې حديث پاك په بنا ځينې فقهاء کرام فرمائي چې د نبی کريم ﷺ د تابعدارئ په وجه مونځ کښې چونکه چې کوم يو کار هم اوکړی په دې سره مونځ کښې خلل نه راځی . او ځينې فرمائي چې د مونځ په خلاف کارونو سره خو به مونځ مات شي چې قضا کول به ئې لازمی وی ، ليکن پکار هم دغه دی چې د نبی کريم ﷺ په بلنه دې سمدستی په خدمت کښې حاضريږی اګر چې دغه وخت مونځ کولو کښې مصروف وی.

دا صورت خو يوازې نبی کريم ﷺ پورې خاص دې ليکن نور داسې کارونه چې په هغې کښې مهلت کولو سره د سخت نقصان کيدو خطره وی نو دغه وخت هم مونځ ماتول او بيا ئې قضا کول پکار دی. لکه څوك چې مونځ کښې مصروف وی او يو نابينا انسان په کنده کښې يا کوهی کښې پريوتو ته نزدې وی نو سمدستی دې دهغه د بچ کولو دپاره مونځ مات کړی. او بيا دې د مونځ قضا راؤړی.

د آيت مبارك په آخر کښې فرمائي چې : ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ﴾ [يعنی په دې خبره باندې پوهه شئ چې الله ﷻ د سړی او دده د زړۀ په مينځ کښې حائل کيږی]

ددې جملې دوه معنې داسې کيدې شی چې دواړو کښې لوئې حکمت او نصيحت بيامونده شی چې هر انسان لره هر وخت هغه ياد لرل پکار دی.

---

۱) جامع الترمذی، أبواب فضائل القرآن، باب ما جاء في فضل فاتحة الكتاب: ج ۲، ص ۱۱۳

يوه معنى ئې دا كيدې شي چې هر كله د يو نيك كار كولو يا گناه نه د ځان ساتلو موقعه راشي نو سمدستي دې پرې عمل اوكړې شي. ډيل په كښې نه وى كول پكار ، د وخت فرصت غنيمت گڼرل پكار دى ، ولې چې كله خو دانسان د ارادې تر مينځه قضائي الهي بنديز جوړ شى هغه پخپله اراده كښې نشى كاميابيدې ، كله ورته بيمارى راپيښه شى يا مرگ پرې راشى يا داسې څه مشغولتيا كښې گير شى چې كار ته نشى اوزگاريدې ، په دې وجه انسان له پكار دى چې دعمر او فرصت وخت غنيمت اوگڼرى او د نن كار صبا ته پرې نږدى ځكه چې د صبا هيڅ پته نه لگى چې څه به كيږى.

من نمي گويم زيان كفن يا بفكر سوده باش

اي زفرصت بے خبر درهر چه باشي زود باش[1]

بله معنى ئې دا كيدې شى چې الله ﷻ انسان ته ډيرنزدې دې لكه بل ځائې كښې پخپله فرمائى چې : ﴿وَنَحۡنُ أَقۡرَبُ إِلَيۡهِ مِنۡ حَبۡلِ ٱلۡوَرِيدِ﴾[زۀ انسان ته د هغه د څټ د رگ نه هم زيات نزدې يم].

مطلب دادې چې د انسان زړۀ هر وخت د الله ﷻ په تصرف كښې دې ، كوم بنده چې د بدونه ځان ساتل غواړى نو دهغه د زړۀ اود گناهونو ترمينځه څه خنډ پيدا كيږى . او د چا بد بختى چې په تقدير كښې وى نو د هغه او د نيك كارونو په مينځ كښې اړ او بنديز راوستې شى ، هم دغه وجه ده چې نبى كريم ﷺ به اكثر دا دعا كوله چې : ﴿يامقلب القلوب ثبت قلبي على دينك﴾ يعنى د زړونو اړونكيه ! زما زړۀ په خپل دين باندې ثابت قدم او قائم اوساته[2]

ددې حاصل هم هغه دې چې د الله ﷻ اودهغه د نبى كريم ﷺ د حكمونو په ځائې راوړلو كښې مهلت مه كوئى ، د وخت فرصت غنيمت گڼرئى ، او سمدستي ئې كوئ ، معلومه نه ده چې په زړونو كښې د نيكئ دا جذبه او خواهش پاتې كيږى كه نه ؟

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاتَّقُوا فِتۡنَةً | لَّا تُصِيبَنَّ | ٱلَّذِينَ | ظَلَمُوا | مِنكُمۡ | خَآصَّةً |
| اوځان اوساتئ: دهغه فتنې نه | اچې نۀ رسيږى | هغه كسانو ته | اچې ظلم ئې كړې وى | استاسو نه | اخاص |

او دهغې عذاب نه ځان بچ كړئى چې دهغې اثر به صرف ظالمانو ته نه رسى [بلكه نيكان به په كښې هم راگيريږى]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَٱعۡلَمُوٓا | أَنَّ ٱللَّهَ | شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ | وَٱذۡكُرُوٓا | إِذۡ |
| اوپوهه شئ | اچې بيشكه الله | سخت عذاب وركونكې دې | يادكړئ | هغه وخت | كله چې |

اوپوهه شئ چې الله ﷻ عذاب وركولو كښې ډير سخت دې | ........او هغه وخت يادكړئى چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنتُمۡ | قَلِيلٌ | مُّسۡتَضۡعَفُونَ | فِي ٱلۡأَرۡضِ | تَخَافُونَ | أَن يَتَخَطَّفَكُمُ |
| تاسو | وئ لږ | اكمزورئ گڼرلې شوى وئ | په زمكه كښې | تاسو يريدئ | اچې اوبه تښتوى تاسو |

تاسو لږ وئ او په ملك [مكه] كښې كمزورى گڼرلې شوئى اوتاسو په دې ويره كښې پراته وئ

---

[1] ترجمه: زۀ دا نه وايو چه خپل تاوان او كړئى يا دنفع په فكر كښې اوسى، اے فرصت نه بے خبر كسه كوم حالت كښې چه يې نو كار زر زر كوه.

[2] جامع الترمذي، أبواب القدر، باب ما جاء ان القلوب بين اصبعى الرحمٰن : ج ۲، ص ۳۵

النَّاسُ　فَاٰوٰىكُمْ　وَاَيَّدَكُمْ　بِنَصْرِهٖ

خلق　ا　نوخائي دپناه ئي درکړوتاسوله اومضبوط ئي کړل لاسونه ستاسو ا　په امداد خپل سره

چې خلق به مو ا وتبښتوی ا نو الله ﷻ درته داستوګنې ځائې درکړو ا او پخپل مد دسره ئي ستاسولاسونه مضبوط کړل

وَرَزَقَكُمْ　مِّنَ الطَّيِّبٰتِ　لَعَلَّكُمْ　تَشْكُرُوْنَ　يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

اورزق ئي درکړو تاسوله ا دپاکو څیزونو نه ا دپاره ددې چې تاسو ا شکر اوباسئ ا اے هغه کسانو

اوتاسو ته ئي پاکیزه څیزونه درکړل ا..........نو پکار ده چې تاسو شکر اوباسئ ا .......اتې ایمان دارو !

اٰمَنُوْا　لَا تَخُوْنُوا　اللّٰهَ　وَالرَّسُوْلَ　وَتَخُوْنُوْٓا　اَمٰنٰتِكُمْ

چې ایمان موراوړې دې امه کوئ خیانت ادالله سره اودرسول سره ا اوخیانت مه کوئ اامانتونو خپلو کښې

دالله ﷻ اودرسول سره خیانت مه کوئی ا اودیوبل امانتونو کښې هم خیانت مه کوئی

وَاَنْتُمْ　تَعْلَمُوْنَ　وَاعْلَمُوْٓا　اَنَّمَآ　اَمْوَالُكُمْ　وَاَوْلَادُكُمْ　فِتْنَةٌ

اوتاسو ا پوهیږئ　ا　اوپوهه شئ ا چې بیشکه ا مالونه ستاسو ا اواولاد ستاسو　ازمیښت دې

حالانکه تاسو پوهیږئ ا او پوهه شئ چې ستاسومالونه او ستاسو اولاد خو په حقیقت کښې امتحان دې

وَاَنَّ اللّٰهَ　عِنْدَهٗٓ　اَجْرٌ　عَظِيْمٌ

اوبیشکه الله چې دې ا دهغه سره ا اجردې　ا　دیر لوئې ا

اوالله ﷻ سره چې کوم اجر دې هغه دیرلوئې دې ا

## آسان ترجمه قرآن

او وویرېږئ د هغه وبال نه چه په تاسو کښې به صرف په هغه خلقو باندې نه نازلیږی چه کومو ظلم کړې دې او پوهه شئ چه دالله عذاب ډیر سخت دې او هغه وخت یاد کړئ چه کله تاسو تعداد کښې کم وئ تاسو لره خلقو (ستاسو) په زمکه کښې کمزوري کړي وئ تاسو ویریدئ چه تاسو لره به خلق ګس ګس کړی بیا الله تاسو لره ځائ درکړو ، او خپل مدد باندې ئې تاسو مضبوط کړئ . او تاسو لره ئې د پاکو څیزونو نه رزق درکړو دې د پاره چه تاسو شکر ادا کړئ. اې دایمان خاوندانو ! دالله او د رسول سره بې وفائي مه کوئ او مۀ سره د پوهې نه په امانت کښې خیانت کوئ او په دې خبره پوهه شئ چه ستاسو مال او اولاد ستاسو د پاره امتحان دې . اودا چه لوئ انعام الله څخه دې.

## خلاصه تفسير

(وَاتَّقُوْا فِتْنَةً لَّا تُصِيْبَنَّ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْكُمْ خَآصَّةً) او [څنګه چه تاسو باندې دخپلې اصلاح متعلق اطاعت واجب دې همداشان دا هم اطاعت واجبه کښې دې چه دخپل توفیق او وس موافق دنورو په اصلاح کښې په طریقه دامربا لمعروف او نهی عن المنکر په لاس سره یا په ژبې سره ، په تعلق پریښودلو سره یا په زړه کښې په نفرت سره چه داآخري درجه ده کوشش کوئې ګني ددې صورتونونه په لرې والې به ددې منکراتو وبال لکه څنګه چه په کوونکو باندې واقع کیږي همدغه شان به څه درجه کښې په مداهنت کوونکو باندې واقع شي.هرکله چه دا خبره ده نو] تاسو دداسې وبال نه بچ شئ چه هغه به خاص په داسې خلقو نه واقع کیږي چه په تاسو کښې

دي ګناهونو مرتکب شوي دي] بلکه ددې ګناهونو په کتلوسره چه چا مداهنت کړې دې هغه هم په دې کښې شريك دې او ددې نه بچ کيدل دا دي چه مداهنت مه کوئي] ﴿ وَاعْلَمُوٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴾ اوپه دې پوهه شئ چه الله ﷻ سخته سزا ورکوونکې دې [دهغه سزا نه په ويريدو سره مداهنت سره بچ شئ] ﴿ وَاذْكُرُوٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ ﴾ او [په دې غرض سره دنعمتونوپه يادولو سره داطاعتِ منعم شوق وي.دالله ﷻ نعمتونه او خاص کر] هغه حالت يادکړئي چه کله تاسو [يو وخت کښې يعني دهجرت نه مخکښې په شمير کښې هم] لږ وي [اوپه قوت کښې هم] ﴿ مُسْتَضْعَفُوْنَ فِي الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ ﴾ په سرزمين [مکه] کښې کمزوري ګڼرلې شوې [او ډير زيات کمزروالي نه] په دې انديښنه کښې اوسيدلئ چه تاسو [مخالف] خلق لوټ نه کړي ﴿ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ ﴾ نو [داسې حالت کښې] الله ﷻ تاسوته [په مدينه کښې په اطمينان سره] داوسيدلو ځائي درکړو او تاسو ته ئي خپل نصرت سره قوت درکړو [په سامان سره هم او مردم شمارئ سره هم چه په دې سره قلت او استضعاف او ويره او اختطاف ټول لرې شول] ﴿ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ ﴾ او [صرف دا نه چه ستاسو مصيبت لرې کړې شو بلکه د لوئي درجې خوشحالي يې هم درکړه چه دښمنانو باندې تاسوته غلبه درکړي او د ډيرو فتوحاتو په وجې سره] تاسو ته پاك پاك څيزونه درکړي چه تاسو [ددې نعمتونو] شکر اوکړئي [اولوئي شکر دادې چه اطاعت اوکړئي] . ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ﴾ائي ايمان والو [مونږ دمخالفت او معصيت نه ددې وجې منع کوؤ چه دالله ﷻ اود رسول ﷺ په تاسو څه حقوق دي چه دهغې نفع هم ستاسو طرف ته درزي.اودمعصيت سره په دې کښې خلل پريوزي چه په دې سره په حقيقت کښې ستاسو په نفع کښې خلل پرويوزي.هرکله چه دا خبره ده نو] تاسو دالله ﷻ اودرسول ﷺ په حقوقوکښې خلل مه اچوئي ﴿ وَتَخُوْنُوٓا اَمٰنٰتِكُمْ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ ﴾ او [دانجام په اعتبارسره دې مضمون ته ښه وئيلې شي چه تاسو] خپل قابل حفاظت څيزونو کښې [چه هغه ستاسو منافع دي اوچه په اعمالوباندې مرتب کيږي] خلل مه اچوئي او تاسو ته خو [ددې مضر کيدل] معلوم دي﴿وَاعْلَمُوٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ ﴾او [اکثر وختونوکښې دمال اود اولاد محبت کښې اطاعت ته ديوال او خلل جوړيږي ددې وجې تاسو ته خبرداري درکولې شي چه] تاسو پدې خبره پوهه شئ چه ستاسو مالونه او ستاسو اولاد يودامتحان څيز دې [چه اوګوري چه څوك ددې محبت ته ترجيح ورکوي او څوك دالله ﷻ محبت ته ترجيح ورکوي.نو تاسو ددغو محبتِ ته ترجيح مه ورکوئي] ﴿ وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝ ﴾ او [که ددې نفعې طرف ته مو نظر خې نوتاسو [دا خبره هم يادساتئي چه الله ﷻ سره [ددې خلقودپاره چه دالله ﷻ محبت ته ترجيح ورکوي]ډيرلوئي اجر[موجود]دي[چه دهغه په مخکښې دافاني نفعې هيڅ نه دي].

## معارف او مسائل

هرکله چې قرآن عظيم الشان د بدر دغزا څه تفصيلات بيان کړل او په هغې کښې ئې په مسلمانانو باندې خپل انعامات بيان کړل نو دې پسې ئې دهغې راوتلې نتيجې او بيا دهغې مناسب مسلمانانو ته څه نصيحت بيان کړو چې د [يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ] څخه شروع کيږي چې دا اوسنى آيتونه هم ددغې زنځير کړئي دى . نوپه دې اوسنى رومبى آيت مبارك کښې داسې ګناه څخه د بچ کيدو په خاص شان سره هدايت کړې شوې دې چې سخت عذاب ئې يوازې ګناهګارو خلقو ته نه وى بلکه هغه خلق هم په کښې شاملولې شى چا چې دغه ګناه نه وى کړې.

هغه کومه ګناه ده .ددغې ګناه په باره کښې د تفسیر د علماء کرامو ګنړ اقوال دي. ځینې علماء کرام فرمائي چې دا ګناه امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریخودل دي. عبدالله بن عباس ﷺ فرمائي چې الله ﷻ مسلمانانو ته دا حکم ورکړې دې چې پخپل چاپیر چل کښې هیڅ قسم جرم او ګناه کولو ته پرې نښودې شي ولې چې سره د خبریدو په داسې نه کولو سره به الله ﷻ خپل عذاب داسې عام کړي چې ګناهګار او بې ګناه دواړه به راګیر کړي.

اودلته دبې ګناه څخه مرادهغه خلق دي چې په اصل ګناه کښې هغوئ سره شریك نه دي.خو امر بالمعروف په پریښودلو کښې هغوئ هم ګناهګار دی. په دې وجه دلته دا شك کول نه دي کول پکارچې د یو ګناه عذاب په بل باندې ناانصافي او د قرآن پاك ددې فیلې ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ (١) خلاف دی. ځکه چې دلته ګناهګار د خپلې اصل ګناه په وجه په وبال کښې او بې ګناه د امر بالمعروف د پریښودلو په وجه راګیرولې شول ، د یو کس ګناه کښې بل نه دې سیزلې شوي.

امام بغوی رحمه الله په شرح السنه او معالم کښې دعبدالله بن مسعود ﷺ اودعائشه صدیقه ﷺ نه درسول کریم ﷺ دا فرمان نقل کړې دې چې الله ﷻ د یوې خاصې فرقې دګناه عذاب په عامو خلقو تر هغې پورې نه راولی تر څو چې دا صورت رابیښ نشي چې پخپل چاپیر چل کښې یو ګناه کیدل اووینی او دهغه طاقت هم وی چې هغه منع کړي لیکن د هغه باوجود په هغې ګناه ځان ناغرضه کړي . نو الله ﷻ به دغه ټول خلق په عذاب کښې راګیر کړي(٢).

او ترمذی شریف ، ابی داؤد شریف وغیره کښې صحیح سند سره نقل دي چې ابوبکر صدیق ﷺ یو وار پخپله خطبه کښې اوفرمائیل چې ما د رسول کریم ﷺ څخه اوریدلی دی ، د هغوئ ﷺ اوفرمائیل چې هر کله څوك د یو ظالم په لیدو هم دهغه لاس د ظلم څخه بند نه کړي نو نزدې ده چې الله ﷻ به په دغې ټولو خلقو باندې خپل عذاب عام کړي(٣). صحیح بخاری کښې د نعمان بن بشیر ﷺ څخه روایت دې چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې څوك د الله ﷻ حدونه ماتوونکی ګناهګار دی اوکوم خلق چې دوئ کتونکی او مداهنت کونکی دی یعنی سره د دقدرت نه هغوئ نه منع کوی ددې دواړو قسمونو خلقو مثال داسې دې لکه چې یو بحری جهاز کښې یوه فرقه پورته او بله فرقه لاندې فرش باندې وی ، دغه لاندینۍ فرقه چې اوبو حاصلولو دپاره پورته چت ته راخیژی نو ددغې ځائې خلق پرې تکلیف محسوسوی. دغه لاندینی خلق په جهاز کښې د اوبو راخستلو په غرض هم دغه ځائې کښې په جهاز کښې سورې اوکړي ، پورتنۍ خلق پرې خبر شی او منع ئې نه کړي ، ددې ښکاره نتیجه به داوی چې جهاز به د اوبو څخه ډك شی چې لاندینی خلق غرقیږی نو پورتنی خلق به هم ورسره خامخا غرقیږی(٤).

---

١) ترجمه: او هیڅ څوک په دبل په بوج نه اوچتوی۔

٢) معالم التنزیل تحت هذه الآیة: ج ٢، ص ٢٣٦، وشرح السنة: ج ١٣، ص ٣٤٦

٣) سنن ابی داود، کتاب الملاحم، باب الامر والنهی: ج ٢، ص ٥٩١، جامع الترمذی، أبواب الفتن، باب ما جاء في نزول العذاب الخ: ج ٢، ص ٣٩

٤) صحیح البخاری، کتاب الشهادت، باب القرعة في المشکلات: ج ١، ص ٣٦٩

ددې روایتونو په بنا ډیرو مفسرینو حضراتو په دې آیت مبارك كښې د فتنه څخه مراد هم دغه گناه یعنی امر بالمعروف او نهی عن المنكر پریخودل ګڼاكلې دی.
تفسیر مظهری لیكلی دی چې ددې گناه څخه مراد د جهاد پریخودلو گناه ده ، خاصكر كله چې د امیر المؤمنین د طرفه د جهاز بلنه عامو مسلمانانو ته وركړې شي او د اسلامی شعائر حفاظت كول په هغې اړه لري. ولې چې په داسې وخت كښې د ترك جهاد وبال یوازې د جهاد په پریخودونكو نه ، بلكه په ټولو مسلمانانو باندې رازی ، ځكه چې په داسې صورت كښې د كافرانو د غالب كیدو په وجه ښځې ، بوډاګان او ماشومان او نور بې گناه مسلمانان ، ټول په ټوله د وژلو او لوټ كیدو ښكار شي ، ځان او مال ئې په خطره كښې شي ، په دې صورت كښې به د عذاب څخه مراد دنیوی مصائب او تكالیف وی([1]) او ددې تفسیر قرینه داده چې دد ې څخه وړاندې تیرو شوؤ آیتونو كښې هم د جهاد پریښودونكو خلقو باندې ملامتی اچولې شوې ده لكه فرمائی چې:
[وَاِنَّ فَرِیْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِیْنَ لَكٰرِهُوْنَ] او [یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِیْتُمُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ]
دغه شان د احد په غزا كښې كله چې د مسلمانانو څخه دا غلطی اوشوه چې د كنډاؤ حفاظت ئې پریښودو او ښكسته تړې راغلل نو د هغې مصیبت یوازې په غلطی كوؤنكو رانغلو بلكه د مسلمانانو په ټول لښكر راغلو چې رسول كریم ﷺ په كښې هم پخپله زخمی شو.
دویم آیت مبارك كښې دابیان شوې دې چې د الله ﷻ حكمونه منل درته آسان كړې شو ، هغې ته د شوق پیدا كولو په غرض مسلمانانو ته پخپله تیره بې وسی اوكمزوری وریاده كړې شوه.
بیا دا بیان دې چې الله ﷻ پخپل فضل او كرم سره ستاسو دغه حالات بدل كړې او تاسو ته ئې طاقت او تسلی په حصه كښې دركړه لكه فرمائی چې:
[وَاذْكُرُوْٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِیْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِی الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ یَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَیَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ] [یعنی ای مسلمانانو خپل هغه حال یاد كړئی كوم چې د مدینې د هجرت څخه مخكښې په مكه مكرمه كښې وو چې په تعداد كښې هم كم وئې او په قوت كښې هم كم ، هر وخت به درسره دا ویره وه چې هسې نه دشمن راتـه نقصان اورسوی ، الله ﷻ هغوئ تـه مدینه منوره كښې بهترینه استوګنه وركړه. او نه صرف استوګنه بلكه خپل تائید او نصرت سره یې ورته قوت او په دښمن باندې فتح وركړه.]
د آیت مبارك په آخر كښې فرمائی چې [لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ] یعنی ستاسو ددې بدلول او د الله ﷻ د انعاماتو په تاسو باندې د كولو مقصد دادې چې تاسوشكر ادا كړئی. اوداخبره ښكاره ده چې شكر ادا كول یوازې د الله ﷻ په احكامو منلو سره كیدې شي. دریم آیت مبارك كښې د مسلمانانو ته دا حكم وركړې شوې دې چې د الله ﷻ په حقوقو كښې او خپل مینځ كښې د بندګانو په حقوقو كښې خیانت مه كوئی داسې چې بالكل د سره دغه حق ادا نه كړئی یا په نیمګړې طریقه ئې ادا كړئی. په آخر آیت مبارك كښې [وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ] فرمائیلو سره تې دا اوخودل چې د خیانت خرابی او وبال پیژنئی ، بیا هم د هغې كول د هوښیارتیا خبره نه ده او

[1]) التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۴۹

هر کله چې د الله ﷻ اود بندګانو په حقونو ادا کولو کښې عام انسان مال او اولاد روکاوټ جوړيږي. ځکه ئې د خبردارئی په طور اوفرمائيل چې:

[وَاعْلَمُوٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ] [يعنی په دې خبره باندې پوهه شئ چې ستاسو اولاد او ستاسو مالونه ستاسو دپاره فتنه دی]

دفتنه معنی امتحان هم کيدې شی او عذاب هم، او داسې څيزونو ته هم فتنه وئيلې شی چې د عذاب سبب جوړيږي، د قرآن پاک په مختلفو آيتونو کښې دې درې واړه معنو دپاره فتنه لفظ استعمال شوی دې او دلته هم د درې واړو معنو ګنجائش شته، ځينې وختونو کښې مال، اولاد پخپله هم په دنيا کښې وبال جوړيږي او ددې وجه خو ښکاره ده چې انسان ددې په سبب غفلت او ګناهونو کښې اخته شی، او د عذاب سبب جوړ شی.

اول دا چې د مال اولاد په ذريعه ستاسو امتحان اخستل داشان مقصود دی چې تاسو ددې انعام له کبله شکر ګزار او فرمانبردار جوړيږئی. او که ناشکره اونافرمانه جوړيږئی؟ او دويمه اودريمه معنی ئې داسې هم کيدې شی چې د مال او اولاد محبت کښې د اخته کيدو په وجه مو الله ﷻ خفه کړونو هم دغه مال او اولاد ستاسو دپاره عذاب جوړيږي او ځينې وختونه خو هم په دنيا کښې دغه څيزونه انسان په سختو مصيبتونو کښې راګير کړی او هم په دنيا کښې د غه مال، اولاد عذاب محسوسوی ګنی داسې خو به خامخا کيږی چې کوم مال د الله ﷻ دحکمونو په خلاف اوګټلې يا خرچ کړې شو. هم دغه مال به په آخرت کښې دۀ دپاره ماران، لړمانان او په اور دداغ ورکولو ذريعې جوړې شی، لکه د قرآن عظيم الشان په ګڼړو آيتونو او د احاديثو په بې شميره روايتونو کښې دا په ښکاره او په ډاګه بيان شوی دی.

د آيت مبارک په آخر کښې فرمائی چې [وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ] يعنی په دې هم ځان پوهه کړئی چې څوک د الله ﷻ حکمونه په دې شان پوره کوی چې د مال او اولاد مينه ذره په کښې روکاوټ نه جوړيږي. نو هغه دپاره د الله ﷻ په نزد ډير لوئې اجر دی.

ددې آيت مضمون ټولو مسلمانانو دپاره عام او شامل دی خو د اکثرو مفسرينو په نزد ددې شان نزول د ابی لبابه رضی الله عنه هغه قيصه ده چې د بنی قريظه په غزا کښې راپيښه شوه. قصه داسې وه چې رسول اکرم ﷺ او صحابه کرامو رضی الله عنهم يوويشتو ورځو پورې بنو قريظو لره قلعه بند کړی وو. کله چې تنګ شو نو د وطن په پريخودلو ئې شام ته د تلو درخواست اوکړو.

رسول اکرم ﷺ د دوئ شرارتونه معلوم کړې وو، ځکه ئې د دوئ درخواست منظور نه کړو. بلکه د صلح يوازينی دا صورت ئې ورته په ګوته کړی چې تاسو به په هغه فيصله راضی کيږئی چې سعد بن معاذ رضی الله عنه ئې اوکړی. بنو قريظه درخواست اوکړو چې دسعدبن معاذ رضی الله عنه په ځائې دې ابولبابه رضی الله عنه زمونږ فيصله اوکړی، د بنو قريظه مطلب داوو چې چونکه دا ابی لبابه رضی الله عنه مال او اولاد او جائيداد په بنی قريظو کښې دی نو رسول اکرم ﷺ به د سعد بن معاذ رضی الله عنه په نسبت زمونږ په معامله کښې د ابو لبابه د مال، اولاد، او جائيداد په خاطر زمونږ په معامله کښې نرمی اوکړی. رسول اکرم ﷺ د ادرخواست قبول کړو. ابولبابه رضی الله عنه چې هلته وراورسيدو نو د بنی قريظو ټول نر، ښځې، ورته راجمع شو او ورته ئې ژړل، دا تپوس ئې ترې اوکړو چې که مونږ د رسول کريم ﷺ په حکم د قلعه څخه ښکته راشو نو آيا رسول

اکرم ﷺ به زمونږ په معامله کښې څه نرمي اوکړي ؟ ابي لبابه ﷺ ته معلومه وه چې د دوئ په معامله کښې د نرمۍ کولو راتې نشته. ابي لبابه ﷺ بآندې څه اثر د دوئ ژړا او فرياد کړې وو او څه مال او اولاد مينه ئې وه نو په اشاره ئې ورته اوخودل چې ذبح به مو کړي. يعنې پخپلې مرۍ باندې ئې خپله گوته داسې راښکله څنګه چې د ذبح کولو په وخت د چا په مرۍ باندې چاړه يا توره راښکلې شي گوياکه په دې شان ئې د رسول اکرم ﷺ راز ښکاره کړو. د مال او اولاد په محبت کښې خوئې دا کار اوکړو خو زر پښيمانه شو چې رسول اکرم ﷺ سره مې خيانت اوکړو ، کله چې دهغه ځائې څخه واپس شو نو د رسول اکرم ﷺ په خدمت کښې د حاضريدو په ځائې نيغ مسجد ته لاړو او د هغې يوې ستنې پورې ئې ځان اوتړلو. او قسم ئې اوکړو چې تر څو مې توبه قبوله شوې نه وي ، هم دغه شان به تړلې پاتې کيږم. اګر چې په دې حالت مړ هم شم ، نو تر اووۀ ورځو پورې همدغسې ولاړ تړلې پاتې شو. او دهغوئ خپلې بي بي ﷺ او لور بي بي ﷺ به ئې دا خدمت کولو چې انساني ضرورت او مونځ د پاره به ئې پرانستو او بيا به ئې تړلو. خوراک څښاک به ئې بالکل نه کولو او د لوږې په وجه به پرې پرغز راتلو.

رسول اکرم ﷺ ته چې کله اول ددې خبر شو نو وې فرمائيل چې که هغه په اول سر کښې هم ماته راغلې وې نو ما به هغه د پاره بخښنه غوښتلې وه او توبه به ئې قبوله شوې وه ، هر کله چې اوس ئې پخپله دا کار شروع کړې دې نو اوس به د توبې قبليدو انتظار کول وي.

هر کله چې اووۀ ورځې تيرې شوې نو په اتمه شپه په آخري شپه کښې د توبې قبليدو په باره کښې ئې د ا آيتونه مبارک نازل شو. ځينو صحابه کرامو ﷺ ورته ددې زيرې اورسولو او دهغوئ ﷺ پرانستل ئې اوغوښتل نو هغوئ ﷺ اووئيل چې تر څو پخپله رسول اکرم ﷺ نه يم پرانستې نو هسې پرانستل مې خوښ نه دي. نو د صبا د مونځ په وخت رسول اکرم ﷺ پخپله هغوئ ﷺ پرانستلو. دې آيت مبارک کښې د خيانت ، تگئ ، د مال اولاد په مينه کښې د غرقيدو منع راغلې ده دهغې سبب هم دا واقعه ده(۱). والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَآيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | | | | |
| اے هغه کسانو | چې ايمان موراوړي دي ! | | | | |
| اې دايمان خاوندانو ! | | | | | |
| اِنْ تَتَّقُوا | اللّٰهَ | يَجْعَلْ | لَّكُمْ | فُرْقَانًا | وَّيُكَفِّرْ |
| كه اوېرېدئ تاسو | دالله نه | ادربه كړي | تاسوله | علم دكره كوته معلومولو | اولرې به كړي ! |
| كه تاسو دالله ﷻ نه وېره كوله | نو تاسو ته به دحق اوباطل معلومولو يوبصيرت دركړي | او تاسوته به | | | |
| عَنْكُمْ | سَيِّاٰتِكُمْ | وَيَغْفِرْ | لَكُمْ | وَاللّٰهُ | ذُوالْفَضْلِ |
| ستاسو نه | اگناهونه ستاسو | اومعافي به اوكړي | تاسو ته | اوالله | خاوند دفضل |
| گناهونه معاف كړي | او تاسو ته به ښښنه اوكړي | اوبيشكه الله ﷻ د ډير لوئي فضل خاوند دي | | | |

(۱) تفسير الطبري، رقم الحديث: ۱۵۹۲۳، ودلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث: ۳۳

الْعَظِيْمِ۝ وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

لوئ دي ||او ياد كړه كله چي سوچونه كول| خلاف ستا | هغه كسانو |چي دحق نه ني انكاركړى دي

...........اوهغه وخت ياد كړه چي كافرو ستاخلاف دا سازشونه كول

لِيُثْبِتُوْكَ اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ يُخْرِجُوْكَ ط وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ

چي قيدكړي تا | ياقتل كړي تا| يا اوباسي تا ||اوهغوئ تدبيرونه كول خپل||اوتدبيرونه كول

چي تاقيدكړي | يا تا مړ كړي | يا دي دوطن نه اوباسي | هغوئ خپل تدبيرونه كول | او الله ﷻ

اللّٰهُ ط وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ۝ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

الله | اوالله | بهتره تدبير كونكي دي||اوكله چي| لوستلي كيږى | په هغوئ باندي |آيتونه زمونږه

خپل تدبيرونه كول| اوالله بهتر تدبير كونكي دي| اوكله چي په دوئ باندي زمونږ آياتونه اولوستي شي

قَالُوْا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ لا

وائي دوئ | په تحقيق سره||واوريدل مونږه | اكه مونږه اوغواړو|نو خامخا به اووايو مونږه ||په مثل ددي|

نودوئ وائي چي مونږ واوريدل |............اوكه مونږ اوغواړو نو مونږ به داشان جوړ كړو

اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ۝ وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ

نه دى دا | مگر | قيصي دى | داولنو خلقو | اوكله چي| اووئيل هغوئ|| اے الله | اكه چرى وى

داخو نور څه نه دى بلكه تشي د پخوانو خلقو قصي دى | اوهغه وخت هم يادكړه كله چي دوئ اووئيل اني الله

هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ

دا | هم دا | حق | دطرفه ستانه| نوراواوروه| په مونږ | كاڼړي | دآسمان نه

كه دا [قرآن] واقعي حق وى | او ستادطرفه راغلي وى | نو په مونږ باندي دبره نه كاڼړي راووروه

اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ۝ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ

يا راوله به مونږ باندي| عذاب | دردناك | اونه دي الله |چي عذاب وركړى دوئ ته|

اويا راباندي يو بل دردناك عذاب راوله | اوالله ﷻ داسي نه كوي چي دوئ ته عذاب وركړى

وَاَنْتَ فِيْهِمْ ط وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ

اوحال دا چى تهٔ| موجود ني په دوئ كښي | اونهٔ دي الله |عذابونكي ددوئ ||اوحال دا چى دوئ

او ته په دوئ كښي موجود يئ | اونه الله ﷻ داسي خلقو ته عذاب وركوى چي هغوئ

يَسْتَغْفِرُوْنَ۝

بښنه غواړى |

بخښنه غواړى |

## آسان ترجمه قرآن

اې د ایمان خاوندانو ! که چېرې تاسو دالله نه وېرېږئ نو هغه به تاسو ته (حق او باطل کښې) تمیز درکړي او ستاسو ګناهونه به معاف کړي او تاسو ته به بخښنه وکړي ، او الله دلوئ فضل خاوند دې.او (اې پیغمبره!) هغه وخت یاد کړه چه کله کافرانو منصوبې جوړولې چه تا لره قید کړي یا تا لره ووژني ، یا تا لره (وطن نه ) اوباسي. دوی خپلې منصوبې جوړولې اوالله خپله منصوبه جوړوله ، او الله د ټولو نه بهتر منصوبه جوړونکې دې اوچه کله دوی ته څمونږ آیتونه لوستلې شي نو دوی وائي چه: (بس) مونږ واورېدل که مونږ وغواړو نو ددې پشان خبرې به مونږ هم جوړې کړو دا (قرآن) نور څه نه دې صرف د مخکنو قیصې دي.(او یو وخت هغه وو چه ) دوی وئیلي وو چه :یا الله ! که چېرې دا (قرآن ) هغه حق وی کوم چه ستا د طرفنه راغلې دې نومونږ باندې د آسمان نه د کاڼو باران راولېږه . یا مونږ باندې یو د تکلیف والا عذاب راوله او (اې پیغمبره ! ) الله داسې نه دې چه ته به دوی کښې موجود ئې او دوی ته عذاب ورکړي . او الله دې حالت کښې هم عذاب نه ورکوی کله چه دوی استغفار غواړي.

## خلاصه تفسیر

[او]﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تَتَّقُواْ ٱللَّهَ ﴾اې ایمان والو [داطاعت نور برکتونه واورئې که] که تاسو دالله ﷻ نه وېرېږئ [اطاعت کوئې] ﴿ يَجۡعَل لَّكُمۡ فُرۡقَانٗا وَيُكَفِّرۡ عَنكُمۡ سَيِّـَٔاتِكُمۡ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۗ ﴾نوالله ﷻ به تاسوته دیوې فیصلې څیز درکړي [په دې کښې هدایت او دزړه نور دې چه په دې سره حق او باطل کښې علمي فیصله کېږي او په دښمنانو باندې غلبه او دآخرت نجات چه پدې به په حق او باطل کښې عملي فیصله کېږي دا ټول پکښې راغلل] اوتاسو نه ستاسو ګناهونه به لرې کړي اوتاسویه اوبخښي ﴿ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ﴾ اوالله ﷻ ډیر دفضل والا دې [دا الله ﷻ ته معلوم دي چه په خپل فضل سره به نور څه څه راکوي چه هغه په قیاس اوګمان کښې هم نشته دی]. ﴿وَإِذۡ يَمۡكُرُ بِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ او [اې محمد ﷺ دمسلمانانو په مخکښې دنعمت ذکر کولو دپاره] دا واقعه ذکر کړه چه کله کافرو خلقو ستاسو په حقله [خراب خراب] تدبیرونه په سوچ کښې راوستل ﴿ لِيُثۡبِتُوكَ أَوۡ يَقۡتُلُوكَ أَوۡ يُخۡرِجُوكَۚ ﴾ چه [ایا] تاسو قید کړي یا تاسو قتل کړي یا تاسو د وطن نه جلاوطن کړي ﴿ وَيَمۡكُرُونَ وَيَمۡكُرُ ٱللَّهُۖ وَٱللَّهُ خَيۡرُ ٱلۡمَٰكِرِينَ ﴾ او هغوي خپل تدبیرونه کول اوالله ﷻ خپل تدبیرونه [ددې تدبیرونو د لرې کولو دپاره] کول او دټولونه زیات مستحکم تدبیر والا الله ﷻ دې [چه هغه په مخکښې ددوي ټول تدبیرونه خراب شول او تاسوبچ شوئې او صحیح سالم مدینې منورې ته اورسیدلئ چونکه ستاسو داشان بچ کیدل دمومنانو په حق کښې ډیره زیاته د نیک بختئ کنجي [کیلی] ده ددې وجې ددې واقعې دذکر حکم ئې اوفرمائیلو.

﴿ وَإِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ ءَايَٰتُنَا ﴾ او [ددې کافرو حالت دادې چه] کله ددوي په مخکښې زمونږ ایتونه اولوستلې شي ﴿قَالُواْ قَدۡ سَمِعۡنَا لَوۡ نَشَآءُ لَقُلۡنَا مِثۡلَ هَٰذَآ ﴾ نو وائي چه مونږ واورېدل [اومو] کتل [دا خو څه معجزه نه ده خکه چه] که مونږ اراده اوکړو نو ددې پشان مونږهم وئیلې شو [نو] ﴿ إِنۡ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ دا [قرآن] [دالله ﷻ کلام او معجزه وغیره] هیڅ هم نه دې صرف بې سنده خبرې دي چه دمخکښنو نه منتقلې راروانې دي [چه مخکښې خلقو به هم دا دتوحید او بعثت وغیره دعوې کولې.هم هغه مضامین دي نقل کوي] ﴿ وَإِذۡ قَالُواْ ٱللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ ٱلۡحَقَّ مِنۡ

عِنْدِكَ ﴾ او [ددي نه زيات دذكر قابل حالت دادې] چه كله دې خلقو [خپل جهالت مركب كښې د ډير زيات صلابت اوجلادت ظاهرولو دپاره دا هم] اووئيل چه اې الله ﷻ كه دا قرآن ستاد طرف نه واقعي دې ﴿ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ ﴾ نوموږ باندې [ددې د نه منلو په وجه] د آسمان نه كاڼرې رااوروه ﴿ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ يا موږ باندې [بل] دردناك عذاب واقع كړه [چه په خارق العادت كښې د كاڼرو دباران پشان وي او چه كله داسې عذاب واقع نشو نو په خپل حقانيت باندې فخر كوي]. ﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ ﴾ او [دا نه ګڼرې چه ددوي د باطل كيدلو باوجود د خاصو موانعو په وجه دا ذكر شوي عقوبات نه نازليږي ددې موانعو بيان دادې چه] الله ﷻ به داسې اونكړي چه په دوي كښې ستاپه موجودګئي كښې دوي ته [داسې] عذاب وركړي ﴿ وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ او [داشان] الله ﷻ دوي ته [داسې] عذاب نه وركوي چه په كوم حالت كښې دوي استغفار كوي [اګر چه هغه به په آخرت كښې د بې ايمانۍ په وجه نافع به نه وي ليكن آخر عمل صالح دې.په دنيا كښې خوكافروته نافع وي.مطلب دا چه ددې خارقو عقوبتونو نه دوه كارونه مانع دي.يو درسول ﷺ تشريف اينبودل په مكه كښې يا په دنيا كښې.او دويم ددې خلقو په خپل طواف كښې دا وئيل " غفرانك" چه د هجرت او وفات نه پس هم باقي وو او يو مانع په حديث كښې دې چه دحضور ﷺ په امت كښې دچا كيدل اګر چه امت دعوت هم وي دا مانع نه باوجود د چا په استغفار نه كولو سره هم باقي دې. دا امور في نفسه مانع شول اګرچه احيانًا مانع كيدو سره هم څه خارق عذاب دڅه عارضي مصلحت سره واقع شي لكه دقذف ومسخ وغيره قيامت ته نزدې كيدل په احاديثو كښې راغلي دي].

## معارف او مسائل

تيرو شوؤآيتونو مباركو كښې ددې بيان وو چې انسان دپاره مال او اولاد يوه فتنه ده يعنى د آزميښت څيز دې ولې چې ددې څيزونو محبت كښې غرقيدلو سره ، عام طور انسان د الله ﷻ او آخرت څخه غافله كيږي. حالانكه ددې لوئې نعمت تقاضا دا وه چې د الله ﷻ ددې احسان په وجه هغه ته ئې نوره هم زياته توجه كولې.

ددې اوسنى آيتونو په ړومبى آيت كښې ددغې مضمون كاملول دى نو فرمائي چې څوك عقل لره په طبيعت باندې غالب لرلو سره په دې آزميښت كښې مضبوط پاتې شى ، دالله ﷻ فرمانبردارى او مينه په تولو څيزونو باندې وراندې لرى چې ورته د قرآن عظيم الشان او شريعت په اصطلاح كښې تقوى وئيلې شى نو ورته دې په بدله كښې درې څيزونه وركولې شى . ① فرقان ② د سيئاتو كفاره ③ مغفرت

فرقان او فرق دواړه داسې مصدرونه دى چې معنى ئې هم يوه ده او په محاوره كښې فرقان داسې څيز ته وئيلې شى چې د دوؤ څيزونو ترمينځه ښه په ښكاره بيلتون او جدائى راولى ، فيصلې ته فرقان وئيلې شى ، ولې چې دا د حق او باطل په مينځ كښې فرق ښكاره كوى. د الله ﷻ مدد ته هم فرقان څكه وئيلې شى چې ددې په ذريعه دحق خاوندان فتح بيا مومى او مخالفين ئې شكست مومى او دغه شان د حق اوباطل ترمينځه بيلتون ښكاره كيږى.

نوددې معنی په لحاظ د بدر غزاته په قرآن عظیم الشان کښې یوم الفرقان وئیلې شوی دی. په دې آیت مبارك کښې تقوی داروته د فرقان وربخښلو مطلب د اکثرو مفسرینو صحابه کرامو ﷺ په نزد همدغه دې چې دالله ﷻ مدد او حفاظت هم دوئ سره وی ، څوك دښمن ورته زیان نشي ورسولې او په ټولو مقصدونو کښې کامیابی موندل د دوئ ملګرې وی:

هر که ترسید ازحق و تقوی گزید ترسدا ز وے جن وانس وهر که دید

**ترجمه:** څوك چې دالله ﷻ څخه ویریږی او تقوی اختیاروی ، ویریږی د هغه څخه انسان او پیری او هر څوك ویریږی

تفسیر مهائمی کښې لیکلی دی چې په دې آیت مبارك کښې اشاره دې طرفته ده چې تیره شوې واقعه کښې د ابی لبابه ﷺ څخه غلطی شوې وه چې هغه سره د خپل اهل و عیال او مال او جائیداد د حفاظت فکر وو. دا غلطی ځکه وه چې د اهل و عیال او مال او جائیداد د حفاظت دپاره صحیح لار هم دا وه چې د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ مکمله تابعداری ئې خپل عادت جوړ کړې وې ، ټول مال او اولاد به ئې د الله ﷻ په پناه حفاظت کښې راغلی وو.

او ځینې مفسرینو حضراتو په دې آیت مبارك کښې د فرقان څخه مراد هغه عقل او بصیرت اخستې دې چې دهغې په ذریعه، دحق او باطل،د کره او کوټه مینځ کښې فرق راوستل آسان شی. نو معنی ئې دا شوه چې تقوی اختیارونکو ته الله ﷻ داسې بصیرت او زیرکتیا ورکوی چې دوئ په ښه او بد کښې فرق اوکړی.

دتقوی بدله کښې دویم ورکړې شوې څیز د ګناهونو کفاره ده یعنی کومې غلطئی چې دوئ څخه شوی دی په دنیا کښې د هغې کفاره او بدل داسې کولې شی چې په دې شان ورته د عملونو توفیق نصیب کیږی چې په ټولو غلطوئې غالب رازی.

دریم څیز د تقوی په بدله کښې دادې چې په آخرت کښې ئې مغفرت کولې شی او ټولې غلطئ او ګناهونه ورته معاف کیږی.

په آخر د آیت کښې فرمائی چې [وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ] یعنی الله ﷻ د لوئې فضل او احسان خاوند دې. دې کښې اشاره دې طرفته ده چې دعمل بدله خو د عمل په پیمانه ورکولې شی خو دلته د تقوی بدله د درې څیزونو څخه علاوه بې پیمانې داده چې الله ﷻ د لوئې فضل خاوند دې. د هغه د ورکړې او بخشیش هیڅ پیمانه نشته ، د هغه د احسان او انعام هیڅوك اندازه نشی لګولې. په دې وجه تقوی دارو خلقو له ددغې درې څیزونو څخه علاوه د الله ﷻ د فضل او انعام امیدونه لرل پکار دی.

دویم آیت مبارك کښې د الله ﷻ د یو خاص انعام او احسان ذکر دې چې په رسول کریم ﷺ په صحابه کرامو ﷺ بلکه په ټوله دنیا شوې دې. هغه داسې چې د هجرت څخه مخکښې کله چې رسول کریم ﷺ د کافرانو په ګیره کښې وو او هغوئ ئې د بندی کولو او وژلو مشورې کولې نو الله ﷻ دهغوئ ناپاکې ارادې ختمې کړې. او رسول اکرم ﷺ ئې صحیح سلامت مدینې منورې ته راؤرسولو.

هغه واقعه په تفسیر ابن کثیر او مظهری کښې په روایت د محمد بن اسحاق ﷫ ، امام احمد او ابن جریر ﷫ وغیره داسې نقل شوې ده چې هر کله د مدینې منورې څخه د

راتلونکو انصارو مسلمانیدل په مکه مکرمه کښې مشهور شو. نو قریش په دې زیات فکر مند څکه شو چې تر اوسه خو دهغوئ معامله یوازې مکې مکرمې سره تړلې شوې وه او هغه زمونږ د لاس خبره وه خو اوس هر کله چې مدینې منورې کښې اسلام خور شو او ډیر صحابه کرام ﷺ مدینې ته اورسیدل نو اوس هلته ددوئ مرکز قائم شو چې هر قسم طاقت په کښې زمونږ خلاف راجمع کولې شي. او بیا په مونږ حمله هم کولې شي. دا فکر هم ورسره مل شو چې تر اوسه پورې خو څو کسان صحابه کرام ﷺ په هجرت مدینې منورې ته تلی دی. ددې هم قوی امکان شته چې محمد ﷺ هم هلته لاړشی، په دې وجه دمکې مکرمې سردارانو په دارالندوه کښې یو خاص اجلاس راؤبللو، دارالندوه د مسجد حرام په خوا کښې د قصی بن کلاب مکان وو چې دغې خلقو د مجلس او مشورو دپاره ټاکلې وو، بیا د اسلام په زمانه کښې په مسجد حرام کښې د اخل کړې شوې وو. وئیلې شی چې موجوده باب الزیادات هم هغه ځائې دې کوم ته به چې دارالندوه وئیلې شو.

د عادت مطابق ددې اهمې مشورې دپاره د قریشی سردارانو غونډه په دارالندوه کښې اوشوه چې په کښې ابو جهل، نضر بن عتبه، شیبه، امیه بن خلف، ابوسفیان وغیره د قریشو ټول د سر کسان شریك وو. په دې کښې د اسلام او درسول کریم ﷺ مخ په ترقئ طاقت د مخ نیوؤ دپاره د منصوبو جائزه واخستې شو. ددغې مجلس شروع کیدو سره سم ابلیس لعین د یو مشر عربی شیخ په صورت، په دروازه اودریدو، خلقو ترې تپوس اوکړو چې څوك ئې؟ وې وئیل چې زه د مصر اوسیدونکې یم، ماته معلومه شوې ده چې تاسو څه اهمه مشوره کوئی. نود قومی همدردئی په خیال زه هم راغلم چې څه فائده ناکه مشوره درکړې شم. ددې په آؤریدو سره هغه دننه اوبللې شو او مشوره شروع شوه. د سهیلی د روایت مطابق ابوالبختری، ابن هشام دا مشوره وړاندې کړه چې رسول اکرم ﷺ دې د اوسپنې په زنځیرونو کښې بندی کړې شی او د مکان دروازه دې وریسې بنده کړې شی. چې معاذ الله دغلته پخپله وفات شی.

ددې په آؤریدو نجدی شیخ ابلیس لعین اووئیل چې دا رائې څکه صحیح نه ده چې خبرې پټیدې نشی بلکه ددې شهرت به تر لرې لرې پورې رسی او د رسول اکرم ﷺ د فدایانو کارنامې خو درته معلومه دی، قوی امکان دې چې دغه فدایان اوملګری به ئې راجمع شی او رسول اکرم ﷺ به د بند څخه آزاد کړی.

د هره طرفه آوازونه شو چې د شیخ نجدی خبره صحیح ده. بیا ابوالاسود دا رائې پیش کړه چې رسول اکرم ﷺ دې دمکې مکرمې څخه اوویستلې شی، بهر ئې چې څه خوښه وی هغه دې کوی، مونږ به ترې خلاص شو، دلته به دشر او فساد جرړه غوڅه شی او د جنګ څه خبره به پاتې نشی.

شیخ نجدی چې دا واؤریدول نو وې وئیل چې دا رائې هم صحیح څکه نه ده چې رسول اکرم ﷺ شرین ګفتار دی، څوك چې ئې خبرې واؤری نو هغه لکه د جادوګر پشان څان ته راکاږی، که هغه هم داشان آزاد پریښودلې شی نو په داسې ډول به ډیر زر هغه یوه غټه طاقتوره ډله جوړه کړی په تاسو به حمله اوکړی او ماتې به درکړی.

ابو جهل اوویل چې د کولو کوم کار دې هغه باندې په تاسو کښې هیڅوک چې پوهه نشو ، هغه زما په پوهه کښې داسې راغلې دې چې د عربو د ټولو قبیلو څخه یو یو ځلمې واخلو چې هر یو سره اعلی کارکوونکې تیره توره وی. په جمع حملې کولو سره به رسول اکرم ﷺ اوژنی ، په دې شان به د رسول اکرم ﷺ د فساد څخه خلاص شو. او بنو عبد مناف قبیله که د رسول اکرم ﷺ د قتل دعوی کوی نو په بدله کښې د قصاص مسئله خو به سرته نشی رسولې چې دومره کسان به څنګه د یو کس په بدل کښې وژلې شی ؟ د دیت او خون بها مسئله به ډیره په آسانه په شریکه حل کړو او دا غم به ختم شی. شیخ نجدی ابلیس لعین په دې مشوره باندې آفرین اوویلو. او ټول مجلس دا رائې ډیره زیاته خوښه کړه. او هم په دغه شپه ئې پرې د عمل کولو کوشش شروع کړو.

دا جاهلان د نبیانو علیهم السلام په غیبی طاقت باندې څه پوهیدل؟ د دغې مشورې څخه جبرائیل علیه السلام زر رسول اکرم ﷺ د الله ﷻ په حکم خبر کړو او ورته ئې اوویل چې نن شپه پخپل کټ مبارك باندې مه څملئ او دائې هم ورته اوویل چې الله ﷻ درته د مکې مکرمې څخه د هجرت کول اجازت درکړو.

دلته د مشورې مطابق قریشی ځوانانو سره د ماښامه د رسول اکرم ﷺ د مکان مبارك څخه ګیرچاپیره شو. هر کله چې رسول اکرم ﷺ اولیدل نو حضرت علی رضی الله عنه ته ئې حکم اوفرمائیلو چې هغه دې نن شپه د رسول اکرم ﷺ په بستره مبارکه باندې آرام اوکړی ، خو ورسره ئې د ازیرې هم ورکړو چې اګر که دې کار کښې ستا د سر خطره ښکاری خو کافران ستا هیڅ نشی کولې.

علی رضی الله عنه د دې د پاره تیار شو او د رسول اکرم ﷺ په بستره باندې څملاستو. مګر رسول اکرم ﷺ ته کافرانو د ګیرې څخه وتل ګران ښکاریدل چې څنګه اوځو نو الله ﷻ دا کار په خپل حکمت سره آسان کړو چې رسول اکرم ﷺ د الله ﷻ په حکم یو ډك موټئ ښاوړه راواخسته او بهر راغلل او ګیره اچوونکو ته ئې د هغې خبرو جواب ورکړو چې هغوئ د دهٔ باره کښې کولې خو الله ﷻ د هغوئ نظر اومخ د رسول اکرم ﷺ څخه بالکل واړولو. خو هیچا اونه لیدې شو ، سره د دې چې د هر یو په سر باندې ئې ښاوړه هم اچوله او بهر ته ئې تشریف راوړو. د رسول کریم ﷺ د وتلو څخه روستو یو کس راغلو او هغوئ څخه تپوس اوکړو چې دې خائې کښې څه د پاره ولاړ یئ. هغوئ ورته اوئیل چې:

د محمد ﷺ په تکل کښې یو ، هغه ورته اوویل چې ائې کم عقلو! رسول اکرم ﷺ خو ستاسو د مینځ څخه وتلې دې په سرونو ئې د رته ښاوړه هم اچولې ده. خلقو چې خپل سرونه اوکتل او لاسونه پرې اووهل نو خبره ربښتیا اوختله.

علی رضی الله عنه د رسول اکرم ﷺ په بستره باندې ملاست وو خو محاصره کوونکو کافرانو د هغه د ارخ بدلولو نه اوپیژندلو چې دا رسول اکرم ﷺ نه دی ځکه ئې د وژلو تکل اونه کړو ، کافرانو تر صبا پورې ولاړه اختیار کړه خو بیا تش لاس او خرې سترګې واپس شو. په دې شپه د رسول اکرم ﷺ په خاطر ځان په خطره کښې اچول د علی رضی الله عنه یو خاص فضیلت دې.

د قریشی سردارانو وړاندې درې رائې چې د رسول کریم ﷺ په حقله یې کړې وې هغه قرآن عظیم الشان داسې بیان کړې دی ، فرمائی چې [وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ] [یعنی هغه وخت د یادولو قابل دې چې کله کافرانو ستا خلاف تدبیرونه جوړول چې تاسو قید کړی یا مو قتل کړی یا مو د ښار څخه اوباسی] [1]

خو الله ﷻ دغه ټولې منصوبې شاوړې اېرې کړې څکه په آخرد آیت مبارك کښې فرمائی چې [وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ] [یعنی الله ﷻ بهتر تدبیر کوؤنکې دی]چې په ټولو تدبیرونو غالب رازی څنګه چې په دې واقعه کښې په سترګو شو .

مکر په عربی لغت کښې دې ته وئیلې شی چې په څه چل ول خپل مخالف بنده دهغه د ارادې څخه ایسار کړې شی .که داسې کول د څه نیك مقصد دپاره وی نو دغسې مکر ستائیلې شوې او ښه دې ، او که څه بد مقصد دپاره وی نو بد ګڼړلې شوې او خراب دې . په دې بنا دا لفظ انسان دپاره هم استعمالولې شی او الله ﷻ دپاره هم . خو الله ﷻ دپاره یوازې په داسې موقعه استعمالولې شی چرته چې د کلام د روانئ او مقابله کولو په ذریعه د بدګڼړلې کیدو او خرابوالی شبه نشئ کیدې . [مظهری] [2]

لکه چې دلته دی . دلته په دې خبره هم غور کول دی چې په آخر د آیت مبارك کښې په صیغې د مضارع سره اوفرمائیلې شو چې د حال او استقبال په معنی دلالت کوی لکه فرمائی [وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللَّهُ] یعنی دوئ د مسلمانانو دضرر رسولو تدبیرونه په مخه کوی . او الله ﷻ دغه تدبیرونه په مخه بیکاره او بې اثره کوی او ددې تدبیرکوی ، په دې کښې اشاره ده چې دا د کفارو دائمی شعار او خصلت دې چې د مسلمانانو په خلاف همیشه تدبیرونه کوی . دغه شان الله ﷻ د خپل مدد په ذریعه د رښتنی مسلمانانو نه په مخه دغه چلونه په شاتمبوی .

په یو دیرشم او دوه دیرشم آیتونو مبارکو کښې د دارالندوې د یو غړی نضر بن حارث یو عبث وینا او په درې دیرشم آیت مبارك کښې د هغې جواب بیان شو بدې . نضر بن حارث تجارت پیشه سړې وو ، د مختلفو ملکونو په سفرونو کښې د یهودو ، نصرانیانو کتابونه ئې لیدلی وو او بیا بیا ئې د هغوئ عبادتونه هم لیدلی وو ، نو کله ئې چې په قرآن پاك کښې د پخوانو امتونو حالات واؤریدل نو وې وئیل چې [قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَٰذَا إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ] [یعنی دا خبرې خو مونږ آؤریدلی دی که مونږ غواړی نو مونږ یې هم وئیلې شو ، دا خو د اولنو خلقو قیصې دی .]

هرکله چې صحابه کرامو ﷺ په دې شان ددۀ خله ماته کړه چې ښۀ نو بیا ولې داسې نه کوې چې قرآن عظیم الشان هم ټولې دنیا ته چیلنج ورکړې دې چې که کفار په دې خبره کښې رښیتنی وی نود قرآن عظیم الشان پشان یو وړوکئ سورت دې په مثال کښې پیش کړی . خو په مخالفت کښې د مال و سرو څخه ورتیر خلقو ټولو په شریکه هم یو وړوکئ سورت د قرآن عظیم الشان پشان پیش نه کړې شو . بیا سره ددې داسې خبره کول د غیرت څخه خلاف دی چې که مونږ اوغواړو دغسې وئیلې شو . په د ې شان هر کله چې صحابۀ کرامو ﷺ په نضر

[1]) التفسير المظهري: ج ۴، ص ۵۵ نه ۵۸ پورې ، وتفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۴، ص ۴۴

[2]) التفسير المظهري: ج ۴، ص ۵۸

بن حارث باندې کلام الهی حق کیدل بیان کړل نو پخپل مذهب باندې د خپلې مضبوطیا د ښکاره کولو په غرض ئې اووئیل چې [وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ] [یعنی ایې الله ﷻ ! که دا قرآن پاك ستا د طرفه حق دې نو مونږ باندې کاڼي راؤروه یا بل سخت عذاب راباندې نازل کړه]

قرآن عظیم الشان پخپله جواب ورکړو چې اول ئې اوفرمائیل [وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ] [یعنی الله ﷻ به داسې نه کوی چې تاسو په مکه کښې یې او په دوئ باندې عذاب نازل کړی] ځکه چې اول خو د الله ﷻ تولو انبیاء ﷺ سره دا دستور دې چې د الله ﷻ عادت داسې دې چې په کومه آبادئی کښې څوك پیغمبر موجود وی نو په هغوئ عذاب نه رالیږلی کوی تر څو چې خپل پیغمبر ترې او نه باسی څنګه چې هود ﷺ، صالح ﷺ، او لوط ﷺ سره اوشو. تر کومې چې هغوئ د غلته وو عذاب پرې نه راتلو. کله چې هغوئ ته الله ﷻ د وتلو حکم اوکړو اووتل هله ئې په دغه قومونو باندې عذاب راوستو. خصوصا سردار د انبیاء کرامو ﷺ چرته چې موجود وو نو هلته عذاب نازلول ځکه د رسول اکرم ﷺ دشان خلاف وی چې د رحمة للعالمین لقب ورته الله ﷻ پخپله ورکړې دې.

د جواب خلاصه دا شوه چې د قرآن عظیم الشان او اسلام د مخالفت په وجه خو تاسو ته ددې لائق یئ چې کاڼی درباندې راؤورلې شی خو د رسول اکرم ﷺ په خاطر درسره داسې ځکه نشی کولې چې رسول اکرم ﷺ په مکه مکرمه کښې موجود دی.

د امام ابن جریر ﷫ دقول مطابق د آیت مبارك دابرخه هغه وخت نازله شوه کله چې رسول اکرم ﷺ په مکه مکرمه کښې موجود وو. مدینې منورې ته د هجرت کولو څخه روستو د آیت دا دویمه برخه [وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ] الله ﷻ پرې عذاب نازلونکې نه دې چې کله دوئ بخښنه غواړی.

ددې څخه مراد دادې چې تاسو کله مدینې منورې ته تشریف یوړو نو دې نه وروستو اګر چې د عذاب د راتلو جواز پیدا شو یعنی ددې نه مخکښې خو تاسو هلته موجود وې. خو پدې وخت کښې هم د عذاب د نه راتلو وجه موجود ده او هغه دا چې ډیر ضعیفان مسلمانان چې هجرت یې نشو کولې په مکه کښې پاتې شوی وو، او هغوئ دالله ﷻ څخه استغفار کولو، دهغوئ په خاطر مکې والو باندې مو عذاب نازل نه کړو.

بیا کله چې تول حضرات مدینې منورې ته اورسیدل نو ددې آیت باقی حصه یا جمله نازل شوه [وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ] یعنی دا څنګه کیدې چې الله ﷻ دوئ ته عذاب ورنکړی حالانکه هغوئ خلق مسجد حرام کښې د عبادت کولو څخه منع کوی[1].

مطلب دادې چې کومو دوه څیزونه د عذاب د نه راتلو سبب وو هغه اوس ختم شو، نه خو نبی کریم ﷺ په مکه کښې دې او نه استغفار کوؤنکی مسلمانان مکه کښې باقی پاتې شو، نو اوس د عذاب په راتلو کښې هیڅ روکاوټ نشته دې.

او خصوصا هغوئ په دې وجه د عذاب مستحق شو چې هغوئ د اسلام مخالفت کولو او ددې څخه علاوه دهغوئ په جرم کښې نوره هم اضافه اوشوه چې دا خلق پخپله د عبادت کولو قابل

---

[1]) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج ۱۳، ص ۵۰۵

نه وو ، او کوم مسلمانان چې عمرې یا طواف د پاره مسجد حرام ته تلل غوارۍ هغوئ یې ایسار کړل ، نو اوس په دوئ باندې د عذاب راتلو سبب زیات شو ، د فتح مکه په ذریعه په دوئ باندې عذاب نازل شو.

مسجد حرام ته د داخلیدو څخه د منع کولو واقعه په غزوهٔ حدیبیه کښې راپیښه شوې وه ، کله چې نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ سره د عمرې په اراده تشریف یوړو او د مکې مشرکانو دوئ ایسار کړل ، او نبی کریم ﷺ او ټول صحابه کرام ﷺ یې په واپس تللو او احرام پرانستلو باندې مجبوره کړل ، دا واقعه په شپږم هجرئی کښې راپیښه شوې وه ، ددې څخه دوه کاله پس مکه مکرمه فتح شوه ، او داشان په دوئ باندې د مسلمانانو د لاسه عذاب نازل شو . دابن جریر ﷺ ددې تفسیر انحصار په دې باندې دې چې دعذاب نه راتلو سبب دې دا اوګرزولې شی چې نبی کریم ﷺ په مکه مکرمه کښې دې ، او ځینو حضراتو فرمائیلی دی چې کله پورې د نبی کریم ﷺ وجود مبارک په دنیا کښې دې نو عذاب به نه راځی. کله چې پورې چې نبی کریم ﷺ په دنیا کښې موجود دی نو ددوئ په قوم به عذاب نه راځی. او ددې وجه ښکاره ده چې د نبی کریم ﷺ حال د نورو انبیاء کرامو ﷺ په شان نه دې چې هغوئ خاص خاص ځایونو ته یا قبائلو ته مبعوث شوی وو ، کله چې به د هغه ځائې څخه اووتل او بل ځائې ته به لاړل نو په هغوئ باندې به عذاب راغلو. پخلاف د سید الانبیاء ﷺ څکه چې د نبی کریم ﷺ رسالت ټول عالم دپاره او قیامت پورې عام دې. ټوله دنیا د نبی کریم ﷺ د بعثت مقام او د رسالت مقام دې. په دې وجه چې ترڅو پورې نبی کریم ﷺ د دنیا په یوه حصه کښې موجود دی نو عذاب به نه راځی.

ددې تفسیر په بنا مطلب به دا وی چې د اهل مکه کردار خو داسې وو چې عذاب پرې راغلې وې او کاڼړی پرې ورولې شوې وې ، خو د دوؤ څیزونو په برکت پرې عذاب رانغلو ، یو نبی کریم ﷺ دنیا ته تشریف راوړل. بله دا چې د مکې خلقو به استغفار کولو یعنی اګر چې دوئ مشر کان وو خو پخپلو طوافونو وغیره کښې به ئې غفرانك غفرانك وئیل او الله ﷻ څخه به ئې بخښنه غوښتله. دغه بخښنه غوښتل به اګر چې په آخرت کښې ددوئ دپاره فائده منده نه وی مګر په دنیا کښې پرې دعذاب څخه خلاص شو ، ولې چې الله ﷻ د چا عمل نه خرابوی. او کفارو مشرکانو ته دهغوئ د نیکئ بدله هم په دنیا کښې ورکولې شی. دې نه پس چې کوم ارشاد اوفرمائیلې شوچې الله ﷻ دوئ ته عذاب نه ورکوی سره ددې چې د اخلق مسلمانان په مسجد حجرام کښې د عبادت کولو څخه منع کړې شی. په دې صورت کښې ددې مطلب به داوی چې په د نیا کښې پرې د عذاب نه راتلو په وجه دې دا خلق په دې نه دهوکه کیږی چې مونږ د سره مجرمان نه یو او په مونږ به عذاب هم نه وی بلکه په [وَمَا لَهُمْ اَلَّا یُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ] فرمائیلو سره ئې ښکاره کړل چې دآخرت عذاب به دوئ دپاره خامخا وی.

ددې آیت مبارك څخه څو فوائد حاصل شو. ① یو دا چې الله ﷻ د خپل دستور مطابق په هغې علاقې عذاب نه راولی چرته چې خلق الله ﷻ څخه بخښنه غوارۍ.

② دویم دا چې د رسول اکرم ﷺ د امت په مسلمانانو څو څه چې په کافرانو به هم عذاب نه رازی او ددې څخه مراد دادې چې عام عذاب چې هغې سره پوره قوم تباه شی نو داسې

عذاب په نه راځي ، لکه څنګه چې د نوح ﷺ قوم ، لوط ﷺ قوم او د شعيب ﷺ قوم سره داسې واقعات شوي وو چې د هغوئ هر څه تباه شو. که په افراد واحاد باندې څه عذاب راشي نو هغه ددې خلاف نه دی لکه څنګه چې نبی کریم خپله ارشاد فرمائيلې دې : زما په امت به د خسف او مسخ عذاب نه رازي[1] . د خسف معنی زمکه کښې ښخيدل او د مسخ معنی شکلونه مسخ کيدل او بدليدل او هغوئ څخه شادوګان يا خنزيران وغيره جوړيدل .ددې څخه دا مراد دې چې د امت به ځينې ځينې کسانو به داسې عذابونه راځي.

رسول کريم ﷺ تر قيامته پورې په دنيا کښې موجود دی څکه چې د دوئ ﷺ پيغمبری تر قيامته پورې ده. دغه شان رسول اکرم ﷺ اوس هم ژوندی دی اګرچې د رسول اکرم ﷺ دنيوی اوبرزخي ژوند کښې فرق شته دې ، ليکن په دې باندې زيات بحث کول څکه عبث اوبې فائدې دی چې په دې باندې ددنيا آخرت او دين هيڅ کار اړه نه لري ، ولې چې پخپله رسول اکرم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ د اسې قسم بحثونه کول نه دی خوښ کړي.

خلاصه دا ده چې د رسول اکرم ﷺ پخپله روضه مبارکه کښې برزخي ژوند او تر قيامته پورې د رسول اکرم ﷺ پيغمبری قائمه پاتې کيدل ددې دليل دې چې تر قيامته پورې رسول اکرم ﷺ په دنيا کښې موجود دی ، څکه به دا امت تر قيامته پورې د عام عذاب څخه محفوظ وی.

وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ

اوڅه دي|په دوئ| چې نه به ورکوي عذاب دوی ته الله | حال دا چې دوئ| منع کوي خلق

| خو اوس به پرې الله ﷻ ولې عذاب نه راولی | حال دا دې چې هغوئ نور خلق

عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ ۚ إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ

د مسجد حرام نه | اونه دی دوئ | ددې مختار | نه دی ددې مختار

دمسجد حرام نه منع کوي | ...... ددې باوجود چې [د مسجد حرام] مستحق سرپرستان هم نه دي

إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝ وَمَا كَانَ

مګر پرهيزګاران |خو ليکن | اکثر ددوئ | نه پوهيږي | اونه دي

ددې سرپرستان خو صرف پرهيزګار خلق کيديشي| خو زيات خلق په دې نه پوهيږي | ...............اود

صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً ۚ فَذُوقُوا

مونځ ددوئ |په خوا دبيت الله کښې| مګر | شپېلې وهل دي اولاسونه پرقول دي | نو اوڅکئ

بيت الله په خوا کښې ددوئ مونځونه څه وو| خو شپېلې وهل او لاسونه پرقول وو | نو ائې [کافرو]

الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ۝ إِنَّ الَّذِينَ

عذاب |په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې انکار به موکولو | بيشکه هغه کسان |

دخپل انکار په سبب دعذاب مزه اوڅکئ | ......................بيشکه هغه څوک چې

[1]) جامع الترمذي، أبواب القدر، باب ما جاء في الرضا بالقضاء: ج ۲، ص ۳۷، وسنن ابن ماجة، أبواب الفتن، باب الخسوف: ج ۲، ص ۲۹۵

كَفَرُوْا يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوْا

چي انکار ئې اوکړو دحق نه | لګوی هغوئ | مالونه خپل | دپاره ددې چې منع کړي خلق

چي د حق نه ئې انکار کړې دې | اوهغوئ خپل مالونه په دې کښې لګوی | چې

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَسَيُنْفِقُوْنَهَا ثُمَّ تَكُوْنُ عَلَيْهِمْ

دلارې د الله نه | اوورپسې اوبه لګوی نورمالونه هم| بیابه | وی | په هغوئ باندې

خلق دالله ﷻ لارې نه منع کړی | نو لابه نور مالونه هم لګوی | اوبیا به ئې دا خرچونه

حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُوْنَ ۬ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا اِلٰى جَهَنَّمَ

ذریعه دافسوس| بیابه| غلبه حاصله کړې شی په دوئ |اوهغه کسان | چې کافران دی| دوزخ ته به

دافسوس سبب ا وګرځی| اوبیا [آخر] به بیلات اوکړی | اوبیشکه هغه کسان چې کفرئې اختیارکړې دې

يُحْشَرُوْنَ ۙ لِيَمِيْزَ اللّٰهُ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ

جمع کړې شی | دپاره ددې چې جدا کړی الله | ناپاک | دپاکونه | اوکیږدی

تول به دوزخ ته راغوندکړې شی | د دې دپاره چې الله ﷻ پلیت [کافران] دپاکو [مومنانو] نه جدا کړی

الْخَبِيْثَ بَعْضَهٗ عَلٰى بَعْضٍ فَيَرْكُمَهٗ جَمِيْعًا فَيَجْعَلَهٗ

ناپاک | خینی دهغې | په خینو باندې | بیا جمع کړی هغه | تول ه | اواوغورزوی هغه |

اوبیا تول پلیت [کافران] رایوخائې کړی |........................ او دوزخ ته ئې اوغورزوی

فِيْ جَهَنَّمَ ۭ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۟ۧ قُلْ لِّلَّذِيْنَ

په دوزخ کښې| دغه کسان چې دی|هم هغوئ | تاوانیان دی | اووایه | هغه کسانوته

..............نوهم دغه خلق دی چې په تاوان کښې پراته دی | .............ته کافرو ته اووایه

كَفَرُوْٓا اِنْ يَّنْتَهُوْا يُغْفَرْ لَهُمْ مَّا قَدْ سَلَفَ ۚ

چې کافران دی|که منع شو هغوئ |نومعاف به کړې شی | هغوئ ته | هغه څه اچې مخکښې شوی دی

که دوئ اوس هم منع شی | ..................نوتیر شوی ګناهونه به ورته اوبښلې شی|

وَاِنْ يَّعُوْدُوْا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْاَوَّلِيْنَ ۝

اوکه | بیا راوګرزیدو هغوئ| نوتیره شوی ده| طریقه | داولنو خلقو |

اوکه بیابیا [نافرمانی]کوی| نو پخوانو قومونو سره چې څه شوی دی هغه ښکاره دی |

## آسان ترجمه قرآن

او دي کښې څه ښه والې دې چه الله دوی ته عذاب ورنکړی څکه چه دوی خلقو لره د مسجد حرام نه منع کوي حال دا چه دوی د هغې متولیان (نګرانان) نه دي . د متقیانو نه سوا نور څوک د هغې متولیان نه شي کیدې . لیکن دوی کښې اکثر خلق (په دې خبره) نه پوهیږي او د بیت الله په خوا کښې د دوی مونځ د شپیلو او لاسونو پرقولو نه سوا نور څه نه دی. پس (اې کافرانو !) چه تاسو د کفر خبرې کولې نو اوس ددې وجې نه عذاب وڅکئ ۝ کوم خلقو چه کفر کړې دې هغوی خپل مالونه دې وجې نه خرچ کوي چه دوی

دالله د لارې نه خلق بند کړي نتيجه به دا شي چه دوی چه کوم مال خرچ کوي دا به خپله دوی د پاره وبال شي . او آخر به دوی مغلوب شي او (آخرت کښې) به دا خلق جهنم ته جمع کړې شي دې د پاره چه الله پليت (خلق) د پاکو (خلقو نه) جدا کړي او يو ناپاک په بل ناپاک کيږدي او د دوی يو ډيرې جوړ کړي او بيا دا ډيرې جهنم کښې وغورځوي. دا هغه خلق دي چه سراسر په خساره کښې دي (اې پيغمبره!) کومو خلقو چه کفر کړې دې هغوی ته ووايه چه : که دوی منع شو نو دوی نه چه مخکښې څه شوي دي هغه به ورته معاف کړې شي او که چرې دوی بيا هغه معامله وکړی نو د مخکنو خلقو سره چه کومه معامله شوې وه هغه (د دوی مخې ته) تيره شوې ده.

## خلاصه تفسير

﴿ وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ ﴾ او [ددوي دمنع کولو په وجه د عادت خلاف د عذاب نه نازليدلو نه بالکل د عذاب نه مه مطمئين کيږئ ځکه لکه څنګه چه دا ذکر شوي کارونه مانع د عذاب دي هم داشان ددېو حرکتونه د عذاب مقتضي هم دي.نو دمانع اثر په عذاب خارق کښې ظاهر شو او دمقتضي اثريه په نفس عذاب کښې ظاهريږي چه غير خارق عذاب په دوي نازليږي. چنانچه ددې مقتضي بيان فرمائي چه] ددوي څه حق دې چه دوي ته الله ﷻ [بالکل هم معمولي] سزا [هم] ورنکړي ﴿ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ﴾ حالانکه [ددوي دا حرکتونه د سزا مطالبه کوي لکه] دا خلق پيغمبر ﷺ او مسلمانان [مسجد حرام ته [دتلو نه او په دې کښې دمونځ کولو نه او په دې کښې دطواف کولو نه] منع کوي [لکه څنګه ئي چه په حديبيه کښې منع کړل چه ددې قصه په سورت بقره کښې تيره شوې ده او د اوسيدو په زمانه کښې ئي حکمي طورسره منع کړل او داشان ئي تنګ کړل چه دهجرت ضرورت راپيښ شو] ﴿ وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ ﴾ حالانکه دغه خلق ددې مسجد دمتولي [کيدو هم لائق] نه دي [او عبادت ګزار منع کول خو يو خواته ددې نه دمنع کولو اختيار خومتولي ته هم نه وي] ﴿ إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ ﴾ ددې متولي [د جوړولو لائق] خو د متقيانو نه سوا [چه دا اهل ايمان دي] نور هيڅوك نشته دې ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ليکن په دوي کښې اکثر خلق [د خپل نالائق توب] علم نه لري [خواه علم ئي نه وو يا دا چه په علم ئي عمل اونکړو نودغه په مثل دعدم علم دې.غرض چه کوم په ربنتيا مونځ ګزار وو هغوي ئي د مسجد نه داشان منع کړل] ﴿ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً ﴾ او [پخپله ئي دمسجد څنګه حق ادا کړو او په دې کښې ئي څنګه ښه مونځ اوکړو چه دهغې بيان دادې چه] ددوي مونځ په خانه کعبه کښې [دذکر شوي عنوان مسجدحرام] سره صرف دا وو، شپيلي وهل اولاسونه پرقول [يعني د مونځ په ځائې ددوي به داناموقوله حرکتونه وو] ﴿ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ نو [ددې حرکتونوضرورر دا تقاضاده چه په دوي باندې څه عذاب که هغه معمولي وي اوکه عادي نازل شي او دوي مخاطب کړې شي چه اوګورئي] ددې عذاب مزا اوڅکئي دخپل کفر په وجه [چه دهغې اثر يو هغه قول دې ﴿ لونشاءالخ ﴾ اويو اثر دا قول دې چه ﴿ان کان هذاالخ﴾ اويو اثرهغه فعل دې ﴿يصدون الخ﴾ اويواثر دا فعل دې ﴿ مکاءوتصديةالخ﴾ چنانچه په ډيرو غزواتوکښې دا سزاګانې واقع شوې لکه ددې سورة په دويمه رکوع کښې هم دې چه ﴿ذلکم فذوقوه الخ﴾ ﴿ ذلك بأنهم شاقوا الخ﴾ . تردې ځائې خو ددغه خلقو د اقوالواوبدني اعمالو ذکر وو مخکښې ددوي دمالي اعمالوبيان دې]. ﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَنْ سَبِيلِ

اللهِ﴾ بغیر د څه شك شبهې نه داكافر خلق خپل مالونه ددې دپاره خرچ كوي چه دالله ﷻ دلارې نه [يعني ددين نه خلق] منع كړي [چنانچه دحضور ﷺ په مقابله كښې او مخالفت كښې سامان جمع كول ظاهر دي چه څه به ئې خرچ كول په هغې كښې غرض دا وو] ﴿ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ﴾ نو دا خلق خو خپل مالونه [د دې غرض دپاره] خرچ كوي [خو بيا [په آخر كښې چه به دناكامۍ اثار محسوس شي] نودامالونه به ددوي په حق كښې د افسوسو باعث جوړ شي [چه هسې مو خرچ كړواو] بيا [آخر] به مغلوب شي [چه په دې كښې به د مال د ضائع كيدو سره به نور هم افسوس او مغلوبيت جمع شي] ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴾او [دا سزا او افسوس اومغلوبيت خوددوي په دنيا كښې دې باقي د آخرت سزا خو بيله ده چه دهغې بيان دادې چه] كافر خلق به دوزخ طرف ته [دبوتللو دپاره په قيامت كښې] جمع كولې شي.﴿ لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ﴾ چه الله ﷻ ناپاك [خلقو لره] د پاكو [خلقو] نه بيل كړي [ځكه چه كله دوزخيان دوزخ طرف ته راوستلې شي نو ظاهره ده چه اهل جنت به ددوي نه بيل شي] ﴿ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ او [ددوي نه به ئې بيل كړي] ناپاك به يوبل سره يو ځائې كړي يعني دوي ټول به يو ځائې كړي ﴿ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ﴾ بيا [يو ځائې كولو سره] دا ټول به جهنم ته ورداخل كړي ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴾ همداسې خلق په پوره نقصان كښې دي [چه د هغه څه منتهى نشته دې ائې محمد ﷺ] ﴿ قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ تاسو دې كافروته اووائې ﴿ إِن يَنتَهُوا يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ ﴾ چه كه دا خلق [دخپل كفر نه]منع شي [او اسلام قبول كړي] نو ددوي به ټول گناهونه چه [داسلام نه ئې]د مخكښې كړي دي ټول به معاف كړي شي [دا حكم خود اسلام دحالت شو] ﴿ وَإِن يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴾ اوكه خپل په هم دهغه [كفر] عادت كوي نو [دوي ته واوروه چه] مخكښې كافرانو په حق كښې [زمونږ] قانون نافذ شوې دې [چه په دنيا كښې هلاك اوپه آخرت كښې عذاب به هم ستاسو دپاره وي. چنانچه په قتل سره هلاك هم شو او دغير كفار عرب هلاكيدل ذمې كيدل هم دې نو تاسو پوهه شئ].

## معارف او مسائل

تيرۇ شوۇ آيتونو كښې دا خودلې شوي وو چې دمكې مكرمې مشركان دخپل كفر او انكار په وجه اگر چې دوئ حقدار دی چې آسماني عذاب په دوئ راوستې شي خو هركله چې رسول كريم ﷺ په مكه مكرمه كښې موجود دی په دوئ عذاب نه راځي. بل ځيز چې د عذاب نه منع كوی هغه دادې چې د رسول كريم ﷺ د هجرت كولو نه پس مكه مكرمه كښې داسې كمزوری مسلمانان پاتې شو چې الله‌تعالی نه په مخه بخښنه غوارى.

اوس په دې آيتونو مباركو كښې دا بيانيږی كه د رسول كريم ﷺ په خاطر او ددغه كمزورو مسلمانانو په خاطر ، په دوئ باندې عذاب په دنيا كښې نه رازی نو دوئ دې دا نه گنړی چې گنی د عذاب حقدار نه دی ځكه د دوئ د عذاب حقدار كيدل خو ښكاره خبره ده ، او دكفر او انكار نه علاوه د دوئ نور هم داسې جرمونه شته دې چې دهغې په وجه په دوئ عذاب راتلل پكار دی . په دې دوارو آيتونو كښې د دوئ درې جرمونه بيان كړې شويدی .

① اول دا چې پخپله مسجد حرام كښې د عبادت كولو د سره جوگه نه دی ، اوكوم مسلمانان چې هلته عبادت كولو د پاره راتلل غوارى هغوئ ﷺ لره منع كوی . په دې كښې د حديبيه

واقعې ته اشاره ده چې په کال شپږمه هجرئ کښې ټول مسلمانان سره د رسول کریم ﷺ نه، عمرې ادا کولو ته نه وو پرېخودی او په واپس تللو يې مجبوره کړی وو.

④ ددوئ دویم جرم دا بیا کړې شو هدې چې د دوئ په خیال کښې د مسجد حرام اختیار مند هم دوئ دی دغلته د چا راتلل او ایساریدل به هم د دوئ په خوښه وی. ددوئ دا خیال په د وه غلط فهیمانو باندې وو، یو دا چې ځانونه ئې د مسجد حرام اختیار مند ګنړل، سره ددې چې هیڅوک کافر د مسجد اختیار مند نشی کیدې. بله غلط فهمی داوه چې ددې مسجد متولیان مونږ یو او ود متولی ته دا اختیاروی چې څوك ورپرېږدی او څوك ایسار کړی، لهذا دې مسجد ته څوك راپرېخودل، او څوك ترې ایسارول زمونږ په اختیار کښې دی حالانکه مسجد د الله تعالی کور دی، ددې نه د ایسارولو حق هیچا ته نشته. البته په خاصو صورتونو کښې داسې کولې شی لکه د مسجد بې عزتی کیږی یا نور مونځ ګذارو ته د تکلیف اندیښنه وی، لکه رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چې خپل مسجدونه د ماشومانو[1]، لیونو او دخپلو جنګ جګړو نه ساتئ. دلته د ماشومانو نه مراد داسې ماشومان دی چې د مسجد د پلیتدو خطره ترې کیدې شی. لیونی نه د مسجد د پلیتیدو خطره هم کیدې شی او مونځ ګزارو ته د تکلیف رسولو خطره هم وی. دغه شان خپل مینځ کښې جګړو کولو سره د مسجد بې عزتی هم وی او مونځ ګذارو ته هم تکلیف وی. یعنی ددې حدیث پاك ترمخه په دې دریو صورتونو کښې مسجد نه ایسارول جائز دی، دې نه سوا بل صورت کښې څوك اختیار نه لری چې یو مسلمان مسجد ته د راتلو نه منع کړی.

د قرآن کریم په دې آیت مبارك کښې صرف رومبئ خبره بیان کړې شوه، یعنی دا خلق څنګه د مسجد حرام اختیار مند ګنړلې شی حال دا چې د اصولو مطابق یوازې متقیان مسلمانان ددې اختیار مند کیدې شی. دې نه معلومه شوه چې د مسجد متولی او اختیار مند دې پرهیزګاره او دینداره مسلمان جوړولې شی، ځینې مفسرینو ﴿ان اولیاءه الا المتقون﴾ کښې د ها ضمیر الله تعالی ته راجع منلې دې. د هغې په بنا معنی دا لیکلې ده چې د الله تعالی ولی یوازې پرهیزګار خلق کیدې شی.

ددې تفسیر په جوړ د آیت مبارك نه دا نتیجه راوؤته چې کوم خلق د شریعت او سنت نه خلاف عمل کوی او سره ددې د ولی کیدو دعوی لری نو دا دروغژن دی او دوئ لره ولی ګنړونکی هم په دهوکه کښې دی.

③ ددې خلقو دریم جرم یې دا اوښودلو چې کفر او شرك خو ددوئ بنیاد ګندګی وه، دې نه علاوه د دوئ نور کارونه عملونه هم دعام انسانی پیمانې نه غورزیدلی دی، د دوئ مونځ صرف دادې چې په خلو شپیلی وهی او لاسونه پړقوی، چې ورته عبادت او مونځ خو لاڅه کوې چې صحیح انسانی کار و رته هم هغه څوك نشی وئیلې چې لږ عقل هم لری. په دې بنا د آیت مبارك په آخر کښې فرمائی چې: ﴿فذوقوا العذاب بما کنتم تکفرون﴾ [یعنې ستاسو د کفر او جرمونو انجام هم دغه دې چې اوس عذاب اوڅکئ] دلته د عذاب نه مراد د آخرت عذاب هم کیدې شی او د دنیا عذاب هم، کوم چې د بدر په غزا کښې د مسلمانانو دلاسه پرې رانښکته شو.

[1] سنن ابن ماجة، أبواب المساجد والجماعات، باب ما یکره فی المساجد: ج۱، ص ۵۴

دې پسې په شپږ دېرشم آيت مبارك كښې د مکې مکرمې د کافرانو يوه بله واقعه بيان شوېده چې دوئ د اسلام او مسلمانانو خلاف د طاقت جمع کولو په غرض غټ مال راغونډ کړو بيا ئې د حق دين او مسلمانانو د ختمولو په غرض استعمال کړو ليکن په نتيجه کښې ئې هغه مال هم د ګوتو اووتو، مقصد ئې هم حاصل نشو او ذليل پاتې شو.

دمحمد بن اسحاق په روايت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه دا واقعه داسې منقول ده چې د بدر د غزا غم زپلی او شکست خورده کافران هر کله چې مکې ته واپس راؤرسيدل نو هغه خلق د تجارتی قافلې امير ابی سفيان له ورغلل د چا چې پلاران خامن په دغه غزا کښې وژلې شوی وو، هغه ته ئې اووئيل چې دا جنګ خو دتجارتی قافلې د حفاظت په خاطر شوې وو ځنګه چې تاته هم معلومه ده چې په نتيجه کښې ئې مونږ ته ځانی او مالی زيان راؤرسيدو. مونږ غواړو چې دغه مشترکه تجارتي کمپنئ نه زمونږ مدد اوکړې شی دپاره ددې چې په آئنده کښې د مسلمانانو خپل انتقام واخستې شو دا خواست ئې منظور شو او غټ رقم ورکړې شو، دبدلې اخستو په غرض ئې دغه مال د احد په غزا کښې اولګولو، خو په آخر کښې ئې دغلته هم ماتې اوخوړه، اود مال ضائع کيدو ارمان ئې هم په زړونو کښې چپې وهلې[1].

د قرآن عظيم الشان ددې آيت مبارك په ذريعه رسول کريم صلى الله عليه وسلم ته دمخکښې نه خبر ورکړې شوې وو چې داخلق کافران دی خپل مالونه دې کار دپاره لګوی چې خلق د الله تعالى د دين نه منع کړی خو انجام به ئې دا وی چې خپل مالونه به هم اولګوی او بيا به ددې په لګولو افسوس هم کوی او په آخرت کښې به د دوئ لاندې راتلل وی. نو د احد په غزا کښې رښتيا هم دغسې اوشو، دغه راغونډ کړې شوې مال ئې هم د ګوتو نه اووتو او شکست ئې هم اوخوړو، په دا شان دوه غمونه ورسره مل شو يو د شکست او بل دمال ضائع کيدو.

او بغوی رحمه الله او ځينې نورو مفسرينو ددې آيت مبارك مضمون خو ددې د بدر غزا په لګخت باندې چسپان کړې دې، يعنی د بدر غزا کښې کوم زر ځوانان چې د مسلمانانو د مقابلې دپاره راغلی وو، د هغوئ د خوارك څکاك وغيره ټول خرچ د مکې مکرمې دولس سردارانو پخپله ذمه اخستې وو چې په کښې ابو جهل، عتبه، شيبه وغيره شامل وو، ددغې ځوانانو د تګ راتګ خرچه هم ورسره شامل کړه نو دا ډيره زياته خرچه جوړيږی، نو د بدر په غزا کښې ئې يو غم د شکست خوړلو او بل افسوس او ارمان د بربادېدو هم راپيښ شو چې دواړه ډير سخت وؤ. [مظهری][2].

د آيت مبارك په آخر کښې د آخرت په اعتبار سره ددې خلقو د خراب انجام بيان داسې دې چې: ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ﴾ [يعنی کوم خلق چې کافران دی دهغوئ حشر به جهنم طرفته وی]

دې آيتونو کښې د حق دين نه د خلقو د ايسارولو په غرض د مال خرچ کولو خراب انجام چې بيان شوې دې هغه په دې اوسنو کافرانو هم چسپان کيږی کوم چې اسلام نه د خلقو دا يسارولو او خپلو باطلو طرفته ددعوت ورکولو په غرض ډير زيات دولت په شفاخانو، تعليمی ادارو او د خير خيرات په نوم په نور کارونو کښې خرچ کوی. داشان په هغه ګمراهانو خلقو هم چسپان کيږی چې د اسلام په اجماعی عقيدو کښې د شکونو او وهمونو پيداکولو

[1]) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۵۳

[2]) تفسير البغوی تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۵۵، والتفسير المظهری تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۷۳

په غرض خلقو ته بلنې ورکوي ، او غټ غټ مالونه پرې لگوي . خو هرکله چې الله ﷻ دخپل دين ساتونکې او مرستيال دې نو سره ددغې مالونو لگولو فساديان خلق پخپل مقصد پوره کولو کښې پاتې راشي او د افسوس منگلې مروړي .

په اووۀ ديرېشم آيت مبارك كښې ددغې واقعاتو څه نتيجې بيان شوى دى ، خلاصه ئې داده چې كافرانو كوم مالونه د اسلام په خلاف استعمال كړل بيا ورته په دې افسوسونه ا و پښيمانتيا او شوه او ذليل او خوار شو دهغې فائده داده چې :

﴿لِيَمِيزَ اللّٰهُ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ﴾ [يعنى چې الله ﷻ په پاكو او ناپاكو څيزونو كښې فرق واضح كړي] د خبيث معنى ناپاك گنده او حرام ده ، ددې خلاف طيب دې چې د پاك ، صفا او حلال معنى وركوي . دلته ددې دواړو لفظونو نه د كافرانو ناپاك او د مسلما نانو پاك مالونه هم مراد اخستې شي . مطلب دادې چې د كافرانو هغه لگولى غټ مالونه خبيث او ناپاك وو دهغې خرابه نتيجه دا راوته چې مال ئې هم لاړو او ځانونه ئې هم تباه شو ، دهغې په مقابله كښې مسلمانانو ډير كم مال اولگولو چې پاك او حلال وو ، ددې لگوونكى كامياب شو او د غنيمت ډير مال ورته هم په لاس ورغلو .

دې پسې فرمائى چې : ﴿وَيَجْعَلَ الْخَبِيْثَ بَعْضَهٗ عَلٰى بَعْضٍ فَيَرْكُمَهٗ جَمِيْعًا فَيَجْعَلَهٗ فِيْ جَهَنَّمَ ۭ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ﴾ [يعنى الله ﷻ يو خبيث بل خبيث سره يو ځائې كوى ، بيا به دوئ ټول جهنم ته راجمع كړى او هم دا خلق نقصان اوچتونكى دى] مطلب دا چې څنگه مقناطيس ، اوسپنه ځانه ته راكاږى ، بجلى وابنه ځان ته راكاږى ، او دنوې سائنسى تجربو تر مخه د ټولې د نيا نظام په دې قائم دې چې يو څيز بل لره ځان ته راكاږى . يو خبيث مال بل خبيث مال ځان ته راكاږى او بيا خبيث اثرات پيدا كوى ، نتيجه ئې دا ده چې الله تعالى به ټول خبيث مالونه په جهنم كښې كړى او ددغې مالونو خاوندان به لوئې نقصان كښې پريوزى .

ليكن نور ډيرو مفسرينو دلته د خبيث او طيب عامه معنى مراد اخستې ده ، پاكانو نه مراد مؤمنان او ناپاكو نه مراد كافران دى . په دې صورت كښې به مطلب دا وى چې د بيان شوؤ حالاتو په جوړ الله تعالى دا غواړى چې د كافر او مؤمن ترمينځه بيلتون راشى ، مؤمنان ټول په جنت كښې او كافران ټول په جهنم كښې رايوځائې كړى .

په اته ديرشم آيت مبارك كښې بيا د تربيت په انداز كښې خطاب داسې دې چې مينه راپاره كول او ويرول په كښې دى ، مينه راپاره كول داسې دى چې كه دوئ ددې ناكاره كارونو نه اوس هم منع شى او ايمان كښې داخل شى نو ټول گناهونه به ورته معاف شى . او ويرول داسې دى چې كه اوس هم دخپلو كړو نه منع نشو نو ځان دې پوهه كړى چې دوئ دپاره به الله ﷻ ته د نوى قانون جوړولو او پرې دغور كولو حاجت نه وى . هم هغه زوړ قانون به دوئ دپاره هم وى كوم چې په پخوانو كافرانو وخت په وخت جارى كړې شوې دې ، يعنى په دنيا كښې تباه برباد شو او په آخرت كښې د عذاب حقدار جوړ كړې شو .

وَقَاتِلُوهُمْ

| اواوجنگیږئ دهغوئ سره

| اودوئ سره

حَتّٰى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَّيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّٰهِ ۚ فَإِنِ

تر هغې پورې | چې پاتې نۀ شي | فتنه | اوشي | دين | ټول | الله دپاره | نوکه

ترهغې جنگ کوئی چې فتنه [شرک] پاتې نشی | اوټول دين صرف د يو د الله ﷻ شي

انْتَهَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝ وَإِنْ

منع شو هغوئ | نو بيشکه الله | په هغه کارونو | چې کوی ئې هغوئ | ليدونکې دې | نوکه

نوکه دوئ [دفتنې يعنی شرک نه] منع شی | نو الله ﷻ ددوئ کارونه وينی گوری |..........اوکه

تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ مَوْلٰىكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلٰى

مخ واړووهغوئ | نوپوهه شئ | چې بيشکه الله | سرپرست ستاسودې | ښۀ مولی دې

دوئ مخ اوگرځوی | نو پوهه شئ چې الله ﷻ ستاسو ملگرې دې | الله ﷻ ډيرښه ملگرې دې

وَنِعْمَ النَّصِيرُ ۝

اوښۀ مددگاردې

اوډير ښه مددگار دې

## آسان ترجمه قرآن

او (مسلمانانو!) دې کافرانو سره جنگ کوئ، تر دې چه فتنه باقي پاتې نه شي، او دين پوره په پوره دالله شي بيا که دوی واپس شی نو الله د دوی اعمال ښه وينی او که دوی مخ واړوي نو الله ستاسو نگهبان دې، څه ښه مددګار او څه ښه امدادي دې!

## خلاصه تفسير

﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتّٰى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَّيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّٰهِ ۚ﴾ او [بيا ددوی دکافر پاتې کيدو په صورت کښې اې مسلمانانو] تاسو وې [دعربو کفارو] سره تر هغه پورې جنگ کوئي چه په دوي کښې فساد دعقيدې [يعني شرک] پاتې نشي او [دالله ﷻ] دين [خالص] هم دالله ﷻ پاتې شي [د بل يو دين خالص کيدل دالله ﷻ دپاره موقوف دي په قبول اسلام باندې. نو حاصل داشو چه شرک پريږدي او اسلام اختيار کړي. خلاصه داشوه چه که اسلام نه راوړي نودوي سره جنگ کوئي تر څو چه اسلام قبول نه کړي ځکه چه دعربو کفارو نه جزيه نه شی اخستلې کيدې] ﴿فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝﴾ بيا که دوی [دکفر] نه منع شي نو [ددوي ظاهري اسلام قبول کړئي د زړه حال ئې مه راسپړئي ځکه چه که دوي د زړه نه ايمان نه راوړي نو] الله ﷻ ددوي اعمال ښه گوري [هغه به په خپله پوهه شي ستاسوپرې څه] ﴿وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ مَوْلٰىكُمْ ۚ﴾ اوکه [داسلام] نه

مخ وارړوي نو [دالله ﷻ نوم واخله او ددوي دمقابلې نه مه اوره او] يقين ساته چه الله ﷻ [ددوي په مقابله کښې ستا رفيق دې] ﴿نِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيْرُ﴾ اوهغه ډېر ښه رفيق دې او ډېرښه مددګار دې [نو هغه به ستا ملګرتيا او مدد کوي].

## معارف او مسائل

دا د سورت انفال يو کم څلويښتم آيت دې. ددې په دوؤ لفظونو باندې ژور نظر اچول دی، چې فتنه او دين دې، دا دواړه د عربی لغت په اعتبار سره د ګڼړو معنو دپاره استعماليږي. دتفسير د امامانو، صحابه کرامو او تابعينو نه دلته ددې دوه معنې منقول دی.

① يوه دا چې فتنې نه مراد کفر او شرك واخستې شی او دين نه مراد اسلام واخستې شی. څنګه چې عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه منقول دی. ددې تفسير په بنا به د آيت مبارك معنی دا شی چې مسلمانان د ې کافرانو سره تر هغې وخته پورې جنګ کول جاری لری چې کفر ختم شی او په ځائې ئې اسلام راشی. او د اسلام نه سوا بل هيڅ دين او مذهب باقی پاتې نشی. په دې صورت کښې به دا حکم يوازې د مکې او عربو خلقو دپاره مخصوص وی ولې چې جزيرة العرب د اسلام کور دې، په دې کښې د اسلام نه سوا بل دين پاتې کيدل، اسلام دپاره خطره جوړيږي. باقی په ټوله دنيا کښې نور دينونه ا و مذهبونه قائم لرلې شی. څنګه چې د قرآن عظيم الشان نور آيتونه او د حديث روايتونه په دې ګواه دی.

② ددې بل تفسير د عبدالله بن عمر رضي الله عنه وغيره نه داسې منقول دې چې دلته د فتنې نه مراد ضرر رسول، عذاب او مصيبت دې چې هميشه دپاره به دمکې د کفارو د طرفنه په مسلمانانو باندې جاری وو. تر څو چې مسلمانان په مکه کښې وؤ هر وخت به دکافرانو په ګرفت کښې راګلی وو. قسماقسم تکليفونه اوضررونه به ئې برداشت کول،مدينې منورې ته د هجرت کولو نه پس به يويو مسلمان پسې کافران ګرځيدل چې لوټ کول به ئې اووژل به ئې،مدينې ته د مسلما نانوپه وررسيدوسره به ئې هلته هم پرې حملې جاری لرلې اوخپل تاؤ به ئې پرې سړولو. ددې په مقابله کښې بل طرفته د دين معنی قهر او غلبه ده، په دې صورت کښې د آيت مبارك تفسير دا شو چې مسلمانان د ې کافرانو سره تر هغې وخت جنګ کول جاری لری چې تر څو مسلمانان نه د دوئ د ظلمونو نه محفوظ شوی نه وی. او د اسلام دين غالب شوې نه وی. چې دغيرو د ظلمونو د مسلمانانو حفاظت اوکړې شی. د عبدالله بن عمر رضي الله عنه د يوې واقعې نه هم دد ې تفسير تائيد کيږي، واقعه داسې وه چې هر کله حجاج بن يوسف د مکې د امير عبدالله بن زبير رضي الله عنه په مقابله کښې په هغوئ فوج راؤخيژؤ او دواړو طرفونو نه د مسلمانانو توره په مسلمانانو باندې چليدې. نو دوه کسان، عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته راغلل او وې فرمائيل چې تاسو وينئ ګورئی چې مسلمانان په څه مصيبت کښې ګرفتار دی او تاسو ددې د بنديز کولو دپاره ميدان ته نه راؤځئ. حالانکه تاسو د عمر بن الخطاب رضي الله عنه ځوئې يئ، کوم چې به داسې حالات نه برداشت کول. عبدالله بن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چې وجه ددې داده

چې د مسلمان وینه تویول الله تعالی حرام کړې دی ، دوئ دواړو عرض اوکړو چې آیا تاسو د قرآن عظیم الشان د ا آیت مبارك ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتّٰى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ نه دې لوستلې ، عبدالله بن عمر ﷺ اوفرمائیل چې بیشکه دا آیت مبارك وایم او په دې عمل هم کوم ، مونږ هم ددې آیت مبارك په موجب کافرانو سره جنګ تر هغې وخته پورې جاری اولرلو چې فتنه ختمه شوه او د اسلام دین غالب شو ، او تاسو خلق دا غواړئ چې ا وس خپل مینځ کښې جنګ کولو سره بیا فتنه راپورته کړې شی . په دې شان غیر الله ته غلبه حاصله شی او دحق دین خلاف برې بیا مومی؟(١) مطلب ئې دا ووچې د جهاد اوجنګ حکم د کفرد فتنې او د کافرانو دظلمونو په مقابله کښې وو چې هغه مو ا وکړو او په مخه مو جاری اولرلو . تر دې چې دغه فتنه ختمه شوه . د مسلمانانو په مینځ کښې خانه جنګی ، په دې باندې قیا س کول صحیح نه دی . بلکه چې د مسلمانانو خپل مینځ کښې جنګ وی نو دغې وخت دپاره د رسول کریم ﷺ دا هدایت دې چې په دې کښې ناست بنده د ولاړ بنده نه زیات غوره دې .

دد ې تفسیر خلاصه داده چې په مسلمانانو باندې اسلام د دښمنا نو په خلاف جهاد او جنګ کول تر هغې وخت پورې واجب دی چې په مسلمانانو باندې د دوئ د ظلمونو
فتنه هم ختمه شوې نه وی ، او اسلام په ټولو دینونو غالب شوې نه وی ، او دا صورت به یوازې دقیامت نزدې زمانه کښې وی ځکه چې دجهاد حکم تر قیامته پورې جاری او باقی دې .

د اسلام د دښمنانو خلاف دجهاد او جنګ نتیجه کښې دوه صورتونه پیدا کیدې شو ، یو دا چې کافران په مسلمانانو باندې د زور ظلم کولونه واوړی یا خو په اسلام راوړلو سره د مسلمانانو رونړه جوړ شی ، یا پخپل کفر قائم پاتې شی خو په مسلمانانو باندې د زور او ظلم نه لاس واخلی او د فرمانبرداریٔ لوظ ، قول مسلمانانو سره اوکړی .

② دویم صورت ئې دادې چې یو صورت هم په دې دواړو کښې قبول نه کړی او مقابلې ته ملا اوتړی نو په راتلونکی آیت مبارك کښې ددې دواړو صورتونو حکمونه داسې بیان شوی دی دی .فرمائی چې ﴿فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾[یعنی که هغوئ منع شی نو الله ﷻ دهغوئ عملونه وینی]

دهغې په جوړ به ورسره معامله کوی چې دهغه حاصل دادې چې که دوئ د خپلو کړو نه واوړیدل نو په خلاف دې ئې جهاد بند کړې شی . په دې صورت کښې مسلمانانو ته دا خطره کیدې شوه چې د جنګ نه پس د کافرانو د طرفنه دصلح لوظ کول یا خپل اسلام ښکاره کول ډیر ممکن دی چې یو جنګی جال یا دهوکه وی په داسې صورت کښې که مسلمانان ورسره جنګ بند کړی نو ضرر به بیا مومی .

نو ددې خطرې جواب په دې الفاظو سره ورکړې شو چې مسلمانان د ظاهری عملونو پابند دی ، د زړونو لیدونکې او په پټو رازونو باندې ئې پوهیدونکې یوازې الله تعالی دې . کفار

(١) صحیح البخاری، کتاب التفسیر سورة الانفال، باب قوله وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة الخ: ج۲، ص ۶۷۰

چې خپل اسلام ښکاره کړي یا دصلح لوظ ا وکړي نو مسلمانان په جنګ بندولو باندې مجبور دي . او دا معامله الله تعالی ته سپارل پکار دي چې په ریښتونې اسلام قبول کړې یا د صلح لاس رامخکښې کړې دې. یا د هوکه ئې په کښې غرض ده . که داسې څه وي نو الله تعالی به دهغې بل څه انتظام اوکړي ، مسلمانانو لره پکار دي چې په د اسې خیالونو او خطرو باندې دخپلو معاملو بنیاد قائم نه کړي که د اسلام ښکاره کولو یا د صلح د معاهدې نه پس هم پرې لاس پورته کړي نو هم مسلمانان به مجرمان وي لکه د صحیح بخاري او مسلم په یو حدیث پاك کښې د رسول کریم ﷺ ارشاد دې چې ماته ددې حکم راکړې شوې دې چې د اسلام دښمنانو سره جنګ جاري اولرم تر هغې پورې چې کلمه د لا اله الا الله محمد رسول الله قبوله کړي . مونځ قائم کړي او زکوة ادا کوي ، کله چې داوې داسې اوکړي نو وینې او مالونه ئې تول محفوظ شو. سوا ددې نه چې د اسلامی قانون تر مخه ورته د جرم کولو په وجه سزا ورکړې شي او د زړونو حساب به ئې په الله تعالی وي[1] چې دوئ په اخلاص سره کلمه او د اسلام عملونه قبول کړي دي اوکه په دهوکه منافقت سره ؟

ابی داود کښې یو بل حدیث پاك کښې د ډیرو صحابه کرامو په روایت سره نقل شوی دی چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوك په یو معاهد باندې څه ظلم اوکړي یا ورته زیان اورسوی یا د هغه د طاقت نه زیات کار ترې واخلی یا د هغه د مرضئ نه بغیر د هغه څه څیز ترې واخلی نو زه به د قیامت په ورځ د مسلمانانو خلاف ددغه معاهد مرسته کوم[2].

دقرآن عظیم الشان دې آیتونو اوحدیث دې روایتونو سره په ظاهره مسلمانوته خطره راپیښیدل داسې ښکاریده چې په قابو کښې راغلی کافر کوم چې داسلام غټ نه غټ دښمن وي صرف د ځان او مال بچ کولو په غرض دا سلام کلمه اووائی. نومسلمانانو باندې لازم دی چې فورا خپل لاسونه ترې بند کړي نو په دې طریقه خو مسلمانان په هیڅ دښمن باندې قابو نشی پیدا کولئ مګر الله ﷻ د هغوئ د زړونو پټ رازونه پخپله ذمه واخستل ا و مسلمانانو ته ئې په معجزانه انداز کښې اوخودل چې دوئ ته په جهاد او میدان جنګ کښې عملی طور دغسې څه لانجه پیښه نشوه البته د صلح په حالت کښې په سوؤنو داسې منافقان پیدا شو چې په دهوکه سره ئې خپل ځانونه مسلمانان ښکاره کړل ، په ښکاره به ئې مونځونه کول ، روژې به ئې نیولې ، او ورسره ، ځینې ذلیل خلق په کښې داسې هم وو چې دې نه به ئې صرف غرض مسلمانانو نه دنیاوی فائدې حاصلول وو. او دښمنی ورسره د کولو باوجود به ئې د مسلمانانو د بدلې اخستو نه ځانونه ساتل ځینې به په کښې داسې هم وو چې سیاسی مقاصد به ئې لرل ، د مسلمانانو رازونه به حاصلول او دا ئې مقصد وو چې تر یو سازش لاندې مخالفینو ته ئې

---

[1] ) صحیح البخاری، کتاب الإیمان، باب فان تابوا وأقاموا الصلوة الخ: ج ۱، ص ۸، وصحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب الأمر بقتال الناس الخ: ج ۱، ص ۳۷

[2] ) سنن ابی داود، کتاب الخراج والأمارة والفئ، باب فی تعشیر أهل الذمة الخ: ج ۲، ص ۴۳۳

راورسیږي مگر ددې تولو باره کښې د الله تعالیٰ قانون مسلمانانو ته هم دا هدایت اوکړو چې هغوئ سره د ې دمسلمانانو پشان معامله کوی تر څو چې هغوئ نه پخپله اسلام دښمنی او د لوظ ا و قول نه آؤړیدل ثابت نشی . د قرآن عظیم الشان دا تعلیم په هغه صورت کښې وو چې د اسلام دښمنان د خپلې دښمنئ نه د آؤړیدو اقرار او لوظ اوکړی ، او دویم صورت دا دې چې کفار پخپل ضد باندې کلك پاتې شی نو ددې باره کښې دې پسې آیت مبارك کښې فرمائی چې ﴿ وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوْٓا أَنَّ اللّٰهَ مَوْلٰىكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيْرُ ﴾ [یعنی که هغوئ خبره اونه منی نو تاسو پوهه شئ چې الله تعالیٰ ستاسو مددگار دې ، او هغه ډیر ښه مددگار او ډیر ښه حمایتی دې]

حاصل ئې د ادې چې که کافرانو د خپل زور ، ظلم او کفر ، شرك نه منع نشو نو دمسلمانان په ذمه هغه حکم دې چې پورته بیا ن شو یعنی جنگ ورسره جاری اوساتئ . او جهاد او جنگ هر کله چې په لویو لښکرو ډیرو وسلواو سامان سره عادتا کیدې شی چې مسلمانانو سره به دا ډیر کم وو څکه د جنگ حکم ورته گران پریوتو یا د لږ شمیر او لږ سامان په وجه به ئې دا محسوسول چې گنی مقابله کښې به کامیاب نشو ، نو ددې علاج په دې شان اوکړې شو چې اگر که کافرانو سره سامان زیات دې او په شمیر کښې هم زیات دی خو د الله تعالیٰ د غیبی امداد نه محرومه دی کوم چې مسلمانانو ته حاصل وی او په هر میدان کښې ئې پخپلو سترگو وینی گوری ، ا و وې فرمائیل چې هسې خو په دنیا کښې مدد او مرسته هر چاته د چا د طرفنه حاصله وی لیکن اصلی خبره د مدد گار قوت ، طاقت او د علم او تجربې ده . ښکاره خبره ده چې د الله تعالیٰ طاقت ، قوت ، علم او بصر نه زیات خو لا څه کوې چې د هغه برابر او د هغه پشان تول جهان ته هم حاصلیدې نشی ولې چې هغه د تولو نه زیات غوره مرستیال او مددگار دې .

[الحمد لله ! پاره نمبر ۹ ختمه شوه]